# تسهيل الحقائق

پښتو شرح

# كنز الدقائق

تصنيف: مولانا **نصيب الله** (ابن الحاج عبدالصمد ماليزئی نوّرالله مرقده)

جلد دوهم

پښتو ژباړه

مولوی سعيداكبر (رستاد) فاضل احسن العلوم كراچی

مفتی نوراحمد (نور) فاضل دارالعلوم كراچی

مكتبة الارشد كوئټه

فون: 03138895104,03013725288

﴿جمله حقوق له مؤلف سره محفوظ دي﴾

دکتاب نوم : . . . . . . . . . تسهیل الحقائق پښتو شرح کنزالدقائق

مؤلف: مولانا نصیب الله (ابن الحاج عبدالصمد مالیزئی نورالله مرقده)

ناشر: مکتبة الارشد کوئټه ،فون نمبر . ۰۳۱۳۸۸۹۵۱۰۴۰۳۰۱۳۷۷۲۵۲۸۸ -

دلاسته راوړلو ځایونه:

مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوئټه

مکتبه حنفیه کاسی روډ کوټه

مکتبة العرفان کاسی روډ کوئټه

مکتبه دارالاخلاص پشاور

مکتبه اسلامیه کاسی روډ کوئټه

مکتبه عمرفاروق پشاور

مکتبه دارالعلوم کاسی روډ کوټه

مکتبه رشیدیه اکوړه ختک

مکتبه حقانیه چمن

مکتبه علمیه اکوړه ختک

مکته عمرفاروق کراچی

مکتبه الاحسان بنو

| | |
|---|---|
| كتاب البيوع | 6 |
| فصل | 16 |
| باب خيار الشرط | 20 |
| باب خيار الرؤية | 28 |
| باب خيار العيب | 34 |
| باب البيع الفاسد | 48 |
| فصل | 69 |
| فصل | 73 |
| باب الاقالة | 75 |
| باب التولية والمرابحة | 78 |
| فصل | 85 |
| باب الربوا | 89 |
| باب الحقوق | 97 |
| باب الاستحقاق | 99 |
| فصل | 102 |
| باب السلم | 106 |
| باب المتفرقات | 119 |
| باب الصرف | 126 |
| كتاب الكفالة | 137 |
| فصل | 153 |
| باب كفالة الرجلين والعبد وعنه | 158 |
| كتاب الحوالة | 163 |
| كتاب القضاء | 167 |
| فصل | 175 |
| كتاب القاضي الى القاضي وغيره | 177 |
| باب التحكيم | 184 |

| | |
|---|---|
| مسائل شتى | 186 |
| كتاب الشهادة | 196 |
| باب من تقبل شهادته ومن لا تقبل | 205 |
| باب الاختلاف في الشهادة | 212 |
| باب الشهادة على الشهادة | 218 |
| باب الرجوع عن الشهادة | 222 |
| كتاب الوكالة | 228 |
| باب الوكالة بالبيع والشراء | 232 |
| فصل | 241 |
| باب الوكالة بالخصومة والقبض | 246 |
| باب عزل الوكيل | 251 |
| كتاب الدعوى | 253 |
| باب التحالف | 264 |
| فصل | 269 |
| باب ما يدعيه الرجلان | 271 |
| باب دعوى النسب | 279 |
| كتاب الاقرار | 283 |
| باب الاستثناء وما في معناه | 291 |
| باب اقرار المريض | 296 |
| كتاب الصلح | 301 |
| فصل | 305 |
| باب الصلح في الدين | 308 |
| فصل | 310 |
| كتاب المضاربة | 313 |
| باب المضارب يضارب | 318 |
| فصل | 322 |
| كتاب الوديعة | 327 |

| | |
|---|---|
| كتاب العارية | 334 |
| كتاب الهبة | 339 |
| باب الرجوع في الهبة | 344 |
| فصل | 348 |
| كتاب الاجارة | 350 |
| باب ما يجوز من الاجارة وما يكون خلافا فيها | 357 |
| باب الاجارة الفاسدة | 362 |
| باب ضمان الأجير | 369 |
| باب الاجارة على احد الشرطين | 372 |
| باب اجارة العبد | 373 |
| باب فسخ الاجارة | 376 |
| مسائل متفرقة | 378 |
| كتاب المكاتب | 380 |
| باب ما يجوز للمكاتب ان يفعله او لا يفعله | 383 |
| فصل | 387 |
| باب كتابة العبد المشترك | 392 |
| باب موت المكاتب وعجزه وموت المولى | 395 |
| باب الولاء | 400 |
| فصل | 402 |
| كتاب الإكراه | 404 |
| كتاب الحجر | 408 |
| فصل في حد البلوغ | 414 |
| كتاب المأذون | 415 |
| كتاب الغصب | 423 |
| فصل | 428 |
| كتاب الشفعة | 433 |
| باب طلب الشفعة والخصومة فيها | 435 |

| | |
|---|---|
| باب ما تجب فيه الشفعة وما لا تجب | 442 |
| باب ما تبطل به الشفعة | 444 |
| كتاب القسمة | 448 |
| كِتَابُ المُزَارَعَةِ | 460 |
| كتاب المساقاة | 465 |
| كتاب الذبائح | 467 |
| كتاب الاضحية | 480 |
| كتاب الكراهية | 489 |
| فصلٌ في الاكلِ وَالشربِ | 490 |
| فصلٌ في اللبسِ | 492 |
| فصل في النظر واللمس | 496 |
| فصل في الاستبراء وغيره | 502 |
| فصل في البيع والاحتكار والاجارة وغيرها | 504 |
| كتاب إحياء الموات | 510 |
| فصل في الشرب | 514 |
| كتاب الاشربة | 518 |
| كِتَابُ الصَّيدِ | 522 |
| كتاب الرهن | 527 |
| باب ما يجوز ارتهانه والارتهان به وما لا يجوز | 532 |
| باب الرهن يوضع على يد عدل | 537 |
| باب التصرف في الرهن والجناية عليه وجنايته على غيره | 540 |
| فصل | 545 |
| كتاب الجنايات | 547 |
| باب ما يوجب القود وما لا يوجبه | 553 |
| بَابُ القِصَاصِ فِيمَا دُونَ النَّفسِ | 559 |
| فصل | 562 |

| | |
|---|---|
| فصل | 565 |
| باب الشهادة في القتل | 568 |
| بَابٌ في اعتِبَارِ حَالَةِ القتلِ | 572 |
| كتَابُ الدِيَاتِ | 574 |
| فصل | 576 |
| فصل في الشجاج | 578 |
| باب في الجنين | 583 |
| باب ما يحدثه الرَجلُ في الطَّريق | 585 |
| فصل في الحائط المائل | 588 |
| بَابُ جِنَايَةِ البَهِيمَةِ وَالجِنَايَةِ عليها وَغيرِ ذالك | 590 |
| باب جناية المملوك وَ الجناية عليه | 594 |
| فصل | 600 |
| باب غصب العبد والمدبر والصبي وَ الجناية في ذالك | 603 |
| كتاب القسامة | 606 |
| كتاب المعاقل | 612 |
| كتاب الوصايا | 615 |
| باب الوصية بثلث المال ونحوه | 619 |
| باب العتق في المرض | 629 |
| باب الوصية للأقارب وغيرهم | 633 |
| باب الوصية بالخدمة وَ السكنى وَ الثمرة | 636 |
| باب وصية الذمي | 637 |
| باب الوصي | 638 |
| فصل في الشهادة | 644 |
| كتاب الخنثى | 646 |
| مسائل شتى | 649 |
| كتاب الفرائض | 671 |

## كتاب البيوع

داكتاب دبيع په بيان كې دى.

بيع په لغت كې مبادلة الشئ بالشئ (يو شى په بل شي سره بدلولو) ته وايي. او شرعي تعريف يې هغه دى كوم چې مصنف رحمه الله كړى دى. دبيع لفظ له اضدادو څخه دى دخريد او فروخت دواړو لپاره مستعمل دى. سوال دادى چې لفظ دبيع مصدر دى او مصدر خو تثنيه او جمع نه راوړل كيږي نو مصنف رحمه الله بيا ولي بيوع د جمع په صيغه سره ذكر كړى دى؟ يو جواب خويې دادى چې دلته بيع دمبيع اسم مفعول په معنى دى او مبيعات ډيرې انواعې او اقسام دي نو ځكه دادجمع په صيغه سره ذكرشوى دى. دوهم جواب دادى چې مصنف رحمه الله دكثرت انواع طرفته په اشاره كولو سره دبيع لفظ جمع راوړى دى.

دبيع لفظ متعدي ودوو مفعولوته وي لكه چې ويل كيږى (بعتك الشئ) او كله دتاكيد لپاره پر اول مفعول باندې (من) داخلوي لكه (بعت من زيد الدار) او كله لام زائده پر داخلوي لكه چې ويل كيږى (بعت لك الشئ).

دمبيعى په اعتبار سره مطلق بيع پر څلور قسمه ده: سامان دسامان په عوض خرڅول دي ته بيع مقائضه ويل كيږى. سامان دپيسو په عوض خرڅول دي قسم ته بيع ويل كيږى. ځكه چې دا دبيع دانواعو هغه مشهور قسم دى. پيسې دپيسو په عوض خرڅول دي ته بيع صرف ويل كيږى. پوردعين په عوض خرڅول دي ته بيع سلم ويل كيږي. دبيع ركن ايجاب او قبول دى او حكم دبيع ملك دى او شرطونه دبيع دادي چې عقدكوونكى به عاقل او مميزوي او مبيعه به مال متقوم او مقدور التسليم وي.

**الحكمة**: اعلم ان الله سبحانه وتعالى خلق الانسان مدنيا بالطبع اى يحتاج الى من يتبادل معه المنفعة في كل الامور سواء كان ذالك من طريق البيع والشراء او الاجارة او غرس الارض والاشتغال بالفلاحة او غير ذالك من جميع الوجوه التى هى سبب فى جعل الناس مجتمعين غير متفرقين ومتجاورين غير متباعدين واذا كان الامر كذالك وكان الانسان ذا نفس أمارة بالسوء والحرص والطمع من عاداتها الماصلة فيها وضع الشارع الحكيم قانونا للمعاملات حتى لاياخذ المرء ماليس له بحق وبذالك تستقيم احوال الناس ولاتضيع الحقوق وتكون المنافع متبادلة بين بنى الانسان على احسن الوجوه واتمها. (حكمة التشريع).

(١) هو مبادلة المال بالمال بالتراضى (٢) ويلزم بايجاب وقبول وضعا للمضى (٣) وبتعاط (٤) واى قام عن المجلس قبل القبول بطل الايجاب (٥) ولابد من معرفة قدر ووصف ثمن غير مشار (٦) لامشار.

**ترجمه**: هغه بدلول دمال دي په مال سره د طرفينو په رضاسندي سره. او لازميږى په ايجاب او قبول سره چې دواړه په ماضى لپاره وضع شوي وي. او په تعاطى سره. او هريو له طرفينو چې له مجلس څخه ولاړ شي ترقبلولو مخكي نو ايجاب باطليږي. او ضروري دى معلومول دمقدار او دوصف دپيسو هغه چې غير مشار وي نه هغه چې مشار وي.

بيع په لغت كې مَبَادَلَةُ الشَّيْءِ بِالشَّيءِ (يو شى په بل شي سره بدلولو) ته وايي. او شرعي تعريف يې هغه دى كوم چې مصنف رحمه الله كړى دى. دبيع لفظ له اضدادو څخه دى دخريد او فروخت دواړو لپاره مستعمل دى. سوال دادى چې لفظ دبيع مصدر دى او مصدر خو تثنيه او جمع نه راوړل كيږي نو مصنف رحمه الله بيا ولې بيوع د جمع په صيغه سره ذكر كړى دى؟ يو جواب خويې دادى چې دلته بيع دمبيع اسم مفعول په معنى دى او مبيعات ډيرې انواعې او اقسام دي نو ځكه دا د جمع په صيغه سره ذكر شوى دى. دوهم جواب دادى چې مصنف رحمه الله د كثرت انواع طرفته په اشاره كولو سره دبيع لفظ جمع راوړى دى.

دبيع لفظ متعدي وذوو مفعولو ته وي لكه چې ويل كيږى (بِعتُك الشَّى) او كله د تاكيد لپاره پر اول مفعول باندې (مِن) داخلوي لكه (بعت من زيد الدار) او كله لام زائده پرداخلوي لكه چې ويل كيږى (بعتُ لك الشّى).

دمبيعى په اعتبار سره مطلق بيع پر څلور قسمه ده: سامان دسامان په عوض خرڅول دي ته بيع مقائضه ويل كيږى. سامان د پيسو په عوض خرڅول دي قسم ته بيع ويل كيږى. ځكه چې دا دبيع دانواعو هغه مشهور قسم دى. پيسې د پيسو په عوض خرڅول دي ته بيع صرف ويل كيږى. پور دعين په عوض خرڅول دي ته بيع سلم ويل كيږي. دبيع ركن ايجاب او قبول دى او حكم دبيع ملك دى او شرطونه دبيع دادي چې عقد كوونكى به عاقل او مميزوي او مبيعه به مال متقوم او مقدور التسليم وي.

**الحكمة**: اعلم ان الله سبحانه وتعالى خلق الانسان مدنيا بالطبع اى يحتاج الى من يتبادل معه المنفعة في كل الامور سواء كان ذالك من طريق البيع والشراء او الاجارة او غرس الارض والاشتغال بالفلاحة او غير ذالك من جميع الوجوه التى هى سبب فى جعل الناس مجتمعين غير متفرقين ومتجاورين غير متباعدين واذا كان الامر كذالك وكان الانسان ذا نفس أمارة بالسوء والحرص والطمع من عاداتها المتاصلة فيها وضع الشارع الحكيم قانونا للمعاملات حتى لاياخذ المرء ماليس له بحق وبذالك تستقيم احوال الناس ولاتضيع الحقوق وتكون المنافع متبادلة بين بنى الانسان على احسن الوجوه واتمها. (حكمة التشريع).

(١) هو مبادلة المال بالمال بالتراضى (٢) ويلزم بايجاب وقبول وضعا للمضى (٣) وبتعاط (٤) واى قام عن المجلس قبل القبول بطل الايجاب (٥) ولابد من معرفة قدر ووصف ثمن غير مشار (٦) لامشار.

**ترجمه**: هغه بدلول دمال دي په مال سره دطرفينو په رضامندي سره. او لازميږي په ايجاب او قبول سره چې دواړه د مضى لپاره وضع شوي وي. او په تعاطى سره. او هر يو له طرفينو چې له مجلس څخه ولاړ شي تر قبلولو مخكې نو ايجاب باطليږي. او ضروري دى معلومول دمقدار او دوصف د پيسو هغه چې غير مشاروي نه هغه چې مشاروي.

**تشريح**: (١) مصنف رحمه الله دبيع شرعي تعريف كړى دى چې بيع شرعًا (مبادلة المال بالمال بالتراضى) (يو مال دبل مال په عوض دطرفينو په رضامندي سره بدلولو) ته وايي. دمال په قيد سره احترازراغى له هغه صورت نه چې په هغه كې له يوه طرفه مال وي او له بل طرف څخه هيڅ نه وي. ځكه چې هغه ته هبه يا وصيت ويل كيږي. همدارنگه له هغه صورت څخه هم احترازراغى په كوم كې چى له يو طرف څخه مال وي او له بل طرف

څخه منفعت وي ځکه چې هغه ته اجاره ويل کيږي او د (بالتراضی) قيدیې ځکه ورسره ذکرکړی دی چې دلته مقصود د بيع شرعی بيانول دی او بيع شرعی له تراضی بغيره نه وي لکه چې الله تعالی فرمايلي دي :( يا أيها الذين آمنوا لا تأكلوا أموالكم بينكم بالباطل إلا أن تكون تجارة عن تراض منكم )( ای مؤمنانو امه خورئ مالونه يو د بل پخپلو کي په باطله طريقه سره مگر داکه تجارت وي په خوښه سره يو د بل ) . يو بل قيد هم پکار دی چې ولګيږی (أی مبادلة المال بالمال بطريق التجارة بالتراضی ) دغه قيد ته ځکه ضرورت شته چې هبه بشرط العوض ووځي ځکه چې هبه بشرط العوض که څه هم په ابتداء کي بيع نه ده مگر بقاءً د بيع په حکم کې ده .

**فائده** : خرڅوونکي ته په اصطلاح کی بائع او اخستونکي ته مشتري او د دواړو ترمنځ فيصله شوي نرخ ته ثمن ويل کيږی هغه تر بازاري نرخ کم وي او که زيات وي او د بازار عام نرخ ته قيمت ويل کيږي، او کوم شی چې خرڅيږي هغه ته مبيعه ويل کيږي له متعاقدينو څخه چې کوم يو اول خبره وکړي هغه ته ايجاب او د هغه بل خبرې ته قبول ويل کيږي .

(۲) مصنف رحمه الله فرمايلي دي چې بيع په ايجاب او قبول سره لازميږی چې کله دا دواړه لفظونه په ماضی سره وي، مگر دا تخصيص په لفظ ماضی يوائی د امر (غير الدال علی الحال) او د اسي مضارع څخه د احتراز لپاره دی چې په سوف يا سين سره مقرونه وي که نه په امر دال علی الحال سره هم بيع منعقده کيږي لکه يو څوک چې ووايی (خذبكذا) هغه بل ووايی (اخذت) يا (رضيت) نو دا بيع سمه او صحيح ده همدارنګه په مضارع غير مقرون په سوف او سين سره هم بيع منعقده کيږي لکه يو څوک چې ووايی (ابيعک) هغه بل ووايی (اشتريه) نو بيع منعقده کيږي په دي شرط چې د متعاقدينو نيت به سمدستي د خرڅولو وي يوائي د بيع د وعدي نيت به يي نه وي .

**تنبيه** : د امام شافعی رحمه الله په نزد يوائي په ايجاب او قبول سره بيع نه لازميږي بلکي د مجلس تر پايه پوري له متعاقدينو څخه هر يو د بيع د ردولو اختيار لري د دوئ په اصطلاح کي دي ته خيار مجلس وايی، د احنافو په نزد تر ايجاب او قبول وروسته متعاقدينو لره خيار مجلس نشته ځکه چې له ايجاب او قبول وروسته په مبيعه کی د مشتري مِلک ثابت شو نو اوس که چيرته يو له دوئ څخه د خيار مجلس په وجه بيع فسخ کوي نو په دي سره د هغه بل د حق ابطال لازميږي (وقال عليه السلام: لاضرر ولاضرار في الاسلام) .

(۳) قوله وبتعاط ای ويلزم البيع بتعاط، يعنی په تعاطی سره بيع لازميږی د تعاطی په صورت کې که څه هم له متعاقدينو څخه يو هم څه ونه وايی نو بيع لازميږي، بيع د تعاطی داده چی عاقدين د عقد بيع په وخت کی په ژبه ايجاب او قبول ونه کړي بلکې بغير له ايجاب او قبول نه مشتري د مبيعی قيمت بائع ته ورکړي او بائع مبيعه مشتري ته ورکړي، يعنی لاس په لاس يی ورکړي په دا ډول بيع کی په خوله څه ويل ضروري نه دي، ځکه چې په بيع تعاطی کې د بيع معنی (يعنی د متعاقدينو رضامندي ) راځی ځکه چې په جواز بيع کی اصل مؤثر تراضی ده نه صور د الفاظو، البته څرنګه چې د متعاقدينو رضامندي يو پټ (باطني) شی دی چې په هغه باندي د خبريدلو لپاره علامه ضروري ده نو شريعت ايجاب او قبول د هغه قائم مقام ګرځولي دي، او تعاطی څرنګه چی پخپله پر تراضی باندي دال دی نو ځکه بغير ايجاب او قبول دغه بيع منعقده کيږي .

**فائده** : خريد او فروخت څرنګه چې په ژبه سره کيږي همدارنګه دضرورت په وخت کې دخط او کتابت ليږلو په ذريعه سره هم کيږي ، په دې شرط چې خرڅيدونکې شي او دهغه قيمت دليکلو په ذريعه په مناسب دول متعين کړای شي او په معامله کې داسې ابهام پاتې نه شي چې په آينده کې دنزاع (جګړې) انديښنه وي،البته داضروري ده چې په دې صورت کې به اخستونکې او خرڅوونکې شي دسرو او سپينوزرو له قسم څخه نه وي،اونه به دواړه له يوه جنس څخه وي ځکه چې دهم جنس شيانو په خريد او فروخت کې دسامان او قيمت قبض کول په يوه مجلس کې ضروري دی ،څرنګه چې دخط اوليک په ذريعه خريد او فروخت صحيح دی همدارنګه دټيلې فون حکم هم دغسې دی ځکه چې خط اوټيلې فون دواړه پخپلو کې قريبي مماثلت سره لري،اوظاهره ده چې همدارنګه دفيکس په ذريعه باندې هم دخريد او فروخت معامله جائزشي،په اوسنۍ زمانه کې چې دفون يافيکس اومراسلت په ذريعه په ملک کې دننه يابهرله يوه ښاره بل ښارته کوم خريد و فروخت کيږي هغه جائز او صحيح دی . (جديد فقهي مسائل ۲۷۰ص).

(۴)يعنی له متعاقدينو څخه چې کوم يو دبيع ايجاب وکړي نو هغه بل ته اختيار دی چې کل مبيع دکل ثمن سره په همدغه مجلس کې قبول کړي اويايې په همدغه مجلس کې ردکړي،خوکه چيرته دهغه بل له قبليدو څخه مخکې له متعاقدينو څخه يوهسې له مجلس څخه ولاړشي نودهغه اول کس ايجاب باطليږي،نوځکه هغه بل بياقبول نشي کولای ځکه چې ولاړيدل داعراض اورجوع دليل دی اوله متعاقدينو څخه هر يوه لره دهغه بل له قبليدو څخه مخکې داعراض اورجوع حق شته .همدا حکم دهرهغه عمل دی چې پر اعراض باندې دال وي .

**فائده** : شريعت مقدسه دخريد و فروخت په وخت دايجاب اوقبول لپاره اتحادمجلس ضروري ګڼلی دی خودغه اتحادعام دی که حقيقي وي اوکه حکمي،حقيقي خوظاهردی اودحکمي صورت دادی چې په يوه مجلس کې ايجاب وشي اومشتري ته په مناسبه طريقه (دخط يا پيغام رسوونکي په ذريعه ) اطلاع (خبر) ورکول شي ،په موجوده زمانه کې فقهاء کرامو دانسانی ضروریاتو اوحاجتونو په وجه دټيلفون په ذريعه بيع شراء اوطلاق هم په دغه قسم کې شمارلي دي نوځکه دټيلفون په ذريعه که ديوشي په باره کې باقاعده ايجاب اوقبول شوي نودابيع شرعًانافذ العمل ګرځي . (حقانيه ۶جلد ۳۰صفحه).

**تنبيه** : دامام شافعي رحمه الله په نزد خيارقبول دمجلس ترختميدو پورې نه اوږديږي بلکې په ايجاب پورې متصل قبلول ضروري دی، داحنافو په نزدخيارقبول دمجلس ترپايه شته ځکه چې له ايجاب وروسته هغه بل عاقدلره په قبلولو کې دغور او فکر ضرورت دی نوځکه دمجلس ترپايه پورې په مهلت (فرصت) نه ورکولو کې حرج عظيم دی او حرج مدفوع بالنص دی الله تعالى فرمايي : (وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ)

(۵)کوموپيسو ته چې اشاره ونه کړای شي هغوته ثمن مطلقه ويل کيږي ،په ثمن مطلقه سره بيع ناجائزده ځکه چې دمبيعه ياثمن مقدار که چيرته مجهول وي اودهغه طرفته اشاره هم ونه کړای شي نودثمن يامبيعه جهالت راځي چې داپامفضي ونزاع (جګړې ) ته ده اوداقاعده ده چې کومه بيع مفضي ونزاع (جګړې)ته وي هغه ناجائزه ده نوځکه دثمن (پيسو ) وصف اومقدار معلومول ضروري دی .

**تنبیه** : مصنف رحمه الله دوصف لفظ وثمن ته مضاف کړی دی دې خبرې ته یې اشاره کړې ده چې دوصف معلومول یواځې په ثمن کې شرط دی په مبیعه کې شرط نه دی.مګرد مقدارمعلومول په ثمن اومبیعه دواړوکې شرط دی.ځکه نومصنف رحمه الله (قدر) مطلق ذکرکړثمن اومبیعی ته یې نه دی مضاف کړی.

**تنبیه** : په خریداوفروخت کې دثمن اومبیعه ترمنځ په څودوله فرق شوی دی : ۱-دراهم.دنانیر اونوټ دهمیشه لپاره ثمن دي که دوئ پخپل منځ کې سره تبادله شي اوکه دکوم بل سامان په بدله کې وي. ۲-که قیمي شی دمثلي شي په عوض کې وي نوهغه مثلی شی ثمن کیږي اوقیمی شی مبیعه کیږي مثلاپسه دغنموپه عوض خرڅ کړي نوغنم ځرنګه چې مثلی شی دی نوغنم ثمن کیږي اوبزه (پسه) مبیعه کیږي. ۳-که له دواړوطرفو څخه سره یاسپین زروي یاله دواړوطرفوڅخه قیمی سامان وي یاله دواړوطرفو څخه مثلی سامان وي نوپر کوم شي چې (ب) یا(علی) داخل وي چې په عربی ژبان کې دعوض په معنی راځي هغه شی ثمن ګڼل کیږي اوهغه بل شی مبیعه مثلاووایي :بعت هذه الفضة بهذالذهب) نوسره زرثمن کیږي اوسپین زرمبیعه ،یاووایي چې : بعت هذه البقرة بهذه الشاة) نوپسه ثمن شواوغویی مبیعه شو.

(۶)قوله :مشاراي لایشترط ذالک في مشارالیه .یعنی دمبیعی اوثمن طرفته که چیرته متعاقدینو اشاره وکړه مثلا غنموته یې اشاره وکړه ویې ویل مادغه غنم خرڅ کړي دي دهغودراهموپه عوض کې چې ستاپه لاس کې دي ،نودابیع جائزده په دغه صورت کې دعوضینودمقداراووصف دمعلومولوضرورت نشته (مثلادانول چې غنم څوسیره دي یادرهمونه پنځه دي یالس دي اویادرهمونه سمرقندي یابخاري دي ) ځکه چې دعوضینوجهالت داشاره په وجه رفع شوځکه چې اشاره دمعلومولوپه اسبابوکې ترټولوابلغ سبب دی نوځکه دنزاع (جګړې) احتمال نشته.

**تنبیه** : البته په ربویه مالونوکې اشاره نه ده کافي چې کله دغه مال دخپل جنس په بدله خرڅ کړل شي بلکې مقدارمعلومول ضروري دی ځکه چې دربوااحتمال شته مثلاغنم دغنموپه عوض خرڅ کړي یااوربشې داوربشوپه عوض خرڅې کړي نودانا جائزه ده ځکه چې داربویه مالونه دي په ربویه مالونوکې دسود(ربوا) داحتمال په وجه اشاره نه ده کافي بلکې مقدارمعلومول ضروري دی.

> (۷)وصح بثمن حال وباجل معلوم(۸) ومطلقه علی النقد الغالب وان اختلف النقوذ فسد ان لم یبین احدها

**ترجمه** : اوصحیح ده بیع په نقدوپیسوسره اوپه معلومه موده سره اومطلق ثمن محمول کیږي پرغالب نقدباندي اوکه نقود مختلف وونوبیابیع فاسدیږي که چیرته بیان شوی نه وویو ددوئ.

**تشریح** : (۷)یعنی بیع په ثمن حال (یعنی نقدوپیسو) سره هم جائزده اوپه ثمن مؤجل (قرض) سره هم جائزده ځکه چې دالله تعالی ارشاد ﴿احل الله البیع﴾ مطلق دی په هغه کې دقرض اونقدوتخصیص نشته نوځکه دواړه صورتونه جائزدي،خوپه صورت دتاجیل (قرض) دمودي معلومول ضروري دی چې مفضي ونزاع (جګړې) ته نه شي ځکه چې دمودي دنه معلومولوپه صورت کې دمتعاقدینوترمنځ نزاع راتلای شي مثلابائع په یوه میاشت کې دننه پیسې غواړي اومشتري یوکال وروسته پیسوورکولوته تیاروي.

(٨) په بيع كې كه يې چيرته ثمن مطلق پريښودل (له اطلاق ثمن څخه مطلب دادی چې د پيسو مقدار خو معلوم كړي مگر صفت يې ذكر نه كړي مثلاً داسي ووايي : بعت منک بعشرة دراهم .او حال دا چې په ښار كې مختلف قسم درهمونه دي ) شارحينو ددي څلور عقلي صورتونه بيان كړي دي چې په ښار كې كه نقود مختلف وونو دغه اختلاف به يا په رواج او ماليت دواړو كې وي يا به يوازې په ماليت كې وي په رواج كې به نه وي او يا به يوازې په رواج كې وي په ماليت كې به نه وي يا خو په رواج او ماليت كې اختلاف نه وي البته په نامه كې اختلاف وي لكه مصري درهمونه، دمشقي درهمونه وغيره .

نو له مذكوره څلورو صورتونو څخه د اول صورت حكم صاحب كتاب بيان كړی دی چې ويلي يې دي : ومطلقه على النقد الغالب . يعني په ښار كې چې كومه پيسه زياته رواج وي مشتري به هغه وركوي. څكه زياته رواج زياته متعارفه وي او المعروف لكه مشروط داسي وي نو گويا متعاقدينو دعقد په وخت زياته مروجه پيسه شرط كړي ده ،ددوهم صورت حكم يې داسي بيان كړی دی : وان اختلف النقود (في المالية دون الرواج) فسد. يعني نقود كه چيرته په ماليت كې مختلف وو په رواج كې مختلف نه وو نو دا بيع فاسده ده څكه چې دا مفضي ونزاع لره ده څكه چې مشتري دكم ماليت والا پيسې وركوي او بائع د زيات ماليت والا غواړي. البته كه يې په همدغه صورت كې له نقودو څخه يو بيان كړ معلوم يې كړ نو بيا بيع صحيح ده څكه چې اوس دا بيع منضي ونزاع لره نه ده، دريم او څلورم صورت صاحب كتاب نه دي بيان كړي حكما هغه دواړه د اول صورت په ډول جائز دي څكه چې مفضي ونزاع لره نه دي .

(٩) وبا غ الطعام كيلا وجزافا وبإناء او حجر بعينه لم يدر قدره (١٠) ومن باع صبرة كل صاع بدرهم صح في صاع (١١) ولو باع ثلة او ثوبا كل شاة او ذراع بدرهم فسد في الكل (١٢) ولو سمى الكل صح في الكل .

**ترجمه** : او خرڅولای شي غله په پيمانه سره ،په اندازه (اټكل) سره او په معلوم لوښي يا معلومه ډبره سره. چې مقدار يې معلوم نه وي او كه چا خرڅه كړه دغلي كوټه هره كاسه په يوه درهم نو دا بيع صحيح ده په يوه كاسه كې، او كه يې خرڅه كړه (رمه) د پسو يا تان د كپړو هر پسه يا هر گز په يوه درهم نو دا بيع په كل كې فاسد يږي، او كه يې كل بيان كړل نو بيع صحيح كيږي په كل كې .

**تشريح** : (٩) بيع الطعام (له طعام څخه مراد په عرف كې غنم او اوړه دي) مكائلة (يعني په پيمانه) هم جائزه ده او مجازفةً (يعني په اټكل او اندازه ) سره هم جائزه ده. او په كوم معلوم لوښي سره هم جائزه ده چې مقدار يې معلوم نه وي همدارنگه په معلوم كاڼي (ډبره) سره هم جائزه ده چې مقدار يې معلوم نه وي .مگر دا خبره يادساتئ چې بيع مجازفةً هغه وخت جائزه ده چې له خپل جنس نه غير وي مثلاً غنم د جوارو په مقابل كې خرڅ كړای شي او كه چيرته له خپل جنس سره وي مثلاً غنم د غنمو په عوض كې خرڅ كړای شي نو بيا دا بيع جائزه نه ده څكه چې په دغه صورت كې دربوا احتمال دی چې ناجائزه ده .

(١٠) كه چا صبره طعام (دغلي كوټه) خرڅه كړه هره كاسه د يوه درهم په عوض كې نو كه يې چيرته دكوټي كل صاع ونه ښودل او نه يې په همدغه مجلس كې پيمانه كړه چې مقدار يې معلوم شي نو په داسي

صورت کې دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد ځرنګه چې کل صاع معلوم نه دي نو.کل ثمن هم معلوم نه دي نو دجهالت مبيع اوثمن په وجه ايجاب او قبول دتولې کوتې خواته ګرځول متعذر دی نو ځکه داقل معلوم يعنې يوې کاسې خواته ګرځول کيږي نو په يوه کاسه کې بيع صحيح ده په دانوره باقی کې نه ده صحيح،البته که يې چيرته دکوتې ټولې کاسې وروښودلي يايی په همدغه مجلس کې پيمانه کړي نو ځرنګه چې جهالت دمبيع رفع شو ځکه نو دابيع په ټولو کاسو کې دغلې صحيح شوه، دصاحبينو رحمهما الله په نزد په دواړو صورتونو کې بيع صحيح ده ځکه چې په دغه بيع کې چې کوم جهالت دی دهغه رفع کول دبائع او مشتری دواړو په لاس دی نوله دوئ ځخه هريو په همدغه مجلس کې ناپ کولای شي هغه جهالت رفع کولای شي نو ځکه دغه جهالت مفضی ونزاع لره نه کيږي .

**فائده** : دقوت دليل په اعتبار سره دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی،او من حيث التيسير (دآسانتيا) په وجه دصاحبينو رحمهما الله ،قول راجح دی لماقال العلامة ابن عابدين رحمه الله : (قوله وبه يفتى) عزاه فى الشرنبلالية الى البرهان وفى النهرعن العيون وبه يفتى لالضعف دليل الامام بل تيسيرا على الناس وفى البحروظاهر الهداية ترجيح قولهما لتاخيره دليلهما كماهو عادته،قلت لكن رجح فى الفتح قوله وقوى دليله على دليلهما ونقل ترجيحه ايضا العلامة قاسم دن الكافى والمحبوبى والنسفى وصدر الشريعة ولعله من حيث قوة الدليل فلاينافى ترجيح قولهما من حيث التيسير لم رأيته فى شرح الملتقى افاد ذالک وظاهره ترجيح التيسير على قوة الدليل (ردالمحتار ۴ج ۳۱صفحه)

(۱۱) ثُلة بفتح الثاء دپسونو رمې ته ويل کيږي مګر داحکم اوښانو ،غوايانو ،هرهغه شي ته شامل دی چې دهغه په تبعيض کې ضرروي،يعنی که چاد پسونو رمه خرڅه کړه هرپسه ديوه درهم په عوض نو دصاحبينو رحمهما الله ،په نزد دابيع په ټوله رمه کې جائزده صاحبين رحمهما الله ،رمه دغلې پرکاسه باندي قياسوي ،دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد په يوه کې هم جائزنه ده،دامام صاحب رحمه الله په نزد په ټوله رمه کې دابيع ځکه جائزه نه ده چې مبيع اوثمن مجهول دي ځکه چې دپسونو معلوم تعداد (شمير) نه دی معلوم نو دسابقه مسئلې په ډول په يوه کې خو بايد چې جائزوای حال داچې په يوه کې هم جائزنه دی .دا ځکه چې په پسونو کې فرق دی مشتري به اعلی پسه غواړي او بائع به ادنی درجه پسه ورکوي نو په همدي وجه چې دامفضي ونزاع لره کيږي په يوه کې هم جائزنه دی .

همدارنګه که چاکپړه په ګزونو سره خرڅه کړه هريوګزديوه درهم په عوض کې نو دابيع دصاحبينو رحمهما الله ،په نزد په ټوله کپړه کې جائزده اودامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد په يوه ګزه کې لاهم جائزه نه ده دا ځکه چې په پخوازمانه کې به کپړې په لاس جوړيدلې چې هرګزبه يې دپسونو په ډول له بل ګزځخه مختلف وو ،ځکه نو په يوه ګزه کې لاهم جائزه نه ده .

**فائده** : په پورتنيو دوومذکورومسئلو کې هم دآساني په وجه دصاحبينو رحمهما الله پرقول باندي فتوی ورکوله کيږی لمافى تنويرالابصار وشرحه : وفسد فى الكل فى بيع ثلة وثوب كل شاة اوذراع بكذا وكذا الحكم فى كل معدود متفاوت وصححاه فيهمافى الكل وبقولهما يفتى تيسيرا،قال العلامة ابن عابدين الشامى رحمه الله : واجازاه فى الكل كمالوعلم فى المجلس بكيل الول وبه يفتى (الدرالمختار مع الشامية: ۴/ج ۳۲صفحه).

(۱۲) او که په پورتنیو درېیو (۳) مسئلو کې د ټولو تعداد (شمیر) په مجلس کې بیان کړي مثلاً ووایي چې سل پسونه د سلو درهمونو په عوض کې یا سل گزه کپړه د سلو روپو په عوض نو دا بیع صحیح کیږي ځکه چې په دغه صورت کې جهالت نه پاتې کیږي نو په دې وجه چې مفضي ونزاع لره نه ده دا بیع صحیح او جائزه ده .

(۱۳) فلو نقص کیل أخذ بحصته أو فسخ وإن زاد فللبائع (۱۴) ولو نقص ذراع أخذ بکل الثمن أو ترک (۱۵) وإن زاد فللمشتري ولا خیار للبائع (۱۶) ولو قال کل ذراع بکذا ونقص أخذ بحصته أو ترک وإن زاد أخذ کله کل ذراع بکذا أو فسخ (۱۷) وفسد بیع عشرة أذرع من مائة ذراع من دار لا أسهم.

**ترجمه**: که چیرته پیمانه کمه شوه نو یا دې دهغې پاتې حصې په عوض رانیسي یا دې پرېږدي او که زیاته شوه نو هغه د بائع ده . او که په کپړه کې یو گز کم شو نو یا دې په پوره ثمن سره رانیسي یا دې پرېږدي، او که گز زیات شو نو هغه د مشتري دی او بائع لره خیار نشته، او که یې ورته وویل چې هر گز په دومره دی هغه کپړه کمه شوه نو یا دې دهغې پاتې حصې په عوض رانیسي یا دې پرېږدي. او که زیاته شوه ټول تان دې رانیسي هر گز په دومره قیمت یا دې پرېږدي او بیع فاسده ده په لسو گزونو کې د کور نه په حصو کې . .

**تشریح** : (۱۳) که یو چا دغلې کوټه واخیستله په دې شرط چې دا سل کاسې دي د سلو روپو په عوض. بیا یې ناپ کیده وسره معلومه شوه چې دا غله ترسل کاسې کمه ده مثلاً (۹۰) کاسې دي نو مشتري لره اختیار دی که غواړي چې دا موجوده غله د روپو په مقدار رانیسي یعنې (۹۰) کاسې دي د (۹۰) روپو په عوض رانیسي او که غواړي چې بیع فسخ کړي ځکه چې په دا وخت پوره دې باندې د عقد ترتام کیدو مخکې تفرق معامله لازمیږي ځکه چې ده مطلوب سل کاسې دي نو دباقي لسو کاسو لپاره به کوم بل خریدار ته ځي او که چیرته غله ترسلو کاسو زیاته شوه مثلاً یو سلو لس کاسې شوه نو هغه زیاته د بائع ده ځکه چې بیع پر مقدار معین (معلوم) باندې واقع شوې ده چې هغه عقد زائد لره شامل نه دی .

(۱۴) که یو چا په دې شرط کپړه رانیوله چې دا مثلاً لس گزه ده د لسو درهمونو په عوض، یا یې ځمکه رانیوله مثلاً په دې شرط چې دا ځمکه سل گزه ده د سلو درهمونو په عوض . او س داسې وشول چې دا مذکوره کپړه یا ځمکه د مذکور مقدار څخه کم وختل نو مشتري لره اختیار دی چې یا دې په پوره مسمّی پیسو سره رانیسي یا دې پرېږدي ځکه چې ذراع عبارت دی له اوږده او ساره څخه او اوږده او ساره اوصاف دي او داوصافو په مقابل کې ثمن نه وي نو ځکه د مبیع دوصف د کمبوت یا زیادت په صورت کې په پیسو کې کمبوت او زیادت نه کیږي .

(۱۵) او که تر مذکور مقدار کپړه یا ځمکه زیاته شوه نو هغه د ثمن مسمی په عوض کې د مشتري کیږي ځکه چې زیادت ذراع وصف دی چې په مقابل کې یې ثمن نه وي او بائع لره اختیار نشته ځکه چې دا داسې دی لکه یو څوک چې معیوب مبیع خرڅ کړي او دهغه عیب له حساب څخه ثمن مقرر کړي وروسته مبیع غیر معیوب شي نو په هغه صورت کې بائع لره د بیع د فسخ کیدو اختیار نشته همدا رنگه په پورتني مذکور صورت کې هم بائع لره د بیع د فسخ کیدو اختیار نشته .

(۱۶) كه چا د هر گز قيمت ورو ښود مثلاً سل گزه ځمكه يې خرڅه د سلو درهمو نو په عوض هر يو گز د يوه درهم په عوض. او س چې يې ځمكه يې په گزونو كړه هغه كمه وخته مثلاً پنځه نوي گزه شوه نو مشتري لره اختيار دى چې يا موجوده ځمكه په هغونه پيسو رانيسي يعني په پنځه نوي درهمونو يې رانيسي ځكه چې ذراع (گز) كه څه هم وصف دى مگر دلته د هر گز د قيمت په معلومولو سره اصل شو گويا هر گز مستقله كړه ده نو ځكه د گزه په كمبوت يا زيادت سره په پيسو كې هم كمبوت او زيادت راځي. او يا دي پرېږدي په وجه د تفرق د عقد، ځكه چې د دغه اخستونكي مقصود سل گزه وو نو چې هغه يې پوره ونه موندل نو خامخا به دى د هغو پنځو گزونو اخستلو لپاره كوم بل خريدار ته ورځي او كه ځمكه تر مذكور مقدار زياته شوه مثلاً يو سلو لس گزه شو نو مشتري لره اختيار دى كه غواړي ټوله ځمكه دي رانيسي هر گز د يوه درهم په عوض. ځكه چې ټول گزونه د سلو درهمونو رانيول په صورت كې هر گز د يوه درهم په عوض كې نه شو. او كه غواړي بيع دي فسخ كړي ځكه ټول گزونه پر مشتري باندي د لازم كيدو په صورت كې د مشتري ضرر (تاوان) دى ځكه چې كه څه هم ده ته لس گزه زياته كېږه ملاوېږي مگر پيسي خو به هم هغومره زياتي وركوي او مشتري ته د سلو گزونو كا ټولو اختيار نه وركول كيږي ځكه چې د بائع په حق كې تفريق بيع دى چې ناجائز دى.

(۱۷) كه چا له سل گزه سراى څخه لس گزه خرڅ كړل نو د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد دا بيع فاسده ده او د صاحبينو رحمهما الله په نزد جائزه ده، او كه چا د سراى له سلو حصو څخه مثلاً لس حصې خرڅې كړې نو په اتفاق سره جائز دى. په اول صورت كې د صاحبين رحمهما الله دليل دا دى چې د سراى له سلو گزونو څخه د لسو گزونو خرڅول د دغه سراى لسمه حصه خرڅول دى چې كله لسمه حصه خرڅول په اتفاق جائز دى نو له سلو گزونو څخه لس گزه خرڅول هم جائز كيږي. د امام ابو حنيفة رحمه الله دليل دا دى چې گز د هغې آلي نوم دى چې په هغه سره شى ناپ كيږي ځرنگه چې دلته د غه معنى متعذره ده نو ځكه مجازاً له گزه څخه هغه ځمكه مراديږي چې په گز سره ناپ كيږي او پر ځمكه باندي د گز اطلاق هغه وخت كيدلاى شي چې كله هغه معين او مشخصه وي ځكه نا پول فعل محسوس دى محل محسوس غواړي نو دلته خو لس گزه غير معلوم دي ځكه چې دا نه ده معلومه چې د سراى له كوم جانب څخه لس گزه مراد دي. او دا جهالت مفضي و نزاع لره دى ځكه چې بائع به وايي زه لس گزه د سراى له فلان جانب څخه دركوم او مشتري به وايي چې نه زه يې له هغه بل جانب څخه غواړم نو ځكه دا بيع فاسده ده، خلاف له لسو حصو څخه چې هغه امر عقلى دى محل محسوس نه غواړي نو د غه لس حصې په ټول سراى كې مشاعاً مراديږي او مشتري له بائع سره په ټول سراى كې د لسو حصو په اندازه شريك گڼل كيږي ځرنگه چې په دغه صورت كې داسي جهالت نشته چې مفضي و نزاع لره شي نو ځكه دغه صورت جائز دى.

**فائده**: د صاحبينو رحمهما الله قول مفتى به دى. ځكه چې د دغه جهالت رفع كول د متبائعينو په لاس دى چې د مبيعې ځاى متعين او معلوم كړي لما في الدر المختار: وفسد بيع عشرة اذرع من مائة ذراع من دار او حمام وصححاه وان لم يسم جملتها على الصحيح لان از التهاية هما لا يفسد بيع عشر اسهم من مائة سهم اتفاقاً لشيوع السهم. قال ابن عابدين رحمه الله: حاصله انه اذا سمى جملة الدرعان صح والافقيل لا يجوز عندهما للجهالة والصحيح الجواز عندهما لانها جهالة بيدهما اى المتبائعين ازالتها بان تقاس كلها فيعلم نسبة العشرة منها فيعلم المبيع. (الدر المختار مع الشامية ۴/۳۵).

خومولانامفتی غلام قادرنعمانی صاحب مدظلهم فرمايلي دي چې په اوسني زمانه کې فتوی دامام صاحب رحمه الله پرقول مناسبه ده لکه چې فرمايي (القول الراجح هوقول الصاحبين رح لکن الفتوی علی قول ابی حنيفة رحمه الله فی زماننا الیق فی هذه المسئلة (بيع الدار والحمام) لاسيمافی الاسواق الکبيرة والبلدان لان جوانبهامتفاوتة قيمة والفسادوالنزاع فی هذاالزمان اکثر (القول الراجح ۲جلد/صفحه ۳).

(۱۸)ولواشتری عدلاًعلی انه عشرة اثواب فنقص اوزادفسد(۱۹)ولوبين لکل ثوب ثمناًونقص صح بقدره(۲۰)وخيروان زادفسد(۲۱)ومن اشتری ثوباعلی انه عشرة اذرع کل ذراع بدرهم اخذه بعشرة فی عشرة ونصف بلاخيار وبتسعة فی تسعة ونصف بخيار.

**ترجمه**: که يې رانيوه يو سربسته ګاټ په دې شرط چې دا لس کپړې دي بيا هغه زيات يا کم شو نو دا بيع فاسده ده، او که يې بيان کړ د هرې کپړې قيمت بيا هغه کم شو نو دا بيع صحيح ده د هغه په اندازه او اختيار ورکول کيږي او که زيات شو نو بيع فاسد يږي او که چا يوه کپړه رانيوه په دې شرط چې هغه لس ګزه ده هر ګز د يوه درهم په عوض نو را دې نيسي د لسو درهمو په عوض د لسم نيم ګزه په صورت کې بغير اختيار او په نه (۹) درهمه د نه نيم په صورت کې په اختيار سره.

**تشريح**: (۱۸)که يو چا د کپړو سربسته (ګاټ) په لس درهمه په دې شرط واخيست چې دا لس کپړې دي د هرې کپړې ثمن يې نه دی بيان کړی بيا هغه کپړې ترلسو کمې يا زياتې وختې مثلاً نه يا يوولس کپړې شوې نو په دواړو صورتونو کې دا بيع فاسده ده ځکه په اول صورت کې چې کومه کپړه معدومه ده د هغې قيمت معلوم نه دی نو د موجوده کپړو ثمن هم نه معلوميږي نو د جهالت ثمن په وجه دا بيع فاسده ده او په دوهم صورت کې (چې کپړې ترلسو زياتې شي) هم دا بيع فاسده ده ځکه چې په دغه صورت کې دا نه ده معلومه چې مبيعه کومې لس کپړې دي او کومه يوه کپړه به مشتري بيرته واپس کوي نو د مبيعې د مجهول کيدو په وجه بيع فاسده ده.

(۱۹)که يو چا ويل چې دا (ګاټ) زه له تاڅخه رانيسم په دې شرط چې په دې کې لس کپړې دي د لسو درهمو په عوض، هره کپړه د لسو درهمو په عوض يعنې د هرې کپړې ثمن يې بيان کړ، بيا داسې وشول چې کپړې کمې وختې مثلاً نه کپړې يې وموندلې نو د موجوده کپړو په اندازه بيع صحيح ده ځکه چې په دغه صورت کې ثمن مجهول نه دی ځکه چې د هرې کپړې ثمن يې بيان کړی دی دا رنګه يې په معدوم کې قبوليت عقد د موجود د عقد لپاره شرط کړی هم نه دی بلکې په عدد (شمير) کې يې غلطي کړې ده نو په همدې وجه چې هيڅ يو فاسد شرط نشته دا عقد صحيح دی.

(۲۰)البته په پورتني مذکور صورت کې مشتري لره د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار شته، ځکه چې يو اځې داتو (۸) کپړو په اخيستلو سره په معامله کې تفرق لازميږي حال دا چې دده مطلوب پريوه ځای لس کپړې وې، او که چيرته په همدغه صورت کې کپړې ترلسو زياتې شي نو بيا دا بيع فاسده ده ځکه چې دا نه ده معلومه چې مبيعه کومې لس کپړې دي او کومه زياته کپړه به مشتري واپس کوي نو د مبيعې د مجهول کيدو په وجه سره دا بيع مفضي و نزاع لره ده ځکه فاسده ده.

(۲۱)که يو چا يو تان کپړه په دې شرط واخيسته چې هغه لس ګزه ده او هر ګز يې په عوض د يوه درهم کې دی، بيا هغه کپړه لس نيم يا نه نيم ګزه شوه نو د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد په اول صورت کې به يې مشتري په

لس درهمه اخلي بلا اختیاره یعنی مشتري لره دفسخ کولو اختیار نه ورکول کیږي او په دوهم صورت کې ده لره اختیار شته که غواړي دنهو (۹) درهمو په عوض دي واخلي او که غواړي فسخ دي کړي دامام ابویوسف رحمه الله په نزد به یې په اول صورت کې په یو ولس درهمه اخلي او په دوهم صورت کې به یې په لس درهمه اخلي او مشتري لره په دواړو صورتونو کې دبیع دفسخ کولو اختیار شته ځکه چې دایې وویل چې هر یو ګز په عوض دیوه درهم دهر ګز په مقابله کې ثمن ذکر شوی دی نو ځکه ګز وصف نه بلکې اصل شو نو په ګز کې دکمبوت په وجه سره په ثمن کې کمبوت نه کیږي ځکه نو دټولو ګزونو ثمن واجبیږي ،دامام محمد رحمه الله په نزد په اول صورت کې به یې په لس نیم درهمه اخلي او په دوهم صورت کې به یې په نه نیم درهمه اخلي ځکه چې کله دیوه ګز په مقابله کې یو درهم دی نو دګز ه دهر جزء په مقابله کې به ددرهم هغسې مثل جزء وي نو دنیم ګز په مقابله کې به نصف درهم وي.

دامام ابو حنیفة رحمه الله دلیل دادی چې دنصف ګز په عوض کې یې هیڅ قیمت نه دی بیان کړی نو ځکه نیم ګز بغیر قیمت یو اځې وصف شمارل کیږي په اصل کې ګز خپله هم وصف دی مګر څرنګه چې دلته دیوه درهم شرط کیدو په وجه ګزه دمقدار حکم ومونده او په شرط کې یې دیوه ګزه قید ذکر کړی دی نو دیوه ګزه دکمیدو په صورت کې دی خپل اصل یعنی وصفیت طرف ته راګرځي نو په همدې وجه نیم ګز وصف زائد دی چې په عوض کې یې ثمن نه وي نو ځکه دانیم ګز مشتري ته مفت ورکول کیږي نو پر مشتري باندې دلسو درهمو نو په عوض بیع لازمیږي او ده ته دفسخ اختیار نه ورکول کیږي ځکه چې په دغه بیع کې دمشتري هیڅ ضرر نشته او په دوهم صورت کې هم څرنګه چې نیم ګز وصف دی نو په نه (۹) درهمه به یې اخلي مګر څرنګه چې دمبیعې مطلوب مقدار کم دی ځکه چې مشتري خو پوره لس ګزه غوښته او دا کپړه لس ګزه نه ده بلکې نه نیم ګزه ده نو ځکه ده ته دفسخ بیع اختیار ورکول کیږي.

**فائده**: دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادر النعمانی: القول الراجح هو قول محمد رحمه الله وقال العلامة الحصفکی رحمه الله: وفی الطحاوی وهو اعدل الاقوال قال الاتقانی وبقول محمد رحمه الله نأخذ انتهی وقال الکمال ثم من الشارحین من اختار قول محمد رحمه الله وفی الذخیرة قول ابی حنیفة اصح انتهی وذکر تحت قوله فعلیه الفتوی فیه ان الفتوی قد تکون علی الصحیح لا الاصح او علی غیر ما فی المتون لما فیه من التیسیر او جریان التعامل فلایتم هذا التفریع وقد علمت ماقاله الاتقانی وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: قوله وهو ای قول محمد اعدل الاقوال قال الاتقانی وفی غایة البیان وبه نأخذ قال المفتی غلام قادر النعمانی: الرجح هو قول محمد کما قال الاتقانی لان فی زماننا ینقسم الثمن باعتبار حصص الذراع. (القول الراجح ۲/۷).

## فصل

دا فصل دهغو شیانو په بیان کې دی چې بې له بیانه په بیع کې داخلیږي او هغه شیان چې نه داخلیږي.

(۱) یَدخُلُ البِنَاءُ وَالمَفَاتِیحُ فِی بَیعِ الدَّارِ (۲) وَالشَّجَرُ فِی بَیعِ الأَرضِ بِلاذِکرٍ (۳) وَلایَدخُلُ الزَّرعُ فِی بَیعِ الأَرضِ بِلاتَسمِیَةٍ وَلاالثَّمَرُ فِی بَیعِ الشَّجَرِ إلَّا بِالشَّرطِ (۴) وَیُقَالُ لِلبَائِعِ اقطَعهَا وَسَلِّمِ المَبِیعَ (۵) وَمَن بَاعَ ثَمَرَةً بَدَا صَلاحُهَا اَو لا، صَحَّ البَیعُ وَیَقطَعُهَا المُشتَرِی فِی الحَالِ (۶) وَاِن شَرَطَ تَرکَهَا عَلَی النَّخلِ فَسَدَ.

**ترجمه** : او داخليږي ديوالونه او کيلۍ دمکان په بيع کې ،او درخته دځمکې په بيع کې بلاذکره داخليږي، او نه داخليږي کښت دځمکی په بيع کې بې له نوم اخيستلو او نه ميوه د درختي په بيع کې مګر په شرط سره،او بائع ته به ويل کيږي چې ميوه در وشکوه او مبيعه ما ته حواله (وسپاره) که چاخرڅه کړه ميوه که پخه وه که نه وه پخه نو بيع صحيح ده او مشتري به يې فی الحال شکوي او که يې شرط کړه دا چې ميوه به پر درختو باندې پاتې وي نو بيع فاسديږي .

**تشريح** : (۱)يعنى که چامکان (سرای) خرڅ کړنو په دغه بيع کې عمارت (آبادي) هم داخليږي که څه هم عمارت (آبادي) يې په نامه نه يې يادکړی ځکه په عرف کې د(دار) لفظ صحن (ميدان) او عمارت دواړو له شامل دی همدارنګه دعمارت اتصال له مکان سره دقرارلپاره دی نه دانقطاع لپاره همداډول دمکان دقلفونو کلياني (چاپياني) هم په دغه بيع کې داخليږی ځکه چې کلياني دقلفانو دجزء په ډول دي ولي قلفان بغير دکليانو قابل دګټي اخيستونه دي خو شرط دادی چې قلفان به په دروازوپورې متصل وي ځکه چې په دروازوپورې غيرمتصل داوسپني قلفان په اتفاق له نوم اخستو بغيرپه بيع کې نه داخليږي نو دهغو کلياني هم په بيع کې نه داخليږي .

**تنبيه** : په دغه باب کې اصل دادی چې دمبيعه نوم چې په عرف کې کوموشيانولره شامل دی هغه شيان دمبيعه تابع او په بيع کې داخل دي همدارنګه هغه شيان چې په مبيعه پورې لپاره دقرارمتصل وي نه لپاره دانقطاع هغه هم دمبيعه تابع او دنوم اخستو بغيرپه بيع کې داخل دي او هغه شيان چې داډول نه وي هغه بغيردنوم اخستلو په بيع کې داخل نه دي مګرداکه په بيع کې دهغو دداخليدو عرف جاري وولکه دسرای په بيع کې چې دسرای دقلفانو دکليانو (چاپيانو) په باره کې دداخليدوعرف جاري دی .

(۲)قوله والشجرفی بيع الارض ای ويدخل الشجرفی بيع الارض ،يعنى که چاځمکه خرڅه کړه نو په هغی کې چې کومي درختي دخرمايانو روشيانو وي هغه دځمکې تابع او دځمکې په بيع کې داخليږی که څه هم ددرختونوم نه وي اخيستل شوی ځکه چې ددرختو اتصال هم دآبادي په ډول له ځمکې سره دقرارلپاره دی نه دانقطاع لپاره

(۳)يعنى که چاځمکه خرڅه کړه نو په هغی کې ولاړ(شين ) کښت په دغه بيع کې نه داخليږي مګرداچې دکښت په بيع هم تصريح وکړي ځکه چې دکښت اتصال له ځمکې سره دانقطاع لپاره دی نه دقرارلپاره نو ځکه په ځمکه کې کښت دهغه سامان په ډول دی چې په ځمکه کې هـــي پروت وي همدارنګه يو ځوک دخرمايانوري ميوه دارې درختې خرڅې کړي نو ددرختو په دغه بيع کې ميوه نه داخليږي بلکې دبائع حق ده ځکه چې دميوه اتصال دانقطاع لپاره دی نه دقرارلپاره نو دکښت سره مشابه دی،البته که چيرته مشتري له درختو سره دميوي
شرط ولګاوه نو بيا ميوه په مبيعه کې داخليږي .

(۴)البته په پورتنيو دوومذکوروصورتونو کې بائع ته ويل کيږي چې خپل کښت ياخپله وشکوه مبيعه فارغه کړه مشتري ته يې حواله کړه که څه هم کښت ياميوه تر اوسه پورې دګټي اخستو قابل نه وي ځکه

چې دمشتري ملک دبائع له ملک سره مشغول دی نوداداسې دی لکه دبائع سامان چې په هغه ځمکه کې پروت وي نوپربائع باندې لازم ده چې دمشتري ملک فارغ اوورته وسپاري.

(۵)که چامیوه خرڅه کړه که دخوراک قابله وي اوکه نه وي (له قابل انتفاع څخه مراددادی چې دانسانانویاحیوانانودخوړلوقابل وي ) په هرصورت دابيع جائزده ځکه چې دامال متقوم اوقابل دګټې اخستودی اودمال متقوم بيع جائزه ده په دې شرط چې میوه پردرختوباندې ښکاره شوې وي ځکه چې که چیرته میوه ښکاره شوې نه وي نوپه اتفاق سره یې بیع ناجائزده ،خوپرمشتري باندې لازم دی چې خپله میوه فی الحال (سمدستي) له درختوڅخه وشکوي دبایع ملک (درختې) فارغ کړي اوداجوازهغه وخت دی چې بیع په دې شرط شوې وي چې مشتري به خپله میوه له درختوڅخه شکوي یامطلقابیع شوې وي دائی نه یې سره ویلي چې میوه شکوم یایې پریږدم .

(۶) اوکه یې داشرط اینبی ووچې مشتري به خپله میوه پردرختوباندې پریږدي نودابیع فاسده ده ځکه چې داداسې شرط دی چې عقدیې مقتضي نه دی اودمقتضی العقدخلاف چې کوم شرط په بیع کې راشي هغه عقدفاسدیږي دامام محمد رحمه الله په نزددعموم بلوی په وجه جائزدی اوهمداقول مفتی به دی لماقال ابن الهمام فی فتح القدیر: ویجوزعندمحمد رحمه الله استحسانا وهوقول الائمة الثلاثة واختاره الطحاوی لعموم البلوی (فتح القدیر: ۵/ ۴۸۹).

**تنبيه** : په دغه مسئله کې څه تفصیل شته : (۱)هغه داچې که چیرته تراوسه پوري میوه پردرختوباندې نه وه ښکاره شوې نوددې بیع په اتفاق حرامه ده لکه دانن سباچې دمیوه ترښکاریدومخکې باغونه په ټیکه ورکول کیږي ددې یوبل ډیربدصورت داراځي چې هغه باغ دڅوکلونولپاره په ټیکه ورکوي اوبائع له مشتري څخه دآینده راتلونکومیوو قیمت اوس وصولوي داصورت بلکل ناجائزاوله نص څخه صریح خلاف دی په حدیث مبارک کې راځي :نهی رسول الله ﷺ عن بیع السنین.

(۲) اوکه درختومیوه ښکاره کړي وه خوتراوسه پوري پخه نه وه نودادول میوې دبیع درې صورتونه دي : **۱-بیع** په شرط دپریکولوداصورت په اتفاق سره جائزدی . **۲-بیع** په شرط دپرینبودلو (پردرختوباندې) داصورت په اتفاق ناجائزدی **۳-بیع** مطلق نه یې پریکول شرط کړی وواونه یې پرینبودل داصورت دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدجائزدی خوعلامه شامي رحمه الله لیکلی دي چې که چیرته عاقدین بیع مطلقه وکړي خودبائع اومشتري ترمنځ داخبره معروفه وه چې له بیع وروسته به میوه ترپخیدوپوري پرینبودله کیږي نوپه دغه صورت کې دالمعروف کالمشروط په قاعده سره داصورت هم ناجائزګرځي،مګرددغې مسئلې یوبل اړخ هغه دی چې دهغه طرفته ځینی فقهاؤدعصر توجه کړې ده هغه دادی چې کوم شرط له مقتضاء العقدخلاف وي که چیرته دهغه رواج عام شي نوبیاهغه شرط دعقد مفسدنه ګرځي لکه یوڅوک چې بائع ته ووایي چې زه دابوټونه په دې شرط رانیسم چې ته به دغوته نعل ورلګوي بیابه یې ماته راکوې ظاهره خبره ده چې دنعل لګولوشرط دعقددمتقضاء خلاف دی خوځرنګه چې ددغه شرط رواج عام شوی دی ځکه نوداشرط جائزدی ددې قاعدې تقاضاداده چې دمیوه پرینبودلوشرط چې کله رواج

شوی دی نو په دغه وخت کې که چیرته په عقدکې صراحةً دپرېښودلوشرط ولګول شي نوداحنافوپه نزدداعقدصحیح کیږي ځکه چې داشرط مفضي ونزاع لره نه ګرځي. ۳-اوکه چیرته میوه په پوره ډول نه یې ښکاره شوې تراوسه لاڅه حصه ښکاره یدل باقي دی نوپه دغه صورت کې امام محمد رحمه الله بیع ناجائزه بللې ده لیکن متاخرین احناف دابیع جائزه ګڼي دجائزکیدووجه یې داده چې په دغه صورت کې معدوم دموجودتابع ګرځي بیع صحیح کیږي (تقریرترمذی للشیخ الاسلام مفتی محمدتقی عثمانی مدظله ۱/ ۹۰)

**فائده** : لیکن دپورتني مذکورصورت یوه بله حیله هم شته چې بلااختلافه جائزه ده هغه داده چې دامعامله دې دځمکې داجاري په ډول وکړای شي مثلادمیوې قیمت زر(۱۰۰۰) روپۍ دې نواته سوه روپۍ دې دمیوې قیمت وګڼل شي اوپه دوه سوه روپۍ دې ځمکه په اجاره ورکړي داجاري موده دې هغه معلومه کړي کومه چې دمیوې دپخیدوآخري موده وي نوپه دغه صورت کې به دمیوې پردرختوباندې پرېښودل جائزشي خوپه دې کې داضروري ده چې دمیوې بیع دې مخکې اواجاره دې وروسته وکړای شي. (کفایت المفتی : ۸/ ۳۴).

(۷)وَلَوِاسْتَثْنٰى مِنْهَا اَرْطَالًا مَعْلُومَةً صَحَّ(۸)كَبَيْعِ بُرٍّ فِي سُنْبُلِهٖ وَبَاقِلَاءَ فِي قِشْرِهٖ(۹)وَأُجْرَةُ الْكَيَّالِ عَلَى الْبَائِعِ وَأُجْرَةُ نَقْدِ الثَّمَنِ(۱۰)وَوَزْنِهٖ عَلَى الْمُشْتَرِي(۱۱)وَمَنْ بَاعَ سِلْعَةً بِثَمَنٍ سَلَّمَهٗ أَوَّلًا إِنْ سَلَّمَا مَعًا.

**ترجمه** : اوکه یې استثناء کړې له هغوڅخه معلومې پیمانې نودابیع صحیح ده لکه دغنمو بیع پخپلو وږو کې اودلوبیابیع پخپلوپوستکوکې اودناپوونکي (تول کوونکي) اجرة (مزدوري) پربائع باندې ده اودروپو دصافولو(معلومولو) اجرة اودهغو دوزن کولو اجرة پرمشتري باندې دی اوکه چاڅرڅ کړسامان دروپوپه عوض نوهغه دې روپۍ اول ورکړي که نه دواړه دې یوځای سره ورکړي.

**تشریح** : (۷)یعنې داجائزده چې پردرختوباندې موجوده میوه خرڅه کړي اوله هغوڅخه معلومې پیمانې (کیلو) مستثنی کړي مثلاداډول ورته ووایې چې پردرختوباندې میوه پرتاباندې خرڅوم پرته له لسوپیمانو(کیلو) چې هغه په دې بیع کې داخل نه دي هغه زه دځان لپاره ورم ،ځکه چې دکوم شي په باره کې چې انفراداًعقدصحیح وي هغه شی له عقدڅخه مستثنی کول هم صحیح دی مګرحسن بن زیاد رحمه الله له امام ابوحنیفة رحمه الله څخه روایت کړی دی چې دابیع جائزه نه ده امام طحاوی رحمه الله هم هغه قول ته تګ کړی دی ځکه چې دمذکوره پیمانولـه استثناء وروسته دانه ده معلومه چې دمشتري لپاره باقي میوه څومره پاته کیږي اوداهم نه ده معلومه چې دمشتري لپاره څه هم پاته کیږي که نه نو دمبیعه دمجهولتیایامعدوم والي په وجه دابیع جائزه نه ده.

**فائده** : ظاهرروایة راجح دی لماقال المفتی غلاقادرالنعمانی :القول الراجح هوظاهرالروایة ذکرصاحب الهدایة دلیل ظاهرالروایة آخرا وهذایشیر الی اختیاره وترجیحه کماهو دابه.(القول الراجح: ۲/ ۱۰).

(۸)قوله کبیع بر فی سنبله ای کصحة بیع بر. یعنې لکه څرنګه چې بالامذکوره بیع جائزه ده همدارنګه غنم په خپلو وږو کې اولوبیاپخپلوپوستکوکې خرڅول هم جائزدی ځکه چې دامال متقوم اوقابل دګټې دی ځکه

نو دهغو بيع جائزه ده مګر شرط يې دادی چې د ځپل جنس خلاف يې خرڅ کړي مثلاً جوار و يا او وربشو په عوض کې او که چيرته غنم د غنمو په عوض کې خرڅ کړي نو دا بيا ناجائز دی لاحتمال الربا.

**فائده** : او که خالص غنم دوريو تر غنمو زيات وونو بيا جائز ده لما في الشامية : اذاباعه بسنبل الرای دلم مع سنبله فانه لايجوز اذالم يكن الحب الخالص اكثر اما اذا كان اكثر يكون الزائد بمقابلة التبن فيجوز (رد المحتار: ۴/۳۶).

**فائده** : د امام شافعي رحمه الله په نزد دا بيع ناجائزه ده ځکه چې مبيعه مستوره او له ستر ګو نه غائبه ده دا داسي ده لکه د پسه په تيانو کې شيدې خرڅول چې بيع يې ناجائزه ده ، احناف وايي چې مستوره خو بيشکه چې ده مګر معدومه نه ده نو ځکه دا بيع جائزه ده.

(۹) يعني دمبيعه دناپوونکي اجرة (مزدوري يا حق الزحمة) پربائع باندي دی ځکه چې دتسليم مبيعه لپاره ناپول ضروري دی او تسليم دمبيعه دبائع پرذمه دی نو ناپول او دهغه اجرة هم دبائع پرذمه کيږي، او دثمنو معلومولو (صافولو) اجرة او دهغو دوزن کولو اجرة پرمشتري باندي دی ،له امام محمد رحمه الله څخه يو روايت دی چې دثمن معلوموونکي اجرة هم پربائع دی ځکه چې ثمن نقدول بائع ته له سپارلو وروسته کيږي نو اوس خو بائع دي ته ضرورت لري چې دسمو او خرابو ترمنځ امتياز وکړي چې معيوبې پيسې بيرته مشتري ته ورواپس کړي.

**فائده** :مګر مفتی به قول هغه دی کوم چې مصنف رحمه الله ذکر کړی دی چې دثمنو (صافولو) اجرة پرمشتري دی ځکه پرمشتري باندي لازم دی چې بائع ته صاف درهمونه حواله کړي دا چې صافول دپيسو دمشتري پرذمه دی لهذا دصافولو اجرة هم دمشتري پرذمه کيږي خو دا هغه وخت چې کله بائع پيسې قبض کړې نه يې که نه بيا پربائع باندي دی لما في الجوهرة وروی ابن سماعة عن محمد انه على المشتری لان حق البائع عليه الجياد وعليه تسليمها اليه فلزمته اجرته وهذا اذا كان قبل القبض وهو الصحيح اما بعده فعلى البائع. (الجوهرة: ۲/۲۴۲) وقال ابن عابدين رحمه الله : واما الثانی فهو ظاهر الرواية وبه كان يفتى الصدر الشهيد وهو الصحيح كما فی الخلاصة (ردالمحتار: ۴/۳۶).

(۱۰) قوله ووزنه على المشتری ای واجرة وزن الثمن على المشتری ،يعني دثمنو دوزن کوونکي اجرة په اتفاق دځلورو امامانو پرمشتري باندي دی ځکه چې دپيسو تسليمول دمشتري پرذمه دی نو دپيسو وزن کول او دوزن کوونکي اجرة هم دمشتري پرذمه کيږي ،قال ابن عابدين الشامی رحمه الله: واما كون اجرة وزن الثمن على المشتری فهو باتفاق الائمة الاربعة وبه كان يفتى الصدر الشهيد وهو الصحيح (ردالمحتار: ۴/۳۵).

(۱۱) يعني که چا سامان دپيسو په عوض خرڅ کړ نو مشتري ته ويل کيږي چې مخکې ته پيسې راکړه ځکه چې دمشتري حق په مبيعه کې متعين شو نو مشتري ته دپيسو ورکولو حکم ورکول کيږي چې دبائع حق بالقبض متعين شي ځکه چې پيسې داسي شی دی چې ترقبض کولو مخکي په متعين کولو سره نه متعينې کيږي نو لهذا ضروري ده چې مخکې پيسې دبائع په قبضه کې ورکړي چې دهغه حق په پيسو کې متعين شي په دي طريقه دمتعاقدينو ترمنځ مساوات راځي او دپيسو ورکولو څخه وروسته بائع ته ويل کيږي چې مبيعه حواله کړه .او که يې سامان

دسامان په عوض یا پیسې په عوض خرڅې کړي نو دواړو ته ویل کیږي چې سمدلاسه هر یو خپل شی هغه بل ته حواله کړه لاستوائهما فی التعین وعدمه.

## باب خیار الشرط

### داباب دخیارشرط په بیان کې دی

خیارشرط دادی چې له متعاقدینو څخه هریو یاله دواړو څخه یو مثلا مشتري ووایي :اشتریت علی انی بالخیار ثلاثة ایام ،یعنې مالره دري ورځې اختیاردی که مې بیع خوښه شوه نوسمه ده که نه بیایې فسخ کومه.

ددي باب له ماقبل سره مناسبت دادی چې بیع دوه قسمه ده .بیع لازمه (چې په هغې کې یوه لره هم دفسخ کولواختیارنه وي) اوبیع غیرلازمه (چې په هغې کې له متعاقدینو څخه یوه ته یادواړولره دفسخ اختیاروي) څرنګه چې بیع لازمه قوي ده نوځکه یې تردي مخکې بیع لازمه بیان کړه اوس دهغوبیوعو بیان کوي چې غیرلازمي دي (یعنې په کوموکې چې له متعاقدینو څخه یوه لره دفسخ خیاروي).

یاخیارپردري قسمه دی : خیارشرط،خیاررؤیة اوخیارعیب.له دوئ څخه خیارشرط دبیع دحکم لپاره مانع دی،یعنې بیع منعقده کیږي مګرحکم یې نه ثابتیږي یعنې داسې نه شي کیدای چې مبیعه دبائع له مِلک څخه ووځي دمشتري په مِلک کې داخله شي،اوخیاررؤیت دحکم دتمامیت لپاره مانع دی.یعنې دخیاررؤیت په صورت کې دبیع حکم ثابتیږي مګرحکم تامیږي نه په دي وجه یې خیاررؤیت ترخیارشرط وروسته ذکرکړی دی اوخیارعیب دلزوم حکم لپاره مانع دی یعنې دخیارعیب په صورت کې دبیع حکم ثابتیږي مګرلازمیږي نه اولزوم ترتمام وروسته راځي ځکه یې نوباب خیارعیب وروسته راوړی دی.

په خیارشرط کې دخیاراضافت وشرط ته له قبیلې داضافة دمسبب دی وسبب ته ځکه چې شرط دخیارسبب دی،اوپه خیارشرط کې شرط مصدرپه معنی داسم مفعول دی یعنې خیارالمشروط.

داچې خیارشرط په کوموشیانوکې جاري کیږي اوپه کوموکې نه جاري کیږي دایوه شاعرپه لاندي اشعاروکې داسې راوړي دي :

یأتی خیارالشرط فی الاجارة: والبیع والابراء والکفالة
والرهن والعتق وترک الشفعة: والصلح والخلع مع الحوالة.
والوقف والقسمة والاقالة: لاالصرف والاقراروالوکالة
ولاالنکاح والطلاق والسلم: نذروایمان والاقراروهذایغتنم.
(المعتصرالضروری:ص۲۹۷).

(۱) وصح للمتبایعین اولاحدهما خیارثلثة ایام اواقل (۲) ولواکثرلا (۳) فإن اجاز فی الثلث صح (۴) ولوباع علی انه ان لم ینقد الثمن الی ثلثة ایام فلابیع صح والی اربعة لا (۵) فإن نقد فی الثلث صح.

**ترجمه** : صحیح دمتعاقدینو لپاره یا له دوئ څخه دیوه دري ورځي خیار یاتر هغه کم. او که زیات وونه دی صحیح، بیا که یې په دري ورځي کې دننه اجازه ورکړه نو صحیح کیږي او که یې یو شی خرڅ کړ په دي شرط چې که مي په دري ورځي کې قیمت ادا نکړ نو بیا بیع زما او ستا نشته، دا بیع صحیح ده او که یې تر څلورو ورځو پوري شرط کړ نو بیا نه دی صحیح بیا که یې په دري ورځي کې دننه قیمت ادا کړ نو صحیح کیږي.

**تشریح** : (۱) یعني خیار شرط په یوه وخت دبائع او مشتري دواړو لپاره هم جائز دی او له دواړو څخه دیوه لپاره هم جائز دی په دي شرط چې دخیار موده به یې دري ورځي تا تر دري ورځي کمه تا کلي وي لقوله علیه السلام :اذابایعت فقل لاخلابة ولی الخیار ثلاثة ایام. (یعنې رسول الله ﷺ وحضرت حبان بن منقذ رض ته وفرمایل چې دبیع کولو په وخت ورته و وایه چې دوکه نه ده او ما لره دري ورځي اختیار شته).

(۲) قوله ولو اکثر لا ای ولو شرط اکثر من ثلاثة ایام لایصح. یعني که یو چا تر دریوو ورځو زیات مثلاً یوه یا دوي میاشتي دخپل ځان لپاره خیار شرط ولګاوه نو دا صحیح نه دی، بلکې دا صورت مختلف فیه دی دامام ابو حنیفة رحمه الله، امام زفر رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نزد جائز نه دی ځکه چې خیار خلاف قیاس په مذکور نص سره ثابت دی نو څو مره موده چې په نص کې ذکر شوې ده پر هغه باندي زیادت صحیح نه دی، دصاحبینو رحمهما الله په نزد تر دریوو ورځو زیات هم جائز دی ځکه چې خیار ددي لپاره مشروع شوی دی چې متعاقدین دغور او فکر موقع ولري او تر ختمي الامکان پوري دخسارې دفع وشي او کله تر دریوو ورځو زیات غور او فکر ته ضرورت پیدا شي نو ځکه تر دریوو ورځو زیاته موده شرطول جائز دی.

**فائده** : دامام صاحب رحمه الله قول صحیح دی لما فی الهندیة: فعند ابی حنیفة رحمه الله لایجوز اکثر من ثلاثة ایام وعندهما یجوز اذا سمی مدة معلومة کذا فی مختار الفتوی والصحیح قول الامام (الهندیة: ۳/۳۸) وفی تکملة فتح الملهم: ولم یثبت فی شئ من الاحادیث الخیار الی ما فوق ثلاثة ایام فالاحوط الاقتصار علیها (تکملة فتح الملهم: ۱/۳۲۸).

وقال المفتی غلام قادر النعمانی: والاوجه ان یقال ان کانت المبیعة مما یعلم حالها فی ثلاثة ایام او اقل فالعمل علی قول ابی حنیفة رحمه الله وان کانت المبیعة مما لایعلم حالها فی ثلاثة ایام بل تحتاج الی اکثر من ذالک فالعمل علی قول الصاحبین رحمهما الله. (القول الراجح: ۲/۱۳).

(۳) بیا که چیرته په پورتني مذکور صورت کې (یعنې تر دریوو ورځو زیات اختیار اخستلو په صورت کې) صاحب اختیار په دریوو ورځو کې دننه خپل دغه اختیار ساقط کړ او دبیع دتامید و فیصله یې وکړه نو بیا دا بیع صحیح کیږي ځکه چې کوم شی دفساد باعث وو (یعنې تر دریوو ورځو زیات اختیار شرطول) هغه له منځه ولاړ، دامام زفر رحمه الله په نزد په دریوو ورځو کې دننه په خیار ساقطولو سره دا بیع نه صحیح کیږي ځکه چې دا بیع تر دریوو ورځو نه دزیات شرط لګولو په وجه فاسده منعقده شوې ده او قاعده ده چې کوم شی فاسد منعقد شي هغه بیا بیرته صحیح نه ګرځي ځکه چې دشي بقاء دهغه دابتدائي ثبوت مطابق راځي.

(۴) که چا یو شی په دي شرط خرڅ کړ چې که مشتري په دریوو ورځو کې دننه قیمت ادا نکړ نو بیا بیع نشته، دا شرط جائز دی او که یې څلور ورځي شرط ولګاوه چې که مشتري په څلورو ورځو کې قیمت ادا نکړ نو دا بیع معدم ده، دا صورت دشیخینو رحمهما الله په نزد جائز نه دی په اصل کې دا هم دخیار شرط په

معنى دى بناء برضرورت مشروع دى داځكه چې كله كله مشتري دقيمت اداكولو قدرت نه لري مګردبيع په فسخ كولوكې ځان شاته شاته كوي چې په دي كې دبائع ضرردى نوددغه ضرورت پربناء دخيارشرط په دول داصورت هم دامام ابوحنيفة رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله په نزدتردريوورځو پوري جائزدى تردريوورځوزيات نه دى جائز.

همدارنګه ددريوورځودجائزكيدويوه وجه داهم ده چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه خپله اوبنه داډول خرڅه كړې وه له صحابه كرامورضي الله عنهم څخه يوه صحابي هم پرده ردنه ووكړى . دامام محمد رحمه الله په نزدڅلورورځي اوترڅلورووځوزيات هم جائزدى .

**فائده**: دشيخينو رحمهما الله قول راجح دى لماقال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله لايصح الى اربعة ايام قال العلامة ابن الهمام والى اربعة ايام لم يجز عندابى حنيفة رحمه الله وابى يوسف رحمه الله فان نقد الثمن قبل مضى الثلاثة تم البيع وان لم ينقدفيهافسدالبيع ولاينفسخ نص عليه ظهير الدين وقال لابدمن حفظ هذه المسئلة. (القول الراجح: ۲/۱۳)

(۵)تردريوورځونه دزياتي مودي شرطولوپه صورت كې كه چيرته مشتري په دريوورځوكې دثمنه قيمت اداكړنوپه اتفاق دڅلوروامامانوسره دابيع صحيح كيږي ځكه چې باعث دفسادتراستحكام مخكي ساقط شولكه په خيارشرط چې بيان شوى دى ،دامام زفر رحمه الله په نزدكه په دريوورځوكې دثمنه قيمت اداكړي نوهم دابيع نه صحيح كيږي ځكه چې دابيع ددريوورځونه دزيات شرط لګولوپه وجه فاسده منعقده شوي ده اوقاعده ده چې كوم شى فاسدمنعقدشي هغه بياصحيح نه ګرځي ځكه چې دشي بقاء دهغه دابتدائى ثبوت مطابق وي .

(۶)وخيارالبائع يمنع خروج المبيع عن ملكه (۷)وبقبض المشترى يهلك بالقيمة (۸)وخيار المشترى لايمنع ولايملكه (۹)وبقبضه يهلك بالثمن كتعيبه.

**ترجمه**: اودبائع اختيارمنع كوي داچې مبيعه دده له ملک څخه ووځي ،اودمشتري په قبض كولوسره مبيعه هلاكيږي دقيمت په عوض،اودمشتري خيارنه منع كوي (خروج دمبيعه ) اونه دى دهغه مبيعه مالک ګرځي اودده په قبض كولوسره مبيعه هلاكيږي دثمنوپه عوض لكه دمبيعه دعيب داره كيدوپه صورت كې .

**تشريح**: (۶)يعني كه چيرته په بيع كې خيارشرط دبائع لپاره ونودااختياردي مانع دى چې خروج دمبيعه وشي له ملک دبائع څخه، يعني مبيعه دبائع له ملک څخه نه وځي،ځكه دابيع تامه نه ده ولى بيع خوذطرفينوپه رضامندي سره تاميږي اوپه طرفينوكې چې كوم يوه لره خياردى دهغه رضاتراوسه پوري نه دمعلومه شوې نوپه موده دخياركې بائع په مبيعه كې دتصرف اختيارلري مګرمشتري دتصرف اختيارنه لري كه څه هم دى دبائع په اجازه سره پرمبيعه باندي قبضه وكړي .

(۷)كه چيرته مشتري په بالامذكورصورت كې مبيعه قبض كړه اوبياپه موده دخياركې دثمنه مبيعه دمشتري په لاس كې هلاكه شوه نوكه چيرته مبيعه قيمتى شى وي مشتري دقيمت ضامن دى اوكه چيرته مثلى شى وي نودمثل ضامن دى دپيسوضامن نه ګرځى ځكه چې دامبيعه دمشتري په لاس كې مبقوض على

سوم الشراء ده يعني لكه يو څوک چې يو شی داخستلو لپاره پخپله قبضه کې واخلی او بيا له هغه څخه داشی هلاک شي نو په داسي قبضه سره دضائع کيدو په صورت کې په قيمتی شي کې قيمت واجبيږي او په مثلی شی کې مثل واجبيږي ثمن نه واجبيږي نو لهذا په مذکور صورت کې هم مشتري دقيمت ضامن گرځی نه دثمنو .

(۸)يعني كه چيرته په بيع کې خيار مشتري لره وونو داخيار مانع دخروج دمبيعه له ملک دبائع څخه نه دی يعني په دغه صورت کې مبيعه دبائع له ملک څخه وتلای شي ځکه چې دبائع په حق کې بيع لازمه ده .بيا دصاحبينو رحمهما الله په نزد مشتري دمبيعه مالک گرځی ځکه چې کله دامبيعه دبائع له ملک څخه ووته نو بيا که چيرته دمشتري په ملک کې رانه شي نو بيا بغير ددي چې دچا ملک شي زائليږي چې ددي په شرع کې هيڅ يو مثال نشته ،امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چې مشتري هم دمبيعه مالک نه گرځي ځکه که چيرته دا ومنله شي چې مشتري مالک دی نو تر اوسه پوري ثمن دمشتري له ملک څخه نه دي وتلې نو دمشتري په ملک اجتماع دبدلينو (يعني مبيعه او ثمن) لازميږی چې په شرع کې هيڅ اصل نه لري،تر کومه چې زوال دملک لاالی المالک دی نو دهغه نظير په شريعت کې موجود دی لکه دکعبی مکرمی غلام او پردي چې دمالک له ملک څخه وځی مگر دکوم بل مالک په ملک کې نه داخليږي .

**فائده** : دامام ابو حنيفة رحمه الله قول صحيح دی لمافی الدر المختار :ولايملكه المشترى خلافالهمالئلايصير سائبة قلنا السائبة هي التي لاملك فيهالاحد ولاتعلق ملك والثاني موجودهنا . (الدر المختار على هامش رد المحتار:۳/ ۵۱) همدارنگه دفتاوی قاضيخان دمصنف رحمه الله داعادت دی چې دی په مختلف فيه مسئله کې مفتی به قول مخکي ذکرکوي په مذکوره مسئله کې چې بيان کوي نو دامام صاحب رحمه الله قول يې مخکي ذکر کړی دی لکه چې فرمايلی يې دي : ولوكان الخيار للمشترى لايخرج الثمن عن ملكه في قولهم ويخرج المبيع عن ملك البائع ولايدخل في ملك المشترى في قول ابى حنيفة رحمه الله وعندهمايدخل (الخانية ۲/ ۱۴۶).

(۹)يعني په صورت دخيار مشتري کې که چيرته مبيعه دمشتري په لاس کې هلاکه شي نو دا په عوض دثمنو هلاکيږي ځکه چې کله مبيعه هلاکيدو ته نژدي شوه نو مشتري دهغې له ردولو څخه عاجز شو نو اوس بيع لازمه شوه او دلزوم بيع په صورت کې ثمن لازميږی همدغه حکم هغه وخت هم دی که چيرته په مذکور صورت کې له مشتري سره په مبيعه کې عيب پيداشي (برابر دی که فعل دمشتري څخه وي يا د اجنبی څخه يا د آسماني آفت څخه وو) يعني مبيعه په عوض دثمن معيوب کيږي نه په عوض دقيمت ځکه چې دعيب په وجه بيع لازميږي او دلزوم بيع په صورت کې ثمن لازميږی البته له عيب څخه مراد داسی عيب دی چې دهغه ازاله ممکنه نه وي مثلا مبيعه غلام وو او دخيار په موده کې دهغه کوم اندام پرې شو .

(۱۰)فلو اشترى زوجته بالخيار بقى النكاح (۱۱)فان وطيها له ان يردها (۱۲)ولو اجاز من له الخيار بغيبة صاحبه صح ولو فسخ لا (۱۳)وتم العقد بموته وبمضى المدة (۱۴)والاعتاق وتوابعه (۱۵)والاخذ بشفعة.

**ترجمه** : نو که يې چيرته واخيسته خپله بي بي په خيار سره نو نکاح باقي ده بيا که يې چيرته له هغی سره صحبت (کوروالي) وکړ نو بيا هم ده لره اختيار دی چې هغه رد کړي او که يې اجازه وکړه (خيار يې ساقط کړ) صاحب

خيار دخپل ملكري په نه موجودګي كې نود اصحيح دى او كه يې فسخ كړنو بيا صحيح نه دى او عقد تاميږي دده په مرګ سره او دمودې په تيريدو سره او په آزادولو سره او دآزادي په توابعو سره او په اخستلو دشفعې په طريقه سره .

**تشريح** : (۱۰) كه دچا په نكاح كې منځه وه نو زوج هغه منځه ددې له مولى څخه په دې شرط واخيسته چې ماله درې ورځې اختيار دى يو اځې په اخيستو سره دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد ددوئ ترمنځ نكاح نه شكيږي ځكه دخيار په وجه مبيعه دمشتري په ملك كې نه داخليږي نوزوج لره ملك يمين نه دى ثابت شوى په ملك يمين سره نكاح ماتيږي چې تراوسه دلته نه دى ثابت ،دصاحبينو رحمهما الله په نزد ځرنګه چې دمشتري لپاره دخيار شرط په صورت كې مشتري دمبيعه مالک ګرځي نو په مذكورصورت كې دمشتري لپاره پرخپله بي بي ملک يمين ثابت شو نو ځكه يې ترمنځ نكاح ماته شوه .

**فائده** : په دغه مسئله كې هم دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافي الخانية : ولوكانت زوجته لايفسدالنكاح بينهما لانها لم تدخل في ملكه في قول ابي حنيفة رحمه الله (فتاوى قاضى خان: ۲/ ۱۷۸).

(۱۱) بيا كه چيرته زوج په دغو دريو ورځو كې له هغې سره صحبت (كورولي) وكړي بيا هم دردولو اختيار لري ځكه چې داصحبت دپخوانۍ نكاح دموجودوالي په وجه دى ددغې معاملې (يعنې اخيستلو) په وجه سره نه دى نو دى دواپس كولو حق لري،دصاحبينو رحمهما الله په نزد ځرنګه چې نكاح ماته شوې ده نو دغه وطى (صحبت) دهغه عقد په وجه دى نو په وطى كولو سره داعقد تاميږي په دې وجه مشتري لره دمبيعه دردولو اختيار نو رنشته .

(۱۲) كه چيرته دخيار په صورت كې صاحب خيار بيع نافذه كړه دهغه بل دحضور (يعنې علم) بغير نو دا جائزده ځكه چې دا دخپل حق اسقاط دى نو دا دهغه بل پرحضور او علم باندې نه موقوف كيږي او كه يې دده وهم عاقد په نه حضور (يعنې عدم علم) كې فسخ وكړه نو دطرفينو رحمهما الله په نزد نه دى جائز ځكه چې رفع دعقد دعقد په ډول ده په يوه عاقد سره نه شي قائميدلاى البته كه دوهم عاقد لره علم وونو بيا جائزدى ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزد جائزدى ځكه چې من له الخيار خو غائب خپله پرفسخ عقد باندې مسلط كړى دى نو دده عقد فسخ كول دده دغائب ملګري پرعلم موقوف نه دى لكه عقد نافذول چې دغائب پرعلم باندې موقوف نه دى ، طرفين رحمهما الله جواب وركوي چې من له الخيار دغائب دطرف څخه پرفسخ عقد باندې مسلط نه دى ځكه چې غائب خپله دعقد دفسخ كولو حق نه لري نو بل پرهغه باندې څرنګه مسلط كوي .

**فائده** : دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دى لمافي الشامية : وقال ابويوسف رحمه الله يصح وهوقول الائمة الثلاثة قال الكرخي رحمه الله وخيار الرؤية على هذا الخلاف الخ ورجح قوله في الفتح (ردالمحتار: ۳/ ۶۱).

(۱۳) يعنې دمتعاقدينو څخه چې كوم يوه لره خيار وو هغه كه چيرته مړشي نوخيار يې باطليږي او دهغه له طرفه بيع تاميږي دفسخ او نفاذ اختيار يې وورثه ؤته نه منتقل كيږي ځكه چې خيار مشيت او اراده ته ويل كيږي چې دهغه انتقال دورثه ؤطرف ته نه متصور نه دى ،دامام شافعي رحمه الله په نزد دا حق ورثه ؤته منتقل كيږي ځكه چې دا په بيع كې لازم او ثابت حق دى نو لهذا په دې كې دخيار عيب په شان وراثت جاري كيږي .

(۱۴)قوله والاعتاق ،دالفظ پر(بموته ) باندي عطف دی ای یتم العقدایضًامع الاعتاق ،یعنې که چاپومریې په شرط دخیارسره اخیستی ووبیایې دخیارپه موده کې هغه آزادکړیایې مدبرکړیایې مکاتب کړنوبیع تامیږي ځکه چې اعتاق وغیره دملک مقتضي دي چې کله دخیارپه موجودګۍ کې مشتري مالک نه شوای کیدلای نوداسي ګڼله کیږي چې ګویاهغه خپل خیارختم کړی دی .

(۱۵)قوله والاخذبشفعة،اخذیې شرط نه دی بلکې یواځي په طلب دشفعه سره هم بیع تامیږي که یې واهم خلي یایې نه واخلي .

نوپه عبارت کې مضاف مقدردی تقدیردعبارت داسي دی : وطلب الاخذبشفعة ،یعنې که چاپه خیارشرط سره یوه ځمکه رانیولې وه بیادهغې ځمکې سره متصل بله ځمکه خرڅه شوه هغه اول اخستونکي په دغه دوهمه متصله ځمکه باندي دحق شفعه دعوی وکړه نوپه دغه صورت کې هم بیع تامیږي اوخیارشرط ختم کیږي ځکه چې دشفعه دعوی کول دثبوت مِلک لپاره مقتضی دی چې کله دخیارپه موجودګۍ کې مشتري مالک نه شوای کیدلای نوداسي ګڼله کیږي چې ګویاهغه خپل خیارختم کړی دی .

(۱۶)وَلَوشَرَطَ المُشتَرِی الخِیَارَلِغَیرِهٖ صَحَّ فَاَیٌّ اَجَازَاَونَقَضَ صَحَّ (۱۷)فَاِن اَجَازَاَحَدُهُمَاوَنَقَضَ الآخَرُ فَالاَسبَقُ اَحَقُّ (۱۸)وَاِن کَانَامَعًافَالفَسخُ (۱۹)وَلَوبَاعَ عَبدَینِ عَلٰی اَنَّهٗ بِالخِیَارِفِی اَحَدِهِمَااِن فَصَّلَ وَعَیَّنَ صَحَّ وَاِلَّا لَا .

**ترجمه** : اوکه چیرته مشتري شرط کړخیاردبل چالپاره نوصحیح دی بیاکه له دوئ دواړوڅخه هریوه نفاذوکړیایې فسخ وکړه صحیح ده اوکه له دواړوڅخه یوه نفاذوکړاوهغه بل فسخ وکړه نوپه دوئ کې چې کوم سابق وي هغه زیات حقداردی اوکه دواړوپه یوه وخت نفاذاوفسخ وکړه نوبیافسخ زیاته حقداره ده اوکه یې دوه مریيان خرڅ کړل په دې شرط چې بائع لره اختیاردی له دواړوڅخه په یوه کې بیاکه ده تفصیل بیان کړاومتعین یې کړنوصحیح دی که نه بیانه دی صحیح .

**تشریح** : (۱۶)که چاپوشی واخیست اودکوم بل چالپاره یې خیارشرط کړمثلاداسي یې وویل : که چیرته په دغودریوورځوکې دننه زیددابیع خوښه کړه نوعقدصحیح دی که نه بیانه دی صحیح،نودابیع صحیح ده دقیاس تقاضاخوداده چې نه شي جائزاوهمدادامام زفر رحمه الله مسلک دی ځکه چې خیاردبیع له احکاموڅخه دی نوځکه دهغه شرط دبل چالپاره لګول ناجائزدی لکه له مشتري علاوه پرکوم بل چاباندي چې دثمن شرط لګول ناجائزدی، مګراستحسانًادغه بیع جائزه ده ځکه چې ده غیره څوک خپل نائب ګرځولی دی داداسي دی لکه ده چې دخپل ځان لپاره خیارشرط کړی وي،اوس که له دوئ دواړوڅخه هریودبیع دنفاذاجازه وکړي بیع صحیح کیږي اوکه له دواړوڅخه هریوبیع فسخ کوي نوفسخ کیږي ځکه چې هریودتصرف اختیارلري یوه لره اصالةً هغه بل لره نیابتًادی .

**فائده** : دجمهوروقول راجح دی لمافی شرح تنویرالابصار:ولوشرط المشتری اوالبائع الخیارلغیره صح استحساناوثبت الخیارلهمافان اجازاحدهمامن النائب والمستنیب اونقض صح ان وافقه الآخروان اجازاحدهماوعکس الاخرفالاسبق اولی لعدم المزاحم .(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۳/۶۳).

(۱۷)او که چيرته په پورتنې مذکور صورت کې له دوئ دواړو څخه يوه د خيار په موده کې د بيع د نفاذ حکم وکړ او هغه بل رد کړه نو چې له دوئ څخه کوم يوه مخکې اقدام کړی دی د هغه تصرف معتبريږي ځکه چې کوم وخت يو له دوئ نه د فسخ يا نفاذ تصرف کوي په هغه وخت کې د ده هيڅ مزاحم نشته نو ځکه د هغه تصرف نافذ کيږي هغه بل چې وروسته کوم تصرف کوي د هغه تصرف لغو کيږي.

(۱۸)او که دواړو په يوه وار خبره وکړه يوه د بيع اجازه وکړه او هغه بل فسخ وکړه نو د امام محمد رحمه الله په نزد د عقد کوونکي تصرف معتبريږي که هغه اجازه کړي وي او که يې فسخ کړې وي، ځکه چې د عاقد تصرف اقوی دی په دې وجه چې نائب خو ولايت تصرف له ده څخه حاصل کړی دی ،د امام ابويوسف رحمه الله په نزد چې کوم يوه فسخ کړي ده د هغه تصرف زيات قوي دی ځکه چې فسخ قوي ده دا ځکه د کوم عقد چې اجازه ورکړه شوې وي هغه فسخ کيدای شي مثلاً د بيع د اجازې وروسته مبيعه د بائع په لاس کې هلاکه شوه نو دا بيع د اجازت وروسته فسخ کيږي مګر د کومې بيع چې فسخ شوې وي د هغې اجازت نه شي ورکول کيدای مثلاً تر اجازت مخکې مبيعه د بائع په لاس کې هلاکه شوه نو دا بيع فسخ شوه او س که صاحب خيار غواړي چې دا بيع جائزه وګڼي نو دا نه جائزه کيږي حاصل دا چې نسخ پر اجازت باندې راتلای شي مګر اجازت پر فسخ باندې نه شي راتلای نو دا د فسخ د قوي کيدو علامه ده ،همدارنګه فسخ د مشتري لپاره حرمت ثابتوي او اجازت اباحت ثابتوي والحرمة مقدمة علی الاباحة،نو د فسخ کوونکي تصرف معتبريږي

**فائده** : د امام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی لمافي شرح التنوير: ولو کانا معا فالفسخ احق في الاصح لان المجاز يفسخ والمفسوخ لايجاز قال ابن عابدين الشامي رحمه الله: (قوله في الاصح) صححه قاضيخان معزيا للمبسوط. (الدر المختار مع الشامية:۴/۶۴).

(۱۹)که يو چا دوه مرييان پر يوه ځای په دې شرط خرڅ کړل چې له دواړو څخه په يوه کې ماله تر دريو ورځو پورې اختيار دی که مې خوښه شوه بيع به يې وکړم او که مې خوښه شوه فسخ به يې کړمه، نو که چيرته ده د دواړو مرييانو څخه د هر يوه قيمت عليحده بيان کړی وو او په کوم مريي کې چې يې خيار شرط کړی وو هغه يې هم متعين کړی وو نو بيا دا بيع صحيح کيږي ځکه چې مبيعه او ثمن دواړه متعين دي هيڅ ډول جهالت نه په مبيعه کې شته او نه په پيسو کې،نو دا بيع جائزه ده،او که يې د هر يوه قيمت نه وو بيان کړی او نه يې هغه مريي متعين کړی وو په کوم کې چې يې خيار شرط کړی دی نو دا بيع نه صحيح کيږي،ځکه چې هغه مريي په کوم کې چې يې خيار شرط کړی دی هغه د حکم يعني مِلک په اعتبار له بيع څخه خارج دی ولې مشتري د هغه مالک نه ګرځي نو ګويا لاعلی التعين د يوه مريي بيع شوې ده نو مبيعه مجهوله ده کله چې مبيعه مجهوله شوه نو ثمن هم مجهول کيږي او داسې بيع نه صحيح کيږي په کومه کې چې مبيعه او ثمن مجهول وي،دوه صورتونه نور دي :يو دا چې مبيعه معلومه وي ثمن مجهول وي دوهم د هغه عکس دا دوه صورتونه هم ناجائز دي ځکه په اول صورت کې ثمن مجهول دی او په دويم کې مبيعه مجهوله ده.

(۲۰)وصح خيار التعيين فيما دون الاربعة (۲۱)ولو اشتريا على انهما بالخيار فرضي احدهما لا يرده الاخر (۲۲)ولو اشترى عبدا على انه خباز او كاتب وكان بخلافه اخذه بكل الثمن او ترك.

**ترجمه**: اوصحيح دى خيارتعين ترڅلوروپه کم کې، اوکه واخيست دووکسانوپه دې شرط چې دواړولره اختيار دى بيا له دواړوڅخه يوراضي شوهغه بل ردنه شي کولاى اوکه يې واخيست مريى په دې شرط چې (نانواى) دى يا (کاتب) دى بيا هغه ددې خلاف وونو وادې خلې هغه دټولوروپوپه عوض يادې پريږدي.

**تشريح**: (۲۰) اوترڅلوروپه کموشيانوکې خيارتعين شرطول صحيح دى په څلوروکې نه دى صحيح مثلايوچاددوو يادريو کپړو يامريبانوپه باره کې وويل له دوئ څخه چې په دريوورخوکې دننه يولاعلى التعين زماخوښ شوهغه اخلم نوداخيارشرط په شان جائزدى اوکه داصورت په څلوروکپړو يامريبانوکې وونوجائزنه دى دقياس تقاضاخوداده چې په اولودووصورتونوکې هم بيع فاسده وي ځکه چې مبيعه مجهوله ده مګراستحساناًاول دوه صورتونه جائزګڼل شوي دي داستحسان وجه داده چې خيارتعين ته ضرورت دى ځکه مشتري کله دې ته ضرورت لري چې اختسل شوى شى په يوداسي چاباندې خوښ کړي چې دهغه پررايه باندې دده اعتماد وي نوچې کله مدارپرضرورت شونوچې څومره ضرورت دى هغومره جائزترهغه زيات نه دى جائزاوضرورت په دريوشيانوسره رفع کيږي چې يواعلى يووسط دريم ادنى وي له هغوڅخه دې يوخوښ اومتعين کړي تردريوزيات ضرورت نشته نوځکه په څلوروشيانوکې خيارتعين صحيح نه دى، دامام شافعي رحمه الله اوامام احمد رحمه الله په نزدترڅلوروپه کموکې هم دابيع ناجائزه ده ځکه مبيعه مجهوله ده. احناف جواب ورکوي چې داداسي جهالت دى چې مفضي ونزاع لره نه دى ځکه معامله مشتري ته مفوضه ده نوچې هغه کوم يواختيار وي دبائع پرهغه باندې اعتراض نه راځي.

(۲۱) که دووکسانوپه شريکه يوشى په خيارشرط واخيست چې دننه خوښيدلوپه صورت کې دهغه دواپس کولواختياردوئ لره شته بيا له دوئ څخه ديوه هغه شى خوښ شوهغه بيع منظوره کړه اودهغه بل نه شوخوښ نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزداوس دغه بل ملګرى داشى نه شي واپس کولاى. دصاحبينورحمهما الله په نزددى دواپس کولواختيارلري ځکه چې ددواړواختياردهريوه لپاره هم اختياردى نوديوه پخپل اختيارساقطولوسره دهغه بل اختيارنه ساقطيږي، ځکه په دې دول پرهغه بل باندې داشى دهغه درضامندې بغيرلازم شوچې په دې کې دهغه دحق ابطال راځي يعنې دخيارپه وجه هغه لره دخسارې (تاوان) دفع کولواختياروو چې اوس يې دااختيارنشته، دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادى چې دبائع له ملک څخه مبيعه په داسي حالت کې ووته چې په هغې کې دشرکت عيب نه وونوکه له دوئ دواړوڅخه يواځې يونفرهغه ردکړي اوهغه بل بيع نافذه کړي په هغه کې له بائع سره حصه دارشي نوپه دې کې خودبائع ضرردى اودبائع داضرردهغه مشتري ترضررزيات دى کوم مشتري چې مبيعه رديدل غواړي.

**فائده**: دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافي شرح التنوير: ولو اشتريا شيئاعلى انهما بالخيار فرضي احدهما بالبيع صريحا او دلالة لا يرده الاخر بل بطل خياره خلافالهما، وكذا الخلاف في خيار الرؤية والعيب فليس لاحدهما الرد بعد رؤية الاخر اورضاه بالعيب خلافالهما. (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۶۵/۴).

(۲۲)يعني که چا مريی خرڅ کړېدې شرط چې دا مريی نانوای دی يا کاتب دی او س قصه دا شوه چې مريی دهغه خلاف وخوت يعني په مريی کې د نانوای توب يا کتابت صفت نشته نو مشتري لره اختيار دی که يې خوښه ده پرې دې يې ږدي ځکه چې په مبيعه کې د مرغوب فيه صفت (کوم چې په بيع شرط شوی وو) د نيستې والي په وجه مشتري په دې مبيعه باندې راضي نه دی نو مشتري لره د پرېښودلو اختيار شته او که يې خوښه ده د بائع له طرفه چې څومره قيمت ورته بيان شوی دی هغه دې پوره ورکړي مريی دې بوځي ځکه چې د صفاتو په مقابله کې پيسې نه وي نو د بائع له طرفه چې څومره قيمت ورته ښودل شوی دی هغه به پوره اداکوي د نانوای توب يا کتابت د معدوم والي په وجه په پيسو کې کمبوت نه کيږي.

## باب خيار الرؤية

داباب د خيار رؤيت په بيان کې دی.

ددغه باب له ماقبل سره د مناسبت وجه د مخکيني باب په شروع کې تيره شوې ده. خيار رؤيت دا دی چې څوک په نه ديدو شی رانيسي نو هغه لره اختيار دی چې له ليدو وروسته هغه شی اخلي او که يې پرېږدي. خيار رؤية په معنی د خيار عدم الرؤية يعني هغه خيار چې د عدم رؤيت په وجه ثابت دی نو دا اضافت له قبيل د اضافت المسبب دی الی السبب ته ځکه چې ددغه خيار سبب عدم رؤيت دی.

په کوموشيانوکې چې خيار رؤيت ثابتيږي هغه شيان علامه حموی رحمه الله په لاندې عباراتو کې داسې راوړي دي:

فی اربع خيار رؤية يری: اجارة وقسمة كذا الشراء
كذاک صلح فی ادعاء المال: فاحفظ سريعا نظمتها فی الحال.
(المعتصر الضروری: ص ۲۰۰).

(۱)شِرَاءُ مَالَمْ يَرَهُ جَائِزٌ وَلَهُ أَنْ يَرُدَّهُ إِذَا رَآهُ وَإِنْ رَضِيَ قَبْلَهُ (۲) وَلَا خِيَارَ لِمَنْ بَاعَ مَالَمْ يَرَهُ (۳) وَيَبْطُلُ بِمَا يَبْطُلُ بِهِ خِيَارُ الشَّرْطِ (۴) وَكَفَتْ رُؤْيَةُ وَجْهِ الصُّبْرَةِ وَالرَّقِيقِ وَالدَّابَّةِ وَكَفَلِهَا وَظَاهِرِ الثَّوْبِ مَطْوِيًّا (۵) وَدَاخِلِ الدَّارِ (۶) وَنَظَرُ وَكِيلِهِ بِالقَبْضِ كَنَظَرِهِ لَا نَظَرُ رَسُولِهِ.

**ترجمه**: اخيستل د داسې شي چې نه يې وي ليدلی جائز ده او مشتري ته روا دی چې رد يې کړي داشی چې کله يې ويني که څه هم تر ليدلو مخکې راضي شوی وي او خيار نشته هغه چاله چې خرڅ کړي داسې شی چې هغه نه يې ليدلی او په کوم شي چې خيار شرط باطليږي په هغه سره خيار رؤية باطليږي او کافي دی ليدل د ظاهر د کوټې او د مريي او حيوان مخ او د مخ خوا ليدل او د کپړې ظاهر چې دغې پېچلې پروته وي او د سرای د ننه خوا او د وکيل بالقبض ليدل داسې دی لکه د موکل ليدل او د قاصد ليدل يې داسې نه دی لکه د مشتري.

**تشريح**: (۱)يعني که چا په نه ديدو شی واخيست نو دا بيع جائزه ده او مشتري لره له ليدلو وروسته (د قول اصح مطابق تر ليدلو مخکې هم) اختيار دی که يې خوښه ده وادې خلي که نه واپس دې کړي که څه هم تر ليدلو مخکې يې ويلي وو چې زه راضي يم لقوله عليه السلام من اشترى شيئا لم يره فله الخيار اذا رآه) يعني که چا يو داسې شی واخيست چې نه يې وو ليدلی چې کله يې ويني بيا ده لره خيار حاصل دی).

**فائده** : دامام شافعي رحمه الله په نزد په نه ديديوشي رانيول ناجائزدي ځکه مبيعه مجهوله ده .احناف جواب ورکوي چې داجهالت مفضي ونزاع (جګړې) لره نه دی اوکوم جهالت چې مفضي ونزاع لره نه وي هغه مفسدبيع نه دی .

**فائده** : له رؤيت څخه مرادعلم بالمقصوددی ځکه چې داسي مبيعه هم راځی چې دهغه مقصود په رؤيت سره نه معلوميږي بلکې په بوئ کولوسره معلوميږی لکه مشک چې په ليدلوسره نه معلوميږی بلکې په بوئ کولوسره معلوميږي . (کذافی الهنديه :۳/ ۶۲).

(۲)يعنې که چاپه نه ديديوشی خرڅ کړمثلاً په ميراث کې يی يوشی ومونديه نه ديدئ خرڅ کړنوبائع لره خياررؤيت نشته ځکه چې له روايت څخه خياررؤيت يواځی دمشتري لپاره ثابت دی بائع لره نشته،همدارنګه روايت دی چې حضرت عثمان رضي الله عنه خپله څه ځمکه چې په بصره کې وه پرحضرت طلحه بن عبيدالله رضي الله عنه باندي خرڅه کړه،بياچاوحضرت طلحه رضي الله عنه ته وويل چې ته خوتاواني شوې .نوحضرت طلحه رضي الله عنه وويل چې مالره خوخياررؤيت حاصل دی ځکه چې ماپه نه ديدشی اخيستی دی،اوحضرت عثمان رضي الله عنه ته خلکوويل چې ته تاواني شوی يې نوحضرت عثمان رضي الله عنه وويل چې مالره خوخياررؤيت حاصل دی ځکه چې ماپه نه ديدشی خرڅ کړی دی بيادواړوحضرت جبيربن مطعم رضي الله عنه پخپل منځ کې حکم مقرر کړنو حضرت جبيرابن مطعم رضي الله عنه دحضرت طلحه رضي الله عنه په حق کې فيصله وکړه چې خيارحضرت طلحه رضي الله عنه ته حاصل دی داواقعه دصحابه کرامو په حضورکې پيښه شوه مګريوه صحابي هم رد نه دی کړی نوګويادصحابه کرامو پردي خبره باندي اجماع شوه چې خياررؤيت مشتري ته حاصل دی نه بائع ته .

**فائده** : مګرداخبره يادساته ! چې بائع لره خياررؤيت هغه وخت نه دی حاصل چې دی سامان دپيسوپه عوض خرڅ کړي اوکه يې چيرته سامان دسامان په عوض خرڅ کړنوبيامتعاقدينوهريوه لره خياررؤيت حاصليږي ځکه چې په دغه صورت کې متعاقدين دواړه مشتريان (اخستونکي) دي . (کذافی الهنديه : ۳/ ۵۸).

(۳)يعنې خياررؤيت هم په هغواموروسره باطليږی په کوموسره چې خيارشرط باطليږي مثلاً مشتري مبيعه عيب جنه کړه يايی يوداسي تصرف وکړچې اوس رفع کيدای نه شوای مثلاً مبيعه مريي دی مشتري هغه آزادکړنودمشتري خياررؤيت باطليږی ياپه مبيعه پوري دغيرحق متعلق شومثلاً مشتري مبيعه پرکوم بل چاباندي خرڅه کړه ياپې ورهبه کړه نوپه دغه وخت کې هم خياررؤيت باطليږي البته که چيرته په مبيعه پوری دغيرحق نه ومتعلق شوی مثلاً مشتري مبيعه بل چاته بلاتسليم هبه کړي وه نوپه دغه صورت کې ځرنګه چې تراوسه پوري لادغيرحق نه ترپوري متعلق شوی خياررؤيت نه باطليږي .

(۴)يعنې چادوزني شي يادکيلي شي کوټه دغسی په ظاهره وليده يايې دمريی مخ وليديايې دحيوان نسخ اودشاخواوليده (مرادله حيوان څخه آس،خراوخچردي که نه بزه ،غوا،يانورچې دشيدويانسل لپاره ساتلې کيږي په هغوکې دتيانوله ليدلوبغيرخيارنه ساقطيږي ) ياکپړه دغسي پېچلې پروته وه ويې ليدله نودارؤيت کافي دی اودده خياررؤيت ساقطيږي ځکه چې په مبيعه کې چې کوم شی مقصودبالعلم وي دهغه په ليدلوسره خياررؤيت ساقطيږي اوپه مذکوروشيانوکې مقصودبالعلم امورهمدادي چې بيان شوي دي .

**فائده** : دروړيت په باب کې اصل دادی چې دمبيعه دومره حصه ووينې چې دمقصود بالمبيع حال معلوم شي دټولې مبيعې ليدل شرط نه دی ځکه چې داکلمه متعذروي په خوندلرونکو شيانوکې په خوند ځکلو او په خوشبويه شيانوکې په بوی کولوسره خياررؤيت ساقطيږي او په شيدوکوونکو حيواناتو کې دتيانو په ليدلو اودغوښې په حيواناتوکې په لاس لګولوسره خياررؤيت ساقطيږي (كذافي الدّرالمختارعلى هامش ردّالمحتار: ۴ / ۷۳).

**فائده** : اوکه چيرته مبيع يوشی نه ووبلکې متعدد (يوشمير) شيان وونوبيااورته کتل کيږي چې د دوی دافرادودماليت په اعتبار پخپل منځ کې فرق شته که نشته،که چيرته يې دافرادوترمنځ فرق نه وولکه غنم اوربشي وغيره نوپه داسي شيانوکې په ديوه په ليدلوسره خياررؤيت باطليږی،ځکه چې ديوه په ليدوسره دنوروأوصاف هم معلوميږي اوکه باقي ډيرزيات ......،ووبيا خياررؤيت نه ساقطيږي اوکه شيان متفاوت الاحادوولکه بزې ،غواوې يانور،نوبيادهرې يوي ليدل ضروري دی ځکه چې په دوی کې ديوې په ليدوسره دنوروأوصاف نه شي معلوميدای . (پورتنی حواله ).

(۵)قوله وداخل الدار اى كفت رؤية داخل الدارفانها كرؤية كلها ،يعنی که چادسرای منځ وليدی دهغه خياررؤيت ساقطيږي که څه هم کمرې يې دننه نه يې ليدلي ځرنګه چې دمکان هره هره حصه کتل مشکل دی نوځکه يې يواځې ميدان ليدل کافی ګڼلی دی دادامام ابوحنيفة رحمه الله قول دی،دامام زفر رحمه الله په نزدکمرې دننه کتل ضروری دی .

**فائده** : دامام زفر رحمه الله قول راجح دی لمافي الدّرالمختار:وقال زفر رحمه الله لابدمن رؤية داخل البيوت وهوالصحيح وعليه الفتوى قال ابن عابدين الشامى رحمه الله :قيل هذاقول زفر رحمه الله وهوالصحيح وعليه الفتوى (الدّرالمختارمع الشامية:۴/۷۳).

**فائده** : دامام صاحب رحمه الله اوامام زفر رحمه الله دااختلاف مبني دی پراختلاف دعادا تو باندي دی چې دکوفې په ښارکې سرايونه دباندي له دننه څخه ډيرتفاوت نه درلود ځکه نوامام صاحب رحمه الله دننه خواليدل ضروري نه ده ګڼلي ،مګردنن زمانی سرايونه داسي نه دي په دي کې خوله دننه څخه ډيرزيات تفاوت وي دظاهري سرای په ليدلوسره دننه حال نه شي معلوميدای ځکه نوامام زفر رحمه الله دننه کمرې ليدل ضروري ګڼي .

(۶)که چاپه نه ديديوشی واخيست بيايې پرهغه باندي دقبضه کولولپاره څوک وکيل کړوکيل ورغی مبيعه يې وکتله نودوکيل ليدل دمشتري ليدل بلل کيږي ځکه دوکيل په ليدلوسره دمشتري خياررؤيت ختم کيږي مګردقاصدليدل دمشتري دليدوپه ډول نه دی مثلامشتري چاته وويل چې ته ورشه زماله طرفه دمبيعه قبض کولوقاصدشه،يابائع ته ورشه ورته ووايه چې هغه مبيعه تاته حواله کړي نوددغه قاصدپه ليدوسره دمشتري خيارنه ساقطيږي ځکه چې دقاصدکاريواځې پيغام رسول دی ، دادامام ابوحنيفة رحمه الله مسلک دی دصاحبينورحمهما الله په نزدوکيل اوقاصددواړه برابردي يعنې ديوه په ليدوسره هم دمشتري خياررؤيت نه ختم کيږي ځکه وکيل يواځې دقبض کولووکيل دی دخيار ساقطولووکيل نه دی نودوکيل په کتوسره هم دمشتري خيارنه ساقطيږي .

**فائده** : په دې مسئله کې داهل ترجيح اختلاف دی ځينودامام صاحب رحمه الله قول اوځينونوروبيا دصاحبينورحمهما الله ،قول راجح بللی دی خوحق اوبهترهغه تطبيق دی چې ځينومشائخواختيارکړی دی

هغه داچې كه چيرته مشتري څوک وكيل بالقبض وګرځاوه او هغه ته يې پوره اختيار وركړ چې مبيعه واخله ياېې واپس كړه يعني مبيعه كه سم شي وونوواېې خله او كه خراب وو مه يې اخله نو بيا د امام صاحب رحمه الله قول راجح دى كه نه بيا د صاحبينو رحمهما الله قول راجح دى قال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله: اختلف اهل الترجيح فى التصحيح فبعضهم رجح قول الامام وبعضهم قولهما ولعل الحق هو التوفيق الذى اختاره بعض المشائخ هو ان المشترى ان وكل احدا بالقبض وفوض اليه الامر جميعا من الفسخ فى الردى والاجازة فى الجيد فالقول ماقاله الامام وهذا التوكيل جائز اتفاقا وان لم يجز قصدا والا فالراجح قولهما. (هامش الهندية۳۰: ۲۰۲)

**فائده** : دوكيل او قاصد ترمنځ فرق دادى چې وكيل لره دخصومت حق حاصل وي او قاصد لره دخصومت حق نه يې حاصل يعني كه چيرته بائع د مبيعه له تسليمولو څخه انكار وكړي نو وكيل له بائع سره دعوه كولاى شي مګر قاصد د دعوي كولو حق نه لري.

**فائده** : له وكيل څخه د مصنف رحمه الله مراد وكيل بالقبض دى (يعني هغه وكيل چې موكل د مبيعه د قبض كولو لپاره وكيل ګرځولى وي) وكيل بالشراء (هغه وكيل چې موكل ديو شي د اخستو لپاره وكيل ټاكلى وي) مراد نه دى ولې چې د وكيل بالشراء رؤيت په اجماع سره خيار رؤيت ساقطوي ځكه چې په وكيل بالشراء كې خيار رؤيت ثابت وي د وكيل لپاره نه د موكل لپاره. (كذا فى ردّ المحتار: ۴/ ۷۵)

(۷) وَصَحَّ عقدُ الاعمى (۸) وسقط خيارُه اذا اشترى بجسِّ المبيع وشمِّه وذوقه (۹) وفى العقار بوصفه (۱۰) ومن رأى احد الثوبين فاشتريهما ثم رأى الآخر له ردهما (۱۱) ولا يورث كخيار الشرط (۱۲) ومن اشترى مارأى خُيِّر ان تغيَّر والا لا (۱۳) وان اختلفا فى التغيُّر فالقولُ للبائع (۱۴) وللمشترى لو فى الرؤية (۱۵) ولو اشترى عِدلاً وباع منه ثوبا او وهب رَدَّه بعيب لا بخيار رؤية او شرط

**ترجمه** : او صحيح دى عقد د ړانده او ساقطيږي خيار د ده چې كله هغه شى واخلي ويې مښي ياىي بوى كړي ياىي وڅكي او په ځمكه كې د هغى له وصفه سره او كه چاوكته له دوو كپړو څخه يوه بيايې دواړې واخيستى بيايې دوهمه وليده نو ده لره اختيار دى د هغو دواړو دردولو، او ميراث كيداى نه شي د خيار شرط په شان، او كه چا واخيست هغه شى چې ليدلى يې وو نو ده لره اختيار وركول كيږي كه چيرته هغه شى متغير شوى وو كه نه بيا نه وركول كيږي او كه دواړو اختلاف په تغير كې راغى نو بيا قول د بائع معتبريږي او د مشتري قول كه چيرته اختلاف په ليدلو كې وو، كه چا سربسته (ګاټ) د كپړو واخيست بيايې له هغو څخه يوه كپړه خرڅه كړه ياىي هبه كړه (او ويې هم سپارله) نو ردولاى يې شي د عيب په وجه نه د خيار رؤيت يا شرط په وجه.

**تشريح** : (۷) يعني د نابينا (ړوند) خريد وفروخت جائزدى ځكه چې ړوند هم مكلف او خريد وفروخت ته محتاج دى او نابينا لره خيار رؤيت هم شته ځكه ړوند په خريد وفروخت كې د بينا په شان دى نو كوم حقوق چې بينا لره حاصل دي هغه نابينا لره هم حاصل دي.

**فائده** : په دوولسو (۱۲) مسئلو كې د نابينا حكم له بينا څخه مختلف دى: (۱) پر ړانده جهاد فرض نه دى (۲) جمعه پر فرض نه ده (۳) په جماعت سره لمونځ اداكول پر واجب نه دى (۴) حج پر فرض نه دى كه څه هم په دغو ځلوروكې د نابينا كوم رهبر او تر لاس نيوونكى هم وي. (۵) نابينا (ړوند) ګواه نه شي ګرځيداى كه څه هم په داسي معامله كې وي چې په هغى كې په اوريدو سره ګواهي وركول صحيح وي. (۶) د نابينا (ړوند) دستركي په ايستلو پر جارح باندي ديت نه دى واجب بلكې په دي صورت كې ديوه عادل چا فيصلهٔ معتبره ده

(۷)یو اځې له اندازې څخه آذان کول یې مکروه دی (۸)د راندہ امامت مکروه دی،په دې شرط چې دی تر ټولو لوی عالم نه وي که نه بیانه دی مکروه (۹)یو څوک پخپله کفاره کې روندمریی نه شي آزادولای .
(۱۰)روندد مسلمانانو خلیفه نه شي کیدای (۱۱)قاضی نه شي کیدای (۱۲)د راندہ ذبح کول مکروه دی ، داځکه چې په دې کې ځینی داسي شیان دي چې دهغو ترسره کول د راندہ لپاره مشکل وي لکه جمعه.جماعت او حج او ځینی هغه دي چې په هغو کې له راندہ څخه غلطی راځي لکه ذبح،آذان وغیره او ځینی هغه دي چې دهغو فرائض د راندہ لپاره ناممکن دي لکه خلافت ،قضاء وغیره او ځینی هغه دي چې په هغو کې شرعًا بدني نقصان نه شي برداشت کیدای لکه روندمریی په کفاره کې آزادول او ځیني هغه دي په کوموکې چې د حکم بنیاد بینائی ده نو که چیرته بینائی نه وي حکم به هم نه وي لکه دسترګي ایستل (رندول) چې په دې کې دیت ځکه واجبیږي چې سترګه ایستونکی دبینائی قوت ضائع کوي په داسي حال کې چې دا قوت له مخکي لاله منځه تللی دی .

(۸) څرنګه چې روندیوشی لیدلای او کتلای نه شي ځکه نو دده دخیاررؤیت دسقوط مختلفی طریقي دي که چیرته دمبیعه حال په لاس تیرولو سره معلومیدی نو په لاس وروړلو سره دده خیاررؤیت ساقطیږي او که په بوی کولو سره معلومیدی نو په بوی کولو سره دده خیاررؤیت ساقطیږي او که په څکولو سره معلومیدی نو چې څکه په وکړی بس خیاررؤیت یې ساقطیږي ځکه چې لاس وروړل ،بوی کول وغیره دهغه لپاره دعلم اسباب دي نو د راندہ په حق کې دا درؤیت قائم مقام دي .

(۹)البته دځمکی چې ترڅو پوري اوصاف بیان نه شي د راندہ خیاررؤیت نه ساقطیږی ځکه د راندہ په حق کې دځمکې په باره کې دا وصافو بیانول سبب دعلم دی لکه په بیع سلم کې دمسلم فیه دا وصافو بیانول دمسلم فیه قائم مقام منل شوی دی ،امام ابو یوسف رحمه الله فرمایي چې که چیرته روندپرداسي ځای ودریږي چې که چیرته روغ (بینا ) وای نو مبیعه یې لیدای شوای او ولته دی دخپلی رضامندي اظهار وکړي نو دده خیاررؤیت ساقطیږي که څه هم دمبیعې اوصاف نه یې ذکرکړای شوي ځکه چې دحقیقت دمتعذرکیدو په صورت کې تشبه بالحقیقت واجبیږي لکه ګونګی چې له حقیقتًا قرائة ویلو څخه عاجزدی نو ده لره حکم دادی چې دتشبه لپاره خپلو شونډانو ته حرکت ورکړي،حسن بن زیاد رحمه الله فرمایي چې روندي یو څوک خپل وکیل وګرځوی چې هغه مبیعه وګوري او قبض یې کړي بیا چې کله دهغه وکیل مبیعه ووینې قبض یې کړي نو د راندہ خیاررؤیت ساقطیږي دا قول دامام صاحب رحمه الله له قول سره زیات مشابه دی،ځکه دامام صاحب رحمه الله په نزد دوکیل کتل (لیدل) دموکل دلیدو په شان دي .

**فائده** : دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی لما قال المفتی غلام قادر النعمانی:القول الراجح هو قول ابی حنیفة رحمه الله قال العلامة اکمل الدین البابرتی رحمه الله : قال الفقیه وهذا احسن الاقاویل وبه ناخذ وقال العلامة فخر الدین قاضی خان رحمه الله :قال السرخسی رحمه الله الاشبه فی هذا بقول ابی حنیفة رحمه الله ان یوکل بصیرا بالقبض فاذا قبضه الوکیل وهو ینظر الیه بطل خیاره.(القول الراجح:۲/۲۴)

(۱۰)یعني یو چا له دوو کپړو څخه یوه ولیده بیایی دواړي کپړي واخیستي بیایې دا دوهمه هم ولیده نو مشتري لره خیاررؤیت حاصل دی ځکه دیوې رؤیت دهغې بلې رؤیت نه دی ځکه په کپړو کې فرق راځی نو په هغه کپړه کې چې نه یې وه لیدلې خیاررؤیت پاتی دی بیا دخیاررؤیت په وجه سره دی دواړي کپړي

ردولای شي يوه نه شي ردولای چې بياله تاميدوڅخه مخکې تفريق معامله رانه شي ولي خياررؤيت ديع دتاميدومانع دی .

(۱۱)يعنې چالره چې خياررؤيت ووهغه كه چيرته مړشي نودهغه خياررؤيت ساقطيږی دخيار شرط په شان خياررؤيت هم ورثه ؤته نه منتقل كيږي ولی خياررؤيت دعاقدلپاره په نص يعنې دنبي كريم ﷺ په قول (من اشترى شيئالم يره فله الخيار اذاراه ) يعنې كه چايو داسي شی واخيست چې ليدلی يې نه دی نوچې كله يې ويني ده لره خيارحاصل دی) سره ثابتيږي اووارث عاقدنه دی نووارث لره خيارهم نه ثابتيږي .

(۱۲)يعنی چايوشی وليدی بيايې څه زمانه پس هغه شی واخيست نوكه يې چيرته پخوانی ليدلی شی اوس متغيرومونډنومشتري لره خياررؤيت حاصل دی ولي دتغيرپه وجه داشي داسي شوی دی چې ګوياده له سره ليدلی نه دی،اوكه مبيعه پرهغه صفت وه پركوم چې مشتري ليدلې ده نوبيامشتري لره خياررؤيت نشته ځكه دمخكينی رؤيت په وجه مشتري لره دمبيعی داوصافوعلم حاصل دی په داسی حال كې چې خياررؤيت دمبيعی پراوصافودعلم نه درلودلوپه صورت كې وي .

**فائده** : دمشتري خياررؤيت ،په رؤيت سابقه هغه وخت ساقطيږی چې هغه پخوامبيعه په قصددشراء ليدلي وي نوپه مطلق رؤيت سره دهغه خياررؤيت نه ساقطيږي لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله : واختلفوافی ان مطلق الرزية يكفی ام

الرؤية الخاصة القصدية وظاهر الرواية الاول لكن الراجح والاشبه هو الثاني رجحه في البحر الرائق وهو مختار الهداية (هامش الهداية: ۳/۳۳).

(۱۳)كه په پورتني مذكورصورت كې دبائع اومشتري اختلاف شوبائع وايي چې په مبيعه كې هيڅ قسم تغيرنه دی راغلی اومشتري وايی چې تغيّرراغلی دی نودبائع مع اليمين( قسم) معتبريږی يعني كه چيرته مشتري په مبيعه كې تغيّرپه ګواهانوسره نه شوای ثابتولای نوله بائع څخه قسم اخستل كيږی دهغه قول معتبريږی ولی په مبيعه كې تغيرپيداكيدل امرحادث اوخلاف ظاهردی نودمشتری قول له ظاهرحال خلاف دی اودچاقول چې له ظاهرحال خلاف وي له هغه سره كه چيرته ګواه نه وي نودهغه بل قول مع اليمين معتبريږی نودمدعی عليه قول مع اليمين معتبريږي .

(۱۴)قوله وللمشترى لوفي الرؤية اى القول للمشترى لواختلفا في الرؤية ،يعنی كه چيرته په ليدوكې ددواړو اختلاف شومثلامشتری وايی چې ماپه نه ديدداشي اخيستی وونومالره دخياررؤيت حق شته اوبائع ورته وايی چې تاليدلی ووبيادي اخيستی وونوتالره دخياررؤيت حق نشته په دغه صورت كې دمشتري قول معتبريږی ولی مبيعه ليدل يوامرحادث دی بائع دهغه دعوی كوي اومشتري انكاركوي نوبائع مدعي دی اوله مدعي سره دګواه دنشت والي په صورت كې دمنكريعنی مشتري قول سره له يمين معتبريږی .

(۱۵)كه چادكپړويو(سربسته ) ګاټ اخيستی وويايې له هغه څخه يوتان راواخيست خرڅ يې كړايې چاته هبه كړورحواله يې كړاوس په ګاټ كې يوعيب پيداشونودهغه عيب په وجه سره مشتري دهغه ګاټ دواپس كولوحق لري،ولي كوم تان چې دمشتري له ملك څخه دخرڅولوياهبه كولوپه وجه وتلی دی په هغه پوري دمشتري ثاني ياموهوب له حق متعلق شوی دی نوځكه دهغه واپس كول متعذرشويعني په هغه تان كې خياررؤيت ساقط شواودنوروباقي تانونوپه واپس كولوكې تفريق عقد مخكې ترتاميدو لازميږي

حال داچې تفريق عقدمخکې ترتاميدوشرعًاناجائزدی،اوتفريق عقدمخکې ترتاميدوځکه راځي چې خياررؤيت اوخيار شرط دعقدله تاميدوځخه مانع دي پاتې شوعيب هغه خوله قبض کولووروسته دعقدله تاميدوځخه مانع نه دی نودعيب په صورت کې تفريق عقدمخکې ترتاميدونه لازميږي.

**فائده** : که چيرته خرڅ کړای شوی تان ددوهم عقددفسخ کيدوپه وجه بيرته اول مشتري ته واپس راوګرځيدنوداول مشتري ساقط شوی خياررؤيت هم بيرته راګرځي،ځکه چې اوس يې هغه مانع يعنې تفرق معامله ختم شو،په داسې حال کې چې دامام ابويوسف رحمه الله په نزدخياررؤيت له ساقطيدووروسته دوباره نه راګرځي ځکه يوځل ساقط شوی بيرته دوباره نه راګرځي،لکه خيارشرط چې له ساقطيدووروسته بيرته نه راګرځي،دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی لمافي الدر المختار:وهل يعود خيار الرؤية بعدسقوطه عن الثاني لا كخيار الشرط وصححه قاضيخان وغيره(الدر المختار على هامش رد المحتار:۴۸/۳).

## باب خيار العيب

دا باب دخيارعيب په بيان کې دی

له ماقبل سره دمناسبت وجه يې تيره شوې ده،په خيار العيب کې اضافت له قبيلي داضافة الشي الى سببه ته دی ولې ددغه خيارسبب عيب دی .کوم شی چې دخپل اصل فطرتِ سليمه له لحاظه له کوم نقص څخه خالي وي هغه نقص ته عيب ويل کيږي،دلته له عيب څخه مراد داسي عيب دی چې دبائع په نزدپيداشوی وي اومشتري دبيع اوقبض په وخت کې هغه عيب نه يې ليدلی اوبائع له هغه عيب څخه دبرائت شرط هم نه يې لګولی.

(۱)من وجدبالمبيع عيبا أخذه بكل الثمن أورده(۲)وما أوجب نقصان الثمن عند التجار عيب كالإباق والبول في الفراش والسرقة(۳)والجنون (۳)والبخر والذفر(۵)والزنا وولده في الامة(۲)والكفر فيهما.

**ترجمه** : څوک چې په مبيعه کې عيب پيداکړي نوهغه دي ياپه پوره پيسو واخلي يادي واپس کړي اوکوم شی چې دپيسو کمبوت راولي دتجارانوپه نزدهغه عيب دی لکه دمريي تښتيدل يابولي کول په بستره کې ياغلاکول،ليونتوب،دخولې بدبوئي درلودل يادبغلوبدبوئي درلودل،زناکارکيدل،ياولدزناوي په منځه کې ياکافرکيدل په دواړو کې.

**تشريح** :(۱)يعنې که چيرته په مبيعه کې دبائع په نزدعيب پيداشوی وومشتري دبيع په وخت يادقبض په وخت عيب نه وولیدلی اوس خبرشواومشتري په مبيعه درضامندي اظهارهم نه ووکړی نومشتري لره اختيار دی يادي دپوره پيسوپه عوض واخلي يادي ردکړي ځکه مطلق عقدمبيعی دوصف سلامت مقتضي دی يعنې عقددي تقاضاکوي چې مبيعه له عيبونوڅخه سالمه وي نوګوياد مبيعی سالم کيدل په عقدکې شرط شوی دی نواوس که وصف دسلامتی نه لري بياخودمشتري نقصان دی ځکه نومشتري ته دردولواختياروركړل شوی دی البته مشتري لره دااختيارنشته چې معيوبه مبيعه قبوله کړي اود مبيعی

دعيب په اندازه دبائع په پيسو کې نقصان وکړي ځکه دمبيعې سلامتې يووصف دی اوداوصافو په مقابله کې ثمن نه وي،نودوصف دنشتوالي په صورت کې په ثمنو کې هم کمبوت نه کول کيږي.

**فائده** : څرنګه چې عقدبيع دمبيعه دسلامتی مقتضي دی داداسي شوګوياپه مطلق عقدکې دمبيعه سلامتيامشروطه ده نولهذابائع اومشتري ته داناجائزه ده چې دمبيعه ياثمنوکوم عيب پټ کړي ولې په دي کې دوکه بازی راځي چې هغه حرام کاردی لقوله ﷺ :من غشنافليس منا.

(۲)شرعًادمبيعه عيب هغه دی چې دهغه په وجه دتجارانوپه نزددمبيعه په قيمت کې کمبوت راشي ځکه ضررکيدل يې دماليت په کمبوت سره معلوميږي اودماليت کمبوت يې دقيمت له کمبوت څخه معلوميږي اودقيمت کمبوت دتجارانوله عرف څخه معلوميږی نوځکه په دي کې دتجارانوعرف معتبريږي نودمريی له خپل مالک څخه تښتيدل عيب دی همدارنګه که چيرته هلک مريی مميّزوي نودهغه پربستره باندي بولي کول اوغلاکول عيب دی ځکه چې دتجارانوپه نزددمريی په قيمت کې ددغوعيبونوپه وجه کمی راځي.

**فائده** : که چيرته پورتني ذکرشوي عيبونه دبائع په نزدپه نابالغ مريی کې وو.اوس چې کله مشتري هغه واخيست اوهغه بالغ شوبياهم دغه عيبونه په هغه کې پيدا کيږی نوداهغه عيبونه نه دي کوم چې دبائع په لاس کې وو.بلکې دانوي عيبونه دي ولې پربستره باندي بولي کول په ماشومتوب کې دمثانې دضعف په وجه کيږي اوپه بلوغ کې دباطني ناروغي په وجه کيږي همدارنګه بداخلاقي اوغلاکول په ماشومتوب کې دلاپرواهي په وجه کيږي اوله بلوغ وروسته دباطني خباثت په وجه پيداکيږي نو دمشتري په نزدچې کوم عيبونه دي داهغه عيبونه نه دي کوم چې دبائع په لاس کي وونودغو عيبونوپه وجه سره مشتري هغه مريی نه شي ردولای. (الدّرالمختارعلی هامش ردّالمحتار: ۴/ ۸۳).

**فائده** : دمريی اومنځي له مولی څخه تښتيدل هغه وخت عيب شمارل کيږي چې ددوئ تيښته دمولی دظلم په وجه سره نه وي،نوکه چيرته کوم مريی دمولی دظلم په وجه وتښتي نوداعيب نه دی داسي مريی ته هارب ويل کيږي لمافي ردّالمحتار:وفي الجوهرة عن الثعالبی الآبق الهارب من غيرظلم السيدفلومن ظلمه سمّي هاربًافعلی هذاالاباق عيب لاالهرب . (ردّالمحتار:۳/ ۸۲).

**لطيفه** : رفعت امرأةزوجهاالی القاضي تبغي الفرقة وزعمت انه يبول في الفراش کل ليلة فقال الرجل للقاضي ياسيدی لاتعجل علي اقض عليک قصتي اني اری في منامي کاني في جزيرة في البحروفيهاقصرعال وفوق القصرقبة عالية وفوق القبة جمل واناعلی ظهرالجمل وان الجمل يطاطیٔ برأسه ليشرب من البحرفاذارأيت ذالک بلت من شدة الخوف فلماسمع القاضي ذالک بال في فراشه ثيابه وقال:ياهذه اناقداخذني البول من هول حديثه فکيف بمن يری الامرعيانا؟(المستطرف).

(۳)دمريی ليونی کيدل عيب دی ولې ليونتوب دباطني فسادپه وجه پيداکيږي اوپه ليونتوب کې په دی اعتبارفرق نشته چې داپه ماشومتوب کې وويااله بلوغ وروسته ووحتی که چيرته دبائع سره په ماشومتوب کې ليونتوب ووبيادمشتري سره له بلوغه وروسته بياپيداشونوبياهم مشتري دردولو اختيارلري ځکه دليونتوب سبب (يعنې باطني فساد) په هرحال يووي چې پکې ماشومتوب اوبلوغ دواړه برابردي.

**فائده** : دمشائخوترمنځ په دې اعتباراختلاف دی چې دليونتوب څومره درازيدل عيب شمارل کيږی دځينورايه داده چې يوه ګړی ليونتوب هم عيب شميرل کيږی، دځينورايه داده چې که چيرته تريوه شپه يوه ورځ زيات شي عيب شمارل کيږي که کم وويياعيب نه دی اودځينورايه داده چې مطبق ليونتوب عيب دی غيرمطبق ليونتوب عيب نه دی وخيرالاموراوسطهانوکوم ليونتوب.چې تريوه شپه يوه ورځ زيات شي هغه عيب شميرل کيږي لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله : ومقدارالجنون على القول الراجح ان يكون اكثرمن يوم وليلة ومادونه لايكون عيناوبه جزم الزيلعي(هامش الهداية: ۳/ ۴۰).

(۴)بخر(يعنې دخولې بدبويې) اودفر(دبغلوبدبويې) که په منځه کې وونوعيب دی ولې چې له منځې څخه کله مقصودهمبستري وي اوداعيبونه دهمبستري لپاره مخل دي نودغه عيبونه په منځه کې عيب شمارل کيږي، په داسې حال کې چې په مريی کې بخراودفرعيب نه دی ولې له مريی څخه مقصوداستخدام(خدمت آخستل) دی اوداعيبونه داستخدام لپاره مخل نه دي البته که چيرته دخولې بدبوئی يادبغلوبدبوئی په مريی کې ترحدزيات شي نوداييا په مريی کې هم عيب شمارل کيږي.

(۵)دمنځې زناکاره کيدل ياولدزناکيدل عيب دی ځکه چې دامخل دی ولې له منځې څخه کله مقصوداستفراش اوطلب ولدوي چې دهغه لپاره زنااوولدزناکيدل مخل دی په داسې حال کې چې په مريی کې داعيب نه دی ولې په مريی کې مخل بالمقصودنه دی ځکه له مريی څخه مقصودخدمت اخستل دی اودخدمت اخستلولپاره دامخل نه دی البته که مريی دزناکاري عادي وي نوبياعيب شمارل کيږي ولې چې دی به تهوله ورځ په ښځوپسې وی دادمقصود(يعنې استخدام )لپاره مخل دی.

(۶)کافرکيدل دمريی اومنځې دواړولپاره عيب شمارل کيږی ولې دمسلمان طبيعت له کافرې منځې سره دصحبت کولونه نفرت کوي اودکافرمريی په ځينوکفاروکې آزادول نه دی روانودده په خريد کې درغبت دکميدوپه وجه دده په قيمت کې کمی راځي پس کافرکيدل په مريی کې عيب شمارل کيږي.

(۷)وعدم الحيض والاستحاضة(۸)والسعال القديم والدين(۹)والذفر والشعر والماء في العين(۱۰)فلو حدث آخر عند المشتري رجع بنقصانه (۱۱)اوردّه برضاء بائعه.

**ترجمه** : اوحيض نه درلودل اواستحاضة کيدل اوزوړټوخ کيدل اوقرض ورباندي کيدل اوپرشاباندی زخم کيدل اوويښتان يااوبه پيداکيدل په سترګوکې يې پس که چيرته پيداشي بل عيب دمشتر ي سره نوودي ګرځوي دهغه نقصان يادي ردکړي دبائع په رضامندي سره.

**تشريح** : (۷)قوله وعدم الحيض والاستحاضة اى كل شيء اوجب نقصان الثمن عند التجار فهو عيب كعدم الحيض والاستحاضة : يعنې له بلوغ وروسته د(اياس) ترکلونومخکې منځې ته حيض نه راتلل يااستحاضة کيدل عيب شمارل کيږي ځکه داد وارېدناروغي علامه ده اودمنځې ناروغ کيدل عيب دی.

**فائده** : حیض نه راتلل دبلوغ له انتهائی موده څخه شمارل کیږی اودبلوغ انتهائی موده دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد اوولس (۱۷) کاله دي، دصاحبینو رحمهما الله په نزد پنځلس کاله دي ،دصاحبینو رحمهما الله قول زاجح دی لمافی الدرالمختار: وعندهما خمسة عشر وبقولهما يفتى (الدرالمختار على هامش ردالمحتار: ۸۵/۳) یا که چیرته مشتري په لږه موده کښ دهغی دحیض نه راتلو دعوی وکړه دعوی یې نه اوریدله کیږي اوکه یې له اوږدې مودې وروسته دعوی وکړه دعوی یې اوریدله کیږی ،لږه موده دامام ابویوسف رحمه الله په نزددرې میاشتې دي تردریو میاشتوزیات اوږده موده ده،دامام محمد رحمه الله په نزد څلورمیاشتې لس ورځې لږه موده ده ترهغه زیاته اوږده موده ده اودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدلږه موده دوه کاله ده ترهغه زیاته طویله موده ده .

(۸)همدارنګه زوړتوخ یعنې داچې مریی په سالندې ناروغې مبتلا وی داعیب دی ولی دائمی توخ دناروغې علامه ده پس که چیرته توخ زوړنه ووبلکې دعادت مطابق یادزکام په وجه وونوداعیب نه دی،اودمریي مقروض کیدل عیب دی ولی چې مشتري اوس هغه دقرضدارانوله اجازې پرته نه شي خرڅولای په دې شرط چې داسې قرض وي چې دهغه مطالبه ترآزادې مخکې وي اوکه چیرته ترآزادې وروسته وونوداسې قرض بیاعیب نه دی .

(۹)دکنزپه ځینونسخوکې (والدّین ) نشته دهغه پرځای (والدّبر) دی چې معنی یې ده دشازخمی کیدل یعنې دمنځې پرشاباندی زخم پیداکیدل عیب دی ولی داناروغی ده همدارنګه دمنځې په سترګوکې وینښتان راتلل یاله سترګواوبه بهیدل عیب دی ولی چې له دې څخه دنظرکمزوری اوړوندوالی پیداکیږي .

(۱۰)یعنې که چیرته په مبیعه کې دمشتري په نزدعیب پیداشو یادرک معلوم شو چې په مبیعه کې خوتردې وړاندې دبائع په نزدهم عیب وونودبائع سره دپیداشوي عیب په وجه چې دمبیعه په قیمت کې څومره کمی راغلی دی مشتري دهغه کمبوت بائع ته رجوع کولای شي مګرمشتري مبیعه واپس کولای نه شي ولي په دې کې دبائع ضرردی ځکه چې بائع خومشتري ته (دمشتري سره له پیداشوي عیب نه ) سالمه مبیعه سپارلې وه په داسې حال کې چې اوس معیوبه شوي ګرځي بائع ته مګرځرنګه چې دبائع په لاس کې دپیداشوي عیب په وجه دمشتري هم نقصان شوی دی نودهغه نقصان دلیرې کولوصورت دادی چې مشتري دې بائع ته په قدرنقصان رجوع وکړي .

**فائده** : په قدرنقصان درجوع کولو په صورت کې دنقصان معلومولوطریقه داده چې اول دې له بائع سره دپیداشوي عیب نه دسلامتې په صورت کې دمبیعه قیمت اندازه کړي بیادې له هغه عیب سره دمبیعه قیمت اندازه کړي ددغودواړوقیمتونوترمنځ چې کوم فرق وي هغه نقصان عیب دی مثلاً ترعیب مخکې یې قیمت لس روپۍ دی اوله عیب وروسته اته روپۍ دي نونقصان عیب دوې روپۍ دي .

(۱۱)البته که چیرته بائع دمعیوبې مبیعې په اخستلوراضی شي نوپه دغه صورت کې مشتري هغه واپس کولای شي ولی بائع پخپل ضرردرضامندې اظهاروکړی خپل حق یې ساقط کړ .

(۱۲) وَمَن اشْتَرٰى ثَوبًا فَقَطَعَه فَوَجَدَ بِهٖ عَيبًا رَجَعَ بِالعَيبِ (۱۳) فَاِن قَبِلَهُ البَائِعُ كَذٰلِكَ لَهُ ذٰلِكَ (۱۴) فَاِن بَاعَهُ المُشتَرِي لَم يَرجِع بِشَيءٍ (۱۵) فَلَو قَطَعَهُ وَخَاطَهُ اَو صَبَغَهُ اَو لَتَّ السَّوِيقَ بِسَمنٍ فَاطَّلَعَ عَلٰى عَيبٍ رَجَعَ بِنُقصَانِهٖ (۱۶) كَمَا لَو بَاعَهُ بَعدَ رُؤيَةِ العَيبِ (۱۷) اَو مَاتَ العَبدُ (۱۸) اَو اَعتَقَهُ مَجَّانًا (۱۹) فَاِن اَعتَقَهُ عَلٰى مَالٍ (۲۰) اَو قَتَلَهُ (۲۱) اَو كَانَ طَعَامًا فَاَكَلَ كُلَّهُ اَو بَعضَهُ لَم يَرجِع بِشَيءٍ.

**ترجمه**: كه چا كپړه رانيوه بيا يې كاټ كړه بيا يې په هغې كې عيب ومونده نو رجوع دې وكړي بقدر عيب، او كه بائع قبوله كړه دغه كپړه همدغسې كاټ شوې نو ده لره اختيار دى او كه چيرته مشتري هغه خرڅه كړه نو بيا رجوع نشي كولاى او كه يې كاټ كړه او وېې ګنډله يايې ورنګوله يايې په پنيركې غوړي ګډ كړل بيا په عيب خبر شو نو دهغه نقصان په باره كې دې رجوع وكړي لكه چې خرڅه كړي هغه د رؤيت عيب وروسته يا مړېې مړ شو يا يې دغسې مفت آزاد كړېس كه يې چيرته هغه آزاد كړى وو په مال سره يا يې وژلى وو يا خوراكي شى وو هغه ټول وخوړ يا يې څه ځنې وخوړ نو بيا به رجوع نه كوي.

**تشريح**: (۱۲) يعني كه چا كپړه واخيسته بيا يې پرې كړه يا اوس مشتري ته په هغې كې د داسي دعيب درك معلوم شو چې د بائع په نزد پيدا شوى وو نو په قدر نقصان پيسي واپس اخيستلاى شي كپړه نه شي واپس كولاى ځكه چې په پرېكولو سره په هغې كې نوى عيب پيدا شو چې د هغه په وجه يې اوس رد نشي كيدلاى ولي په واپس كولو كې د بائع نقصان دى او د مشتري د نقصان دليري كولو صورت دادى چې مشتري بائع ته په قدر نقصان رجوع وكړي.

(۱۳) خو كه چيرته بائع په دې راضي وو چې دغه كپړه دغسې پرې شوې راكړه نو دى اختيار لري قبلولاى يې شي ولې د واپس كولو ممانعت د هغه د حق په وجه وو په داسي حال كې چې اوس دى د خپل حق په سقوط پخپله راضي شوى دى.

(۱۴) او كه چيرته مشتري هغه پرې كړاى شوې كپړې پربل چا خرڅې كړې برابره ده چې د خرڅولو په وخت دى په عيب علم لري يا يې نه لري بيا له بائع څخه نقصان عيب نه شي اخيستلاى ولې چې ترخرڅولو مخكې داول بائع په رضامندي سره د هغو واپس كول ممكن كار وو مشتري چې پر بل چا خرڅې كړې د مبيعې د واپس كولو مانع دى خپله جوړ شو نو ځكه دى د نقصان اخيستلو حق نه لري.

(۱۵) يعني كه چيرته مشتري كپړه واخيستله پرې يې كړه ويې ګنډله يايې ورنګوله او يا مبيعه ستودى مشتري په هغه كې غوړي ګډ كړل بيا مشتري په هغه عيب باندې خبر شو كوم چې د بائع په نزد پيدا شوى وو نو له بائع څخه به قدر نقصان پيسي بيرته اخيستلاى شي ځكه چې د هغه د نقصان د جبيره كيدو همدا صورت دى.

مګر مبيعه نه شي واپس كولاى كه څه هم بائع پرې راضي وي ولې د مشتري له طرفه چې په مبيعه كې كوم زيادت راغلى دى هغه له مبيعه سره متصل دى د هغه بغيره ردنه شي كولاى او نه يې له هغه زيادت سره ردكولاى شي ځكه په هغه صورت كې ربوالازميږي ولى د مشتري له خواشوى زيادت بائع ته بلاعوض وركول كيږي نو مبيعه ردول شرعًا ممتنع دى.

(١٦)قوله كمالوباعه بعدرؤية العيب اى رجع بالنقصان فى الصورة المذكورة كمايرجع بالنقصان لوباعه بعدرؤية،يعني پورتني مذكورصورت داسي دى لكه يوڅوك چې ددغو مذكوروشيانو (كپړه،ياستو) په عيب خبريدلو وروسته دغه شيان پربل چاباندي خرڅ كړى نومشتري دهغه عيب نقصان له بائع څخه اخيستلاى شي ولى په بياخرڅولوسره دى دمبيعه مانع نه دى بلكې تر بياخرڅولومخكي هم دمشتري له طرفه په مبيعه كې دزيادت راتلوپه وجه مبيعه نه شواى واپس كيدلاى نوچې دبياخرڅولوپه وجه مشتري دمبيعه دواپس كولوپاره مانع نه دى نوځكه دى په قدرنقصان درجوع حق لري.

**فائده** : په مبيعه كې زيادتى له دووحالوڅخه خالى نه ده يابه په مبيعه پوري متصل وي يابه منفصل، بيامتصل پردوه قسمه دى يابه له اصل يعني مبيعه څخه متولداوپيداشوى وي لكه دمبيعه چاغيدل داډول زيادتى دواپس كولومانع نه ګرځى ځكه په دغه صورت كې زيادت محض تابع دى. دوهم قسم داچې زيادت له مبيعه څخه نه وي پيداشوى لكه دكپړورنګول ،ګنډل،اوپه ستوكې غوړي اچول داډول زيادت په اتفاق دواپس كولوڅخه مانع دى لماقلنا،اوكه زيادت له مبيعه څخه منفصل وونوهم له دووحالوڅخه خالي نه دى يابه له مبيعه څخه پيداشوى زيادت وى لكه مثلامبيعه منځه وي دهغى بچئ وزيږى داصورت هم دواپس كولوڅخه مانع دى دوهم صورت يې دادى چې زيادت له مبيعه څخه نه يې پيداشوى مثلامبيعه مريى دى مزدوري يې وكړه روپئ يې وګټلى داصورت دواپس كولولپاره مانع نه دى په دي دووصورتونوكې وجه دفرق داده چې كوم زيادت له مبيعه څخه متولدشوى وي دهغه هماغه حكم دى كوم چې دمبيعى دى نوهغه له مبيعه سره يوځاى خوشي واپس كول جائزنه دى ځكه داډول بياسودراځي اوپه دوهم صورت كې ګټه مبيعه نه ده ولى ګټه خوله منافعوڅخه پيداشوې ده اومنافعى له مبيعى څخه غيردي نوګټه دمبيعه دواپس كولولپاره مانع نه دى.

(١٧)قوله اومات العبداى يرجع بالنقصان ان هلك الغلام عندالمشترى ،يعني كه چيرته مبيعه مريى وواوهغه مړشوبيامشتري ددغه مريې په داسى عيب باندي خبرشوكوم چې له بائع سره ورته پيداشوى وونودمريې په قيمت كې چې دهغه عيب په وجه كوم كمبوت راغلى ووبقدرنقصان بائع ته رجوع كولاى شي.ځكه دمرګ په وجه مِلك خپلى انتهاء ته رسيږي اوشى چې خپلى انتهاء ته ورسيږى مقرراوثابت كيږي نوګوياملك موجود دى مګردمرګ په حكم يعني غيراختيارى امرپه وجه مريى چې مبيعه ده دهغه واپس كول متعذرشوى دى اودواپسى په ممتنع كيدوكې دمشترى دفعل هيڅ دخل هم نشته اوچې كله دمبيعى واپس كيدل ديوغيراختيارى امرپه وجه متعذركيږي نودقديم عيب په وجه مشتري لره دنقصان عيب دواپس اخيستلواختيار وي.

(١٨)قوله اواعتقه مجاناًاى يرجع بالنقصان لواعتق العبدبلامال ثم اطلع على العيب ،يعني كه چيرته مبيعه مريى وواومشتري هغه دغسى مفت آزادكړبيادهغه په كوم پخوانى عيب باندي خبرشونوپه دغه صورت كې هم استحساناًدنقصان اخستلواختيارلري، داستحسان وجه داده چې آزادول مِلك ترانتهاء پورى رسول دى ولى داصل خلقت په اعتبارسره انسان دمِلك محل نه دى پيداكړاى شوى بلكې په مريى كې ملك ترپوړ

محدودوخت يعني آزادي پوري ثابت وي نودمريی آزادول ګوياد هغه ملک تر انتهاء پوري رسيدل دي اوشي چې کله انتهاء ته رسيږي نو کامل کيږي همدا وجه ده چې دآزادکړای شوي مريی ولاء (تصرف) آزادوونکي ته ورکول کيږي اوولاء دملک له آثاروڅخه ده نوداسي ويل کيږي چې دمشتري ملک پاتی دی مګردآزادولو په وجه دمريی واپس کيدل متعذرشوی دی اوچې کله دبائع له طرفه دمبيعه واپس کول متعذرکيږي نومشتري لره دنقصان عيب دواپس کولواختياروي لکه دمريی دمرګ په صورت کې څکه نودآزادولو په صورت کې هم مشتري لره له بائع څخه دنقصان عيب اخستلواختيار وي .

**فائده** : په پورتنی مذکورصورت کې مشتري لره په قدرنقصان درجوع کولوحق شته مګرشرط دادی چې دآزادولو په وخت به دمبيعه پرعيب علم نه لري که نه که چيرته هغه په عيب خبريدووروسته مريی مفت آزادکړنوبيادنقصان په باره کې بائع ته درجوع کولوحق نه لري څکه چې دمبيعه په عيب خبريدوسره دهغه آزادول دهغه له طرف څخه په معيوبه مبيعه باندي درضامندي علامه ده .

(۱۹)قوله فان اعتقه علی مالٍ، له خپلو معطوفاتوسره شرط دی او(لم يرجع بشئ) يې جزاء ده ،يعني که چيرته مشتري مذکورمريی دمال په عوض آزادکړبيادمريې په کوم عيب باندي خبرشونومشتري په قدرنقصان بائع ته درجوع کولوحق نه لري ولی مشتري دمريی بدل له خپله ځانه ګرځولی دی اودبدل ګرځول داسي دی لکه دمبدل منه ګرځول پس مشتري مبيعه ګرځوونکی شمارل کيږي اوپه داسی صورت کې مشتري لره درجوع حق نشته .

(۲۰)همدارنګه که چيرته مشتري هغه وواژه نوداما م ابوحنيفة رحمه الله په نزدنوپه دغه صورت کې مشتري په قدرنقصان بائع ته رجوع نه شي کولای ولی مريی اوس نه شي رديدلای اونه ردولې دمشتري دفعل په وجه دی نومشتری مبيعه ګرځوونکی دی اومبيعه ګرځوونکی مشتري درجوع حق نه لري،دصاحبينو رحمهما الله په نزدمشتري په قدرنقصان رجوع کولای شی ولی دمشتري خپل دغه مريی وژل داسي عمل دی چې په هغه پوري کوم دنياوي حکم متعلق نه دی يعني نه له هغه څخه دهغه قصاص اخيستل کيږي اونه ديت ورکول لازميږي نوداسي دی ګويامريی په خپل مرګ مړشوی دی اوپه هغه صورت کې چې مريی په خپل مرګ مړشي مشتري درجوع کولوحق لري کمامرّ .

**فائده** : دامام ابوحنيفة رحمه الله قول ظاهرالرواية دی اوپرهغه فتوی ده لمافي الدّرالمختار:ولواعتقه اوقتله لايرجع بشئ لامتناع الرد بفعله .وقال ابن عابدين الشامي رحمه الله :(قوله اوقتله) وهوظاهرالرواية عن اصحابنا (الدر المختار مع الشامية: ۴/۹۴).

(۲۱)همدارنګه که چيرته مبيعه دخوراک شی وونومشتري ټول وخوړيابې څه وخوړبيادمبيعه په عيب باندي خبرشونوهم دامام صاحب رحمه الله په نزدمشتري ته په قدرنقصان ديرته اخستلوحق نشته . په داسی حال کې چې دصاحبينو رحمهما الله په نزدمشتری درجوع حق لري ولی مشتري چې دکوم مقصدلپاره مبيعه اخيسته وه په هغه مقصدکې يې مصرف کړه اودامعتادهم دی نوګوياپه خوړلوسره دمشتري ملک کمال ته ورسيدنودادمريی آزادولوپه ډول شونولکه څرنګه چې دمريی دآزادولوپه صورت کې مشتري

درجوع لري همدارنګه دمبيعه خوړلو په صورت کې هم مشتري درجوع حق لري،دامام ابو حنيفة رحمه الله دليل دادی چې دمبيعه په خوړلو سره دهغې واپس کيدل دمشتري په داسې فعل سره متعذرشوی دی چې پرهغه يې ضمان واجبيږی داسې مثلاً که مشتري دبل چاغله خوړلې وای نوپرده ضمان واجب کيده مګردلته څرنګه چې مشتري خپله مالک دی نوځکه ضمان ورځنی ساقط دی نوګواکې مشتري له خپل ملک څخه عوض حاصل کړاصورت دمبيعې خرڅولو په شان دی په کوم کې چې مشتري لره درجوع حق نشته لهذا په دغه صورت کې هم درجوع کولو حق نه لري.

**فائده** : دصاحبينو رحمهما الله قول مفتی به دی لمافی الذرالمختار:اوکان المبيع طعامافاکله اوبعضه فانه يرجع بالنقصان استحسانًاوعليه الفتوی,وقال ابن عابدين الشامی رحمه الله : قلت ماذكره الشارح من ان الاستحسان قولهماذكره فی الاختياروتبعه فی البحر وكذانقله عنه العلامة قاسم ونبه علی انه عكس مافی الهداية وسكت عليه فللذامشی عليه المصنف رحمه الله فی متنه الخ,والحاصل انهماقولان مصححان ولكن صحح اقولهمابان عليه الفتوی ولفظ الفتوی اكدالفاظ التصحيح ولاسيماهوارفق بالناس وهذافی الاكل امااليبع ونحوه فلارجوع فيه اجماعا.(الدرالمختار:۳/۹۳).

(۲۲)ولو اشتری بيضاًاو قثاءًاوجوزًافوجده فاسدًاينتفع به رجع بنقصان العيب والابكل الثمن (۲۳)ولو باع المبيع فرد عليه بعيب بقضاء رده علی بائعه (۲۴)ولوبرضاء لا(۲۵)ولو قبض المشتری المبيع وادعی عيبًالم يجبر علی دفع الثمن ولكن يبرهن اويحلف بائعه(۲۶)فان قال شهودی بالشام دفع اليه ان حلف بائعه.

**ترجمه** : اوکه يې واخيستلې هګۍ ،ياچمبرخيال ،ياچارمغز،هغه دومره خراب وو چې فائده ورڅخه اخستل کيدای شوای نورجوع دي وکړي دنقصان عيب په اندازه که نه رجوع دي وکړي دټولو روپوپه باره کې،اوکه يې خرڅه کړه مبيعه بيا ارد کړای شوه هغه پرده باندي دعيب په وجه دقاضی په حکم سره نو دی دي خپل بائع ته ورواپس کړي اوکه يې چيرته پخپله رضامندي سره قبول کړ (يعني دقاضی په قضاء سره نه) نوبيا دي دی نه ردوي.اوکه مشتری مبيعه قبض کړه اودعوی دعيب يې وکړه نودی دي نه مجبور کړای کيږي دپيسو په ورکولو ليکن دی به ګواه وړاندي کوي يابه خپل بائع ته قسم ورکوي اوکه ده وويل چې زما ګواهان په شام ښارکې دي نوبيا دي بائع ته پيسې ورکړي که چيرته قسم وکړ بائع دده.

**تشريح** : (۲۱)که يوچاهګۍ ياچمبرخيال ياچارمغزواخيستل اوهغه داسې خراب وختل چې يومعمولي کارورڅخه اخيستل کيدای شوای نومشتري دي ددغې خرابی په وجه چې کوم کمبوت دهغوپه قيمت کې راغلی دی هغه دي له بائع څخه واپس واخلي ولي په ماتيدو سره په دغوشيانوکې نوی عيب پيداشو چې دهغه په وجه يې اوس نه شي ردولای نودمشتري چې څومره تاوان شوی دی هغه دي واپس واخلي.اوکه چيرته مذکورشيان ډيرزيات خراب اوبلکل ناکاره وونوبيا دي مشتري پوره پيسې له بائع څخه واپس واخلي ولی په دغه صورت کې مبيعه مال نه دی نودابيع باطله ده.

**فائده** : امام شافعی رحمه الله فرمايلي دي چې که يې چيرته يوه يا دوې دانې هندوانې ياچمبرخيال مات کړل چې له هغو څخه ددوئ عيب ورته معلوم شونوبيا مشتري دردولو اختيار لري ولی که څه هم ماتول عيب دی مګرڅرنګه چې همدغه بائع مشتري پرماتولو باندی مسلط کړی دی ځکه نودی دواپس کولو حق لري،احناف جواب ورکوي چې بائع دمشتري په ملک کې په ماتيدو باندي

راضي دى پخپل ملک کې په ماتولونه دى راضي نو دبائع دطرف څخه تسليط يواځي دمشتري دملک په صورت کې دى دبائع دملک په صورت کې نه دى ولى دعقدبيع په وجه دبائع ملک نه پاتې کيږي اودمشتري په ملک کې تسليط لغوه دى ولى دبائع پرمشتري باندي حق دولايت نشته نوددواړورعايت په دي کې دى چې په قدرنقصان درجوع کولو حق دمشتري لپاره ومنل شي مگردمبيعه واپس کولو اجازه ورنکړاى شي څکه مبيعه نه شي ردولاى.

(۲۳)يعني بائع مثلامريى خرڅ کړمشتري پربل چاباندي خرڅ کړاوس دغه دوهم مشتري دمريى په پخواني عيب باندي خبرشونوکه چيرته دوهم مشتري دقاضي محکمې ته ورغى دعوى يې دائره کړه اوقاضي دمريى دواپس کولو حکم جاري کړاواول مشتري دقاضي حکم قبول کړهغه معيوب مريى يې بيرته قبول کړنودغه اول مشتري دامعيوب مريى پربائع اول باندي ردولاى شي.ولى په حکم دقضا.دمبيعه واپس کيدل دټولوپه حق کې دبيع دفسخ حکم لري نوګواکې دوهمه بيعه له سره شوې نه ده څکه نواول مشتري دعيب په وجه دمبيعه دردولو حق لري.

**فائده**: مگرشرط دادى چې پردوهم مشتري دخرڅولوپه وخت کې به اول مشتري دمبيعى په عيب علم نه لري که نه بيااول مشتري پراول بائع باندي دمبيعى ردولو اختيارنه لري ولى ددي باوجودچې دى په عيب علم لري بياهم پربل خرڅوي داپه عيب باندي درضامندي علامه ده.

(۲۴)قوله ولوبرضاء لا،اى لوکان ردالمشترى الثانى على المشترى الاول برضاء لايرده على بائعه.يعني که دوهم مشتري مريى واپس کړاول مشتري په خپله رضامندي سره دقاضي دقضاء بغيرهغه قبول کړنوبيااول مشترى پراول بائع باندي مذکورمريى نه شي ردولاى،ولى چې داول اودوهم مشترى په حق کې که څه هم دافسخ بيع ده مگرددريم په حق کې دافسخ بيع نه ده بلکې جديده بيع ده اواول بائع ددغې بيع په لحاظ دريم دى نوپراول بائع ردنه شي کيدلاى ولى دبائع اول په حق کې دوهمه بيعه قائمه ده چې دهغې په وجه اول مشتري دمبيعى واپس کولو اختيارنه لري.

(۲۵)که چامثلايومريى واخيست اوقبض يې هم کړبيايې په هغه کې دعيب دعوى وکړه نوقاضي دي مشتري دپيسوپه اداکولوسره نه مجبوروي ولى که چيرته قاضي مشتري ته دپيسواداکولو حکم وکړي نوممکنه ده چې په مبيعه کې عيب ثابت شي نوبياخودقاضي قضاء ماتيږي څکه نوقاضي دي دخپلى قضاء دحفاظت په خاطرمشتري ته حکم نه ورکوي، بلکې مشتري دي پرخپله دعوى باندي ګواهان وړاندي کړي که واقعًاهغه ګواهان وړاندي کړل نوبيع دي فسخ اومبيعه دي واپس کړي اوکه مشتري ګواه نه شووړاندي کولاى نوله خپل بائع څخه دي په مبيعه کې دعيب په نه درلودلوقسم واخلي که بائع قسم واخيست نوقاضي دي مشتري ته دپيسواداکولوحکم وکړي اوکه بائع له قسم اخستلوڅخه انکاروکړنوبيع دي فسخ کړي.

(۲۶)که مشتري وويل چې زماګواهان په شام ښارکې دي (مراددادچې په کوم ښارکې چې دعوى ده هلته نشته بلکې ددريوورځو مسافت په اندازه ليري دي) نوګواکې په دي وخت دى دګواهانووړاندي کولوڅخه عاجزدى نوڅکه به بائع ته قسم ورکړي که بائع قسم واخيست نومشتري به بائع ته دمبيعى قيمت

وركوي ولې دګواهانو ترراتلوپورې په انتظاركولوكې دبائع ضرردى په داسې حال كې چې دمشتري زيات ضررنه دى ولې دمشتري دضررمخ نيوى داډول كيداى شي چې كه هروخت دده ګواهان له شام څخه راشي ګواهي وركړي مشتري لره داحق ثابتيږي چې هغه مبيعه واپس كړي له بائع څخه روپۍ واخلي.

(۲۷)فَإن ادّعى إباقاًلم يحلف بائعه حتّى يبرهن المشترى انه ابق عنده (۲۸)فان برهن حلف بالله ماابق عندك قط (۲۹)والقول في قدر المقبوض للقابض (۳۰)ولو اشترى عبدين صفقةً وقبض أحدهما ووجد بأحدهما عيبًا أخذهما أو ردّهما (۳۱)ولو قبضهما ثم وجد بأحدهما عيبًا ردّ المعيب فقط.

**ترجمه**: اوكه چيرته يې دعوى وكړه دمريى تښتيدلو نو قسم دي نه وركوي بائع ته ترڅو چې مشتري ګواه وړاندي كړي چې هغه له ده څخه تښتيدلى دى پياده كه ګواهان وړاندي كړل نو قسم دي واخلي بائع چې والله له ما څخه هيڅكله هم نه دى تښتيدلى اوقول په قدرمقبوض كې دقابض معتبردى اوكه يې دوه مريان واخيستل په يوه عقدكې يويې قبض كړبيايې له دوئ څخه په يوه كې عيب وموندنو دي يادواړه واخلى يادي دواړه ردكړي اوكه دواړه قبض كړي وبيايې له دواړو څخه يوعيب جن وموندنو يواځي هغه معيوب دي واپس كړي.

**تشريح**: (۲۷)كه چاپومريى واخيست بيايي دهغه دتښتيدواو(بداخلاقي) دعوى وكړه اوبائع انكاروكړنو بائع ته قسم نه وركول كيږي ترهغه پورې چې مشتري داخبره په ګواه سره ثابته كړي چې دامريى له ده څخه تښتيدلى دى ولې دتيښتې ثابتيدو څخه وروسته عيب ثابتيږي اوهغه وخت دده له طرفه خصومت هم صحيح دى .ترتښتيدو مخكې عيب نه ثابتيږي نو دمشتري له طرفه خصومت هم صحيح نه دى چې كله خصومت نه دى صحيح نو دمشتري دعوى هم نه ده صحيح اوچې كله يې دعوى صحيح نه ده نو پرهغې باندي يوډول ترتب هم صحيح نه دى نو منكريعني بائع ته قسم نه وركول كيږي .دصاحبينو رحمهما الله په نزد مشتري له بائع څخه قسم اخستلاى شي ولې دمشتري دعيب دعوى صحيح اومعتبره ده ولې دده پردغه دعوى باندي دګواهي ترتب راځي يعنې له مشتري څخه دګواهانو غوښتنه كيږي نو داددغې دعوى دمعتبريدو علامه ده نو چې كله پردغه دعوى باندي دګواهي ترتب كيږى نو دقسم ترتب هم صحيح كيږي څكه له بائع څخه قسم اخيستل كيږي.

**فائده**: دامام صاحب رحمه الله قول راجح دى يعنې كه مشتري ګواهان نه شو وړاندي كولاى نو له بائع څخه قسم نه اخيستل كيږي لمافي ردّالمحتار:وان لم يبرهن لايمين على البائع عندالامام على الصحيح وعندهماعليه يمين على نفي العلم. (ردّالمحتار:۴/۹۸).

(۲۸)كه چيرته مشتري ګواهان وړاندې كړل چې واقعًامريى له ده څخه تښتيدلى دى نواوس دي قاضي له بائع څخه داسې قسم واخلي چې والله دامريى له ما څخه هيڅكله نه دى تښتيدلى كه بائع داډول قسم واخيست نو بيامشتري دمبيعه دواپس كولو حق نه لري .له بائع څخه دي داسې قسم نه اخلى چې والله مادامريى پرده باندي خرڅ كړپه هغه كې داعيب نه وو،ولې په داسې قسم اخستو كې دمشتري دضرر امكان دى څكه چې عيب كله ترخرڅولو وروسته ترتسليمولو مخكې پيدا كيږي نو بائع په دغه خپل قسم كې رښتينى دى حال داچې داډول عيب هم موجب ردّدى يعنې په داډول عيب سره هم دمشتري لپاره خيارعيب ثابتيږي.

**فائده** : عیوب څو قسمونه دي : (۱) یو قسم هغه عیبونه دي چې خفی وي لکه تبښتېدل ،ددغو حکم معلوم شوی دی (۲) بل هغه عیبونه چې ظاهر وي لکه ګونګی کیدی یاګوتي کمیدل ددي په باره کې به قاضی بغیر ددي چې بائع ته قسم ورکړي دواپس کولو فیصله کوي ولی داداسي عیبونه دي چې په یقیني ډول معلوم دي چې له بائع سره پیدا شوي دي په دي شرط چې بائع دادعوی ونکړي چې مشتري پردغه عیب د رضامندۍ اظهار کړی وو. (۳) هغه عیبونه چې یواځي ډاکتران (طبیبان) یې معلومولای شي لکه باطني ناروغي، دهغو په باره کې دیوه عادل چاقول کافی دی اوکه داثابتول وو چې داعیب له بائع سره ورپیدا شوی دی نو بیا ددوو کسانو عادلانو قول معتبر دی (۴) هغه عیبونه چې خالص ښځي پري خبریدای شي نو دهغو دفی الحال قائمیدو په باره کې دیوې ثقه ښځی قول معتبر دی ،خو که چیرته مشتری مبیعه قبض کړي وه بیا یې دښځو په قول نه شی ردولای بلکې بائع ته قسم ورکول کیږي،دامام محمد رحمه الله په نزد تر قبض کولو مخکي هم همدغه حکم دی په داسی حال کې چې دامام ابویوسف رحمه الله په نزد تر قبض کولو مخکی بائع ته له قسم ورکولو بغیر دښځو په قول یې ردولای شي،دعلامه شامی رحمه الله آخری تحقیق دادی چې په کومو عیبونو چې خالص ښځې پوهیدلای شی په هغو کې حکم دادی چې دیوې یادوو ښځو په ګواهي سره عیب ثابتیږی دخصومت په حق کې یعنی دقاضی په محکمه کې غږ بښتنه کولای شي رد نه شی کولای که تر قبض مخکي وي که وروسته وي والحاصل ان شهادة الواحدة او الثنتين يثبت بها العيب المذكور في حق توجه الخصومة لا في حق الرد سواء كان ذالك قبل القبض او بعده في ظاهر الرواية عن علمائنا الثلاثة وهو المشهور فكان هو المذهب المعتمد وان اقتصر في كثير من الكتب على خلافه الخ فاغتنم تحقيق هذا المحل فانك لاتجده في غير هذا الكتاب والحمد لله الملك الوهاب.(ردالمحتار:۴/۹۹)

(۲۹) اودمقدار مقبوض په باره کې دهغه چاقول معتبریږی دچا په قبضه کې چې هغه شی وي مثلاً چا یوتان کپړه واخیسته بیا په هغی کې یو عیب ورته معلوم شو اوس نو دی غواړي چې کپړه واپس کړي خو له بائع سره یې دهغه په اندازه کې جنجال راغی،بائع وایی چې کپړه دیرش ګزه وه اوس شل ګزه ده ،اومشتري وایي چې له اول څخه شل ګزه وه نو په دي صورت کې دمشتري قول معتبریږی ولی بائع دلسوګزونو په بدله کې چې کومی پیسی راځی دهغو دعوی کوي اومشتري له هغه څخه انکار کوي اودمنکر قول معتبریږي.

(۳۰) که چا په یوه عقد دوه مریيان واخیستل مثلاً بائع وویل چې مادا دوه مریيان په زرروپی پرتا باندي خرڅ کړي دي مشتري قبول کړل بیا یې یو قبض کړ او په دوهم کې یې عیب پیدا کړنو مشتري لره اختیار دی که یې خوښه وي دواړه دي وګرځوي اوکه یې خوښه وي دواړه دي واپس کړي داسي نه شي کولای چې په کوم یوه کې عیب دی هغه واپس کړي او په کوم کې چې عیب نشته هغه وګرځوي ولی عقد تامیږی په قبض سره او قبض تر اوسه پوري ددواړو نه دی شوی نو دا دول له عقد تامید و څخه مخکي تفریق عقد لازمیږی چې هغه صحیح نه دی اوهمدا قول راجح دی لما قال المرغيناني رحمه الله : والاصح انه ياخذهما او يرذهما لان تمام الصفقة تعلق بقبض المبيع وهو اسم للكل.

(هدایه:۳/۵۰)

۱

:امام ابویوسف رحمه الله په نزدکه چیرته عیب په قبض شوي مربی کښ پیداشونومشتري ته
دااختیار ..... چښ هغه یواځی دغه معیوب مربی واپس کړي ولی دمقبوض په باره کښ عقدتام شوی دی
نوتفرق عند قبل الاتمام نه لازمیږي.

(۳۱)که په پورتنی مذکورصورت کښ مشتري دواړه مربیان قبض کړي وویاپه یوه کښ عیب ورته
معلوم شونواوس دي یواځي هغه ردکړي په کوم کښ چښ عیب پیداشوی دی ولی په دغه صورت کښ تفریق
عقد ،دعقدترتامیدوروسته دی له عقدتامیدومخکي نه دی اوترعقدتامیدوروسته تفرق عقد جائزدی.

**فائده** : دامام زفر رحمه الله په نزدپه دغه صورت کښ هم یواځی معیوب مربی واپس کول جائزنه دی بلکښ یابه
دواړه واپس کوي یابه دواړه راګرځوی ولی یواځي دمعیوب مربی په واپس کولوکښ تفرق عقددی چښ دبائع
ضرردی ولی عام عادت دادی چښ خلک اعلی اوادنی مربیان سره یوځای کړي بیایښ خرڅوي نوکوم یوچښ
معیوب دی هغه ادنی دی ،دادنی په واپس کولواواعلی راګرځولوکښ دبائع ضرردی ، احناف جواب ورکوي
چښ دبائع ضررخپله دبائع دتدلیس په وجه دی فلایعتبرفی حق المشتری ،همداقول راجح دی لمافی الدرالمختار :ولوقبضهما ثم
المعیب بحصته سالمالو حده لجواز التفریق بعدالتمام .(الدرالمختار:۴/۱۰۳).

(۳۲)ولواخذبعض الکیلي اوالوزني عیبارد کله اواخذه (۳۳)ولواستحق بعضه لم یخیر فی رد مابقی (۳۴)ولوثوبا خیر (۳۵)واللبس
والرکوب والمداواة رضابالعیب (۳۶)لاالرکوب للسقی اوللرد اولشراء العلف.

**ترجمه** : اوکه یې وموندبعض کیلی یاوزني عیب جن نویادي کل ردکړي یادي ټول واخلي اوکه بعض
مستحق شونودمابقی دردولواختیارنه ورکول کیږي اوکه کپړه وه بیااختیارورکول کیږي اوآغوستل.
سوریدل اوعلاج کول په عیب باندي درضامندي علامه ده نه هغسی سوریدل چښ اوبولپاره وي یادواپس
بیولولپاره یادوښواخیستلولپاره.

**تشریح** : (۳۲)که چایووزني یاکیلي شی واخیست بیاپه هغوکښ په بعضوکښ یوعیب پیداشونواوس
مشتري ته اختیاردی که یې خوښه وي ټول شی دي واپس کړي اوکه یې خوښه وي ټول دي وګرځوي ولی
:یوه جنس وزني یاکیلي شیان حکمًایوشی شمارل کیږی ځکه چښ په وزني اوکیلي شیانوکښ مالیت دانضمام
او اجتماع په اعتباردی یواځی یوه دانه نه مال متقوم دی اونه یې بیع جائزه ده اودیوه شي په باره کښ قاعده
داده چښ که چیرته په هغه کښ عیب پیداشونویابه ټول ګرځوي یابه ټول واپس کوي نوکوم چښ حکمًاشی
واحددی دهغه هم همدا حکم دی نوځکه بعض راګرځول اوبعض واپس کول صحیح نه دی.

(۳۳)اوکه چیرته په کیلي یاوزني شی کښ کوم عیب ظاهرنه شي مګرپه هغوکښ بعض دبل چاملک
ثابت شونوچښ په څومره کښ دهغه ملکیت ثابت شوی دی هغه خودهغه شودنورو دردولواختیارمشتري ته نه
ورکول کیږي ولی داداسي شی دی چښ دهغه ټکړي کول تاواني نه دی نوله مبیعه څخه دي دمستحق حصه
جلاکړي مستحق ته دي ورکړي باقی دي مشتري له خپل ځان سره وساتي.

**فائده**: مګر پر دغه باندي داسوال کيداى شي چې داول خوتفرق عقد قبل التمام لازميږى ولى مستحق څوک په هغه عقد نه وو راضي چې دهغه درضامندي بغير دابيع تامه نه ده او قبل التمام تفرق عقد ناجائز دى نو مشتري ته دباقى در دولو حق بايد ورکړاى شي؟ جواب: داتفرق قبل التمام نه دى بلکې بعد التمام دى ولى عقد دعاقد په رضامندي سره تاميږى دمستحق په رضامندي سره نه او دعاقد رضامندي خوشته.

(۳۴) قوله ولو لو بالخيراى لو كان المبيع ثوبا فاستحق بعضه خير المشترى في رد ما بقى) يعني که چيرته يو چايوه کپړه واخيسته يا هغه بعض مستحقه شوه نو اوس مشتري ته اختيار شته چې دى دا باقى کپړه بائع ته واپس کړي ولى دکپړي ټکړه کيدل دکپړى لپاره تاوان دى چې په اخيستو کې يې دمشتري تاوان دى نو ددغه عيب په وجه دواپس کولو اختيار لري او داعيب (يعني استحقاق) داسى هم نه دى چې دمشتري په لاس کې پيدا شوى دى بلکې دادبائع په لاس کې پيدا کيږى دمشتري په لاس هسې ظاهر شوى دى.

(۳۵) که چايوه کپړه واخيسته او په هغى کې دنقصان ليد وو روسته يې يا هم هغه واغوسته يا يې دسوريدوشى واخيست او په هغه کې دنقص ليد وو روسته پر هغه باندى دخپل کار لپاره سور شو، يا حيوان ناروغ وو هغه يو څه دوايى ورکړه نو دمشتري داعمل دهغه له طرفه په عيب باندي راضى کيدل ګڼل کيږي ولى داددي خبري دليل دى چې دى مبيعه خپل ځان ته کول غواړي او مبيعه چې ځان ته ګرځوي همدايى صورت دى چې مشتري په هغه عيب باندي راضى وي نو له هغه وروسته دهغه عيب په وجه دمبيعى واپس کولو اختيار نه ورکول کيږي.

(۳۶) قوله لا الركوب للسقى اى لا يكون رضا الركوب للسقى، يعني که چيرته مشتري حيوان داوبه کولو لپاره تالاب ته ديولو په وخت پر هغه باندي سورشو يا بائع ته دواپس کولو لپاره پر لاره وړ باندي سورشو يا يې دحيوان لپاره څه خوراکى شيان اخيستى وو هغه يې راوړل پرسورشو نو دادمشتري له طرفه په هغه عيب باندي رضامندي نه شمارل کيږي داحکم استحسانًا دى ولى په دغو وختونو کې پرحيوان دسوريدو ضرورت دى.

(۳۷) وَلَوْ قُطِعَ الْمَقْبُوضُ بِسَبَبٍ عِنْدَ الْبَائِعِ رَدَّهُ وَاسْتَرَدَّ الثَّمَنَ (۳۸) وَلَوْ بَرِئَ مِنْ كُلِّ عَيْبٍ صَحَّ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ الْكُلَّ (۳۹) فَلَا يَرُدُّ بِعَيْبٍ.

**ترجمه**: او که لاس غوڅ کړاى شوى وو دمقبوض مريى ديو داسي سبب په وجه چې دبائع په لاس کې وو نو رددي کړي او پيسى دي واپس واخلي او که يې دبرائت اعلان وکړله هر عيب څخه نو صحيح دى که څه هم په نامه يې ټول عيوب يادنکړي نو اوس ردنه شي کولاى ديو عيب په وجه.

**تشريح**: (۳۷) که چايو مريى واخيست او هغه يې قبض هم کړ يا دهغه مريى لاس ديوه داسي جرم په وجه غوڅ شو چې ده هغه جرم له بائع سره ترسره کړى وو (مثلا دبائع سره ده غلا کړې وه چې دهغى په وجه يې اوس لاس غوڅ شو) نو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد مشتري لره اختيار دى که يې خوښه وي واپس دي کړي او کوم قيمت چې ده بائع ته ورکړى دى هغه دي له بائع څخه بيرته واخلي ولى لاس غوڅ کيدل که څه هم له مشتري سره

ترسره شول مګر دهغه سبب خوله بائع سره پیدا شوی دی او که یې خوښه وي مریی دي راوګرځوي او دلاس غوڅید وپه وجه دی
له بائع څخه نیمې پیسې واخلي ولې دانسان یو لاس له نیم قیمت سره برابر دی .
**فائده** : صاحبین رحمهما الله فرمایي چې په داسې صورت کې مشتري مریی نه شي ردولای بلکې دغله او هغه مریی چې غلانه کوي ترمنځ چې کوم تفاوت دی هغه دي واخلي مثلاً دغله مریی قیمت پنځه سوه روپۍ دی او چې غلانه کوي دهغه مریی قیمت یو زر روپۍ دی نو مشتري دي له بائع څخه پنځه سوه روپۍ واخلي ولې دغله او هغه چې غلانه کوي ترمنځ تفاوت پنځه سوه روپۍ ثابت شو ځکه دبائع په لاس کې دغوڅید وسبب پیدا کیدل دمریی له مالیت سره منافي نه دی نو عقد نافذ دی بیا ځرنګه چې لاس دمشتري سره غوڅ شوی دی او دا یو نوی عیب دی چې دمریي له واپس کولو څخه مانع دی او په داسې صورت کې مشتري لره درجوع حق شته چې بائع ته په قدر نقصان رجوع وکړي .
**فائده** : دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله : الراجح والمختار قول الامام ابی حنیفة رحمه الله وایده فی فتح القدیر واختار فی البحر الرائق ومجمع الانهر والشامی والیه مال کلام الهدایة الخ والعبارة الجامعة ان یقال ان له ان یرده ویاخذ الثمن جمیعًا او یمسک المبیع ویرجع بنصف الثمن کذا فی المعتبرات من کتب المذهب (هامش الهدایة: ۳/ ۵۱)
(۳۸) یعنی که چا مریی واخیست او بائع شرط ولګاوه چې دمریي له هردول عیبونو څخه زه بري یم نو مشتري دهیڅ قسم عیب په وجه مذکور مریی نه شي واپس کولای که څه هم دټولو عیبونو نوم یې نه وي اخیستی او نه یې ټول عیبونه شمارلي وي ولې ټول عیوب که څه هم مجهول دي مګر برائت کول له قبیل داسقاطات دی او په اسقاطات کې جهالت مفضي ونزاع لره نه دی ولې جهالت هغه وخت مفضي ونزاع ته کیږي چې کله دیو شي دسپارلو ضرورت وي او په اسقاطات کې ځرنګه چې یو شی نه سپارل کیږي نو په اسقاطات کې جهالت مفضي ونزاع ته نه کیږي .
**فائده** : دامام شافعي رحمه الله په نزد بائع لره دمبیعه له ټولو عیبونو برائت کول نه دی صحیح مګر دا چې ټول عیبونه شمار کړي ځکه چې ټول عیبونه مجهول دي او دشوافعو په نزد له مجهولو حقوقو څخه ابراء نه ده صحیح ولې په ابراء کې دتملیک معنی پیدا کیږي او قاعده ده چې دمجهول شي تملیک نه دی صحیح نو له مجهولو عیبونو څخه برائت کول هم نه صحیح کیږي .
(۳۹) یعني په پورتني مذکور صورت کې که چیرته مشتري تر قبض کولو مخکې په مریي کې کوم عیب پیدا شو نو دامام ابو یوسف رحمه الله دغه نوي عیب په وجه هغه نه شي ردولای ولې له ټولو عیبونو برائت موجودو او حادثو هردول عیبونو لره شامل دی ځکه له ټولو عیبونو څخه دبرائت مقصود مشتري لره دمبیعی دسلامتیا حق ساقطول بیع لازمول دی او دا مقصود هغه وخت حاصلیږي چې بائع له ټولو موجودو او حادثو دواړه قسمه عیبونو څخه بري وګڼل شی ،په داسې حال کې چې دامام محمد رحمه الله او امام زفر رحمه الله په نزد له ټولو عیبونو څخه برائت یواځې پخوانیو موجودو عیبونو لره شامل دی له عقد وروسته تر تسلیم مخکې راپیدا کیدونکو عیبونو لر شامل نه دی ولې برائت له ثابتو عیبونو څخه کیږي نو برائت خالص په موجوده عیبونو پوري خاص شوی دی نو د نوي عیب په وجه مشتري دمبیعه د واپس کولو حق لري .

**فائده** : دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح چې په حقیقت کې دامام ابوحنیفة رحمه الله قول دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله: واعلم ان قول ابی یوسف هوقول الامام ابی حنیفة رحمه الله وهو الراجح وهوظاهر الروایة صرح به شمس الائمة السرخسی فی المبسوط وابن الهمام فی الفتح وفی الخالیة انه ظاهر مذهبنا لان المراد لزوم العقد باسقاط حقه فی صفة الاسلام وذالک بالبراءة عن الموجو دوالحادث (هامش الهدایة:۳/۵۳).

## باب البیع الفاسد

داباب دبیع فاسد په بیان کې دی.

بیع پرپنځه قسمه ده :(۱)باطل (۲)فاسد (۳)صحیح نافذلازم (۴)صحیح نافذغیرلازم (۵)صحیح موقوف ،باطله هغه بیعه ده چې نه باصله مشروع وي اونه بوصفه (له باصله مشروعیت ځخه مراددادی چې مال متقوم نه وي ) لکه مرداره خرڅول،دبیع باطل حکم دادی چې ملک نه فائده کوي که مشتري مبیعه قبض کړي اوکه یې نه کړي قبض ،بیع فاسده هغه ده چې مشروع باصله وي(یعني مبیعه مال متقول وي) مگربوصفه مشروع نه وي (دبوصفه عدم مشروعیت ځخه مراددادی چې قبح دعقدله لوازمویعنې شرطونو ځخه وي مثلاپه یوه داسې شرط سره بیع کول چې عقددهغه مقتضي نه وي یامبیعه مقدورالتسلیم نه وي لکه تښتیدلی مریی خرڅول ) دبیع فاسدحکم دادی چې له قبض کولووروسته ملک فائده کولای شي بغیرقبض ملک نه شي فائده کولای.

ځینی حضراتودبیع فاسداوباطل ترمنځ داسې فرق بیان کړی دی چې که له عوضینوځخه کوم یوداسي نه ووچې کوم آسماني دین مال گڼلی وونوداسي بیع باطله ده که هغه مبیعه وي که ثمن وي مثلادمرداري خرڅول اخیستل،همدارنگه دآزادانسان خرڅول اخیستل اوکه له عوضینوځخه کوم یوداسې یوشی ووچې یوه دین مال گڼلی دی بل دین نه دی گڼلی نوبیادي ته کتل پکاردی چې که چیرته هغه شی ثمن کیدای شوای نوپه دغه صورت کې بیع فاسده ده لکه مریی دشراب په عوض خرڅول یاشراب دمریي په بدل خرڅول ،اوکه چیرته هغه شي ثمن نه شوای کیدای بلکې دهغه مبیعه کیدل ضروري وي نوپه دغه صورت کې هم بیع باطله ده لکه یومسلمان چې شراب دروپوپه عوض خرڅ کړي.

بیع صحیح نافذلازم هغه بیع ده چې باصله ووصفه هرلحاظ سره مشروع وي نه په هغې پوری دغیرحق متعلق وي اونه په هغې کې کوم قسم خیاروي ددی بیع حکم دادی چې دافی الحال ملک فائده کوي،بیع صحیح نافذغیرلازم هغه بیع ده چې مشروع خووي لکه دریم قسم اودکوم چاحق هم په هغه پوری متعلق نه وي خوپه هغې کې خیارشرط،خیاررؤیت،یاخیارعیب وي ددغه قسم بیع حکم دادی چې داداسې ملک فائده کوي چې موقوف وي تراسقاط خیارپوري،اوبیع صحیح موقوف هغه بیع ده چې مشروع خو وي لکه دریم قسم په هغې کې کوم قسم خیارهم نه وي خوپه هغې پوری حق دغیرمتعلق وي (مثلالکه دغیرملک خرڅول )ددی بیع حکم دادی چې داداسې ملک فائده کوي چې موقوف پراجازه وي.

دباب بیع الفاسدله ماقبل سره مناسبت دادی چې بیع دوه قسمه ده : ۱-صحیح ۲-فاسد، نوماتن رحمه الله بیع صحیح بیان کړه اوس غواړي چې بیع فاسده بیان کړي ځرنگه چې بیع فاسدعقد مخالف للدین دی

ځکه یې نومؤخر کړ، بیایې داباب دبیع فاسدپه نامه ونوماوه حال داچې په دی باب کې یې دبیع باطل صورتونه هم بیان کړي دي نودهغه وجه داده چې فاسداعم مطلق اوباطل اخص مطلق دی ولی چې هربیعه باطله فاسده هم ده نودزیات واقع کیدوپه وجه یې ټولوته فاسدویلی دي .

(۱) لَمْ يَجُزْ بَيْعُ المَيْتَةِ وَالدَّمِ وَالخِنْزِيرِ وَالخَمرِ (۲) وَالحُرِّ (۳) وَأُمِّ الوَلَدِ وَالمُدَبَّرِ وَالمُكَاتَبِ (۴) فَلَو هَلَكُوا عِندَ المُشتَرِي لَم يَضمَن (۵) وَالسَّمَكِ قَبلَ الصَّيدِ وَالطَّيرِ فِي الهَوَاءِ (۶) وَالحَملِ وَالنِّتَاجِ (۷) وَاللَّبَنِ فِي الضَّرعِ (۸) وَاللُّؤلُؤِ فِي الصَّدَفِ (۹) وَالصُّوفِ عَلَى ظَهرِ الغَنَمِ (۱۰) وَالجِذعِ فِي السَّقفِ (۱۱) وَذِرَاعٍ مِن ثَوبٍ .

**ترجمه** : جائزه نه ده بیع دمرداري ، دوینې ، دخنزیر ، دشرابو ، دآزاد ، دام ولد ، دمدبر او مکاتب ، که چیرته داشیان هلاک شي دمشتری په لاس کې نو هغه ضامن نه ګرځي او (جائزنه ده ) بیع دماهي (کب) ترښکار کولو مخکې او دمارغه په هوا کې او دحمل او دحمل دبچي او دشید ودېسه په تیانو کې او دملغلرو په صدف کې او دوړیو دپسه پرشاباندي او دلګریو پربام باندي او له کپړونه یو ګز .

**تشریح** : (۱)یعنې دمرداري ، وینې ، شرابو او خنزیربیع ناجائزه ده ،صاحب کتاب دمذکوروشیانوپه باره کې لم یجزویلي دي ددې لپاره چې فاسدی اوباطلی هرقسم بیع ته شامل شي ولی په کتاب کې له مذکورو بیوعو څخه ځینی باطلی او ځینی فاسدی دي لکه دمرداري او وینوپه عوض کوم شی اخیستل بیع باطله ده ولی دبیع رکن معدوم دی یعنې مبادلة المال بالمال ،ځکه داشیان دهیڅ یوچاپه نزدهم مال نه دي البته شراب او خنزیرچې په روپوبدل شی دهغوپه عوض کوم شی واخیستل شی نوبیع فاسده ده ،ولی حقیقت دبیع یعنې مبادلة المال بالمال) شته پکی ولی چې دځینو کفاروپه نزدداوه شیان مال دی مګرځرنګه چې مسلمان دشرابو او خنزیرپر تسلیمولو او قبضولو قادرنه دی نوغیرمقدورالتسلیم شی چې ثمن ګرځي دابیع فاسدیږی .

**فائده** : داخبره یادولرئ چې شراب او خنزیرکه چیرته په بیع کې ثمن کیدای شوای نوداسی بیع فاسده ده لکه مریی دشرابوپه عوض خرڅول یاشراب دمریی په بدله خرڅول چې په دې دواړوصورتو کې شراب ثمن ګرځي اومریی مبیعه ،نوځکه دابیع فاسده ده ،اوکه چیرته داسی صورت ووچې شراب او خنزیرثمن نه شوای ګرځیدلای بلکې دهغومبیعه کیدل ضروري وونوپه داسی صورت کې دابیع باطله ده لکه یومسلمان چې شراب دروپوپه عوض کې خرڅ کړی ولی شرعًادشرابو او خنزیرداهانة (توهین) حکم دی په داسی حال کې چې دهغومبیعه ګرځول دهغواهانت نه بلکې اعزازدی نودابیع باطله ده .

(۲)همدارنګه که چیرته یوله عوضینو څخه دهیچاپه نزدهم مال نه وي نوداسی بیع باطله ده لکه آزادڅوک خرڅول ولی دلته رکن دبیع یعنې (مبادلة المال بالمال) معدوم دی ځکه آزادمال نه دی .

(۳)همدارنګه امّ الولد (هغه منځه چې له خپل مولی څخه یې دمولی په مِلک کې بچی پیداشی) اومدبر(هغه مریی چې دهغه مالک دهغه آزادی ترخپله مرګه پوري متعلقه کړی مثلامولی خپل مریي ته ووایی چې ته زماله مرګه پس آزادیې ) اودمکاتب بیع باطله ده ولی دامّ الولدلپاره عتق خودپیغمبر ﷺ په

قول (اعتقها ولدها) (يعني دهغې بچي داآزاده كړه ) سره ثابت دی او دمدبر د تدبير صحت دهغه دحريت سبب دی چې فی الحال ثابت دی او مكاتب دخپلو ځانی تصرفاتو مستحق گرځي نو كه چيرته دبيع په ذريعه دمشتري لپاره په ده كې مِلک ثابت شي نو دهغه داټول حقوق باطليږی حال داچې دهغه لپاره داحقوق ثابت دي نولامحاله مشتري لره نه ثابتيږی كه نه ددوو متنافيينو جمع لازميږی نوچې كله دمشتري لپاره مِلک نه ثابتيږي نو دابيع مفيده مِلک لره نه

ده او كومه بيع چې مفيده مِلک لره نه وي هغه باطله وي نو مذكوره بيوع باطلې دي .

(۴)كه چاله مذكوروشيانو ځخه يوشی واخيست (يعني دبيع باطل په صورت كې) اوتراوسه يې لاقيمت بائع ته نه دی وركړی چې داشي دمشتري په لاس كې هلا ک شونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدمشتري دهغه دقيمت نه ضامن كيږی ولی په بيع باطله كې عقدمعتبرنه دی نوداشی دمالک په اجازه سره دمشتري په قبضه كې راغلی دی نو مشتري يې ځكه ضامن نه گرځي .

**فائده** : دصاحبينو رحمهما الله په نزدپرمشتري باندی ضمان واجب دی لكه مقبوض علی سوم الشراء چې مضمون وي،دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی لمافي الدرالمختار: والبيع الباطل حكمه عدم ملک المشتری اياه اذاقبضه فلاضمان لوهلک المبيع عنده لانه امانة وصحح في القنية ضمانه قيل وعليه الفتوی(الدر المختار علی هامش ردالمحتار:۴/۱۱۸).

(۵)قوله والسمک قبل الصيد ای لم يجز بيع السمک قبل الصيد. يعني كوم ماهی (كب) چې په اوبوكې وي تراوسه پوري ښكاركړی شوی نه وي دهغه بيع ناجائزه (يعني باطله ده ) ولی په اوبوكې موجودماهی دهيچامِلک نه دی بلكې مباح دی هرڅوک يې نيولای شي اودغيرمملوک شي بيع باطله ده ،همدارنگه په هواء كې دگرځيدونكو مارغانوبيع هم باطله ده ولی په هواء كې گرځيدونكې مارغان هم دهيچامِلک نه دي اودغيرمملوک بيع باطله ده .

**فائده** : كه چيرته ددرياب دكناري په حوض كې ماهيان سره رايوځای كړای شوي وونو كه چيرته حوض كوچنی وو بيله حيلې ماهيان نيول كيدای شوای نوپه داسي حوض كې دماهيانو خرڅول جائزدی ولی داډول ماهيان مملوک هم دي اومقدورالتسليم هم دي اوكه چيرته حوض دومره لوی ووچې بغيرحيله په هغه كې موجودماهيان نه شوای نيول كيدلای نوبيايې خرڅول ناجائزدی ولی مقدورالتسليم نه دي،اوكه چيرته ماهيان (كبان) خپله په يوه گرداب كې راغلي وواوبائع دهغوئ ديرته تلولاره هم نه وه تړلي نودهغوئ خرڅول ناجائزدی ولی داډول ماهيان مملوک نه دي .(ردّالمحتار:۴/۱۱۹)

**فائده** :كه چايومارغه ښكاركړيايي له لاسه پريښودنوبيايې هم بيع ناجائزه ده ولی كه څه هم په ښكاركولوسره مارغه دده په مِلک كې راغی خودپريښودلوپه وجه اوس هغه مقدورالتسليم نه دی اودكورراپتې كوترې كه چيرته بغيرحيله نيول كيدای شوای نودهغوبيع جائزه ده كه نه بيانه ده جائزه ولی مقدورالتسليم نه دي .

(۶)قوله والحمل ای لم يجز بيع الحمل ،يعني ديوه حيوان يامنځی دحمل خرڅول ناجائزدی مثلابائع مشتري ته ووايې چې ددي پسه په خيټه كې چې كوم بچی دی هغه ماپه سل روپۍ پرتاباندي خرڅ كړی دی

نودابیع ناجائزه ده ،همدارنګه دنتاج یعنې دحمل دحمل بیع ناجائزه ده ولي په دي کې دوکه راځي امکان لري چې دپسه په خیټه کې بچی نه وي بلکې دهواپه وجه پړسیدلی ښکاري اودارازامکان لري چې داحیوان دبچي په نه زیږید ویازیږید وسره مړشي اوپه کومه بیع کې چې دوکه وي هغه ممنوع ده لحدیث ابی هریرة رضی الله تعالی قال: نهی رسول الله ﷺ عن بیع الغرر والحصاة ) نبی کریم ﷺ ددوکه اوکاڼي غورځولوله بیع څخه منع فرمایلي ده .

**فائده** : ددوکې په وجه بیمه ناجائزه ده چې په انګلیسې کې ورته (انشورنس) اوپه عربی کې (تامین) ویل کیږي بیمه دري قسمه ده : ۱-دزندګي بیمه ۲-دشیانو اوسامان بیمه ۳-دمسؤلیات بیمه . ددي ټولو صورت دادی چې بیمه کوونکي ته بیمه کمپنۍ وایې چې ترلسو کالو پوري مثلاً دمیاشتي یوزرروپۍ دقسط په ډول اداکوه په دغولسو کالو کې که چیرې ته مړشوې یاستامال هلاک شو یاپرتاباندي دچاقرض باندي شونو دمرګ په صورت کې کمپنۍ لس لکه روپۍ ستاورثه ؤته ورکوي یاستادمال دهلاکت یاپرتاباندي دقرض راتلو دنقصان تلافي کمپنۍ کوی که نه کمپنۍ ستاپیسې ضبط کوي،نوپه دغوټولوصورتونو کې چې کوم څوک بیمه کوي دهغه له طرفه دقسط اداکول یقیني دی خودبیمه کمپنۍ له طرفه درقم اداکول ترنقصان اوحادثي موقوف دی نوله یوه طرفه ادائیګي یقیني اوله بل طرف څخه محتمل دی ځکه نوپه دي کې هم دوکه راځي چې دهغې په وجه دامعامله حرام اوناجائزه ده . (له تقریرترمذی :۱/ ۹۸) څخه .

**فائده** : که کله بیمه کول قانوناً ضروري وي مثلاً پرسړک باندي دموټرچلوونکي لپاره دمسؤلیات بیمه کول چې قانوناً ضروري ده نوځرنګه چې موټرچلول دهرچاحق دی نو اوس دقانوني مجبوري له مخي دابیمه کول لاره لري،خوکه چیرته کومه پیښه رامنځ ته شوه چې دهغې په نتیجه کې دیوچانقصان وشونوپه دغه وخت کې له انشورنس کمپنۍ څخه یواځې دومره رقم وصولول جائزدی څومره چې ده دقسطوپه ډول اداکړی وي ترهغه زیات وصولول ناجائزدی . (پورتنی حواله)

(۷)قوله واللبن فی الضرع ای لم یجز بیع اللبن فی الضرع ،یعنې دپسه په تیانوکې دشیدوبیع ناجائزه ده ولی دشیدولوشلوپه کیفیت کې نزاع راځي ولی مشتري به غواړي چې یوڅاڅکی هم په تیانوکې پاتی نه شي اوبائع غواړي چې څه شیدې په تیانوکې پاتی شي اوکومه بیع چې مفضي ونزاع ته وي هغه صحیح نه ده دارازامکان لري چې دپسه په تیانوکې شیدې نه وي بلکې له هوا څخه ډک شوي وي .

(۸)قوله واللؤلؤفی الصدف ای لم یجزبیع اللؤلؤفی الصدف ،یعنې بغیرله دي چې صدف وسپړي ملغلره وینې اومشتري ته یې وربنکاره کړي دهغې خرڅول ناجائزدی ،ولی دملغلري وجودمعلوم نه دی امکان لري چې په صدف کې ملغلره نه وي،همدارنګه دبائع له ضرربغیرملغلره مقدورالتسلیم نه ده ولی دصدف له ماتولوبغیرملغلره تسلیمول ممکن نه ده حال داچې په صدف ماتولوکې دبائع ضرردی ،دادامام محمد رحمه الله قول دی دامام ابویوسف رحمه الله په نزدجائزدی ولی له صدف ماتولوبغیرله هغه څخه فائده نه شی اخیستل کیدای نوصدف ماتول ضررنه شمارل کیږي .

**فائده** : دامام محمد رحمه الله قول مفتی به دی لمافی الدر المختار: وفسدبیع السمک لم یصدالخ,ولؤلؤفی صدف للغرر,وقال ابن عابدین الشامی رحمه الله: (قوله للغرر) لانه لایعلم وجوده وینبغی ان یکون باطلاللعلة المذکورة فهومثل اللبن قلت

وبلزيده مافي التجنيس رجل اشترى لؤلؤة في صدف قال ابويوسف رحمه الله البيع جائز وله الخيار اذا راه وقال محمد البيع باطل وعليه الفتوى (الدرالمختار مع الشامية:۴/۱۲۱)

(۹) قوله والصوف على ظهر الغنم اي لم يجز بيع الصوف على ظهر الغنم ،يعني دپسه پرشاباندي دوړيو بيع هم ناجائزه ده ولې نبي كريم ﷺ دپسه پرشاباندي دولاړو ،وړيو خرڅولو څخه منع فرمايلې ده ،همدارنګه له پسه څخه وړۍ مقصودنه دي نووړۍ ګواكې وصف دی اودوصف مستقل بيع نه كيږي ،دريم دليل دادی چې وړۍ خوله كښتې خوا راشنې كيږي نو پرشاباندي له وړيو خرڅولوروسته چې كومې وړۍ تر پريكيدو مخكې راشنې شوي دي هغه دمبيعې حصه نه ده نودمبيعه اوغيرمبيعه داختلاط په وجه بيع ناجائزه ده .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدجائزه ده په دي شرط چې دفي الحال پريكيدوپه شرط يې خرڅې كړي ولې وړۍ خومال متقوم اومقدورالتسليم دي اوكوم شی چې متقوم اومقدورالتسليم وي دهغه بيع جائزده .مګرامام ابويوسف رحمه الله ته جواب وركړی شوی دی چې دنص په مقابله كې تعليل مردود(بې اعتباره) دی .

(۱۰) قوله والجذع في السقف اي لم يجز بيع الجذع في السقف ،يعني له ولاړبام څخه يومعلوم تير(ګاډر) خرڅول ناجائزدی ولې دهغه تسليمول دبائع له ضرربغيرنه دی ممكن ،البته كه چيرته بائع له بام څخه تيرراكښته كړي په دي شرط چې مشتري لاتراوسه پوري بيع نه يې فسخ كړي نوبيابيع صحيح ده ځكه هغه مفسدله منځه ولاړ.

(۱۱) يعني له كپړي څخه (داسې كپړي څخه چې دهغې په پريكولو كې دبائع ضرروي) يوګزخرڅول دبائع دضررپه وجه ناجائزدی البته كه بائع له كپړي څخه يوګزپرې كړنوبياجائزه ده په دي شرط جې مشتري لابيع فسخ كړي نه وي ولې اوس يې هغه مفسدزائل شو .

**فائده** : په هندوانه كې دننه تخم خرڅول ناجائزدی ،كه څه هم دمشتري دفسخ كولونه مخكې بائع هندوانه ماته كړي تخم راوباسي ولې دبيع په وخت مبيعه له ستركونه غائبه ده نوامكان لری چې دبيع په وخت په هندوانه كې تخم نه وي ياخراب وي نوپه دغه صورت كې ګواكې دابيع بلامبيعه ده اوبيع بلامبيعه باطله ده اوقاعده ده چې په بيع باطله كې دمبطل په ليري كولوسره هم بيع نه صحيح كيږي .

(۱۲) وَضَرْبَةِ الْقَانِصِ (۱۳) وَالْمُزَابَنَةِ (۱۴) وَالْمُلَامَسَةِ وَإِلْقَاءِ الْحَجَرِ (۱۵) وَثَوْبٍ مِنْ ثَوْبَيْنِ (۱۶) وَالْمَرَاعِي وَإِجَارَتِهَا (۱۷) وَالنَّحْلِ (۱۸) وَبَيَاعِ دُودِ الْقَزِّ وَبَيْضِهِ.

**ترجمه** : اوبيع ناجائزه ده ديوځل جال غورځولو ،اوبيع مزابنه ،اوبيع ملامسه ،اوكاڼي غورځولو ،اويوې كپړې له دووڅخه اودچراګاه اودهغې اجاره ،اوبيع ناجائزه ده دشاتودمچيو اوخرڅيدلای شي دوريښمو چينجي اودهغوهګی .

**تشريح** (۱۲) قوله وضربة القانص اي لم يجز بيع ضربة القانص ،ضربة القانص دادی چې بائع ووايې چې زه داجال يوځل غورځوم په دي كې چې څومره ښكارراغی هغه مثلاً په لس درهمه پرتاباندي خرڅوم ،نوځرنګه چې دانه ده معلومه چې ښكار راځي كه نه نودابيع دمجهول ده داناجائزه ده ،همدارنګه له نبي كريم ﷺ څخه دضربة القانص دممانعت روايت راغلی دی نودابيع ناجائزه ده .

(۱۳) قوله والمزابنة اي لم يجز بيع المزابنة يعني بيع دمزابنه هم ناجائزه ده ،هغه داده چې پردرخته باندي پخي خرماوي په اندازه سره په عوض دهغوخرماووكې خرڅې كړي چې له درختې څخه پرې شوې وي ولې له

حضرت انس S څخه روايت دی ان النبی ﷺ نهی عن المحاقلة والمنابذة والملامسة ) يعنې نبي كريم ﷺ له خرڅولو څخه دغنموپه وږوكې په اندازه سره په عوض دصافو غنمو كې اومنابذه اوملامسه څخه منع فرمايلې ده ) اومزابنه دمحاقله په شان ده نو ځكه مزابنه هم ناجائزه ده ،همدارنګه يې دعدم جوازدا وجه هم ده چې مكيلی دمكيلی په عوض په اندازه سره په خرڅولو كې دربواشبه ده ،اوپه باب دربواكې شبه ربواملحقه دحقيقت ربواده يعنې كوم حكم چې دحقيقت ربوادی هغه دشبه ربواهم دی نو ځكه ناجائز دی.

**فائده** : دامام شافعی رحمه الله په نزدترپنځووسقوپه كم كې محاقله اومزابنه جائزه ده لان النبی ﷺ نهی عن بيع المزابنة ورخّص فی العرايا (يعنې نبی كريم ﷺ له مزابنه څخه منع فرمايلې ده اودعرايااجازه يې كړه ده) دعراياتفسيرله امام شافعی رحمه الله څخه مروي دی چې ترپنځووسقوكمي خرماوې په اټكل سره دلاندي پرتوخرماوپه عوض كې خرڅي كړي،احناف جواب وركوي چې دعرايادامعنی نه ده بلكې عريه په معنی دعطيه دی دحديث شريف مطلب دادی چې دباغ مالک يوچاته عطيهٌ ديوې درختي ميوه وركړې ده بيادمعطی له په تلوراتلوسره كله دباغ مالک ته تكليف رسيږي نودهغه تكليف ددفع كولوپاره مالک هغه پردرخته چې كومه ميوه ده دهغی په عوض كې لاندي پروته ميوه وركوي نودمذكورحديث شريف له رويه داجائزدی ولی داپه حقيقت كې بيع نه ده ولی معطی له تراوسه پوری لاهغه ميوه چې په درخته پوري ده نه ده قبض كړي نودادباغ دمالک له طرف څخه ازسرنوهبه ده .

(۱۴)قوله والملامسة والقاء الحجر ای لم يجزبيع الملامسة والقاء الحجر ،په متن كې دادوه مذكورصوتونه دجهالت دزمانې ديوعوصورتونه دي دبيع دخبروپه دوران كې چې به دمشتري مبيعه خوښه شوه نوپه مبيعه به يې لاس وواهه بس په همدغه لاس وروړلوسره بيع تاميده كه به مالِک راضي ووكه به نه ووراضی.همدارنګه دبيع دخبروپه وخت چې به دمشتري مبيعه خوښه شوه نوده به پرمبيعه باندي يووړوكی كانړی وروا چاوه دهغه كاڼي په لويدلوسره بيع تاميده كه به مالِک راضي ووكه به نه ووراضی، اول قسم ته يې بيع ملامسه اودوهم قسم ته بيع بالقاء الحجرويل ،څرنګه چې پيغمبر ﷺ له بيع ملامسه څخه منع فرمايلې ده ځكه نودابيع صحيح نه ده اوبيع بالقاء الحجردبيع ملامسه سره هم معنی ده نوداهم په ممانعت كې له بيع ملامسه سره ملحقه كيږي

(۱۵)قوله ولوب من لوبين ای لم يجزبيع لوب من لوبين ،يعنې له دووكپړوڅخه لاعلی التعين يوه اخيستل جائزه نه ده ځكه مبيعه مجهوله ده اوداسی جهالت دی چې مفضی ونزاع ته دی نودابيع ناجائزه ده ،البته كه دبيع په وخت كې داسی ووايې چې په دي دواړوكې ماله اختيار دی كوم يوه چې مي خوښه شي هغه اخلم نواستحساناًجائزه ده ولی اوس دغه جهالت مفضي ونزاع ته نه دی .

(۱۶)قوله والمراعی ای لم يجزبيع المراعی ،چراګاه يعنې پرځمكه باندي دولاړووښوخرڅول ياپه كرايه وركول ناجائزدی.بيع خويې ځكه نه ده رواچې دولاړووښوبائع مالِک نه دی لقوله ﷺ :الناس شركاء فی ثلاث فی الماء والكلاء والنار. (خلک په دريوشيانوسره شريكان دي اوبه ،واښه اواور) . اودغيرمملوک بيع نه ده جائزه،اوپه

اجاره ورکول يې ځکه نه دی روا چې له حديث شريف څخه ثابته شوه چې وابنه د هيچا ملک نه دي ،همدارنګه دغه عقد د عين پر تلف
کولو باندي منعقد کيږي حال دا چې عقد اجاره پر عين نه بلکې پر منافعو منعقد کيږي .

**فائده** : دا يادولږ ځ چې د اتفصيل دهغو وښو په باره کې دی چې خپله راشنه شوي وي، دځمکې مالک هغه ريبلي او جمع کړي نه وي، پاتې شوهغه وابنه چې کرل کيږی او دځمکې مقصودی پيدا وار ګڼل کيږی داسې وابنه دکروونکي ملک دی دهغو خرڅول جائزدی په حديث شريف کې چې په وښوکې دټولو خلکو اشتراک ثابت دی له هغو څخه هم هغه وابنه مراددي چې خپله راشنه شوي وي . (الدّرالمختار : ۴/ ۱۲۳)

(۱۷)قوله والنحل ،اي لم يجزبيع النحل ،دشيخينو رحمهما الله په نزددشاتو دمچيو بيع ناجائزه ده،دامام محمد رحمه الله په نزددشاتو مچی، که ديوچاپه تصرف کې جمع وي نو بيا دهغو بيع جائزه ده ولی دشاتو مچی دانتفاع قابل حيوان دی اومقدورالتسليم هم دی نودادخره ،خچروغيره په شان دي نولکه څرنګه چې دخچراوخره خوراک ناجائزدی مګردګټې اخيستلواومقدورالتسليم کيدوپه وجه سره دهغوبيع جائزه ده همدارنګه دشاتو مچی که څه هم خوړل کيږی نه مګردهغوبيع جائزه ده وبه يفتی ، دشيخينو رحمهما الله دليل دادی چې دشاتو مچی دنوروچيچوونکو حشراتوپه شان دي لکه مار،لړم وغيره،نوځکه يې بيع ناجائزه ده ،پاتې شوه له هغو څخه نفع اخيستل هغه دشاتوپه اعتبارده دهغو د ذات په اعتبارسره نه ده نوڅرنګه چې ترشاتو ايستلو مخکی هغه مال نه دی ځکه يې بيع ناجائزه ده .

**فائده** :دامام محمد رحمه الله قول مفتی به دی لمافي الدّرالمختار:ويباع دودالقزای لابريسم وبيضه اي بزره والنحل المحرزوهودودالعسل وهذاعندمحمد رحمه الله وبه قالت الثلاثة وبه يفتی عينی وابن الملک وخلاصة وغيرها(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۴/۱۲۳).

(۱۸)دامام محمد رحمه الله په نزددوريښمودچينجواودهغودهګيوخرڅول جائزدی،ولی داداسې حيوان دی چې نفع ورنه اخيستله کيږی اودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدنه دی جائز،ولی دوريښموچينجې هم دنوروچينجواوحشراتوپه شان دي چې بيع يې ناجائزه ده اودوريښمودچينجودهګيوبيع ځکه نارواده چې هګی خپله قابل انتفاع نه دي بلکې دغير(يعني چينجيانو) په اعتبارسره قابل دانتفاع دي اوهغه غيرفی الحال معدوم دی نوځکه يې دهګيوبيع هم ناجائزه ده .

**فائده** : دامام محمد رحمه الله قول مفتی به دی ځکه نومصنف رحمه الله هم جوازصراحتًابيان کړی دی لمافي الخلاصة الفتاوی وفي بيع دودالقزالفتوی علی قول محمد رحمه الله انه يجوز (خلاصة الفتاوی:۳/۳۲).

(۱۹)وَالْآبِقِ اِلَّا اَنْ يَبِيْعَهُ مِمَّنْ يَزْعَمُ اَنَّهُ عِنْدَهُ(۲۰)وَلَبَنِ امْرَأَةٍ(۲۱)وَشَعْرِ الْخِنْزِيْرِ وَيُنْتَفَعُ بِهِ لِلْخَرْزِ(۲۲)وَشَعْرِ الْاِنْسَانِ وَالْاِنْتِفَاعِ بِهِ.

**ترجمه** : اوبيعه جائزه نه ده دتښتيدلي مريي مګرداکه يې خرڅ کړپرهغه چاباندي چې ووايي مريی له ده سره دی،اودښځي دشيدوبيع جائزه نه ده اودخنزيردوېښتانو ،اوفائده اخيستلای شي دخنزيرله ويښتانودبوټوپه ګنډلوکې،اوبيع ناجائزه ده دانسان دوېښتانو اوله جائزه نه ده له هغو څخه ګټه اخيستل.

**تشريح** : (۱۹)قوله والآبق ای لایجوز ایضا بیع الآبق ،یعني که دچامریی تښتیدلی وونو دهغه خرڅول ناجائزدی ولی نبي کریم ﷺ له هغه څخه منع فرمایلي ده،همدارنګه پربائع باندی لازم دی چې مبیعه مشتري ته حواله کړي (وسپاري) په داسی حال کې چې دلته بائع دتښتیدلي مریي پرسپارلوباندي قادرنه دی ، البته تښتیدلی مریی پرداسي چاباندي خرڅول چې ووایې دامریی له ماسره موجوددی ،نودابیاجائز دی،ولی په حدیث شریف کې دمطلق تښتیدلی ذکرراغلی دی اوله مطلق څخه فردکامل مرادوي اوکامل تښتیدلی هغه دی چې دبائع اومشتري دواړوپه حق کې تښتیدلی وي په داسی حال کې چې دلته خودمشتري په حق کې مریی نه دی تښتیدلی اوپه دي وجه هم چې ددغه مریی مشتري ته تسلیمول مقدورردی .

(۲۰)قوله ولبن امراة ای لم یجزبیع لبن امراة ،یعني که دیوې ښځې شیدې په لوښی کې راایستل شوې وي نودهغوبیع ناجائزه ده ولی دښځی شیدې مال نه دی همدارنګه دښځی شیدې دانسان جزء دی اوانسان دخپلوټولواجزاؤپه اعتبارمحترم دی دهغه هرجزء له دي محفوظ دی چې دبیع په ذریعه ارزانه کړای شي خرڅ کړای شي،دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزددآزادي ښځي اومنځې شیدې برابرې دي،دامام ابویوسف رحمه الله په نزددمنځې شیدې خرڅول جائزدی .

**فائده** : دامام ابوحنیفة رحمه الله قول ظاهرالروایة اوراجح دی لماقال العلامة ابن نجیم المصری رحمه الله :اطلقه فشمل لبن الحرة والامة وهو ظاهر الروایة.(البحرالرائق:۶/۸۰)

**فائده** :دامام شافعي رحمه الله په نزددښځې شیدې خرنګه چې پاک مشروب دی نوبیع یې جائزه ده،احناف جواب ورکوي دښځې شیدی مطلق مشروب نه دی همداوجه ده چې درضاع له مودې وروسته دښځې شیدې څښل حرامې دي ،له امام ابویوسف رحمه الله څخه مروی دی چې دمنځې شیدې خرڅول جائزدی دی جزء پرکل قیاسوي،مګرهغه ته جواب ورکول شوی دی چې دشیدواومنځې ترمنځ فرق دی ولی دمنځې په ذات کې رقیت موجوددی په داسی حال کې چې په شیدوکې رقیت نشته ځکه رقیت په داسی محل کې وي چیرته چې آزادي متحققه وي اوآزادي هلته متحققه کیږي چیرته چې ژوندوي په شیدوکې ژوندنشته نوپه هغوکې رقیت اوآزادی هم نه شی متحقق کیدای نودشیدوبیع هم نه جائزه کیږي .

**فائده** :دضرورت په وخت دیوه انسان وینه بل انسان ته لګول هم روا ده البته لاندیني شرطونه لري : ۱-له وینې علاوه بله متبادله دوائي نه وي چې په هغې سره ناروغ ته دژوند امیدپیداشي یاصحت مندشی . ۲-یوماهرډاکتربه دوینې له استعمال څخه لاچاري ښودلې وي ۳-خالص قوت یاجسماني حسن به مقصودنه وي چې دادضرورت په درجه کې شی نه دی . ۴-همدارنګه که یوه داسي دوائي موجوده وي چې دهغې په استعمال سره دصحت امکان خووي مګردهغه دتاخیراندیښنه وي،په دغه صورت کې هم بهتره داده چې دوینی له استعمال څخه ځان وساتي،ولی په داسی صورت کې په حراموشیانوسره دعلاج په جائزکیدواونه جائزکیدوکې دفقهاؤترمنځ اختلاف دی .(جدیدفقهی مسائل:۱/۳۱۵)

**فائده** :ترکومه ځایه چې دوینې اخستلوخبره ده هغه خودحاجت له مخې روا ده مګرمسئله دوینې خرڅولو ده ،هغه نه ده جائزه دنبی کریم ﷺ صریح حدیث موجوددی چې هغه ﷺ دوینې له بیع څخه منع فرمایلې ده نودوینې خرڅوونکی ګناهګاریږي اودهغه قیمت ورته حرام دی . (جدیدفقهی مسائل :۱/ ۳۲۶)

**فائده** :حرام شیان مثلا بولې ،شراب وغیره دعلاج په ډول استعمالول هغه وخت جائزدی چې کله مریض ته یومسلمان ،عادل اوماهرډاکټروو ایې چې ستادمرض لپاره له دغه حرام شي نه علاوه هیڅ یومباح شی مفیدنه دی لماقال شارح التنویر: وکذا کل تداو لایجوز الابطاهر وجوزه فی النهایة بمحرم اذااخبره طبیب مسلم ان فیه شفاء ولم یجدمبا حایقوم مقامه قلت وفی البزازیة ومعنی قوله ﷺ ان الله لم یجعل شفائکم فیماحرم علیکم نفی الحرمة عندالعلم بالشفاء دل علیه جواز شربه لازالة العطش وقال ابن عابدین الشامی رحمه الله یجوز للعلیل شرب البول والدم والمیتة للتداوی اذااخبره طبیب مسلم ان شفاله فیه ولم یجدمن المباح مایقوم مقامه الخ ،وحاصل المعنی حینئذ ان الله تعالی اذن لهم بالتداوی وجعل لکل داء دواء فاذاکان فی ذالک الدواء شئ محرم وعلمتم به الشفاء فقدزالت حرمة استعماله له لانه تعالی لم یجعل شفالکم فیماحرم علیکم (الدّرالمختارمع ردّالمحتار:۵/ ۲۷۵)

**فائده** :په دم اوتعویذسره هم یوډول علاج کول کیږي ،په تعویذکې چې اسمآء الله تعالی،قرآنی آیاتونه اوماثوره دعاګانې وي نوبیاجائزاوثابت دی هغه ته ناجائزویل جهالت دی ولې په داډول تعویذکې مؤثربالذات یواځې الله تعالی ګڼل کیږي حاصل داچې دتعویذدجوازلپاره لاندې شرطونه شته : ۱-لغت به یې مفهومه وي ۲-الفاظ به یې ماثوراومنقول وي شرکیه الفاظ به نه وي ۳- دااعتقادبه یې نه وي چې تعویذمؤثربالذات دی ،وکان عبدالله بن عمر یعلمهن من عقل من بنیه ومن لم یعقل کتبه فاعلقه علیه . (ابوداؤد:۲/ ۹۷) حضرت عبدالله بن عمر ه خپلوزامنوته چې په څه به پوهیدل معوذات ورزده کول اوچې کوم زامن به یې واړه وو پوهیدل به نه لیکل به یې دهغوی په غاړه به یې ځړول . ۴-دکوم غیرشرعی مقصدلپاره به نه وي لکه ددوومسلمانانوترمنځ دنفرت اوعداوت پیداکولولپاره یادکوم پردي سړي یاښځې سره دناجائزتعلق لپاره تعویذکول.

پاتی شوه داچې دتعویذځړولوعمل که څه خپله رسول الله ﷺ نه دی کړی خوله دي څخه داخبره ثابتول چې داعمل ناجائزدی،نه دی صحیح ،په پورتنی مذکورحدیث شریف کې دیوه صحابی S عمل نقل کړای شوی دی چې ددغه عمل دجوازلپاره کافی دی هرشرعي عمل په روایت متواتره سره ثابتول ضروري نه دی،پردغه عمل باندې خپله اجرت جائزدی لکه په روایت کې چې تصریح راغلې ده،تفصیل یې په کتاب الاجاره کې تیرشوی دی خودامستقل کسب ګرځول ددین داروالپاره مناسب نه دی . (جدیدمعاملات کې شرعی احکام : ۳/ ۱۶۴)

(۲۱)قوله وشعرالخنزیرای ولم یجزایضابیع شعرالخنزیر،یعني دخنزیرویښتان خرڅول ناجائزدی،ولی دخنزیرذات نجس دی نودده دویښتانودبیع په جائزبللوکې دده اعزازدی په داسی حال کې چې خنزیرمستحق داهانت دی نواهانةً یې دویښتانوبیع ناجائزه ده ، البته دبوټونوګنډلولپاربنابرضرورت دخنزیرله ویښتانوڅخه فائده اخیستل جائزه ده ولی داضرورت له کوم بل شي داستحکام په طریقه نه پوره کیږی .

**فائده** :نوکه دداډول ضرورت لپاره بغیراخیستلونه پیداکیدل نوضرورت په وجه یې اخیستل هم جائزدی مګردخرڅوونکي لپاره یې به هرحال خرڅول ناجائزدی دځینوعلماؤرایه داده چې بیع یې جائزه مګرمکروه ده

،دامام ابویوسف رحمه الله په نزدیې دبوټونو ګنډلو لپاره هم استعمال مکروه دی ولی داکار دخنزیرله ویښتانونه علاوه له بل شي ځخه هم اخیستل کیدای شي ،دعلامه شامی رحمه الله آخری تحقیق دادی چې که چیرته دخنزیرله ویښتانونه علاوه په بل شي دبوټونو ګنډلو ضرورت پوره کیدای شوای (لکه نن سباچې په پلاستیک،چمړي،وړی وغیره سره داضرورت پوره کیدای شي) نودخنزیرله ویښتانو ځخه فائده اخیستل حرام دی قال فی البحر ظاهر کلامهم منع الانتفاع به عندعدم الضرورة بان امکن الخرز بغیره .(ردالمحتار:۳/۱۲۷)

**فائده** : که په لړواوبوکې دخنزیرویښتان ولویږي نودامام محمد رحمه الله په نزدنه ناپاکه کیږي،ولی دګنډلوپه کارکې داستعمال اجازه ورکول دهغودپاکیدوعلامه ده ،په داسی حال کې چې دامام ابویوسف رحمه الله په نزداوبه ناپاکه کیږي ولی دبوټودګنډلولپاره اجازه ورکول بناء برضرورت دی اوالضرورة تتقدربقدرالضرورة، نودګنډلوله کارنه علاوه په نوروکې هغه اجازه اثرنه کوي،دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله :والصحیح الراجح قول ابی یوسف رحمه الله لان ماثبت للضرورة لایتعداهافلایجوز بیعهاوبتنجس الماء بوقوعهافیه ومافی بعض الکتب من جواز الصلوة مع اکثرمن قدر الدرهم فمبنی علی قول محمد رحمه الله المرجوح(هامش الهدایة:۳/۵۸)

(۲۲)قوله وشعر الانسان،ای لم یجز بیع شعر الانسان،یعني دانسان ویښتان خرڅول اوله هغو ځخه ګټه اخیستل ناجائزه ده ،ولی انسان دخپلوټولواجزاؤپه اعتبارمحترم دی نودهغه کوم جزء ذلیل اوآرزان ګرځول استعمالول اوخرڅول یې ناجائزدی،همدارنګه دنبي کریم ﷺ ارشادمبارک دی چې :لعن الله الواصلة والمستوصلة (الله تعالی پرهغه ښځه چې ویښتان منبلوي اوپرهغه ښځه باندي چې ویښتان منبلیدل غواړي لعنت کوي) نوله انسانی ویښتانو ځخه فائده اخیستل ناجائزه ده .

**فائده** : تردي مخکې یې دخنزیردویښتانوپه باره کې وویل چې په خرڅولوکې دهغه اعزازدی حال داچې خنزیرمستحق داهانت دی اودانسان دویښتانوپه باره کې یې وویل چې په خرڅولوکې دهغواهانت دی،په ظاهره ددي دواړوخبروترمنځ تعارض معلومیږي ولی یوشی یعني بیع داعزاز اواهانت دلیل ځرنګه کیدای شي ؟ جواب : داممکنه ده چې دیوه شي یوامرته نسبت کول سبب داعزاز وي اودبل امرطرف ته نسبت کول یې موجب داهانت وي لکه پاچاچې دبیت الخلاء پاکوونکي اوقاضی دواړوته ووایې چې له خلکوسره یوځای په دربارکې کښینئ نوداامرله دوئ دواړوځخه دیوه (یعني دبیت الخلاء دپاکوونکي) په حق کې اعزازدی اودهغه بل (یعني قاضی ) په حق کې اهانت دی .

**فائده** : دانسانی اجزاؤدخریداوفروخت دحکم معلومولولپاره داضروري ده چې دهغوداستعمال حکم معلوم کړای شي، داعضاؤ(اندامونو) دپیوست کولوځلورصورتونه دي : ۱-دکوم بل انسان یوجزء ،سترګه،زړه، بډوګی وغیره چې پیوندکړای شي ۲-دخپل بدن دغوښې یاپوستکي یوه حصه چې راواخلی په بله حصه پوري یې پیونده کړي ۳-دبل انسان وینه استعمال کړای شي ۴-دیوه حیوان سترګه یابل شی چې پیوندکړای شي.

دانسانی اندامونودپیوندکاری زیاتره صورتونه چې نن سباپه روغتونونوکې پیښیږي اودکومولپاره چې غوښتنې (اپیلونه) کیږي هغه دادي چې کوم انسان مري دکوم عارض په سبب یاپه یوجرم

کې دقتل کیدو په وجه له هغه څخه ددې خبرې اجازت واخیستل شی چې له مرګه وروسته دهغه فلانی اندام (عضو) کوم بل انسان ته ورلګول کیږی، دغه صورت په عامه توګه خلک جائزاو مفید ګڼي او دا فکر کوي چې هسې خو هم دهغه ټول اندامونه فناکیدونکي دي له هغو څخه دي یو اندام دیوه ژوندي انسان پکار راشي او دهغه دمصیبت علاج دي وګرځي نو په دي کې څه حرج دی؟ تردي لا بله دا چې زیاتره خلک خپل اندامونه پخپل ژوند کې خرڅوي او ډیر خلک دلا وارثه مړیو اندامونو را باسي بیا یې خرڅوي.

څرنګه چې انسان دالله تعالی په نزد ډیر محترم دی په ژوند کې خو قابل احترام وي مګر له مرګه پس هم دهغه احترام برقرار پاتی دی، دهغه وجه داده چې له انسان سره دهغه بدن، اندامونه او جوارح دا دالله تعالی یو امانت دی، نو ده ته ددي اجازت نشته چې دا اندامونه تلف کړي اونه ورته دخرڅولو اجازت شته له همدې وجه نه خودکشی کول حرام ګڼل شوي ده او فرمایلي یې دي چې څوک خودکشی کوي تر قیامته پورې به په هغه عذاب کې مبتلا وي، چې کله انسان دخپلو اعضاؤ مالک نه دی نو دی اندامونه نه خرڅولای شي نه یې هبه کولای شي نه دهغو وصیت کولای شی او که څوک وصیت وهم کړي نو دا وصیت په غیر ملک کې دی په دي وجه شرعًا باطل دی په هغه سره عمل کول حرام دی.

خلاصه دا چې دبل انسان اعضاء ځان ته لګول ناجائزدی ددغه مقصد لپاره داعضاؤ خرید وفروخت هم حرام دی او پردغو باندي دپه لاس راغلو پیسو استعمال هم حرام دی: روی عن ابی امامة بن سهل بن حنیف ﷺ ان النبی ﷺ داوی وجهه یوم احد بعظم بالٍ، فیه دلیل جواز المداواة بعظم بالٍ وهذا لان العظم لایتنجس بالموت علی اصلنا لانه لاحیاة فیه الاان یکون عظم الانسان اوعظم الخنزیر فانه یکره التداوی به لان الخنزیر نجس العین فعظمه نجس کلحمه لایجوز الانتفاع به بحالٍ والآدمی محترم بعدموته علی ماکان علیه فی حیاته فکمالایجوز التداوی بشئ من الآدمی الحی اکرامًاله فکذالک لایجوز التداوی بعظم المیت قال رسول الله ﷺ کسرعظم المیت ککسرعظم الحی. (شرح السیرالکبیر: ۱/ ۸۸) الانتفاع باجزاء الآدمی لم یجزقیل للنجاسة وقیل للکرامة هوالصحیح کذافی جواهرالاخلاطی (عالمګیریه: ۱/ ۳۵۴)

۲-همدارنګه دوهم صورت هم چې مریض دخپل بدن دیوي حصې څخه غوښه را وباسی په بل ځای پورې یې متصله کړي دامعمول ګرځیدلی دی دا هم ناجائزدی. ۳-دیوه حیوان سترګه، زړه، بډوګی وغیره لګول په دي شرط سره جائزکیږی چې هغه دیوه حلال حیوان وي لکه، پسه، غویی یا داسې نور، ددغه مقصد لپاره داعضاؤ اخیستل هم جائزدی. ۴-وینه دانسان جزء دی او چې کله وایستله شی نو نتجه هم ده دانسان دجزئیت په حیثیت سره دهغې مثال دبنځې دشیدو په شان دی، چې دهغو استعمال دعلاج لپاره فقهاؤ جائزکړی دی. (فتاوی عالمګیریه طبع مصر: ۴/ ۱۱۲)

په کوموصورتونو کې چې دوینې استعمال جائزدی دهغو لپاره وینه ورکول هم جائزدی البته وینه خرڅول ناجائزدی که څوک دوینې اخیستلو ته مجبورشي نو داضطرار په حالت کې اخیستل ورته جائزدی خود خرڅونکي لپاره دهغو روپو استعمال حرام دی. (جدید معاملات کی شرعی احکام: ۱/ ۹۴).

(۲۳) وَجِلدُ المَیتَةِ قَبلَ الدَّبغِ (۲۴) وَبَعدَهُ یُبَاعُ وَیُنتَفَعُ بِهِ کَعَظمِ المَیتَةِ وَعَصَبِهَا وَصُوفِهَا وَقَرنِهَا وَوَبرِهَا (۲۵) وَعُلوٌ سَقَطَ (۲۶) وَالمُسبِلُ وَهِبَتُه.

**ترجمه** : اونه ده جائزه دمرداري دپوستکي (څرمن) تردباغت مخکی اوله دباغت وروسته خرڅیدلای شي اوګټه ورځنی اخیستل کیدای شي لکه دمرداري له هډونو، پلو، وړیو، ښکرونو او ازغونو څخه او بیع جائزه نه ده دبالاخانې چې رنګه شوې وي او داوبو بهیدلو دځای او دهغه هبه کول .

**تشریح** : (۲۳)قوله وجلد المیتة ای ولم یجز ایضا بیع جلد المیتة ،یعني دمردار حیوان پوستکی تردباغت مخکی خرڅول ناجائزدی ولی تردباغت مخکی دانتفاع (ګټې اخیستو) قابل نه دی لقوله ﷺ لاتنتفعوا من المیتة باهابها (دمردار له پوستکی څخه نفع مه اخلئ) اهاب غیر مدبوغ پوستکی ته وایې .

**فائده** : څرنګه چې دپوستکی نجاست دمرداري دغوښې په شان اصلی دی نو ځکه ورځنی هیڅ قسم فائده اخیستل صحیح نه دی ترڅو پورې چې پخه نه کړای شي خلاف له مردار وغوړو او مردار وکپړو اونوروچې دهغو بیع جائزه ده اوله هغو څخه دخوراک نه علاوه فائده اخیستل صحیح دی ولی ددغو شیانو نجاست اصلی نه دی عارضی دی لمافی الدر المختار: وفی المجمع نجیز بیع الدهن المتنجس والانتفاع به فی غیر الاکل (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۱۲۸/۳)

(۲۴)البته له دباغت وروسته دهغه خرڅول اوله خوراک نه علاوه کومه بل ګټه ترې اخیستل جائزدی ولی اوس داپاک دی لکه دمرداري هډونه،پلې ،وړې اوښکرونه چې استعمال یې جائزدی همدارنګه داوښ وړې استعمالول جائزدی ولی داشیان پاک دي ځکه چې دمرداري په نوروا جزاؤکې موت حلول کوي ځکه نونجس کیږي په داسی حال کې چې دااجزاء داسي دي چې پکې موت حلول نه کوي ولی په دوئ کې شرعًاحیوة نشته اوپه کوم شی چې حیاة نه وي په هغه کې موت حلول نه کوي نو دحیوان دغه اجزاء دعدم حلول موت په وجه نجس هم نه دي،دامام شافعی رحمه الله په نزددمرداري دمذکورواجزاؤبیع اوله هغو څخه فائده اخیستل ناجائزه ده ولی مرداره نجسه ده نواجزاء یې هم نجس دي .

(۲۵)قوله وعلو سقط ای لم یجز بیع علو سقط ،که چیرته لاندې سرای دیوچاوپرهغه باندی بالاخانه دبل چاوه بیاهغه بالاخانه رنګه شوه اودبالاخانی مالک خپل حق خرڅ کړنو داناجائزه ده ولی بالاخانه جوړول دهغه حق دی اوداحق مال نه دی په داسي حال کې چې دبیع محل مال وي البته دبالاخانی رنګیدو څخه مخکی دهغی بیع جائزه ده ولی تعمیر قائم دی اوتعمیر مال دی نو دهغه بیع هم جائزه ده .

(۲۶)قوله والمسیل وهبته ای لایجوز بیع المسیل وهبته ،یعنی داوبوبهیدولاره خرڅول اوهبه کول ناجائزدی ،ددي مسئلی دوه صورتونه دي ،یوداچې عین مسیل خرڅ کړي یعنې هغه ځمکه خرڅه کړي چې اوبه پرې بهیږي داناجائزه ده ولی داوبوبهیدودځای مقدارمعلوم نه دی نودمبیعه دمجهول کیدوپه وجه دابیع ناجائزه ده ،البته داوبوبهیدودځای مقدار متعین کړي بیاجائزدی ولی بیاخومبیعه مجهوله نه ده ،دوهم صورت یې دادی چې داوبوتیریدوحق خرڅ کړي دزیادات دروایت مطابق داهم ناجائزدی ولی دامحض حق دی اوتنهادحقوقوبیع نه ده جائزه .

**فائده** :خوفتوی پردي باندي ده چې داوبوتیریدوحق خرڅول هم جائزدی لمافی الدر المختار:وصح بیع حق المرور تبعا للارض بلاخلاف ووحده فی روایة وبه اخذ عامة المشائخ وفی اخری لا وصححه ابو اللیث ،قال ابن عابدین الشامی رحمه الله (قوله وبه اخذ عامة المشائخ) قال السائحانی وهو الصحیح وعلیه الفتوی مضمرات والفرق بینه وبین حق التعلی حیث لایجوز هو ان حق المرور حق یتعلق

بر قبة الارض وهي مال هو عين فمايتعلق به له حكم العين اماحق التعلي فمتعلق بالهواء وهو ليس بعين مال (الدر المختار مع الشامية: ۴/۱۴۲) والتفصيل في فقهي مقالات للشيخ محمدتقي العثماني دامت بركاتهم: ۱/۸۷)

**فائده:** مولانا خالد سيف الله رحماني صاحب دهندوستان له مشهورو علماؤ څخه دی په ډیرو داسي مسائلو کي نرمي اختیار وی چي هغه علماء ناجائزي ګڼي، دحقوقو دخريد وفروخت په باره کي دهغه یو مضمون خپله دده په الفاظو کي نقل کوم: دی فرمایي: دحقوقو په باره کي تفصيل دی ځینی حقوق مجرده دي چي خرڅول یي ناجائزدی او ځینی حقوق غیرمجرده دي چي اخیستل خرڅول یي جائزدی، مولاناصاحب فرمایي: زما په نظر دحقوقو دوه تقسیمه دي ۱-اول دادی چي هغه حقوق چي په داسی محل پوري متعلق نه وی چي هغه دحس په ذریعه درک کیدلای شی لکه حق دمشوري، داحقوق مجرده دي، اوکوم حق چي په داسی محل پوري متعلق وي چي محسوس وي اومادي وجود ولري هغه غیرمجرده حقوق دي، مثلا حق دقصاص داد قاتل په ذات کي ثابت دی اودمقتول وارث له دي څخه دستبردار کیدای شي پردغه تقسیم دځینو فقهاؤ تصریحات هم شاهد دي، صاحب هدایه دیوه روایت مطابق دحق مرور دبیع دصحیح والي داوجه ویلي ده: اماحق المرور متعلق بعين تبقى وهو الارض فاشبه الاعيان.

۲-دحقوقو دوهم تقسیم هغه دي چي مولانامحمدتقي عثماني دامت بركاتهم کړی دی چي خلاصه یي داده چي ځینی حقوق خالص ددفع ضررلپاره ورکړل شوي دي په داسي حال کي چي انسان ته اصلاداحقوق نه وو پکارچي حاصل شي مثلاحق دشفعه، حق دحضانت (پرورښت) پرخاوندد ښځي حق دعدل، اوداسي نورداحقوق ضرورتاانسان ته ورکول کیږي ځکه چي که چیرته یوڅوک له دغوحقوقو څخه دستبردار کیږي نوداددي خبري علامه ده چي هغه دي حقوقوته اړتیانه لري، نوځکه اوس هغه ددغوحقوقو په باب کي حقدارپاتی نه شو، ددغسی حقوقونه خريدوفروخت صحیح دی اونه په کوم بل ډول دهغوعوض وصولول جائزدی، علامه شامي رحمه الله دموصی له دحق خدمت اودشفیع دحق شفعه ترمنځ په فرق بیانوسره پردي نکته باندي رڼااچولي ده: وحاصله ان ثبوت حق الشفعة للشفيع وحق القسم للزوجة وكذالك حق الخيارفي النكاح للمخير، انماهو لدفع الضرر عن الشفيع والمرأة ومالبت لذالك لايصح الصلح عنه واماحق الموصى له بالخدمة فليس كذالك بل ثبت له على وجه البر والصلة فيكون ثابتاله اصالة فيصح الصلح عنه اذا نزل عنه لغيره.

دوهم قسم حقوق هغه دي چي دشرعی حکم یاعُرف پربناء چي دشريعت له عمومی مصالحوسره مطابق لري اصالة دیوچالپاره ثابت وي داهم دوه قسمه دي ځینی هغه دي چي له یوچاڅخه بل چاته منتقل کیدای شي ځینی هغه ډول دي چي له یوچاڅخه بل چاته نه شي منتقل کیدای په دغه دوهم صورت کي خريدوفروخت نه شي کیدای چي دبیع لپاره انتقال ملک ضروری دی اوداحقوق قابل دانتقال نه دي البته دصلح اوتنازل په طريقه دهغوعوض وصولولای شي ددغوحقوقودبیع نه رواکیدودلیل هغه حدیث شریف دی چي په هغه کي نبي کريم ﷺ دحق ولاء له خرڅولو او اخیستلو اودهغه له هبه کولو څخه منع فرمایلي ده، اودتنازل بالصلح په ذریعه دعوض وصولولو دلیل قصاص او خلع ده، په کوم کي چي دمقتول وارث دقصاص

له حق اودخاوندپربنځه باندي دملكيت نكاح له حق ځخه دځپل منځي طی شوي عوض په بدله كي خلاصيدلای شي اودادشريعت له مسلماتو او دفقهاؤله متفقاتوځخه دی.

پاتی شول هغه حقوق چې انتقال يې ممكن دی هغه دمال په حكم كې دي اودهغواخيستل اوخرڅول صحيح دی هرڅومره كه مولاناصاحب حقوق شپږقسمه كړي دي مګردحكم په لحاظ سره دهغوماحصل همدادري قسمونه دي : ضروري حقوق،اصلي حقوق قابل دانتقال،اصلي حقوق غيرقابل دانتقال، واقعًامولاناعثماني دامت بركاتهم تقسيم ډيرجامع،چسپ،اوپرفقهي نظائرو اوشواهدو مبني دی.

دحقوقو اومنافعو دبيع كوم صورتونه چې په اوسني زمانه كې رواج شوي دي هغه دادي،خلويعنی دحق اجاره بيع،چې په پګړی سره تعبيريږي،حق ايجاد،حق تاليف،رجسټر مارك، اودنومونوبيع. دفضايبع،له تجارتي لائسنس ځخه داستفادي موقع وركول .(جديد فقهی مسائل : ۴/ ۱۶۴)

**فائده** :خلاصه داچې كوم حقوق خالص ددفع ضررلپاره دي دهغونه بيع صحيح ده اونه يې عوض اخيستل،كوم حقوق چې اصالةً ثابت وي اوانتقال يې هم كيږي هغه له قبيل دمال ځخه دي اوكوم حقوق چې اصالةًثابت وي دانتقال قابل نه وي اوبالعوض له هغوځخه تنازل معروف اورواج شوی وي له هغوځخه تنازل بالعوض جائزدی،دتاليف حق دناشراومصنف دواړوپه حق كې دمال په منزله دی دهغه خرڅول اواخيستل صحيح دی اوبي له استحقاقه چاپول دغصب كړای شوي مال ځخه دفائدي اخيستوپه حكم كې دی اوقابل ضمان دی ،حق خلو(پګړی) خرڅول صحيح دی اودامنفقه،قبضه ،ياحق اجاره دتل لپاره خرڅول دی،درجسټرنوم اوتجارتي نښانونه خرڅول جائزدی په دي شرط چې دملک دتبديلي اظهارهم وكړای شي چې بيادوكه اوغررنه وي (نوكه لائسنس په يوشخص معين پوری متعلق وي اوقانونًاله هغه ځخه استفاده كيدلای شي په داسی صورت كې كوم بل چاته دلائسنس منتقل كولواجازه نه لري ) دفضاء بيع داحنافودروايت مطابق جائزه نه ده دمالكيه ؤپه نزدجائزده اودعرف اورواج پربناء دمالكيه ؤمسلک ته دعدول كولولاره شته . (جديد فقهی مسائل : ۴/ ۱۷۵)

(۲۷)وَامۡوَلَتَيۡنِ الۡعَبۡدِ وَكَذَا عَكۡسُهُ (۲۸)وَشِرَاءُ مَا بَاعَ بِالۡاَقَلِّ قَبۡلَ النَّقۡدِ (۲۹)وَصَحَّ فِيۡمَا ضُمَّ اِلَيۡهِ

**ترجمه** : اودمنځي چې دامعلومه شي چې مريی دی همدارنګه دهغه عكس اواخيستل دهغه شی چې خرڅ شوی وي په كمه قيمت تروصولی مخكی اوصحيح دی په هغه كې چې هغه ته ورضم شوی وي .

**تشريح** : (۲۷)قوله وامةالبين انه عبداى لايجوز بيع امةالبين انه عبد،يعني كه چامنځه خرڅه كړه بيا وروسته معلومه شوه چې هغه منځه نه بلكې مريی دی نودابيع نه ده صحيح مثلًا مريی پرځان كيږه اچولي وه مالک دځپلي خيال پري وكړدمنځي په نامه يې خرڅ كړوروسته يې چې وكتل هغه مريی وونودابيع فاسده ده،همدارنګه كه ددي عكس وي يعني مريی يې خرڅ كړهغه منځه وخته نودابيع هم نه ده صحيح ولی مذكراومؤنث په بني آدم كې دوه مختلف جنس دي نوددویٔ په مقاصدوكې ډيرزيات تفاوت دی اودچاچې مقاصد ډيرمختلف وي هغه مختلف الاجناس دي اواصول دادي چې په مختلف الجنس كې كه اشاره اومسمّی دواړه سره يوځای شی نوعقددمسمّی سره متعلق كيږي اودلته په اول صورت كې ضمی منځه ده اومشاراليه مريی دی نوعقدله

منځې سره متعلق کیږی او منځه نامعلومه ده نودمعدوم والي په وجه دابیع باطله ده همداتفصیل په دوهم صورت کې هم دی . اوکه په متحدالجنس کې اشاره او مسمّی دواړه سره راشي نوعقد د مشارالیه سره متعلق کیږي مثلا بزې ته یې اشاره وکړه ویې ویل چې دا مېږه پرتاباندې خرڅوم،نوڅرنګه چې مړاوبزه متحدالجنس دي نوعقد د مشارالیه سره متعلق کیږی او مشارالیه دلته بزه ده چې موجوده هم ده څکه نو دابیع صحیح ده .

(۲۸)قوله وشراء ماباع قبل النقدای لایجوزشراء ماباع بالاقل قبل النقد،یعني که چاپوشی خرڅ کړله مشتري څخه دقیمت تروصولید ومخکی همدغه مبیعه بائع له مشتري څخه دخرڅلا وترقیمت په کم قیمت واخلي مثلا دوه تانه یې په لس روپۍ خرڅ کړل له مشتري څخه یې لاهغه قیمت نه ووصول کړی چې بیرته یې هغه تان له مشتري څخه په پنځه روپۍ واخیست نودابیع ناجائزه ده ولی یوې ښځې حضرت عائشې ﷺ ته وویل چې له مازیدبن ارقم ﷺ څخه یوه منځه په اته سوه درهمه په قرض ترهغه وخته پوري واخیسته چې کله له بیت المال څخه وظیفه راکوله شی نوبه یې قیمت اداکوم،بیادمودې ترپوره کیدومخکی ماهغه منځه پرزیدبن ارقم S باندې په شپږسوه درهمه خرڅه کړه ،حضرت عائشې ﷺ ورته وفرمایل چې تادیربدخرید وفروخت کړی دی زیدبن ارقم ﷺ ته زمادا پیغام وررسوه چې که دی توبه ونه کاږي نوده چې له نبي کریم ﷺ سره کوم حج اوجهادکړی دی الله تعالی به هغه باطل کړي، دحضرت عائشې ﷺ دومره سخت وعیدیانول ددغه عقدد فساددلیل دی،همدارنګه په دغه صورت کې بائع ته خپله مبیعه صحیح سلامت په لاس ورغله زیات پرهغه پنځه سوه روپۍ بیله څه عوضه وریاتیږي اوبلاعوض زیادت ربواوي نودابیع پرربواباندې دمشتمل کیدوپه وجه ناجائزه ده .

**فائده** :دامام شافعی رحمه الله په نزدمذکوره بیع جائزه ده ولی چې کله مشتري مبیعه قبض کړه نودده ملک پوره شوڅکه ملک په قبض کولوسره پوره کیږي اودملک له پوره کیدووروسته پرغیردبائع خرڅول جائزدی نوپربائع باندې یې هم خرڅول جائزدی،همدارنګه دسابقه قیمت برابریاترهغه په زیات یاد سامان په عوض پرخپل بائع باندې خرڅول جائزدی نوترهغه په کم قیمت خرڅول پرخپل بائع باندې هم جائزدی .

(۲۹)البته که مشتري په مبیعه کې اضافه وکړه مثلاله دغودوتانوسره یې یوبل دریم تان هم ملګری کړیایې په سابقه قیمت یاترهغه په کم پربائع باندې خرڅ کړنوپه دغه دریم تان کې بیع صحیح ده په اولودووکې ناجائزه ده په اولودووکې دناجائزه کیدو وجه یې هماغه ده چې پورته بیان شوې ده،څرنګه چې دریم تان په بیع کې هیڅ مفسدنشته نوپه ده کې بیع جائزه ده ،په اولودووکې چې کوم فسادراغلی دی هغه دغه دریم ته سرایت نه کوي ولی په اولودووکې تالوکې فسادضعیف اوکمزوردی اوضعیف فسادبل شی ته نه متعدي کیږي په اولودووکې فسادضعیف په دي وجه دی چې دهغه په فسادکې دمجتهدینو اختلاف دی ولی دامام شافعی رحمه الله په نزدجائزدی اوپه کوم شي کې چې دمجتهدینو اختلاف وي دهغه فسادکمزوروي

(۳۰)وَزَیْتٍ عَلَی أَنْ یَزِنَهُ بِظَرْفِهِ وَیَطْرَحَ عَنْهُ مَکَانَ کُلِّ ظَرْفٍ خَمْسِینَ رِطْلًا (۳۱)وَصَحَّ لَوْ شَرَطَ أَنْ یَطْرَحَ عَنْهُ بِوَزْنِ الظَّرْفِ (۳۲)وَإِنْ اخْتَلَفَا فِی الزِّقِّ فَالْقَوْلُ لِلْمُشْتَرِی (۳۳)وَلَوْ أَمَرَ مُسْلِمٌ ذِمِّیًّا بِشِرَاءِ خَمْرٍ أَوْ بَیْعِهَا صَحَّ (۳۴)وَ أَمَةٍ عَلَی أَنْ یُعْتِقَ الْمُشْتَرِی أَوْ یُدَبِّرَ أَوْ یُکَاتِبَ

أو یستولِدَ(۳۵)أو الاحملَها(۳۶)أو یستخدِمَ البائع شهرًا أو دارًا على أن یسکن أو یقرِضَ المشتری درهمًا أو یهدی له أو لایسلّمه إلى کذا(۳۷)أو ثوبٍ على أن یقطعه البائع ویخیطه قمیصًا.

**ترجمه** :اونه ده جائزه دزیتون (تیلو) بیع په دي شرط چې دی (مشتري) به یې پخپل لوښي سره وزن کوي اوله هغو څخه به دهرلوښي په عوض کې پنځوس رطله کموي اوصحیح ده که یې داشرط کړچې کموي به یې له هغو څخه دهرلوښي دوزن په اندازه،اوکه دواړودزي (ګوډي) په وزن کې اختلاف راغی نوقول دمشتري معتبریږی اوکه امرکړیوه مسلمان ذمي دشرابوپه اخیستلویاخرڅولو سره نوصحیح ده اونه ده جائزه بیع دمنځې په دي شرط چې مشتري به هغه آزادوي یابه یې مدبره یامکاتبه یاام ولده ګرځوي،یابه خرڅوي منځه مګرنه دهغی حمل ، یابه بائع تریوې میاشتې پوري له هغی څخه خدمت اخلي ،اوجائزه نه ده دسرای بیع په دي شرط چې په هغه کې بائع اوسیږي یابه قرض ورکوي مشتری څه درهم یابه بائع ته هدیه ورکوي یابه یې دومره وخت نه سپاري ومشتري ته،اوجائزه نه ده بیع دکپړي په دي شرط سره چې دابه بائع پریکوي اوقمیص به تري نه ګنډي .

**تشریح** : (۳۰)قوله وزیت على ان یزنه بظرفه،ای لایجوز بیع زیت على ان یزنه بظرفه،یعني دانه ده جائزه چې زیتون تیل په دي شرط خرڅ کړي چې دابه دمشتري په لوښي سره وزن کوي بیابه په هرتول کې دلوښي په بدله کې یومعین مقدارمثلاپنځوس رطلونه کموي په داسې حال کې چې دلوښي وزن معلوم نه دی ولی کیدای شي چې دلوښي وزن ترپنځوس رطله کم یازیات وي نودداسې شرط په وجه چې هغه دمقتضی عقد خلاف دی دابیع فاسده ده .

**فائده** :ددغی بیع دتصحیح یوه بیله حیله داهم کیدای شي چې دلوښي دوزن کیدو څخه وروسته عقدوکړي مثلاله وزن کیدو څخه وروسته بائع ووایې چې په دغه لوښي کې چې څومره زیتون تیل دي هغه زه پرتاددومره روپوپه عوض خرڅوم اومشتري هغه قبول هم کړي نودابیع صحیح کیږي لمافی ردالمحتار:والحیلة فی جوازه ان لایعقدالعقدالابعدوزنه تحریاللصحة فیقول بعدالوزن بعتک مافی هذاالظرف بکذاویقول الاخر قبلت فیکون هذامن بیع الجزاف وهو الصحیح. (ردالمحتار:۴/۱۳۰)

(۳۱)البته که چیرته یې زیتون تیل په دي شرط باندي خرڅ کړل چې دلوښي چې څومره وزن وي په هغه حساب به ورڅخه کمیږي نوځرنګه چې داشرط له مقتضی دعقدنه خلاف نه دی نودابیع جائزه ده ولی وروسته دي لوښی وزن کړي دوزن په اندازه تیل دي کم کړي په دي ډول مبیعه له غیرمبیعه څخه جلاکول ممکن دی نوداصورت جائزدی .

**فائده** :دمقتضی عقدمطابق شرط هغه دی چې بلاشرطه خالص په عقدسره واجب وي لکه دمبیعه دتسلیم شرط لګول یادثمنودتسلیم شرط لګول چې دابلاشرطه خالص په عقدسره هم واجبیږي اودعقددمقتضی خلاف شرط هغه دی چې بیله شرطولونه په خالص عقدبیع سره نه واجبیږي .

(۳۲)که دمشتري اوبائع د زي (ګوډي) (زی هغه ظرف دی چې پکې تیل ،غوړي اونورشیان ساتل کیږي ) په وزن کې اختلاف راغی مثلابائع غوړي په زي کې وزن کړل وریې کړل مشتري زی خالي کړواپس

يې ورکړاوس بائع وايې چې په کوم زې کې چې ماتيل وزن کړي ووهغه دپنځورطلو برابرووا و دادلسورطلوسره برابردی اومشتري وايې چې نه هغه له لسورطلوسره برابروو ،نوقول دمشتري معتبريږی ولی مشتري قابض دی او دگواه نه درلو دلوپه صورت کې دقابض قول سره له يمينه معتبريږي .

(۳۳)که يومسلمان ذمي ته دشرابو اخيستلويا خرڅولو امروکړيعنې ذمي يې وکيل وګرځاوه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد دا جائزدی اودصاحبينو رحمهما الله په نزدنه دی جائزولی کوم کارچې مسلمان خپله نه شي کولای دهغه کارلپاره وکيل هم نه شي مقررکولای اوکوم حکم چې دوکيل په واسطه ثابتيږی هغه دموکل طرف ته منتقلی کيږی نوګواکې موکل خپله داخريد وفروخت کړی دی نودانا جائزدی،دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادی چې وکيل پخپل اهليت اوولايت سره عقدکوي اوپه نصراني کې اهليت دتصرف موجوددی دموکل طرف ته يواځی دهغه شي ملکيت منتقل کيږی اودملکيت منتقل کيدل يوامرحکمی اوشرعی دی يعنې په غيراختياري شکل سره ثابتيږي اوپه غيراختياری شکل سره ثابتيدونکی ملکيت دا سلام په وجه نه ممنوع کيږی ولی دا داسي دی لکه يومسلمان چې شراب په ميراث باندي وموومي نودا سلام په وجه ممنوع نه دي البته اوس دي له هغوڅخه سرکه جوړه کړي .

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی لماقال شارح التنوير:اوامر المسلم بيع خمراوخنزيراوشرائهما ای وکل المسلم ذميااوامرالمحرم غيره ای غيرالمحرم بيع صيده يعني صح ذالک عندالامام مع اشد کراهة کماصح مامرلان العاقدبتصرف باهليته وانتقال الملک الى الآمرامرحکمي وقالا لايصح وهوالاظهرشرنبلالية عن البرهان.(الدّرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۱۳۵/۴)

**فائده** :همدارنګه که يوه مسلمان بل غيرمسلم څوک دخنزيراخيستلووکيل وګرځاوه يايومحرم له احرام تړلوڅخه مخکی ښکارکړی وواوس يې له احرام تړلووروسته دښکارخرڅولولپاره بل غيرمحرم وکيل وګرځاوه نوپه دي دواړوصورتوکې هم دصاحبينو رحمهما الله اوامام ابوحنيفة رحمه الله ترمنځ پورتنی مذکوراختلاف دی ،دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی (پورتنی حواله)

(۳۴)قوله وامة على ان يعتق المشتری،ای لم يجزايضابيع امة على ان يعتق المشتری،يعنې که يوچا منځه په دي شرط خرڅه کړه چې مشتري هغه آزادوي يايې مدبره ګرځوي يايې مکاتبه ګرځوي يايې منځه په دي شرط خرڅه کړه چې مشتري به هغه اُم ولده ګرځوي نودابيوع فاسدي دي ،ولی په دغوبيوعوکې بيع مع الشرط ده ،اوله بيع مع الشرط څخه نبي کريم ﷺ منع فرمايلی ده ،همدارنګه په دغوبيوعوکې داسي شرط لګول شوی دی چې بيع دهغه مقتضي نه ده اوداقاعده ده چې په بيع کې داسي شرط لګول چې عقديې مقتضي نه وي اودمتعاقدينويامبيعی (په دي شرط چې له استحقاق څخه وي يعنې يوانسان وي) په هغه کې فائده وي نوپه داسي شرط لګولوسره بيع فاسديږي ځکه په بيع کې ثمن دمبيعه مقابل وي يعنې دمبيعی کل عوض ثمن وي نواوس داسي شرط لګول چې په هغه کې مثلا دبائع فائده وي داشرط خوله عوض نه خالي اوزائدشواوداسي زيادت چې له عوض څخه خالي وي په سودکې شمارل کيږي هغه چې ناجائزدی،نوکوم عقدچې پرسودباندي مشتمل وي هغه هم ناجائزګرځي .

**فائده** :داسی شرط چې دمقتضی عقدخلاف وي په کوم کې چې له متعاقدينوڅخه ديوه فائده وي که په عرف عام کې هغه رواج شوی وي مثلاکه چيرته بوټونه په دي شرط سره خرڅول په عرف عام کې رواج وي چې بائع

به په هغوکې تسمې هم لګوي نودعرف عام په وجه دابیع نه فاسدیږي ولی په عرف عام سره ثابت له دلیل شرعی څخه ثابت ګڼل کیږي لقوله ﷺ ماراه المسلمون حسنا فهو عندالله حسن . (یعنې کوم شی چې عام مسلمانان خوښ اوبنه وګڼي هغه دالله تعالی په نزدهم خوښ دی) .

(۳۵) قوله والاحملها ای لم یجز بیع الامة الاحملها، یعنې که چامنځه خرڅه کړه یایې حیوان خرڅ کړاودهغه حمل یې مستثنی کړچې ددې حمل نه خرڅوم نودابیع فاسده ده ولی داقاعده ده چې دکوم شی انفرادًا (یواځې) خرڅول نه وي صحیح دهغه له عقد څخه استثناء هم نه ده صحیح اوحمل له هغی قبیلی څخه دی چې انفرادًایې خرڅول نه دی صحیح ولی حمل دحیوان اومنځې له اجزاؤ څخه شمارل کیږي اودحیوان اجزاء انفرادًاخرڅول نه دی صحیح نوحمل خرڅول هم انفرادًانه صحیح کیږي .

**فائده** :له عقد څخه داستثناء حمل دري مرتبې دي یوه داده چې په استثناء سره عقداو استثناء دواړه فاسدیږی لکه په بیع، اجاره، رهن اوکتابت کې دحمل په مستثنی کولوسره عقداو استثناء دواړه فاسدیږي دوهمه مرتبه داچې په استثناء سره یواځی استثناء باطلیږي عقدصحیح پاتیږی لکه په هبه، صدقه، نکاح، خلع اوصلع عن دم عمدکې دحمل په مستثنی کولوسره استثناء باطلیږی عقدصحیح پاتیږی مثلامنځه هبه کړي حمل یې مستثنی کړي ،په دغوعقودوکې حمل دمورتابع وي،دریمه مرتبه داده چې عقداواستثناء دواړه صحیح کیږي لکه په وصیت کې چې دیوچالپاره دمنځې وصیت وکړي اودهغی حمل مستثنی کړي نووصیت هم صحیح دی اواستثناء هم ،نومنځه دموصی له کیږي اوحمل یې دورثه وُدی .

(۳۶)همدارنګه که چیرته یوچامریی په دې شرط خرڅ کړچې یوه میاشت به دبائع خدمت کوي،یوه میاشت وروسته به یې مشتري ته حواله کوي،یایې سرای په دې شرط خرڅ کړچې یوه میاشت به بائع پکې اوسیږي یوه میاشت وروسته به یې مشتري ته تسلیموي یایې په دې شرط خرڅ کړچې مشتري به بائع ته څودرهمونه قرض ورکوي،یاپه دې شرط سره چې مشتري به بائع ته یوشی هدیه ورکوي ،یایې یوشی په دې شرط خرڅ کړچې بائع به هغه مشتری ته تریوې میاشتې پورې نه ورکوي نودبیع دادټول صورتونه فاسد دي ولی نبي کریم ﷺ له بیع مع الشرط څخه منع فرمایلې ده،په داسی حال کې چې مذکوروتولویوعوکې داسې شرط دی چې پکې داحد المتعاقدین فائده شته،همدارنګه که دخدمت یاسکونت په مقابله کې څه پیسې وي نوبیاخوداجاره شوه اوکه نه وي نواعاره شوه،نوداپه عقدبیع کې اجاره اواعاره شوه په داسی حال کې چې نبی کریم ﷺ له صفقتٌ فی صفقةٍ څخه منع فرمایلې ده .

(۳۷)قوله ولوب علی ان یقطعه البائع ای لم یجز بیع ثوب الخ ،یعنې که چاپه دې شرط کپړه واخیسته چې بائع به هغه پریکوي قمیص به ترې جوړوي نودابیع فاسده ده ،ولی په دې کې یې داسی شرط (یعنې پریکول اوقمیص جوړول ) لګولی دی چې عقددهغه مقتضي نه دی چې داحدله متعاقدینو فائده هم پکښې ده په داسې حال کې چې بیع مع الشرط ممنوع ده کمامر.

(۳۸)وَصَحَّ بیعُ نَعْلٍ عَلٰی اَنْ یَحذُوهٗ اَوْ یُشَرِّ کَه (۳۹)لاالبیعُ الی النَّیروزِ وَ المِهرجانِ وَصَومِ النَّصارٰی وَفِطرِ الیَهودِ اِن لَم یَدرِ العاقِدانِ ذٰلِکَ (۴۰)وَالیٰ قُدومِ الحَاجِّ وَالحَصَادِ وَالدِّیَاسِ وَالقِطَافِ (۴۱)وَلَو کَفَلَ الٰی هٰذِهِ الاَوقَاتِ صَحَّ (۴۲)وَاِن اَسقَطَ الاَجَلَ قَبلَ حُلُولِهٖ صَحَّ

**ترجمه** :اوصحيح ده بيع دبوټونوپه دي شرط چې بائع به هغه برابروي يابه تسمې ورلګوي،نه بيع ترنوروزپورې ياترمهرجان پورې اودنصارى وُترروژې پورې اوديهودوتراختره پورې كه نه پيژندل دواړوعقدكوونكيوهغه لره،اونه ده صحيح بيع دحاجيانوترراتګ پورې يادكښت ترريبلويا كرلوپورې اودميوترېريكولوپورې اوكه ضامن شوددغووختونوترراتګ پورې بياصحيح دى اوكه يې ساقطه كړه موده ددغووختونوترراتګ مخكې نوصحيح كيږي .

**تشريح** :(۳۸) يعنې كه چاېوټونه په دي شرط واخيستل چې بائع به هغه په خاص ډول كاټوي يابه تسمې ورلګوي مشتري ته به يې وركوي نودقياس تقاضاخوداده چې دابيع ناجائزه شي ولى په دي كې دمقتضى عقدخلاف شرط(يعنې برابرول ياتسمې ورلګول) لګول شوى دى اوپه داسې شرط سره بيع فاسديږي چې دمقتضى عقدخلاف وي،مګراستحساناًفقهاؤهغه صحيح ګڼلې ده،داستحسان وجه يې دخلكوتعامل دى اوتعامل ترقياس قوي دليل دى .

**فائده** :دهمدي تعامل په وجه په آرډرسره شى تيارول جائزشوى دى حال داچې دآرډرپه صورت كې مبيعه معدومه وي اومعدوم بيع نه جائزه كيږي مګردتعامل اوعرف په وجه سره هغه جائزه ګڼله شوې ده .

**فائده** :دهمدي تعامل اوعرف په وجه نن سباعلماؤداصورت هم جائزبللى دى چې يوه كمپنى دخپل مال يوكال ګارنټي وركوي دخرابتياپه صورت كې كمپنى دهغه مرمت مفت وركوي،هسې خواصل اوقاعده داده چې بائع مبيعه خرڅه كړه نودهغې مرمت كول دهغه پرذمه نه دى دعقدپه وخت دمرمت شرطول دمقتضى عقدخلاف دى خوڅرنګه چې په عرف كې ددي رواج عام شوى دى نوځكه داجائزدى ولى دعام عرف په وجه اوس دامفضى ونزاع لره هم نه دى . (تفصيل په تقريرترمذى :۱/ ۹۴كې كتلاى شئ)

(۳۹)يعنې يوشى يې خرڅ كړاودپيسواداكولونيټه يې نوروز(دايرانى شمسى كال لومړى ورځ چې پريوويشت (۲۱) مارچ باندى وي) يامهرجان (دفارسيانوداختروورځ ) ياصوم نصارى يادېهودوداختروورځ وټاكله نوكه چيرته متعاقدينوته دامذكورتاريخونه نه پيژندل نودابيوع فاسده دى ولى دمودي دجهالت په وجه مفضي ونزاع ته دي اوداقاعده دذ چې كومه بيع مفضي ونزاع ته وي هغه فاسده ده،البته كه چيرته متعاقدينوته دامذكورتاريخونه پيژندل نوبياجائزدى ولى دفسادوجه نه پاتيږي .

(۴۰)قوله والى قدوم الحاج والحصادای لايصح الى قدوم الحاج والحصاد،يعنې داسې بيع جائزنه ده چې پكې دپيسو وركولو موده دحاجيانودراتګ وخت مقرركړي يادكښت ريبلويا كرلويادانګوروشكولووخت مقرركړي ولى دامذكور وختونه مخته شاته كيږي نودمودي دجهالت په وجه دابيوع مفضي ونزاع ته دي اومفضي ونزاع ته بيوع جائزنه دي .

(۴۱)كه څوک ترمذكوروووختونوپورې دچاضامن شونوداضمانت يې جائزدى ولى په كفالت كې دمعمولى جهالت څه لاره شته ځكه په كفالت كې داصل دين دمجهول كيدوهم څه لاره شته مثلاً كفيل مكفول له ته داسې ووايې چې :ستاچې دفلان پرذمه څه شى راځي زه دهغه ضامن يم،نوداجائزدى ،په وصف يعنې موده كې خوبه په طريقه اولى سره جائزوي،البته دجهالت فاحشه هيڅ ګنجائش (لاره) نشته ،جهالت يسيره

هغه دي چې په تقديم او تاخير کې يې اختلاف وي لکه پورتني مذکور تاريخونه او جهالت فاحشه هغه دی چې په وجود کې يې اختلاف وي لکه دتيزباد (هوا) دچليدو وخت دمودې په ډول مقررول.

(۴۲)البته که متعاقدين له مذکورو بيوعوورو سته د تاکلې مودې راتلو څخه مخکې ددغونيټو پر سقوط باندي راضی شول مثلادحاجيانودراتګ اودکښت ريبلوياکرلودوخت ترشروع کيدومخکې دمذکورو مودوپرسقوط باندي راضی شي اوموده ساقطه کړي پسې ورکړي نودابيع جائزه اوصحيح کيږي ولی وجه دفسادد مودې جهالت ووچې مفضی ونزاع ته وواوس څرنګه چې وجه دفسادله منځه لاړه نوبيع صحيح شوه.

**فائده**:دامام زفر رحمه الله په نزد مذکوره بيوع دمودې ساقطولوورو سته هم نه جائزې کيږي ولی کوم عقدچې يو ځل فاسد منعقد شی هغه بيرته په جائزنه بدليږي لکه څوک چې ترتاکلي وخت پوري نکاح وکړي نودانکاح په دي وجه چې ترمخصوص وخته پوري ده جائزه نه ده بيا که دهغی موده ساقطه کړي نوهم دانکاح نه جائزه کيږي،امام زفر رحمه الله ته جواب ورکول شوی دی چې دمفسد ترثابتيدومخکی دمفسد په اسقاط سره عقدفاسد په جائزسره بدليدلای شي،مګريوعقدپه بل عقدسره (چې له اول سره مغايروي) نه شي بدليدلای اوپه نکاح کې همداسي ده ولی ترمعلوم وخت پوري نکاح متعه ده اومتعه له نکاح څخه غيرده نودمودې په ساقطولوسره متعه نکاح نه شي کيدلای په داسي حال کې چې پورتني مذکورعقدونه دمجهولی مودې په وجودسره هم عقدبيع دي اودمودې ساقطولوورو سته هم عقدبيع دي نومجهوله موده پرنکاح متعه باندي قياسول نه دی صحيح.

(۴۳)وَمَن جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ وَشَاةٍ ذَكِيَّةٍ وَمَيْتَةٍ بَطَلَ الْبَيْعُ فِيهِمَا (۴۴)وَإِنْ جَمَعَ بَيْنَ عَبْدٍ وَمُدَبَّرٍ وَبَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ وَمِلْكٍ وَوَقْفٍ صَحَّ فِي الْقِنِّ وَعَبْدِهِ وَالْمِلْكِ

**ترجمه**: اوکه چاسره يوځای کړل آزاداومريی ياحلال پسه اومردارشوی نوبيع باطليږي په دواړوکې، اوکه چاسره جمع کړل مريی اومدبرياخپل اوپردی مريی ياملک اووقف،نوصحيح کيږي په مريی کې اوپخپل کې اوپه ملک کې.

**تشريح**:(۴۳)يعنې که چاحراومريی يوځای سره خرڅ کړل ياپې حلال شوی پسه اومردارسره خرڅ کړل نودهغه دوه صورتونه دي:

**نمبر ۱**-:ددواړوپې يوقيمت بنودلی وو. **نمبر ۲**-:دهريوه يې جلاقيمت بيان کړی وو،په اول صورت کې خوپه اتفاق سره بيع باطله ده،ولی آزاداومردارپه مال نه دي اوغيرمال ترعقدبيع لاندي نه شی داخليدلای نوآزاداومردارمبيعه نه دي اوکوم مريی اوحلال پسه چې يې له دوئ سره يوځای خرڅ کړل هغه دواړه مبيعه دي نوګواکې بائع په مبيعه کې دعقدقبلولولپاره په غيرمبيع کې دعقدقبلولو شرط لګولی دی اوداشرط فاسددی اوپه شرط فاسدسره بيع فاسديږی نوځکه په مريی اوحلال پسه کې هم بيع فاسده شوه اوپه دوهم صورت کې دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدبيع باطله ده په داسي حال کې چې دصاحبينورحمهما الله په نزدپه مريي اوحلال پسه کې بيع

جائزه ده اوپه خُرا ومردار پسه کې بيع باطله ده ولې دتفصيل ثمن په وجه عقد متعدد دی نو ديوه فساد دهغه بل طرف ته سرايت نه کوي ،دامام ابو حنيفة رحمه الله دليل دادی چې عقد يو دی ترڅو چې ايجاب او قبول متعدد نه وي عقد نه متعدد کيږي ځکه عقد دټولو په باره کې فاسديږي .

**فائده** :دامام ابو حنيفة رحمه الله قول مفتی به دی لمافی الدر المختار :وبطل بيع قن ضم الی حر وذکية ضمت الی ميتة ماتت حتف انفها وان سمی لمن کل خلافاً لهما ومبنى الخلاف ان الصفقة لاتتعدد بمجرد تفصيل الثمن بل لابد من تکرار لفظ العقد عنده خلافاً لهما وظاهر النهاية يفيد انه فاسد . (الدر المختار علی هامش رد المحتار :۴/۱۱۶)

(۴۴) يعنې که چيرته يې په بيع کې مريی او مدبر يا خپل مريی او دغير مريی جمع کړل يا يې يو خپل مملوک شی او يو وقف شوی شی سره يو ځای کړل خرڅ يې کړل نو دائمه ثلاثه په نزديوائی په مريي او خپل مريي او مملوک شي کې دپيسو دحصی په اندازه بيع صحيح ده او په مدبر ،دبل چاپه مريي او وقف شوي شي کې نه دی صحيح ،دجواز وجه يې داده چې مدبر او دبل چا مريی تر عقد بيع لاندې راتلای شی ولې ددوئ ماليت قائم دی نو دامحل بيع دي البته پخپل مريي او مِلک کې دپيسو دحصی په اندازه فی الحال بيع نافذه کيږي او په مدبر کې دبيع نفاذ دقاضی تر قضاء پوري موقوف کيږي او دبل چاپه مريي کې دمالک تر اجازې پوري موقوف کيږي او که چيرته هغوئ بيع رد کړه نو رد يږي او دهغوئ بيع رد ول ددي خبرې دليل دی چې په مدبر او دبل چاپه مريي کې بيع موجوده وه نو داهم مبيعه دي نو په دغه صورت کې په مبيعه کې دعقد قبلولو لپاره په غير مبيعه کې دبيع قبلولو شرط لګول نه لازميږي ،نو دمريي بيع نه فاسديږي ولې په تير صورت کې دبيع مفسد همدغه شرط وو ،دوقف په صورت کې په مضموم اليه شي کې بيع نافذه کيږي که نه ؟ په دي کې دوه قولونه دي اصح قول دادی چې په مِلک کې بيع صحيح کيږی ولې وقف هم مال دی البته په هغه پوری دموقوف عليهم حق متعلق دی په دي وجه دهغه خرڅول صحيح نه دی مګر داپه مضموم اليه کې دعقد فساد نه لازموي ولې دافساد ضعيف دی نو داداسې دی لکه له مريي سره چې مدبر يو ځای کړي خرڅ يې کړي .

**فائده** : مصنف رحمه الله دوقف قيد ددي لپاره لګولی دی چې احتراز راشی له هغه صورت نه چې څوک له خپل مِلک سره مسجد يو ځای کړي خرڅ يې کړي ولې آباد مسجد بلکل مال نه دی نو چې کوم مِلک له هغه سره يو ځای خرڅ شوی دی په هغه کې هم بيع جائزه نه ده .

## فصل

**فائده** :دافصل دبيع فاسد په بيان کې دی څرنګه چې حکم دشی ترشی وروسته وي ځکه يې اول بيع فاسده بيان کړه له هغه وروسته يې دهغه حکم بيان کړی دی او دبيع حکم مِلک دی نو په همدي فصل کې دابيان کوي چې بيع فاسده مِلک فائده کوي که نه .

(۱) اذا قبض المشتري المبيع في البيع الفاسد بامر البائع وكل من عوضيه مال ملك المبيع بقيمته (۲) ولكل منهما فسخه (۳) لان بيع المشتري او يهب او يحرر او يبني (۴) وله ان يمنع المبيع عن البائع حتى ياخذ الثمن منه (۵) وطاب للبائع ما ربح لا للمشتري (۶) ولو ادعى على آخر مالا فقضاه اياه ثم تصادقا انه لا شئ عليه طاب له ربحه.

**ترجمه** : كله چې مشتري قبض كړي مبيعه په بيع فاسده كې دبائع په امر سره او هر يو له عوضينو څخه مال وي نو دى دمبيعه مالک ګرځي په قيمت سره ، او هر يو لره دفسخ كولو حكم شته ، مګر دا چې مشتري يې خرڅ كړي يا يې هبه كړي يا يې آزاد كړي يا آبادي پرې جوړه كړي او مشتري ته جائز دى منع كول دمبيعى تر هغه چې پيسې اخلى له هغه څخه ، او كوم نفع چې له مبيعى څخه حاصل شى بائع ته حلاله ده مګر مشتري ته نه ده حلاله او كه يې په بل دعوه وكړه دڅو درهمو نو هغه وراداكړل ده ته نو دوا ړو تصديق وكړ چې پر ده باندې نور هيڅ نه دي واجب نو حلال ده هغه ته نفع دهغه .

**تشريح** :(۱) يعني چې كله په بيع فاسده كې مشتري دبائع په حكم سره مبيعه قبض كړي او په عقد كې دواړه عوض (يعني ثمن او مبيعه ) مال وي نو مشتري دمبيعى مالک ګرځي ولى ركن دبيع يعني ايجاب او قبول له اهل بيع څخه په محل دبيع كې صادري شوي دي ولى اهل بيع بائع او مشتري دي چې دواړه دبيع اهليت لري او محل دبيع مال دى نو دا بيع منعقده كيږي مفيده دملک ګرځي البته مفسد شرط پكې راغلى دى چې زموږ د اصولو مطابق دنفس بيع دمشروعيت دليل دى ،نو چې كله دمشتري ملک ثابت شو يا كه له مشتري سره مبيعه هلاكه شوه نو ورته كتل كيږي چې مبيعه له ذوات القيم څخه ده كه له ذوات الامثال څخه ،كه چيرته له ذوات القيم څخه وي مثلا يو حيوان وي نو پر مشتري باندې دمبيعى قيمت لازميږي او كه مبيعه له ذوالامثال څخه وي مثلا موزوني يا مكيلي شى وي نو د مشتري پر ذمه دمبيعى مثل لازميږي .

**فائده** :دقبض په قيد سره احترازراغى دهغه صورت څخه چې په هغه كې مشتري مبيعه قبض كړي نه وي ولى په هغه صورت كې دمشتري ملک نه ثابتيږي او دبيع فاسد په قيد سره احترازراغى له باطل څخه ولى دبيع باطل په صورت كې دمشتري لپاره ملک نه ثابتيږي كه څه هم مشتري مبيعه قبض كړي او دقبض په امر دبائع سره احترازراغى له هغه صورت څخه چې مشتري دبائع دامربغيرمبيعه قبض كړي ولى داصورت هم مفيد دملک نه دى او له عوضينو څخه هر يو به مال وي په دي قيد سره احترازراغى له هغه صورت څخه چې پكى له عوضينو نه يو يا دواړه مال نه وي ولى دا بيع باطله ده چې ملک نه فائده كوي (كذا في الدر المختار على هامش رد المحتار:۴/۱۳۸)

**فائده** : دامام شافعي رحمه الله په نزد بيع فاسده ملک نه فائده كوي ولى پر بيع فاسده باندې نهى راغلې ده نو بيع فاسده منهى عنه او حرام فعل دى او ملک حاصلول يو نعمت دى او حرام فعل دنعمت دحصول سبب نه شي كيداى ځكه دسبب او مسبب ترمنځ مناسبت ضروري دى په داسى حال كې چې دحرام فعل او نعمت ترمنځ هيڅ مناسبت نشته ،امام شافعي رحمه الله ته جواب وركول شوى دى چې نهى پر فعل شرعى باندې راتلل ددي خبرې دليل دى چې بنفسه دا (بيع ) مشروع ده البته دغير په وجه په هغه كې قباحت دى يعني ديو وصف يا له هغى سره متعلق په يو شى كې قباحت دى نو دملک دنعمت دحصول لپاره نفس بيع سبب دى چې فعل حرام نه دى نو دا خبره صحيح نه ده چې دنعمت ملک سبب فعل حرام دى .

(۲)اوله متعاقدينو څخه پرهريوه باندي ددفع فسادلپاره دبيع فاسدی فسخ کول لازم دی که ترقبض مخکي وي که وروسته وي ولی دبيع دفاسدوالي په وجه په دي کې ګناه ده،البته مخکی ترقبض له متعاقدينو څخه دهريوه وجود(يعني علم ) ضروري دی ځکه دعقدپه فسخ کولوکې پرهغه بل الزام دی ګواکي فسخ کوونکي پرخپل ملګری باندي دضرررسولو الزام لګولی دی اوپرچاباندي دالزام لګولوپه صورت کې دهغه علم ضروري دی،اوترقبض وروسته که چيرته فسادپه صلب عقدکې وومثلاً له عوضينو څخه يو شراب ياخنزيروونوهم له متعاقدينو څخه هريوه لره دفسخ اختيارشته ولی فسادقوي دی اوکه چيرته فسادپه صلبِ عقدکې نه وومثلاموده مجهوله وه يابائع يوه مياشت له مبيعه څخه خدمت اخيستل شرط کړل نوپه دغه صورت کې دعقدفسخ اختياريوائی هغه چالره دی چاته چې په شرط کې فائده وي هغه بل ته خيارفسخ نشته.

**فائده** : دلته مصنف رحمه الله د(وَلِكُلٍ مِنهما) لفظ ذکرکړی دی چې په ظاهره له هغه څخه دامعلوميږی چې له متعاقدينو څخه هريوه لره بيع فسخ کول جائزدی مګرصحيح دادی چې پرهريوه باندي بيع فسخ کول جائزنه بلکې لازم دی نوددغه عبارت (لکل منهما) پرځای (علی کل منهما) ويل پکاردی چې پرهريوه باندي دبيع فسخ کولووجوب

ثابت شي يادا سي ويل پکاردی چې لام په معنی دعلی دی کمافی قوله تعالی(وَاِن اَسأتم فلها)

(۳)که چيرته مشتري دبيع فاسدپه صورت کې دبيع فسخ کولوپرځای مبيعه پربل چاباندي خرڅه کړه نودابيع نافذه کيږی يامشتري مبيعه يوچاته هبه کړه يامبيعه مريی وومشتري هغه آزادکړنوداهم صحيح دی ولی مشتري په قبض کولوسره دمبيعه مالک ګرځيدلی دی اومالک لره دمذکوروتصرفاتو اختيار وي،اوس څرنګه چې په مبيعه پوری دبل چاحق متعلق شوی دی ځکه نواول بائع اواول مشتری بيع نه شي فسخ کولای ولی دبيع فسخ کولوحکم دشريعت دحق په وجه دی په داسی حال کې چې دبنده حق دشريعت ترحق مقدم دی ولی بنده محتاج دی اوشارع غيرمحتاج دی ،همدارنګه که مبيعه ځمکه وه مشتري پرهغه باندي سرای جوړکړنوداهم بيع نافذه ګڼله کيږی ولی دمبيعی په قبض کولوسره مشتری دهغه مالک ګرځی نوپه هغی کې دمشتري تصرف صحيح دی پاتی شوه داخبره چې دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددبائع حق استردادپه دي وجه ختم کيږی چې مشتري خوبائع پخپله پرمبيعه باندي دآبادي پرجوړولومسلط کړی دی.

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزدداسترداد حق نه منقطع کيږی بلکې آبادي دي ړنګه کړي اوځمکه دي بيرته مالک ته واپس کړي ولی دشفيع حق ضعيف دی (ځکه حق شفعه په تاخيرسره ساقطيږی اوقاضی وقضاء ته احتياج لری) بياهم که چيرته مشتري پرمشفوعه ځمکه باندي آبادي جوړه کړي نودده آبادي ړنګيږی ځمکه شفيع ته ورکوله کيږی اودبائع حق خوډيرقوي دی نودبائع دحق په وجه په طريقه اولی سره دده آبادي ړنګيږي ځمکه بائع ته واپس ورکوله کيږي.

**فائده** : دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله: والراجح قول الامام ابى حنيفة رحمه الله عندجمهور اهل الترجيح وعليه الفتوى وحكى السرخسى قول امام ابويوسف رحمه الله ايضا معه وهو ظاهر الرواية وهو الاقوى دراية ورواية الا انه رجح الكمال قولهما وقال: ان قولهما اوجه لكن رد قوله صاحب النهر وضعف دليل الكمال فالراجح والمفتى به قول الامام ابى حنيفة رحمه الله (هامش الهداية: ۶۸/۳)

(۴)يعنې مشتري لره دا اختيار شته چې په بيع فاسد كې ترڅو چې هغه خپلې پيسې چې ده بائع ته وركړې دي له بائع څخه وصول نه كړي مبيعه دې هغه ته نه وركوي ولې مبيعه د هغو پيسو مقابله ده نو د هغو په عوض كې محبوسه ده لكه رهن چې د قرض په عوض كې محبوسه وي،بياكه چيرته هغه پيسې دبائع سره موجودې وې چې له مشتري يې اخيستې دي نو مشتري دې ترې نه واخلي ځكه په بيع فاسد كې درهمونه هم متعين كيږي اوكه چيرته

هغه هلاك شوي وونو بيا دې دهغو مثل واخلي.

(۵)كه په بيع فاسد كې بائع دمبيعې په پيسو تجارت وكړ څه ګټه يې وكړه نو هغه بائع ته حلاله او مباحه ده اوكه مشتري ته له مبيعې څخه څه فائده حاصله شوه نو هغه ده ته حلاله نه ده مثلاً يو چا بيع فاسده وكړه يوه منځه يې په زر درهمه واخيسته بيا مشتري هغه منځه په يو ولس سوه خرڅه كړه يعنې سل درهمه يې وګټل او بائع دمنځې په پيسو يعنې زرو درهمو تجارت وكړ يو ولس سوه يې كړل نو بائع ته دانفع جائزه ده مګر مشتري ته نه ده جائزه وجه دفرق يې داده چې منځه له هغو شيانو څخه ده چې په متعين كيدو سره متعينه كيږي نو هغه دوهم عقد چې بائع او مشتري ترسره كړي دي هغه تر غې متعينې منځې پورې متعلق دي په داسې حال كې چې دامنځه دبيع اول دفساد په وجه دمشتري ملك فاسد وواوله ملك فاسد څخه په نفع حاصلو لو كې خبث راځي او په كوم شي كې چې خبث راځي دهغه صدقه كول واجب دي او دراهم او دنانير زمونږ په نزد په متعين كيدو سره نه متعين كيږي نو دوهم عقد دهغو دراهمو تر ذات پورې نه دې متعلق شوي كوم دراهم چې بائع ته دمنځې په عوض په لاس ورغلي دي نو چې كله دوهم عقد تر هغو دراهمو پورې نه دي متعلق شوي له هغو څخه په نفع حاصلولو كې خبث هم نه راځي نو دهغو صدقه كول نه واجبيږي.

**فائده** :كوم مال چې له حلال او حرام څخه داسې مخلوط شوى وي چې يو له بل څخه جلا او ممتاز نه وي نو په داسې صورت كې خلط كوونكى دټول مال مالك ګرځي البته څو مره مال چې حرام دى دهغه ضمان اداكول پر ده باندې واجب دي ترڅو پورې چې دهغه ضمان ادا نه كړي يا ضمان پر خپله ذمه لازم نه كړي تر هغه وخته پورې په هغه مال مخلوط كې يو ډول تصرف كول او له هغه څخه قسم نفع حاصلول جائز نه دي او كوم مال چې خالص حرام دى دهغه حكم په طريقه اولى سره همداسې دى.

كه يو څوك دهغه مخلوط مال چې حرام يې غالب دى يا خالص حرام مال په ذريعه كاروبار وكړي نفع حاصله كړي نو هغه ګټه څرنګه چې ده ته حلاله نه ده نو هغه نفع له اصل پيسو سره يو ځاى اصل مالك ته يا دهغه ورثاؤ ته بيرته واپس كول ضروري دي داصل مالك يا دهغه

دورڅاؤ په نه موجود کې يا نه موندلو په صورت کې دهغه له طرفه صدقه کول يې واجب دی . للخبث فيه .

اوکه دمخلوط مال اکثرحلال وونوبيا په هغه کې تصرف کول او ګټه حاصلول جائزدی او که دهغه په ذريعه کاروباروکړی څه نفع حاصله کړي نو هغه هم ده ته حلاله ده،بیا هم څومره حرام مال چې ورسره ګډشوی دی هغه اصل مالک ته واپس کول ضروری دی دنه معلوميدو په صورت کې يې صدقه کول لازم دی او څومره ګټه چې په حرام مال سره ترلاسه شوې ده هغه ګټه صدقه کول هم لازم دی مثلا لس فيصده حرام مال شامل وونو دګټې لس فيصده صدقه کول لازميږي . (جدید معاملات کی شرعی احکام ۱/ ۱۷۹)

(۶)که يو چاپه بل مثلا دزرو درهمونو دعوی وکړه اومدعی عليه دحاکم په حکم سره هغه دراهم دغه مدعي ته ورکړل مدعی هغه دراهم راواخيستل ګټه يې څنی حاصله کړه بيا مدعی اومدعی عليه پردي خبره باندي سره متفق شول چې دمدعی عليه پرذمه دمدعی هيڅ واجب نه وومدعی خالص ددروغودعوه کړي وه نوپه دغه صورت کې چې مدعی له دغودراهمو څخه کومه ګټه ترلاسه کړې ده هغه ده لره حلاله ده ولی مدعی عليه چې کوم مال اداکړی دی هغه دهغه دَين (قرض) بدل دی چې دهغه په اقرارسره پرمدعی عليه باندي دمدعي حق ګرځيدلی دی بياچې کله دواړوپردي خبره باندي اتفاق وکړچې پرمدعی عليه باندي هيڅ واجب نه دي نوپرمدعی عليه باندي دين ثابت نه شوګواکي په دَين باندي چادا استحقاق دعوی وکړه وايې خيست نودهغه په بدل يعني زرودرهمونوکې دمدعی مِلک فاسدثابتيږی اودمِلک فاسدپه باره کې داقاعده ده چې که چيرته متعين شی وونوله هغه څخه په ګټه حاصلولوکې خبث پيدا کيږي دهغه صدقه کول واجبيږی اوکه غيرمتعين شی وونوله هغه څخه په نفع حاصلولوکې خبث نه پيدا کيږي نودهغه صدقه کول هم نه واجبيږی په داسی حال کې چې دراهم په متعين کولوسره نه متعين کيږی نوچې له هغو څخه کومه ګټه حاصليږي په هغی کې خبث نه راځی اونه دهغی صدقه کول واجبيږي .

## فصل

دبيع مکروه احکام يې دبيع فاسدی پوری متصل ذکرکړل وجه يې داده چې په دغوځايوکې له مکروه څخه مرادمکروه تحريمی دی چې حراموته نژدي دی خو څرنګه چې په دغه عقدبيع کې فساد حراموته په نسبت کم دی ځکه يې له بيع حرام وروسته هغه ذکرکړل .

(۱) کُرِهَ النَّجْشُ (۲) وَالسَّوْمُ عَلی سَوْمِ غَيْرِهِ (۳) وَتَلَقِّي الْجَلَبِ (۴) وَبَيْعُ الْحَاضِرِ لِلْبَادِي (۵) وَالْبَيْعُ عِنْدَ أَذَانِ الْجُمُعَةِ (۶) لَا بَيْعُ مَنْ يَزِيدُ (۷) وَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ صَغِيرٍ وَذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ (۸) بِخِلَافِ الْكَبِيرَيْنِ (۹) وَالزَّوْجَيْنِ .

**ترجمه** : مکروه ده بيع دنجش اودبل پرنرخ باندي نرخ ورکول اوسوداګرانوته له ښاره وروتل اوبيع دښاري دصحرائي لپاره اودجمعي دآذان په وخت بيع کول،نه نيلام،اوتفريق به نه راولي دماشوم اودهغه دذی رحم محرم ترمنځ،خلاف له دوولويانو اوزوجينو څخه .

**تشریح** : (۱)یعني بیع دنجش مکروه ده،بیع دنجش داده چې یوه خریدار دمبیعی پوره قیمت ځان ته معلوم کړغوښتل یې چې سوداوکړي یوبل سړی راغی نیت دخریداري یې نه درلودهسې ددي لپاره دمبیعی قیمت بالاکوي چې مشتري نوروهڅوي بیع ته نودامکروه دی لقوله ﷺ :لاتناجشوا(بیع دنجش مه کوئ ) همدارنګه څرنګه چې دنجش په صورت کې مشتري ته دوکه ورکوله کیږي نوځکه مکروه ده .

(۲)قوله والسوم علی سوم غیره ای کره بیع السوم علی سوم غیره،یعني بیع پربیع باندي مکروه ده ،سوم علی سوم غیره داده چې متعاقدین دمبیعی قیمت سره بیان کړي دپیسوپرمقدارباندي سره راضي شوي وي خالص عقدبیع پاتی وي په دي وخت کې یوبل څوک راشي له بائع سره دهمدغي مبیعی عقدشروع کړي نوداهم مکروه دی لقوله ﷺ :لایسنام الرجل علی سوم اخیه .(یعني بیع دی نه کوي څوک دخپل ورورپربیع باندي )همدارنګه دبیع پربیع په صورت کې دمسلمان ورورپه وحشت کې اچول دی اوهغه ته ضرررسول دی .

**فائده** :سوم علی سوم غیره،هغه وخت مکروه ده چې متعاقدین په معامله کولو کې دپیسوپرڅه مقدارباندي سره راضي شوي وي اوکه چیرته هغوئ تراوسه پوري په پوره ډول مائل شوي نه ووهغه دریم څوک راغی په زیاتوپیسویې اخیسته نودامکروه نه دی ولی داپه حقیقت کې سوم علی سوم غیره ،نه دی بلکې دابیع دمن یزیدیعني نیلامي دی اوبیع دمن یزید جائزه ده .

(۳)همدارنګه تلقی الجلب مکروه ده،تلقی الجلب داده چې یوتجارپه راتلونکې قافله باندي خبرشي نومخی ته ورووځي ښارته له داخلیدوڅخه مخکی دقافلي والاوڅخه ټوله غله واخلي (دښارخلک هغی غلې ته احتیاج هم لري) اوپه ښارکې یې دخپلې مرضی په نرخ باندي خرڅه کړي نودامکروه ده .ولی په دي کې دښاریانوضرردی،همدارنګه که چیرته دقافلی له والاوڅخه دښارقیمت پټ کړي له هغوئ نه په ارزانه قیمت غله واخیسته نودامکروه ده که څه هم دښاریانوضررنه وي پکې ولی په دي صورت کې دقافلی والاووته دوکه ورکړله شوي ده،ضرراودوکه دتلقی الجلب دکراهت علت دي نوهرچیرته چې داعلت وموندل شي هلته کراهت شته که علت نه وویاکراهت نشته .

**فائده** :دانن سباچې سول ایجنټ کیږي چې منډي ته له داخلیدوڅخه مخکی له بهره راتلونکي سامانونه اخلي اواجاره دارګرځی که چې دوئ ددي سامان قیمت دومره لوړکړي چې دهغه په وجه عام خلکوته ضررسیږي نوناجائزدی که نه بیاجائزدی . (تقریرترمذی : ۷۵/۱)

(۴)همدارنګه بیع الحاضرللبادی ،مکروه ده ،بیع الحاضرللبادی داده چې یوښاري سړی له بهره راغلي چاته ووایي چې ته بېره مه کوه غله ماته پرېږده زه به یې په ګران قیمت درته خرڅه کړم نودامکروه ده لقوله ﷺ :لایبیع الحاضرللبادی(ښاري سړی دي دصحرایي لپاره نه خرڅوي) . همدارنګه څرنګه چې په دغه بیع کې هم دښاریانوضرردی نوځکه مکروه ده ولی بازاري په چل سره دهغه مال اخلی پخپل ګودام کې یې ذخیره کوي بیاچې کله په بازارکې هغه مالونه کم شي نودی هغه مال په ګران قیمت خرڅوي چې په دي کې دعاموخلکو ضرردی.نوددي بیع دکراهت علت ضرردی .چیرته چې داضررنه وي هلته کراهت هم نشته .

(۵) دجمعې دآذان په وخت کې بيع مکروه ده ،لقوله تعالى ﴿إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ﴾ (يعني كله چې دجمعې په ورځ آذان شي نوتاسې په چټكي سره ځئ دالله تعالى يادته اوپرېږدئ خريدوفروخت).

په دغه بيع کې قباحت دادی له آذان وروسته دخريدوفروخت لپاره په کېنيناستلو کې كله داسې هم پېښيږي چې په واجب سعی کې خلل واقع شي چې دايوامرقبيح دی نوځکه دجمعې له آذان وروسته خريدوفروخت مکروه کيږي،داڅلورقسمه بيوع مکروه تحريمی دي فاسدی نه دي ځکه فسادپه صلب عقدکې نه دی بلکې دامرخارج زائديعني مجاورپه وجه دی.

**فائده**: دجمعې له آذان څخه اول آذان مراددی يعني تراول آذان وروسته خريدوفروخت مکروه دی لمافي الدرالمختار: وكره تحريمامع الصحة البيع عندآذان الاول :وهوالذي يجب السعي عنده (الدرالمختارمع الشامية:۳/ ۱۴۷) ،اوريدلي مودي چې حضرت مولانامفتی رشيداحمدلدهيانوی رحمه الله به دجمعې داول اودوهم آذان ترمنځ يوائی دڅلوروركعتونو سنتودكولووخت وركاوه چې دايوه ډيره ښه طريقه ده ځكه په دي کې دكاروباريانو خلكولپاره سهولت دی ،اوس ماشاء الله په كراچی کې دحضرت رحمه الله داطريقه په ډيرومسجدونو کې جاري ده.

(۶) قوله لابيع من يزيدای لايكره بيع من يزيد،يعني بيع دمن يزيدنه ده مکروه يعني دنيلام په ډول که څوک زيات قيمت وركړي نوپرهغه باندي خرڅول نه دی مکروه ولی داثابته ده چې نبي كريم ﷺ ديوه انصاری صحابی S يوه پياله اوكمبله نيلام كړه خرڅ يې کړه.

(۷) يعني كه څوک ددوو (۲) وروياوو وړاويوه لوی مريې مالک وګرځي په داسې حال کې چې هغوئ دواړه پخپل منځ کې ذورحم محرم (يعني داسی قريبان چې دهميشه لپاره يې پخپل منځ کې نكاح سره حرامه وي هغه ته ذورحم محرم وايې )ونودهغوئ ترمنځ به دبلوغ تروخته پوري تفريق نه راولي چې يوپرچاباندي خرڅ کړي ياپې چاته هبه کړي،لقوله ﷺ :مَن فرق بين والدة وولدها فرق الله بينه وبين احبته يوم القيامة.(يعني كه چاموراودهغې دبچي ترمنځ جدائي راوسته نوالله تعالى به دقيامت دهغه اودهغه داحبه ؤ(دوستانو) ترمنځ جدائي راولي.)

**فائده**: خوكه يوچاداسې وكړل يعني لـه دادول مرييانو څخه يې يوخرڅ كړنودامـام ابويوسف رحمه الله پـه نزددابيـع فاسـده ده ،ولـی نبـي كـريم ﷺ وحضـرت علـی تـه دوه نابـالغ مرييـان چـې سـره ورونـه ووهبـه كـړل،بيـا يې يو وخـت پوښـتنه ورڅخـه وكـړه چـې هغـه مرييـان څنګـه شـول ؟ حضـرت علـی رضـی الله وفرمايـل چـې لـه هغـوئ څخـه مـې يـو خرڅ كړ،هغـه ﷺ ورتـه وفرمايـل :هغـه واپـس واخله،هغـه واپـس واخلـه ،مـراددادی چـې دابيـع رده كـړه اودبيـع رديـدوحكم پـه بيـع فاسـده کـې وي نـه پـه بيـع صـحيح کـې ،دطرفينـو رحمهمـا الله پـه نزددابيـع جـائزه ده ولـی ركـن دبيـع (ايجـاب اوقبـول )لـه اهـل بيـع (يعنـي عاقـل مميّز)څخـه پـه محـل دبيـع (يعنـي مـال) کـې صادرشـوي دي نوځكـه دابيـع جـائزه ده البتـه دمعنـی

مجاوري (نابالغ په وحشت کې اچولو او پر هغوئ دشفقت پرېښودلو) په وجه په دغه بیع کې فساد پیداشوی دی لکه په سوم علی سوم غیره کې نو ځکه دابیع مکروه شوه.

(۸) او که چیرته مریان دواړه بالغ وونو بیا په تفریق کې څه حرج نشته ولی داسکندریه پاچا (مقوقس قبطی) دنبي کریم ﷺ په خدمت کې دوې منځې وړاندې کړې وې او هغه دواړې سره خویندې وې دیوې نوم ماریه قبطیه وه او دبلې نوم سیرین وه، نبی کریم ﷺ ماریه قبطیه خپل ځان ته راوګرځوله او سیرین یې حضرت حسان ته هبه کړه، همدارنګه دلویانو ترمنځ په تفریق راوستلو کې ددوئ ترمنځ وحشت او پر هغوئ دشفقت پرېښودل نه لازمیږی ولی لویان دشفقت محتاج نه دي.

(۹) قوله والزوجین ای بخلاف الزوجین، یعنې دزوجینو ترمنځ هم تفریق مکروه نه دی که څه هم نابالغ وي ولی نص خلاف دقیاس نه ددوو داسي قریبانو په باره کې راغلی دی چې دهغوئ ترمنځ ترمجرمیت رشته وي او کوم شی چې خلاف قیاس ثابتیږی هغه پخپل موردپوري خاص وي پر هغه بل شی قیاسول جائزنه دی نوزوجین پر ماورد به النص باندې قیاسول صحیح نه دی.

## باب الاقالة

داباب داقاله په بیان کې دی.

اقاله په لغت کې په معنی درفع الشئ وإسقاط الشئ او په اصطلاح کې رفع البیع ته ویل کیږي، بعض وایي چې اقاله اجوف واوي دی له قول څخه ماخوذ دی بیا په اقاله کې همزه دسلب مأخذ لپاره ده په معنی أزَالَ القَولَ الاول ای البَیع، یعنې بیع یې زائله کړه مګر دا قول صحیح نه دی بلکې اقاله اجوف یائی دی ولی اهل لغت اقاله په قاف مع الیاء په ماده کې ذکرکړې ده نه په قاف مع الواو کې، همدارنګه ویل کیږی قِلتُ البَیعَ (مابیع رفع کړه) نو که چیرته اجوف واوي وای نو قِلتُ به نه ویل کیدای بلکې قُلتُ بضم القاف به وای.

اقاله په اتفاق سره جائزه ده لقوله ﷺ: من اقال نادمًا بیعته اقال الله تعالی عثراته یوم القیامة. (یعنې کوم څوک چې پښیمان چاته دهغه بیع اقاله کړي نو الله تعالی به دقیامت په ورځ دهغه لغزشونه لیري کړي) ګواکې نبي کریم ﷺ داقاله په کولو سره داقاله کوونکي دثواب خبرورکړی دی او دثواب خبرورکول پر امر مشروع باندې مرتب کیږی نه پر امر غیر مشروع باندې نو دا ثابته شوه چې اقاله مشروع او جائزه ده.

دباب الاقاله له ماقبل سره مناسبت دادی چې په ماقبل کې دبیع فاسد او مکروه بیان وو چې رفع یې پر متعاقدینو باندې واجبه وه او اقاله هم رفع دبیع ده.

(۱) هِيَ فَسخٌ فِي حَقِّ المُتَعَاقِدَينِ بَيعٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ (۲) وَتَصِحُّ بِمِثلِ الثَّمَنِ الأَوَّلِ (۳) وَشَرطُ الأَكثَرِ وَالأَقَلِّ بِلَا تَعَيُّبٍ (۴) وَجِنسٍ آخَرَ لَغوٌ فَلَزِمَهُ الثَّمَنُ الأَوَّلُ (۵) وَهَلَاكُ الثَّمَنِ لَا يَمنَعُ الإِقَالَةَ وَهَلَاكُ المَبِيعِ يَمنَعُ وَهَلَاكُ بَعضِهِ بِقَدرِهِ.

**ترجمه**: اقاله فسخ ده دمتعاقدینو په حق کې او بیع ده ددریم چا په حق کې او صحیح ده دثمن اول په مثل سره او دزیادت یا کمبوت شرط لګول صحیح دی بغیر له عیب دارکیدو نه او دجنس بدلیدل لغوه دی او لازم دی پرده باندې ثمن اول او دثمنو هلاکیدل اقاله نه شی منع کولای او دمبیعی هلاکیدل مانع دی او دبعض مبیعی هلاکیدل دهغې په اندازه (مانع) دی.

**تشريح** : (۱)يعنې که چيرته مشتری مبيعه قبض کړي وه او اقاله يې په لفظ د اقاله سره وکړه نو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد د متعاقدينو په حق کې دا د عقد سابق فسخ ګڼله کيږی د لفظ د اقاله په عملي کولو سره ولی لفظ د اقاله د فسخ او رفع خبرور کوي مګر د دريم چاپه حق کې په معنی د اقاله سره په عمل کولو نه د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد دا د عقد فسخ نه ده بلکې جديده بيع ده ولی اقاله په معنی د مبادلة المال بالمال بالتراضي سره ده او همدا د بيع تعريف دی .

بيا د دريم چاپه حق کې د جديد بيع مفاد په هغه صورت کې راځی چې مثلا زيد پر عمر يا ندي ځمکه خرڅه کړه بکر لره حق د شفعه حاصل وو مګر بکر د شفعه دعوی پرې ښودو او س که چيرته زيد او عمر اقاله وکړه نو د بکر په حق کې دا اقاله بيع جديده ده نو ځکه بکر لره په دغه ځل کې هم د شفعه د دعوی حق حاصل دی .

**فائده** :د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد اقاله بيع ده ولی اقاله هم د بيع په شان مبادلة المال بالمال بالتراضی ده، خو که چيرته هغه بيع کيدل ممکن نه وو مثلا مشتري تر او سه پوري مبيعه نه وه قبض کړې نو بيا هغه فسخ ګڼله کيږي او که فسخ کيدل هم ممکن نه وو مثلا اول عقد د دراهمو په عوض کې شوی وو او اقاله د غنمو په عوض کيدله نو په دغه صورت کې اقاله باطليږی، د امام محمد رحمه الله په نزد اقاله فسخ د بيع ده ولی لفظ د اقاله د فسخ خبرور کوی خو که چيرته د بيع فسخ کيدل ممکن نه وو نو بيا بيع ګڼله کيږي ولی په لفظ د بيع کې د بيع احتمال هم شته او که بيع کيدل هم ممکن نه وو نو په هغه صورت کې اقاله باطليږی .

**فائده** :د امام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة الشامي رحمه الله :تحت قوله (وهي فسخ في حق المتعاقدين) والصحيح قول الامام کما في تصحيح العلامة قاسم (رد المحتار:۴/۱۶۴).

(۲)يعنې په بيع کې اقاله د بائع او مشتري لپاره د ثمن اول په مثل سره جائزه ده ولی عقد بيع د متعاقدينو حق دی نو هغوئ يې د رفع کولو مالکان دي بيا د اقاله لپاره د قاف او لام ماده ذکر کول ضروري نه دی بلکې که چيرته يو وويل :تَرَکتُ البَيعَ هغه بل وويل رَضِيتُ نو هم اقاله کيږی .

(۳)خو که چيرته بائع تر ثمن اول کم يا مشتری تر ثمن اول زيات شرط ولګاوه مثلا کتاب يې په لس روپۍ خرڅ کړی وو او س بائع شرط ولګاوه چې اقاله خو کوم مګر پر اتو روپو يا مشتري وويل اقاله کوم مګر پر دوولسو روپو ،نو دا شرط باطل دی ولی اقاله وايې دې ته چې پر کوم وصف باندي عقد شوی وي له هغه وصف سره هغه رفع شي، او دا په هغه صورت کې کيدای شي چې پر ثمن اول باندي اقاله وکړي تر هغه د زياتو يا کمو په شرط لګولو سره د غير ثابت شوي شي رفع کيدل لازميږی په داسی حال کې چې د غير ثابت شوي شي رفع کيدل محال دی نو اقاله صحيح ده د ثمن اول په رديدو سره چې د اقاله معنی ثابته شي، البته که چيرته په مبيعه کې د مشتري په لاس کې عيب پيدا شوی وو نو په قدر د عيب په پيسو کې کمبوت جائز دی ولی په پيسو کې کمبوت کول له مبيعی ځخه د هغه شي په مقابل کې ګڼل کيږي چې د عيب په وجه فوت شوی دی .

**فائده** :د صاحبينو رحمهما الله په نزد تر ثمن اول د زيات شرط لګولو په صورت کې دا اقاله فسخ بيع نه بلکې بيع کيږي ولی د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد اقاله بيع ده او د امام محمد رحمه الله په نزد اقاله فسخ بيع ده که چيرته ممکن نه وو نو بيا بيع ګڼله کيږي نو ځکه په همدغه صورت کې د دواړو په

نزد اقاله بیع شمارله کیږي او په هغه صورت کې چې ترثمن اول نه دکموپیسو شرط ولګوي دامام ابویوسف رحمه الله په نزد دهغه داصولو مطابق دابیع ده په داسې حال کې چې دامام محمد رحمه الله په نزد په دغه صورت کې فسخ بیع ده ولی ثمن کمول داسې دي ګواکي هغه له بعض ثمن څخه سکوت اختیارکړ داچې له ټولو ثمنو څخه دسکوت اختیارولو په صورت کې فسخ ګڼله کیږي نو دبعض څخه دسکوت په صورت کې په طریقه اولی سره فسخ شمارله کیږي.

**فائده**: دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد اقاله فسخ ده که یې ترثمن اول زیات شرط لګولی وي او که یې دکموپیسو او همدا قول راجح دی لمافي الشامیة: الواجب هو الثمن الاول سواء سماه اولا قال في الفتح والاصل في لزوم الثمن ان الاقالة فسخ في حق المتعاقدين وحقيقة الفسخ ليس الا رفع الاول (ردّالمحتار: ۳/۱۶۵)

(۴) همدا رنګه که یې له ثمن اول څخه علاوه پرکوم بل جنس باندې اقاله وکړه مثلاً ثمن اول درهمونه وو او س یې اقاله پرغنمو سره وکړه نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد اقاله پرثمن اول یعنې دراهمو باندې کیږي دغنمو ذکرکول لغوه دی اقاله فسخ بیع ده او فسخ بعینه پرهغو پیسو باندې کیږي پرکومو باندې چې عقد شوی وي نو دثمن اول خلاف شرط لګول باطل دی

(۵) یعنې دمشتري ورکړل شوې پیسې که له بائع څخه هلاکې شي نو دا داقاله دصحت لپاره مانع نه دی بلکې له خپله طرفه دنورو پیسو په ورکولو سره اقاله کولای شي، خو که له مشتري څخه مبیعه هلاکه شوه نو دمبیعه هلاکت داقاله دصحت لپاره مانع دی بائع ته بله مبیعه ورکول او اقاله کول صحیح نه دی ولی اقاله یعنې دبیع رفع کول دقیام بیع مقتضي دی ځکه دمعدوم رفع کول محال دی او بیع په مبیعه پورې قائمه ده ولی اصل مبیعه ده او بیع په ثمنو پورې نه ده قائمه ځکه ثمن پرمنزله دوصف دی نو چې کله مبیعه پاتی نه وي نو بیع هم نه پاتیږي نو اقاله هم نه صحیح کیږي او که بعض مبیعه هلاکه شوې وه نو په باقي مانده کې اقاله صحیح ده ځکه بیع په باقي کې قائمه ده نو بعض پرکل باندې قیاسیږي.

**فائده**: که یې سامان دسامان په عوض خرڅ کړ چې بیع مقایضه ورته ویله کیږي بیا دیوه جانب سامان هلاک شو نو په باقي کې اقاله صحیح ده ولی په بیع مقایضه کې هریو عوض مبیعه هم ده او ثمن هم دی نو چې کوم یو هلاک شوی دی هغه ثمن ګڼل کیږي او چې کوم باقي دی هغه مبیعه ګڼله کیږي او دمبیعه دموجودګۍ په صورت کې بیع سابقه باقي ده نو ځکه اقاله صحیح کیږي. (الدّرالمختار علی هامش ردّالمحتار: ۴/۱۶۸)

**فائده**: داقاله اقاله هم جائزه ده نو که له بیع وروسته متعاقدینو اقاله وکړه بیا یې دغه اقاله هم ماته کړه نو هغه سابقه بیع راګرځي البته په بیع سلم کې داقاله اقاله نه ده صحیح ولی مسلم فیه دین دی چې په اقاله سره ساقطیږي او کوم شی چې ساقط شي هغه بیرته نه راګرځي. (پورتنی حواله)

## باب التولية والمرابحة

داباب دبیع تولیه او مرابحه په بیان کې دی

له ماقبل سره دمناسبت وجه يې داده چې تردي مخکې دهغوبيوعوذکروويه کوموکې چې جانب دمبيعه ملحوظيدی او اوس دهغو بيوعو بيان کوي په کوموکې چې جانب دثمنو ملحوظيږي .

خاص له اقاله سره يې مناسبت دادی چې په اقاله کې نقل دمبيعه دی وبائع ته په ثمن اول سره او په بيع توليه کې هم همداسي دی خوتوليه زياتره له غيربائع سره کيږي او په مرابحه کې هم داقاله په شان نقل المبيع وي مګرپه هغی کې ربح هم وي اوپه هغی کې داهم شرط نه دی چې نقل دمبيع وبائع ته وی نواقاله په نسبت وتوليه اومرابحه ته پرمنزله دمفردمن المرکب دی ولی اقاله يواځی له بائع سره کيږی په داسی حال کې چې بيع توليه اومرابحه له بائع اوغيربائع دواړوسره کيدای شي .

**فائده** :بيع په نسبت دپيسوپرڅلورقسمه ده : مساومه،وضيعه ،مرابحه ،توليه ، مساومه هغه بيع ده په کومه کې چې دثمن اول طرف ته هيڅ التفات نه کيږی پرکوم مقدارچې دمتعاقدينو اتفاق راشي بس هغه سم دی نن سباعام دول همدابيع رواج ده،وضيعه هغه بيع ده چې په کوم مقداريې شی اخيستی وي ترهغه يې په کم قيمت خرڅ کړی ،څرنګه چې دادوه قسمه ظاهردي ځکه يې نه دي بيان کړي دپاتی دووقسمونوتعريفونه مصنف رحمه الله په متن کې بيان کړي دي .

(۱)هِيَ بَيْعٌ بِثَمَنٍ سَابِقٍ وَالمُرَابحَةُ بِهِ وَبِزِيَادَةٍ (۲) وَشَرطُهُمَا كَونُ الثَّمَنِ الاَوَّلِ مِثلِيًا (۳) وَلَهُ اَن يَضُمَّ اِلَى رَاْسِ المَالِ اُجرَةَ القَصَّارِ وَالصَّبغِ وَالطَّرازِ وَالفَتلِ وَحَملِ الطَّعَامِ وَسَوقِ الغَنَمِ (۴) وَيَقُولُ قَامَ عَلَيَّ بِكَذَا (۵) وَلَا يَضُمُّ اُجرَةَ الرَّاعِي وَالتَّعلِيمِ وَكِرَاءَ بَيتِ الحِفظِ

**ترجمه** :توليه بيع ده په ثمن سابق سره اومرابحه بيع ده په ثمن سابق اوپرهغه دزيادت سره ددوئ دواړولپاره شرط دثمن اول مثلی کيدل دی اوبائع ته جائزدی چې يوځای کړي له رأس المال سره ددوبي اجرة ،درنګ اجرة،دنقاش اجرة،دکناره لګوونکي اجرة،دغله باروونکي اجرة،دپسونوشړوونکي اجرة،اووايې دي چې ماته په دومره پروت دی اونه دي ورسره يوځای کوي اجرة دشپانه ،اجرة دتعليم اودحفاظت دمکان کرايه .

**تشريح** : (۱)بيع توليه هغه ده چې په کوموپيسويې مخته اخيستی وي په هماغوپيسويې پربل څاخرڅ کړي بي له زيادة اونقصان نه مثلاً په لس روپۍ يې کتاب اخيستی وويه لس روپۍ يې خرڅ کړ،اوبيع مرابحه هغه ده چې په کوموپيسويې مخته اخيستی دی ترهغوپه زياتوپيسويې پربل خرڅ کړي مثلاً په اته روپۍ يې کتاب اخيستی وويه لس روپۍ يې خرڅ کړ.

(۲)يعني دبيع مرابحه اوتوليه دصحت لپاره داشرط دی چې په عقداول کې ثمن مثلی وي لکه دراهم،دنانير،مکيلی اوموزونی شيان اوعددي متقارب شيان،که چيرته په عقداول کې ثمن مثلی نه وي بلکې ذوات القيم وي مثلاً دکړی ثمن يې آس مقررکړی وونواوس همدغه کړه مرابحةً ياتوليةً خرڅول نه صحيح کيږی ولی مشتری په دغه صورت کې نه هغه آس ورکولای شي اونه دهغه مثل ورکولای شي ،آس ځکه نه شي ورکولای چې مشتري دهغه آس مالک نه دی اودهغه مثل ځکه نه شي ورکولای چې آس له ذوات الامثال څخه نه دی نوخامخابه دآس قيمت ورکوي په داسی حال کې چې دآس قيمت مجهول دی ولی دآس

حتمي قيمت مقررول ممکن نه دی بلکې له اندازې څخه به قيمت ورته مقررېږي او په اندازه کې غلطي کيدای شي نو په قيمت مقررکيدو کې که څه هم حقيقي خيانت نشته مګرشبه دخيانت خوخامخاپکې راځي او په مرابحه اوتوليه کې له شبه خيانت څخه هم ځان ساتل ضروري دی نو ځکه په مرابحه اوتوليه کې ثمن سابق له ذوات الامثال څخه کيدل ضروري دی.

(۳)يعني داجائزده چې دمبيعه دعقداول له ثمنوسره ددوبي اجرة،درنګريز،دنقاش،دګنارې اينبودونکي اجرة يوځای کړي اوکه مبيعه پسونه وونودهغوئ دشړونکي اجرة دهغوئ له قيمت سره يوځای کول صحيح دی همدارنګه که مبيعه غله وه نودغلې له قيميت سره دغله باروونکي اجرة يوځای کول صحيح دی.

**فائده**:په دي باره کې قاعده داده چې دکوم شي په وجه دمبيعه په ذات کې اضافه راځي يادمبيعي قيمت لوړيږي هغه له رأس المال سره يوځای کول صحيح دی نوله مذکوروشيانوڅخه بعض داسي شيان دي چې دهغوپه وجه دمبيعه په ذات کې اضافه راځي اوبعض داسي دي چې دهغوپه وجه قيمت لوړيږي مثلاله يوځای څخه بل ځای ته دغلې اوپسونوپه وړلوسره که څه هم دهغوپه ذات کې اضافه نه راځي مګردهغوئ قيمت لوړيږي. (الدّرالمختارعلی هامش ردّالمحتار:۴/ ۱۷۳)

(۴)مګرچې څوک يې مرابحةً ياتوليةً خرڅوي هغه به داسي وايي چې داشي ماته په دومره (مثلاپه لس روپۍ پروت دی په هغوکې اته روپۍ رأس المال دي دوې روپۍ ددوبي اجرت دی) پروت دی داسي دي نه وايي چې ماپه دومره (مثلالس روپۍ) اخيستی دی چې بيادروغ پکې راځي ولې خريدېې په لس روپۍ نه دی شوی.

(۵)اوکه چيرته مبيعه پسونه وونودپسونودشپانه اجرة دپسونوله ثمن سره يوځای کول جائزنه دی همدارنګه که يې دمبيعه دحفاظت لپاره يوځای کرايه کړی وونودمکان کرايه هم له ثمنوسره يوځای کول نه دی جائز،ولې دادواړه شيان نه دمبيعه په ذات کې اضافه راولي اونه دمبيعي قيمت لوړوي حال داچې دمذکوروشيانويوځای کولوسبب همدادوه شيان دي،همدارنګه که مبيعه مريی وومشتري هغه ته تعليم ورکړنودهغه خرچه هم دمريي له ثمنوسره نه يوځای کيږي ولې په دغه صورت کې دمريي په ماليت کې زيادت راغلی دی مګرداسي صفت په وجه چې هغه خپله په مريي کې موجوددی يعني دمريي ذکاوت اوذهانت،دتعليم اوتعلم په هغه کې هيڅ دخل نشته همداوجه ده چې کاڼوته تعليم بلکل فائده نه رسوي همدارنګه دتجارانوعرف

دادی چې هغوئ دتعليم اجرة له رأس المال سره نه يوځای کوي.

**فائده**:همدارنګه دتاجرلپاره دخپل سفرپه دوران کې خرچه ،کرايه اونورمصارف يوځای کول هم صحيح نه دي،ولې دتجارانوعرف دادی چې هغوئ دااول خرچې دمبيعي له ثمنوسره نه يوځای کوي ، البته که چيرته يوځای دارواج وونوبيايې په يوځای کولوکې هيڅ حرج نشته لمافی

الدّرالمختار:ولايضم اجرة الطبيب ولانفقة نفسه ولااجرعمل بنفسه وكراءبيت الحفظ الااذاجرت العادة بضمه هذاهوالاصل

قال ابن عابدين رحمه الله: (قوله هذاهوالاصل) اى ولولى لنفقة نفسه كمايقتضيه العموم(الدّرالمختارمع الشامية:۴/ ۱۷۳)

**فائده** :نن سبا د حکومت عائد کړیو ټیکسو نو لکه ضلع ټیکس، پل ټیکس، محصول چونکې ظالمانه او جابرانه صورت اختیارکړی دی ددغو اضافی مصارفو دمبیعه له قیمت سره یوځای کول یانه یوځای کول دتجارانو ترعرف پوري موقوف دی نو که چیرته دتجارانو عادت اوعرف دیوځای کولوو نوبیا داسي کول جائزدی که نه داضافی اخراجاتو له اصل قیمت سره یوځای کول جائزنه دی . (حقانیه : ۶/ ۱۴۱)

(۶) فَاِنْ خَانَ فِي مُرَابَحَةٍ اَخَذَهٗ بِكُلِّ ثَمَنِهٖ اَوْرَدَّهٗ (۷) وَحَطَّ فِي التَّوْلِيَةِ (۸) وَمَنِ اشْتَرٰى ثَوْبًا فَبَاعَهٗ بِرِبْحٍ ثُمَّ اشْتَرَاهُ فَاِنْ بَاعَهٗ بِرِبْحٍ طَرَحَ عَنْهُ كُلَّ مَا رَبِحَ قَبْلَهٗ (۹) وَاِنْ اَحَاطَ بِثَمَنِهٖ لَمْ يُرَابِحْ (۱۰) وَلَوِ اشْتَرٰى مَاْذُوْنٌ مَدْيُوْنٌ ثَوْبًا بِعَشَرَةٍ وَبَاعَ مِنْ سَيِّدِهٖ بِخَمْسَةَ عَشَرَ يَبِيْعُهٗ مُرَابَحَةً عَلٰى عَشَرَةٍ وَكَذَا الْعَكْسُ.

**ترجمه** :بیا که یې په مرابحه کې خیانت وکړنو یادي په ټولو پیسو واخلي یادي ردکړي او په تولیه کې دي کم کړي،او که چاکپړه واخیسته بیایې خرڅه کړه په ګټه سره بیایې واخیسته بیا که یې په ګټه خرڅه کړه نو ساقطه دي کړي له هغه څخه ټوله سابقه ګټه او که محیطه شي نفع پر ثمن نو بیا دي په ګټه نه خرڅوي او که واخیسته ماذون مقروض مریي کپړه په لس درهمه او خرڅه یې کړه پر خپل بادار باندي په پنځلس درهمه نو هغه دي خرڅه کړي په نفع سره په لس درهمه کې او همدا رنګه ددي برعکس .

**تشریح** : (۶)یعني که مشتری ته په بیع مرابحه کې دبائع خیانت معلوم شو(مثلاً په پنځه روپۍ یې شی اخیستی وو ده وویل چې په اته روپۍ مي اخیستی دی) نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد مشتری ته اختیار دی یادي په ټولو پیسو واخلي اویادي بیع فسخ کړي ولی په مرابحه کې په خیانت سره بیع له عقد مرابحه څخه نه ده وتلې اوس هم بیع مرابحه ده،البته دمشتری دنارضایت په وجه بیع فسخ کول جائزدی اوپه پیسو کې کمبوت کول جائزنه دی ولی بائع په دي نه دی راضي چې له ثمن مسمّی څخه په کمو پیسو مبیعه دده له لاسه ووځي.

(۷)که په بیع تولیه کې دبائع خیانت معلوم شو(مثلاً په پنځه روپۍ یې شی اخیستی وو ده ویل په اته روپۍ می اخیستی دی) نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد دخیانت په اندازه دي روپۍ کمي کړي ولی که چیرته دخیانت په اندازه روپۍ کمي نه کړي نو دابیع بیابیع تولیه نه پاتیږی بلکې بیع مرابحه ګرځي ولی تولیه هغه بیع ده چې پرثمن اول باندي منعقده وي په داسی حال کې چې دابیع ترثمن اول په زیاتو باندي منعقده شوې ده چې دهغه په وجه تصرف بدل شویعنې بیع تولیه په بیع مرابحه بدله شوه اوتصرف بدلیدل جائزنه دی نوخامخا به په پیسو کې کمبوت راولي .

**فائده** :مګرامام ابویوسف رحمه الله فرمایلي دي چې بیع که تولیه وي که مرابحه وي په دواړو صورتونو کې چې کله دبائع خیانت معلوم شی نو په قدردخیانت روپۍ کمیږي اودامام محمد رحمه الله په نزد په دواړو کې نه کمیږي البته مشتری لره اختیارشته چې که یې دټولو روپو په عوض اخلي او که یې پریږدي بیع فسخ کوي ولی متعاقدینو په اختیارسره دمعلومو روپو په عوض پخپل منځی رضامندی سره عقدکړی دی نوعقد منعقد کیږی پاتی شود تولیه او مرابحه ذکرېو اځی دترویج اوترغیب لپاره دی نو دادوصف مرغوب په

درجه کې دی او دوصف مرغوب دفوت کیدوپه صورت کې مشتری لره اختیار وي په دغه صورت کې هم مشتري ته دبیع دفسخ کولو اختیار شته .

**فائده** :دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله :والراجح قول الامام ابی حنیفة رحمه الله لمافیه من الاحتیاط و الاحتراز عن الشبهات خصوصا فی العقود الربویة ومال الی ترجیحه صاحب الهدایة وایده ابن الهمام فی الفتح وصاحب البحر الرائق (هامش الهدایة:۳/۷۳)

(۸) که یو چا یوه کپړه مثلا په شل روپۍ واخیسته بیا یې په دیرش روپۍ خرڅه کړه له هغه وروسته یې بیا له هغه مشتري څخه په هغه قیمت یعني شل روپۍ واخیسته اوس که هغه غواړي چې دوباره دا کپړه مرابحةً خرڅه کړي نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد به سابقه ټوله ګټه له هغه څخه کموي چې هغه لس روپۍ دي نو داسي به وایې چې دا کپړه ما ته په لس روپۍ پروته ده داسي به نه وایې چې په شل روپۍ راته پروته ده ولې هغه لس روپۍ چې په عقد اول سره ګټه لاس ته راغلي وې دهغې ګټې دحصول شبه له عقد ثاني څخه هم ثابت دي ولې تر دوهم عقد مخکې دهغو دساقطید و امکان شته په دي ډول چې مشتری به دهغې کپړې په کوم عیب باندي خبر شي او دهغه عیب په وجه به دا کپړه واپس کړي او خپلې دیرش روپۍ به واخلي خو چې کله دوهم عقد تر سره شو نو اوس دانفع مستحکمه شوه نو دلس روپۍ ګټه حقیقة خو په اول عقد سره حاصله شوې ده مګر څرنګه چې په دوهم عقد سره دا ګټه مستحکمه شوې ده ځکه شبههٔ له دوهم عقد څخه هم ثبوت راځي نو داداسي دی ګواکي په دوباره عقد کې هغه په شل روپۍ یوه کپړه او لس روپۍ اخیستي دي نو لس روپۍ دلسو روپو په عوض کې شوې او کپړه دلسو روپو په مقابله کې پاتې شوه نو اوس هغه پر لسو روپو باندي مرابحه کولای شي .

(۹) او که په اول ځل دومره ګټه تر لاسه شوې وه چې داصل قیمت سره برابره یا تر هغه هم زیاته وه مثلا په څلور روپۍ یې کپړه اخیستې وه په لس یا اته روپۍ یې خرڅه کړه بیا یې هغه کپړه هغه له هماغه مشتری څخه دوباره په څلور روپۍ واخیسته نو اوس دغه کپړه مرابحةً نه شي خرڅولای بلکې از سرِ نو به یې په کوم قیمت چې یې خوښه وي خرڅه کړي ولې په لومړي ځل چې کومه ګټه ده لره حاصله شوې وه دهغه دکمولو نه وروسته ثمن پاتې نه شوې نو پر څه شی باندی مرابحه کوي مرابحه خو داده چې تر اول قیمت یې زیاته خرڅ کړی ،دصاحبینو رحمهما الله په نزدیې په دي دواړو صورتونو پر ثمن آخیر باندی په ګټه خرڅولای شي ولې دا دوهم عقد جدید عقد دی چې له اول سره یې هیڅ تعلق هم نشته نو مرابحه که پر دویم عقد باندي بناء شي په دي کې څه حرج نشته .

**فائده** ،دامام ابو حنیفة رحمه الله قول احوط او دصاحبینو رحمهما الله په قول کې دخلکو لپاره آساني ده ، پر دواړو باندی فتوای ورکول کیدای شي خو دامام صاحب رحمه الله قول دقوة دلیل په لحاظ سره راجح دی لمافی الدّر المختار:واعلم ان قول الامام اولی ای احوط لماعلمت ان الشبهة کالحقیقة هنا للتحرز عن الخیانة خلافالهما وهوارفق فمن اخذبقوله فقداخذبالاحتیاط ومن اخذبقولهما او التابه فلاباس به وهوارفق بالناس بل قوله هو الراجح من جهة الدلیل. (الدر المختار مع الشامیة:۳/۱۷۳)

**فائده** : دغه اختلاف په هغه صورت کې دی چې بائع دچا په لاس دغه کپړه مرابحةً خرڅه کړی ده هغه پر کوم بل چا نه وي خرڅه کړی که نه په اتفاق سره پر ثمن آخیر باندی مرابحه جائزه ده

،همدارنګه دغه اختلاف هغه وخت دی چې بائع مشتري ته تفصیل نه وي ورکړی او که چیرته بائع مشتری ته تفصیل ورکړی وو چې مامبیعه په دومره خرڅه کړه او بیامي په دومره واخیسته او س یې پرتاباندي په دومره باندی مرابحهٔ خرڅوم نو بیا په اتفاق سره جائزه ده .

(۱۰) که یو ماذون قرضدار مریې یوتان په لس روپۍ واخیست بیایې پرخپل بادار باندی په پنځلس روپۍ خرڅ کړ نو اوس که چیرته بادارغواړي چې مرابحهٔ دغه تان خرڅ کړی نو اصل قیمت لس روپۍ به ورته ښیي همدا حکم ددي برعکس هم دی یعنی که چیرته مولی تان په لس روپۍ واخیست بیایې پرخپل مریې باندی په پنځلس روپۍ خرڅ کړ او س که مریی غواړي چې مرابحهٔ یې خرڅ کړي نو اصل قیمت لس روپۍ به ورته ښیي وجه یې داده چې دمولی او دهغه مریی ترمنځ دبیع دنه جوازشبه شته حقیقتًا جائزه ده ولی دامریی دقرض په وجه دقرضدارانو ملک دی نو دمولی او مریې ترمنځ دمالک او مملوک نسبت نه دی پاتی ځکه نو ددوئ ترمنځ بیع جائزه ده مګردنه جوازشبه یې ځکه شته چې ترڅوپوری دامریی قرضداران له مولی څخه وانه خلی ترهغه پوری دامریی دمولی ملک شمارل کیږی نوله دغه مریې څخه دمولی خرید ګواکي خپل ملک اخیستل دی او په دوهم صورت کې ګواکی مولی خپل ملک پرخپل ځان خرڅ کړی دی ظاهره خبره ده چې دانا جائزدی نو دعدم جوازشبه پیداشوه او په بیع مرابحه کې له شبهی څخه هم ځان ساتل ضروري دی نو دمولی او مریې ترمنځ واقع شوې بیع معدومه شمارده او اولی بیعی لره اعتباردی نو په اول صورت کې ګواکی مریې تان په لس روپۍ دمولی لپاره اخیستی دی او په دوهم صورت کې ګواکی مریی هغه تان دمولی لپاره خرڅوي نو چې هرکله دوهم عقدمعدوم دی اوله بیع معتبره ده نو مرابحه کول پرهغو ثمنو جائزه کیږی کوم چې په بیع اوله کې مذکوردی کوم چې په بیع ثانی کې موجوددی پرهغه باندی مرابحه نه رواکیږی او په اوله بیع کې ثمن لس روپۍ دي نو پرهغو لسو باندی مرابحه جائزه ده .

(۱۱) وَلَوْ كَانَ مُضَارِبًا يَبِيعُ مُرَابَحَةً رَبُّ الْمَالِ بِاثْنَى عَشَرَ وَنِصْفٍ (۱۲) وَيُرَابِحُ بِلَابَيَانٍ بِالتَّعَيُّبِ وَوَطْيِ الثَّيِّبِ (۱۳) وَبِبَيَانٍ بِالتَّعْيِيبِ وَوَطْيِ الْبِكْرِ (۱۴) وَلَوِ اشْتَرَى بِأَلْفٍ نَسِيئَةً وَبَاعَ بِرِبْحِ مِائَةٍ وَلَمْ يُبَيِّنْ خُيِّرَ الْمُشْتَرِي (۱۵) فَإِنْ أَتْلَفَ فَعَلِمَ لَزِمَهُ بِأَلْفٍ وَمِائَةٍ (۱۶) وَكَذَا التَّوْلِيَةُ (۱۷) وَمَنْ وَلَّى رَجُلًا شَيْئًا بِمَا قَامَ عَلَيْهِ وَلَمْ يَعْلَمِ الْمُشْتَرِي بِكَمْ قَامَ عَلَيْهِ فَسَدَ (۱۸) وَلَوْ عَلِمَ فِي الْمَجْلِسِ خُيِّرَ.

**ترجمه** : که بائع مضارب بالنصف وو نو پرربِ المال دی مرابحهٔ په دوولس نیمی خرڅ کړي او بیع مرابحه کولای شي بیله بیانه که چیرته مبیعه خپله عیب داره شوې وه یا یې له ثیبه سره وطی کړې وه او په بیانولو سره که چیرته یې معیوبه کړې وه یا یې له باکره سره وطی کړې وه او که یې یو شی اخیستی وو په قرض په یوزرروپۍ او خرڅ یې کړ په سل روپۍ ګټه باندی او بیان یې ونکړ نو مشتری ته اختیارورکول کیږی پس که چیرته یې تلف کړه بیا هغه ته معلومه شوه نو لازمیږی په یوزریوسل (یوولس سوه) باندی او همدارنګه تولیه ده او که چا بل په لاس یو شی په هغه قیمت سره خرڅ کړ په کوم قیمت چې ده ته پروت وو او مشتری ته معلومات نه وو چې ده ته په څومره پروت دی نو فاسدیږی او که پرې خبرشو په مجلس کې نو اختیارورکول کیږی .

**تشريح** : (۱۱)دمسئلې صورت دادی چې مثلايوچالس درهمه په مضاربت بل چاته ورکړل اودايې شرط کړچې ګټه به موسره نيمی وي مضارب په لس درهمه يوتان واخيست اوپررب المال يې په پنځلس درهمه خرڅ کړنوظاهره ده چې له پنځلسو درهمو څخه دوه نيم درهمه درب المال نفع ده نوکه چيرته رب المال هغه تان پربل چامرابحةً خرڅاوه نوداسی به ورته وايې چې داکپړه ماته په دوولس نيم درهمه پروته ده داسی به نه ورته وايې چې په پنځلس درهمه راته پروت دی ولی داسی ويناکول دروغ دي .

**فائده** : دامام زفر رحمه الله په نزددمضارب پرخپل رب المال باندی داکپړه خرڅول نه دی جائزولی داکپړه هم درحقيقت درب المال مال دی اوپنځلس درهمه هم درب المال مال دی اوپه بيع کې له مبادلة المال بالمال څخه مبادلة المال بمال الغيرمراده په داسی حال کې چې دلته خومبادلة المال بمال نفسه ده ،احنافوجواب ورکړی دی چې مال دمضاربت ترڅوچې دمضارب په لاس کې وي رب المال په هغه کې هيڅ تصرف نه شی کولای اوچې کله يې له مضارب څخه واخلی نوبيارب المال ته دتصرف کولواختيار حاصليږی نودابيع صحيح ده ولی داملک تصرف فائده کوي اودبيع دصحت مداريرفائده دی نه پرعين ملک باندی ،خوبياهم په دغه بيع کې شبهَ شته ولی مضارب چې کله کپړه اخيستله په هغه وخت کې دی من وجه درب المال وکيل وواودوکيل پرخپل موکل باندی شی خرڅول ناجائزدی ځکه يې نودنيمی ګټې په باره کې دوهمه عقدمعدوم شمارکړ.

(۱۲)که په مبيعه پخپله يونقصان راپيداشويامبيعه ثيبه منځه وه مولی صحبت ورسره وکړنوددې دواړوخبروله بيانولوپرته پربل باندی مرابحةً خرڅول صحيح دي يعنې دابيان کولوته ضرورت نشته چې دامبيعه ماله عيبه سالمه په دومره اخيستې وه بيابه هغی کې داعيب زماله لاسه پيداشوله دغی منځی سره ماصحبت کړی دی ولی په اول صورت کې له ده سره له مبيعی نه هيڅ شی نه دی کم شوی يواځی دمبيعه په اوصافوکې تغيرراغلی دی اوصاف خوتابع وی چې په مقابله کې يې ثمن نه وي اوپه دوهم صورت کې مالک منافع دبضع حاصلی کړي دی چې دهغوپه مقابله کې هم ثمن نه وي البته مشتری ته له معلوماتووروسته دوصف دفوت کيدو په وجه دااختيارورکول کيږی چې هغه يې يادتولوپيسوپه عوض واخلی اويايې پريږدي

(۱۳)البته که اول مشتری قصداً عيب داره کړه يامنځه باکره وه هغه صحبت ورسره وکړنو دمرابحةً خرڅولوپه وخت کې ددي دواړوخبروظاهرول ضروري دی ولی په لومړي صورت کې په تلفيدوسره وصف مقصودی شونوګواکی هغه دمبيعی يوجزء ځان ته ګرځولی دی اوپه داسي صورت کې بيله بيان کولوڅخه پرچاباندی مرابحةً خرڅول جائزنه دی اوپه دوهم صورت کې دباکره پرده دمنځی دتن يوجزء دی چې په مقابله کې يې ثمن وي حال داچې اول مشتری هغه جزء له منځه وړی دی نوګواکی هغه ځان ته ګرځولی دی نودمرابحةً خرڅولوپه وخت کې هغه عيب ښکاره کول ضروري دی .

(۱۴)که يوچايوشی په زرروپۍ قرضواخيستی وويبايې په سل ګټه روپۍ خرڅه کړه مګردايې ښکاره نه کړه چې ماپه قرض اخيستی ده وروسته مشتری ته معلومه شوه چې هغه په زرروپۍ قرضواخيستی وه نوپه دغه صورت کې مشتری لره اختياردی که يې زړه وي په يوولس سوه دي واخلی اويادي پريږدي ولی

دقرض وله مبیعه سره مشابهت شته همدا وجه ده چې دمودې په وجه قیمت لوړېږي او په باب دمرابحه کې شبه دحقیقت ملحقه وي نو ګواکې بائع دوه شیان په زر روپۍ قرض اخیستي وو بیایې ددواړو قیمت هغه ته یو وبنود هغه یو یې مرابحةً خرڅ کړنو ددغه خیانت په وجه مشتري ته اختیار ورکول کیږي چې یا دې دټولو پیسو په عوض واخلي او یا دې پریږدي.

(۱۵) او که دوهم مشتري مبیعه ورکه کړه وروسته هغه ته معلومه شوه چې بائع خو په یو زر روپۍ قرض اخیستي وه او پر ما باندې یې په یوولس سوه نقد وخرڅه کړه نو دی به هماغه یوولس سوه روپۍ ورکوي ولې دمودې په مقابله کې حقیقةً ثمن نه وي البته دشبهې په وجه دوهم مشتري ته دفسخ اختیار ورکړل شوی وو او هغه هم هغه وخت چې مبیعه موجوده وي او س څرنګه چې مبیعه نشته نو دهغې په مقابل کې دثمنو هیڅ حصه نه ساقطیږي.

(۱۶) او مذکور حکم دتولیه هم دی یعنی که دمبیعه دوجود په صورت کې دتولیه په ډول خرڅونکی داخیانت ښکاره شي چې هغه په قرض اخیستي وه نو او س دوهم مشتری لره اختیار شته که یې دټولو پیسو په عوض اخلي او که یې واپس کوي لما قلنا، او که مبیعه له لاسه وتلې وه نو بیا چې کوم قیمت مقرر شوی دی هغه به ورکوي. کما في بیع المرابحة.

**فائده**: امام ابویوسف رحمه الله فرمایلي دي چې دوهم مشتری به دمبیعه قیمت واپس کوي او له اول مشتری څخه به پوره ثمن اخلي دا په هغه صورت کې کیږي چې دمبیعه قیمت کم وي او ثمن زیاتي وي او که دمبیعی قیمت تر ثمنو زیات یا برابر وو نو بیا دوهم مشتري ته دتبدیلی هیڅ ضرورت نشته، فقیه ابوجعفر رحمه الله فرمایې چې دنقد او قرض دي په ثمنو کې موازنه وشي ددواړو ترمنځ چې څومره فرق وي دوهم مشتری دي هغه واپس واخلي مثلاً دمبیعه نقد قیمت اته روپۍ دي او قرض لس روپۍ دی نو دوهم مشتری به له اول مشتری څخه دوې روپۍ واپس اخلي، همدا قول راجح دی لما في الدر المختار: قال ابوجعفر رحمه الله المختار للفتوی الرجوع بفضل ما بین الحال والمؤجل بحر ومصنف، قال ابن عابدین رحمه الله: ومثله في الزیلعي معللا بالتعارف. (الدر المختار مع الشامیة: ۱۷۷/۴)

(۱۷) که چا پر بل باندې یو شی تولیةً خرڅ کړ یعنی داورته وو ایې خرڅ یې کړی چې ماته په څومره پروت دی په هغو مره یې پر تا باندې خرڅوم او مشتری ته دا معلومات نشته چې بائع ته په څومره پروت دی نو دا بیع فاسده ده ولې ثمن مجهول دي.

(۱۸) او که په هماغه مجلس کې داورته معلومه شي چې اول مشتری ته په څو پروت دی نو بیا دا بیع صحیح ده ولې دمجلس دنه بدلیدو په وجه فساد نه دی مستحکم شوی چې کله په آخر د مجلس کې دثمنو مقدار معلوم شو نو دا داسې دی لکه په اول دمجلس کې چې دثمنو مقدار معلوم شوی وي، البته ده لره اختیار شته که یې اخلي او که یې پریږدي ولې په ثمنو تر علم مخکې دمشتری رضا تامه نه ده ځکه نو هغه ته اختیار ورکړل شوی دی.

## فصل

ځرنګه چې ددغه فصل مسائل دبيع مرابحه اوتوليه په ډول پرقيدزائدباندي مشتملي دي نوددغه فصل له مرابحه اوتوليه سره مناسبت شته مګرځرنګه چې دمرابحه اوتوليه له قبيل څخه نه دي ځکه دجلافصل په عنوان سره ذکرکړاى شوى دي .

(۱)صَحَّ بَيۡعُ الۡعَقَارِ قَبۡلَ قَبۡضِهِ (۲) لَابَيۡعُ الۡمَنۡقُولِ (۳) وَلَوِاشۡتَرٰى مَكِيۡلًا كَيۡلًا حَرُمَ بَيۡعُهُ وَاَكۡلُهُ حَتّٰى يَكِيۡلَهُ (۳) وَمِثۡلُهُ الۡمَوۡزُوۡنُ وَالۡمَعۡدُوۡدُ (۵)لَاالۡمَذۡرُوۡعُ (٦) وَصَحَّ التَّصَرُّفُ فِي الثَّمَنِ قَبۡلَ قَبۡضِهِ (۷) وَالزِّيَادَةُ فِيۡهِ وَالۡحَطُّ مِنۡهُ وَالزِّيَادَةُ فِي الۡمَبِيۡعِ (۸) وَيَتَعَلَّقُ الۡاِسۡتِحۡقَاقُ بِكُلِّهِ (۹) وَتَاجِيۡلُ كُلِّ دَيۡنٍ غَيۡرِ الۡقَرۡضِ .

**ترجمه**: صحيح ده دځمكي بيع دهغي ترقبض كولو مخكي نه بيع دمنقول شي ،اوكه يې واخيست مكيلي شى په كيل سره نودهغه خرڅول اوخوراك ترهغه حرام دى ترڅوچې ناپ يې كړي اوهمداسي دي موزوني اوعددي شيان نه هغه شى چې په ګزسره ناپ كيږي اوصحيح دى تصرف كول په ثمنوكې ترقبض كولو مخكې اوزيادت كول په هغوكې اوكمبوت كول له هغونه اوزيادت كول په مبيعه كې ، اومتعلق كيږى استحقاق له دغوټولو سره اوصحيح دى مؤخركول دهرډول پور غيرله قرضونه .

**تشريح** : (۱)يعنې دشيخينورحمهماالله په نزدكه مبيعه ځمكه وه نومخكې ترقبض كولويې خرڅول جائزدى ولى دځمكى هلاكيدل نادرالوقوع دى نوپه هغى كې دفسخ بيع احتمال نشته،مګرداامام محمد رحمه الله په نزدځمكه مخكى ترقبض كولوخرڅول ناجائزدى لقوله ﷺ: اذااشتريت شيئًافلاتبعه حتى تقبضه (كله چې تاسى يوشى رانيسئ نوهغه مه خرڅوئ ترڅوچې قبض يې نه كړئ ) همدارنګه امام محمد رحمه الله ځمكه پرمنقولي شيانوباندي قياسوي .

**فائده** :دشيخينورحمهماالله قول راجح دى لمافى الدّرالمختار:صح بيع عقار لايخشى هلاكه قبل قبضه من بائعه لعدم الغرر لندرة هلاك العقارحتى لوكان علواوعلى شطط نهرونحوه كان منقولافلايصح اتفاقا.(الدرالمختارعلى هامش ردّالمحتار:۴/ ۱۸۱)

**فائده** : سوال دادى چې شيخينورحمهماالله چې دجوازتعليل بيان كړى دى داتعليل په مقابله دنص كې دى اوتعليل په مقابله دنص كې مقبول نه دى ؟ جواب : دانص مخصوص منه البعض دى ولى په مهراوثمنوكې قبل القبض تصرف كول په اتفاق سره جائزدى اودنص مخصوص منه البعض تخصيص په قياس سره جائزدى نودغه نص پرمنقولى شيانوباندي حمل كيداى شي .

**فائده** :معنوى قبضه ياضمان راتلل هم كافى دى مثلاماسل بورى غنم واخيستل اوهغه ماخپل ګودام ته نه دي راوړي بلكې يوبل څوك مى وكيل وګرځاوه چې ته زماله طرفه هغه سل بورى له بائع څخه وصول كړه نوځرنګه چې دوكيل په قبض كولوسره دهغوغنموضمان ماته منتقل شوى دى ځكه نوددغو غنموخرڅول ماله جائزدى مثلاماسل بورى غنم واخيستل اوتراوسه لاهغه دبائع په ګودام كې پراته دي خوبائع تخليه كړې ده اودايې راته ويلى دى چې داستاغنم زماپه ګودام كې پراته دي چې كله يې وړي يوسې سه زه يې له نن ورځى بعدذمه وارنه يم كه داغنم خراب شي ياتباه شي نوستاذمه داري ده په دغه صورت كې كه څه هم ماپه حسى ډول هغه نه دي قبض كړى خوځرنګه چې هغه زماپه ضمان كې راغلي دي نوځكه يې ماله خرڅول

جائزدی وجه یې داده چې په حسی قبضه لازمولوسره حرج شدید راځي ولې ځینې وختونه چې مبیعه دبائع له گودام څخه دمشتري گودام ته انتقالوي پردې باندې په زرگونه بلکې په لکونوروپۍ مصرف راځي .
(تقریرترمذی : ۱/ ۱۱۸)

**فائده** :ځینې خلک له بیرون ملک څخه مالونه راغواړي او هغه مالونه ترراړسید ومخکې خرڅوي او داځکه کوي چې دوئ ډاریږي چې دمال ترراړسید وروسته هسې نه مال ته تاوان ورسیږي نوځکه چې دمال بیع ترقبض کولومخکې شرعًاناجائزه ده نو دهغه متبادل جائزصورت دادی چې دمال ترراړسید ومخکې دې بیع نه کوي بلکې وعده دې کوي بیع دې هغه وخت وکړي چې کله مال راورسیږي په دغه صورت کې که له جانبینوڅخه یوانکار

وکړي نويواځې دوعده خلافي گناه به وي پربیع باندې هغه نه شي مجبورکیدای . (احسن الفتاوی :۶/ ۵۲۶)

(۲)قوله لابیع المنقول ای لایصح بیع المنقول ،یعنې که چامنقولي شې واخیست نوچې ترڅوپورې یې هغه قبض کړی نه وي دهغه خرڅول جائزنه دي ولې ممکن دی چې منقولي شې چې تاله چاڅخه اخیستی دی هغه ستادبائع په لاس کې هلاک شي نوظاهره خبره ده چې تاپرکوم چاباندې خرڅ کړی دی له هغه سره به بیع فسخ کوې نوبه دې کې تامشتري ته یوقسم دوکه ورکړه نوداډول بیع جائزه نه ده .

(۳)یعنې که چامکیلي شې په کیل واخیست نوترڅوچې هغه خپله ناپ کړي دهغه خرڅول یاخوړل مکروه تحریمي دي لحدیث جابر انه ﷺ نهی عن بیع الطعام حتی یجری فیه صاعان صاع البائع وصاع المشتری.(یعنې پیغمبرعلیه السلام له بیع دطعام څخه منع فرمایلې ده ترڅوچې په هغې کې دوې کاسې جاري نه شي یودبائع تول اوبل دمشتري تول (له بائع څخه مراداول مشتري دی چې صورت یې داسې دی : زیدله بکرڅخه غنم واخیستل اوپرخالدیې خرڅ کړل نوداغنم به یوځل زیدناپوي بل ځل به یې خالد ،په حدیث شریف کې زیدبائع بلل شوی دی اوخالدمشتری ) بله وجه یې داده چې ممکن دی دبائع (زید) ترښودل شوي مقدارزیات شي نوهغه زائدخودبائع دی په هغه کې دمشتری تصرف ناجائزدی ولې دبل په مال کې تصرف کول حرام دی .

**فائده** :په کیلي شیانو کې دمشتری تصرف په هغه صورت کې ناجائزدی چې دبیع ترانعقادمخکې دمشتری په نه موجودگی کې بائع هغه پیمانه کړي وي که نه دبیع ترانعقادوروسته که دمشتری په موجودگی کې بائع پیمانه کړي ده نوپه هغه صورت کې همدایوه پیمانه کافي ده ولې دمبیعي مقدارمعلوم شواوس په هغې کې دتصرف کولوڅخه دغیرپه مال کې تصرف کول نه لازمیږي . (ردالمحتار :۴/ ۱۸۴)

**فائده** :نن سبادیرشیان د مختلفووزنونوپه ډبواوپاکټونوکې بندوي ،گراک دوکاندارته وایې چې فلان شی یویادوه کیلوراکړه دوکاندارهغه یوسیرډبه یاپاکټ راواخلي ورکوي یې ،نه یې دوکاندارخپله تول کوي اونه یې گراک تول کوي نوځکه چې دبائع اومشتری دواړومقصدهغه خاص ډبه اولفافه (پاکټ) وي پرهغه لیکلی شوی وزن په بیع کې مشروط نه وي نوبیله وزن کولونه په هغه کې تصرف جائزدی . (احسن الفتاوی : ۶/ ۴۹۹)

(۴)مذكورحكم دهغوشيانوهم دى چې په وزن ياشميرلوسره خرڅيږى چې دمشترى لپاره يې له دوباره تول كولوياشميرلو بغيرخرڅول ناجائزدى ولې په دغوشيانوكې هم داامكان شته چې دبائع ترښودل شوې مقدار
زيات شى اوزيات خودبائع دى چې په هغه كې مشتري ته تصرف كول نه دى جائز.

(۵)البته كوم شيان چې په گزونوسره خرڅيږى هغه له قبض كولووروسته په گزونوسره له ناپ كولونه مخكى خرڅول جائزدى ولې په داسى شيانوكې كه زيادت راشى نوهغه دمشتري دى ځكه گزدمبيعى يووصف دى اووصف دمبيعى تابع وى نوچې كله دازيادت مشتري لره ثابت شونودبل په مال كې تصرف نه لازميږى حال داچې ترناپ تول مخكى تصرف كول په دي وجه ناجائزووچې ترناپ تول مخكى په تصرف كولوسره دبل په مال كې دتصرف كولواحتمال وو.

(۶)په ثمنوكې ترقبض مخكى تصرف كول جائزدى يعنې تربيع وروسته بائع لره جائزدى چې كومې پيسى چې دمشترى پرذمه دي دهغوپه عوض له مشترى يابل چاڅخه يوشى واخلي ددغه خريد لپاره ثمن قبض كول دبائع لپاره شرط نه دى ولې په ثمنوكې دتصرف اجازه وركوونكى شى يعنى مِلك دبائع قائم دى اوپه ثمنوكې په تصرف كولوسره دبيع دفسخ احتمال هم نشته ولې دثمن معين دهلاكت په صورت كې بيع نه فسخ كيږى نوپه ثمنوكې دتصرف كولوڅخه هيڅ مانع موجودنه دى ځكه په ثمنوكې تصرف كول جائزدى.

(۷)يعنې مشتري ته جائزده چې دبائع لپاره په پيسوكې اضافت توب وكړى په دي شرط چې مبيعه هلاكه شوې نه وي،همدارنگه كه مشترى له بائع څخه څه پيسى كمى كړى يابائع په مبيعه كې څه اضافه كړي نوداهم جائزدى ولى بيع پردري قسمه ده :عادله،خاسره،رابحه،عادله هغه بيع ده چې نه تاوان پكې وي نه گټه،اوخاسره هغه بيع ده چې تاوان پكې وي اورابحه هغه بيع ده چې گټه پكې وي تاوان نه وي پكې،دبيع دادري واړه قسمونه جائزدي نودپيسوپه كمولويازياتولواوپه مبيعه كې په اضافه كولوسره زيات ترزيات دافرق راځي چې بيع له يوه قسم څخه بل قسم ته اوړي مثلاكه په لومړي ځل بيع عادله وي نودپيسوپه زياتولوسره دبائع په حق كې بيع خاسره كيږي اودمشترى په حق كې رابحه كيږى يعنې بيع له يوه وصف څخه بل وصف ته متغيره شوه چې هيڅ قباحت نشته پكې ولې بائع او مشتري خوداصل عقد دفسخ كولوهم اختيارلري نودبيع له يووصف څخه بل وصف ته دمتغيركولو خوپه طريقه اولى سره اختيارلري ولې په وصف كې تصرف كول په اصل شي كې ترتصرف كولوآسان وي.

(۸)داكمى اوزياتى له اصل عقدسره محلق كيږى نوتركمبوت اوزيادت وروسته چې پركوم مقداربانـدى عقدوكړاى شى له بائع اومشتري څخه هريودهغه استحقاق لري مثلامشترى لس كيږي دسلوروپوپه عوض واخيستى بيايې بائع ته لس روپى نورې اضافه كړي اوس دمبيعى يوبل څوك مستحق پيداشونومشتري به يوسل لس روپى له بائع څخه واپس اخلى همدارنگه

مشتري لره دا حق نشته چې د مبيعې طلب وکړي تر څو چې ثمن سره له اضافي بائع ته ورونه سپاري، او د بائع دا حق شته چې مبيعه وګرځوي تر څو چې ثمن سره له اضافه وصول کړي .

**فائده** :دامام زفر رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نزد کمبوت او زيادت له اصل عقد سره ملحقول نه دي صحيح بلکې په ثمنو کې اضافه کول د مشتري له طرفه از سرنو احسان او هبه ګڼله کيږي او د بائع له طرفه په مبيعه کې اضاف کول ابتداءً هبه شمارله کيږي ولې مشتري چې په څومره پيسو سره مبيعه اخيستي ده دهغه مقدار عوض دي دټولې مبيعې مالک ګرځيدلی دی اوس چې په پيسو کې کومه اضافه توب کوي هغه دمبيع دکوم جزء په مقابل کې کيږي په داسې حال کې چې دمبيعې ټوله اجزاء خپله دمشتري په ملک کې راغلي دي نو اضافه پيسې دمشتري دخپل ملک عوض ګرځي حال دا چې ديوچا ملک خپله دهغه دملک عوض کيدل ناجائز دی .

(۹) هر دول پور (مثلا ديوشي قيمت وغيره چې دچا پر ذمه وي) که چيرې مالک وغواړي چې موده ورکړي نو ورکولای يې شي بيا دمقرره وخت څخه مخکې دهغه دغوښتلو اختيار نه لري ولې مالک لره خود اختيار هم شته چې دی مديون له دين څخه بري کړي نو دموده ورکولو اختيار خو په طريقه اولی سره لري مګر قرض ته موده ورکول صحيح يعني لازم نه دی (مثلا يو چا ته يې سل روپۍ په قرض ورکړې يوه مياشت وخت يې ورکړ نو لس ورځې وروسته هم دی دواپس کولو مطالبه کولای شي دمياشتې تر تيريدو پوري انتظار پر ده باندې لازم نه دی ) ولې قرض ابتداءً تبرع ده او په تبرع کې جبر نشته .

**فائده** :که يو چا وصيت وکړ چې زما دمال له دريمې څخه فلان شخص ته زر روپۍ تر يوه کال پورې قرض ورکړئ نو دا جائز دی ورثه بيا دکال تر تيريدو مخکې دهغه زرو ،روپو دمطالبې حق نه لري ولې په وصيت کې دوصي دمراعات په خاطر چشم پوشي کيږي چې په نورو قرضونو کې نه کوله کيږي .

## بَابُ الرِّبٰوا

### داباب دی په بيان کې دسود

ربوا په لغت کې مطلق زيادت ته وايي او شرعي تعريف يې شيخ خالد الاتاسي په دي الفاظو کې کړی دی : هو أی (الربا) فضل خال عن عوض بمعيار شرعي مشروط لأحد المتعاقدين في المعاوضة) يعني ربوا هغه زيادت دی چې بيله عوضه په شرعي معيار سره دا حد له متعاقدينو لپاره په معاوضه مالي کې شرط کړای شوی وي ،وړاندې يې ليکلي دي : والمراد بالفضل مايعم الحكمي وهو ربا النسأ كمايأتي، والمراد بالمعيار الشرعي الكيل والوزن فليس في المذروعات والعدديات ربا (الفضل) وخرج بالمتعاقدين مالو شرط الفضل لغيرهما فانه لايكون ربا. (شرح المجلة: ۲/ ۳۳۲)

دباب ربوا له ماقبل سره مناسبت دادی چې په بيع مرابحه کې هم زيادت وي او په ربوا کې هم ،مګر اول حلال او دوهم حرام دی او په شيانو کې اصل حلت دی ځکه يې دبيع مرابحه بيان مخکې کړی دی او دربوا بيان يې وروسته کړ .

دربوا حرمت په كتاب الله ، سنت رسول ﷺ او اجماع دري واړو ثابت دی ، اماالكتاب فقوله تعالى ﴿وَأَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَا﴾ (يعني الله تعالى بيع حلاله اوربوا حرامه ګڼلې ده ) واماالسنة فقوله عليه السلام :آكل دِرهم واحدٍ من ربوا أشدّ من ثلاث وثلاثين زَنيةً يزنيهاالرجُل . (يعني دسوديودرهم خوړل ترديري ديرش ځله زناكولونه بدتردی ) اودربواپرحرمت باندي دټول امت اجماع ده .

( ۱ ) وهوَ فضلُ مالٍ بلاعِوَضٍ في مُعاوضةِ مالٍ بمالٍ ( ۲ ) وعِلّته القدرُ والجنسُ ( ۳ ) فحرُم الفضلُ والنّساءُ بهما والنّساءُ فقط باحدِهما وحلابعدمِهما ( ۴ ) وصحّ بيعُ المكيلِ كالبُرِّ والشّعيرِ والتمرِ والمِلحِ والموزونِ كالنقدينِ ومانُسبَ الى الرّطلِ بجنسه متساوِياً متفاضِلاً ( ۵ ) وجيّده كرديه ( ۶ ) ويُعتبرُ التعيينُ لاالتقابضُ في غيرِ الصّرفِ .

**ترجمه** :ربواهغه مالي زيادت دی بيله عوضه دمال په مال بدليدوكې اودهغه علت قدراوجنس دی نوحرام دی زيادت اوپوردواړه ددغودواړو (جنس اوقدر) په صورت كې اويواځې پور ديوه (قدريا جنس) په صورت كې اودواړه (ربوالفضل والنسأ) حلال دي ددواړو (يعنی قدراوجنس) دنه موجودګی په صورت كې اوصحيح ده بيع دكيلی شيانولكه غنم ،اوربشې ،خرما ،مالګه اودوزنی شيانولكه نقدين (سره اوسپين زر) اوكوم شيان چې رطل ته منسوبيږی دهغوله جنسه برابر ،برابرنه په زيادت سره ،اودهغه عمده اوكوټه دواړه برابردي اوله بيع صرف نه پرته په نوروكې تعين معتبردی نه تقابض .

**تشريح** : ( ۱ ) مصنف رحمه الله په خپل دغه عبارت كې دربواشرعی تعريف كړی دی چې ربواهغه مالی زيادت دی چې مال دمال په عوض بدليدوكې بيله عوضه وي مثلاً دوه كيلوغنم ددريوكيلوپه عوض واخلی يالس درهمه ديوولسوپه عوض وركړي ،په اول صورت كې يوكيلوغنم بلاعوض دي چې په مقابله كې يې هيڅ شی نشته اوپه دابل صورت كې يودرهم بلاعوض دی چې په مقابله كې يې هيڅ شی نشته نوداداواړه صورتونه پرربوا (سود) باندي مشتمل دي .

**فائده** :ربواپردوه قسمه ده :ربواالفضل ،ربواالنسأ) داځكه چې زيادت داحدله بدلينوبه ياحقيقي وي لكه يوه پيمانه غنم ددووپيمانوپه عوض خرڅول اويابه حكمی زيادت وي چې احدبدلينونقدوي اوبل پوری وي لكه يوه پيمانه غنم نقدپه عوض ددووپيمانواوربشوپه پورلومړی قسم ته ربواالفضل اودوهم قسم ته ربواالنسأوايي .

( ۲ ) دسودپه باره كې نبی كريم ﷺ فرمايلي دي :الحِنطةُ بالحِنطةِ والشّعيرُ بالشّعيرِ والتمرُ بالتمرِ والمِلحُ بالمِلحِ والذّهبُ بالذّهبِ والفِضّةُ بالفِضّةِ مِثلاً بمِثلٍ يداً بيدٍ والفضلُ رِبوا (يعني غنم دغنمو ،اوربشې داوربشو ، خرما دخرماؤ ،مالګه دمالګې ،سره زردسروزرو ،سپين زردسپينوزروپه عوض برابرلاس په لاس خرڅوئ په دي كې زيادت سوددی

له اهل ظواهرونه پرته دنورومجتهدينوپردي باندی اتفاق دی چې په حديث شريف كې پر مذكورد شيانو باندی نورشيان قياسيږي په نوروشيانوكې هم سودراتلای شي ،اودمقيس ومقيس عليه ترمنځ

اشتراک علت هم ضروري دی مجهتدين په دي کې مختلف دي چې آيا په مذکورو شيانو کې د حرمت علت څه شی دی چې که چيرته هغه علت له دغو شيانو پرته په نورو شيانو کې و موندل شونو هغوئ هم حرامیږی.

دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد علت کيل سره له جنس یاوزن سره له جنس دی، په لنډو عباراتو کې قدر مع الجنس هم ويل کيدای شی، ولی په حديث شريف کې: الحنطة بالحنطة والشعير بالشعير والتمر بالتمر والملح بالملح والذهب بالذهب والفضة بالفضة مثلا بمثل يدا بيد والفضل ربوا) له مثلا بمثل څخه معلوميږی چې مماثلت ضروري دی او مماثلت دوه قسمه وي، يو په اعتبار د صورت بل په اعتبار د معنی، نو په کيل او وزن سره مماثلت صوری حاصليږی او په اتحاد جنس سره مماثلت معنوی حاصليږی، نو په قدری شيانو کې (يعنې وزنی او کيلی شيانو کې) زيادت او پور له اتحاد جنس سره سود ګرځي، او دامام شافعی رحمه الله په نزد طعم په مطعوماتو کې او ثمنيت په اثمانو کې علت دی، او اتحاد جنس يې شرط دی نو چونه په عوض د چونه خرڅولو کې د شوافعو په نزد کمبوت او زيادت جائز دی ولی دلته دواړه علتونه (طعم او ثمنيت) نشته، د احنافو په نزد نه دی جائز ولی علت د حرمت (يعنې قدر او جنس) دواړه موندل کيږي.

(٣) چې کله دا خبره ثابته شوه چې د حرمت علت قدر مع الجنس دی نو چيرته چې دا دواړه صفتونه وموندل شی هلته تفاضل او پور دواړه حرام دي لکه غنم په عوض د غنمو خرڅول زر د زرو په عوض سپين زر د سپينو زرو په عوض خرڅول ولی علت د حرمت (قدر مع الجنس) موجود دی او چيرته چې له دا دواړو صفتونو څخه يو وموندل شی يعنې عوضين له يوه جنس څخه وي لکه هروی کپړه د هروی کپړي په عوض خرڅول يا عوضين له يوه جنس خونه وي مګر دواړه قدری وي لکه يو من غنم د يوه من اوربشو په عوض خرڅول نو په دغه وخت کې تفاضل جائز دی مګر پور نا جائز دی لقوله عليه السلام: اذا اختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم يدا بيد ولا خير فيه نسيئة. او چيرته چې دا دواړه صفتونه نه وموندل شی هلته په عوضينو کې تفاضل هم جائز دی او پور هم جائز دی لکه چار مغز د هګيو په عوض خرڅول ولی علت د تحريم دلته نشته يعنې نه دواړه کيلی او وزني دي او نه دواړه له يوه جنسه دي.

(٤) مکيلی شيان لکه غنم، اوربشي، خرما، مالګه وغيره او موزونی شيان مثلا نقدين يعنې سره او سپين زر وغيره او هغه شيان چې رطلی (پيمانی والا) ورته ويل کيږی مثلا لکه غوړي وغيره دا شيان که چيرته د خپل جنس په عوض خرڅيدل نو برابر برابر خرڅول يې جائز دی او کمبوت او زيادت نه دی پکې روا ولی په زيادت او نقصان خرڅولو کې سود لازميږی.

**فائده**: عراقی رطل ديوسل اته ويشت درهمونو د وزن برابر رائحی، هسی خو رطل ديوه ظرف او لوښي نوم دی لکه ليتر چې ديوه لوښی نوم دی مګر په رطل سره چې کوم شيان خرڅيږی اخيستل کيږی هغه شيان وزني شمارل کيږی لکه نن سبا چې د شيد و خريد و فروخت په لوښي سره ناپيږی مګر له هغه څخه وزن مراديږي څرنګه چې د بهيدونکو شيانو په مختلفو لوښو کې تول کول حرج دی نو تيسيراً د دوئ لپاره رطل ليتر وغيره جوړ شوي دي.

**فائده**: دكوموشيانوپه باره كې چې پيغمبر ﷺ تصريح فرمايلي ده چې په هغوكې تفاضل حرام دى دكيل له لحاظه خوداشيان دهميشه لپاره كيلي دي كه څه هم خلك په خپل عُرف كې دهغوئ خريد وفروخت په كيل سره پريږدي لكه غنم، اوربشې، خرما، مالگه وغيره ولي نص ترعرف اقوى دى او اقوى دادنى په وجه نه شى پريښودل كيداى نوكه غنم دغنموپه عوض برابروزنًا خرڅ كړي دانا جائزدى ولي دزيادت توهم كيږى (غنم له كيلي شيانوڅخه دى) اودكوموشيانوپه باره كې چې پيغمبر ﷺ تصريح فرمايلي ده چې په هغوكې تفاضل حرام دى دوزن له لحاظه خوداشيان دهميشه لپاره وزني دى كه څه هم دهغوئ خريدوفروخت خلكووزنًاپرې ايښى وي لكه سره زر، سپين زر، نوكه چاسپين زردسپينوزروپه عوض برابرسرابرخرڅ كړل دانا جائزدى ولي دزيادت توهم كيږى (سپين زرله وزني شيانوڅخه دى) اودكوموشيانوپه باره كې چې پيغمبر ﷺ تصريح نه ده فرمايلي نوهغه دخلكوپرعادت باندى محمول دي كه دخلكوعادت وزني وي نووزني دي اوكه كيلي وي نوكيلي دي.

**فائده**: امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې مطلقًا دعرف اعتبار دى يعني كوم شيان چې دپيغمبر ﷺ په زمانه كې كيلي ووكه چيرته دخلكوعادت په دي زمانه كې داشي چې هغه شيان وزني كړي نووزني گرځي ځكه دپيغمبر ﷺ په زمانه كې چې كوم شيان وزني ياكيلي ووهغه وخت دخلكوعادت همداسي ووپيغمبر ﷺ دخلكو دعادت مطابق فيصله كړې وه، دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله:

والراجح قول ابى يوسف رحمه الله تيسيرًا على الناس واعتبار اللعرف وعليه الفتوى صرح به فى الكافى ورجحه ابن الهمام فى الفتح واقر فى المنح واختاره فى البرهان (هامش الهداية: ۳/۸۲)

(۵) په ربويه مالونوكې دعمده اوردي ترمنځ هيڅ فرق نشته نوجيّدردى په عوض په كمبوت اوزيادت سره خرڅول جائزنه دى مثلًا يومن عمده قسم غنم دجودت دوجه نه ددومنوردّى غنموپه عوض خرڅول ناجائزدى، البته برابربرابرخرڅول يې جائزدى لقوله ﷺ: جيدهاورديهاسواء (يعني په ربويه مالونوكې كره اوكوټه سره، برابردي) نودعمدهٔ په عوض كې زيات ردّى اخيستل ياوركول صحيح نه دى، همدارنگه دوصف په اعتبارتفاوت معتبركړاى شي نوپه ربويه مالونوكې دخريدوفروخت دروازه بنديږى ولي په كيلي اووزنى شيانوكې دوصف په اعتبارمن كل وجه مماثلت ناممكن دى.

(۶) يعني له عقدصرف نه بغيرپه نوروربويه مالونوكې دعوضينوتعين په مجلس كې شرط دى تقابض (دمتعاقدينوقبض كول) شرط نه دى ولي له تقابض څخه اصل مقصودپه مبيعه كې دتصرف كولوقدرت دى دغه فائده يوائې په تعين سره هم حاصليداى شى نوتقابض يې شرط نه دى نوكه يوچامتعين غنم دمتعينوغنموپه عوض خرڅ كړل بياترقبض كم مخكى متعاقدين سره جلاشول نوداجائزه ده، البته په عقدصرف كې (چې پرجنس پيسوباندى واقع كيږى يعني پيسى دپيسوپه عوض خرڅيږى) داشرط دى چې عوضين به دعقدپه مجلس كې قبض كيږي لقوله عليه السلام: الفضة بالفضة هاءَ وهاءَ (يعني سپين زردسپينوزروپه عوض لاس په لاس).

**فائده**: دامام شافعى رحمه الله په نزدبيع الطعام بالطعام په صورت كې كه چيرته متعاقدين ترقبض لومخكى سره ولاړل نودابيع جائزه نه ده، ولي په حديث دربواكې له يدًابيدٍ څخه قبض مراددى، امام

شافعي رحمه الله ته جواب ورکړای شوی دی چې يداً بيدٍ څخه عيناً بعينٍ مراددی لکه دمسلم شريف په روايت کې چې (عيناً بعينٍ ) راغلی دی يعنی دعوضينومتعين کيدل ضروري دی نوپه بيع الطعام بالطعام کې دعوضينومتعين کيدل شرط دی نه دهغوقبض کول.

(۷)وَصَحَّ بَيعُ الحَفنَةِ بِالحَفنَتَينِ وَ التُفَاحَةِ بِالتُفَاحَتَينِ وَ البَيضَةِ بِالبَيضَتَينِ وَ الجَوزَةِ بِالجَوزَتَينِ وَ التَمرَةِ بِالتَمرَتَينِ وَ الفَلسِ بِالفَلسَينِ بِأَعيَانِهِمَا (۸)وَ اللَحمِ بِالحَيَوَانِ (۹)وَ الكِربَاسِ بِالقُطنِ وَ كَذَا بِالغَزلِ كَيفَمَا كَانَ (۱۰)وَ الرُطَبِ بِالرُطَبِ وَ بِالتَمرِ مُتَمَاثِلاً وَ العِنَبِ بِالعِنَبِ وَ بِالزَبِيبِ (۱۱)وَ اللُحُومِ المُختَلِفَةِ بَعضِهَا بِبَعضٍ مُتَفَاضِلاً وَ لَبَنِ البَقَرِ بِلَبَنِ الغَنَمِ (۱۲)وَ خَلِّ الدَقَلِ بِخَلِّ العِنَبِ وَ شَحمِ البَطنِ بِالالية اَو بِاللَحمِ.

**ترجمه** : اوصحيح ده بيع ديوې لپې غلې له دوولپوغلې سره اوديوه سيب له دووسيبونوسره ديوې هګۍ له دووهګيوسره ديوه چارمغزله دووچارمغزوسره ديوې خرماله دووخرماؤسره ديوې پيسې له دووپيسوسره ددوئ دووپه تعين کيدوسره اوغوښه له حيوان سره اودپنبه ؤدکپړې له پنبه ؤسره همدارنګه له وړيوسره څرنګه چې وي،اودپخوخرماؤله پخوخرماؤسره ياله وچوخرماؤسره برابربرابر، اودانګورولهانګورويا کشمشوسره اومختلف قسم غوښې ځينې په عوض دځينونوروکې په کمبوت اوزيادت سره اودغوادشيدودبزې له شيدوسره اودردی خرماؤدسرکې دانګوروله سرکې سره اودلړمون دوازګودلمله وازګويا سوښوسره.

**تشريح** : (۷)قوله حفنة (بفتح الحاء وسكون الفاء په معنی ديوه مټ ياپه معنی ديوې لپې يعنې ددواړو مُټانومجموعه)يعنی يوه لپه غله ددوولپوغله په عوض خرڅول جائزدی همدارنګه يوسيب ددوو سيبانوپه عوض يوه هګۍ ددووهګيوپه عوض يوچارمغزددووچارمغزوپه عوض يوه خرماددوو خرماؤ په عوض يوه پيسه ددووپيسوپه عوض خرڅول جائزدی په دې شرط چې دواړه شيان معين وي ولی مخکې داخبره ذکرشوه چې دربواعلت قدريعنی ناپ اوتول اوجنس دی ظاهره خبره ده چې ددغوشيانوپه يوه دانه يادوودانوکې ناپ وتول نه چليږي يعنې شرعًادهغوئ دمقدارمعلومولولپاره کوم معيار نشته نودعلتِ ربوادنه موجودګۍ په وجه داييوع جائزدي.

**فائده** :قوله باعيانهما،دالفظ له مذکوروټولوبيوعوسره متعلق دی يعنې په مذکوروبيوعوکې دعوضينومتعين کول ضروری دی ولی که عوضين متعين نه وي نوبيع دالکالی بالکالی يعنې بيع الدين بالدين لازميږی حال داچې له بيع الدين بالدين څخه پيغمبر ﷺ منع فرمايلې ده ،اوکه يوعوض مجهول وي نوبيع جائزه نه ده ولی کوم يوعوض چې مجهول وي ظاهره خبره ده چې هغه نقدنه وي بلکې په هغه کې تاخيرراځي وخت لګيږی په داسی حال کې چې دعوضينوترمنځُ اتحادجنس موجوددی اودجنس اتحادچې راشی هغه نسأيعنې پورحراموي.

**فائده** : دغه روايت چې(يوه لپه غله په دوولپوغله خرڅول جائزدی اويوسيب په عوض ددووسيبانو خرڅول جائزدی) که څه هم په متونوکې مشهوردی خوضعيف دی ،وقدروی المعلی عن محمد رحمه الله صراحة انه قال کل شئ حرم التفاضل فی کثيره حرم فی قليله واقره منهم صاحب البحر الرائق،والنهر،والفتح ،وشرنبلاليه ،والمقدسی ودرّالمختار ،خاص بيا چې خلک يوه لپه ددوولپوپه عوض خرڅول ديوه من په دوومنوخرڅولولپاره وسيله ګرځوی، همدارنګه دامام

محمد رحمه الله په نزديوه خرماددوخرماؤپه عوض خرڅول مكروه دى همداصحيح دى،وقدسبق الترجيح لعدم جوازهذه البيوع فلايجوزبيع التمرة بالتمرتين الالى اخرانهامما لايكون مقدراكالبيضة والجوزة ) اويوه پيسه ددوپيسوپه عوض خرڅول هم دامام محمد رحمه الله په نزدناجائزدى اوپرهمدي باندي فتواده صرح به اهل كتب الفقه منهافتح القدير والبحرالرائق والمنح والشرنبلالية وغيرها) همدارنګه نن سبااوراق نقديه يعني نوټونه هم څرنګه چې اصطلاحي ثمني دي نويوه روپۍ ددوروپو په عوض خرڅول سوداوحرام دى څكه نارو ادى ،وهوقول الامام محمدالشيباني رحمه الله وعليه الفتوى فى هذاالزمان سدّالباب الربا(هامش الهداية : ۳/ ۸۳)

**فائده** :دخوراک اوڅيښاک په كوموشيانوكې چې له تسامح څخه كاراخيستى كيږى په هغوكې دقرض وركولو او اخيستلومقصد ګټه كول نه وي بلكې خالص دوخت دضرورت پوره كول يې مقصدوي په هغوكې معمولى كمبوت او زيادت په سودكې نه دى داخل نوځكه دوډۍ عدداًقرض اخيستل جائزدى وذالك لماروى عن عائشة رضى الله عنهاقالت قلت يارسول الله !ان الجيران يستقرضون الخبز والعجين ويردون زيادة ونقصانا،فقال لاباس ان ذالك من مرافق الناس لايرادبه الفضل .همدارنګه معمولى اندازه مالګه،مرچ وغيره په قرض اخيستل دستوردى په هغوكې هم سودكول مقصدنه وي نوپه واپس كولوكې يې معمولى كمبوت يازيادت ته سودنه ويل كيږي .
(جديدمعاملات كى شرعى احكام : ۱/ ۱۸۸)

(۸)قوله واللحم بالحيوان اى وصح بيع اللحم بالحيوان ،ويعني دشيخينورحمهماالله په نزدغوښه په عوض دحيوان خرڅول جائزدى كه څه هم يوجنس وي مثلاًدبزې غوښه دبزې دغوښې په عوض خرڅه كړي نوداجائزه ده ولى دادموزون بيع ده دغيرموزون په عوض ،څكه حيوان موزونى نه دى عددي دى نوچې هرډول وي جائزدى .

**فائده** :دامام محمد رحمه الله په نزددانه دى جائز،البته كه چيرته غوښه ترهغه غوښه زياته وه چې په حيوان كې ده نويبادامام محمد رحمه الله په نزدهم جائزدى ولى په دغه وخت كې به غوښه دغوښې په مقابله كې شى اوزياته غوښه به دسقط (يعني هډونو،څرمن وغيره ) په مقابله كې شى،امام محمد رحمه الله ته جواب وركړاى شوى دى چې په مذكورصورت كې نه په عوضينوكې وحدت قدرشته كمامراونه دواړه يوجنس دي،ولى غوښه غيرحساس ده اوژوندۍ بزه حساس،متحرک بالاراده ده نوچې علت دربوانه موندل كيږى څكه نوجائزه ده .

**فائده** :دشيخينورحمهماالله قول راجح دى اكثره علماؤهغه راجح ګڼلى دى مګردامام محمد رحمه الله په قول كې احتياط دى ،چاچې دشيخينورحمهماالله پرقول فتوى وركړې ده هغه استحسان اختياركړى دى اوچاچې دامام محمد رحمه الله پرقول باندى فتوى وركړې ده هغه احتياط كړى دى اوله اختلاف څخه يې ځان ويستلى دى قال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله : واختاراكثرالعلماء فى هذه المسئلة قول الشيخين رحمهماالله وقالواهوالاستحسان وقول محمدقياس وظاهر كلام ابن الهمام هوالميل الى مااختاره محمد(هامش الهداية:۳/۸۳)

(۹)قوله والكرباس بالقطن اى وصح بيع الكرباس بالقطن ،يعني دپنبه ؤجامه په عوض دپنبه ؤخرڅول جائزدى كه برابروي اوكه زيادت اونقصان پكي وي همدارنګه جامه په عوض دنه وودل شويوريوپه عوض خرڅول

هم جائزدی ولی دادواړه يوجنس نه دي چې ربواراشي همدارنګه پنبه اووړی وزنی شیان دی جامه وزنی نه ده نوقدريې هم يونه دی حال داچې دربوالپاره علت جنس اوقدر دی .

(۱۰)قوله والرطب بالرطب ای وصح بیع الرطب بالرطب الخ،يعنې دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزدپخه خرماپه عوض دپخې خرمایادوچی خرماپه عوض برابر،برابرخرڅول جائزدی ولی رطب که تمرو ي نو دمشهورحدیث شريف له ابتداء (مثلا بمثلٍ) څخه يې جوازثابتيږی اوکه رطب تمرنه وي نو دحديث شريف له آخر څخه (يعنې اذااختلف النوعان فبيعوا كيف شئتم) څخه يې جوازثابتيږی ،همدارنګه انګورپه عوض دانګوروياپه عوض دکشمشو برابر،برابرپه مذکوردلیل سره خرڅول جائزدی .

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزد رطب په عوض دتمرو او انګورپه عوض دکشمشو خرڅول ناجائزدی ولی له نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې رطب په عوض دتمرخرڅول برابر،برابرجائزدی که نه ؟ نونبی کریم ﷺ پوښتنه وکړه چې آيارطب چې وچې شی کمیږی ؟ خلکوورېل هو!کميږي،پردی باندي نبی کریم ﷺ وفرمايل چې بيانوبيع درطب په عوض دتمروبرابرنه ده جائزه،دامام ابوحنيفة رحمه الله قول که څه هم مذهب دی مګردصاحبينو رحمهما الله په قول کې احتياط دی،اوهمدارنګه له اختلاف څخه هم خالی دی څکه نوراجح دی قال العلامة ابن عابدين الشامی رحمه الله : وبقولهما قالت الائمة الثلاثة امابيع الرطب بالرطب فهو جائز بالاجماع.(ردالمحتار:۳/۲۰۶)

(۱۱)قوله واللحوم المختلفة ای صح بيع اللحوم المختلفة الجنس ،يعنې مختلف قسم غوښې (مثلادغوايی داوښ دبزې غوښې) بعض په عوض دبعض نوروسره متفاضلا خرڅول جائزدی په دي شرط چې نقدپه عوض دنقدوي نسأنه وي،اوددواړوجنس مختلف وي لکه دبزې غوښه دغوايی دغوښې په عوض اودغوايی غوښه داوښ دغوښې په عوض خرڅول،وجه دجوازيې داده چې ددغو غوښواصول يعنې اوښ ،غويی وغيره مختلف اجناس دي اواختلاف داصولوداختلاف فروع لپاره موجب دی نوداثابته شوه چې دهغوئ دغوښوجنس مختلف دی نوعلت دربوايعنی اتحادجنس نشته څکه نوپه هغوکې کمبوت اوزيادت جائزدی،همدارنګه دغواشيدې دبزې دشيدوپه عوض متساويا ومتفاضلادواړه دوله خرڅول جائزدی ولی دهغوئ اصول هم اجناسِ مختلفه دي نو کمبوت اوزيادت پکې روادی.

**فائده** :په حيوانانوکې داختلاف جنس اواتحادجنس قاعده داده چې په باب دزکوة کې چې ديوه حيوان نصاب په کوم حيوان سره پوره کيږی نوداهغوئ دوحدت جنس علامه ده لکه غوااوګاميښ،بزه اومږ،اوکه ديوه نصاب په بل نه پوره کيده نوداهغوئ داختلاف جنس علامه ده لکه بزه اوغوا.

(۱۲)قوله وخلّ الدقل ای صح بيع خل الدقل بخل العنب،يعنې دخرماؤسرکه دانګورودسرکې په عوض متفاضلا ومتساوياًدواړه دوله خرڅول روادی ولی دهغوئ اصول هم اجناس مختلفه دي نوپه هغوکې په کمبوت اوزيادت سره سودنه راڅی،همدارنګه دلړمون وازګي دلم په عوض يادغوښوپه عوض خرڅول جائزدی که څه هم وازګی اوغوښي دواړه دپسه وي ولی دهغوئ نومونه،صورتونه او مقاصدمختلف دي نواتحادجنس نشته که په هغوکې کمبوت اوزيادت سودنه شمارل کيږی .

(۱۳)وَالخبزِ بالبرِّ وَالدقيقِ متفاضِلاً(۱۴)لابيعُ البرِّ بالدقيقِ أو بالسّويقِ(۱۵)وَالزيتونِ بالزيتِ وَالسّمسمِ بالشيرجِ حتّى يكونَ الزيتُ وَالشيرجُ أكثرَ مِمّا في الزيتونِ وَالسّمسمِ(۱۶)وَيستقرضُ الخبزَ وَزناً لاعَدداً(۱۷)وَلا ربوا بين السّيدِ وَعبدِه(۱۸)وَبينَ المسلمِ وَالحربي ثمّه.

**ترجمه**: او جائزه ده بيع دډوډۍ له غنمو يا له اوړو سره په تفاضل باندې، نه دغنمو بيع له اوړو يا ستو سره، او دزيتونو دزيتونو له تيلو سره او دشرشمو دشرشمو له تيلو سره ترهغه چې دزيتونو تيل او دشرشمو تيل زيات وي ترهغو چې په زيتون يا په شرشم كې دي اوقرض كوي دي ډوډۍ په وزن سره نه په شمار سره، او سود نه راځي دمولى او دهغه دمريي ترمنځ، او نه دمسلمان او حربي ترمنځ هلته (په دارحرب كې).

**تشريح**: (۱۳)قوله والخبز اى صح بيع الخبز بالبر، يعني دډوډۍ بيع دغنمو او اوړو په عوض متفاضلا جائزه ده، ولى په ډوډۍ جوړولو سره بل جنس گرځى ځكه چې غنم او اوړه مكيلى دي او ډوډۍ دامام محمد رحمه الله په نزدعددي ده او دامام ابويوسف رحمه الله په نزد وزنى دي له امام ابوحنيفة رحمه الله يوروايت دى چې ډوډۍ په عوض دغنمو خرڅولو كې هيڅ خيرنشته يعني ناجائزده.

**فائده**: مگرصحيح اومفتى به قول دادى چې جائزدى لمافى الدّرالمختار:وجازبيع خبزولومن بربيراودقيق ولونه مفتاضلااووزنا. (الدّرالمختار على هامش ردّالمحتار: ۳/۲۰۶)

(۱۴)قوله لابيع البر بالدقيق اى لايصح بيع البربالدقيق الخ، يعني غنم داوړو او ستو په عوض نه متساويا خرڅول جائزدى او نه متفاضلا، همدارنگه اوړه دستو په عوض خرڅول هم ناجائزدى، ولى غنم، اوړه او ستو يوه جنس دى او په ثابتو غنمو كې اوړه مجتمع وي په ماتيدو سره داوړو يا ستو په جوړولو سره منتشر كيږي زياتيږي نو په پيمانه كولو سره ددوئ داوړو ترمنځ تسويه نه شي راتلاى.

**فائده**: اوړه داوړو په عوض متساويًا په پيمانه سره خرڅول جائزدى متفاضلا نه دى جائز، ولى په اوړو كې دربوا علت يعني قدرمع الجنس موندل كيږى ځكه نوزيادت نه دى جائز، البته اوړه داوړو په عوض وزنًا متساويًا خرڅول دصحيح قول مطابق نه دى جائز ولى اوړه مكيلى شى دى په وزنًا خرڅولو كې قطعى مساوات ممكن نه دى نو دكمبوت او زيادت دامكان په وجه جائزنه دى. (ردّالمحتار: ۴/۲۰۸)

(۱۵)قوله والزيتون بالزيت اى لايصح بيع الزيتون بالزيت، يعني دزيتونو بيع دزيتون تيلو په عوض او شرشم دشرشم تيلو په عوض جائزنه دى ترڅو چې زيتون تيل او شرشم تيل ترهغو تيلو زيات نه وي كوم چې له زيتونو او شرشمو څخه وځي ددي لپاره چې تيل په عوض دتيلو كې شي او زيات تيل دخالى زيتونو او شرشمو په عوض كې شي.

**فائده**: كه چيرته زيتون تيل او شرشم تيل ترهغو تيلو كم يا برابر وي چې په زيتونو يا شرشمو كې دي نو بيا دا بيع ناجائزه ده ولى تيل په عوض دتيلو كې راځي او خالي بلاعوضه زائد پاتى شو، او ديوه عوض زياتيدل دبل كميدل سود دى نو ځكه ناجائزدى، او كه دانه معلوميده چې له زيتونو او شرشمو نه څومره تيل وځي نو داحتمال ربوا په وجه دا بيع ناجائزه ده.

(۱۶)دامام ابويوسف رحمه الله په نزد يوه ډوډۍ په تول سره قرض اخيستل جائزه ده په شمار اخيستل يې ناجائزدى ولى په ډوډۍ كې دتفاوت په وجه دزيادت او كمبوت امكان شته چې په وزن سره دا تفاوت ختم كيږي، دامام محمد رحمه الله په نزد دخلكو دضرورت او تعامل په وجه وزنًا او عددًا هردول صحيح دى، دامام

ابوحنیفة رحمه الله په نزد مطلقاً ناجائز دی، ولی په ډوډۍ، تنور، اونانوائیانوکې ډیرزیات فرق راځی نو ددوو ترمنځ نه وزناً اونه عدداً مساوات ممکن دی نو ربو اته د مستلزم کیدو په وجه جائز نه دی.

**فائده**: دامام محمد رحمه الله قول مفتی به دی لما فی الدر المختار: ویستقرض الخبز وزنا وعددا عند محمد وعلیه الفتوی واستحسنه الکمال واختاره المصنف رحمه الله تیسیرا، قال العلامة ابن عابدین الشامی رحمه الله: وجعل المتاخرون الفتوی علی قول ابی یوسف رحمه الله وانا اری قول محمد احسن. (الدر المختار مع الشامیة: ۴/ ۲۰۸)

(۱۷) دمولی اودهغه دمریی ترمنځ ربوانه راځی یعنې که مولی اودهغه مریی پخپل منځ کې په کمي وزیاتي سره لین دین وکړي نوپه دي دربوا حکم نه کیږي ولی مریی اودهغه په لاس کې چې کوم مال دی هغه دمولی مِلک دی نو دمولی اودهغه دمریی ترمنځ بیع له سره راځی نه اوچې کله بیع نه ده راغلې نو ددوئ ترمنځ ربوانه راځي.

(۱۸) کوم مسلمان ته چې داهل حرب له طرفه آمان ورکړای شوی وي دهغه اودکافرحربی ترمنځ په دارحرب کې دطرفینو رحمهما الله په نزد ربوانه راځي ولی دپیغمبر علیه السلام فرمان دی چې: لاربا بین المسلم والحربی فی دار الحرب (یعني په دارحرب کې دمسلمان اوحربی ترمنځ سود نشته) همدارنګه دکافرانو مال په دارحرب کې مباح دی نومسلمان چې هغه په څه ډول هم حاصلوي دمباح مال ورونکی شمارل کیږي په دي شرط چې په غدراودوکه سره به یې نه وړي، ولی هلته ورغلي مسلمان له هغوئ سره عهد کړی دی چې دهغوئ مالونه به دهغوئ له رضامندی بغیرنه وړي نوغدراودوکه حرام دي، په داسی حال کې چې دامام ابویوسف رحمه الله په نزد په دارحرب کې دمسلمان اوحربی ترمنځ ربواشته ولی که کوم حربی په امن سره داراسلام ته راشی نو دمسلمان اودهغه حربی ترمنځ په داراسلام کې ربوا ممنوع ده نو په دارحرب کې هم ممنوع ده لکه زنا، غلا وغیره.

**فائده**: دنړدي زماني اوعصرحاضرعلماء احتیاطاً دامام ابویوسف رحمه الله قول مختارګڼي قال العلامة ظفر احمد العثمانی رحمه الله: مع ذالک فلاشک فی کون التوقی عن الربا ولو مع الحربی فی دار الحرب احسن واحوط وازکی، واحری خروجا من الخلاف، وهو الذی ذهب الیه شیخنا حکیم الامة والتی به واختاره لترجیحنا القول ابی یوسف رحمه الله والجمهور. (اعلاء السنن: ۳/ ۳۷۲) کذا فی فتاوی حقانیه: ۶/ ۲۱۰) واحسن الفتاوی: ۷/ ۲۰).

## باب الحقوق

حقوق د(حق) جمع دی له دي څخه هغه حقوق مراددي چې دمبیعی تابع وی بیله ذکرکولونه په مبیعه کې داخلیږی، مصنف رحمه الله چې کله دبیع له مقصودی دشیانو لکه مبیعه اوثمن له بیان څخه وزګار شونو اوس په دغه باب کې دمبیعه اوثمن تابع حقوقِ معهوده بیانوي ولی تابع له متبوع وروسته وي.

(۱) اَلعُلوُ لایَدخُلُ بِشِراءِ بَیتٍ بِکُلِّ حَقٍّ (۲) وَبِشِراءِ مَنزِلٍ اِلّا بِکُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ اَو بِمَرافِقِهِ اَو بِکُلِّ قَلِیلٍ وَکَثِیرٍ هُوَ فِیهِ اَو مِنهُ (۳) وَدَخَلَ بِشِراءِ دارٍ کَالکَنِیفِ لا الظُّلَّةُ اِلّا بِکُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ (۴) وَلا یَدخُلُ الطَّرِیقُ وَالمَسِیلُ وَالشِّربُ اِلّا بِنَحوِ کُلِّ حَقٍّ هُوَ لَهُ (۵) بِخِلافِ الاِجارَةِ فِیهَا.

**ترجمه** : خونه (كمره) چې له ټولو حقوقو سره واخيستله شي بالاخانه نه داخليږي، او دسراى په اخيستلو كې مګر داكه يې دغه سراى له هغو ټولو حقوقو سره اخيستى وو چې دهغه لپاره دي يا له ټولو منافعو سره وو يا له هغو ټولو لږ او ډيرو شيانو سره وو چې په هغه كې وو يا له هغه څخه وو، او داخليږي دسراى په اخيستلو كې پاخانه (بيت الخلاء) نه سائبان مګر داكه يې له هغو ټولو حقوقو سره اخيستى وو چې دهغه لپاره وي، او نه داخليږي لاره او داوبو بهيدو ځاى او داوبو حصه مګر كه يې له هغو ټولو حقوقو سره اخيستى وو چې دهغه لپاره وي خلاف له اجاره كولو دهغه .

**تشريح** : په عربى ژبه كې دري لفظه مستعمل دي :بيت،منزل ،دار،په دوئ كې فرق دادى چې بيت هغى حجرې ياكمرې ته وايې چې په هغى كې دروازه لګيدلى وي، او منزل هغه ته وايې چې په هغه كې څو كمرې اودالان او مسقف ميدان وي، او دار هغه لوى سراى ته ويل كيږى چې يكې له كمرو او غير مسقف ميدان نه علاوه اصطبل ،بالاخانه وغيره ټول ضروري شيان وي لكه داميرانو لوى لوى مكانونه، يوبل لفظ (ظله ) ده،ظله هغه دى چې پردروازه باندى جوړوي چې لاندى لاره تيره شوې وي دبعض حضراتو په نزد ظله هغه سائبان دى چې يو طرف يې پر دار مبيعه باندى وي او بل طرف يې پر بل سراى باندي وي .

(۱)كه چاپوه كمره له ټولو حقوقو سره واخيسته نو په هغه بيع كې دكمرى بالاخانه نه راځى ولى بيت هغه ځاى ته وايې چې په هغى كې شپه تيريږى بالاخانه خو د مستقل شپه تير ځاى دى نو دكمرې نه تابع كيږى ولى شى

داعلى تابع كيږى دادنى او مثل نه تابع كيږى مګر دا چې په بيع كې دهغى دداخليد و تصريح وشى .

(۲)قوله وبشراء منزل اى لايدخل العلوبشراء منزل الخ ،همدارنګه دحقوقو وغيره له ذكر كولو بغير دسراى داخيستو په صورت كې هم دمنزل بالاخانه په بيع كې نه داخليږى البته كه مشترى دسراى اخيستو په وخت داسى وويل چې زه دغه سراى دهغه له ټولو حقوقو سره اخلم يا دا چې له ټولو منافعو سره يې اخلم يا دا چې په هغه كې كوم شيان كه لږ دي كه ډير ټول اخلم ،ياهر هغه شى چې له هغه سره متعلق دى ټول اخلم نو په دغو صورتونو كې بالاخانه دسراى په بيع كې راځي ولى سراى په يوه لحاظ دكمرى مشابه دى او په يوه اعتبار له دارسره مشابه دى نو په لومړى صورت كې چې د(ټولو حقوقو وغيره ذكريې نه وي كړى) دبيت مشابهت ته اعتبار وركړى ويې ويل چې بالاخانه په بيع كې نه داخليږى او په باقى صورتونو كې (چې دټولو حقوقو يا ټولو منافعو وغيره ذكريې كړى وي) ددار مشابهت ته اعتبار وركړى دى ويې ويل چې بالاخانه په بيع كې داخليږى .

(۳)كه چا سراى واخيست نو دهغه په اخيستو كې بالاخانه بيله نوم اخيستلو راځي لكه پاخانه چې دسراى په اخيستلو كې بيله نوم اخيستو راځي ولى بالاخانه او پاخانه دسراى له توابعو څخه دي، البته ظله يعنې سائبان بيله نوم اخيستو ددار په بيع كې نه داخليږى تر څو چې دار له ټولو حقوقو سره وانه خلى يعنې داسى وو وايې چې دغه دار سره له ټولو حقوقو اخلم ،يا وو وايې چې له

تولومنافعوسره یې اخلم ولې سائبان دسرای له حدودو څخه خارج پرلاربانـدې وي نـودادلارې په حکم کې دی لکه څرنګه چې لاره ددار په بیع کې نه داخلیږي همدارنګه سائبان هم نه داخلیږي.

**فائده**: دبیت، منزل او دارمذکورتفصیل داهل کوفه اوعربو داصطلاح مطابق دی زموږ په عرف کې بالاخانه په دري واړه صورتونو کې په بیع کې داخلیږي ولې ددې ځای په عرف کې هرمسکن ته په فارسی ژبه خانه په اردو کې ګهروالې که کوچنی وي که لوی وي نودهربناراوهرې زمانې خپل عرف معتبریږي. (الدّرالمختار: ۴/ ۲۱۱)

(۴)اوددار اخیستو په صورت کې خاص لاره (یعنې داسې لاره چې خاص دیو چاپه ملک کې تیره شوې وي ولې عامه لاره په بیع کې بیله ذکرد حقوقو داخلیږي ) اوداوبو وتلو ځای په بیع کې نه داخلیږي همدارنګه دځمکې اخیستو په صورت کې داوبوحصه په بیع کې نه داخلیږي،البته که یې داسې وویل چې :دارله تولو حقوقوسره یاځمکه له تولو حقوقوسره اخلم،نوبیاخاص لاره اوداوبووتلوځای اوداوبوحصه په دغه بیع کې داخلیږي ولې خاصه لاره یاداوبوځای یاداوبوحصه هرڅه په ددغې مبیعې له حدودو څخه خارج دي ځکه نوبیله ذکرد تولو حقوقو داشیان په بیع کې نه شاملیږي مګرد تابع کیدو په وجه د تولو حقوقو ذکر په صورت کې داخلیږي.

(۵)اوکه یې سرای یاځمکه په اجاره چاته ورکړل نومذکورشیان دسرای اوځمکې تابع دي په اجاره کې بیله ذکرکیدو داخلیږي ځکه سرای اوځمکه ددې لپاره اجاره کیږي چې له هغوڅخه نفع واخیستله شي اوله سرای اوځمکې نه بیله خاصې لارې داوبوله ځای اوداوبوله حصې نفع نه شي اخیستله کیدای نودعقد دتصحیح لپاره دغه شیان په اجاره کې داخلیدل ضروري دي.

## باب الاستحقاق

په استحقاق کې سین اوتاء دطلب لپاره دي یعنې حق طلبول، په اصطلاح کې استحقاق دي ته ویل کیږي چې یو څوک دیوشي په سبب دشي مستحق وګرځي، ددغه باب له باب الحقوق سره لفظاً اومعنًی دواړه ډوله مناسبت ثابت دی، لفظ خوظاهر دی چې استحقاق له حق څخه دی اومعنًی داډول چې استحقاق (یعنې حق طلبول) له حق وروسته وي.

(۱) اَلْبَیِّنَةُ حُجَّةٌ مُتَعَدِّیَةٌ لَا الْاِقْرَارُ (۲) وَالتَّنَاقُضُ یَمْنَعُ دَعْوَی الْمِلْکِ (۳) لَا الْحُرِّیَّةِ وَالطَّلَاقِ وَالنَّسَبِ (۴) فَبِیعَةٌ وَلَدَتْ فَاسْتُحِقَّتْ بِبَیِّنَةٍ یَتْبَعُهَا وَلَدُهَا وَاِنْ اَقَرَّ بِهَا لِرَجُلٍ لَا.

**ترجمه**: ګواه حجت متعدیه دی نه اقرار، اوپه کلام کې تناقض راتلل دملک ددعوی مانع دی، نه ددعوی دحریت اودعوی دطلاق اوله دعوی دنسب نه، دمبیعې بچی وزیږید بیاهغه دبل چاحق وګرځید په بیّنه وُسره نودابچی دهغې مبیعې تابع کیږي اوکه یې اقرار وکړ دهغه دبل چالپاره نوبیانه تابع کیږي.

**تشریح** :(۱)گواه حجت متعدیه دی یعنې دگواهانوپه ذریعه سره پرهرچاباندی هردول دعوی ثابتیږی ،په دي شرط چې په گواهانوکې دگواهي ورکولوشروط موجودوي،همدارنګه داهم شرط دی چې له گواهي سره دقاضی قضاء متصله شی ولی قاضی لره پرعاموخلکوولایت حاصل دی نودقاضی قضاء چې کله دگواهانوله گواهي سره یوځای شی نوپرټولو نافذه کیږی،اواقرارحجت غیرمتعدیه دی یعنې څوک چې دیوشي اقراروکړي هغه شی دهغه پرذمه ثابتیږی په هغه سره دبل چاپرذمه هیڅ شی نه شی ثابتیدای ولی اقرارکوونکی پرخپل ځان ولایت لري
پربل باندی هیڅ ولایت نه لری نوځکه دمقراقرار دمقرترځانپوری محدودوي بل چاته نه متعدي کیږی.

(۲)که دملک په دعوی کې تناقض ثابت شي نودادملک ددعوی غلطیدل ثابتوي مثلایوچایوه منځه واخیسته بیایې دادعوی وکړه چې دامنځه خودزیدملک دی نوهغه چې دزید دملکیت دعوی کوي غلطه ده ولی خپله دده په اخیستلوسره دامعلومیږی چې دهغه په نزددامنځه دهغه بائع ده له چانه چې ده اخیستی ده اوس چې دی کومه دعوی کوي چې دادزیدملک دی نوله هغی څخه دملک په دعوی کې تناقض پیداکیږی نودهغه دادعوی چې دادزیدملک دی غلطه ده.

**فائده** :دملک په دعوی کې تناقض ددعوی غلطیدل ځکه ثابتوي چې دقاضی لپاره دکلام دتناقض په صورت کې حکم کول ناممکن دی ولی له دواړوکلامونوڅخه یوترهغه بل اولی نه دی نوپه داسی صورت کې دواړه کلامونه ساقطیږی. (والتفصیل فی ردّالمحتار:۴/ ۲۱۸)

(۳)قوله لاالحریة ای لایمنع التناقض دعوی الحریة،یعنې که دحریت ،طلاق اونسب په دعوی تناقض راشي نوپه دغه تناقض سره دهغی دعوی غلطیدل نه ثابتیږی مثلایوچامنځه واخیسته اوهغه یې قبض هم کړه بیایې دعوی وکړه چې دادزیدآزاده کړای شوې ده اوپرهغه یې گواه هم وراندې کړنودهغه په دغه دعوی اوخریدکې که څه هم تناقض راغی خوځرنګه چې دادحریت دعوی ده نوسره له تناقضه هم دادعوی مقبوله کیږی اوهغه داحق لري چې له بائع څخه خپلی پیسی واپس واخلی وجه یې داده چې په آزادولوکې مولی مستقل دی نوداپرنوروباندی دځه وخت لپاره مخفی کیدای هم شی نوداویل کیدای شي چې مخکی ده لره دمنځی دآزادیدوعلم نه ووځکه یې هغه واخیسته وروسته یې دآزادي په معلومیدوسره دآزادی دعوی وکړه همدارنګه که یوې ښځی خپل خاوندته څه مال ورکړخلع یې وکړه طلاق یې واخیست بیایې دعوی وکړه چې ماته خاوندترخلع مخکی درې طلاقونه راکړي وونودښځی ددغي دعوی اوخلع ترمنځ تناقض راغی مګرځرنګه چې دطلاق معامله ده نوځکه له تناقض سره دهغی دعوی مقبوله کیږی وجه یې داده چې په طلاق ورکولوکې هم خاوندمستقل دی نوممکنه ده چې ښځی ته په ابتداء کې دخاونددطلاق ورکولومعلومات نه وو وروسته چې کله ورته معلومه شوه نویې دعوی وکړه ،علی هذاالقیاس که یوچامریی خرڅ کړبیایې دعوی وکړه چې دازمازوی دی نوسره له دي چې دهغه ددي دعوی اوخرڅولوترمنځ تناقض راځي مګرځرنګه چې دنسب دعوی ده نودتناقض باوجودیې دادعوی مقبوله کیږی وجه یې داده چې نسب پرعلوق مبنی دی اودعلوق یعنې نطفه قرارنیول یومخفی شی دی اودمخفی شي په باره کې تناقض معاف دی.

رجوع دي وکړي مشتري پرمرېي باندي او مرېي پربائع باندي،خلاف له رهن نه ،او که چاپه مکان کې دحق دعوی وکړه بیاصلح وشوه پرسل باندی بیامستحق ښکاره شو دبعض مکان نومدعي رجوع نه شی کولای او که يې دعوی وکړه دټول مکان نورجوع دي وکړي دهغې حصې په اندازه .

**تشریح** :(۵)که يوچابل ته وویل چې ته ما رانیسه زه مرېی یم ،هغه دی واخیست بیامعلومه شوه چې دی خومرېی نه بلکې آزاددی مشتري ته يې دوکه ورکړي ده چې دهغه پیسې يې يوفرضی مولی ته ورکړي دي نوپه داسی صورت کې که خرڅوونکی حاضروویاداسی غائب وو چې هغه ځای ويته يې معلومه وه نوفرضی بائع ته ورکړای شوې پیسې مشتري له مرېی څخه نه شی اخیستلای بلکې خرڅوونکی دي ونیسې اوله هغه دي خپلې پیسې وصول کړي ولی پیسې خوهغه قبض کړي دي اومشتری لره پرهغه باندي رجوع کول ممکن هم دی .

(۶)قوله والارجع المشتری علی العبدای وان لم یدرالبائع ای هورجع المشتری علی العبد،یعنې که بائع حاضرنه وو اونه يې پته معلومه وه چې چیرته دی نودطرفینورحمهماالله په نزدپه دغه صورت کې څرنګه چې له فرضی بائع څخه دپیسو اخیستل متعذردی نوځکه به مشتری دغه فرضی مرېي ته رجوع وکړي هغه ته په عوض کې ته ورکړي پیسی به له ده څخه وصول کړي ولی هغه خپل ځان مرېی ظاهرکړی دی مشتري ته يې دوکه ورکړي ده مشتري دهغه په دي ویناچې زه مرېی یم اعتمادکړی هغه يې اخستی وو ولی په حرکیدو کې دهغه قول معتبردی نوددي دوکه ورکولوپه وجه له مشتري څخه دضررلیري کولولپاره مرېی دمشتري دپیسوضامن بلل کیږی،بیاچې کله مذکورمرېی دمشتري پیسې اداکړي نواوس به مرېی دهغوپیسوپه باره کې بائع ته رجوع کوي ورنه اخلي به يې ولی دغه پیسې اداکول پربائع باندي لازم وونوګواکی مرېې دهغه قرضه اداکړه ځکه مرېی هغه ته درجوع کولوحق لري .

(۷)البته درهن داحکم نه دی یعنې که یوچاخپل ځان دیوچامرېی وښودبل ته يې وویل زه دفلان مرېی یم ستاپرهغه باندي قرض دی دهغه قرض په بدله کې ماله خپل ځان سره درهن په ډول وساته،هغه دی درهن په ډول وساتی بیامعلومه شوه چې دی مرېی نه دی آزاددی نواوس دامرتهن له هغه مرېي څخه په هیڅ حال کې هم قرض نه شی وصول کولای که راهن حاضروي که غائب وي اوچیرته چې اوسیږي هغه ځای معلوم وي که نه وي معلوم،ولی دپیسو واپس اخیستو اختیارپه عقودمعاوضه ؤکې وي یاپه کفاله کې وي په داسی حال کې چې رهن نه عقدمعاوضه دی اونه کفاله ده بلکې دوثوق اواعتمادذریعه ده ددي لپاره چې مرتهن لره خپل هغه حق حاصل شي کوم چې ده راهِن ته دقرض په ډول ورکړی دی نوپه دغه صورت کې مرتهن هغه مرېي ته دقرض دپیسوپه باره کې رجوع نه شی کولای .

**فائده** :دامام ابویوسف رحمه الله په نزددبیع په صورت کې هم مشتري هغه مرېي ته درجوع کولوحق نه لري که څه هم بائع داسی غائب وي چې اوس هغه ته رجوع کول متعذروي ولی درجوع حق په عقدمعاوضه کې وي یاپه کفاله کې وي په داسی حال کې چې دلته دمرېي له طرفه له مشتري سره نه کومه معامله شوې ده اونه مرېی دبائع له طرفه دپیسوکفیل شوی دی بلکې یوازې دخپل ځان په باره کې يې دمرېتوب

ددروغو اقرار کړی دی نو مشتري په هيڅ حال کې هم ده ته درجوع کولو حق نه لري ، دطرفينو رحمهما الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله: والراجح قول الطرفين رحمهما الله وهو ظاهر الرواية عن ائمتنا الثلاثة (هامش الهداية: ۳/ ۸۹)

(۸)که چاديو مکان په باره کې دعوی وکړه چې په دي کې يوه مجهوله حصه زماهم شته او مدعی عليه يعنې مالک مکان سل روپۍ ورکړي صلح يې ورسره وکړه بيا دهغه مکان ديوې حصی يوبل څوک مستحق پيدا شونو دمکان مالک به له اول مدعی (چې دڅه حصی دعوی يې کړې وه) څخه هيڅ واپس نه اخلی ولی داا حتمال شته چې ښايې ددغه دوهم مستحق حق په هغه حصه کې وي چې په هغه باندی مدعی دعوی نه ده کړې ولی هغه مدعی خودټول مکان دعوی نه وه کړې .

**فائده** :البته داشرط دی چې مستحِق به په ټول مکان کې استحقاق نه ثابتوي که نه اول مدعی ته دخپلو سلو درهمونو په باره کې رجوع کول صحيح کيږي ولی په ټول مکان کې ددريم چاپه استحقاق ثابتيدو سره معلومه شوه چې هغه ناحقه دعوی کړې وه او بيله وجه يې سل درهمونه وصول کړي وو . (الدّر المختار على هامش ردّالمحتار : ۴/ ۲۲۲)

**فائده** :له مذکورصورت څخه دامعلومه شوه چې دصلح دصحت لپاره صحت دعوی شرط نه دی ولی په مذکورصورت کې داول مدعِی حق مجهول دی او دمجهول حق دعوی نه ده صحيح ولی دمجهول په حق کې چې کومه دعوی وي هغه هم مجهوله وي . (پورتنی حواله )

(۹)اوکه اول مدعی دټول مکان دعوی کړې وه چې داټول مکان زمادی دمکان مالک هغه ته سل درهمونه ورکړل صلح يې ورسره وکړه اوس ددغه مکان دڅه حصی مثلاً دنيم مکان يوبل دريم شخص مستحِق پيدا شونو دمکان څښتن به له اول مدعِی څخه دمستحَق په اندازه يعنې دنيم مکان په اندازه درهمونه واپس واخلي ولی دمکان مالک دټول مکان په بدله کې پرسلو درهمونو باندې صلح کړې وه اوس چې کله داخبره ثابته شوه چې ټول مکان داول مدعی نه دی بلکې نيم دی نو دهغه نيم عوض يې بلاسببه وړی دی نو دغه نيم عوض دي له هغه نه واپس واخلي .

**فائده** :مذکوره مسئله ددي خبرې دليل دی چې دمجهول شي په باره کې پرمعلوم مال باندی صلح کول جائزه ده ولی په ساقطيدونکو شيانو کې جهالت مفضی ونزاع ته نه دی اوکوم جهالت چې مفضي ونزاع ته نه وي هغه دعدم
جوازسبب نه گرځي . (پورتنی حواله)

**فصل**

دافصل دفضولی داحکامو په بيان کې دی .

فضولی (بضم الفاء) معنی په مالايعنی سره مشغول کيدل،دفقهاؤ په اصطلاح کې فضولی هغه څوک دی چې نه اصيل وي اونه وکيل وي اونه وصی وي بلکې يوپردی څوک ديوچاپه حق کې له شرعی اجازت بغيرتصرف وکړي مثلاً ديوچايوشی دهغه له اجازته بغيرپه دي اميدخرڅ کړی چې هغه په دغه بيع سره راضي

کيږي ياپې دچاليپاره په دي اميدمال واخيست چې په دغه خريدسره هغه راضي کيږي دفضول دغه عقدداصل مالک پراجازه باندي موقوف کيږي که هغه اجازه ورکړه نونافذه کيږي که نه بيانه کيږي .

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې فضولی دبيع استحقاق له صورتونو څخه يوصورت دی ولی چې مستحق کله مشتري ته داوايي چې داشی زماملک دی فلاني چې پرتاباندي خرڅ کړی دی زماله اجازت بغيريې خرڅ کړی دی نودابعينه دفضولی بيع ده .

(۱)وَمَنْ بَاعَ مِلْكَ غَيْرِهِ فَلِلْمَالِكِ أَنْ يَفْسَخَهُ أَوْ يُجِيزَهُ (۲)إِنْ بَقِيَ الْعَاقِدَانِ وَالْمَعْقُودُ عَلَيْهِ وَلَهُ وَبِهِ لَوْ كَانَ عَرَضًا (۳)وَصَحَّ عِتْقُ مُشْتَرٍ مِنْ غَاصِبٍ بِإِجَازَةِ بَيْعِهِ (۴)لَا بَيْعُهُ (۵)وَلَوْ قُطِعَتْ يَدُهُ عِنْدَ الْمُشْتَرِي فَأَخَذَ أَرْشَهُ فَأُجِيزَ فَأَرْشُهُ لِمُشْتَرِيهِ (۶)وَتَصَدَّقَ بِمَا زَادَ عَلَى نِصْفِ الثَّمَنِ.

**ترجمه** :اوکه چاخرڅ کړدبل چاملِک نومالک لره اختيارشته چې هغه يادغه بيع فسخ کړي يااجازه ورکړي،که باقي وومتعاقدين ،معقودعليه ،معقودله اوبه که ثمن سامان وو ،اوصحيح دی آزادول دمشتری له غاصب څخه له اجازي دبيع سره،نه دهغه بيع اوکه پري کړای شولاس دهغه دمشتري سره اوهغه يې تاوان واخيست يادبيع اجازه ورکړای شوه نوتاوان دمشتري کيږي اوصدقه دي کړی هغه چې زيات وي ترنصف ثمن .

**تشريح** :(۱)که يوه فضولی ديوچامملوک شی دهغه له اجازي بغيرخرڅ کړنوداجائزدی ولی عروی بن ابی الجعد روايت کوي چې پيغمبرعليه السلام ديوې بزې اخستولپاره ماته يودينارراکړماپه هغه باندي دوې بزې واخيستی بيامی له هغوڅخه يوه دانه په يوه دينارخرڅه کړه پيغمبر عليه السلام ته مي يوه بزه اويودينارراوور راغلم،پيغمبرعليه السلام هغه ته په خريدوفروخت کې دبرکت دعاء وکړه،که دفضولی عقدناجائزوای نوبياپيغمبر ﷺ هغه بيع نه نافذوله (ويل کيږی چې دنبی کريم ﷺ ددعاء دااثرشوچې بيابه ابن ابی الجعد خاوري هم اخيستلی نوپه هغوکې به يې گټه کوله ) بيامالک لره اختيارشته که غواړی چې هغه بيع فسخ کړي اوکه غواړي چې برقراره يې وساتی اختيارځکه ورکړل شوی دی چې دمالک ضررنه وي ولی ممکنه ده چې هغه په دی خبره راضي نه وي چې داشی دهغه له لاسه ووځي .

**فائده** :دامام شافعي رحمه الله په نزددفضولی تصرف جائزنه دی ولی هغه لره شرعي ولايت حاصل نه دی ځکه شرعي اجازت خپله په مالک کيدوسره يادمالک په اجازه ورکولوسره ثابتيږی په داسی حال کې چې فضولی نه مالک دی اونه مالک هغه ته اجازه ورکړي ده اوداقاعده ده چې کوم شی له شرعي ولايت څخه صادرنه وی هغه نه منعقدکيږي ،احناف وايي چې داتصرف له خپل اهل يعني عاقل بالغ څخه پخپل محل يعني مال متقوم کې صادرشوی دی نوددي دعدم انعقادهيڅ وجه نشته،همدارنگه په دي کې دمالک هم ضررنشته ولی مالک لره خودعقدقبلولواوردولودواړواختيارشته که دی په دي کې خپل ضررمحسوسوي نوعقددي ردکړي بلکې په دی کې خودمالک فائده ده چې هغه دمشتري له تلاش کولواودثمن مقررولوله مشقت څخه ژرکاردی نوداويل کيږي چې دمالک له طرفه دلالةً اجازه معلوميږي .

(۲)خودانعقادعقدلپاره داشرط دی چې متعاقدين يعنی بائع اومشتري اومعقودعليه يعني مبيعه اومعقودله يعني اصل مالک ټول به موجودوي همدارنگه که يې معقودبه (يعني ثمن ) يوسامان مثلاً کپړه ،لوښي يابل شی ورکړي وورويې يې نه وي ورکړي نودهغه موجوديدل هم ضروري دی ولی داصل مالک

اجازه ورکول تصرف فی العقددی اودتصرف فی العقدلپاره دعقدقائمیدل ضروري دی چې په هغه کې تصرف کول ممکن وي اومذکورعقدپه مذکوروشیانو (بائع،مشتری، معقودعلیه، معقودله اوبه ) سره قائمیږی.

(۳)که چادبل مریی غصب کړخرڅ یې کړمشتری هغه مریی آزادکړاوس دمریي اصل مالک غاصب ته دخرڅولو اجازه ورکړه نودشیخینو رحمهما الله په نزددمشتری آزادیدل صحیح کیږي،اودامام محمد رحمه الله په نزدصحیح نه دی،دقیاس تقاضاهم همداده چې دمشتري اعتاق بایدصحیح نه وي،مشتري دهغه مریي مالک نه دی کرڅیدلی ځکه په داسی بیع سره چې پراجازه باندي موقوفه وي ملکیت نه ثابتیږی اوبیله ملکیت څخه آزادول نه دی صحیح لقوله ﷺ :لاعتق فیما لایملک ابن آدم (یعني عتق نشته په هغه شی کې په کوم کې چې دبنی آدم مِلک حاصل نه وي) دشیخینو رحمهما الله دلیل دادی چې مشتری له غاصب څخه دیوډول شرط بغیرپه مطلق بیع سره اخیستی دی اوداسی بیع مفیده مِلک لره ده اودهمدي بیع پربنیادمشتري هغه آزادکړنومریی آزادیږي خوځرنګه چې دابیع دمالک پراجازه موقوفه ده نودمشتري آزادیدل هم دمالک تراجازي پوري موقوف دی نوچې کله مالک اجازه ورکړه نودبیع له نفاذسره اعتاق هم نافذکیږی لکه راهن چې دمرتهن له اجازي بغیرمرهون مریی خرڅ کړی اومشتري هغه آزادکړي نودمریي آزادي دمرتهن تراجازي یادمرهون مریي ترآزادیدوموقوف دی چې کله مرتهن دبیع اجازه ورکړي نومریی هم آزادیږي.

**فائده** :دشیخینو رحمهما الله قول راجح دی لمافی الدر المختار:اشتری من غاصب عبدا فاعتقه المشتری اوباعه فاجاز المالک بیع الغاصب وادی الغاصب الضمان الی المالک اوادی المشتری الضمان الیه نفذ الاول ای العتق قال ابن عابدین الشامی رحمه الله :هذا عندهما وقال محمد لایجوز عتقه ایضا لانه لم یملکه (الدر المختار مع الشامیة:۳/۱۵۹)

(۴)قوله لابیعه ای لاصح بیع المشتری من الغاصب وان اجاز المولی بیعه،یعني که مشتری نه وو آزادکړی بلکې پربل چاپي خرڅ کړی وواوس دمریي اصل مالک غاصب ته دخرڅولو اجازه ورکړه نودمشتري خرڅیدل نه صحیح کیږی ولی چې کله مالک اجازه ورکړه نودمشتری من الغاصب لپاره مِلک قطعی ثابت شوپه داسی حال کې چې ده لره مِلک موقوف له وړاندي څخه ثابت دی اوس مِلک قطعی پرهغه مِلک موقوف باندي طاري شوچې په هغه سره مِلک موقوف باطلیږی ولی مِلک قطعی اومِلک موقوف جمع کیدل محال دی نوچې کله مِلک موقوف باطل شونوله هغه سره اجازه هم نه ملحقه کیږي نودمشتری من الغاصب مخته خرڅول هم نه صحیح کیږي.

(۵)که دمغصوب مریي لاس چادمشتري سره پریکړچې مشتری دهغه تاوان واخیست اواوس چې اصل مالک دخرڅولواجازه ورکړه نودتاوان روپی دهمدغه مشتري سره پاتیږی ولی داجازي په وجه دمشتری ملکیت دخریدله وخته پوره شوځکه خریددمِلک سبب دی نوښکاره شوه چې لاس پریکیدل دمشتري پرملکیت باندي واقع شوی دی اوچې کله لاس دمشتري سره غوڅ کړای شوی دی نوتاوان به یې هم دمشتري لپاره وي،اوکه دمریي لاس دغاصب سره غوڅ کړای شوی یاغاصب دمریي قیمت اداکړنودلاس تاوان دغاصب حق نه کیږي ولی غصب سبب دمِلک نه دی.

(۶) په مذکورصورت کې پر مشتري باندې واجب دی چې دلاس تاوان چې ترنيمی پيسو څو مره زيات وي هغه صدقه کړي (دآزادبنی آدم دلاس تاوان نصف ديت دی او مريي دلاس تاوان دهغه دنيم قيمت برابردی) ولی په دې کې دعدم مِلک شبه ده ځکه دمشتري مِلک په طريقه داستناد ثابت دی او کوم مِلک چې په طريقه داستناد ثابت وي هغه من وجه ثابتيږی ځکه نو په دې کې دعدم مِلک شبه پيدا شوه .

(۷) وَلَوْ بَاعَ عَبْدَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ فَبَرْهَنَ الْمُشْتَرِي عَلَى إِقْرَارِ الْبَائِعِ أَوْ رَبِّ الْعَبْدِ أَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْهُ بِالْبَيْعِ وَأَرَادَ رَدَّ الْمَبِيعِ لَمْ تُقْبَلْ بَيِّنَتُهُ (۸) وَإِنْ أَقَرَّ الْبَائِعُ بِذَلِكَ عِنْدَ الْقَاضِي بَطَلَ الْبَيْعُ إِنْ طَلَبَ الْمُشْتَرِي ذَلِكَ (۹) وَمَنْ بَاعَ دَارَ غَيْرِهِ وَأَدْخَلَهَا الْمُشْتَرِي فِي بِنَائِهِ لَمْ يَضْمَنِ الْبَائِعُ .

**ترجمه**: او که يې خرڅ کړ دبل چا مريی دهغه له اجازې بغير او ګواهان يې وړاندې کړل مشتري دبائع پر اقرار يا دمريي دمالک پر اقرار باندې چې هغه ده ته دبيع اجازه نه ده ورکړې، او مشتري اراده وکړه دبيع دردولو نو ګواهان يې نه منظوريږي، او که اقرار وکړ بائع ددغی خبرې دقاضی په وړاندې نو بيا بيع باطليږی که مشتري دامطالبه وکړه، او که چا خرڅ کړ دبل چا سرای او مشتري هغه ګډ کړ له خپل سرای سره نو بائع ضامن نه ګرځي .

**تشريح**: (۷) که چا دبل چامريی دهغه له اجازې بغير خرڅ کړ بيا مشتري پر دې باندې ګواهان ودرول چې دمريي خرڅوونکی زما په مخکې دا اقرار کړی وو چې اصل مالک ماته دخرڅولو اجازه نه ده ورکړې يا يې ګواهان ودرول پر دې باندې چې اصل مالک زما په مخکې دا اقرار کړی وو چې ما ددغه مريي دخرڅولو اجازه نه ده ورکړې په دې دواړو صورتونو کې دمشتري په ګواهانو وړاندې کولو سره مقصود دبيع ردول دی نو دهغه دا ګواهان نه منظوريږي، ولی دهغه په دعوی کې تناقض دی داځکه چې کله هغه داخيستلو اقدام وکړ نو ګواکې ده دشراء دصحت اقرار وکړ او اوس بيا دغير صحيح کيدو دعوی کوي نو دده په دعوی کې تناقض راغی او دتناقض په صورت کې دعوی نه صحيح کيږی او بينه (ګواهان) پر صحت دعوی باندې مبنی وي نو چې دتناقض په وجه دعوی صحيح نه شوه نو دمشتري بينه (ګواهان) هم نه منظوريږي .

(۸) او که خرڅوونکي فضولي دقاضي په وړاندې خپله دا اقرار وکړ چې بيشکه اصل مالک ماته دخرڅولو اجازه نه ده راکړې نو بيا بيع باطليږی په دې شرط چې مشتري هم دبطلان مطالبه کړې وي ځکه دلته هم تناقض شته مګر څرنګه چې فضولي اقرار کوي او تناقض له صحت داقرار څخه مانع نه دی همدا وجه ده چې که چيرته يو څوک دشي څخه انکار وکړي بيا په هغه اقرار وکړي نو دهغه دا اقرار صحيح دی البته څرنګه چې دفضولي اقرار حجت قاصره دی او حجت قاصره دغير په حق کې نه نافذ کيږی نو پر مشتري باندې نه نافيږی البته که چيرته مشتري پر دغه اقرار باندې له بائع سره موافق وي نو دبيع فسخ کول جائز کيږي .

(۹) که چا دبل چا سرای دهغه له اجازې بغير خرڅ کړ او مشتري را ولاړ شو هغه سرای يې له خپل سرای يوځای کړيعني قبض يې کړ نو دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد خرڅوونکی ددې سرای دقيمت ضامن نه ګرځي، که څه هم هغه دغصب اقرار کوي، ولی دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد غصب په غير منقول جائيداد کې نه متحقق کيږي نو غاصب نه ضامن کيږي، همدا دامام ابويوسف رحمه الله آخري قول دی، په داسی حال کې چې

دامام محمد رحمه الله په نزدضامن گرځي ،ولي دامام محمد رحمه الله په نزدغصب په غيرمنقول جائيدادکې متحقق كيږي ،دغيرمنقول جائيداددغصب کولوتفصيل ان شاء الله تعالى په كتاب الغصب كې راځي.

## باب السّلم

## داباب دبيع السّلم په بيان كې دى

مصنف رحمه الله چې كله دهغوبيوعوله بيان څخه فارغ شوپه کومو کې چې دعوضينويادیوه په مجلس عقدکې قبض ضروري نه دى اوس دهغوبيوعوبيان شروع کوي په کوموکې چې عوضين يايويه مجلس عقدكې قبض كول ضروري دى،بيايه بيع السلم كې احدله عوضينوقبض كول ضروري دى اوپه بيع صرف كې دداړوعوضينوقبض كول ضروري دى نوبيع السلم په منزله دمفرددى اوبيع صرف په منزله دمركب دى څكه يې نوبيع سلم مقدم كړ.

بيع سلم په لغت كې عبارت دى له هغې بيع څخه په کوم کې چې ثمن معجّل وي اوپه اصطلاح دفقهاؤكې عبارت ده له :اخذعاجل بآجل (مؤجل دمعجّل په عوض اخيستل) څخه يعني بيع سلم هغه عقددى چې پكې پرثمن باندي عاجلا اوپرمبيعه باندي آجلا ملک ثابتيږي،صاحب ثمن يعني مشتري ته رب السلم ،صاحب دمبيعه يعني بائع ته مسلم اليه ،ثمنوته رأس المال اومبيعه ته مسلم فيه وايي .

**فائده** :دبيع سلم مشروعيت په کتاب الله اوسنت رسول الله ﷺ او اجماع دروواړوسره ثابت دى ،اماالكتاب فقال ابن عباس اشهدان الله احلّ السّلم المؤجل وتلاقوله تعالى ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ﴾ واماسنت رسول الله ﷺ فقوله عليه السلام :من اسلم منكم في ثمرفليسلم في كيل معلوم ووزن معلوم الى اجل معلوم، رواه البخارى ومسلم) همدارنگه دبيع سلم پرجوازباندى درسول الله ﷺ له وخته ترنن پوري دامت اجماع راروانه ده،البته دقياس تقاضاداده چې بيع سلم نه وي جائزه ولي په بيع سلم كې بيع دمعدوم كيږي اوبيع خودموجودغير مملوک ياموجودغيرمقدورالتسليم لاهم نه ده جائزه نودغيرموجودبيع په طريقه اولى سره نه جائزه كيږي .

**فائده** :دبيع سلم دجوازعقلي وجه دخلكواحتياج دى يعني بيع سلم ته دخلكوډيرشديدضرورت دى اوقاعده ده چې :الضرورات تبيح المحظورات ،دبيع سلم حكم دادى چې په رأس المال يعني ثمنوكې دمسلم اليه ملک في الحال ثابتيږي اوپه مسلم فيه يعني مبيعه كې درب السلم ملک په مؤجل (موقت ) ډول سره ثابتيږي .(الفقه الاسلامى وادلته :۵/ ۳۶۰۳)

(۱)مَاأَمْكَنَ ضَبْطُ صِفَتِهِ وَمَعْرِفَةُ قَدْرِهِ صَحَّ السَّلَمُ فِيهِ وَمَا لَا فَلَا فَيَصِحُّ فِي الْكَيْلِيِّ وَالْمَوْزُونِ الْمُثَمَّنِ (۲)وَالْعَدَدِيِّ الْمُتَقَارِبِ كَالْجَوْزِ وَالْبَيْضِ وَالْفَلْسِ وَاللَّبِنِ وَالْآجُرِّ إنْ سَمَّى مِلْبَنًا مَعْلُومًا(۳)وَالذَّرْعِيِّ كَالثَّوْبِ إنْ بَيَّنَ الذِّرَاعَ وَالصِّفَةَ وَالرُّقْعَةَ وَالصَّنْعَةَ .

**ترجمه** :هغه شى چې ممكن وي ضبط كول دصفت دهغه اومعلومول دمقداردهغه صحيح دى په هغه كې بيع دسلم اوكوم شى چې داسي نه وي په هغه كې صحيح نه دى،نوصحيح دى په كيلى ،وزنى ثمن والااوعددى متقارب شيانوكې لكه :چارمغز،هگى،پيسې،كچه خښتې،پخې خښتې كه يې وربنودلى وومعلوم غالب ،اوپه گزناپيدونكيو شيانوكې لكه كپړه كه چيرته يې ورته ښودلى ووگزاوصفت اوپنډوالى اوجوړښت.

**تشريح** :(۱)يعنې بيع دسلم جائزه ده په هرهغه شي کې چې دهغه دصفت (يعنې جودة اوردائت ) اومقدارد معرفت ضبط کيداى شي اوداځکه ضروري دى چې جهالت رفع شي داېيع مفضى ونزاع ته نه شي قوله ومالافلاای کل شی لایمکن فیه ضبط الصفة ومعرفة القدرفلایصح بیع السلم فیه،يعنې دکوموشيانوچې دصفت اومقدارد معرفت ضبط ممکن نه وي په هغوکې دجهالت په وجه بيع دسلم نه ده جائزه،ولى داډول بيع مفضي ونزاع ته کيږي،نوهغه کوم شيان چې په ناپ سره خرڅيږى مثلالکه غنم اوربشي وغيره په هغوکې بيع دسلم جائزه ده ،همدارنګه په موزونى مبيعاتويعنې هغه شيان چې په تول سره خرڅيږى لکه شهد (عسل) زيتون وغيره په هغوکې هم بيع دسلم جائزه ده ولى په ناپ اوتول سره ددغوشيانو دمقدار ضبط کيداى شي اوپه بيان سره يې دصفت ضبط کيداى شي اوداقيدچې مبيعه به مثمنه وي يې ځکه لګولى دى چې دراهم اودنانيرووځي چې دادواړه بيشکه چې وزنى دي مګرذى ثمن نه دي بلکې په پيداښى ډول خپله ثمن دي په داسى حال کې چې په بيع سلم کې مسلم فيه مبيعه وي ثمن نه وي، نوپردراهمواودنانيرو باندي دبيع سلم دتعريف نه صادقيدوپه وجه په دوئ کې بيع دسلم نه ده جائزه .

(۲)قوله والعددى المتقارب اى يصح السلم فى العددى المتقارب عددا،يعنې په عددى متقارب شيانوکې (عددى متقارب هغه شيان دي چې په احادوکې دقيمت په اعتبارتفاوت نه وي ) هم په شمارلوسره بيع سلم جائزه ده لکه چارمغز،هګۍ،پيسې،اوکچه خښتي په دي شرط چې دخښتوغالب به يې متعين کړى وي ولى ددغوشيانو مقدارپه شمارسره ضبطيداى شي اووصف يې په بيان سره ضبط کيداى شي ،همدارنګه دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپه عددى متقابوشيانوکې دکيل په ذريعه هم بيع سلم جائزه ده البته دامام زفر رحمه الله په نزدپه عددى شيانوکې دکيل په اعتباربيع سلم نه ده جائزه .

**فائده** :په فلوس (پيسو )کې دامام محمد رحمه الله په نزدبيع سلم نه ده جائزه ولى فلوس ثمن دي مبيعه نه دي اومخکې داخبره ذکرشوه چې په ثمن کې بيع سلم جائزه نه ده،امام محمد رحمه الله ته جواب ورکړاى شوى دى چې دفلوس ثمن کيدل دعرف اومتعاقدينوپه اصطلاح سره دى نوددوئ په اتفاق سره دفلوس ثمن کيدل باطليږى اوچې کله دفلوس ثمن کيدل باطل شونوفلوس دهغوئ په حق کې سامان ګڼل کيږى ثمن نه دي نوځکه په فلوس کې بيع سلم جائزه ده،علامه شامى رحمه الله فرمايې چې له امام محمد رحمه الله څخه هم ظاهرالرواية هم هغه دى کوم چې له شيخينورحمهما الله څخه مروي دى . (ردالمحتار:۴/ ۲۲۷)

**فائده** :نوټ خپله ثمن دى اوکه داصل ثمن سنددى ؟ په دي باره کې دعلماؤرايه مختلفي دي ديوې ټولى خيال دادى چې نوټ اوسګه دوثيقه حکم لري ،بعينه ثمن نه دي ،زموږله علماء هند څخه په دي باره کې په خاصه توګه دحضرت مولانااشرف على تهانوى رحمه الله اوحضرت مولانامفتى محمدشفيع رحمه الله نوم ديادولووړدى په عام ډول دهنداوپاکستان علماؤدهغه مطابق فتوى ورکړې ده ،ددوهمې ټولى رايه داده چې سکه اونوټ خپله دثمن درجه لري،مولاناعبدالحى لکهنوى رحمه الله اودده شاګرد رشيدحضرت مولانافتح محمد رحمه الله ددي قائل دي .

ظاهره خبره ده چې په دې باره کې مورد کتاب اوسنت تصریحات نه شو موندلی ځکه چې په قدیم زمانه کې دخریداوفروخت لپاره یواځې سره اوسپین (دارهم اودنانیر) استعمالیده،دسکواوپه خاص ډول دنوټ استعمال خوډیروروسته شروع شو،البته دفقه په ځینوکتابونوداسې نظرونه موندل کیږی چې له هغوڅخه پرمذکوره مسئله باندې رڼاچول کیږي،ځینی خلک نوټ یواځې وثیقه اوسندګڼي،دهغوئ دلیل واضح اوپه بادی النظرکې قرین قیاس دی ،پرنوټ باندی ددې عبارت درج کیدل چې :ددومره روپوداداکولواجازه ورکوو،،، دنوټونودوثیقه کیدوخبره په ډاګه کوي،چې دریزروبانک دوزیردتوثیق په وجه قبلیږی،که نه ظاهره ده چې خپله په دغه کاغذیاسکه کې دخریددومره قوت نه وي کوم چې دهغه توثیق په وجه پکې تسلیم کړای شی اونه دهغه توثیق بغیرڅوک هغه دخریداوفروخت لپاره قبلوي،دبل نوټ ترویج اودهغه آغازچې په څه ډول شوی دی هغه خپله ددې تائید کوي،ویل کیږی چې په ابتداء کې دبانک دنوټ پرځای خلکوخپله درقوموو ثیقې لیکلې اوهغه به یې قبلولي،کوم چې ظاهره ده چې دچیک اووثیقه شکل دی ،وروسته دغه اختیارحکومتونوترلاسه کړاودهغوئ دتصدیق په مهرسره نوټ چلیږی،بیاحکومت پر،،،دکنټرول لپاره داحق ریزروبانک ته وروسپاری اوپه همدې ډول اوس بانک نوټونه جاري کوي ،دائرة المعارف برطانیه دنوټ حیثیت داسې ښودلی دی چې داګواکی دهغه قرض سند دی کوم چې دنوټ دڅښتن له طرفه دبانک پرذمه دی دنوټ په باره کې دې مذکورتفصیل داخبره واضحه کړي ده چې نوټ دوثیقه حیثیت لري،اودفقه په اصطلاح کې داحواله ده ،دنوټ اداکوونکی محیل ،وصولوونکی محتال ،اوبانک محتال علیه دی،چې دهغه دادایګی ذمه یې اخیستی ده .

کوم حضرات چې نوټ ثمن ګڼي دهغوئ په نظرداامردی چې دنوټ چلیدل په اوسنی زمانه کې بعینه همداسې دې لکه په پخوازمانه کې چې دراهم اودنانیرچلیدل،حکومت دنوټ اخیستوته مجبوروي،که نوټ ضائع شی نودهغه عوض نه اداکوي،پاتی شوه دحکومت له طرفه دنوټ توثیق دادنوټ ثمنیت ته چندان تاوان نه رسوي،څرنګه چې نوټ پخپل ځان کې مالیت نه لري،ځکه نودهغه دثمنیت دیقیني کولواوداعتباردقائمولولپاره دحکومت له طرفه داتوثیق دی چې دهغه له ثمنیت سره منافي نه دی..

ددغوتفصیلاتوپه رڼاکې راقم الحروف عرض کوي چې دنوټ حیثیت په اوسنی زمانه کې داصطلاحی ثمنوشوی دی اوزمونږدزمانی له لحاظه په هغه کې هیڅ شبه نه ده پاتی شوې په نن زمانه کې چې څوک بل ته نوټ اداکوي نودهغه په ذهن کې داخبره بلکل نه وي چې دی هغه ته وثیقه اداکوي،چې دهغه اداییګی دبانک پرذمه دی،بلکې دی هغه مستقل ثمن ګڼي اداکوي یې ددې برخلاف نن سباهم په بانکوکې چیک اوډرافټ وغیره ورکول کیږي،نودورکوونکی اواخستونکي دواړوپه ذهن کې دهغه داحیثیت دی چې دااصل رقم نه دی بلکې وثیقه ده اولکه څرنګه چې مخکی ذکرکړای شوفقهاؤچې دپیسوپه باره کې کوم تفصیلات ذکرکړي دي له هغوڅخه داخبره واضحه معلومیږي چې ثمنیت ،درلودل په اصل کې پرعرف اورواج باندې مبنی دی اوهغه په دې باب کې داصل اوبنیادحیثیت لري فلوس نافقه اوداډول درهم

اودينارچې پرهغوباندي كوټ غالب وي اوهغه دسرواوسپينوپه حكم كې نه وي ددي واضح نظيردی چې دهغودثمنيت تسليميدولووجه له رواج اوتعامل پرته بله څه ده ؟ . (جديدفقهي مسائل : ۳۰/۴)

**فائده** :څرنگه چې كرنسي نوټ په خلقي ډول ثمن نه دي بلكې دعرف اورواج په وجه يې دثمنوحيثيت خپل كړی دی اوبيع صرف،يوائې په خلقي ثمنو(سرواوسپينو) كې جاري كيږي ،نودشيخينو رحمهما الله په نزدپه مجلس بيع كې ددواړونوټوقبض كول شرط نه دی بلكې له يوه جانبه دنوټ قبض كول شرط دی نوكه يوچاامريكائي ډالروصول كړل دهغوپه عوض كې يې دپاكستاني كرنسي نوټ وركول موده مقرره كړه معامله يې طی كړه چې درې مياشتې وروسته پاكستاني كرنسي نوټ اداكوم نوداډول بيع جائزه ده لماقال العلامة محمدتقي العثماني حفظه الله بحيالهم: لان الاثمان لايشترط فيها كونها مملوكة للعاقد عندالبيع عندهم فيصح فيها التاجيل عنداختلاف الجنس.(بحوث: ۱۶۸/۱ )البته كه دسودخوري لپاره داطريقه اختياركړی شي نوبياله هغی نه پرهيزكول لازم دی .

(۳)قوله والذرعی ای يصح السلم فی الذرعی ذرعا،يعنې كوم هغه شيان چې په گزسره خرڅيږي لكه كپړه وغيره په هغوكې هم بيع سلم چې په گزسره ناپ كړی شي جائزده ولې په گزونوسره په ناپولوكې دهغوضبطول ممكن دي په دي شرط چې دايبان شوی وي چې په كوم گزسره ناپيږي ولې گزدوه قسمه وي يوقسم هغه گزدی چې په هغه سره ځمكې پيمايشيږي دوهم قسم هغه دی چې په هغه سره كپړه وغيره ناپيږي نودگزبيانول ضروري دی په ننني زمانه كې گزاوميټراستعماليږی،اوداهم شرط دی چې دكپړي صفت بيان كړي چې كوم قسم كپړه ده (دوون، دوريښمو،دپنبه ؤ) ولې بيله بيانولوپه هغې كې دبائع اومشتري ترمنځ نزاع راتلای شي همدارنگه دكپړي جوړښت اونرم والی اوپنډوالی بيانول هم شرط دی چې دكوم ځای جوړه شوې كپړه ده ولې بيله بيانولوپه هغه كې هم دبائع اومشتري ترمنځ نزاع راتلای شي،(مشتري به جاپانی كپړه غواړي مثلا بائع به چينائی يا ايرانی كپړه وركوي ) .

(۴)لافِی الحَيَوانِ وَاَطرَافِهِ وَالجُلُودِعَدَدًا(۵)وَالحَطَبِ حُزَمًاوَالرَّطبَةِجُرزًا(۶)وَالجَوَاهِرِوَالخَرَزِوَالمُنقَطِعِ(۷)وَالسَّمَكِ الطَّرِيِّ وَزنًاالَّومَالِحًا(۸)وَاللَّحمِ(۹)وَبِمِكيَالٍ اَوذِرَاعٍ لَم يُدرَقَدرُه(۱۰)وَبُرِّقَريَةٍاَوتَمرِنَخلَةٍمُعَيَّنَةٍ.

**ترجمه** :اوبيع سلم جائزه نه ده په حيوان كې اودهغه په اطرافوكې اوپه څرموكې دعددپه لحاظ سره اوپه لرگوكې

دباړونوپه لحاظ سره اوپه سبزيوكې دگيډيوپه لحاظ سره اوپه جواهراتواوملغلروكې اوپه هغوشيانوكې چې نه موندل كيږي اوپه تازه ماهيانو(كبانو)كې اوصحيح دی دوزن په اعتبارسره كه په مالگه لړل شوي وواونه دی صحيح په غوښوكې ،اوپه داسې پيمانه ياگزسره چې دهغومقدارمعلوم نه وي اودخاصې علاقې (سيمې ) په غنموكې اودمعلومې درختی(ونی) په خرماؤكې .

**تشريح** :(۴)قوله لافی الحيوان واطرافه،ای لايصح السلم فی الحيوان واطرافه،يعنې په حيوان اودهغه په اطرافوكې (يعنې سراوپښوكې) بيع سلم نه ده جائزه اونه په څرموكې په شمارسره ولې داټول عددی متفاوت شيان دي

يعنې ددې په دانوکې غيرمعمولی تفاوت راځی چې مفضی ونزاع ته دی ،همدارنګه نبی کريم ﷺ په حيوان کې له بيع سلم څخه منع فرمايلې ده .

**فائده** :دامام شافعی رحمه الله په نزد په حيوان کې بيع سلم جائزه ده ولی دحيوان : جنس،نوع،عمراووصف يعنې چاغ اوډنګرپه بيانولوسره دهغه معرفت ممکن دی ددغوشيانوله بيانولووروسته په حيوانانوکې ډيرکم فرق پاتی کيږي نوپه حيوان کې بيع سلم جائزه ده،احناف جواب ورکوي چې داتعليل دنص په مقابل کې دی همدارنګه دحيوان دجنس ،نوع وغيره له بيانولووروسته بيا هم په حيوانانوکې دماليت په اعتباردباطنی خوبيانوپه وجه ډيرفرق راځی مثلاديوه عمردوه آسان وي خوکله يې دقيمت په اعتبارسره ډيرفرق وي په دی وجه چې په يوه کې دتيزرفتاري اونوربه صفتونه وي په هغه بل کې نه وي نودماليت په اعتبارسره دزيات تفاوت په وجه په حيوانانوکې بيع سلم نه ده جائزه . (ردّالمحتار:۲۲۸/۴)

(۵)قوله والحطب حزماوالرطبة جرزا،ای لايصح السلم فی الحطب حزماوالرطبة جرزا،يعنې بيع سلم په لرګيوکې دبارونوپه لحاظ اوپه سبزيوکې دګډيوپه لحاظ سره جائزه نه ده،ولی بارونه اوږو ،،متفاوت اومجهول دي يعنې دبائع اومشتری ترمنځ نزاع پکې راځی البته که دهغی رسۍ اوږدوالی بيان کړای شي چې بارونه په ترل کيږي نوکه داسی ووچې دبارونوترمنځ تفاوت نه راتلی يابې دنوع اووصف په بيانولوسره دوزن په اعتبارکړل نوبياجائزه ده څکه بيادامفضي ونزاع ته نه دی ،همداحکم دسبزيوهم دی چې دوصف په بيانولوسره دوزن په اعتبارپه عقدکولوسره په هغوکې بيع سلم جائزه کيږي .

(۶)قوله والجواهروالخرزوالمنقطع،ای لايصح السلم فی الجواهروالخرزوالشی المنقطع عن ايدی الناس،يعنې څرنګه چې جواهراوملغلری عددي شيان دي اودهغوپه دانوکې دماليت په اعتبارډيرفرق راځی نوپه دي وجه چې مفضي ونزاع ته کيږي په هغوکې بيع سلم نه ده جائزه،همدارنګه په داسی شيانوکې بيع سلم نه ده جائزه کوم چې دبيع په وخت کې يادمسلم فيه داداکولوپه وخت کې په آسانی سره په لاس نه راځي آن تردي که چيرته مسلم فيه دعقدپه وخت کې موجودوواودادائيګی په وخت کې منقطع شويادهغه برعکس ياپه منځ موده کې منقطع شونوبيع سلم نه ده جائزه ،لحديث ابن عمر الله ﷺ نهی عن بيع الثمارحتی يبدوصلاحها.(يعنې نبی کريم ﷺ په ميوو کې له بيع سلم څخه منع فرمايلی ده ترهغه چې هغه ښکاره شی ) له دهغه حديث شريف څخه معلومه شوه چې دعقدپه وخت کې دمسلم فيه په ښکاره شکل موجوديدل ضروري دی ،همدارنګه دمسلم اليه لپاره دمسلم فيه پرتسليمولوباندی قدرت درلودل ضروري دی نوپه ټاکلی شوې موده کې دمسلم فيه دوامداره وجودضروري دی .

**فائده** :که له ټاکلی شوې مودې وروسته هغه شی منقطع شونورب السلم لره اختياردی که بيع سلم فسخ کوي اوکه دمسلم فيه ترموجوديدوپوری انتظارکوی ولی عقدجائزواقع شوی دی څکه شرط دجواز موندل شوی دی يعنې ترټاکلې مودې پوري دمسلم فيه دموجوديدوشرط شته البته ديوه عارض په وجه دمسلم فيه تسليمول متعذرشوی دی اوداعارض ليري کيدای هم شی نوداداسي شولکه مبيعه چې مريی وي اوهغه

دمشتري ترقبض کولومخکې وتښتي نومشتري لره دبیع دفسخ کولواودمرېې ترراتګ پورې دانتظارکولواختيارشته بس بعینه همداحکم دمسلم فیه دانقطاع په صورت کې هم دی . (الدرالمختارعلی هامش ردّالمحتار : ۴/ ۲۲۸)

**فائده** :دامام شافعي رحمه الله په نزدیوائې داداکولوپه وخت کې دمسلم فیه موجودیدل شرط دی ولی دمسلم فیه له وجودڅخه مقصوددادی چې مسلم الیه دمسلم فیه پرسپارلوباندی قادروي،اوسپارل داداکولوپه وخت کې راځي ترهغه مخکې نه وی نوله وړاندې نه دمبیعی موجودیدل شرط نه دی،امام شافعي رحمه الله ته جواب ورکړای شوی دی چې له مذکورحدیث شریف څخه معلومیږي چې دعقدپه وخت دمبیعه موجودیدل ضروري دی نوستاسی تعلیل په مقابله دنص کې معتبرنه دی .

(۷) قوله والسمک الطری،ای لایصح السلم فی السمک الطری فی غیر حینه،یعنې له خپل مخصوص وخت نه علاوه په تازه ماهیانو(کبانو)کې بیع سلم جائزه نه ده ولی تازه ماهیان له خپل موسم نه علاوه بل وخت په لاس نه راځي یعنې دژمي په موسم کې نه موندل کیږي په داسې حال کې چې په بیع سلم کې دمبیعی هروخت لاس ته راوړل شرط دی،البته که په کوم ښارکې هروخت په لاس راځي نوبیاصحیح دی ولی دجوازشرط وموندل شو،البته دوچوماهیانوچې مالګه پرې اچول شوې وي بیع سلم دوزن په اعتبارسره صحیح ده ولی دداډول ماهیانو(کبانو) مقداراووصف ضبطول ممکن دی اومنقطع کیږي هم نه،هروخت په لاس راتلی شي .

(۸) قوله واللحم،ای لایصح السلم فی اللحم،یعنې دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدپه غوښوکې بیع سلم نه ده جائزه،ولی په غوښه کې هډونه راځي کله واړه اوکله غټ وي نودغوښومقدارمجهول دی،همدارنګه دچاغو،دنګروحیوانانوپه غوښه کې فرق وي نوپه دې وجه چې مفضی ونزاع ته کیږي په غوښوکې بیع سلم نه ده جائزه .

**فائده**:دصاحبینورحمهماالله په نزدکه دغوښوجنس،نوع اوصفت بیان کړي مثلاًدخصي شوي دوه کلني وزکړي دورانه یومن مسلم فیه مقررکړي نوبیاجائزه ده ولی غوښه موزونی شی دی اودوصف په بیانولوسره متعین کیدای شی همداوجه ده چې غوښه مضمون بالمثل دی اووزناًغوښه په قرض اخیستل جائزدی نوپه دې وجه چې مفضی ونزاع ته نه ده په غوښه کې بیع سلم جائزده .

**فائده**:فتوی دصاحبینورحمهماالله پرقول ده لماقال شارح التنویر:لایجوزالسلم فی الحیوان ما،،،،ولحم ولومنزوعاعظم وجوزه اذابین وصفه وموضعه لانه موزون معلوم وبه قالت الائمة الثلاثة وعلیه الفتوی بحروشرح المجمع(الدّرالمختارعلی هامش ردّالمحتار:۴/ ۲۲۸)

(۹) قوله وبمکیال ای لایصح السلم بمکیال معین لایعرف مقداره،یعنې په داسې پیمانه اوګزسره بیع سلم جائزه نه ده چې مقداریې معلوم نه وي ولی داکیدای شي چې داپیمانه اوګزضائع شي ځکه دمسلم فیه مقدارمجهول کیږي چې دهغه په وجه دمتعاقدینو ترمنځ جګړه راځي اوعقدمفضی ونزاع ته جائزنه دی.

**فائده** :په داسې پیمانه سره بیع سلم جائزه ده چې مقداریې معلوم وي په دې شرط چې هغه پیمانه به خرابیږي نه سره نټوځي به نه لکه دټوکراوتوشه دان وغیره ولی په داډول پیمانه سره دبیع سلم په کولوکې جګړه پیداکیږي ولی مشتري به غواړي چې سره نټوځي اوبائع به په هغه باندې نه راضي کیږي . (ردّالمحتار:۴/ ۲۲۹)

(۱۰)همدارنګه دمعلومي سیمي دکلیوپه غله اودمعلومودرختوپه میوو کې هم بیع دسلم جائزه نه ده ولی پرهغوآفت راتلل اودهغومعدومیدل ممکن دی نودمعدوم کیدوپه صورت کې دمسلم فیه دسپارلوقدرت نه وي نوځکه داسی بیع جائزه نه ده .

**فائده** :که یې دمتعین کلي طرف ته نسبت وکړویې ویل،دهغه کلي مسلم فیه مثلادوه منه غنم کیږي اومقصودیې له دغه نسبت څخه دغنموصفت بیانول وي چې غنم اعلی قسم دي اوکه ادنی قسم دي نوپه دغه صورت کې بیع سلم جائزه کیږي ولی له هغه څخه مقصوددمتعین ځای غنم مرادنه وي بلکې مراداوي چې غنم اعلی دي یاادنی دي . (الدّرالمختارعلی هامش ردّالمحتار:۴/۲۲۹)

(۱۱)وَشرطهُ بیانُ الجنسِ وَالنوعِ وَالصفةِ وَالقدرِ وَالأجلِ واقلهُ شهرٌ وَقدرِ رأسِ المالِ فِی المَکیلِ وَالمَوزُونِ وَالمَعدُودِ وَمَکانِ الایفاءِ فِیمَالهُ حَملٌ مِنَ الأشیاءِ (۱۲)وَمَالاحَملَ لهُ یُوفیهِ حَیثُ شاءَ وَقبضُ رَأسِ المالِ قبلَ الافتِرَاقِ.

**ترجمه** :اودسلم شرط دی بیانول دجنس،نوع،صفت اومقداراوموده اولږترلږه موده یوه میاشت ده،او بیانول درأس المال دمقدارپه کیلی ،وزنی اوعددی شیانوکې داداکولوځای په هغوشیانوکې چې دبارولوضرورت وي،اوپه کوموشیانوکې چې دبارولوضرورت نه وي هغه چیرته یې خوښه وي وردي کړي اوشرط دی درأس المال قبض کول ترجلاکیدومخکې .

**تشریح** :(۱۱)دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزددبیع سلم دصحت لپاره اته شرطونه دي :**نمبر ۱**-دمسلم فیه جنس به معلوم وي چې غنم به وي یااوربشي .**نمبر ۲**- نوع به یې معلومه وي چې داسي غنم به وي چې دبرمې په اوبوسره اوبه شوي وي یاداسي غنم چې دباران په اوبو(یعنې للمي ) وي . **نمبر ۳**-دمسلم فیه صفت به معلوم وي مثلاجیدغنم دي که ردّي که متوسط . **نمبر ۴**-دمسلم فیه مقداربه معلوموي چې شل منه دي یاشل رطله یاشل پیمانې . **نمبر ۵**-موده به معلومه وي چې څومره موده وروسته مسلم فیه اداکوي اوموده به لږترلږه یوه میاشت تاکي ولی تریوه میاشت کمه موده مؤجل نه ده معجّل ده په داسی حال کې چې دبیع سلم لپاره تاجیل شرط دی . **نمبر ۶**-درأس المال (یعنې ثمنو) مقداربه معلوم وي،که عقدسلم دهغه له مقدارسره متعلق وولکه دثمنومکیلی، موزونی اومعدودي کیدل (خلاف له حیوان کپړه وغیره نه چې داشیان په اشاره سره هم معلومیږي دهغودمقدار معلومولوضرورت نشته )**نمبر ۷**-دمسلم فیه دسپارلوځای به معلوموي که چیرته مسلم فیه داسي شی ووچې بارول یې غوښتل اوپرهغه باندی مصرف راتلی ،دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدداشرطونه ځکه لګول شوي دي چې که چیرته له دغوشرطونوڅخه کوم شرط ونه موندل شی نودابیع مفضي ونزاع ته کیږی .

**فائده** :مګرصاحبین رحمهما الله په آخري دووشرطونوکې اتفاق نه کوي هغوئ فرمایې چې که چیرته رأس المال په اشاره سره متعین کړای شوی وونوبیادهغه دمقداردبیانولوضرورت نشته ولی درأس المال دمقدارمعلومولو مقصددرأس المال پرسپارلوباندي قادرکیدل دی اودغه مقصوددرأس المال په اشاره سره دمتعین کولوپه صورت کې هم حاصلیږی نوددي ضرورت نشته چې رأس المال دوزن یاکیل یاعددپه ذریعه معلوم کړي ،صاحبینو رحمهما الله ته جواب ورکړای شوی دی چې کله داسي هم کیدای شي چې مسلم الیه ته

مسلم فيه په لاس ورنه شي نو هغه رأس المال واپس كوي كه چيرته د رأس المال مقدار معلوم نه وي نو واپس كيدل متعذر دی، او د آخري شرط په باره كې فرمايې چې مسلم فيه به په هغه ځای كې سپاري چيرته چې عقد سلم شوی دی ولی موجِب د تسليم عقد دی نو چيرته چې عقد شوی وي مسلم فيه به په هغه ځای كې واپس كوي نو د مسلم فيه د سپارلو د ځای بيانولو ضرورت نشته، صاحبينو رحمهما الله ته جواب وركړای شوی دی چې مسلم فيه في الحال سپارل واجب نه دی او قاعده ده چې د كوم شي سپارل في الحال واجب نه وي د هغه د سپارلو لپاره د هغه مكان عقد نه متعين كيږي.

**فائده** : د امام ابو حنيفة رحمه الله قول مختار او مفتى به دی كما في شرح التنوير (و) بيان قدر رأس المال) ان تعلق بمقداره كما (في مكيل وموزون، وعددی غير متقارب) واكتفيا بالاشارة كما في مذروع وحيوان قلنا ربما لا يقدر على تحصيل المسلم فيه فيحتاج الى رد رأس المال (و) السابع بيان (مكان الايفاء للمسلم فيه (فيما له حمل) او مؤنة، قال ابن عابدين رحمه الله فعنده يشترط بيان مكان الايفاء وهو الصحيح وعندهما لا يشترط (ردّ المحتار: ۴/ ۲۳۱)

(۱۲) كه مسلم فيه داسی شی وو چې بوج و باربې نه درلود او د نه هغه پر منتقل كولو باندې مصرف نه راته لكه لړ غوندی مشک، كافور او وړې وړې ملغلرې وغيره، نو بيا په اتفاق سره د هغو د سپارلو د ځای بيانولو ضرورت نشته بلكې د اصح قول مطابق چيرته چې يې زړه وي هلته دي وسپاري كما فی شرح التنوير (وما لا حمل له كمسک وكافور وصغار لؤلؤ لا يشترط فيه بيان مكان الايفاء) اتفاقا (ويوفيه حيث شاء) في الاصح (ردالمحتار: ۴/ ۲۳۱)

**نمبر ۸**- د بيع سلم له شرطونو څخه آخري شرط دا دی چې په مجلس عقد كې دا ضروري ده چې مسلم اليه رأس المال قبض كړي يعنې بيع سلم نه ده صحيح تر څو پوري چې په هغه مجلس كې د رب السّلم له مفارقت (جدائی) نه مخكی مسلم اليه رأس المال قبض نه كړي ولی بيع سلم د هغی بيع نوم دی چې پكی ثمن عاجل وي او داهله كيږی چې بائع ثمن په عقد بيع كې قبض كړی كه نه، كه چيرته تر قبض مخكی متعاقدين له مجلس څخه ولاړ شی نو ثمن عاجل نه دي بلكې آجل يعنې پور كيږي او مسلم فيه هم مؤجل يعنې پور دی نو دا بيع الكالی بالكالی يعنې بيع د دين په دين سره كيږي چې له هغی څخه نبی كريم ﷺ منع فرمايلې ده، د رب السلم له مفارقت څخه مراد مفارقت بالابدان دی نو كه چيرته په هم هغه مجلس كې دواړه ويده شول يا سره روان وو نو بيع سلم نه باطليږي.

(۱۳) فَإِنْ أَسْلَمَ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فِي كُرِّ بُرٍّ مِائَةٌ دَيْنًا عَلَيْهِ وَمِائَةٌ نَقْدًا فَالسَّلَمُ فِي الدَّيْنِ بَاطِلٌ (۱۴) وَلَا يَصِحُّ التَّصَرُّفُ فِي رَأْسِ الْمَالِ وَالْمُسْلَمِ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ (۱۵) بِشِرْكَةٍ أَوْ تَوْلِيَةٍ (۱۶) فَإِنْ تَقَايَلَا السَّلَمَ لَمْ يَشْتَرِ مِنَ الْمُسْلَمِ إِلَيْهِ بِرَأْسِ الْمَالِ شَيْئًا (۱۷) وَلَوِ اشْتَرَى الْمُسْلَمُ إِلَيْهِ كُرًّا وَأَمَرَ رَبَّ السَّلَمِ بِقَبْضِهِ قَضَاءً لَمْ يَصِحَّ (۱۸) وَصَحَّ لَوْ قَرْضًا (۱۹) أَوْ أَمَرَهُ بِقَبْضِهِ لَهُ ثُمَّ لِنَفْسِهِ فَفَعَلَ.

**ترجمه** : كه يې عقد سلم وكړ د دوه سوه درهمو په عوض د يوې پيمانې غنمو كې حال دا چې يو سل قرض دي پر ده باندې او يو سل نقد دي نو سلم په قرض كې باطل دی او صحيح نه دی تصرف كول په رأس المال كې او په مسلم فيه كې مخكی تر قبض كولو، د شركت يا توليه په ذريعه سره پس كه يې اقاله وكړه د سلم نو نه دي اخلي له مسلم اليه څخه د رأس المال په عوض كې هيڅ شی او كه يې واخيستل مسلم اليه يو من او حكم يې وكړ رب السلم ته د قبض كولو د خپل حق د وصول كولو لپاره نو نه دی صحيح، او كه قرض وو بيا صحيح دی يا يې هغه ته حكم كړی وو د هغه د قبض كولو د هغه لپاره بيا د خپل ځان لپاره بس هغه همداسې وكړل.

**تشريح** :(۱۳)كه څاددووسو ودرهمونو په عوض په يوې پيمانې غنمو كې بيع سلم وكړه چې له هغوڅخه سل درهمه مخكې لادمسلم اليه پر ذمه قرض دي اوسل درهمه يې نقدوركړل نوپه سلودرهمونوقرض كې بيع سلم باطله ده ولې اتم شرط نشته يعنې پرسلودرهمونوباندې په مجلس عقدكې قبض نه دى راغلى حال داچې دراس المال قبض كول په مجلس عقدكې ضروري دى كمامر ،البته په سلو درهمونقدوكې بيع سلم جائزه ده ولې په هغه كې ټول شرطونه موجوددي .

**فائده** :دامام زفر رحمه الله په نزدپه قرض اونقدودواړوكې بيع سلم باطله ده ولې په قرض كې بيع قبلونې يې شرط كړى دى په نقدوكې دبيع قبلولولپاره اوداشرط فاسددى اودعقدديووالي په وجه فسادپه ټول عقدكې خوريږي،احناف جواب وركوي چې عقدابتداءً صحيح دى همداوجه ده چې كه چيرته دمجلس ترجلاكيدومخكې هغه قرض هم نقدكړي وريې كړي نوبيع صحيح كيږى نودافسادابتدائى نه بلكې عارضى دى اوعارضى فسادپه قدرد مفسِد وي اومفسِديوائى دقرض په حصه كې راغلى دى يعنې يوائى دقرض په انداز رأس المال په مجلس كې نه دى قبض كړاى شوى ځكه خالص دقرض په اندازه بيع سلم باطليږى دنقدطرف ته فسادنه متعدي كيږي .

**فائده** :كُر(بضم الكاف وتشديدالراء) شپيته قفيزه يوه پيمانه ده،اويوقفيزدوولس كاسى كيږي په همدې دول يوكُرداووه سوه شل كاسې سره برابردى .

(۱۴)ترقبض كولومخكې دمسلم اليه لپاره دبيع سلم په رأس المال كې تصرف كول ناجائزدى اودرب السلم لپاره په مسلم فيه كې تصرف كول ناجائزدى ،په رأس المال كې تصرف كول ځكه نه دى رواچې دتصرف په وجه سره دهغه قبض تفويت راځى كوم چې دعقدپه وجه واجب شوى دى يعنې په مجلس عقدكې رأس المال قبض كول واجب دى ترقبض كولومخكې په تصرف كولوسره داواجب قبض فوت كيږى ځكه نوترقبض مخكې دمسلم اليه لپاره په رأس المال كې تصرف كول ناجائزدى،اودرب السلم لپاره په مسلم فيه كې تصرف كول ځكه ناروادى چې مسلم فيه مبيعه وي اومبيعه كه منقولى شى وونوپه هغه كې ترقبض كولومخكې تصرف كول ناجائزدى نودرب السلم لپاره په مسلم فيه كې ترقبض مخكې تصرف كول نه جائزكيږي .

(۱۵)په مسلم فيه كې دتصرف كولومصنف رحمه الله دوه صورتونه بيان كړي دي يوداچې په مسلم فيه كې بل څوك شريك كړي مثلاًيوچاپه دوومنوغنموكې دسل درهمه په عوض بيع سلم وكړه بيايوه بل چارب السلم ته وويل چې داپنځوس درهمه واخله ماپه هغودومنوكې شريك كړه،نودرب السلم لپاره په مسلم فيه كې داډول تصرف كول ناجائزدى،دوهم صورت يې دادى چې رب السلم راوړلاشي مخكې ترقبض پريوبل چاباندې مسلم فيه (دوه منه غنم) توليةً يعنې دسلو درهموپه عوض خرڅ كړي نوداصورت هم ناجائزدى ځكه داپه مسلم فيه كې مخكې ترقبض تصرف دى چې ناروادى.

(۱۶)كه سلم كوونكيوله بيع وروسته اقاله وكړه يعنې بيع سلم يې ماته كړه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدبه بيارب السلم له مسلم اليه څخه دراس المال په بدله كې كوم بل شى نه رانيسى ،بلكې رأس المال به

واپس اخلي،ولی دنبی کریم ﷺ ارشاددی :لاتاخذالاسلمک اوراس مالک (یعني که عقد قائم وونو مسلم فیه اخله که نه خپل رأس المال اخله) .

**فائده** :دامام شافعی رحمه الله او امام زفر رحمه الله په نزدرب السلم ته جائزه ده چې درأس المال په عوض کې چې څه يې زړه غواړي هغه دي واخلی ولی داقاله په وجه عقدله منځه تللی دی اورأس المال دمسلم اليه پرذمه قرض دی نودنوروقرضونو په شان په دغه قرض سره هم چې دی څه غواړي هغه دي واخلي،پرامام شافعی رحمه الله او امام زفر رحمه الله باندي مذکورروايت حجت دی .

(۱۷)که متعاقدينو په يوه کړغنمو کې عقدسلم وکړترهغه وروسته مسلم اليه يوبل ځای يوکړغنم واخيستل اومسلم اليه پرمذکوروغنمو باندي ترقبض کولو مخکې رب السلم ته وويل چې ته له ماڅخه کوم مسلم فيه اخلې دهغه په عوض کې ورشه هغه غنم واخله کوم چې ما رانيولي دي نورب السلم ته داغنم دخپل حق لپاره اخيستل صحيح نه دي،ولی دلته په شرط دکيل سره دوه عقدونه جمع شول يودمسلم اليه اودهغه دبائع ترمنځ بل دمسلم اليه اورب السلم ترمنځ اوقاعده ده چې کله په شرط دکيل دوه عقدونه سره جمع شي نودوه ځله پيمانه کول ضروري دی يوځل به بائع پيمانه کوي بل ځل مشتري،چې دلته داسي نه دي شوي نوځکه داناجائزدی .

(۱۸)اوکه بيع سلم نه وه بلکې قرض وومثلايوچاله بل څخه يوکړغنم په قرض يووړل بيا مقروض له بل چاڅخه يوکړغنم واخيستل قرض خواه ته يې وويل چې ماکوم غنم اخيستی دي ورشه هغه قبض کړه دخپل حق په دول يې واخله قرض خواه هغه قبض کړل يويې وړل نوداجائزدی ولی دلته دوې بيع نه دي راغلي ولی قرض خواه چې کومه قرضه ورکړه هغه دعاريهٔ ورکولو په معنی دی همدا وجه ده چې قرض په لفظ داعاره سره منعقدکيږی نودوه ځله پيمانه کول ضروري نه دی ځکه داجائزدی .

(۱۹)قوله لوامره بقبضه له ای صح لوامر المسلم اليه رب السلم الخ،يعني که چيرته عقدسلم شوی وو اومسلم اليه ربّ السلم ته وويل چې ورشه اول زماله طرف څخه غنم قبض کړه بيايې له خپل طرف څخه قبض کړه،هغه همداسي وکړل يعني لومړی يې دمسلم اليه لپاره پيمانه کړل بيايې دخپل ځان لپاره پيمانه کړل نوداصورت جائزدی ولی په دي صورت کې دوه ځله پيمانه راغله نوځکه داجائزدی .

(۲۰)وَلَو اَمَرَهُ رَبُّ السَّلَمِ اَن يَكِيلَهُ فِي ظَرفِهِ فَفَعَلَ وَهُوَ غَائِبٌ لَم يَكُن قَبضًا (۲۱)بِخِلافِ المَبِيعِ (۲۲)وَلَو اَسلَمَ اَمَةً فِي كُرٍّ وَقُبِضَتِ الاَمَةُ فَتَقَايَلا فَمَاتَت اَو مَاتَت قَبلَ الاِقَالَةِ بَقِيَ وَصَحَّ وَعَلَيهِ قِيمَتُهَا (۲۳)وَعَكسُهُ شِرَاءُهَا بِالفٍ (۲۴)وَالقَولُ لِمُدَّعِي الرَّدَاءَةِ وَالتَّاجِيلِ لا لِنَافِي الوَصفِ وَالاَجَلِ (۲۵)وَصَحَّ السَّلَمُ وَالاِستِصنَاعُ فِي نَحوِ خُفٍّ وَطَستٍ وَقُمقُمَةٍ (۲۶)وَلَهُ الخِيَارُ اِذَا رَاٰهُ (۲۷)وَلِلصَّانِعِ بَيعُهُ قَبلَ اَن يَرَاهُ (۲۸)وَمُوَجَّلُهُ سَلَمٌ

**ترجمه** :اوکه امروکړرب السلم مسلم اليه ته چې داناپ کړه زماپه لوښی سره هغه ناپ کړل حال داچې دی غائب دی نوداقبض نه ګڼل کيږي ،خلاف له مبيعی نه ،اوکه يې سلم وکړ منځه يې ورکړه ديوه کړ په عوض اوقبض يې کړه منځه بيا دواړواقاله وکړه او منځه مړه شوه ياتراقاله مخکې مړه شوه نواقاله باقی اوصحيح پاتيږی اوپرده باندي لازميږی قيمت دمنځي ،اوددی عکس دی اخستل دمنځي په يوزر روپی، اوقول دردائة

ددعوه کوونکي اودمودې دمدعی معتبردی نه دوصف اومودې دنفی کوونکي اوصحیح دی سلم اوپه فرمایش جوړول په موزه ،تال اوګل دانی غوندې شیانوکې اوفرمایش ورکوونکي لره اختیاردی چې کله یې وویني اوجوړونکي لره اختیارشته دځرڅیدوترلیدلومخکې اوپه فرمایش دجوړولو ،مؤجل صورت بیع سلم ده .

**تشریح** :(۲۰)که رب السلم مسلم الیه ته حکم وکړچې مسلم فیه زماپه لوښي کې ناپ کړه اومسلم الیه دهغه په نه موجودګې ناپ کړل دهغه په لوښي کې یې واچول نودادرب السلم دخپل حق قبض کول نه ګڼل کیږی ولې درب السلم حق په هغه قرض کې دی کوم چې دمسلم الیه پرذمه واجب دی اوقرض یووصف دی چې درب السلم په لوښي کې اچول یې ناممکن دی نورب السلم چې دناپولوکوم حکم ورکړی دی هغه ددې شي مِلک نه موندلی بلکې دمسلم الیه مِلک یې وموندہ نودرب السلم داامرنه دی صحیح،داداسې دی ګواکې مسلم الیه درب السلم لوښی په عاریة (خواست) راوړی دی اوپه هغه کې یې خپل مِلک واچاوه نوظاهره ده چې دمسلم الیه درب السلم په لوښی کې خپل شی اچول درب السلم خپل حق وصولول نه شمارل کیږي .

(۲۱)البته په مطلق بیع کې دمبیعه داحکم نه دی مثلاًیوچامتعین غنم واخیستل اوبائع ته یې وویل ،غنم وتله زماپه دغه لوښي کې یې واچوه ،بائع دمشتری په نه موجودګې کې داسی وکړل نوداصحیح ده ولی په خالص اخیستوسره مشتری دغنومالک شوی دی نومشتري دخپل مملوک شي پخپل لوښي کې داچولوحکم ورکړی دی اومشتری لره دخپل مملوک شي پخپل لوښی کې داچولوحکم صحیح دی نوبائع دمشتری له طرفه دمشتري دلوښوډکولووکیل ګرځیدلی دی اولوښی دمشتری دمملوک کیدوپه وجه څرنګه چې حکماًدمشتری په قبضه کې دی ځکه نوکوم غنم چې په هغه کې اچول شوي دي هغه هم دمشتری په قبضه کې راغي نومشتری قابض شمارل کیږی همداوجه ده چې دبائع غنم تلل کافی ګڼل کیږي دمشتري لپاره ددوباره تللوحکم نشته ولی بائع په پیمانه کولوکې دمشتری له طرفه وکیل دی .

(۲۲)که یوچادراهمواودنانیروپرځای مسلم الیه ته یوه منځه ورکړه په یوه پیمانه غنموکې یې بیع سلم ورسره وکړه اومنځه یې مسلم الیه ته وروسپارله بیاداوړوپه بیع سلم کې له اقاله کولووروسته یاتراقاله کولومخکې منځه دمسلم الیه سره مړه شوه نوپه هغه صورت کې چې تراقاله کولووروسته مړه شي اقاله پخپل ځای پاتیږی اوتراقاله کولومخکې چې مړه شي اقاله صحیح کیږی ولی داقاله دصحت مداردمعقودعلیه پربقاء باندې دی اومعقودعلیه په دواړوصورتوکې باقی دی ځکه چې په بیع سلم کې معقودعلیه مسلم فیه دی چې دمنځې ترمرګ وروسته هم دمسلم الیه پرذمه واجب دی نواقاله ابتداءً یعنې دمنځې ترمړه کیدومخکې صحیح ده اوبقاءً یعنې دمنځې له مرګ وروسته هم صحیح ده ولی بقاء ترابتداء آسانه ده،پس چې کله عقدفسخ شونوپرمسلم الیه باندی دمنځې قیمت لازمیږی ولی دمنځې دمړینې په وجه دی اوس دعین منځې له ردولوځخه عاجزشو .

(۲۳)اوددې عکس دی که چادمطلق بیع په ذریعه (یعنې چې بیع سلم نه وي) دیوزرروپوپه عوض کې منځه واخیسته یعنې که چامنځه په زرروپۍ واخیسته منځه چې مشتري راوړه هلته مړه شوه بیابائع

اومشتري اقاله وكړه نوداقاله نه ده صحيح باطله ده ولې په دغه صورت كې معقودعليه منخه ده نوله مرګه وروسته محل داقاله نه ده په دي وجه اقاله په هرصورت باطله ده.

**فائده**: دلته څلورصورتونه جوړيږي: (۱)په بيع سلم كې يې دمنځې ترمرګ مخكې ياوروسته اقاله وكړه ددغه صورت حكم تيرشو. (۲)دمطلق بيع په صورت كې يې دمنځې ترمرګ مخكې اقاله وكړه ددغه صورت حكم هم تيرشو. (۳)په بيع المقايضه يعني دبيع العروض بالعروض په صورت كې داحدعوضينوترهلاكت وروسته يامخكې يې اقاله وكړه نواقاله صحيح ده، ولې په دي صورت كې له عوضينو څخه هريو معقودعليه دى نوديوه عوض دبقاء په صورت كې هم اقاله صحيح ده (۴)دبيع صرف په صورت كې يې داحدعوضينو يادواړوعوضينوله هلاكت وروسته ياترهلاكت مخكې اقاله وكړه نوپه دغه صورت كې اقاله صحيح پاتيږي ولې په بيع صرف كې معقودعليه هغه حق دى چې له متعاقدينو څخه دهريوپرذمه باندي واجب دى اوهغه غيرمعين دى چې هلاكت يې متصورنه دى نودعوضينويادیوه هلاكيدل داقاله دصحت مانع نه دى.

(۲۴)كه په بيع سلم كې يوڅوك په ردي شي كې دبيع كيدودعوى كوي مثلامسلم اليه وايي چې مادعقدپه وخت كې داشرط لګولى دى چې مسلم فيه به ردى غنم وي، رب السلم وايي چې ماهيڅ شرط هم نه وولګولى، يادتاكلي مودي دمتعين كيدودعوى كوي مثلاوايي چې مادعقدپه وخت كې دمسلم فيه دسپارلولپاره وخت مقرركړى وو، اورب السلم وايي چې مادمسلم فيه دسپارلولپاره هيڅ معلومه موده نه ده مقرره كړي: نودمسلم اليه قول معتبريږي ځكه چې هغه دسلم دصحت مدعي دى ولې دمسلم فيه دجيديادردي ديانولوبغيريادمودي بيانولوبغيربيع سلم نه ده صحيح، نوظاهرحال دهغه موافق دى ولې مسلمان دحرام په وجه دعقدفاسدمباشرت نه كوي اوله معلومي مودي اووصف بغيربيع سلم فاسده وي. هغه بل چې دمودي اووصف نفي كوي چې دسلم مفسد دى نودهغه قول ته اعتبارنه وركول كيږي.

**فائده**: كه متخاصمين دواړه پريوه عقدباندي متفق وواورب السلم دمودي له شرط څخه انكاروكړي نوپه داسي صورت كې دامام صاحب رحمه الله په نزددهغه قول معتبردى چې دعقددصحت مدعي وي اودصاحبينورحمهماالله په نزددمنكرقول معتبريږي كه څه هم دى دعقددصحت منكروي: دامام صاحب رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله: الراجح قول الامام كمايظهرمن صنيع اكثرالشروح والفتاوى وهوالاستحسان(هامش الهداية:۳/۱۰۱)

**فائده**: متعنّت هغه څوك دى چې بل ته دضرررسولوپه غرض دځپل ځان لپاره دمفيدشي نه انكاروكړي اوخصم هغه دى چې دځپل ځان لپاره دضررناك شي نه انكاروكړي، قاعده داده چې دمتعنّت قول نه دى معتبر، يعني كه څوك دداسي شي انكاروكړي چې دده لپاره مفيدوي نوپه اتفاق سره دهغه قول نه معتبريږي مثلامسلم اليه وايي چې دعقدپه وخت زمالپاره دمودي شرط نه دى لګول شوى اورب السلم وايي چې شرط لګول شوى وو، نوپه موده كې دمسلم اليه فائده ده بياهم انكاركوي نودمتعنّت كيدوپه وجه دمسلم اليه قول نه دى معتبر.

(۲۵) دموزه ،تال،ګل دانۍ (ددوولاستووالاداوسپنې څخه جوړګول لوښی چې دزينت لپاره عام توږپرمنبرباندې ښودل کيږي)وغيره په جوړولوکې بيع سلم جائزه ده،ولی داشيان په وصف بيانولوسره منضبط کيږي نودغوشيانوپه سپارلوکې دکومې شخړې درامنځ ته کيدوامکان نشته نوپه دوئ کې بيع سلم جائزه کيږي،همدارنګه داشيان په کاريګرباندې په فرمايش جوړل هم جائزدی ولی پردې باندې دامت عملی اجماع ده که څه هم دقياس تقاضاداده چې جائزنه شي ولی ديوه شي په فرمايش دجوړولوپه صورت کې مبيعه معدومه وي اودمعدوم بيع نه ده جائزه .

(۲۶)قوله وله الخيار اذارآه اى اذاعمله الصانع للمستصنع خيار الرؤية،يعني له جوړولووروسته چې کله مشتري هغه ووينې نودده لره اختيارشته که يې اخلي اوکه يې پريږدي،ولی ده داسې شيان اخيستی دي چې ده ليدلي نه دي نوځکه ده ته خياررؤية حاصل دی مګرکاريګرته خياررؤية نه ورکول کيږي ولی کاريګربائع دی اوبائع لره خياررؤية نه وي،له امام ابوحنيفة رحمه الله څخه يوروايت دادی چې کاريګرته هم خياررؤية حاصل دی ولی کاريګرچې مثلاموزې جوړوي نوچمړه به پريکوي بيابه يې جوړوي اودچمړې په پريکولوکې دکاريګرتاوان دی نوله ځان څخه دتاوان ددفع کولولپاره کاريګرته داروا ده چې معامله پريږدي .

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله لومړی قول ظاهرالرواية اومفتى به دی يعني کاريګرته خياررؤية نه ورکول کيږي ،البته مشتری ته خياررؤية شته ولی دوکه ورکول دکاريګرانوعادت ګرځيدلی دی،البته که کاريګرپه دي صفت سره يوشی تيارکړچې مشتری دهغه فرمايش ورکړی وونوبيامشتري لره هم خياررؤية نشته . (انظرالقول الراجع :۲/ ۸۱)

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله په نزدمستصنع اوصانع دواړولره خياررؤيت نشته،صانع لره ځکه نشته چې هغه بائع دی اوبائع لره خياررؤيت نه وي اومستصنع لره ځکه نشته چې په هغه کې دصانع تاوان دی ولی کله داسې هم کيدای شی چې مستصنع دخياررؤيت په وجه عقدفسخ کړي نودصانع جوړکړای شوی شی بل څوک په قيمت مثل سره هم نه اخلی نوظاهره ده چې په دي کې دصانع تاوان دی . (هدايه : ۳/ ۱۰۲)

(۲۷)اودمشتري ترليدومخکی بائع لره هم اختيارکاردی چې پربل چاباندې يې خرڅولای شي ولی دغه شی چې ترڅوپوری مستصنع (مشتري) اختيارنه کړي نه متعين کيږی نودمشتری ترليدومخکی صانع ته داجائزه ده چې پربل چايې خرڅ کړی ،البته دمشتری له ليدووروسته صانع لره دانه جائزکيږی چې دی هغه شی پرکوم بل چاباندې خرڅ کړي ولی دمشتری له ليدووروسته داشی دمشتري لپاره متعين کيږی نواوس يې پربل چاباندې خرڅول ناجائزدی .

(۲۸)قوله وموجله سلم،اى مؤجل الاستصناع سلم،يعني داستصناع په صورت کې که يوشی جوړکړي دورکولومودې يې تاکل شوې وه نودامام صاحب رحمه الله په نزددابيع سلم ده ځکه نوپه هغې کې دبيع سلم دټولوشرطونورعايت ضروري دی، دصاحبينو رحمهما الله په نزدکه ددې تعامل په خلکوکې وونواستصناع ده سلم نه دی ځکه استصناع اوسلم دنوم اوحکم دواړوپه

اعتبار سره دوه مختلف عقدونه دي،نو ديوه په نوم ياد ولو سره هغه بل نه منعقد كيږي،دامام ابو حنيفة رحمه الله دليل دا دى چې داعقداستصناع او بيع سلم دواړه كيداى شي اوله دغو دواړو څخه بيع سلم له هردول شبهې پرته په اجماع سره جائزه ده په داسې حال كې چې تعامل په استصناع كې يو قسم شبهه ده ولى دامام زفر رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په هغه كې اختلاف دى نو دا پر بيع سلم باندي حمل كول اولى دى.

**فائده**:دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دى لماقال العلامة الشامي رحمه الله:وله انه دين يحتمل السلم وجواز السلم باجماع لاشبهة فيه وفي تعاملهم الاستصناع نوع شبهة فكان الحمل على السلم اولى.(رذالمحتار:۴/۲۳۷)

## باب المتفرقات

### داباب دمتفرقه مسائلو په بيان كې دى

دمصنفينو رحمهم الله داعادت دى چې په تيرو بابونو كې دكومو مسائلو ذكر پاتي شي هغه مسائل د باب المتفرقات، يا (مسائل منثوره) يا (مسائل شتى) په عنوان سره بيانوي،دلته هم زموږ مصنف رحمه الله دداسې څو مسائلو بيان كړى دى:

(۱)صَحَّ بَيْعُ الْكَلْبِ وَالْفَهْدِ وَالسِّبَاعِ وَالطُّيُورِ (۲)وَالذِّمِّيُّ كَالْمُسْلِمِ فِي بَيْعِ غَيْرِ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ (۳)وَلَوْ قَالَ بِعْ عَبْدَكَ مِنْ زَيْدٍ بِأَلْفٍ عَلَى أَنِّي ضَامِنٌ لَكَ مِائَةً سِوَى الْأَلْفِ فَبَاعَ صَحَّ بِالْأَلْفِ وَبَطَلَ الضَّمَانُ (۴)وَإِنْ زَادَ مِنَ الثَّمَنِ فَالْأَلْفُ عَلَى زَيْدٍ وَالْمِائَةُ عَلَى الضَّامِنِ (۵)وَوَطْءُ زَوْجِ الْمُشْتَرَاةِ قَبْضٌ (۶)لَا عَقْدُهُ.

**ترجمه**:او صحيح ده بيع دسپي،پړانګ،درندو او مارغانو،او ذمي دمسلمان په شان دى دشرابو او خنزير نه علاوه دنورو شيانو په بيع كې،او كه يې وويل چې خرڅ كړه خپل مريى پر زيد باندي په يو زر روپۍ په دي شرط چې زه ستا لپاره ضامن يم دسلو روپو له زرو بغير نو هغه خرڅ كړ دا بيع صحيح ده په زرو كې او باطل دى ضامن كيدل،او كه يې دالفظ (من الثمن) زيات كړ نو بيا زر روپۍ پر زيد باندي كيږى او سل پر ضامن باندي كيږي او داخيستل شوې منځې سره وطى كول دخاوند قبض دى نه يو اځې دهغه عقد نكاح كول.

**تشريح**:(۱)دسپي،پړانګ او ځناورو (مثلاً ليوه،زمري وغيره) او دمارغانو بيع جائزه ده ولى له دوئ څخه او ددوئ له چمړو څخه ګټه اخيستل ممكن دى،امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې دخوړري سپي او زمري (خوړري سپى هغه چې تعليم نه قبلوى) بيع نه ده جائزه ولى خوړري سپي غير منتفع به دى او دغير ګټور شي بيع ناجائزه ده،امام صاحب رحمه الله فرمايي چې خوړري سپى كه څه هم دښكار كولو قابل نه دى اما دكښت،پسونو او دكور دحفاظت قابل خو دى نو ځكه په دي وجه چې منتفع به دى دده بيع هم جائزه ده.

**فائده**:دامام ابو يوسف رحمه الله قول احوط دى لماقال العلامة الشامي رحمه الله:والحاصل ان المتون على جواز بيع ماسوى الخنزير مطلقا وصحح السرخسي رحمه الله التقييد بالمعلم منها.(رذالمحتار:۴/ ۲۳۹)وقال المفتى غلام قادر النعماني:والاحوط في هذه المسئلة قول

السرخسي يعني التقييد بالمعلم منها.(القول الراجح:۲/۸۳)

**فائده**:دامام شافعي رحمه الله په نزد مطلقاً دسپي بيع ناجائزه ده،لحديث ابي هريرة رضي الله عنه ان النبي صلى الله عليه وسلم قال ان مهر البغي وثمن الكلب وكسب الحجام من السحت (يعني دزانيه ښځې اجرت،دسپي روپۍ،دښكر لګوونكي

ګټه حرامه ده) ،امام شافعي رحمه الله ته جواب ورکړل شوی دی چې داحدیث پرابتداء اسلام باندی محمول دی یعنې په شروع د اسلام کې دسپي بیع ناجائزه وه وروسته دا حکم منسوخ شوولی له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی :انه ﷺ نهی عن بیع الکلب الاکلب صیداوماشیة (یعني نبی کریم ﷺ دسپی له بیع څخه منع فرمایلی ده پرته دښکارد سپي یادحفاظت دسپي له بیع ) .

(۲)ذمیان (هغه خلک چې په دار اسلام کې جزیه ورکوي کفارذمیان ورته وایې ) په خرید وفروخت کې دمسلمانانو په شان دي ولی ذمّي هم مکلف دی او دخپل ځان دبقاء لپاره معاملاتو ته محتاج دی اودنبی کریم ﷺ فرمان دی چې :فاعلمهم ان لهم ماللمسلمین وعلیهم ماعلی المسلمین (یعنې ذمیان خبرکړئ چې دهغوئ لپاره هم هغه حقوق دي کوم چې دمسلمانانولپاره دي اوپرهغوئ باندي هغه ذمه واریانې دي کومی چې پرمسلمانانو باندي وي ) . البته دوه شیان لکه شراب اوخنزیرپه خاص ډول دذمیانولپاره حلال دي ولی دادواړه ددوئ په اعتقادکې مالونه دي اوموږلره داحکم دی چې دهغوئ عقیدي ته تعارض ونکړونو دذمیانو دشرابو عقدکول داسي دی لکه مسلمانان چې دانګورودشیره عقدکوي اوپرخنزیرباندي دهغوئ عقدداسي دی لکه مسلمانان چې پر ېزه باندي عقدکوي .

(۳)صورت دمسئلې دادی چې بائع غواړي خپل مریی په یوولس سوه روپۍ خرڅ کړي او مشتري په یوولس سوه باندي نه دی راضي بلکې په یوزرروپۍ یې غواړي بیایوبل دریم څوک راغی هغه بائع ته وویل چې ته خپل مریی دیوزرروپوپه عوض پرمشتري باندي خرڅ کړه په دي شرط چې له هغوزرروپوپرته دسلوروپوستالپاره زه ضامن یم،هغه دده په خبره مریی پرمشتري باندي خرڅ کړنو دده په زرروپۍ خرڅیدل صحیح دی له زروپرته سل روپۍ هغه ته نه ورکولی کیږی اودریم سړي دده لپاره ضمانت باطل دی ولی داسل روپۍ ثمن نه دي بلکې داابتداءً التزام دمال دی نودادمریي دخرڅولورشوة دی چې حرام دی نودضامن داضمانت نه دی صحیح ځکه به نوبائع خالص له مشتري څخه زرروپۍ اخلی.

(۴)البته که چیرته هغه دریم سړي په خپل قول کې دااضافه وکړه چې ددي مریي له قیمت څخه له یوزرروپوپرته دنوروسلوروپوزه ضامن یم یعنې (من الثمن) لفظ یې اضافه کړنو بیازرروپۍ دمشتري پرذمه کیږي اوسل روپۍ دهغه ضامن پرذمه لازمیږی ولی په دغه صورت کې دااضافه په عین قیمت کې ده اوپه قیمت کې اضافه دبدل خلع په شان داجنبی له جانبه هم صحیح ده مګرشرط دادی چې ددغی اضافه اوزیادت به صورةً اوتسمیةً مقابله وي یعنې اضافه کوونکی به په لفظ د(من الثمن) سره تلفظ کوي او اضافه به په مقابله دمبیعه کې وي .څرنګه چې داشرط په همدغه صورت کې موندل کیږي ځکه نودا صورت جائزدی .

(۵)که چایوه منځه واخیسته اوترقبض کولومخکی مشتری دهغې نکاح له بل چاسره وکړه نودانکاح صحیح ده ولی مشتري دخریدپه وجه دمنځې مالک ګرځی نودمنځې له چاسره دنکاح کولوولایت مشتری ته حاصل دی بیاکه چیرته دمنځې خاوندله هغې سره صحبت وکړنودخاوندصحبت کول دمشتري له طرفه قبض ګڼل کیږي ولی خاوندله منځې سره پروطی کولوباندي مشتري مسلط کړی دی ځکه دهغه نسبت

ومشتري ته کیږی ګواکی مشتری خپله له منځې سره وطی وکړه اوله منځې سره دمشتري په وطی کولوباندي دمشتري قبض ثابتیږی.

(۶)قوله لاعقده ای وان لم یطأها الزوج بعدالنکاح فلیس بمجرد عقدزوج الامة المشتراة بقبض،یعني که چیرته مشتري خالص دهغې نکاح له چاسره وکړه دخاوندله طرفه دوطی صدورنه دی راغلی نوخالص عقدنکاح دمشتري له طرفه قبض نه شمارل کیږی که څه هم دقیاس تقاضاداده چې نفس عقدنکاح قبض شمارشي ولی عقدنکاح حکمًاعیب دی اودحقیقةً عیب دارکولوپه صورت کې مشتري قابض ګڼل کیږی نودحکمًاعیب دارکولوپه صورت کې هم مشتري قابض ګڼل کیږی ،وجه داستحسان داده چې دحقیقةً عیب دارکولوپه صورت کې دمشتری پردغه معیوبه منځه باندي غلبه حاصله وي اوپه همدي وجه سره دی پرهغې باندي قابض کیږی په داسی حال کې چې دحکمًاعیب دارکیدوپه صورت کې دمشتری پرمنځه باندی غلبه نه وي حاصله نوددواړوترمنځ فرق دی یوپربل باندی قیاسول صحیح نه دی.

(۷)وَمَن اشتری عَبدًا فَغَابَ فَبَرهَنَ البَائعُ عَلَى بَيعِهِ وَغَيبَتُهُ مَعرُوفَةٌ لَم يُبَع لِدَينِ البَائعِ (۸)وَإلا بِيعَ لِدَينِهِ (۹)وَلَو غَابَ أحَدُ المُشتَرِيَينِ فَلِلحَاضِرِ دَفعُ كُلِّ الثَّمَنِ وَقَبضُهُ وَحَبسُهُ حَتَّى يَنقُدَ شَرِيكُهُ (۱۰)وَمَن بَاعَ أمَةً بِألفِ مِثقَالِ ذَهَبٍ وَفِضَّةٍ فَهُمَا نِصفَانِ (۱۱)وَإن قَضَى زَيفًا عَن جَيِّدٍ وَهُوَ لَا يَعلَمُ وَتَلِفَ فَهُوَ قَضَاءٌ.

**ترجمه** :اوکه چامریی واخیست اوغائب شوبیابائع ګواهان ودرول دهغه پرخرڅولوباندي اودخریدار دغائبیدوځای معلوم وونومریی نه خرڅیږی دبائع دقرض لپاره که نه بیاخرڅیدای شی دقرض لپاره، اوکه غائب شوله دوو مشتریانوڅخه یویې نودحاضرلپاره جائزدی ټولی پیسې ورکول اوهغه شی قبض کول اودهغه ساتل ترهغه پوري چې دهغه شریک پیسی اداکوي.اوکه چاخرڅه کړه منځه دسرو اوسپینو دیوزرمثقالوپه عوض نودادواړه نیم نیم کیږی اوکه یې اداکړلې کوټه روپۍ دجیدوروپوپرځای او صاحب حق نه پوهیده اوهغه تلف شوې نوداادائیګی ده.

**تشریح** :(۷)که چایومریی واخیست بیادمریې له قیمت اداکولواودهغه دقبض کولونه مخکی چیرته غائب شوبائع دهغه پرخرڅیدواودمشتری پرغائب کیدوباندي ګواهان وړاندې کړل په داسی حال کې چې دمشتری پته معلومه ده چې په فلان ځای کې مقیم دی نودثمن عبدکوم قرض چې دبائع له طرفه دمشتري پرذمه دی دهغه قرض په وجه حاکم هغه مریی نه شي خرڅولای ولی په دي کې دغائب مشتری دحق فی العبدابطال راځی په داسی حال کې چې بائع لره دامکنه ده چې خپله مشتری ته ورشي اوخپل حق تري نه وصول کړي.

(۸)قوله والابیع لدینه ای وان لم یکن غیبته معروفة،یعني که دمشتري هیڅ پته نه وه معلومه نوبیادبائع په مطالبه سره حاکم وخت دغه مریی خرڅولای شي ولی په خرڅولوکې دطرفینورعایت دی ولی بائع ته خپل حق رسیږي اودمریې له ضمان څخه بري کیږي اومشتری دمریې له نفقی څخه ژغاریږي.

**فائده** :بیاکه یې مریی خرڅ کړله قیمت څخه دبائع دقرض له اداکولونه وروسته څه پیسی پاتی شوې نوداپیسی دمشتری لپاره ساتلی کیږی هرکله چې هغه راشی هغه ته ورکولی کیږی ولی دغه پیسې دمشتري

دحق يعنې مريې بدل دي، اوكه دمريې پيسې دبائع له حق څخه لړشوې نوبائع به خپل حق له مشتري څخه دهغه له راتلووروسته وصولوي . (الدّرالمختارعلی هامش ردّالمحتار : ۴/ ۲۴۱)

(۹)كه دوونفروپه ګډه يوشی واخيست اودهغه له قيمت وركولونه مخكې له دوئ نه يويې چيرته غائب شو نودطرفينورحمهما الله په نزدهغه موجودمشتري لره دومره اختيارشته چې ټول قيمت له خپل ځانه وركړي هغه شی خپله قبض كړي اوترڅوپوري چې له خپل شريک څخه نيم قيمت وصول نه كړي مبيعه له ځانه سره وساتی،داځكه چې حاضرمشتري دټولوپيسواداكولوته مجبوردی ولی دعقدديووالي په وجه بائع دټولوپيسو دترلاسه كولوپوري دمبيعی دمنع كولوحق لري نودمبيعه دخلاصون لپاره حاضرمشتری دثمن پراداكولو مجبوردی .

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله په نزدموجودمشتري دټولوپيسوداداكولووروسته هم دغائب پرحصه باندي قبضه نه شي كولای ولی دغائب دحصی په باره كې دی اجنبي (يعنې پردی ) دی اواجنبي لره دبل دحصی قبضولواختيارنه وي بياځرنګه چې موجودمشتري دغائب له طرفه داثمن په اداكولوكې متبرع دی نوځكه دغائب مشتري له راتلووروسته موجودمشتري له هغه څخه رجوع هم نه شی كولای ولی تبرع كوونكي لره له تبرع كولووروسته درجوع اختيارنه وي .

**فائده** :دطرفينورحمهما الله قول راجح دی لماقال شارح التنوير:وان اشترى اثنان شيئاوغاب واحدمنهمافللحاضردفع كل ثمنه ويجبرالبائع على قبول الكل ودفع الكل للحاضروله قبضه وحبسه عن شريكه اذاحضرحتى ينقدشريكه الثمن .(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار: ۴/ ۲۴۲ ) وهكذارجحه قولهماغيرواحدحتى اكتفى اكثراصحاب المتون والشروح بقولهما،په خودغه مذكورحكم په هغوشيانوكې دی چې قابل دتقسيم نه وي لكه مريې اويوحيوان وغيره .

(۱۰)كه چاڅله منځه دسرواوسپينوديوزرمثقالونوپه عوض خرڅه كړه نوپه دغه صورت كې دامثقالونه دوي حصی كيږی پنځه سوه مثقاله دسرواوپنځه سوه دسپينوپه مقابل كې راځی ولی ده مثقالونه سرواوسپينوته يودول منسوب كړي دي نوځكه يوپربل باندي ترجيح نه لري اوچې كله يوپربل ترجيح نه لري نودواړه نيم نيم واجبيږي.

(۱۱)كه ديوچاپرذمه دبل چاسم دراهم ووهغه ددي درهمونوپه عوض كې ناچله دراهم وركړل اواخستونكي ته دامعلومه نه شوه چې درهمونه سم دي ياناچله دي بيادهغه له لاسه داناچله دراهم ووتل يايې مصرف كړل نودادطرفينورحمهما الله په نزددمقروض له طرفه اداثيكي شمارله كيږي دهغه پرذمه مزيدڅه وركول واجب نه دي ولی ناچله درهمونه هم دقرض غوښتونكي دحق له جنس څخه دي همدا وجه ده چې كه چيرته په بيع سلم كې دراُس المال په ډول دسمودرهمونوپرځای ناچله درهمونه وركړي اوبيادواړه سره بيل شول بياوروسته معلومه شوه چې دراهموخوناچله وومګرهغه چشم پوشي وكړه خپل نقصان يې برداشت كړنوداجائزه ده حال داچې كه چيرته ناچله دراهم دسمودرهمونوله جنس څخه نه وای نودابه راُس المال كې ترقبض كولومخكې دتصرف په وجه بايدناجائزوای نومعلومه شوه چې ناچله درهمونه هم درهمونه دي نوپه ناچله درهمونوترلاسه كولوسره هم حق حاصليدل ثابتيږی له صفاوالي پرته دهغه بل هيڅ حق پاتي نه دی

اوصفاوالي يووصف دى اوقاعده داده چې ديوشي مقابله دهغه له جنس سره وكړاى شي نووصف يې هيڅ قيمت نه لري.اودكوم شي چې قيمت نه وي دهغه ضمان هم نه وي.

**فائده** :دامام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزدپه مذكورصورت كې چې قرض غوښتونكي كوم ناچله درهمونه مصرف كړي دي دهغه مثل دي قرضدارته ورواپس كړي اوله هغه نه دي خپل سم درهمونه واخلي ولى دقرض غوښتونكي حق لكه څرنګه چې په مقداركې دى په وصف كې هم دى خوڅرنګه چې تنهادوصف ضمان واجبول ممكن نه دى ولى مخكې داخبره ذكرشوه چې دشي مقابله چې كله له خپل جنس سره وي نودهغه دوصف هيڅ قيمت نه وي اودكوم شي چې قيمت نه وى دهغه ضمان نه واجبيږي نودقرض غوښتونكي دحق درعايت همدا صورت دى چې قرض غوښتونكى ناچله دراهم واپس كړي له مقروض څخه دي خپل سم درهمونه واخلي،دامام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ قول راجح دى لماقال ابن عابدين الشامي رَحِمَهُ اللهُ :وقولهماقياس كماذكره فخرالاسلام وغيره وظاهرترجيح قول ابي يوسف رَحِمَهُ اللهُ بحر(ردالمحتار:۲۴۳/۳)

(۱۲)وَإِنْ افْرَخَ طَيْرٌ أَوْبَاضَ أَوْتَكَنَّسَ ظَبْيٌ فِي أَرْضِ رَجُلٍ فَهُوَلِمَنْ أَخَذَهُ(۱۳)مَايَبْطُلُ بِالشَّرْطِ الْفَاسِدِوَلَايَصِحُّ تَعْلِيقُهُ بِالشَّرْطِ الْفَاسِدِالْبَيْعُ وَالْقِسْمَةُ وَالْإِجَارَةُ وَالْإِجَازَةُ وَالرَّجْعَةُ وَالصُّلْحُ عَنْ مَالٍ وَالْإِبْرَاءُ عَنِ الدَّيْنِ وَعَزْلُ الْوَكِيلِ وَالْاِعْتِكَافُ وَالْمُزَارَعَةُ وَالْمُعَامَلَةُ وَالْإِقْرَارُ وَالْوَقْفُ وَالتَّحْكِيمُ

**ترجمه** :كه مارغه بچې وايستل يايې هګۍ واچولي ياهوسۍ ديوچاپه ځمكه كې اوسيده نودادهغه چادي چاچې واخيستل ،كوم معاملات چې باطليږي په شرط فاسد سره اوصحيح نه وي دهغومعلق كول دشرط فاسد سره هغه دادي: بيع، قسمت، اجاره، اجازت، رجعت ،صلح له ماله،له قرض څخه بري كيدل،وكيل معزول كول ،اعتكاف،مزارعت، معامله،اقرار، وقف اوحكم (دريم ،منځګړى) مقررول.

**تشريح** : (۱۲) كه دچاپه ځمكه كې مارغه بچې وايستل يايې هګۍ واچولي يادېوچاپه ځمكه كې هوسۍ اوسيدله يابل چادمارغه هګۍ يابچي واخيستل يايې هوسۍ ګيركړه نودادنيوونكي دي دځمكې مالك داحق نه لري چې دادعوه وكړي چې دازماپه ځمكه كې وونوزمادي ولى دامباح شيان دي اودمباحوشيانوحكم دادى چې دچالاس ته ورغلل دهغه دي.

**فائده** :دراتلونكومسئلوتربيانولومخكې دوې قاعدې پيژندل ضروري دي يوه داچې په كوم عقدكې مبادله دمال په مال وي هغه عقدپه شروط فاسده ؤسره باطليږي ولى روايت دى چې پيغمبرعليه السلام له بيع اوشرط څخه منع فرمايلې ده اوپه كوم عقدكې چې مبادله دمال په غيرمال سره وي لكه نكاح،ياله قبيلى دتبرعات څخه وي هغه په شروط فاسده ؤسره نه باطليږي وجه يې داده چې شروط فاسده له ربوا څخه دي ځكه ربوا داسي يوزيادت ته ويل كيږي چې له عوض څخه خالي وي اوشرط فاسدهم داسي يوزائدشي دى چې عقديې مقتضي نه دى نوپه دي وجه چې خالي له عوض دى شرط فاسدپه ربواكې شمارل كيږي څرنګه چې ربواپه معاوضات غيرماليه ؤكې نه متصوريږي لكه نكاح،طلاق على مال وغيره همدارنګه په متبرعاتوكې هم نه متصوريږي ځكه نوپه داسي شيانوكې خپله شرط باطليږي ، دوهمه قاعده داده چې له شرط محض سره تعليق په تمليكاتوكې جائزنه دى البته كوم امورچې د اسقاطاتوله باب څخه دي مثلا :طلاق

اوعتاق یاله قبیلی داطلاقاتوڅخه دي مثلامریې ته اجازه ورکول یاله قبیلی دولایاتوڅخه دي مثلاقاضي اوامیرټاکل نودالهٔ شرط محض سره معلق کول صحیح دی.

(۱۳)معاملات پردوه قسمه دي یوهغه چې په شرط فاسدسره باطلیږی اودهغوله شرط سره معلق کول صحیح نه دی دوهم هغه معاملات دي چې په شرط فاسدسره نه باطلیږی ،نوهغه معاملات چې په شرط فاسدسره باطلیږی اوپه شرط فاسدپوري معلق اومشروط کیدای نه شي هغه څوارلس شیان دي :۱-بیع،مثلاڅوک داسي ووایې چې زه خپل مریی په دي شرط پرزیدباندي خرڅوم چې هغه به یوه میاشت زماخدمت کوی نوپه دغه شرط سره دابیع باطلیږی ۲-تقسیم،مثلادمړي پرنورو خلکوباندي قرض باندي وووارثان ترکه تقسیم کړي په دي شرط چې قرض به له دوئ څخه دیوه لپاره وي اوعین مال به دباقی ورثه ؤلپاره وي،نوداتقسیم باطل دی ولی په تقسیم کې دمبادله دمال په مال معنی شته نودبیع په شان په شرط فاسدسره باطلیږی ۳-اجاره،مثلاکورېې په اجاره ورکړاوداشرط یې ولګاوه چې مستاجربه دکورڅښتن ته قرضه ورکوي ۴-اجازت،مثلایوه بیګانه شخص دیوچاپوشی خرڅ کړمالک یې وویل :زه ددي بیع اجازه ورکوم په دي شرط چې هغه ماته قرضه راکړي نودااجازه ددغه شرط فاسدپه وجه باطله ده ولی اجازه دبیع معنٰی بیع ده .

۵-رجعت،رجعت په شرط فاسدسره نه باطلیږی البته په شرط سره معلق کول یې صحیح نه دی مثلایوچا خپلې منکوحې ته طلاق رجعی ورکړیبایې وویل :زه دې ته رجوع کوم که چیرته زیدراغی . ۶-صلح له ماله،مثلاویې ویل دکوم مال چې ته پرماباندي دعوه کوي له هغه څخه زه دمدعی به له جنس څخه پرته دبل مال په عوض له تاسره صلح کوم په دي شرط چې ته تریوه کاله پوري ماپه دي سرای کې پریږدي نوداصلح ددغه شرط فاسدپه وجه باطل دی ولی صلح له ماله مبادله دمال په مال ده چې په شرط فاسدسره باطلیږي.

۷-له دین څخه بري کول،له دین څخه بري کول معاوضه مالی نه ده ځکه نوپه شرط فاسدسره نه باطلیږی البته په دي وجه چې دتملیکاتوله قبیلی ده په شرط سره معلق کول یې صحیح نه دی مثلاداسی ووایې زه تاله قرض څخه بري کوم که زیدله سفرڅخه راغی نوداتعلیق صحیح نه دی ۸-وکیل معزول کول ،دوکیل معزول کول څرنګه چې مالی معاوضه نه ده ځکه نوپه شرط فاسدسره نه باطلیږی البته په شرط سره معلق کول یې صحیح نه دی مثلاموکل وکیل ته وویل :زه تامعزول کوم که زیدله سفرڅخه راغی نوداتعلیق صحیح نه دی.

۹-اعتکاف،دعلامه ابن نجیم رحمه الله رایه داده چې تعلیق بالشرط داعتکاف لپاره مبطل نه دی که چاوویل :لله علی اعتکاف شهران دخلت الدار ،بیاکورته داخل شونوزموږداڅمه ؤپه نزدپرده باندي اعتکاف لازم شونوداعتکاف ذکرکول دلته صحیح نه دی .

۱۰-مزارعت،مثلادځمکی مالک وویل زه خپله ځمکه دزراعت (کښت) لپاره درکوم که زیدله سفرنه راغی.

۱۱-معامله،یعني مساقات مثلادباغ مالک چاته وویل زه خپلی درختی مساقاةً درکوم که چیرته زیدله سفرڅخه راغی ۱۲-اقرار ،مثلاچاوویل دفلانی زماپرذمه زرروپی دي که چیرته باران ووریدیاهوارااوالوته.

۱۳-وقف،مثلادسرای مالک وویل ،زه خپل سرای فلان وفلان ته وقف کوم که دالله تعالی رضاوه .۱۴-

تحكيم ، دوو كسانو چاته وويل كه فلان سړى له سفرڅخه راغى نوته به زموږترمنځ په هغه فلانى شخړه كې حكم يعنې فيصله كوونكى شي،نو دا تعليق صحيح نه دى ولى دا معنًى صلح ده نو ځكه يې له شرط سره معلق كول صحيح نه دى ،دامام محمد رحمه الله په نزد دا صورت جائزدى په داسى حال كې چې دامام ابويوسف رحمه الله په نزد صحيح نه دى.

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله قول مفتى به دى لماقال شارح التنوير :التحكيم فلايصح تعليقه ولا اضافته عند الثانى وعليه الفتوى كمافى قضاء الخانية قال ابن عابدين رحمه الله (قوله عند الثانى) وعند محمد يجوز كالوكالة والامارة والقضاء بحر . (الدر المختار مع الشامية : ۴/ ۲۵۴)

(۱۴)وَمَالَايَبطُلُ بِالشَّرطِ الفَاسِدِ القَرضُ وَالهِبَةُ وَالصَّدقَةُ وَالنِّكاحُ وَالطَّلاقُ وَالخُلعُ وَالعِتقُ وَالرَّهنُ وَالإِيصَاءُ وَالوَصِيَّةُ وَالشَّرِكَةُ وَالمُضَارَبَةُ وَالقَضَاءُ وَالإِمَارَةُ وَالكَفَالَةُ وَالحَوَالَةُ وَالوَكَالَةُ وَالإِقَالَةُ وَالكِتَابَةُ وَإِذنُ العَبدِفِي التِّجَارَةِ وَدَعوَةُ الوَلَدِ وَالصُّلحُ عَن دَمِ العَمدِ وَالجَرَاحَةِ وَعَقدُ الذِّمَّةِ وَتَعلِيقُ الرَّدِّ بِالعَيبِ أَو بِخِيَارِ الشَّرطِ وَعَزلُ القَاضِي.

**ترجمه** : او كوم معاملات چې په شرط فاسد سره نه باطليږي هغه دادي :قرض،هبه، صدقه،نكاح، طلاق،خلع، عتق،رهن،وصي ګرځول ،وصيت كول،شركت،مضاربت،قاضي ټاكل،اميرټاكل،كفيل كيدل،حواله كول،وكالت كول ،اقاله كول،مكاتبة كول،مريي ته دتجارت اجازه وركول،دماشوم دعوى كول،له دم عمد اوزخم څخه صلح كول،دذمي جوړيدو عقد كول،اومعلق كول دمبيعى واپس كيدل په عيب ياخيارشرط سره اوقاضي معزول كول.

**تشريح** : (۱۴)په مذكورعبارت كې مصنف رحمه الله دوهم قسم معاملات ذكركړي دي يعنې هغه معاملات چې په شرط فاسدسره نه باطليږي بلكې خپله شرط باطليږى داډول معاملات اووه ويشت دي : ۱-قرض،مثلاچابل ته وويل :زه تاته سل روپۍ قرض دركوم په دي شرط چې ته به يوه مياشت زماخدمت كوي نوداشرط باطل دى ولى قرض وركول معاوضه مالي نه ده ۲-هبه،مثلايوچابل چاته وويل :زه تاته دامنځه درهبه كوم په دي شرط چې دهغې حمل به زماوي ،نوداشرط باطل دى لماقلنا. ۳-صدقه،مثلايوه سړي بل ته وويل چې زه تاته صدقه دركوم په دي شرط چې ته به يوه هفته زماخدمت كوي ۴-نكاح،مثلايوسړي يوې ښځې ته وويل زه له تاسره نكاح كوم په دي شرط چې ستابه مهرنه وي نوداشرط باطل دى .
۵-طلاق،مثلاخاوندښځې ته وويل زه تاته طلاق دركوم په دي شرط چې ته به له بل چاسره نكاح نه كوې . ۶-خُلع،مثلايوشرى خپلې ميرمنې ته داسي ووايې زه له تاسره خلع كوم په دي شرط چې ماله به لس ورځى اختياروي ۷-عتق،مثلامالك خپل مريي ته وويل :زه تاآزادوم په دي شرط چې ماله به اختياروي ۸-رهن،مثلايوسړي بل ته وويل زه خپل مريي تاته رهن ږدم په دي شرط چې زه هغه څخه خدمت اخلم ۹-ايصاء،مثلايوسړي بل ته وويل زه تاخپل وصي ګرځوم په دي شرط چې ته زماله لورسره نكاح وكړي ۱۰-وصيت،مثلايوسړي بل ته وويل زه ستاپاره دخپل په دريمه وصيت كوم په دي شرط چې فلان اجازه راكړي.
۱۱-شركت،مثلايوسړي بل ته وويل چې زه تاشريك كوم په دي شرط چې ته به ماته هديه راكوي
۱۲-مضاربت،مثلايوسړي بل ته وويل زه تاته زرروپۍ په نيمى مضاربت دركوم كه دفلان خوښه

و۱۳-قضاء،مثلاً خليفه د وخت چاته وويل :زه تادمکی مکرمی قاضي تاکم په دي شرط چې ته به د هميشه لپاره نه معزول کيږې نوداشرط باطل دی ۱۴-امارت،مثلاً خليفه يو چاته وويل زه تادشام اميرتاکم په دي شرط چې ته به پرسوارلی نه سوريږې ۱۵-کفاله،مثلاً چاقرض غوښتونکي ته وويل زه ستادمقروض کفيل جوړيږم په دي شرط چې ته به ماته قرض راکوي ۱۶-حواله،مثلاً زه تاته پرفلان باندي حواله درکوم په دی شرط چې ستاد حق دضائع کيدوه په صورت کې به ته ماته رجوع نه کوې ،نوداحواله صحيح ده اوشرط باطل دی .

۱۷-وکالت،مثلاً يوسړي بل ته وويل زه تاوکيل گرځوم په دي شرط چې زماپرذمه چې کوم ستاحق دی ته به ماله هغه ځخه بري کوې نووکالت صحيح دی اوشرط باطل دی ۱۸-اقاله،مثلاً يوسړي بل ته وويل زه ددي بيع اقاله کوم په دي شرط چې ته ماته قرضه راکړي ۱۹-کتابت،مثلاً مولی خپل مريې ته ووايې چې زه تاپه زرروپۍ مکاتب کوم په دي شرط چې ته به له فلان سره معامله نه کوې ياداچې ته به له ښارځخه وځي ۲۰-اذن فی التجارة،مثلاً مولی خپل مريې ته وويل زه تاته دتجارت اجازه درکوم په دي شرط چې ته به تريوې مياشتې يايوکال پوري تجارت کوې ياداچې ديومخصوص قسم مال تجارت به کوې نوداشرط باطل دی هغه ته هروخت اوعامه اجازه کيږی .

۲۱-دعوة الولد ،مثلاً مولی وويل زه دماشوم دنسب دعوی کوم په دي شرط چې هغه به زماوارث نه وي ۲۲-صلح له دم عمدځخه مثلاً دمقتول عمداً وارث له قاتل سره پريوشي باندي صلح کوي په دي شرط چې هغه به ده ته قرضه ورکوي يابه يوشی هديه ورکوي نوصلح صحيح ده شرط باطل دی ۲۳-صلح له زخم ځخه مثلاً څوک دداسي زخم ځخه صلح کوي چې په هغه کې قصاص واجب دی خوداشرط لګوي چې هغه به ده ته يوشی هديه ورکوي ۲۴-عقدالذمه، مثلاً يوکافرد مسلمانانوله امام سره دعقدذمه کولوپه وخت کې داشرط لګوي چې دی به ټيکس داهانت په ډول نه اداکوي ځکه ځرنګه چې هغه مشروع دی نوداعقدصحيح اوشرط باطل دی . ۲۵-تعليق الردبالعيب،مثلاً مشتري بائع ته وويل که ماپه مبيعه کې عيب پيداکړنوزه مبيعه واپس کوم په دي شرط چې ته به هغه آزادوي نوداشرط باطل دی ۲۶-تعليق الردبخيارشرط،مثلاً په بيع کې چې چالره خيارشرط دی هغه وويل زه دخپل خيارشرط په وجه مبيعه ردوم په دي شرط چې ته به هغه آزادوي نوداشرط باطل دی ۲۷-عزل دقاضي،مثلاً خليفه قاضي ته وويل ماته معزول کړی يې که دفلاني خوبنه وه نودامذکورټول تصرفات صحيح دي مګرشرطونه يې باطل دي .

## باب الصرف

داباب دبيع صرف په بيان کې دی

دصرف لغوي معنی ده ګرځيدل اومنتقل کول،ځرنګه چې دعقدصرف دواړوعوضونو لاس پرلاس ګرځيدل اومنتقل کول ضروري دی ځکه نوددغه عقدنوم (صرف) کيښودل شوی دی اودبيع الصرف اصطلاحی

تعريف داسي شوی دی چې بيع صرف هغه دی چې پکي دواړه عوضونه دثمن له جنس څخه وي مثلاً سره زر دسروزرو په عوض سپين دسپينو په عوض خرڅول روپۍ دروپو په عوض خرڅول.

:دغه باب له ماقبل سره دمناسبت وجه داده چې مصنف رحمه الله بيع صرف له ټولو بيوعونه وروسته ځکه ذکر کړي ده چې په بيع صرف کې دواړه عوضونه ثمن وي او په عقد بيع کې ثمن دوصف قائم مقام وي او مبيعه داصل قائم مقام وي اوداصل ذکرمخکي او دوصف وروسته مناسب وي ځکه يې بيع صرف ترنورو ټولو بيوعو وروسته ذکر کړي ده.

په بيع صرف کې ترافتراق بالابدان مخکي تقابض (يعني دمتعاقدينو پر عوضينو باندي قبض) شرط دی او په هغه کې خيار صحيح نه دی او موده مقررول هم صحيح نه دی ولی دادوه امرونه دواجب قبض لپاره مفوت دي.

(١)هُوَ بيعُ بعضِ الاثمانِ ببعضٍ.

**ترجمه**:هغه خرڅول دي دبعضو روپو دنورو روپو په عوض

**تشريح**:(١) په دغه عبارت کې مصنف رحمه الله دبيع صرف تعريف کړی دی کوم چې پورته بيان شوی دی.

(٢)فَلَو تَجانَسا شرطَ التّماثُلُ والتّقابضُ وَإن اختلفا جودةً وصياغةً (٣)وَالّاشرطَ التّقابضُ (٤)فَلو باعَ الذّهبَ بالفضّةِ مجازفةً صحّ إن تقابضا في المَجلِسِ (٥)وَلايَصحُّ التصرّفُ في ثمنِ الصرفِ قبلَ قبضهِ فلو باعَ ديناراً بدراهمَ واشترى بها ثوباً فسدَ بيعُ الثوبِ (٦)ولو باعَ أمةً معَ طوقٍ قيمةُ كلٍّ ألفٌ بألفينِ ونقدَ مِن الثمنِ ألفاً فهو ثمنُ الطوقِ وان اشتراها بألفينِ ألفٌ نقدٌ وألفٌ نسيئةٌ فالنقدُ ثمنُ الطوقِ

**ترجمه**: بيا که دواړه يو جنس وونو شرط يې برابر والی او عوضين قبض کول دی که څه هم دواړه مختلف وي په صاف والي او جوړښت کې که نه يو اخې قبض شرط دی ،بيا که يې خرڅ کړه سره زر دسپينو په عوض په اټکل سره نو صحيح دی که يې دواړه په مجلس کې قبض کړل او صحيح نه دی تصرف کول دعقد صرف په پيسو کې ترقبض کولو مخکي که يې خرڅ کړ دينار د درهم په عوض او په هغه يې کپړه واخيسته نو دکپړي بيع فاسده شي،او که يې خرڅه کړه منځه له غاړکۍ سره په دوه زره روپۍ دهريوه قيمت زر روپۍ دی او له ثمن څخه يې نقد ورکړي يو زر روپۍ نودغه نقد دغاړکۍ ثمن دي او که يې منځه واخيسته په دوه زره يو زر نقد او يو زر قرض نو هغه نقد دغاړکۍ ثمن کيږي.

**تشريح** : (٢) يعني که دواړه نقدين هم جنس وومثلاً يو سړی سره زر دسروزرو په عوض يا سپين زر دسپينو زرو په عوض خرڅ کړي نو داعقد په دوو شرطونو سره جائزدی يو داچې دواړه عوضين به سره برابروي که څه هم په صافوالي او جوړښت کې مختلف وي په دې دول چې له دواړو عوضينو څخه يو عوض زيات صاف وي او دوهم دهغه په نسبت ترهغه په صاف والي کې کم وي يا يو ډيرښه جوړ شوی وي او دوهم دومره ښه نه وي جوړ شوی لقوله عليه السلام :جيدها ورديها سواء (يعني دهغو جيد او ردي برابر دي) دوهم شرط دادی

چې په بیع صرف کې ترتفرق بالابدان مخکې عوضین قبض کړي لقوله علیه السلام: یدابید(یعنې لاس په لاس یې خرڅوئ).

**فائده**: نن سبا دمیعادي چیک یوه طریقه رواج شوې ده مثلاً دپنځوس زره روپې چیک دی دوې اوونې وروسته قابل وصول دی نو مخکې تروخت دهغه رقم دحاصلولو لپاره دچیک مالک په پنځه څلویښت زره روپې دغه چیک خرڅوي ،خرڅوونکي ته هغه رقم په لاس ورځي خوتروخت مخکې خریدارته رقم وروسته په لاس ورځي خوپه کته سره ،څرنګه چې دادبیع صرف صورت دی اوپه بیع صرف کې له دواړوطرفوڅخه دورکوونکي عوضینوبرابروالی هم ضروري دی اونقدهم په داسې حال کې چې دلته له یوه طرفه رقم زیات دی اوله بل طرفه کم دی اوله یوه طرفه ادائیګی نقد دی اوله بل طرف قرض دی نوځکه داشان معامله قطعًاحرامه اوپرسود مبنی ده اوددې پرناجائزوالی باندې دفقهاؤاتفاق دی . (جدید فقهی مسائل :۱/ ۴۱۴)

(۳)قوله والاشرط التقابض ای وان لم یتجانسابأن باع ذهبابفضة شرط التقابض دون التماثل ،یعنې که نقدین دواړه یوجنس نه وومثلاسره زردسپینوپه عوض خرڅ کړي نوپه دغه صورت کې یوائې دعوضینوقبض کول په مجلس کې واجب دی ځکه رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې سره زردسپینوپه عوض خرڅیدلای شي خولاس په لاس،دعوضینوترمنځ برابري شرط نه ده یعنې په عوضینوکې تفاضل (یعنې دیوه کمیدل دبل زیاتیدل) جائزدی ولی تفاضل هغه وخت ناجائزدی چې عوضین له یوه جنس څخه وي .

(۴)پس که چاسره دسپینوپه عوض په اټکل سره خرڅ کړل سره اوسپین یې تول نکړل نوکه په هغه مجلس کې بائع اومشتري دواړوپرعوضینوباندې قبضه وکړه نوبیادابیع صحیح ده ولی دادبیع صرف صورت دی نوپه مجلس عقدکې پرعوضینوباندې دمتعاقدینوقبض ضروري دی پاتې شوه دعوضینوترمنځ برابري هغه په دې وجه چې دوئ مختلف الجنس دي ضروري نه دی نوداټکل په وجه که په عوضینوکې زیاتوب اوکمبوت وي هغه دعقدپرجوازباندې هیڅ اثرنه کوي .

(۵)ترقبض کولومخکې په ثمن صرف کې تصرف کول ناجائزدی ولی په بیع صرف کې هرعوض من وجهٍ مبیع دی اومن وجهٍ ثمن دی اوپه مبیعه کې مخکې ترقبض تصرف کول جائزنه دی ځکه نودعقدصرف په عوضینوکې مخکې ترقبض کولوتصرف کول جائزنه دی نوکه چایودینارداڅو درهموپه عوض خرڅ کړاوتراوسه یې درهمونه قبض کړي نه وو چې په هغویې کپړه واخیسته نوپه ثمن صرف کې مخکې ترقبض دتصرف کولوپه وجه دکپړې بیع فاسده ده .

(۶)که چامنځه سره له غاړکۍ په دوه زره مثقاله خرڅه کړه دهریوه (یعنې منځې اوغاړکۍ) قیمت یې یوزرمثقال کنبینبوداومشتری یوزرمثقال په دغه وخت کې ورکړل نوداززرمثقاله دغاړکۍ قیمت ګڼل کیږي چې بیع صحیح شي ولی دغاړکۍ بیع ،بیع صرف ده نوکه داززرمثقالونه دمنځې قیمت وبلل شي نودغاړکۍ قیمت قرض کیږي،په داسې حال کې چې په بیع صرف کې دعوضینوقبض کول په مجلس کې ضروري دی دیوه عوض قرض کول جائزنه دی ،همدارنګه که چامنځه سره دغاړکۍ په دوه زره واخیسته چې

یوزریې نقدورکړي اویوزریې قرض کړي نوددې بیع دصحیح کیدولپاره داضروری ده چې دغه نقدي روپۍ دغاړکۍ قیمت شي ولی دغاړکۍ په حق کې دابیع صرف ده چې په هغې کې دیوه عوض قرض کول جائزنه دی نومناسب داده چې نقدي دغاړکۍ قیمت شمارشي چې عقدصحیح شي ولی دیوه عاقل،بالغ مسلمان ظاهرحال داتقاضاکوي چې دی لومړۍ واجب اداکوي اوپه مجلس عقدکې دغاړکۍ قیمت اداکول واجب دی دمنځې قیمت اداکول په مجلس عقدکې واجب نه دی.

(۷)وَاِنْ بَاعَ سَيْفًا حِلْيَتُهُ خَمْسُونَ بِمِائَةٍ وَنَقَدَ خَمْسِينَ فَهُوَ حِصَّتُهَا وَاِنْ لَمْ يُبَيِّنْ (۸) أَوْقَالَ مِنْ ثَمَنِهِمَا (۹) وَلَوِافْتَرَقَابِلَاقَبْضٍ صَحَّ فِي السَّيْفِ دُوْنَهَا اِنْ تَخَلَّصَ بِلَاضَرَرٍ وَاِلَّا بَطَلَا.

**ترجمه** :اوکه یې خرڅه کړه داسې توره چې دهغې ګینه پنځوس دِرهمه قیمت لري په سل درهمه اوپنځوس یې نقدورکړي نو دغه نقد دګینې حصه کیږي که څه هم بیان یې نه وي کړی یاداسې ووایې چې ددواړوله ثمنو څخه دي اوکه دواړه سره جلاشول له قبض بغیره نوبیع صحیح کیږي په توره کې نه په ګینه کې که چیرته توره اوګینه بلاضرره سره جلاکیدای شوای که نه ددواړوبیع باطلیږي.

**تشریح** : (۷) که چاپه زرو پوښلې توره دسلودرهمونو په عوض خرڅه کړه چې ګینه یې پنځوس درهمه قیمت درلودیا مشتري له ثمنو څخه پنځوس درهمه اداکړل نودابیع جائزه ده اواداشوي پنځوس درهمه دګینې ثمن شمارل کیږي که څه هم مشتري دابیان نه وي کړی چې داپنځوس درهمه دزیورعوض دی یادتوري یاددواړو،ولی دزیوردثمن قبض کول واجب وو ځکه دمشتري دظاهرحال تقاضاهمداده چې هغه اول هغه اداکړي دی چې دهغه اداَئیګي په مجلس عقدکې دده پرذمه واجب دی.

(۸)همدارنګه که مشتری تصریح وکړه چې داپنځوس درهم دتوري اوزیوردواړوثمن دي نوپه دغه صورت کې هم دادزیورثمن شمارل کیږي ولی دمسلمانانواموروس پوري پرجوازمحمول کیږی اودلته داهم ممکن دی چې له (ثمنهما) څخه زیورمرادکړي ولی تثنیه ذکرکوي واحدمرادول جائزدی کمافی قوله تعالی (فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا) بیاچې کله ورسیدل ددوودریابونودیوځای کیدلوترځایه هیرېې شوځپل ماهی (کب).

(نسیا) تثنیه ده مګرهیریدونکی یویعنې یواځي حضرت یوشع علیه السلام دی،وقال تعالی: (يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ) راوځي له دغودوو(دریابونو) څخه ملغلري اومرجان). مِنْهُمَا ،تثنیه ده مګرله دي څخه یواځې ترش دریاب مراددی ولی ملغلرې اومرجان یواځې له ترش دریاب څخه وځي.

(۹)یعنې که په مذکورصورت کې په مجلس کې دعوضینوترقبض کولومخکي متعاقدین سره جلاشول نودزیورپه حصه کې عقدباطلیږی ولی دزیورپه حصه کې دابیع صرف ده چې په هغې کې ترافتراق مخکې تقابض (دمتعاقدینوقبضول) شرط دی بیاکه چیرته دامممکن ووچې زیورله توري څخه بغیرضررجلاکیدای شوای نودتوري بیع جائزه ګرځي ولی په دی صورت کې مبیعه بغیرضررسپارل ممکن دی اودزیوربیع باطلیږی لمامرّ،اوکه زیورله توري سره داسې مښتي ووچې دزیورله توري څخه بغیرضررجلاکیدل ممکن نه وونودتوري بیع هم باطلیږی ولی بغیرضرردمبیعی سپارل ممکن نه شو،نوداداسې دی لکه په چت کې لګیدلې لرګي خرڅول

نو ځرنگه چې په چټ کې لگيدلي لرگي بغيرضررنه سپارل کيږي ځکه نو دداډول لرگو خرڅول جائزنه دی .

(۱۰)ولوباع اناءفضةوقبض بعض ثمنه وافترقاصح فيماقبض والاناءمشترك بينهما(۱۱)وان استحق بعض الاناءاخذالمشتری مابقی بقسطه اورده(۱۲)ولوباع قطعةنقرةفاستحق بعضهااخذمابقی بقسطه بلاخيار

**ترجمه** :او که يې خرڅ کړل دسپينوزرولوښي او دهغه څه ثمن يې قبض کړي اودواړه سره جلاشول نوبيع صحيح ده په هغه کې چې قبض کړی يې دی اولوښي ددواړوسره مشترک دی اوکه نيم لوښي دبل چاحق وگرځيدنومشتري دي واخلي باقي دهغې په ثمنوسره اويادي ردکړي اوکه يې خرڅه کړه دزروټکړه بيادبل چاحق وگرځيدهغه څه حصه نوادي خلي هغه باقي دهغې په اندازه سره بلااختياره .

**تشريح** :(۱۰)که چادسپينوزرولوښي خرڅ کړاوبائع دهغه څه ثمن قبض کړي او څه يې نه دي قبض کړي بيادواړه سره جلاشول نوپرڅومره پيسوچې بائع قبضه کړي ده په هغه اندازه بيع صحيح شوه اوچې څومره يې نه دي قبض کړي په هغه اندازه بيع باطليږی مثلابائع نيمې پيسې قبض کړي نوپه نيم لوښي کې بيع صحيح کيږي په باقي نيم کې باطليږی ولی داعقدصرف دی اوپه عقدصرف کې دبقاء جوازلپاره مخکې ترجلاکيدودعوضينوقبضول شرط دی نوچې په څومره حصه کې شرط راغلی دی په هغې کې بيع صحيح کيږی اوپه څومره کې چې شرط نه دی راغلی په هغې کې عقدباطليږی پاتې شوه داخبره چې ديوې حصې فسادبلې حصې ته نه متعدی کيږي هغه په دې چې دافسادپه ابتداء عقدکې نه دی راغلی بلکې دافسادوروسته پيښ شوی دی اوعارضی فسادبقدرفسادوي .اولوښي دمتع[illegible]ينوسره مشترک دی اوپه مبيعه کې شرکت که څه هم عيب دی مگردهغه په وجه مشتري ته دخيارفسخ حق نه ورکول کيږي ولی تفريق دصفقة دمشتری په فعل سره لازم شوی دی که ده مخکې ترجلاکيدوپوره ثمنې اداکړي وای نوتفريق صفقةنه لازميدی نوددي جرم په وجه هغه دخيارحق نه ورکول کيږی .

(۱۱)که دلوښي کوم بل مستحق (له مشتري اوبائع نه علاوه دريم چادلوښي دمالک کيدودعوی وکړه هغه يې ثابته کړه نوهغه ته مستحق ويل کيږی) پيداشونومشتري ته اختيارورکول کيږی چې هغه مابقي لوښي دهغې حصې دثمنوپه عوض واخلي يامابقي هم ردکړي ولې شرکت عيب دی اودمعيوب خومشتري ته دقبلولواوردلواختياروي اوځرنگه چې په دغه صورت کې په مبيعه کې دشرکت عيب دمشتري په فعل سره نه دی لازم شوی ځکه نومشتري ته دخيارفسخ حق ورکول کيږي .

(۱۲)که چايوه ټکره دسپينوزروخرڅه کړه بيادهغې دڅه حصې يوبل څوک مستحق پيداشونوڅومره حصه ټکره چې دمشتري سره باقي ده مشتري دي هغه دثمنوپه عوض واخلي په خپله اندازه اومشتري لره دمابقي ټکري په باره کې پربائع باندي دردولوخيارهم نشته ولی دزروټکره يوداسې شی دی چې دهغې ټکره کول تاواني نه دی نوبلاشرکت دي مشتري خپله حصه جلاکړي بغيرضرر دهغې مالک گرځيدای شي .

(۱۳) وصح بيع درهمين ودينار بدرهم ودينارين وكر بر وشعير بضعفيهما (۱۴) واحد عشر درهما بعشرة دراهم ودينار (۱۵) ودرهم صحيح ودرهمين غلتين بدرهمين صحيحين ودرهم غلة (۱۶) ودينار بعشرة عليه او بعشرة مطلقة ودفع الدينار وتقاصا العشرة بالعشرة

**ترجمه** :او صحيح ده بيع د دوو درهمينو او يوه دينار د يوه درهم او دوو دينارونو په عوض او يوه پيمانه غنم او اوربشي د هغو په دوه چنده او ديولسو درهمونو په لسو درهمو يوه دينار په عوض او يو صاف دوه ناچله درهمونه د دوو صافو يوه ناچله درهم په عوض او يو دينار د لسو درهمونو په عوض چې د ده پر ذمه قرض دي يا د مطلق لسو په عوض او چې دينار ورکړي او مجرا کړي لس د لسو په عوض کې.

**تشريح** :(۱۳) که چا دوه درهمونه يو دينار د يوه درهم دوو دينارونو په عوض خرڅ کړل نو زمونږ په نزد دا بيع جائزه ده اوله دواړو څخه هر جنس د هغه خلاف عوض بلل کيږي يعني دوه درهمه د دوو دينارونو عوض او يو درهم ديوه دينار عوض شمارل کيږي ولې د دې بيع د صحت هم دا صورت دی ځکه نو عاقدينو لره پکار دی چې د عقد د صحيح کيدا لپاره عقد د دغه صورت طرف ته راوګرځوي ولې که د خلاف جنس طرف ته راونه ګرځول شی بلکې هر يو د خپل جنس مقابل وبلل شي نو سود لازميږي ځکه په دې ډول دوه درهم ديوه درهم په عوض کې کيږی او دوه دينار د يوه دينار عوض چې له همدې څخه سود لازميږی همدا رنګه يو ګر (ګر د کاف په ضمه سره په تشديد د را، سره د شپيتو قفيزو يوه پيمانه ده چې يو قفيز دوولس کاسې کيږی په دې ډول يو ګر اووه سوه شل کاسې ۷۲۰ برابر کيږي) غنم او يو ګر اوربشې د دوو ګره غنمو او دوو ګره اوربشو په عوض خرڅول جائز دی او هر يو به د خپل جنس خلاف عوض بلل کيږي. لما قلنا.

**فائده** :د امام شافعي رحمه الله او امام زفر رحمه الله په نزد مذکور صورت د رباپه وجه ناجائز دی ،او دا چې د جواز کوم صورت يې بنودل شوی دی چې هر يو به د خپل جنس خلاف ته راوګرځول کيږی د انو ځکه صحيح نه دی چې په دې کې د عاقدينو د تصرف متغير کول لازميږی ولې عاقدينو دوه درهمه يو دينار مجموعه ديوه درهم دوو دينارينو له مجموعی سره مقابل کړی دی او د عاقدينو تصرف متغير کول ناجائز دی که څه هم د عاقدينو د تصرف صحيح کولو لپاره عقد متغير کړي .احناف جواب ورکوي چې هر يو د خپل جنس خلاف طرفته په ګرځولو کې د عقد متغير کول نه لازميږی ولې د عقد اصلی حکم دا دی چې د هر عاقد د کل په مقابله کې پر کل باندې ملکيت حاصل شی او دا په هغه صورت کې چې هر يو د خپل جنس خلاف طرفته وګرځوي هم حاصليږی .البته د عقد د وصف متغير کول لازميږی ولی له عوضينو څخه د دې پرځای چې کل په عوض د کل وبلل شي دوه په عوض د دوو کې او يو په عوض ديوه کې مراد شوی دی نو دا د عقد متغير کول نه دی بلکې عقد له يو وصف څخه (چې کل په عوض د کل) دی بل وصف ته چې (هر يو د خپل جنس خلاف طرفته ګرځول) متغير کول دی چې په دې کې هيڅ قباحت نشته.

**فائده** :صحيح خبره دا ده چې زمونږ د دريو امامانو په نزد دا ډول بيع صحيح ده مګر مکروه او حرامه ده ولې په دې کې د سود لپاره يو د حيله تر لاسه شوي ده لما قال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله : واما عند ائمتنا الثلاثة فجائز بمعنى انه صحيح لکنه مکروه وحرام لسافه وحيلة وحيلة للربا واسالم يصرح بالکراهة اعتقادا منه على ذکر القاعدة الکلية الاتية عن قريب (هامش الهداية ۱۰۹/۳:)

**فائده** :دغې مسئلې ته نژدې دموجوده زماني يوه مسئله ده يعني دكمپنيو دشركت دخريد وفروخت مسئله ،خولومړۍ داپېژندل ضروري دي چې شيئر څه شى دى ؟ شيئر په اردوژبه په حصه سره تعبيرېږى اوپه عربي كې ورته سهم ويل كيږي داشيئرپه حقيقت كې ديوې كمپنۍ په منافعو كې دشيئرد حامل دملكيت ديوې متناسبې حصې نمائندګي كوي لهذادكمپنۍ چې څومره عوائد او املاک دي دشيئرداخستلو په نتيجه كې زه په هغوټولو كې دمتناسبې حصې مالک وګرزيدم .

دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددشيئرخريدوفروخت جائزدى په دې شرط چې دشيئرقيمت ترهغونقودو اوديونوزيات وي چې دشيئرپه حصه كې راځي كه يې قيمت ترهغوكم يابرابروي بياجائزنه دى مثلاديوه شيئرقيمت سل روپۍ دي اوديوه شيئرپه حصه كې دراتلونكوعروضو قيمت شپېته روپۍ دي اوباقې څلويښت روپۍ دنقودواوديونوپه مقابله كې دي اوس كه چيرته هغه يوشيئرپه يوڅلويښت روپۍ خرڅ كړاى شي ياترهغوپه زيات قيمت خرڅ كړاى شي نوداصورت جائزدى ځكه چې څلويښت روپۍ خودنقودواوديونوپه مقابله كې كيږي اويوه روپۍ چې پاتې ده دټولو عروضوپه مقابله كې كيږي مګر هغه شيئرپه څلويښت ياپه نه ديرش روپۍ خرڅول ناجائزدى ځكه دڅلويښتوروپوخرڅولوپه صورت كې دنقودواوديونوپه مقابله كې څلويښت روپۍ وصول شوې اوباقې عروض خالي له عوض نه پاتېږي ځكه نوداصورت جائزنه دى اوكه يې په نه ديرش روپۍ خرڅ كړداصورت په طريقه اولى ناجائزدى ،ځكه چې دنقودواوديونوترمنځ هم تماثل پاتې نه شوبلكې تفاضل راغى اوعروض هم خالي له عوض څخه پاتې شول ځكه نوداصورت هم جائزنه دى،نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددشيئربيع هغه وخت جائزه كيږى چې كله دشيئرپه حصه كې دراتلونكونقودو اوديونوقيمت دثمن په مقابله كې كم وي اوثمن دهغه په مقابله كې زياتى وي . (تقريرترمذى :١/ ١٨٤)

(١٤)قوله واحدعشر درهمابعشرة دراهم ودينار اى صح بيع احدعشر درهمابعشرة دراهم ودينار ،يعني كه چاپوولس درهم په عوض دلسودرهمويوه دينارخرڅ كړل نودابيع جائزه ده ،لس درهم به دلسودرهموپه عوض شي اويودينارديوه درهم په عوض كيږى ولى دجوازعقدهمداصورت دى اودعاقدينوظاهرحال دهمدې خبرې مقتضي دى چې هغوئ به دجائزعقدارتكاب كړى وي نه دعقدفاسد .

(١٥)قوله درهم صحيح ودرهمين غلتين الخ اى صح بيع درهم صحيح ودرهمين غلتين الخ غلة بفتح الغين وتشديد اللام ، ديوه درهم هغواجزاؤاووروڅروته وايي چې په وزن اومالیت كې ددرهم برابروي چې بيت المال ردكړى وي اوتجاران يې قبلوي لكه په دغه زمانه كې زموږدروپيانوټوټې لس پيسې پنځه پيسې وغيره، مګربيت المال هم هغه دكوټه كيدوپه وجه نه ردوي بلكې دوړوالى په وجه يې ردوي ولى دوړوروپو حفاظت اوشمارل مشكل وي ،صورت دمسئلې دادى چې كه چاديوه صحيح درهم يوغله درهم ددووغله اويوه صحيح په عوض خرڅ كړل نودابيع جائزده ولى دوزن اوماليت په اعتبارعوضين برابردي البته په وصف كې فرق دى چې درهم ترووړواجزاؤ عمده وي مګرڅرنګه چې په وصف كې برابروالى شرط نه دى ځكه نوداعقدصحيح دى .

(۱۶)قوله ودينار بعشرة عليه اى صح بيع دينار بعشرة عليه،يعني كه دچاپربل چاباندي لس درهمه قرض وويبا قرضدارپرقرض غوښتونكي باندي دلسودرهمونوپه عوض كې يودينارخرڅ كړنوددي دوه صورتونه دي :يوداچې قرضدارخپل ديناردهغولسو درهمونوپه عوض خرڅ كړي چې پرده باندي دقرض غوښتونكي له طرفه واجب وو،داصورت په اتفاق سره جائزدى ولى دديناربيع دلسودرهمونوپه عوض بيع صرف ده اومخكي داخبره تيره شوه چې په بيع صرف كې بدلين قبض كول لازم دى چې داكارشوى دى چې قرض خولادمخه قبض شوى دى اودينارلاوس قبض شونوداعقدصحيح دى ،دوهم صورت دادى چې قرضدارخپل دينارمطلقًا دلسودرهمونوپه عوض خرڅ كړي يعني دديناربيع هغودرهمونوته منسوب نه كړي كوم چې پرقرضدارباندي واجب دي يا قرضدارقرض غوښتونكي ته دينارو ركړاودواړوپه رضامندي سره ددينارثمن يعني لس درهم قرض يې له لسودرهمونو سره مقاصه كړل يعني ادل بدل يې وكړاومعامله يې برابره كړه په دي دول چې دقرضدارپرذمه چې دقرض غوښتونكي كوم لس درهمونه ووهغه دهغولسودرهمونوپه بدل كې شوكوم چې دقرض غوښتونكي پرذمه دقرضداردبيع ديناربه وجه واجب شوي وونودقياس تقاضاداده چې داصورت جائزنه واى ولى دقرض غوښتونكي پرذمه چې ددينارا خستلوبه وجه لس درهم لازم شوي دي دهغوقبض كول په مجلس كې ضروري دى اودمقروض پرذمه چې كوم لس درهم قرض دي دهغوقبض كول ضروري نه دى نوكواكي دادوه مختلف الجنس شيان دي نوددوئ ترمنځ مقاصه بايدجائزنه وي ولى په مقاصه كې ددواړوشيانوترمنځ اتحادجنس ضروري دى البته استحساناداصورت جائزدى ولى چې كله متعاقدينو مقاصه وكړه نوپه دي دول يې صحيح كول ممكن دى چې عقداول (يعني ددينار اودرهمو مطلقه ترمنځ چې كوم عقدصرف شوى دى ) فسخ كړاى شي اوددينار بيع دهغولسو درهمونوطرف ته منسوبه كړي كوم لس درهم چې دمقروض پرذمه دقرض غوښتونكي له طرفه واجب دي بيانودالومړى صورت كرځي څكه نورو ادى.

(۱۷)وغالب الفضة والذهب فضة وذهب حتى لايصح بيع الخالصة بهما ولابيع بعضها ببعضها الامتساويا وزنا (۱۸)ولايصح الاستقراض بهما الاوزنا (۱۹)وغالب الغش ليس في حكم الدراهم والدنانير فصح بيعها بجنسها متفاضلا.

**ترجمه** :اوپه كوموشيانوكې چې سره اوسپين غالب وي هغه دسرو اوسپينوله جملې څخه شمارل كيږي حتى چې صحيح نه ده دخالص بيع دهغودوپه عوض اونه بيع دهغودبعض دبعض په عوض مگركه داسې كه برابروودوزن په اعتبارسره اوصحيح نه دى قرض اخيستل دهغوپه عوض مگرپه وزن سره اوپه كوموكې چې غش غالب وي هغه دددرهمونواودنانيروپه حكم كې نه دي نوصحيح ده بيع دهغوله خپل جنس سره په زيات اوكمبوت سره.

**تشريح** :(۱۷)كه په دراهمو كې سپين غالب وونودغه درهمونه دخالصوسپينوزروپه حكم كې دي په دي دول كه چيرته په دنانيروكې سره زرغالب وونوداونانيردخالصوسروزروپه حكم كې دي نوڅكه خالص سره اوسپين دداډول سرواوسپينوپه عوض خرڅول ناجائزدى مگرداچې دواړه په وزن كې سره برابروي لكه دخالص سرواوسپينوحكم ،همدارنگه هغه دخپل جنس په عوض خرڅول

هم ناجائز دی مګر داچې دواړه په وزن کې سره برابر وي ولې په کمبوت اوزیادت کې سود لازمیږي.

(۱۸) همدارنګه د درهمونو او دینارونو قرض اخیستل هم صحیح نه دی مګر داچې هریو وزن کړي بیا یې واخلي ولې له غش درلودلو سره سره داډول دراهم او دنانیر سره او سپین شمارل کیږي او سره او سپین خو وزني شیان دي دهغو قرض اخیستل یوائې دوزن په اعتبار سره جائز کیږي د کیل په اعتبار نه دي جائز.

(۱۹) قوله وغالب الغش لیس فی حکم الخ ای الدراهم والدنانیر التی غلب علیها الغش لیس فی حکم الدراهم والدنانیر. یعنې که په دراهمو او دنانیرو کې غش غالب وو نو دا د خالص دراهمو او دنانیرو په حکم کې نه دي بلکې د سامان په حکم کې دي ولې اعتبار غالب لره وي بیا که داډول دراهم او دنانیر پخپل جنس سره په کمبوت اوزیادت سره خرڅ کړای شي نو دابیع جائزه ده هریو دهغه خلاف جنس ته منسوبیږي یعنې دیوه عوض غش دهغه بل عوض د سپینو په مقابله کې او دهغه سپین د دابل عوض دغش په مقابله کې شمارل کیږي ولې د دغه عقد دصحیح کیدو همدا صورت دی که نه که چیرته هریو دهغه د جنس خلاف ته منسوب نه کړای شي نو سود لازمیږي.

(۲۰) والتبایع والاستقراض بمایروج وزنا او عددا او بهما (۲۱) ولایتعین بالتعیین لکونهما اثمانا وتتعین بالتعین ان کانت لاتروج
(۲۲) والمتساوی کغالب الفضة فی التبایع والاستقراض وفی الصرف کغالب الغش

**ترجمه**: او صحیح دی په دوئ سره خرید و فرخت کول او قرض اخیستل (جائز دی) د رواج مطابق په وزن سره یا په شمیر سره یا په دواړو سره او متعین کیږي نه په متعین کیدو سره ولې دادواړه ثمن دي او متعین کیږي په متعین کیدو سره که مروج نه وو. او په کوموکې چې غش د اصل برابر وي هغه د هغو په شان دي په کوموکې چې سپین غالب وي په خرید و فروخت کې او په قرض اخیستلو کې او په عقد صرف کې د هغو په شان دي په کوموکې چې غش غالب وي.

**تشریح**: (۲۰) قوله والتبایع والاستقراض بمایروج الخ ای صح التبایع والاستقراض بمایروج. یعنې په داډول دراهمو او دنانیرو چې غش پرې غالب وي خرید و فروخت کول قرض اخیستل د رواج مطابق صحیح دی که په تول سره رواج وونو په تول دي که د شمیر رواج وونو په شمیر سره که دواړه رواج وونو په دواړو طریقو سره جائز دی ولې چیرته چې نص نه وي هلته رواج ته اعتبار ور کول کیږي.

(۲۱) او د سرو او سپینو داسې دنانیر او دراهم (پر کوموباندې چې غش غالب وي) چې تر کومه چیرته هم رواج وي نو هغه په دې وجه چې د اثمان له قبیلې څخه دي په متعین کولو سره نه متعین کیږي او که چیرته هم رواج نه وونو بیا په متعین کولو سره متعین کیږي ولې بیا د نه رواج په وجه له ثمن څخه نه شمارل کیږي بلکې د سامان له قبیلې څخه دي نو ځکه په متعین کولو سره متعین کیږي.

**فائده**: د مذکورو درهمونو او دنانیرو د متعین کیدو او نه کیدو مطلب داوړی چې که داډول دراهم د مشتري په لاس کې وي بائع هغو ته اشاره وکړه وې ویل چې د دغو دراهمو په عوض خپل د اسامان پرتا باندې خرڅوم نو که

دادراهم رواج وونو دبائع په اشاره سره هغه نه متعین کیږی یعني که دمشتری له لاسه هغه دراهم هلاک شول نومشتري دهغوپه بدله کې نوردادول دراهم ورکولای شي اوکه دهغورواج ختم شوی وونوپه متعین کیدوسره متعین کیږي نو دهغو دهلاکیدوپه صورت کې مشتري له هغو څخه علاوه نه شي ورکولای .

(۲۲)اوکه سپین اوغش یاسره اوغش سره برابروونو دخریداوفروخت اوقرض اخیستلوپه باره کې دادهغودراهمو اودنانیروپه حکم کې دي په کوموکې چې سپین اوسره غالب وي نوله وزن بغیرپه هغوسره خرید وفروخت کول یاقرض ورکول جائزنه دی ولی دادول دراهم اودنانیرثمن دي چې په متعین کیدوسره نه متعین کیږي.نوپه وزن کولوسره دهغومقدارمتعین کول ضروري دی اوپه بیع صرف کې دادهغودراهموپه شان دي پرکوموچې غش غالب وي یعني هغه دخپل په مقابل کې په کمبوت اوزیادت سره خرڅول جائزدی ولی داګواکي دوه شیان دي سپین اوغش نوهریوخلاف جنس ته په ګرځیدوسره عقدصحیح کیږي اوددواړو عوضینوپه هغه مجلس کې قبض کول شرط دی ولی په دواړو عوضینو کې دسپینوزروپه وجه دابیع صرف ده اوپه بیع صرف کې دعوضینو قبض کول په مجلس عقد کې ضروري دی لکه چې مخکې تیرشول .

**فائده** : دنوټ په باره کې زموږپه نزددهغوعلماء کرامو خبره صحیح ده کوموچې نوټ ثمن اصطلاحي ګڼلی دی چې پرهغه دفلوس نافقه احکام جاري کیږي اوهغه دادی چې دفلوس پخپل منځ کې تبادله په تفاضل سره جائزنه ده علی المفتی به فی هذاالزمان سدًاالباب الربا وهوقول الامام محمدالشیبانی رحمه الله . البته که دانوټ مختلف الجنس وي لکه پاکستانی روپی اوسعودي ریال نوبیاددوئ ترمنځ دتبادلې په وخت تفاضل جائزدی اوځرنګه چې داکیلی اووزني هم نه دی بلکې عددي دی ځکه نوقرض یې هم حرام نه دی ولې قرض هغه وخت حرامیږي چې کله له قدراوجنس څخه یووصف پیداشی اوچیرته چې قدراوجنس دواړه نه وي هلته پورنه حرامیږی له همدي څخه دحوالې مسئله هم راووته هغه داچې مثلایوسړی په سعودي عرب کې دی هغه بل چاته وویل چې زه تاته دومره ریالونه درکوم دهغوپه عوض ته دومره پاکستانی روپی په کراچي ښارکې فلان ته وروړسوه،دي ته په اوسنی زمانه کې دحوالې کاروباروایي داکاروبار جائزدی خوځرنګه چې داکاروباردسود حاصلولو حیله جوړیږي ځکه نوپه قیمت مثل سره جائزه ده ترقیمت مثل زیاته نه ده جائزه که نه دسوددروازه پرانیستله کیږی مثلادیوه ریال قیمت اته روپی دي مایوچاته لس ریاله ورکړل اوهغه ته مې وویل چې ته به یوه میاشت وروسته ماته سل پاکستانی روپی راکوي.نوځرنګه چې دلسوریالونو قیمت مثل ۸۰اتیارروپی جوړیدي ۲۰وزه له هغه څخه سل روپی وصولوم نودایوقسم سودشوکه داجائزوبلل شي نوبیاچې دسوددلین دین خلک دي هغوئ په دي ذریعه سره سود حاصلوي ځکه نوتفاضل که څه هم جائزدی مګرپه قیمت مثل سره کیدل یې ضروري دی دایوموقف دی چې تراوسه حق بلل کیږي والله سبحانه اعلم (تقریرترمذی :۱/ ۱۴۶بتغیر)

(۲۳)ولواشتری به اوبفلوس نافقة شیأ وکسد قبل دفعه بطل البیع(۲۴)وصح البیع بالفلوس النافقة وان لم یعین وبالکاسدة لاحتی یعینها (۲۵)ولوکسدت افلس القرض یجب ردمثلها.

**ترجمه** :اوکه یې واخیست دهغو درهمونو چې غش په کډووپه عوض یادرواجي پیسوپه عوض یوشی یادهغورواج ختم شودهغو تروړکولومخکې نوبیع باطلیږی اوصحیح ده بیع په رواجي پیسوکه څه متعینې

شوې نه وي او په ناچله پیسو سره نه ده صحیح تر څو چې هغه متعینې نه شي او که رواج ختم شو د قرض
د پیسو نو واجب دی د هغو مثل رد ول.

**تشریح** :(۲۳) که چا د داډول درهمونو یا دنانیرو سره چې غش پکې ګډ وویا د رواجي پیسو په عوض یو سامان
واخیست بیا بائع ته ترور کولو د دغو درهمونو رواج ختم شو یعنې خلکو د هغو معامله کول پرېښوده نو د امام
ابو حنیفة رحمه الله په نزد دا بیع باطلیږي ولی د درهمونو ثمن کیدل د خلکو په اصطلاح سره وو د رواج د ختمیدو په
وجه د خلکو اصطلاح او د هغو ثمن والی پاتی نه شو نو بیع بلا ثمن پاتی شوه او بیع بلا ثمن باطله ده.

**فائده** :د صاحبینو رحمهما الله په نزد مذکوره بیع نه باطلیږي بلکې پر مشتري باندي د هغو دراهمو قیمت
واجبیږي د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادی چې مذکور عقد بیع صحیح شوی دی البته د رواج د ختمیدو په
وجه د ثمنو تسلیمول متعذر شوی دی او د ثمنو د تسلیمیدو د متعذر کیدو په وجه بیع نه فاسدیږي نو ځکه
د ثمنو قیمت ورکول واجبیږي ولی د هغو دراهمو ضمان د همدې بیع په وجه واجب شوی دی که دا بیع نه وای
شوې نو پر مشتري باندي به ضمان نه واجبیده نو ځکه قیمت هم د هغه د بیع د ورځې واجبیږي او د امام محمد
رحمه الله په نزد په کومه ورځ چې خلکو د هغو معامله پرې ایښې ده په هغه ورځ چې د دغو دراهمو کوم قیمت
وو پر مشتري باندي هغه واجبیږي ولی ضمان له مغشوشه دراهمو څخه د هغې ورځې د قیمت طرف ته منتقل
شوی دی نو چې د کومې ورځې د قیمت
طرف ته ضمان منتقل شوی دی د هغې ورځې قیمت معتبریږي.

**فائده** :د صاحبینو رحمهما الله قول مفتی به دی کمالی الدّر المختار و صححاه بقیمة المبیع و به یفتی رفقا بالناس بحر و حقائق
(الدّر المختار علی هامش ردّ المحتار: ۳/۲۶۹)

(۲۴) په فلوس (د فلس جمع ده یعنې پیسه، فلوس د پیتلو او نورو شیانو څخه جوړیږي) سره بیع جائزه
ده ولی فلوس مال دی چې مقدار او وصف یې معلوم دی او په مال معلوم القدر او وصف سره بیع جائزه ده، بیا به
دغه فلوس د عقد په وخت یا رواج وي یا به یې رواج ختم شوی وي، که رواج وو نود درهمونو او دنانیرو په ډول
په بیع کې د هغو تعین کول ضروري نه دی بلکې د عقد په وخت د متعین شویو فلوس غیر (بدیل) هم ورکولای
شي او که په وخت د عقد نه وو رواج یعنې خلکو د هغو معامله پرې ایښې وه نو متعین کول یې ضروري دی ولی
دا اوس سامان دی او په وخت د عقد کې د سامان متعین کول ضروري دی.

(۲۵) او که یې فلوس (د پیتلو وغیره پیسې) د قرض په ډول ورکړي بیا د هغو پیسو رواج ختم
شو نو د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد د هغو په ډول پیسې قرض غوښتونکي ته ورواپس کول واجب دي ولی
قرض په منزله د عاریت دی نو د عین شي د واپس کولو مقتضي دی خو څرنګه چې عین شی باقی نه دی نو ځکه
د هغه مثل واپس کول ضروري دی.

**فائده** :د صاحبینو رحمهما الله په نزد پر قرضدار باندي د دغو پیسو قیمت واجب دی ولی چې کله په
دغو پیسو کې د ثمنیت وصف پاتی نه شو نو چې څرنګه یې قبض کړي وي هغسې یې واپس کول ممکن نه دی

نو قيمت واپس كول يې واجب دي بيا دامام ابويوسف رحمه الله په نزد د قبضې د ورځې قيمت به واپس كوي او دامام محمد رحمه الله په نزد چې په كومه ورځ يې رواج ختم شوى دى دهغې ورځې قيمت به اداكوي.

**فائده**: دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دى لما في الدّر المختار: واوجب محمد قيمتها يوم الكساد وعليه الفتوى بزازية وفي النهر وتاخير صاحب الهداية دليلهما ظاهر في اختيار قولهما ، قال ابن عابدين الشامي رحمه الله: وفي الفتح وقولهما انظر للمقرض من قوله لان في ردّ المثل اضرار به. (الدّر المختار مع الشامية: ۴/۲۷۰)

(۲۶) وَلو اشترى شيئاً بنصف درهم فلوس صَحّ (۲۷) وَلو اعطى صيرفيّاً درهماً فقال اعطني به نصف درهم فلوساً ونصفاً الاحبة صَحّ.

**ترجمه**: او كه يې واخيست يو شى په نصف درهم پيسو سره نو صحيح دى او كه يې وركړل صراف ته يو درهم او ورته وې ويل چې ماته راكړه ددې په بدله كې دنصف درهم پيسې او نيم درهم په حبّه كم نو صحيح دى.

**تشريح**: (۲۶) كه چا يو شئ دنيم درهم پيسو په عوض واخيست يعني ددومره پيسو په عوض يې واخيست څومره پيسې چې دنيم درهم په عوض خرڅيږي نو دفلوس دعدد بيانولو بغير دا بيع جائزه ده ولې دخلكو ترمنځ دا متعين دى چې دنيم درهم په عوض څومره پيسې خرڅيږي نو دفلوس دمقدار معلومولو په وجه دفلوس دعدد بيانولو ضرورت نشته.

**فائده**: دامام زفر رحمه الله په نزد دا بيع جائزه نه ده ولې مشتري مبيعه دفلوس په عوض اخيستى ده او فلوس له معدوداتو څخه دى او نيم درهم له موزوناتو څخه دى نو دنصف درهم ذكر دفلوس دعدد دبيانولو لپاره كفايت نه كوي نو دثمن دمجهول كيدو په وجه دا بيع جائزه نه ده امام زفر رحمه الله ته جواب وركړاى شوى دى چې دنصف درهم په عوض خرڅيدونكي فلوس معلوم دى مورِ مسئله هم په همدې صورت كې فرض كړې ده چې خلكوته دا معلومه ده چې دنصف درهم په عوض څومره فلوس خرڅيږي نو ثمن مجهول نه دې ځكه نو دا بيع صحيح ده.

(۲۷) كه چا صرّاف ته يو درهم وركړو ورته وې ويل چې ماته ددغه درهم په عوض كې نصف درهم فلوس او په حبّه (ددوو اوربشو برابر يو وزن دى) كم نصف درهم راكړه نو دا پوره بيع جائزه ده ولې په دغه صورت كې مشتري ديوه درهم په مقابل كې دنصف درهم قيمت فلوس او حبه كم نصف درهم ذكر كړې دى نو د حبه كم نصف درهم عوض حبّه كم نصف درهم كيږي چې هيڅ مانع نشته پكې ولې عوضين په مقدار كې سره برابر دي او دنصف درهم يوه حبّه عوض فلوس كيږي او د درهمونو او فلوس ترمنځ ځرنګه چې اختلاف جنس دى ځكه نو په هغو كې كمبوت اوزيادت جائز دى.

## كتاب الكفالة

داكتاب دضامن كيدو په بيان كې دى

كفاله په لغت كې ضم يعني يو ځاى كيدو ته وايي قال تعالى (وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا اى ضمها الى نفسه) او په شرع كې ضَمّ ذِمَّة الى ذِمَّة في المطالبة (يعني يوه ذمه له بلې سره يوځاى كول په مطالبه كې چې مطالبه بيا له كفيل او مكفول عنه دواړو څخه كيدلاى شي) او ذِمّه يو داسې وصفِ شرعي دى چې دهغه په وجه دصاحب وصف لپاره ماله

او ما عليه اهليت ثابتيږي وفسرها فخر الاسلام بالنفس والرقبة التي لها عهد والمراد انها العهد في ذمته اي في نفسه باعتبار عهدها من باب اطلاق الحال وارادة المحل.

مصنف رحمه الله كتاب الكفاله له كتاب بيوع وروسته ځكه ذكركړي دى چې دكفاله اوضمانت ضرورت عموماً له بيوع وروسته پيښيږي ولي كله بائع له مشتري څخه مطمئن نه وي نو دضامن ضرورت پيدا كيږي چې هغه دمشتري له طرفه دثمن ضامن شي اوكله مشتري له بائع څخه مطمئن نه وي نو دضامن ضرورت وي چې څوك دبائع له جانبه دمبيعى كفيل شي.

دمقروض له خواچې څوك ضامن شوى وي هغه ته مكفول عنه او اصيل وايي او ددائن (قرض غوښتونكي) له خواچې څوك ضامن شوى وي هغه ته مكفول له وايي .ضامن او ملتزم ته كفيل او نفس يادين ته مكفول او مكفول به وايي.

(۱) هي ضم ذمة الى ذمة في المطالبة (۲) وتصح بالنفس وان تعددت (۳) بكفلت بنفسه وبما عبر عن البدن وبجزء شائع (۴) وبضمنته وبعلي والي وانا زعيم به وقبيل به (۵) لا بانا ضامن لمعرفته.

**ترجمه**: هغه يوځاى كول دذمي دى له ذمه سره په مطالبه كې او صحيح دى كفالت دنفس كه څه هم متعدد وي (او كفالت منعقد كيږي) په دي ويلو سره چې زه دده دذات كفيل شوم يا يوه داسي عضو دبدن ذكر كړي چې په هغى سره دټول بدن تعبير كيږي يا جزء شائع ذكر كړي او په دي ويلو سره هم چې ووايي :زه دده ضامن شوى يم يادى زما پر ذمه دى يا زما پر غاړه دى يا زه دده ذمه واريم يا زه دده كفيل يم نه په دي ويلو سره چې زه دده دپيژندلو ضامن يم.

**تشريح** :(۱) مصنف رحمه الله دكفاله شرعي تعريف داسي كړى دى چې په حق دمطالبه كې يوه ذمه له بلي سره يوځاى كول ته كفالت وايي مثلاً پر زيد باندي دڅلور سوه روپۍ قرض وي بكر قرض غوښتونكي ته وويل چې دالس روپۍ زه در كوم نو بكر د زيد له ذمي سره خپله ذمه يوځاى كړه چې پخوا به قرض غوښتونكي يواځې له زيد څخه مطالبه كولاى شواى اوس له بكر څخه هم مطالبه كولاى شي.

كفاله (ضمانت) پر دوه قسمه دى :۱- نمبر: كفاله بالنفس (دذات ضامن كيدل) ۲- نمبر كفاله بالمال (دمال ضامن كيدل) دادواړه قسمه جائزه ده لاطلاق قوله عليه السلام: الزعيم غارم (يعني كفيل ضامن دى) او له مطلق ارشاد څخه داثابتيږي چې كفاله په خپلو دوو قسمونو سره جائزه ده.

(۲) كفاله بالنفس جائزه ده كه څه هم ديوه سړي ذير ضامنان وي دامطلب په هغه صورت كې دى چې دتعددت ضمير كفاله ته راجع وي او داهم جائزدى چې ضمير دنفس طرفته راجع شي او مطلب يې داوي چې كفاله جائزده كه څه هم يو سړى دڅو كسانو كفيل وي.

**فائده** :داما شافعي رحمه الله يو قول دادى چې كفاله بالنفس صحيح نه ده ولي په كفاله بالنفس كې كفيل ديو داسي شي التزام كوي چې دهغه پر سپارلو دى قادر نه دى ولي كفيل خو پر نفس مكفول به باندي ولايت او قدرت حاصل نه دى .احناف جواب وركوي چې دنبى كريم ﷺ حديث مبارك : الزعيم غارم (يعني كفيل ضامن دى) مطلق دى چې ور څخه ثابتيږي ده چې كفاله په خپلو دواړو قسمونو سره مشروع ده .همدارنګه

دمكفول به دسپارلو كفيل ته دا ډول قدرت حاصل دى چې دقاضي دپوليسو په مرسته مكفول خپله دقاضي په مجلس كې حاضرولاى شي.

(۳) قوله بكفلت بنفسه اى تصح الكفالة بقول الكفيل كفلت بنفسه ،يعنې كفاله بالنفس په كوموالفاظو سره منعقده كيږى؟ نوپه دي باره كې ضابطه داده چې په كوموالفاظو سره دانسان دټول بدن تعبير كيږى كه حقيقة وي لكه لفظ دنفس،جسد ،روح ياعرفًاوي لكه لفظ درقبه،وجه،رأس وغيره(مثلا چاوويل چې زه دفلاني دځان كفيل يم،يادهغه دغاړې ،ياروح،ياجسم ياسرياد هغه دبدن كفيل يم)نوپه دغو الفاظو سره كفاله منعقده كيږى همدارنګه كه كفاله دجزء شائع (يعنې دجزء غيرمعين)طرفته منسوبه كړي مثلا وواېي :زه دفلاني دنصف ياثلث كفيل يم نوهم كفاله منعقده كيږى ولى يونفس دكفاله په حق كې متجزي كيداى نه شي نو دجزء شائع ذكركول داسي دى لكه دټول بدن ذكر كول.

(۴) قوله وبضمنته اى وتصح بقوله ضمنته ،يعنې كه كفيل وويل چې ضمنته (زه دهغه ضامن شوى يم)نوهم كفاله منعقده كيږى ولى دكفاله دموجب صراحت وشويعنې په كفاله سره ضمانت واجبيږى اوقاعده ده چې عقدموجب په تصريح سره منعقد كيږى همدارنګه كه يې وويل :هوعلىّ ياالىّ نوهم كفاله منعقده كيږى ولى لفظ دعلىّ دالتزام صيغه ده اوپه كفاله كې هم دمطالبى التزام وى ځكه نوپه لفظ دعلىّ سره منعقده كيږى اولفظ دالىّ په دغه موقع كې دعلىّ په معنى ده نودالى په لفظ سره هم منعقده كيږى همدارنګه كه يې وويل :اَنَابِه زَعِيم .زه دهغه ذمه واريم يااَنَاقَبِيلٌ بِه زه دهغه كفيل يم نوكفاله منعقده كيږى ولى زعيم اوقبيل هم دكفيل په معنى دي.

(۵) قوله لابانا ضامن الخ اى لاتصح الكفالة بالنفس بقوله اناضامن لمعرفة فلان ،يعنې كه چاوويل :اناضامن لمعرفة فلان،زه دفلاني دپيژندلو ضامن يم نوپه دغو الفاظو سره كفاله بالنفس نه منعقده كيږى ولى هغه په خپله دي خبره سره دمعرفت التزام كړى دى نه دمطالبى يعنې هغه داالتزام نه دى كړى چې مكفوله له ماڅخه دمكفول به دحاضرولو مطالبه كولاى شي نوځكه په دغه قول سره كفاله نه منعقده كيږى.

(٦) فان شرط تسليمه فى وقت بعينه احضره ليه ان طلبه فان احضره والاحبسه الحاكم (٧) فان غاب امهله مدة ذهابه وايابه فان مضت ولم يحضره حبسه (٨) وان غاب ولم يعلم مكانه لايطالب به (٩) فان سلمه بحيث يقدر المكفول له ان يخاصمه كمصر برئ (١٠) ولو شرط تسليمه فى مجلس القاضى يسلمه ثمه.

**ترجمه** :كه يې شرط كړ دمكفول عنه دتسليمولو معين وخت نوحاضردي كړي په هغه وخت كې كه مكفول له دهغه مطالبه وكړه بياكه يې هغه حاضر كړ خو فبهاكه نه قيد دي كړي حاكم ضامن لره اوكه هغه غائب شونوضامن ته دي مهلت دتګ راتګ تروخته وركړل شي بياكه هغه موده تيره شوه اوضامن هغه حاضر نه كړنوضامن دي قيد كړي اوكه هغه غائب شواودهغه ځاى معلوم نه وونوبيا دهغه مطالبه له ضامن څخه نه كيږى اوكه ضامن هغه حاضر كړپه داسي ځاى كې چې هلته دمكفول له قدرت ووچې له هغه سره خصومت وكړي لكه په ښاركې نوضامن بري كيږي اوكه يې شرط كړ دهغه تسليمول په مجلس كې دقاضي نوهلته دي ورتسليم كړي.

١١

**تشريح** :(۶)که په کفاله بالنفس کې مکفول له په يوه معلوم وخت کې دمکفول عنه دسپارلو شرط ولګاوه نوبيا کفيل باندي په هغه معلوم وخت کې دمکفول عنه سپارل لازميږي چې کله مکفول له له کفيل څخه دهغه مطالبه په هغه وخت کې وکړي ولی دعقدکفاله په وخت کې کفيل په معلوم وخت کې دمکفول عنه دحاضريدو شرط قبول کړی وو نو اوس دهغه شرط پوره کيدل پرده لازميږي بياکه کفيل په معلوم وخت کې مکفول عنه مکفول له ته وروسپاره خو ډيره ښه، اوکفيل بري کيږي ځکه هغه خپله ذمه واري پوره کړه اوکه کفيل مکفول عنه نه شوحاضرولای نوحاکم دي کفيل قيدکړي ولی هغه دداسي حق له اداکولو څخه پاتی راغلی چې پرده باندي واجب دی يعني دمکفول عنه په معلوم وخت کې سپارل، اوشرعًاحبس اوقيدداسي خلکولره دی چې دواجب حق له اداکولو څخه پاتی راشي ولی داسي خلک په شريعت کې ظالم شمارل کيږي .

(۷)اوکه مکفول عنه چيرته غائب شونوحاکم دي مکفول عنه ته ترورتللواوراتللومهلت ورکړي ولی مذکورکفيل دمقروض مفلس په شان عاجزدی نولکه څرنګه چې مفلس مقروض ته مهلت ورکول کيږي همدارنګه به ده ته هم مهلت ورکول کيږي بياچې ترڅومره پوري حاکم هغه ته مهلت ورکړی دی که چيرته په دغه موده کې ضامن ونه شوکولای چې مکفول عنه حاضرکړي نوبيادي حاکم ضامن قيد کړي ولی اوس هغه ديوداسي حق اداکولونه پاتی راغلی دی چې دهغه پرذمه واجب دی .

(۸)اوکه مکفول عنه داسي غائب شوی ووچې دهغه ځای اودرک معلوم نه ووکه مکفول له خپله ددي خبري تصديق وکړي چې واقعاهم دمکفول عنه ځای نه دی معلوم ياضامن په ګواهانوسره داثابته کړي نوپه دغه صورت کې له ضامن څخه بالاجماع فی الحال هيڅ مطالبه نه کوله کيږي ترڅوچې دمکفول عنه ځای نه وي معلوم شوی ولی په دغه صورت کې کفيل اومکفول له دواړه فی الحال دمکفول عنه له سپارلو څخه پرعاجزکيدوباندی متفق دي .

(۹)که کفيل مکفول عنه راووست په داسي ځای کې يې مکفول له ته حواله کړ چيرته چې مکفول له له هغه سره پرمخاصمه اومحاکمه باندي قادروو مثلا دښارپه منځ کې ورته حواله کړنو کفيل له کفالت څخه بري کيږي که مکفول له داقبلوي اوکه يې نه قبلوي ولی کفيل يوځل حاضرول پرخپل ځان لازم کړی وو ،هغه دغه ذمه واري پوره کړه بياکه کفيل دمکفول له له مطالبي وروسته مکفول عنه هغه ته حواله کړنو بياکفيل بري کيږي که څه هم هغه داونه وايي چې زه په حکم دکفاله مکفول عنه تاته حواله کوم اوکه کفيل دمکفول له له مطالبی بغيرمکفول عنه هغه ته وسپاره نوبيانه بري کيږي ترڅوچې هغه داونه وايي چې زه په حکم دکفاله مکفول عنه تاته درسپارم .

(۱۰)اوکه يې داشرط کړچې کفيل به دقاضي په محکمه کې مکفول عنه ومکفول له ته سپاري نودشرط مطابق يې په هغه محکمه کې سپارل لازم دی ولی خپله کفيل ددي التزام کړی دی چې دقاضی په محکمه کې به مکفول عنه ومکفول له ته ورسپاري نو اوس دهغه شرط پوره کول ضروري دی .

**فائده** :که کفيل مکفول عنه په بازارکې ومکفول له ته حواله کړنو کفيل بري کيږي ولی په بازارکې خلک دمکفول له سره مرسته کوي چې مکفول عنه دقاضي مجلس ته حاضرکړي نوځکه کفيل بري کيږي،مګردامام

زفر رحمه الله په نزدنه بري کیږي ولی نن سباخلک دمکفول له پرځای دمکفول عنه معاونت کوي اودهغه دخلاصولوکوشش کوي ځکه نوترڅوچې مکفول عنه دقاضي مجلس ته حاضراوونه سپاري کفیل نه بري کیږي لمافی الدرالمختار (ولوشرط تسلیمه فی مجلس القاضی سلمه فیه ولم یجز) تسلیمه (فی غیره) به یفتی فی زماننالتهاون الناس فی اعانة الحق. قال ابن عابدین رحمه الله (قوله به یفتی) وهو قول زفر رحمه الله وهذا احدی المسائل التی یفتی فیهابقول زفر (الدرالمختار مع الشامیة: ۲۹۶/۴)

**فائده**: که کفیل مکفول عنه په یوه ځنګل یایوه کلي کې حواله کړنوکفیل نه بري کیږي ولی مکفول له په ځنګل اوکلي کې پرمخاصمت باندي قادرنه دی ځکه په ځنګل اوکلي کې هیڅ یوحاکم یاقاضي نه وي نودمقصود دنه حاصلیدوپه وجه کفیل نه بري کیږي لمافی الدرالمختار: (و) یبرأ (بدفعه الی من کفل له حیث) ای فی موضع (یمکن مخاصمة) قال ابن عابدین رحمه الله: واحترز به عمالوسلمه فی بریة اوسواد (الدرالمختار مع الشامیة: ۲۸۶/۴)

(۱۱) وَتَبطُلُ بِمَوتِ المَطلُوبِ (۱۲) وَالكَفِيلِ لا الطَّالِبِ (۱۳) وَبَرِئَ بِدَفعِهِ إِلَيهِ وَإِن لَم يَقُل إِذَا دَفَعتُهُ إِلَيكَ فَأَنَا بَرِيءٌ (۱۴) وَبِتَسلِيمِ المَطلُوبِ نَفسَهُ مِن كَفَالَتِهِ (۱۵) وَبِتَسلِيمِ وَكِيلِ الكَفِيلِ وَرَسُولِهِ.

**ترجمه**: او کفالت باطلیږي دمطلوب او کفیل په مړینه سره نه دطالب په مرګ سره او بري کیږي دهغه په حواله کولوسره ومکفول له ته که څه هم دانه ورته ووایي چې کله زه مکفول عنه تاته حواله کړم نوزه بري کیږم، او خپله دمکفول عنه دحاضریدلو دهغه له کفالت څخه اودکفیل دوکیل اودهغه دقاصدپه تسلیمولوسره.

**تشریح**: (۱۱) که چیرته مکفول عنه مړشونوکفالت باطلیږي ولی په دي وخت کې کفیل دهغه له حاضرولوڅخه عاجزشو اودکفیل دعجزپه صورت کې کفاله ساقطیږي، همدارنګه دمکفول عنه دمرګ په صورت کې خپل دمکفول عنه حاضریدل ساقطیږي نودکفیل څخه په طریقه اولی سره حاضرول دهغه ساقطیږي.

(۱۲) قوله والکفیل ای وتبطل الکفالة بموت الکفیل ایضا، یعني که کفیل مړشونوکفالت باطلیږي ولی خپله کفیل دهغه دحاضریدوڅخه عاجزشواوورثه دهغه قائم مقام نه شي کیدای اودکفیل مال هم داکارنه شي کولای ولی مال دهغه واجب (یعني دمکفول عنه حاضریدل) داداکولونه اصالةً صلاحیت لري اونه نیابةً، اصالةً خوییځکه نه لري چې کفیل دمال التزام نه دی کړی بلکې دمکفول عنه دحاضرولوالتزام یې کړی وو، اونیابةً ځکه چې مال دنفس قائم مقام نه وي، اوکه طالب یعني مکفول له مړشونوکفاله نه باطلیږي ولی دمطالبه په حق کې دهغه وصي دهغه قائم مقام دی که وصي نه وونودهغه ورثه دهغه قائم مقام کیږي.

(۱۳) اوکه کفیل مکفول عنه ومکفول له ته وروسپاره نوکفیل له کفالت څخه بري کیږي که څه هم هغه دضامن کیدوپه وخت کې دانه یې ورته ویلي چې کله زه تاته مکفول عنه درتسلیم کړم نوزه به بري کیږم، ولی په کفاله بالنفس کې دتسیلمولواوسپارلوموجب همدادی چې کله کفیل مکفول عنه وسپاري نودی له کفاله څخه بري کیږي که څه هم دی په موجب تصریح ونکړي اودلته څرنګه چې کفیل مکفول عنه سپارلی دی نوځکه دکفیل بري کیدل هم ثابتیږي.

(۱۴) قوله وبتسليم المطلوب نفسه من كفالته اى وبرئ الكفيل من الكفالة بتسليم المطلوب نفسه من كفالته. يعني كه چيرته مكفول عنه خپله حاضرشي بياهم كفيل له ضمانت څخه بري كيږي ولى له مكفول به سره خپله دخصومت مطالبه ده نودهغه دخصومت ددفع كولوولايت هم حاصل دى بياچې كله هغه خپل ځان وسپاره نودكفيل دطرف څخه خصومت ليري شواوسپارنه صحيح شوه، مگرشرط دادى چې مكفول عنه ددي خبرې تصريح وكړي چې زه خپل ځان دكفيل لهٔطرفه سپارم ولى پرمكفول عنه باندي ځان سپارل په دوه جهته واجب دى له خپله طرفه اودكفيل له طرفه نوترڅوچې هغه ددي تصريح ونه كړي چې زه خپل ځان دكفيل له طرفه سپارم ترهغه پوري داسپارل دكفيل له طرفه نه شمارل كيږي اوكفيل نه بري كيږي.

(۱۵) قوله وبتسليم وكيل الكفيل ورسوله اى وبرئ الكفيل من الكفالة بتسليم وكيل الكفيل المكفول عنه الى المكفول له. يعني كه دكفيل وكيل يادهغه قاصددهغه له طرفه مكفول عنه حاضركړنوبياهم كفيل بري كيږي ولى دكفيل وكيل اوقاصددهغه قائم مقام دى نوځكه دهغوئ سپارل دكفيل سپارل شمارل كيږي.

(۱۶) فَإِنْ قَالَ إِنْ لَمْ يُوَافِ بِهِ غَدًا فَهُوَ ضَامِنٌ بِمَا عَلَيْهِ فَلَمْ يُوَافِ بِهِ أَوْ مَاتَ الْمَطْلُوبُ ضَمِنَ الْمَالَ (۱۷) وَمَنِ ادَّعَى عَلَى آخَرَ مِائَةَ دِينَارٍ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ إِنْ لَمْ يُوَافِ بِهِ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ فَلَمْ يُوَافِ بِهِ غَدًا فَعَلَيْهِ الْمِائَةُ (۱۸) وَلَا يُجْبَرُ عَلَى الْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ فِي حَدٍّ وَقَوَدٍ (۱۹) وَلَا يُحْبَسُ فِيهِمَا حَتَّى يَشْهَدَ شَاهِدَانِ أَوْ عَدْلٌ.

**ترجمه**: كه كفيل وويل چې كه ماسباته هغه حاضرنه كړاى شونوزه دهغه څه ضامن يم چې دده پرذمه دي بيايې هغه حاضرنه كړاويامطلوب (مكفول عنه) مړشونودمال ضامن گرزي اوكه چادعوه وكړه پربل باندي دسلودينارونوبل سړي هغه ته وويل چې كه چيرته مادى سباحاضرنه كړاى شونودغه سل روپۍ پرمادي، بيايې هغه حاضرنه كړسباورځ نودغه سل روپۍ پرده كيږي اونه مجبوركيږي پركفالت بالنفس په حداوقصاص كې اونه قيدكيږي په دغودووكې ترهغه چې دوه گواهان گواهي وركړي يايوعادل سړى گواهي وركړي.

**تشريح**: (۱۶) كه يوڅوک دبل چادنفس وكيل شوپې ويل كه چيرته سبامامكفول به حاضرنه كړاى شونوپر مكفول به چې څه واجب دي (يعني زرروپۍ) نوزه دهغه ضامن يم، اتفاقاداسي وشول چې كفيل سباورځ مكفول به حاضرنه كړاى شويامكفول عنه مړشونوكفيل ومكفول له ته ديوزرروپۍ ضامن گرځي ولى دمال دضامن كيدوشرط دمكفول به نه حاضرول دى څرنگه چې داشرط پرځاى شوى دى ځكه نوپركفيل باندي مال واجبيږي.

**فائده**: مگربياهم له كفاله بالنفس څخه نه بري كيږي ولى هغه له كفاله بالنفس سره كفاله بالمال هم ضم كړي ده اوددي دواړوترمنځ هيڅ منافات نشته ځكه له دواړوڅخه مقصددمكفول له اعتمادوي نوكه كفيل يوكارپوره كړهغه بل خودده پرذمه پاتى دى، دامام شافعي رحمه الله په نزدپه مذكورصورت كې نه كفاله بالنفس صحيح ده اونه كفاله بالمال، دكفاله بالنفس په باره كې خودهغه مسلک مخكې بيان شوى دى چې دهغه په نزدكفاله بالنفس جائزنه ده پاتي شوه كفاله بالمال په مذكورصورت كې دهغه په نزدځكه صحيح نه ده چې په دي كې دمال دوجوب سبب ترامرمتردد(چې كه يې مكفول عنه حاضركړنوكفيل بري دى ورنه دزروروپوضامن گرځي) پوري معلق شوى دى اوكفاله بالمال دبيع سره دمشابهت په وجه ترامرمترددپوري

معلق كول صحيح نه دی ،احناف جواب وركوي چې كفاله بالمال دبيع په شان له نذرسره هم مشابه ده له بيع سره مشابهت كه څه هم داتقاضالري چې په هيڅ يوه شرط پوري يې تعليق صحيح نه وي مګرد نذرمشابهت يې دصحت مقتضي دی.نوپه دواړوشبهوسره دعمل كولوپه خاطرموږوايوچې په شرط متعارف پوري معلق كول يې صحيح دی اوپه غيرمتعارف شرط پوري معلق كول يې صحيح نه دی اومذكورشرط متعارف دی غيرمتعارف نه دی .

(۱۷)كه چاپه بل سړي باندي دسلودينارونودعوه وكړه اومدعي ته كوم بل چاوويل چې ته اوس مدعى عليه پرېږده سبابه زه هغه راحاضركړم كه ماسباته هغه حاضرنه كړای شونوهغه ستاسل ديناره زماپرذمه دي،چې په دي كې مدعى عليه مدعي پرېښود بيا اتفاقاضامن سباورځ مدعى عليه حاضرنه كړنودشيخينورحمهماالله په نزددشرط مطابق سل ديناره دضامن پرذمه لازمېږي په داسی حال كې چې دامام محمد رحمه الله په نزدداكفاله صحيح نه ده ولی كفيل سل ديناره مطلق ذكركړي دي نوپه دي كې دااحتمال شته چې كفيل ابتداءً درشوت په ډول پرخپل ځان باندي دسل ديناره التزام په دي خاطركړی وي چې مكفول له مكفول به ته ترڅه وخته پوري مهلت وركړي اودرشوت په ډول پرخپل ځان دمال لازمول صحيح نه دی ځكه نوپركفيل باندي دامال لازمول صحيح نه دی چې كله پركفيل باندي دامال لازمول نه صحيح كيږي نوداكفاله بالمال هم نه صحيح كيږي ،دشيخينو رحمهماالله دليل دادی چې دكفيل په قول كې لفظ د(المائة) معروف باللام دی اوالف الام هم عهدخارجی دی چې دهغه مدخول معين وي نوله دغه (المائة) څخه مرادهغه سل ديناره دي چې پرمكفول به يعني مقروض باندي واجب دي اوداچې له المائة څخه مرادهغه سل ديناره دي چې پرمكفول به باندي واجب دي نوداسل ديناره له رشوت كيدوڅخه ووتل نوچې درشوت احتمال پاتی نه شونودغه سل ديناره دكفاله په وجه پركفيل باندي لازمېږی نوكفاله ځكه صحيح كيږي . والصحيح انماهوقولهماكذاصرح به في الدرالمنتقى في شرح الملتقى:۳/۱۷۹)

(۱۸)كه پريوچاباندي دحدياقصاص دعوه شوې وه نوكه له ده څخه مدعي دكفيل بالنفس مطالبه وكړه مګرهغه له كفيل وركولو څخه انكاروكړنودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددي هغه پركفيل وركولومجبوركړای شي ، دصاحبينورحمهماالله په نزدپه حدقذف اوقصاص كې ځرنګه چې داحق دبنده دی ځكه نوپه دي كې داستيثاق لپاره مدعي عليه پركفيل وركولوباندي مجبوركړای كيږي چې مدعى عليه چيرته غائب نه شي،باقي ددي علاوه په نوروحدودوكې مثلاًپه حدشراب ،حدسرقه اونوروكې ځرنګه چې دحق دبنده نه دي خالص دالله تعالى حق دی نوځكه په دغوحدودوكې مدعي عليه پركفيل وركولونه مجبور كيږي .دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل پيغمبر ﷺ ارشاددی چې :لاكفالة في حد(يعني په حدكې كفاله نشته) دپيغمبر ﷺ ارشادځرنګه چې مطلق دی چې پكي دحدودوترمنځ هيڅ فرق نه دی شوی نودټولوحدودوحكم بايديوډول وي خواه كه دبنده حق وي اوكه يواځې دالله تعالى حق وي .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لمافي القول الراجح :القول الراجح هوقول ابی حنيفة رحمه الله الأمن عادة صاحب الهداية ان يؤخرالقوی عندذكرالادلة علی الاقوال المختلفة ليقع المؤخربمنزلة الجواب عن المقدم وعادة صاحب الملتقى ان يقدم القوی كماذكرفي هذه المسئلة قول الامام قبل قول الصاحبين رحمهماالله .(القول الراجح:۲/۹۲)

(۱۹)اوپه دغودوومقدمو(یعنې حداوقصاص )کې مدعی علیه نه قیدکړل کیږي ترڅوچې دوه ګواهان مستورالحال یایوعادل ګواه دهغه پرجرم باندي ګواهي ورنکړي ولی په حدودوکې قیدکول یوائې دتهمت په وجه سره کیږي چې بنایې داشخص مفسددی دحددسبب ثابتولولپاره نه وي ولی دحددسبب ثابتول دحجت کامله محتاج دی ،اویوائې تهمت دشهادت له دووجزئینو (په شهادت کامله کې دوه جزئین وي یوعددیعنې دوه ګواهان موجوديدل اودوهم صفت دعدل یعنې دګواه عادل کیدل) څخه په یوه سره ثابتیږی که دوه ګواهان وي یایوعادل ګواه وي.

**فائده** :داموالوپه مقدمه کې یوڅوک ددوومستورالحال ګواهانوپه ګواهي سره یادیوه عادل په ګواهي سره نه قیدکړای کیږي ولی داموالوپه مقدمه کې حجت کامله پکاردی ،ددواړوقسمونوپه مقدماتوکې فرق دادی چې داموالوپه مقدمه کې انتهائي سزاقید دی اوپه حدودواوقصاص کې انتهائي سزاوژل ،دږي یالاس غوڅول دی،په حدودواونوروکې قیدانتهائي سزانه ده نوځکه دحجت کامله ضرورت نشته،باتی شوه داچې داموالوپه مقدمه قیدانتهائي سزاده نوځکه دهغه لپاره دحجت کامله موجوديدل ضروري دی په همدي وجه دمالونومقدمه ددوومستورالحال ګواهانوپه ګواهي سره یادیوه عادل په ګواهي سره نه ثابتیږي .(مجمع الانهر:۳/ ۱۸۰)

(۲۰)وَبِالْمَالِ وَلَوْ مَجْهُولًا إِنْ كَانَ دَيْنًا صَحِيحًا بِكَفَلْتُ عَنْهُ بِأَلْفٍ وَبِمَا لَكَ عَلَيْهِ وَبِمَا يُدْرِكُكَ فِي هَذَا الْبَيْعِ وَمَا بَايَعْتَ فُلَانًا فَعَلَيَّ وَمَا ذَابَ لَكَ عَلَيْهِ فَعَلَيَّ وَمَا غَصَبَكَ فُلَانٌ فَعَلَيَّ (۲۱)فَطَالَبَ الْكَفِيلَ أَوِ الْمَدْيُونَ إِلَّا إِذَا شَرَطَ الْبَرَاءَةَ فَحِينَئِذٍ تَكُونُ حَوَالَةً كَمَا أَنَّ الْحَوَالَةَ بِشَرْطِ أَنْ لَا يَبْرَأَ بِهَا الْمُحِيلُ كَفَالَةٌ (۲۲)وَلَوْ طَالَبَ أَحَدَهُمَا لَهُ أَنْ يُطَالِبَ الْآخَرَ.

**ترجمه** :اوصحیح دی دمال کفالت که څه هم مجهول وي په دي شرط چې دین صحیح وي (په دي وینا سره)چې زه دهغه له طرفه کفیل یم دزرورویو یادهغه چې ستاپرده لازم دي یادهغو چې تالره لاحق دي په دغه بیع کې یادهغو چې تاله فلان سره بیع کړي ده هغه پرمادي یاهغه چې ثابت شوتالره دده پرذمه هغه پرمادي یاهغه چې فلان په زوراخیستي له تانه هغه پرمادي ،نویادي له کفیل څخه طلب وکړي یاله مقروض څخه مګرکه یې برائت شرط کړپه دي وخت کې داکفاله په حواله بدلیږي لکه چې حواله په دي شرط سره چې په دي سره به محیل نه بري کیږي کفاله ګرځي اوکه یې له یوه څخه مطالبه وکړه نوده لره له بل څخه هم مطالبه جائزه ده.

**تشریح** :(۲۰)داعبارت معطوف دی دکتاب په شروع کې پربالنفس باندي ای وتصح الکفالة بالمال ، مصنف رحمه الله چې کله له کفاله بالنفس څخه فارغ شونواوس دکفاله دوهم قسم یعنې کفاله بالمال ذکرکول غواړي چې ویې فرمایل کفاله بالمال جائزده مکفول به مال که معلوم وي که مجهول ولی دکفاله بنیادپرتوسع دی چې پکي معمولی جهالت پروانه لري نوځکه دمعلوم اومجهول دواړوکفالت کولای شي په دي شرط چې جهالت متعارفه وي غیرمتعارف جهالت نه وي،مګرشرط دادی چې دین صحیح وي (له دین صحیح څخه

مراددادی چې مدیون به هغه نه شی ساقطولای مګرداچې ادایې کړي اویاقرض غوښتونکی هغه لره معاف کړي)

ددین دصحیح والي په قیدسره احترازراغی له مال کتابت څخه ولی مکاتب له مذکورودوو صورتونوڅخه علاوه هم مال کتابت ساقطولای شي مثلاځان به دبدل کتابت له اداکولوڅخه عاجزښکاره کړي بیرته به غلام وګرځي .

دمکفول به معلوم مثال دادی چې کفیل ووایې :تَکفلتُ عنهُ بِالف (مادمقروض له طرفه دزرورویو ضمانت وکړ) دمجهول مکفول به مثالونه ډیردي مثلاکفیل ووایې : تَکفلتُ عَنهُ بِمَالک عَلیه(یعنې څه حق چې ستاهغه پرذمه دی زه دهغه ضامن یم ) یاووایې :بِمَایُدرِکُکَ فی هَذَا البَیع (یعنې کفیل ومکفول عنه ته ووایې چې ته فلان شی واخله کوم څه چې ددې بیع په وجه ستاپرذمه راځي زه دهغه ضامن یم ) یاووایې :ماذَابَ(ثبت ) لک علیه فعلیّ (یعنې هغه څه چې ستاپرده ثابت شي زه دهغه ضامن یم ) یاماغصبک فلان فعلیّ (یعنې فلان چې څه له تاڅخه غصب کړي دي زه دهغه ضامن یم ) په دغوټولوصورتونوکې مال مجهول دی بیاهم کفاله صحیح ده لماقال .

(۲۱)قوله فطالب الکفیل اوالمدیون ای اذاصحت الکفالة فللمکفول له الخیاربین ان یطالب الکفیل اوالمدیون ،یعنې مکفول لەلره اختیاردی که غواړي له هغه چادي مطالبه وکړي پرچاچې اصل قرض دی اوکه غواړي له کفیل څخه دي مطالبه وکړي ولی کفاله یوه ذمه له بلې ذمې سره دیوځای کولونوم دی یعنې لکه څرنګه چې له اصل مقروض څخه دقرض مطالبه کوله کیږي همدارنګه له کفاله وروسته له کفیل څخه هم مطالبه کوله کیږي،البته که دضمانت په وخت کې داشرط کښیږدي چې مکفول عنه بري دی نورله هغه څخه مطالبه نه کوله کیږي نوداصحیح دی اوپه هغه صورت کې داضمانت حواله ګرځي لکه چې په حواله کې داشرط کړي چې له هغې څخه به محیل نه بري کیږي نوداحواله کفاله ګرځي اعتبارالمعانی یعنې چې کله داصیل بري کیدل شرط کړای شونو دادکفالت نوم دی اوپه اصل کې داحواله ده ولی په عقودوکې معاني وولره اعتباردی .

(۲۲)اوکه مکفول له په ضامن اوقرضدارکې له کوم یوه نه مطالبه وکړه نوبیاله هغه بل څخه هم مطالبه کول جائزه ده ولی کفاله یوه ذمه له بلې سره دیوځای کولونوم دی اوداهله کیدای شي چې له هریوه څخه دمطالبی اختیاروي ،همدارنګه دضم ذمة الی ذمة هم همداتقاضاده چې دین داصیل پرذمه پاتی وي نوځکه له کفیل څخه دکفاله په وجه مطالبه کول صحیح دی اوله اصیل څخه په دي چې قرض دهغه پرذمه تراوسه پاتی دی نومکفول ا ،چې له هریوڅخه وغواړي مطالبه کولای شي .

(۲۳)وَیَصِحّ تعلیقُ الکَفالةِ بِشرطٍ مُلائِمٍ کَشَرطِ وُجُوبِ الحقِ کَانِ استُحِقَ المَبِیعُ اَولِامکانِ الاستیفاءِ کَانِ قَدِمَ زَیدٌوَ هُو مکفولٌ عَنهُ اَولِتعَذُّرِه کَانِ غَابَ عَنِ المِصرِ (۲۴)وَلاَیَصِحّ بِنَحوِ اِن هَبّتِ الرِیحُ (۲۵)فَاِن جُعِلَ اَجَلاً تَصحّ الکَفالةُ وَیَجبُ المَالُ حَالاً .

**ترجمه** :اوصحیح دی معلق کول دکفاله په مناسب شرط سره مثلادوجوب حق شرط لکه که مبیعه دبل چامستحقه وګرځي یادامکان استیفاء شرط لکه که زیدراغی اوهغه مکفول عنه وویادحق دتعذرشرط لکه

كه چيرته هغه غائب شي له ښار څخه او كفاله صحيح نه ده په دي خبره سره چي كه چيرته هوا و چليده (نوزه ضامن يم) او كه يې داسي نامناسب ميعاد شرط كړ نو ضمانت صحيح دى او مال في الحال واجبيږي.

**تشريح:** (۲۳) يعني كفالت بالمال له كفالت سره په مناسب شرط پوري معلق كول جائز دى او مناسب شرطونه دري قسمه دي: يو دا چي د مكفول له پر مكفول عنه باندي د حق واجبولو لپاره شرط وي مثلا د بيع په صورت كي كفيل مشتري ته ووايي چي كه چيرته د دغى مبيعى كوم بل مستحق پيدا شو نوزه د هغه ضامن يم ،نو دا د كفاله مناسب شرط دى په دي شرط سره كفاله صحيح ده، دوهم دا دى چي داسي شرط وي چي له مكفول عنه څخه د حق د وصول كولو ذريعه وي مثلا داسي ووايي چي زيد چي مكفول عنه دى له سفر څخه راشي نوزه د هغه ضامن يم ،نو ظاهره ده چي د زيد راتلل د مكفول له د قرض اداكولو ذريعه ده نو دا هم مناسب شرط دى په دي سره كفاله صحيح ده دريم دا چي هغه داسي شرط وي چي له مكفول عنه څخه د حق وصولول ممكن وگرځوي مثلا كفيل و مكفول له ته ووايي چي اوس ته له مكفول عنه څخه د خپل دين مطالبه وكړه يا كه چيرته مكفول عنه له ښار څخه غائب شو نوزه ستا د مال كفيل يم، ظاهره ده چي د مكفول عنه د غائب كيدو په صورت كي د مكفول له د خپل حق وصول ناممكن كيږي ،دا دري واړه شرطونه څرنگه چي د كفالت مناسب دي نو ځكه په كفاله كي د دغو شرطونه اينودل صحيح دي.

(۲۴) او كه چيرته كفاله په داسي شرط پوري معلق كړاى شي چي هغه شرط له كفاله سره مناسب نه وي بلكي محض يو شرط وي نو دا تعليق جائز نه دى مثلا كفيل ووايي كه چيرته هوا و چليده نوزه ستا د هغه مال ضامن يم چي ستا فلاني پر ذمه دى نو دا صحيح نه دى ولي د هغه وجود په يقيني ډول معلوم نه دى نو دا شرط باطل دى او پر ضامن باندى مال لازم نه دى.

(۲۵) او كه ضامن د غير مناسب شرط د ضمانت لپاره موده مقرره كړي مثلا كفيل مكفول له ته داسي ووايي چي د مكفول عنه پر ذمه چي ستا څومره حق دى نوزه د هوا تر چليدو پوري د هغه ضامن يم نو په دغه صورت كي ضمانت صحيح دى موده باطله ده او مال في الحال لازم دى ځكه چي كله كفاله په شرط پوري معلق كول صحيح دى نو د طلاق او عتاق په شان په فاسد و شرطونو سره نه فاسديږي.

(۲۶) فَاِنْ كَفَلَ بِمَالِهِ عَلَيْهِ فَبَرْهَنَ عَلٰى اَلْفٍ لَزِمَهُ وَاِلَّا صُدِّقَ الْكَفِيْلُ فِيْمَا اَقَرَّ بِحَلْفِهِ (۲۷) وَلَا يَنْفُذُ قَوْلُ الْمَطْلُوْبِ عَلَى الْكَفِيْلِ (۲۸) وَتَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِاَمْرِ الْمَكْفُوْلِ عَنْهُ وَبِغَيْرِ اَمْرِهِ (۲۹) فَاِنْ كَفَلَ بِاَمْرِهِ رَجَعَ بِمَا اَدّٰى عَلَيْهِ وَاِنْ كَفَلَ بِغَيْرِ اَمْرِهِ لَمْ يَرْجِعْ (۳۰) وَلَا يُطَالِبُ الْاَصِيْلَ بِالْمَالِ قَبْلَ اَنْ يُؤَدِّيَ عَنْهُ.

**توجمه** :او كه كفيل جوړ شو د هغه چي دده پر مدعى عليه باندي دي بيا مدعى گواهان پيش كړل پر زرو روپو نو پر ده باندي زر لازميږي كه نه د كفيل تصديق كيږي په هغو كي چي ده اقرار كړى دى د هغه د قسم سره ،او نه نافذ كيږي قول د مطلوب پر كفيل باندي او صحيح دى كفالت د مكفول عنه په حكم سره او د هغه د حكم بغير يا كه د هغه په حكم سره كفيل شو نو رجوع دي وكړي د هغه په باره كي كوم چي هغه اداكړي دي او كه كفيل جوړ شو د هغه د حكم بغير نو رجوع دي نه كوي او مطالبه دي نه كوي له اصيل څخه مخكي تر دي چي د هغه له طرفه يې اداكړي.

**تشريح** :(۲۶)که چامکفول له ته وويل چې کوم مال چې ستادده پرذمه دی دهغه زه ضامن يم حال داچې مکفول به مجهول دی بياپه گواهانوسره داثابته شوه چې پرمکفول عنه باندي دمکفول له زردرهمونه دي نوکفيل دزرودرهمونوضامن گرځي ولی که کفيل هغه څه ليدلي وای چې دمکفول عنه پرذمه لازم دي يا هغه کفيل شوی وای نو کوم څه چې دمکفول عنه پرذمه لازم دي پرکفيل باندي هغه لازميدل نوپه گواهانوسره چې څه ثابت شوي دي هغه هم داسی دي لکه يوشی چې په مشاهده سره ثابت وي نوځکه کفيل دزرودرهمونوضامن کيږي ،اوکه گواهان نه وواودطرفينوترمنځ اختلاف راغی (مثلامکفول له ددووزروقرضی دعوه کوي اوکفيل ديوه زراقرارکوي) نوپه دي صورت کې دي دکفيل تصديق وکړای شي يعنې دکفيل قول سره قسم اخستلومعتبريږي ولی کفيل له زيادت څخه منکردی اودگواهانودنه موجوديت په صورت کې دمنکرقول سره له قسم اخستلومعتبردی .

(۲۷)اوکه مکفول عنه دکفيل تراعتراف په زيات مقداراعتراف وکړ(مثلاکفيل دپنځه سوودرهمونو قرضی اقرارکوي اومکفول عنه دزرودرهمونو) نوپرکفيل باندي دمکفول عنه قول نه تنفيذيږي يعنې دکفيل په مقابل کې دمکفول عنه دقول تصديق نه کيږي ولی دادمکفول عنه له طرفه پرکفيل باندي اقراردی اوکفيل له مکفول عنه غيردی چې پرهغه باندی مکفول عنه هيڅ ولايت نه لري نوځکه پرهغه باندي دمکفول عنه اقرارهم نه مقبول کيږي .

(۲۸)کفاله دمکفول عنه په حکم سره هم جائزه ده مثلامکفول عنه کفيل ته وويل چې زماله طرفه کفيل جوړشه! اودمکفول عنه دحکم بغيرديو چاپخپله دمکفول عنه له طرفه کفيل گرځيدل هم جائزدی،ولی کفاله نوم دی پرخپل ځان هغه مطالبه لازمول کومه چې پرمکفول عنه باندي لازمه ده اودخپل ځان په حق کې دجائزتصرف کولو هرڅوک اختيارلري په دي شرط چې په دي تصرف سره غيرته ضررونه رسيږي،اوظاهره ده چې ديوچادخپل ځان کفيل جوړولوسره مکفول له يامکفول عنه ته هيڅ ضررنه رسيږي مکفول له ته ضررنه رسيدل خوظاهره ده مکفول عنه ته ځکه ضررنه دی چې کفيل که چيرته دمکفول عنه دحکم بغيردهغه قرضه کوي نوکفيل ته په دي باره کې له مکفول عنه څخه درجوع حق هم نشته نوپه همدغه صورت کې دمکفول عنه ضررنه کيدل خوظاهردی اوکه دمکفول عنه په حکم سره کفيل دهغه قرض اداکړنوکفيل لره بې شکه په دي باره کې له مکفول عنه څخه درجوع حق شته مگرڅرنگه چې داکاردمکفول عنه په رضامندي سره شوی دی نودادمکفول عنه په حق کې ضررنه شمارل کيږي ځکه نودمکفول عنه دحکم بغيردمکفول عنه کفيل گرزيدل جائزدی .

(۲۹)ياکه کفيل دمکفول عنه په حکم سره کفالت وکړنوکفيل چې څه دمکفول عنه له طرفه اداکوي دی له مکفول عنه څخه هغه واپس اخيستلای شی ولی کفيل دمکفول عنه په حکم سره دهغه قرض اداکړ،اوکه کفيل دمکفول عنه دحکم بغيرکفالت وکړنوچې څه اداکوي هغه له ده څخه واپس نه شي اخيستلای ولی کفيل پرمکفول عنه باندي متبرع اواحسان کوونکی دی اومتبرع متبرع عليه ته درجوع حق نه لري .

(۳۰)کفيل چې ترکومه پوري دمکفول عنه قرض ادانکړي ترهغه وخته پوري له مکفول عنه څخه دمال مطالبه نه شي کولای ولی کفيل چې ترڅود مکفول عنه قرض اداکوي نودی دمکفول له قائم مقام بلل کيږی دقرضی مالک ګرځي ځکه نوهغه ددي حق لري چې مکفول عنه ته رجوع وکړي خوترادائيګی مخکې کفيل څرنګه چې نه دمکفول له قائم مقام دی اونه قرضی مالک ګرزي نوځکه ده لره مکفول عنه ته درجوع حق هم حاصل نه دی.

(۳۱)فَإِنْ لُوزِمَ لَازَمَه (۳۲)وَبَرِئَ بِأَدَاءِ الأَصِيلِ (۳۳)وَلَوْأَبْرَئ الأَصِيل أوأخر عنه برئ الكَفِيل وَتَأخرعنه (۳۴)وَلَاينعكس (۳۵)وَلَو صَالَحَ أَحَدُهُمَارَبَّ المَالِ عَنْ أَلْفٍ عَلَى نِصْفِهِ بَرِئَا(۳۶)وَإِنْ قَالَ الطَّالِبُ لِلْكَفِيلِ بَرِئْتَ إِلَيَّ مِنَ المَالِ رَجَعَ عَلَى المَطْلُوبِ (۳۷)وَفِي بَرِئْتَ أو أبرأتك لا.

**ترجمه**:پس که دده تنګيدل کيده نودی دي هم هغه تنګ کړي اوبري کيږي داصيل په اداء سره اوکه يې بري کړاصيل يايې مؤخرکړله هغه څخه نوبري کيږي کفيل اومؤخرکيږي له هغه څخه ،ددي عکس نه کيږي اوکه صلح وکړه يوه له رب المال سره دزروکسانوله طرفه دهغه پرنصف باندي نودواړه بري کيږي اوکه وويل طالب کفيل ته ،ته بري يې ترماپوري له مال څخه نودی دي رجوع وکړي پرمطلوب باندي اوپه برئت يا ابرائتک ويلوکې نشته.

**تشريح**:(۳۱)که چيرته مکفول له دمال دوصولولو لپاره کفيل تنګ کړنوکفيل که چيرته دمکفول عنه په حکم سره کفيل جوړشوی وو بيا کفيل لره اختيارشته چې دی مکفول عنه تنګ کړي ترهغه چې مکفول عنه قرض اداکړي کفيل خلاص کړي ولی کفيل خود مکفول عنه په وجه پريشان دی نوکفيل له مکفوعنه سره هغه معامله کوي چې
مکفول له يې له کفيل سره کوي.

(۳۲)اوکه مکفول عنه مال اداکړنوکفيل بري کيږي ولی دمال په اداکولوسره خپله مکفول عنه بري کيږی اودمکفول عنه بري کيدل دکفيل بري کيدل واجبوي ځکه پخپله پرکفيل خوقرض نه دی باندي دين پرمکفول عنه باندي دی البته دمکفول عنه ددين په وجه ده پرخپل ځان مطالبه لازمه کړي وه نوچې دمکفول عنه دين پاتی نه شوچې دلزوم مطالبه على الكفيل لپاره علت وونودکفيل ذمه واري هم ختمه شوه.

(۳۳)اوکه چيرته مکفول له مکفول عنه بري کړنوکفيل هم بري کيږي ولی دمکفول عنه بري کيدل دکفيل بري کيدل واجبوي ځکه دمکفول عنه مطالبه کول دمکفول عنه ددين تابع ده که دين وي نومطالبه به وي اوکه دين ساقط شونومطالبه هم ساقطيږي همدارنګه که مکفول له ومکفول عنه ته دڅه وخت لپاره مهلت ورکړنوکفيل ته هم مهلت دی يعني له مکفول عنه څخه ددين په ځنډلوکې له کفيل څخه هم مطالبه ځنډيږي ولی ځنډول تريو وخت پوري مطالبه ساقطوي نوداموقت ابراء ده داپرمؤبده ابراء باندي قياسيږی نوڅرنګه چې دمکفول عنه په هميشه بري کيدوسره کفيل هم دهميشه لپاره بري کيږي همدارنګه دمکفول عنه په مؤقت بري کيدوسره کفيل مؤقت بري کيږي.

(۳۴)او که ددي برعکس شو یعنې مکفول له کفیل بري کړنو مکفول عنه نه بري کیږي ولی کفیل تابع دی نو دکفیل په بري کیدوسره مکفول عنه نه بري کیږي همدارنګه دکفیل له مطالبی څخه دبري کیدوپه وجه داصیل له ذمی څخه قرض نه ساقطیږي ولی مکفول عنه پرذمه دین دکفیل له کفالت څخه بغیرهم پاتیدلای شی ځکه نو مکفول عنه نه بري کیږي ،همدارنګه که مکفول عنه کفیل ته مهلت ورکړنو دادمکفول عنه لپاره مهلت نه بلل کیږي ځکه مهلت ورکول تریومعلوم وخت پوري بري کول دي نوپرداثمي برائت باندي قیاسیږی یعني لکه څرنګه چې په دائمی ډول دکفیل په بري کیدوسره مکفول عنه په دائمي ډول نه بري کیږي همدارنګه ترمعلوم وخت پوري دکفیل په بري کیدوسره مکفول عنه ترمعلوم وخت پوري نه بري کیږي.

(۳۵)که دمکفول له زرروپی دمکفول عنه پرذمه لازمی وي نوبیاکفیل یامکفول عنه له زرورپو څخه پرپنځه سوه باندي له مفکول له سره صلح وکړه نوله دغوپنځوسوو څخه کفیل اومکفول عنه دواړه بري کیږي دمکفول عنه دصلح کولوپه صورت کې ددواړوبري کیدل خوظاهردی ولی په دي صورت کې مکفول عنه بري کیږي نوکفیل هم بري کیږي اودکفیل دصلح په صورت کې دواړه ځکه بري کیږي چې په وخت دصلح کې کفیل صلح زرورپوته مضاف کړي ووایې چې له زرورپوڅخه پرپنځه سوه قرض باندي له تاسره صلح کوم حال داچې دازرروپۍ پرمکفول عنه باندي قرض دی نومکفول عنه له پنځه سوه قرض څخه بري شو ولی داصلح داسقاط په معنی ده یعني مکفول له خپل حق ساقط کړنوچې کله مکفول له پنځه سوه روپۍ ساقطی کړې نومکفول عنه بري شواودمکفول عنه بري کیدل دکفیل بري کیدل واجبوي نوکفیل هم بري شو.

(۳۶)که مکفول له کفیل ته وویل چې دکوموروپوچې ته کفیل شوی یې تاله مال څخه زماله جانبه برائت کړی دی نوبیادي کفیل مکفول عنه ته دهغوروپوپه باره کې رجوع وکړي دکوموچې دی ضامن شوی ووځکه دمکفول له په قول کې :قَدبَرِئتَ الیَّ من المالِ دبرائت ابتداء په کفیل سره شوې ده ولی په دي برائت کې کفیل مخاطب دی اودبرائت انتهاء پرمکفول له شوي ده ولی لفظ داالی دانتهاء لپاره دی اوپه دغه ترکیب کې مکفول له چې متکلم دی منتهی دی نوداثابته شوه چې په دغه ترکیب کې کفیل هغه دی دچاڅخه چې ابتداء شوي ده اومکفول له هغه دی پرچاچې انهتاء شوې ده اوداسې برائت چې ابتداء یې له کفیل نه شوې وي اوانتهاء یې پرمکفول له باندي شوې وي یواځې په مال اداکولوسره کیږي ګواکې مکفول له وویل :دفعتَ الِیَّ المال (یعني تاماته مال راکړی دی ) یاقبضتُ المالَ منک (ماله تاڅخه مال قبض کړی دی )نوګواکې مکفول له ددي خبري اقراروکړچې کفیل هغه مال اداکړی دی دکوم چې دی ضامن شوی وواوچې کله مکفول له دمال اداکولواقرارکړی دی نواوس هغه له کفیل اومکفول عنه دواړوڅخه دمطالبی حق نه لري اوڅرنګه چې کفاله دمکفول عنه په حکم سره شوې ده ځکه نوکفیل داختیارلري چې دی له مکفول عنه څخه هغه مال بیرته واخلي دکوم چې دی ضامن شوی وو.

(۳۷)قوله وفي برئت اوبرأتک لااي وفي قوله برئت او ابرأتک من المال الذی کفلت به عن فلان لایرجع الکفیل علی الاصیل بالدین.یعني که چیرته مکفول له یواځې دومره وویل :برئت ،نوبري شو ،لفظ دالیَّ یې زیات نکړ.یایې وویل:

ابراتک ،ماته بري کړی یې نو بیا کفیل له مکفول عنه څخه هیڅ نه شی اخیستلای ولی په دغه کلام کې یواځې دکفیل برائت فهمیږي نه دمال قبض کولو اقرار ځکه په دغه صورت کې کفیل مکفول عنه ته رجوع نه شي کولای.

(۳۸)وَبَطَلَ تَعلِيقُ البَرَاءَةِ مِنَ الكَفَالَةِ بِالشَّرطِ (۳۹)وَالكَفَالَةِ بِحَدٍّ وَقَوَدٍ (۴۰)وَمَبِيعٍ وَمَرهُونٍ وَاَمَانَةٍ (۴۱)وَصَحَّ لَو ثَمَناً اَو مَغصُوباً اَو مَقبُوضاً عَلٰى سَومِ الشِّرَاءِ اَو مَبِيعاً فَاسِداً (۴۲)وَبِحَملِ دَابَّةٍ مُعَيَّنَةٍ مُستَاجَرَةٍ (۴۳)وَخِدمَةِ عَبدٍ استُوجِرَ لِلخِدمَةِ (۴۴)وَبِلَا قَبُولِ الطَّالِبِ فِي مَجلِسِ العَقدِ (۴۵)اِلَّا اَن تَكَفَّلَ وَارِثُ المَرِيضِ عَنهُ (۴۶)وَعَن مَيِّتٍ مُفلِسٍ (۴۷)وَبِالثَّمَنِ لِلمُوَكِّلِ وَرَبِّ المَالِ وَلِلشَّرِيكِ اِذَا بِيعَ عَبدٌ صَفقَةً (۴۸)وَبِالعُهدَةِ (۴۹)وَالخَلَاصِ (۵۰)وَمَالِ الكِتَابَةِ

**ترجمه**: اوباطل دی معلق کول دکفالت په شرط دبري کیدوپوري اوباطل دی دحد ،قصاص، مرهون،مبیعه، او امانت کفالت اوصحیح دی که مکفول به ثمن وویامغصوب وویاداسی شی ووچې مشتري داخیستلوپه نیت اخیستی وویادبیع فاسد مبیعه وه یابارول دمعلوم چارپای ووپه کرایه یاخدمت دمریي ووکوم چې په اجرت سره دخدمت لپاره مقررشوی ووا ودطالب له قبول بغیرپه مجلس عقد کې مکرداکه کفیل شود مریض وارث دمریض له طرفه اودمفلس مړي له طرفه اودثمن کفالت دموکل،رب المال اوشریک لپاره په داسي حال کې چې مریی په یوه عقدکې خرڅ شوی ووا وکفالت دعهدي اودخلاصون اودمال کتابت.

**تشریح** :(۳۸)برائت عن الکفاله په شرط پوري معلق کول جائزنه دی مثلاچې مکفول له داډول ووایي :اِذَاجَاءَغَدٌفَاَنتَ بَرِیٌٴمِنَ الکَفَالَةِ .(چې کله سباورځ راشي نوته له کفالت څخه بري یې) ولی په برائت کې دتملیک معنی ده په دي ډول چې مکفول له دمطالبی مالک ووچې کله یې کفیل بري کړنو کفیل یې دبرائت مالک وګرځاوه ،خوداسي هم یوروایت دی چې له کفاله څخه برائت په شرط پوري معلق کول جائزدی ولی پرکفیل باندي مطالبه لازمه ده قرض نه دی نو کفیل بري کول دطلاق په شان اسقاط محض دی او اسقاط محض په شرط پوري معلق کول جائزدی.

(۳۹)قوله والکفالة بحدوقود ای وبطل الکفالة بحدوقود،یعني هرهغه حق چې له کفیل څخه یې حاصلول ممکن نه وي دهغه کفاله صحیح نه ده مثلاً دحدودو او قصاص کفاله جائزه نه ده ولی له کفیل څخه دحداوقصاص مطالبه کول متعذره ده ولی په عقوباتو کې نیابت نه جاري کیږي البته پرچاباندي چې حدیاقصاص وي دهغه مجلس ته دحاضرولو کفیل کیدل جائزدی.

(۴۰)قوله ومبیع ای بطل الکفالة بمبیع فی البیع الصحیح ،یعني په بیع صحیح کې دمبیعی قبض کولو څخه مخکي دبائع له طرفه دمبیعی دذات ضامن کیدل صحیح نه دی ولی داعیانو دضمانت لپاره داشرط دی چې مضمون بنفسه وي په داسی حال کې چې ترقبض مخکي که مبیعه هلاکه شي نوبائع دمبیعه ضامن ګرزي دثمنوپه عوض نه بنفسه ،همداحکم دمرهون شي هم دی ولی مرهون شی هم ترقبض مخکي داعیان له قبیل څخه دی مګرمضمون بنفسه نه دی بلکې مضمون بغیره دی یعني مرهون شی دقرض په عوض مضمون ګرزي نودمضمون شي دذات ضامن کیدل صحیح نه دی اودامانت همداحکم دی ولی امانت مضمون نه دی نه مضمون بنفسه اونه مضمون بغیره دی.

(۴۱)او دمبیعه دثمن دمشتري له جانبه کفیل کیدل صحیح دی ولی ثمن دمشتري پر ذمه دین صحیح دی نودنوروديونوپه شان دمشتري له طرفه دثمنوضامن کیدل صحیح دی همدارنگه دغاصب له طرفه دمغصوب شي کفیل کیدل هم صحیح دی ولی مغصوب شی عین مضمون بنفسه دی یعنې دهلاکت په صورت کې دهغه قیمت لازمیږي اودعین مضمون بنفسه کفیل کیدل صحیح دی همدارنگه دداسي شي کفیل کیدل هم صحیح دی چې مشتري له بائع څخه داخستوپه قصدوړی وي چې په کورکې به یې وګوروکه موخوښ اخلویې که نه بیرته یې واپس کوو ځکه داد ول شی هم مضمون بنفسه دی چې دهلاکت په صورت کې دهغه قیمت واجبیږي چې دهغه شي قائم مقام دی ،همدادول دبیع فاسدمبیعه کفالت هم صحیح دی ولی داهم دمضمون بنفسه له قبیل څخه دی یعنې دهلاکیدوپه صورت کې دمشتري پرذمه دهغه قیمت لازمیږي نه ثمن،اودعین مضمون بنفسه کفالت صحیح دی .

(۴۲)قوله وحمل دابة معینة مستاجرة ای وبطل الکفالة بحمل دابة بعینها مستاجرة ،یعنې که چیرته مستاجرمعلوم چارپای دباروړلولپاره کرایه کړاودمستاجرلپاره پرهغه معلوم چارپای باندي دباروړلولپاره څوک کفیل شونوداکفاله جائزه نه ده ولی دامکنه ده چې دامعلوم چارپای هلاک شی نوکفیل دمکفول له لپاره دباروړلونه عاجزکیږي اوله کوم کارڅخه چې کفیل عاجزکیږي دهغه کفاله جائزه نه ده اوکه چارپای غیرمعین وونوبیاکفاله جائزه ده ولی واجب باروړل دی اوکفیل پردي باندي قادردی چې هغه پرخپل چارپای باندي بارکړي نوداکفالت ځکه صحیح شو .

(۴۳)قوله وخدمة عبدا ستوجر للخدمة ای وبطل الکفالة بخدمة عبدمعین استوجر للخدمة ،یعنې کوم مریی چې دخدمت کولولپاره مزدورنیول شوی وي دهغه دخدمت کولوضمانت کول باطل دی ولی مریی معین دی دهلاکت په صورت کې کفیل له دي څخه عاجزدی چې دهغه خدمت ومکفول له ته وسپاري اوداخبره تیره شوه چې له کوم کارڅخه چې کفیل عاجزوي دهغه کفاله جائزه نه ده .

(۴۴)قوله وبلاقبول الطالب فی مجلس العقدای وبطل الکفالة بلاقبول الطالب فی مجلس العقد،په مجلس عقد کې دمکفول له

له طرفه دقبلیدوبغیرکفاله باطله ده یعنې دکفاله په دواړوقسمینوکې(یعنې کفاله بالنفس اوکفاله بالمال ) کې دطرفینورحمهما الله په نزددکفاله دصحت شرط دادی چې مکفول له دکفاله په مجلس کې هغه قبوله هم کړي،په داسی حال کې چې دامام ابویوسف رحمه الله په نزدداکفاله جائزه ده په مجلس عقدکې دمکفول له قبولیت یې شرط نه دی،دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادی چې په کفاله کې کفیل پرخپل ځان مطالبه لازموي اوپه التزام علی النفس کې ملتزم خودمختاروي نوځکه دمکفول له قبولیت ضروري نه دی،دطرفینورحمهما الله دلیل دادی چې په کفاله کې کفیل مکفول له پرخپل ځان باندي دمطالبی مالک گرزوي اوپه کوم شي کې چې دتملیک معنی وي هغه په مالک کیدونکي اومالک گرزونکي دواړوسره ترسره کیږي نوځکه په کفاله کې دکفیل ایجاب اودمکفول له قبول دواړه ضروري دي .

**فائده** :دطرفينو رحمهما الله قول مفتى به دى كمافى شرح التنوير (و) لاتصح الكفالة بنوعيها (بلاقبول الطالب) اونائبه ولوفضوليا (فى مجلس العقد) وجوزهاالثانى بلاقبول وبه يفتى درروبزازية واقره فى البحروبه قالت الائمة الثلاثة لكن نقل المصنف عن الطرسوسى ان الفتوى على قولهما واختاره الشيخ قاسم :قال ابن عابدين رحمه الله (قوله واختاره الشيخ قاسم) حيث نقل اختيار ذالك عن اهل الترجيح كالمحبوبى والنسفى وغيرهما واقره الرملى وظاهر الهداية ترجيحه لتاخيره دليلهما وعليه المتون.(الدر المختار مع الشامية:۴/ ۲۹۹)

(۴۵) البته يوه مسئله داسې شته چې په هغې کې دکفالې دصحت لپاره دطرفينو رحمهما الله په نزد دمکفول له قبلول په مجلس کې شرط نه دى هغه داچې مريض مقروض خپل وارث ته ووايې كوم قرض چې پرما باندې واجب دى ته دهغه کفيل وګرځه، په دغه صورت کې وارث کفيل ګرځي په داسې حال کې چې قرض غوښتونکى يعنې مکفول له په مجلس کې موجودنه دى، داكفاله استحساناصحيح ده ځکه چې كله مريض خپل وارث ته وويل كوم قرض چې پرما باندې واجب دى ته دهغه کفيل وګرځه نوګواکې مريض ووېل چې ته زما قرضه اداکړه اوداوينا په حقيقت کې وصيت دى اوپه وصيت کې دموصى له قبلول شرط نه دى نوځکه دمکفول له قبلول په مجلس کې شرط نه شو.

(۴۶) قوله وعن ميت مفلس اى وبطلت الكفالة عن ميت مفلس،يعنې كه يوڅوک دمفلسي په حالت کې مړشواوپرهغه باندې څه قرض پاتې وونوداامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددهغه سړي له طرفه يوڅوک کفيل کېدل باطل دى ولى ددين ادائيګي له مړي څخه متصوره نه ده ځکه ادائيګى دين فعل دى اوله مړي څخه صدورد فعل متصورنه دى نوداحکام دنياپه اعتبارد مړي له ذمې څخه دين ساقط دى په داسې حال کې چې كفالې داحكام

دنياپه حق کې ددين دباقې پاتې کېدو مقتضي ده نودمړي له طرفه کفيل کېدل صحيح نه دى.

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزدداكفاله صحيح ده ولى په حديث شريف کې راغلي دي چې ديوه انصاري جنازه راوړله شوه نبي كريم ﷺ پوښتنه وکړه چې پردغه انصاري باندې خوبه دچاپورنه وي باندې؟ صحابه كرامو رضى الله عنهم عرض وکړچې هو !اې دالله رسوله! دوه درهمه يادوه دیناره شته ،رسول الله ﷺ دجنازې دلمانځه ورکولوڅخه منع وکړه،ويې فرمايل :تاسي دده دجنازې لمونځ وکړئ اوحضرت ابوقتادة رضی الله عنه عرض وكړاي دالله تعالى رسوله!دده دين پرمادى، بياهغه ﷺ دجنازې لمونځ ورکړ،همدارنګه داله دين ثابت څخه (داځکه دين ثابت دى چې هيڅ ساقطونکى يې نشته. يوائې دمديون په مړينه سره قرضه نه ساقطيږي ) کفيل کېدل دى چې جائزدى،صاحبينو رحمهما الله ته ځواب ورکړل شوى دى چې په حديث شريف کې دحضرت ابوقتادة رضی الله عنه قول چې دده پورپرمادى ،دكفالې سابقه اقراردى،يعنې حضرت ابوقتادة رضی الله عنه فرمايې چې زه دده تروفات مخکې دده کفيل ګرځېدلى يم،اودچاپه ژوند کې چې څوک دچاکفيل شي نودهغه په جوازخوموږهم قائل يو ،اودصاحبينو رحمهما الله داويناچې دادين ثابت دى موږنه منوولې دين داادائيګى فعل نوم دى چې له مړي څخه متصورنه دى نودادين ثابت نه دى ساقط دى.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافى القول الراجح :القول الراجح هو قول الامام كماظهر من داب صاحب الهداية وايضامن صنع صاحب الملتقى (القول الراجح:۲/ ۹۲)

(۴۷)قوله وبالثمن للموکل ورب المال وللشریک الخ،ای بطلت کفالة الوکیل بالثمن للموکل وکفالة المضارب بثمن مال المضاربة للرب المال وکفالة الشریک بالثمن للشریک الآخرالخ .یعني که وکیل دخپل موکل لپاره دهغه شي دقیمت دمشتري له طرفه ضامن شي دکوم شي چې دی وکیل دی،یامضارب درب المال لپاره دمضاربت داسبابودقیمت دمشتري له طرفه ضامن شي،یادووشریکانومشترک مریی په یوه عقدکې خرڅ کړییایوشریک دبل لپاره دمشتري له طرفه دقیمت ضامن شي،دادري واړه ضمانتونه باطل دي ولی په لومړنیودووصورتونوکې حق قبض وکیل اومضارب لره حاصل دی نودوئ کفالت کفالت لنفسه کیږي چې داجائزنه دی اوپه دریم صورت کې چې کفیل دکفالت په وجه څه اداکوي هغه دشریکینوترمنځ مشترک دی نودده دحصی په اندازه داکفالت لنفسه دی چې جائزنه دی .

(۴۸)قوله وبالعهدة،ای وبطلت الکفالة بالعهدة،یعني دعهده په لفظ سره ضمانت ورکول باطل دی مثلایوچامریی واخیست کفیل مشتري ته وویل زه ستالپاره دعهدی ضامن یم نوداضمانت باطل دی ولی لفظ دعهده مشترک دی دپخواني دستاویز،عقد،حقوق عقداوخیارشرط ټولولپاره استعمالیږی نودجهالت مفهوم په وجه دعهده په لفظ سره ضمانت ورکول صحیح نه دی یعني دعهده لفظ چې پرډیرومعناګانویې اطلاق کیږي اوپرهره معنی باندي دهغه محمول کول جائزهم دی نوترڅوچې کفیل مرادي معنی بیان نکړي په هغه عمل کول متعذردی ځکه نوپه دغه لفظ سره ضمان اوکفاله باطله ده .

(۴۹)قوله والخلاص ای وبطلت الکفالة بتخلیص المبیع عندالاستحقاق ،یعني ضمان خلاص هم دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد صحیح نه دی چې صورت یې داسي دی چې کفیل مشتري ته ووایي زه ستالپاره ددي ضامن یم چې مبیعه له هرډول مستحق څخه خالصه تاته وسپارم،نوداکفاله صحیح نه ده ولی په هرحال کې مبیعه مشتري ته حواله کول دهغه دوس کارنه دی ځکه ممکن دی چې یوڅوک دهغه کفالت سربیره پرمبیعه باندي خپل استحقاق ثابت کړي مبیعه تري واخلي

(۵۰)قوله ومال الکتابة ای وبطلت الکفالة بمال الکتابة ،یعني دمکاتب له طرفه دمال کتابت ضمانت هم باطل دی ولی دادین صحیح نه دی (له دین صحیح څخه مراددادی چې مدیون هغه نه شی ساقطولای مګرداچې یایې اداکړي اویاقرض غوښتونکی هغه معاف کړي نومال کتابت په دي وجه دین صحیح نه دی چې مال کتابت له دغودووطریقوڅخه علاوه هم ساقطیدای شي مثلامکاتب خپل ځان دمال کتابت اداکولوڅخه عاجزکړي نوهم دده له ذمي څخه دین ساقطیږی) اوکوم دین چې صحیح نه وي دهغه ضمانت صحیح نه دی . کمامر.

## فصل

مصنف رحمه الله په دغه فصل کې دکتاب الکفاله په اړه څه متفرق مسائلی بیان کړي دي نوداد مصنفینو رحمهم الله دعادت مطابق ګواکي فصل فی المتفرقات دی .

(۱)وَلَوْأَعْطَى الْمَطْلُوبُ الْكَفِيلَ قَبْلَ أَنْ يُعْطِيَ الْكَفِيلُ الطَّالِبَ لَايَسْتَرِدُّمِنْهُ (۲)وَمَارَبِحَ الْكَفِيلُ فَهُوَلَهُ (۳)وَنُدِبَ رَدُّهُ عَلَى الْمَطْلُوبِ لَوْشَيْئًايَتَعَيَّنُ (۴)وَلَوْأَمَرَكَفِيلَهُ أَنْ يَتَعَيَّنَ عَلَيْهِ حَرِيرًافَفَعَلَ فَالشِّرَاءُلِلْكَفِيلِ وَالرِّبْحُ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: او که ورکړل مطلوب کفیل ته مخکې تردې چې ورکوي يې کفیل طالب ته نو واپس دي نه څني اخلي او کومه ګټه چې کفیل کړي وي هغه دده ده، او مستحب دی داګټه ردول مطلوب ته که چیرته هغه داسې شی وو چې معین کیدای شوای او که مکفول عنه حکم وکړ خپل کفیل ته ددې چې ماته په بیع عینه سره دو رینمو بیع وکړه هغه دابیع وکړه نو داخرید د کفیل لپاره کیږي او ګټه یې د هغه پر ذمه کیږي.

**تشریح**: (۱) که چیرته مکفول عنه مطلوبه مال کفیل ته ورکړ مخکې تردې چې کفیل له خپله طرفه مطلوبه مال طالب یعنې مکفول له ته ورکوي نو مکفول عنه دي دامال له کفیل څخه واپس نه اخلي ولي له دي مال سره د کفیل حق معلق شوی دی څکه دلته دوه احتماله دي یو دا چې کفیل تر اوسه مکفول له ته مال نه دی ورکړی دوهم چې ښایي اداکړی يې وي ددغه دوهم احتمال پربناء په دغه مال پوري د کفیل حق متعلق کیږي نو مکفول عنه ددي اختیار نه لري چې دامال واپس واخلي نو تر څو پوري چې دا احتمال باقي وي تر هغه پوري مکفول عنه ددي اختیار نه لري چې له کفیل څخه مال واپس واخلي همدارنګه په دي وجه هم مکفول عنه له کفیل څخه دامال واپس نه شي اخیستلای چې په قبض کولو سره کفیل ددي مال مالک ګرزي چې تفصیل یې په راتلونکې مسئله کې راځي.

(۲) که په پورتنې مذکورصورت کې کفیل د مکفول عنه په مال سره تجارت وکړ ګټه یې وکړه نو دغه ګټه کفیل ته حلالیږي ولی کفیل په دغه صورت کې د دغه مال مالک شمارل کیږي څکه د کفاله په وجه د کفیل لپاره پر مکفول عنه باندي هغه ډول مطالبه د دین واجبیږی لکه د مکفول له لپاره چې پر کفیل باندي واجبیږي یوائې دومره فرق يې دی چې مکفول له فی الحال د مطالبی حق لري او کفیل د حق اداکولو وروسته حق لري مګر له دي څخه دانه لازمیږي چې پر کفیل باندي د مکفول عنه حق هم فی الحال نه واجبیږي بلکې حق فی الحال واجب دی البته مطالبه فی الحال نه شي کولای داسې دی لکه د قرض مؤجل په صورت کې چې د قرض غوښتونکې حق وي مګر مطالبه فی الحال نه شي کولای نو چې کله دا ثابته شوه چې کفیل د دغه مال مالک ګرزي له دغه مال څخه چې کومه ګټه تر لاسه کیږي هغه دده د ملک څخه حاصله شوي ګټه ده نو څکه دده لپاره حلاله ده.

(۳) البته که چیرته دانفع په متعین کیدو سره متعینه کیده یعنې دراهم او دنانیر نه وو بلکې یو داسې شی وو چې په متعین کیدو سره متعین کیدای شوای مثلاً غنم، اوربشي وغیره وو نو په دغه صورت کې له امام صاحب رحمه الله څخه یو روایت دادی چې دغه نفع دي پر فقیر انو باندي صدقه کړي او بل روایت دادی چې دغه ګټه مکفول عنه ته ورکول مستحب دی ولی په دغه ګټه کې د کفیل لپاره د ملک باوجو دیو ډول خبث دی څکه چې تر اوسه لا مکفول عنه لره د دغه د مال دواپس اخیستلو لاره موجوده ده په دي ډول چې هغه پخپله خپل قرض اداکړي نو د کفیل دا ملک قاصر دی کامل نه دی او له قاصر ملک څخه په حاصله شوي ګټه کې شبه د خبث وي او دا خبث په داسې مال کې اثر کوي چې په متعین کیدو سره متعین کیږي او څرنګه چې دا خبث د حق

شرع په وجه نه دی بلکې دمکفول عنه دحق په وجه دی ځکه نوهغه باید مکفول عنه ته واپس ورکړل شي چې حق مستحق ته ورسيږي.

**فائده**: اصح روايت دامام صاحب رحمه الله دادوهم روايت دی لمالي الشامية: بخلاف مايتعين كالحنطة ونحوها بان كفل عنه حنطة واداها الاصيل الى الكفيل وربح الكفيل فيها فانه يندب رد الربح الى الاصيل قال في النهر وهذا هو احد الروايات عن الامام وهو الاصح وعنه انه لايرده بل يطيب له وهو قولهما لانه نماء ملكه وعنه انه يتصدق به. (ردالمحتار: ۴/ ۳۱۰)

**فائده**: دصاحبينو رحمهما الله په نزد داگټه دکفيل لپاره حلاله ده نو هغه دې مکفول عنه ته واپس نه کړي ولی مخکې تيره شوه چې دادکفيل له ملک څخه حاصل شده گټه ده او قاعده ده چې کومه گټه چې دچاله ملک څخه حاصله شي هغه دهغه کيږي نو دغه گټه دکفيل حق کيږي دا بايد مکفول عنه ته واپس نه کړي.

(۴)که مکفول عنه خپل کفيل ته حکم وکړچې ته زما لپاره دوريښمو بيع دعينه وکړه، هغه همداسې وکړل نوداخريد دکفيل لپاره دی او هغه گټه چې دوريښمو بائع ته ورحاصليږی هغه هم پرکفيل باندې کيږي يعنې په بيع دعينه کې دخساره (تاوان) ذمه وارهم کفيل دی مکفول عنه نه دی ولې دبيع عينه عقد کوونکی کفيل دی مکفول عنه نه دی او خساره پرعقد کوونکي باندې راځي.

**فائده**: په مذکورعقد کې دبيع عينه صورت داسې دی چې کفيل له کوم تاجر څخه مثلالس درهمه قرض وغواړي او تاجر له قرض ورکولو څخه انکار وکړي مگر تاجر په دې راضی وي چې دقرض غوښتونکي په لاس دلسو درهمونوکپړه دپنځلسو درهموپه عوض په پور خرڅه کړي چې تاجر ته پنځه روپۍ زياته گټه په لاس ورشي او کفيل داکپړه واخيسته بيا کفيل هغه کپړه له بائع نه علاوه پربل چاباندې په لس درهمه خرڅه کړي دمکفول عنه قرض اداکړي نو په دغه بيع کې پنځه روپۍ خساره چې واقع شوې ده هغه به پرکفيل باندې وي نه پرمکفول عنه باندې دغی بيع ته دعينه ويلو وجه داده چې په دغه کې له دين څخه دعين په طرف اعراض راځي. (ردالمحتار: ۴/ ۳۱۰)

(۵) وَمَنْ كَفَلَ عَنْ رَجُلٍ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلَيْهِ أَوْ بِمَا قَضِيَ لَهُ عَلَيْهِ فَغَابَ الْمَطْلُوبُ فَبَرْهَنَ الْمُدَّعِي عَلَى الْكَفِيلِ أَنَّ لَهُ عَلَى الْمَطْلُوبِ أَلْفًا لَمْ تُقْبَلْ (۶) وَلَوْ بَرْهَنَ أَنَّ لَهُ عَلَى زَيْدٍ كَذَا وَأَنَّ هَذَا كَفِيلٌ عَنْهُ بِأَمْرِهِ قُضِيَ بِهِ عَلَيْهِمَا (۷) وَلَوْ بِلَا أَمْرِهِ قُضِيَ عَلَى الْكَفِيلِ فَقَطْ (۸) وَكَفَالَتُهُ بِالدَّرَكِ تَسْلِيمٌ (۹) وَشَهَادَتُهُ وَخَتْمُهُ لَا.

**ترجمه**: او څوک چې کفيل شي ديوچاله طرفه دهغه چې مدعی دهغه پر ذمه ثابته شي يادهغه چاچې دهغه دمدعي لپاره پرده باندې حکم وکړای شي بيا مطلوب غائب شو بيا مدعي گواهان قائم کړل پرکفيل باندې چې دده پر مطلوب باندې زرروپۍ دي نو داگواهان نه قبليږي او که يې گواهان قائم کړل چې دده دزيد پر ذمه باندې دومره روپۍ دي او دی دهغه کفيل دی دهغه په امرنو حکم کړای کيږي دهغه پردوئ دواړو باندې او که دهغه دحکم بغيروونو حکم کړای کيږي يوازې پرکفيل باندې او دچاکفيل بالدرک کيدل دبيع تسليمول دی او دهغی دگواهي او مهرلگيدو تسليم نه دی.

**تشريح**: (۵)که څوک ديوچاله طرفه په دغوالفاظوسره کفيل شوی ووچې پرده باندې چې دفلان څه شی ثابت دی زه دهغه ضامن يم يايې داسې وويل چې زه دهغه حق کفيل يم دکوم حق چې قاضی دفلاني لپاره حکم کړی دی، بيا مکفول عنه غائب شو او مکفول له گواهان پيش کړل چې زما پر مکفول عنه باندې يوزردرهم دي

نو دمكفول له گواهان نه قبليږي ولی دگواهانو قبليدل ددعوی پرصحت باندي موقوف دی دلته دعوه صحيح نه ده ولی ددعوی اومكفول به ترمنځ مطابقت نشته چې ضروري دی ځكه چې مكفول به هغه مال دی دكوم چې قاضي پرمكفول عنه باندي ترکفاله مخکي حکم کړی وي چې مقيد دی،يايه مااقضي له عليه کې دمال مقيد والی ښكاره دی اوماذاب له عليه ځرنگه چې دماوجب عليه په معنی دی اووجوب دقاضي په حكم سره كيږي ځكه نوپه دغه صورت کې هم مال مقيد دی په داسي حال کې چې دمکفول له پرمكفول عنه باندي دزرو دعوی مطلقه ده چې پکي داتعريض نشته چې ترکفاله مخکي پرمكفول عنه باندي ددي حكم کړل شوی دی نو دعدم مطابقت په وجه دمكفول له دعوی صحيح نه ده نوگواهان يې هم دقبول وړ نه دي .

(۶)که يوسړی مثلادزيدله طرفه دهغه په حكم سره دمال مؤجل كفيل شويامكفول عنه يعنې زيدغائب شواومكفول له دقاضی په عدالت کې گواهان پيش کړل چې زماپرزيد غائب باندي دومره مال دی اوداسړی دهغه له طرفه دهغه په حكم سره دهغه كفيل دی نو دمكفول له دادعوه صحيح ده ولی مكفول به مال مطلق دی داقيد نشته پکي چې هغه مال چې قاضی پرمكفول عنه باندي حکم کړی دی اودمكفول له دعوه هم مطلقه ده نو دادعوه صحيح ده ځكه يې نوگواهان هم مقبول دي چې كله گواهان مقبول شونو دمذكور مال په حق کې چې قاضی كومه فيصله کوي هغه فيصله پرکفيل اومكفول عنه دواړو باندي نافذيږي يعنې پرکفيل باندي چې كوم حکم كيږي دهغه په ضمن کې پرمكفول عنه غائب باندي هم حکم كيږي مگرسوال دادی چې قضاعلی الغائب جائزه نه ده نودلته دقاضی دافيصله پرمكفول عنه غائب باندي څنگه نافذه كيږي ؟ جواب :داقاعده ده چې كله مدعي داثبات حق علی الغائب بغيرله مدعي عليه حاضرڅخه خپل حق نه شي حاصلولای نوپه داسي صورت کې قضاعلی الغائب جائزه ده .

(۷)اوكه كفاله دمكفول عنه په حكم سره نه وه بلكې كفيل خپل كفيل شوی وونودمكفول له دگواهانوپه وجه دمال حکم يواځي پرکفيل باندي كيږي پرغائب مكفول عنه باندي دقاضی داحكم نه نافذيږي ددغه صورت اومخكيني صورت ترمنځ فرق دادی چې په تيرصورت کې كله مدعی دكفاله په امردمكفول عنه دعوه وکړه په گواهانوسره يې ثابته کړه اوقاضي دهغه مطابق فيصله وکړه نوثابته شوه چې کفيل ته مكفول عنه دكفيل كيدوحكم وركړی دی نودادمكفول عنه له طرفه دمكفول له لپاره دمال اقراردی اودااقرارهم دقاضی ترفيصله رالاندي شوځكه نودقاضی فيصله پرکفيل اومكفول عنه دواړوباندي نافذيږي په داسي حال کې چې په دغه صورت کې (يعنې په كوم کې چې كفيل خپله كفيل گرزيدلی وي) دمكفول عنه له طرفه هيڅ ډول اقرارموجودنه دی اودكفالي دصحت لپاره دومره كافي دی چې دكفيل په گمان کې پرمكفول عنه باندي دين وي دمكفول عنه اقرارضروري نه دی نوځكه په دغه صورت کې دقاضي فيصله يواځي پرکفيل باندي نافذه كيږي دمكفول عنه طرفته نه متعدي كيږي .

(۸)كه چاخپل مكان خرڅ کړاويوسړی دبائع له طرفه دمشتري لپاره كفيل بالدرک شويعنې كفيل مشتري ته وويل چې كه چيرته ددي مكان يوبل مستحق پيداشونو دپيسودواپس كولوزه ضامن يم نودكفيل دغه وينادي خبرې تسليمول دی چې دامكان دبائع ملک دی نوله دي وروسته كه كفيل دادعوه وكړه چې

ددغه مکان مالک زه یم دکفیل دغه دعوی نه اوریدله کیږي ولی دغه عقد دکفیل دکفالت په وجه تام شوی دی ځکه نو په دغه صورت کې (چې عقد بیع په کفالت بالدرک سره مشروط دی) ترڅو پورې چې کفیل کفاله بالدرک نه قبلوي تر هغه پورې عقد نه تامیږي نو ګواکي ددغه عقد لازمونکی کفیل دی او س له هغه وروسته دکفیل له طرفه دځپل ملکیت دعوه کول ددي عقد دماتولو کوشش دی او دداسې عقد دماتولو کوشش کول چې ځپله دده له طرفه تام شوی وي باطل دی نو ځکه دکفیل دغه دعوی کول چې زه دمکان مالک یم باطلیږي.

(۹) قوله وشهادته وختمه لاای کتابة شهادة الرجل فی صک البیع وختمه علی صک البیع لایکون تسلیما واقرارا ان الملک للبائع

یعنې که چامکان خرڅ کړاو یوبل سړی دمکان پرخرڅیدو باندی تحریراً ګواه شواو دستخط یې وکړخپل مهریې ولګاوه مګر کفیل بالدرک نه دی شوی نو دګواه له طرفه داګواهي دبائع دملکیت تسلیمول نه کیږي یعنې داګواهي ددي خبري علامه نه کیږي چې ګواه بائع دمکان مالک تسلیموي. بیا که چیرته دغه ګواه ددي دعوی وکړي چې زه ددي مکان مالک یم نو دده دعوی اوریدله کیږي ځکه چې شهادت نه په بیع کې شرط دی او نه دبائع دملکیت اقرار دی ولی کیدای شي چې هغه داګواهي ددي لپاره چې داواقعه یاده پاتي شي چې دهغه مکان په هکله داسې واقعه شوي وه نو له دي څخه دانه لازمیږي چې ګواه دبائع دملکیت اقرار کړی دی ،نو او س که چیرته ځپله ګواه دځپل ملکیت دعوه کړه له دي څخه په دعوی کې تناقض نه راځي ځکه نو دهغه دعوی داوریدو قابله ده.

(۱۰) وَمَن ضَمِنَ عَن آخَرَ خَرَاجَهُ أَوْ رَهَنَ بِهِ (۱۱) أَوْ ضَمِنَ نَوَائِبَهُ أَوْ قِسْمَتَهُ صَحَّ (۱۲) وَمَن قَالَ لِآخَرَ ضَمِنتُ لَكَ عَن فُلَانٍ مِائَةً إِلَى شَهْرٍ فَقَالَ هِيَ حَالَّةٌ فَالْقَوْلُ لِلضَّامِنِ (۱۳) وَمَنِ اشْتَرَى أَمَةً وَكَفَلَ لَهُ رَجُلٌ بِالدَّرَكِ فَاسْتُحِقَّتْ لَمْ يَأْخُذِ الْمُشْتَرِي الْكَفِيلَ حَتَّى يَقْضِيَ لَهُ بِالثَّمَنِ عَلَى الْبَائِعِ.

**توجمه** :او که څوک ضامن شو دبل چاله طرفه دهغه دخراج یایې یوشی رهن کینود دخراج په عوض کې ،یاضامن شو دهغه دحوادثو یادهغه دتقسیم کولو نو صحیح دی او که چابل ته وویل زه ستالپاره ضامن یم دفلاني له طرفه دسلورپوتر یوې میاشتې پورې هغه وویل چې داخوفوري دی نو قول دضامن معتبر دی. او که چامنځه واخیسته او بل سړی دهغه لپاره کفیل بالدرک شو بیا دغه منځه دبل چامستحقه وګرزیده نو نه دي اخلي مشتري له کفیل څخه تر هغه پورې چې دده لپاره فیصله کیږي دثمن پربائع باندي.

**تشریح** :(۱۰) که یوڅوک دیوچاله طرفه دهغه پرذمه دهغه خراج ضامن شوچې دپاچاله طرفه پرده باندي مقررشوی دی یادهغه خراج په بدل کې هنه یوشی رهن کښیښودنو داضمانت اورهن دواړه جائزدي ولی دپاچاله طرفه چې کوم ټیکس مقرر کیږي هغه دین شمارل کیږي چې دپاچاله طرفه یې مطالبه کول کیږي او په کفاله کې مطالبه معتبره ده نو داځول ضمانت صحیح دی او څرنګه چې رهن دکفاله په معنی دی چې په دواړوکې دتوثق او اعتماد معنی موجودیږي په کوموځایونوکې چې کفاله صحیح وي هلته رهن ایښودل هم صحیح کیږي.

(۱۱) همدارنګه دیوچادحوادثو (مثلایوناڅاپه یوځای پُل رنګ شي دهغه دیارغوني لپاره دحکومت له طرفه پرخلکوباندی څه شی مقررکړای شي یایومشترک نهرجوړیږي یادمسلمانانوقیدیان

دکافرانو له زندانونو څخه دراخوشي کیدو خرچه پرخلکو باندي ایښودله کیږي دادول حوادثو ته نوائب وايي ) یادقسمت ضامن کیدل هم په اتفاق سره صحیح دی په دي شرط چي جائزقسم وظائف وي ولی دظالمانه ټیکسونو په باره کي دائمه ؤ اختلاف دی دځینو مشائخو په نزد دظالمانه ټیکسونو کفالت نه دی صحیح ولی دادول ټیکسونه خپله پر مکفول عنه هم نه دي لازم نوله کفیل څخه یې مطالبه هم صحیح نه ده په داسي حال کي چي دځینو علماؤ په نزد دظالمانه ټیکسونو کفیل کیدل هم صحیح دی .

**فائده** :همدا قول مفتی به دی ځکه دداډول ټیکسونو هم دپاچاله طرفه دنورو دیونو په شان مطالبه کیږي او په کفاله کي مطالبه معتبره ده لمافی شرح التنویر:وصح ضمان الخراج والرهن وکذاالنوائب ولو بغیرحق کجبایات فی زماننالانها فی المطالبة کالدیون بل فوقهاحتی لواخذت من الاکارفله الرجوع علی مالک الارض وعلیه الفتوی صدرالشریعة واقره المصنف وابن الکمال وقال ابن عابدین رحمه الله : والفتوی علی الصحة وفی الخانیة الصحیح الصحة ویرجع علی المکفول عنه ان کان بامره وعلیه مشی فی الاختیار والمختار الخ قلت غایة الامرانهماقولان مصححان ومشی علی الصحة بعض المتون وهوظاهراطلاق الکنزوغیره لفظ النوائب. (الدرالمختار مع الشامیة:۴/۳۱۳)

**فائده** :قسمت اونوائب یوشی دی دواړه عطف تفسیري دی یاله نوائبو څخه هغه حصه کومه چي له رعایاڅخه دچاپرذمه راشي هغه ته قسمت وایي ،ځینی حضراتو دنوائبو او قسمت ترمنځ فرق بیان کړی دی چي نوائب هغه دي چي په ناڅاپي ډول دکومی حادثی په وخت دپاچاله طرفه پررعایاباندي مقررشي اوقسمت هغه دی چي په مخصوص وخت کي په پابندي سره مقررشوی وي مثلا دمحلی دچوکیدار تنخواه دمحلی پرخلکو مقرره شي نودي ته قسمت وایي . (شامیة:۴/ ۳۱۴)

(۱۲)که یوه سړي بل ته وویل چي زه ستالپاره دفلاني له طرفه دسلوروپو ضامن یم چي یوه میاشت وروسته یي درکوي مکفول له ورته وویل چي هغه یوه میاشت وروسته نه بلکي همدا اوس دستي یي راکوي یعني پرهغه باندی چي زماکوم قرض دی هغه په موده سره نه دی بلکي فوري دی نوپه دغه صورت کي دضامن یعني مقرقول معتبردی ولی کفیل اقرارو کړچي مکفول له یوه میاشت وروسته له ماڅخه دمطالبی حق لري او مکفول له وایي چي یوه میاشت وروسته نه بلکي فی الحال زه دمطالبی حق لرم چي کفیل منکردی یعني کفیل دفوري لزوم منکردی اوقول دمنکرسره له قسمه معتبردی .

(۱۳)یوچامنځه واخیسته یوبل سړی دهغه لپاره ضامن بالدرک شو یعني ددي خبري ضامن شو چي که چیرته ددي منځي کوم مستحق پیداشونومشتري چي کومی روپی اداکړي دي له بائع څخه دهغوروپو واپس اخیستلو زه ضامن یم نوداکفاله صحیح ده ،بیاکه واقعاددي منځي کوم مستحق پیداشونودمنځي مشتري دي له ضامن څخه دمنځي روپی نه اخلي ترڅوپوري چي قاضي بائع ته حکم ورنکړي چي دمنځي روپی مشتري ته واپس ورکړه ولي یواځي دمنځي په استحقاق ثابتیدوسره بیع نه ماتیږي ځکه ممکن دی چي مستحق دغه بیع برقراره وساتي نوچي ترڅوپوري دقاضی له جانبه پربائع باندي دمشتري دپیسو واپس کیدوحکم نه یې شوی ترهغه پوري مشتري کفیل ته درجوع حق نه لري .

## باب كفالة الرجلين والعبد وعنه

داباب ددووکسانو اودمریي دکفیل کیدو اودمریي له طرفه دکفیل کیدوپه بیان کي دی

مصنف رحمه الله ديوه شخص دكفالى داحكامو له بيانولو څخه فارغ شواوس ددووكسانو دكفالى احكام بيانوي اوځرنګه چې دوه طبعًا له يوه وروسته وي څکه نوذکرًاهم هغه مؤخركړاى شوچې وضع نه طبع سره مطابق شي.همدارنګه په دي باب کې دمريې له طرفه دکفيل کيدواودمريې دکفيل کيدو احکام هم بيانوي ځرنګه چې په بنى آدموکې حريت اصل اواشرف دى نومناسبه داوه چې داصل احکام مخکې بيان شي اودغيراصل احکام وروسته،ځکه نومصنف رحمه الله دکتاب الکفاله په آخرکې دمريانو احکام بيان کړي دي.

(۱)دين عليهما وكل كفل عن صاحبه فما اداه احدهما لم يرجع على شريكه فان زاد على النصف رجع بالزيادة (۲)وان كفلا عن رجل وكفل كل عن صاحبه فما اداه رجع بنصفه على شريكه او بالكل على الاصيل (۳)وان ابرء الطالب احدهما اخذ الكفيل الاخر بكله.

**ترجمه**:ديوچاقرض باندي دى پردووكسانوباندى هريودخپل ملګري له طرفه كفيل شونوهريوچې څه اداكوي هغه به رجوع نه کوي په دي باره کې پرخپل شريک باندي بياكه يې ترنيم زيات اداکړل نودزيادت په باره کې دي رجوع وکړي اوكه دوه كسان كفيلان شول ديوه سړي له طرفه اوهريودخپل ملګري له طرفه هم كفيل شونوچې څه اداكوي رجوع دي وکړي دهغه دنيم په باره کې پرخپل شريک باندي يادکل په باره کې پراصيل (مكفول عنه) باندي.اوكه بري كړطالب (مكفول له )يوكفيل نوبوادي خلي له هغه بل كفيل څخه كل دين.

**تشريح** :( ۱)كه قرض پردووكسانوباندي وو(مثلادووكسانوله يوچاڅخه ديوزردرهم په عوض يومريى واخيست) بياهغوئ دواړه هريودخپل ملګري له طرفه كفيل شونوله دغودواړونه چې هريوه نيم ياترنيم كم اداكړل نوهغه يې له خپل شريک څخه واپس نه شي اخيستلاى ولى له دواړونه پرهريوه باندي نيم قرض پرهغه ددين كيدوپه وجه لازم دى اونيم دكفالت په وجه لازم دى اوله دواړوڅخه هغه نيم قوي دى كوم چې ددين په وجه لازم دى ترهغه نيم چې دكفالت په وجه لازم دى څکه دلومړي سبب خريد دى اودوهم سبب كفاله ده اوخريدتركفاله قوي دى نوچې كله نيم ياترنيم كم اداكوي نوويل كيږي چې داهغه نيم دى چې پرده باندي دمداينة په سبب لازم دى نوپه هغه کې خپل شريک ته رجوع نه شي كولاى اوچې كله ترنيم زائداداكوي نوويل كيږي چې داهغه زيادت دى چې پرده باندي دكفالت په سبب لازم دى نوځکه په همدغه نيم کې خپل شريک ته رجوع كولاى شي.

(۲)كه دوه كسان ديوسړي له طرف نه مثلاديوزرروپوكفيلان شول په دي شرط چې له دوئ نه هريودهغه بل له طرفه هم كفيل دى نوچې څه هريواداكوي دهغه نيم له خپل ملګري څخه اخيستلاى شي كه كم وي كه زيات وي ولى نيم مال دكفاله له اصيل په وجه خپله دهغه له طرفه اداكيږي اونصف مال دكفاله عن الكفيل په وجه دهغه دملګري له طرفه اداكيږي نوځکه دنيم مال رجوع خپل ملګري ته كولاى شي ياله دواړوكفيلانوڅخه چې كوم يوه څه اداكړي دي هغه ټول له اصيل مكفول عنه څخه واخلي كه دهغه په امرسره ضمانت شوى وو ولى دمكفول عنه دطرف څخه دهغه په حكم سره دټول مال كفالت دى نوچې څه يې اداكړي دي ټول له مكفول عنه څخه اخيستلاى شي.

(۳)که مدعي يعنې مکفول له له هغوئ دواړو څخه يو بري کړنو بيا مدعي د ټول مال مطالبه له هغه بل څخه کولای شي ولې د کفيل بري کول د اصيل بري کېدل نه واجبوي بلکې اصيل بيا هم له معمول سره مقروض دی او دوهم کفيل ځکه چې داصيل له طرفه هم دټول مال کفيل دی نو ځکه قرض غوښتونکی په دې وجه دټول مال مطالبه له دوهم کفيل څخه کولای شي.

(۴) وَلَوِ افْتَرَقَ الْمُفَاوِضَانِ وَعَلَيْهِمَا دَيْنٌ أَخَذَ الْغَرِيمُ أَيَّاشَاءَ بِكُلِّ الدَّيْنِ (۵) وَلَا يَرْجِعُ حَتَّى يُؤَدِّيَ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ (۶) وَإِنْ كَاتَبَ عَبْدَيْهِ كِتَابَةً وَاحِدَةً وَكَفَلَ كُلٌّ عَنْ صَاحِبِهِ فَمَا أَدَّى أَحَدُهُمَا رَجَعَ بِنِصْفِهِ (۷) وَلَوْ حَرَّرَ أَحَدَهُمَا أَخَذَ أَيَّاشَاءَ بِحِصَّةِ مَنْ لَمْ يُعْتِقْهُ فَإِنْ أَخَذَ الْمُعْتَقَ رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ وَإِنْ أَخَذَ الْآخَرَ لَا.

**ترجمه**: که سره جلا شول دوه شريکان د مفاوضه او پر دواړو باندې قرض وو نو قرض غوښتونکی چې غواړي له هغه څخه دې کل قرض واخلي او رجوع دې نه کوي آن تر دې چې اداء نکړي تر نيم زيات او که يې مکاتب کړل خپل دواړه مريبان په يوه کتابت کې او هريو کفيل شو د هغه بل له طرفه نو هريو چې څه اداء کړي د هغه د نيم په باره کې دې رجوع وکړي او که يې آزاد کړله دواړو څخه يو يې هغه دې واخلي له هريوه نه چې خوښه يې وي د هغه حصه کوم چې نه وي آزاد شوی بيا که واخيست هغه له آزاد شوي نه نو هغه دې رجوع وکړي خپل ملګري ته او که يې له هغه بل څخه واخيست نو بيا رجوع نه شي کولای.

**تشريح**: (۴) که د دوو کسانو ترمنځ شرکت مفاوضه وو (شرکت مفاوضه دا دی چې دواړه شريکان برابرې پيسې سره يو ځای کړي تجارت کوي او له دوئ څخه هريو د خپل شريک له طرفه کفيل او وکيل وي) بيا دواړه سره جلا شول په داسې حال کې چې دواړه قرضدار دي نو قرض غوښتونکی چې له هغوئ دواړو څخه د هريوه نه چې يې زړه پوره قرض واخلي ولې له متفاوضينو څخه هريو د خپل ملګري له طرفه کفيل وي نو قرض غوښتونکی چې له هريوه څخه مطالبه نصف دين خو خپله د هغه پر ذمه واجب دی ځکه نو له هغه څخه د نيم مطالبه کولای شي او باقي نيم چې د هغه د شريک پر ذمه دی ځکه چې دا د هغه کفيل دی ځکه نو د باقي نصف هم له هغه څخه مطالبه کولای شي ځکه چې قرض غوښتونکی له هغه څخه د کل مال مطالبه کولای شي همداسې له دوهم شريک څخه هم د کل مال مطالبه کولای شي.

(۵) بيا که له متفاوضينو څخه کوم يوه د قرض غوښتونکي قرض اداء کړ هغه تر هغه وخته پورې خپل ملګري ته رجوع نه شي کولای تر څو چې تر نيم زيات اداء نکړي ولې هريو په اندازه د نصف اصيل يعنې مکفول عنه دی او تر نيم په زيات کې د هغه بل له طرفه کفيل دی نو چې کله نيم يا تر نيم کم اداء کوي نو ويل کيږي چې دا هغه دی چې پر ده باندې په سبب د مداينة لازم دی ځکه نو خپل شريک ته رجوع نه شي کولای او چې کله تر نيم زيات اداء کوي نو ويل کيږي چې دا زائد هغه دی چې پر ده باندې د کفالت په سبب لازم دی ځکه په دې کې خپل شريک ته رجوع کولای شي.

(۶) که دوه مريبان په يوه کتابت کې مکاتب شول مثلاً مولی په دوه زره روپۍ مکاتبه ورسره وکړه او له هغوئ دواړو څخه هريو د هغه بل له طرفه کفيل شو نو د قياس تقاضا دا ده چې کفالت جائز نه شي ولې بدل کتابت قرض صحيح نه دی کما مر، په داسې حال کې چې د کفاله د صحت لپاره ضروري ده چې قرض صحيح

وي،مګر استحساناً ددواړو مکاتبانو ترمنځ يودبل کفيل کيدل جائزبلل شوي دي وجه داستحسان دغه عقددحيله په ذريعه صحيح کول دي په دي ډول چې له دواړوڅخه دهريوه آزادي په زرروپۍ پوري معلقه کړای شي بياهريودهغه بل کفيل وبلل شي نوګواکي داعقدکتابت نه بلکې په شرط پوري آزادي معلق کول دي نوځکه هريودبل لپاره کفيل کيدل صحيح دي بياچې له دغوزرو روپوڅخه څه کوم يواداکړي دهغه نصف دي دی له خپل ملګري څخه واخلي ولي دوئ دواړه په کتابت کې مساوي دي اوهريودهغه بل کفيل هم دی نوددواړوترمنځ دمساوات دتحقق همداصورت دی چې کوم يوڅه اداکوي دهغه نصف دي له هغه بل څخه اخلي ځکه چې که چيرته کل مال له هغه بل څخه واخلي يابلکل هيڅ تري وانه خلي نومساوات نه راځي.

(۷)که په مذکورصورت کې له مکاتب کولووروسته اوبدل کتابت مخکي له دواړوڅخه يوخپل مولی آزادکړنومولی لره اختياردی چې کوم مکاتب نه دی آزادشوی دهغه دحصي په باره کې له چانه چې غواړي مطالبه وکړي ولي له هغوئ دواړوڅخه يو(چې مولی نه دی آزادکړی)اصيل دی اوبل (چې مولی له کتابت وروسته آزادکړی دی )دهغه کفيل دی اومکفول له له اصيل اوکفيل دواړوڅخه دمطالبي حق لري بياکه مولی له آزادشوي څخه مطالبه وکړه اوهغه اداکړه نوهغه چې څه اداکړي دي هغه دي له خپل ملګري څخه واخلي ولی هغه دده په حکم کفيل شوی مال يې اداکړی دی نوده لره درجوع حق شته،اوکه مولی له هغه مکاتب څخه مطالبه وکړه چې آزادشوی نه وونوهغه چې څه اداکوي هغه له آزادشوي څخه نه شي اخيستلای ولی ده چې څه اداکړي دي هغه يې دخپل ځان له طرفه اداکړي دي نوځکه هغه بل ته رجوع نه شي کولای.

(۸)وَمَن ضَمِنَ عَن عَبدٍ مَالاً يُؤخَذُ بِه بَعدَ عِتقِه فَهُوَ حَالٌ وَإِن لَم يُسَمِّ (۹)وَلَوِادَّعَى رَقَبَةَ العَبدِ وَكَفَلَ بِه رَجُلٌ فَمَاتَ العَبدُ فَبَرهَنَ المُدَّعِي اَنَّه لَه ضَمِنَ قِيمَتَه(۱۰)وَلَو ادَّعَى عَلَى عَبدٍ مَالاً وَكَفَلَ بِنَفسِه رَجُلٌ فَمَاتَ العَبدُ بَرِئَ الكَفِيلُ(۱۱)وَلَو كَفَلَ عَبدٌ عَن سَيِّدِه بِاَمرِه فَعَتَقَ فَاَدَّاهُ اَو كَفَلَ سَيِّدُه وَاَدَّاهُ بَعدَ عِتقِه لَم يَرجِع وَاحِدٌ عَلَى الاٰخَر

**ترجمه**:که څوک ضامن شودمريي له طرفه دداسي مال چې دهغه په وجه دده مواخذه کيده دهغه له آزاديدو وروسته نوهغه فوري کيږي که څه هم ددي بيان يې نه وي کړی چې فوري دی ياغيرفوري دی اوکه يې دعوی وکړه دمريي درقبې اوبل سړی دهغه کفيل شوبيامريی مړشواومدعي په ګواهانوسره داثابته کړه چې دادده مريي وونوضامن کيږی دهغه دقيمت،اوکه يې دعوی وکړه پرمريي باندي دمال اوکفيل شويوڅوک دهغه دنفس بيامريی مړشونوکفيل بري کيږي اوکه مريی دخپل مولی کفيل شودهغه په امرسره اومريی آزادشوبياهغه دامال اداکړيامالک دمريي کفيل شواوهغه مال اداکړدمريي له آزاديدووروسته نويوپربل باندي به رجوع نه کوي.

**تشريح** :(۸)که يوسړی ديوه مريي له طرفه دداسي مال ضامن شوکوم چې تراوسه پوري لاپرهغه باندي واجب

الادانه دی بلکي له آزاديدووروسته يې دهغه پرذمه ادائيګی لازمه ده (مثلاً مريی دچادمال دهلاک کولواقراروکړاودهغه مولی دده تکذيب وکړ) نو داضمانت في الحال دی يعنې له کفيل څخه دمال کفاله في

الحال مضابه كيږي نودى بايدهغه ته دامال فوراً وركړي كه څه هم ضامن دانه يې ويلي چې زه في الحال دادائيګى ضامن يم ولى پرمريي باندې مال في الحال واجب دى ځكه سبب دوجوب (دغيردمال هلاک كولواقرار) موجوددى اودمريې ذمه دقبوليت قابله ده البته في الحال له مريې مطالبه ځكه نه كيږي چې مريى تنګدست او ناداردى ولى دمريې په لاس كې چې څه وي هغه ټول دهغه دمولى ملكيت دى.نوچې كله پرمريى باندې في الحال مال واجب دى نوپركفيل باندې هم مطالبه في الحال لازميږي اودكفيل په حق كې تاخيرهم نه كيږي ځكه كفيل دمريې په شان تنګدست نه دى.

(۹)كه دچاپه قبضه كې يومريى وويوبل چاپه هغه دعوى وكړه چې دامريى زمادى.اودريم سړى ددې مريې ضامن شويامريى مخكې له دې چې مدعى ته وسپارل شي مړشواودغه مدعي په ګواهانوسره ثابته كړه چې دامريى زماوونوكفيل دمريې دقيمت ضامن كيږي ولى كوم سړى چې پردغه مريې باندې قابض وو پرهغه باندې عين مريى واپس كول لازم وو البته هغه دعين مريي دواپس كولو څخه دعاجزكيدو په صورت كې دهغه قيمت واپس كول لازم دى اوكفيل كفالت وكړدهغه قسم واپس كيدو التزام يې وكړچې پرمدعى عليه باندې لازم وويعنې څرنګه چې له مرګه وروسته دمريې قيمت پراصيل باندې واجب پاتيږي نوهمدارنګه پركفيل باندې هم باقي پاتيږي.

(۱۰)كه چاپرمريې باندې دڅه اندازې مال دعوى وكړه (مثلاپه مريې يې دعوه وكړه چې تازمافلانى شى غصب كړى اوهلاک كړى دى) اويوبل سړى ددې مريې دنفس ضامن شويامريى مړشونودغه ضامن له ضمانت څخه بري كيږي ولې خپله مريى له مرګه وروسته بري كيږي چې مكفول عنه او اصيل دى اودمريى بري كيدل دضامن دبري كيدوسبب دى نوځكه ضامن هم بري كيږي.

(۱۱)كه يومريى دمولى په خبره دمولي ضامن شويا هغه مريى آزادشواوله آزادي وروسته يې دضمانت مال اداكړ،يادمريى له طرفه دهغه مولى ضامن شواودمريې له آزاديدووروسته مولى دضمانت مال اداكړنوپه دغودواړوصورتونوكې مريى يامولى داداكړاى شوي مال په باره كې يوپربل باندې رجوع نه شي كولاى ولى كوم وخت چې داكفالت واقع شوه نوپه هغه وخت كې يې داخبره نه ده واجبه كړې چې كفيل به مال اداكوي له اصيل څخه به يې واپس اخلي ځكه چې مولى پرخپل مريې باندې دقرض مستحق نه كيږي يعنې دمولى پرخپل مريې باندې قرض نه شي راتلاى ولى مريى سره له ټول مال دمولى ملكيت دى نوچې كله مولى دمريې له طرفه كفيل شي څه اداكوي نوهغه دمريې پرذمه باندې قرض نه كيږي اوچې كله په ابتداء كې داحكم دى نوچې مريى آزادشي هم عقدمذكورنه بدليږي، همدارنګه مريى هم پرخپل مولى باندې دقرض مستحق نه ګرزي ولى مريى له ټول مال سره دمولى ملكيت دى.

**فائده** :دامام زفر رحمه الله په نزدپه مذكوره صورت كې له مريې اومولى څخه هريوخپل مكفول عنه ته رجوع كولاى شي ولى دكفيل ومكفول عنه ته درجوع كولوسبب دادى چې كفاله دمكفول عنه په حكم سره شوې وي اودلته هغه سبب موجوددى البته دمريې اومولى يوپربل دقرض دمستحق كيدوڅخه رقيت مانع دى له آزادي وروسته دامانع هم نه پاتيږي نوځكه مولى مريې ته اومريى مولى ته درجوع كولواختيارلري.

## كتاب الحوالة

### داكتاب د حوالې په بيان كې دى

دكتاب الحواله له كتاب الكفالة سره د مناسبت وجه داده چې له كفيل او محال عليه څخه هريو پر خپل ځان هغه شى لازموي كوم چې پر اصيل باندې واجب وو او دواړو مقصد توثق او اعتماد دى يعني د كفالې او حوالې په ذريعه مكفول له او محتال له ته اطمينان وركول كيږي البته په حواله كې محيل بري كيږي په داسې حال كې چې په كفاله كې مكفول عنه نه بري كيږي ځكه نو كفاله په منزله د مفرد او حواله په منزله د مركب دى ځكه يې د حوالې بيان وروسته كړ.

حواله لغةً په معنى د زوال او نقل دى او په شريعت كې د وثوق او اعتماد لپاره د محيل له ذمې څخه د محتال عليه ذمې ته د دين منتقل كيدو ته حواله وايي يا په بل عبارت د مديون د خپل قرض بل څوك د هغه په اجازه سره ذمه دار جوړولو ته حواله وايي يعني قرض غوښتونكى به د مديون (پوروړي) پرځاى اوس له هغه شخص څخه خپل قرض وصولوي چا چې پر خپله ذمه حواله قبوله كړې ده .

**فائده** :په كتاب الحواله كې څو اصطلاحي الفاظ استعماليږي چې د هغو پيژندل ضروري دى :۱-محيل ،هغه مقروض دى چې قرض حوال كړي . ۲-محال،قرض غوښتونكي ته وايي چې محال،محتال له او محتال هم ورته وايي.۳-محتال عليه ،هغه چې پر خپل ځان حواله قبوله كړي . ۴-او محال به،هغه مال چې حواله كيږي .

(۱)هي نقل الدين من ذمة إلى ذمة (۲)وتصح في الدين لا في العين (۳)برضاء المحتال والمحتال عليه (۴)وبرئ المحيل بالقبول من الدين (۵)ولم يرجع المحتال على المحيل إلا بالتوى (۶)وهو أن يجحد الحوالة ويحلف ولا بينة له عليه أو يموت مفلسا.

**ترجمه** :هغه د قرض منتقل كول دى له يوې ذمې څخه بلې ذمې طرف ته،او صحيح دى په دين كې نه په عين كې ،د محتال او محتال عليه په رضامندي سره او بري كيږي محيل په قبول كولو سره له دين نه،او رجوع به نه كوي محتال پر محيل باندې مگر د حق د هلاكت په صورت كې ،او هغه دا چې محتال عليه د حوالې څخه انكار وكړي او قسم واخلي او محتال له پر هغه باندې گواهان نه لري،يا مړ شي محتال عليه د مفلسى په حالت كې .

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله د حوالې شرعي تعريف داسې كړى دى چې له يوې ذمې يعني(د محيل له ذمې څخه )بلې ذمې يعني (محتال عليه ذمې)ته د قرض منتقل كيدو ته حواله وايي،بيا په دې كې اختلاف دى چې د حوالې كيدو وروسته محيل چې څرنگه له مطالبې څخه بري كيږي همداراز نگه آيا له قرض څخه هم بري كيږي كه نه ؟ نو د ځينو مشائخو په نزد له دواړو څخه بري كيږي او د ځينو په نزد يوازې له مطالبې څخه بري كيږي له قرض څخه نه بري كيږي .

**فائده** :صحيح دا دى چې له دواړو څخه بري كيږي لما في الدر المنتقى :واذا تمت برئ المحيل بالقبول من الدين والمطالبة جميعا على الصحيح.(الدر المنتقى:۳/۲۰۵)

(۲) په قرضوکې حواله جائزه ده په اعيانوکې جائزه نه ده ولی حواله په معنی دنقل اوتحويل ده اونقل په ديونوکې ممکن دی په اعيانوکې امکان نه لري ولی دين غيرمتعين وي نوځکه يې محتال عليه هم اداکولای شي اوعين څرنګه چې متعين وي ځکه يې نوهغه څوک اداکولای شي له چاسره چې موجودوي.

(۳) قوله برضاء المحتال والمحتال عليه ای تصح الحوالة برضاء المحتال والمحتال عليه، يعنې حواله دمحتال له اومحتال عليه په رضامندي سره صحيح کېږي، دمحتال له رضامندي ځکه شرط ده چې قرض دهغه حق دی چې دحوالی په ذريعه له يوې ذمې څخه بلې ذمې ته منتقل کيږي اودخلکوذمې داداکولواوتروخت څنډولوپه اعتبارسره مختلفي دي (يعنې ځيني خلک دقرض په اداکولوکې خوراجدي وي اوځيني بيا له سستي اوکهالي څخه کاراخلي) نوپه حواله کې دمحتال له دضرراحتمال شته ځکه نو دمحتال له رضامندي شرط ده اودمحتال عليه رضامندي ځکه شرط ده چې په حواله کې دمحيل له طرفه پرمحتال عليه باندي ددين لازميدل راځي اولزوم بغيرالتزام نه شي راتلای يعنې ترڅوپوري چې محتال عليه پرخپل ځان دقرض التزام ونه کړي قرض نه پرلازميږي اوالتزام په رضامندي سره کيږي.

**فائده**: ديوه روايت مطابق دمحيل رضامندي هم شرط ده مګردامختارروايت نه دی، صحيح اومفتی به روايت دادی چې دحوالي دصحت لپاره دمحيل رضامندي شرط نه ده ولی محتال عليه چې پرخپل ځان قرض لازموي داپه خپل حق کې تصرف کوي چې په دي کې دمحيل هيڅ نقصان نشته بلکې دهغه فائده ده نوځکه دمحيل رضامندي ضروري نه ده واماالمحيل فالحوالة تصح بدون رضاه وهذاهو الصحيح وعليه الفتوی صرح به فی الدر المنتقی وقيل لابدمن رضاالمحيل ايضاوهو المديون والمختارعدم اشتراطه کمافی الشرنبلالية عن البرهان وکذارجحه صاحب الهداية حيث لم يقم الدليل الاعليه وعليه جری المصنف رحمه الله فتنبه. (انظر حاشية للشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله علی الهداية: ۳/۱۲۹)

(۴) حواله چې کله دمحتال له اومحتال عليه په قبلولوڅخه تامه شي نومحيل له قرض څخه بري کيږي يعنې بياقرض غوښتونکی مقروض ته درجوع حق نه لري ولی احکام شرعيه دلغوی معانيومطابق ثابتيږي اوپه لغت کې قرض له يوې ذمې څخه بلې ذمې ته منتقل کولوته حواله وايي نوقرض چې کله دمحيل له ذمې څخه دمحتال عليه دذمې طرف ته منتقل شونودمحيل پرذمه نه پاتيږي نوځکه محيل له قرض څخه بري کيږي.

**فائده**: امام زفر رحمه الله حواله پرکفاله باندي قياسوي چې لکه څرنګه چې په کفاله کې مکفول عنه له قرض څخه نه بري کيږي همدارنګه په حواله کې محيل له قرض څخه نه بري کيږي، امام زفر رحمه الله ته جواب ورکړل شوی دی چې حواله پرکفاله باندي قياسول صحيح نه دی، ولی کفاله ضمّ الذمة إلی ذمةٍ ته وايي اوحواله انتقال الدين من الذمة الی ذمةٍ ته وايي ددواړودمعانيوترمنځ فرق دی نوځکه يوپربل باندي قياسول صحيح نه دی.

(۵) قوله ولم يرجع المحتال علی المحيل ای اذاتمت الحوالة بالقبول برئ المحيل ولم يرجع المحتال بدينه علی المحيل بشیء، يعنې دحوالې له تاميدووروسته محتال له محيل ته درجوع حق نه لري بلکې له محتال عليه څخه دي دخپل حق مطالبه کوي مګرداکه دمحتال له حق فوت شي (چې دي ته توی وايي) مثلاً محتال عليه دحوالې انکاروکړي چې پرهغه باندي دمحتال له بينه هم نه وي يامحتال عليه مفلس مړشي نوپه دغه صورت کې

محتال له محیل ته درجوع حق لري ولی دمحیل بري کیدل مقید دی چې محتال له ته خپل حق سالم ورسیږي ولی له حوالې څخه مقصود دادی چې دمحتال له حق محفوظ وي چې کله مقصود حاصل نه شونو حواله نه پاتیږی نو ځکه محتال له محیل ته درجوع حق لري، دامام شافعي رحمه الله په نزد دحق دهلاکت په صورت کې محتال له هم محیل ته درجوع کولو حق نه لري.

(۶) دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دمحتال علیه حق له دوو شیانو څخه دیوه په موجودیدو سره راځي

**نمبر - ۱** محتال علیه چې دحوالې څخه انکار وکړي قسم واخلي په داسی حال کې چې دمحتال له او محیل سره دمحتال علیه ددعوی په خلاف ګواهان هم نه وي.

**نمبر - ۲** چې محتال علیه مفلس مړشي ولی په دي دوو صورتونو کې محتال له دخپل حق له وصولولو څخه عاجز کیږي ځکه نو محتال له محیل ته رجوع کولای شي.

**فائده**: دصاحبینو رحمهما الله په نزد له دي دوو خبرو سره په یوه بله دریمه خبره هم دمحتال علیه حق فوت کیدلای شي هغه داچې قاضي دمحتال علیه په ژوند کې دهغه دمفلس کیدو حکم وکړي چې داسړی مفلس دی ولې په دي صورت کې هم محتال له دخپل حق له وصولولو څخه عاجز کیږي.

**فائده**: دامام ابو حنیفة رحمه الله او صاحبینو رحمهما الله دغه اختلاف پر یوه بل اختلاف بادي مبني دی هغه دادی چې دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دحاکم په مفلس بللو سره افلاس نه ثابتیږی په داسي حال کې چې دصاحبینو رحمهما الله په نزد ثابتیږي، دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی لما فی الشامیة: وهذا بناء علی ان تفلیس القاضی یصح عندهما وعنده لا یصح لانه یتوهم ارتفاعه بحدوث مال له فلا یعود بتفلیس القاضی علی المحیل فتح وتعذر الاستیفاء لا یوجب الرجوع الاتری انه لو تعذر بغیبة المحتال علیه لا یرجع علی المحیل بخلاف موته مفلسا لخراب الذمة فیثبت التوی وتمامه فی الکفایة وظاهر کلامهم متونا وشروحا تصحیح قول الامام ونقل تصحیحه العلامة قاسم ولم ار من صحح قولهما. (رد المحتار: ۳/۳۲۶، کذا قال الشیخ عبد الحکیم الشاه ولیکوتی علی هامش الهدایة ۲/۱۳۰:)

(۷) فَإن طَلَبَ المحتالُ عَلیه المُحیل بِمَا احَالَ فَقَالَ المُحِیل أحَلتُ بِدَینٍ لِی عَلَیک ضَمِنَ المُحِیل مِثل الدَّین (۸) وَإن قَالَ المُحِیل لِلمحتَالِ أحَلتُک لِتَقبِضَه لِی فَقَالَ المحتالُ لابَل أحَلتَنِی بِدَینٍ لِی عَلَیک فَالقَولُ لِلمُحِیل (۹) وَلَو أحَالَ بِمَالَه عِندَ زَیدٍ وَدِیعَةً صَحَّت فَان هَلَکت بَرِیَٔ (۱۰) وَکُرِهَ السَّفَاتِج.

**ترجمه**: که چیرته مطالبه وکړه محتال علیه له محیل څخه دهغه چې ده حواله کړی وو او محیل وویل چې ما دهغه پور حواله کړي وه کوم چې زما پر تا باندي وو نو محیل ضامن ګرځي دمثل دین، او که چیرته محیل محتال ته وویل چې ما ددي لپاره حواله کړي وه چې ته زما قرض زما لپاره قبض کړي او محتال وویل نه بلکې تا دهغه دین حواله کړي وه چې زما پر تا باندي وو نو دمحیل قول معتبریږي او که حواله کړ هغه چې له زید سره امانت وو نو صحیح دی پس که چیرته هغه هلاک شوی وو نو محتال علیه بري کیږي او مکروه دی سفاتج.

**تشریح**: (۷) که محتال علیه دمحیل له طرفه دقرض اداکولو دعوه وکړه له محیل څخه یې دحوالې په اندازه مال طلب کړ محیل ورته وویل چې تاته خو ما حواله دخپل هغه قرض په عوض کې کړي وه کوم چې ستا پر ذمه وو نو ته ما ته درجوع حق نه لرې نو دمحیل قول نه قبلیږي بلکې محیل ددین په اندازه ضامن ګرځي ولی

دمحيل له طرفه: هغه په حكم سره دقرض دادا كولو په وجه دمحتال عليه درجوع دحق سبب متحقق شوى دى نوځكه محيل ددين په اندازه ضامن ګرځي باقي دمحيل له طرفه پرمحتال عليه باندي دقرض دعوى كول ځرنګه چې ګواهان نشته او محتال عليه منكردى اوقول دمنكرسره له قسمه معتبريږي ځكه نودمحيل قول نه معتبريږي.

(۸)كه محتال عليه دمحتال له قرض اداكړبيامحيل له محتال له څخه دهغه قرض مطالبه وكړه چې ده پرمحتال عليه باندي حواله كړى وويعني محيل به محتال له ته ووايي چې ماخوته يواځي دهغه دقرض دوصولولو لپاره وكيل ګرځولى وي چې ته هغه زمالپاره قرض كړي (لفظ دحواله دوكالت په معنى كې مجازًا مستعمليږي) اوس ځرنګه چې تاهغه قبض كړى دى نوماته يې راكړه ،مګرمحتال له انكاروكړاوويې ويل تادهغه دين په عوض حواله كړي وه كوم دين چې زماستاپرذمه لازم وو .نوپه دغه صورت كې دمحيل قول سره له قسم اخيستلومعتبريږى ولى محتال له پرمحيل باندي ددين دعوى كوي اومحيل منكردى اوقول دمنكرسره له يمين معتبريږي .

(۹)كه چاځيل هغه مال حواله كړچې له زيدسره يې دامانت په ډول ايښى وونوداحواله صحيح ده يعني محيل زيدته وويل چې ستاسره چې زماكوم امانت دى هغه راواخله دمحتال له چې كوم قرض پرمادى هغه اداكړه نوداحواله صحيح ده ولى په دى كې پرادائيګى باندي دمحتال عليه زيات قدرت شته ولى دمحيل له طرفه خپله دادا كولو مال موجوددى محتال عليه دمال دادائيګى لپاره دمال غوښتلوته ضرورت نه لري بياكه دغه له زيديعني محتال عليه سره هلاک شي نومحتال عليه له حوالې څخه بري كيږي ولى حواله په هغه مال سره مقيده وه كوم چې له محتال عليه سره امانت ووكله چې امانت نه شوپاتى نوحواله هم نه پاتيږي.ځكه نومحتال عليه برى كيږي اومحتال له دخپل قرض په باره كې اوس محيل ته رجوع كوي.

(۱۰)سفاتج دسُفتَجة (بضم السين فتح الباء)جمع ده په معنى دشى محكم .دفقهاؤ په اصطلاح كې سفتجه داده چې مقرض په دي شرط مستقرض ته قرض وركړي چې بيامستقرض دغه قرض په هغه ښاركې اداكوي په كوم ښاركې چې يې مقرض غواړي چې دمقرض مال دلارې له خطري څخه محفوظ شي.ددې صورت دادى چې مثلازيدپه كراچي كې كاروباركوي له كوئټې نه يومسافركراچي ته ورغى زيدهغه ته لس زره روپۍ وركړي ورته وې ويل په دي سره دلته كاروباروكړه چې كوئټې ته ولاړشي هلته يې زماوكيل ته وركړه ولى په دي صورت كې دقرض وركوونكي فائده داده چې لس زره روپۍ پخپله له كراچي څخه كوئټې ته دراوړلوپه صورت كې په لاره كې خطره شته نوده هغه بل سړي ته قرض وركړې دلاري له خطرى څخه يې محفوظې كړې ،اودكوم قرض څخه ګټه اخيستله كيږي په حديث شريف كې دهغه ممانعت راغلى دى ځكه نوداصورت مكروه دى .

**فائده** :مولاناخالدسيف الله رحمانى صاحب مدظله ليكلي دي چې دمالكيه ؤپه نزدمكروه دى خوكه چيرته خطره عامه وه اوله يوه ښارڅخه بل ښارته دمال وړل عمومًاپه خطره كي وونوبياجائزده.له امام احمد رحمه الله څخه دواړه قولونه منقول دي مګردحنابله ؤپه نزددمصلحت لپاره جوازته ترجيح وركول شوي ده په اوسنى

زمانه کې سفري ډرافټ حواله وغیره دسفتجه په حکم کې دي اوپه موجوده زمانه کې دامنیت دنشتوالي اوعدم تحفظ په وجه دحنابله ؤاومالکیه ؤپه رایه باندي په عمل کولو کې قباحت نشته هذا ماعندي والله اعلم بالصواب (قاموس الفقه :۴/ ۱۵۵) دد په باره کې دحضرت مولانامحمدتقي عثماني صاحب په دتقریرترمذي په حواله مخکې نقل شوې ده.

## كتاب القضاء

دكتاب القضاء له ماقبل سره مناسبت دادی چې لکه څرنګه چې په بیوعواوکفالاتووغیره کې داکثره خلکوترمنځ جنجالونه رامنځ ته کیږي اوپه قضاء سره دخلکوجګړې ختمیږي څکه نومصنف رحمه الله دبیوعووغیره له تفصیل بیانولووروسته دقضاء احکام بیان کړي دي. دقضاء لغوي معنی فیصله کول، یوشی مضبوط کول، یوشی خپل انتهاء ته رسول او اداکول، اودشریعت په اصطلاح کې قضاء هغه قول ملزم دی چې له ولایت عامه څخه صادروی یعني داقول چې له چاڅخه صادریږي هغه به ولایت عامه لري اودهغه داقول به پرمخاطب لازم وي.

**فائده**: دقضاء مناسب څواصطلاحي الفاظ دي چې پیژندل یې ضروري دی :۱-قاضي. یعنې حکم کوونکی جګړه ختموونکی ۲-مقضی به. یعنې هغه دلیل چې قاضی یې دخپلې فیصلې لپاره بنیادوګرځوي ۳-مقضی له. دچاچې حق پربل باندي ثابت شي. ۴-مقضی علیه. پرچاباندې چې دبل حق ثبت شي.

**فائده**: دقضاء لپاره شپږشرطونه دي چې ابن الغرس په لاندي نظم کې بیان کړي دي :

اطراف كل قضية حكمية: ست يلوح بعدها التحقيق:

حكم ومحكوم به وله: ومحكوم عليه وحاكم وطريق. (المختصر الضروري: ص ۲۹۳)

(۱) أهله أهل للشهادة (۲) والفاسق أهل للقضاء كماهو أهل للشهادة إلا أنه لاينبغي أن يقلد (۳) ولو كان القاضي عدلا ففسق بأخذ الرشوة لاينعزل ويستحق العزل (۴) وإذا أخذ القضاء بالرشوة لايصير قاضيا (۵) والفاسق يصلح مفتيا وقيل لا.

**ترجمه**: اهل قضاء هغه څوک دی چې اهل دشهادت وي، اوفاسق هم اهل قضاء دی لکه چې اهل دشهادت دی مګرمناسبه نه ده چې هغه قاضي مقررشي که قاضي عادل وو بیادرشوة په اخیستو سره فاسق شونونه معزولیږي اودمعزولیدو مستحق ګرځي اوچې کله واخلي عهده دقضاء درشوة په ذریعه نوقاضي نه کیږي، اوفاسق مفتي کیدای شي اوچاویلي دي چې نه شي کیدای.

**تشریح**: (۱) دقاضي مقررکیدواهل هغه څوک دی په چاکې چې دشهادت شرطونه جمع وي مثلاعاقل، بالغ، مسلمان وغیر. کیدل، وجه یې داده چې حکم دشهادت هم دقضاء له حکم څخه مستفاددی ولی قضاء اوشهادت هریودولایت قسم دی یعنې قاضي اوشاهددواړه خپل قول پرغیرباندي نافذوي البته دواړوترمنځ فرق دادی چې ګواه پرقاضي باندي فیصله کول لازموي اوقاضي خپل حکم پرخصم باندي لازموي څکه نوڅوک چې دشهادت لائق وي هغه دقضاء هم لائق دی اوکوم شرطونه چې دشهادت دي هغه شرطونه دقضاء هم دي.

**فائده** :دشرعي شرطونو په مراعاتولو سره چې دوخت حکومت دمسلمانانو دشخړو دحل کولو لپاره مجسټریټ یا جج مقرر کړي هغه دشرعي قاضي قائم مقام ګرځي . (حقانیه :۵/۲۶۲)

(۲)او فاسق دقاضي کیدو اهل دی لکه چې هغه دګواهي ورکولو اهل دی او دا خبره تیره شوه چې څوک لائق دشهادت وي هغه لائق دقضاء هم دی خو فاسق قاضي جوړول مناسب نه دی ولی قضاء دامانت له قبیل څخه ده او فاسق دفسق په وجه دامانت داري لائق نه دی .

**فائده** :مګر دائمه ثلاثه ؤ په نزد فاسق سړی قاضي مقررول جائز نه دی ځکه پر فاسق باندي دهغه دفسق په وجه

اعتماد نه کړل کیږي ،له احنافو څخه امام طحاوي رحمه الله هم همدا قول اختیار کړی دی ،زموږ له ائمه ثلاثه ؤ څخه هم یو روایت داسي منقول دی ،ویل کیږي چې په اوسنی زمانه کې فتوی پر همدي قول باندي ورکول پکار دی، مګر دځینو حضراتو رایه داده چې که دفاسق قاضي کیدل ناجائز وبلل شي نو دقضاء دروازه بندیږي خاص بیا په موجوده زمانه کې ځکه نو هغه چې مصنف رحمه الله ذکر کړی دی هغه اصح دی لمافی الشامیة (قوله والفاسق اهلها) ..........والفصح بهذه الجملة دفعا لتوهم من قال ان الفاسق لیس باهل للقضاء فلایصح قضائه لانه لایومن علیه لفسقه وهو قول الثلاثة واختاره الطحاوی قال العینی وینبغی ان یفتی به خصوصافی هذاالزمان ،اقول لواعتبر هذا لانسد باب القضاء خصوصافی زماننا فلذا کان ماجری علیه المصنف هو الاصح کمافی الخلاصة وهو اصح الاقاویل کمافی العمادیة.(ردالمحتار: ۴/۳۲۳)

(۳)که ابتداءً قاضي عادل وي بیا درشوة په اخیستو یا دیوې بلې کبیره ګناه په وجه فاسق شي نو دی دقضاء له دندې څخه نه معزول کیږي ولی فاسق اهل شهادت دی او څوک چې اهل شهادت وي هغه قاضي ګرځیدای شي ،نو چې په ابتداء امر کې فاسق شخص قاضي ګرځیدای شي انتهاء دفسق په طاري کیدو سره په طریقه اولی قاضي نه معزول کیږي ،ځکه داقاعده ده چې ابتداء امر دانتهاء امر په مقابل کې آسانه وي ،البته دفسق درا تلو په وجه پر باچا باندي دهغه معزول کیدل واجب دی خو تر څو پوري چې معزول شوی نه وي تر هغه پوري چې یې په رشوت وغیره سره کوم حکم کړی دی هغه نافذیږي ،واستحسنه فی الفتح وینبغی اعتماده للضرورة فی هذا الزمان والابطلت جمیع القضایا الواقعة الان لانه لاتخلو قضیة عن اخذ القاضی فی الرشوة المسماة بالمحصول قبل الحکم اوبعده فیلزم تعطیل الاحکام. (ردالمحتار: ۴/۳۲۸)

(۴)که یو چالاکه افسرته رشوة ورکړ خپل ځان یې قاضي مقرر کړ نو داسړی نه قاضي کیږي بیا که هغه دکوم عقد حکم وکړ یا یې یو عقد فسخ کړ نو دهغه داتصرفات نه نافذ کیږي ولی نبی کریم ﷺ پر راشي او مرتشي باندي لعنت ویلی دی ،قال العلامة ابن عابدین رحمه الله :اذااخذالقضاء بالرشوة لایصیر قاضیا کمافی الکنز قال فی البحر وهو الصحیح ولوقضی لم ینفذ وبه یفتی.(ردالمحتار: ۴/۳۲۸)

**فائده** :ځینی خلک درشوت په ورکولو سره نوکري حاصلوي ،په داسی حال کې چې رشوت اخیستل او ورکول دواړه حرام دي، خو ځینی خلک رشوت ورکولو ته مجبور کیږي له رشوت بغیر نوکري حاصلول مشکله وي سرکاري افسران خندونه ورته جوړوي په داسي صورت کې که دظلم ددفع لپاره رشوت ورکړل شي نو امید دی چې الله تعالی به یې مواخذه نه کوي ،او داچې درشوت په ورکولو سره نوکري حاصله کړي نو دهغه سړي

دتنخواه حکم دادی چې که چیرته دغه سړی دکاراهلیت ولري اوکوم کارچې هغه ته ورسپارل شوی وي هغه سم ترسره کوي نودهغه تنخواه حلاله ده اوکه هغه دکاراهلیت نه لري یاکارسم نه شي ترسره کولای نوتنخواه يې حلاله نه ده . (جدید معاملات شرعی احکام :۱/ ۱۷۹)

(۵)فاسق سړی مفتي کیدای شي که نه ؟په دي مسئله کې اختلاف دی ،دځینوعلماؤرايه داده چې فاسق مفتي کیدای شی ولی غلطي ته دمنسوب کیدوله ویري فاسق دصحیح مسئلي ښودلوکوشش کوي نوځکه دفاسق مفتي کیدل صحیح دی،دځینوحضراتورایه داده چې فاسق مفتي نه شي کیدای یعنې دفاسق پرفتوی باندي اعتمادنه شي کیدای ولی فتوی ورکول له دینی امورو څخه ده اوپه دیني امورو کې دفاسق خبرمقبول نه دی ،همداقول صحیح دی :لمافي الدّرالمحتار (والفاسق لايصلح مفتيا) لان الفتوى من امور الدين والفاسق لايقبل قوله في الديانات ابن ملك ،زاد العيني واختاره كثيرمن المتاخرين وجزم به صاحب المجمع في متنه وله في شرحه عبارات بليغة وهو قول الائمة الثلاثة ايضا وظاهر مافي التحرير انه لايحل استفتاؤه اتفاقا كمابسطه المصنف (الدّرالمختار على هامش الشامية:۴/ ۳۳۵)

(۶)وَلاَيَنبغِي اَن يَكُونَ القَاضِي فَظًّاغَلِيظًاجَبَّارًا عَنِيدًاوَيَنبَغِي اَن يَكُونَ مَوثُوقًا بِهِ فِي عَفَافِهِ وعَقلِهِ وَصَلَاحِهِ وَفَهمِهِ وَعِلمِهِ بِالسُّنَّةِ وَالآثَارِ وَوُجُوهِ الفِقهِ (۷)وَالاِجتِهَادُ شَرطُ الاَولَوِيَّةِ (۸)وَالمُفتِي يَنبَغِي اَن يَكُونَ هٰكَذَا.

**ترجمه** :اومناسب دی چې قاضي سخت مزاج،دبرزړی،جابراودښمني کوونکی نه وي اومناسب دی چې قابل اعتمادوي له حرامو څخه دځان ساتني په باره کې اوپه عقل اواصلاح اوفهم کې اوداحادیثواوصحابه کرامو داقوالواووجوه فقه دواقف کیدوپه باره کې اومجتهدکیدل داولویت شرط دی اومفتي مناسب دی چې همداسي وي .

**تشريح** :(۶)اومناسب نه دی چې قاضي بدمزاج ،دبرزړی،جابرله حق اواهل حق سره عنادساتونکی وي ولی له قضاء څخه مقصود دفع دفسادده په داسی حال کې چې داصفات خپله عین فساددی،بلکې قاضي بایدداسی شخص وي چې دمحرماتو څخه دپرهیز کولوپه وجه دخلکوپرهغه اعتمادوي، همدارنګه دهغه پرعقل،دهغه پرصالح کیدو دهغه پرفهم دخلکواعتمادوي اوپردي دخلکواعتمادوي چې هغه په سنتواوآثار صحابه کرامواووجوه فقه (هغه طریقې چې فقه ورڅخه استنباطیږی) باندي واقف دی چې سبب داصلاح وي نه دفساد.

(۷)اودقاضی مجتهدکیدل داولویت شرط دی دجوازشرط نه دی یعنې دقاضی ګرځیدولپاره مجتهدکیدل شرط نه دی بلکې اولی دادی چې قاضي مجتهدوي ،نوځکه زموږپه نزددغیرمجتهد قاضی تاکل جائزدی ولی دامکنه ده چې غیرمجتهدقاضی دیومجتهدقاضی په حکم سره قضاء جاری کړي نوخپله دقاضی مجتهدکیدل ضروري نه دی په داسی حال کې چې دائمه ثلاثه ؤ(امام مالک رحمه الله ،امام شافعی رحمه الله اوامام احمدابن حنبل رحمه الله )په نزددغیرمجتهدقاضي کیدل ناجائزدی ،اوله قاضی مجتهدڅخه مراد داسی څوک دی چې دحادثه دوقوع په وخت دمسئلې حکم له نصوصو څخه معلومولای شي .

(۸)اومناسب دی چې په مفتی کې هم دقاضی بالامذکورصفات پیدا شي یعنې بدمزاج،سخت زړی ،جابرله حق اواهل حق سره عنادساتونکی نه وي بلکې مفتی بایدداسي څوک وي چې له حرامو څخه دپرهیزکولو په وجه پري دخلکواعتمادوي همدارنګه دهغه پرعقل،دهغه په صالح کیدو دهغه پرفهم، اوپردي

د. نکوا .. ماد ي چې هغه په سنتو او آثارصحابه باندي واقف دی اوپردي دخلکو اعتماد وي چې په وجو
فق . (يعنې هغه طريقې چې فقه ورڅخه استنباطيږی ) باندي واقف دی چې سبب داصلاح وي سبب دفساد نه
وي .

**فائده** :..اصوليينو په نزد مفتي هغه دی چې مجتهد وي او ځوک چې مجتهد نه وي بلکې دائمه وُ داقوالو په
نقل کولو سره دمسئلی حکم بيانوي هغه داصوليينو په نزد مفتي نه دی بلکې ناقل دی يعنې دمفتيانو دکلام
نقل کوونکی دی، څرنګه چې په دي زمانه کې دمجتهد قاضی او مفتي پيدا کيدل مشکل دی ځکه نو دهدي
زمانې ناقلين ددي وخت مفتيان شمارل کيږي .

(۹) وَكُرِهَ التَقلُّدلمن خافَ الحيف (۱۰) وَإن امِنه لا (۱۱) وَلا يسأله (۱۲) وَيَجوزُ تَقَلُّدُ القضاء من السُّلطان العَادِلِ وَالجَائِرِ (۱۳) وَمِن أهلِ البغي (۱۴) فإن تقلد يسأل ديوان قاضٍ قبله وَهوَ الخرائطُ التي فيها السجلات وَالمَحَاضِرُ وَغيرهما (۱۵) وَيَنظُرُ في حَالِ المَحبوسِين فَمَن أقرّ بحقٍّ او قامت عليه بينة ألزمه (۱۶) وَالا نادى عليه (۱۷) وَعَمِلَ في الوَدَائعِ وَغَلّاتِ الوَقفِ بِبَيِّنَةٍ وَإقرارٍ (۱۸) وَلَم يَعمَل بِقَولِ المَعزولِ الا أن يُقِرَّ ذو اليد أنه سَلَّمَهَا إليه فيقبل قوله فيها.

**ترجمه** :او مکروه دی عهده دقضاء قبلول دهغه چالپاره چې دظلم کولو ويره وي ورڅخه، او که له ظلم نه په امن
وونو بيانه دی مکروه، او طلب دي نه کوي دعهده قضاء، او جائز دی عهده دقضاء قبلول له عادل او ظالم
پاچاڅخه او له باغيانو څخه، بيا چې کله قاضي شي نو طلب دي کړي دسابقه قاضی دفتر چې هغه بستی ده چې
پکي داحکامو رجستر ليکنې وغيره وي بيا دي دبنديانو دحالاتو جاج واخلي کوم بندي چې اقرار وکړي دحق
يا ګواهان قائم شي پر هغه نو پر هغه دي حق لازم کړي که نه د هغه په باره کې دی قاضي اعلان وکړي او عمل دي
وکړي په اماناتو کې او دوقف په پيداوار کې دګواهانو داقرار مطابق او عمل دي نه کوي دمعزول قاضي په
قول مګر داکه

قابض اقرار وکړي چې داوده ته معزول قاضي ورکړی دی نو په دي صورت کې دي دهغه قول قبول کړي .

**تشريح** :(۹) ځوک چې پخپل ځان داباور نه لري چې دقضاء په حکم کې دی له ظلم څخه وساتل شي يعنې
داويره وي چې زه به مشروع طريقه سره خپل فرض نه شم اداکولای بلکې دغيرمشروع اعمالو مرتکب کيږم
نو دداسي چالپاره قاضي مقررکيدل مکروه تحريمی دی ولی دادول ځوک چې قاضي شي نو دظلم سبب ګرځي
او ظلم يو ډير قبيح عمل دی نو سبب ګرځيدل يې هم قبيح دی .

(۱۰) دداسي چالپاره قاضي مقررکيدل هيڅ باک نه لري ځوک چې پر خپل ځان باور لري چې زه خپل
فرض اداکولای شم يعنې دشريعت داصولو مطابق حکم کولای شم ولی ډيرو صحابه کرامو او تابيعنو رحمهم الله
دقضاء عهده قبوله کړي ده چې دهغوئ پيشوائي زموږ لپاره کافي ده .

**فائده** :دځينو حضراتو رايه داده چې پر خپل ځان يې دظلم نه کولو باوروي بيا هم دقضاء منصب قبلول
مکروه دی ولي ډيرو امامانو (لکه امام ابو حنيفة رحمه الله او امام شعبی رحمه الله ) دقضاء له عهده قبلولو څخه
انکار کړی دی روايت دی چې له امام صاحب رحمه الله څخه دري ځله دقضاء دمنصب قبلولو غوښتنه شوې ده

هرڅل به هغه انکارکاوه چې په نتيجه کې به هرڅل ديرش دري وهل کيده ،وقال النبي ﷺ :مَن جُعِل علَى القضاء فكأنما ذبح بغيرسكين) يعنې څوک چې دقضاء پرمنصب مقررکړای شي نوګواکې هغه بې له چړې حلال کړای شو) .(الدّر المختار على هامش ردّ المحتار : ۳۴۲/۴)

**فائده** :مګرصحيح داده چې که څوک دقضاء اهل وي اوپرخپل ځان يې باوروونوهغه لره به دي تمه دقضاء عهده قبلولو رخصت شته چې عدل به قائم کړي خوپرترک باندي هم عزيمت دی،خو که څوک دقضاء دمنصب اهل وو اوپه بل چاکې اهليت نه وونوپردغه سړي باندي دهغه منصب قبلول فرض عين دی او که له ده پرته نوراهل علماء هم وونوبيا دهغه قبلول فرض کفايه دی کمافي الدّرالمختار (وان تعين له او امنه لا) يكره فتح ثم ان انحصر فرض عين او الا كفاية ،بحر (والتقلد رخصة) اى مباح (والترك عزيمة عندالعامة) بزازية ،فالاولى عدمه (ويحرم على غير الاهل الدخول فيه قطعا) من غير تردد في الحرمة (الدّر المختار على هامش الشامية: ۳۴۲/۴)

(۱۱)انسان ته پکار دی چې دولايت قضاء طلب نه په زړه سره وکړي اونه دهغه طلب اودرخواست په ژبه سره وکړي لقوله ﷺ :من طَلَبَ القَضاءَ وُكِّلَ اِلى نفسه وَمَن اُجبِرَ عَلَيهِ نَزَلَ عَلَيهِ مَلَكٌ يُسَدِّده (يعنې که چادقضاء طلب وکړنوهغه دخپل نفس پراعتمادباندي پريښودل کيږي اوڅوک چې دقضاء منصب ته مجبورکړای شي نوپرهغه باندي يوه فرشته نازليږي چې هغه پرسمه لاربرابروساتي) دقضاء دمنصب طلبوونکی خپل نفس ته مفوّض کيږي اونفس خولَاَمَّارَةٌ بِالسُّوءِ دی نوداسې څوک به ضروررسوا کيږي .

(۱۲)اودباچاله طرفه دقضاء منصب اخيستل جائزدی که هغه عادل وي او که ظالم ولی سلفوله مشهورظالم حجاج بن يوسف څخه دقضاء منصب قبوله کړي وه په دي شرط چې دهغه يقين وي چې زه په فيصله کولو کې آزاديم زه به ناحقه فيصلې کولوته نه مجبورکيږم بياکه دچايقين وي چې دظالم پاچاپه زه دحق فيصله نه شم کولای نوبيا جائزنه دی .

(۱۳)همدارنګه له باغيانوڅخه دقضاء عهده اخيستل هم جائزدی ځکه صحابه کرامو دحضرت معاويه ﷺ له طرفه دقضاء عهده قبوله کړي وه اوداخبره معلومه ده چې دحضرت علي ﷺ په خلافت کې حضرت معاويه ﷺ په بغاوت کې دشام حاکم ووکه څه هم حضرت معاويه ﷺ په دي شبهه سره دحضرت علي ﷺ له خلافت څخه انکارکړی وودحضرت عثمان ﷺ له قاتلانوڅخه دقصاص په اخيستوکې ځنډراغی ځکه نوددي شبهې په وجه خطاء معاف ده مګرحق په هرحال دحضرت علي ﷺ په خواوو .

(۱۴)يعنې کوم څوک چې قاضي مقررکړی شي دهغه اول عمل به داوي چې دسابقه قاضي ديوان به طلبوي (له ديوان څخه مراددپوستکي هغه کڅوړه ده چې دحفاظت په دول رجسترا وکاغذان په ساتلي اوخوله يې بنده وي ) ځکه ديوان ددي لپاره وي چې دحاجت په وخت حجة وي نوچالره چې ولايت دقضاء حاصل وي دهغه په قبضه کې ورکول کيږي .

**فائده** :سجلات دسجل جمع ده درجستر په معنی دکاغذانوهغه مجموعه چې پکې کومه خبره دياداشت لپاره ليکله کيږي يادعدالتي فيصلو دردج کتاب يارجسترياد معاهداتو اومعاملاتو د درج کولو سرکاري رجستر، محاضر ، دمحضرجمع ده هغه کاغذچې پکې دمتخاصمينو (فريقينو) خصومت تحريروي چې دقاضي په

مهرسره مزين شوی وي يا هغه کاغذ چې پر هغه باندي دکومي خبرې لپاره خلک خپل دستخطونه او مهرونه لگوي.

(۱۵) او نوی قاضي بايد اول دبنديانو حال واخلي ولی قاضی دمسلمانانو نگران مقرر شوی دی چې دهغه کار تقاضا داده چې کوم مسلمان په زندان کې وي تر هغه پوري دهغه دهغه پوښتنه وکړي تحقيق او څېړنه وکړي چې ولي او په څه بندي شوی يې، بيا که کوم بندي پر خپل ځان باندي دچا دحق اقرار وکړ نو دغه قاضي به داحق دهغه دا قرار په وجه لازم کړي ولی دعاقل بالغ اقرار کول ملزم دی همدارنگه که پر کوم بندي باندي گواهانو گواهي ورکړه نو دحجت دقائميدو په وجه به پر هغه باندي هم مشهود به لازم کړي.

(۱۶) قوله والايناد عليه ای وان لم يقرالمحبوس بشئ اولم يکن عليه بينة، يعني که کوم بندي ووېل چې پر ما باندي هيڅ حق نشته بلا وجه بندي يم او پر دغه بندي باندي گواهان هم قائم نه وو نو نوی قاضي به دهغه په خوشي کيدو کې تلوار نه کوي بلکې انتظار دي وکړي او په مجموع گانو او بازارانو کې به دا اعلانات وکړي چې که دچا حق پر هغه باندي وي نو حاضر دي شي ځکه په تلوار کولو کې داسي پيښه نه شي چې دچا حق ضائع شي، بيا که هيڅ مدعي حاضر نه شو نو قاضي به له هغه څخه ضمانت واخلي هغه به بري کړي.

(۱۷) نوي قاضي لره پکار دی چې دو دائعو (هغو امانتونو چې معزول شوي قاضي امينانو ته په قبضه کې ورکړي وي) او دوقف دحاصلاتو تحقيق وکړي يعني ودي گوري چې دشرائطو موافق تقسيمېږي که نه، پر دو ائعو وغيره باندي چې په څه دول گواهان قائم وی يا دچا په قبضه کې وي هغه ددي اعتراف وکړي دهغه مطابق عمل دي وکړي ولی گواه او اعتراف هريو حجت دی.

(۱۸) ددي په باره کې هم دمعزول قاضي قول معتبر نه دی ځکه چې معزول قاضی اوس يو عام وګړی دی او ديوه وګړي گواهي معتبره نه ده، مگر دا چې دچا په لاس کې ودائع يا حاصلات وقف وی هغه ددي اعتراف وکړي چې ماته معزول قاضي سپارلي ووزه مودَع او معزول قاضی مودِع دی په دغه صورت کې دمعزول قاضی قول قبليږی ځکه دمودَع قبضه دمودِع قبضه شمارله کيږي نو گواکي وديعت دمعزول قاضي په قبضه کې دی لهذا دهغه قول معتبريږي.

(۱۹) وَيَقضِي فِي المَسجِدِ أَو دَارِهِ (۲۰) وَيَرُدُّ هَدِيَّةً إِلَّا مِن قَرِيبِهِ أَو مِمَّن جَرَت عَادَتُهُ بِذَالِكَ (۲۱) وَدَعوَةً خَاصَّةً (۲۲) وَيَشهَدُ الجَنَازَةَ وَيَعُودُ المَرِيضَ (۲۳) وَيُسَوِّي جُلُوسَهُمَا وَإِقبَالًا (۲۴) وَيَتَّقِي عَن مُسَارَّةِ أَحَدِهِمَا وَاشَارَتِهِ وَتَلقِينِ حُجَّتِهِ (۲۵) وَضِيَافَتِهِ (۲۶) وَالمِزَاحِ (۲۷) وَتَلقِينَ الشَّاهِدِ

**ترجمه**: او فيصله دي کومي په مسجد کي يا پخپل کور کي، او ردوي دي هديه مگر دخپل قريب يا دهغه چاچې هديه ورکول يې له وخته عادت وو او رد دي کړي خاص دعوت، او جنازي ته دي حاضريږي او عيادت دي کوي دناروغ او برابري دي کوي دد واړو تر منځ په کښيناستلو کې او دتوجه په اعتبار سره او احتراز دي کوي له يوه سره دگوښه کيدو نه او اشاره کولو نه او ددليل له تلقين کولو څخه او له ميلمستيا کولو څخه او له مسخرو څخه او دگواه له تلقين څخه.

**تشریح** :(۱۹)قاضی ته پکاردی چې دفیصلی په وخت سرعام په مسجدکې کښینې اودبنارپه منځ کې دي یومسجدانتخاب کړی یادي پخپل کورکې کښېني ولی نبي کريم ﷺ اوخلفاءراشدینودخلکوترمنځ فیصلی په مسجدکې کولي ،همدارنګه په دي کې دخلکولپاره آسانتیا هم ده خاص بیادمسافرواوله دباندي ځخه دراتلونکوخلکولپاره .

**فائده** :دامام شافعی رحمه الله په نزددقاضی دمقدماتودسماعت لپاره په مسجدکې کښیناستل مکروه دی ولی په دی صورت کې دمشرک اوحائضی دداخلیدوضرورت پیښیږی حال داچې مشرک نجس دی اودنجس مسجدته داخلیدل ممنوع دی همدارنګه حائضه هم مسجدته نه شي داخلیدای ،امام شافعی رحمه الله ته جواب ورکړل شوی دی چې دمشرک عقیده نجسه ده بدن یې نجس نه دی اواعتقادي نجاست مسجدته دداخلیدومانع نه دی نوځکه مشرک مسجدته داخلیدای شي،اوحائضه ښځه به خپل حال قاضی ته ورواستوي چې هغه دمسجددروازي ته راشي دهغې فیصله به وکړي یادي قاضي یوڅوک خپل نائب وټاکي ترمسجددباندي به فیصله وکړي . (هدایه :۳/ ۱۳۵)

**فائده** :دقاضی لپاره داخبره هم مناسبه ده چې ترفیصله مخکي دفریقینوترمنځ دصلح کولوکوشش وکړي ولی صلح بهتره ده ځکه دقاضی ذمه داري دمنازعاتواوشخړوختمول دی اوداکاردصلح په ذریعه کیدلای شي ځکه چې فیصله دیوه فریق په حق کې کیږي دهغه بل په مخالفت کې په دی سره ددواړوفریقینوترمنځ نزاع نه ختمیږي بلکې په دي سره بغض اوعداوت پیداکیږي كقوله تعالى: فلاجناح عليهماان يصلحابينهماصلحاوالصلح خير)سورة النساء:۱۲۸ )جدید معاملات کی شرعی احکام :۲/ ۱۳۴)

(۲۰)قاضی دي دهیچاهدیه نه قبلوي چې دقضاء په وجه ورډی خوړونکی نه شي،ځکه دایوډول رشوت دی نوله دي ځخه دي اجتناب وکړي ،البته له خپلو محرمینوهدیه اخیستلای شي ولی دذی رحم محرم هدیه اخیستل صله رحمي ده اوصله رحمي شرعًامطلوب دی ،همدارنګه دداسي چاهدیه اخیستلای شي دچاسره چې پخواترقاضی کیدودهدیه اخیستلوعادت وو ولی دغه هدیه داسی معلومیږی چې دقاضی کیدوپه وجه نه ده بلکې دسابقه عادت په وجه دی نودداسي چاهدیه اخیستل جائزه ده همدااحکم له چاځخه دقرض اخیستلواو

استعارتًایوشی غوښتلوهم دی .

**فائده** :خوکه دقاضی دیوه قریب مقدمه زیرسماعت وي یادهغه چامقدمه وي چې له پخواځخه یې هدیه ورکول عادت جاري وونوقاضی دي دهغوئ هدیه هم نه قبلوي ولی معلومیږي چې په دي وخت کې دهغوئ له طرفه هدیه هم دهغه دقاضی کیدوپه وجه ده نوله دي ځخه پرهیزکول پکاردی . (ردالمحتار :۴/ ۳۴۶)

(۲۱)قوله ودعوة خاصة،ای یرد ولایحضردعوة خاصة،یعني قاضی دي دچاخاص دعوة ته نه ورځي مګرداکه دعوة عام وویا ورتلای شي ولی خاص دعوة دهغه دقاضی کیدوپه وجه کیږي نودهغه په قبلیدوکې متهم کیږي خلاف له عام دعوت نه چې دهغه په قبلیدوکې هیڅ تهمت نشته نوپه عام دعوت کې شرکت کولای شي.

**فائده** :دخاص اوعام دعوت ترمنځ فرق ځینوحضراتوداسې بیان کړی دی چې په کوم دعوت کې پنځه ترلسوپورې کسان شریک وي هغه خاص دعوت دی اوپه کوم کې چې ترلس زیات کسان شریک وي هغه عام دعوت دی مګرصحیح داده چې خاص دعوت هغه دی چې که چیرته داعي ته معلومه شی چې قاضی نه راځي نودعوت معطل کوي اوعام دعوت هغه دی چې دقاضی په راتګ اونه راتګ سره نه معطل کیږي ،دعوة خاصة وهي التي لايتخذها صاحبها لولاحضور القاضي هذاهو الصحيح في تفسيرها (الدرالمحتارمع الشامية: ۳/۳۷۴)

(۲۲)قاضی دمسلمان په جنازه کې شرکت کولای شي همدارنګه دناروغانو عیادت هم کولای شي ولی دادمسلمانانوله حقوقوڅخه دي دنبي کریم ﷺ ارشاددی چې دیوه مسلمان پربل مسلمان باندې شپږحقوق دي چې کله دعوت ورکړي نوهغه به قبلوي چې کله مریض شي نودهغه عیادت به کوي چې کله وفات شي نودهغه په جنازه کې به شرکت کوي چې کله ورسره مخ شي نوسلام به وراچوي چې کله خیرخواهي طلب کړي نودهغه خیرخواهي به کوي اوچې کله پرنج ورشي نوپه یرحمک الله سره به جواب ورکوي.

(۲۳)کله چې مدعی اومدعی علیه دواړه حاضرشي نوددواړوپه کښیناستلواوتوجه کولوکې به برابري کوي یعنې چې کله یوپریوه ځای کښینوي نوهغه بل به هم پرهغه ځای کښینوي اودواړوته دي په یوډول متوجه وي لقوله ﷺ من ابتلي بالقضاء بين المسلمين فليسو بينهم في المجلس والاشارة والنظر ولايرفع صوته على احدالخصمين اكثرمن الاخر(یعنې څوک چې دمسلمانانوترمنځ دقضاء په منصب سره مبتلاکړای شي نوهغه دي دفریقینوترمنځ په مجلس کې دکښیناستلواواشاره کې اوکتلوکې برابري کوي اوپریوه دي ترهغه بل آواززیات نه اوچتوی)

(۲۴)همدارنګه دي قاضي له فریقینوڅخه دیوه فریق سره نه ګوښه کیږي اونه دي یوه طرفته په لاس یاسرسره اشاره کوي اونه دي یوه فریق ته دحجت تلقین ورکوي ولی په دا ډول کولوکې پرقاضي باندې یوه فریق ته دمیلان تهمت لګیږي همدارنګه په دغوکارونوکې دیوه په ترسره کولوسره دهغه بل خصم زړه ماتیږي.

(۲۵)قوله وضيافته اى ويجتنب عن ضيافة احدالخصمين ،یعنې قاضي دي داسې نه کوي چې له متخاصمینوڅخه یوه ته دعوت وکړي بل پرېږدي ځکه په داسې کولوکې قاضي متهم کیږی چې ښایې دهغه طرف ته یې میلان دی. البته ددواړودعوت په کولوکې هیڅ حرج نشته ولی په دې وخت کې قاضي نه متهم کیږي.

(۲۶)والمزاح اى ويجتنب القاضي عن المزاح مطلقا،یعنې قاضي دي په یوه مجلس دقضاء کې هم مسخري نه کوي نه له فریقینوسره اونه له بل چاسره بلکې په وقارسره دي چلندکوي ځکه په توکوټکالوسره دانسان هیبت ختمیږی همدارنګه که له یوه فریق سره دی مسخري کوي نوهغه بیاپرهغه بل فریق باندې دلاوره کیږي چې په دې سره دخصم زړه ماتیږي.

(۲۷)قوله وتلقين الشاهداى ويجتنب القاضي عن تلقين الشاهد.یعنې قاضي دي دیوه فریق ګواه ته تلقین نه ورکوي مثلاګواه ته داسې وواېي چې آیاته دفلان فلان خبري ګواهي ولی په دې کې

ديوه فريق اعانت (كومک) دی چې دقضا، له منصب خلاف دی نو ځرنګه چې خپله فريق ته تلقين وركول ناجائزدی همدارنګه دفريق ګواهانو ته تلقين وركول هم ناجائزدی.

**فائده**: مګر دامام ابويوسف رحمه الله په نزد له مقام تهمت څخه علاوه دګواهانو تلقين كول مستحسن دی ولی كله ناكله ګواه دعدالت دهيبت اورعب په وجه دچادحق دګواهي وركولو څخه وګرځي چې په دي سره دحقدارحق ضائع كيږي حال داچې قضاء دخلكو دحقوقو دحفاظت لپاره مشروع شوي ده، دامام ابويوسف رحمه الله قول مفتی به دی ولی په باب كې دقضاوت دده رحمه الله مهارت اوتجربه زياته ده كمالی شرح التنوير: (ولا) يلقن (الشاهد شهادته) واستحسنه ابويوسف فيما لا تهمة فيه وبقوله يفتى علمو الفتوى على قوله فيما يتعلق بالقضاء لزيادة تجربته (الدر المختار على هامش الشامية: ۴/۳۶۹)

## فصل

دا فصل په قيدخانه كې دبندولو په بيان كې دی.

ځيني خلک سركښ اوسرمست وي چې هغوئ ته دسزا په ډول قيدكول ضروري وي نو حبس او قيدكول دقضاء داحكامو څخه دی ځكه نو دقضاء په بحث كې دغه بيان راوړل مناسب دی او ځرنګه چې له حبس او قيدسره ډيراحكام تعلق لري ځكه نو مصنف رحمه الله دغه احكام په عليحده فصل كې ذكركړي دی.

دمجرم دقيدكولو جواز په كتاب الله، سنت رسول ﷺ او اجماع سره ثابت دی قال الله تعالى: اوينفوا من الارض) ياهغوئ له ځمكې نه وركړ كړئ) له نفی من الارض څخه مراد قيددی. اوروايت دی چې په حجازكې دځوخلكو ترمنځ جنجال راغی آن چې يوسړی يې وواژه نونبي كريم ﷺ هغوئ بنديان كړل. همدارنګه دصحابه كرامو له زمانی څخه بياترننه پوري دټولو مسلمانانو دمجرم په قيدكولو باندي اجماع ده:

(۱) واذاثبت الحق للمدعي امره بدفع ماعليه (۲) فان ابى حبسه في الثمن والقرض والمهر المعجل ومالتزمه بالكفالة (۳) لافي غيره ان ادعى الفقر (۴) الا ان يثبت غريمه غناه فيحبسه بمارای ثم يسأل عنه فان لم يظهر له مال خلاه (۵) ولم يحل بينه وبين غرمائه.

**ترجمه**: او چې كله ثابت شي حق دمدعي نو امردي كړي مدعي عليه چې وركړي هغه څه چې پرده باندي دي، بياكه ده انكار وكړ نو بندي دي كړي دثمنو، قرض او مهر معجل په باره كې چې ده يې التزام كړی وو په كفالت سره نه دهغه په علاوه كې كه هغه دفقردعوه وكړه مګرداكه ثابته كړه قرض غوښتونكي دهغه غناء بيادي بندي كړي دی څومره چې قاضی مناسب وبلله بيا دي ده په باره كې پوښتنه وكړي كه دهغه هيڅ مال معلوم نه شو نو هغه دي پريږدي او حائل دي نه جوړيږي دهغه او دهغه دقرض غوښتونكي ترمنځ.

**تشريح**: (۱) يعني چې كله دقاضی په نزد ديوه حق پربل بندي ثابت شي بياكه قاضی دحقدارحق په خپل لاس نه شوای وراخيستلای نو مقروض ته دي حكم وكړي چې دحقدارحق وركړي ولی دقاضی وجود دي لپاره دی چې هغه دقضاء په ذريعه دمظلوم حق له ظالم څخه وركړي.

(۲)یعنې که دقاضي دحکم ورکولو وروسته مقروض دحقدار دحق اداکولو څخه انکار وکړ نوقاضي دي دهغه دقید کولو حکم ورکړي ځکه دحقدار حق نه اداکول ظلم دی او دظالم سزا قید دی نو ځکه باید او س هغه قید کړای شي او هغه دي دهر داسې قرض په بدل کې قید کړي چې د داسې مال عوض وي چې هغه قبض کړی وي لکه دمقبوضې مبیعې ثمن او دقرض بدل ځکه چې کله هغه مال قبض کړ نو هغه غني ثابت شو او س نو هغه ځان اچونکی شمارل کیږي،همدارنګه دي هغه دهر داسي قرض په بدل کې قید کړي چې خپله پرهغه باندي دعقد په ذریعه لازم شوی وي لکه مال مهر او مال کفاله ،ځکه د دي اقدام کول چې پرخپل ځان مال لازم کړي دهغه دغني کیدو دلیل دی ولی دا ظاهره ده چې هرڅوک د داسې مال التزام کوي چې هغه اداکولای شي نو دغناء ددلیل په پیدا کیدو سره هغه قید کړای کیږي.

(۳)قوله لافي غیره ان ادعی الفقرای لایحبسه القاضي في غیرذالک ،یعنې دمذکوره دوو قسمونو:قرض (چې یو قرض دمال حاصلولو په وجه سره وو او بل دعقد په نتیجه کې وو) نه علاوه په نورو شیانو کې نه قید کړای کیږي مثلًا دبدل خلع ،غصب یادیو جنایت په وجه چې کوم قرض دچا پر ذمه لازم شي نو دهغه په بدله کې دی قید کیږي په دي شرط چې مقروض دخپل فقردعوه وکړي ځکه اصل دادی چې انسان په پیدائښی توګه تنګدست وي عمومًا غني نه وي نو دغه شخص متمسک باالاصل دی نو ترڅو پوري چې خصم په بینه وُسره دهغه غناء ثابته نه کړي هغه نه قید کړای کیږي .

(۴)البته که قرض غوښتونکي دهغه لپاره مال ثابت کړي نو بیا قید کړای کیږی ځکه چې له هغه سره مال شته بیاهم دی قرض نه اداکوي نو دادده له طرفه سستي ده او دقرض په اداکولو کې سستي کول ظلم دی او دظلم سزا قید دی نو چې ترکومه وخته پوري قاضي دهغه قیدکیدل مناسب بولي ترهغه وخته دي قید کړي اوپه دغه دوران کې دي دهغه له ګاونډیانو او قریبانو څخه دهغه پوښتنه وکړي بیاکه دده مال ظاهرنه شو نو هغه دي خوشي کړي ولی دفراختیاتر راتلو پوري هغه دمهلت مستحق دی لقوله تعالی :وَاِن کَانَ ذُوعُسرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰی مَیسَرَةٍ) بیا چې کله هغه دمهلت مستحق ثابت شي نو دهغه قید کول ظلم دی .

(۵)یعنې له قید څخه دازادیدو وروسته دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دي قاضي دمقروض او دهغه دقرض غوښتونکي ترمنځ حائل نه ګرځي البته که چیرته هغه دکوم ضرورت لپاره خپل کورته داخل شی نو قرض غوښتونکی دي دهغه کورته نه داخلیږی بلکې دباندي دي دهغه انتظار وکړي،په داسې حال کې چې صاحبینو رحمهما الله فرمایلی دي چې قاضي دي ددوئ ترمنځ حائل وګرځي ولی مفلس مقروض که چیرته خپله دقرض غوښتونکو له طرفه دمهلت مستحق شی بیا هغه دده دتعقیبولو حق نه لري نو که چیرته هغه دشارع له طرفه دمهلت مستحق شي نو په طریقه اولی دهغه دتعقیبولو حق نشته، دامام صاحب رحمه الله دلیل دادی چې مفلس مقروض ته دحق داداکولو دقدرت ترحاصلولو پوري مهلت دی او حصول دقدرت هروخت ممکن دی ځکه نو قرض غوښتونکي باید هغه تعقیب کړي چې هسې نه هغه مال پیدا کړي چیرته پټ نه شي.

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة ابن عابدین رحمه الله :وبعدما خلی القاضي سبیله فلصاحب الدین ان یلازمه في الصحیح وهو ظاهر الروایة وهو الصحیح .(ردالمحتار:۳/۳۵۶)

(٦) وزدالبينة على الافلاس قبل حبسه (٧) وبينة اليسار احق وابد حبس الموسر (٨) ويحبس الرجل لنفقة زوجته (٩) لا في دين ولده (١٠) الا اذا ابى من الانفاق عليه والله اعلم.

**ترجمه**: او رد دي كړي گواهان چې دهغه پر مفلس كيدو باندي قائم وي مخكي دهغه تر قيد كيدو او دغناء گواهان زيات حقدار دي او هميشه دي غني په قيد كې وساتي او قيد دي كړي سړی دهغه د ښځي دنفقي په وجه سره نه دزوی دقرض په وجه مگر چې كله هغه انكار وكړي دهغه له نفقي څخه . والله اعلم .

**تشريح**: (۶) كه مدعى عليه تر قيد كيدو مخكې دخپل ځان پر مفلس كيدو باندي گواهان پيش كړل (مثلا دوو گواهانو گواهي وركړه چې دا سړی مفلس دی دتن له جامو پر ته مو ر ته دهغه بل هيڅ مال معلوم نه دی) نو دهغه گواهان دي قاضی رد كړي ځكه چې دا پرنفی (يعنې دمقروض پر نه غنی كيدو) گواهی ده چې مقبوله نه ده تر څو چې مؤيد يعنې په حبس سره دهغه تائيد نه وي شوی اوله حبس وروسته هم احتياطاداسی قبليږي نه وجوبًا .

(۷) او كه چيرته مدعی عليه دخپل ځان پر مفلس كيدو باندی گواهان پيش كړل او مدعي دهغه دغني كيدو گواهان پيش كړل نو دغنی كيدو گواهان دقبليدو زيات حقدار دي ولی غناء عارض دی او گواهان داثبات لپاره وي نو ځكه دغناء دثابتيدو گواهان زيات دقبليدو حقدار دي او كه څوک سره له غنی كيدو هم دبل چا قرض نه اداكوي نو هغه دي قاضی دهميشه لپاره په قيد كې وساتی تر څو چې هغه قرض ادانه كړي ځكه قيد كول دظلم سزاده اوله غناء سره دقرض نه اداكول ظلم دی تر څو چې هغه دحق اداكيدو څخه منع كوي تر هغه وخته دي هغه په قيد كې وساتي .

(۸) كه قاضی پر خاوند باندي دښځی دنفقی فيصله وكړه يا زوجينو پخپل منځ كې پر يو څه باندي صلح سره وكړه بيا خاوند دخپلی ښځی نفقه نه وركوله نو هغه دي قيد كړای شی ولی هغه دحق په نه وركولو سره ظالم دی او په شريعت كې دظالم سزا قيد دی البته د تيرې زمانی دنفقی په وجه نه قيد كړای كيږي ولی دنفقی دزمانی په تيريدو سره نفقه ساقطيږي .

(۹) قوله لا فی دين ولده ای لايحبس الوالدفی دين ولده، يعنې كه پر چا باندي دهغه دزوی قرض وو نو پلار دزوی دقرض په وجه نه قيد اكړای كيږي ولی قيد كيدل يو قسم عقوبت دی او زوی پر خپل پلار دعقوبت استحقاق نه لري لكه په قصاص او حدودو كې مثلا يو چا خپل زوی وواژه نو له پلار څخه قصاص څخه نه اخيستل كيږي يا پلار پر زوی باندي دزنا تهمت ولگاوه نو پر پلار باندي حد قذف نه جاري كيږي .

(۱۰) البته كه زوی مستحق دنفقې وو مثلا فلج وو دكاروبار قابل نه وو او پلار يې له نفقې وركولو څخه انكار وكړي نو پلار يې قيد كړای كيږی ولی داسی بچيانو ته په نفقه وركولو كې دبچيانو ژوند دی او په نه وركولو كې دهغه هلاكت دی نو دبچي دهلاكيدو دارادي څخه دمخ نيوي په وجه پلار قيد كړای كيږي .

## كتاب القاضي الى القاضي وغيره

دا باب ديوه قاضی دجانب څخه بل قاضی وغيره ته دخط ليكلو په بيان كې دی

ځرنگه چې كتاب القاضي الى القاضي د قضاء د احكامو څخه دی ځکه نو مصنف رحمه الله له فصل في الحبس وروسته كتاب القاضي الى القاضي ذكر كړی دی. اوله فصل في الحبس څخه یې ځکه وروسته كړی دی چې د قید كولو لپاره یو قاضي كافي دی په داسې حال كې چې په كتاب القاضي الى القاضي كې دوو قاضیانو ته ضرورت دی نو كتاب القاضي الى القاضي په منزله د مركب دی او قضاء بالحبس په منزله د مفرد دی او مركب له مفرد وروسته وي ځکه نو مصنف رحمه الله كتاب القاضي الى القاضي تر فصل في الحبس وروسته ذكر كړی دی.

**فائده** :پیا ظاهر روایت دا دی چې كه د دوو قاضیانو ترمنځ مسافت تر سفر كمه فاصله وه نو په داسې صورت كې د یو قاضي خط د هغه بل قاضي په نزد نه معتبریږی تر دې په زیاته مسافه كې معتبریږی. د امام ابویوسف رحمه الله په نزد به كم تر كمه د ومره مسافه وي چې سړی سهار د كاتب قاضي څخه روان شي تر ماښامه مكتوب علیه ته ورسیږی بیرته كور ته نه را او رسیږی وعلیه الفتوی لما في شرح التنویر (ولابد من مسافة ثلاثة ایام بین القاضیین كالشهادة على الشهادة) على الظاهر وجوزها الثاني ان بحیث لایعود في یومه وعلیه الفتوی شرنبلالیة وسراجیة (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۴/۳۹۳)

(۱) ویكتب القاضي الى القاضي في غیر حد وقود (۲) فان شهدوا على خصم حكم بالشهادة وكتب بحكمه وهو المدعو سجلا (۳) والا لم یحكم وكتب الشهادة لیحكم المكتوب الیه بها وهو الكتاب الحكمي وهو نقل الشهادة في الحقیقة (۴) وقرأ علیهم وختم عندهم وسلم الیهم (۵) فان وصل الى المكتوب الیه نظر الى ختمه ولم یقبله بلا خصم وشهود (۶) فان شهدوا انه كتاب فلان القاضي سلمه الینا في مجلس حكمه وقرأه علینا وختمه فتح القاضي وقرأه على الخصم والزمه ما فیه.

**ترجمه** :او خط لیکلای شي یو قاضي بل قاضي ته له حد او قصاص نه په علاوه کې. بیا که گواهانو پر خصم باندې گواهي ورکړه نو حکم دې وکړي د گواهي مطابق او ودې لیکي خپل حکم او دې ته سجل وايي. که نه بیا دې حکم نه کوي او گواهي دې ولیکي چې حکم وکړي مکتوب الیه د هغه مطابق او هغه ته کتاب حکمي ویل کیږي او هغه په حقیقت کې نقل کول د گواهي دی او ودې وايي دا خط پر هغوئ باندې او مهر دې ولگوي د هغوئ په حضور کې او حواله دې کړي هغوئ ته. بیا چې کله دغه خط و مکتوب الیه ته ورسیږی نو هغه دې وگوري مهر د قاضي او نه دې قبلوي د خصم او گواهانو له حاضریدو بغیر. بیا که هغوئ گواهي ورکړه چې دا د فلان قاضي خط دی چې موږ ته یې راکړیدی د خپلی قضاء په مجلس کې او ویې لوست زموږ په حضور کې او مهر یې پري ولگاوه نو قاضي دې پرانیسي او ودې وايي پر خصم باندی او پر هغه دې لازم کړي هغه څه چې په دغه خط کې لیکلي دي.

**تشریح** :(۱) دیو ځای قاضي د بل ځای قاضي ته د داسې حقوقو په باره کې خط لیکلای شي چې د شبهې په وجه نه ساقطیږی او دا بناء برضرورت جائز دی ځکه کله د مدعی لپاره د گواهانو او خصم حاضرول متعذر وي په دې شرط چې د مکتوب الیه قاضي په مخکي دوه نفره گواهان گواهي ورکړي چې دا د فلان قاضي خط دی البته د حدودو او قصاص په باره کې یو قاضي د بل قاضي خط نه قبلوي ځکه خط دیو چا د بل چا په ډول کیدای شي ممکنه ده دا خط چې د کوم قاضي بلل کیږي د هغه دي نه وي نو شبهه پیدا شوه والحدود تندرء بالشبهات (یعني

حدوددشبهې په وجه ليري کيداى شي ) نوپه کتاب القاضى الى القاضى کښې شبه پيداکيږي ځکه نوپه حدودوکښې معتبرنه دى .

**فائده** :دقياس تقاضاخوداده چې ديوه قاضي خط دبل قاضي په وړاندي دهغوحقوقوپه باره کښې چې دشبهې په وجه ساقطيږى هم معتبرنه وي ولې که يوقاضى پخپله په ژبه بل قاضى ته خبرورکړي چې ستاپه ښارکښې پرفلان شخص باندي دفلان شخص داحق زماپه وړاندي دګواهانوپه ګواهي سره ثابت شوى دى نوهغه قاضى ته په دي خبرسره عمل کول ناجائزدى نوځکه ديوه قاضي پرخط باندي هم بل قاضى ته عمل کول بايدناجائزشي، مګر د صحابه کراموپه اجماع سره دهغه جوازثابت دى،همدارنګه دخلکوضرورت هم دى ولې ډيرځله انسان لره د ګواهانواومدعى عليه ديوه قاضى په وړاندى جمع کول متعذروي مثلاً ګواه په يوه ښارکښې دى اومدعى عليه په بل ښارکښې دى نوپه داسي صورت کښې له خط پرته بله چاره نشته ځکه نوديوه قاضى خط دبل قاضى په وړاندي معتبريږي .

(۲)اوکه ګواهانودخط ليکونکي قاضى په مجلس کښې پرمدعى عليه باندي ګواهي ورکړه چې پردغه سړي باندي دفلان شخص باندي دومره حق دى قاضي دي دهغوئ دګواهي موافق حکم وکړي.اوبيا قاضى ته دي خپل حکم وليکي چې هغه دده حکم پرمدعى عليه باندي نافذکړي داسي مکتوب (په کوم کښې چې دقاضى حکم تحريروي) ته سجل وايې.مذکورتفصيل په هغه صورت کښې دى چې دقاضى دحکم وروسته مدعى عليه بل ښارته ولاړشي نوقاضى دهغه بل ښارقاضي ته خپل حکم اوفيصله وليکي پرمحکوم عليه باندي يې نافذکړي .

(۳)اوکه ګواهانودمدعى عليه په نه موجودګي کښې ګواهي ورکړه نوبيادي قاضي پردغه مدعى عليه باندي حکم نه کوي ځکه مدعى عليه غائب دى اوقضاء پرغائب باندي جائزه نه ده ،البته دګواهانوګواهي دي مکتوب اليه قاضى ته وليکي چې هغه دهغه موافق پرمدعى عليه باندي حکم وکړي داډول مکتوب ته کتاب حکمي وايې اوکتاب حکمي په حقيقت کښې له يوځاى ځخه بل ځاى ته دګواهي منتقل کول دى نودسجل اوکتاب حکمي ترمنځ فرق داشوچې سجل دقاضى له مجلس وروسته تحريرته وايې اوکتاب حکمي ترفيصله مخکښې تحريرته وايې .

(۴)کاتب قاضى ته پکاردى چې هغه داخط وړونکوګواهانوته ووايې وروايې وروي يادهغه مضمون ورواوروي ځکه ګواهان چې ولاړشي دمکتوب اليه قاضى په وړاندي ګواهي ورکوي نودوئ ته دخط مضمون وراورول ضروري دى ولې ګواهي بغيرعلم نه کيږي بيادي دګواهانوپه مخکښې پرهغه باندي مهرولګوي چې هرډول شک اوشبهه ختمه شي بيادي خط وګواهانوته حواله کړي .

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله په نزدګواهانوته دخط مضمون وراورول اوپرخط باند مهرلګول وغيره هيڅ شى هم شرط نه دى بلکښې صرف داشرط دى چې ګواهان داګواهي ورکړي چې داخط دفلان قاضى دى همداقول مفتى به دى ولې حضرت امام ابويوسف رحمه الله ډيره زمانه دقضاء منصب په غاړه درلودځکه نوپه دي باب کښې دهغه تجربه زياته ده لمافى شرح التنوير :واکتفى الثانى بان يشهدهم انه کتابه وعليه الفتوى کمافى العرمية عن الکفاية وفى

البلقني وليس الخبر كالعيان (الدر المختار علی هامش ردالمحتار: ۴/ ۳۹۱)البته که خط دمدعي سره ووبیادمهرلګ ولو شرط مناسب دی خ که دتغیر احتمال شته ،نعم اذاکان الکتاب مع المدعي ینبغي اشتراط الختم لاحتمال التغییر الاان یشهدوا المافی حفظا(ردالمحتار: ۴/ ۳۹۱)

(۵)بیاچې کله دامکتوب هغه بل قاضی ته ورسیږي هغه دی اول دخط مهرته وګوري چې پردی باندي دچامهرلګیدلی دی بیادي هغه قبول کړي خومکتوب الیه قاضی دي دکاتب قاضی خط نه قبلوي مګرددوو ګواهانوپه ګواهي سره یادیوه نارینه دووښځوپه ګواهي سره ولی ددروغواحتمال شته ځکه دګواهانوضرورت دی،مګرداهغه وخت چې خصم انکاروکړي چې داخط دقاضی نه دی اوکه هغه مُقرووبیادګواهانوضرورت نشته ،همدارنګه دي مکتوب الیه قاضی دخصم دحضوربغیر(یعني دمدعی علیه په نه موجودګي کې )دهغه خط نه قبلوي ځکه داخط دګواهي اداکولوپه مرتبه کې دی ځکه نودمدعی علیه حضورضروري دی .

(۶)بیاچې کله ګواهان دخصم په حضورکې خط وقاضی ته حواله کړي نوقاضی دي دهغه مهروګوري چې ویې پیژني بیاچې ګواهان ګواهي ورکړي چې داخط دفلان ښاردقاضی فلان بن فلان دی هغه موږداخط دخپل قضاء اوحکم په مجلس کې راکړاوموږته یې واوراوه اوپرهغه یې مهرولګاوه نومکتوب الیه قاضی دي هغه پرانیسی خصم ته دي وروا وروي اوپه خط کې چې څه وي هغه دي پرخصم لازم کړي،مګرشرط دادی چې دمکتوب الیه قاضی په وړاندي دګواهانوعدالت ثابت شي مثلا له ثقه خلکوبې دهغوئ دعدالت په باره کې تحقیق وکړیایې پخواهم هغوئ په عدالت سره پیژندل ،یاکاتب قاضی په خط کې دهغوئ تعدیل کړی وو .

(۷)وَيَبطُلُ الكِتابُ بِمَوتِ الكَاتِبِ وَعَزلِه(۸)وَبِمَوتِ المَكتُوبِ اِلَيهِ اِلَّا اِذَا كَتَبَ بَعدَ اِسمِهِ وَاِلَى كُلِّ مَن يَصِلُ اِلَيهِ مِن قُضَاةِ المُسلِمِينَ(۹)لَابِمَوتِ الخَصمِ(۱۰)وَتَقضِي المَرأَةُ فِي غَيرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ(۱۱)وَلَا يَستَخلِفُ قَاضٍ اِلَّا اَن يُفَوَّضَ اِلَيهِ ذَالِكَ(۱۲)بِخِلَافِ المَامُورِ بِالجُمعَةِ

**ترجمه** :اوباطلیږي خط دکاتب په مرګ سره اودهغه په معزول کیدوسره اودمکتوب الیه په مرګ سره مګرداکه یې ولیکل دمکتوب الیه دنامه وروسته چې دمسلمانانوله قاضیانوڅخه هرقاضي ته چې ورسیږي نه دخصم په مرګ سره اوقضاوت کولای شي ښځه له حداوقصاص علاوه په نوروحقوقوکې اونائب دي نه ټاکي قاضی مګرداچې هغه ته اختیارورکړل شوی وي خلاف له هغه چې ماموردجمعي دلمانځه په امامت سره وي .

**تشریح** :(۷)خط لیکونکی قاضی که چیرته مړشویامعزول شونودهغه خط باطلیږی ولی اوس هغه دتولني یوفرد شوي قاضی توب حیثیت یې ختم شونودخط په ذریعه دهغه فیصله نه نافذه کیږي ولی دعام سړي فیصله نه

نافذه کیږي .

**فائده** :مګرامام ابویوسف رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله فرمایي چې په مذکورصورت کې به مکتوب الیه قاضی دګواهانودګواهي مطابق دکاتب قاضی خط دمدعی علیه په حضورکې اوروي اوپرهغه به یې نافذوي ځکه داد شهادت برشهادت په حکم کې دی دقاضی له مرګه

وروسته هم معتبر دی ،احناف جواب ورکوي چې يواځې دکاتب قاضي په تحرير سره نقل شهادت نه مکمل کيږي ځکه مدعى عليه حاضر نه دی دمکتوب اليه قاضي خط لوستل او مدعى عليه ته تراوروللو مخکې دکاتب قاضي مړينه داسې ده لکه شهود فرع چې دشهادت تراداکيدو مخکې مړه شي.

**فائده**:دامام صاحب رحمه الله قول مختار دی ،البته که مکتوب اليه قاضي خط قبول کړاودهغه مطابق يې حکم صادر کړنو نافذ کيږي لماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله :وانمايقبله المکتوب اليه اذاکان الکاتب على القضاء وهذاهو المختار لکن لو قبله وعمله به مع موته وقضى به جاز ونفذ به(هامش الهداية:۳/۱۴۰)

(۸)قوله وبموت المکتوب اليه اى ويبطل ايضابموت القاضي المکتوب اليه ،يعني که مکتوب اليه قاضي مړشونو هم دکاتب قاضي خط باطليږي ځکه چې دچاپرنامه يې خط ليکلى وو کاتب قاضي دهغه پر امانت داري باندې اعتماددرلود ،هغه ولاړ بل قاضي دهغه قائم مقام نه شي کيدای ځکه قاضيان په امانت داري کې فرق لري البته که کاتب قاضي داډول ليکلى ووچې داخط دفلان ابن فلان قاضي په نامه دی اودمسلمانانو دقاضيانو څخه دهرداسې قاضي په نوم چاته چې داخط ورسيږي نوپه دغه صورت کې دمکتوب اليه قاضي په مرګ سره مذکورخط نه لغوه کيږي بلکې هرهغه قاضي ته چې داخط ورسيږي اومدعى عليه دهغه په ولايت کې وي نو هغه قاضي به دهغه خط مطابق عمل کوي ځکه په دغه صورت کې چې هرقاضي دمکتوب اليه قائم مقام وي هغه دده تابع بلل کيږي.

(۹)قوله لابموت الخصم اى لايبطل الکتاب بموت المدعى عليه ،يعني که چيرته مدعى عليه مړشونوداخط نه باطليږي بلکې په اجماع سره مکتوب اليه قاضي دغه خط دهغه پروارث باندې نافذ کوي ولی وارث دمدعى عليه قائم مقام دی نو کومه فيصله چې پرمدعى عليه باندې يې نافذوله اوس دې هغه پروارث باندې نافذه کړي.

(۱۰)يعني له حدودو او قصاص نه علاوه په نوروټولو حقوقوکې ښځه قاضي ګرځيدای شي ځکه چې مخکې داخبره تيره شوه چې اهل قضاء هغه څوک دی چې اهل شهادت وي اوښځه اهل شهادت ده ،البته دښځې شهادت په حدودو او قصاص کې معتبره نه ده ځکه نوپه حدودو او قصاص کې دښځې قاضي کيدل هم نه صحيح کيږي له حدودو او قصاص نه علاوه په نوروټولو حقوقوکې معتبر دی.

(۱۱)قاضي ته دااختيارنشته چې دقضاء پرمنصب بل څوک خپل خليفه مقررکړي ولی هغه يواځې قاضي ټاکل شوی دی هغه ته دااختيارنه دی ورکړل شوی چې بل څوک قاضي وګرځوي البته که چيرته کوم قاضي ته دحاکم له طرفه دااختيار دلالةً ياصراحةً ورکول شوی ووچې ته خپل خليفه ټاکلی شي نوبيادی خپل خليفه مقررولای شي مګربيادغه خپل خليفه معزول کولای نه شي ترڅوحاکم دهغه اجازه ورکړې نه وي.

(۱۲)خلاف له هغه چاچې دجمعې دلمانځه لپاره دپاچاله طرفه مقررشوی وي دغه امام دپاچاله طرفه داختيارموندلو بغيرهم بل څوک دخپل ځان نائب ګرځولای شي ځکه جمعې دموقت کيدوپه وجه على شرف السقوط وي يعني که چيرته هغه لره دخليفه ټاکلو اجازه ورنه کړی شي نو کيدای شي چې يووخت هغه ته

كوم عذر ښېښ شي نو تر څو چې د مسلمانانو امام ته خبر ور كوي تر هغه پورې د جمعې د لمانځه وخت تېرېږي حال دا چې دى د جمعې د لمانځه لپاره مامور كړاى شوى وو.

(۱۳) وإذا رفع إليه حكم قاض قبله امضاه إن لم يخالف الكتاب والسنة المشهورة والإجماع (۱۴) وينفذ القضاء بشهادة الزور في العقود والفسوخ ظاهرا وباطنا (۱۵) لا في الأملاك المرسلة (۱۶) ولا يقضي على غائب إلا أن يحضر من يقوم مقامه كالوكيل والوصي (۱۷) أو يكون ما يدعى على الغائب سببا لما يدعيه على الحاضر كمن ادعى عينا في يد غيره أنه اشتراه من فلان الغائب (۱۸) ويقرض القاضي مال اليتيم ويكتب الصك لا الوصي والأب.

**ترجمه**: او چې كله وړاندې كړاى شي د هغه په حضور كې د تېر شوي قاضي حكم نو دى دې هغه نافذ كړي كه چېرته مخالف له قرآن او حديث مشهور او اجماع څخه نه وو. او نافذ كېږي د قاضي فيصله د دروغو په ګواهي سره په عقودو او فسوخو كې ظاهرا هم او باطنا هم نه په املاك مرسله ؤ كې او فيصله نه كېږي پر غائب باندې مګر دا كه حاضر وو هغه څوك چې د ده قائم مقام وو لكه وكيل يا وصي يا وي هغه شى د كوم چې دعوه كېږي پر غائب باندې سبب د هغه شي چې دعوه يې پر حاضر باندې كېږي لكه يو څوك چې دعوى وكړي د معلوم شي چې د بل چا په لاس كې وي چې دا شى ما له فلان غائب څخه اخيستى دى او قرض ور كولاى شي قاضي د يتيم مال او ودې ليكي چيک نه وصي او پلار.

**تشريح**: (۱۳) كه ديوه قاضي په وړاندې د تېر شوي قاضي د حكم مرافعه وكړاى شي نو قاضي دې هغه حكم نافذ كړي ځكه د موجود قاضي اجتهاد د سابقه قاضي د اجتهاد په شان دى ولې د دواړو اجتهاد ته په حتمي ډول صحيح يا غلط نه شي ويل كېداى خو څرنګه چې د سابق قاضي د اجتهاد سره د قضاء حكم هم متصل دى ځكه نو د سابق قاضي اجتهاد د موجوده قاضي تر اجتهاد قوي دى او اعلى په ادنى سره نه شي رد يدلاى. البته داسې حكم نه شي نافذولاى چې د قرآن كريم مخالف وي مثلا سابقه قاضي متروک التسمية عمدًا حلال بللى وو نو موجوده قاضي هغه نه شي نافذولاى يا د سنت مشهوره خلاف يې حكم كړى وو مثلا د مطلقه په طلقات ثلاثه ؤسره د بل زوج د وطى بغيرېې اول زوج ته حلاله ګڼلې وه. يا سابق قاضي د اجماع خلاف حكم كړى وو مثلا نكاح متعه يې حلاله ګڼلې وه چې د هغې پر فساد باندې د صحابه كرامو رضى الله عنهم اجماع ده نو په دغو دريو واړو صورتونو كې موجود قاضي د سابق قاضي حكم نه شي نافذولاى ځكه د سابق قاضي حكم د كتاب الله، سنت رسول الله ﷺ، او اجماع معارض نه شي كېداى.

(۱۴) په عقودو او فسوخو كې كه چېرته قاضي د دروغو په ګواهي باندې فيصله وكړي نو هغه باطنًا او ظاهرًا دواړه د وله نافذه كېږي له عقودو څخه مراد معاملات دي لكه خريد او فروخت نكاح وغيره، او له فسوخو څخه مراد د دغو عقودو باطلول دي كه دوو ګواهانو د دروغو ګواهي وركړه چې د فلانى ښځې نكاح له فلان سړي سره شوې ده او په واقع كې داسې نه وي شوي او قاضي د نكاح حكم وكړ، همدا رنګه كه يې د بيع يا هبه يا طلاق وغيره په باره كې د دروغو پر ګواهي حكم

وكړنو داحکم ظاهرااوباطنًا يعني عند الله وعند الناس نافذ کيږي که دنکاح صورت وونوله هغې سره صحبت کول جائزدی او که ديوشي داخيستو گواهي وه نوله هغه شي څخه هغه ددروغومشتري فائده اخيستلای شي.

**فائده**: مگرمذکوره فيصله چې نافذه کيږي په دووشرطونوسره مشروطه ده يوداچې قاضي به دگواهانوپه دروغ ويلوخبرنه وي دوهم شرط دادی چې محل به دفيصلې قابل وي پس که چيرته دمنکوحه يامعتده يامحرمه په باره کې دنکاح فيصله کړي وه هغه نه نافذه کيږي ،داهم يادساتئ چې داړول فيصله ظاهرًاوباطنًاامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدنافذه کيږي دصاحبينورحمهماالله په نزدظاهرانافذه کيږي امّاباطنًانه نافذه کيږي.

(۱۵)لافي الاملاک المرسلة ای لاينفذالقضاء بشهادة الزورباطنافي الاملاک المرسلة ،يعني که چيرته داملاک مرسله ؤ(ملک مرسل هغه ته ويل کيږي چې مدعي ديوشي دمالک کيدودعوی وکړي مگرسبب دملک بيان نه کړي) په باره کې قاضی ددروغوپرگواهي باندي فيصله وکړه نوداسي فيصله يواځي ظاهرًانافذه کيږي باطنًانه نافذه کيږي مثلايوچادقاضی په وړاندي ددروغودگواهي په ذريعه دمنځي په باره کې داثابته کړه چې دازماملک دی قاضی ددروغودگواهي مطابق فيصله وکړه نوظاهرًادامنځه دهغه سرې ملک گرځي مگرباطنًانه يعني دهغه سرې لپاره له هغې منځې سره صحبت کول جائزنه دی.

(۱۶)يعني قاضی دي پرغائب شخص باندي فيصله نه کوي ولی په گواهي سره عمل کول دقطع تنازع لپاره وي اودمدعی دانکاربغيرتنازع نه راځي اودمدعی عليه انکاردلته نشته ولی دغائب دطرف څخه داقراراوانکاردواړواحتمال شته نودقاضی دقضاء جهت مشتبه شوځکه ددواړو جهتونو(يعني اقراراوانکار) احکام مختلف دي،البته که دغائب شخص وکيل ياوصي حاضروونو بياپرغائب باندي حکم کول صحيح دی ولی وکيل دغائب دوکيل کيدوپه وجه دغائب قائم مقام دی اووصی دقاضی دطرف څخه شرعًادهغه قائم مقام دی.

**فائده**: دائمه ثلاثه ؤپه نزددگواهانوپه ذريعه قضاء پرغائب باندي جائزه ده ځکه چې دحضرت سفيان رضي الله عنه بی بی حضرت هنده رضي الله عنها نبي کريم ﷺ ته دخپلې نفقې په باره کې شکايت کړی وونبي کريم ﷺ هغې ته وفرمايل چې دسفيان رضي الله عنه له مال څخه دومره مال دراخله څومره چې تالره کافي کيږي حال داچې حضرت سفيان رضي الله عنه په دي وخت کې حاضرنه وو ،نومعلومه شوه چې قضاء پرغائب باندي جائزه ده.احناف جواب ورکوي چې دادنبي کريم ﷺ له جانب څخه قضاء نه بلکې فتوی ده همداوجه ده چې حضرت هند ؓ نه دزوجيت دعوی کړي وه اونه يې پرهغه باندی گواهان قائم کړي وو.

(۱۷)همدارنگه که چيرته هغه شی دکوم چې پرغائب باندي دعوی شوي ده هغه پرحاضرباندي ددعوی کولولازم سبب وونوهم پرغائب باندی فيصله کول صحيح دی مثلايوچاديومعلوم شي دعوی وکړه چې هغه دبل چاپه قبضه کې ووچې داشی ماله فلان غائب څخه اخيستی وواوقابض دهغه ددي دعوی انکاروکړويې ويل چې داشی زماملک دی اومدعي پردي خبره باندي گواهان پيش کړل چې داشی ماله فلان

غائب څخه اخيستى دى نو دمدعى گواهان قبليږي او قاضى پر حاضرا و غائب دواړو باندي فيصله كوي ځكه چې په دي صورت كې له فلان غائب څخه اخيستل پردغه حاضرباندي ددعوى كيدوسبب دى ځكه نو اوس حاضرسړى حكمًا دهغه غائب قائم مقام كيږي.

(۱۸)او قاضي ديويتيم مال چاته په قرض وركولاى شي ولى ديتيم مال چاته په قرض وركولو كې مصلحت دى يعني په دي كې دمال حفاظت دى او قاضى له مستقرض څخه دمال دبيرته اخيستو قدرت هم لري نو دضائع كيدو يې هيڅ خطره نشته، او قاضي دي دهغه يو رسيد وليكي له خپل ځان سره دي وساتي چې هيرېي نه شي، او وصي لره دا اختيارنشته چې ديتيم مال چاته په قرض وركړي همدارنگه پلار دخپل نابالغ او:د مال چاته دقرض په ډول نه شي وركولاى ولى كه په دغودووصورتونو كې قرضدار دقرض انكاروكړي ... وپلار داسي طاقت نه لري چې هغوئ دا مال بيرته له مستقرض څخه ترلاسه كړي.

## باب التحكيم

دا باب دفيصل (حكم) مقرركولو په بيان كې دى

تحكيم دباب تفعيل مصدردي معنى دريمان (منځگړى) مقررول، فريقين ته محكّمين او دريم ته محكَّم وايي. دقضا... خونديّ په تحكيم سره هم دفريقينو خصومت ختميږي تحكيم دقضاء له انواعو څخه يو نوع ده. مصنف رَحِمَهُ اللهُ دهغه ذكر دقضاء څخه ځكه وروسته كړى دى چې دمحكَّم مرتبه په نسبت دقاضى كمه ده ځكه دقاضى فيصله پرهرچاباندي نافذه كيږي په داسى حال كې چې دمحكَّم فيصله يوائي پرهغه چاباندي نافذيږي چې دى يې دريم مقرركړى دى همدارنگه دمحكَّم فيصله په حدودو او قصاص كې جائزه نه ده او د قاضي فيصله په حدودو او قصاص كې هم جائزه ده.

(۱)حَكَّمَا رَجُلًا لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمَا (۲)فَحَكَمَ بِبَيِّنَةٍ أَوْ إِقْرَارٍ أَوْ نُكُولٍ (۳)فِي غَيْرِ حَدٍّ وَقَوَدٍ وَدِيَةٍ عَلَى الْعَاقِلَةِ صَحَّ (۴)لَوْ صَلَحَ الْمُحَكَّمُ قَاضِيًا (۵)وَلِكُلٍّ مِنَ الْمُحَكِّمَيْنِ أَنْ يَرْجِعَ قَبْلَ حُكْمِهِ فَإِنْ حَكَمَ لَزِمَهُمَا (۶)وَأَمْضَى الْقَاضِي حُكْمَهُ إِنْ وَافَقَ مَذْهَبَهُ وَإِلَّا أَبْطَلَهُ (۷)وَبَطَلَ حُكْمُهُ لِأَبَوَيْهِ وَوَلَدِهِ وَزَوْجَتِهِ كَحُكْمِ الْقَاضِي بِخِلَافِ حُكْمِهِ عَلَيْهِمْ.

**ترجمه**:دووكسانو يوسړى فيصل وگرځاوه چې ددوئ ترمنځ فيصله وكړي، بيا هغه فيصله وكړه په گواهانو، يا په اقرار يا په انكار سره، له حد او قصاص او ديت پرعاقله نه پرته په نوروحقوقو كې نو دا صحيح ده، كه قابل وو دريمگړى دقاضى كيدو، او فيصل كوونكو هريوه ته جائزه ده چې دفيصل دمقرركيدو څخه رجوع وكړي مخكي ترفيصله دهغه او كه هغه فيصله وكړه نو لازميږى پر:وئ دواړو باندي او نافذه دي كړي قاضى دفيصل فيصله كه چيرته هغه موافقه وه دهغه مذهب سره كه نه باطله دي كړي هغه او باطليږى دفيصل فيصله دخپل مور او پلار او زوى او خپلي ښځي په حق كې لكه دقاضى حكم خلاف دفيصل دهغه حكم نه چې دهغوئ خلاف وي.

**تشريح**:(۱)كه دوو متخاصمينو يوسړى فيصل (ددوئ ترمنځ دفيصله كولو مختار او دريم) وگرځاوه او ... دهغه په حكم سره راضى شول بيا كه هغه ددوئ ترمنځ فيصله وكړه نو دا جائزه ده ولى متخاصمين هريو ... چل

حق ولایت لري نوددوئ فیصل ګرځول هم جائزدی ،تحکیم دادی چې متخاصمین پخپل منځ کې یوڅوک درېم وټاکي چې هغه چې کومه فیصله وکړي پرهغه باندی به دواړه متخاصمین راضي کیږي اوهغه ته محکم وایي.

(۲)که فیصل دمدعی دګواهانومطابق فیصله وکړه یایې دمدعی علیه پراقراریادهغه پرقسم خوړلو دانکارکولوباندي فیصله وکړه نوداصحیح ده ولی دادشریعت موافق حکم دی،په دی شرط چې محکم متعین وي که متخاصمینوداوول وویل چې هرڅوک چې لومړی مسجدته داخلیږي هغه به زموږمحکم وي نودادجهالت په وجه صحیح نه دی .

(۳)په حدودواوقصاص کې یوڅوک فیصل ګرځول جائزنه دی ولی متخاصمین پرخپلوینو باندي ولایت نه لري همداوجه ده چې متخاصمینولره داجائزه نه ده چې خپله چالره مباح کړي،همدارنګه که چیرته متخاصمینویوڅوک په قتل خطاء کې فیصل وګرځاوه بیاهغه دقاتل پرعاقله باندي ددیت حکم وکړنودهغه داحکم نه نافذکیږي ولی دقاتل پرعاقله باندي دهغه ولایت نشته ځکه چې هغوئ دی فیصل نه دی ټاکلی .

(۴)اودفیصل حکم پرهغوئ باندي نافذکیږي په دي شرط چې په فیصل کې دقاضی صفت موجودوي یعنې عاقل،بالغ،مسلمان اوآزادوي همدارنګه محدودفی القذف نه وي ولی فیصل ددوی ترمنځ دقاضی په منزله دی نوپه ده کې هغه لیاقت شرط دی کوم چې په قاضی کې شرط دی،پس دکافر،مربی،ذمي،محدودفی القذف،فاسق اوماشوم تحکیم جائزنه دی ولی په دغوکې اهلیت دقضاء اوشهادت نشته .

(۵)یعنې محکمین (مدعي اومدعی علیه )هریوه لره دااختیارشته چې دفیصل له فیصل ګرځیدوڅخه رجوع وکړي ترهغه چې فیصل ددوئ ترمنځ فیصله نه وي کړي ولی فیصل خودهغوئ له طرفه مقررشوی دی نوترڅوچې هغوئ دواړه راضي نه وي دی دفیصل په حیث فیصله نه شي کولای،البته که فیصل په داسې حال کې پردوئ باندي حکم وکړچې هغوئ دواړه دده پرتحکیم باندي قائم وونوداحکم پردوئ باندی لازمیږي ځکه داحکم له فیصل څخه په داسی حال کې صادرشوی دی چې فیصل پرهغوئ دواړوباندي ولایت لري .

(۶)که دفیصل حکم قاضی ته وړاندي کړای شونوکه چیرته دغه حکم دقاضی داجتهاداو مذهب موافق وونوقاضی دي هغه نافذکړي ولی دفیصل دحکم په ماتیدوکې چې بیاقاضی بعینه هغه حکم صادروي هیڅ فائده نشته،اوکه دفیصل حکم دقاضی دمذهب موافق نه وونوقاضی دي هغه باطل کړي ولی دفیصل حکم پرقاضی باندي لازم نه دی ځکه چې قاضي هغه فیصل نه دی ګرځولی .

(۷)که یودریمګړی دخپل مورا وپلاریاخپل زوی یاخپلې ښځې اواولادپه حق کې فیصله وکړي نوفیصل دافیصله باطله ده لکه دقاضی فیصله چې دخپلوقریبانوپه حق کې باطله ده ځکه ددغوقریبانو لپاره دتهمت په وجه ګواهي ورکول مقبوله نه ده نودهغوئ لپاره دقضاء حکم هم نه صحیح کیږي،البته که فیصل دخپلومذکوروقریبانوپه خلاف فیصله کوي نوهغه بیاصحیح کیږي لعدم التهمة .

## مسائل شتّی

شتی : شتیت جمع ده لکه جرحی چې دجریح جمع ده ،دلته دشتّی لفظ مرفوع دی دمسائل لپاره صفت دی ،دمصنفینو داعادت دی چې په کوم کتاب یاباب کې که څه مسائلي ذکرنه شي نوهغه بیادکتاب یاباب په آخرکې ذکرکوي او دهغه عنوان :مسائل شتّی،یامسائل منثورة یامسائل متفرقة ،ږدي دلته هم دهغه عادت مطابق :کتاب القضاء والتحكيم په پای کې دمسائل شتّی په عنوان سره هغه مسائل ذکرکیږي چې په کتاب القضاء کې تربحث لاندې نه دي راغلي .

(۱) الايتد ذو سفل فيه و لاينقب كوة بلا رضاء ذى العلو (۲) زائغة مستطيلة تتشعب عنها مثلها غير نافذة لايفتح أهل الأولى فيه بابا (۳) بخلاف المستديرة (۴) ادعى دارا في يد رجل انه وهبها له في وقت كذا فسئل البينة فقال جحدنيها فاشتريتها و برهن على الشراء قبل الوقت الذي يدعي فيه الهبة لاتقبل و بعده تقبل.

**ترجمه** :میخونه دي نه ټکوهي لاندې منزل والاپه کورکې اونه دي سورى جوړوي دبالاخانې دخاوندله رضا بغير .

یوه اوږده کوڅه ده چې له هغې څخه یوه بله دغسې کوڅه جلاشوې ده چې بنده ده ،نه شي پرانیستلای داولې کوڅې والاپه دغه کې دروازه خلاف له ګول کوڅې نه ،په یوه سرای یې دعوه وکړه چې دبل چاپه لاس کې دی چې هغه داسرای ماته هبه کړی وو په فلان وخت کې بیاله ده څخه ګواهان طلب شول نو ده وویل چې کله هغه له هبه کولو څخه انکاروکړنوما داسرای له هغه څخه واخیست اوپراخیستلو یې ګواهان پیش کړل داګواهان شول پراخیستلو باندې مخکې ترهغه وخت چې ده دعوی دهبې کړې وه نوداګواهي نه قبلیږي اوکه یې پرهغه بعدوخت باندې ګواهان پیش کړل نوګواهي یې قبلیږي .

**تشریح** :(۱)که لاندې منزل دیوچا واوبالامنزل دبل چاوونودلاندې منزل والابه دبالامنزل والاله رضامندۍ پرته نه پخپل کورکې میخونه ټکوهي اونه به په هغه کې روښن دان (کړکۍ) جوړوي ځکه په دې کې دبالامنزل دخلکو دنقصان اندېښنه ده چې دهغوئ تعمیرکمزوریامات شي،داداامام ابوحنیفة رحمه الله قول دی دصاحبینو رحمهما الله په نزدهرداسې عمل کولای شي چې په هغه کې دبل چانقصان نه وي،دځینو حضراتورایه داده چې دصاحبینو رحمهما الله داقول دامام ابوحنیفة رحمه الله دقول تفسیردی یعنې دامام صاحب رحمه الله دقول هم همدامطلب دی چې دلاندې منزل والامضرعمل نه شي کولای غیرمضرکولای شي.

**فائده** :خلاصه داده چې که چیرته ضریقیني وونوپه اتفاق سره منع کړای کیږي اوکه عدم ضریقیني وونوپه اتفاق سره اجازه ورکوله کیږي اوکه شک ووچې ضررسوي یایې نه رسوي نوپه دې کې اختلاف دی راجح قول دامام ابوحنیفة رحمه الله دی یعنې منع کړای کیږي لمافي الشامية: وفي قسمة المنية ان المختار ان الخلاف فيما اذا اشكل فعلا يمنع عندهما لا اه, و كذا يأتي في كلام الشارح قريبا انه المختار للفتوى (ردالمحتار: ۴/۳۹۸)

(۲)که دیوې اوږدې کوڅې څخه یوه بله دغسې اوږده کوڅه وتلې وه اوهغه دوهمه کوڅه بنده وه نوداولې کوڅې له اوسیدونکو څخه چې دچاکوردوهمې کوڅې پرکونه باندې واقع وي هغې اولې کوڅې نه

دروازه پرانیستلای شي مګر دوهمې کوڅې طرف ته ددروازې اجازه نه لري ځکه دروازه دتګ راتګ په وي حال داچې داولې کوڅې خلک په دوهمه کوڅه کې دتګ راتګ حق نه لري همدا وجه ده چې که چیرته په دوهمه کوڅه کې یوسرای خرڅیده نو داولې کوڅې خلک دشفعه حق نه لري البته که چیرته دوهمه کوڅه بنده نه وه نو په دغه صورت کې داولې کوڅې خلک په دوهمه کوڅه کې ددروازه ورکولو حق لري ولې په دې صورت کې دادوهمه کوڅه دعامو خلکو دتګ راتګ لاره شوه نو داولې کوڅې خلک هم په هغه کې دخپل کوردروازه پرانیستلای شي دتګ راتګ حق لري.

(۳) البته که چیرته اوله کوڅه اوږده وه مګرله هغې څخه وتلې بله کوڅه مستدیره یعنې ګول وه اودهغې دواړې غاړې له اولې کوڅې سره مبنتي وې نو دداړو کوڅو له اوسیدونکو څخه هرڅوک داحق لري چې هغه دخپل کوردروازه چیرته چې وغواړي پرانیستلای شي ولې په ګول کوڅه کې دغه میدان دټولو ترمنځ مشترک دی نو ځکه هریو یې دتګ راتګ حق لري.

(۴) که یوه سړي مثلازید دبل سړي مثلابکرپه لاس کې په مقبوض سرای باندې دعوی وکړه چې هغه داسرای ماته په فلان وخت مثلادروژې دمیاشتې پرلسمه کال ۱۴۲۸ هج کې هبه کړی وو. قاضي له هغه څخه پرخپله دعوه باندې ګواهان طلب کړل بیامدعي وویل: مدعي علیه یوځل هبه وکړه بیایې دهبې څخه انکاروکړنوزه مجبورشوم له هغه څخه مې دامذکورسرای واخیست. اومدعي پرخپل خریدباندې ګواهان پیش کړل مګرداسې وخت ګواهان یې پیش کړل چې ترهغه وخت مخکې ووپه کوم وخت کې چې هغه دهبه کولودعوی کړې وه مثلادخرید ګواهانو دلس شعبان کال ۱۴۲۸ هج دخرید ګواهي ورکړه یعنې ویې ویل چې موږګواهان یوچې مدعی داسرای په لسمه دشعبان کال ۱۴۲۸ هج کې له مدعي علیه څخه اخیستی ی نو: مدعی دامذکورګواهان نه قبلیږي ځکه ددعوی اوګواهي ترمنځ تناقض (ټکر) بلکل ښکاره دی ځکه چې مدعی ترهبه کولووروسته دخرید دعوی کوي اوګواهان ترهبه مخکې دخرید ګواهي ورکوي. اوکه چیرته ګواهانو دهبه دواقع کیدوتروخت وروسته دخرید ګواهي ورکړه مثلاپه مذکورصورت کې یې وویل چې موږګواهان یوچې مدعی داسرای په لسمه دشوال کال ۱۴۲۸ هج کې له مدعي علیه څخه واخیست نو داسې ګواهي بیاقبلیږي ځکه په دغه صورت کې ددعوی اوګواهي ترمنځ هیڅ تناقض نشته.

(۵) من قال لآخر اشتریت مني هذه الامة فانکر للبائع ان یطأها ان ترک الخصومة (۶) ومن اقر بقبض عشرة ثم ادعی انه زیوف صدق مع یمینه (۷) ومن قال لآخر لک علی الف درهم فرد ذه ثم صدقه فلاشئ علیه.

**ترجمه**: او که چا وویل بل چاته چې تا اخیستی ده دامنځه له مانه او هغه انکار وکړنو بائع لره جائزه ده چې له هغې سره وطی وکړي که چیرته یې خصومت پرېښود. اوکه چا اقرار وکړ دلس درهمه دقبض کیدو بیایې دعوه وکړه چې داخو کوټه وو نو دهغه تصدیق دې وکړای شي سره دقسم اخیستو. اوکه چا وویل بل چاته چې

ستاپرماباندي زردرهمه دي او هغه داخبره ردکړه بيايې دده تصديق وکړچې هوستاپرذمه زمازرروپۍ شته،نوهيڅ نشته پرهغه

باندې.

**تشريح**:(۵)که يوسړي بل ته وويل چې تادغه منځه له ماڅخه اخيستی ده اوهغه بل سړي انکاروکړچې مادغه منځه له تاڅخه نه ده اخيستی بيا که بائع داعزم وکړچې له هغه سره دعوه نه کوم بلکې منځه خپل ځان ته راګرځوم نوبائع ته جائزده چې له دغي منځې سره وطی وکړي ځکه چې کله مشتري انکاروکړنودادهغه دطرف څخه فسخ شوه ولی له عقدڅخه انکارکول دفسخ عقدڅخه کنايه ده نوچې کله بائع هم دخصومت دپرېښودلوعزم وکړنوفسخ تامه شوه نومنځه بيرته دبائع مِلک ته راوګرځيده ځکه نوبائع ته جائزدی چې له هغې سره صحبت وکړي.

**فائده**:البته داسوال کيدای شي چې دبائع دطرف څخه خالي دخصومت دپرېښودلوپه عزم کولوسره فسخ نه ثابتيږی ځکه دثبوت فسخ لپاره عمل ضروري دی نوددي سوال جواب دادی چې په يواځي عزم سره که څه هم فسخ نه ثابتيږی مګردلته فعل هم راغلی دی چې هغه دبائع دامنځه په کورکې ساتل اوله هغی څخه خدمت اخيستل اوپه عزم سره له فعل فسخ ثابتيږي نوچې کله فسخ ثابته شوه نومنځه دبائع مِلک دی نوله هغی سره يې وطی کول جائزه ده.(الدّرالمختار:۴/۴۰۳)

(۶)که چااقراروکړچې ماله فلان څخه لس درهم قبض کړل بيايې دعوی وکړه چې هغه کوټه وونودهغه تصديق کيږی ځکه په ظاهره که څه هم معلوميږي چې دهغه په دعوی کې تناقض دی ولی چې کله هغه دلسودرهمودقبض اقراروکړنوګواکي هغه دخپل حق دقبض کولواقراروکړځکه دقبض اقراردخپل حق دقبض کولواقرارلره مستلزميږي نوګواکي هغه دکوټه درهمونودقبض کولواقراروکړ اوس دهغه داويناچې هغه کوټه ووصريح تناقض دی دهغه په کلام کې،مګرڅرنګه چې قبض کول اواخيستل يواځي په صافودرهمونوپوري مختص نه دی بلکې کوټه درهمونه هم قبض کيدای شی نودلسوکوټه درهمونودقبض کولواقراردصافودرهمونودقبض کولواقرارلره مستلزم نه دی اوس دهغه ددي خبري څخه چې هغه کوټه دي دهغه په کلام کې تناقض نه لازميږي بلکې هغه دخپل حق دقبض کولومنکردی اودمنکرقول مع اليمين معتبريږي.

(۷)که چابل سړي ته وويل چې زماپرذمه ستازرروپۍ دي ،مقرله دهغه داخبره ردکړه چې ته غلط وايې ستاپرذمه زماهيڅ نشته،څه وخت وروسته مقرله دهغه په تصديق کولوسره وويل چې هوته سم وايې ستاپرذمه زمازرروپۍ دي، نودمقرپرذمه هيڅ نه لازميږي ځکه اقرارمخکې شوی ووچې دمقرله په رديدوسره له منځه ولاړ،اوس دهغه دطرف څخه دتصديق راتلل ازسرنودعوه ده چې په ګواهانوسره يې ثابتول ضروري دی يابه دمقرتصديق وي ددي بغيردعوی بلادليل ده چې هيڅ اعتبارنه لري.

(۸)ومن ادّعی علی اخرمالاًفقال ماکان لک علیّ شیءقط فبرهن المدعی علی الف وهوبرهن علی القضاءاوالابراءقبل (۹)ولوزادولااعرفک (۱۰)ومن ادّعی علی اخرانه باع امته فقال لم ابعهامنک فبرهن علی الشراءفوجدبهاعيباً برهن البائع بریٔ اليه من کل عيب لم تقبل (۱۱)ويبطل الصک بان شاءالله.

**ترجمه** : که چا دعوه وکړه په بل چا د مال او هغه وویل چې ستا پر ما باندې هیڅ شی هم نشته بیا مدعي ګواهان پیش کړل د زرو روپو او مدعی علیه بینه (ګواهان) پیش کړل د ادائیګی یا د برائت نو دا ګواهان قبلیږي .او که چیرته مدعی علیه پر خپل قول دا اضافه وکړه چې زه له سره تا پیژنم نه نو بیا یې ګواهان نه قبلیږي او که چا دعوه په بل چا وکړه چې هغه خپله منځه پر ما خرڅه کړه هغه بل وویل چې ما خپله منځه پر تا باندې نه ده خرڅه کړې بیا هغه پر خرڅیدو باندې ګواهان پیش کړل بیا یې په هغې کې یو عیب پیدا کړا و بائع ګواهان پیش کړل چې مشتري دی بري کړی دی له هر عیب څخه نو دا ګواهان یې نه قبلیږي .او باطلیږی چک په ان شاء الله ویلو سره .

**تشریح** :(۸)که چا په بل باندې دمال دعوه وکړه او هغه وویل چې ستا پر ما باندې هیڅ حق هم نه دی راغلی،بیا مدعی پر زرو روپو باندې ګواهان پیش کړل د هغه په مقابل کې مدعی علیه د دغو زرو درهمو نو د ادا کولو ګواهان پیش کړل یا یې پر دې ګواهان پیش کړل چې تازه بري کړی یم نو د مدعی علیه ګواهان قبلیږي ،په ظاهره داسې معلومیږی چې د مدعی علیه د خبرو تر منځ تناقض دی په دې ډول چې اول یې وویل چې ستا پر ما باندې هیڅ هم نشته،بیا یې پر ادائیګی باندې ګواهان پیش کړل نو د دې مطلب دا دی چې زما پر ذمه ستا زر درهمونه وو مګر هغه ما ادا کړل،نو د ده په کلام کې ښکاره تناقض دی نو د هغه دعوی باید صحیح نه شي او چې کله یې دعوی صحیح نه شي نو ګواهان یې هم نه معتبریږي خو د دې جواب دا دی چې کله خو حق نه وي هم ادائیګی کیږي یا برائت حاصلوي د دې لپاره چې خصومت دفع شي نو د مدعی علیه د کلام مطلب اوس دا شو چې زما پر ذمه ستا هیڅ حق کله هم پاتې نه دی البته د دفع شر لپاره ما مجبورا ادا کړی دی ،نو د مدعی علیه په کلام کې هیڅ تناقض نشته ځکه نو د هغه ګواه او دعوی صحیح دي او د هغه ګواهان قبلول صحیح دی .

(۹)او که مدعی علیه وویل ستا پر ما باندې هیڅکله څه لازم شوي نه دي او زه تا له سره پیژنم نه ،بیا هغه پر ادائیګی باندې ګواهان پیش کړل نو پر ادائیګی باندې د هغه ګواهان هم نه قبلیږي ځکه بغیر د پیژندګلوي نه د دوو کسانو تر منځ اخیستل ورکول،وصول او معامله او مصالحه نه شي کیدای نو د مدعی علیه په کلام کې ښکاره تناقض دی هغه ډول تطبیق چې په تیره مسئله کې ورکړل شوی وو هغه دلته ممکن نه دی نو په دغه صورت کې د مدعی علیه دعوی صحیح نه ده .

(۱۰)که چا په بل چا باندې دعوه وکړه چې هغه خپله منځه پر ما باندې خرڅه کړې ده او مدعی علیه وویل چې هیڅکله مې پر تا باندې نه ده خرڅه کړې او مدعي پر خرید باندې ګواهان پیش کړل خرید یې ثابت کړا و مدعی علیه ته یې قیمت ورکړلا پر منځه یې قبضه وکړه بیا په منځه کې کوم عیب پیدا شوا و مشتري د هغه عیب په وجه غوښتل چې ردیې کړي مګر بائع ګواهان پیش کړل چې مشتري بائع د مبیعی د هر عیب څخه بري کړی دی نو د بائع ګواهان نه قبلیږي ولی د بائع په خبرو کې تناقض دی په دې ډول چې نفس مبیعه مقتضي ده چې مبیعه مشتري ته صحیح سالمه ورتسلیم شی او چې کله بائع له هر عیب څخه برائت په ګواهانو سره ثابت کړي نو وصف د صحیح سالم کیدو ساقط شو نو دلته دا ضروري ده چې اصل مبیعه موجوده وي البته د مبیعی وصف د سلامتی ساقط وي ځکه د وجود وصف یا سقوط وصف لپاره ضروری ده چې اصل بیع موجوده ده حال

د: چې مدعی علیه له اصل بیع څخه انکار کړی دی نو د هغه پخپله دعوی کې تناقض دی نو گواهان د بائع نه معتبریږي ځکه گواهان هلته معتبریږي چېرته چې دعوی صحیح وي.
(۱۱) که چادد چک (رسید) په پای کې ان شاء الله ولیکل نو ددغې استثناء په وجه د امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد د دغه چک ټول مضمون باطلیږي که په هغه کې ډیرشیان لیک وي او که یو شی پکې لیکلی وي ځکه په چک کې ډیرشیان یو پربل باندې عطف کیږي ذکرکیږي نو ټول شیان په منزله د یو شي دي نو دان شاء الله کلمه د ټول تحریر جانب ګرځوي لکه یو څوک چې ووایې: عبدی حر وامرأتی طالق وعلی مشی الی بیت الله ان شاء الله. نو دان شاء الله تعلق له دریوواړو جملو سره دی یعنې د هغه مریی آزادیږي او نه د هغه ښځه طلاقیږي او نه پر هغه باندې بیت الله ته تلل لازمیږي، ځکه چې هغه دادرې واړه امور د الله تعالی تر مشیت پورې معلق کړي دي او د الله تعالی مشیت معلوم نه دی نو دان شاء الله په وجه سره د اټول مضمون باطلیږي.
**فائده**: په داسې حال کې چې د صاحبینو رحمهما الله په نزد یواځې د آخري شي حکم باطلیږي ټول مضمون نه باطلیږي ولی په جملو کې اصل استقلال دی او چک د اعتماد لپاره لیکل کیږي نو که ان شاء الله ټولو طرف ته راجع کړای شي نو د ټول بطلان لازمیږي چې د تحریر له مقصود خلاف دی ځکه نو ان شاء الله د هغه طرف ته راجع کیږي چې د هغه سره متصل دی. د صاحبینو رحمهما الله قول راجح دی کمافی الشامیة: وهما اخرجا صورة کتب الصک من عمومه بعارض اقتضی تخصیص الصک من عموم حکم الشرط المتعقب جملا متعاطفة للعادة وعلیها یحمل الحادث ولذا کان قولهما استحسانا، اجماعا علی قوله (رد المحتار: ۳/۶۰۲)

(۱۲) وان مات ذمی فقالت زوجته اسلمت بعد موته وقالت الورثة اسلمت قبل موته فالقول لهم (۱۳) وان قال المودع هذا ابن مودعی لا وارث له غیره دفع المال الیه (۱۴) وان قال لآخر هذا ابنه ایضا وکذبه الاول قضی للاول (۱۵) میراث قسم بین الغرماء لا یکفل منهم ولا من وارث.

**ترجمه**: که ذمي مړ شو او د هغه ښځې وویل چې زه د هغه له مرګ وروسته مسلمانه شوې یمه او وارثانو وویل چې ته د هغه تر مرګ مخکې مسلمانه شوې وې نو قول د وارثانو معتبریږي او که مودَع وویل چې دا زما د مودِع زوی دی د هغه هیڅ وارث نشته ما سواله ده نو ورډې کړي مال ورده ته، او که یې د بل په باره کې وویل چې دا هم د هغه زوی دی او اول یې تکذیب وکړ نو فیصله دې د اول لپاره وکړي. د یو چا میراث د قرض غوښتونکو تر منځ تقسیم شو نو ضامن دې نه اخیستل کیږي له هغوئ نه او نه له وارث څخه.
**تشریح**: (۱۲) که یو ذمي مثلا نصراني مړ شو او د هغه ښځه مسلمانه شوه راغله او دعوه یې وکړه چې زه د خپل نصراني خاوند تر مرګ وروسته مسلمانه شوې یم نو ماته دې میراث راکړای شي ولې کله چې هغه مړکیده نو زموږ دواړو دین یو وو. مګر د مړي وارثانو وویل چې نه بلکې د هغه نصراني خاوند تر مرګ مخکې د هغه په ژوند کې مسلمانه شوې وې نو ته د میراث مستحقه نه یې نو دلته د وارثانو قول معتبریږي ولې د میراث څخه د محرومیدا سبب فی الحال موجود دی چې ښځه مسلمانه ده او د چا میراث چې غواړي هغه نصراني وو نو که شخه فی الحال مړکیدای نو د هغه ښځه له میراث څخه یقینا محرومه کیده ځکه د دواړو دین یو نه دی نو موجوده حالت به فیصل وګرځول شي. تیره زمانه کې به هم سبب د محرومیت وګڼل شي.

**فائده** :يوحالت دبل حالت لپاره فيصل گرځولوته استصحاب حال ويل كيږي ،داستصحاب حال معنی داچې پەيوه وخت كې ديوشي دثبوت حكم كول پەبل وخت كې دهغه پرثبوت باندي په قياس كولوسره مثلا داسې ويل چې پەماضی كې داحكم ثابت وڅكه نوپه حال كې هم ثابتيږی لكه دمفقودشخص په باره كې چې ووايې چې هغه په ماضی كې ژوندی وڅكه نواوس به هم ژوندی وي ،ياداسې ووايې چې في الحال داحكم ثابت دی ځكه نوپه ماضی كې هم ثابتيږی لكه دژرندي داوبوپه باره كې ووايې چې في الحال دهغی اوبه جاری دي نوداسې يې بوله چې په ماضی كې هم جاري وې .

(١٣)كه يوسړی مړشواودهغه مال له بل چاسره وديعت ووبيامستودع دكوم چاپه باره كې وويل چې دادمړه (مودِع) زوی دی اوددهٔ پرته دمړي بل هيڅ وارث نشته نودامال دوديعت دي هغه شخص ته وركړي دچاپه باره كې چې دهٔ دمړي دزوی والي خبروركړی دی ځكه مستودع اقراروكړچې كوم مال زماپه قبضه كې دی هغه دمړي په نيابت سره دهغه دوارث حق جوړيږي داداسې شولكه مودَع چې خپله دمورِث لپاره دهغه په ژوندكې دمال اقراركړی وي .

(١٤)كه مستودع ديوچاپه باره كې وويل چې دازمادمودِع زوی دی بيايې ديوبل چاپه باره كې وويل چې داهم دمړه زوی دی مگراول زوی ددهٔ تكذيب وكړيعنې اول زوی وويل چې له مابغيردمړه بل هيڅ زوی نشته نوداول زوی لپاره دمال حكم وركول كيږی ولی چې دمستودع اقرارداول زوی لپاره صحيح شونوله مال څخه دمستودع قبضه ختم شوه نوددوهم لپاره دمستودع اقراركول پرلومړي اقرارباندي اقرارشمارل كيږي حال داچې پرغيرباندي اقرارنه صحيح كيږي .

(١٥)كه قاضی ديوچاميراث دهغه پرقرض غوښتونكواووارثانوباندي تقسيم كړنوداامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدله قرض غوښتونكوااووارثانوڅخه هيڅ ضامن نه اخيستل كيږي په داسی حال كې چې دصاحبينورحمهماالله په نزدكفيل ورڅخه اخيستل كيږي ،دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې دحاضرينوحق كم تركمه ظاهراًثابت دی اودغائبينودحق احتمال شته نوديوموهوم حق په وجه سره يقينی حق دكفيل ترورکولوپوري نه وروسته كيږی ،دصاحبينورحمهماالله دليل دادی چې كيدای شي چې دمړي يووارث ياقرض غوښتونكی غائب وي ځكه كله مرگ يوناڅاپه واقع شي نواحتياط په كفيل اخيستوكې دی .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :ولم اره التصريح بالترجيح غيرانه يظهرمن اكثرالكتب الاعتمادعلى قول الامام فعلى هذاينبغي ان يكون راجحا. (هامش الهداية: ٢/١٤٨)

(١٦)ولوادّعى دارًالنفسه ولاخ غائب وبرهن عليه اخذنصف المدّعى فقط(١٧)ومن قال مالي اوماامْلك فهوللمساكين صدقة فهوعلى مال الزكوة(١٨)ولواوصى بثلث ماله فهوعلى كل شيءٍ(١٩)ومن اوصى اليه ولم يعلم بالوصية فهووصى بخلاف الوكيل(٢٠)ومن اعلمه بالوكالة صح تصرفه.

**ترجمه** :اوكه يې دعوی وكړه په سرای باندي دخپل ځان لپاره اودخپل غائب ورورلپاره دميراث كيدواوپرهغه يې گواهان پيش كړل نواودي خلي نيم مدعیٰ ،اوكه چاوويل چې زمامال چې زه يې مالک يم هغه پرمسكينانوباندي صدقه ده نوداممحمول دی پرمال زكوة باندي اوكه يې وصيت وكړدخپل مال په دريمه

نودا پر هرشي باندي محمول کيږي او که څوک وصی گرځيدلی وو او ده ته معلومه نه وه چې زه وصی گرځيدلی يم نو دی وصي دی، خلاف له وکيل نه، او چاته چې دوکالت خبر ورکړل شي نو صحيح دی دهغه تصرف.

**تشريح** :(۱۶) که د چا په قبضه کې يو سرای وو بل چا گواهان قائم کړل چې دا سرای ما ته او زما غائب ورور ته له پلار څخه ميراث پاتی دی نو نيم سرای هغه ته ورکول کيږي چې گواهان يې درولي دي، او پاتی نيم دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد دهغه چا په قبضه کې پريښودل کيږی د چا په قبضه کې چې فی الحال دی ځکه چې دا يو داسې شي چې قابض دمړه له طرفه مختار وي نو دهغه قبضه نه ختميږي، همدارنگه حاضر خصم نه دی دغائب له طرفه دهغه د حصی په وصولولو کې نو ځکه حاضر حق نه لري چې دقابض له لاسه دغائب حصه هم واخلي، همدارنگه قاضی هم دچا امانت ته دتعرض کولو حق نه لري ترڅو چې هغه خپله حاضر شوی نه وي.

**فائده** :صاحبين رحمهما الله فرمايي چې که چيرته قابض په شروع کې انکار کړی وو چې دا سرای دمړه ملک نه دی بلکې زما خپل ملک دی او مدعی په گواهانو سره ثابته کړه چې دا دمړه ملک دی دقابض نه دی نو په داسې صورت کې دغائب حصه له قابض څخه اخيستلای شي يو بل امين چا ته دي ورکړي ځکه په انکار کولو سره قابض خائن ثابت شو او دخائن په قبضه کې امانت نه پريښودل کيږي ولی هغه دوباره بيا انکار کولای شي، دصاحبينو رحمهما الله قول استحسان دی ځکه راجح دی لما في الدر المختار: ادعى دارًا لنفسه ولاخيه الغائب ارثًا وبرهن عليه اخذ المدعي نصف المدعى مشاعًا وترک باقيه في يدذي اليد بلا کفيل جحد ذو اليد دعواه اولم يجحد خلافًا لهما وقولهما استحسان (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۴/۴۰۷)

(۱۷) که چا ويل چې زما مال پر مسکينانو باندي صدقه دی يا هغه مال چې زه يې مالک يم پر مسکينانو صدقه دی نو دالفظ هر هغه مال ته شامليږی په کوم کې چې زکات واجبيږي لکه نقد، پسونه، دتجارت مالونه، علاوه له دغو شيانو لکه ځمکه، دکور سامان دخدمت مريی وغيره ته نه شامليږی دقياس تقاضا خو دا ده چې ټولو مالونو ته شامل وي همدا امام زفر رحمه الله مسلک هم دی، ځکه لفظ دمال او لفظ دملک عام دی هر مال ته شامل دی که په هغه کې زکوة واجب وي که نه وي، مگر استحسانا دزکوة په مالونو پوري خاص شوی دی وجه داستحسان دا ده چې دبنده ايجاب دالله تعالی پر ايجاب باندی قياسيږی ځکه بنده لره بالاستقلال حق دايجاب نشته په کوم مال کې چې شريعت صدقه واجبه کړي ده دهغی طرف ته دبنده ايجاب هم راگرځي همدا قول راجح دی لما في الدر المختار: ولو قال مالي او ما املکه صدقة فهو على جنس مال الزکوة استحسانًا (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۴/۴۰۸)

**فائده** :بيا که له نذر کوونکي سره يوازې هغه مالونه وو چې دهغو صدقه کول واجب وو نو دخپل ځان او خپل عيال لپاره دي خرچ راوگرځوي ولی دنا ذر حاجت پر صدقه باندي مقدم دی چې نن خپل مال صدقه کړي او سبا بيرته دی دخلکو په وړاندي دسوال لاس ونه گرځوي بيا چې کله هغه ته مال په لاس ورشي نو له هغه څخه دي هغه اندازه صدقه کړي، دخلکو دحالاتو دمختلف کيدو په وجه يو معلوم مقدار متعين نه دی البته متاخرينو دمقدار تعين کړی دی چې مزدور سړی دي ديوې ورځې خرچه وگرځوي او تنخواه خوردي ديوې مياشتې او زميندار دي ديوه کال مصارف وگرځوي.

(۱۸)که چاد خپل مال د دریمې وصیت وکړنو داوصیت د هر ډول مالونو دریمې ته شاملیږی ولی وصیت اخت میراث دی نو د میراث په شان په هر ډول مالونو کې جاری کیږي هغه که مال نامی وي یعنې هغه مالونه وي چې پکي زکوة واجب دی او که غیر نامی مالونه وي یعنې هغه چې زکوة پکي واجب نه دی.

(۱۹)که چا یو څوک خپل وصي مقرر کړ مگر هغه ته د ځان وصی کیدو په اړه معلومات نه وو نو د هغه وصی کیدل صحیح دی آن تر دي که هغه د موصِي د ترکه څخه یوشی خرڅ کړي نو د هغه بیع جائزة ده ،او که چا بل څوک وکیل وګرځاوه مگر هغه ته د خپل ځان د وکیل کید و معلومات نه وو چې بیایې د موکل یوشی خرڅ کړنو دا بیع ناجائزه ده،وجه د فرق یې داده چې وصی کیدل خلافت دی نیابت نه دی ځکه وصی کیدل داسي زماني ته منسوبیږي چې په هغه زمانه کې نائب مقرر ول باطل دی یعنې وصایت د وصی له مرګه وروسته نافذ کیږي حال داچې دیو چاد مرګ وروسته د هغه د طرف نه نائب کیدل باطل دی ولی نائب د خپل منیب اختیارلري اوله مرګ وروسته د مړي اختیار بالکل ختم کیږی نو وصی کیدل خلافت دی نیابت نه دی ،او خلافت د تصرف په سلسله کې پر علم باندي نه موقوف کیږي نو ځکه که وصي د خپل وصیتوب د نه معلومتیا په صورت کې یو تصرف وکړنو دا تصرف یې جائز دی،پاتی شو وکیل هغه د خپل موکل نائب وي ولی موکل ژوندی او با اختیار دی نو کله چې وکیل د خپل موکل نائب دی نو نیابت پر علم باندي موقوف وي ځکه د وکیل تصرف بغیر د علم صحیح نه دی.

(۲۰)چې کله دا خبره ثابته شوه چې د تصرف د صحت لپاره وکیل ته د خپل وکالت علم ضروري دی نو که یو عاقل بالغ چاته خبرورکړ چې ته فلان سړي خپل وکیل مقررکړی یې بیا هغه د موکل لپاره خرید وفروخت وکړنو دا جائزدی ولي د وکالت په خبرورکولو سره پر وکیل باندي یوشی لازمول بلکې د هغه لپاره یو حق ثابتیږي او داډول معامله دیوه سړي په خبرسره هم ثابتیږي که خبرورکوونکی مړیی وي که آزاد وي،البته تمیز شرط دی چې خبرورکوونکی به غیر ممیّز ماشوم نه وي.

(۲۱)وَلَايَثْبُتُ عَزْلُهُ اِلَّا بِعَدْلٍ اَوْ مَسْتُوْرَيْنِ كَالْاِخْبَارِ لِلسَّيِّدِ بِجِنَايَةِ عَبْدِهٖ وَلِلشَّفِيْعِ وَالْبِكْرِ وَالْمُسْلِمِ الَّذِیْ لَمْ يُهَاجِرْ (۲۲)وَلَوْ بَاعَ الْقَاضِیْ اَوْ اَمِيْنُهٗ عَبْدًا لِلْغُرَمَاءِ وَاَخَذَ الْمَالَ فَضَاعَ وَاسْتُحِقَّ الْعَبْدُ لَمْ يَضْمَنْ وَرَجَعَ الْمُشْتَرِیْ عَلَى الْغُرَمَاءِ (۲۳)وَاِنْ اَمَرَ الْقَاضِیْ الْوَصِيَّ بِبَيْعِهٖ لَهُمْ فَاسْتُحِقَّ اَوْمَاتَ قَبْلَ الْقَبْضِ وَضَاعَ الْمَالُ رَجَعَ الْمُشْتَرِیْ عَلَى الْوَصِيِّ وَهُوَ عَلَى الْغُرَمَاءِ

**ترجمه**:او نه ثابتیږی د وکیل معزولیدل مگر دیوه عادل یا دوو مستور الحال ګواهانو په خبر سره لکه خبرورکول مولی ته د هغه د مریي د جنایت او شفیع ته او باکرې انجلۍ ته او هغه مسلمان ته چې هجرت یې نه وي کړی او که خرڅ کړ قاضی یا د هغه امین مریی د قرض غوښتونکو لپاره او مال یې واخیست بیا هغه ضائع شو او مریی د بل چا مستحق وګرځید نو نه ضامن کیږي او رجوع به کوي مشتري پر قرض غوښتونکو باندي،او که حکم وکړ قاضی وصی ته د مریي د خرڅولو د قرض غوښتونکو لپاره بیا هغه د بل چا مستحق وګرځید یا مړ شو تر قبض کولو مخکي او مال ضائع شونو رجوع به وکړي مشتري پر وصی باندي او وصی پر قرض غوښتونکو باندي.

**تشریح**:(۲۱)یعنې د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد د وکیل معزولیدل نه ثابتیږی تر څو چې یو عادل سړی یا دوه مستور الحال کسان (یعنې هغه کسان چې معلوم نه یې چې عادلان یا ست که فاسقان) خبرورنکړي لکه مولی

ته دهغه دمريي دجنايت خبرورکول اوشفيع ته داخبرورکول چې ستاشفعه دفلان ځمکه خرڅه شوه اوځواني انجلۍ ته چې ستانکاح شوي ده يا داسي مسلمان ته چې له دارحرب څخه يې هجرت نه وي کړی ودار اسلام ته داخبرورکول دشريعت فلان فلان احکام پرتاباندي لازم دي په دغوټولوصورتونوکې ديوه عادل يادوومستور الحال کسانوخبرضروري دی که وکيل ته يوه غيرعادل چادهغه دمعزوليدوخبر ورکړنوهغه نه معزول کيږي اوشفيع ته که يوغيرعادل دځمکې دخرڅيدوخبرورکړاودی خاموش شونو دده حق دشفعه نه ساقطيږی همدرانګه که يوې ځوانې انجلۍ ته غيرعادل سړي خبرورکړنو دهغې خاموشي اجازه نه شمارله کيږي اوپه دارحرب کې مقيم نوي مسلمان ته که غيرعادل دشرعی احکامو خبرورکړنوپرهغه باندي نه لازميږي ځکه په دغوټولوکې يوقسم الزام راځي چې دهغه دخبروروسته پروکيل باندي معزوليدل لازميږی اومولی که چيرته دهغه په خبرسره مريی آزادکړنوپرهغه باندي فديه لازميږی اوپرشفيع باندي دخاموشی په صورت کې سقوط شفعه لازميږي اوپرباکره باندي دخاموشی په صورت کې نکاح لازميږی اوپرنوي مسلمان باندي احکام دشريعت لازميږی نوچې کله پرمذکوره صورتونوکې يوقسم الزام راځي نودهغوپه باره کې خبرورکول يوډول شهادت دی ځکه نودشهادت له دووجزئينو(عددياعدالت) څخه يوضروري دی ،يعنې داضروري ده چې مخبرکه يووعادل به وي اوکه خبرورکوونکي دوه کسان وونومستورالحال به وي.

**فائده** :دصاحبينورحمهماالله په نزدپه مذکوره صورتونوکې عدالت ياعددشرط نه دی بلکې هرڅوک چې دوکيل دمعزوليدوخبرورکړي هغه معزوليږی همداسي دانورصورتونه دي ځکه داټول داخبار بالتوکيل په شان معاملات دي، لکه په اخباربالتوکيل کې چې عدالت ياعددشرط نه دی همدارنګه په مذکوره صورتونوکې هم عدالت ياعددشرط نه دی.

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله :لان اصحاب المتون يقتصرون علی قوله وهذامن باب الترجيح الالتزامي الغير الصريح (هامش الهداية:۳/ ۱۵۱)

(۲۲)که يومقروض شخص مړشوهغه په ترکه کې يومريی پرېښودهغه ځای قاضي يادهغه امين (دقاضي امين هغه سړی دی چې قاضي ورته وايي چې ماته مثلادهغه مريي دخرڅولولپاره امين کړځولی يې) هغه مريی دهغه دقرض اداکولوپه غرض خرڅ کړدهغه قيمت يې قبض کړمګرداقيمت دهغه له لاسه ضائع شو،بيايوبل سړي دهغه مريي دعوی وکړه اوپه ګواهانوسره يې خپل استحقاق ثابت کړدمشتري څخه خپل مريی اخيستل وغوښتل مشتري دقاضي په حکم دامريی هغه مستحق ته ورکړنومشتري دخپلوپيسودواپس اخيستلومستحق شومګرڅرنګه چې دلته بائع خپله قاضي يادهغه امين دی نوقاضي يادهغه امين دمشتري لپاره دثمن ضامن نه ګرځي ولی دقاضي امين دقاضي قائم مقام دی اوقاضي دخليفة المسلمين قائم مقام دی اوپرخليفة المسلمين باندي ضمان نه لازميږی نودهغه پرقائم مقام قاضي اوامين باندی هم نه لازميږی اوپرخليفة المسلمين وغيره باندي ضمان ځکه نه لازميږی چې که چيرته پردوئ باندی ضمان لازم کړای شي نوبياخلک ددي کارونوله کولوڅخه انکارکوي چې په نتيجه کې يې دخلکوحقوق ضائع کيږی حال داچې دحقوقوضائع کيدل ممنوع دی.نومشتري به دي قرض غوښتونکوته رجوع کوي

دچالپاره چې قاضی یاامین مذکورمریی خرڅ کړی دی ولی قاعده داده چې کله عاقدته رجوع کول متعذروي نورجوع هغوته کیږي دچاچې عقدشوی وي اودلته چونکه عقدد قرض غوښتونکولپاره شوی دی ځکه نومشتري بایدهغوئ ته رجوع وکړي.

(۲۳)که قاضی دمقروض چې وفات شوی دی وصي ته حکم وکړچې دمړه مریی دقرض غوښتونکولپاره خرڅ کړه چې بیاهغه خرڅ کړاودمریي قیمت یې قبض کړمگردمریي داقیمت دوصي له لاسه ضائع شو،بیادهغه مریي یوبل مستحق پیداشواوهغه له مشتري څخه دامریی یووړ یادمشتري ترقبض کولومخکې دامریی مړشونومشتري به دثمن په باره کې وصي ته رجوع وکړي ولی وصي دمړه له طرفه نائب گرځیدلی دی عقدیې کړی دی نودعقدحقوق دمشتري طرف ته گرځي داداسي شوه لکه مړه چې خپله خرڅ کړی وي،بیادي وصی قرض غوښتونکوته رجوع وکړي ځکه وصي خودهغوئ لپاره خرڅ کړی وو اوقاعده ده چې یوڅوک دبل لپاره کوم عمل وکړي اودهغه په نتیجه کې پرهغه باندي کوم ضمان راشي نوهغه به دضمان په باره کې من له العمل ته رجوع کوي.

(۲۴)ولو قال قاض عدل عادل قضيت على هذا بالرجم او بالقطع او بالضرب فافعله وسعك فعله (۲۵)وإن قال قاض عزل لرجل اخذت منك الفا ودفعت الى زيد قضيت به عليك فقال الرجل اخذته ظلما فالقول للقاضي وكذا لو قال قضيت بقطع يدك في حق اذا كان المقطوع يده والمأخوذ منه المال مقرا انه فعله وهو قاض.

**ترجمه**:که وویل قاضی عادل عالم چې ماحکم کړی دی پرهغه باندي درجم یادلاس دغوڅولو یادوهلونوته داکاروکړه تالره لاره خلاصه ده ددي کاردکولو،اوکه وویل معزول قاضی یوچاته اخیستی دي ماله تاڅخه زرروپۍ اوهغه مي زیدته ورکړي دي فیصله مي کړي وه دهغه پرتاباندي اوهغه سړی وویل چې تاهغه په ظلم سره اخیستي وي نودقاضی قول معتبردی،همدارنگه که یې وویل چې ماحکم کړی دی ستادلاس دغوڅولودحق موافق،په داسی حال کې چې مقطوع الیدسړی اوهغه سړی له چاچې یې مال اخیستی وواقرارکوي چې هغه داکارکړی وو په داسی حال کې چې هغه قاضی وو.

**تشریح**:(۲۴)که یوعالم عادل قاضی چاته وویل ماپرفلان باندي درجم حکم کړی دی ته هغه رجم کړه یاپرهغه باندي دغلاثابتیدوله وجهی مادهغه دلاس غوڅیدوحکم کړی دی ته دهغه لاس غوڅ کړه یاماپرهغه باندي دجنایت دثابتیدوپه وجه ددروووهلوحکم کړی دی ته هغه ووهه،نوچاته چې قاضی حکم کړی دی هغه ته دحکم مطابق دعمل کولوجوازشته ځکه دحاکمانوفرمانبرداري کول واجب دی قال الله تعالی :(اطيعوا الله واطيعوا الرسول واولى الامر منكم)

**فائده**:مگرروایت دی چې امام محمد رحمه الله دهغی زمانی دقاضیانوخراب حالت ته په کتوسره له دي قول نه رجوع کړي ده اومشائخوهم هغه استحسان کړی دی،خاص بیادهغوښارونوقاضیان چې په رشوتونوسره قاضیان کیږي چې داړول قاضیان زیاتره جاهلان اوفاسقان وي ځکه نوترڅوچې خپله دمعاملې ښه تحقیق نه وي دقاضی په وینادي عمل نه کوي ولی له سزاورکولووروسته دهغه تدارک ممکن هم نه دی. (کذافی الشامیة، ۴/۴۰۹)

**فائده** :امام ابو منصور ماتريدی رحمه الله فرمايي چې که چيرته قاضی عادل او عالم وي نو دهغه خبره منله کيږي ځکه دعلم په وجه هغه په فيصله کولو کې غلطی نه کوي او دعدل په وجه خيانت نه کوي او که عالم نه و والبته عادل وو نو دهغه دفيصلې په باره کې دي تحقيق وکړای شي ولې دجهالت په وجه په فيصله کولو کې دغلطي امکان شته، او که عالم فاسق وو يا جاهل فاسق وو نو دهغه وينا دي منله کيږي مگر دا که سزا ورکونکي شخص خپله دحکم دسبب مشاهده وکړه ولې له دا دوڼ قاضيانو څخه دخطاء او خيانت امکان شته همدا قول حق دی : لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :واعلم ان هذاهو الحق وهو قولنا المتنا الثلاثة الخ، فماقاله ابو منصور كشف عن مذهب الامام ابی حنيفة رحمه الله فلذا اختاره فی المتون كذا فی البحر الرائق (هامش الهداية:۳/ ۱۵۲)

(۲۵) او که يو معزول شوي قاضی مثلا زيد ته وويل چې ماله تا څخه زررويې واخيستی فلان ته مې ورکړي دکوم وچې ما پرتا باندي دقضاء په دوران کې فيصله کړي وه مگر هغه (زيد) ورته وويل چې نه! بلکې هغه زررويې تا له ما څخه په ظلم وړي وي، نو دقاضی قول معتبر يږی، همدا رنگه که معزول قاضی چاته وويل چې ما دقضاء په وخت کې په حق سره ستا دلا غوڅولو يعنې دشرعی ثبوت مطابق پر تا باندي غلا ثابته شوي وه چې په نتيجه کې يې ما ستا لاس غوڅ کړی وو، مگر هغه سړي وويل نه! بلکې تا په ظلم سره زما لاس غوڅ کړی وو، نو په دغه صورت کې هم دقاضی قول معتبر يږی په دي شرط چې دچالاس غوڅ شوی دی هغه او له چاچې مال اخيستل شوی دی هغه، دواړه په دي اقرار وو چې قاضی دقضاء په دوران کې دا کار کړی وو، وجه يې دا ده چې کله دوئ دواړه له قاضی سره اتفاق لري چې قاضی دا کار دقضاء په وخت کې کړی دی نو ظاهر حال دقاضی لپاره شاهد دی ځکه ظاهر دا دی چې قاضی ظلم نه کوي.

**فائده** :له مذکور تفصيل څخه معلوميږی چې که چيرته ماخوذ منه المال او مقطوع اليد دعوی وکړه چې قاضی دا فيصله دقاضی کيدو مخکې يا تر معزول کيدو وروسته کړي وه نو بيا دمدعی قول معتبر يږی شمس الائمه علامه سرخسی رحمه الله ددي تصريح کړي ده، مگر صاحب هدايه فرمايي چې اصح قول دا دی چې په دغه صورت کې هم دقاضی قول معتبر يږی ولې خپل فعل دا سي زمانې طرف ته منسوب کړی دی په کومه کې چې پر ده باندي دضمان وجوب منافی دی يعنې ده خپل فعل دقضاء وزمانې ته منسوب کړی دی او په زمانه دقضاء کې پر هغه باندي دضمان وجوب منافی دی نو قاضی ددغه نسبت په وجه دضمان منکر شو او دگواهانو دنشتوالی په صورت کې دمنکر قول معتبر يږی، همدا قول راجح دی :لمافی الدرالمختار:صدق قاض معزول قال بلايمين قال لزيداخذت منک الفاقضيت به لبكر ودفعته اليه او قال قضيت بقطع يدک فی حق وادعی زيداخذه الالف وقطعه اليدظلما واقر بكونهما فی وقت قضائه وكذا الوزعم لعله قبل التقليد او بعد العزل فی الاصح (الدر المختار علی هامش رد المحتار:۴/ ۴۱۰)

## كتاب الشهادة

### دا کتاب دا حکام شهادت په بيان کې دی

شهادت په لغت کې دخبر قاطع او حاضر يدل په معنی دی، ومنه قوله ﷺ :الغنيمة لمن شهد الوقعة أی حضرها) گواه هم واقعی او مجلس دقاضی ته حاضر يږی ځکه نو گواه ته شاهد ويل کيږی، او دشريعت په اصطلاح کې دحق داثبات لپاره دقاضی په مجلس کې دشهادت په لفظ سره دستر گوليدلي شي په باره کې رښتيا خبر ورکولو ته

شهادت ويل كيږي،په تعريف كې دستر گوليدلوله قيد څخه مراددادی چې كوموشيانوته چې په ستر گوكتل كيږی هغه په ستر گوليدل ضروری دی اوكوم چې اوريدل كيږی دهغواوريدل ضروري دی اوكوم چې محسوس كيږی دهغومحسوسول ضروري دی.

دشهادت شرط دادی چې دشاهدبه عقل كامل،ضبط اوهليت وي اوكه مدعی عليه مسلمان وونوداهم شرط دی چې شاهدبه مسلمان وي، اودشهادت سبب دمدعي له شاهدڅخه دگواهي اداكولوطلب دی،اوركن د شهادت لفظ دشهادت دی يعنې دگواهي اداكولوپه وخت داسي ويل چې:زه گواهي وركوم ،داوينا كافي نه ده چې ماته معلوم دی يازمايقين دی دشهادت حكم پرقاضی باندي دمقتضائی شهادت مطابق حكم كول واجب دی.

دكتاب الشهادة له كتاب ادب القاضی سره مناسبت دادی چې ديوچاپه حق كې دقاضی فيصله كول مقصوددی،اوتردغه مقصودپوري درسيدوذريعه اووسيله شهادت دی،اومقصودتروسيله مخكي وي ځكه نومصنف رَحِمَهُ اللهُ تردی مخكی په كتاب ادب القاضی كې دقضاء احكام بيان كړل چې مقصوددی اوس دقضاء دوسيلي يعنې شهادت احكام بيانوي :

(۱) هِيَ إِخْبَارٌ عَنْ مُشَاهَدَةٍ وَعِيَانٍ لَا عَنْ تَخْمِينٍ وَحُسْبَانٍ (۲) وَيَلْزَمُ بِطَلَبِ الْمُدَّعِي (۳) وَسَتْرُهَا فِي الْحُدُودِ أَحَبُّ (۴) وَيَقُولُ فِي السَّرِقَةِ أَخَذَ لَا سَرَقَ (۵) وَشُرِطَ لِلزِّنَا أَرْبَعَةُ رِجَالٍ (۶) وَلِبَقِيَّةِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ رَجُلَانِ (۷) وَلِلْوِلَادَةِ وَالْبَكَارَةِ وَعُيُوبِ النِّسَاءِ فِيمَا لَا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ رَجُلٌ امْرَأَةٌ (۸) وَلِغَيْرِهَا رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ (۹) وَلِلْكُلِّ لَفْظُ الشَّهَادَةِ (۱۰) وَالْعَدَالَةُ

**ترجمه** :داخبرور كول دی دمشاهدي څخه نه دأټكل اوگمان څخه،اولازميږی په طلب دمدعي سره اوشهادت پټول په حدودو كې مستحب دی اووايي به په غلا كې چې هغه اخيستی دی نه داچې هغه غلا كړی دی اوشرط دی دزنالپاره څلورنارينه اودنوروحدودواوقصاص لپاره دوه نارينه،اودولادت لپاره اوبكارت لپاره اودښځودهغوعيبونولپاره چې پرهغوباندي نارينه اطلاع نه شي راوستلای يوه ښځه،اوله هغه نه علاوه دنورولپاره دوه نارينه يايونارينه دوې ښځې اودټولولپاره لفظ دشهادت اوعدل شرط دی.

**تشريح** :(۱)مصنف رَحِمَهُ اللهُ دشهادت شرعی تعريف داسی كړی دی چې ديوشی په باره كې دستر گوليدلی حال بيانولوته په شريعت كې شهادت وايي داټكل اوگمان څخه څه ويلوته شهادت نه وايي له شهادة وروسته لفظ دعيان عطف تفسيری دی ددواړومعنی يوه ده.

(۲)اوگواهي هغه وخت اداكول لازم دی چې مدعي دگواهي اداكولوطلب وكړي ځكه گواهي دمدعي حق دی نودنورو حقوقوپه شان ددي حق لپاره هم دمدعي طلب شرط دی ولقوله تعالى:(وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ) ژباړه: يعنې تاسی گواهي مه پټوئ اوكه چاگواهي پټه كړه دهغه زړه گناهگاردی) په دغه آيت مباركه كې كه څه هم نهی له كتمان دشهادت راغلې ده خوقاعده داده چې كه ديوشی يوضدونوله هغه شی څخه نهی دهغه په ضدامردی نوگواكي په آيت مباركه كې دگواهی اداكولوحكم دی ځكه نوگواهي اداكول فرض دی پټول يې ناجائزدی،البته كه دگواهي اداكونكي يوعذروويا پرخپل ځان ويريدی ياله ده پرته نورخلك دگواهي وركولولپاره وونوبياگواهي نه اداكول دگناه باعث نه دی.

(۳)په شرعي حدودوكې دګواهي اداكولوپه باره كې ګواه لره اختياردى كه يې پټوي اوكه يې ښكاروي ځكه هغه ته دثواب دوه كارونه وريښې دي يعني اقامة الحدود او ستر پوشي نو ده لره اختياردى كه غواړي چې حد قائم كړي اوكه غواړي چې نوستر پوشي دي وكړي ،خوستر پوشي افضله ده لقوله ﷺ :للذي شهدعندة لوسترته بثوبك لكان خيرالك (يعني كه تاهغه په جامه پټه كړي واى نوستاليپاره بهتره وه ) وقال ﷺ :من ستر على مسلم ستر الله تعالى عليه في الدنيا والاخرة ) يعني كه چادمسلمان پرده پوشي وكړه نوالله تعالى به په دنيا وآخرت كې دهغه پرده پوشي كوي) اوپه آيت شريف كې چې يې فرمايلي ووچې كه چاګواهي پټه كړه دهغه زړه ګناهګاردى،نوله هغه ځخه مرادپه حقوق العبادكې ګواهي پټول دى،حدودله حقوق العبادڅخه نه بلكې له حقوق الله څخه دي .

(۴)په حدودوكې ستر پوشي افضله ده البته دمال دغلاكيدوپه صورت كې پرګواه باندي لازم دى چې ګواهي وركړي اوداسى به وايي چې فلان سړى مال واخيست چې دمسروق منه حق ضائع نه شي،داسې به نه وايي چې هغه مال غلاكړى دى چې دغله لاس له غوڅيدوڅخه بچ شي په دي صورت كې ستر اواظهاردواړه جمع كيږى خوكه ګواه وويل چې هغه مال غلاكړى دى نوداهم جائزدى مګرافضل دادى چې دغلاالزام ونه لګوي ځكه مقصود دمسروق منه دحق ثابتول دى چې دغلاد الزام لګولوبغيرهم حاصليږى .

(۵)دشهادت ځلورمرتبي دى اول شهادت فى الزنادى،په هغه كې دڅلورونارينه ؤګواهي معتبره ده لقوله تعالى :(وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِن نِّسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ) (يعني كومې ښځې چې دبي حيائى كاروكړي ستاسوله بيبيانوڅخه نوتاسى پرهغوښځوباندي ځلوركسان له خپلوخلكوڅخه ګواهان كړئ) همدارنګه دصحابه كرامو پردي باندي اجماع ده چې كه دزناګواهان ترڅلوروكم وونوپرهغه باندي حدقذف جاري كيږى نودااجماع ده په باب زناكې، څلوروګواهانوپرشرط كيدوباندى،اوپه شهادت فى الزناكې دښځوګواهي نه قبليږى،لحديث الزهرى رحمه الله :مضت السنة من لدن رسول الله والخليفتين من بعده ان لاشهادة للنساء في الحدود والقصاص) يعني درسول الله ﷺ اودهغه وروسته ددووخليفه ګانو(يعني حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه اوحضرت عمر رضي الله عنه )له زماني راهيسې داطريقه راروانه ده چې په حدودواوقصاص كې دښځوګواهي نه ده معتبره )

(۶)دشهادت دوهم قسم له حدزناڅخه سواپه نوروحدودو(مثلاحدسرقه،حدقذف وغيره )

اوقصاص كې ګواهي وركول دى،په دغوحدودواوقصاص كې ددونارينه ؤګواهي معتبره ده لقوله تعالى :(فَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ) پس تاسى ونيسئ دوه ګواهان له خپلونارينه ؤځينى ) په دغوحدودوكې هم دښځوګواهي نه ده معتبره لحديث الزهرى مَامرّ.

(۷)دشهادت دريم قسم دداسى شيانوپه باره كې ګواهي وركول دى چې پرهغوباندي له ښځوپرته نارينه نه شي خبريدلاى نوپه هغوكې يواځي دښځوګواهي معتبره ده لكه په ولادت كې (چې دي ښځې بچې زيږولى دى يايې نه دى ) اوپه بكارت كې (چې دا ښځه باكره ده يانه ده ) اودښځودداسى عيبونوپه باره كې چې نارينه يې نه شي كتلاى په دي ټولوكې دښځوګواهي معتبره ده لقوله ﷺ :شهادة النساء جائزة فيمالايستطيع الرجال

التظراليه) يعني كوموشيانوته چې نارينه نظرنه شي كولاى په هغوكې دښځوګواهي جائزه ده ) وجه داستدلال داده چې په حديث شريف كې دالنِساء لفظ جمع ده چې الف لام جنسي پرداخل دى اوجمع چې معرف په لام جنس سره شي جمعيت يې ختميږى دجنس په معنى كيږى اودجنس اطلاق پرقليل اوكثيرتولوباندي كيږى نولفظ دالنساء يوې ښځى لره هم شامل دى .

**فائده** :دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزدپه مذكوره صورتونوكې دڅلوروښځوګواهي ضروري ده ځكه دوې ښځې ديوه سړي قائم مقام دي ځكه نوددوونارينه ؤقائم مقام څلورښځې كيږي،امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ ته جواب وركړل شوى دى چې بالامذكورصورت دشهادت نه دى بلكې خبرورکول دى اوپه دياناتوكې ديوه خبرهم مقبول دى .

(۸)قوله ولغيرها رجلان اورجل وامرأتان اى وشرط لغيرالاشياء المذكورة رجلان اورجل وامرأتان ،يعني دشهادت څلورم قسم له مذكوره څلوروقسمونونه علاوه په نوروحقوقوكې ګواهي وركول دى په دغوحقوقوكې ددوونارينه ؤيايونر دووښځوګواهي قبليږى برابره ده چې مشهودبه حق مال وي اوكه غيرمال وي لكه نكاح،طلاق،عتاق،وكالت او وصيت وغيره،ځكه په شهادت كې اصل قبوليت دى نوپه مذكوره صورتونوكې له نارينه ؤسره دښځوګواهي هم معتبره ده ځكه په ښځه كې هغه شيان پيداكيږى پركوموباندي چې دګواهي دلياقت مداردى يعني مشاهده،ضبط اوادا،ولى په مشاهده سره ګواه ته علم حاصليږى اوپه ضبط سره هغه باقي پاتيږى اوپه اداكولوسره قاضي ته علم حاصليږى اودكثرت نسيان په وجه چې دښځې په ضبط كې كوم نقصان راغلى دى هغه دبلى ښځى په ملتياسره پوره شوى دى نودنارينه ؤسره دښځوګواهي هم معتبريږى .

**فائده** :دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزدله حقوقوماليه ؤنه علاوه په نوروحقوقوكې له نارينه ؤسره دښځوګواهي نه ده معتبره ځكه ښځې ناقصات العقل دي اودهغوئ په ضبط كې خلل وي يعني پردوئ باندي نسيان غالب وي اودهغوئ په ولايت كې قصوردى ځكه اميرالمؤمنين نه شي جوړيدلاى حال داچې دګواه لپاره ضروري دى چې دهغه عقل كامل،ضبط يې تام اواهل دولايت وي،البته په حقوق ماليه ؤكې دكثيرالوقوع په وجه بنا، برضرورت دښځوګواهي هم جائزه ده .

(۹)قوله وللكل لفظ الشهادة اى وشرط لجميع مراتب الشهادة لفظ الشهادة،يعني په مذكوره ټولوصورتونوكې دګواهي په وخت دشهادت لفظ ذكركول شرط دى ولى لفظ داشهدُ دقسم دالفاظوڅخه دى په هغه كې دقسم معنى ملحوظه وي نوددي لفظ په وجه ګواه ددروغوويلوڅخه زيات احترازكوي،نوكه چيرته ګواه وويل چې زه يې پيژنم يازمايقين دى نودهغه ګواهي نه قبليږى لماقُلنا .

(۱۰)قوله والعدالة اى وشرط العدالة ،يعني دګواه عادل كيدل شرط دى لقوله تعالى:(واشهدواذوى عدل منكم) يعني له مسلمانانوڅخه دوه عادل كسان ګواهان كړئ) دلته له عادل څخه هغه څوك مراددى چې دكبيره ګناهونوڅخه پرهيزكوي اوپرصغيره ګناهونويې هميشه توب نه وي كړى .

(۱۱)ويسأل عن الشهود سرا وعلنا في سائر الحقوق (۱۲)وتعديل الخصم لايصح (۱۳)والواحد يكفي للتزكية والرسالة والترجمة (۱۴)وله ان يشهد بماسمع اوراى كالبيع والاقرار وحكم الحاكم والغصب والقتل وان لم يشهد عليه (۱۵)ولايشهد على شهادة مالم يشهد عليه (۱۶)ولايعمل شاهد وقاض وراو بالخط ان لم يتذكروا.

**ترجمه** :اوتحقيق دي وكړي دشاهدانوپه باره كې په پټه اوپه ښكاره په ټولو حقوقوكې ،اودخصم تعديل معتبرنه دى،اويوسړى كافي دى دتزكيه اوپيغام رسولواوترجمي لپاره اوګواه لره جائزدى چې ګواهي وركړي دهغه څه چې اوريدلي يې وي اوهغه چې ليدلي يې وي لكه بيع،اقراراوحكم دحاكم اوغصب اوقتل كه څه هم ګواهي نه وركوي پرهغه باندي اوګواهى دي نه وركوي پرګواهي دبل چاترڅوچې هغه يې ګواه ونه ګرځوي،اوعمل دي نه كوي ګواه اوقاضى اوراوي پرخط باندي كه دوئ ته واقعه يادنه وه.

**تشريح** :(۱۱)دصاحبينو رحمهما الله په نزدپه ټولو حقوقوكې پرقاضى لازم دى چې هغه دګواهانو دعدالت پوښتنه وكړي په پټه هم اوسرِعام هم ،برابره ده كه خصم پرګواهانوباندي طعن وكړي ياېې نه وكړي ځكه دقاضى حكم پرحجت باندى مبنى كيږى اوحجت دعادل چاګواهي كيدلاى شي نودګواه دعدالت په باره كې تحقيق كول واجب دى.

دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددمسلمان ګواه په باره كې قاضى دهغه په ظاهرى عدالت باندي اكتفاء كوي دهغه دعدالت په باره كې په خفيه ډول تحقيق نه كوي لقوله ﷺ المسلمون عدول بعضهم على بعض الا المحدود في القذف (يعني ټول مسلمان عادل دي ځينى پرځينوباندي حجت دي سوادمحدودين فى القذف نه ) همدارنګه ظاهره ده چې له داسي فعل څخه چې دده په دين كې حرام وي (يعني له دروغ ويلو څخه )پرهيزكوي،البته دحدودواوقصاص دګواهانودعدالت په باره كې به قاضى تحقيق كوي كه څه هم خصم پرهغوباندي طعن نه كوي داځكه چې قاضى ددغوحدودودساقطولوپه باره كې حيله لټوي نوانتهائى تفتيش دي وكړي معامله دي ترپايه پوري ورسوي پوه كوشش دي وكړي ښايي يوه داسى خبره به پيداشي چې په هغې سره حدساقط شي ،البته كه خصم دحدودواوقصاص نه علاوه پرنوروګواهانوباندي داطعن درلودچې دادروغجن دي يامرېان دي يامحدودفى القذف دي نوقاضى
دي دهغوئ دحالاتوپه اړه هم پوښتنه وكړي.

دمشائخوراېه داده چې دادعهداوزماني اختلاف دى دامام ابوحنيفة رحمه الله په زمانه كې خلكو نيك كارونه كول ظاهرًاوباطنًاهغوئ رښتيني وودتعديل ضرورت نه وو ،دصاحبينورحمهما الله په زمانه كې په خلكودروغ ويل رواج شوځكه دګواهانودتعديل ضرورت دى.

**فائده** :په دي زمانه كې فتوى دصاحبينورحمهما الله پرقول ده لمافى الدّرالمختار:ولايسئل عن شاهدبلاطعن من الخصم الافى حدوقودوعندهمايسئل فى الكل ان جهل بحالهم سرًاوعلنابه يفتى،قال العلامة ابن عابدين رحمه الله :(قوله به يفتى) مرتبط بقوله وعندهمايسأل فى الكل قال فى البحر والحاصل انه ان طعن الخصم سأل عنه فى الكل والاسأل فى الحدودوالقصاص وفى غيرهامحل الاختلاف وقيل هذاالاختلاف عصروزمان والفتوى على قولهمافى هذاالزمان (الدرالمختارمع الشامية:۳/۳۱۴)

**فائده** :په خفيه ډول دګواهانودتعديل اوتزكيه مطلب دادى چې تعديل كوونكى به دګواه په حال دخبروخلكوڅخه دګواه په باره كې په ناخبرتياكې تحقيق وكړي اوپه علانيه تعديل دادى چې قاضى اوتعديل وتزكيه كوونكى دواړه سره يوځاى كړي معدل دګواه په مخامخ دهغه په باره كې داوښيي چې داعادل دى يافاسق دى،مګرعلانيه تعديل په خيرالقرون كې كيده چې په هغه زمانه كې خيرغالب

اوشرمغلوب ووزمو،په دي زمانه کې يواځي په خفيه تعديل سره اکتفاء کړای کيږي ځکه په علانيه تعديل سره په خلکو کې فساد پيدا کيږي .

**فائده** :دمزکی لپاره ضروری ده چې دده اوشاهد ترمنځ ښکاره عداوت نه وي،او دمسلمان ګواه په صورت به هغه غيرمسلم نه وي،دخفيه تزکيه په صورت کې اصول اوفروع،ښځه اوخاوندا ونوړتول قريبان اوخپلوان يو دبل دتزکيه اهل دي،همدارنګه سماعت،بصارت اوبلوغ هم دمزکی لپاره شرط نه دی ،اونه تعداد شرط دی البته عادل کيدل دهغه ضروري دی ،تزکيه به انتهائي خفيه اوپه پټ رازسره وي،حاکم دعدالت به ديوخط (چې دفقهاؤپه اصطلاح کې مستوره ورته ويل کيږي) په ذريعه چې پکي دفريقينوشاهدانواومدعی به شي وضاحت اوتعين په پوره وضاحت سره موجودوي،له مزکي څخه دشاهدانوپوښتنه کوي،داخط به سرمهرپه لفافه کې بند حاکم عدالت دخپل خاص امين په ذريعه مزکي ته ورولیږدوي . (اصول الفقهاء :ص:۳۲)

(۱۲)که دګواهانوپه باره کې خصم يعني مدعی عليه وويل ګواهان عادل دي (مثلامدعی عليه وويل چې ګواهان عادلان خودي مګرزماپه خلاف په ګواهي ورکولوکې دهغوئ څخه خطاشوي ده يايې هيرشوي دي) نودهغه داخبره نه قبليږي ځکه دمدعی اودګواهانودا عتقادمطابق مدعی عليه دمدعی انکارکوي ظالم اودروغجن دی اوظالم اودروغجن سړی دګواهانوتعديل نه شی کولای .

**فائده** :دصاحبينورحمهما الله په نزدمدعی عليه دګواهانوتعديل کولای شي په دې شرط چې هغه اهل تعديل وي، بیادامام محمد رحمه الله په نزدڅرنګه چې ديوه شخص تعديل جائزنه دی نوله ده سره بايديوبل ملګری پيداکړي،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدله هغه سره ددوهم شخص دپيداکيدوضرورت نشته ځکه دامام ابويوسف رحمه الله په نزدديوه سړي تعديل هم جائزدی .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتي غلام قادر النعماني :القول الراجح هو قول الامام ،قال العلامة ابن الهمام قال ابوحنيفة رحمه الله تفريعا على قول محمد من رأى ان يسأل عن الشهود بلاطعن لايقبل قول الخصم يعني المدعى عليه اذا قال في شهود المدعي هم عدول فلاتقع به التزكية لان في زعم المدعي وشهوده ان الخصم كاذب في انكاره مبطل في اصراره فلايصلح معدلا لان العدالة شرط في المزكي بالاجماع (القول الراجح :۲/ ۱۳۰)

(۱۳)دګواه دعادل بللودتحقيق کولولپاره يومزکی هم کافي دی دوه يازيات کسان شرط نه دي،همدارنګه دقاصدکيدو لپاره هم يوسړی کافي دی مثلاقاضی تزکيه کوونکي ته يوسړی قاصد ورواستاوه چې دفلان ګواه دعادل کيدوتحقيق وکړه نومزکی ته ددغه يوه سړي خبرورکول کافي دی،همدارنګه دبل چادترجمه کولولپاره يوسړی کافي دی يعني که يوه سړي ديوچادژبې ترجمه په عدالتی ژبه کې وکړه نوهم يوسړی کافي دی،دوه کسان ضروري نه دي،ولی چې مذکوره امور(تزکيه کول،مزکی ته دقاضی پيغام رسول ،اودګواه وغيره دژبې ترجمه کول )دشهادت له باب څخه نه دي همداوجه ده چې په دغوکې دقاضی مجلس اودشهادت لفظ ضروري نه دی ځکه په دغوشيانوکې دشهادت په شان دوه ګواهان هم ضروري نه دي .

**فائده** :امام محمد رحمه الله فرمايي چې تزکيه دشهادت په شان ده نوڅرنګه چې دشهادت لپاره دګواهانوتعدادشرط دی همدارنګه دتزکيه لپاره هم تعدادشرط دی نودزنادګواهانودتعديل لپاره

څلورمزكيان ضروري دي اودنوروحدودو اوقصاص لپاره دوه نارينه ضروري دي اوله حدودونه علاوه دنوروحقوقولپاره دوه نارينه يايونارينه دوې ښځې ضروري دي،اوپه كوموامورو چې نارينه نه شي خبريدلاى په هغوكې ديوې ښځې تعديل كافي دى.

**فائده**:دشيخينورحمهما الله قول راجح دى لمافي الدرالمختار:وكفى عدل واحدللتزكية وترجمة الشاهدو الخصم والرسالة الخ (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۴/۳۱۶)

(۱۴)گواه چې دكوم شي تحمل كوى هغه دوه قسمه دى يودادى چې حكم يې بنفسه ثابت وي لكه بيع ،اقرار،دقاضى حكم وركول،غصب اوقتل دغه اموركه گواه واوريدل (كه چيرته هغه په اوريدوسره معلوميدل لكه بيع او اقرار) يايې وليدل (كه چيرته هغه په اوريدوسره معلوميدل لكه غصب اوقتل) نوگواه لره دگواهي وركولوگنجائش شته.كه څه هم هغه پردغه معامله باندي گواه نه وي گرځيدلى ځكه په دغوصورتونوكې گواه په هغوشيانوپوه شو كوم چې دحكم لپاره موجب بنفسه دي (يعنې بيع واقراروغيره) اودگواهي لپاره پيژندل شرط دى لقوله تعالى:(الامن شهدبالحق وهم يعلمون) مگرهغه خلك چې دحق گواهي اداكوي په داسي حال كې چې هغوئ پوهيږى) البته دگواهي وركولوطريقه به داوي مثلاديبع دگواهي وركولوپه وخت به وايي چې زه گواهي وركوم چې هغه خرڅ كړه داسى به نه وايې چې هغه زه گواه جوړكړى يم ځكه دادروغ دي.

(۱۵)گواه چې دكوم شي گواهي وركوي دهغه دوهم قسم دادى چې حكم يې بنفسه نه ثابتيږى لكه گواهي وركول ځكه ترڅوچې مجلس قاضى ته گواهي منتقله نه كړي دهغې حكم نه ثابتيږى نوددغه قسم حكم دادى چې اصل گواه ترڅوپورى پرخپله گواهي باندي فرع گواه ونه گرځوي هغه هـسى دده دگواهي په ليدوسره گواهي نه شي وركولاى مثلازيد واوريدل چې بكرگواهي وركوي چې دعمروپرخالدباندي زردرهمه باندي دي نودزيدلپاره جائزه نه ده چې دعمرولپاره پرخالدباندي دزرودرهمودقرضى گواهي وركړي ځكه داشرط دى چې اصل گواه به فرع پرخپله گواهي باندي گواه نائب گرځوي اودلته هغه شرط نشته نودزيدگواهي ځكه صحيح نه شوه البته كه بكرزيدپرخپله گواهي باندي گواه وگرځاوه نوبيازيددهغه پرگواهي باندي گواهي وركولاى شي ولى اوس هغه داصل گواه نائب دى.

(۱۶)گواه لره دانه دى جائزچې خپل خط وگوري دهغه مطابق گواهي وركړي ځكه يوخط دبل سره مشابه وي نوكيداى شى چې دادبل چاخط وي نوله دغه خط څخه هغه ته علم نه حاصليږى نوگواهي هم نه شي وركولاى ولى دگواهي مدارپرعلم دى،البته كه چيرته هغه ته خپله گواهي په يادورغله نوبياگواهي وركول صحيح دى همداحكم دقاضى اودحديث شريف دراوي هم دى چې كه يې په پوره ډول واقعه يادنه وه نوخالص په خط سره دي عمل نه كوي مثلاقاضى پخپل رجسټركې دگواهانوتحرير شده گواهي وموندله مگردقاضى هغه گواهي په يادنه ده نوقاضى دي خالص دتحريرپربنيادحكم نه كوي،همدارنگه كه يوچاخپل ليكلى حديث شريف وموندمگرروايت يې په يادنه وونوداسړى دخپل تحريرپربنياددهغه حديث مطابق دحل اوحرمت حكم نه شي كولاى.

**فائده** :امام محمد رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي چې مذكوره خلكوهريوه ته روادی چې ګواهي وركړي په دي شرط چې په خط يقين ولري كه څه هم واقعه يې په يادنه وي ولی په رواوالي كې خلكولره وسعت دی وعليه الفتوی،امام ابويوسف رَحِمَهُ اللّٰه فرمايي چې دعاموګواهانودخط اعتبارنشته ځكه په هغوكې دتغيرقوي امكان شته البته دقاضي اوحديث دراوي خط معتبردی ځكه دهغوئ خط دهغوپه لاسونوكې محفوظ وي نوپه دي وجه چې قابل اطمينان دي دهغوئ پرخط باندي اعتماد كيږی دهغه مطابق عمل كول صحيح دی .

**فائده** :دامام محمد رَحِمَهُ اللّٰه قول راجح دی لماقال ابراهيم بن محمدالحلبي :لكن في البحر وغيره وجوزمحمدفي الكل وجوزه ابويوسف رَحِمَهُ اللّٰه للراوی والقاضی دون الشاهدقال شمس الائمة الحلوالی ينبغی ان يفتی لقول محمدو جزم فی البزازية بانه يفتی بقوله .(مجمع الانهر:۲٦٧/۳)

**فائده** :په سركاري كاغذانوسره هم مدعی ثابتيږی ځكه سركاری كاغذان حجت دي كه څه هم دغيرمسلم حكومت كاغذان وي په دی شرط چې دستاويزان اوكاغذان له تزويرا وتصنع اوجعلي كاروائی څخه محفوظ وي قال فی المجلة لايعمل بالخط والختم بعدهما الااذاكاناسالمامن شبهة التزويروالتصنيع فيعمل به يعنی انه يكون مدازاللحكم ولايحتاج الی الثبوت بوجه آخر,,,,,,,,,, المجلة:ص ۱۰۹۰)

قال فی تنقيح الحامدية ,,,,,,,, ويزادان العمل فی الحقيقة انماهوبموجب العرف لابمجردالخط والله اعلم واقره فی الدرالمختار فی البرات ودفترياع وصراف وسمسارالخ,وكتب فيماعلقته علی الدرالمختار نقلاعن شيخناالمحقق حجة الله البعلی الناجی فی شرحه علی الاشباه مانصه تنبيه مثل البراءة السلطانية الدفترالخاقانی المعنون بالطرة السلطانية فانه يعمل به بكتاب الامان ونقل جزم ابن الشحنة وابن وهبان بالعمل بدفترالصراف والبياع والسمسارولعله أمن من التزوير.(تنقيح الحامدية:۲۰/۲)

(۱۷)وَلَايَشْهَدْ بِمَالَمْ يُعَايِنْهُ إِلَّا النَّسَبَ وَالْمَوْتَ وَالنِّكَاحَ وَالدُّخُولَ وَوِلَايَةَ الْقَاضِي وَأَصْلَ الْوَقْفِ فَلَهُ أَنْ يَشْهَدَ بِهَا إِذَا أَخْبَرَهُ بِهَا مَنْ يَثِقُ بِهِ (۱۸)وَمَنْ فِي يَدِهِ شَيْءٌ سِوَى الرَّقِيقِ لَكَ أَنْ تَشْهَدَ أَنَّهُ لَهُ (۱۹)وَإِنْ فَسَّرَ لِلْقَاضِي أَنَّهُ يَشْهَدُ بِالتَّسَامُعِ أَوْ بِمُعَايَنَةِ الْيَدِ لَا تُقْبَلُ (۲۰)وَمَنْ شَهِدَ أَنَّهُ حَضَرَ دَفْنَ فُلَانٍ أَوْ صَلَّى عَلَى جَنَازَتِهِ فَهُوَ مُعَايَنَةٌ حَتَّى لَوْ فَسَّرَ لِلْقَاضِي قُبِلَ

**ترجمه** :اوګواهي دي نه وركوي دهغه شي په باره كې چې ده ليدلی نه وي سوادنسب ،مرګ،نكاح دخول،دولايت قاضي اواصل دوقف نه اودهغه چاپاره جوازلري چې ګواهي وركړي دهغه چاپه حق كې چې دهغه په باره كې يو معتبرچا خبرووركړی وي،اودچاپه لاس كې چې يوشی وي پرته دمريې نه نوتالره جوازلري چې ګواهي وركړي چې دادهغه دی،اوكه يې تفسيربيان كړقاضي ته چې زه ګواهي وركوم په اوريدوسره ياپه ليدوسره نومقبوله نه ده ،اوكه چاګواهي وركړه چې زه دفلان په جنازه كې حاضروم يامي لمونځ دجنازي اداكړنوداپه مشاهده كې شمارل كيږی حتی كه دقاضي په وړاندي هغه بيان كړای شي نوهم قبليږی .

**تشريح** :(۱۷)دګواهانولپاره داجائزه نه ده چې دداسی شيانوګواهي وركړي چې ليدلي يې نه وي ځكه شهادت له مشاهده څخه مشتق دی اومشاهده په معائنه سره كيږی چې هغه دلته نشته البته دنسب، مرګ،نكاح،دخول ولايت قاضي اوداصل شي دوقف كولوپه باره كې دغسی ګواهي وركول هم صحيح دی په دي شرط چې قابل اعتمادخلكودغواموروپه باره كې خبرووركړی وي نوګواه ته استحسانًا داجائزدی چې دهغوپه باره كې ګواهي وركړي مثلايوسړي له ډيروخلكوڅخه دبكردوفات كيدوخبر واوريداوداسړی ولاړپه عدالت كې دبكردوفات ګواهي وركولای شي همدارنګه په نسب ،نكاح وغيره كې هم،وجه يې داده

چې مذکورشیان داسی دی چې خاص خلک دهغو په معائنه کولوپوري مختص وي په داسی حال کې چې په دغوامورو سره داسی احکام متعلق وي چې ډیري مودي لپاره پاتیږي نوکه ددغواموروپه باره کې داوریدوگواهي قبوله نه شي نوتیجه به یې داشي چې ډیراحکام به معطل شي مثلاً پنځوس کاله وروسته یو سړي دعوی وکړه چې دا ځمکه زمادپلارمیراث دی حال داچې دهغه دولادت گواهان موجودنه دي،ظاهره ده چې که چیرته په دغه وخت کې دسماعت گواهي جائزه ونه گڼله شي نوددي سړي حق معطل کیږي ولې چې گواهان موجودنه دي نوثبوت ممکن نه دی.

**فائده**: داصل شي دوقف مطلب دادی چې مثلاً یوچاخپله ځمکه دیوې مدرسی لپاره وقف کړه اوس گواه دځمکی په باره کې داوریدوگواهي ورکولای شي چې فلان سړي خپله فلانی ځمکه دفلانی مدرسی لپاره وقف کړي ده مگردهغی ځمکی دحاصلاتو دتفصیل په باره کې گواهي نه شي ورکولای چې دومره پیداوارطالبانوته وقف دي اودومره داستاذانودتنخواگانولپاره وقف دي وجه یې داده چې اصل وقف په خلکوکې مشهوروي مگردهغه تفصیلات مشهورنه وي ځکه نودتفصیلاتوپه باره کې داوریدوگواهي ورکول ناجائزه ده.

**فائده**: په ټیلیفون شهادت اوگواهي نه ده معتبره،دگواهي له شرطونوڅخه یومهم شرط دادی چې گواه دقاضی په اجلاس کې حاضرشي گواهي ورکړي بلکې فقهاؤدگواهي تعریف داسی کړی دی چې دقضاء په مجلس کې به داخبره کوي،علامه حصکفی رحمه الله لیکلي دي :اخبارصدق لاثبات حق بلفظ الشهادة فی مجلس القاضی (گواهي دیوچادحق دثبوت په سلسله کې دیوربښتینی انسان دخبرنوم دی چې دقاضی مجلس ته حاضرشی دشهادت دلفظ په ذریعه بیان وکړي) په فون که کومه خبره وکړي نوظاهره ده چې په هغه کې داشرط مفقوددی ځکه دشهادت لپاره په ټیلیفون باندي اطلاع کافي نه ده.(جدیدفقهی مسائل :۱/ ۴۳۵)

(۱۸)که دیوچاپه قبضه کې له مریې اومنځي نه پرته کوم بل شی تاولیدنوستالپاره داجائزه ده چې داگواهي ورکړي چې داشی دهغه دی ځکه دقابض قبضه دهغه دمالک کیدودلیل دی ولی په ټولواسبابودملک کې دانجام کارپه اعتبارسره قبضه سبب دملک ده مثلاً میراث سبب دملک دی لیکن هغه وخت دهغه مالک گرځي چې دامعلومه شي چې مردهغه مالک وواودمړي مالک کیدل دهغه دقبضی څخه معلومیږي یعنې که چیرته مړه ژوندکې پرهغه مال باندي قابض وونودادهغه دمالک کیدوعلامه ده همدارنگهٔ هبه سبب دملک ده په دي شرط چې واهب خپله دهغه مالک وي اودواهب ملک دهغه دقبضی څخه ثابتیږي.

البته مریی اومنځه که چیرته تادچاپه قبض کې ولیدنودهغه په باره کې داتفصیل دی چې که تاته دهغه مریې کیدل معلوم وونودهغه په باره کې ته گواهي ورکولای شي چې دامریی ددي قابض ملک دي ځکه درقیت په وجه هغه پرخپل ځان باندي قابونه لري نوداکېږي وغیره په شان دقابض په قبضه کې دی ځکه پرهغه باندي دقابض قبضه دهغه دملک علامه ده اوکه تاته دهغه مریتوب معلوم نه وواوهغه ممیزهم وونوهغه چې دچاپه قبضه کې ووینې ته گواهي نه شي ورکولای چې دادقابض ملک دی ځکه په دي صورت کې هغه پرخپل ځان

قابولري نوپرهغه دبل چاقبضه نه ثابتيږي اوچې كله پرهغه دبل چاقبضه نښته نودهغه دملكيت علامه هم نښته نودهغه مالک كيدوګواهي وركول جائزنه ده.

(۱۹)كوم شيان چې اوريدل كيږي دهغوپه باره كې ګواهي وركول جائزه ده دهغوګواهي مطلق پرېښودل پكاردي دقاضي په وړاندې دهغه تفسيركول نه دي پكارمثلا دنسب په باره كې دي داسې ګواهي وركړي چې زه ګواهي وركوم چې فلان دفلان زوى دى اوكه يې ووېل چې ماله خلكونه اوريدلي دي چې فلان دفلان زوى دى نو ځكه زه ګواهي وركوم نوقاضي دي دده ګواهي نه قبلوي،همدارنګه كه يې دقابض په باره كې ووېل چې داشخص دفلان مكان مالک دى نوداګواهي قبليږي اوكه يې ووېل چې داسړى پرفلان مكان باندې قابض دى نوزه دهغه دمالک كيدوګواهي وركوم نوقاضي دي دهغه ګواهي نه قبلوي وجه يې داده چې له تفسيرنه كولوڅخه معلوميږي چې دهغه په زړه كې دهغه رښتينوالى موجوددى نوداګواهي دعلم تحت شوې ده اوكومه ګواهي چې دعلم پربنياد وي هغه قبليږي اودتفسير كولوپه صورت كې داسې معلوميږي چې دګواه په زړه كې ددې خبرصداقت موجودنه دى نوداګواهي دعلم تحت نه ده شوې ځكه قاضي بايدهغه قبوله نه كړي.

(۲۰)كه چاداسې ګواهي وركړه چې زه دفلان ودفن كولوته حاضرشوى وم دهغه دجنازې لمونځ مااداكړنودامشاهده اومعائنه ده نوددې په باره كې كه چيرته هغه ګواهي وركوي نوذاداوريدوګواهي نه ده بلكې دديدګواهي ده ځكه خلک مړى دفن كوى اوپرمړي باندې دجنازې لمونځ كوي په تدفين اوجنازه كې شريک كيدل ګواكي دمړي مشاهده كول دي نوكه چيرته هغه دقاضي په وړاندې دداډول تفسيرپه بيانولوسره ګواهي وركړه چې ماله خلكوڅخه اوريدلي ووچې دادفلان جنازه ده بياهم قاضي دهغه ګواهي قبلوي.

## بَابُ مَنْ تُقْبَلُ شَهَادَتُهُ وَمَنْ لَاتُقْبَلُ

داباب دهغوخلكوپه بيان كې دى چې دچاګواهي قبليږي اودچاګواهي نه قبليږي.

مصنف رحمه الله تردې مخكې دابيان كړى ووچې په كوموشيانوكې شهادت اوريدل كيږي اوپه كوموكې نه اوريدل كيږي.اوس دلته هغه بيان كوي چې دچاشهادت مقبول دى اودچانه دى مقبول،څرنګه چې هغه شيان په كوموكې شهادت قبليږي اوهغه شيان په كوموكې شهادت نه قبليږي دشهادت محل دى اومحل شرط وي اوشرط دتقدم تقاضاكوي ځكه يې نودهغوبيان مخكې كړ.

(۱)وَلَاتُقْبَلُ شَهَادَةُ الْأَعْمٰى وَالْمَمْلُوكِ وَالصَّبِيِّ(۲)إِلَّاأَنْ يَتَحَمَّلَا فِي الرِّقِّ وَالصِّغَرِ وَأَدَّيَا بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ وَالْبُلُوغِ(۳)وَالْمَحْدُودِ فِي قَذْفٍ وَإِنْ تَابَ(۴)إِلَّاأَنْ يُحَدَّ الْكَافِرُ فِي قَذْفٍ ثُمَّ أَسْلَمَ(۵)وَالْوَلَدِ لِأَبَوَيْهِ وَجَدَّيْهِ وَعَكْسِهِ(۶)وَأَحَدِ الزَّوْجَيْنِ لِلْآخَرِ(۷)وَالسَّيِّدِ لِعَبْدِهِ وَمُكَاتَبِهِ (۸)وَالشَّرِيكِ لِشَرِيكِهِ فِيمَاهُوَمِنْ شَرِكَتِهِمَا.

**ترجمه**:اونه قبليږي ګواهي دړانده اومريي اوماشوم،مګرداچې هغوئ دواړه تحمل وكړي په حالت دغلامي اوكم عمرې كې اواداېې كړي له آزادې اوبلوغ وروسته اودمحدودفي القذف ګواهي نه ده صحيح كه څه هم

توبه يې ويستلي وي مګرداكه په حد كړاى شي كافرپه قذف كې بياهغه اسلام راوړي اودماشوم دخپل موراوپلار اوآنااونيكه لپاره اودهغه دعكس، اودخاوند اوښځي ديوبل لپاره اودمولى دخپل مريې اومكاتب لپاره اوديوه شريك دبل شريک لپاره په هغه شى كې چې ددوئ له شركت څخه وي.

**تشريح** :(۱)د ړانده ګواهي نه قبليږي ځکه دګواهي په اداكولوكې په اشاره سره دمشهودله اومشهود عليه ترمنځ دتميزكولوضرورت وي اوړوندله آوازپرته هيڅ ډول داتميزنه شي كولاى اوآوازله آوازسره مشابه كيدلاى شي نوځكه داتميزنه حاصليږي مملوک اونابالغ ماشوم ګواهي نه شى وركولاى ځكه ګواهي له بابه دشهادت څخه ده په داسې حال كې چې نابالغ اومريى پرخپل ځان باندې ولايت نه لري نوپرغيرخوبې په طريقه اولى نه لري.

(۲)البته مريى اونابالغ ماشوم كه په حالت دغلامى اوماشومتوب كې ګواه وګرځي يعنې دګواهي تحمل وكړي اوله آزاديدو اوبالغ كيدووروسته ګواهي اداكړي نوپه دغه صورت كې دهغوئ ګواهي قبليږي ځكه تحمل دشهادت په مشاهده اوسماع سره وي اومريى اوماشوم دمشاهدى اوسماع اهل دي اوڅرنګه چې له آزادي اوبلوغ وروسته ګواهي اداكوي په دي وخت كې دوئ دګواهي اداكولواهليت لري ځكه نوپه دي وخت كې دهغوئ ګواهي مقبوله كيږي.

(۳)قوله والمحدود في القذف اى لايقبل شهادة المحدود في القذف الخ،يعنې دمحدود في القذف ګواهي جائزه نه ده كه څه هم اوس هغه له جنايت څخه توبه كړي وي ځكه دمحدود في القذف دګواهي نه قبلول دهغه دحدتمه ده يعنې دقاذف(پرچاباندې دزناتهمت لګونكي) حددادى چې هغه اتيا(۸۰)درې ووهل شى اودهغه ګواهي ردكړاى شي يعنې په آينده كې دهغه ګواهي قبوله نه شي.

**فائده** :ائمه ثلاثه فرمايي چې ترتوبى وروسته دقاذف ګواهي قبليږى لقوله تعالى:(وَلَاتَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ)يعنې ددوئ ګواهي هيڅكله مه قبلوئ اوداخلک فاسق دي مګرنه هغه خلک چې توبه وباسي.وروسته له دي اوخپل ځان اصلاح كړي نوالله تعالى خامخامغفرت كوونكي اورحمت كوونكى دى) خلاصه داچې دقاذف په باره كې بيشكه داحكم دى چې دهغه ګواهي نه قبليږى مګركوم خلک چې توبه وكړي هغوئ له دغه حكم څخه مستثنى دي ،احناف جواب وركوي چې داستثناء په باره كې قاعده داده چې استثناء په هغه جمله سره متعلقه كيږى په كومه جمله چې متصله وي په آيت مباركه كې استثناء په هُمُ الفَاسِقُون.پورې متصله ده نومطلب يې داكيږى چې ددروغوتهمت لګوونكي فاسق دي مګرهغه خلک چې توبه وباسي هغوئ فاسق نه دي نوداثابته شوه چې داستثناء تعلق له (ولاتقبلوالهم شهادةابدا) پورې نه دى نودقاذف دغه حكم دهميشه لپاره برقرارپاتې شو.

(۴)البته كه په حالت دكفركې يوچاپريوه پاک دامن باندي دزناتهمت ولګاوه اودغلط تهمت لګولوپه وجه هغه په حدقذف سره ووهل شوبياهغه مسلمان شونواوس چې هغه دچاپه باره كې ګواهي وركوي نودهغه ګواهي قبليږى ولى په حالت دكفركې دهغه لپاره دګواهي حق وومګردحدقذف په وجه دهغه

داحق ختم شوبيا چې کله مسلمان شونو دهغه لپاره دګواهي دوهم حق پيداشونو ددغه نوي حق په وجه دهغه ګواهي قبليږي:

(۵)قوله والولدلابويه اى ولاتقبل شهادة الولدلابويه ،يعني دزوى (مراداولاددى وان سفل)ګواهي دخپل موراوپلار اواجدادو لپاره نه قبليږی اودهغه عکس هم نه صحيح کيږی،يعني دآباؤاواجدادوګواهي دخپلواولادونو اولمسيانو لپاره نه قبليږی لقوله ﷺ :لاتقبل شهادة الوالدلولده ولاالولدلوالده ولاالمرأة لزوجهاولاالزوج لامرأته ولاالعبدلسيده ولاالمولى لعبده (دزوی شاهدي دپلارلپاره نه قبليږی اونه دپلارګواهي دزوی لپاره اونه دښځي دخپل خاوندلپاره اونه دخاوند دخپلې ښځی لپاره اونه دمريي ګواهي دخپل مالک لپاره اونه دمالک ګواهي دخپل مريي لپاره )همدارنګه داولاداوآباؤترمنځ منافع متصلی وي همداوجه ده چې يوبل ته زکوة نه شي ورکولای نوددوئ يودبل لپاره ګواهي ورکول من وجه دخپل ځان لپاره ګواهي ورکول دی ځکه نه ده مقبوله.

(۶)قوله واحدالزوجين للاخر اى لاتقبل شهادةاحدالزوجين للاخر،يعني له زوجينو څخه ديوه ګواهي دبل لپاره جائزه نه ده لقوله ﷺ لاتقبل شهادة الوالدلولده ولاالولدلوالده ولاالمرأة لزوجهاولاالزوج لامرأته ولاالعبدلسيده ولاالمولى لعبده (دزوی شاهدي دپلارلپاره نه قبليږی اونه دپلارګواهي دزوی لپاره اونه دښځي دخپل خاوندلپاره اونه دخاونددخپلې ښځی لپاره اونه دمريې ګواهي دخپل مالک لپاره اونه دمالک ګواهي دخپل مريي لپاره )اوهمدارنګه دزوجينو منافع هم متصلی وي نوداهم من وجه دخپل ځان لپاره ګواهي ده،دامام شافعي رحمه الله په نزدديودزوجينو ګواهي دهغه بل لپاره جائزه ده ځکه دزوجينو څخه ديوه ګواهي دبل لپاره دعادل ګواهي ده دخپل غيرلپاره نوبايدچې جائزه شي زمونږدليل پورتني ذکرشوی روايت دی.

(۷)قوله والسيدلعبده،اى لاتقبل شهادة السيدلعبده،يعني دمولی ګواهي دخپل مريی لپاره نه قبليږی لماروينا،دغه رنګه که چيرته مريی مقروض نه وونودامن کل وجه دخپل ځان لپاره ګواهي ده ځکه نودمريی په لاس چې څه راځي هغه ټول دمولی مِلک دی اوبعينه په همدي وجه دمولی ګواهي دخپل مکاتب لپاره هم جائزنه ده.

(۸)قوله والشريک لشريکه اى لاتقبل شهادة الشريک لشريکه ،يعني ديوه شريک ګواهي دخپل شريک لپاره په داسی شي کې چې ددواړو دشرکت څخه په لاس ورغلی وي مثلاً په مال دشرکت کې يوشريک پرچاباندي څه دعوي وکړه اوهغه بل شريک دهغه لپاره ګواهي ورکړه نوداګواهي نه قبليږی ځکه دامن وجه دخپل ځان لپاره ګواهي ده ځکه په مشترک شی کې چې دګواه څومره حصه ده هغومره مقدارګواهي يې دخپل ځان لپاره شوه نوځکه داګواهي نه صحيح کيږی.

(۹)وَالمُخَنَّثِ وَالنَّائِحَةِ وَالمُغَنِّيَةِ(۱۰)وَالعَدُوِّ اِن كَانَتْ عَدَاوَةُ دُنْيَوِيَّةٌ(۱۱)وَمُدْمِنِ الشُّرْبِ عَلَى اللَّهوِ(۱۲)وَمَنْ يَلْعَبُ بِالطُّيُورِ(۱۳)اَوْيُغَنِّي لِلنَّاسِ اَوْيَرْتَكِبُ مَايُوجِبُ الحَدَّ(۱۴)اَوْيَدْخُلُ الحَمَّامَ بِلاَاِزَارٍ اَوْيَاكُلُ الرِّبْوٰ اَوْيُقَامِرُ بِالنَّرْدِ وَالشِّطْرَنْجِ اَوْتَفُوتُهُ الصَّلٰوةُ بِسَبَبِهِمَا(۱۵)اَوْيَبُولُ اَوْيَاكُلُ عَلَى الطَّرِيقِ(۱۶)اَوْيَظْهَرُ السَّبُّ السَّلَفِ.

**ترجمه** :او نه قبلیږی ګواهي دنرښځي او نوحه کوونکې او سندرې ویونکې،او د دښمن که یې دښمني دنیوي وه او دلهوپه ډول پرشراب خوري باندي دوام کوونکي،او هغه چې په مارغانو باندي لوبې کوي او هغه چې سندري وایې خلکوته یاارتکاب دداسي ګناه وکړي چې حدواجبوي یاحمام ته داخلیږی بغیرجامه،یاسود خوروي یاقمارکوي په کتارسره یالمونځ قضاء کوي دشطرنج او کتارپه وجه ،یاهغه چې بولې کوي یاخوراک کوي په لاره کې یابرملا اسلافوته بدردوایې.

**تشریح** :(۹)قوله والمخنث ای لاتقبل شهادة المخنث الخ،دهجړا (نرښځي) ګواهي نه قبلیږی مراد هغه نرښځی دی چې بدفعلي کوي ځکه هغه فاسق دی نو ګواهي یې نه قبلیږی نو هغه خنثی چې بدفعلي نه کوي هغه عادل او مقبول الشهادة دی همدارنګه نائحه (دنورولپاره په اجرت ژړاکوونکې ښځې) او مغنیه (سندرې ویونکې) ښځې ګواهي هم نه قبلیږی ځکه دادواړې ښځې دحرام فعل مرتکبې دي نو دفسق په وجه ددوئ ګواهي نه قبلیږی.

**فائده** :دوعده معاف ګواهانو ګواهي نه معتبریږی فقهاؤ چې دګواهي کوم اصل ښودلی دی له هغه څخه معلومیږی چې که ګواه متهم وو او امکان وو چې هغه له چاڅخه دانتقام اخیستو یاهغه ته دنقصان رسیدو په صورت کې دخپل ځان څخه دمضرت لیري کولو په غرض ګواهي ورکوي نو دداسي چاګواهي نه قبلیږی لکه چې فقهاؤ دپخوانه راپیداشوی دنیوي عداوت دګواهي دقبلیدو مانع بللی دی ،دوعده معاف ګواهانو معامله داوي چې هغه خپل ځان دمقدمي څخه دآزادیدو لپاره دنورو په خلاف ګواهي ورکوي نو ځکه داسي ګواهي نه معتبریږی داپه هغه صورت کې ده چې کله پرهغه باندي دیو داسي جرم الزام نه وي چې شرعًا موجب دفسق وي که داډول الزام لګول شوي وو چې دفسق باعث هم دی او وعده معاف ګواه دااقرار وکړي دبل په خلاف ګواهي ورکوي نو داګواهي په دي هم نه معتبریږی چې دهغه اقراردهغه دفاسق کیدو دلیل دی او دفاسق شهادت معتبرنه دی .(جدید فقهی مسائل : ۱/ ۴۳۱)

(۱۰)قوله والعدوان کانت عداوة دنیویة ای لاتقبل شهادة العدوان کانت عداوة دنیویة .یعني د دنیاوی عداوت ساتونکي دښمن ګواهي هم نه قبلیږی لکه مقذوف چې دقاذف په خلاف کومه ګواهي ورکړي یادمقتول وارثان دقاتل په خلاف یوګواهي ورکړي ځکه ددنیاوی دښمني دساتونکي په باره کې ددروغو دګواهي دنه ورکولو څخه اطمینان نه راځي،او که عداوت ددیني معاملې په وجه وونو له هغه څخه دګواه پرعدالت باندی هیڅ اثرنه پریوځي نو دداسي چاګواهي معتبره ده .

(۱۱)قوله ومدمن الشرب علی اللهوای لاتقبل شهادة مدمن الشرب علی اللهو ،یعني دلهوپه طریقه پرشراب خوري (مرادله خمرو څخه ماسوانور مسکرمشروبات دي)باندي دمداومت کوونکي ګواهي نه قبلیږی ځکه داسړی دحرام فعل مرتکب دی ،دمداومت قیدیې ځکه ورسره لګولی دی چې بلامداومته دهغه داعمل نه ښکاریږی او بي له ښکاریدو څخه دهغه عدالت نه ختمیږی او دلهوپه طریقه قیدیې ځکه ورسره ایښی دی چې ددواپه طریقه استعمال څخه احترازراشي ځکه چې ددواپه ډول خوړلو سره یې عدالت نه ساقطیږی او داقید چې له خمر څخه سوا داځکه چې دخمرویوه قطره هم عدالت ساقطوي.

(۱۲)قوله ومن يلعب بالطيور اى لاتقبل شهادة من يلعب بالطيور ،يعنې هغه څوک چې په مارغانو باندي لوبې کوي مثلا مرغ بازي وغيره دهغه هم گواهي نه قبليږي ځکه چې په مرغ بازي باندي غفلت پيدا کيږي او بل له دي وجهي چې پرچتو باندي د مارغانو د الوزلو څخه د خلکو پرپرده باندي نظرلويږي .

(۱۳)قوله ويغنى للناس اويرتكب مايوجب الحداى لاتقبل شهادة من يغنى للناس اويرتكب مايوجب الحد،يعنې دهغه چاگواهي هم نه قبليږي چې خلکو ته سندرې وايې ځکه دا چې خلک پر کبيره باندي سره جمع کوي چې دهغه په وجه د ده عدالت ساقطيږي همدارنگه دهرهغه چاگواهي نه قبليږي چې له کبيره گناهونو څخه ديوي داسې گناه مرتکب شي چې دهغې سزاد حد وي لکه زنا ،غلا وغيره ځکه داسې خلک فاسقان دي .

(۱۴)قوله اويدخل الحمام بلاازار،اى لاتقبل شهادة من يدخل الحمام بلاازار ،يعنې هغه څوک چې بغيرپرده لوڅ لغړحمام (په ځينو ښارونو کې پرښکاره ميدان خلک پريوه ځاى لمبيږي له حمام څخه همدا صورت مراددى) ته داخليږي نو دهغه گواهي نه قبليږي ځکه ستر ښکارول حرام دى نوداسړى دفاسق کيدوپه وجه مردودالشهادة دى،همدارنگه هغه څوک چې سود خوروي دهغه گواهي نه قبليږي ځکه دسود حراموالى دنص قطعي څخه ثابت دى نوسود خورد فاسق کيدوپه وجه مردودالشهادة دى اوهغه څوک چې په کتار(نَرد) يوقسم لوبه ده چې اردشيربن بابک دايران پاچا ايجاد کړې ده ) ياشطرنج (مشهوره لوبه ده چې په شپږقسمه مهرسره لوبې کوي چې شاه فر،زين،فيل،اسپ،رُخ اوپيدل ورته وايې ) سره لوبې کوي دهغه گواهي نه قبليږي ځکه په کتارلوبې کول حرام دى اودحرام مرتکب فاسق وي ځکه دهغه گواهي نه قبليږي همدارنگه دچاچې دکتارياشطرنج په وجه لمونځ قضاء شي دهغه گواهي هم نه قبليږي ځکه چې لمونځ قضاء کول کبيره گناه ده اودکبيره گناه مرتکب فاسق وي .

(۱۵)همدارنگه هغه څوک چې غلط اوسپک حرکات کوي (چې دمروت خلاف وى) لکه په لاره کې بولي کول ياپه لاره کې خوراک کول نودهغه گواهي هم نه قبليږي ځکه داسړى دمروت پرېښودونکى دى نوچې دى په داسې کارونو نه شرميږي نوپه دروغ ويلوسره هم نه شرميږي لهذادى پخپله گواهي کې متهم کيږي اودمتهم گواهي نه قبليږي

(۱۶)قوله اويظهرسب السلف اى لاتقبل شهادة من يظهرسب السلف ،يعنې څوک چې دسلف صالحينو(صحابه کراموا وتابعينو) په باره کې بدگوئي ظاهره کړي نودهغه گواهي هم نه قبليږي ځکه دهغه فسق ظاهردى،بلکې که يو چاسب دمسلمان وکړکه څه هم له اسلافو څخه نه وي نو دهغه هم گواهي نه قبليږي ځکه مسلمان ته ښکنځل کول دمروت منافي دى البته که بدگوئي پټه وساتي نودمستور کيدوپه وجه دهغه گواهي مقبوله ده .

(۱۷)وَتُقبَلُ لِاَخِيهِ وَعَمِّهِ وَاَبَوَيهِ رِضَاعًا وَاُمِّ امرَاَتِهِ وَبِنتِهَا وَزَوجِ بِنتِهِ وَامرَاَةِ ابنِهِ وَاَبِيهِ (۱۸)وَاَهلِ الهَوىٰ اِلَّا الخَطَّابِيَّة (۱۹)وَالذِّمِّيِّ عَلىٰ مِثلِهِ وَالحَربِيِّ عَلىٰ مِثلِهِ لَا عَلىٰ الذِّمِّي (۲۰)وَمَن اَلَمَّ بِصَغِيرَةٍ اِن اجتَنَبَ الكَبَائِرَ (۲۱)وَالاَقلَفِ وَالخَصِيِّ وَوَلَدِ الزِّنَا (۲۲)وَالخُنثىٰ (۲۳)وَالعُمَّالِ وَالمُعتَقِ لِلمُعتِقِ.

**ترجمه** :او قبليږي دخپل ورور او آکا او رضاعي مور او پلار او دخپلې ښځي د مور او دخپلې ښځی دلور او زوم او مېړور او دپلار دښځي لپاره او د اهل هواء مګرنه دخطابيه ؤ ،او دذمي پرخپل مثل او دحربی کافر پرخپل مثل نه پر ذمي او دداسي چې دصغيره ګناهونو مرتکب وي که یې له کبیره ؤ څخه ځان ساتلی وو او دغیر مختون او خصي او ولدزنا ،او خنثی او دعاملینو او دآزاد شده ګانو دآزادیدونکو لپاره .

**تشريح** :(۱۷)قوله تقبل لاخيه ای وتقبل شهادة الاخ لاخيه،يعنې ديوچاګواهي دخپل ورور،آکا،رضاعي مور او پلار،خسر دخپلې ښځي دلور،زوم دمېړور او دپلار دښځي لپاره قبليږی ځکه چې داخلک پخپله دغه ګواهي کې متهم نه دي ولی ددي خپلوانو املاک اودهغوئ منافع پخپلوکې سره مشترکی نه دي بلکې جلاجلا دي .

(۱۸)قوله واهل الهوى الاالخطابية ،ای وتقبل شهادة اهل الهوى الاالخطابية،يعنې داهل هواء (يعنې بدعتيانو) ګواهي قبليږی که څه هم داخلک من حيث الاعتقاد فاسق دي ځکه داخلک په خپل زعم کې متدين دي نوپه ګواهي کې له دروغ ويلو څخه دځان ساتلو اهتمام کوي،سواله فرقه خطابيه (له رافضيانو څخه يوه ډله ده چې دخپلې ډلی لپاره ګواهي ورکول واجبه ګڼی که څه هم ددوئ ډلی انسان محض ددروغو مدعی وي) چې دهغوئ ګواهي نه قبليږی دتهمت دکذب په وجه .

(۱۹)قوله والذمى على مثله ای وتقبل شهادة الذمی علی مثله،يعنې دذميانو ګواهي پخپلوکې ديوبل په خلاف قبليږی که څه هم ددوئ ملتونو مختلف وي لکه ديهودو ګواهي پرنصاری ؤباندي دنصاری ؤګواهي پريهودو لأنَّ الکفر کلّه مِلَّةٌ واحدة لاإلاَ فی بینهم ،ولی ذمی پرخپل ځان اوخپل اولادباندی ولايت لري نوپرخپل جنس باندي دګواهي لياقت هم لري پاتی شو دهغوئ اعتقادي فسق دهغوئ دګواهي قبليدومانع نه دی ځکه کوم شی چې هغوئ پخپل دين کې حرام ګڼي له هغه څخه دوئ پرهيزکوي اودروغ ويل په ټولواديانوکې حرام دي اوذميانوپه شان ديوه حربی ګواهي دبل حربی په خلاف قبليږی لماقلنا ،البته دحربی (دحربی څخه مرادمستامن دی ځکه هغه حربی کافرچې داستيمان بغيردارالاسلام ته داخل شي هغه مربی ګرځول کيږی اودمربي ګواهي نه ده معتبره) ګواهي دذمی په خلاف نه قبليږی ځکه پرذمی باندي هغه هيڅ ولايت نه لري ولی ذمی په دارالاسلام کې اوسيږی دحربی نه دهغه حالت اعلی دی .

الالغاز:ای شهور شهدوا علی شريکين فقبلت علی احدهما دون الاخر؟

فقل:شهود نصاری شهدوا علی نصرانی ومسلم يعتق عبدمشتر.

الالغاز:ای مسلمين لم تقبل شهادتهما بشئ وشهد نصرانيان بضده فقبلت؟

فقل:نصرانی مات وله ابنان مسلمان شهدابناه انه مات نصرانيا ونصرانيان شهدا انه مات مسلما قبل النصرانيان.(الاشباه والنظائر

(۲۰)قوله ومن الم بصغيرة الخ ای وتقبل شهادة من الم بصغيرة الخ .يعنې که ديوچانيک اعمال دهغه پرصغيره ګناهونو باندي غالب وي اوله کبيره ګناهونو څخه يې پرهيزکړی وي نودهغه ګواهي قبليږی اودشرعی عادل همدا تعريف دی ځکه له کبيره ګناهونو څخه پرهيزکول ضروري دی اوپه صغيره ؤکې دغالب اعتباردی دچاچې صغيره ګناهونه زيات وي نودهغه ګواهي متاثره کيږی اودچاچې صغيره ګناهونه کم وي نودهغه ګواهي قبليږی ولی که له ټولوصغيره اوکبيره ګناهونو څخه پرهيزلازمي وګڼل شي نودشهادت درواز

بندیږی ځکه له انبیاؤکرامو علیهم السلام سِواهیڅوک له صغیره ګناهونو معصوم نه دی.وَمن الم بِمعصیة یعنې څوک چې دصغیره ګناهونونه په کوم ګناه اخته شي.

(۲۱)قوله والاقلف والخصی ای وتقبل شهادة الاقلف والخصی.یعنې دچاچې ختنه نه وي شوي دهغه ګواهي قبلیږی ځکه دادهغه دعدالت مخل نه دی ولی نصوص دختنه له قید څخه مطلق دی البته له حضرت ابن عباس رض څخه مروی دی چې دغیرمختون ګواهي نه قبلیږی نودهغه داقول پراستخفاف بالدین باندي محمول دی ولی داستخفاف بالدین په وجه هغه عادل نه پاتیږی،همدارنګه دخصي ګواهي هم قبلیږی ولی دهغه اندام په ظلم غوځ کړای شوی دی نودادسي دی لکه دیوچاچې لاس غوځ شوی وي همدارنګه دولدزناګواهي هم قبلیږی ولی دموراوپلاردفاسق کیدوپه وجه دماشوم فاسق کیدل نه لازمیږی.

(۲۲)قوله والخنثی ای وتقبل شهادة الخنثی.یعنې دخنثی ګواهي هم جائزه ده ولی خنثی به یانروي یابه ښځه وي ددوئ دواړوګواهي مقبوله ده نودخنثی ګواهي هم قبلیږی البته خنثی دشهادت په باب کې احتیاطًا ښځه شمارله کیږی نودښځوپه شان له نارینه بغیردهغوئ ګواهي نه قبلیږی اوپه حدودوکې دهغوئ ګواهي نه قبلیږی.

(۲۳)قوله والعمّال ای وتقبل شهادة العمّال.یعنې دعمّالو ګواهي معتبره ده ،عمّال هغه څوک دي چې دپاچاله طرفه دخراج ،جزیه اوصدقاتودراټولوپرکارباندي ماموروي دهغوئ ګواهي معتبره ده ځکه نفس عمل (دصدقاتووغیره راجمع کول ) فسق نه دی البته که چیره ظالم وویادظالم مددګارو و نوبیادهغه فسق په وجه دهغه ګواهي نه ده معتبره.اودمعتَق (آزادشده) ګواهي دمعتِق (آزادوونکي) لپاره جائزه ده ولی په ظاهره کوم تهمت نشته اوکه یوقسم تهمت وونوبیانه ده جائزه.

(۲۴)ولوشهدا ان اباهما اوصی الیه والوصی یدعی جاز (۲۵)وان انکر لا (۲۶) کما لوشهدا ان اباهما وکله بقبض دیونه وادعی الوکیل اوانکرها (۲۷)ولایسمع القاضی الشهادة علی جرح (۲۸)ومن شهد ولم یبرح حتی قال اوهمت بعض شهادتی تقبل لو عدلا.

**ترجمه** :اوکه دووکسانوګواهي ورکړه چې زموږپلاروصی ګرځولی وو فلان سړی اووصي هم دعوی وکړه نوجائزدی. اوکه یې انکاروکړبیانه ده جائزه،لکه که چیرته ګواهي ورکړي چې زموږپلارفلان سړی وکیل ټاکلی وودهغه دقرض دوصول کولولپاره اووکیل دعوی وکړه دهغه یایې انکاروکړاونه دي اوري قاضی پرجرح باندي ګواهي،اوکه چاګواهي ورکړه اوله هغه ځایه نه وولیري شوی چې ویې ویل ماشبهه کړي وه په څه ګواهي کې نوداقول یې قبلیږی که هغه عادل وو.

**تشریح**:(۲۴)که دووورونوداګواهي ورکړه چې زموږمرحوم پلارفلان سړی وصي مقررکړی دی هغه سړي هم دعوی وکړه چې زه ددوئ دپلاروصي یم نواستحساناداجائزدی دقیاس تقاضاخوداده چې داګواهي جائزه نه وي ځکه په دي کې دګواهانوفائده ده چې دهغوئ یوکارګذارپیداشوچې دهغوئ حقوق خوندي ساتي اوهغوئ ته دهغوئ دمیراث حق ورکوي،د،ستحسان وجه داده چې قاضی ته خپله ددي اختیارشته چې وصی مقررکړي چې دخلکومالونه له ضائع کیدوڅخه خوندي شي البته پرقاضی باندي داواجبه ده چې هغه داسي څوک وصی مقررکړي چې امانتدار، دیندار اوکارګذاروي نوپه مذکوره صورت کې دوصی وصي کیدل په

ګواهانوسره نه دی ثابت بلکې دقاضی په حکم سره ثابت شوی دی دګواهانوپه ګواهي سره قاضی له دې زحمت څخه خلاص شوچې دوصی دیانت اوامانت معلوم کړي خلاصه داچې داپه حقیقت کې ګواهي نه ده بلکې دوصی په مقررکیدوکې دقاضی مددکول دی نوداجائزدی .

(۲۵)قوله وان انکرلا،ای ان انکرالرجل الوصیة فلاتقبل شهادة الابنین ،یعنې که وصي دخپل ځان دوصی کیدومنکرشونوقاضی لره دااختیارنشته چې هغه دوصایت پرقبلیدوباندې مجبورکړي داچې په دغه صورت کې قاضي دوصی دمقررکیدوولایت نه لري نوددغوګواهانوپه ګواهي سره دوصي وصي کیدل نه ثابتیږي ځکه ګواهان په خپله ګواهي کې متهم دي اودمتهم ګواهي نه ده معتبره .

(۲۶)قوله کمالوشهداان اباهماوکله الخ،ای کمالاتقبل شهادة الابنین فی غیبة ابیهماان اباهماوکله الخ،یعنې مذکورصورت داسې دی لکه یوڅوک چې غائب وي اودهغه دووزامنوداګواهي ورکړه چې زموږپلار (چې غائب دی )فلان شخص ددي وکیل ګرځولی دی چې په فلان ښارکې دهغه قرض وصول کړي نودهغوداګواهي نه قبلیږي مذکورشخص که دخپل وکالت مدعي وو که منکروو ځکه قاضی دغائب له طرفه دوکیل مقررکیدواختیارنه لري نوداوکالت دقاضی په حکم سره نه دی ثابت شوی بلکې دهغوګواهانوپه ګواهي سره ثابتیږي ځرنګه چې داګواهان پخپله ګواهي کې متهم دي ولې چې ویل کیږي چې دوئ دخپلې ګواهي په ذریعه خپل ځان ته نفع حاصلوي اودمتهم ګواهي معتبره نه ده .

(۲۷)یعنې قاضی پرجرح باندي شهادت نه اوري مثلامدعی علیه دعوی وکړه چې دمدعی ګواهان فاسقین دي یاداچې مدعی ګواهان په پیسوراوستي دي اوپردي یې ګواه هم قائم کړل نوقاضی به دهغه طرفته التفات نه کوي اونه به پرهغه حکم کوي بلکې په پټه اوښکاره به ددغوګواهانوپه باره کې تحقیق کوي که دهغوئ عدالت ثابت شونودهغوئ ګواهي قبلیږي که نه نه قبلیږي ولې قاضی ماموربالسترذی اوپه دې دول ګواهي اوریدوکې بې عزتي ده،البته که چیرته حق شرع یاحق عبدته متضمن وونودجرح داسې ګواهي اوریدله کیږي ځکه چې په دي صورت کې دحقوقوخوندي کولولپاره ګواهي ورکول ضروري ده،که څه هم په دي صورت کې هم بې عزتی ده مګرهغه ضمناده مثلاشهودالجرح وویل دمدعي ګواهانوزناکړي ده یایې غلاکړي ده مال یې چورکړی دی یایې څوک عمداًوژلی دی .

(۲۸)که یوه عادل سړي دقضاء په مجلس کې ګواهي ورکړه اوتراوسه لاله مجلس قضاء څخه نه وولاړشوی چې ویې ویل له ماڅخه په ګواهي کې غلطی شوي ده،مثلادلسوروپوپه باره کې یې ګواهي ورکړه بیایې وویل چې له ماڅخه غلطی وشوه درحقیقت پنځه روپۍ دي نوددغه سړي داګواهي قبلیږي وجه یې داده چې دقاضی په مجلس کې کله ناکله دهیبت په وجه ګواه په وارخطایې مبتلاکیږي نودګواه عذرواضح دی اوچې کله دګواه عذرواضح دی نوترڅوچې مجلس دقضاء قائم وي دهغه ګواهي قبلیږي په دي شرط چې عادل وي .

باب الاختلاف فی الشهادة

داباب دی په شهادت کې داختلاف بیان کې

تردي مخکې يې دګواهانو داتفاق احکام بيان کړل اوس داختلاف احکام بيانوي چې داقتضاء طبيعت عين مطابق دی ځکه اتفاق فی الشهادة اصل دی او اختلاف ديوعارض په وجه مثلاً دروغو وغيره په جه راځي او اصل احق بالتقديم دی ځکه يې مخکې اتفاق فی الشهادة بيان کړ.

(١) اَلشَّهَادَةُ اِنْ وَافَقَتِ الدَّعْوٰى قُبِلَتْ وَاِلَّا لَا (٢) اِدَّعٰى دَارًا اِرْثًا اَوْ شِرَاءً فَشَهِدَا بِمِلْكٍ مُطْلَقٍ لَغَتْ وَبِعَكْسِهٖ لَا (٣) وَيُعْتَبَرُ اِتِّفَاقُ الشَّاهِدَيْنِ لَفْظًا وَمَعْنًى فَاِنْ شَهِدَ اَحَدُهُمَا بِاَلْفٍ وَالْاٰخَرُ بِاَلْفَيْنِ لَمْ تُقْبَلْ (٤) وَاِنْ شَهِدَ الْاٰخَرُ بِاَلْفٍ وَخَمْسِمِائَةٍ وَالْمُدَّعِيْ يَدَّعِيْ ذٰلِكَ قُبِلَتْ عَلَى الْاَلْفِ (٥) وَلَوْ شَهِدَا بِاَلْفٍ وَقَالَ اَحَدُهُمَا قَضَاهُ مِنْهَا خَمْسَمِائَةٍ قُبِلَتْ بِاَلْفٍ وَلَمْ يُسْمَعْ اَنَّهٗ قَضَاهُ اِلَّا اَنْ يَّشْهَدَ مَعَهٗ اٰخَرُ (٦) وَيَنْبَغِيْ اَنْ لَّا يَشْهَدَ حَتّٰى يُقِرَّ الْمُدَّعِيْ بِمَا قَبَضَ.

**ترجمه**: ګواهي که موافقه له دعوی سره وه نو بيا قبليږی که نه بيا نه قبليږی دعوی يې دسرای وکړه د وراثت په سبب يا داخيستلو په سبب او ګواهانو ګواهي ورکړه د مطلق ملک نو ګواهي لغوه کيږی او د دي برعکس نه لغوه کيږي او معتبر دی متفق کيدل دګواهانو لفظاً هم او معنًی هم بيا که چيرته يوه دزرو ګواهي اداکړه او بل دوو زرو ګواهي اداکړه نه قبليږی او که ګواهي ورکړه بل ديونيم زرا و مدعی دعوی وکړه دهغونو قبليږی پر زرو باندي، او که ګواهي ورکړه دواړو دزرو او له هغوئ ځخه يوه وويل چې هغه اداکړي دي له دغو زرو ځخه پنځه سوه نو قبليږی د زرو په باره کې او نه اوريدل کيږی داچې هغه اداکړي دي مګر داچې ګواهي ورکړي له هغه سره يو بل او يکار دی چې ګواهي ورنکړي ترڅو چې مدعی اقرار وکړي د هغه چې قبض کړي يې دي.

**تشريح**: (١) ګواهي که چيرته لفظاً او معنًی ياپواځي معنی ددعوی مطابق وه نو قبليږی او که چيرته لفظاً او معنًی مطابق نه وه نو نه قبليږی ځکه په حقوق العباد کې تقدم ددعوی دشهادت دقبوليت لپاره شرط دی نو دموافقت په صورت کې داشرط پرځای کيږی ځکه ګواهي ددعوی تصديق کولو ته وايي او دتصديق لپاره ضروري ده چې دکوم شي چې تصديق کيږی هغه مخکې لاموجودوي نو دموافقت په صورت کې دقبوليت شرط (تقدم دعوی) پرځای کيږی نو ځکه ګواهي قبليږی او دنه موافقت په صورت کې دمخالفت په وجه ګواکي ګواهانو ددعوی تکذيب وکړ نو دمدعي ددعوی وجود او عدم برابرشو نو دعدم شرط (يعنې تقدم دعوی دعدم) په وجه ګواهي نه قبليږی.

(٢) قوله ادعى دارا ای ادعى رجل علی رجل آخر دارا الخ، يعنې که چاديو چاپه سرای دعوی وکړه چې داماته په ميراث راپاته دی يا ما اخيستی دی ګواکي دملک مقيد دعوی يې وکړه يعنې دملک سبب يې بيان کړ او ګواهانو دملک مطلق ګواهي ورکړه يعنې دملک سبب يې بيان نه کړ نو دګواهانو داګواهي نه معتبريږی ولې دګواهانو په ګواهي کې دمدعي تردعوی زيادت راغلی دی ځکه چې مدعي دملک حادث دعوی کړي ده او ګواهان ملک قديم ثاتبوي ولی په ملک مقيد کې ملک منسوب وسبب ته کيږي په داسې حال کې چې په ملک مطلق کې ملک من الاصل ثابتيږی آن چې په ملک مطلق کې مدعي دمدعا پيداوار او زوائدو هم مالک ګرځي او ګواهي ترمدعی زياتيدل دشهادت لپاره مانع دی او که ددي عکس وويعنې چې مدعی دملک مطلق دعوی وکړي او ګواهان دملک مقيد ګواهي ورکړي نو دعوی قبليږی ځکه په دغه صورت کې ګواهي تردعوی کمه ده او ګواهي ترمدعی کميدل دشهادت لپاره مانع نه دی.

(۳)دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددګواهانوپه لفظ اومعنى کې متفق کيدل شرط دی . دصاحبينورحمهماالله په نزدخالص معنوی موافقت شرط دی ،نوکه يوه ګواه دزروګواهي ورکړي اوبل ددووزروپه داسی حال کې چې مدعي هم ددووزرودعوی داردی نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد داشاهدي نه قبليږی ځکه دلته دګواهانوترمنځ لفظی اختلاف راځي ولی زراودوه زرغيردي اوپرهريوه باندي يوګواه دی نونه زرثابتيږي اونه دوه زره ،دصاحبينورحمهماالله په نزدديوزرپه باره کې ددواړو ګواهي قبليږی ولی پرزروباندي معنًى دواړه متفق دي .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لمافي الهندية :شهداحدهمابالف والآخربألفين لم تقبل بشي عندابي حنيفة رحمه الله وعندهماتقبل على الألف والصحيح قول ابي حنيفة رحمه الله كذافي المضمرات.(الهندية:۳/۵۰۵)

(۴)که يوه ګواه دزرواوبل ديونيم زرګواهي ورکړه اومدعي هم ديونيم زرودعوی داردی نو دزروپه باره کې په اتفاق سره ګواهي قبليږی ولی پرزروباندی دواړه ګواهان لفظًااومعنًى اتفاق دي ځکه له عليه الف وخمس مائة دوي جملې دي عليه الف يوه اوخمس مائة بله جمله ده يوه پربله باندي عطف شوي ده اوپه عطف سره داول تقريرراځی نودزروپه ثابتولوکې دواړه ګواهان متفق دي اودپنځوپه ثابتولوکې يوګواه متفردی نوپرڅومره مقدارچې دواړه ګواهان متفق دي هغه ثابتيږی باقی نه ثابتيږی.

(۵)که دواړوګواهانوګواهي ورکړه چې دزيدپربکرباندي زرروپۍ دي اويوه ګواه وويل له دغوروپوڅخه بکرپنځه سوه اداکړي دي نودزروپه باره کې ددواړوګواهي قبليږی ځکه پردغوباندي دواړه ګواهان متفق دي بياچې کله يوګواه دپنځوسوواداکولوګواهي ورکوي نوداګواهي يې نه اوريدله کيږی ولی په دغه ګواهي کې دی يواځي دی مګرداچې دوهم له ده سره ګواهي ورکړی نوبياقبليږی دلته بيانصاب دشهادت تاميږی.

(۶)په مذکورصورت کې چې ګواه ته دامعلومه وي چې مدعی عليه (بکر)پنځه سوه روپۍ اداکړي دي دهغه لپاره مناسبه داده چې ترڅوپوری چې مدعی دااقرارنه وکړي چې ماپنځه سوه وصول کړي دي ترهغه پوري دي دزروګواهي نه ورکوي چې ګواه دګواهي په ورکولوسره پرظلم باندي اعانت کوونکی نه شي ځکه داکيدای شي چې مدعی له وصول شويوپنځوسوڅخه انکاروکړي .

(۷)ولوشهدبقرض الف وشهداحدهماانه قضاه جازت الشهادة علي القرض (۸)ولوشهدابانه قتل زيدايوم النحربمكة واخرانه قتله يوم النحر بمصرردتا(۹)فان قضي باحديهمااولابطلت الأخرى(۱۰)ولوشهداعلي سرقة بقرة واختلفافي لونهاقطع(۱۱)بخلاف الذكورة والانوثة والغصب.

**ترجمه** :اوکه دوګواهانوګواهي ورکړه ديوزرقرض اوله هغوڅخه يوګواهي ورکړه چې مقروض هغه اداکړي دي نوجائزه ده ګواهي پرقرضوباندي اوکه دواړوګواهی ورکړه چې فلان زيدقتل کړدقرباني په ورځ په مکه مکرمه کې اوبل ګواهي ورکړه چې هغه زيدقتل کړدقرباني په ورځ په مصرکې نودواړه ګواهيانی مردودي دي اوکه قاضی حکم وکړديوه مطابق مخکی نوددوهم ګواهي باطليږی اوکه دواړوګواهي ورکړه

دغوا پر غلا کيدو باندی او دواړو اختلاف وکړ دهغی په رنګ کې نو دغله لاس غوڅ کيږي خلاف
دمذکر او مؤنث او غصب په اختلاف کې .

**تشريح** :(۷)که دوو کسانو دزيد بکر ته ديوزر قرض ورکولو گواهي ورکړه بياله هغو څخه يوه داهم وويل چې قرض اخيستونکي دا يوزر اداکړي هم دي نو دزرو قرض په باره کې داگواهي صحيح ده ځکه دقرض ورکولو په باره کې گواهان دوه دي نو دگواهانو نصاب پوره دی او په آخر کې چې يوه ديوزر دآداکولو گواهي ورکړي ده هغه گواهي معتبره نه ده ولی گواه يو دی نو دگواهانو دنصاب په نه پوره کيدو سره داگواهي نه ده معتبره .

(۸)که دوو ډلو پر يوه سړي باندي گواهي ورکړه چې فلان زيد قتل کړ مگر يوې ډلې وويل سږ کال په لسم ورځ دذی الحجه (يعنې داختر په ورځ) په مکه مکرمه کې او بلې ډلې وويل چې په لسم دذی الحجه يې په مصر کې قتل کړ،اودادواړې ډلې دقاضی محکمی ته په يوه وخت کې حاضرشول نوقاضي دي ددواړو ډلو گواهي نه قبلوي ځکه له دواړو فريقو څخه يوه يقينا کاذبه ده ولی يو قتل په دوو ځايونو کې واقع کيدل ناممکن دی )او يوه ډله هم تر بلې اولی نه ده نو ددواړو گواهي دې نه قبليږی .

(۹)او که له دواړو ډلو څخه يوې ډلې مخکې گواهي ورکړه او دهغې مطابق قاضی فيصله هم صادره کړه بيا فريق ثانی دگواهي لپاره حاضرشو نو دهغه فريق گواهي نه قبليږی ولی دقاضی دقضاء داتصال په وجه مخکينی گواهي ته ترجيح حاصله ده نو ددوهمی گواهي په وجه اوله گواهي نه ماتيږی .

(۱۰)که گواهانو پر يوچاباندي دغوادغلاکيدودعوی وکړه ،مگردغوارنگ يې بيان نه کړی اوگواهان يې پيش کړل او دگواهانو ترمنځ اختلاف راغی يوه دسره رنګ غوا پر غلاکيدو باندي گواهي ورکړه او بل دتور رنګ غوا پرغلاکيدو باندي گواهي ورکړه نو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزدداگواهي قبليږی ځکه غلا عموما په توره تياره کې کيږی او گواهان يې هم له ليري گوري نو د رنګ په باره کې اشتباه کيدای شی ځکه نودگواهانو ترمنځ په دي اعتبارسره اختلاف راځي دغه اختلاف په نظرانداز کولو سره ددوئ گواهي بايد قبوله کړی شي .

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزددمذکوره گواهانو گواهي نه قبليږی ځکه مشهود به مختلف دی يعنې هرگواه دجلاشي گواهي ورکړي ده ولی سره اوتوره دوې جلاجلا غواګانې دي نو پرهره يوه غوا باندي دنصاب شهادت دنامکمل کيدو په وجه مذکوره گواهي دقبول وړ نه ده ،دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی

لمافي الدر المختار :شهدا بسرقة بقرة واختلف في لونها قطع خلافا لهما واستظهر صدر الشريعة قولهما (الدر المختار على هامش رد المحتار : ۳/ ۳۳۱)

(۱۱)او که ددواړو گواهانو اختلاف په نراوماده کې وو په دي ډول چې يو ووايې چې غله غويی غلا کړی دی او بل ووايې چې غوا يې غلا کړي ده نو داگواهي نه قبليږی ځکه چې نراو ماده په يوه حيوان کې نه شي جمع کيدای په دي کې اشتباه هم نه راځي ځکه نو دااختلاف نظرانداز کيدای نه شي . همدارنګه که دغصب په باره کې اختلاف شو چې يوه وويل چې غله سوررنګ غواوړې ده او بل وويل چې ده توررنګ غواوړې ده نو داگواهي هم نه قبليږی ځکه غصب عموما دورځې وي او له نژدي څخه وي نو کتونکي ته هم اشتباه نه راځي لهذا دغه اختلاف نظرانداز کيږي نه .

(۱۲) وَمَنْ شَهِدَ لِرَجُلٍ اَنَّهُ اشْتَرٰی عَبْدَ فُلَانٍ بِاَلْفٍ وَشَهِدَ الْاٰخَرُ بِاَلْفٍ وَخَمْسِ مِائَةٍ بَطَلَتِ الشَّهَادَةُ (۱۳) وَكَذَا الْكِتَابَةُ وَالْخُلْعُ (۱۴) فَاَمَّا النِّكَاحُ فَيَصِحُّ بِاَلْفٍ (۱۵) مِلْكُ الْمُوَرِّثِ لَمْ يُقْضَ لِوَارِثِهِ بِلَا جَرٍّ اِلَّا اَنْ يَشْهَدَا بِمِلْكِهِ اَوْ يَدِهِ اَوْ يَدِ مُوْدَعِهِ اَوْ مُسْتَعِيْرِهِ وَقْتَ الْمَوْتِ (۱۶) وَلَوْ شَهِدَا بِيَدِ حَيٍّ مُذْ شَهْرٍ رُدَّتْ (۱۷) وَلَوْ اَقَرَّ الْمُدَّعٰی عَلَيْهِ بِذٰلِكَ اَوْ شَهِدَ شَاهِدَانِ اَنَّهُ اَقَرَّ اَنَّهُ كَانَ فِيْ يَدِ الْمُدَّعِيْ دُفِعَ اِلَى الْمُدَّعِيْ.

**ترجمه**: که چا ګواهي ورکړه دیوه سړي لپاره چې هغه اخیستی دی فلان مریی په زر روپۍ او بل ګواهي ورکړه چې په یو نیم زر نو دا ګواهي باطله ده او همدارنګه کتابت او خلع، او نکاح چې ده هغه صحیح کیږي په زر روپۍ، د مورث د ملک فیصله نه کوله کیږي د هغه د وارث لپاره د وارث په ملک کې د راتلو د ثبوت بغیر، مګر دا که ګواهي ورکړي د مړه د ملک یا د هغه د قبضې یا د هغه د مودع یا مستعیر د قبضې د مرګ په وخت، او که دوو کسانو ګواهي ورکړه د قبضې له یوې میاشتې څخه نو رد کیږي، او که مدعی علیه اقرار وکړي په هغه سره یا دوو کسانو ګواهي ورکړه چې هغه اقرار کړی دی چې دا د مدعي په قبضه کې وه نو بیا دي مدعی ته ورکړ له شي.

**تشریح**: (۱۲) که یو چا دیوه سړي لپاره دا دول ګواهي ورکړه چې هغه له فلان څخه مریی په یو زر درهمو اخیستی دی او بل ګواهي ورکړه چې په پنځلس سوه یې اخیستی دی نو دواړو ګواهي باطلیږی ځکه مقصود د دلته سبب یعنې عقد بیع ثابتول دی او هغه دثمن په اختلاف سره مختلف کیږی نو چې دکوم شي ګواهي ورکړه شوې ده یعنې عقد بیع هغه مختلفه شوه او پر هر عقد باندې دیوه یوه ګواه دقائمیدو په وجه د ګواهانو نصاب نه دی پوره شوی ځکه نو دا ګواهي مردوده ده.

(۱۳) مذکور حکم دعقد کتابت هم دی یعنې که یو چا خپل مریی مکاتب وګرځاوه بیا یوه ګواه وویل چې بدل کتابت زر درهمه دي او بل ګواهي ورکړه چې پنځلس سوه دي، نو دواړو ګواهي باطله ده ولې دلته هم اصل مقصود دعقد کتابت ثابتول دی کما مرّ، او بعینه همدا حکم دخلع یعنې په عوض سره دطلاق ورکولو هم دی چې که یوه ګواه د زرو درهمو په باره کې ګواهي ورکړه او بل د پنځلس سوو، نو دواړو ګواهي باطله ده، لما قلنا.

(۱۴) البته که دعوض نکاح یعنې مهر په باره کې مذکور اختلاف راغی چې یوه ګواه مهر زر درهمونه وښودل او بل پنځلس سوه درهمه نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد استحساناً په زر درهمه نکاح جائزه کیږي، په داسې حال کې چې دصاحبینو رحمهما الله په نزد دغه صورت هم هغه حکم دی کوم چې دمذکوره صورتونو دی ځکه دلته هم مقصود دعقد نکاح ثابتول دی کما قلنا، دامام ابو حنیفة رحمه الله دلیل دا دی چې په نکاح کې مال تابع وي په دې کې اصل حلت او ملکیت بضع دی او کوم شی چې اصل دی په هغه کې هیڅ اختلاف نشته یعنې دواړه ګواهان متفق دي چې نکاح شوې ده نو نکاح ثابتیږی په مال کې اختلاف دی چې هغه تابع دی کوم مال چې کم وي دهغه حکم ورکول کیږي.

**فائده**: دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی لما فی ملتقی الابحر: وفی النکاح تقبل بالف استحسانا لان المال فی النکاح تابع وفی حکم التابع ان لایغیر الاصل ولذا لایبطل بنفیه ولایفسد بفساده ،،، وقالا وهو قول الائمة الثلاثة ردت الشهادة فیه ای فی النکاح ایضا کما فی البیع ولایقضی بشیء،،،،،،،،،، فالعمل بالاستحسان اولی (مجمع الانهر: ۳/۲۹۰)

(۱۵)ملک مورث دوارث لپاره دجرّاو انتقال دثبوت بغیر فیصله نه کوله کیږی مثلایو انسان دعوی وکړه چې دفلان په قبضه کې چې کوم شی دی هغه زمادپلار میراث دی پر خپله دغه دعوی یې گواهان قائم کړل هغوداگواهي ورکړه چې واقعًاداشی دهغه دپلاروو ،نودطرفینورحمهماالله په نزدیواځې دگواهانوپه دي خبره چې داشی واقعًادهغه دپلاروو دوارِث مِلک نه ثابتیږی،بلکې دگواهانوداویل ضروري دی چې داشی دهغه دپلاروو بیاهغه وفات شواوداشی دمرګ په وخت کې دهغه مِلک ووبیادهغه په قبضه کې وویاګواه دداسي چاقبضه یاتصرف ثابت کړچې هغه دمورِث قائم مقام وومثلادمودَع یامستاجرچې په دغوصورتونوکې دجرّمیراث بیانولوضرورت نشته بلکې شهادت مِلک یاشهادت قبضه کافي دی،دطرفینورحمهماالله دلیل دادی چې په مال متروکه کې دوارث لپاره جدیدمِلک ثابتیږی چې تردي مخکې نه ووثابت شوی،همداوجه ده چې دوارث په حق کې څه داسی احکام لازمیږی چې دمورث په حق کې لازم نه دي،مثلاکه یوڅوک دمنځي وارث وي نواستبراء رحم ضروري ده،همدارنګه که چیرته موروثه منځه په یوه وجه سره دمورث لپاره حرامه وه نودوارث لپاره حلاله کیدای شي ځکه نقل مذکور(یعنې جرّمیراث) ضروری دی چې استصحاب حال مثبِت نه شي،دامام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزدبیان دجرّمیراث (انتقال میراث من المورث الی الوارث) لازم نه دی ځکه دمړه مِلک دګواهانوپه ګواهي سره ثابتیږی اووارث دخپل مورث خلیفه دی مالک ګرځي نودمِلک مورث ګواهي بعینه دمِلک وارث ګواهي ده همداوجه ده چې په میراث کې په لاس راغلی شی که چیرته مورث له چانه اخیستی وي نووارث هغه دعیب په وجه واپس کولای شي.

(۱۶)که ګواهانوګواهي ورکړه چې داشی له یوې میاشتې راهیسی دفلان په قبضه کې وو چې ددعوی په وخت کې دهغه سړي په قبضه کې نشته نودمشهودبه دمجهول کیدوپه وجه دطرفینورحمهماالله په نزدداګواهي نه قبلیږی ځکه قبضه مختلف قسم وي اوله دي ګواهي څخه دانه معلومیږی چې دهغه قبضه په طریقه دمِلک وه که په طریقه دامانت یاپه طریقه داجاره وغیره نوددغه جهالت په وجه قاضی ددغه شي حکم دمدعي لپاره نه شی کولای.

**فائده**:له امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ څخه مروي دی چې په دغه صورت کې ګواهي مقبوله ده ولی دمِلک په شان قبضه هم مقصودوي نو که ګواهان داګواهي ورکړي چې داشی دمورث مملوک ووبیایې ګواهي قبلیږی نودقبضی ګواهي هم قبلیږی، دطرفینو رحمهماالله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادرالنعمانی :القول الراجح هوظاهرالروایة وهوقولهماوایضاجزم به فی الدرالمختارحیث قال العلامة الحصکفی رَحِمَهُ اللهُ وان شهدابیدحی سواء قلامذشهراولاردت لقیامهابمجهول لتنوعیدالحی.(القول الراجح:۲/۱۳۱)

(۱۷)اوکه مدعی علیه ددي اقراروکړي چې داشی دمدعی په قبضه کې وویاګواهان ګواهي ورکړي چې مدعی علیه دمدعي په قبضه باندي اقرارکړی وونوبیادغه شی مدعی ته ورکول کیږی ولی داقرارګواهي صحیح ده ځکه چې اقرارمعلوم دی مقربه که څه هم مجهول دی مګردمقربه جهالت داقراردصحت لپاره مانع نه دی.

## باب الشهادة على الشهادة

## داباب دګواهي پرګواهي په بيان کې دی

مصنف رحمه الله دشهادت اصل له بيان څخه فارغ شونو دشهادت فرع په بيان يې شروع وکړه ځکه فرع تراصل دوجود په اعتبار وروسته ده نومصنف رحمه الله وضعًا هم وروسته کړچې وضع دطبع مطابق شي .

دشهادت پرشهادت معنی داده چې ديوې معاملې اصل ګواهان چې دمعاملې مشاهده يې کړې وي پرخپل شهادت باندي يوبل څوک نائب ګواه وګرځوي دقاضی مجلس ته يې ورواستوي بيابه داصل ګواهانوپرځای نائب ګواهان (فرع ګواه) دقاضی عدالت ته وړاندي کيږی اوداصل ګواهانو پرګواهي به ګواهي ورکړي په دي شرط چې په يوه وجه سره اصل ګواهان عدالت ته وړاندي نه شي .

(۱)تقبل فيما لايسقط بالشبهة (۲)ان شهد رجلان على شهادة شاهدين ولاتقبل شهادة واحد على شهادة واحد (۳)والإشهاد ان يقول اشهد على شهادتي اني اشهد ان فلانا اقر عندي بكذا واداء الفرع ان يقول اشهد ان فلانا اشهدني ان فلانا اقر عنده بكذا وقال لي اشهد على شهادتي بذالک.

**ترجمه** :قبليږی دهغوشيانوپه باره کې چې په شبهه سره نه ساقطيږی ،که ګواهي ورکړي دوه کسان ددوګواهانو پرګواهي باندي اونه قبليږی ديوه ګواهي ديوه پرګواهي باندي اوپرګواهي باندي ګواهان قائمول دادی چې اصل ګواه ووايې چې تاسی ګواهان شئ زماپرګواهي باندي چې زه ګواهي ورکوم چې فلان اقرارکړی دی زماپه وړاندي دهغه شی اودفرع ګواه ادائيګی داده چې ووايې زه ګواهي ورکوم چې فلان زه ګواه کړم پرخپل هغه ګواهي باندي چې فلان اقرارکړی دی داصل ګواه په وړاندي دهغه شی اوهغه ماته وويل چې ته ګواه شه زماپردغه ګواهي ورکولو باندي .

**تشريح** :(۱)دقياس تقاضاداده چې شهادة على الشهادة (مثلاپريوه معامله باندي دوه ګواهان دي بياهغوئ پرخپله ګواهي باندي نورګواهان کړل يعني هغوئ ته يې وويل :تاسي ګواهان شئ چې موږپردوئ باندي ګواهان يو .اول ته اصل ګواه اودوهم ته فرع ګواه ويل کيږی) جائزنه وي ځکه شهادة عبادت بدنی دی اوپه عبادت بدنی کې انابت نه جاري کيږی .مګراستحسانًاپه هرداسی حق کې جائزه شوې ده چې په شبهه سره نه ساقطيږی .وجه داستحسان شدت احتياج دی ځکه کله اصل ګواه دځينوعوارضوپه وجه دګواهي اداکولوڅخه عاجزکيږی مثلاناروغ وي ياپه سفرکې وي نوکه پرګواهي باندي ګواهي اداکول جائزنه شي نودحقوقوضائع کيدوموقع آسانه کيږی البته په حدودواوقصاص کې شهادة برشهادة نه دی جائز،ځکه حدوداوقصاص په شبهاتوسره ساقطيږی اوپه شهادة على الشهادة کې يوقسم شبهه شته ولی شهادة دفروع داصولوبدل دی اوپه بدل کې داصل په نسبت يوقسم شبهه وي .

(۲)يعني له دوواصل ګواهانوڅخه دهريوه پرګواهي باندي ددوفرع ګواهي ضروري ده البته که يې داصورت اختيارکړچې ددوواصل ګواهانوپرګواهي باندي دووفرع ګواهانوداسي ګواهي ورکړه چې دهريوه پرګواهي باندي په مستقل دول ګواهان شول نو: صورت جائزدی مثلازيداوبکردوه اصل ګواهان دي بيادوه کسان له دوئ دواړوڅخه دزيدپرګواهي باندي ګواهان شول بيادبکرپرګواهي باندي ګواهان شول

نوداجائزده ده ولی گواهي نقل کول له حقوقوڅخه دی نو دوئ دواړودزيددحق گواهي ورکړه بيايې ددوهم حق نوڅکه ددوئ گواهي مقبوله ده ولی ددووگواهانوگواهي پردووحقوقوباندي جائزه ده،لومړيو دووگواهانوته اصلی اودانوروته فرعی گواهان ويل کيږی البته ديوه اصل پرگواهي باندي ديوه فرع گواهي نه قبليږی ولی ديوه په گواهي سره حق نه ثابتيږی .

(۳)پرگواهي باندي دگواهانو قائمولو طريقه داده چې اصل گواه خپل فرع گواه مخاطب کړي داسي ورته ووايې چې تاسی گواهان شئ زماپرگواهي باندي چې زه گواهي ورکوم چې فلان ابن فلان زماپه وړاندي داسي اوداسي اقرارا کړی دی اوبيايې زه پرخپل ځان باندي گواه کړم ،داځکه ضروري ده چې اصل گواه دفرع په وړاندي داسي گواهي ورکړي لکه دقاضی په وړاندي چې گواهي ورکوي چې بيافرع دهغوئ گواهي دقاضی ومجلس ته نقل کړي ،دگواهي اداکولوپه وخت به فرع گواه داسي ووايې چې زه گواهي ورکوم چې فلان سړي زه پرخپله گواهي باندي گواه کړم چې هغه گواهي ورکوي چې فلان مقِردهغه په وړاندي ددومره حق اقرارکړی دی اواصل گواه ماته وويل چې ته زماپردغه گواهي باندي گواه شه،ولی دگواه فرع گواهي ضروري ده اوداصل گواه گواهي ذکرکول اودهغه داذکرکول چې فرع يې گواه گرځولی دی هم ضروري دی .

(۴)وَلَاشَهَادَةَ لِلْفَرعِ إِلَّا بِمَوتِ أَصلِه أو مَرَضِه أَوسَفَرِه (۵)فَإِن عَدَّلَهُم الفَرعُ صَحَّ وَإِلَّاعَدَّلُوا(۶)وَتَبطُلُ شَهَادَةُ الفَرعِ بِإِنكَارِ الأَصلِ لِلشَّهَادَةِ (۷)وَلَو شَهِدَعَلَى شَهَادَةِ رَجُلَينِ عَلَى فلانةَ بِنتِ فُلانٍ الفُلَانِيَّةِ بِالفٍ وَقَالَا أَخبَرَ انَا أَنَّهُمَا يَعرِفَانِهَا فَجَاءَ بِامرَأَةٍ وَقَالَالَم نَدرِ أَهِيَ هذه أم لا قِيلَ لِلمُدَّعِي هَاتِ شَاهِدَينِ أَنَّهَا فُلَانَةُ (۸)وَكَذَا كِتَابُ القَاضِي إِلَى القَاضِي (۹)وَلَو قَالَا فِيهِمَا التَّمِيمِيَّةَ لَم تَجُز حَتَّى يَنسِبَاهَا(۱۰)وَلَو أَقَرَّ أَنَّه شَهِدَزُورًا يُشَهَّرُ وَلَا يُعَزَّرُ.

**ترجمه** :اودگواهي حق نشته فرع لره داصل گواه دمرگ يادهغه دمرض ياسفربغير،اوکه تعديل وکړفرع گواهانو داصل گواهانونوصحيح دی که نه دهغوئ تعديل دي وکړای شي اوباطليږی گواهي دفرع په دي سره چې اصل گواهان دگواهي څخه منکرشي اوکه دووگواهانوگواهي ورکړه دنوروپرگواهي باندي چې فلانی دفلانی لورچې دفلانی کورنی سره تعلق لري زرروپی دي اودواړووويل چې هغوئ موږته خبرراکړی دی چې موږدافلانی پيژنوبيارا وستله مدعي يوه ښځه اوگواهانو وويل موږنه يوخبرچې هغه ښځه همداده که نه ده،نو ودي ويل شی مدعي ته چې دوه گواهان پيش کړه چې دافلانی ښځه ده. همداسی دی ديوه قاضی خط بل قاضی طرف ته،اوکه گواهانوپه همدي دواړوصورتونوکې وويل چې فلانی تميميه ښځه دانه کافي کيږي ترڅوچې هغوئ دواړه هغه منسوبه نه کړي ديوکوچني ښاخ طرفته اوکه دواړوگواهانواقراروکړچې موږددروغوگواهي درکړي ده نوددي دې تشهيروکړای شي تعزيردي نه ورکول کيږی .

**تشريح** :(۴)دفرع گواهانوگواهي نه قبليږی ځکه چې دمقتضی قياس څخه خلاف ده البته که په وخت کې داداکيدو اصل گواه مړ شوی وويا داسي سخت ناروغ ووچې دحاکم ترعدالت پوري نه شو حاضريدلای ياتردري ورځي ياترهغه په زياته مسافه غائب وو نو بيادفرع گواهي قبليږی ولی شهادة علی الشهادة

دضرورت په وجه جائزشوی دی اوضرورت هله پیدا کیږی چې اصل گواه دگواهي اداکولو څخه عاجزوي اوپه مذکوره امورو سره عجزثابتیږی نوپه دغو دري واړه صورتونو کې دفرع گواهانو گواهي قبلیږی.

**فائده**: دامام ابویوسف رحمه الله رایه داده چې که اصل گواه داسي ځای وو له کوم ځائ نه چې عدالت ته ځي گواهي ورکوي نوترشپې پوري واپس خپل کورته نه شي رسیدلی نوپه داسي صورت کې جائزه ده چې ددوئ پرځای فرع گواهان گواهي اداکړي اکثرمشائخودخلکودحقوقودتحفظ لپاره همداقول مختارکړی دی اوپرهمدي باندي فتوی ده ،دامام محمد رحمه الله په نزددفرع گواهانوگواهي مطلقامعتبره ده که څه هم دعدالت په یوه کونه کې اصل گواهان وي اوپه بله کونه کې فرع گواهان گواهي اداکړي،دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافي الدّرالمختار:واكتفى الثاني بغيبة بحيث يتعذر ان يبيت باله واستحسنه غيرواحدوفي القهستاني والسراجية وعليه الفتوى(الدّرالمختار على هامش ردّالمحتار: ۴/۳۲۷)

(۵)که فرع گواهانوداصل گواهانوتعدیل وکړنوداجائزدی ځکه هغوئ دتعدیل اوتزکیه لیاقت لري اوکه فرع داصل له تزکیه اوتعدیل څخه خاموش شول نوهم جائزدی اوقاضی به خپله داصل گواهانوتحقیق کوي كمااذاحضروابانفسهم وشهدوا.

(۶)اوکه اصل گواهانوله گواهي څخه انکاروکړمثلاویې ویل :مَالَنَاشَهَادَةٌ عَلَى هٰذِهِ الْحَادِثَةِ یایې داسي وویل :لَم نَشهَدهُم،بیامړشویاغائب شویافرع گواهان راغلل ددوئ پرگواهي باندي گواهي ورکوي نودفرع گواهانودغه گواهي نه قبلیږی ځکه داصل گواهانودوئ لره پرخپله گواهي باندي گواهان کرځول ثابت نه شول لِلتَّعَارُضِ بَينَ الخَبَرَينِ حال داچې اصل فرع لره گواهان کرځول شرط دی .

(۷)که دووفرعی گواهانودړو واصلی گواهانودگواهي په ذریعه سره پریوه ښځه باندي چې دفلان سړي لورده اوله فلانئ قبیلی سره تعلق لري مثلاقریشی ده دیوزردرهمونوگواهي ورکړه اودواړوداهم وویل چې موږته اصل گواهانودابیان کړی دی چې هغوئ دابنځه پیژني هم،په دي سره مدعی یوه ښځه راوستله چې وگورئ داهغه ښځه ده دچاپرذمه چې دزرودرهمونوتاسي گواهي ورکوئ فرعی گواهانووویل چې موږته یوخبرچې داهماغه ښځه ده که نه ده ولی ښځه خواصل گواهان پیژنی نواوس مدعی ته ویل کیږي چې دوه گواهان نورراوله چې داگواهي ورکړي چې داهماغه ښځه ده پرچاچې دزرودرهمونودعوی ده ځکه چې په گواهي کې دښځې نسب خوبیان شوی دی مگردامعلومه نه ده چې مدعي چې کومه ښځه وړاندي کړې ده داهماغه ښځه ده اوکه بله ده ځکه نوداخبره ضروري ده چې مدعی دوه داسی گواهان راولي چې داوښيې چې داهماغه ښځه ده چې معلومه شي چې په گواهي کې ذکرشوی نسب دهمدي ښځي دی .

(۸)اومذکورحکم دکتاب القاضی الی القاضی هم دی مثلایوقاضی بل قاضی ته خط واستاوه چې زمایه عدالت کې فلان فلان دووگواهانوگواهي ورکړه چې دفلان ابن فلان مدعي یوزردرهم دفلانة بنت فلان قریشیه پرذمه واجب دي لهذاته پردغه ښځه باندي حکم صادرکړه ،کله چې داخط مکتوب الیه قاضی ته ورسیږی نومدعي یوه ښځه حاضره کړه ویې ویل چې دافلانة بنت فلان قریشیه ده مگرښځي انکاروکړچې زه فلانة بنت فلان قریشیه نه یمه نومدعي ته به وویل شی چې دوه داسي گواهان راوله چې داگواهي ورکړي

چې دا هماغه ښځه ده چې د قاضي په خط کې مذکوره ده ،وجه يې داده چې خط د شهادة علی الشهادة په معنی دی ګواکی د اصل ګواهانو ګواهي کاتب قاضي فرع وګرځوله مکتوب اليه ته يې وروړسوله نو کوم حکم چې د فرع ګواهانو په تيره مسئله کې تيرشو هماغه حکم د دې مسئلې هم دی.

(۹) که په مذکوره دوو صورتونو (شهادة علی الشهادة او کتاب القاضي الی القاضي) کې اصل ګواهانو د ښځې په نسب بيانولو سره يواځې دومره وويل چې د فلانة بنت فلان تميميه پر ذمه د فلان بن فلان زر درهمونه دي، نو دا کافي نه دی ترڅو چې هغه د بنی تميمو يوې خاصې قبيلې او ښځې ته منسوبه نه کړي ځکه چې نسبت بايد داسې وي چې په هغه کې د انسان شناخت وشي او ظاهره ده چې د يوې لويه قبيلې طرف ته په نسبت کولو سره شناخت نه حاصليږي لکه قبيله د بنو تميم طرف ته چې څوک منسوب کړای شي ولی کيدای شي چې د بنو تميم قبيلې ډيرې ښځې داسې وي چې د هغوئ نوم او د پلار نوم سره يو وي نو د بنو تميم يو خاص ښاخ ته منسوبول ضروري دی.

**فائده** :د خلکو ترمنځ د تعارف او امتياز کولو لپاره الله تعالی خلک په مختلفو خاندانونو او قبيلو تقسيم کړي دي لکه چې فرمايي :(وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا) قبيلې شپږ دي :شعب،قبيله،فصيله، عماره، بطن،او فخذ ،ترتولو زيات عموم په شعب کې وو بيا په ترتيب سره عموم ختميږي راځي چې په فخذ کې ترټولو زيات خصوص وي له دي وجهې ويل شوي دي چې شعب قبائل لره جامع دی او قبيله فصائل لره جامع ده او فصيله عمائر لره او عماره بطون لره او بطن فخذونو لره جامع دی. (اشرف الهداية)

(۱۰) امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چې که چا د دروغو د ګواهي اقرار وکړ نو د داسې خلکو زه پر سر عام تشهير کوم چې دا د دروغو د ګواهي اداکولو اقرار کوي،امام صاحب رحمه الله فرمايي چې شاهد الزور (د دروغو ګواهي اداکوونکی) دي وهل کيږي نه ځکه مقصود انزجار دی هغه په تشهير سره حاصليږي ، صاحبين رحمهما الله فرمايي چې شاهد الزور موږ وهو او قيد کوو يې تر دې چې توبه وکړي ځکه د عمر رضي الله عنه په باره کې مروي دی چې ده رضي الله عنه شاهد الزور څلويښت درې وواهه او مخ يې ور تور کړ او په کليو يې وګرځاوه او قيد يې کړ،د امام صاحب رحمه الله دليل دا دی چې معروف عادل قاضي قاضي شريح د شاهد الزور يواځې تشهير کاوه قاضي شريح د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې قاضي وو په هغه زمانه کې ډير تعداد صحابه کرام موجود وو ظاهره ده چې پر صحابه کرامو باندې د قاضي شريح دغه عمل مخفي نه وو بيا هم هغوئ د هغه پر دغه عمل باندې خاموش وو نو دا د هغوئ له طرفه د هغه پر دغه عمل باندې اجماع شمارله کيږي نو ځکه ويل کيږي چې د شاهد الزور پر تشهير او نه وهلو باندې د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجمعين اجماع ده.

**فائده** :د امام ابو حنيفة رحمه الله قول مفتی به دی لما في الدر المختار :ومن ظهر انه شهد بزور بان اقر علی نفسه ولم يدع سهوا او غلطا ،،،عزر بالتشهير وعليه الفتوی (الدر المختار: ۳/ ۳۴۰) وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله :قوله ومن اقر انه شهد زورا يشهر ولا يعزر ،الی ان قال وفي السراجية الفتوی علی قوله (البحر الرائق: ۷/ ۱۲۵) وقال الشيخ عبد الحكيم الشهيد رحمه الله :والذی يظهر للعبد الضعيف بعد النظر في المطولات والمعتبرات لاهل الفتوی ان يقال ان الاكتفاء بالتشهير جائز وليس

بحرام كمايقول به ابو حنيفة رحمه الله وايضا الزيادة على الشهر ليست بحرام ولا بواجب كما يقول به الصاحبان رحمهما الله بل التعزير وتقديره مفوض الى راى القاضي كما هو التحقيق كذا في معين الحكام والتكملة على صحيح المسلم (هامش الهداية: ج۲/ ۱۷۱)

## باب الرجوع عن الشهادة

### داباب د رجوع عن الشهادة په بيان کې دى

باب الرجوع عن الشهادة دکتاب الشهادات ديوباب په درجه کې دی ځکه رجوع عن الشهادة داحکام شهادات لاندي مندرج دی ځکه يې له کتاب الشهادات وروسته باب الرجوع عن الشهادة ذکرکړی دی، درجوع عن الشهادة معنی داده چې گواه مخکې گواهي ورکړي بيا له خپلې گواهي ځخه وگرځي.

درجوع عن الشهادة لپاره رکن دشاهد قول: رجعت،مماشهدت به ياشهدت بزورفيماشهدت به،دی اودهغه لپاره شرط دادی چې دقاضي په دربارکې درجوع اعلان وکړي،اودهغه حکم دادی چې رجوع کوونکي لره په هرحال کې تعزيروي که قاضي دهغه دگواهي مطابق حکم کړی وي اوکه يې نه وي کړی البته که مشهودبه مال وواودگواه دگواهي اودقاضي دفيصلې وروسته گواه رجوع کړې وي اومشهودبه يې بلاعوض زائل کړی وي نوبيابه پرگواه باندي له تعزيرسره ضمان هم وي.

(۱) لايصح الرجوع عنها الا عند قاض (۲) فان رجعا قبل حكمه لم يقض (۳) وبعده لم ينقض (۴) وضمنا ما اتلفاه للمشهود عليه اذا قبض المدعى المال دينا او عينا (۵) فان رجع احدهما ضمن النصف (۶) والعبرة لمن بقي لا لمن رجع فان شهد ثلثه ورجع واحد لم يضمن وان رجع آخر ضمنا النصف

**ترجمه**: صحيح نه دی گرځيدل له گواهي ځخه،مگردقاضي په وړاندي بياکه دواړه گواهان وگرځيدل دقاضي دحکم مخکې نوقاضي دي حکم نه کوي اوله هغه وروسته (يعنې که دقاضي له حکم وروسته وگرځيدل)نوحکم نه ماتيږی اودواړه ضامنان گرځي دهغه کوم چې دوئ تلف کړی دی مشهودعليه چې کله مدعي قبض کړی وودين وي که عين اوکه وگرځيدله دواړونه يونودنصف ضامن کيږي اواعتبارهغه لره دی چې پاتی شي نه دهغه چې وگرځي بياکه دروکسانوگواهي ورکړه اويوله گواهي ځخه وگرځيدنونه ضامن کيږی اوکه بل هم وگرځيدنودواړه دنصف ضامنان گرځي.

**تشريح**:(۱)دگواهانوله گواهي ځخه گرځيدل صحيح نه دی مگرداچې دحاکم په موجودگي کې رجوع وکړي ځکه چې رجوع عن الشهادة دگواهي فسخ کول دی نوپه کومه موقع پوري چې گواهي مختصه ده په هغه پوري فسخ هم مختصه کيږی ظاهره خبره ده چې گواهي دقاضي په مجلس پوري خاصه ده نوفسخ دگواهي دقاضي په مجلس پوري خاصه ده.

(۲)که گواهانوگواهي ورکړه مگرقاضي تراوسه ددوئ دگواهي مطابق حکم نه وجاري کړی چې گواهانوله خپلي گواهي ځخه رجوع وکړه مثلاً ويې ويل:رجعناعمّاشهدنابه،نودهغوئ گواهي ساقطيږی

حاكم دهغوئ پرګواهي باندې حكم نه شي كولاى ولې دهغوئ په كلام كښې تناقض دى او قاضي دمتناقض كلام مطابق حكم نه كوي، پررجوع كوونكيو باندې هيڅ تاوان نه لازميږي ځكه هغوئ په خپلې ګواهي سره نه مدعي او نه مدعى عليه ته كوم تاوان رسولى دى.

(۳) قوله وبعده لم ينقض اى لورجع الشاهدان بعدحكم القاضى لم ينقض الحكم الاول ،يعني كه قاضي دګواهانو دګواهي مطابق حكم وكړبيا ګواهان دخپلې ګواهي څخه وګرځيدل نو دقاضي حكم نه منسوخ كيږي ولې دهغوئ آخرى كلام پرربنتينوالي باندې په دلالت كولو كښې داول په شان دى په داسې حال كښې چې اول ته دقاضي دحكم داتصال په وجه ترجيح حاصله وه لهذا آخر كلام يې له اول نه معارض كيږي او ګواهانو چې په خپله ګواهي سره څه تلف كړي دي دهغه ضمان پردوئ باندې واجب دى ولې رجوع عن الشهادة دګواهانو له طرفه دتعدي اعتراف دى نو پردوئ باندې ضمان لازم دى.

(۴) كه دوو ګواهانو دمال ګواهي وركړه او حاكم دهغوئ دګواهي مطابق حكم وكړاو مدعي هغه قبض كړكه دين (سره اوسپين) وي او كه عين (كپړه وغيره) وي بيا ګواهانو دخپلې ګواهي څخه دحاكم په موجودګۍ كښې رجوع وكړه نو ګواهان دمشهود عليه لپاره دمال مشهود به ضامن كيږي ولې دتعدي په ډول مسبب كيدل موجب ضمان دى، او دمدعي پرمدعا به باندې قبضه كول شرط دى ددې لپاره چې ترقبض كيدو مخكې تلف كول نه متحقق كيږي نو ځكه ترقبض مخكې ګواهان ضامن كيږي هم نه.

(۵) كه له دوو ګواهانو څخه يوه رجوع وكړه نو هغه دنصف مال ضامن ګرځي، په دې باره كښې اصل داده چې له ګواهانو څخه كوم يو چې پرګواهي باندې ثابت قدم پاتې وي دهغه پاتې كيدل معتبردى او كوم يو چې وګرځيد دهغه ګرځيدل نه دى معتبر او دلته يو ګواه باقي دى چې دهغه دشهادت په وجه نصف حق هم باقي دى ځكه ددواړو څخه دهريوه په ګواهي سره نصف حجت قائميږي نو ديوه پرخپله ګواهي باندې پاتيدل پرنصف مشهود به باندې حجت هم باقي پاتيږي نو پركوم نصف چې حجت باقي پاتې نه شو دهغه ضمان پررجوع كوونكي باندې راځي كه څه هم ابتداءً دبعض علت په وجه حكم نه ثابتيږي مګر بقاءً ثابتيداى شي.

(۶) څرنګه چې اصل داده چې دګواهي دنصاب څخه دهغو ګواهانو شمار معتبريږي كوم چې له ګواهي څخه ګرځيدلي نه وي ګرځيدونكي نه شمارل كيږي كه دروګواهانو دمال ګواهي اداكړه بيا دقاضي دحكم وروسته يوه ګواه رجوع وكړه نو هغه نه معتبريږي ځكه پرهغه باندې هيڅ ضمان نشته ولې له هغه بغيرهم دومره ګواهان پاتې دي چې دهغو په ګواهي سره پوره حق ثابتيږي البته كه له باقي دوو څخه هم يوه رجوع وكړه نو پررجوع كوونكي باندې دنصف مال تاوان لازميږي ولې ديوه ګواه دباقي كيدو په وجه نصف حق پاتيږي ځكه نو پرر جوع كوونكي باندې يواځې دنصف حق ضمانت راځي.

(۷) وإن شهد رجل وامرأتان فرجعت إمرأة ضمنت الربع (۸) وإن رجعتا ضمنتا النصف (۹) وإن شهد رجل وعشر نسوة فرجعت ثمان لم يضمن فإن رجعت أخرى ضمن ربعه (۱۰) فإن رجعوا فالغرم بالأسداس (۱۱) وإن شهد رجلان عليه أو عليها بنكاح بقدر مهر مثلها أو رجعا لم يضمنا (۱۲) وإن زاد عليه ضمنا ها.

**ترجمه** :اوكه گواهي وركړي يوسړی دوې ښځې بيايوه ښځه وګرځيده نودربع ضامنه كيږي اوكه دوي ښځې وګرځيدي نودواړي دنصف ضامنې كيږي اوكه گواهي وركړي يوسړی اولس ښځې بيااته ښځې وګرځيدې نونه ضامنې كيږی اوكه يوه بله وګرځيده نوګرځيدونكې ټولې دربع ضامنې كيږي اوكه ټولې وګرځيدې نوتاوان اسداسًا كيږي اوكه دووسړوگواهي وركړه پريوه سړي ياپريوه ښځه باندي دنكاح په اندازه دهغې دمهرمثل اودواړه وګرځيدل نونه ضامن كيږي اوكه يې له مهرمثل څخه دزيات گواهي وركړه نودواړه دزيادت ضامن كيږي .

**تشريح** :(۷)كه يوه سړي دووښځودمال گواهي وركړه بيايوې ښځې رجوع وكړه نوهغه دربع حق ضامنه ګرځي ځكه ديوه سړي اويوې ښځې دباقی پاتی كيدوپه وجه دری حصی باقي پاتي شوې اوديوې څلورمې برخې دتلف كيدوپه وجه رجوع كوونكی ديوې څلورمې ضامن كيږي .

(۸)اوكه دووښځورجوع وكړه نودواړي دنصف حق ضامنې ګرځي ځكه ديوه سړي دباقی كيدوپه وجه نصف حق پاتي شونولهذا دواړې ښځې دنصف حق ضامنې ګرځي .

(۹)كه يوه سړي لسوښځودمال گواهي وركړه بيادقاضی دحكم وروسته اتوښځوله گواهي څخه رجوع وكړه نوپرهغوئ باندي ضمان نشته ځكه له گواهي څخه تراوسه لادومره قدرباقي دی (يعني يوسړی دوي ښځې) چې دهغوپه گواهي سره كل حق ثابتيږی اومخكي داخبره تيره شوه چې اعتبار دباقی پاتی خلكودی رجوع كوونكولره اعتبارنشته بياكه له باقی دووښځوڅخه يوې بلي هم رجوع وكړه نوپرټولورجوع كوونكيوباندي ربع حق واجبيږی ولی دسړي باقی كيدوپه وجه نصف حق باقی دی ديوي ښځي په گواهی سره ربع حق باقی پاتی دی په دي ډول دري حصی حق باقی دی يواځي ديوې ربع رجوع كوونكې ښځې ضامنې دي .

(۱۰)كه په مذكورصورت كې سړی اوټولې ښځې له گواهي څخه رجوع وكړي نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپرسړي باندی دكل مال شپږمه حصه واجبيږی اوپرښځوباندي باقی پنځه حصی واجبيږی ولی هرې دوې ښځي ديوه سړي قائم مقام دی نوديوه سړي لسو ښځوگواهي دلسونارينه وگواهي شمارل كيږی بياچې كله ټولورجوع وكړه نوپريوه سړي باندي دټول مال شپږمه حصه واجبيږی .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :واعلم ان ظاهر المحيط هواختيار قولهما وكذايظهرمن بعض التفريعات لكن الراجح عندالاكثرقول الامام ومشى على قوله فى المجلة (هامش الهداية:۳/ ۱۷۴) وقال العلامة الحصكفى رحمه الله :وعندهماعليه نصف وعليهن نصف وعلى الاول (اى على قول الامام) المعول (المنتقى:۳/ ۳۰۱)

(۱۱)كه دووگواهانوپريوه ښځه باندي په عوض دمهرمثل ياكم يازيات سره دنكاح گواهي وركړه بيادقاضی دحكم وروسته دواړوگواهانوله خپله گواهي څخه رجوع وكړه نوپرهغوئ باندي هيڅ ضمان نشته ولی گواهانوپه خپله گواهي سره دزوجينوهيڅ شی تلف كړی نه دی ځكه چې په وخت داتلاف منافع دبضع متقومي نه وي نوداتلاف په وجه پرمتلف باندي ضمان هم نه راځي ولی تضمين دمماثلت مقتضی دی په داسي حال كې چې دبضع اومال ترمنځ هيڅ مماثلت نشته .همدارنګه كه گواهانوپريوه سړي باندي داگواهي وركړه چې هغه له فلانې ښځې سره دهغې دمهرمثل په عوض نكاح كړي ده بيادقاضی دحكم وروسته

ګواهانو رجوع وکړه نو پر هغوئ باندي هيڅ ضمان نشته ولی په وخت د دخول په ملک کي بضع متقومه کيږي نو د اتلاف په عوض شوا و اتلاف په عوض د عدم اتلاف په شان دی .

(۱۲) که ګواهانو تر مهر مثل د زيات عوض د نکاح کولو ګواهي ورکړه بيا د قاضي د حکم وروسته دواړوله خپلي ګواهي څخه رجوع وکړه نو تر مهر مثل د زيات مقدار ضامنان کيږی ولی زائد مقدار د خاوند حق دی چي هغوئ بلا عوض تلف کړ ځکه هغوئ ضامنان ګرځي .

(۱۳) وَلَمْ يَضْمَنَا فِي الْبَيْعِ اِلَّا مَانَقَصَ مِنْ قِيْمَةِ الْمَبِيْعِ (۱۴) وَفِي الطَّلَاقِ قَبْلَ الْوَطْىِٕ ضَمِنَا نِصْفَ الْمَهْرِ (۱۵) وَلَمْ يَضْمَنَا لَوْ بَعْدَ الْوَطْىِٕ (۱۶) وَفِي الْعِتْقِ ضَمِنَا الْقِيْمَةَ (۱۷) وَفِي الْقِصَاصِ ضَمِنَا الدِّيَةَ وَلَمْ يَقْتَصَّا (۱۸) وَاِنْ رَجَعَ شُهُوْدُ الْفَرْعِ ضَمِنُوْا (۱۹) لَا شُهُوْدُ الْاَصْلِ بِلَمْ نُشْهِدِ الْفُرُوْعَ عَلٰى شَهَادَتِنَا (۲۰) اَوْ اَشْهَدْنَاهُمْ وَغَلِطْنَا (۲۱) وَلَوْ رَجَعَ الْاُصُوْلُ وَالْفُرُوْعُ ضَمِنَ الْفُرُوْعُ فَقَطْ (۲۲) وَلَا يَلْتَفِتُ اِلٰى قَوْلِ الْفُرُوْعِ كَذَبَ الْاُصُوْلُ اَوْ غَلِطُوْا (۲۳) وَضَمِنَ الْمُزَكِّيْ بِالرُّجُوْعِ (۲۴) وَشُهُوْدُ الْيَمِيْنِ لَا الزِّنَا لَا شُهُوْدُ الْاِحْصَانِ وَالشَّرْطِ

**ترجمه** :او ضامن کيږي نه په بيع کي مګر په هغه کي چي کم وي د مبيع تر قيمت او په طلاق قبل الوطی کي ضامن کيږی د نصف مهر او ضامن کيږي نه که چيرته تر وطي وروسته وو او په عتق کي ضامن کيږی د قيمت ،او په قصاص کي د ديت ضامن کيږی او له هغوئ څخه قصاص نه اخيستل کيږي او که رجوع وکړه فرع ګواهانو نو ضامن کيږي نه اصل ګواهان په دي خبره سره چي مونږ هغوئ ګواهان نه دي ګرځولي پر خپله ګواهي باندي يا دا چي ګواهان مو ګرځولي دي مګر مونږ غلط شوي يو ،او که رجوع وکړه اصول او فروع دواړو نو بيا اخي فروع ضامن کيږي او التفات نه کيږی د فروع دي قول ته چي اصول دروغ ويلي دي يا هغوئ غلطي کړي ده او ضامن کيږی تزکيه کوونکی په رجوع سره او د قسم او زنا ګواهان نه د احصان او شرط ګواهان

**تشريح** :(۱۳) که دوو ګواهانو ديوشي د هغه د مثل قيمت يا د زيات قيمت د خرڅيدو ګواهي ورکړه بيا دواړو رجوع وکړه نو ضامنان کيږي نه ځکه د عوض موجوديدو په وجه معنیً د اتلاف نه شمارل کيږی ،البته که دواړو تر مثل قيمت نه په کم عوض د خرڅيدو ګواهي ورکړه نو تر مثل عوض چي څومره کم دی د هغه مقدار د بائع لپاره ضامنان کيږی ولی ګواهانو د بائع د ملک د اجزء بلا عوض تلف کړ .

(۱۴) قوله وفي الطلاق قبل الوطی ضمنا نصف المهر ای لو شهدا علی رجل انه طلق امرأته قبل الدخول ثم رجعا ضمنا نصف المهر ،يعني که دوو کسانو پر يوه سړي باندي دا ګواهي ورکړه چي هغه خپلي ښځي ته تر دخول مخکي طلاق ورکړ بيا دواړوله خپلي ګواهي څخه رجوع وکړه نو د نصف مهر ضامنان ګرځي ځکه هغوئ پخپله ګواهي پر خاوند باندي يو قريب السقوط مال (نصف مهر) لازم کړا و نصف مهر قريب السقوط ځکه دی چي دا امکان وو چي ښځه مرتده (العياذ بالله) کيږی يا پر خپل ځان باندي د زوج زوی ته قدرت ورکوي نو کل مهر ساقطيږی

(۱۵) او که چا ګواهانو پر چا باندي له دخول وروسته ګواهي ورکړه چي هغه خپلي ښځي ته طلاق ورکړی دی بيا دواړوله خپلي ګواهي څخه رجوع وکړه نو پر ګواهانو باندي هيڅ ضمان نه راځي ځکه

مهر پر خاوند باندي ددخول په وجه لازم شوی دی باقی دبضع په وخت دخروج له ملکه هیڅ قیمت نشته کمامرنو پر متلف باندي هيڅ شی نه لازميږی.

(۱۶) قوله وفي العتق ضمنا القيمة اى لوشهدا على انه عتق عبده ثم رجعا ضمنا القيمة ،يعني كه دوو گواهانو پريو چاباندي داگواهي ورکړه چې هغه خپل مريی آزاد کړچې هغه آزاد شو بيا دوا ړو دخپلي گواهي څخه رجوع وکړه نو دواړه دهغه مريی دقيمت ضامنان کيږی ولی هغوئ مالية دمريې بلاعوض تلف کړ.

(۱۷) قوله وفي القصاص ضمنا الدية اى لوشهدا بقصاص على رجل ثم رجعا بعد اخذ القصاص منه ضمنا الدية،يعني كه دوو گواهانو پريو چاباندي دقصاص گواهي ورکړه مثلاً گواهي يې ورکړه چې زيد بکر لره عمداً قتل کړی دی چې زيد قصاصاً قتل شواوس گواهانو له خپلی گواهي څخه رجوع وکړه نوگواهان دزيد دوارثانو لپاره ددیت ضامنان کيږی ولی مالی ديت دشبهه باوجودواجبيږی البته له گواهانو څخه قصاص نه اخيستل کيږی ولی هغوئ دقتل مباشرت نه دی کړی اونه يې پرچاباندي دقتل لپاره جبر کړی دی که څه هم په يوه اعتبار سره گواهان قاتل دي چې سبب دقتل دي خوځرنگه دقتل صدور له هغوئ څخه نه دی شوی نودهغوئ په قاتل کيدوکې شبهه پيدا شوه اودشبهي په وجه حدود ساقطيږی.

(۱۸) كه فروع گواهانو له خپلی گواهي څخه رجوع وکړه نوضامنان کيږي مثلا اصل گواهانو پرخپله گواهي باندي نورخلک گواهان کړل هغوئ دخپلو اصلوگواهانو پر گواهي باندي گواهي ورکړه بيافرع گواهان له خپلی گواهي څخه وګرځيدل نوكوم څه چې هغوئ پخپله گواهي سره تلف کړ دهغه ضامن کيږي ځکه دقاضی په محکمه کې شهادت له هغوئ څخه صادرشوی دی نو دتلف کيدو نسبت هغوئ ته کيږی.

(۱۹) قوله لاشهود الاصل اى لايضمن شهود الاصل ،يعني كه دفرع گواهانو پرگواهي باندي له حکم جاري کيدو وروسته اصل گواهانو رجوع وکړه ويې ويل موږ فرع گواهان پرخپله گواهي باندي گواهان کړي نه دي نو پر اصل گواهانو باندي ضمان نشته ځکه هغوئ له خپل سبب کيدو (يعني دگواه گرځيدو) څخه انکاروکړ او ځرنگه چې له اول خبر سره دقاضی قضاء متصله شوې ده له دي امله ددوهم خبر (چې محتمل دصدق او کذب) دی په وجه دقاضی حکم هم نه باطليږی.

(۲۰) قوله او اشهدناهم وغلطنا اى لايضمن شهود الاصل بقولهم اشهدناهم وغلطنا،يعني كه اصل گواهانو ويل چې موږ فرع گواهان گواهان کړي وومگر له موږ څخه غلطی شوي ده،نو بيا چې دفرع گواهانو په گواهي سره څه تلف شوي دي دشيخينو رحمهما الله په نزد اصل گواهان دهغه نه ضامن کيږی ځکه قاضی دفروع گواهانو دگواهي مشاهده کړي بيا يې فيصله کړي ده داصولو دشهادت خو هغه مشاهده نه ده کړي نو د اصولو له خپلي گواهي څخه رجوع کول داتلاف سبب هم نه گرځي ځکه نو پر هغوئ باندي ضمان نه راځي.

**فائده** :دامام محمد رحمه الله په نزد په مذکوره صورتونو کې اصل گواهان ضامنان نه گرځي ځکه فروع گواهانو داصولو دگواهي نقل کړی دی نو داداسي دی لکه اصل گواهان چې خپله دقاضی محکمې ته حاضر شوي او گواهي يې اداکړي وي او بيا يې رجوع کړي وي او په داسي کولو سره پر اصولو باندي ضمان واجبيږی.

**فائده** :دصاحب هدايه رحمه الله له طرزڅخه دامام محمد رحمه الله قول راجح معلوميږي ولی صاحب دهدايه دامام محمد رحمه الله قول مؤخر كړی دی ومن عادة صاحب الهداية تأخير ماهو الراجح عنده وقال الشيخ عبد الحكيم الشهيد رحمه الله : والراجح هو قول محمد رحمه الله وهو المختار كما اقتصر عليه القدوری واشار اليه في المستصفى وقال ابن الهمام في الفتح ان صاحب الهداية اخر قول محمد ومن عادته تأخير ماهو الراجح عنده والله اعلم بالصواب (هامش الهداية: ۱۷۵/۳)

(۲۱)اوكه اصول اوفروع ټولوګواهانورجوع وكړه نوپه داسې صورت كې دشيخينورحمهما الله په نزدضمان يواځي پرفروع ګواهانوباندي راځي ولی دقاضی په محكمه كې ګواهي له هغوئ څخه صادره شوې ده نودتلف كيدونسبت هغوئ ته كيږی كه څه هم اصل ګواهان سبب دتلف دي مګرقاعده داده چې چيرته مباشراومتسبب سره جمع شي نوضمان پرمباشرباندي راځي .

**فائده** :دامام محمد رحمه الله په نزدمدعی عليه ته اختياردی كه غواړي نواصل ګواهان دي ضامنان وګرځوي اوكه غواړي چې فروع ګواهان ضامنان كړي ولی دقاضی قضاء پرفروع ګواهانوباندي په دې ډول واقع شوې ده چې شيخينورحمهما الله ذكركړي ده اوداصولوپرشهادت باندي په دې ډول واقع شوې ده چې امام محمد رحمه الله ذكركړي ده نوځكه مدعی عليه ته اختياردی په دواړوكې چې كومه ډله خوښه وي هغه دي ضامنان كړي.

(۲۲)شهودالفرع (دهغوئ دګواهي مطابق دقاضی دحكم له جاري كيدونه پس) وويل : شهودالاصل دروغ ويلي دي ياداچې شهودالاصل غلط شوي دي نودهغوئ دي خبري ته التفات نه كيږي ځكه دقاضی چې كوم حكم نافذشوی دی هغه اوس ددوئ په دې خبره سره نه ماتيږي اونه پرهغوئ باندي ضمان واجب دی ولی هغوئ له خپلی ګواهي څخه رجوع نه ده كړي .

(۲۳)كه دګواهانوتزكيه كوونكواوتعديل كوونكوله خپل تعديل څخه رجوع وكړه مثلاويې ويل چې هغه ګواهان چې موږدشهادت اهل ګڼلي ووهغوئ اهل دشهادت نه دي بلكې مريان دي .كوم نقصان چې دمدعی عليه شوی دی دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدرجوع كوونكي دهغه ضامنان دي ولی دهغوئ دتعديل په وجه دګواهانوګواهي دقاضی دحكم قابله شوې ده ځكه قاضی دګواهي مطابق بلاتزكيه عمل نه كوي نوتزكيه دشهودودعلة العلة په معنی شونودرجوع كولوپه صورت كې تزكيه كوونكي ضامنان ګرځي .

(۲۴)دقسم اوزناثابتونكي ګواهان ضامنان ګرځي داحصان اوشرط ثابتوونكي ګواهان ضامنان نه ګرځي يعنې كه دووګواهانوداګواهي وركړي وه چې فلان سړي داقسم خوړلی دی چې كه زه مسجدته داخل شوم نوزمامريی آزاددی له دغودووعلاوه نورودووګواهانوداګواهي وركړه چې داسړی مسجدته داخل شوياداڅلورواړه ګواهانوله ګواهي څخه رجوع وكړه نوكوموګواهانوچې دقسم خوړلوګواهي وركړي ده پرهغوئ ضمان راځي اوكوموچې دشرط دپوره كيدوګواهي وركړي ده پرهغوئ ضمان نه راځي ولی دآزادي سبب همداقسم دی اودتلف كيدونسبت دهغوګواهانوطرف ته كيږي كوموچې سبب ثابت كړی دی نه دشرط محض دثابتوونكوپه طرف .

همدارنګه که څلوروکسانو دیوچادزناکولوګواهي ورکړه اودووګواهانودهغه سړي دمحصن (محصن هغه بالغ آزاد مسلمان دی چې په صحیح نکاح سره يې وطی کړي وي) کیدوګواهي ورکړه بیا دهغه سړي دسنګسارېدو وروسته ټولوګواهانوله ګواهي څخه رجوع وکړه نوپه دغه صورت کې دزناپرګواهي ورکوونکوباندې ضمان راځي اودمحصن پرګواهي ورکونکوباندې ضمان نه راځي ځکه حکم دسبب طرف ته مضافیږي اودلته سبب زناده بخلاف احصان چې هغه شرط دی موجب درجم نه دی.

## كتاب الوكالة

### داكتاب دوکالت په بیان کې دی

وکالت لغةً په معنی دتفویض اوسپارلوسره دی اووکیل فعیل وزن دی په معنی دمفعول یعني مفوّض الیه ،دفقهاؤپه اصطلاح وکالت دادی چې یوڅوک په یوه معلومه معامله کې بل څوک دخپل ځان قائم مقام کړي،بل څوک چې خپل قائم مقام ګرځوي هغه ته مُوکل اوقائم مقام ته وکیل اوامرِمفوّض (یعنې هغه کار) ته موکل به ویل کیږي.

دوکالت اوشهادت ترمنځ مناسبت دادی چې په دواړوکې پرغیرباندې ولایت علی سبیل الاعانت راځي یعنې ددواړوپه ذریعه دنوروسره اوکومک کیږي اودنوروحقوق ساتل کیږي بیاپه شهادت کې خالص تعاضد (ټینګښت) دی اوپه وکالت کې له تعاضدسره کله کله تعاوض هم وي ګواکي وکالت په نسبت وشهادت ته مرکب دی اومرکب له مفرد وروسته ذکرکیږي ځکه نومصنف رحمه الله وکالت له شهادت وروسته ذکرکړی دی.

(۱) صَحَّ التَّوكِيلُ (۲) وَهُوَ إِقَامَةُ الغَيرِ مَقَامَ نَفسِهِ فِي التَّصَرُّفِ مِمَّن يَملِكُهُ إِذَا كَانَ الوَكِيلُ مِمَّن يَعقِلُ العَقدَ وَلَو صَبِيًّا أَو عَبدًا مَحجُورًا (۳) بِكُلِّ مَا يَعقِدُهُ بِنَفسِهِ (۴) وَبِالخُصُومَةِ فِي الحُقُوقِ بِرِضَاءِ الخَصمِ إِلَّا أَن يَكُونَ المُوَكِّلُ مَرِيضًا أَو غَائِبًا مُدَّةَ السَّفَرِ أَو مُرِيدًا لِلسَّفَرِ أَو مُخَدَّرَةً (۵) بِإِيفَائِهَا وَاستِيفَائِهَا إِلَّا فِي حَدٍّ وَقَوَدٍ إِن غَابَ المُوَكِّلُ.

**ترجمه**:صحیح دی وکیل ټاکل اوهغه قائم مقام ګرځول دبل چادی دخپل ځان په تصرفاتوکې له هغه چاڅخه چې مالک دتصرف وي په داسې حال کې چې وکیل په عقل پوهیږي که څه هم ماشوم وي یامحجورمریی دي په هرهغه معامله کې چې موکیل هغه خپله هم کولای شي اودخصومت لپاره په حقوقوکې دخصم په رضامندۍ سره مګرداکه موکل ناروغ وویاغائب وودموده سفره په اندازه سره یایې دسفراراده کړي وي یاپه پرده پټه ښځه وه ،دحقوقوداداکولویاوصول کولولپاره مګرپه حداوقصاص کې که موکل غائب وو.

**تشریح** :(۱)یوڅوک خپل وکیل ګرځول جائزدی ولې الله تعالی داصحاب کهف په حکایت کولوسره فرمایي :( فَابْعَثُوا أَحَدَكُم بِوَرِقِكُمْ هَٰذِهِ إِلَى الْمَدِينَةِ ) داصحاب کهف خپل یوملګری ښارته لیږدول دوکالت په طریقه وو ،همدارنګه له صحیح روایت څخه ثابته ده چې نبی کریم ﷺ حکیم بن حزام رضی الله عنه دقرباني لپاره دپسواخیستلووکیل مقررکړی وو،اوکله انسان خپله دیوکارله ترسره کولوڅخه عاجزکیږي نودوکیل مقررولوته ضرورت پیښیږي ځکه نوڅوک وکیل ټاکل جائزدی.

(۲)مصنف رحمه الله دوكالت شرعي تعريف داډول كړى دى چې وكالت دې ته وايي چې دكوم تصرف چې انسان خپله مالک وي په هغه كې دخپل طرف څخه دتصرف كولولپاره يوبل څوک دځان قائم مقام كړي په دې شرط چې كوم څوک چې وكيل كوي هغه به معاملات په ښه انداز سره پېژني كه څه هم هغه ماشوم وي ياداسي مريى وي چې مولى دتجارت وغيره اجازت نه وي وركړى ولى ماشوم اومحجورمريى هريودتصرف اهليت لري ليكن حقوق دعقدبه دماشوم اومريي په موكل پوري تعلق لري خپله په ماشوم اومريي پوري به تعلق نه لري ځكه كه چيرته په هغوئ پوري حقوق معلق شي نودماشوم اومريي دمولى نقصان دى .

(۳)قوله بكل مايعقده بنفسه الخ اى صح التوكيل بكل مايعقده بنفسه الخ ،ضابطه داده چې انسان كوم عقدبذات خودكولاى شي دهغه عقدلپاره بل څوک هم وكيل مقررولاى شي ځكه انسان كله خپله ديوكارد مباشرت څخه عاجزكيږي مثلاً دكوم عقدچې دهغه ضرورت دى په هغه پوهيږي نه يادډيرومصروفيتونوپه وجه فرصت نه لري يادډيرمال درلودلوپه وجه خپل ټول كارونه خپله نه شي سمبالولاى نوهغه دوكيل مقررېدوته ضرورت لري ځكه نوبل څوک وكيل مقررول جائزدى .

(۴)قوله وبالخصومة فى الحقوق برضاء الخصم اى صح التوكيل بالخصومة فى الحقوق برضاء الخصم الخ ،يعني په ټولوحقوقوكې وكالت بالخصومة (دصحيح دعوى كولواوصريح جواب وركولولپاره)جائزدى ،دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددخصم درضامندى بغيرڅوک وكيل بالخصومة (دجواب وركولووكيل )ټاكل جائزنه دى مګرداكه موكل ناروغ وياتردريوورځودزياتي مودي مسافت غائب وويايي دسفركولو تيارى كړى وياموكله په پرده پټه ښځه وه نوددغوعذرونوپه صورت كې په اتفاق وكيل بالخصومة مقررول جائزدى، دصاحبينو رحمهما الله په نزدبيله عذره هم دخصم درضامندى بغيروكيل بالخصومة جائزدى .

مګرداختلاف په نفس جوازكې نه دى ولى پرنفس جوازباندي دائمهؤاتفاق دى بلكې دااختلاف په لزوم كې دى يعني دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزدداتوكيل لازم نه دى بلكې دخصم په ردكيدو سره رديږي اوله ردولووروسته كه وكيل په محكمه كې خصومت وراندي كوي نوپرخصم باندي په محكمه كې حاضريدل اوجواب وركول نه لازميږي اودصاحبينورحمهما الله په نزدپرخصم باندي محكمې ته حاضريدل اوجواب وركول لازم دى .

دصاحبينو رحمهما الله دليل دادى چې وكيل مقررول خالص په خپل حق كې تصرف دى اوپه خپل حق كې دتصرف كولولپاره دبل چارضامندى ضروري نه ده ،دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادى چې وكيل بالخصومة مقررول خالص په خپل حق كې تصرف نه دى ولي پرمدعى عليه باندي دمدعي جواب وركول دمدعى حق دى پرمدعى عليه باندي واجب دى،نووكيل بالخصومة مقررول خالص په خپل حق كې تصرف نه بلكې دمدعي په حق كې هم تصرف دى ځكه نودمدعى رضامندى ضروري ده ،اوكه داومنوچې وكيل مقررول خالص پخپل حق كې تصرف دى نوهم پخپل خالص حق كې دبل درضامندى بغيرهغه تصرف كول صحيح دى چې دهغه ضررنه وي دلته داسى نه ده ولى دخصومتونوپه سلسله كې دخلكوحالات مختلف دي

چې ځینی ډیرچالاک اوځینی بیاډیرغبی وي نودغیرله وکالت سره چې نفع یانقصان متعلق دی دهغه درضامندي بغیرجائزکیږي نه.

**فائده** :دصاحبینو رحمهما الله قول مفتی به دی لمافی الدر المختار: وجوازه بلارضاه وبه قالت الثلاثة وعليه فتوى ابى الليث وغيره واختاره العتابى وصححه فى النهاية والمختار للفتوى تفويضه للحاكم (الدر المختار على هامش ردالمحتار: ۴/ ۴۳٦) وقال الشيخ خالد الاتاسى رحمه الله :قال فى الدر وبه قالت الائمة الثلاثة وعليه فتوى ابى الليث واختاره العتابى وصححه فى النهاية فلايتوقف على رضى غيره كالتوكيل بتقاضى الديون وعليه مشت المجلة (شرح المجلة: ۴/ ۵۱۲)

**فائده** :په عدالت کې دخپلې دعوی دثابتولولپاره یادمدعی دغلطی دعوی دمدافعت کولولپاره څوک وکیل مقررول یادیوچاوکیل مقررکیدل شرعًاجائزدی،موکل که نروي که ښځه،اوکه فریق مخالف راضي وي که ناراض،به هرحال دشریعت له طرفه اجازه ده ،چې یوڅوک دوکالت په ډول داکارترسره کړي.

البته دیودروغجن مدعي حمایت کول یادیوظالم دطرف څخه مدافعت کول دهغه په خاطردروغ ويل اوهغه ته له نورو څخه دعدالت په ذریعه مال لوټول داډیره سخته ګناه ده داسي خلک بایدچې دالله تعالی دعذاب څخه وویریږي ،دوکالت داسي پیشه چې په هغه کې دظالم په حمایت پرمظلوم باندي مزید ظلم کیږي داملعونه پیشه ده پردغسی کارباندي اجرت اخیستل هم حرام دی لکه په کتاب الاجاره کې په تفصیل سره دامسئله بیان شوې ده ،داسي خلک بایدفکروکړي چې ددوئ داغوره ژبه ،به ترکومه کاروي،قال الله تعالى:( هَاأَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ) سورة النساء آية ۱۰۹ (یعني اورئ تاسی چې جګړه کوئ تاسی دهغوئ له طرفه په دنیاوي ژوندکې بیابه څوک جګړه کوي دهغه په بدله کې له الله تعالی سره دقیامت په ورځ یاڅوک به وي دهغه کارساز،مطلب یې دادی چې په دنیاکې خوتاسی دهغوئ له طرفه مدافعت کوئ نولږفکروکړئ دقیامت په ورځ چې کله دالله تعالی په دربارکې حاضریدل وي،په دې ورځ کې به څوک دچادطرفه جواب ورکوي،څکه نودواړولره یعني ددروغودعوی کونکي اوددروغودمقدمی چلوونکي ته پکاردی چې دخپل انجام په هکله فکروکړي .(جدیدمعاملات کی شرعی احکام: ۲/ ۶۱)

(۵) قوله وبايفائها واستيفائها الا فى حد وقود اى وصح التوكيل بايفاء الحقوق واستيفائها الخ ،یعني دټولو حقوقو داداکولو اودټولوحقوقودوصولولولپاره هم وکیل مقررول جائزدی ولی خپله انسان ته دایفاء حقوق اواستیفاء حقوق مباشرت جائزدی نوبل څوک هم په دې باره کې وکیل مقررول جائزدی، مګرحدودو اوقصاص حاصلولولپاره وکیل مقررول جائزنه دی(مثلاموکل خپله غائب دی اووکیل له قاتل څخه قصاص اخیستل غواړي نوداجائزنه دی)څکه حدوداوقصاص په شبهاتوسره ساقطیږي نوپه محکمه کې دموکل دنه حاضریدوپه صورت کې دقاتل دمعاف کیدوشبهه موجوده ده یعني داممکنه ده چې که چیرته موکل خپله په عدالت کې موجودوای نوقاتل به یې بري کړی وای.

(٦) وَالْحُقُوقِ فِيمَا يُضِيفُهُ الْوَكِيلُ إِلَى نَفْسِهِ كَالْبَيْعِ وَالْإِجَارَةِ وَالصُّلْحِ عَنْ إِقْرَارٍ تَتَعَلَّقُ بِالْوَكِيلِ إِنْ لَمْ يَكُنْ مَحْجُورًا كَتَسْلِيمِ الْمَبِيعِ وَقَبْضِهِ وَقَبْضِ الثَّمَنِ وَالرُّجُوعِ عِنْدَ الِاسْتِحْقَاقِ وَالْخُصُومَةِ فِي الْعَيْبِ (٧) وَالْمِلْكُ يَثْبُتُ لِلْمُوَكِّلِ ابْتِدَاءً حَتَّى لَا يَعْتِقَ قَرِيبُ الْوَكِيلِ بِشِرَائِهِ

(۸) وَفِيمَا يُضِيفُهُ إِلَى المُوَكِّلِ كَالنِّكَاحِ وَالخُلْعِ وَالصُّلْحِ عَنْ دَمِ عَمْدٍ وَعَنِ الإِنْكَارِ يَتَعَلَّقُ بِالمُوَكِّلِ فَلَا يُطَالَبُ وَكِيلُهُ بِالمَهْرِ وَوَكِيلُهَا بِتَسْلِيمِهَا (۹) وَلِلْمُشْتَرِي مَنْعُ المُوَكِّلِ عَنِ الثَّمَنِ وَإِنْ دَفَعَ إِلَيْهِ صَحَّ وَلَا يُطَالِبُهُ الوَكِيلُ ثَانِيًا.

**ترجمه**: او په حقوقو کې چې منسوبوي يې وکيل خپل ځان ته لکه بيع او اجاره او صلح عن اقرار متعلق کيږي په وکيل پورې که چيرته هغه محجور نه وو لکه مبيع سپارل او دهغې قبض کول او دهغې ثمن قبض کول او رجوع کول په وخت د استحقاق کې او خصومت کول د مبيع په عيب کې او ملک ابتداءً ثابتيږي د موکل لپاره تردې چې نه آزاديږي د وکيل قريب دهغه په اخيستلو سره او په هغو حقوقو کې چې منسوبوي يې د موکل په طرف لکه نکاح او خلع او صلح له دم عمد او صلح عن انکار متعلق کيږي په موکل پورې بيا مطالبه نه کيږي د سړي له وکيل ځخه د مهر او د ښځې له وکيل ځخه په تسليمولو دهغې او مشتري حق لري چې منع کړي موکل له ثمنو ځخه او که يې ورکړي هغه ته نو صحيح دی او دهغو مطالبه نه کوله کيږي له وکيل ځخه دوباره.

**تشريح**: (۶) کوم معاملات چې وکيلان يې کوي پر دوه قسمه دي: **نمبر ۱** - هغه چې وکيل يې خپل ځان ته منسوبوي لکه اخيستل خرڅول او اجاره او د مدعي دحق داقرار په کولو سره صلح ورسره کول نو د دغو معاملاتو حقوق په وکيل پورې اړه لري په موکل پورې هيڅ تعلق نه لري په دې شرط چې وکيل داسې مريی نه وي يا نابالغ ماشوم نه وي چې د معاملاتو د طې کولو اجازه نه وي ورکوله شي بيا که وکيل يو شی خرڅ کړي نو وکيل به مبيع سپاري او دی به ثمن وصول کوي او که يې يو شی واخيست نو هم دی به مبيع قبض کوي او که د مبيع يو بل مستحق پيدا شو نو وکيل به له بائع ځخه د هغه قيمت واپس اخلي او د مبيع دعيب په صورت کې به له وکيل سره جنجال کيږي، مصنف رَحِمَهُ اللهُ د اشرط ولګاوه چې وکيل به محجور مريی او محجور ماشوم نه وي داپې ځکه لګولی دی چې که چيرته وکيل محجور مريی يا محجور ماشوم وو نو د مذکور عقد حقوق به د مريي او ماشوم سره متعلق نه وي بلکې دهغوئ په موکل پورې به معلق کيږي ځکه محجور د قصور اهليت په وجه د ذمه داري التزام نه شي کولای نو که دعقد حقوق له هغوئ سره متعلق کړای شي نو په دې دهغوئ سره دعقد کوونکي ضرر دی.

(۷) او د مبيع مالک له ابتداء ځخه موکل ګرځي وکيل مالک نه ګرځي همدا وجه ده چې که چيرته وکيل د موکل لپاره خپل يو مريی قريب واخيست نو هغه پر وکيل باندې نه آزاديږي ولې وکيل د مبيع مالک نه دی بلکې له ابتداء ځخه يې موکل مالک دی، او که په ابتداء کې وکيل مالک کيدای او روسته يې موکل مالک ګرځيدای نو په داسې صورت کې که چيرته وکيل خپل يو قريب اخيستی وای نو هغه دده له طرفه آزاديدی ځکه دا شرعي حکم دی چې څوک دخپل ذی رحم محرم مالک شي هغه آزاديږي.

**نمبر ۲** - قوله وفيما يضيفه الى الموكل كالنكاح الخ ای الحقوق فی العقد الذی يضيفه الى الموكل كالنكاح الخ، يعنې دوهم قسم معاملات چې وکيل يې دخپل موکل طرف ته منسوبوي لکه نکاح، خلع، صلح عن دم العمد، نو دغه حقوق په موکل پورې معلق کيږي نه په وکيل پورې ځکه په دغو معاملاتو کې وکيل سفير محض دی لکه په عقد نکاح کې چې يو سړی دخاوند وکيل وي نو د مهر مطالبه له وکيل ځخه بلکې له موکل (خاوند) ځخه کيږي او که دښځې وکيل وو نو دښځې تسليمول پر وکيل نه لازميږي بلکې پخپله پر ښځه باندې ځان تسليمول لازميږي.

(۹) که وکيل يوشی خرڅ کړاو له مشتري څخه د ثمن مطالبه د وکيل پرځای موکل وکړه نو مشتري له موکل څخه ثمن ګرځولای شي ځکه د عقد حقوق په عاقد يعنې وکيل پوري معلق دي او موکل له عقد څخه اجنبي دی ځکه نو موکل له مشتري څخه د ثمن مطالبه نه شي کولای او که مشتري ثمن موکل ته ورکړي نو دا هم جائز دی او وکيل دوباره له مشتري څخه د ثمن د مطالبې حق نه لري ولی ثمن د موکل حق دی چې هغه ته ورسيدی لهذا د مشتري ذمه بري کيږي.

## بَابُ الْوَكَالَةِ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ

### دا باب د خرڅولو او اخيستلو د وکالت په بيان کې دی

د وکالت په باب کې ترټولو کثير الوقوع او ترټولو زيات محتاج اليه شی وکالت د خرڅولو او اخيستلو دی ځکه نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ ترټولو مخکې د وکالت بالبيع والشراء احکام ذکر کړي دي، بيا يې په بيع او شراء کې د شراء احکام ځکه لومړی ذکر کړي دي چې په شراء سره د مبيع د مِلک اثبات راځي او په بيع سره د مبيع د مِلک ازاله راځي او ازاله تر اثبات وروسته وي نو يې احکام هم د مثبت د الومړی او د مزيل دا وروسته ذکر کړي دي.

(۱) أَمَرَهُ بِشِرَاءِ ثَوْبٍ هَرَوِيٍّ أَوْ فَرَسٍ أَوْ بَغْلٍ صَحَّ سَمَّى ثَمَنًا أَوْ لَا (۲) وَبِشِرَاءِ عَبْدٍ وَدَارٍ صَحَّ إِنْ سَمَّى ثَمَنًا وَإِلَّا لَا (۳) وَبِشِرَاءِ ثَوْبٍ أَوْ دَابَّةٍ لَا وَإِنْ سَمَّى ثَمَنًا (۴) وَبِشِرَاءِ طَعَامٍ يَقَعُ عَلَى الْبُرِّ وَدَقِيقِهِ (۵) وَلِلْوَكِيلِ الرَّدُّ بِالْعَيْبِ مَادَامَ الْمَبِيعُ فِي يَدِهِ فَلَوْ سَلَّمَهُ إِلَى الْآمِرِ لَا يَرُدُّهُ إِلَّا بِأَمْرِهِ

**ترجمه**: که يې حکم وکړ وکيل ته د هراتي کپړې د اخيستلو يا د آس يا د خچر نو صحيح دی ثمن يې تعين کړي وي او که يې نه وي تعين کړي، او که يې حکم وکړ د مريي يا سرای نو بيا که يې ثمن تعين کړي وي صحيح دی او که نه نو بيا نه صحيح کيږي، او که يې حکم کړی وو د کپړې يا حيوان د اخيستلو نو نه صحيح کيږي که څه ثمن تعين شوی وي، او که يې حکم وکړ د طعام اخيستلو نو دا محمول کيږي پر غنمو باندې او د هغو پر اوړو باندې او وکيل ته جائز دی رد ول يې په عيب سره تر څو چې مبيع د هغه په قبضه کې وي او که يې تسليم کړه آمر ته نو بيا رد نه شي کولای مګر د هغه په حکم سره.

**تشريح**: (۱) که موکل وکيل د هراتي کپړې (هراتي کپړه هغه کپړه ده چې د هرات ښار ته منسوبيږي، هرات د افغانستان په لويديځ کې لرغونی ولايت دی چې د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کې فتح شوی دی) په اخيستلو يا د آس يا د خچر د رانيولو لپاره وکيل وګرځاوه نو دا توکيل صحيح دی ځکه د موکل به د جنس معلومولو وروسته زيات جهالت نه پاتيږي او معمولي جهالت په باب د وکالت کې باک نه لري ځکه د وکالت بناء له بل څخه د مدد اخيستلو په وجه پر توسع دی، بيا دا عام دی چې موکل د مذکورو شيانو قيمت ورښودلی وي او که يې نه وي ورښودلی ولی د موکل به د جنس په معلومولو سره قيمت هم عادةً معلوميږي.

(۲) قوله و بشراء عبد او دار صح الخ ای لو امره بشراء عبد او دار صح الخ، يعني که موکل يو سړی د مريي يا د سرای د اخيستلو وکيل مقرر کړ نو د صحت د وکالت لپاره ضروري دی چې د هغه شي د قيمت مقدار بيان وکړي ځکه

دمریې اوسرای دقیمت په بیانولوسره معلومیږي چې کومه نوع دی نو ځکه یې قیمت ښودل ضروري دی اوکه یې قیمت نه وو بیان کړی نوبیا دجنس جهالت په وجه داوکالت صحیح نه دی .

(۳) قوله وبشراء ثوب اودابة لاالخ، یعنې که موکل دکپړي یایوحیوان لپاره څوک وکیل مقررکړ او خالص دومره یې ورته وویل چې زمالپاره کپړه یاحیوان واخله ،نوریې دکپړي هیڅ تفصیل ورته بیان نه کړچې هراتي یالاهوري ،اونه یې دحیوان په باره کې ورته وویل چې خریاغویی به وي نوداډول توکیل صحیح نه دی که څه هم موکل دقیمت بیان کړی وي ځکه دلته دکپړي اوحیوان دجنس په نامعلومتیاسره دجهالت فاحشه په وجه داوکالت صحیح نه دی .

(۴) قوله وبشراء طعام يقع على البر ودقيقه اى لوامره بشراء طعام يقع على البر ودقيقه، یعنې که موکل وکیل ته خالص دومره وویل چې ماته طعام واخله نوله دي څخه استحساناغنم یادغنمواوړه مرادیږي بیاوکیل له غنمواویااوړوپرته دبل شي اخیستلواختیارنه لري دقیاس تقاضاخوداده چې داوکالت پرهرهغه شي باندي محمول وي چې دغذاپه ډول خوړل کیږي ځکه لفظ دطعام پرهرهغه شي باندي صادقیږی چې خوړل کیږی نوداوکالت پرهرمطعوم باندي واقع کیږي،وجه داستحسان داده چې لفظ دطعام چې کله له بیع اوشراء سره یوځای وویل شي نوپه عرف کې له هغه څخه غنم اواوړه مرادیږيْ اوعرف په نسبت وقیاس ته زیات قوي اوراجح دی نودعرف په اعتبارسره له طعام نه غنم اودهغواوړه مرادیږي .

**فائده** :علامه ابن الهمام رحمه الله لیکلي دي چې له طعام نه دبیع اوشراء پرموقع په عرف کې له طعام څخه غنم اودهغواوړه مرادیدل یواځي دکوفې دخلکوعرف دی ځکه داهل کوفه په نزددغنمواودهغوداوړو دبازارنوم ،سوق طعام وو ،که نه له هغه نه علاوه دنوروخلکوپه عرف کې پرهرمطعوم باندي دطعام لفظ صادقیږی اودشراء بالطعام وکالت پرهرډول طعام باندي واقع کیږي زموږپه عرف کې هم طعام هرهغه شي ته ویل کیږي چې بالفعل دغذاء په ډول دخوراک لائق وي اوپرهمدي باندي فتوی ده . (اشرف الهدایه :۱۰/ ۲۳۷)

(۵) که وکیل یوشی واخیست اوهغه یې قبض کړیاپه مبیع کې په یوه عیب خبرشونوترڅو پوري چې مبیع دوکیل په لاس کې وي ترهغه پوري دعیب په وجه مبیع واپس کیدای شي ځکه دعیب په وجه رددول دعقدله حقوقوڅخه دی اودعقدحقوق په کیل پوري معلق دي لهذادعیب په وجه درددیدلوحق هم وکیل لره شته،اوکه وکیل مبیع موکل ته حواله کړه نوبیادموکل داجازي بغیرنه واپس کیږي ځکه دمبیع په حواله کولوسره دوکالت حکم پای ته رسیږي اوکله چې دوکالت حکم پای ته رسیږي نووکالت هم ختمیږي اووکیل دغسي پردي بیګانه سړی شونوځکه دموکل له اجازي بغیردمبیع دواپس کولواختیارنه لري .

(۶) وَحَبْسُ الْمَبِيعِ الثَّمَنِ دَفَعَهُ مِنْ مَالِهِ (۷) فَلَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ قَبْلَ حَبْسِهِ مِنْ مَالِ الْمُوَكِّلِ وَلَمْ يَسْقُطِ الثَّمَنُ (۸) وَإِنْ هَلَكَ بَعْدَ حَبْسِهِ فَهُوَ كَالْمَبِيعِ (۹) وَيُعْتَبَرُ مُفَارَقَةُ الْوَكِيلِ فِي الصَّرْفِ وَالسَّلَمِ دُونَ الْمُوَكِّلِ (۱۰) وَلَوْ وَكَّلَهُ بِشِرَاءِ عَشَرَةِ أَرْطَالِ لَحْمٍ بِدِرْهَمٍ فَاشْتَرَى عِشْرِينَ رِطْلًا بِدِرْهَمٍ مِمَّا يُبَاعُ مِنْهُ عَشَرَةٌ بِدِرْهَمٍ لَزِمَ الْمُوَكِّلَ مِنْهُ عَشَرَةٌ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ

**ترجمه** :اووکیل دمبیع دګرځولوحق لري دهغوثمنولپاره چې ده ورکړي دي له خپل مال څخه بیاکه چیرته هلاک شودهغه په لاس کې ترګرځولومخکي نوهلاک شودموکل له مال څخه اونه ساقطیږی ثمن ،اوکه

هلاک شو تر گرځولو وروسته نو دهغه حکم دمبیع په شان دی او اعتبار ورکول کیږي دوکیل جدائی ته په بیع صرف او سلم کې نه دموکل جدائی لره، او که یې وکیل کړ دلس رطل غوښې اخیستلو په یوه درهم سره بیا هغه واخیسته شل رطله په یوه درهم په دي دول چې لس رطله خرڅیدله په یوه درهم نو لازمیږي موکل لره له هغې څخه لس رطله په نصف درهم کې.

**تشریح** :(۶)قوله وحبس المبیع لثمن الخ ای وللوکیل حبس المبیع لثمن الخ،یعني که وکیل بالشراء (هغه چې دیوشي داخیستلو لپاره وکیل گرځیدلی وي)بائع ته ثمن له خپل مال څخه ورکړي او مبیع یې قبض کړه نو وکیل لره جائز دی چې دثمن لپاره موکل ته رجوع وکړي ولی دموکل له طرفه دلالةً وکیل ته ددې خبرې اجازه وي چې هغه دمبیع ثمن له خپله طرفه ورکولای شي ځکه چې دعقدټول حقوق په وکیل پورې معلق دي نو دثمن مطالبه هم له وکیل څخه کیږي او موکل ته ددې علم شته بیا یې هم وکیل ته ثمن نه دي ورکړي نو گواکې موکل په دې راضي دی چې وکیل دې له خپل مال څخه ثمن اداکړي او دموکل په دې باندې راضی کیدل گویا دموکل له طرفه دا اجازه ده چې ثمن له خپل مال څخه اداکولای شي.

(۷)که په مذکورصورت کې مخکې تر حبس (یعني دموکل له مطالبې وروسته وکیل دثمن په وجه مبیع له خپل خان سره نه وه گرځولې)مبیع هلاکه شوه نو دامبیع دموکل له مال څخه هلاکه شمار له کیږی نه دوکیل له مال څخه او ثمن دموکل له ذمې څخه نه ساقطیږی ځکه دوکیل قبض حکماً دموکل قبض دی نو گواکې دموکل له لاسه هلاکه شوې ده په دې کې دوکیل حق رجوع نه ساقطیږی.

(۸)او که وکیل مبیع له خپل ځان سره و گرځوله بیا هغه دوکیل په قبضه کې هلاکه شوه نو دامام ابویوسف رحمه الله په نزد دضمان رهن په شان مضمون کیږي یعني دمبیع له قیمت او ثمن نه چې هریو کمې پیسې وي هغه لازمیږی مثلاً وکیل له بائع څخه مبیع په پنځلس روپې ثمن اخیستې وه او دهلاکې شوې مبیع قیمت لس روپې لس دي نو په قیمت سره مضمون کیږي یعني دموکل پر ذمه دوکیل لپاره پنځلس روپې واجب دي او دموکل لپاره پر وکیل باندې دمبیع تاوان لس روپې واجب دي نو له ثمن څخه چې دتاوان لس روپې کاټ کړي وکیل به له موکل څخه پنځه روپې واپس اخلي او که ثمن لس روپې وي او دمبیع قیمت پنځلس روپې وي نو مبیع په ثمن سره مضمونه کیږی یعنې پر وکیل باندې لس روپې تاوان راځي نو ځرنگه چې دوکیل پر موکل باندې دبیع لس روپې واجب دي او دموکل پر وکیل باندې دتاوان لس روپې واجب دي نو یو بل ته دې رجوع نه کوي بس سره خلاص شول.

دامام محمد رحمه الله په نزد دضمان مبیع په شان مضمون کیږي یعنې لکه ځرنگه چې مبیع که چیرته دبائع په لاس کې هلاکه شي نو دمشتري له ذمې څخه دهغې ثمن ساقطیږی دمبیع قیمت که تر هغه زیات وي او که کم وي، همدارنگه دوکیل په قبضه کې دمبیع دهلاکت په صورت کې دموکل له ذمې څخه ثمن ساقطیږی خواه که دمبیع قیمت تر ثمن کم وي او که زیات وي همدا قول دامام ابوحنیفة رحمه الله هم دی، دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دادی چې دثمن په وجه مبیع گرځول له

رهن سره مشابهت لري ځکه نو دا مبيع دضمان رهن په شان مضمونه کيږي .د طرفينو رحمهما الله دليل دا دی چې وکيل په منزله دبائع دی او موکل په منزله دمشتري دی ځکه له وکيل څخه هلاک شوي مبيع دضمان بيع په شان مضمونه کيږي .

**فائده** :دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله :الراجح الماخوذ به هو قول ابی حنيفة رحمه الله وبه قال الامام محمد الشيبانی رحمه الله ,قال فی شرح المجلة الاتاسی:انه ماقاله الامام محمد هو قول ابی حنيفة رحمه الله وعليه المتون وبه احذت المجلة(هامش الهداية:۳/۱۸۲)

(۹)دعقدصرف او سلم لپاره وکيل مقررول جائزدی ځکه دا داسي عقوددي چې موکل يې خپله کولای شي او دا خبره مخکي تيره شوه چې هرهغه عقدچې موکل يې خپله کولای شي دهغه لپاره بل څوک وکيل کولای شي. او په مذکوروعقدونو کې دعاقدينو په مجلس عقدکې عوضين قبض کول ضروري دی که چيرته وکيل اوهغه بل عاقدد عوضينو ترقبض کولو مخکې يوبل سره جدا شول نو عقد باطليږی ولی دعوضينو ترقبض کولو مخکې دعاقدينو جدائی راغله چې هغه عقدباطلوي.اوکه موکل مخکي ترقبض له مجلس عقدڅخه ولاړی نوهغه لره اعتبار نشته بيع نه باطليږی ځکه موکل عاقدنه دی اوقبض کول دعاقدضروري دی هغه وکيل دی .

(۱۰)که يوچابل څوک ديوه درهم په عوض دلسو رطلو (رطل څلورديرش تولې يوه نيمه ماشه وزن دی)غوښي اخيستلو لپاره وکيل کړ مگر وکيل ديوه درهم په عوض شل رطله داسي غوښه واخيسته چې ديوه درهم په عوض لس رطله خرڅيدله نو دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد پر موکل باندي په دي کې دنصف درهم په عوض لس رطله غوښه اخيستل لازميږی ځکه موکل دلسو رطلو اخيستلو امر کړی وو او دموکل له طرفه ترلسو رطلو په زيات سره وکيل مامورنه دی نو ترلسو رطلو زيات پر موکل نه دي بلکې پر وکيل باندي لازميږی .

دصاحبينو رحمهما الله په نزدپر موکل باندي ديوه درهم په عوض کې شل رطله غوښه لازميږی ځکه موکل وکيل ته ديوه درهم دمصرفولو امر کړی وو خالص خيال يې دا وو چې ديوه درهم په عوض لس رطله غوښه کيږی او س چې وکيل شل رطله پري اخيستی ده نو موکل ته يې زياته فائده ورسوله نو دا د موکل دامر مخالفت نه دی څومره چې يې اخيستې ده ټوله پر موکل باندي لازميږي .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله :المختار عندمشائخ الحنفية قول الامام وعليه مشی اصحاب المتون والشروح والفتاوی وبه اخذت المجلة (هامش الهداية:۳/۱۸۲)

(۱۱)ولو وکله بشراء شیء بعينه لايشتريه لنفسه(۱۲)فلو اشتراه بغير النقود او بخلاف ماسمی له من الثمن وقع للوکيل(۱۳)وان کان بغير عينه فالشراء للوکيل الا ان ينوی للموکل او يشتريه بماله(۱۴)وان قال اشتريت للامر وقال الآمر لنفسک فالقول للآمر وان دفع اليه الثمن فللمامور

**ترجمه** :اوکه يې وکيل کړ ديو معلوم شي داخيستلو لپاره نوهغه دي نه اخلي دخپل ځان لپاره بيا که يې واخيست هغه دغير نقد په عوض يا خلاف له هغه ثمن چې ده ورته معلوم کړي وي نو دا خريد واقع کيږي دوکيل لپاره اوکه دغير معين شي داخيستلو وکيل وو بيا هم دا خريد دوکيل لپاره کيږي مگر دا که يې نيت کړی

وود موكل لپاره ياپې واخيست دده په مال سره او كه يې وويل چې ما اخيستى دى دموكل لپاره اوموكل وويل چې تادخپل ځان لپاره اخيستى دى نو قول دموكل معتبريږى او كه يې وركړې وي ثمن وكيل ته نو بيا قول دوكيل معتبريږي.

**تشريح** :(۱۱)كه موكل يوڅوك ديو معلوم شي داخيستلولپاره وكيل مقرركړنودوكيل لپاره جائزنه دى چې هغه معلوم شى دخپل ځان لپاره واخلي ځكه موكل پروكيل باندي اعتمادكړى دى نوكه چيرته يې وكيل دخپل ځان لپاره اخلي نوپه دي كې بيا موكل ته دوكه وركول دى چې دانا جائزه ده،همدارنګه وكيل چې كله دمعلوم شي داخيستلوپه باره كې وكالت قبول كړددي خبري التزام يې وكړچې كه دمعلوم شي خريداوكړ نوهغه به دموكل لپاره وي نوځكه به وكيل دخپل ځان لپاره دخريدتصورنه كوي.

(۱۲)اوكه چيرته وكيل دموكل له طرفه معلوم كړاى شوى شى واخيست اوپه قيمت كې يې پيسې نه بلكې سامان وركړياهغه قيمت چې موكل ورته بنودلى ووچې په دومره يې واخله وكيل دهغه برخلاف په زيات قيمت سره واخيست نوپه دغودواړوصورتونوكې داشى دوكيل لپاره كيږي ځكه وكيل دموكل مخالفت كړى دى اودمخالفت په ضمن كې وكيل له وكالت څخه معزول كيږي نودعقدنفاذخپله پروكيل باندي كيږي نه پرموكل باندي.

(۱۳)اوكه يې ديوغيرمعلوم شي لپاره وكيل كړى ووبياهغه يوشى واخيست داشى هم دوكيل لپاره كيږي ځكه اصل دادى چې هرڅوك دخپل ځان لپاره عمل كوي ،البته كه وكيل دموكل لپاره داخيستلونيت كړى وونوداشى دموكل لپاره كيږي ځكه په دغه صورت كې وكيل دخپل ځان لپاره هم داخيستلواجازه لري اودموكل لپاره داخيستلوهم نوځكه نوداخيستلوپه وخت كې چې يې دچا نيت كړى وي شى دهغه كيږي همدارنګه كه وكيل په هغه قيمت اخيستى ووكوم چې موكل وركړى وي هم داشى دموكل لپاره كيږي ځكه دموكل په مال سره دخپل ځان لپاره شى رانيول حرام دى ولې په دي صورت كې دموكل ددراهمو غصب كول لازميږي چې داكارحرام دى نوځكه په دغه صورت كې داشى دوكيل نه بلكې دموكل لپاره كيږي.

(۱۴)اوكه وكيل مريى واخيست اوويې ويل چې مادغه مريى دموكل لپاره اخيستى دى اوموكل وويل چې نه بلكې دادي دخپل ځان لپاره اخيستى دى نوكه موكل وكيل ته نقدي پيسې روپۍ نه وې وركړې نوپه داسي صورت كې دموكل قول معتبريږي ځكه وكيل ديوداسي خبرې په باب خبر وركوي چې ازسرنويې دى مالک نه دى ځكه مرشوى مريى دانشاء عقدمحل نه دى اودوكيل غرض دثمن په باره كې رجوع كول دى چې موكل دهغه څخه منكردى اوقول دمنكرمعتبريږي اوكه موكل نقدي روپۍ وركړي وي نوبيا قول دوكيل معتبريږي ځكه په دي صورت كې هغه امين دى اودامانت له ذمه واري څخه ځان ايستل غواړي نودده قول معتبردى.

**فائده** :په دغه مسئله كې اته (۸)صورتونه دي ،ځكه وكيل به يادمعلوم مريي په اخيستلومامورۍ يادغيرمعلوم بياهريوصورت له دوه حاله څخه خالي نه دى يابه يې ثمن نقدي وركړي وي يانه،بيابه دغه څلورصورتونه له دوه حاله څخه خالي نه وي يابه مريى ژوندى وي په هغه وخت كې چې وكيل داخيستلو

خبرورکوي اویابه مرشوی وي، په دغوټولو صورتونوکې که ثمن نقدوويیاقول دوکیل معتبرېږي اوکه ثمن نقدنه وونوبیابه ورته وګوروکه وکیل دانشاء عقدمالک نه وومثلامریی مرشوی وونوبیادموکل معتبرېږي اوکه وکیل دانشاء عقدمالک وونودصاحبینو رحمهما الله په نزددوکیل قول معتبرېږي اودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدکه دتهمت ځای نه وویادوکیل قول معتبرېږي که نه دموکل قول معتبردی.

**فائده**: دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله: واقتصر علی قول الامام اکثر المتون ومال الیه اصحاب الشروح وفیه الاحتیاط لان الخلاف فی موضع التهمة فقط. (هامش الهدایة: ۳/ ۱۸۳)

(۱۵)وان قال بعني هذا لفلان فباعه ثم انكر الأمر اخذه فلان (۱۶)الا ان يقول لم آمره به الا ان يسلمه المشتري اليه (۱۷)وان امره بشراء عبدين عينين ولم يسم ثمنا فاشترى له احدهما صح (۱۸)وبشرائهما بالف وقيمتهما سواء فاشترى احدهما بنصفه او اقل صح وبالاكثر لا (۱۹)الا ان يشتري الباقي بما بقي قبل الخصومة (۲۰)وبشراء هذا بدين له عليه فاشترى صح ولو غير عين نفذ على المامور

**ترجمه**: اوکه یې وویل چې خرڅ کړه دغه پرماباندې دفلان لپاره نوبیاهغه پرې خرڅ کړبیاآمرانکار وکړنو وادي. خلي فلان، مګرداچې ووایې فلان چې مانه وو امرکړی هغه په دي سره مګرداکه تسلیم کړي وومشتري هغه ته اوکه یې هغه ته حکم کړی وودووومعلوموموریانوپه اخیستلو اوثمن یې معلوم نه کړنو وي بیاوکیل له هغودواړو څخه یوواخیست نوصحیح دی اوکه یې حکم ورته کړی وودواړوپه زرروپۍ داخیستلو اودهغوئ دواړوقیمت سره برابروو بیاهغه واخیست له دواړو څخه یویې په پنځه سوه یاترهغه په کم باندې نوصحیح دی اوترپنځه سوه په زیات نه دی صحیح مګرداکه یې واخیست باقي دمابقی په عوض ترخصومت مخکې اوکه یې امرورته وکړدیوخاص شي داخیستلودهغه دین په عوض چې دموکل پروکیل باندې دی بیاهغه واخیست نوصحیح دی اوکه غیرمعلوم وونوخریدپرماموربانديي نافذ کیږي.

**تشریح**: (۱۵)که یوچابل ته وویل چې دامریی دفلان مثلازیدلپاره پرماباندې خرڅ کړه هغه پرې خرڅ کړبیا اخیستونکې انکار وکړویې ویل چې ماته زیدداخیستلوامرنه ووکړی په داسې حال کې چې زیدراغی ویې ویل چې ماده ته امرکړی وونوزیدبه دغه مریی اخلي ځکه داخیستونکي داخبره چې دزیدلپاره یې پرماباندې خرڅ کړه داددي خبري اقراردی چې زیدزه وکیل ګرځولی یم بیااوس انکارکول لغوه کیږي ولی دیوشي اقراردهغه دانکارلاحق په وجه نه باطلیږي بیادهغه داانکارځکه چې له سابق اقرارسره متناقض دی ځکه نوهغه دې انکارته غوږنه نیول کیږي.

(۱۶)البته که زیدوویل چې ماهغه ته داخیستلوحکم نه ووکړی نواوس زیددغه مریی نه شي اخیستلای بلکې دمشتري لپاره کیږي ځکه زیددهغه اقراروکالت ردکړاواقرارله هغوشیانوڅخه دی چې په ردیدوسره ردیږي نودغه خریدپرمشتري باندې نافذیږي، خوکه چیرته اخیستونکي مریی زیدته حواله کړاوزیدواخیست نوبیامریی دزیدمملوک ګرځي ځکه دزیدپه ردیدوسره خوداخیستونکي اقراررد شومګر زیدته دمریی په ورکولوسره ددوئ ترمنځ بیع بالتعاطی (بیع تعاطی دابولي چې عاقدین دعقدبیع په وخت په ژبه سره ایجاب یاقبول ونه کړي بلکې له ایجاب اوقبول بغیرمشتري دمبیع قیمت بائع ته ورکړي اوبائع

مشتري ته مبيع ورکړي يعني لاس په لاس راکړه ورکړه ترسره شي په داسي بيع کې په خوله سره دې ويلوضرورت نشته) نوى عقد وشونو دامريي دزيد کيږي.

(۱۷) که يو چابل سړي ددوو معلومو مريانو اخيستلو لپاره وکيل وګرځاوه او موکل دمريانو قيمت نه وو معلوم کړى بيا وکيل له هغو دوو څخه يو واخيست نو که يې دمريي تر قيمت په کم ياد قيمت مطابق يا په لږ زيادت سره اخيستى وونو داخريد صحيح دى ځکه دموکيل له طرفه توکيل مطلق وو په متعينو ثمنو پوري مقيد نه وونو دادرې واړه صورتونه يې صحيح دي نو په غبن فاحش سره يې اخيستل په اجماع نه ده صحيح ځکه توکيل بالشراء دغبن فاحش احتمال نه لري.

(۱۸) قوله وبشرائهمابالف الخ،اى لوامربشراء عبدين معينين بالف،اوکه ددوومريانو په يوزرروپى اخيستلو لپاره وکيل کړى وواودواړوقيمت برابروو بيا وکيل له دواړو څخه يو په نصف قيمت يعني پنځه سوه ياتر هغه په کم واخيست نو هم داخريد صحيح دى موکل به دامريي اخلي اوکه يې ترپنځه سوه په زيات قيمت اخيستى ووکه دازيادت کم وو اوکه زيات وونو دا صحيح نه دى يعني پر موکل باندي لازم نه دى ولي موکل ددواړو په مقابل کې يوزردرهم ورته بيان کړي وو اوددواړو قيمت برابردى نوزرروپي ددواړو ترمنځ نصفًانصفًا تقسيميږي نوګواکي موکل دهريوه مريي په پنځه سوه دا خيستلو حکم کړى وونو دوکيل يو مريي دپنځه سوه په عوض اخيستل دموکل دحکم مطابق دى نو دا صحيح دى او په هغه صورت کې چې ترپنځه سوه يې زيات واخلي دموکل دحکم دمخالفت په وجه صحيح نه دى .

(۱۹) البته که چيرته دموکل ترخصومت مخکي وکيل دوهم مريي هم دباقى قيمت په عوض واخيست نو بيا داخريد صحيح کيږي ځکه دموکل غرض يعني ددواړو مريانو په زرروپى اخيستل حاصل شو.

(۲۰) قوله وبشراء هذابدين له عليه الخ ،اى لوامررجل بشراء هذاالعبدبدين له عليه الخ،يعني که ديو چاپر چاباندي پورباندي ووبيا قرض غوښتونکي مقروض ته وويل چې دقرض په عوض کې دامعلوم مريي زمالپاره واخله اومقروض دحکم مطابق هغه مريي واخيست نو داخريد جائزدى او دامريي چې يې په ځواخيستى دى هغوم[ر] پرآمرباندي لازميږي بيا که چيرته دغه مريي دمقروض په لاس کې مړشونو دامريي دموکل له مال څخه شمارل کيږي نه دمامورله مال نه .اوکه قرض غوښتونکي مقروض ته دغيرمعلوم مريي داخيستلوويل .وکيل يو مريي واخيست نو داخريد پرمقروض مامورباندي نافذ کيږي نه پرآمرباندي آن که چيرته دامريي هلاک شونو نقصان دمامورکيږي نه دآمر.دادامام ابوحنيفة رحمه الله مسلک دى دصاحبينورحمهما الله په نزد په دواړوصورتونوکې خريد پرآمرباندي نافذکيږي. داختلاف منشأداده چې دخريد لپاره وکيل مقررول که چيرته دقرض طرفته مضاف کړاى شي اوبائع يامبيع متعين وونو دامام صاحب رحمه الله داصحيح دى اوکه متعين نه وونوصحيح نه دى اودصاحبينو رحمهما الله په نزد په دواړوصورتونوکې صحيح دى .

فائده :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ المفتي غلام قادرالنعماني :القول الراجح هوقول الامام کمالايخفى على ذي بصيرة لکن العرف يقتضي ترجيح قولهمارحمهماالله .(القول الراجح :۲/۱۵۶)

(۲۱) وبشراء امة بالف دفع اليه فاشترى فقال اشتريتها بخمس مائة وقال المأمور بالف فالقول للمأمور (۲۲) وان لم يدفع فللآمر (۲۳) وبشراء هذا ولم يسم ثمنا فقال المأمور اشتريته بالف وصدقه بائعه وقال الآمر بنصفه تحالفا

**ترجمه**: او كه يې امر وكړ د منځې اخيستلو په هغو زرو روپو چې هغه ته يې وركړي دي بيا هغه منځه واخيسته او س موكل وويل چې تا دا منځه په پنځه سوه اخيستې ده او مامور وويل په زرمې اخيستې ده نو قول د مامور معتبر يږي او كه يې زر روپۍ نه وي وركړي نو د آمر كيږي او كه يې امر وكړ د خاص شي د اخيستو او ثمن يې معلوم نه كړي بيا مامور وويل چې ما اخيستې دى په زر روپۍ. او دده تصديق دده بائع وكړ او آمر وويل چې په پنځه سوه دې اخيستې دى نو دواړه دې قسم وكړي.

**تشريح**: (۲۱) قوله وبشراء امة بالف دفع اليه الخ، اى لو وكله بشراء امة بالف دفع اليه الخ، يعني كه يو چا څوك په زر روپۍ د منځې اخيستلو وكيل وګرځاوه او موكل زر روپۍ وكيل ته وركړې وكيل هم منځه واخيسته خو چې كله يې موكل ته وركوله نو هغه وويل چې دا خو دې په پنځه سوه روپۍ اخيستې ده او وكيل وويل چې نه بلكې په زر روپۍ مې اخيستې ده نو كه چيرته د منځې ماليت او قيمت هم يو زر روپۍ وو نو د وكيل قول له قسم سره معتبر يږي ځكه په دې صورت كې وكيل امين دى غواړي چې د امانت له عهدې ځخه ځان وباسي او له عهده امانت ځخه په وتلو كې د امين قول معتبر يږي نو دلته هم د امين قول معتبر يږي.

(۲۲) او كه په مذكور صورت كې موكل زر روپۍ نه وې وركړې او وكيل منځه اخيستې وه بيا دواړو سره جنجال شو نو په دغه وخت كې د موكل قول معتبر يږي، مصنف رحمه الله دغه صورت مطلق ذكر كړى دى او حال دا چې په دې كې څه تفصيل شته هغه دا چې كه چيرته منځه د پنځه سوه قيمت وه نو د موكل قول معتبر يږى ولې وكيل د موكل مخالفت كړى دى او كه د منځې قيمت زر روپۍ وو نو دواړه به قسم خوري اوله تر قسم وروسته به عقد فسخ كيږي او منځه به د وكيل كيږي ولې وكيل او موكل په منزله د بائع او مشتري دي او د بائع او مشتري كه په ثمنو كې اختلاف سره راغى نو په هغه وخت كې حكم دا دى چې دواړه به قسم اخلي او عقد به فسخ كيږي مبيع مامور ته سپارله كيږي، دلته هم حكم دا دى چې دواړه به قسم واخلي او له قسم اخيستلو وروسته به عقد فسخ كيږي.

(۲۳) قوله وبشراء هذا ولم يسم ثمنا الخ اى لو امره بشراء هذا العبد ولم يسم ثمنا الخ يعني كه چا يو څوك د معلوم شي د اخيستلو پاره وكيل وګرځاوه او آمر ثمن ورمعلوم نه كړې بيا دواړو سره اختلاف شو مامور وويل چې ما دا شى په زر روپۍ اخيستى دى بائع هم د مامور تصديق وكړ او آمر بيا وايي چې نه بلكې تا په پنځه سوه اخيستى دى نو دواړه دې قسم واخلي ځكه دواړو د ثمن په مقدار كې اختلاف كړى دى او له دواړو سره ګواهان نشته او د اختلاف فى الثمن موجب تحالف دى نو دواړه دي قسم وخوري له قسم اخيستلو وروسته مبيع پر مامور باندې لازميږي.

(۲۴) وبشراء نفس الآمر من سيده بالف ودفع فقال لسيده اشتريته لنفسه فباعه على هذا عتق وولاؤه لسيده (۲۵) وان قال اشتريته فالعبد للمشترى والالف لسيده وعلى المشترى الف مثله

**ترجمه** :اوكه يې امركړي وودنفس موكل په اخيستلودهغه له مولى څخه په زرروپۍ اوهغه زرروپۍ يې وركړي وي بياوكيل دهغه مولى ته وويل چې زه دى اخلم خاص دهغه دخپل ځان لپاره بيامالک پرې خرڅ كړپرهمدغه شرط باندې نومريى آزاديږي اودهغه ولاء دهغه دمولى ده اوكه يې وويل چې زه دااخلم نومريى دمشتري كيږي اوزرروپۍ دهغه دمولى كيږي اوپرمشتري باندې هغه شان زرروپۍ واجبيږي.

**تشريح** :(۲۴)قوله وبشراء نفس الآمر الخ اى لوامره الامران يشترى نفسه من مولاه الخ،يعنې كه يوه مريي يوڅوك ددې لپاره وكيل كړچې ته مازمالپاره زماله مولى څخه په زرروپۍ واخله اووكيل ته يې زرروپۍ هم وركړې وكيل ورغى دهغه مولى ته يې وويل زه ستادغه مريى خاص دهغه دخپل ځان لپاره داخيستلوپه شرط اخلم ،مولى په هغه شرط باندې مريى پرې خرڅ كړنومريى آزاديږي اودهغه ولاء دهغه دمولى لپاره ده ولې ذات دمريي پرمريي باندې خرڅول هغه په عوض سره آزادول دى اودمريي خپل ځان اخيستل دمولى له طرفه آزاديدل دعوض په بدل كې قبولول دى نومريى دمولى له طرفه آزادشمارل كيږي اوولاء دمعتِق لپاره وي ځكه نوددې مريي ولاء دهغه دمولى لپاره كيږي

(۲۵)اوكه دمريي وكيل خالص داوويل چې اشتريته (ماهغه اخيستى دى )داسې يې ونه ويل چې اشتريته لنفس العبد (مامريى دهغه خپل ځان لپاره اخيستى دى )نودمريي اخيستل دوكيل لپاره كيږي اوهغه زرروپۍ چې مريي وكيل ته وركړي وې دخپل ځان له مولى څخه داخيستلولپاره هغه دمريي دمولى كيږي ځكه دغه زرروپۍ خودمريي گټه ده اودمريي گټه دمولى حق كيږي ،اودمريي اخيستونكي وكيل پرذمه دمريي قيمت زرروپۍ نورې لازميږي ځكه لفظ داشتريتُ په عقدمعاوضه كې حقيقت دى نه په آزادولوكې اوقاعده داده چې ترڅوپورې په حقيقت عمل كول ممكن وي مجازطرف ته رجوع كول ناجائزدى نودااعتاق په معنى نه كيږي په داسې حال كې چې په پورتني صورت كې مجازي معنى يعنې اعتاق متعين وو.

(۲۶)وَاِنْ قَالَ لِعَبْدٍ اِشْتَرِلِي نَفْسَكَ مِن مَوْلَاكَ فَقَالَ لِلْمَوْلٰى بِعْنِي نَفْسِي لِفُلَانٍ فَفَعَلَ فَهُوَ لِلْآمِرِ (۲۷)وَاِنْ لَمْ يَقُلْ لِفُلَانٍ عَتَقَ

**ترجمه** :اوكه يې مريي ته وويل چې واخله ته خپل ځان زمالپاره ستاله مولى څخه بيامريي مولى ته وويل ماخرڅ كړه دفلان لپاره ،هغه خرڅ كړنومريي دآمركيږي اوكه مريي لفلان نه وويل نوبياآزاديږي.

**تشريح** :(۲۶)كه يوچادبل چامريي ته وويل چې ته خپل ځان له خپل مولى څخه زمالپاره واخله ،مريى ورغى خپل مولى ته يې وويل چې ته ماپرماباندې دفلان (څوک چې هغه وكيل مقرركړى وو)لپاره خرڅ كړه مولى هغه خرڅ كړنودامريى هغه سړي كيږي چاچې هغه ته ويلي ووچې ته خپل ځان له خپل مولى څخه زمالپاره واخله ځكه مريى دخپل ځان په اخيستلوكې دبل چاله طرفه وكيل كيداى شي ولې دخپل ماليت په اعتبارسره هغه اجنبي دى يعنې دخپل ځان دى مالک نه دى بلكې دذات په اعتبارسره دى يوانسان دى دهغه مال كيدل دهغه دمالک په اعتبارسره دى ځكه نوهغه

دخپل ماليت په اعتبار سره اجنبي دی او دبل چاله طرفه دخپل ځان په اخيستلو کې دی وکيل کيدای شي نو دده خپل ځان دبل لپاره اخيستل صحيح دی.

(۲۷) اوکه يې دانه وه ورته ويلي چې دفلان لپاره ما خرڅ کړه بلکې دخپل ځان يې ورته ويلي وو چې ما پر ما باندې خرڅ کړه مولی هغه خرڅ کړنو آزاديږي ځکه هغه شراء خپل ځان ته مضافه کړې ده ځکه نو دی دمولی له طرفه په عوض دمال آزاديږي.

## فصل

### دا فصل دوکيل دفاسد او غير فاسد تصرف په بيان کې دی

(۱) اَلْوَكِيلُ بِالْبَيْعِ وَالشِّرَاءِ لَا يَعْقِدُ مَعَ مَنْ تُرَدُّ شَهَادَتُهُ لَهُ (۲) وَصَحَّ بَيْعُهُ بِمَا قَلَّ أَوْ كَثُرَ وَبِالْعَرْضِ وَالنَّسِيئَةِ (۳) وَيَتَقَيَّدُ شِرَاؤُهُ بِمِثْلِ الْقِيمَةِ وَزِيَادَةٍ يَتَغَابَنُ فِيهَا (۴) وَهُوَ مَا يَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيمِ الْمُقَوِّمِينَ

**ترجمه**: دخريد او فروخت وکيل به معامله نه کوي له هغه چا سره چې مردوده وي شاهدي دهغه دده لپاره او صحيح خرڅول دهغه په کم سره يا په زيات سرا او دسامان په عوض سره او په قرض سره ، او مقيد دی دهغه خريد په مثل قيمت سره او په دومره زيادت سره په څومره کې چې دوکه خوړله کيږي او هغه هغه دی چې داخل وي دقيمت کوونکيو په تقويم کې .

**تشريح**: (۱) کوم څوک چې دخريد او فروخت وکيل ګرځيدلی وي دی له هغه چاسره معامله نه شي کولای دچا ګواهي چې دهغه لپاره معتبره نه وي مثلا مور ،پلار ،زوی ،لور ،خاوند ،ښځه ،شريک وغيره ،دا دامام ابوحنيفة رحمه الله مسلک دی چې دصاحبينو رحمهما الله په نزد دمذکورو خلکو سره په مثل قيمت سره دهغه معامله کول جائزه ده ځکه توکيل مطلق دی هرچاته شامل دی که دوکيل نيکه يا پلار وغيره وي او که بل څوک وي ،دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادی چې دتهمت مواقع له وکالت څخه مستثنی کيږي او دا هم يو دتهمت ځای همدا وجه ده چې دهغوئ ديو بل ګواهي هم معتبره نه ده همدارنګه ددغو مذکورو کسانو منافع سره متصلې دي ځکه نو دا من وجهٍ دوکيل پر خپل ځان باندې فروخت شمارل کيږي .

**فائده**: په دغه مسئله کې څو صورتونه دي : ۱- وکيل چې موکل ته عامه اجازه ورکړې وي چې پر چايې چې ته خرڅوې خرڅ يې کړه ،په دغه صورت کې يې له خپل ځان ،نابالغ اولاد او خپل غيرمديون مريې علاوه پر ټولو باندې خرڅول جائز دی .

۲- که موکل عامه اجازه نه وه ورکړې نو که چيرته وکيل دخپلو مذکورو قريبانو سره پر يو چا باندې مبيع خرڅه کړه دهغه څو صورتونه دي يو دا دی چې وکيل تر بازاري قيمت زيات خرڅه کړې وي نو دا صورت په اتفاق سره جائز دی ، دوهم صورت دا دی چې تر بازاري قيمت کم په غبن فاحش سره يې خرڅ کړی وي نو دا صورت په اتفاق سره ناجائز دی.

۳-اوكه وكيل په غبن يسيردبازاري قيمت سره برابرخرڅ كړى وي داصورت دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدجائزنه دى اودصاحبينورحمهماالله په نزدجائزدى ،دامام صاحب رحمه الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :والراجح قول الامام ابى حنيفة رحمه الله وبه اخذ اكثر المشائخ وفيه الاحتياط.(هامش الهداية:۳/۱۸۷)

(۲)يعني څوک چې ديوشي دخرڅولولپاره مطلق وكيل ګرځيدلى وويعني موكل دخاص مقدارثمنو اونقدياقرض د خرڅولوپې هيڅ تذكره نه وه كړي نودوكيل لپاره په كم قيمت ياپه زيات قيمت ياداسبابوپه عوض كې ياپه قرض خرڅول هرډول جائزدى دادامام ابوحنيفة رحمه الله مسلک دى دصاحبينورحمهماالله په نزدپه دومره نقصان سره خرڅول چې په هغه نقصان سره عمومًاخلک دوكه كيږي نه جائزنه دى،البته په مثل قيمت سره يامتعارف ميعادوغيره سره خرڅول يې جائزدى ځكه دامتعارف دى اودوكالت مطلق امرپه متعارف سره مقيدكيږي،دامام صاحب رحمه الله دليل دادى چې توكيل بالبيع مطلق دى نوهغه دتهمت له ځاى نه علاوه پرخپل اطلاق پاتيږي اودپه غبن فاحش ياسامان په عوض خرڅول هم هغه وخت متعارف دى چې كله دثمن شديدضرورت وي .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافى الشامية : قال العلامة قاسم فى تصحيحه على القدورى ورجح دليل الامام المعمول عليه عندالنسفى وهواصح الاقاويل والاختيار عندالمحبوبى ووالقه الموصلى وصدر الشريعة وملى وعليه اصحاب المتون الموضوعة لنقل المذهب بماهوظاهر الرواية(ردالمحتار:۴/۴۵۳)

(۳)كه يوڅوک ديوشي داخيستلولپاره مطلق وكيل تاكل شوى وويعني موكل په متعين ثمن سره داخيستلوذكرنه يې كړى نودهغه لپاره په مثل قيمت سره (په دومره ثمن سره اخيستل چې دهغه دقيمت سره برابروي) اوپه دومره زيادت سره اخيستل جائزدى چې دهغه په مثل كې خلک په عامه توګه دوكه كيږي ،مګرپراصل قيمت باندې په دومره زيادت سره اخيستل جائزنه دى چې دهغه په مثل كې خلک دوكه كيږي نه يعني په غبن يسيرسره جائزدى اوپه غبن فاحش سره جائزنه دى ځكه دغبن فاحش په صورت كې دتهمت امكان دى چې كيداى شي چې هغه مبيع دخپل ځان لپاره اخيستې وي چې كله يې وليدل چې په هغه كې نقصان دى نودموكل پرذمه باندې ورلوېږي .

(۴)مصنف رحمه الله دغبن يسيرداډول تعريف كړى دى چې غبن يسيرهغه دى چې دبعض قيمت لګوونكو تجربه كارو خلكودقيمت په لګولوكې داخل وي،ددې مقابل غبن فاحش هغه دى چې په دومره زياتوثمنوسره يې واخلي چې دتجربه كاروقيمت لګوونكوڅخه دهيچاپه قيمت لګولوكې داخل نه وي،اوپه كوم كې چې خلک دوكه نه خوري .

**فائده** :په غبن يسيراوفاحش كې مذكورتفصيل هلته دى چيرته چې دشي قيمت دخلكوترمنځ معروف نه وي نوكه چيرته دشي قيمت دخلكوترمنځ معروف وولكه ډوډى،غوښو،وغيره قيمتونه نوپه دې كې غبن بلكل معاف نه دى كه څه يوه پيسه برابروي وبه يفتى .

(۵)وَلَوْوَكَّلَهُ بِبَيْعِ عَبْدٍفَبَاعَ نِصْفَهُ صَحَّ (۶)وَفِي الشِّرَاءِيَتَوَقَّفُ مَالَمْ يَشْتَرِ الْبَاقِيَ (۷)وَلَوْرَدَّالْمَبِيعَ عَلَى الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ بِعَيْبٍ بِبَيِّنَةٍ أَوْنُكُولٍ رَدَّهُ عَلَى الْآمِرِ (۸)وَكَذَابِإِقْرَارٍ فِيمَالَايَحْدُثُ (۹)وَإِنْ بَاعَ بِنَسِيئَةٍ فَقَالَ أَمَرْتُكَ بِنَقْدٍ وَقَالَ الْمَأْمُورُ أَطْلَقْتَ فَالْقَوْلُ لِلْآمِرِ (۱۰)وَفِي الْمُضَارَبَةِ لِلْمُضَارِبِ

**ترجمه** :اوکه يې وکيل کړ څوک دمريي دخرڅولولپاره بیاهغه خرڅ کړنصف مريی نوصحيح دی اودا خیستلوپه صورت کې اخیستل موقوف کيږي ترهغوپوري چې باقي واخلي اوکه واپس کړمبيع مشتري پروکيل بالبيع باندي دعيب په وجه په گواهانوسره یاپه انکارسره نووکيل دي واپس کړي هغه پرآمرباندي اودارنګه دداسي عيب په اقرارسره چې نوی نه وي اوکه وکيل بالبيع په پورخرڅ کړ یاموکل وويل ماتاته امرکړی ووپه نقدوسره دخرڅولو او وکيل وايي چې تامطلق راته ويلي وونوقول دآمرمعتبربږي اوپه مضاربت کې دمضارب قول .

**تشريح** :(۵)که چايوڅوک دمريي خرڅولولپاره وکيل وګرځاوه وکيل نصف مريی خرڅ کړنودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددابيع صحيح ده ځکه دموکل له طرفه توکيل مطلق دی پريوه ځای یاپه متفرق ډول دخرڅولو قيديې نه وولګولی نوځکه نصف حصه خرڅول هم صحيح دی .

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزدکه يې ترخصومت مخکي هغه بل نصف هم خرڅ کړنوبیابيع صحيح ده که نه بيانه ده صحيح ځکه دنصف مريي په خرڅولوسره مريی دموکل اومشتري ترمنځ مشترک شواوشرکت داسي عيب دی چې په هغه سره دمريي قيمت کميږي چې پکي دموکل نقصان دی نوتوکيل مطلق نه شو .

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی لمافي الدّرالمختار:وكله ببيع عبدفباع نصفه صح لاطلاق التوكيل وقالالان باع الباقي قبل الخصومة جازوالالاوهواستحسان ملتقى وهداية وظاهره ترجيح قولهماوالمفتى به خلافه, وقيدابن الكمال بمايتعيب بالشركة والاجازاتفاقافليراجع(الدّرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۴/۵۴۳)كذافي شرح مجلة الاحكام:۴/۴۹۰)

(۶)اوکه چايوڅوک ديوه مريي اخيستلولپاره وکيل کړوکيل نصف مريی واخيست نودوکيل دااخيستل په اتفاق سره موقوف کيږي ترڅوچې هغه باقی نصف هم واخلي ،بياچې باقی نصف واخلي نوبيادامريی دموکل پرذمه لازميږی ځکه يوه حصه اخيستل کله دموکل دحکم دتعميل ذريعه کيږي مثلايومريی يوې ډلې ته په ميراث کې ملاوشوی دی نووکيل دي ته احتياج لري چې هغه په حصه حصه واخلي بياچې کله وکيل باقی مريی دموکل له طرفه دبيع ترردیدلومخکی واخلي نوظاهره ده چې دنصف مريي اخيستل دباقی نصف داخيستلوذريعه ده ځکه نودابيع پرموکل باندي نافذيږي .

(۷)که چاديوشی مثلادمريي دخرڅولولپاره يوڅوک وکيل کړوکيل مريی خرڅ کړبيامشتري دعيب په وجه مريی وکيل ته واپس کړهغه که يې په دي وجه واپس کړی وي چې مشتري په محکمه کې دمريي عيب په ګواهانوسره ثابت کړی وويااله دي کبله چې له مشتري سره ګواهان نه ووا وهغه دعيب په باره کې وکيل ته قسم ورکړمګرهغه له قسم اخيستلوڅخه انکاروکړنوپه دواړوصورتونوکې په مريي کې عيب ثابتيږی ولی بينه حجت مطلقه دی چې په هغه سره په هرحال په مريي کې عيب ثابتيږي ،اوپه دي وجه چې وکيل دعيب په باره کې علم نه لري له قسم اخيستوڅخه انکارکوي نودی مجبوردی ،نوپه دواړوصورتوکې په مريي کې عيب ثابتيږي ځکه مريی پرآمرباندي لازميږی .

(۸)قوله وكذاباقرار اى وكذاالحكم فيمااذاردهالمشترى على الوكيل باقرارمنه ،يعني همدارنګه که په مذکورصورت کې وکيل په عيب سره اقراروکړاوقاضي دبيع فسخ کيدوحکم وکړنوهم به مريی آمرته واپس کوي په دي

شرط چې داعيب به قديم وي دوكالت په دوران كې به نوى نه وي پيداشوى ولى قاضى پوهيږي چې په مربي كې عيب دموكل سره پيداشوى دى نو دقاضي قضاء دوكيل اقرارته نه منسوبيږي بلكې دخپل علم پربنياد،، نو دمشتري دطرفه معيوب مربى دقاضي په قضاء سره ردشوى دى چې په قبلولو كې يې وكيل مجبوردى ځكه مربى پرموكل باندي لازميږى .

(۹)كه وكيل مبيع په پورخرڅه كړه اوموكل ورته وويل چې ماخوتاته په پورخرڅولونه وويلي بلكې دنقدوخرڅولومي درته ويلي وو،وكيل وويل چې تاماته دمطلق خرڅولوحكم كړى وودنقدو اوپورذكردي نه ووكړى نوله قسم سره دموكل قول معتبريږي ځكه دوكالت حكم له موكل څخه مستفاد دى نودى پخپل قول زيات واقف دى .

(۱۰)قوله وفى المضاربة للمضارب اى وفى الاختلاف فى المضاربة القول للمضارب،يعني كه په مضاربت كې داسې صورت مخته راشي مثلارب المال ووايې چې ماحكم دركړى ووچې مال په نقدورو پوخرڅ كړه اومضارب ووايې چې تادنقدا وپورقيدنه وولګولى ،نودمضارب قول معتبريږي ځكه په مضاربت كې اصل دادى چې عام وي (كه يې په نقدوخرڅوي اوكه په پور)ولى له مضاربت څخه مقصودمنافع حاصلول دي اوپه عموم كې منافع زياتي دي څرنګه چې دمضارب قول داصل مطابق دى ځكه نود مضارب قول معتبريږى .

(۱۱)وَلَوْ اَخَذَ الْوَكِيلُ بِالثَّمَنِ رَهْنًا فَضَاعَ اَوْ كَفِيلًا فَتَوِىَ عَلَيْهِ لَمْ يَضْمَنْ (۱۲)وَلَا يَتَصَرَّفُ اَحَدُ الْوَكِيلَيْنِ وَحْدَهُ (۱۳)اِلَّا فِى خُصُومَةٍ وَطَلَاقٍ وَعِتَاقٍ بِلَا بَدَلٍ وَرَدِّ وَدِيعَةٍ وَقَضَاءِ دَيْنٍ (۱۴)وَلَا يُوَكِّلُ وَكِيلٌ اِلَّا بِاِذْنٍ اَوْ بِاعْمَلْ بِرَاْيِكَ (۱۵)فَاِنْ وَكَّلَ بِلَا اِذْنٍ لِلْمُوَكِّلِ فَعَقَدَ بِحَضْرَتِهِ اَوْ بَاعَ اَجْنَبِىٌّ فَاَجَازَ صَحَّ (۱۶)وَاِنْ زَوَّجَ عَبْدٌ اَوْ مُكَاتَبٌ اَوْ كَافِرٌ صَغِيرَتَهُ الْحُرَّةَ الْمُسْلِمَةَ اَوْ بَاعَ مَالَهَا اَوِ اشْتَرٰى لَمْ يَجُزْ .

**ترجمه** :اوكه واخيست وكيل دثمن په عوض رهن اوهغه ضائع شويا كفيل واخيست اوهغه هلاك شونوضامن كيږي نه اوتصرف دي نه كوي له دووو كيلانوڅخه يوتنها ،مګرپه خصومت اوطلاق اوعتاق بلابدل اودامانت په واپس كولواودپورپه اداكولوكې اووكيل به وكيل نه مقرروي يوڅوك مګرپه اجازه سره يادموكل په دي وينا سره چې دخپلې رايه مطابق عمل كوه بياكه هغه وكيل مقرركړ دموكل داجازي بغيراوهغه معامله وكړه دهغه په حضوركې ياخرڅ كړيوه بيګانه بياهغه اجازه وكړه نوصحيح دى اوكه يې نكاح وكړه له مربې سره يامكاتب ياكافرسره دخپلې نابالغه آزادي مسلماني لوريايې دهغي يوشى خرڅ كړيايې واخيست دهغي لپاره يوشى نوجائزنه دى .

**تشريح** :(۱۱)كه وكيل بالبيع دمبيع دقيمت اخيستلوپه بدله كې دمشتري يوشى له خپل ځان سره درهن په ډول ساتلى وواوبياهغه مرهون شى هلاك شو يايې له مشترى دثمنولپاره كفيل اخيستى ووبيادوكيل مال پرهغه باندي هلاك شومثلاكفيل مفلس مړشواومكفول عنه داسي غائب شوچې هيڅ درک يې نه وومعلوم نوپه دغه صورت كې دوكيل هغه مال هلاک شمارل كيږي كوم چې پرمشتري باندي دثمن په ډول واجب وونووكيل په دغودواړوصورتوكې نه ضامن كيږي ،ځكه دمبيع په حقوق كې وكيل خپله اصيل دى اودمذكوره مبيع ثمن وصولول دبيع له حقوقوڅخه دى اودثمن دوصولولولپاره له مشتري څخه رهن ساتل

یاله مشتري څخه کفیل اخیستل دثمن دوصولولوله جانبه یوه وثیقه ده چې دهغه حق مؤکدکوي نورهن اوکفیل اخیستل هم دوکیل له حقوقوڅخه دی اووکیل دهغومالک ګرځي اودوکیل په قبض کې که ثمن هلاک شي نوپروکیل باندي دهغوضمان نه واجبیږي ځکه پرثمنوباندي دوکیل قبضه دامانت قبضه ده څرنګه چې رهن دثمن بدل دی ځکه دهغه دهلاکیدوپه وجه هم پروکیل باندي ضمان نه واجبیږي اودکفاله په صورت کې څرنګه چې دثمن هلاکیدل رامنځ ته شوی دی ځکه نوپرهغه باندي ضمان نه واجبیږي ولی دثمن دهلاکیدوپه صورت کې ضمان نه واجبیږي.

(۱۲)که یوچادوه کسان یوځای وکیلان وګرځول (مثلاداسي یې ورته وویل :وکلتُکمَا، ماتاسي دواړه وکیلان کړي یاست) نودیوه لپاره دهغه بل بغیرپه موکل به کې تصرف کول جائزنه دی ولی دموکل په دواړورایوسره په شوې معامله باندي راضي دی نه دیوي رایه څخه ځکه موکل دواړه وکیلان ګرځولي دي.

(۱۳)البته پنځه صورتونه له مذکوري قاعدي څخه مستثنی دي هغه دادي چې که چیرته موکل دواړه وکیلان بالتخصومت ګرځولي وویایې دخپلې ښځې دطلاق بلاعوض ورکولویایې دخپل مریې بلاعوض آزادولویادامانت دواپس کولولپاره یادقرض داداکولولپاره وکیلان ګرځولي وونوپه دغوصورتونوکې دیوه تصرف هم نه نافذکیږی ځکه دوکیل بالخصومت په صورت کې که چیرته دقضاپه مجلس کې دواړه جواب ورکوي نوپه محکمه کې شورشرایه جوړیږي نوځکه ددواړوخبري کول نه شرط کیږي،اوپه باقي صورتونوکې څرنګه چې درایه ضرورت نشته بلکې محض دموکل دکلام تعبیرکیږي چې پکې یواودوه برابردي نوځکه له دواړوڅخه دیوه تصرف کول هم جائزکیږي.

(۱۴)وکیل لره دانه ده جائزچې دکوم کارلپاره دی وکیل ګرځیدلی دی ،دی دهغه لپاره بل څوک وکیل وګرځوي ځکه موکل وکیل ته په دغه کارکې دتصرف اختیارورکړی دی په دي کې یې دبل چادوکیل کولواختیارنه دی ورکړی نودموکل درضامندي بغیروکیل ته نه ده جائزه چې بل څوک وکیل کړي،البته که موکل ددي اجازه ورکړي نوجائزدی ولی بیارضامندي راځي یاموکل وکیل ته وویل چې ته پخپله رایه سره عمل کوه څرنګه چې ستاخوښه وي ځکه په دغه صورت کې تصرف علی الاطلاق وکیل ته سپارل شوی دی.

(۱۵)که وکیل دموکل له اجازي بغیربل څوک وکیل کړبیادوهم وکیل داول وکیل په موجودګي کې یوعقدوکړنوداجائزدی ځکه دغه عقددوکیل اول په رایه سره منعقدشوی دی همدارنګه که بیګانه چاداول وکیل په نه موجودګي کې عقدوکړبیاوکیل اول هغه منظورکړنوداعقدهم جائزدی ځکه داهم داول وکیل په رایه سره منعقدشوی دی.

(۱۶)که یوه مریې یامکاتب یاکافرخپله نابالغه لورچې آزاده اومسلمانه وه یوچاته په نکاح ورکړه یاله دغومذکورو خلکوڅخه چادخپلې نابالغه لوریوشی خرڅ کړیایې دهغې له مال څخه دهغې لپاره یوشی واخیست نودهغه دا ټول کارونه جائزنه دي ځکه درقیت اوکفرپه وجه دهغوئ ولایت پرخپله لورباندي نه پاتیږی ځکه نودهغوئ دخپلې لورپه حق کې مذکورتصرفات صحیح نه دي ،اومکاتب شرعًامریی شمارل کیږي ترڅوچې دهغه پرذمه یودرهم باقي وي نومذکورتصرفات دمکاتب هم صحیح نه دي.

## باب الوكالة بالخصومة والقبض

### داباب دجواب ورکولو او وصول کولو لپاره دوکیل گرځولو په بیان کې دی

باب الوكالة بالخصومة يې ترباب الوكالة بالبيع والشراء ځکه موخرکړی دی چې خصومت شرعًا مهجوراوممنوع دی او وکالت بالبيع والشراء غيرمهجوردی اومهجوراحق بالتاخيروي ترغيرمهجورځکه يې باب الوكالة بالخصومة مؤخرکړی دی.

(۱)اَلوَكِيلُ بِالخُصُومَةِ وَالتَّقَاضِي لَايَملِكُ القَبضَ (۲) وَبِقَبضِ الدَّينِ مَلَكَ الخُصُومَةَ (۳) وَبِقَبضِ العَينِ لَا فَلَو بَرهَنَ ذُو اليَدِ عَلَى الوَكِيلِ بِالقَبضِ اَنَّ المُوَكِّلَ بَاعَهُ وَقَفَ الاَمرُ حَتّٰى يَحضُرَ الغَائِبُ (۴) وَكَذٰلِكَ العَتَاقُ وَالطَّلَاقُ (۵) وَلَو اَقَرَّ الوَكِيلُ بِالخُصُومَةِ عِندَ القَاضِي صَحَّ وَاِلَّا لَا (۶) وَبَطَلَ تَوكِيلُ الكَفِيلِ بِمَالٍ

**ترجمه**:دجواب ورکولو او مطالبې وکیل مالک نه گرځي دقبض،او ددَین قبض کوونکی وکیل دخصومت مالک گرځي او د معین شی قبض کوونکی وکیل دخصومت مالک نه گرځي بیا که قابض بیّنه قائم کړل پر وکیل بالقبض باندې چې موکل پر ما باندې خرڅ کړی دی نو حکم موقوف کیږي ترهغه پوري چې حاضر یږي غائب شخص ،اوهمداسې دي عتاق اوطلاق او که اقرار وکړو وکیل بالخصومت دقاضي په مخکې نوصحیح دی که نه بیانه دی صحیح اوباطل دی وکیل گرځول دکفیل بالمال .

**تشریح** :(۱)دامام زفر رحمه الله په نزددخصومت اومطالبه دین وکیل پرمدعی به باندې دقبض وکیل نه شي کیدای هغه ځوک چې دجواب ورکولو اودین دمطالبې کولووکیل وي هغه پرمدعی به باندې دقبض وکیل نه کیږي ځکه موکل دهغه په جواب ورکولوراضي دی اوپه قبض يې راضي نه دی نوقبض دوکیل نه کیږي،دائمه ثلاثه ؤپه نزددخصومت اوقبض دین وکیل پرمدعی به باندې دقبض هم وکیل گرځي ځکه چې یوځوک چې دیوشي مالک وي هغه دهغه شي داتمام هم مالک گرځي اودخصومت اومطالبه دین اتمام په قبض سره کیږي نوځکه دخصومت اومطالبه دین وکیل دقبض هم وکیل گرځي .

**فائده** :فتوی دامام زفر رحمه الله پرقول ده لمافي الدّرالمختار:وكيل الخصومة والتقاضي لايملك القبض عندزفر رحمه الله وبه يفتى لفسادالزمان(الدّرالمختارعلى هامش ردّالمحتار:۳۵۸/۴)

(۲)قوله وبقبض الدين يملك الخصومة اى الوكيل بقبض الدين يملك الخصومة ،دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدهغه ځوک چې دقرض دقبض کولووکیل وي هغه دقرض په باره کې دخصومت هم وکیل کیږي،یعنې که چایوځوک وکیل کړچې پرفلان باندې زماقرض دی ورشه له هغه څخه زمادغه قرض وصول کړه نوبیاکه مقروض وویل چې قرض خومااداکړی دی نووکیل په محکمه کې له هغه سره دقرض په باره کې خصومت هم کولای شي ځکه قرض قبض کول بغیرمطالبه اومخاصمه متصوره نه ده ،همدارنگه دیون بامثالهااداکیږي باعیانهانه اداکیږي ولې دین وصف ثابت فى ذمة المديون دی اوپروصف باندې قبض ناممکن دی نوځکه دهغه پرمثل باندې قبض کول غواړي،بیاپه هغه کې دمبادله معنی پیداکیږي اودمبادله وکیل په حقوق مبادله کې اصیل وي ځکه نودحقوقوپه باره کې خصم هم کیږي،حال داچې دصاحبینورحمهماالله په نزددقرض قبض کوونکی وکیل ،وکیل بالخصومة نه شي کیدای ځکه موکل چې دهغه په قبض دین باندې

راضي دی دانه ده ضروري چې موکل به دهغه په خصومت باندي هم راضي وي اودموکل له رضامندي بغیردوکیل خصومت کول صحیح نه دی .

**فائده** :دصاحبینو رحمهما الله قول راجح دی لمافی شرح مجلة :واطلاق هذه المادة یقتضي اختیارقولهما............ والحق ان قولهماالقوی وهوروایة عنه (شرح مجلة الاحکام للاتاسی رحمه الله :۴/ ۵۱۷) وقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله :واعلم انه اختلف اهل الترجیح فی هذه المسئلة فمال الی قول الامام بعضهم منهم الامام المحبوبی فی احدقولیه والنسفی وصدرالشریعة لکن الراجح والمختار للفتوی عنداکثرالمحققین قولهماوهوروایة عن الامام ابی حنیفة رحمه الله ایضاوهوقول الائمة الثلاثة فیکون فی الافتاء بهذه الروایة المیل الی الاجماع فیوخذبه الخ (هامش الهدایة:۳/ ۱۹۳)

(۳)قوله وبقبض العین لای الوکیل بقبض العین لایملک الخصومة بالاجماع،یعنې که چاڅوک دمعلوم شي دقبض کولولپاره وکیل کرځولی وونووکیل لره په اتفاق دخصومت اختیارنشته ځکه په دغه صورت کې وکیل دموکل پرعین حق باندي قبض کوي نوپه دي کې مبادله نشته لکه په تیرصورت کې چې په قبض دین کې دمبادله معنی راتله نودوکیل قبض کول دحقوق مبادله مقتضي هم نه ده اوچې کله په دي کې حقوق ثابت دي نووکیل خصم هم نه کیږي ځکه دوکیل حیثیت محض دقاصداوامین دی .

همداوجه ده که چاڅوک دخپل مریې دقبض کولولپاره وکیل وګرځاوه اومریې چې دچاپه لاس کې دی هغه پردي باندي ګواهان قائم کړي ووچې ستاموکل خپل دغه مریی پرماباندي خرڅ کړی دی نودامعامله دغائب موکل تراتلوپوري موقوفه پاتیږي یعنې وکیل ته نه قبضه ورکول کیږي اونه انکارورته کیږي داحکم استحساناً دی.وجه داستحسان داده چې دقابض قائم کړي ګواهان پردوو شیانوباندي دي یوپردي باندي چې موکل خپل دامریی پرقابض باندي خرڅ کړی دی نوځکه له مریې څخه دموکل ملک زائل شو،دوهم پردي باندي چې وکیل پردغه مریې باندي دقبض کولواجازه نه لري ،په دوهم شي کې وکیل خصم دی په دي کې دقابض قائم کړای شوي ګواهان قبلیږي اوددي په نتیجه کې وکیل پرمریې باندي دقبض کولواجازه نه لري،لیکن په اول شي کې وکیل خصم نه دی نوچې وکیل خصم نه دی نوپه هغه کې دقابض بینه نه قبلیږي یعنې دقابض له موکل څخه دهغه مریی اخیستل نه ثابتیږي اوله دغه مریې څخه دموکل ملک نه زائلیږي .

(۴)همداسې حکم دعتاق اوطلاق هم دی یعنې که چیرته وکیل دخپل موکل مریی دموکل دحکم مطابق چیرته له ښاره دباندي بیوی اوهغه مریي دډي ګواهان پیش کړل چې زه ستاموکل آزادکړی یم نودموکل تراتلوپوري به دامقدمه ځنډیږي ځکه دلته هم دمریې ګواهان پردووشیانوباندي ګواهي ورکوي یوپردي باندي چې مریی آزادشوی دی دوهم پردي باندي چې وکیل ددي مریې دبل چیرته ورلواجازه نه لري ،په اوله خبره کې څرنګه چې وکیل خصم نه دی ځکه نوپرهغه باندي دمریې ګواهان نه قبلیږي اوپه دوهمه خبره وکیل خصم دی نوپه هغه کې دمریې ګواهان قبلیږي اودهغه په نتیجه کې وکیل لره داحق نشته چې دغه مریی چیرته بوځي ،همدارنګه که وکیل دخپل موکل ښځه دموکل دحکم مطابق چیرته په سفربیوله اوهغې ښځې پردي باندي ګواهان پیش کړل چې ستاموکل ماته طلاق راکړی دی نودامقدمه به دهغه موکل

تر راتلو پوري ځنډيږي ځکه دلته هم دښځې ګواهان پردوو خبرو باندي قائم دي يو دا چې دا ښځه مطلقه ده او هم دا چې وکيل ددې اجازه نه لري چې دا ښځه چيرته بوځي.

(۵) که وکيل بالخصومت (دجواب ورکولو وکيل) دخپل موکل په خلاف دقاضي په محکمه کې اقرار وکړ (مثلا موکل وکيل مقرر کړ چې پر فلان باندي دفلان شي دعوى وکړه، وکيل دقاضي په مجلس کې دموکل ددعوى دبطلان اقرار وکړ) نو دا دطرفينو رحمهما الله په نزد جائز دی، دقاضي له مجلس نه علاوه په بل مجلس کې که يې اقرار وکړ نو دا بيا صحيح نه دی، دامام ابويوسف رحمه الله په نزد په دواړو صورتونو کې اقرار صحيح دی، دطرفينو رحمهما الله دليل دا دی چې وکيل مامور بالجواب دی او جواب دقاضي په مجلس کې جواب شمارل کيږي دقاضي له مجلس نه علاوه جواب نه شمارل کيږي او اقرار دجواب له قسمينو (يعني اقرار او انکار) څخه يو دی نو ځکه که دقاضي له مجلس نه غير اقرار وکړي نه صحيح کيږي، البته دطرفينو رحمهما الله په نزد دوکيل پر موکل باندي له اقرار کولو وروسته له وکالت څخه وځي، دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دی چې وکيل دموکل نائب دی او دموکل اقرار کول دقاضي په مجلس پوري اختصاص نه لري نو دنائب اقرار يې دقاضي په مجلس پوري اختصاص نه لري.

**فائده**: دطرفينو رحمهما الله قول راجح دی لمافی الدّرالمختار: وصح اقرار الوكيل بالخصومة لابغيرها مطلقا بغير الحدود والقصاص على موكله عند القاضى دون غيره استحسانا. (الدّر المختار على هامش ردّالمحتار: ۳/ ۴۰۹)

(۶) البته که يو سړی مثلا خالد دبل چا مثلا حامد (چې مقروض دی) له طرفه دمال کفيل شو بيا قرض غوښتونکي (چې مکفول له دی) کفيل (خالد) دمقروض حامد څخه دقرض دوصول کولو لپاره وکيل وګرځاوه نو دکفيل (خالد) وکيل ګرځول باطل دی ځکه وکيل هغه څوک کيدای شي چې دبل چا لپاره کار کوي او کفيل دخپلي ذمي دفارغ کيدو لپاره کار کوي نو که کفيل وکيل وګرځيږي نو وکيل دخپل ځان لپاره کار کوي چې په دي سره عقد وکالت باطليږي ځکه دوکالت رکن (يعني دبل چا لپاره کار کول) پاتې نه شو.

(۷) وَمَنِ ادَّعَى أَنَّهُ وَكِيلُ الْغَائِبِ فِي قَبْضِ دَيْنِهِ فَصَدَّقَهُ الْغَرِيمُ أُمِرَ بِدَفْعِهِ إِلَيْهِ فَإِنْ حَضَرَ الْغَائِبُ فَصَدَّقَهُ (۸) وَإِلَّا دَفَعَ إِلَيْهِ الْغَرِيمُ الدَّيْنَ ثَانِيًا (۹) وَرَجَعَ بِهِ عَلَى الْوَكِيلِ لَوْ بَاقِيًا (۱۰) وَإِنْ ضَاعَ لَا إِلَّا إِذَا ضَمَّنَهُ عِنْدَ الدَّفْعِ أَوْ لَمْ يُصَدِّقْهُ عَلَى الْوَكَالَةِ وَدَفَعَهُ إِلَيْهِ عَلَى ادِّعَائِهِ

**ترجمه**: که چا دعوى وکړه چې زه وکيل يم دغائب دهغه ددين په وصول کولو کې بيا تصديق وکړ دهغه مقروض نو هغه دقرض ادا کولو حکم کيږي بيا که غائب حاضر شو او دهغه تصديق يې وکړ نو (فبها) که نه ورديکړي هغه ته غريم قرض دوباره، او وادي خلي دی له وکيل څخه که باقي وو، او که ضائع شو نو نشته مګر که يې ضامن کړی وو هغه، دورکولو په وخت کې يا يې دهغه تصديق نه وو کړی دهغه پر وکالت باندي او ورکړی يې وو مال هغه ته خالص دهغه په دعوى باندي

**تشريح**: (۷) که يو چا دعوى وکړه چې زه دفلان غائب له طرفه دقرض وصولولو وکيل يم او مقروض دهغه تصديق وکړ چې واقعًا ته دهغه غائب وکيل يې نو مديون ته امر کول کيږي چې هغه دوکالت مدعي ته قرض

ورکړي ځکه دوکیل تصدیق کول پرخپل ځان باندي اقرارکول دی نودهغه داقرارمطابق هغه ته دادائیګي حکم کول کیږي.

(٨)بیاکه موکل غائب حاضرشودوکالت دمدعي دقول تصدیق یې وکړخوفبها،که نه مقروض به هغه غائب ته (چې قرض غوښتونکی دی )دوباره قرض ورکوي ځکه چې کله موکل له وکالت څخه انکاروکړنودهغه قرض وصول کول ثابت نه شواوقرض لکه څرنګه چې تردي مخکي دمقروض پرذمه ثابت پاتي وواوس هم ثابت دی نومقروض ته دقرض اداکولوحکم کړای کیږي ،اوموکل چې دوکیل له وکالت څخه انکارکوي دده قول سره له یمینه معتبریږي.

(٩)بیاکه دغه مال چې دوکالت مدعي ته ورکړل شوی دی که چیرته له مدعي سره موجودوونومقروض به دغه مال دوکالت له مدعي څخه واپس اخلي ځکه دمقروض غرض داوو چې دهغه ذمه فارغه شي حال داچې دمقروض ذمه نه ده بري شوې نوځکه واپس دمال اخیستلوحق لري،اوکه چیرته دغه مال دوکالت له مدعي څخه ضائع شوی وونومقروض به مذکورمال واپس نه اخلي ځکه مقروض دوکالت دمدعي تصدیق کړی دی هغه یې حقدارګڼلی دی اوله داسي چاڅخه مال مقبوض واپس نه اخیستل کیږي،مقروض بیشکه چې مظلوم دی چې قرض غوښتونکی له هغه څخه دوباره قرض اخلي خومظلوم ته داحق نشته چې هغه پرغیر(یعني دوکالت پرمدعي ) باندي ظلم کوي.

(١٠)یعني که چیرته هغه مال چې مقروض وکیل ته ورکړی وودوکیل له لاسه وتلی وونو مقروض به وکیل ته رجوع نه کوي مګرداکه مقروض دروپوورکولوپه وخت وکیل ضامن کړځولی ووچې ته ددي ضامن شه چې قرض غوښتونکی به له ماڅخه دوباره ددغه قرض مطالبه نه کوي،یایې دهغه دوکالت تصدیق نه وو کړی بلکې خاموش پاتی وویایې دهغه تکذیب کړی وواوخالص دهغه په دعوی کولوسره یې هغه ته مال ورکړی وونوپه دغوصورتونوکې که له وکیل څخه مال تلف شواوقرض غوښتونکی راغی دوباره یې له مقروض څخه دقرض مطالبه وکړه اومقروض دوباره قرض غوښتونکي ته قرض اداکړنومقروله وکیل څخه دواپس اخیستلواجازه لري ځکه وکیل ته دقرض مال ورکولوپه وخت کې دمقروض داامیدووچې قرض غوښتونکی به راشي هغه به جائزوګڼي اوس چې کله قرض غوښتونکی هغه جائزنه وباله نودمقروض امیدپوره نه شونوځکه به دی وکیل ته رجوع کوي.

(١١)وَلَوْقَالَ اِنِّي وَكِيلٌ بِقَبْضِ الْوَدِيْعَةِ فَصَدَّقَهُ الْمُوْدِعُ لَمْ يُؤْمَرْ بِالدَّفْعِ اِلَيْهِ(١٢)وَكَذَا لَوِادَّعَى الشِّرَاءَ وَصَدَّقَهُ(١٣)وَلَوِادَّعَى اَنَّ الْمُوْدِعَ مَاتَ وَتَرَكَهَا مِيْرَاثًا لَهُ وَصَدَّقَهُ دَفَعَ اِلَيْهِ(١٤)فَاِنْ وَكَّلَهُ بِقَبْضِ مَالٍ فَادَّعَى الْغَرِيْمُ اَنَّ رَبَّ الْمَالِ اَخَذَهُ دَفَعَ الْمَالَ وَاتَّبَعَ رَبَّ الْمَالِ وَاسْتَحْلَفَهُ.

**ترجمه** :که چاوویل چې زه وکیل یم پرامانت دقبض کولوبیامودَع دهغه تصدیق وکړنوحکم نه کیږي دامانت په ورکولوسره ودده ته همدارنګه که یې دعوی وکړه داخیستواومودَع دهغه تصدیق وکړاوکه یې دعوی وکړه چې مودِع مړشواوداامانت یې ماته په میراث پري ایښی دی اومودَع دهغه تصدیق وکړنوهغه ته دي ورکړي

اوكه يې وكيل وګرځاوه دى موكل دمال دوصول كولولپاره بيامقروض دعوى وكړه چې صاحب مال خوهغه مال وركړى دى نووكيل ته دې مال وركړي اوپه ربّ المال دې پسې شي اوله هغه نه دې قسم واخلي.

**تشريح**:(۱۱)كه چادعوى وكړه چې زه دغائب مودِع (بكسرالدال مال وديعتً ساتونكى) له طرفه دهغه پرمال وديعت باندې دقبض كولووكيل يم چې له مودَع (بفتح الدال له چاسره چې مال ساتل شوى وي) سره پروت دى اومودَع دهغه تصديق وكړچې ته واقعًادمودِع وكيل يې نومودَع ته داحكم نه وركول كيږي چې مال وديعت دوكالت مدعي ته وسپاره ،ځكه مودَع اقراردى چې دامال دمودِع مِلك دى بيادوكالت دمدعي تصديق كول په حقيقت كې دغيرپرمال باندې دهغه په قبضه اقراركول دى اواقرار حجت قاصره دى يعني پرغيرباندې حجت نه دى نودمقروض دااقرارصحيح نه دى،البته دقرض په صورت كې ځرنګه چې قرض بامثالهاادا كيږي نه باعيانهاځكه نوپه هغه كې دمقروض اعتراف پرخپل مال باندې اعتراف دى نه پرغيرباندې.

(۱۲)همدارنګه كه ديوچاسره دغائب سړي امانت پروت وويوبل چادغه امانت په باره كې دعوى وكړه چې داماله هغه غائب څخه اخيستى دى اوله امين څخه يې دهغه غوښتنه وكړه امين هم دمدعي خريدتصديق وكړچې واقعًاتااخيستى دى نوبياهم هغه دوركولوحكم نه وركول كيږي ځكه ترڅوپورې چې مالک ژوندى وي نودمدعي دعوى كول اودامين دهغه تصديق كول اقرارعلى الغيردى اواقرارعلى الغيرمقبول نه دى ځكه په دې كې دغيردحق ابطال راځي.

(۱۳)كه ديوچاسره يوشى امانت وويوبل چادعوى وكړه چې دامانت مالک مړشوى دى اودغه امانت يې زمالپاره ميراث پرې ايښى دى اوله چاسره چې امانت پروت ووهغه ددغه شخص تصديق وكړچې واقعًاامانت مالک مړشوى دى اودميراث مدعي دهغه وارث دى نوامين دې داامانت مدعي ته وركړي ځكه داصل مالک ملكيت په مرګ سره ختم شواوس مدعي اوامين دواړه پردې متفق دي چې داشى دوارث (مدعي)دى نومدعي ته دې وركړي،مګرشرط دادى چې دهغه مړه بل وارث نه وي.

(۱۴)كه چاله مقروض څخه دخپل مال دوصولولولپاره يوسړى وكيل مقرركړكله چې وكيل له مقروض څخه دهغه مال طلب وكړمقروض دعوى وكړه چې له ماڅخه خوخپل اصل مالک مال وصول كړى دى نومقروض دې په دې مجبوركړاى شي چې وكيل ته مال وركړي ځكه دوكيل له وكالت څخه خومقروض انكارنه دى كړى نووكالت دوكيل اومقروض دواړوله تصديق څخه ثابت شواودمالک دمال وصول كيدل يوائې دمقروض په دعوى سره نه ثابتيږي البته ددعوى په ضمن كې ددين اووكالت اقرارثابتيږي نودوكالت دمدعي په حق وركولوكې تاخيرنه كيږي، اومقروض دې په اصل مالک پسې شي كه چيرته هغه دقرض له وصوليدوڅخه انكاروكړنوله هغه څخه دې قسم واخلي ځكه دمقروض رعايت كول هم ضروري دى اوپه دغه قسم وركولوكې بيشكه دمقروض رعايت دى.

(۱۵)وَاِنْ وَكَّلَه بِعَيْبٍ فِي اَمَةٍ فَادَّعَى الْبَائِعُ رِضَا الْمُشْتَرِي لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى يَحْلِفَ الْمُشْتَرِي (۱۶)وَمَنْ دَفَعَ اِلَى رَجُلٍ عَشَرَةً لِيُنْفِقَهَا عَلَى اَهْلِهِ فَاَنْفَقَ عَلَيْهِمْ عَشَرَةً مِنْ عِنْدِهِ فَالْعَشَرَةُ بِالْعَشَرَةِ

**ترجمه**: او كه يې وكيل وګرځاوه دعيب په منځه كې يا دعوى وكړه بائع دمشتري درضامندي نو نه دي ردوي ترڅوچې قسم وخوري مشتري او كه چا بل چا ته لس درهمونه وركړل چې دى يې مصرف كړي دهغه پر اهل بيت باندي، يا هغه مصرف كړل پر هغه كورباندي لس درهم دخپل ځان نو دالس دهغولسو په مقابله كې دريږي .

**تشريح**: (۱۵) كه يوچا په اخيستلې شوې منځه كې عيب پيدا كړ بيايې دهغې دواپس كولو لپاره وبائع ته يوڅوك وكيل مقرر كړ، وكيل غوښتل چې بائع ته منځه ورواپس كړي مګر بائع دعوى وكړه چې دبيع په وخت كې مشتري دمنځې په دغه عيب باندي راضي شوى وو، نو وكيل منځه بائع ته نه شي واپس كولاى ترڅوچې مشتري پردي خبره باندي قسم وانه خلي چې والله زه ددي منځې په عيب باندي نه وم راضي شوى، ځكه كه چيرته له مشتري څخه بغير قسم اخيستلو دقاضي په حكم سره منځه واپس كړاى شوه نو بيع ظاهرا وباطنا فسخ كيږي بيا كه وروسته دمشتري خطاء ظاهره شوه مثلا مشتري له قسم اخيستلو څخه انكار وكړ بيا ددي بيع تدارك ممكن نه دى، نو له مشتري څخه دقسم اخيستلو بغير منځه بائع ته نه شي واپس كولاى .

(۱۶) كه چا بل چا ته لس درهمونه وركړل ددي لپاره يې وكيل كړچې دالس درهمونه به زما پر بچيانو باندي مصرفوې، وكيل هغه لس درهمونه له خپل ځان سره وساتل او دخپل ځان لس درهمونه يې دهغه پر بچيانو باندي مصرف كړل نو دوكيل لس درهمونه دموكل دلسو درهمونو عوض كيږي ځكه دا وكيل په اتفاق دخريد وكيل دى او دخريد دوكيل حكم مخكې تير شوى دى چې دهغه لپاره داجائزه ده چې دمبيع قيمت له خپله ځانه وركړي او بيا يې له موكل څخه واپس واخلي دلته دي هم دخپلولسو درهمونو دمصرفولو په عوض كې دموكل لس درهمونه واخلي .

## بَابُ عَزْلِ الْوَكِيلِ

دا باب دوكيل دمعزولولو داحكامو په بيان كې دى

مصنف رحمه الله تردي مخكې دوكالت دثبوت او دوكالت مختلف احكام بيان كړي دي په آخر كې يې دوكيل دمعزول كيدو احكام ذكر كړي دي دعزل داحكامو دوروسته كيدو وجه داده چې عزل تر ثبوت وروسته وي نو ځكه مناسب داده چې احكام يې هم وروسته ذكر كړوي .

(۱) وَتَبْطُلُ الْوَكَالَةُ بِعَزْلِهِ إِنْ عَلِمَ بِهِ (۲) وَمَوْتِ أَحَدِهِمَا وَجُنُونِهِ مُطْبِقًا وَلُحُوقِهِ مُرْتَدًّا (۳) وَافْتِرَاقِ الشَّرِيكَيْنِ وَعَجْزِ مُوَكِّلِهِ لَوْ مُكَاتَبًا وَحَجْرِهِ لَوْ مَأْذُونًا (۴) وَتَصَرُّفِهِ بِنَفْسِهِ

**ترجمه**: او باطليږي وكالت دموكل په معزول كولو سره كه چيرته هغه په دي خبر شي او ديوه په مرګ سره او په دائمي جنون سره او دهغه دارحرب ته ورتلل په داسي حال كې چې مرتد وي او ددوو شريكانو په جدائي سره او دموكل په عاجز كيدو سره كه چيرته موكل مكاتب وو او دهغه په محجور كيدا سره كه چيرته ماذون وو او خپل دموكل په تصرف كولو سره .

**تشريح**: (۱) دموكل خپل وكيل لره په معزوليدا سره وكالت باطليږي ځكه وكالت دموكل حق دى نو دى دخپل حق دباطلولو اختيار لري همدارنګه وكالت دعاريت په شان له عقود غير لازمه وڅخه دى نو موكل دهغه دختم

کیدو حق لري،البته شرط دادی چې وکیل به دخپل ځان په معزولیدو خبروي بیاکه موکل وکیل معزول کړاووکیل په خبرنه وونودی پرخپل وکالت برقرارپاتیږي اوتصرف یې جائزدی ترهغو پوري چې خپل معزولیدل ورمعلومیږي ځکه عزل نهی عن التصرف دی اودامراونهی حکم نه ثابتیږی مګربعدله علم نه،دامام شافعی رحمه الله په نزدوکیل معزولیږي که څه هم پخپله معزولتیانه وي خبر،همدادامام احمد رحمه الله اوامام مالک رحمه الله رایه هم ده.

(۲) قوله وموت احدهماالخ ای وتبطل الوکالة بموت الموکل اوالوکیل الخ.یعنې دوکیل وکالت له موکل اووکیل څخه دیوه په مرګ سره یادیوه په لیونتوب دائمی سره اودارحرب ته په تللوسره په داسي حال کې چې مرتدوي هم باطلیږي ځکه توکیل غیرلازم تصرف دی اودغیرلازم تصرف ددوام هغه حکم دی چې په ابتداء کې یې وي اوپه ابتداء کې دوکالت لپاره حکم اوامردموکل ضروري دی نودبقاء لپاره یې هم امردموکل ضروري دی اودمذکوروعوارضوپه وجه دموکل امرباطلیږي نووکالت هم باطلیږی.

**فائده** .دجنون مُطبق اندازه دامام ابویوسف رحمه الله په نزدیوه میاشت ده اودابردي باندي قیاسوي چې که یوڅوک دروژي په ټوله میاشت کې لیونی وي نودهغه له ذمي څخه درمضان روژه ساقطیږی ځکه چې کله دی دعبادت آلهي دخطاب اهل پاتي نه شونوددنیاوي معاملاتواهل هم نه دی چې کله یې اهلیت ختم شونوتوکیل یې هم باطلیږی ،اوله امام ابویوسف رحمه الله څخه یوروایت دی چې دجنون مطبق اندازه داده چې تریوه شپه یوه ورځ زیات مجنون وي یعنې که تریوه شباروززیات په جنون مبتلا وونودهغه وکالت باطلیږي لکه له داسي چاڅخه چې پنځه لمونځونه ساقطیږی ،امام محمد رحمه الله فرمایلي دي چې دجنون مطبق اندازه یوکال موده ده ځکه پوره یوکال چې انسان لیونی وي نوټول عبادات،لمونځ ،روژه،زکوة وغیره ورځني ساقطیږي نودجنون مطبق اندازه احتیاطاًیوکال ټاکل شوي ده.

**فائده** :دامام ابویوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی شرح المجلة :قال فی حاشیة البحرلکن فی الشرنبلالیة عن المضمرات مقدربشهروبه یفتی وکذافی القهستاني والباقاني عن قاضیخان وجعله قول ابی حنیفة رحمه الله وان علیه الفتوی فلیحفظ . (شرح مجلة الاحکام: ۵۲۹/۳)

(۳) قوله وافتراق الشریکین وتبطل الوکالة بافتراق الشریکین عن الشرکة،یعنې که له دووشریکانوڅخه یوه بل دریم سړی وکیل وګرځاوه بیاشریکین دشراکت په ختمولوسره ،سره بیل شول یامکاتب یوڅوک وکیل وګرځاوه بیامکاتب دبدل کتابت له اداکیدوڅخه عاجزشو ،یاماذون (که ماشوم وي که مریی ) څوک وکیل وګرځاوه بیاهغه محجورشو(یعنې هغه له تجارت کولوڅخه منع کړای شو) نوپه دغوټولو صورتونوکې وکالت باطلیږی که وکیل ته علم وي اوکه نه وي ځکه دوکالت بقاء دموکل دطرف څخه پرقیام امرباندي موقوفه ده اودموکل امرپه عجز،حجر اوافتراق سره باطلیږی نوځکه وکالت هم نه پاتیږی،اوددي تعمیم چې که وکیل لره علم وي اوکه نه وي ،وجه داده چې په مذکوروصورتونوکې دوکیل معزولیدل امرحکمي (یعنې غیراختیاري دی چې دمعزولیدوبغیرهم وکیل معزول کیږی) اود حکمی عزل لپاره دوکیل علم شرط نه دی نوکه وکیل لره علم وي اوکه نه وي په هرصورت معزول کیږي.

(۴) قوله وتصرفه بنفسه اى وبطل الوكالة بتصرف الموكل فيما وكل به بنفسه، يعني كه يې يو څوک ديو كارلپاره وكيل مقرركړياچې يې دكوم كارلپاره دى وكيل كړى ووهغه كارموكل خپله يادبل وكيل په ذريعه ترسره كړنو وكالت باطليږي ځكه دموكل له تصرف وروسته دوكيل لپاره تصرف كول متعذردى نوځكه وكالت باطليږى.

## كتاب الدعوى

### داكتاب ددعوى په بيان كې دى

دعوى لغة هغه قول دى چې دهغه په ذريعه انسان پرغيرباندې دحق ايجاب اراده وكړي، اوشرعاً ديوه انسان له بل څخه دقاضي په وړاندې دخپل حق طلب كولوته دعوى وايي، حق غوښتونكي ته مدعي اوله چاڅخه چې حق طلبوي هغه ته مدعى عليه وايې اومدعى به هغه شى دى چې مدعي يې دعوى كړي ده.

دوكالت له انواعو څخه يوه مشهوره نوع وكالت بالخصومة دى اووكالت بالخصومة سبب داعى الى الدعوى دى اودعوى مسبب دى نومناسبه داده چې كتاب الدعوى له كتاب الوكالة وروسته ذكركړاى شي، ځكه مسبب مقتضي دى چې سبب ترده مخكې وي.

(۱) هي اضافة الشيء الى نفسه حالة المنازعة (۲) والمدعي من اذا ترك ترك والمدعى عليه بخلافه (۳) ولا تصح الدعوى حتى يذكر شيئا علم جنسه وقدره (۴) فان كان عينا في يد المدعى عليه كلف احضارها ليشير اليها بالدعوى (۵) وكذا في الشهادة والاستحلاف (۶) فان تعذر ذكر قيمتها

**ترجمه**: هغه منسوبول دشي دى خپل ځان ته دخصومت په حالت كې، اومدعي هغه دى چې كله دى دعوى پريږدي نوپرينبودل كيږي، اومدعى عليه خلاف دهغه دى اوصحيح نه ده دعوى ترڅوچې ذكركړي داسې شى چې معلوم وي جنس دهغه اومقداردهغه بياكه چيرته هغه معلوم شى وودمدعى عليه په قبضه كې ورنومكلف گرځول كيږي دهغه په حاضرولوسره. چې اشاره وكړي دهغه طرفته ددعوى كولوپه وخت اوهمدارنگه په شهادت كې اوپه قسم اخيستلوكې بياكه متعذرشوحاضرول دهغه نودهغه قيمت دې ذكركړي.

**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله ددعوى اصطلاحى تعريف داسې كړى دى چې دخصومت په وخت يوشى خپل ځان ته منسوبول دي كارته دعوى ويل كيږي.

(۲) څرنگه ددعوى مسائل دمدعي اومدعى عليه پرپيژندلوباندې موقوف دي ځكه نومصنف رحمه الله دمدعى اومدعى عليه په تعريف باندي شروع وكړه، نومدعي هغه دى چې كه چيرته هغه دعوى پرينبودله نودى پرينبودل كيږي يعنې پرده باندي دخصومت لپاره جبرنه كراى كيږي ځكه ده دعوى په اختيارسره كړي ده نودپرينبودلوهم دى اختيارلري، اومدعى عليه هغه دى چې كه چيرته خصومت پريږدي

نو حاكم به دى دخصومت پر كولو باندې مجبور كوي ،همدا تعريف صحيح او جامع ومانع دى . (شرح مجله :۵/ ۵)

**فائده** :ځينو حضراتو دمدعي اومدعى عليه ترمنځ فرق داسې بيان كړى دى چې مدعي هغه دى چې دحجت له وړاندې كولو بغير دى دمدعى به مستحق نه ګرځي لكه يو غير قابض څوک چې دبل چا په لاس کې شى وويني دعوى وكړي چې داشى زمادى اومدعي عليه هغه دى چې دحجت له وړاندې كولو بغير خالص په خپل قول سره دمدعى به مستحق وي لكه يو قابض څوک چې دخپل مقبوض شي په باره کې ووايې چې دازمادى نو داشى دهغه كيږي ترڅو چې بل څوک پرهغه خپل استحقاق ثابت نه كړي .

(۳)يعني دمدعي دعوى نه قبليږى ترڅو چې دى داسې يو معلوم شي دعوى وكړي چې دهغه جنس اومقدار معلوم وي ځكه ددعوى په ذريعه سره دحجت په واسطه پرمدعى عليه باندې مدعى به لازميږى نوكه مدعى به مجهول وي نو مجهول شى پر مدعى عليه بلاندي لازميږي حال دا چې دمجهول لازمول ممكن نه دى ددعوى دنه قبليدو مطلب دادى چې ددې دعوى په وجه عدالت ته دمدعي عليه اومدعى به حاضرول ضروري نه دى ،اودجنس دمعلوميت مطلب دادى چې داورته وښيې چې مدعى به غنم دي يااوريشې دي ياسره اوسپين زر دي، اودمقدار دمعلوميت مطلب دادى چې داوروښيې چې مثلاً غنم يوسير دي يادوه سيره دي همدارنګه مثاقيل اودراهم دومره دي .

(۴)كه مدعى به يو معلوم مال دمدعى عليه په قبضه کې وونو مدعى عليه دي مجبور كړاى شي چې هغه مدعى به عدالت ته حاضر كړى ددي لپاره چې مدعى ددعوى په وخت دهغه طرف ته اشاره وكړي چې داشى زمادى ځكه تر وسه پوري دمدعى به معلومول شرط دى او دا په عين منقولي کې په اشاره سره كيږي .

(۵)قوله وكذافى الشهادة والاستحلاف اى وكذايكلف احضارهافى اداء الشهادة وفى الاستحلاف عندعدم البنة ،يعني همدارنګه دګواهانو دګواهي اداكولو په وخت کې هم په محكمه کې دمدعى به حاضريدل ضروري دى چې ګواه دګواهي وركولو په وخت هغه ته اشاره وكړي چې موږ ددي شي په باره کې ګواهي وركوو ، همدارنګه كه چيرته له مدعي سره ګواهان نه وونودمدعى عليه دقسم وركولو په وخت کې هم په محكمه کې دمدعى به حاضرول ضروري دى چې هغه دقسم اخيستلو په وخت کې هغه ته اشاره وكړي چې والله دغه شى زمادى ددهٔ نه دى .

(۶)قوله فان تعذر ذكر قيمتها اى ان تعذر احضار العين ذكر قيمتها ،يعني كه چيرته مدعى به عين منقولي وواو دهغه محكمې ته حاضريدل مشكل وويااله دي كبله چې هلاک شوى ووياله دي وجهى چې عدالت ته يې حاضريدلو يې مصرف كيده نو دهغه قيمت دي ذكر كړي چې په قدر دامكان مدعى به معلوم شي .

(۷)فان كان عقارًا ذكر حدوده وكفت ثلثة (۸) واسماء اصحابها ولابدمن ذكر الجدّ لمن يكن مشهورًا وانه في يده (۹) ولايثبت اليد في العقار بتصادقهما بل ببينة او علم قاض (۱۰) بخلاف المنقول وانه يطالبه به (۱۱) وان كان دينا ذكر وصفه وانه يطالبه به

**ترجمه** :اوكه دعوى دځمكې وه نودهغې حدوددې ذكركړي اوكافي دي درې حدود.اودهغودمالكانو نومونه اوضروري دى دنيكه ذكركه هغه مشهورنه وواوداچې داشى دهغه په لاس كې دى.اونه ثابتيږي قبضه په ځمكه كې ددوئ دواړوپه تصديق سره بلكې په ګواهانوسره يادقاضي په علم سره.خلاف له منقولى شيانو.اوداچې دى به دهغه مطالبه كوي اوكه هغه شى قرض وونودهغه وصف دي ذكركړي اوداچې دى به دهغه مطالبه كوي.

**تشريح** :(۷)كه مدعى به ځمكه وه نوځرنګه چې محكمې ته دهغې وړل ناممكن دى نومدعي به دهغې څلورحدود ذكركوي څكه دځمكې معرفت په حدودوسره راځي اوكه چيرته مدعي دمدعى به ځمكې درې حدودبيان كړل نوهم كافي دي،په داسې حال كې چې دامام زفر رحمه الله په نزدڅلورواړه حدودبيانول ضروري دي ځكه تعريف دڅلوروواړو حدودوبيانولوبغيرنه تاميږي.زموږدليل دادى چې اكثرله حكم دكل دى نودرې حدودبيانول هم كافي دي.

(۸)قوله واسماء اصحابهااى وذكراسماء اصحابها،يعنې مدعي به دځمكې دحدودودمالكانونومونه هم ذكركوي څكه تعريف په هغوسره راځي اوكه دحدودومالك مشهورنه وونودهغوئ دنيكه ګانونومونه دي هم ضرورذكركړي چې له نوروخلكوڅخه ممتازشي ولى كامل تعريف دنيكه ګانوپه نومونوذكر كولوسره راځي،البته كه چيرته هغوئ مشهوروو نوبيايې دنسب ذكركول ضروري نه دى،قوله وانه في يده اى وذكرانه في يده ،يعنې دابه هم بيانوي چې داځمكه دمدعى عليه په قبضه كې ده څكه مدعى عليه هغه وخت خصم ګرځي چې مدعى به ځمكه دهغه په قبضه كې وي.

(۹)اوپرځمكه باندې قبضه دمدعى اومدعى عليه خپل منځي تصادق سره نه ثابتيږي مثلامدعى دځمكې دعوى وكړه ويې ويل چې داځمكه دمدعى عليه په قبضه كې ده اومدعى عليه دده تصديق وكړچې واقعًاازماپه قبضه كې ده نودانه كافي كيږي بلكې دګواهانوپه ګواهي سره ثابتيږي چې هغوئ ګواهي وركړي چې موږمذكوره ځمكه دمدعى عليه په قبضه كې ليدلې ده ياقاضى ته په ذاتى ډول معلومات ووچې مذكوره ځمكه دمدعى عليه په قبضه كې ده څكه كيداى شي چې مدعى اومدعى عليه دبل چاپرځمكه باندې دقبض كولولپاره خپل ځانونه مدعي اومدعى عليه ښكاره كړي وي چې دقاضي دقضاء په ذريعه سره دغه ځمكه پرخپل نامه كړي.

(۱۰)خلاف دمنقولى شيانوچې دهغوپه باره كې كه چيرته مدعى وويل چې مدعى به دمدعى عليه په قبضه كې دي اومدعى عليه دده تصديق وكړنوقبض ثابتيږي څكه په منقولى شيانوكې دمدعى عليه قبضه مشاهده كيږي نوپه ګواهانوسره يې ثابتول ضروري نه دى .قوله وانه يطالبه به اى وذكرالمدعى انه يطالب المدعاء عليه بالمدعاء،يعنې مدعى به داهم وايې چې زه دهغې ځمكې مطالبه كوم څكه مطالبه دمدعى حق دى نودهغه مطالبه كول ضروري دى.

(۱۱)اوكه چيرته مدعى به دمدعى عليه پرذمه قرض وو،مال عين نه وونومدعى به دهغې وصف بيان كړي چې فلان قسم دى اودومره ده څكه دديونو معرفت په وصف سره كيږي اوپه محكمه كې به خالص

دامطالبه وكړي چې زه ددغه حق طلبگاريم ولی صاحب ذمه خپله حاضردی نوله مطالبې پرته بل كوم كارنه دی پاتی.

(۱۲)فَإِنْ صَحَّتِ الدَّعْوَى سَأَلَ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ عَنْهَا فَإِنْ أَقَرَّ أَوْ أَنْكَرَ فَبَرْهَنَ الْمُدَّعِي قَضَى عَلَيْهِ وَإِلَّا حَلَفَ بِطَلَبِهِ (۱۳) وَلَا يُرَدُّ يَمِينٌ عَلَى مُدَّعٍ (۱۴) وَلَا بَيِّنَةَ لِذِي الْيَدِ فِي الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ وَبَيِّنَةُ الْخَارِجِ أَحَقُّ (۱۵) وَقَضَى لَهُ إِنْ نَكَلَ مَرَّةً بِلَا أَحْلِفُ أَوْ سَكَتَ (۱۶) وَعَرْضُ الْيَمِينِ ثَلَاثًا نَدْبًا.

**ترجمه**: بیاچې كله دعوی صحيح شي نوله مدعی عليه څخه به پوښتنه وكړي دهغې په باره كې بياكه چيرته هغه اقراروكړياېې انكاروكړنوگواهان به پيش كړي مدعي نوفيصله به پرده باندي وكړي كه نه بيادي قسم وركړي دمدعي پرمطالبه باندي،اونه واردیږي قسم پرمدعي باندي ،اوگواهان معتبرنه دي دقابض په ملك مطلق كې اودغيرقابض گواهان زيات حقداردي ،اوفيصله دي وكړي دهغه لپاره كه يې چيرته انكاروكړيوځل ويې ويل چې زه قسم نه اخلم ياخاموش شو،اوقسم دي درې ځله وركړي استحبابًا.

**تشريح**:(۱۲)كله چې دمدعی دعوی صحيح شي نوقاضي دي دمدعی عليه څخه ددي دعوی په باره كې پوښتنه وكړي چې ستاڅه خيال دی آيادمدعي دعوی صحيح ده اوكه غلطه ده نوكه چيرته هغه ددعوی دصحت اقراروكړ نوفبهاونعمت، اوقاضي به دده خلاف اومدعي په حق كې فيصله وكړي ځكه مدعی عليه خپله دمدعي ددعوی دصحت اقراركړی دی اوكه چيرته مدعی عليه ددعوی له صحت څخه انكار وكړنوقاضي به له مدعي څخه گواهان وغواړي چې هغه خپله مدعی ثابته كړي،بياكه مدعي گواهان پيش كړل نوقاضي به دده په حق كې فيصله وكړي ځكه په حجت سره ښكاره شوه چې مدعي په خپله دعوی كې صادق دی.اوكه مدعی عليه ددعوی دصحت انكار وكړ اومدعي گواهان پيش نه كړای شواوله مدعي عليه څخه يې دقسم اخيستلومطالبه وكړه نوقاضي به له مدعی عليه څخه پرمدعی به باندي قسم واخلي مگردمدعي مطالبه دقسم ضروري ده ځكه قسم دهغه حق دی.

(۱۳)اوكه مدعی عليه له قسم اخيستلوڅخه انكاروكړنوپرمدعی باندي قسم نه رديږی يعني له مدعي څخه قسم نه اخيستل كيږي،لقوله ﷺ: اَلْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ( پرمدعي گواهان دي اوقسم پرهغه چادی چې انكاروكړي).

**فائده**:امام شافعی رحمه الله فرمايې چې كه چيرته مدعی عليه له قسم اخيستلوڅخه انكاروكړنوقسم دمدعي طرف ته عودكوي يعني قاضی به مدعي ته قسم وركړي كه چيرته مدعي قسم واخيست نوقاضي به دهغه پرقسم باندي دهغه په حق كې فيصله صادره كړي همدايوروايت له امام مالك رحمه الله اوامام احمد رحمه الله څخه هم دی ،احناف جواب وركوي چې په مذكورحديث شريف كې نبي كريم ﷺ دمدعي اومدعی عليه ترمنځ دوه شيان تقسيم كړي دي يعني پرمدعي باندي گواهان دي اوپرمدعی عليه باندي قسم دی اوتقسيم له شركت سره منافي دی نوځكه قسم يواځي پرمدعی عليه دی پرمدعي نه دی.

(۱۴)په ملك مطلق (په كوم كې چې مدعي دملك دعوی وكړي مگردملكيت هيڅ سبب ونه ښيې چې په كوم سبب سره دده ملك دی )صاحب اليد(قابض)كې كه چيرته پرمدعی به باندي قابض اوغيرقابض

دواړه ګواهان پيش کړي نو دخارج يعني غيرقابض ګواهان زيات حقدار دي په دي سره چې دهغوئ ګواهي قبوله کړای شي او دقابض دګواهانو ګواهي دي نه قبليږي ځکه دغيرقابض ګواهان دهغه لپاره ملک ثابتوي او دقابض لپاره خوملک په قبض سره ثابت دی ګواهان يې خالص مؤيد دي او دغيرقابض په ګواهانو سره دملک اثبات يا اظهار زيات کيږي نو دغيرقابض دګواهانو ګواهي زياته دقبليدو لائقه ده .

(۱۵)که له مدعي سره ګواهان نه وو او مدعي له مدعى عليه څخه دقسم اخيستلو مطالبه وکړه مګرمدعى عليه يوائې ديو ځل قسم اخيستلو څخه انکار وکړچې لاأحلفُ (زه قسم نه اخلم) ياخاموش پاتې شونوقاضى به دهغه خلاف فيصله کوي ځکه له قسم څخه انکارکول ددي دليل دی چې دی يادمدعي ددعوى اقرارکوي اويايې قسم پريښنودغواړي چې مدعى به مال مدعي ته ورکړي نوځکه به قاضى دهغه خلاف فيصله کوي،اوسکوت هم دلالةً انکارشمارل کيږي نودسکوت هم هغه حکم دی کوم چې دانکاردی .

(۱۶)پکاردئ چې قاضى احتياطاله مدعى عليه څخه پوښتنه وکړي چې زه تاته دري ځله قسم درکوم بياکه چيرته تاقسم وانخيست نوفبهاکه نه مدعي چې کومه دعوى کړي ده په هغې کې ستاپه خلاف دهغه په حق کې فيصله کوم ځکه چې داد خفاء موقع ده (ولي دامام شافعى رحمه الله په نزدکه چيرته مدعى عليه له قسم څخه انکار وکړي نوقاضى به دهغه په خلاف فيصله نه کوي بلکې مدعي ته به قسم ورکوي) ځکه نومدعى عليه ته ويل کيږي چې دانکارپه صورت کې ستاپه خلاف فيصله کوم ،بياچې کله قاضى دري ځله پرهغه قسم وړاندي کړي که چيرته دی منکرپاتې شونوقاضى به دهغه په خلاف دقسم څخه دانکارپه وجه فيصله وکړي .

(۶)وَلَايُسْتَحْلَفُ فِي نِكَاحٍ وَرَجْعَةٍ وَفَيْءٍ وَإِيلَاءٍ وَرِقٍّ وَنَسَبٍ وَوَلَاءٍ وَحَدٍّ وَلِعَانٍ (۷)قَالَ الْقَاضِي الْإِمَامُ فَخْرُ الدِّيْنِ الْفَتْوٰى عَلٰى أَنَّهُ يُسْتَحْلَفُ الْمُنْكِرُ فِي الْأَشْيَاءِ السِّتَّةِ (۸)وَيُسْتَحْلَفُ السَّارِقُ فَإِنْ نَكَلَ ضَمِنَ وَلَمْ يُقْطَعْ (۹)وَالزَّوْجُ إِذَا ادَّعَتِ الْمَرْأَةُ طَلَاقًا قَبْلَ الْوَطْئِ فَإِنْ نَكَلَ ضَمِنَ نِصْفَ الْمَهْرِ (۱۰)وَجَاحِدُ الْقَوَدِ فَإِنْ نَكَلَ فِي النَّفْسِ حُبِسَ حَتّٰى يُقِرَّ أَوْ يَحْلِفَ وَفِيْمَا دُوْنَهُ يُقْتَصُّ .

**ترجمه** :او قسم دي نه ترې اخلي په نکاح کې او په رجعت کې اوله ايلاء وروسته په فئ کې او په ام ولدکولوکې او په مريې کيدو کې او په نسب کې او په ولاء کې او په حدکې او په لعان کې ،امام فخرالدين ويلي دي چې فتوى پردي ده چې قسم دي واخيستل شي له منکرڅخه په شپږو شيانوکې او قسم دي واخيستل شي له غله څخه بياکه يې انکار وکړنوضامن کيږي او لاس يې نه غوڅيږي او له خاوند څخه چې کله دعوى وکړي ښځه دطلاق مخکې تروطی بياکه چيرته ده انکار وکړنوضامن کيږی دنصف مهرا و دقصاص له منکرڅخه بياکه انکار وکړي دنفس له قصاص نه نو قيد کړای کيږي ترڅوچې اقرار وکړي ياقسم واخلي او ترنفس په کم کې قصاص ترې اخيستل کيږي .

**تشريح** :(۶)که دنکاح دعوى وه که دخاوندله طرفه وي يادښځي له طرفه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدله مدعى عليه څخه قسم نه اخيستل کيږي،دصاحبينو رحمهما الله په نزدقسم ترې اخيستل کيږي،دامام ابوحنيفة رحمه الله او صاحبينو رحمهما الله ترمنځ دا اختلاف په لاندي امورو کې هم شته :**نمبر - ۱** په رجعت کې مثلاً دعدت تيريدو نه وروسته خاونددعوى وکړي چې ماپه عدت کې دننه رجوع

كړي ده او ښځه ددې انكاركوي.
نمبر ۲-په فئ كې يعنې په رجوع كې مثلاً د ايلاء د مودې تېرېدو نه وروسته خاوند دعوى وكړي چې ما د ايلاء په موده كې له ايلاء ځنې رجوع كړي ده او ښځه ددې ځنې انكاروكړي . نمبر ۳-په رقت كې، مثلاً په يو مجهول النسب ځايې دعوى وكړه چې دا زما مرېى دى او هغه له دې ځنې انكاروكړي . نمبر ۴-په استيلاد كې، مثلاً منځې په مولى دعوى وكړه چې زه دهغه ام ولديمه او بادار له دې ځنې انكاروكړي.
نمبر ۵- په نسب كې ،مثلاً يو ځاپه بل دعوى وكړه چې دا زما زوى دى او هغه له دې ځنې انكاروكړي.
نمبر ۶-په ولاء كې مثلاً يو ځا دعوى وكړه چې فلان سړى زما مولى عتاقة يا مولى الموالات دى او هغه له دې ځنې انكاروكړي . نمبر ۷-په حدود و كې ،مثلاً يو ه سړي بل ته وويل چې تا پر ما باندې د زنا تهمت لګولى دى چې هغه ثابته نه ده نو پر تا باندې حد قذف دى او مدعى عليه له دې ځنې انكاروكړي . نمبر ۸-په لعان كې، مثلاً ښځه په خاوند باندې دعوى وكړي چې ده پر ما باندې دلعان تهمت لګولى دى او خاوند له دې خبرې ځنې انكاركوي، نو په دغو ټولو امورو كې د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد له منكر ځنې قسم نه اخيستل كېږي او د صاحبينو رحمهما الله په نزد له حدودو او لعان علاوه په ټولو كې قسم اخيستل كېږي .
د صاحبينو رحمهما الله دليل دادى چې داستحلاف فائده داده چې دانكار په صورت كې پر منكر باندې فيصله كېږي او انكاركول هم يو قسم اقرار دى ځكه انكار د هغه پر دروغو باندې دال دى او په مذكوره امورو كې اقرار جاري كېږي نو استحلاف هم جاري كېږي، او همدا رنګه مذكوره امور داسې دي چې سره له شبهې ثابتېږي نو دا امو الو په شان په دې كې استحلاف جاري كېږي، البته حدود داسې نه دي ځكه هغه په معمولي شبهه سره له منځه ځي نو ځكه په حدود و كې استحلاف نه جاري كېږي، او لعان ځرنګه چې د حد په معنى دى ځكه نو په هغه كې هم استحلاف نه جاري كېږي، د امام صاحب رحمه الله دليل دادى چې دلته له قسم اخيستلو ځنې انكاركول اقرار نه دى كه نه نو مجلس د قضاء به يې شرط نه واى بلكې يو قسم اباحت او بذل دى چې مدعى عليه جرأت وكړچې مدعي ته مدعى به وركوي او په مذكوره امورو كې د اباحت او بذل نفاذ نه راځي ځكه په دغو امورو كې له قسم ځنې د انكار په صورت كې فيصله نه كېږي .
**فائده** :فتوى د صاحبينو رحمهما الله پر قول ده لمافي الدرالمختار:والحاصل ان المفتى به التحليف في الكل الافي الحدود(الدر المختار على هامش ردّالمحتار:۳/ ۴۷۳) وفي ملتقى الابحر :وعندهما يحلف وبه يفتى كمافي قاضيخان وهو اختيار فخر الاسلام على البزودى معللا بعموم البلوى(ملتقى الابحر مع مجمع الانهر:۳/ ۳۵۱)
(۷)امام فخرالدين (دا هغه امام فخرالدين دى چې د قاضيخان په نامه سره مشهور او صاحب فتاوى دى ) فرمايلي دي چې فتوى پر دې باندې ده چې منكر ته په دغو شپږو امورو كې قسم وركول كېږي يعنې په نكاح ،رجعت،فئ،رق،نسب او ولاء كې هم قسم وركول كېږي ،مګر سوال دادى چې مخكې خو نه شيان ذكر شوي دي بيا د شپږو شيانو په باره كې د امام قاضي خان د فتوى نقل كولو څه مطلب دى ؟ جواب :له نهو ځنې په دوو شيانو يعنې په حد او لعان كې په اتفاق سره قسم نشته،له باقي اوو ځنې استيلاد د نسب يا رق ملحق دى ځكه په هغه كې يا د نسب دعوى وي يا د رقيت ځكه په هغه كې هم قسم نشته نو مختلف فيه شپږ شيان پاتې شو.

(۸)که غل دغلا څخه انکار وکړي نوله هغه څخه قسم اخیستل کیږي او که هغه له قسم اخیستلو څخه انکار وکړ نو د مال ضامن ګرځي مګرلاس یې نه غوڅیږي،ځکه دغله په فعل پورې دوې خبرې متعلقې دي یو خو د مال ضمانت دی په هغه کې له قسم کولو څخه انکار موثر دی نو ځکه له قسم څخه د انکار په صورت کې د مال ضامن ګرځي او دوهمه خبر دلاس غوڅیدل دی په هغه کې له قسم کولو څخه انکار موثر نه دی ځکه لاس غوڅیدل حد دی اوله قسم کولو څخه انکار کول داسې اقرار دی چې شبهه پکې ده او د شبهې په وجه حد ساقطیږي نوله قسم څخه د انکار کولو په صورت کې د غله لاس نه غوڅیږي

(۹)قوله والزوج اذاادعت المرأة الخ ای ویستحلف الزوج اذاادعت المرأة الخ،یعني که چیرته یوه ښځه دا دعوی وکړي چې زما خاوندله ماسره ترصحبت کولونه مخکې ماته طلاق راکړی دی اودهغې خاوندله طلاق ورکولو څخه انکار کوي نو دهغې خاوندته قسم ورکول کیږي اوکه هغه له قسم اخیستلو څخه انکار وکړي نوپه اتفاق سره د نصف مهر ضامن ګرځي او هغې ښځې ته به یې ورکوي ځکه په اتفاق سره په طلاق کې قسم اخیستل جاري کیږي خاص بیا چې مال مقصود وي،نوله قسم څخه دانکار په وجه طلاق مخکې تردخول ثابتیږي او د طلاق قبل الدخول په صورت کې پر زوج باندې نصف مهر لازمیږي .

(۱۰)قوله وجاحدالقودالخ ای ویستحلف جاحدالقودالخ،یعني که چا په بل چاد قصاص دعوی وکړي اومدعی علیه انکار وکړي په داسې حال کې چې له مدعی سره ګواهان نشته اوله مدعی علیه څخه دقسم اخیستلو مطالبه کوي نوپه اتفاق له مدعی علیه څخه قسم اخیستل کیږي ،بیاکه مدعی علیه له قسم اخیستلو څخه انکار وکړنو ورته وبه ګورو چې دعوی د نفس (یعني قتل نفس ) ده او که تر هغه کم جنایت دی .که چیرته دقتل نفس دعوی وه نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد مدعی علیه قید کړای کیږي ترڅو چې قسم واخلي یا په جنایت باندې اقرار وکړي ځکه د نفس معامله باریکه ده چې هیڅکله اباحت نه پکې جاري کیږي نو د دعوی نفس په صورت کې خالص له قسم څخه د انکار په وجه د قصاص حکم نه کول کیږي .

او که دعوی تر قتل نفس په کم جنایت کې وه نوله قسم څخه د انکار په وجه پر هغه قصاص لازمیږي ځکه اطراف ملحق بالاموال دي او په اموالو کې بذل او اباحت جاري کیږي نو په اطرافو کې هم جاري کیږي او انکار له قسم نه اباحت دی،دصاحبینو رحمهماالله په نزد په دواړو صورتو کې پر هغه باندې تاوان لازمیږي ځکه له قسم څخه انکار کول داسې اقرار دی چې شبهه پکې ده او قصاص نه په ثابتیږي نو ځکه تاوان واجبیږي

.

**فائده** :دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله :ولم أره من یصرح بالترجیح لواحد من القولین الاانّه قد اقتصر علی قوله المتون واهتم الشارحون بدلیل قوله ایضافالعمل بقوله مالم یوجد الصارف عنه من التصریح بالترجیح والفتوی (هامش الهدایة : ۳/ ۲۰۴)هکذا یظهر من صنیع امام الهدایة حیث اخر دلیله .

(۱۱)ولو قال المدعی لی بینة حاضرة وطلب الیمین لم یستحلف وقیل لخصمه اعطه کفیلا بنفسک ثلاثة ایام فان ابی لازمه ای دار معه حیث سار (۱۲)ولو غریبالازمه قدر مجلس القاضی.

**ترجمه** : او كه وويل مدعي چې زما ګواهان حاضر دي او قسم يې طلب كړ نو قسم نه شي اخيستلاى بلكې ويل كيږي د هغه خصم ته چې وركړه ده ته كفيل د خپل ځان دري ورځي پياكه هغه انكار وكړ نو مدعي ته دي ورپسې شي چيرته چې هغه ځي دى دي هم ورپسې لاړ شي او كه هغه مسافر وو نو ورپسې دي شي د قاضي تر مجلس پورې.

**تشريح** :(۱۱) كه مدعي وويل چې زما ګواهان په ښار كې موجود دي ،مګر هغه د ګواهانو حاضرولو پرځاى له مدعى عليه څخه د قسم اخيستلو مطالبه وكړه نو د هغه له مدعى عليه څخه قسم نه اخيستل كيږي ،ځكه مدعي د استحلاف حق هغه وخت لري چې دى د ګواهانو حاضرولو څخه عاجز شي د عجز بغير هغه د استحلاف حق نه لري ،البته مدعى عليه ته ويل كيږي چې ته تر دريو ورځو پورې مدعي ته د خپل نفس ضامن وركړه چې په دغو دريو ورځو كې دى خپل ګواهان راحاضر كړي ،دا د دې لپاره چې مدعى عليه ورك نه شي چې بيا به د مدعى حق ضائع شي ،بياكه چيرته مدعى عليه ضامن وركړ نو بهتره ده كه نه مدعى ته دي حكم وكړل شي چې په مدعى عليه پسې شي چيرته چې هغه ځى دى به ورپسې ځي چې د مدعي حق ضائع نه شي .

(۱۲) قوله ولو غريبا الخ ،اى لو كان المدعى عليه مسافر الازمه الخ .يعني كه چيرته مدعى عليه د لارې مسافر وو نو بيا كه چيرته دى مدعي ته ضامن وركوي نو تر هغه پورې چې د قاضي محكمه قائمه وي ،او كه ضامن نه وونو مدعي به په ده پسې وي هم تر مذكور وخت پورې ځكه تر دې د زيات وخت لپاره په ضامن اخيستلو يا په پسې كيدلو كې د مسافر لپاره ضرر دى چې مسافر له سفر څخه راګرځوي .

(۱۳) وَالْيَمِينُ بِاللهِ تَعَالى (۱۴) لا بِطلاقٍ وَعِتاقٍ اِلّا اِذا الحَّ الخَصْمُ (۱۵) وَتُغلّظُ بِذِكرِ اَوْصَافِهِ (۱۶) لا بِزَمانٍ وَمكانٍ (۱۷) وَيُستَحلَفُ اليَهُودِيّ بِاللهِ الّذى اَنْزَلَ التَورٰةَ عَلى مُوسٰى وَالنَصْرانِيُّ بِاللهِ الّذى اَنْزَلَ الاِنْجِيلَ عَلى عِيسٰى وَالمَجُوسِيُّ بِاللهِ الّذى خَلَقَ النّارَ وَالوَثَنِيُّ بِاللهِ (۱۸) وَلا يُحلّفُونَ فِى بُيُوتِ عِبادَتِهِم

**ترجمه** :او قسم په الله تعالى سره معتبر دى نه چې په طلاق او عتاق سره مګر دا چې ډير ټينګار وكړي خصم ،او قسم دي مغلظ كړي د الله تعالى د اوصافو په ذكر كولو سره نه په زمان او مكان سره او قسم دي اخلي له يهودي څخه په دې دول چې په هغه الله تعالى سره قسم چې نازل يې كړى دى تورات پر حضرت موسى عليه السلام باندې او له نصراني څخه دا دول چې په هغه الله قسم چې نازل يې كړى دى انجيل پر حضرت عيسى عليه السلام باندې او له مجوسي څخه دا دول چې په هغه الله قسم چې اور يې پيدا كړى دى او له بُت پرست څخه دي په الله سره قسم واخلي او له دغو مذكورو كسانو څخه دي قسم نه اخلي د هغوى په عبادت خانو كې .

**تشريح** :(۱۳) منكر ته كه يې قسم وركاوه نو د الله تعالى په نامه دي وركوي ځكه قسم خالص د الله تعالى په نامه سره كيږي د غير په نامه نه كيږي لقوله ﷺ :مَن كانَ مِنكُم حالِفًا فَلْيَحلِف بِاللهِ اَوْ لِيَذَر (يعني څوك چې له تاسو نه قسم اخيستونكى وي هغه ته پكار دى چې په الله تعالى سره قسم واخلي يا دې پريږدى ) حضرت ابن مسعود ﷺ فرمايي چې كه زه د الله تعالى په نامه سره د دروغو قسم واخلم نو دا بهتر دى تر هغه چې زه د غير په نامه قسم خورم .

(۱۴)قوله لابطلاق وعتاق اى لايكون اليمين معتبزا بطلاق وعتاق ،يعني له مدعى عليه څخه په طلاق ياعتاق قسم نه اخيستل كيږي مثلاً په دي ډول چې ووايي كه به داشي دمدعي وي نوزمابنځه دي طلاقه وي يادي زمامريي آزادوي لمارَوينَا ،ظاهرروايت دى،مګرد ځينوفقهاؤپه نزدپه اوسنى زمانه كي كه مدعى عليه ډيرجنجالي اوبي باک وواومدعي دطلاق ياعتاق په قسم باندي ټينګارو كړنودقاضي لپاره جائزه ده چي له هغه څخه دطلاق ياعتاق قسم واخلي ځكه په اوسنى زمانه كي خلک دالله له قسم څخه كم ويريږي اودطلاق اوعتاق څخه زيات ويريږي ځكه يې دطلاق اوعتاق قسم وركول جائزبللى دى ،مګر صحيح اومفتى به ظاهرروايت دى ،البته دضرورت پربناء كه دقاضى رايه وه نودطلاق اوعتاق قسم وركول جائزدى خوكه چيرته هغه له داسي قسم اخيستلوڅخه انكاروكړنودهغه په خلاف فيصله نه كوله كيږي همداوجه ده چي كه چيرته قاضي فيصله وكړه نه نافذيږي ،كمافى مجمع الانهر:وقيل ان الح الخصم صح فى زماننالكن لايقضى عليه بالنكول لانه نكل عماهومنهى عنه شرعاحتى لوقضى لاينفذوفى البحر الفتوى على عدم التحليف بالطلاق والعتاق وهوظاهر الرواية والصحيح مافى ظاهر الرواية (مجمع الانهر:۳/۳۵۵)

(۱۵)اوكه غواړي چې قسم ښه مؤيدكړي نودالله تعالى له اسم ذاتى سره دي اسماء صفاتى هم ذكركړي چې قسم ښه مؤكدشي مثلاً داسي دي ووايي :والله الذى لااله الاهو عالم الغيب والشهادة الذى يعلم من السر ويعلم من العلانية،اوپه دي كي كمى اوزياتوب هم كولاى شي ځكه ځينى خلک داسي هم وي چي پرغيرمغلظ قسم باندي جرأت منږوي اوله مغلظ قسم څخه ځان ګوښه كوي .

(۱۶)قوله لابزمان ومكان اى لاتغلظ اليمين على المسلم بزمان ومكان،يعني پرمسلمان باندي په زمانه (مثلاًجمعې ورځ ياله مازديګروروسته) يامكان (مثلاًمقام ابراهيم يامكه مكرمه يامنبرنبوي ﷺ ) سره دقسم تغليظ واجب نه دى ځكه په قسم سره دهغه معبودتعظيم مقصوددى دچاپه نامه چي قسم خوړل كيږي اوداتعظيم دوخت اومكان له ذكركولوبغيرحاصليږى اوهمدارنګه ترمخصوصى زماني پوري په انتظاركولواوترمخصوص مكان پوري په تللوكي دمدعي په حق (يمين) كي تاخيرراځي ځكه نوقسم په زمانه اومكان سره نه مغلظ كيږى .

(۱۷)له يهودي څخه كه يې قسم اخيست نوداډول به يې ترې اخلي چي په هغه الله سره قسم چي پرموسى عليه السلام يې تورات رانازل كړى دى،اوله نصراني څخه كه يې قسم اخيست نوداډول به يې ترې اخلي چي په هغه الله سره قسم چي پرحضرت عيسى عليه السلام يې انجيل رانازل كړى دى ،اوله مجوسي كه يې قسم اخيست نوداډول به يې ترې اخلي چي په هغه الله سره قسم چي اوريې پيداكړى دى ،داځكه چي پرهريوه باندي دقسم تغليظ دهغه داعتقادمطابق كيږي،اوله بت پرست څخه په الله تعالى سره قسم اخلي په بت به يې نه اخلي ځكه ټول كفارپرالله تعالى باندي اعتقادلري كماقال الله تعالى : (وَلَئِن سَأَلْتَهُم مَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ ) يعني كه ته له دغوبت پرستانوڅخه پوښتنه وكړې چي چاداآسمانونه اوځمكه پيداكړي دي نوخامخابه ووايي چي الله تعالى پيداكړي دي .

(۱۸)مګريهوداونصارى اومجوسيان به دهغوعبادت خانوته نه بيايي چي ‌بياهلته قسم ورڅخه اخلي بلكې دقاضي په محكمه كي به قسم وركول كيږي ځكه قاضي ته دهغوئ عبادت خانوته داخليدل

مکروه دی.بلکې دهرمسلمان لپاره داممنوع دی چې ددو ئ عبادت خانوته داخليږی ولی ددوئ عبادت خانې دشيطانانو ديوځای کيدوځايونه دي.

(۱۹)ويحلف على الحاصل اى بالله مابينكما بيع قائم (۲۰) ونكاح قائم ولايجب عليك رده وماهى بائن منك الآن فى دعوى البيع والنكاح والغصب والطلاق (۲۱) وان ادعى شفعة بالجوار او نفقة المبتوتة والمشترى او الزوج لايريها يحلف على السبب (۲۲) وعلى العلم لو ورث عبدا فادعاه آخر (۲۳) وعلى البتات لو وهب له او اشتراه (۲۴) ولو افتدى المنكر يمينه او صالحه منها على شئ صح ولم يحلف بعده.

**توجمه**:اوقسم دي واخيستل شي پرحاصل دعوى باندي يعنې داسي دي ووايې والله زمونږترمنځ بيع قائمه نه ده اونکاح قائمه نه ده اوواجب نه دی پرماباندي هغه ردول دهغه اونه دی جلاله ماڅخه فی الحال د بيع ،نکاح اوغصب اوطلاق په دعوى کې اوکه يې دعوى وکړه دشفعه دګاونديتوب په وجه يادبائنه مطلقه دنفقې اومشتري يازوج دهغه عقيده نه لري نوقسم دي واخيستل شي پرسبب دعوى باندي اوپرعلم باندي که وارث شوى وودمريې بيادهغه بل چادعوى وکړه اوپرامرواقعي باندي که هغه ته هبه کړل شوې وه يا ده اخيستی ووکه عوض ورکړي منکردخپل قسم څخه ياصلح وکړي له مدعي سره پريوشي باندي نوداصحيح دی ترديوروسته قسم نه شي ورنه اخيستلای .

**تشريح** :(۱۹)دقسم په باره کې قاعده داده چې که دعوى دداسي سبب وه چې رفع کيدای نه شوای لکه عتق،چې له واقع کيدووروسته هيڅکله رفع کيدای نه شي نوقسم پرداډول سبب باندي کيدای شي مثلاداسي به وايې چې والله ماخپل مريی نه دی آزادکړی اوکه دعوى دداسي سبب وه چې رفع کيدای شوای لکه بيع چې له وقوع وروسته فسخ کيدای شي نوپه دي کې قسم پرحاصل اوحکم باندي کيږي مثلايوچاپه بل حاضرباندي دعوى وکړه چې ماله ده څخه دده مريی په عوض دزرودرهمونواخيستی دی اومدعی عليه له دي څخه انکاروکړنومنکربه داسي قسم اخلي چې والله زمااوددي مدعي ترمنځ فی الحال په دغه مريي کې عقدبيع قائمه نه ده،پرسبب باندي به قسم نه اخلي يعنې داسي به نه وايې چې والله مادغه مريی پرده باندي نه دی خرڅ کړی،ځکه چې کيدای شي چې ده دي مريی خرڅ کړی وي بيادي بيع فسخ شوې وي .

(۲۰)قوله ونكاح قائم اى بالله مابينكما نكاح قائم فى الحال اذاكانت الدعوى فى النكاح،يعنې که چيرته دعوى دنکاح وه نوله منکرڅخه به داسي قسم اخيستل کيږي چې والله زمونږترمنځ فی الحال نکاح نه ده قائمه،داسي به نه وايې چې والله ماله دې سره نکاح نه ده کړې ځکه چې داکيدای شي چې نکاح دي کړي وي بيادي په طلاق بائن سره نکاح ختم کړي وي،که مدعي په مدعى عليه باندي دغصب دعوى وکړه نوله مدعي عليه څخه دي داډول واخيستل شي چې والله مدعی پرماباندي دمدعى به دواپس کيدواستحقاق نه لري،داډول به نه وايې چې والله مانه دی غصب کړی،ځکه چې امکان لري چې ده دي غصب کړی وي بيادي ضمان اداکړی وي دی يې مالک ګرځيدلی وي ،همدارنګه که چيرته ښځې په خاوندطلاق دعوى وکړه اوهغه منکرشونوله خاوندڅخه به داډول قسم اخيستل کيږی چې والله دغه ښځه له ماڅخه بائنه نه ده په هغه وجه سره چې دې بيان کړې ده،داډول به قسم نه اخلي چې والله مادي ته طلاق نه دی ورکړی ځکه کيدای شي چې طلاق دي ورکړی وي بيادي له بينونت وروسته بيرته تجديدنکاح کړی وي .

**فائده**: دمصنف رَحِمَهُ اللّٰه دغه عبارة :في دعوى البيع ،تعلق په ماقبل کې له :بالله ماپينکمابيع قائمٌ،سره دی او د(والنکاح) تعلق له (ونکاح قائمٌ) سره دی او(والغصب ) تر(ومايجب عليک ردّه) پورې تعلق لري او د(والطلاق) تعلق له (وماهي بائن منک الان) سره دی .

(۲۱)که يو چا د ګاونډيتوب په وجه د خرڅې شوې ځمکې د خپل حق شفعه دعوی وکړه يا کومې ښځې ته چې يې طلاق بائن ورکړی دی هغې دعدت په وخت کې دنفقې دعوی وکړه،په داسی حال کې چې دمشفوعه ځمکې اخيستونکی دګاونډيتوب په وجه دحق شفعه اعتقادنه لري،او دمطلقې خاوند ددې عقيده نه لري چې دمطلقې خاوند دبائنې دخوراک اونفقې ذمه واردی مثلاً دواړه شافعي مسلک دي(دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰه په نزدګاونډي ته حق دشفعه حاصل نه دی اونه دهغه په مذهب کې دمطلقې بائنې خوراک اونفقه دخاوندپرذمه واجبه ده ) نوپه داسي صورت کې دې هغه مشتري ياخاوندته پرسبب باندې قسم ورکول شي پرحاصل دي نه ورکول کيږي مثلاً له مشتري څخه دې داډول قسم واخلي چې والله دامکان مانه دی اخيستی داسی دي نه وايې چې زماپرذمه دهغه حق شفعه نشته ځکه په دغه قسم کې دی دخپل اعتقادمطابق دربښتياويلوپه وجه نه حانث کيږي په دي کې دمدعي نقصان دی ځکه مدعی عليه له داډول قسم څخه احترازنه کوي،اوله خاوند څخه دې داډول قسم واخلي چې والله مادې ته طلاق بائن نه دی ورکړی داسې قسم دي نه ورڅخه اخلي چې والله زماپرذمه دهغې نفقه نشته ځکه په دغه قسم کې دی دخپل اعتقادمطابق دربښتياويلوپه وجه نه حانث کيږي نوپه دي کې دمدعی نقصان دی ځکه مدعی عليه له داسې قسم احترازنه کوي .

(۲۲)قوله وعلى العلم لوورث الخ اى ويحلف على العلم لوورث الخ ،يعنې که چاته يو مريی په ميراث کې په لاس ورغی بل چاپه هغه مريې باندې دعوی وکړه چې دازمادی نومدعی عليه ته پرعلم باندې قسم ورکول کيږي يعنې مدعی عليه به داډول وايې چې والله زه نه يم خبرچې دامريی کوم چې زماپه لاس کې دی دادي مدعي دی،يعنې قطعی قسم دي به نه اخلي چې والله دامريی دمدعي مِلک نه دی ځکه وارث ته څه پته ده چې دهغه مورِث دامريی له کومه اوڅرنګه لاس ته راوړی دی نوځکه دي له هغه څخه داډول قسم نه اخيستل کيږي چې والله دامريی ددې مدعي مِلک نه دی .

(۲۳)قوله وعلى البتات لوزهب الخ اى ويحلف على البتات لووهب الخ،يعنې که چاته يو مريی چاهبَه کړياده يو مريی واخيست بيا په هغه مريې باندې چادعوی وکړه اوله مدعی سره ګواهان نه وو ،نوله مدعي عليه څخه به قطعی قسم اخلي يعنې داسې دې ووايې چې والله دامريی ددغه مدعي ملکيت نه دی،ځکه دې سړي ته دقسم اخيستلوداجازې دليل (يعنې خريدياهبَه) موجوددی ځکه چې هغه شرعًادخريداوهبَه په وجه دخپل مِلک قسم خوړلای شي نوضروردمدعي دنه مِلک هم قسم خوړلای شي .

(۲۴)که چادبل په قبضه کې په موجودمال دعوی وکړه اوله مدعي سره دګواهانودنه وجودپه ... غوارې چې مدعی عليه ته قسم ورکړي مګرمدعی عليه له قسم څخه دځان خلاصولولپاره مدعی دقسم ... فديه مثلاًلس درهمه ورکړل ياېې له مدعي سره پرلسودرهمونوباندې صلح وکړه نودافديه ورکول ياصلح

کول جائزه ده، اوداله حضرت عثمان ﷺ څخه مروي دی چې پريوه موقع پرهغه باندي قسم راته نوده دقسم څخه دځان خلاصولولپاره دقسم پرځای فديه ورکړې وه، اومدعي ته له فديه ورکولو ياصلح کولوداحق نشته چې هغه له مدعی عليه څخه کله هم پردغه مدعی باندي قسم واخلي ځکه مدعی خپل حق پخپله ساقط کړی دی.

## باب التحالف

### داباب له دواړوڅخه هريوه ته دقسم ورکولوپه بيان کې دی

مصنف رحمه الله تردي مخکي له يوه څخه دقسم اخيستلواحکام بيان کړل اوس دلته له دواړوڅخه دقسم اخيستلواحکام بيانوي اوځرنګه چې دوه طبعًاتريوه مخکي وي ځکه يې نووضعًاهم ددووحکم موخرکړی دی چې وضع اوطبع سره موافق شي.

(۱)اِخْتَلَفَا فِي قَدْرِ الثَّمَنِ اَوِ الْمَبِيعِ قَضَى لِمَنْ بَرْهَنَ(۲)وَاِنْ بَرْهَنَا فَلِمُثْبِتِ الزِّيَادَةِ(۳)وَاِنْ عَجَزَا وَلَمْ يَرْضَيَا بِدَعْوَى اَحَدِهِمَا تَحَالَفَا(۴)وَبُدِئَ بِيَمِينِ الْمُشْتَرِي(۵)وَفَسَخَ الْقَاضِي بِطَلَبِ اَحَدِهِمَا(۶)وَمَنْ نَكَلَ لَزِمَ دَعْوَى الْاٰخَرِ.

**ترجمه**:که اختلاف راغی دبائع اومشتري ترمنځ دثمن په مقدارکې يادمبيع په مقدارکې نوفيصله دهغه چالپاره کيږي چالره چې ګواهان وي اوکه دواړوګواهان درلودل نودهغوګواهانوپه خبره فيصله کيږي چې زيادت ثابتوي اوکه دواړه عاجزشول اودواړه راضي نه وودبوه په دعوی سره نودواړه دي قسم واخلي اوشروع به کيږي دمشتري په قسم سره اوفسخ دي کړي قاضي ديوه په طلب سره اوکوم يوه چې انکاروکړپرهغه لازميږي دهغه بل دعوی.

**تشريح**:(۱)که دبائع اومشتري ترمنځ اختلاف راغی مثلامشتري دکم قيمت دعوی کوي اوبائع دزيات قيمت دعوی وکړي يابائع دمبيع په کم مقداراقراروکړي اومشتري ترهغه دزيات دعوی وکړي بياله دواړوڅخه يوپرخپله مدعی باندي ګواهان قائم کړي نوفيصله دهغه په حق کې کيږي ځکه دهغه دعوی له بيّنه سره ده اودهغه بل دعوی صرف دعوی ده نودصاحب بيّنه جانب اقوی دی ځکه دبيّنه مطابق پرقاضي باندي دهغه په حق کې فيصله کول واجبه ده.

(۲)که دواړوپرخپلومدعی ووباندي ګواهان قائم کړل نودزيادت ثابتونکي ګواهان معتبريږي نوپه اول صورت کې دبائع ګواهان معتبردي اوپه دوهم صورت کې دمشتري ګواهان معتبردي ځکه کوم ګواهان چې زيادت ثابتوي هغه دکمبوت ثابتونکي ګواهان له دغوسره په زيادت کې معارض نه دي نوزيادت ثابتوونکي ګواهان له معارضي څخه سالم دي نوددوئ ګواهي قبليږي.

(۳)که دواړه دګواهانوڅخه عاجزشول يعنې له يوه سره هم ګواهان نه وونومشتري ته دي وويل شي چې ياخوته په دغوثمنوراضي شه چې بائع کومه دعوی لري که نه موږستاسي ترمنځ بيع فسخ کوو، دااول صورت حکم دی په دوهم صورت کې دي بائع ته وويل شي چې يادومره مقدارمبيع مشتري ته حواله کړه خومره چې مشتري دعوی کړي ده که نه موږبيع فسخ کوو، ځکه مقصودقطع تنازع ده اودادقطع تنازع جهت

دی ځکه کله دواړه دبیع پر فسخ کیدو باندي نه راضی کیږي چې کله یو ه شي نو دواړه راضي کیږي ،اوکه دواړه راضي نه وو نو حاکم دي له هريوه ځخه دهغه بل پردعوی باندي قسم واخلي لقوله ﷺ :اذااختلف المتبايعان والسلعة قائمة بعينهاتحالفاوترادا(يعنې کله چې بائع اومشتري اختلاف سره وکړي اومبيع قائمه وي نودواړه دي قسم واخلي اوبيع دي ردکړي) همدارنګه له بائع اومشتري ځخه هريومدعي هم دی اومدعی علیه هم دی،نومدعی علیه په حیثیت سره دي له هريوه نه قسم واخلي .

(۴)بيادي قاضی دمشتري په قسم شروع وکړي ځکه په دوئ کې دمشتري انکارډيرسخت دی ولی مطالبه دثمن مخکي دمشتري ځخه کيږي اوداچې مخکي له مشتري ځخه مطالبه دثمن کيږي نودده انکاربه هم مخکي وي ځکه نوبايد دقسم ابتداء هم اول له ده ځخه وشي .

(۵)بياکه دواړوقسم واخيست نوقاضي دي ددوئ ترمنځ بيع فسخ کړي ځکه چې کله دواړوقسم واخيست نوبيع بلابدل معين پاتې شوه نوفاسده شوه،ځيني حضرات وايې چې په نفس تحالف سره بيع فسخ کيږي همدادامام شافعی رحمه الله قول دی ليکن اول صحيح دی ،اوله دواړوځخه چې يويې هم دبيع دفسخ کولومطالبه وکړي نوقاضی دي بيع فسخ کړي لقوله ﷺ :اذااختلف المتبايعان والسلعة قائمة بعينهاتحالفاوترادا(چې کله بائع اومشتري اختلاف سره وکړي اومبيع قائمه وي نودواړه دي قسم واخلي اوبيع دي ردکړي) .

(۶)که له دواړوځخه يوه له قسم ځخه انکاروکړنوپرهغه باندي دهغه بل دعوی لازميږي ځکه له قسم ځخه انکارکوونکي قرباني وکړه خپله دعوه يې پريښودله نودهغه بل دعوی بغيرمزاحم پاتې شوه نوځکه دهغه دعوی ثابته شوه .

(۷)وَاِنِ اخْتَلَفَافِی الْاَجَلِ اَوْفِی شَرطِ الْخِيَارِ اَوْفِي قَبْضِ بَعْضِ الثَّمَنِ(۸)اَوْبَعْدَهلاکِ الْمَبِيعِ اَوْبَعْضِهِ(۹)اَوْفِی بَدَلِ الْکِتَابَةِ(۱۰)اَوْفِی رَاْسِ الْمَالِ بَعْدَاقَالَةِ السَّلَمِ لَمْ يَتَحَالَفَاوَالْقَوْلُ لِلْمُنْکِرِمَعَ يَمِيْنِهِ(۱۱)وَلَوِاخْتَلَفَافِی مِقْدَارِالثَّمَنِ بَعْدَالْاِقَالَةِ تَحَالَفَاوَعَادَالْبَيْعُ الْاَوَّلُ.

**ترجمه** :که ددواړواختلاف راغی په مدت کې ياپه خيارشرط کې يادبعضو ثمنوپه قبض کولوکې .يادکل مبيع دهلاکيدووروسته يادبعض مبيع ،ياپه بدل کتابت کې ،ياپه رأس المال کې له اقاله وروسته نوقسم دي نه اخلي اوقول دمنکرمعتبردی دهغه له قسم سره ،اوکه دواړواختلاف وکړپه مقداردثمنوکې له اقاله وروسته نودواړه دي قسم واخلي اولومړی بيع بيرته راګرځي .

**تشريح** :(۷)که بائع اومشتري په موده کې اختلاف سره وکړ(يعنې په دي کې يې اختلاف وکړچې داداء ثمن موده مقرره وه که نه،ياپې دمودې په مقدارکې اختلاف وکړ)ياپې په خيارشرط کې اختلاف وکړيووايې چې ماله خيارشرط ووا وهغه بل انکارکوي،ياپې دبعض ثمن په وصولولوکې اختلاف وکړنودواړوترمنځ تحالف نشته يعنې دواړه قسم نه شي اخيستلای ځکه دااختلاف له مبيع اوثمن ماسواپه بل شي کې دی نوداسي دی لکه دثمن په کمولويامعاف کيدوکې چې اختلاف وي چې په هغه صورت کې په اتفاق سره تحالف نشته اوچې کله دواړه قسم نه اخلي نوکوم يوچې دخيارشرط يامودې ځخه منکردی دهغه قول له قسم سره قبليږي ولی دادواړه شيان دشرط په وجه عارضيږي اوقول دهغه چامعتبريږي چې له عوارضو ځخه منکروي .

(۸)قوله اوبعدهلاک المبیع اوبعضه ای اواختلفافی مقدارالثمن بعدهلاک الثمن الخ،یعني که دمبیع دتلف کیدو وروسته ددواړوپه مقدارثمن کې اختلاف راغی نودشیخینو رحمهما الله په نزددواړه به یودبل سره قسم نه اخلي،اوپه ثمن کې دمشتري قول معتبریږي،دامام محمد رحمه الله په نزدبه دواړه قسم اخلي اوددواړوپه قسم اخیستوسره بیع فسخ کیږي اودتلف شوې مبیع قیمت به ورکول کیږي، دشیخینو رحمهما الله دلیل دادی چې دمشتري دقبض وروسته تحالف خلاف قیاس دی ځکه بائع ومشتري ته هغه مال سپارلی دی چې دهغه دعوه کوله خوځنګه چې په شرع کې داتحالف راغلی دی نوچې چیرته راغلی دی ترهغه ځایه مقصوردی هغه داچې مال مبیع بعینه قائم وي اوپه داسي حال کې دتحالف نتیجه دارا وځي چې دبیع دفسخ کیدووروسته داموقع نشته ځکه مبیع تلف کیږي عقدِبیع پورته کیږي یعنې محل نه پاتیږي نوداهغه موقع نه ده چیرته چې شرع وارده شوې ده.

**فائده**:دشیخینو رحمهما الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله :قوله لم یتحالفاعندابی حنیفة رحمه الله وابی یوسف رحمه الله الخ ،والراجح قول الشیخین ،فالقول قول المشتری مع یمینه قال فی مجمع الانهر:ولاتحالف بعدهلاک کل المبیع فی یدالمشتری ویحلف المشتری عندالشیخین علی الصحیح وکذابعدخروجه عن ملکه وتعیبه بمالایریدبه.(هامش الهدایة:۳/۲۰۹)

(۹)قوله اوبدل الکتابة الخ ای اواختلف المولی والمکاتب فی مقداربدل الکتابة ،یعنې که دمولی اومکاتب ترمنځ دبدل کتابت په مقدارکې جنجال راغی نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدله دواړوڅخه قسم نه اخیستل کیږي بلکې دمریې قول له قسم سره معتبریږي ځکه په عقدمعاوضه کې تحالف دحقوق لازمه ؤدانکارپه وخت کې کیږي په داسي حال کې چې پرمکاتب باندي بدل کتابت لازم نه دی ولی دی چې خپل ځان عاجزوګني بدل کتابت ساقطولای شي، اود صاحبینو رحمهما الله په نزدبه تحالف کیږي ځکه عقدکتابت عقدمعاوضه دی چې فسخ قبلوي نوپه دي وجه چې دبیع په معنی دی نوپه هغه کې تحالف جاري کیږي.

**فائده**:دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لمافی الدّرالمختار:ولاتحالف فی قدربدل کتابة لعدم لزومها(الدّرالمختار علی هامش ردّالمحتار:۴/۳۸۰)وفی مجمع الانهر:والقول للعبدمع یمینه لانکاره الزیادة وان اقام احدهمابینة قبلت وان اقامابینة المولی اولی لاثباتها الزیادة(مجمع الانهر:۳/۳٦۷)

(۱۰)قوله اوفی رأس المال الخ ای اواختلف رب السلم والمسلم الیه فی قدررأس المال الخ،یعنې په بیع سلم کې له اقاله وروسته درب السلم اومسلم الیه په رأس المال کې سره جنجال شورب السلم زیات مقدارياد وي اومسلم الیه په کم مقدارقائل دی نوله دواړوڅخه قسم نه اخیستل کیږي بلکې دمسلم الیه قول له قسم سره معتبریږي ځکه ربّ السلم دزیات مقدارمدعی دی اومسلم الیه دهغه منکردی اودګواهانو دنیستي په صورت کې دمنکرقول سره له قسم معتبردی،دمصنف رحمه الله قول :لم یتحالفا،په ماقبل کې له مذکورعبارت :له وان اختلفافی الاجل څخه بیاتر(وفی رأس المال الخ)پوري ترټولومسائلوتعلق لري.

(۱۱)اوکه دبیع له ماتولووروسته دبائع اومشتري دثمن په مقدارکې سره جنجال شومثلا مشتري یوزرياد وي اوبائع دپنځه سوه مدعي دی نوکه ددواړوګواهان نه وونوله دواړوڅخه دی قسم واخیستل شي اواقاله دي ردکړي لومړی بیع ته راګرځي یعنې ددوئ په اقاله سره بیع له منځه نه ځي بلکې بیع هم هغسې پاتی ده حتی چې دبائع حق په هغه ثمن پوری معلق شي چې مشتري بائع ته ورکړي وي اودمشتري حق په هغه

مبيع پوري معلق شی کومه مبيع چې دمشتري په قبض کې ده وجه يې داده چې په مطلق بيع کې دمبيع ترقبض کولومخکې که چيرته دمتبايعانوترمنځ جنجال راغلی نوله دواړوڅخه قسم اخيستل دقياس مطابق دی ځکه هريومدعي هم دی اومنکرهم دی نوپه اقاله کې هم که چيرته له اقاله وروسته بائع مبيع قبض کړې نه وه نوله دواړوڅخه قسم اخيستل دقياس مطابق دی اوچې کله له دواړوڅخه قسم واخيستل شي نواقاله فسخ کيږي ځکه نولومړی بيع ته راګرځي .

(۱۲) وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي الْمَهْرِ قُضِيَ لِمَنْ بَرْهَنَ (۱۳) وَإِنْ بَرْهَنَا فَلِلْمَرْأَةِ (۱۴) وَإِنْ عَجَزَ تَحَالَفَا وَلَمْ يُفْسَخِ النِّكَاحُ بَلْ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ فَقُضِيَ بِقَوْلِهِ لَوْ كَانَ كَمَا قَالَ أَوْ أَقَلَّ وَبِقَوْلِهَا لَوْ كَانَ كَمَا قَالَتْ أَوْ أَكْثَرَ وَبِهِ لَوْ بَيْنَهُمَا (۱۵) وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي الْإِجَارَةِ قَبْلَ الِاسْتِيفَاءِ تَحَالَفَا (۱۶) وَبَعْدَهُ لَا وَالْقَوْلُ لِلْمُسْتَأْجِرِ (۱۷) وَالْبَعْضُ مُعْتَبَرٌ بِالْكُلِّ .

**ترجمه** :که دښځې اوخاوندپه مهرکې اختلاف شونوفيصله دهغه چاپه حق کې کيږي چې ګواهان ولري اوکه دواړوګواهان پيش کړل نودښځې په حق کې فيصله کيږي اوکه دواړه له ګواهانوڅخه عاجزشول نودواړه دي قسم واخلي اونکاح نه فسخ کيږي بلکې فيصله په مهرمثل کيږي يافيصله دخاوندپرقول کيږي که چيرته مهرمثل دومره وو چې خاونديې دعوه لري ياترهغه کم ووا وفيصله کيږي دښځې پرقول که چيرته مهرمثل دومره ووڅومره چې ښځه يې دعوه کوي ياترهغه زيات ووا وپه مهرمثل سره که دد وئ ترمنځ ووا وکه دواړوا ختلاف سره وکړپه اجاره کې ترنفع حاصليدومخکې نودواړه دي قسم واخلي اوترنفع اخيستلووروسته نه،اوقول دمستاجرمعتبريږي اوبعض قياس دی پرکل باندي .

**تشريح** :(۱۲)که دخاونداوښځې په مهرکې اختلاف سره راغی خاونددعوی وکړه چې ماله دغې ښځې سره په زردرهمه نکاح کړې ده اوښځې دعوی وکړه چې په دوه زره درهمه تازه په نکاح کړې يم نوله دوئ څخه چې کوم يودخپلې دعوی مطابق ګواهان قائم کړي وي دهغه ګواهان قبليږي ځکه هغه خپله مدعی مدلله کړه .

(۱۳)اوکه زوجينوهريوه پرخپله دعوی باندي ګواهان قائم کړل نودښځې ګواهان قبليږي ځکه ښځه دزيات مقداردعوی کوي نودښځې په ګواهانوسره زيادت ثابتيږي نوځکه ددې ګواهان معتبريږي،خودښځې ګواهان هغه وخت معتبريږي چې کله مهرمثل ترهغه مقدارکم وي دکوم مقدارچې ښځه دعوی کوي ځکه په دي وخت کې دښځې ګواهان خلاف ظاهرثابتوي اوکوم چې خلاف ظاهرثابتوي هم هغه اولی دی اوکه چيرته مهرمثل له هغه سره برابروو چې ښځه يې دعوی کوي ياترهغه زيات وونوپه دغودواړوصورتونوکې دخاوندګواهان معتبريږي .

(۱۴)که له زوجينوڅخه هريودګواهانوڅخه عاجزشول نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدله دواړوڅخه قسم اخيستل کيږي اونکاح نه فسخ کيږي ځکه دتحالف اثريواځې دومره دی چې ددواړو دعوی باطله شوه اومهرنه دی بيان شوی چې دهغه څخه دنکاح په صحيح کيدوکې هيڅ خلل نه واقع کيږي ځکه چې مهرپه نکاح کې تابع وي،خوچې کله مهرنه دی بيان شوی نودهغې ښځې لپاره په مهرمثل سره حکم کيږي نوکه مهرمثل دومره ووپه کوم سره چې خاونداقرارکړی دی ياترهغه کم وونوپه څومره چې خاونداقرارکړی دی په

هغه باندي حکم کيږی ولی ظاهرحال دخاوند شاهددی اوکه مهرمثل دومره ووڅومره چې ښځې دعوی کړې ده یاترهغه زیات وونوپه څومره چې ښځې دعوی کړې ده په هغه قدرحکم کيږي ولی ظاهردښځې لپاره شاهددی اوکه مهرمثل درمیانه اندازه وویعني دخاوندتراقراري مهرزیات اودښځې تردعوی کم وونودښځې لپاره په مهرمثل سره حکم کيږی ولی چې کله دواړوقسم واخیست نونه ترمهرمثل زیات اونه کم ثابت شوڅکه په مهرمثل سره حکم کيږي.

(۱۵)که په عقداجاره کې دموجراومستاجرد معقودعلیه دمنافعوترحاصلیدومخکې سره اختلاف شومثلاموجروایې چې مادامریی تاته دیوې میاشتې لپاره په دوه سوه روپۍ درکړی وواومستاجروایې چې په سل روپۍ دې راکړی وونودواړه به قسم اخلي اوعقدبه فسخ کيږی څکه اجاره دبیع په شان عقدمعاوضه ده اوقابل فسخ ده نولکه بیع مخکې ترقبض دمبیع چې کوم حکم لري هغه حکم داجاري هم دی. کمامر.

(۱۶)قوله وبعده لاای لواختلف الموجروالمستاجربعداستیفاء المعقودعلیه لایتحالفان،یعني که کل معقودعلیه یعني دمنافعوترحاصلولوروسته ددواړواختلاف شونوپه اجماع سره به دواړه قسم نه اخلي اوقول دمستاجرقبليږي، دشیخینورحمهماالله په نزدخوڅکه چې ددوئ په نزددمعقودعلیه هلاکیدل دتحالف مانع دی،دامام محمد رحمه الله په نزدبه هم قسم نه اخلي څکه امام محمد رحمه الله چې دمبیع تلف کیدل دتحالف مانع نه گڼي هغه پردې بناء چې دمبیع قیمت دمبیع قائم مقام کيږي اوپرهغه قیمت باندې دواړه قسم اخلي،پاتې شوه اجاره په هغې کې دتحالف په صورت په لازمی ډول عقداجاره فسخ کيږي اودلته هیڅ قیمت هم نشته چې هغه قائم مقام وگڼل شی څکه چې دمنافع قیمت دعقدپه واسطه ترلاسه کيږي اودتحالف په وجه عقدنه پاتيږی نوقیمت هم نه پاتيږی نومبیع په هراعتبارسره له منځه ولاړه اودتحالف امکان نه شوپاتی،نوچې کله له دواړوڅخه قسم اخیستل ممکن نه شونوقول دمستاجرسره له یمین معتبریږی څکه چې مدعی علیه هم دی دی یعني پرده باندي دزیات اجرت دعوی ده.

(۱۷)اوبعض پرکل باندي قیاس دی نوچې مستاجرڅومره اندازه منافع حاصلې کړې دي هغه دتحالف لپاره مانع دي اوڅومره چې باقی دی په هغوکې تحالف جاري کيږي اودبعضومنافع دحاصلولوپه صورت کې څرنگه چې بعض نورې منافع مستاجرنه دي قبض کړي نودواړه به قسم اخلي اوعقدبه فسخ کيږي داڅکه چې په عقداجاره کې عقدساعةً په ساعةً منعقدکيږي نودمنفعت هرجزء داسې دی گواکې پرهغه باندي عقدنوی شوی دی نوڅومره منافع چې ده حاصلې کړې دي په هغوکې دتحالف ممنوع کیدل مستلزم نه دی چې په مابقی کې به هم ممنوع وي،اوکومې منافع چې ده حاصلې کړې دي په هغوکې دمستاجرقول سره له یمینه معتبردی څکه هغه منکردی.

(۱۸)وَإِنِ اخْتَلَفَ الزَّوجَانِ فِي مَتَاعِ الْبَيتِ فَالْقَولُ لِكُلٍّ مِنْهُمَا فِيمَا صَلَحَ لَهُ (۱۹)وَلَهُ فِيمَا صَلَحَ لَهُمَا (۲۰)فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا فَلِلْحَيِّ (۲۱)وَلَوْ أَحَدُهُمَا مَمْلُوكًا فَلِلْحُرِّ فِي الْحَيَاةِ وَلِلْحَيِّ فِي الْمَوتِ

**ترجمه**: او كه خاوند او ښځې اختلاف سره وكړ د كور په سامان كې نو د هر يو قول معتبريږي په هغه كې چې د هغه لائق وي، او د خاوند په هغه كې چې د دواړو لائق وي بيا كه يو مړشي له دوئ نه نو د ژوندي لپاره كيږي او كه له دواړو څخه يو مملوک وو نو د آزاد لپاره كيږي په ژوند كې او د ژوندي لپاره كيږي د مرګ په صورت كې.

**تشريح**: (۱۸) كه د زوجينو (خاوند او ښځې) ترمنځ د كور په سامان كې اختلاف راغى نو كوم شيان چې له نارينه ؤسره لائق وي د هغو په باره كې د خاوند قول سره له يمينه معتبريږي لكه پګړى، جبّه، سلاح وغيره ځكه په دغو شيانو كې ظاهر حال د خاوند شاهد دى، او كوم شيان چې د ښځو لائق وي نو په هغو كې د ښځې قول سره له يمينه معتبريږي لكه ګينې، زيورات وغيره ولى په هغو شيانو كې ظاهر حال د ښځې شاهد دى.

(۱۹) او كوم شيان چې د دواړو لائق وي لكه لوښي، فرش نقود وغيره نو په هغو كې د خاوند قول سره له يمينه معتبريږي ځكه ښځه سره له خپل مقبوض د خاوند په قبضه كې دي او قاعده داده چې كله له دوو دعوى كوونكو څخه مدعى به د كوم يو ه په لاس كې وي نو د هغه په باره كې د قابض قول معتبريږي.

(۲۰) كه له زوجينو څخه يو مړشي او د هغه وارثان د هغه بل (يعني ژوندي) سره اختلاف وكړنو كوم شيان چې د دواړو لائق وي هغه ټول د ژوندي كيږي له دواړو نه چې هر يو ژوندى وي ځكه د مړه قبض معتبر نه دى نو د ژوندي قبض بلا معارض پاتې شو ځكه نو د هغه قول معتبريږي، دا د امام ابو حنيفة رحمه الله قول دى.

**فائده**: امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې هغه شيان چې داول ښځې يې په جوړه كې راوړي هغه دي ښځې ته وركړل شي او په باقى كې د زوج قول له يمينه سره معتبريږي ځكه ظاهر داده چې ښځې جوړه راوړي او دا ظاهر په نسبت وهغه ظاهرى قبض د خاوند ته زيات قوي دى نو له دي وجهې څخه د خاوند ظاهري قبض ماتيږي، بيا چې باقى څه پاتې شول په هغو كې د خاوند د ظاهرى قبض هيڅ معارض نشته نو د هغه ظاهري قبض معتبريږي.

**فائده**: دا امام ابو حنيفة رحمه الله قول معتبر دى لمافي الدّر المختار: وان مات احدهما واختلف وارثه مع الحي في المشكل الصالح لهما فالقول فيه للحي ولو رقيقا.........فالقول للحي في الموت لان يد الحر اقوى ولا يد للميت (الدّر المختار على هامش ردّ المحتار: ۳/۳۸۲)

(۲۱) او كه له دواړو څخه يو مريى وونو كه دواړه ژوندي وونو سامان حرته وركول كيږي ځكه د حر قبض په نسبت و مملوک ته زيات قوي دى ځكه د حر قبضه د ملک قبض دى چې د مريي قبض د ملک قبض نه دى، او كه يو مړشونو چې كوم يو ژوندى وي سامان هغه ته وركول كيږي كه حر ژوندى وو او كه مريى ژوندى وو، ځكه د مړي قبض د مرګ په وجه سره ختميږي نو د ژوندي د قبض هيڅ معارض او مقابل نه پاتيږي.

## فصل

دا فصل د هغو خلكو په بيان كې دى چې خصم نه وي، ځرنګه چې د ابحث د كتاب الدّعوى دى په دې كې د هغو خلكو بيان اصل دى چې خصم دي ځكه نو هغه خلک چې خصم نه دي مصنف رحمه الله د هغو بيان وروسته كړى دى.

(۱) قال المدّعى عليه هذا الشي اودعنيه او اجرنيه او أعارنيه فلان الغائب أو رهنه أو غصبته منه وبرهن عليه دفعت عنه خصومة المدّعي (۲) وإن قال ابتغته من الغائب (۳) او قال المدّعي غصبته (۴) أو سرق مني وقال ذو اليد أودعنيه فلان وبرهن عليه لا (۵) وإن قال المدّعي ابتعته من فلان وقال ذو اليد أودعنيه فلان ذالك سقطت الخصومة

**ترجمه**: مدعى عليه وويل چې داشی ماته امانت راكړى دى يا يې په كرايه راكړى دى يا يې عاريةً راكړى دى فلان غائب يا هغه ماته رهن (گرو) ايښى دى يا ماله هغه څخه غصب كړى دى او پردې باندې يې گواهان پيش كړل نو دفع دي كړاى شي له هغه څخه خصومت د مدعي، او كه يې وويل چې ما اخيستى دى له غائب څخه يا مدعي ورته وويل چې تا غصب كړى دى يا دې غلا كړى دى له ما څخه او قابض وويل چې ماته فلان امانت راكړى دى او پردې باندې يې گواهان هم پيش كړل نو نه دفع كيږي، او كه وويل مدعي چې ما اخيستى دى له فلان چې څخه او قابض وويل ماته فلان امانت راكړى دى نو ساقطيږي خصومت.

**تشريح**: (۱) كه مدعى پر قابض باندې ديوشي دعوى وكړه او مدعى عليه په جواب كې ورته وويل چې داشي (مدعى به) له ماسره د فلان غائب سرې امانت پروت دى، يا فلان غائب ماته په رهن ايښى دى يا داشي ماله فلان غائب څخه غصب كړى دى او مدعى عليه پر خپل دې قول باندې گواهان هم قائم كړل نو له مدعى عليه څخه دې د هغه مدعي خصومت دفع كړاى شي يعني د مدعي او هغه قابض ترمنځ به هيڅ خصومت نه وي ځكه مدعى عليه په بيّنه سره ثابته كړه چې زما قبضه د خصومت قبض نه دى ځكه چې خصم مالک وي زه مالک نه يم.

**فائده**: امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې دا حكم هغه وخت دى چې قابض يو نيک او صالح سړى وي او كه حيله گر سړى وو نو بيا له هغه څخه خصومت نه دفع كيږي مثلاً پر يوه سړي باندې د خلكو قرضي دي قرض غوښتونكو وغوښته چې د هغه په مال باندې دعوى وكړي خپل حق وصول كړي هغه دا حيله وكړه چې خپل مال يې يو مسافر ته په پټه وركړ او مسافر دوو گواهانو په وړاندې دا مال د امانت په ډول دې حيله گرته وركړ هغه مسافر ولاړى او س حيله گر په گواهانو سره دا ثابتوي چې دا مال زما نه دى بلكې د فلان غائب سړي امانت دى په دې ډول هغه د قرض غوښتونكو له دعوى څخه خلاصيږي، نو امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې د داسې مكارانو څخه قاضي د دې تهمت په وجه خصومت نه ليرې كوي لما في مجمع الانهر: وقال ابويوسف رحمه الله فيمن عرف بالحيل لاتندفع وبه يوخذ في القضاء والفتوى واختاره في المختار والاختيار ان المدعى عليه ان كان صالحا كما قال الامام وان كان معروفا بالحيل لم تندفع عنه لانه قد ياخذ مال الغير غصبا ثم يدفع سرا الى من يريد ان يغيب (ملتقى الابحر مع مجمع الانهر: ۳/ ۲۷۰) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله: وقال ابويوسف رحمه الله فيمن عرف بالحيل لاتندفع وبه يوخذ في القضاء والفتوى واختاره في المختار والاختيار (الدر المنتقى ۳/ ۲۷۰)

(۲) او كه مدعى عليه وويل چې داشي ماله فلان غائب څخه اخيستى دى نو مدعي خصم جوړيداى شي ځكه چې كله هغه د ملک دعوى وكړه نو د هغه قبض د خصومت قبض دى نو دا د هغه د طرف څخه د خصم كيدو اقرار دى.

(۳)که مدعی وویل چې داشی تاله ماڅخه غصب کړی دی نوله مدعی علیه څخه خصومت نه دفع کیږي که څه هم هغه پردي باندي ګواهان پیش کړي چې داشی فلان ماته ودیعت ایښی دی ځکه چې قابض خصم جوړشوپه دي چې پرهغه باندي دفعل غصب دعوی ده هغه دخپل قبض په وجه خصم نه دی جوړشوی نو ځکه له هغه څخه خصومت نه دفع کیږي.

(۴)اوکه مدعي وویل چې داشی له ماڅخه غلاشوی دی اوپرخپله دي دعوی یې ګواهان قائم کړل اومدعي علیه وویل چې داخوماته فلان سړي امانت ایښی دی اوهغه هم پرخپله دغه دعوی باندي ګواهان قائم کړل نوله هغه څخه خصومت نه دفع کیږي ،دادشیخینو رحمهما الله قول دی دلیل یې دادی چې دغلافعل غواړي چې یوغلاکوونکی وي اوظاهره ده چې غلاکوونکی هغه څوک دی چې په لاس کې یې داشی موجودوي لیکن مدعی دشفقت له مخي له هغه څخه دحددفع کولولپاره داسي ښکاره ورته ونه ویل چې تاغلاکړی دی نو ځکه له مدعی علیه څخه خصومت نه دفع کیږي.

(۵)که مدعی وویل چې ماداشی له فلان څخه اخیستی دی اوقابض وویل چې داشی هغه ماته امانت ایښی دی نوبغیردګواهي له مدعی علیه څخه خصومت ساقطیږي ځکه چې کله دواړه پردي باندي اتفاق شول چې په دغه شي اصل ملک دمدعی علیه څخه ماسوادبل چادی نودمدعی علیه قبض دخصومت قبض نه دی ځکه مدعی علیه مالک نه دی نوخصم هم نه کیږي.

## باب مایدعی الرجلان

داباب دی پریوه شي ددووکسانوددعوی کولوپه بیان کې

مصنف رحمه الله تردي مخکی پریوه شي باندي دیوه سړي ددعوی احکام ذکرکړل اوس له دي ځای څخه پریوه شي باندي ددووکسانوددعوی احکام ذکرکوي وجه دتاخیریې داده چې دوه خوطبعًاتریوه مخکي وي ځکه یې وضعًاهم موخرکړچې وضع اوطبع سره موافق شي.

(۱)بَرهَنَا عَلٰی مَا فِی یَدِ اٰخَرَ قُضِیَ لَهُمَا (۲)وَعَلٰی نِکَاحِ امْرَاَةٍ سَقَطَا وَهِیَ لِمَنْ صَدَّقَتْهُ اَوْسَبَقَتْ بَیِّنَتُهُ (۳)وَعَلَی الشِّرَاءِ مِنْهُ لِکُلٍّ نِصْفُهُ بِبَدَلِهِ اِنْ شَاءَ (۴)وَبِاِبَاءِ اَحَدِهِمَا بَعْدَ الْقَضَاءِ لَمْ یَاْخُذِ الْاٰخَرُ کُلَّهُ (۵)وَاِنْ اَرَّخَا فَلِلسَّابِقِ وَاِلَّا فَلِذِی الْقَبْضِ.

**ترجمه**:دووکسانوپرهغه شي باندي ګواهان پیش کړل چې ددریم چاپه لاس کې وونوفیصله ددواړو لپاره کیږي اوکه یې ګواهان پیش کړل دیوي ښځي پرنکاح باندي نودواړه ګواهان ساقطیږي دهغه چاکیږي دچاچې ښځه تصدیق وکړي یادچاپینه چې مخکي وي اوکه یې ګواهان پیش کړل له دریم څخه په اخیستلوباندي نودهریوه لپاره نصف کیږي دهغه دبدل په عوض کې که یې خوښه وه،اوپه انکاردیوه سره

وروسته تر فيصله به نه اخلي هغه بل تول شی . او که دواړو تاريخ بيان کړنو دسابق لپاره کيږي که نه دقابض لپاره کيږي .

**تشريح** :(۱)که دوو کسانو ديوه خاص شي چې دبل چاپه قبضه کې وودعوی وکړه هريوه ددي دعوی کوله چې داشی زما ملک دی او سبب دملک او تاريخ يوه هم بيان نه کړاو هريوه پرخپله دعوی باندي گواهان هم پيش کړل نو قاضي به فيصله وکړي چې داشی ددوئ دواړو مشترک دی، ځکه په حديث شريف کې راغلي دي چې دوو کسانو په يوه اوښه باندي دعوی وکړه او هريوه گواهان پيش کړل نو نبي کريم ﷺ ددواړو ترمنځ دنصف فيصله وکړه .همدارنګه داستحقاق په سبب کې دواړه برابر دي او محل (مدعی به) اشتراک هم قبلوي نو ځکه ددواړو ترمنځ دتنصيف فيصله کوله کيږي .

(۲)قوله وعلى نكاح امرأة سقطاای لو برهنا على نكاح امرأة سقطا، يعنې که دوو کسانو هريوه ديوې ژوندۍ ښځې دنکاح دعوی وکړه او هريوه پرخپله دعوی باندي گواهان هم قائم کړل نو ددواړو بيّنه ساقطيږي ديوه پرگواهانو هم فيصله نه کوله کيږي ځکه ديوه گواهان ترهغه بل اولی نه دي او ددواړولپاره حکم متعذردی ولی محل (يعني ښځه) محل داشتراک نه دی چې په يوه وخت کې دي ددواړو ښځه شي، البته دښځې تصديق ته رجوع کيږي يعنې ښځه چې په دوئ دواړو کې دکوم يوه تصديق وکړي دهغه دنکاح حکم کيږي، ولی نکاح داسي شی دی چې دزوجينو دخپل منځي تصديق په وجه دهغه حکم ورکول کيږي نو دلته دښځې پرتصديق باندي حکم ورکول کيږي چې ښځه دهغه يوه ده دکوم يوه چې داتصديق کوي .همدارنګه که ددواړو گواهانو تاريخ بيان کړنو چې دکومو گواهانو تاريخ سابق وي ښځه دهغه کيږي ځکه هغه په داسي وخت کې خپله نکاح ثابته کړه چې په هغه وخت کې دده هيڅ مزاحم نشته نو ثانی مندفع شو .

(۳)قوله وعلى الشراء منه ای لو برهنا على الشراء منه الخ ،يعنې که دوو کسانو هريوه پريو بل چا (قابض )سړي باندي دعوی وکړه چې ما مثلا دا مريی له هغه قابض ځخه اخيستی دی او دواړو پردي باندي گواهان هم قائم دړل نو ددواړو گواهان قبليږي او هريوه لره اختيار دی که يې خوښه وي نو نصف مريی دي په عوض دنصف ثمن واخلي او که يې نه وي خوښه پري دي يږدي هريوه لره اختيار ځکه ورکړل شوی دی چې کيدای شي چې دهريوه مقصد دکامل مريی ملکيت وي دنصف مريي په ملکيت راضي نه وي .

(۴)که قاضي ددواړولپاره دنصف نصف مريې فيصله وکړه بيا يوه وويل چې زه نصف نه خوښوم او پري يي ښودنو هغه بل لره اختيارنشته چې هغه پوره مريی واخلي ځکه دقاضي دقضاء په وجه دهريوه عقد په نصف آخر کې فسخ کيږي او قاعده داده چې عقد کله دقاضي دقضاء په وجه فسخ شي نو هغه بلاعقد جديد عودنه کوي او عقد جديد په نصف آخر کې نه دی راغلی نو ځکه هغه لره دنصف آخر دا اخيستلو اختيار نشته .

(۵)که په مذکورصورت کې هريوه مدعي دخپل خريدتاريخ بيان کړاوله دواړو ځخه ديوه دخريدتاريخ مقدم وودهغه بل ترتاريخ نو مريی دهغه کيږي چاچې تاريخ مقدم بيان کړی دی ځکه هغه په داسي وخت کې خپل خريدثابت کړچې په هغه وخت کې دده هيڅ مزاحم نشته نو ثانی مندفع شو.او که

دواړو تاريخ بيان نه کړ مګر له دواړو څخه يوه قبض حاصل وونو قابض اولی دی ځکه قبض ددي خبرې دليل دی چې دهغه خريد مخکي شوی دی .

(٦) والشراء احق من الهبة (٧) والشراء والمهر سواء (٨) والرهن احق من الهبة (٩) ولو برهن الخارجان على الملك والتاريخ او على الشراء من واحد فالاسبق احق (١٠) وعلى الشراء من اخر وذكرا تاريخا استويا .

**ترجمه** :او خريد تر هبه زيات حقدار دی او خريد او مهر برابر دي، او رهن زيات حقدار دی تر هبه او که ګواهان وړاندي کړل دوو کسانو غير قابض خلکو پر ملک يا پر تاريخ د يوه سړي څخه د اخيستلو نو سابق زيات حقدار دی او که دواړو ګواهان وړاندي کړل له بل څخه د خريد او دواړو تاريخ بيان کړ نو دواړه برابر دي .

**تشريح** :(۶) که دوو مدعيانو د يوه دريم سړي په باره کې دعوی وکړه يوه وويل ماله هغه څخه دا مريی اخيستی دی هغه بل وويل چې هغه ماته هبه کړی دی او هريوه ګواهان هم قائم کړل مګر له دواړو څخه ديوه سره تاريخ نشته نو خريد اولی دی تر هبه نو قاضي به د خريد د مدعي په حق کې فيصله کوي ولی په خريد کې له جانبينو معاوضه وي او هبه داسي نه ده همدارنګه شراء بنفسه موجب د ملک دی او هبه له قبض وروسته موجب د ملک دی .

(۷) که له دوو مدعيانو څخه يوه د خريد دعوی وکړه مثلاً ويې ويل چې دا مريی ماله فلان څخه اخيستی دی او دوهم مدعي ښځه ده هغه وايي چې هغه سړي له ماسره نکاح کړي ده او دا مريی يې زما مهر مقرر کړی دی نو دا دواړه مدعيان برابر دي ځکه د دواړو دعوی يو ډول قوي ده په دي وجه چې له خريد او نکاح څخه په هريوه کې له جانبينو څخه معاوضه ده او هريو بنفسه موجب ملک دی ،نو چې کله دواړه مدعيان برابر دي نو ښځې لره نصف مريی کيږي او د نصف مريې د قيمت په باره کې به زوج ته رجوع وکړي. او دوهم مدعي لره که چيرته هغه وغوښتل نو نصف مريی کيږي او د نصف مريې په باره کې به بائع ته رجوع کوي او د تفرق عقد په وجه که چيرته هغه غواړي نو بيع فسخ کولای هم شي .

**فائده** :دا مذکور قول د امام ابويوسف رحمه الله دی ،د امام محمد رحمه الله په نزد د شراء دعوی اولی ده نو قاضي به د شراء د مدعي لپاره حکم کوي باقي د ښځې لپاره د زوج پر ذمه د هغه مريې قيمت واجبيږي ځکه په دواړو ګواهانو سره عمل کول ممکن دی ولی د غير پر مملوک مال باندي نکاح کول جائز دی خو دا چې د هغه سپارل متعذر دی نو د هغه قيمت دي ورکړل شي نو په مذکوره صورت کې دي د ښځې لپاره د هغې پر خاوند باندي د مريې قيمت واجب کړای شي او د مشتري لپاره دي د خريد حکم وکړای شي .

**فائده** :د امام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی لما قال الشيخ عبدالحکيم الشهيد رحمه الله :قوله وهذا عند ابی يوسف رحمه الله الخ قال في بدر المستقی وقول ابی يوسف رحمه الله هو الارجح وعليه اقتصر ارباب المتون زاد في التنوير الا اذا ارخا وسبق تاريخ احدهما فهو احق (هامش الهداية: ۳/۱۸۲)

(۸) که له دواړو مدعيانو څخه يوه د رهن (چې دا له ماسره د رهن په ډول دی ) سره له قبض کولو (چې دا زما په لاس کې دی) دعوی وکړه او بل د هبه (چې فلان ماته هبه کړی دی) سره د قبض دعوی وکړه نو رهن

ترهغه استحساناًاولی دی يعنې قاضي به درهن حکم کوي ځکه په حکم درهن مقبوض مضمون کيږي اوپه حکم دهغه مقبوض غيرمضمون وي اومضمون اقوی اواولی دی ترغيرمضمون.

(۹)که دووخارجی مدعيانو (يعنې داسي څوک چې پرمدعی به باندي قابض نه دي) هريوه پرخپل ملکيت باندي ګواهان قائم کړل اودواړوتاريخ هم بيان کړمګرتاريخ ددواړومختلف دی نوچې دکوم يوه تاريخ مقدم دی هغه اولی دی ځکه هغه داثابته کړه چې زه لومړی مالک يم نوددوهم ملک يواځې دهغه له طرفه کيدای شي حال داچې هغه بل دهغه دطرف نه دملکيت دحاصلولودعوی نه ده کړې ،يادوومدعيانوديوه غيرقابض شخص څخه دخريددعوی وکړه اودواړو پرمختلفو تاريخوباندي ګواهان قائم کړل نولومړی اولی دی ځکه هغه په داسي وخت کې خپل خريدثابت کړچې په هغه وخت کې دده هيڅ مزاحم نشته.

(۱۰)که له دواړومدعيانوڅخه هريوه ديوه عليحده شخص څخه پرخريدباندي ګواهان قائم کړل مثلاًيوه وويل ماله زيدڅخه اخيستی دی اوبل وويل چې ماله عمروڅخه اخيستی دی اودواړوتاريخ هم بيان کړنودادواړه برابردي اومدعی به ددواړوترمنځ نصف نصف کيږي ځکه دوئ دواړه دخپل بائع لپاره ملکيت ثابتوي نوداداسي شوه لکه هغه دواړه بائعان چې حاضروي اوهريوپرخپل ملکيت باندي له تاريخ سره ګواهان قائم کړي نو له دواړوڅخه هريوه ته دمدعی به نصف حصه په عوض دنصف ثمنوداخيستواوپرې ښودلواختيارورکول کيږي.

(۱۱)وَلَوْبَرْهَنَ الْخَارِجُ عَلٰى مِلْكٍ مُؤَرَّخٍ وَتَارِيخُ ذِي الْيَدِ أَسْبَقُ(۱۲)أَوْبَرْهَنَا عَلَى النِّتَاجِ(۱۳)أَوْسَبَبِ مِلْكٍ لَاتَتَكَرَّرُ(۱۴)أَوِالْخَارِجِ عَلَى الْمِلْكِ وَذُوالْيَدِ عَلَى الشِّرَاءِ مِنْهُ فَذُوالْيَدِ أَحَقُّ مِنْهُ(۱۵)وَلَوْبَرْهَنَ كُلٌّ عَلَى الشِّرَاءِ مِنَ الْآخَرِ وَلَاتَارِيخَ سَقَطَا وَتُتْرَكُ الدَّارُ لِذِي الْيَدِ(۱۶)وَلَايُرَجَّحُ بِزِيَادَةِ عَدَدِ الشُّهُودِ.

**ترجمه**:اوکه ګواهان قائم کړل غيرقابض پرملک مورخ باندي اوتاريخ دقابض سابق وو،يادواړو ګواهان قائم کړل چې دازمادحيوان بچی دی يادملک پرداسي سبب باندي چې نه مکررکيده ياغير قابض پرملک باندي ګواهان قائم کړل اوقابض له هغه څخه پراخيستلوباندي نوقابض زيات حقدار ګرځي ترغيرقابض،اوکه ګواهان قائم کړل هريوه پراخيستلوله هغه بل څخه اوتاريخ نه وونودواړه ساقطيږي اوپرېښودل کيږي سرای دقابض په قبضه کې اوترجيح نه ورکوله کيږي دګواهانودتعداد په زياتولوسره.

**تشريح** :(۱۱)قوله ولوبرهن الخارج الخ،له خپلو معطوفاتوسره شرط دی او(فذواليداحق منه ) دهغه لپاره جزاء دی ،يعنې که مدعي غيرقابض پرخپل ملکيت باندي ګواهان سره له تاريخ قائم کړل اوصاحب اليد(قابض)پرملکيت باندي داسي ګواهان قائم کړل چې تاريخ يې تراول مقدم دی نودشيخينو رحمهما الله په نزددقابض بيّنه اولی دي ځکه دقابض ګواهان پرتقدم ملک باندي دلالت کوي نودقابض بيّنه ترغيرقابض اولی دي،دامام محمد رحمه الله په نزددقابض بيّنه اولی نه دي ځکه ددواړوپرملک مطلق باندي قائم دي اوپه هم جهت ملک ته تعرض نه دی کړی نوتقدم اوتاخربرابريږي نوديوه بيّنه تربل اولی نه دي.

**فائده**: دشیخینو رحمهما الله قول راجع دی لمافی شرح مجلة الاحکام: بینة من تاریخه مقدم اولی فی دعوی الملک المؤرخ لیقضی للاسبق سواء کان خارجا او ذاید (شرح مجلة الاحکام: ۵/ ۳۶۳) وفی الدر المنتقی: ولو برهن خارج علی ملک مؤرخ وذو الید علی ملک اقدم منه فهو اولی علافا المحمد فی روایة والاول اصح (الدر المنتقی: ۳/۳۷۷)

(۱۲) که غیر قابض او قابض دواړو هریوه پر نتاج (یعنې هریوه دعوی وکړه چې مدعی به زما په ملک کې له مملوک شي څخه پیدا شوی دی) باندي ګواهان قائم کړل نو د قابض ګواهان اولی دي یعنې قاضي باید د قابض په حق کې فیصله وکړي ځکه پر کوم شي چې د غیر قابض ګواهان دال دي پر هغه باندي د قابض بینه هم دال دي مزید پر هغه د قابض ګواهانو ته د قبض په وجه ترجیح حاصله ده نو فیصله به د هغه په حق کې کیږي دا حکم استحسانا دی وجه د استحسان د حضرت جابر ﷺ روایت دی چې دیوه قابض او یوه غیر قابض سړي دیوې اوښې په باره کې سره دعوی وه نو نبي کریم ﷺ د قابض په حق کې فیصله وکړه.

(۱۳) قوله اوسبب ملک لایتکرز ای او برهنا علی سبب ملک لایتکرر، یعنې مذکور نتاج والاحکم د هر داسي سبب ملک هم دی چې نه مکرر یږي مثلا اوون وودل شیدې لوشل وغیره مثلا په جوړه شوې کپړه کې قابض ووایې چې ما دا پخپل ملک کې رو غه کړې ده او هغه بل وویل چې ما پخپل ملک کې جوړه کړې ده، نو حکم د قابض په حق کې کیږي ځکه په کوم سبب د ملک کې چې تکرار نه وي د هغه په باره کې دعوی کول من کل الوجوه داسې دی لکه د نتاج په باره کې دعوی کول نو د نتاج چې کوم حکم دی هم هغه حکم د هر داسي سبب د ملک دی چې نه مکرر یږي.

(۱۴) قوله اوالخارج علی الملک الخ ،اوبرهن الخارج علی الملک وذوالید علی الشراء منه الخ،یعنې که غیر قابض مدعي پر مطلق ملک (ملک مطلق هغه دی چې پکې مدعی د ملک دعوی وکړي مګر د ملکیت کوم سبب و نه نښي چې په کوم سبب زه د هغه مالک یم) باندي ګواهان قائم کړل چې داشی زما ملک دی او قابض ګواهان قائم کړل چې داشی ما د دغه ملک مطلق له مدعي څخه اخیستی دی نو حکم به د قابض په حق کې کیږي ځکه قابض دا ثابته کړه چې زما ملکیت له مدعي څخه حاصل دی نو ګواکي ده د مدعي د ملکیت اقرار وکړ او بیا یې له هغه څخه د شراء دعوی وکړه او خپله دا دعوی یې په ګواهانو سره ثابته کړه نو ځکه فیصله د ده په حق کې کیږي. د مصنف رحمه الله د دې قول چې: فذو الید احق منه، تعلق له ماقبل څلورو ذکر شویو مسائلو سره دی.

(۱۵) که له دواړو مدعیانو (چې یو یې قابض او بل خارج دی) نه هریوله هغه بل څخه مثلا د سرای د اخیستو دعوی وکړه یعنې قابض وویل چې ما له خارج څخه اخیستی دی او خارج وویل چې ما له قابض څخه اخیستی دی او هریوه د خرید د تاریخ له بیانولو بغیر پر خپله دعوی باندي ګواهان قائم کړل نو د شیخینو رحمهما الله په نزد د دواړو ګواهان ساقطیږي ځکه د هریوه له خپل ملکري څخه د اخیستو اقرار کول د هغه لپاره ملک شمارل کیږي نو ګواکي د هریوه ګواهان د هغه بل لپاره پر اقرار ملک باندي قائم دي او په داسي صورت کې په اجماع سره د دواړو ګواهان ساقطیږي نو د متن په صورت کې هم د دواړه ګواهان ساقط شول، او مدعی به سرای علی وجه القضاء نه بلکې امانة د پخوا په شان د قابض په لاس کې پرېښودل کیږي. امام محمد رحمه الله فرمایي چې که مکان دیوه په قبضه کې وو نو د دواړه ګواهان مقبولیږي او سرای

غیر قابض ته ورکول کیږي ځکه مذکورصورت ته داډول تطبیق ورکول کیدای شي چې ممکن قابض سړي له غیر قابض څخه اخیستې وي اوپر هغه یې قبضه کړې وي بیایې بیرته پرغیر قابض باندي خرڅ کړی وي اوهغه قبض کړی نه وي نوپه ګواهانوسره دغیر قابض لپاره مِلک بلاقبض ثابت شواوس دي هغه ته حواله کړي چې قبض یې کړي.

**فائده**:دشیخینو رحمهما الله قول راجح دی لمافي الدر المختار:وان برهن کل من الخارجين او ذوی الايدی او الخارج وذی اليد على الشراء من الاخر بلا وقت سقطا وترک المال المدعى به في يد من معه وقال محمد رحمه الله يقضى للخارج قلنا الاقدام على الشراء اقرار منه بالملک له ولو اثبتا قبضا تهاترتا اتفاقا (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۴/۰ ۳۹)

(۱۶)یعني دیوه دګواهانوپه زیاتیدوسره دهغه دعوی ته ترجیح نه ورکوله کیږي که له دواړومدعیانوڅخه یوه پرمدعی به باندي دوه ګواهان قائم کړل اوبل څلورګواهان پیش کړل نودادواړه برابردي دڅلوروګواهانو والاته ترجیح نه ورکوله کیږي ځکه دهریوه لپاره دثبوت دمدعی لپاره علت تامه دی اوترجیح قوة علت لره ده کثرت علل لره نشته.

(۱۷)دارٌ في يدِ آخرَ ادّعى رجلٌ نصفَها وآخرُ كلَّها وبرهنا فللأوّلِ ربعُها والباقي للآخرِ (۱۸)ولو كانت في أيديهما فهي للثاني (۱۹)ولو برهنا على نتاجِ دابّةٍ وأرّخا قضي لمن وافق سنُّها تاريخه (۲۰)وإن أشكل ذلك فلهما (۲۱)ولو برهن أحدُ الخارجين على الغصبِ والآخرُ على الوديعةِ استويا.

**توجمه**:یوسرای دیوچاپه قبضه کې دی یوه سړي دعوی وکړه دهغه دنصف اوبل سړي یې دکل دعوی وکړه اودواړوګواهان قائم کړل نوداول لپاره دسرای ربع (څلورمه) کیږي اوباقی سرای ددوهم کیږي اوکه مکان ددواړوپه قبضه کې وونودوهم کیږي اوکه دواړوګواهان پیش کړل دحیوان پربچي باندي اودواړوتاریخ بیان کړنوفیصله دهغه لپاره کیږي چې دبچي دعمردهغه دتاریخ سره موافق وي اوکه دامشکل وونودواړولپاره کیږي اوکه ګواهان پیش کړل یوه غیر قابض پرغصب باندي اوبل پرودیعت باندي نودواړه برابربرږي.

**تشریح**:(۱۷)که یوسرای دچاپه قبضه کې ووبیاپه هغه باندي دوومدعیانودعوی وکړه یوه دنصف مکان دعوی وکړه اوبل دټول مکان دعوی وکړه اوهریوه پرخپله مدعی باندي ګواهان قائم کړل نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزددنصف مدعي ته یوه څلورمه اودټول مکان مدعي ته دري برخې ورکولې کیږي ځکه مدعي دنصف دبل نصف مدعي نه دی نودانصف دکل مدعي ته بلامنازعه ورحواله شواوپه هغه بل نصف کې ددواړومساوي جګړه ده نوهغه ددوئ ترمنځ برابرتقسیمیږي مدعي دنصف ته یوه څلورمه برخه اومدعي دکل ته دري برخې ورکولي کیږي.صاحبین رحمهما الله فرمایې چې داسرای دي اثلاثاتقسیم شي یعنې دوه ثلث مدعي کل ته اویوثلث دي مدعي نصف ته ورکول شي ځکه مدعي دکل ددوونصفو(یعنې دکل) مدعي دی اومدعي دنصف دیوه نصف مدعي دی نواثلاثادي تقسیم کړای شي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمة الله عليه قول راجح دى لمافى الدرالمختار:داز فى يدآخرادعى رجل نصفهاوآخر كلهاوبرهنافللاول ربعهاوالباقى للآخربطريق المنازعة (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۴/ ۴۹۰)وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمة الله عليه :واختاراكثرالمشائخ قول امام ابى حنيفة رحمة الله عليه وهوالايسر (هامش الهداية:۳/ ۲۲۲)

(۱۸)كه په مذكورصورت كې مكان خپله دمدعيانوپه لاس كې وونوكل سراى به مدعي دكل ته وركول كيږي ځكه هغه نصف چې دمدعي نصف په قبضه كې دى پرهغه باندي مدعي دكل قابض نه دى اوګواهان دغيرقابض معتبردي نودهغه نصف دمدعي كل په حق كې كيږي اوباقى نصف خودمدعي كل په قبضه كې دى ځرنګه چې پرهغه باندي دي دمدعي كل دعوى نشته ځكه نوهغه هم دمدعي كل كيږي.مګرداچې يونصف (چې هغه بل مدعي يې دعويداردى) دقاضي دقضاء په وجه وركول كيږي اوهغه بل نصف بغيردقاضي دقضاء وركول كيږي ځكه په دغه نصف كې خوهغه مدعي له ده سره دعوى نه ده كړې اوقضاء بغيردعوى نه كيږي نودانصف دقاضي دقضاء بغيروركول كيږي.

(۱۹)كه دووكسانوپه يوه حيوان كې (كه هغه ددواړوپه قبضه كې وي يادیوه په قبضه كې وي يادريم چاپه قبضه كې وي) تنازع راغله اوهريوه ګواهان قائم كړل چې داحيوان له ماسره زمادمملوك حيوان ځخه پيداشوى دى اودواړو دپيدائش مختلف تاريخونه هم بيان كړل اودحيوان عمرپه دي دووتاريخونوكې ديوه سره موافق دى نودحيوان عمرچې دچاد تاريخ سره موافق دى هغه اولى دى ځكه ظاهرحال دهغه دګواهانوپرصدق باندي دلالت كوي.

(۲۰)كه دحيوان دعمرموافقت له يوه تاريخ سره معلوم نه ووبلكې مشتبه وونوكه دواړه قابض ووياداريم سړى قابض وونوحيوان ددوئ ترمنځ مشترک كيږي اوكه يوقابض وونودهغه په حق كې فيصله كيږي ځكه داداسې شوګواكې دواړوتاريخ نه دى بيان كړى.

(۲۱)كه يوشى دچاپه قبضه كې وو.دوومدعيانوپه هغه باندي دعوى وكړه يوه يې پردي باندي ګواهان قائم كړل چې قابض له ماځخه داشى غصب كړى دى اوهغه بل په ګواهانوسره داثابته كړه چې داشى ماته قابض دامانت په ډول راكړى دى نودواړه مدعيان برابردي اومدعى به ددواړوترمنځ نصف نصف تقسيميږي ځكه دوهم چې دوديعت دعوى كړې ده نوځرنګه چې مودع دهغه منكردى اوله وديعت ځخه انكارغصب ګڼل كيږي نودواړه مدعيان په سبب استحقاق كې سره برابردي اوپه سبب استحقاق كې برابروالى په نفس استحقاق كې دبرابروالي موجب دى.

(۲۲)والراكب واللابس احق من آخذاللجام والكم (۲۳)وصاحب الجمل والجذوع والاتصال احق من الغير (۲۴)ثوب فى يده وطرفه فى يدآخر نصف (۲۵)صبى يعبرعن نفسه فقال اناحر فالقول له (۲۶)وإن قال اناعبدلفلان اولايعبرعن نفسه فهو عبدلمن فى يده.

**ترجمه** :اوپرحيوان باندي سپوراوجامه آغوستونكى زيات حقداردى ترقيضه نيوونكي اولستونى نيوونكي اودبارمالک اودستكووالااواتصال والازيات حقداردي ترغير.يوه كپړه ده ديوچاپه لاس كې ده اودهغې بل طرف دبل چاپه لاس كې دى نونصف نصف كيږي يوماشوم دى خپل حال بيانولاى شي ويې ويل

چې زه آزادیم نو دده قول معتبریږي او که یې وویل چې زه مریی یم د فلان یا یې خپل حال نه شو بیانولای نو دی مریی دی دهغه چا چې په قبضه کې یې دی.

**تشریح** :(۲۲)که دد وو کسانو په یوه حیوان کې سره دعوی شوه اوله دواړو څخه یو پرهغه باندي سپور وو او هغه بل یې قیضه نیولې وه نو هغه چې پرې سپور دی هغه اولی دی یعني قاضي به دسواره په حق کې فیصله کوي ځکه دهغه تصرف زیات دی ظاهره ده چې په یوشي کې تصرف کول دهغه دمالک کید وعلامه ده همدارنګه که دد وو کسانو په یوه قمیص کې سره دعوی شوه اوله دوئ څخه یوه قمیص اغوستی وو او هغه بل یې لستوني نیولی دی نواغوستونکی اولی دی ځکه له دواړو څخه داغوستونکي تصرف زیات دی البته که هغه بل ګواهان پیش کړل نو بیا هغه اولی دی ځکه ګواهان دخارج معتبریږي.

(۲۳)همدارنګه که دووکسانو په یوه اوښ کې دعوی سره وکړه چې پرهغه باندي دیوه مدعي باربارشوی دی اوهغه بل اوښ ترمهارنیولی دی نومهارنیوونکی دبارترخاونداولی دی ځکه دبار خاوند متصرف دی همدارنګه که دد وو کسانو په یوه داسي دیوال کې سره دعوی شوه چې پرهغه باندي ددوئ څخه دیوه تیران پراته وو نو دتیرانو والا زیات حقدار دی ځکه هغه متصرف دی ،همدارنګه که دد وو کسانو په یوه داسي دیوال کې سره دعوی شوه چې له دوئ څخه دیوه په سرای پوري متصل وو یعني دمتنازع دیوال خښتې دهغه په دیوال پسي پیوستې وي دې ته اتصال تربیع وایې نو ددغه دیوال زیات حقدار صاحب اتصال دی ځکه اتصال تربیع دملک علامه ده.

(۲۴)که یوه کیړه دچا په قبضه کې وه دهغې یوه کناره دبل چا په لاس کې وه نو دادواړه کیړه ددغو دواړو ترمنځ په نصف تقسیمیږي ځکه په کیړه کې قبضه ددواړو ثابته ده البته دیوه قبضه ډیره ده دهغه بل داکمه ده او دا خبره مخکې تیره شوه چې کثرت لره ترجیح نشته بلکې قوة لره ترجیح ده نو ددواړو برابرحق شته ځکه کیړه ددواړو ترمنځ برابره تقسیمیږي.

(۲۵)یو داسي ماشوم له یو چا سره دی چې خپل حال سم بیانولای شي اوس هغه هلک وایې چې زه آزادیم دچا مریی نه یم اوله چا سره چې دی هغه وایې چې دازما مریی دی نو دهلک قول معتبریږي ځکه دادول ماشوم دخپل ځان په قبضه کې دی دبل قابض قبضه پرده باندي نه ده معتبره نو چې کله دی دهغه مدعي دمریتوب څخه انکار کوي نو دمدعي قول نه قبلیږي.

(۲۶)اوکه یو ماشوم وویل چې زه دفلان مریی یم یعني دقابض څخه سوا دبل چا نوم یې واخیست اوقابض دعوی وکړه چې دازما مریی دی نو دا هلک دهغه چا مریی ګڼل کیږي دچاچې په قبضه کې دی ځکه هغه دااقرار وکړچې دهغه ذاتي قبضه هیڅ نشته ولی هغه دخپل ځان دمریتوب اقرار وکړ نو دقابض قبض نه اعتبار ورکړل کیږي دهغه مریی ګڼل کیږي اوکه ماشوم داسي وو چې له خپل ځان څخه یې تعبیر نه شو کولای یعني خپله یې خپل حال نه شو بیانولای نو هغه دهغه چا مریی ګڼل کیږي دچاچې په قبضه کې دی ځکه دهغه خپل ذاتي قبض نشته ځکه چې هغه له خپل ځان څخه تعبیرنه شي کولای نو هغه په منزله داسبابو دی چې دچا په قبضه کې دی دهغه سلک شمارل کیږي ځکه دهغه هیڅ مزاحم او معارض نشته.

(۲۷) عَشْرَةُ أَبْيَاتٍ مِنْ دَارٍ فِي يَدِهِ وَبَيْتٌ فِي يَدِ آخَرَ فَالسَّاحَةُ نِصْفَانِ (۲۸) ادَّعَى كُلٌّ أَرْضًا أَنَّهَا فِي يَدِهِ وَلَبِنَ أَحَدُهُمَا فِيهَا أَوْ بَنَى أَوْ حَفَرَ فَهِيَ فِي يَدِهِ كَمَا لَوْ بَرْهَنَ أَنَّهَا فِي يَدِهِ.

**ترجمه**: دسرای لس خونې دیو چا په قبضه کې دی او یوه خونه یې د بل چا په قبضه کې ده نو دسرای میدان به نصف نصف ورکول کیږي، هر یوه دځمکې دعوی وکړه چې دا زما په قبضه کې ده او له دوئ څخه یوه یا خښتې پکې جوړې کړي وي یا یې په هغه ځمکه کې آبادي کړې وه یا یې کډی پکې کندلی وو نو ځمکه دهغه په قبضه کې شمارله کیږي لکه چې هغه ګواهان پیش کړي چې دا زما په قبضه کې ده.

**تشریح**: (۲۷) که په یوه سرای کې یوولس (۱۱) خونې وي له هغو څخه لس دیو چا په قبضه کې وي او یوه دبل چا په قبضه کې وي یا ددغو دوو کسانو دسرای په میدان کې سره دعوی شوه نو میدان به ددواړو ترمنځ مساوي مشترک وي ځکه میدان دهغوئ دواړو دتیریدو ځای دی او دتګ راتګ په اعتبار سره بلکې دنورو ضروریاتو په اعتبار سره هم ددوئ دواړو په استعمال کې برابر دی نو ددواړو ترمنځ برابر تقسیمیږي.

(۲۸) دیوې ځمکې په باره کې ددوو مدعیانو څخه دهر یوه دا دعوی وه چې دا ځمکه زما په قبضه کې ده او حال دا چې له دوئ دواړو څخه یوه په دغه ځمکه کې خښتې جوړې کړې وي یا یوه په هغې کې آبادي کړې وه یا یې په هغې کې څاه کندلی وو یا یې دغسې یو کډی کندلی وو نو دا ځمکه دهغه په قبض کې شمارله کیږي ځکه دهغه په دغه ځمکه کې آبادي وغیره کول ددې خبرې علامه ده چې پر دغه ځمکه ددې سړي قبضه ده دا لکه له دوئ دواړو څخه چې یو پر دې باندې ګواهان پیش کړي چې دا ځمکه زما په قبضه کې ده نو دهغه په قبضه کې ګڼله کیږي ځکه حجت قائم شو.

## باب دعوی النسب

داباب ددعوی نسب په بیان کې دی

تردې مخکې مصنف رحمه الله دمالونو ددعوی احکام ذکر کړل اوس دلته ددعوی نسب احکام ذکر کوي ځرنګه چې دمالونو ددعوی دکثرت وقوع په وجه سره اهم وُو ځکه یې هغه مخکې ذکر کړل او دعوی نسب یې تر هغه وروسته ذکر کړل.

دَعوة په فتح ددال سره دخوراک لپاره دراغوښتلو په موقع استعمالیږي او دِعوة ددال په کسره سره دنسب ددعوی په موقع استعمالیږي او دُعوة په ضمه ددال سره جهادته دبلنې په موقع استعمالیږي.

(۱) وَلَدَتْ مَبِيعَةٌ لِأَقَلَّ مِنْ مُدَّةِ الْحَمْلِ مُنْذُ بِيعَتْ فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ ثَبَتَ نَسَبُهُ وَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ وَيُفْسَخُ الْبَيْعُ وَيَرُدُّ الثَّمَنَ (۲) وَإِنِ ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي مَعَهُ أَوْ بَعْدَهُ (۳) وَكَذَا إِنْ مَاتَتِ الْأُمُّ (۴) بِخِلَافِ مَوْتِ الْوَلَدِ (۵) وَعِتْقُهُمَا كَمَوْتِهِمَا (۶) وَإِنْ وَلَدَتْ لِأَكْثَرَ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ رُدَّتْ دَعْوَةُ الْبَائِعِ إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ الْمُشْتَرِي

**ترجمه**: دیوې خرڅې شوې مینځې ماشوم وزیږید ترموده حمل په کمه موده کې له هغې ورځې نه چې خرڅه شوې وه بیا بائع دعوی وکړه نو دا ماشوم ددغه بائع زوی ګرځي او مینځه یې ام ولده ګرځي او بیع فسخ کیږي او پیسې به بیرته ردوي ک. څه هم دعوی وکړي مشتري له ده سره سم یا ترده وروسته او همدا رنګه که مړه شوه

مور خلاف د ماشوم له مرګ نه او ددوئ دواړو آزادیدل ددوئ د مرګ په شان دی او که یې ماشوم وزیږید ترشپږمیاشتې په زیاته موده کې نو دبائع دعوی ردیږي مګر دا که مشتري دهغه تصدیق وکړ.

**تشریح**:(۱) که یو چا خپله منځه خرڅه کړه بیا دهغې ماشوم پیدا شوا وبائع دماشوم دنسب دعوی وکړه نوورته وبه ګورو چې که چیرته دخرڅیدوله وخت نه ترشپږمیاشتوپه کمه موده کې داماشوم پیداشوی وونو داماشوم دبائع زوی دی او موریې دهغه اُمِ ولده ده ځکه دبائع په مِلک کې دحمل ثابتیدل دهغه لپاره ظاهره دلیل دی چې دانطفه دبائع څخه ده نو چې کله دنسب دعوی صحیح شوه نونسبت یې وهغه وخت ته کیږي له کوم تاریخ نه چې نطفه راغلې ده یعنې له هغه وخت نه منځه دهغه اُمِ ولده شمارله کیږي نوظاهره شوه چې بائع خپله اُ ولدخرڅه کړې ده او دخپلې اُمِ ولدخرڅول ناجائزدی نو بیع دې فسخ کړي او بائع چې کومې پیسې اخیستې دي هغه دې بیرته واپس کړي ولی دا یې ناحقه وصول کړې دي.

(۲) یعنې په مذکورصورت کې نسب دبائع څخه ثابتیږي که څه هم دبائع ددعوی سره سم یاتر هغه وروسته مشتري هم ددې ماشوم دنسب دعوی کړې وي ځکه دبائع دعوی اسبقه ده ولی دبائع دعوی دنطفې دعلوق وخت ته منسوبه ده ځکه چې دبائع دعوی داستیلاددعوی ده اودمشتري دعوی دتحریردعوی ده یعنې دماشوم پرده باندې دآزادیدودعوی ده ولی حمل خودمشتري څخه نه دی نودبائع دعوی اقوی ده دمشتري دعوی ته اعتبارنشته.

(۳) قوله وکذاان ماتت الام ای وکذایثبت نسب الولدمن البائع ان ماتت الامة وادعاه البائع الخ.یعنې که دماشوم مورمړه شوه بیابائع دماشوم دنسب دعوی وکړه او حال داچې هغه ترشپږومیاشتوپه کمه موده کې پیداشوی وونو دماشوم نسب ثابتیږي او بائع هغه وړلای شي ولی دنسب په باره کې ماشوم اصل دی موریې فرع ده نو اعتبار دماشوم بقاء لره دی ځکه دثبوت نسب حاجت ماشوم لره دی دموربقاء ته یې اعتبارنشته نو دمور وفات کیدل دهغه لپاره مضرهم نه دی.

**فائده**: بیا دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدبائع باندې کل ثمن واپس کول واجب دی ځکه اوس ظاهره شوه چې بائع خپله ام ولده خرڅه کړې وه او دام ولدهیڅ قیمت دامام صاحب رحمه الله په نزدنه شي متعین کیدای نه په بیع کې اونه په غصب کې نومشتري دهغې ضامن نه ګرځي ځکه نومشتري دخپلوټولوثمنودواپس حیسلو مستحق دی.دصاحبینو رحمهما الله په نزدیواځې دماشوم حصه به واپس کوي دمورحصه به نه واپس کوي ځکه ثمن ددواړوپه مقابله کې وي اوام ولدچې منځه فرض کړودقیمت اندازه ورته کیدای شي نومشتري دام دقیمت په اندازه ضامن ګرځي.

**فائده**: دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:ویاخذه البائع بعدموت امه ویسترد المشتری کل الثمن وقالاحصته،وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله:(قوله کل الثمن) لانه تبین انه باع ام ولده ومالیتهاغیرمتقومة عنده فی العقدوالغصب فلایضمنها المشتری وعندهمامتقومة فیضمنها(الدرالمختار مع الشامیة: ۴/۴۹۳)

(۴) قوله بخلاف موت الولدای بخلاف مااذاادعاه البائع بعدموت الولدفانه لایثبت نسبه منه.یعنې که چیرته ماشوم مړ شوبیابائع دهغه دنسب دعوی وکړه او حال داچې هغه دمنځې دبیع له وخت څخه ترشپږمیاشتې په کمه موده کې پیداشوی وونو دمورام ولدکیدل یې نه ثابتیږي ولی موریه دې باره کې دماشوم تابع ده او دماشوم نسب

دهغه دمړکیدونه پس دعدم حاجت په وجه نه دی ثابت شوی نودهغه په تابع کیدوسره یې مورهم امّ ولدنه ثابتیږي ځکه په تابع کې دمتبوع بغیرحکم ابتداءًنه ثابتیږي .

(۵)اودخرڅې شوې منځې اودهغې دماشوم دآزادیدوحکم دهغوئ دمړګ دحکم په شان دی بیاکه مشتري مورآزاده کړه اوماشوم یې آزادنه کړاوبائع دعوی وکړه چې دازمازوی دی نودعوی یې صحیح کیږي اونسب ثابتیږي اودماشوم دآزادیدوحکم کیږي مګرمنځه دبائع امّ ولدنه ګرځي ځکه مشتري هغه آزاده کړې ده اواعتاق دبطلان احتمال نه لري اوکه مشتري ماشوم آزادکړموريې آزادهٔ نه کړه نودبائع دعوی نه صحیح کیږي ،دماشوم په حق کې ځکه نه صحیح کیږي چې ددعوی دصحیح کیدوپه صورت کې دمشتري داعتاق بطلان لازمیږي حال داچې اعتاق دبطلان احتمال نه لري اودمورپه حق کې ځکه چې کله په اصل یعنې ماشوم کې دعوی صحیح نه شوه نودتابع په حق کې په طریقه اولی نه صحیح کیږي .

(۶)که دبیع له وخت څخه ترشپږومیاشتوپه زیاته اودووکالوپه کمه موده کې ماشوم پیداشوی وونودبائع دعوی ددي ماشوم په باره کې ردیږي یعنې نه قبلیږي،ځکه کیدای شي چې دماشوم علوق له بیع وروسته شوی وي،البته که مشتري دبائع تصدیق وکړي نوددواړودتصادق په وجه دماشوم نسب ثابتیږي ماشوم آزادیږي،منځه دبائع ام ولدګرځي اوبیع باطلیږي ځکه دمشتري په تصدیق سره دعلوق نسبت ماقبل بیع طرف ته کیږي اودامکنه هم ده اوپه ماقبل البیع علوق سره مذکوراحکام ثابتیږي .

(۷)وَمَنِ ادَّعٰى نَسَبَ أَحَدِ التَّوْأَمَيْنِ ثَبَتَ نَسَبُهُمَا مِنْهُ (۸)فَإِنْ بَاعَ أَحَدَهُمَا وَأَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي بَطَلَ عِتْقُ الْمُشْتَرِي (۹)صَبِيٌّ عِنْدَ رَجُلٍ فَقَالَ هُوَ ابْنُ فُلَانٍ ثُمَّ قَالَ هُوَ ابْنِي لَمْ يَكُنِ ابْنَهُ وَإِنْ جَحَدَ أَنْ يَكُونَ ابْنَهُ (۱۰)وَلَوْ كَانَ فِي يَدِ مُسْلِمٍ وَنَصْرَانِيٍّ فَقَالَ النَّصْرَانِيُّ أَنَّهُ ابْنِي وَقَالَ الْمُسْلِمُ عَبْدِي فَهُوَ حُرٌّ ابْنُ النَّصْرَانِيِّ.

**ترجمه** :اوکه چادعوی وکړه دغبرګولیانوماشومانوڅخه دیوه دنسب نوثابتیږي ددواړونسب دهغه څخه،بیاکه یې یوخرڅ کړاومشتري هغه آزادکړنوباطلیږی دمشتري آزادیدل ،دیوچاسره یوماشوم دی هغه وویل چې دادفلان زوی دی بیایې وویل چې دازمازوی دی نودده زوی نه شي کیدای که څه هم هغه سړی انکاروکړي ددي ماشوم له زوی کیدوڅخه اوکه ماشوم دیوه مسلمان اویوه نصراني سره ووبیانصراني وویل چې دازمازوی دی اومسلمان وویل چې دازمامریی دی نوهغه آزادیږي اودنصراني زوی ګڼل کیږي .

**تشریح** :(۷)که چادغبرګولیانوماشومانوڅخه دیوه دنسب دعوی وکړه نودهغه بل ماشوم نسب هم له ده څخه ثابتیږي ځکه دواړه له یوې نطفې څخه پیداشوي دي نوچې دیوه نسب ثابت شي نوضروردهغه بل نسب هم ثابتیږي .

(۸)بیاکه مالک له هغوڅخه یوخرڅ کړاومشتري هغه آزادهم کړله هغه وروسته بائع دهغه په باره کې دعوی وکړه چې دده په لاس کې ووچې دازمازوی دی نوددواړونسب له هغه څخه ثابتیږي اودمشتري آزادیدل باطلیږي ځکه چې کله دهغه په باره کې ده دعوی وکړه چې دده په قبضه کې موجوددی نوبالضرورخرڅ شوی هم دده زوی کیږي نودااصلاآزاددی دمشتري اخیستل اوآزادیدل باطل دی .

(۹)كه ديو چا په قبضه كې يو ماشوم پيدا شو او هغه وويل چې دا د فلان زوی دی بیا هغه قابض وويل چې دا زما زوی دی نو د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد دا ماشوم دده زوی نه شي كيدای كه څه هم هغه سړی چې دهغه لپاره ده د زوی اقرار كړی وو ددې ماشوم له زوی والي څخه انكار وكړي ځكه نسب له هغو شيانو څخه دی چې له ثابتيدو وروسته نه ماتيږي او دداسې شيانو اقرار په ردولو سره نه رديږي نو د مقِر دا اقرار (چې دفلان زوی دی) كه څه هم مقرله رد كړی دی مگر دا په رديدو سره نه رديږي نو د مقِر اقرار د مقرِ په حق كې پرخپل حال باقی پاتی دی كه څه هم د مقرِله په حق كې نه ثابتيږي، نو يو ځل دغير لپاره له اقرار كولو وروسته دهغه په خپل حق كې دعوی كول باطليږي، صاحبين رحمهما الله فرمايي چې كه چيرته مقِرله د مقرله اقرار څخه انكار وكړ نو دا ماشوم د مقِر زوی گڼل كيږي ځكه چې كله مقِرله انكار وكړ نو دهغه په انكار سره د مقِر اقرار باطل شو نو داداسې شو گواكې د مقرله طرفه اقرار له سره نه دی شوی نو اوس د ماشوم په باره كې د مقِر دا دعوی كول چې دا زما زوی دی صحيح ده.

**فائده**: د امام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی لما قال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله: قوله وهذا عند ابی حنيفة رحمه الله الخ، والراجح عند الاكثر قوله واقتصر عليه اصحاب المتون وايده الشارحون (هامش الهداية: ۲۲۷/۳)

(۱۰)يو ماشوم چې ديوه مسلمان او يوه نصراني په قبضه كې دی نصراني وويل چې دا زما زوی دی او مسلمان وويل چې دا زما مريی دی نو دهغه نصراني زوی بلل كيږي او آزاديږي ځكه دهغه ماشوم په حق كې شفقت زيات دی ولی دنصراني په قبضه كې چې شي نو هغه به في الحال د آزادي شرافت حاصل كړي او په آخر كې به د اسلام شرافت هم حاصل كړي ځكه د وحدانيت دلائل واضح دي نو غالب دادی چې دی به مسلمان شي، او كه د مسلمان مريی وبلل شي نو د مولی تابع به وي مسلمان خو شمارل كيږي مگر د آزادي له نعمت څخه به محروم وي او بيا آزادي حاصلول دده په اختيار كې هم نشته.

(۱۱)وَإِنْ كَانَ صَبِيٌّ فِي يَدِ زَوْجَيْنِ فَزَعَمَ أَنَّهُ ابْنُهُ مِنْ غَيْرِهَا وَزَعَمَتْ أَنَّهُ ابْنُهَا مِنْ غَيْرِهِ فَهُوَ ابْنُهُمَا (۱۲)وَلَدَتْ مُشْتَرَاةٌ فَاسْتُحِقَّتْ غَرِمَ الْأَبُ قِيمَةَ الْوَلَدِ وَهُوَ حُرٌّ فَإِنْ مَاتَ الْوَلَدُ لَمْ يَضْمَنِ الْأَبُ قِيمَتَهُ وَإِنْ تَرَكَ مَالاً (۱۳)وَإِنْ قُتِلَ الْوَلَدُ غَرِمَ الْأَبُ قِيمَتَهُ وَيَرْجِعُ بِالثَّمَنِ وَقِيمَتِهِ عَلَى بَائِعِهِ (۱۴)لَا بِالْعُقْرِ.

**ترجمه**: كه د زوجينو سره يو ماشوم وو، خاوند وويل چې دا زما زوی دی له بلې ښځې څخه او ښځې وويل چې دا زما زوی دی له بل خاوند څخه نو دا ماشوم ددوئ دواړو زوی دی، دا خيستلې شوې منځې زوی پيدا شو بيا هغه د بل چا مستحقه وگرځيده نو پلار به د ماشوم د قيمت تاوان وركوي او هغه آزاديږي بيا كه مړ شي ماشوم نو پلار يې د قيمت ضامن نه گرځي كه څه هم څه مال يې پريښی وي او كه ووژل شي ماشوم نو پلار به دهغه د قيمت تاوان وركوي او واپس به اخلي د منځې ثمن او د ماشوم قيمت له بائع څخه، نه عقر.

**تشريح**: (۱۱)كه يو ماشوم د زوجينو په قبضه كې وو، خاوند وايي چې دا زما زوی دی زماله بلې بي بي څخه او ښځه وايي چې دا زما زوی دی زماله بل خاوند څخه نو دا ماشوم ددوئ دواړو ترمنځ مشترک دی ځكه ظاهرا

ده چې داماشوم ددوئ دوارودی ولی ددوئ دوارو ترمنځ قیام نکاح اوپرماشوم باندي ددوئ قبضه ددي خبري علامه ده چې ماشوم ددوئ دوارودی .

(۱۲)یوچامنځه اخیستې وه بیادهغې ماشوم پیداشو ،مشتري دعوی وکړه چې دازمازوی دی یامنځه دبل چاشوه اوس دي دماشوم پلار(مشتري)دماشوم قیمت اداکړي اوماشوم آزاددی ځکه دادمغرور(مغرورمعنی دوکه شوی خاوند ،مغرورهغه چاته ویل کیږي چې دملک یمین یاملک نکاح په اعتمادله یوې ښځې سره صحبت وکړي اوله هغې څخه یې زوی پیداشي بیادغه ښځه دبل چاشي) زوی دی اومغرورزوی دقیمت په عوض آزادیږي ،اوکه مذکورماشوم ترخصومت مخکي مړشونو پلاردهغه دقیمت ضامن نه ګرځي یعنې په دي وخت کې دماشوم قیمت مستحق ته نه ورکول کیږي که څه هم داماشوم څه مال هم نه یې پري اینې چې میراث شي اودهغه پلار(مشتري) ته ورکول شي ،ځکه که چیرته ماشوم حقیقةً دمستحق مملوک وای نوهم به مشتري نه ضامن کیدی ولی دمغصوب زوی زموږ په نزدیوامانت دی نوچې کله داثابته شوه چې داماشوم حقیقةً مملوک هم نه دی نوپه طریقه اولی سره نه مضمون کیږي .

(۱۳)البته که مذکورماشوم یوچاوواژه اوپلاریې له قاتل څخه دهغه ماشوم دقیمت په اندازه دیت واخیست نودمستحق کیدوپه صورت کې پلاردهغه دقیمت نه ضامن کیږي ،ځکه ماشوم که څه هم له پلارسره ژوندی موجودنه دی مګردهغه بدل خوورسره دی اودبدل لاس ته راتلل داسي دی لکه خپله ماشوم چې ورسره وي نومستحق ته قیمت ورکول لازم دی ،اوپلارچې دماشوم کوم قیمت مستحق ته دتاوان په ډول ورکړی دی نوهغه به دماشوم قیمت اودمنځې ثمن له بائع څخه واپس اخلي یعنې چاچې پرده باندي منځه خرڅه کړه هغه یې په هغې کې پرتصرف کولو مسلط کړی وو ولی ماشوم ددي منځې جزء دی اومنځه مبیع دی اوبائع دمبیع دسلامتي ضامن وي نودمبیع دنه سلامتیاپه صورت کې مشتري له بائع څخه دثمن دواپس اخیستوحقدارګرځي اوپه مذکورصورت کې دمنځې دمستحق کیدوپه وجه مبیع سالمه نه ده نوځکه مشتري له بائع څخه واپس ثمن اخلي .

(۱۴)قوله لابالعقرای لایرجع المشتری علی البائع بمالزمه من العقر ،یعنې په مذکورصورت کې چې مشتري دمستحق له منځې سره وطی کړې.ده نودمشتري پرذمه دمستحق لپاره مهرمثل واجبیږي مګرمشتري چې دمنځې کوم عقر(مهرمثل) مستحق ته ورکړي هغه له بائع څخه واپس نه شي اخیستلای ځکه عقرخودمنافع بضع بدل دی اومنافع دبضع خومشتري حاصلې کړي دي .

## كتاب الاقرار

داکتاب داقرارپه بیان کې دی

اقرارلغةً په معنی داثبات سره دی ،ویل کیږي :قَرَّالشَّيْ اِذَاثَبَتَ اوشرعااِخْبَارٌعَنْ ثُبُوْتِ حَقِّ الْغَيْرِعَلَی نفسه ،یعنې دمقردي خبرورکولوته چې پرده باندي دغیرحق لازم اوثابت دی ،ته اقراروایي، اقرارکوونکي ته مقراودچالپاره چې اقرارکول کیږي هغه ته مقرله اوپه کوم شي چې اقرارکول کیږي هغه ته مقربه ویل کیږي .

مصنف رحمه الله له كتاب الدعوى وروسته كتاب الاقرار،كتاب الصلح،كتاب المضاربة اوكتاب الوديعة ذكركړي دي چې مناسبت يې څه داډول دى چې مدعى عليه به يادمدعي ددعوى اقراركوي يابه انكاركوي،كه اقرار وكړي نوداقرار داحكامو دبيان محل كتاب الاقرار دى اوكه انكاروكړي نوداد خصومت سبب دى چې دصلح مقتضي ده نودصلح داحكامودبيان محل كتاب الصلح دى اودصلح په نتيجه كې چې كوم لاس ته راځي هغه به ياچاته وركول كيږي چې نفع پرې حاصله كړي يابه چاته وركول كيږي چې حفاظت يې وكړي دلومړي قسم داحكامو محل كتاب المضاربة دى اوددوهم قسم داحكامو محل كتاب الوديعة دى.

(۱)هُوَ اِخبارٌ عَن ثُبوتِ حَقِّ الغَيرِ عَلٰى نَفسِه (۲)اِذا اَقَرَّ حُرٌّ مُكَلَّفٌ بِحَقٍّ صَحَّ وَلَو مَجهولاً كَشَيءٍ اَو حَقٍّ (۳)وَيُجبَرُ عَلٰى بَيانِه (۴)وَيُبَيِّنُ مالَه قيمَةٌ وَالقَولُ لِلمُقِرِّ مَعَ يَمينِه اِن ادَّعَى المُقَرُّ لَه اَكثَرَ مِنه (۵)وَفي مالٍ لَم يُصَدَّق في اَقَلَّ مِن دِرهَمٍ (۶)وَمالٌ عَظيمٌ نِصابٌ وَاَموالٌ عِظامٌ ثَلاثَةُ نُصُبٍ (۷)وَدَراهِمُ كَثيرَةٌ عَشَرَةٌ (۸)وَدَراهِمُ ثَلاثَةٌ (۹)كَذا دِرهَمًا دِرهَمٌ كَذا كَذا اَحَدَ عَشَرَ (۱۰)كَذا وَكَذا اَحَدٌ وَعِشرونَ (۱۱)وَلَو ثَلَّثَ بِالواوِ زيدَ مِائَةٌ وَلَو رَبَّعَ زيدَ اَلفٌ.

**ترجمه** :داخبرور كول دى دغير دحق دثابتيد وپرخپل ځان،چې كله اقراروكړي آزاد ،مكلف ديوچادحق نوداصحيح دى كه څه هم مجهول وي،لكه شى اوحق اوپربيانولومجبوركړاى كيږي اوداسي شى به بيانوي چې قيمت ولري اوقول دمقِر معتبريږي دهغه له قسم سره ،كه دعوى وكړي مقرله ترهغه زيات اودمال په اقراركې يې تصديق نه كيږي تريوه درهم په كم كې،اوعظيم مال نصاب دى اوعظيم مالونه دري نصابه دي اودراهم كثيره لس درهمه دي،اوكم دراهم دري درهمونه دي اوهمدارنګه درهمًايودرهم دى اوكذاكذايوولس درهمه دي اوكذاوكذايوويشت درهمه دي اوكه دري ځله وويل په واوعطف سره نوترسل زياتيږي اوكه يې څلورځله وويل په واوعطف سره نوزرزياتيږي .

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله داقراراصطلاحي تعريف داډول كړى دى چې دغيرحق پرخپل ځان دثابتولو خبرور كولوته اقراروايي .

(۲)كه يوآزاد ،بالغ اوعاقل ديوچاپه حق باندي اقراروكړنوداقرارپرمقِرباندي لازميږي برابره ده كه مقربه معلوم وي كه مجهول وي مثلامقِروويل چې دفلان زماپرذمه حق دى ياېې زماپرذمه شى دى نوداجائزدى ځكه دمقربه مجهول كيدل داقراردصحت مانع نه دى ولى كله پرانسان باندي مجهول حق لازميږى مثلايوچادبل چاداسي مال ضائع كړچې قيمت يې معلوم نه ووبياهغه اقراروكړچې دامال ماتلف كړى دى نودادمجهول مال اقراردى اوجائزدى .

(۳)البته كه مقِردمجهول حق اقراروكړ(مثلاويې ويل له علی شئ،نومقِربه دي مجبوركيږي چې دمجهول مقربه بيان وكړي ولى دكوم شي چې مقِرالتزام كړى دى له هغه څخه وتل پرده لازم دى اوداهله كيداى شي چې دمقربه مجهول بيان وكړاى شي اوڅرنګه چې تجهيل دمقِرله جانبه دى نوبياهم دده پرذمه كيږي .

الالغاز: اى رجل اقر ولم يلزمه المال حتى تكرر الاقرار؟
الجواب: انه المقر بالزنا لايجب عليه مهر المزنية حتى يكرر الاقرار. (الاشباه والنظائر)

(۴) كه مقِر د مجهول شي اقرار وكړ مثلاً ويې ويل چې د فلان پر ما باندي يو شى دى نو پر مقِر باندي داسي شى بيانول لازم دى چې څه قيمت ولري ځكه هغه پر خپله ذمه د شي د وجوب خبر وركړى دى او د كوم شي چې څه قيمت نه وي هغه نه واجبيږي، او س چې مقِر كوم بيان كړى دى كه مقَرله تر هغه د زيات دعوى وكړه نو د مقِر قول سره له يمينه معتبريږي. ولى مقَرله زيادت څخه منكر دى او قول د منكر سره له يمينه معتبروي.

(۵) كه مقِر وويل چې د فلان پر ما باندي مال دى نو څرنګه چې مقربه مجهول دى ځكه د هغه بيان په باره كې مقِرته رجوع كيږي ولى د مال د مجمل پرېښودونكى مقِر دى، نو كه مقِرتر يوه درهم كم بيان كوي نو د هغه تصديق نه كول كيږي ځكه عادةً تريوه درهم پر كم كسورو باندي د مال اطلاق نه كيږي نو لږ تر لږه يو درهم بيانول خو ضروري دى.

(۶) قوله ومال عظيم نصاب اى اذا قال لفلان على مال عظيم يجب نصاب، يعني كه مقِر وويل د فلان پر ما باندي مال عظيم دى نو له مال عظيم څخه مراد د نصاب مال دى يعني تر دوه سوه په كمو درهمو نو كې د ده تصديق نه كول كيږي ځكه دوه درهمه د زكوة نصاب دى او نصاب شرعًا او عرفًا مال عظيم دى نو د هغه مالك غني ګڼل كيږي ،قوله واموال عظام اى لو قال لفلان على اموال عظام لزمه ثلاثة نصب، يعني كه مقِر وويل چې زما پر ذمه د فلاني اموال عظام دي نو دى چې د كومو مالو نو جنس بيانوي مثلاً دراهم، دنانير او بنان وغيره نو د هغه جنس دري نصابه لازميږي ولى اموال جمع لفظ دى او ادنى په جمع كې دري دي نو تر دريو په كم كې د هغه تصديق نه كيږي.

(۷) قوله ودراهم كثيرة عشرة اى لو قال لفلان على دراهم كثيرة لزمه عشرة، يعني كه مقِر وويل چې د فلاني پر ما باندي ډير دراهم دي نو له هغو څخه مراد لس درهمونه دي بيا كه دى تر لسو كم درهمونه بيان كړي نو د ده تصديق نه كول كيږي ولى اسم جمع چې كله د عدد تميز واقع شي نو لس آخري هغه عدد دى چې پر هغه اسم جمع منتهي كيږي لكه چې ويل كيږي عشرة دراهم په داسي حال كې له لسو وروسته تميز جمع نه راځي بلكې مفرد وي مثلاً احدعشرة درهمًا، او مائة درهم، نو د لفظ په حيثيت سره لس اكثر شو. نو د مقِر كلام د لسو طرف ته راجع كيږي، د صاحبينو رحمهما الله په نزد تر نصاب په كم كې يې تصديق نه كول كيږي ځكه د شريعت په نظر كې د كثير دراهمو مالك (مالدار) صاحب نصاب دى نو كه په مذكوره صورت كې هغه تر دوه سوو د كمو درهمو بيان وكړي نو د هغه تصديق نه كول كيږي.

**فائده**: په دي مسئله كې د قول راجح په باره كې د علماؤ اختلاف دى ځينو د امام صاحب رحمه الله قول ته ترجيح وركړې ده او ځينو د صاحبينو رحمهما الله قول ته ترجيح وركړې ده، شيخ عبدالحكيم شاوليكوټى رحمه الله د دواړو قولونو د ترجيح له نقل كولو وروسته فرمايي چې په دي مسئله كې عرف ته اعتبار وركول بهتر دى فرمايي: وروى القدورى فى كتاب التقريب عن الامام ابى حنيفة رحمه الله رواية مثل قولهما واختار بعض شراح الهداية ايضا قولهما لكن رجح المحقق ابن الهمام فى الفتح قول ابى حنيفة رحمه الله بالعشرة وعليه المتون الخ والذى يظهر للعبد الضعيف عبدالحكيم الشاولكوتى ان يعتبر ههنا ايضا العرف وحال المقر فى الفقر والغناء ويكون التقدير والارادة مفوضا الى فقه الحاكم كما هو الحكم فى اخت هذه المسئلة السابقة انفا لان اختلاف التصحيح يثبت الراى للمفتى والعرف هو المرجع فى كثير من الاحكام هذا ما ظهر لى، والله اعلم (هامش الهداية: ۳/ ۲۳۱)

(۸) قوله ودراهم ثلثة اى لوقال له على دراهم لزمه ثلاثة، يعنې كه مقروويل له علىّ دراهم، نولږترلږه دري درهمونه لازميږي ځكه دراهم دجمع صيغه ده اوادنى دجمع دري صحيح افراددي نوپرمقرباندي دري دراهم لازميږي، البته كه مقرتردريوزيات بيان وكړي نوچې كوم بيان كوي هغه مراديږي ځكه لفظ دجمع تردريودزياتوهم احتمال لري.

(۹) قوله كذادرهمااى لوقال لفلان على كذادرهمالزمه درهم، يعنې كه مقرو ويل :له علىّ كذادرهمًا (دفلان پرماباندي دومره دي ددراهمويه اعتبارسره) نويودرهم لازميږي ځكه درهمًادكذاپه لفظ كې دذكرشوي دمبهم عددتفسيردى نوله درهمًاڅخه مفهوميږي چې له كذاڅخه يودرهم مراددى، اوكه مقروويل : لفلان علىّ كذاكذادرهمًا (دفلان پرماباندي دومره دومره درهمونه دي) ترديارلس درهمونوپه كم كې دهغه تصديق نه كول كيږي ځكه مقردوه داسي مبهم عددونه ذكركړي دي چې ترمنځ يې حرف عطف نشته اوپه مفسراعدادوكې اقل يوداسي عددچې پكې په دوه مبهم عددونوكې حرف عطف نشته احدعشردى اواكثرتسعة عشردى نواقل بلابيانه مراديږي اواكثرپربيان باندي موقوف كيږي.

(۱۰) قوله كذاوكذااحدوعشرون اى لوقال لفلان على كذاوكذادرهمالزمه احدوعشرون درهما، يعنې كه مقروويل كذاوكذانوتريوويشت په كم كې دهغه تصديق نه كول كيږي ځكه مقردوه داسي مبهم عددونه ذكركړي دي چې ترمنځ يې حرف عطف دى اوپه مفسراعدادوكې اقل داسي عددچې ددومبهموعددونوترمنځ حرف عطف دى احدوعشرون دى.

(۱۱) اوكه مقردرې ځله كذاپه واوسره وويل :له علىّ كذاوكذاوكذادرهمًا، نوپريوويشت باندي سل زياتيږي يعني يوسل يوويشت درهمونه لازميږي ځكه له واوسره ددريوعددولږترلږه تعبيرمائة واحدوعشرون، دى اوكه يې ځلورځله وويل له علىّ كذاوكذاوكذاوكذادرهمًا، نوپريوسل باندي زرزياتيږي نويوولس سوه يوويشت درهم لازميږي لماقلنا.

(۱۲) وَعَلَىَّ وَقِبَلِي اِقْرَارٌ بِدَيْنٍ (۱۳) عِنْدِي مَعِيَ فِي بَيْتِي فِي صُنْدُوقِي فِي كِيسِي اَمَانَةٌ (۱۴) قَالَ لِي عَلَيْكَ اَلْفٌ فَقَالَ اتَّزِنْهُ اَوْ اِنْتَقِدْهُ اَوْ اَجِّلْنِي بِهِ اَوْ قَضَيْتُكَهُ اَوْ اَحَلْتُكَ بِهِ فَهُوَ اِقْرَارٌ وَبِلَا كِنَايَةٍ لَا (۱۵) وَاِنْ اَقَرَّ بِدَيْنٍ مُؤَجَّلٍ وَادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ اَنَّهُ حَالٌّ لَزِمَهُ حَالًّا وَحَلَفَ الْمُقَرُّ لَهُ عَلَى الْاَجَلِ (۱۶) وَعَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌ فَهِيَ دَرَاهِمُ وَمِائَةٌ وَثَوْبٌ يُفَسِّرُ الْمِائَةَ وَكَذَا مِائَةٌ وَثَوْبَانِ (۱۷) بِخِلَافِ مِائَةٍ وَثَلَاثَةِ اَثْوَابٍ.

**ترجمه** :اولفظ دعلىّ اوقبلى استعمالول اقراردى ددين، اولفظ دعندى، معى، فى بيتى، فى صندوقى، فى كيسى، دامانت اقراردى يوچاوويل زماپرتاباندي زردرهم دي بياهغه وويل چې ته داتول كړه يايې صاف كړه ياماته دهغومهلت راكړه ياماهغه تاته اداكړي دي ياماهغه تاته حواله كړي دي نودااقراردى اوبغيرها، كنايه نه دى، اوكه يې اقراروكړپه موجل قرض اومقرله دعوى وكړه چې هغه فوري دى نوفوري لازميږي اوقسم اخيستل كيږي له مقرله څخه پرميعادباندي اوكه مقروويل چې پرماباندي سل نوردرهم دي نوداټول درهم كيږي اوكه يې وويل چې سل نورې كپړي دي په دي كې يې دسلوبيانول مقصددى همداحكم دسلواودووكپړودى خلاف له سلواودري كپړو.

**تشريح** :(۱۲)قوله وعلي وقبلي اقرار بدين اي لوقال لفلان علي اولفلان قبلي اقرار بدين ،يعني كه مقروويل له عليّ (دفلان پرماباندي)ياله قِبَلي (دفلان زماله طرفه) پردي يې هيڅ اضافه نوره نه وکړه نو دادقرض اقرار کيږي ځکه دعليّ صيغه دايجاب صيغه ده اوقِبَلي دضمان خبرورکوي ځکه قباله دکفاله په شان دضمانت نوم دی .

(۱۳)قوله وعندي معي الخ اي لوقال لفلان عندي اومعي الخ يعني كه مقروويل :له عندي(دفلان زماسره ) ياله معي (دفلان له ماسره ) ياله في بيتي (دفلان زماپه كوركې)ياله في صندوقي(زماپه صندوق كې دفلان) ياله في كيسي (زماپه تيلۍ كې دفلان )نوپه دغوټولوصورتونوكې دامانت اقراردی ځکه په دي صورتوكې ددي اقراردی چې هغه شی دده په لاس كې دی اوديوه شي په لاس كې كيدل دوه ډوله وي يومضمون بل امانت،نوپه دوئ كې كمترچې وي هغه ثابتيږي اوكمترامانت دی نوځكه دادامانت اقراردی .

(۱۴)كه مقرته چاوويل زماپرتاباندي زردرهم دي مقروويل چې هغه تول كړه يايې صاف كړه (دادهغې زمانې خبره ده چې خلكوبه دسپينوزرودراهمومقدارمعلومولپاره هغه تول كول يابه يې سم اوكوټه سره معلومول نوصافول به يې )يايې ورته وويل چې ماته مهلت راكړه،يايې ورته وويل چې هغه ماتاته دركړي دي يايې ورته وويل چې دهغولپاره ماتاته دبل چاحواله دركړې وه (مثلادزيدحواله مي دركړې وه چې له زيدڅخه هغه وصول كړه)نوپه دغوټولوصورتونوكې دزرودرهمونو اقرار دی ځكه په دي ټولوجملوكې (هاء) ضمير(الف) طرف ته راجع دی نوګواكې مقروايې :اتزن الالف التي لک عليّ، همدارنګه په باقي جملوكې نودادمدعي دكلام جواب دی مستقل كلام نه دی،البته كه مقردمدعي په جواب كې بغيرهاء وويل :اتزن يايې وويل :انتقد ،نودادهغه له طرفه اقرارنه كيږي ځكه دامستقل كلام دی دمدعي دكلام جواب نه دی ځكه داقاعده ده چې كوم كلام دا ستقلال اوجواب دواړوصلاحيت لري هغه مستقل ګڼل كيږي .

(۱۵)كه مقردميعاددين اقراروكړمثلاويې ويل دفلاني زردرهم زماپرذمه لازم دي يوه مياشت وروسته اومقرله په دين كې دهغه تصديق وكړمګردمودې په باره كې يې دهغه تكذيب وكړنوپرمقرباندي في الحال دين لازميږي اوپه موده كې دهغه تصديق نه كول كيږي ځكه مقرپرخپل ځان دزرواقراروكړاوپرمقرله يې دمودې دعوی وكړه نودده اقرارخپله پرده باندي حجت دی اوپربل باندي دده دعوی بلاحجت نه قبليږي،البته كه مقرله پردي خبره باندي قسم واخلي چې په موده سره نه دي ځكه مقرپرخپل ځان دغيردحق سره سره پرمقرله باندي دخپل ځان لپاره دمودې دعوی وكړه مقرله له حق مودې څخه انكاركوي اوقسم پرمنكرباندي راځي .

(۱۶)قوله وعلي مائة ودرهم الخ،اي لوقال لفلان علي مائة ودرهم الخ،يعني كه مقروويل زماپرذمه دفلاني يوسل يودرهم دی نوپرده باندي ټول يوسل يودرهم لازم دي ځكه عادةً خلک په داډول كلام كې ددرهم لفظ دتفسيرپه توګه ذكركوي نودرهمٌ دمائة لپاره تفسيردی ،اوكه يې وويل چې زماپرذمه دفلاني سل اويوه كپړه ده نوپرده باندي يوه كپړه لازميږي اودسلوپه تفسيركې مقرته رجوع كيږي چې له مائة څخه ستاڅه مراددی ،ځكه دمعطوف مفسّرعطف يې پرمعطوف عليه مبهم باندي كړی دی اوعطف لپاره دبيان نه دی وضع كړای

شوی نو لفظ دمائة مبهم پاتې شو ،دمائة دبيان لپارهٔ مقرته رجوع كيږي ،همدا رنګه كه چيرته ووايي چې سل او دوې كپړې دي نو په دغه صورت كې هم دسلو په باره كې له ده څخه پوښتنه كوله كيږي لماقلنا.

(۱۷)قوله بخلاف مائة وثلاثة اثواب اى بخلاف ما اذا قال لفلان على مائة وثلاثة اثواب حيث يلزمه الكل ثيابا .يعنې كه مقروويل له عليّ مائة وثلاثة اثواب (زما پر ذمه دفلاني سل اودرې كپړې دي)نو ټولې كپړې لازميږي يعنې يوسل درې كپړې لازميږي څكه دلته مائة اوثلاثة دوه مبهم عددونه دي دواړه دتفسير ضرورت لري ،اوقائل له ثلاثة وروسته لفظ داثواب بلا حرف عطف ذكر كړی دی نو داددواړولپاره تفسير شو نوله دواړو عددونو څخه كپړه مرادیږي.

(۱۸)اقربتمر فى قوصرة لزماه وبدابة فى اصطبل لزمته الدابة فقط وبخاتم له الحلقة والفص (۱۹)وبسيف له النصل والجفن والحمائل وبحجلة له العيدان والكسوة (۲۰)وبثوب فى منديل او فى ثوب لزماه وبثوب فى عشرة له ثوب (۲۱)وبخمسة فى خمسة وعنى به الضرب خمسة وعشرة ان عنى مع.

**ترجمه**:اوكه يې اقراروكړ په خرماؤپه ټوكرى كې نو دواړه لازميږي او دحيوان په خپل تم ځاى كې نو يوائې حيوان لازميږي، اودګوتمې په اقرار كې دمقرله لپاره حلقه اوغمى دواړه دي اودتورې په اقرار كې دهغه لپاره توره ،پوښ (تيكي) اودتورې بند اودچپركټ په اقرار كې دهغه لپاره لرګي اوپردې لازميږي ،اوكه يې اقراروكړ دكپړې په دسمال كې يا په كپړه كې نو دواړه لازميږي اوكه يې اقراروكړ دكپړې په لسو كې نو دمقرله لپاره يوه كپړه كيږي اوپنځه په پنځو كې اونيت يې وكړ دهغه دضرب نو پنځه لازميږي اولس لازميږي كه يې نيت دپنځو له پنځو سره وكړ.

**تشريح**:(۱۸)كه مقراقراروكړچې دفلان پرما باندې خرماوې دي په ټوكرى كې نو دمقرله لپاره خرماوې اوټوكرى دواړه لازميږي اوكه مقروويل چې پرما باندې دفلان حيوان لازم دی په خپل تم ځاى كې نو حيوان يوائې لازميږي اوكه مقردیوچالپاره دګوتمې اقراروكړنو پرمقرباندې حلقه اوغمى دواړه لازميږي څكه خاتم دواړو دلره شامل دی.

(۱۹)قوله وبسيف له النصل والجفن والحمائل اى لو اقر بسيف فللمقرله النصل والجفن والحمائل .يعنې كه مقردچالپاره دتورې اقراروكړنو دمقرله لپاره نصل (توره) جفن (پوښ) حمائل (دتورې بند) درې سره لازميږي څكه سيف دغو دريو واړو شيانو ته شامل دی ،كه مقردچالپاره دچپركټ اقراروكړنو دمقرله لپاره لرګي چې په هغو سره چپركټ جوړيږي اوپردې چې پر لرګيو باندې بالا اچول كيږي ،لازميږي څكه اسم حجله دواړو ته شامل دی.

(۲۰)قوله وبثوب فى منديل او فى ثوب لزماه اى لو اقر بثوب فى منديل او اقربثوب فى ثوب لزمه الثوب والمنديل فى الصورة الاولى والثوبان فى الثانى .يعنې كه مقروويل زما پر ذمه دفلان كپړه ده په دسمال كې نو دواړه لازميږي اوكه مقروويل چې زما پر ذمه دفلان كپړه په كپړه كې نو دواړې كپړې لازميږي ،اوكه مقروويل چې زما پر ذمه دفلان يوه كپړه ده په لسو كې نو دامام ابويوسف رحمه الله په نزديو ائې يوه كپړه لازميږي څكه عادت دادی چې لس كپړې ديوې لپاره ظرف نه وي اوعادةً ممتنع دحقيقةً ممتنع په شان دی ،دامام محمد رحمه الله په نزديو ولس كپړې لازميږي څكه داجائزه ده چې يوه عمده كپړه په لسو كپړو كې ونغښتل شي.

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المنتقی :قلت لزمه ثوب واحد عندابی یوسف رحمه الله وقول الامام وبه جزم في التنوير وقدمه المصنف رحمه الله واعتمده صاحب الدرر وغيره فكان هو المعتمد(الدر المنتقی:۳/ ۳۰۲)

**فائده** :په دي ټولو مسائلوکښ اصل اوقاعده داده چې کوم شی دظرف کیدوصلاحیت لري اودهغه له يوه ځايه بل ځای ته انتقال ممکن وي نودداسي شي په اقرارکښ ظرف اومظروف دواړه لازميږي لکه دخرماؤ اقرارپه ټوکرۍ کښ،اوکه يې دظرف کیدوصلاحیت درلودمګردهغه انتقال ممکن نه وونويواځي مظروف لازميږي ظرف نه لازميږي لکه دحيوان غوجل (تم ځای) خودامام محمد رحمه الله په نزددواړه لازميږي ځکه دامام محمد رحمه الله په نزددغيرمنقول غصب کول متصوزدی،اوکه هغه شي دظرف کیدوصلاحیت نه درلودنويواځي مظروف لازميږي لکه چې يوڅوک ووايي له علیّ دراهم فی درهم .

(۲۱)قوله وبخمسة فی خمسة ای الواقرجل بخمسة فی خمسة ،يعنې که يوچادبل لپاره اقراروکړدپنځوپه پنځوکښ يعنې داسي يې وويل :له علیّ خمسة فی خمسة،ددي دري مطلبه کیدای شي اودهريوه بيل حکم دی ،يومطلب يې دادی چې پنځه په پنځوکښ ضرب کړای شي اوهمدامرادشي نوپنځه ويشت لازميږي ځکه پنځه چې په پنځوکښ ضرب شي نوپنځه ويشت تري جوړيږي،دحسن بن زياد رحمه الله همداقول دی.دوهم مطلب يې دادی چې پنځه په پنځوکښ ضرب شي دهغوټکړي زياتي شي په دي صورت کښ عددپنځه پاتيږي البته اجزاء يې پنځه ويشت کيږي.که دامطلب واخيستل شي نويواځي پنځه لازميږي ځکه په ضرب سره اجزاء که څه هم زياتيږي ليکن عددپنځه پاتيږي،مصنف رحمه الله همدامطلب اخيستی دی اوپنځه يې لازم کړي دي.دريم مطلب يې دادی چې خمسة فی خمسة ،معنی داچې پنځه له پنځوسره يعنې فی په معنی دمع اخيستل کيږي نولس لازميږي ځکه پنځه چې له پنځوسره جمع کړای شي نولس تري جوړيږي .

(۲۲)له علی من درهم الی عشرة اومابين درهم الی عشرة لاتسعة(۲۳)له من داری مابين هذا الحائط الی هذا الحائط له مابينهما فقط(۲۴)وصح الاقرار بالحمل (۲۵)وللحمل ان بين سببا صالحا والالا(۲۶)وان اقربشرط الخيار لزمه المال وبطل الشرط

**ترجمه** :دهغه يودرهم دی ترلسوپوري يايودرهم دی ترلسوپه مابين کښ نودهغه لپاره نه درهمه کيږي دفلان لپاره زماله مکان څخه له دغه ديوال نه تردي بل ديوال پوري دی نودهغه لپاره يواځي ددواړوديوالونوترمنځ برخه کيږي،اوصحيح دی اقرارپه حمل ،اودحمل لپاره که چيرته صالح سبب بيان کړي که نه بيانه صحيح کيږي،اوکه يې اقراروکړدخيارشرط سره نومال لازميږي هغه لره اوشرط باطليږي .

**تشريح** :(۲۲)که مقرووېل دفلان پرماباندي يودرهم دی ترلسوپوري يايې وويل يودرهم ترلسوپوري په مابين کښ نوپه دواړوصورتونوکښ دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپرمقرباندي نه درهمه لازميږي يعنې ابتداءً اوله هغه مابعدلازميږي اوغايه ساقطيږي ځکه غايه له مغياغيروي البته لومړی غايه داخل منل ضروري دی ځکه عدددابتدا، تقاضاکوي نوکه اول خارج کړای شي نودوهم ابتداء ګرځي نوهغه هم داول په شان له ابتداء ګرځيدوڅخه خارجيږي همدارنګه دريم اوڅلورم ترپايه .....نونتيجه يې داراوځي چې هيڅ عددهم نه واجبيږي حال داچې داباطل دی ځکه لومړی غايه په مغياکښ داخل منل ضروري دی ، دصاحبينو رحمهما الله په نزدپوره لس درهمه لازميږي دهغوئ په نزددواړه په غايه مغياکښ داخل دي.

دامام زفر رحمه الله په نزد اته درهمونه لازميږي دهغه په نزددواړه په غايه مغيا كې داخل نه دي.
**فائده**: دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دى لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :قوله وقالايلزمه العشرة الخ، والراجح قولهما وهو قول الائمة الثلاثة وهو الاستحسان قال ابن همام رحمه الله في الفتح والحاصل ان ماقاله الامام في الغاية الثانية قياس وماقالاه في الغايتين فهو استحسان وماقاله زفر رحمه الله فيهما القياس كذافي مبسوط شيخ الاسلام خواهرزاده (هامش الهداية: ۳/ ۲۳۳)

(۲۳) قوله من داري بين هذاالحائط الخ اى لوقال رجل لفلان من داري بين هذالحائط الخ، يعني كه چاد بل لپاره داسې اقراروكړچې زماله سراى څخه له دي ديوال څخه تردابل ديوال پورې څمكه دفلان شخص ده نوپواخې ددوو ديوالونو ترمنځ څمكه دمقرله لپاره كيږي ديوالونه دهغه په اقراركې نه داخليږي ځكه اصل دادى چې په محسوسو شيانوكې حدپه محدودكې نه داخليږي ځكه دحداومحدودترمنځ مغايرت وي نومحدود (چې ترميانه څمكه ده) اقراركول دحد (ديوالونه) اقرارنه ګڼل كيږي.

(۲۴) كه مقرديوچالپاره دمنځې دحمل يادپسه دحمل اقراروكړنودااقرارصحيح دى اوپرمقرباندې مقربه لازم دى كه سبب صالح بيان كړي اوكه يې نه كړي بيان ځكه ددغه اقراروجه صحيح ممكن دى هغه داده چې ممكن دى چې يووفات شوي چادي ده ته وصيت كړى وي نودغه اقراردجوازپردغه صورت باندي حمل كيږي.

(۲۵) قوله وللحمل ان يبين سبباصالحااى وصح الاقرارللحمل ان بين سبباصالحا، يعني كه مقروويل چې دفلان دحمل لپاره پرماباندي زردرهمونه دي نوددي دوه صورتونه دي يوصورت دادى چې دحمل دثبوت مِلك لپاره سبب صالح بيان كړي چې صورت يې په دي ډول دى چې مقروواېي چې دفلانۍ ښځې دحمل پرماباندي زردرهمونه لازم دي چې دهغووصيت فلان شخص كړى ووچې بيااوروسته هغه له ماڅخه ضائع شوياوواېي چې دحمل پلارمړشوى ووحمل زردرهمه له هغه څخه ميراث موندلى ووچې بيااوروسته له ماڅخه ضائع شونوځرنګه چې مقِردحمل لپاره دثبوت مِلك سبب صالح (يعني وصيت ياميراث) بيان كړځكه نودااقرارصحيح دى، دوهم صورت دادى چې اقرارمبهم پريږدي يعني دثبوت مِلك هيڅ سبب صالح بيان نه كړي نودامام ابويوسف رحمه الله په نزددااقرارصحيح نه دى، دامام محمد رحمه الله په نزدصحيح دى.
**فائده**: دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دى لمافي ملتقى الابحر: وان فسربيع اوقراض اوابهم الاقراريكون لغوا (ملتقى الابحر: ۳/ ۴۰۳) هكذااقتصر عليه كثيرمن المتون والشروح واخرصاحب الهداية دليل ابى يوسف رحمه الله اشارة الى ترجيحه كماهوعادته.

(۲۶) كه مقرځان لپاره دخيارشرط په شرط سره ديوچالپاره اقراروكړمثلاً ديوچالپاره يې دغصب ياوديعت ياعاريت اقرارپه دي شرط سره وكړچې ماله تردريوورځوپوري اختيارشته نواقراريې صحيح كيږي اومقربه لازميږي ځكه اقرارحجت دى مګرشرط باطليږى، شرط ځكه باطليږى چې خيارشرط خودي غرض لپاره وي چې كله فسخ وغواړي نوكولاى شي اواقراراخباردى چې پكې خيارلره هيڅ دخل نشته ولى كه دااخبارصادق وي نوواجب العمل دى كه څه هم هغه اختيارونكړي اوكه كاذب وي نوواجب الرّددى په اختياركولواونه كولوسره نه متغيركيږي.

## باب الاستثناء وما في معناه

### داباب داستثناء په بيان كې دى او هغه چې داستثناء په معنى وي

استثنى له (ثنیٌ) څخه په معنى دګرځيدو داستفعال باب دى، په اصطلاح كې له يو عام حكم ياعدد څخه بعض افراد ايستلو او خاصولو ته استثناء وايي، دلته له استثنى څخه مراد دادى چې مقر كوم اقرار كړى دى له هغه څخه ځيني خلک جلا كړي، او له مافى معنى الاستثناء څخه مراد شرط دى ځكه شرط هم داستثناء په شان مغيّر دى.

مصنف رحمه الله تردي مخكي داسي اقرار ذكر كړچې دهغه په موجب كې تبديل راوستونكى هيڅ شى نه وو اوس داسي اقرار ذكر كوي چې دهغه په موجب كې راوستونكى شى يعني استثنى اومافى معنى الاستثناء هم دى، او څرنګه چې عدم تغير اصل دى ځكه يې داقرار هغه قسم مخكي ذكر كړ اودتغير والاقسم يې وروسته ذكر كړى دى.

(۱) صَحَّ اِسْتِثْنَاءُ بَعْضِ مَا اَقَرَّ بِهِ مُتَّصِلاً وَلَزِمَهُ الْبَاقِي (۲) لا اِسْتِثْنَاءُ الْكُلِّ (۳) وَصَحَّ اِسْتِثْنَاءُ الْكَيْلِي وَالْوَزْنِي مِنَ الدَّرَاهِمِ لا غَيْرِهِمَا (۴) وَلَوْ وَصَلَ بِاِقْرَارِهِ اِنْ شَاءَ اللهُ بَطَلَ اِقْرَارُهُ (۵) وَلَوِ اسْتَثْنَى الْبِنَاءَ مِنَ الدَّارِ فَهُمَا لِلْمُقَرِّ لَهُ وَاِنْ قَالَ بِنَاءُهَا لِي وَالْعَرْصَةُ لَكَ فَكَمَا قَالَ (۶) وَلَوْ قَالَ عَلَيَّ اَلْفٌ مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ لَمْ اَقْبِضْهُ فَاِنْ عَيَّنَ الْعَبْدَ وَسَلَّمَهُ اِلَيْهِ لَزِمَهُ الْاَلْفُ وَاِلَّا لَا (۷) وَاِنْ لَمْ يُعَيِّنْ لَزِمَهُ الْاَلْفُ (۸) كَقَوْلِهِ مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍ اَوْ خِنْزِيرٍ.

**ترجمه**: صحيح ده استثناء دبعضو هغو چې ده يې اقرار كړى دى متصلا او لازميږي پر ده باندي باقي، نه دټول استثناء، او صحيح ده استثناء دكيلي اووزني شي له دراهمو څخه نه دغير له هغوئ څخه، او كه يې وصل كړه ان شاء الله له خپل اقرار سره نو باطليږى دهغه اقرار، او كه يې مستثنى كړه آبادي له مكان څخه نو هغه دواړه دمقرله لپاره كيږي او كه يې وويل چې آبادي زما ده او ميدان ستادى نو داداسي دى لكه ده چې وويل، او كه يې وويل چې پر ما باندي زر درهمونه دي دهغه مريي چې ما تر اوسه پوري قبض كړى نه دى نو كه يې مريى معلوم كړ او مقرله ده ته حواله كړ نو پر مقر باندي زر درهمونه لازميږي كه نه يې نه لازميږي، او كه يې معلوم نه كړ نو زر درهمه لازميږي لكه دمقر په دي وينا سره چې دشرابو يا خنزير له ثمنونه.

**تشريح**: (۱) كه يو چاددين اقرار وكړ او له اقرار سره متصل يې له مقربه څخه څه استثناو كړه لږيې مستثنى كړه ياېې زيات نو دا استثناء صحيح ده اوله مستثنى څخه ماسوا باقي مانده مقربه پر اقرار كوونكي باندي لازميږي ځكه استثناء زموږ په مذهب كې له مستثنى وروسته دتكلم بالباقي نوم دى.

(۲) قوله لا استثناء الكل اى لا يصح استثناء الكل، يعني كه مقر دكل استثناء وكړه مثلاداسي يې وويل چې پر ما باندي دفلان لس درهم دي له لسو پر ته نو دكل استثناء باطله ده ځكه موږ ويلي دي چې استثناء تر مستثنى وروسته دتكلم بالباقي نوم دى داچې كل مستثنى كړي وروسته خو هيڅ نه پاتيږي، او همدارنګه استثناء دكل رجوع عن الاقرار ده چې صحيح نه ده نو پر مقر باندي ټول مقربه لازميږي.

(۳) كوم شيان چې په ناپيږي او په ترازو تلل كيږي دهغو له دراهمو څخه مستثنى كول صحيح دى مثلامقر وويل دفلان پر ما باندي سل درهمونه دي مګر نه يو دينار، ياېې داسي وويل دفلان پر ما باندي سل درهم دي مګر نه يوه پيمانه غنم، نو پر ده باندي سل درهمه ديوه دينار له قيمت سوا ياسل درهمه ديوې پيمانې

غنموله قيمت سِوالازم دي.البته دغيروزني اوكيلي شيانوله دراهموڅخه مستثنی كول صحيح نه دي مثلاچې داسي ووايي :زماپرذمه دفلان سل درهم دي مګرنه لس تانه كېږه نوداصحيح نه دی .داداړه صورتونه دشيخينورحمهماالله په نزداستحسانًاصحيح دي،دامام محمد رحمه الله په نزدصحيح نه دي ځكه مستثنی دي ته وايي چې كه چيرته هغه نه وي نومستثنی به په مستثنی منه كې داخل وي نوظاهره خبره ده چې دخلاف جنس مستثنی كولوپه صورت كې كه هغه وزني ياكيلي وي اوكه نه وي داويناصحيح نه ده چې كه چيرته هغه نه واى نومستثنی به په مستثنی منه كې داخل شوى واى،دشيخينورحمهماالله دليل دادى چې وزني اوكيلي شيان اودراهم ودنانيرداټول كه څه هم په ظاهره مختلف اجناس معلوميږي مګرپه معنی كې ټول يوجنس دي ځكه داټول ثمن كيږي اوثابت فی الذمه كيداى شي نوپه دي وجه چې ثابت فی الذمه دي له دراهمواودنانيروسره شريک دي نوددوئ له دراهمواودنانيرواستثناء هم صحيح ده باقی غيروزني اوغيركيلي شيان ددراهموپه شان واجب فی الذمه نه دي نوله دراهموسره نه معنًی مجانس دي اونه صورةً نوله دراهموڅخه دهغواستثناء صحيح نه ده .

**فائده** :دشيخينورحمهماالله قول راجح دى لمافی الدرالمختار: كماصح استثناء الكيلى والوزنى والمعدودالذى لاتتفاوة احاده كالفلوس والجوزمن الدراهم والدنانيرويكون المستثنى القيمة استحسانالثبوتهافی الذمة فكانت كالثمنين ,وقال ابن عابدين رحمه الله :(قوله كماصح) فصله عماقبله لانه بيان للاستثناء من خلاف الجنس فان مقدرامن مقدرصح عندهمااستحساناوتطرح قيمة المستثنى مماأقربه وفی القياس لايصح وهوقول امام محمد رحمه الله .(الدرالمختارمع الشامية:۴/۵۱۰)

(۴)كه چادبل چادحق داقرارسره متصل ان شاء الله وويله مثلاوېي ويل :لفلان علیّ مائة درهم ان شاء الله .نوداقرارپرمقِرباندي نه لازميږي ځكه په ان شاء اللّٰه سره استثناء دامام ابويوسف رحمه الله په نزدحكم ترانعقادمخكي باطلوي اودامام محمد رحمه الله په نزدحكم دباري تعالی ترمشيت پوري دمعلق كولوپاره ده.بهرحال په دواړوصورتونوكي اقرارنه لازميږي،دامام ابويوسف رحمه الله دمذهب مطابق خوظاهره ده اودامام محمد رحمه الله دمذهب مطابق ځكه نه لازميږي چې اقراردتعلق بالشرط احتمال لري ولی اقرارد ماسبق خبروركول دی اوتعليق بالشرط دآينده په لحاظ سره وي ذدي دواړوترمنځ منافات دی .

(۵)كه مقِرديوڅالپاره اقراروكړآبادي يې دخپل ځان لپاره مستثنی كړه ويې ويل :هذه الدارلزيدوالبناء لنفسی .نومكان اوآبادي ټول دمقرله لپاره كيږي ځكه دسراى په اقراركې آبادي تبعًاداخله ده اوكه مقروويل چې ددغه سراى آبادي زماده اوميدان يې دفلان دی نولكه څرنګه چې مقِروايي دغسي ده ځكه ميدان عبارت دی له داسي ځمكې نه چې له درختواوآبادي څخه خالي وي نومقِرله آبادي بغيردخالي ځمكې اقراركوونكی دی .

(۶)كه مقروويل چې دفلان پرماباندي زردراهم دي دهغه مريې دثمنوڅخه چې ماخيستی دی خوماهغه تراوسه قبض كړی نه وو .نوكه مقرمعلوم مريی ذكركړچې فی الحال دمقرله په لاس كې دی نومقرله ته ويل كيږي چې كه ستاخوښه وي مريی مقِرته حواله كړه اومقِرچې په كوموزرودرهمونو اقراركړی دی هغه ورځني واخله كه نه بياستالپاره هيڅ نشته ځكه مقراقراربالمال دمريې په عوض كړی وونوبغيردمريې پرمقرباندي هيڅ نه لازميږي .

(۷)که مقرمعلوم مربي ذکرکړنودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپرمقرباندي زردرهمه لازميږي اودمقردي خبرې تصديق نه کول کيږي چې وايي ماهغه نه دی قبض کړی ځکه دمقرداوينااله اقرارڅخه رجوع کول دی ځکه اقراردوجوب لپاره دی خوچې کله دغيرمعلوم مربي په عوض کې دی نودااسې ده لکه په بيع کې چې مبيع مجهول وي اودمبيع مجهول والی دثمن له وجوب څخه مانع وي نودلته هم چې مربي مجهول دی نودمقربه دوجوب څخه مانع دی حال داچې ده دوجوب اقرارکړی دی نودااله اقرارڅخه رجوع کول دی چې صحيح نه دی،صاحبين رحمهماالله فرمايي چې که مقرله اقرارسره متصل وويل چې دادغيرمعلوم مربي عوض دی نودهغه تصديق کول کيږي اوکه يې متصل نه وويل نوتصديق يې نه کول کيږي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لمافي مجمع الانهر:وان لم يعينه لزمه الالف ولغاقوله لم اقبضه عندالامام لانه رجوع بعدالاقرارفلايصح لاموصولاولامفصولاوبه قالت الائمة الثلاثة .(مجمع الانهر:۳/ ۳۱۰)وقال العلامة الحصكفي رحمه الله :وان لم يعين العبدلزمه الالف مطلقاوصل ام فصل وقوله ماقبضته لغولانه رجوع.(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۴/۵۱۲)

(۸)قوله کقوله من ثمن خمراوخنزيرای کمايلزم المقرالالف في قوله لفلان علي الف من ثمن خمراوخنزير،يعني که مقروويل چې دفلان پرماباندي زردراهم دي دشرابويادخنزيرقيمت ،نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپرمقرباندي زردرهم لازميږي اودمقرداويناچې دشرابويادخنزيرقيمت دی نه قبليږي،ځکه داله اقرارڅخه رجوع ده ځکه پرمسلمان باندي دشرابواوخنزيرثمن نه واجبيږي نوګواکې دزردرهمونوله وجوب څخه انکارکوي چې دهغه دکلام اوله برخه دوجوب لپاره ده ،صاحبين رحمهماالله فرمايي چې که مقرله اقرارسره متصل وويل چې دادشرابوياخنزيرعوض دی نودهغه تصديق کول کيږي اوکه يې متصل ونه وويل نوتصديق يې نه کول کيږي.

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة الحصكفي رحمه الله :وان لم يعين العبدلزمه الالف مطلقاوصل ام فصل وقوله ماقبضته لغولانه رجوع كقوله من ثمن خمراوخنزيراومال قماراوحراوميتة اودم فيلزمه مطلقاوان وصل لانه رجوع. (الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۴/۵۱۲)

(۹)وَلَوْقَالَ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ أَوْأَقْرَضَنِي وَهِيَ زُيُوفٌ أَوْنَبَهْرَجَةٌ لَزِمَهُ الْجِيَادُ(۱۰)بِخِلَافِ الْغَصْبِ وَالْوَدِيعَةِ(۱۱)وَلَوْقَالَ إلَّاأَنَّهُ يَنْقُصُ كَذَامُتَّصِلًاصُدِّقَ وَإِلَّالَا(۱۲)وَمَنْ أَقَرَّبِغَصْبِ ثَوْبٍ وَجَاءَبِمَعِيبٍ صُدِّقَ(۱۳)وَإِنْ قَالَ أَخَذْتُ مِنْكَ أَلْفًاوَدِيعَةً وَهَلَكَتْ وَقَالَ أَخَذْتَهَاغَصْبًافَهُوَضَامِنٌ(۱۴)وَإِنْ قَالَ أَعْطَيْتَنِيهَاوَدِيعَةً وَقَالَ غَصَبْتَهَالَا.

**ترجمه** :اوکه يې وويل چې دسامان ثمن دي ياېې ماته قرض راکړې وي مګرهغه کوټه وې ياغيرمروجه وي نولازميږي پرده باندي صافي خلاف له غصب اووديعت نه اوکه يې متصلاًوويل مګرهغه دومره کمې دي نوتصديق يې کول کيږي که نه بيانه کيږي،که چادکړي دغصب اقراروکړاووايي وره عيب جنه نوتصديق يې کيږي،اوکه يې وويل چې ماله تاڅخه زرروپۍ امانت وړې وې هغه هلاک شوې اومقرله وويل چې هغه تاوړې وې په غصب سره نودی ضامن ګرځي ،اوکه يې وويل چې هغه تاماته دامانت په ډول راکړې وې اومقرله وويل چې هغه تاغصب کړې وې نوبيانه ضامن کيږي.

**تشريح** :(۹)که مقروويل دفلان پرماباندي زردراهم دي دسامان دقيمت اوهغه کوټه دي ياغيرمروجه دي تجارې نه قبلوي ياېې وويل چې دفلان ماته زردراهم قرض راکړي دي اوهغه کوټه دي ياغيرمروجه دي

اومقرله وويل چې كوټه اوغيرمروجه نه دي بلكې صافې اودتجارانوپه نزدمروجه دي،نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدصافې روپۍ لازميږي،ځكه دمقرداخبره چې هغه كوټه دي له اقرارڅخه رجوع ده ولی مطلق عقدمقتضي دی چې عوضين له عيب څخه سالم وي اوكوټه كيدل خوعيب دی نودمقر دادعوی كول چې كوټه دي دعقد دمقتضی خلاف دی نوداله اقرارڅخه رجوع ګڼله كيږي اوله اقرارڅخه رجوع كول صحيح نه دی،صاحبين رحمهما الله فرمايي چې كه مقرداقول چې كوټه دي متصل كړی وونوبيادمقرتصديق كول كيږي اوكه يې منفصل وويل نوتصديق يې نه كيږي .

**فائده**:دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی لمافي الذرالمختار:ولوقال له علي الف من ثمن متاع اوقرض وهي زيوف مثلالم يصدق مطلقالانه رجوع.(الذرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۴/۵۱۲)

(۱۰)البته دغصب اوودیعت ددعوی كولوپه صورت كې دهغه دتصديق كول كيږي مثلايوچاوويل چې مادفلان زردراهم غصب كړي وومګرهغه كوټه دي ياېې داسي وويل چې فلان ماته زردراهم دامانت په ډول راكړي وومګرهغه كوټه دي نوپه دغودواړوصورتونوكې دهغه خبره معتبريږي ځكه غصب اوودیعت ددي خبرې مقتضي نه دي چې مغصوب شی اوامانت صحيح سالم وي ځكه غاصب ته چې مغصوب شی څه ډول په لاس ورشي هغه ډول يې اخلي همداډول له مودَع سره چې يوشی څه ډول وساتل شي هغه يې همداسي ساتي نوداله اقرارڅخه رجوع نه شمارله كيږي .

(۱۱)كه يوچاداسي وويل چې زماپرذمه دفلان زردراهم دي مګرله هغوڅخه يوڅه كم دي نوكه ده دامتصل وويل تصديق يې كول كيږي اوكه يې متصل ونه ويل نوتصديق يې نه كول كيږي ځكه دادمقداراستثناء ده اودمقدارپه استثناء كې قاعده داده چې كله متصله وي نوصحيح كيږي كه نه يانه صحيح كيږي .

(۱۲)كه مقردكپړي دغصب كولواقراروكړبياچې كله له هغه څخه مطالبه وشوه نوهغه معيوبه كپړه راوړه وريې كړه چې ماداغصب كړې وه په داسي حال كې چې مغصوب نه وايې چې تاخوله ماڅخه سالمه كپړه غصب كړې وه نودغاصب قوله سره دقسم معتبريږي ځكه غصب په سالميت پوري خاص نه دی بلكې معيوب شی هم غصب كيږي .

(۱۳)كه يوچابل چاته داسي وويل چې ماله تاڅخه يوزردرهم امانتًا واړې ووبياهغه له ماڅخه هلاك شول هغه بل په جواب كې ورته وويل نه داسې نه ده بلكې تاله ماڅخه په زورآخيستي وونومقردهغودراهموضامن ګرځي ځكه مقردضمان په سبب (يعني اخيستلو) سره اقراروكړبيايې ددااسي امردعوی وكړه چې دی له ضمانت څخه بري كوي يعني دهغه بل په خوښه دامانت په ډول ساتل دی چې هغه له دي څخه انكاركوي نوقول دمنكرسره دقسم معتبريږي .

(۱۴)كه مقرداسي وويل چې تاماته زردرهمه امانتًا راكړي دي چې هغه له ماڅخه هلاك شول مقرله ورته وويل نه بلكې تاغصب كړي وونومقرنه ضامن كيږي ځكه مقردضمان په سبب اقرارنه دی كړی بلكې دمقرله په فعل (ددرهم وركولو) يې اقراروكړاوفعل يې دمقرله طرف ته مضاف كړيعني تاراكړي وواومقرله

پر ده باندي د سبب ضمان يعني غصب دعوی کوي حال دا چې مقرله هغه څخه انکار کوي او قول د منکر سره د قسم معتبر يږي.

(۱۵) وان قال هذا كان وديعة لي عندك فاخذته فقال هو لي اخذه (۱۶) وان قال اجرت بعيري او ثوبي هذا فلانا فركبه او لبسه فرده فالقول للمقر (۱۷) ولو قال هذا الالف وديعة فلان لابل وديعة فلان فالالف للاول وعلى المقر مثله للثاني.

**ترجمه**: او که يې وويل چې دا زما امانت وو له تا سره پس ما او اخيست او هغه وويل دا زما دی ته يې اخيستلای شي، او که يې وويل چې ما خپل اوښ په کرايه ورکړی وو يا مې خپله جامه په کرايه ورکړې وه فلان ته يا هغه پرې سپور شو يا يې وا غوستله بيا يې بيرته ماته راکړه نو د مقر قول معتبر يږي او که يې وويل دا زر روپۍ د فلان وديعه ده نه بلکې د فلان وديعه ده نو دا زر روپۍ د اول دي پر مقر باندي د ثاني لپاره د هغه مثل لازم دي.

**تشريح**: (۱۵) که يو سړي مثلا زيد بل سړي مثلا عمر ته وويل چې زما دا شی ستا سره امانت وو او س ما وړی دی عمرو رته وويل چې ته دروغ وايې دا خو زما دی نو عمر دي له هغه څخه دا شی يوسي ځکه زيد د عمر په قبضه باندي اقرار وکړ بيا يې هغه شی يو وړ او دده د اوړ ل سبب د ضمان دی بيا يې پر هغه د خپل استحقاق دعوی وکړه چې عمرو رڅخه منکر دی او قول د منکر سره د قسم معتبر يږي.

(۱۶) که يو سړي مثلا زيد وويل ما دغه خپل اوښ عمر ته په کرايه ورکړی وو او هغه پرې سپور هم شو بيا يې ماته واپس راکړ يا يې داسې وويل چې ما دغه خپله کپړه هغه ته په کرايه ورکړې وه هغه اغوستې وه بيا يې واپس کړه، عمرو رته وايي چې ته دروغ وايې دغه اوښ يا دغه کپړه خو زما ده، نو د امام صاحب رحمه الله په نزد استحسانا د مقر قول معتبر يږي ځکه په دې کې مقرد داسې قبضې اقرار وکړ چې خپله دده له طرفه ثابت ده نو دي قبض په کيفيت کې دده قول معتبر يږي، د صاحبينو رحمهما الله او ائمه ثلاثه ؤ په نزد دهغه چا قول معتبر دی له چانه چې اوښ يا کپړه اخيستله شوې ده د هغه قول موافق قياس دی ځکه مقر د مقرله په قبضې اقرار وکړ بيا يې په هغه د خپل استحقاق دعوی وکړه چې مقرله ورڅخه منکر دی او قول د منکر سره له يمين معتبر يږي.

**فائده**: د امام صاحب رحمه الله قول راجح دی لما في الدر المختار: وصدق من قال آجرت فلانا فرسي هذه او ثوبي هذا فركبه او لبسه او اعرته ثوبي او اسكنته بيتي ورده ..........وقال فلان بل ذالك فالقول للمقر استحسانا لان اليد في الاجارة ضرورية بخلاف الوديعة (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۳/۵۱۳)

(۱۷) که يو چا وويل زما سره دا زر درهمونه د فلان امانت دي، بيا يې وويل نه بلکې د فلان شخص امانت دي، يعني بيا يې د بل چا نوم ياد کړ مثلا لومړی يې وويل د زيد امانت دي بيا يې وويل نه بلکې د بکر امانت دي، نو د مقر پر ذمه د اول شخص يعني زيد لپاره زر درهمه لازميږي. او هغو مره د هغه بل سړي يعني بکر لپاره پرې لازميږي ځکه د اول لپاره دده اقرار صحيح دی بيا دد غه دا خبره چې لابل وديعة لفلان، دا له

لومړي اقرار څخه رجوع دی چې له اقرار څخه رجوع صحيح نه ده او دوهم لپاره څکه زر درهمه لازميږي چې دمقر قول لابل وديعة لفلان، دهغه لپاره مستقل اقرار دی نو دمقر پر ذمه دهغه بل لپاره هم زر درهم لازميږي.

## باب اقرار المريض

### داباب دمريض داقرار په بيان کې دی

له مرض څخه دلته مراد مرض الموت دی، مصنف رَحِمَهُ اللهُ دروغو خلكو داقرار له بيان څخه فارغ شواو نو دمريض داقرار احكام بيانوي، او څرنګه چې صحت اصل دی او ناروغي دعارض په وجه وي نو داصل تقديم اودعارض تاخير مناسب دی څکه نو مصنف رَحِمَهُ اللهُ هم دمريض داقرار احكام موخر کړل. اوبيا دمريض ديرداسي احكام شته چې په مريض پوري خاص دي دروغو لپاره دااحكام نشته څکه يې دمريض داقرار داحكامو لپاره مستقل باب قائم کړی دی.

(۱) دين الصحة و مالزمه في مرضه بسبب معروف قُدِّمَ على ما اقرّ به في مرضه (۲) واخر الارث عنه (۳) وان اقرّ المريض لوارثه بطل الا ان يصدقه البقية (۴) وان اقرّ لاجنبي صحّ وان احاط بماله (۵) وان اقرّ لاجنبي ثم اقرّ ببنوّته ثبت نسبه وبطل اقراره (٦) وان اقرّ لاجنبية ثم نكحها صحّ (۷) بخلاف الهبة و الوصية.

**ترجمه** :دصحت قرض او هغه چې په بيماري کې پر ده لازم شوی وي دمعروف سبب په وجه مقدم کيږي پر هغه باندي چې ده يې په مرض کې اقرار کړی وي، او مؤخر کيږي ميراث له هغه نه، او که اقرار وکړ ناروغ د خپل وارث لپاره نو باطل دی مګر داکه بقيه ورثه دهغه تصديق وکړي او که يې اقرار وکړ داجنبي لپاره نو صحيح دی که څه هم هغه دده په مال احاطه وکړي. او که يې اقرار وکړ داجنبي لپاره بيا دهغه په زوی والي اقرار وکړ نو ثابتيږي دهغه نسب او باطليږي دده اقرار. او که يې اقرار وکړ دپردۍ ښځې لپاره بيا يې له هغې سره نكاح وکړه نو صحيح دی خلاف له هبه او وصيت نه.

**تشريح** :(۱) که مقر په مرض الموت کې دقرض اقرار وکړ (مثلا ويې ويل چې پر ماباندي دزيد دوه زره درهمه دين دی) او دمقر پر ذمه باندي دصحت دوخت هم څه قرض شته او په مرض موت کې هم څه قرض دهغه پر ذمه دمعلومو اسبابو په وجه لازم شوی وو (مثلا په مرض موت کې يې ديو چا يو شی هلاک کړی دهغه ضمان پر ده باندي راغی يا يې له يو چا څخه قرض اخيستی وو يا يې يو شی اخيستی وو) نو دصحت قرض او په مرض موت کې دمعلومو اسبابو څخه لازم شوي قرضونه ترهغو قرضو مخکي دي دکوموچې ده په مرض موت کې اقرار وکړ څکه قرض بی له شکه چې دليل دی مګر دهغه دليل کيدل هغه وخت معتبر دی چې کله په هغه سره دبل چا حق نه باطليږي حال داچې دداسي مريض په اقرار سره دغير حق باطليږي څکه دهغه په مال پوري دصحت دقرض غوښتونکو او په معلومو اسبابو دلازمو شو يو قرضو نو دقرض غوښتونكو حق متعلق شوی دی ظاهره خبره ده چې مقر له ته دهغه له مال څخه دڅه په ورکولو دمذكورو قرض غوښتونكو دحق بطلان لازميږي.

البته که يې اولني مذکوردوه قسمه قرضونه اداکړل اوڅه مال باقي پاتی شونوله هغه باقی مال څخه اوس دمريض هغه قرضي اداکيږي دکوموچې هغه په مرض موت کې اقرارکړی ووځکه پخپله ددغه قسم قرضونواقراردمريض له جانبه صحيح ووخالص دصحت دقرض غوښتونکودحق په وجه ردشوی وو.

(۲)ميراث دمرض الموت تراقراروروسته کيږي يعني که دمرض موت پرمريض باندي اول دوه قسمه قرضونه نه وونودمرض موت اقرارصحيح کيږي ځکه دغه اقراردغيردحق ابطال لره متضمن نه دی اوپه دغه صورت کې مقرله دمقرتروارثه ؤمقدم کيږي ولی ادائيگی دقرض له اصليه حوائجوڅخه دی اودورثه ؤحق ترفارغ حق پوري معلق کيږي نوترڅوپوري چې دميت پرذمه يوقسم دين وي وارثان دهيڅ شي مستحقين نه گرځي.

(۳)دمرض موت مريض که ديوخپل وارث لپاره اقراروکړي نوداصحيح نه دی مثلاله يوځوزامنوڅخه ديوه لپاره اقراروکړي چې دهغه زماپرذمه زرروپۍ دي نوداصحيح نه دی ځکه دنبي کريم ﷺ ارشاددی :لاوصية لوارث ولااقرارله بالدين (دوارث لپاره وصيت نشته اونه دهغه لپاره اقرارشته) همدارنگه دنوروورثانوحق دمقرله دغه مال سره معلق شوی دی نودځينوورثه ؤپه اقرارسره دمخصوصولونه دباقي ورثه ؤحق باطليږي،نوداقرارنه دی صحيح ،البته که باقی ورثه په دې کې دهغه تصديق وکړي نوبياصحيح دی ځکه داقراردصحت مانع له ترکه سره دهغوئ دحق تعلق ووچې دهغوئ په تصديق کولوسره زائل شو.

(۴)که يومريض ديوه بيگانه چالپاره اقراروکړنودغه اقرارېې صحيح دی که څه هم دغه اقراردهغه ټول مال ونيسي ځک حضرت عمر ﷺ فرمايي :اذااقرالرجل فی مرضه لرجل غيروارث فانه جائزوان احاط بماله.(کله چې يوځوک اقراروکړي په مرض کې دغيروارث لپاره نوداجائزدی که څه هم دااقراردهغه ټول مال ونيسي) همدارنگه مقرله له خلکوسره دمعاملاتوکولوضرورت دی له وارثانوسره معاملاتی ډيرې کمې گيږي،زياترد معاملات له نوروخلکوسره کيږي نوکه له پرديوسره دهغه اقرارجائزونه گڼل شي نوخلک له هغه سره معاملات نه کوي چې په دي کې دهغه نقصان دی ځکه نودبيگانه خلکولپاره دمريض اقرارجائزگڼل شوی دی.

(۵)که مقرپه مرض موت کې ديوبيگانه مجهول النسب لپاره اقراروکړمثلا ويې ويل چې دفلان پرذمه باندي زمازرروپۍ دي بيامقرووبيل چې دامقرله زمازوی دی نوله مقرڅخه دمقرله نسب ثابتيږي اواقرارېې باطليږي،ځرنگه چې دعوی دنسب له اصليه حوائجوڅخه ده ځکه نودهغه بيگانه نسب له مقرڅخه ثابتيږي اودعوی دنسب دنطفه دقرارزماني ته منسوبيږي نومقرله له هغه وخته دده زوی دی اوس چې مقردهغه لپاره اقرارکړی نوداد وارث يعني خپل زوی لپاره اقرارکيږي چې داصحيح نه دی.

(۶)که مقردبيگانه ښځې لپاره اقراروکړمثلاويې ويل چې دفلانۍ ښځې زماپرذمه زرروپۍ دي بيامقرله هغې سره نکاح وکړه نواقرارېې نه باطليږي ځکه داقرارپه وخت دارشته قائمه نه وه اودزوجية زمانه پرتزوج باندي مقصوره وي دنسب په شان ماقبل ته نه منسوبيږي نودهغه اقراردبيگانه لپاره باقي دی.

(۷) يعني كه مريض كومې بيگانه ښځې ته يوشی هبه كړيايې دهغې لپاره وصيت وكړيايې له هغې سره نكاح وكړه نو دا هبه او وصيت ځرنگه چې تمليک بعد الموت دی او بعدله موته هغه وارثه ده اودوارث لپاره وصيت صحيح نه دی نو دا وصيت هم صحيح نه دی او دمرض په دوران كې يوشی هبه كول وصيت شمارل كيږي نو دوصيت په شان په مرض موت كې دبيگانه لپاره هبه هم صحيح نه ده.

(۸) وَإِنْ اَقَرَّ لِمَنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا فِيهِ فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنَ الْإِرْثِ وَالدَّيْنِ (۹) وَإِنْ اَقَرَّ بِغُلَامٍ مَجْهُولٍ يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ اَنَّهُ اِبْنُهُ وَصَدَّقَهُ الْغُلَامُ ثَبَتَ نَسَبُهُ وَلَوْ مَرِيضًا وَيُشَارِكُ الْوَرَثَةَ (۱۰) وَصَحَّ اِقْرَارُهُ بِالْوَلَدِ وَالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجَةِ وَالْمَوْلٰى (۱۱) وَاِقْرَارُهَا بِالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجِ وَالْمَوْلٰى (۱۲) وَبِالْوَلَدِ اِنْ شَهِدَتْ قَابِلَةٌ اَوْ صَدَّقَهَا زَوْجُهَا (۱۳) وَلَا بُدَّ مِنْ تَصْدِيقِ هٰؤُلَاءِ (۱۴) وَصَحَّ التَّصْدِيقُ بَعْدَ مَوْتِ الْمُقِرِّ اِلَّا تَصْدِيقَ الزَّوْجِ بَعْدَ مَوْتِهَا.

**توجمه**: او كه يې اقرار وكړ دهغې لپاره چې ده ورته درې طلاقه وركړي دي په مرض كې نو دهغې لپاره اقل له ميراث او قرض ځخه دی او كه يې اقرار وكړ دداسي ماشوم چې دمقرهغومره ماشوم پيدا كيدای شي چې دا زمازوی دی او ماشوم دده تصديق وكړ نو دهغه نسب ثابتيږي كه ځه هم مقرناروغ وي او هغه ماشوم له ورثه ؤسره شريک گرځي، او صحيح دی دسړي اقرار په ماشوم سره او په مور او پلار سره او په ښځه سره او په مولی سره او صحيح دی دښځې اقرار په مور او پلار سره او په خاوند سره او په مولی سره او په بچيانو سره كه گواهي وركړه دايې دهغې يا تصديق وكړ دهغې خاوند دهغې، او ددي كسانو تصديق ضروري دی او صحيح دی تصديق كول دمقرله مرگ وروسته مگر نه تصديق دخاوند دښځې له مرگ وروسته (چې هغه صحيح نه دی).

**تشريح**: (۸) كه مقرپه مرض موت كې دخپلې ښځې لپاره له دريو طلاقو وركولو وروسته دقرض اقرار وكړ نو دښځې لپاره له مقربه او ميراث ځخه چې كوم يوكم وي هغه كيږي ځكه زوجين دمذكور اقرار په وجه متهم كيدای شي په دي دول چې ممكن زوج طلاق وركړی وي دهغې لپاره په اقرار كې يې دا قصد كړی وي چې ښځه به دميراث ترحصه زيات ځه ترلاسه كړي چې دقيام نكاح په حالت ممكن نه دی ځكه دوارث لپاره اقرار صحيح نه دی چې په اقل الامرين كې داتهمت نشته.

(۹) كه مقر (كه ځه هم مريض وي) ديو ماشوم په باره كې وويل چې دا زمازوی دی نو له مقر ځخه دهغه نسب ثابتيږي په دي شرط چې دماشوم هومره زوی دمقرپيدا كيدای شوای (يعني لږترلږه بايد دمقر عمرتر دوولسو كالو زيات وي) چې په ظاهره دروغجن نه شي او دمقرله نسب معلوم نه وو ځكه معروف النسب ثبوت النسب من الغير ممتنع دی، او ماشوم ددي مقرتصديق هم وكړي چې دی پخپله دعوی كې رښتينی دی زه دهغه زوی يم ځكه پرثبوت دنسب باندي ديراحكام مرتب كيږي لكه له زوی ځخه دپلار ثبوت ارث وغيره نو دزوی والي دا قرار په صورت كې دا حقوق پرمقرله باندي لازميږي نو دمقرله التزام ضروري دی چې صورت يې دادی چې مقرله دمقرتصديق وكړي نو چې كله دهلک نسب له هغه مقر ځخه ثابت شي نو دا هلک له نوروورثه ؤسره په ميراث كې شريک كيږي ځكه په ميراث كې شريک كيدل دثبوت نسب لپاره لازم دی.

(۱۰) دمقرسړي په زوی، مور او پلار، ښځه او مولی سره اقرار كول صحيح دی (مثلا چې دا دول وواېي چې فلان زمازوی دی، فلان زما پلار دی فلان زمامورده وغيره وغيره) ځكه دا داسي اقرار دی چې خپله

پرمقرباندي لازميږي اوپه دي کې دغيرطرف ته دنسب منسوب کول هم نه راځي نوددي سړي دغه اقرارصحيح دی.

(۱۱)قوله والقرارهابالوالدين اى وصح اقرار المرأة بالوالدين الخ،يعنې كه ښځې ديوچاپه باره کې دموراوپلار ياخاوند اويامولی اقراروکړمثلاداسې يې وويل چې فلان زماپلاردی فلانۍ زمامورده فلان زماخاوند دی فلان زمامولی دی نودښځې دغه اقرارصحيح كيږي.

(۱۲)قوله وبالولدان شهدت قابلة الخ اى وصح اقرار المرأة بالولدان شهدت قابلة الخ،يعنې كه ښځې ديوچادزوی والي اقراروکړمثلاداسې يې وويل چې فلان زمازوی دی ،ښځه كه ذاتِ زوج وي اوكه معتدة من الزوج وي نودهغې دغه اقرارنه قبليږي ځکه په دې اقرارکې نسب پربل چايعنې زوج باندي تپل دي ولی دنسب تعلق له زوج سره دی البته كه چيرته دايه ددغه ماشوم له هغې مقرې ښځې څخه دپيداكيدوګواهي وركړي يازوج دمقرې تصديق وكړي نوبيادغه اقرارصحيح دی ولی په لومړی صورت کې څرنګه چې دولادت په باره کې يواځې ددايه ګواهي مقبوله ده اوپه دوهم صورت کې حق دزوج دی نوپه دغودووصورتوکې دمقرې تصديق كول كيږي.

(۱۳)په مذکوروتولوصورتونوكې دمقرله تصديق ضروري دی يعنې دچاپه باره کې چې سړی ياښځه اقراركوي مثلاموراوپلار،زوی،خاوندوغيره نوپه دغوتولوصورتونوکې ضروري دی چې مقرله دمقِرتصديق وكړي ځکه له دوئ نه هريوپخپله قبضه کې دی اوهريودخپل ځان په باره کې خپله مستقل متصرف دی دبل چاتصرف او اقراردوئ لره لازم نه دی.

(۱۴)په مذکورواقرارکوونکوکې كه يومړشي نومقرله دهغه له مرګه وروسته هم دهغه تصديق كولای شي ځکه نسب له مرګ وروسته هم باقي وي،البته كه يوې ښځې ديوسړي په باره کې دااقراروکړچې زه دده ښځه يم يياهغه ښځه مړه شوه اوخاونددهغې له مرګ وروسته دهغې تصديق وكړنودامام صاحب رحمه الله په نزددا تصديق نه صحيح كيږي،اودصاحبينو رحمهما الله په نزدصحيح دی ځکه دنسب په شان نكاح هم په مرګ سره نه باطليږي بلکې باقي پاتيږي همدا وجه ده چې خاونددښځې وارث کيږي نودخاوندله طرفه تصديق صحيح دی،دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې نكاح دمرګ په وجه منقطع كيږي همدا وجه ده چې خاونددهغې له خورسره نكاح كولای شي اوله هغې پرته له څلوروښځوسره نكاح كولای شي نودنكاح دنه پاتي كيدوپه وجه دخاوندتصديق كول صحيح نه دی ،چيرته چې دميراث حكم دی هغه خوله مرګ وروسته ثابتيږي اونكاح دهغواحكاموپه حق کې معدومه ګڼل كيږي كوم چې ترمرګ مخکې وي.

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لمافي الدّرالمختار:وصح التصديق بعدموت المقر لبقاء النسب والعدة بعدالموت الاتصديق الزوج بموتهامقرة لانقطاع النكاح بموتهاولهذاليس له غسلهابخلاف عكسه.(الدرالمختار:۳/۵۱۹)

(۱۵)وان اقربنسب نحوالاخ والعم لم يثبت(۱۶)فان لم يكن له وارث غيره قريب اوبعيد ورثه وان كان لا(۱۷)ومن مات ابوه فاقرباخ شركه في الارث ولم يثبت نسبه(۱۸)وان ترک ابنين وله على آخرمائة فاقراحدهمابقبض ابيه خمسين منهافلاشئ للمقروللآخرخمسون.

**ترجمه** :اوکه يې اقرار وکړ دورور او آکا وغيره دنسب نو نه ثابتيږي ،که چيرته نه وو ده لره کوم وارث له مقرٍ علاوه نه قريب نه بعيدنو هغه دده وارث گرځي اوکه يې وارث ووياهغه وارث نه گرځي،اوکه دچاپلار مړشويايې دورور اقرار وکړنو هغه له ده سره شريک کيږي په ميراث کې اونسب يې نه ثابتيږي،اوکه يې پاتې شول دوه زامن اودهغه پريوبل چاباندې سل درهم ووياا قرار وکړي يوله هغوئ څخه په قبض کولو دپلار پنځوس درهمونه نو مقرله هيڅ نشته اوهغه بل لره پنځوس درهمه حق کيږي .

**تشريح** :(۱۵)که مقرله اولاد اومور اوپلار نه علاوه دبل چادنسب اقرار وکړ مثلاً ديوچادورور والي اقراريې وکړچې دازما ورور دی يايې دچاپه باره کې اقرار وکړچې دازما آکادی نو دهغوئ نسب دمقرله پلار اونيکه څخه نه ثابتيږي ځکه په دې کې حمل النسب على الغير راځي يعنې دورورد اقرار کولو په صورت کې دمقرله نسب پرپلار رباندې حمل کيږي اودآکادا قرار کولو په صورت کې دمقرله نسب پرنيکه باندې حمل کيږي نوترڅوچې مقرعليه دهغه تصديق ونه کړي دهغه اقرار جائزنه دی .

(۱۶)په مذکورصورت کې که دمقِريودول وارث نه وونه قريب اونه بعيدنو بيامقرله دهغه دميراث مستحق گرځی ځکه مقِرداقرار په کولوسره له خپله مرګه وروسته پخپل مال کې دمقرله استحقاق ثابت کړاودمقر اقرار خپله پرده باندې حجت دی اومقرپخپل مال کې دتصرف کولو ولايت لري نو مقرله دهغه دټول مال مستحق کيږي که څه هم دهغه نسب ثابت نه شي،اوکه دمقِريووارث نژدې ياليرې وونو هغه ترمقرله دميراث زيات حقدارگرځي ځکه چې کله دمقرله نسب ثابت نه شونو هغه بيا دوارث معروف مزاحم نه شي جوړيدلای .

(۱۷)که دمقِرپلار مړشو بيامقِرديوچاپه باره کې دورور والي اقرار وکړنو مقرله په ميراث کې له مقِرسره شريک کيږي ځکه مقِر ددې ولايت لري چې له خپل ځان سره په ميراث کې غيرشريک کړي ځکه داپرخپل ځان باندې اقراردی اوپرخپل ځان خودی ولايت لري ځکه دمقرله شرکت ثابتيږي.البته دمقرله نسب نه ثابتيږي ولی په دې اقرارکې حمل النسب على الغيرراځي يعنې مقِردمقِرله نسب پرخپل پلار رباندې حمل کوي اوپرغيرباندې نسب حمل کول دهغه دتصديق بغيرجائزنه دی .

(۱۸)که يوڅوک مړشوترشايې دوه زامن پاتې شول اودمړي پربل چاباندې سل درهمونه وواوس له دغودوو.وروڼوڅخه يوه دااقرار وکړچې له دغوسلودرهمونوڅخه پنځوس درهم زماپلاروصول کړي وونودغه مقرته له دې سلودرهمونوڅخه هيڅ نه ورکول کيږي اوهغه بل ورورته پنځوس درهم ورکول کيږي ځکه دمقرله جانبه مذکوراقرارگواکې پرمړه باندې دقرض اقراردی اوچې کله هغه بل ورورانکار وکړنوداټول اقراردمقِرورورپه حصه کې ځي اودهغه بل ورورخپله حصه پنځوس درهمه سالم ورکول کيږي،بيامقِرورورد منکرورورله وصول شويوپنځوسودرهمونوڅخه هيڅ نه شي وړلای ځکه که مقرله منکرڅخه مثلاپنځه ويشت يوسي نومنکردغه پنځه ويشت بيرته له مقروض څخه وصولوي چې دده حصه پوره شي په دې ډول پرمقروض باندې پنځه اويادرهم لازميږي حال داچې دمقِرداقرارمطابق پرهغه باندې پنځوس درهم وونو هغه داپنځه ويشت درهم واپس له مقرڅخه وړي اوددې دورهيڅ فائده نشته .

## كتاب الصلح

## دا كتاب د صلح په بيان كې دى

صلح اسم دى له (مصالحت) مصدر ځخه چې د مخاصمت ضد دى، له صلاح په معنى د استقامة الحال ځخه مشتق دى، او په شريعت كې له هغه عقد ځخه عبارت دى چې د نزاع او خصومت لپاره رافع وي، يعنې يوه داسې درميانه لاره اختيارول چې د دواړو فريقو لپاره قابل قبول وي چې په هغه سره د دوئ ترمنځ منازعت ختم شي، له ماقبل سره يې مناسبت دا دى چې لكه ځرنګه چې اقرار د قطع خصومت سبب دى همدارنګه صلح هم د قطع خصومت سبب دى.

د صلح عقد كوونكي ته مصالح، وايې او بدل صلح (يعنې پركوم شي باندي چې صلح واقع وي) ته مصالح عليه او مدعى به (يعني دكوم شي چې مدعي دعوى كوي) ته مصالح عنه وايې، مثلازيد پربكرباندي ديو شي دعوى بكرزيد ته وويل چې له ما ځخه سل روپۍ يوسه او دعوى پريږده، زيد سل روپۍ واخيستې دعوى يې پريښوده نو بكر مصالح دى سل روپۍ مصالح عليه دي او مدعى به مصالح عنه دى.

د صلح ركن هغه ايجاب او قبول دى چې د صلح لپاره وضع شوى دى، او د هغه لپاره شرط دا دى چې مصالح عنه مال وي يا داسې حق وي چې د هغه عوض اخيستل جائزوي لكه قصاص، او داسې حق نه وي چې عوض اخيستل يې جائز نه وي لكه حق د شفعه او كفاله بالنفس.

(۱) هُوَ عَقْدٌ يَرْفَعُ النِّزَاعَ (۲) وَهُوَ جَائِزٌ بِإِقْرَارٍ وَسُكُوتٍ وَإِنْكَارٍ (۳) فَإِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَالٍ بِإِقْرَارٍ اُعْتُبِرَ بَيْعًا فَيَثْبُتُ فِيهِ الشُّفْعَةُ وَالرَّدُّ بِالْعَيْبِ وَخِيَارِ الرُّؤْيَةِ وَالشَّرْطِ (۴) وَتُفْسِدُهُ جَهَالَةُ الْبَدَلِ لَا جَهَالَةُ الْمُصَالَحِ عَنْهُ (۵) وَإِنْ اسْتَحَقَّ بَعْضَ الْمُصَالَحِ عَنْهُ أَوْ كُلَّهُ رَجَعَ الْمُدَّعِي عَلَيْهِ بِحِصَّةِ ذَلِكَ مِنَ الْعِوَضِ أَوْ بِكُلِّهِ (۶) وَلَوْ اسْتَحَقَّ الْمُصَالَحَ عَلَيْهِ أَوْ بَعْضَهُ رَجَعَ بِكُلِّ الْمُصَالَحِ عَنْهُ أَوْ بِبَعْضِهِ.

**ترجمه**: صلح هغه عقد دى چې نزاع ختموي او دا جائز دى په اقرار سره او په سكوت سره او په انكار سره بيا كه چيرته واقع شوه له مال ځخه پر مال باندي له اقرار سره نو دي ته دبيع اعتبار وركول كيږي په دي كې شفعه ثابتيږي او واپس كول يې د عيب او خيار رؤية او خيار شرط په وجه سره، او فاسدوي دا بدل مجهول كيدل نه د مصالح عليه مجهول كيدل، او كه د چا مستحق وګرځيد ځه مصالح عنه يا كل مصالح عنه نو له مدعي عليه ځخه دي هغو مره حصه عوض واخيستل شي يا دي كل عوض ورځني واخلي او كه د بدل چا مستحق شو بعض مصالح عليه يا كل مصالح عليه نو له مدعى عليه ځخه دي هغو مره عوض واخلي يا كل عوض.

**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله د صلح اصطلاحي تعريف داسې كړى دى چې صلح په شريعت كې د هغه عقد نوم دى چې مدعى او مدعى عليه ترمنځ نزاع ختموي.

(۲) صلح دري قسمه ده: صلح مع اقرار، صلح مع سكوت، صلح مع انكار، صلح مع اقرار داده چې د مدعى عليه پر اقرار باندي واقع شي مثلا د زيد په لاس كې خمكه ده بكر د هغې دعوى وكړه زيد د بكر په دعوى اقرار وكړ له هغه سره يې پر ځه مال باندي صلح وكړه، صلح مع انكار داده چې د مدعى عليه پر انكار باندي واقع شي مثلا په مذكور صورت كې زيد د بكر د دعوى ځخه انكار وكړ د هغه له شر ځخه د ځان

دخلاصون لپاره يې پرڅه مال باندي صلح ورسره وکړه . اوصلح مع سکوت داده چې دمدعی علیه پرسکوت باندي واقع شي مثلاپه مذکورصورت کې زيد بغيردکوم اقراراوانکارپرڅه مال باندي صلح ورسره کړه .

صلح دادري واړه قسمونه جائزدي لاطلاق قوله تعالى:(وَالصُّلْحُ خَيْرٌ) يعنې صلح بهتره ده . وقوله عليه السلام: كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا.(رواه الترمذي) يعني هره صلح دمسلمانانوترمنځ جائزه ده سوادهغه صلح چې حرام حلال کړي ياحلال حرام کړي.

(۳)که صلح دمدعی علیه پراقرارباندي واقع شي اومصالح عنه اومصالح علیه دواړه مال وي نوداصلح دبيع په حکم کې کيږي ځکه په دي کې دمتعاقدينوپه حق کې معنی دبيع يعنې مبادلة المال بالمال موجوده ده نوپه بيع کې چې کوم اموراعتبارلري هغه په دي کې هم معتبريږي که چيرته مصالح عنه اومصالح علیه ځمکه وه نوپه هغې کې دګاونډی حق شفعه ثابتيږي اوپه هغی کې خيارعيب ثابتيږي مثلابدل صلح مريی وومدعي په هغه کې عيب پيداکړنودهغه عيب په وجه مدعي هغه ردولای شي ځکه داصلح دبيع په حکم کې ده،همدارنګه په دي کې خيارشرط ثابتيږی مثلابدل صلح يوشی مقررشوی رواوله متعاقدينوڅخه يوه وويل چې مالره دري ورځې اختيارشته نوداجائزه ده لماقلنا ،همدارنګه په دي کې خياررؤية ثابتيږی مثلامصالح مصالح علیه ليدلی نه ووبياي وليدنوده لره رؤيت خيارشته.

(۴)يعنې داسي صلح چې په هغی کې صلح پرمال باندي وکړای شي که چيرته هغه (مصالح علیه) معلوم مال نه وونوداصلح نه صحيح کيږي ځکه داصلح دبيع په حکم کې ده نودمصالح علیه مجهول کيدل داسي دی لکه په بيع کې چې ثمن مجهول وي اودثمن مجهول کيدل مفسدبيع دی نودمصالح علیه مجهول کيدل مفسدصلح کيږي،اوکه مصالح عنه مجهول وونوداسي صلح صحيح ده مثلايوه سړي دخپل حق دعوی وکړه اودابيان يې ونکړچې څومره اوڅه شي دی مدعی علیه هغه ته لس درهم ورکړل صلح يې ورسرا وکړه نوصلح صحيح ده که څه هم له چاسره چې صلح شوې ده هغه معلوم نه دی په دي صورت کې صلح ځکه صحيح ده چې په دي کې کوم شی نه حواله کيږي نوداډول جهالت مضرنه دی.

(۵)که مدعی علیه دمدعي په دعوی اقراروکړصلح يې ورسره وکړه بيايوچا په ټول مصالح عنه (يعنې مدعی به) ياڅه حصه کې خپل استحقاق ثابت کړله مدعي علیه څخه يووړنومدعی علیه به په لومړي صورت کې کل عوض اوپه دوهم صورت کې دمستحق حصه په مقدارعوض له مدعي څخه واپس اخلي مثلادعمروپه لاس کې سرای دی زيددهغه سرای دعوی وکړه عمرواقراروکړاوله زيدسره يې پرسل درهمه باندي صلح وکړه عمروپرسرای اوزيدپرسل درهمه قبضه وکړه بيانيم سرای دبل چاحق ثابت شونوعمروبه له زيدڅخه پنځوس درهم واپس اخلي همدارنګه که ټول سرای ديوچاحق ثابت شونوعمروبه له زيدڅخه سل درهمه ټول واپس اخلي ځکه صلح مع اقراردرحقيقت دبيع په شان معاوضه مطلقه ده اودمعاوضه حکم دادی چې په هغی کې داستحقاق په وخت رجوع بقدرمستحق کيږي.

(۶)که تول مصالح علیه (پرکوم شي چې صلح شوې ده)تول یاځه حصه دبل چاحق ثابت شونوپه لومړي صورت کې به کل مصالح عنه اوپه دوهم صورت کې به بقدرِحصه له مدعی علیه څخه اخلي ځکه چې صلح مع اقراردرحقیقت دبیع په شان معاوضه مطلقه ده اودمعاوضه حکم همدادی چې په هغې کې داستحقاق په وخت رجوع بقدر مستحَق کیږي.

(۷)وَإِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَنْفَعَةٍ اُعْتُبِرَ اِجَارَةً فَيُشْتَرَطُ التَّوْقِيتُ وَيَبْطُلُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا(۸)وَالصُّلْحُ عَنْ سُكُوتٍ وَإِنْكَارٍ فِدَاءُ الْيَمِينِ فِي حَقِّ الْمُنْكِرِ وَمُعَاوَضَةٌ فِي حَقِّ الْمُدَّعِي فَلَاشُفْعَةَ اِنْ صَالَحَ عَنْ دَارٍ بِهِمَا(۹)وَتَجِبُ لَوْ صَالَحَ عَلٰى دَارٍ بِهِمَا.

**ترجمه**:که صلح واقع شوه له مال څخه پر منفعت باندي نو دا اجاره ګڼله کیږي نو شرط کیږي دموده تعین کول او باطلیږي دیوه (متعاقدینو) په مرګ سره او صلح له سکوت او صلح له انکار سره فدیه ده دقسم دمنکر په حق کې او معاوضه دمدعي په حق کې نو شفعه نه کیږي که دواړو صلح وکړه له سرای څخه په سکوت یا انکار سره او شفعه واجبیږي که صلح وکړه دواړو پر سرای باندي په سکوت یا انکار سره.

**تشریح**:(۷)که صلح له مال څخه په عوض دمنافعو واقع شوه نو دا صلح داجاره په حکم کې کیږي ځکه په دې کې داجاره معنی (یعنې په عوض دمال دمنافعو مالک ګرځیدل) موجوده ده نو په اجاره کې چې کوم امور معتبریږي هغه په دې کې معتبریږي نو دمنفعت دوصول موده مقرر ول شرط دی او په مقرره موده کې دیوه په مرګ سره صلح باطلیږي لکه اجاره چې دموجر یا مستاجر یوه په مرګ سره باطلیږي.

(۸)که صلح دمدعی علیه په سکوت یا انکار سره وشوه نو دا دمدعی علیه په حق کې دقطع نزاع او قسم فدیه کیږي ځکه دمدعی علیه ګمان دادی چې شی مدعی به دهغه ملک دی نو مصالح علیه دهغه عوض نه ګرځي بلکې دمدعي له دعوی څخه دانکار په نتیجه کې چې کوم قسم پر هغه باندي راته دادهغه فدیه شمارله کیږي. او دمدعي په حق کې معاوضه کیږي ځکه هغه په خپل زعم دخپل حق عوض اخلي نو له هر یوه سره دهغه داعتقاد مطابق معامله کیږي فلاشفعة ان صالح الخ. پرماقبل باندی تفریع ده یعنې که چا په بل چادسرای دعوی وکړه مدعی علیه په سکوت یا انکار سره صلح عن دار(یعنې که چیرته مدعی به سرای وو)وکړه نو په دغه سرای کې دګاونډي حق شفعه نه کیږي. ځکه مدعی علیه داسرای پخپل زعم پر خپل ملک دصلح په ذریعه برقرار ساتي نه داچې هغه داسرای اخلي نو په دې کې حق شفعه نشته.

(۹)او که صلح علی دار وشوه یعنې بدل صلح سرای وو مثلا یو چا په بل چادیو شي دعوی وکړه مدعی علیه دهغه پر دعوی باندي سکوت اختیار کړیا یې دهغه له دعوی څخه انکار وکړ او له هغه سره دصلح کولو په صورت کې خپل یو سرای هغه ته ورکړ نو په دې سرای کې دګاونډي حق شفعه ثابتیږي ځکه مدعي هغه دخپل مال (شی مدعی به) عوض ګڼي اخلي یې نو داهغه په حق کې معاوضه شوه نو ځکه په دې کې شفعه واجبیږي.

**الالغاز**:ای صلح ان قبل رجل صالح آخر علی ان یترک حقه فی شئ معین علی مال معین فیسقط حق المصالح ولایلزم المصالح المال الذی صولح به ویجبر علی ردّه لو اخذه؟

**فالجواب**:هذا شفيع صالح المشتري على ترک حقه في الشفعة يسقط حقه ولا يلزمه المال ويجبر على ردّه لو اخذه. (الاشباه والنظائر)

(۱۰)ولو استحق المتنازع فيه رجع المدعي بالخصومة ورد البدل(۱۱)ولو بعضه فبقدره(۱۲)ولو استحق المصالح عليه او بعضه رجع الى الدعوى في كله او بعضه(۱۳)وهلاک بدل الصلح قبل التسليم كاستحقاقه في الفصلين

**ترجمه**:که ديو بل چا مستحق وګرځيد متنازع فيه شي نو رجوع به وکړي مدعی په خصومت سره او واپس به کړي بدل،او که بعض متنازع فيه د چا مستحق شو نو دغه په قدر بدل به واپس کړي،او که مستحق شو کل مصالح عليه يا بعض نو دعوی ته رجوع کيږي په کل کې يا په بعض کې او هلاک کيدل د بدل صلح مخکې تر تسليمولو داسې دی لکه مستحق کيدل دغه په دواړو صورتونو کې.

**تشريح**:(۱۰)که يې صلح مع سکوت يا مع انکار کړې وه نو بيا متنازع فيه د بل چا حق وګرځيد نو له مستحق سره به خصومت مدعي وکړي ځکه بدل د مستحق دغه په لاس کې دی په دې وجه دی د مدعی عليه قائم مقام دی او د مدعی عليه عوض (مصالح عليه )به ورواپس کړي ځکه چې مدعی عليه مدعي ته عوض د دې لپاره ورکړی چې د مدعی خصومت دفع شي خو کله چې د مدعی به بل مستحق پيدا شو نو ظاهره شوه چې مدعی لره حق د خصومت نه وو او بلاوجه عوض دغه په لاس ورغی نو ځکه به دا عوض مدعی عليه ته ورواپس کړي.

(۱۱)قوله ولو بعضه فبقدره اى لو استحق بعض المتنازع فيه فيرجع بالخصومة بقدر ما استحق يعني که چيرته په دغه صورت کې د بعض مدعی به کوم بل مستحق پيدا شو نو مدعي به په قدر د مستحق عوض مدعی عليه ته ورواپس کړي او د بعض مستحق په باره کې به له مستحق سره خصومت مدعي وکړي اعتباراً للبعض بالکل.

(۱۲)که د کل مصالح عليه (پر کوم شي چې صلح شوي وي) يا بعض کوم بل مستحق پيدا شو نو په دواړو صورتونو کې به مدعي د خپلې سابقه دعوی په طرف رجوع وکړي يعني که چيرته د کل مصالح عليه بل څوک مستحق ثابت شو نو مدعی به د تمام مصالح عنه دعوی وکړي او که د بعض مستحق ثابت شو نو مدعي به د بعض دعوی وکړي ځکه مدعي د مصالح عنه په باره کې خپله دعوی پرې ايښې وه چې دده په لاس سالم مصالح عليه ورشي نو چې کله د مصالح عليه بل مستحق ثابت شو نو مصالح عليه ده ته سالم په لاس نه ورغی نو مدعي به د خپلې سابقه دعوی په طرف رجوع وکړي.

(۱۳)که بدل صلح مدعي ته تر حواله کولو مخکې هلاک شو نو دغه حکم په دواړو صورتونو کې (يعني که صلح عن اقرار وه يا عن سکوت وانکار وه ،سکوت او انکار يې دواړه يو قسم وګڼل ) هغه دی کوم چې د مستحق کيدو په صورتونو کې وو نو که صلح عن اقرار وه نو چې د کوم شي دعوی ده مدعي به دغه طرف ته رجوع کوي او که صلح عن سکوت او انکار وه نو دی به د خپلې دعوی په طرف رجوع کوي.

## فصل

مصنف رحمه الله چې کله د مشروعیت دصلح اوانواعو دصلح له بیان څخه فارغ شواوس په دغه فصل کې هغه شیان بیانوي دکومو له طرفه چې صلح جائزه وي او دکومو له طرفه چې جائزه نه وي.

(۱) الصلح جائز من دعوى المال والمنفعة والجناية (۲) بخلاف الحد والنكاح والرق فلو كان خلعا أو عتقا على مال (۳) وان قتل العبد المأذون رجلا عمدا لم يجز صلحه عن نفسه (۴) وان قتل عبد له رجلا عمدا فصالح عنه جاز (۵) ولو صالح عن المغصوب المتلف بما زاد على قيمته أو على عرض صح.

**ترجمه**: صلح جائزه ده دمال، منفعت اوجنایت له دعوی څخه خلاف د حد، نکاح اومریېتوب له دعوی نه نو داصلح خُلع اوآزادیدل دی پرمال باندي، که قتل کړماذون مریي یو څوک قصداً نو دهغه صلح کول ناجائزدی له خپله طرفه، اوکه دعبد ماذون مریي قتل کړیو څوک قصداً بیایې له هغه نه صلح وکړه نو دا جائزه ده، اوکه یې صلح وکړه له مغصوب هلاک شوي شي څخه دهغه ترقیمت په زیات باندي یا پرسامان باندي نو داصلح جائزه ده.

**تشریح**: (۱) که مدعي دمال دعوی وکړي نو مدعی علیه لپاره له دي دعوی مال څخه صلح کول جائزه ده ولی که صلح عن اقراروي نو داسی صلح دمتعاقدینو په حق کې دبیع په معنی ده اوکه صلح عن سکوت یاعن انکاروي نو مدعی په حق کې دبیع په معنی ده نو دکوم شي چې بیع جائزه وي له هغه څخه صلح هم جائزه ده. همدارنګه که مدعي دمنافعو دعوی وکړي نو مدعی علیه لپاره له دغو منافعو څخه صلح کول جائزه ده مثلاً مدعي دعوی وکړه چې فلان چې کله وفات کیده نوزمالپاره یې په دي سرای کې دیوکال اوسیدو وصیت کړی دی ورثه ؤانکاروکړیایې اقراروکړ له هغه سره یې پریوڅه باندي صلح وکړه نو دا جائزه ده. ځکه په اجاراتو کې عوض دمنافعو اخیستل جائزدی نو په صلح کې هم جائز کیږي. همدارنګه له جنایت عمد څخه هم صلح کول جائزه ده مثلاً یو چا قصداً دبل سړي پلار وواژه نو دمقتول ورثه له قاتل څخه دقصاص اخیستلو پرځای پریوڅه باندي صلح ورسره کولای شي ځکه دالله تعالی ارشاد دی: ( فمن عفي له من اخيه شيء فاتباع بالمعروف ) دحضرت ابن عباس رضی الله عنهما رایه داده چې داآیت مبارک دصلح عمد په باره کې نازل شوی دی نوله جنایت عمد څخه صلح کول جائزه ده، همدارنګه له جنایت خطاڅخه هم صلح کول جائزه ده، مثلاً یو چاپه خطادبل سړي پلارقتل کړنو دمقتول ورثه له قاتل څخه ددیت اخیستلو پرځای پریوڅه باندي صلح ورسره کولای شي ولی دقتل خطاء موجب مال دی یعنې دخطاء جنایت پرترسره کولو کې پرجنایت کوونکي باندی مال واجبیږي اوصلح عن مال جائزه ده.

(۲) قوله بخلاف حدای یجوز الصلح عن دعوی الجناية ولایجوز عن الدعوی فی الحد. یعنې له دعوی دحدڅخه صلح کول ناجائزه ده مثلاً یو سړي زناکاریاغل یاشراب خورونیو هغه نیوونکي ته په دي شرط څه ورکړل صلح یې ورسره وکړه چې ماوحاکم ته مه پیشوه نوداسی صلح کول جائزه نه ده ځکه حدالله تعالی حق دی دنیوونکي حق نه دی اودحق غیرعوض اخیستل جائزنه دی.

(۳) قوله ومن النکاح والرزق ای والصلح جائز من دعوی النکاح والرزق، یعنې که چا پر یوه ښځه باندې دنکاح دعوی وکړه او ښځې انکار وکړ څه مال یې ورکړله دعوی نکاح څخه یې صلح ورسره وکړه چې مدعي دادعوی پریږدي نو دا جائزه ده او دا صلح دمدعی په حق کې خلع (ښځه چې مال ورکړي له زوج څخه طلاق حاصل کړي دا خلع بولي) ده ځکه دی یې داسې ګڼي چې نکاح قائمه ده او دښځې په حق کې دفع دخصومت او فدیه یمین کیږي ځکه ښځه دا دعوی ناحقه ګڼي، همدا رنګه که یو چا دادعوی وکړه چې فلان سړی زما غلام دی او مدعی علیه څه مال ورکړ صلح یې ورسره وکړه نو دا صلح صحیح ده، او دمدعي په حق کې دا دمال په عوض کې آزادي ګڼله کیږي، ولی دی پخپل زعم هغه خپل ملک بولي او که صلح مع اقرار وه نو دا دمدعی علیه په حق کې هم په عوض سره آزادي حاصلول دی، که نه دمدعی علیه دطرف څخه بدل صلح لپاره ددفع دخصومت کیږي ولی دی پخپل ګمان خپل ځان حُر ګڼي.

(۴) که ماذون غلام یو څوک عمداً قتل کړ نو هغه لره دخپل ځان دخوندي ساتلو لپاره صلح کول ناجائزه ده ځکه دهغه مولی ده ته یوازې دتجارت ازجازه ورکړې ده او مذکوره صلح دتجارت له باب څخه نه ده نو دا صلح جائزه نه ده، البته که دداسې ماذون مریي لپاره هم یو ماذون مریی وو هغه یو څوک عمداً قتل کړ یا ماذون مریي دخپل دغه قاتل مریي له طرفه صلح وکړه نو دا جائزه ده ځکه دهغه مریي بچاوول دهغه داخیستو په شان دی نو لکه څرنګه چې ماذون مریي ته دمریي اخیستل جائز دی همدا رنګه صلح کول دهغه بچاوول هم جائز دی.

(۵) که یو چا دبل چا یو شی مثلاً کپړه چې دهغې قیمت پنځوس درهمه وو یو وړه او بیا یې ضائع کړه او تر اوسه لا قاضي دهغه دقیمت ورکولو حکم نه وو کړی چې غاصب دهغې مالک ته سل درهمه ورکړي صلح ورسره وکړي نو دامام صاحب رحمه الله په نزد دا صلح جائزه ده دصاحبینو او امام شافعی رحمهم الله په نزد دمغصوب شي تر قیمت زیاتې پیسې اخیستل نه دي روا ځکه دمالک حق خالص دمغصوب شي په قیمت کې دی نو تر قیمت زیات اخیستل سود ګڼل کیږي ځکه ناجائز دی، دامام ابو حنیفة رحمه الله دلیل دا دی چې دمالک حق په هلاکه شوي کپړه کې باقی دی او دقیمت طرف ته دهغه حق دقاضي په قضاء سره منتقل کیږي او چې کله دی دقاضي تر فیصله مخکې په زائد قیمت باندې راضي شو نو دا ټول دکپړې دقیمت عوض شو نه دا چې سود شو، او که غاصب پر معلومو اسبابو صلح وکړه نو دا صلح بالاتفاق جائزه ده که داسبابو قیمت زائد وي که کم وي ځکه داختلاف جنس په صورت کې دزیادت ظهور نه راځي.

**فائده**: دامام صاحب رحمه الله قول راجع دی لمافی الهندیة: غصب ثوبا قیمته مائة فاتلفه فصالحه منه علی ازید من مائة جاز وقالا یبطل الفضل علی قیمته بما لا یتغابن الناس فیه والصحیح مذهب ابی حنیفة رحمه الله کذا فی خزانة الفتاوی. (الهندیة: ۴/ ۲۳۱)

(٦) وَلَوْ أَعْتَقَ مُوسِرٌ عَبْدًا مُشْتَرَكًا فَصَالَحَهُ الشَّرِيكُ عَلَى أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ قِيمَتِهِ لَا (٧) وَمَنْ وَكَّلَ رَجُلًا بِالصُّلْحِ عَنْهُ فَصَالَحَ لَمْ يَلْزَمْ الْوَكِيلَ مَا صَالَحَ عَلَيْهِ فَالْمُوَكِّلُ يَضْمَنُهُ بَلْ يَلْزَمُ الْمُوَكِّلَ (٨) وَإِنْ صَالَحَ عَنْهُ بِلَا أَمْرٍ صَحَّ إنْ ضَمِنَ الْمَالَ أَوْ أَضَافَ إلَى مَالِهِ أَوْ قَالَ عَلَيَّ أَلْفٌ وَسَلَّمَ وَإِلَّا تَوَقَّفَ فَإِنْ أَجَازَهُ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ جَازَ وَإِلَّا بَطَلَ.

**ترجمه** :كه يوه غني سړي مشترک مريي آزاد كړ بيا له هغه سره صلح وكړه هغه بل شريک د هغه ترنصف قيمت پرزائد باندي نو دا صلح صحيح نه ده ،اوكه چا يو څوک وكيل وګرځاوه د هغه له طرفه د صلح كولو پس هغه صلح وكړه نو نه لازميږي پر وكيل باندي هغه چي پر هغه يې صلح كړې ده ترڅو چې هغه يې ضامن شوى نه وي بلكې پر موكل باندي لازميږي،اوكه يې صلح وكړه د هغه دامر بغير نو صحيح دى كه چيرته ضامن شوى او د مال يا يې نسبت كړى د هغه د خپل مال طرف ته يا يې ويلي وو چې د صلح زررويي پرما باندي دي او تسليم يې هم كړي،كه نه موقوف كيږي كه مدعي عليه جائزه وګڼله نو جائز كيږي كه نه بيا باطليږي.

**تشريح** :(۶)كه يوه دولت مند سړي مشترک مريي آزاد كړ هغه بل شريک د هغه مريي ترنيم قيمت پرزيات باندي له هغه آزادوونكي سره صلح وكړه نو دابالاتفاق نه ده صحيح زائدمقدار باطل دى،د صاحبينو رحمهما الله په نزد وجه هغه چې پورته ذكرشوه چې ترنصف قيمت زيات اخيستل سود دى، د امام صاحب رحمه الله په نزد وجه د بطلان داده چې د آزادي په صورت كې قيمت شرعًا مقدر و منصوص عليه دى ځكه نبي كريم ﷺ فرمايلي دي :چې څوک د مشترک مريي يوه حصه آزاده كړي نو پر هغه باندي د هغه د شريک د حصه قيمت لازم دى نو پر قيمت باندي زيادت نه جائزكيږي،ځكه دا زيادت سود شمارل كيږي،خلاف غصب چې د هغه قيمت منصوص عليه نه دى ځكه نو د غصب په صورت كې پر زائد قيمت باندي صلح جائزه ده .

(۷)يو چا بل څوک له خپله طرفه د صلح وټاكى هغه صلح وكړه نو پر كوم مال باندي چې صلح شوي وي هغه د وكيل پرذمه نه لازميږي بلكې د موكل پرذمه لازميږي،مثلا يو چا د قتل عمد له طرفه :-صلح كولو لپاره يو څوک وكيل كړ نو بدل صلح پر موكل باندي لازميږي نه پر وكيل باندي ځكه ددې صلح په ذريعه له قاتل څخه قصاص ختمول دي نو وكيل سفير محض دى عاقد نه دى نو حقوق د صلح د موكل طرف ته راجع كيږي نه د وكيل طرف ته ،البته كه وكيل د بدل صلح ضامن شي نو بيا بيشكه چې بدل صلح له وكيل څخه اخيستل كيږي او له ادائيګى وروسته به وكيل پر موكل باندي رجوع كوي.

مګر له دغه صلح څخه مراد دادى چې له داسي حق څخه صلح وكړي چې مال نه دى مثلا له قصاص څخه يې صلح كړې وي او يا مال وو مګر د كومي قرض چې دعوى كړل شوې ده د هغى پر څه حصه يې صلح كړې وي نو په دغو دوو صورتونو كې (صلح د قصاص د اسقاط لپاره يا صلح د حصه د اسقاط ،قرض لپاره )د وكيل حيثيت محض ديو سفير دى ځكه نو بدل صلح پر هغه نه لازميږي بلكې پر موكل باندي لازميږي.

(۸)كه بيګانه سړي د بل چا له طرفه د هغه د حكم بغير صلح وكړه نو ددې مسئلې څلور صورتونه: ۱- بيګانه د مال په بدله كې صلح وكړه او د بدل صلح ضامن خپله دى شو ،په دي صورت كې صلح صحيح ده ځكه په دغه صورت كې چې مدعى عليه ته كوم شى حاصل دى هغه برائت دى او د برائت په حق كې مدعى عليه او اجنبي دواړه برابر دي نو بيګانه په دى كې اصيل ګرځيداى شي چې كله دى ضامن شي . ۲-صلح كوونكي د بدل صلح نسبت د خپل مال طرفته وكړ مثلا داسي يې وويل چې د فلان له طرفه زه له تاسره پر خپلو زرو درهمو نو باندي صلح كوم په دي صورت كې هم صلح صحيح ده او د هغه فضولى پر ذمه زر درهمه

لازمیږي ځکه چې کله هغه دصلح نسبت دخپل ځاني مال طرف ته وکړنو دهغو دسپارلو التزام يې وکړاودی پرسپارلو باندي قادرهم دی . ۳-دخپل ځاني مال طرفته يې نسبت خونه دی کړی مګربدل صلح يې وسپاره پهٔ دی صورت کې هم صلح صحیح ده ځکه دمدعي مقصودداووچې دهغهٔ عوض په لاس ورشي هغه ورته ورسید. ۴-بیګانه نه دبدل صلح ضامن شوی دی نه يې دخپل ځاني مال طرف ته نسبت کړی دی نه يې مدعي ته سپارلی دی بلکې مطلقايې داسي وويل چې ماپرزردرهمه باندي صلح وکړه په دي صورت کې صلح موقوفه کیږي که مدعي علیه دهغه اجازه وکړه نوجائزه ګرځي که نه بیانه ده جائزه،ځکه اصل په عقدکې مدعی علیه دی ځکه دجنجال ختمیدوفائده هم ده ته رسیږي خوخپل ځان ته په نسبت کولوسره بیګانه هم اصیل ګرځي اوچې کله هغه خپل ځان ته نسبت نه دی کړی نودی اصیل نه شوبلکې دمدعی علیه له طرفه عقدکوونکی شونوداصلح دهغه پراجازه باندي موقوفه کیږي .

## بَابُ الصُّلحِ فِي الدَّين

### داباب له دین څخه دصلح کولو په بیان کې دی

مصنف رحمه الله دعامودعوی ګانوله طرفه دصلح کولوله بیان څخه فارغ شونودخاص دعوی یعنې دعوی دین له طرفه دصلح کولوبیان يې شروع کړځکه چې خصوص همیشه ترعموم وروسته وي .

(۱) اَلصُّلحُ عَمَّا استَحَقَّ بِعَقدِ المُدَايَنَةِ اَخذٌ لِبَعضِ حَقِّهٖ وَاِسقَاطٌ لِلبَاقِي لَامُعَاوَضَةٌ (۲) فَلَو صَالَحَ عَن اَلفٍ عَلٰى نِصفِهٖ اَو عَلٰى اَلفٍ مُؤَجَّلٍ جَازَ (۳) وَعَلٰى دَنَانِيرَ مُؤَجَّلَةٍ (۴) اَو عَن اَلفٍ مُؤَجَّلٍ اَو سُودٍ عَلٰى نِصفٍ حَالٍّ اَو بِيضٍ لَا (۵) وَمَن لَهٗ عَلٰى آخَرَ اَلفٌ فَقَالَ اَدِّ اِلَيَّ غَدًا نِصفَهٗ عَلٰى اَنَّكَ بَرِيءٌ مِنَ الفَضلِ فَفَعَلَ بَرِئَ وَاِلَّا لَا (۶) وَمَن قَالَ لِآخَرَ لَا اُقِرُّ لَكَ بِمَالِكَ حَتّٰى تُؤَخِّرَهٗ عَنِّي اَو تَحُطَّ فَفَعَلَ صَحَّ عَلَيهِ.

**ترجمه**:صلح کول له هغه څخه چې هغه په عقدمداینت سره مستحق شوی وي اخیستل دی دخپل بعض حق اوساقطول دی دباقي دی معاوضه نشته،پس که يې صلح وکړه له زروڅخه دهغه پرنصف یاپرهزارموجل باندي نوجائزدی اوپرموجل دنانیروباندي اوپرزروموجل باندي یاله زروتوروددرهمونوڅخه پرنقدو نصف باندي یاپرسپینودرهمونوباندي صحیح نه دی اوکه دچاپربل باندي زردرهمونه وویاهغه وویل چې ماته اداکړه سبادغوروپونیمی په دي شرط چې ته بري يې له باقي څخه پس هغه داسي وکړل نوبري کیږي که نه بیانه کیږي،اوکه چاوویل بل ته چې زه اقرارنه کوم ستاپه مال سره ترڅوچې ته هغه موخرکړي یایې کمی کړي پس هغه داسي وکړل نوصحیح دی .

**تشریح** :(۱)که پرچاباندي دعقدمداینت (یعنې په پورشی اخیستل)په وجه قرض راغی اوهغه پرداسی شي باندي صلح وکړه چې دهغه دقرض له جنس څخه وواوله قرض څخه کم وونودغه صلح دقرض دعوض پرورکولوباندي نه حمل کیږي ځکه عاقل یابالغ چې کوم کاریاخبره کوي نوحتی الامکان به هغه صحیح کول کیږي په داسي حال کې چې دعوض بللوپه صورت کې دهغه دسودکاروبارصورت پیداکیږي نودغه کمی به پردي باندي حمل کیږي چې قرض غوښتونکي دخپل حق څه حصه معاف کړه باقي يې وصول کړي دي مثلایوسړي له بل څخه یوشی دیوزرصافودرهموپه عوض په پوروا خیست اوقرض غوښتونکي پرپنځه سوو

باندي صلح وکړه نوداصلح جائزه ده اوداویل کیږي چې هغه خپل بعض حق یعنې پنځه سوه څخه مقروض بري کړ،پنځه سوه نقدي دزروقرضوعوض نه ګڼل کیږي ځکه داسي کول سوددی.

(۲)همدارنګه که مقروض له یوزرنقدو(یعنې دکومواداڼګي چې دهغه پرذمه فی الحال واجبه وي)څخه دهغه پرنصف یعنې پنځه سوه باندي صلح وکړه نوداجائزه ده ،اوداویل کیږي چې هغه خپل بعض حق یعنې پنځه سوه څخه مقروض بري کړپنځه سوه نقدي دزروقرضوعوض نه ګڼل کیږي ځکه داسي کول سوددی ،همدارنګه که یې له یوزرنقدوڅخه پریوزر میعادي باندي صلح وکړه نوداهم جائزه ده ګواکي قرض غوښتونکي پخپل اصل قرض کې دوخت مهلت ورکړځکه داسي کول عوض شمارل صحیح نه دی ولی درهم ددرهموپه بدله کې په پورخرڅول (چې له هغه څخه ربالنسئة لازمیږي)جائزنه دی نوپرمهلت ورکولوباندي محمول کیږي.

(۳)قوله وعلی دنانیرموجلة الخ ای لوصالح عن الف درهم علی الف دنانیرموجلة الخ،یعنې که یوچادزرودرهموپه عوض دیوې میاشتې په مهلت سره پردنانیروباندي صلح وکړه نودانه جائزه کیږي ځکه دعقدمداینت په وجه دنانیرنه دي واجب شوي ځکه نوهغه په اصل قرض کې پرمهلت ورکولوباندي نه شي محمول کیدای اوداله معاوضه بللونه سِواکوم بل صورت نه لري اودرهم په عوض ددنانیروپه پورخرڅول جائزنه دی ځکه نوداصلح هم جائزه نه ده.

(۴)که دیوچاپربل باندي زردرهم په میعادي قرض سره واجب وواوس قرض غوښتونکی دهغه په عوض پرنقدوپنځوسوو باندي صلح وکړي نوداصورت هم جائزنه دی ځکه دپورپه نسبت نقدبهتروي اونقددعقدپه سبب نه وو واجب شوي نودادمیعادعوض دی چې حرام دی،همدارنګه که قرض یوزرکوټه درهم وو قرض غوښتونکي په پنځوسووصافودرهمونوباندي صلح ورسره وکړه نوداصورت نه دی جائزځکه دعقدمداینت په وجه صاف درهم نه وو واجب شوي اوصافوالی ددرهمو وصف دی نودزرودرهموعوض پنځه سوه درهمه دوصف په زیادت سره شو(په نقدوکې وصف معتبرنه دی)نوداصلح په دي وجه چې پرسود باندي مشتمله ده نه ده جائزه.

(۵)دزیدپربکرباندی زردرهم باندي ووهغه بکرته وویل :ته سباماته دهغوقرض روپونصف یعنې پنځه سوه په دي شرط راادکړه چې له باقي پنځه سوه څخه ته بري یې بکرهمداسي وکړل نودی له پنځه سوه څخه بري کیږي اوکه یې سباورځ ادانه کړي نودطرفینورحمهماالله په نزدنه بري کیږي اودامام ابویوسف رحمه الله په نزدپه هغه صورت کې هم بري کیږي ځکه ابراء مطلقه ده که یې دی اداکړي اوکه یې نه کړي اداپه هرصورت بري کیږي.دطرفینورحمهماالله دلیل دادی چې دلته برائت مطلق نه دی بلکې دسباورځي په اداکیدوسره مقیدد ی نودشرط فوت کیدوپه وجه ابراء هم فوتیږي.

(۶)که چاپه پټه خپل قرض غوښتونکي ته وویل چې زه ستالپاره ستادمال اقرارنه کوم ترڅوچې ته ماته مهلت رانه کړي یاله قرض څخه څه حصه کمه نکړې،ددي خبرې په جواب کې قرض غوښتونکي هغه ته

مهلت ورکړیایې څه حصه ورمعافه کړه نوداسې کول صحیح دی ځکه مقروض خوقرض غوښتونکی مجبورکړی نه دی ځکه چې هغه ګواهان قائم کړي نودفع یې کولای شي.

## فصل

### دافصل له دین مشترک څخه دصلح کولوپه بیان کې دی

مصنف رحمه الله له دین مطلق څخه دصلح کولوله بیان څخه فارغ شواوس یې له دین مشترک نه دصلح کولوبیان شروع کړ.له دین مشترک څخه دصلح کولودتاخیروجه داده چې اشتراک عارض دی اواصل عدم عارض دی.یاداسې ووایاست چې ددین مفرله بیان څخه فارغ شواوس یې ددین مشترک په بیان شروع وکړ ځکه دوه له یوه وروسته وي.

(۱)دَيْنٌ بَيْنَهُمَا صَالَحَ أَحَدُهُمَا عَنْ نَصِيبِهِ عَلَى ثَوْبٍ لِشَرِيكِهِ أَنْ يَتْبَعَ الْمَدْيُونَ بِنِصْفِهِ (۲)أَوْ يَأْخُذَ نِصْفَ الثَّوْبِ مِنْ شَرِيكِهِ (۳)إلَّا أَنْ يَضْمَنَ رُبْعَ الدَّيْنِ (۴)وَلَوْ قَبَضَ نَصِيبَهُ شَرِكَهُ فِيهِ وَرَجَعَا بِالْبَاقِي عَلَى الْغَرِيمِ (۵)وَلَوْ اشْتَرَى بِنَصِيبِهِ شَيْئًا ضَمَّنَهُ رُبْعَ الدَّيْنِ (٦)وَبَطَلَ صُلْحُ أَحَدِ رَبَّيْ السَّلَمِ مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى مَا دَفَعَ.

**ترجمه** :ددوکسانوقرض دی له هغوئ څخه یوه دخپل نصیب نه پرکپړه باندې صلح وکړه نوشریک ته یې داجائزه ده چې مقروض تعقیب کړي دنصف قرض لپاره یادې واخلي نیمه کپړه له خپل شریک څخه مګرداکه ضامن شي شریک دربع قرض اوکه یې قبض کړه خپله حصه نوشریک کیږي په هغې کې له هغه سره.اودواړه به رجوع وکړي پرمقروض باندې دباقي لپاره اوکه یې واخیست دخپلې حصې په عوض یوشی نوضامن کیږي دهغه بل لپاره په ربع دین سره اوباطله ده صلح دیوه له دوورب السلم څخه دخپلې حصې نه پرهغه چې ده ورکړي ده.

**تشریح** :(۱)کله چې ددووکسانوپریوچاباندې قرض وو(په دې شرط چې دقرض سبب یووي مثلا یوسړی مرشو دهغه پریوچاباندې قرض وواودهغه مړي دوه وارثان وونوداقرض اوس ددغو وارثانوطرف ته منتقل کیږي اودادواړه وارثان اوس په دغه قرض کې سره شریکان دي)اوس که چیرته له دې دووشریکانوڅخه یوه له هغه مقروض سره دخپلې حصې په عوض کې پرکپړه باندې صلح وکړه نودوهم شریک ته اختیاردی که غواړي له اصل مقروض څخه خپله حصه طلب کړي ځکه دهغه حصه دمقروض پرذمه باقي ده ځکه چې اول شریک خوخپله حصه قبض کړي ده ددوهم شریک حصه له مقروض سره سالمه پاتې ده نوله مقروض څخه دخپلې حصې په باره کې دمطالبې حق لري.

(۲)البته څرنګه چې دوهم شریک ته حق دمشارکت حاصل دی نوکه غواړي له اول شریک څخه دې دمصالح به کپړې نیمې واخلي ځکه اول شریک پرنصف دین باندې صلح کړې ده ولې دین په مشاع دول دمقروض پرذمه ووتقسیم نه قبلوي نوددین له هرجزء سره ددوهم شریک حق متعلق دی نوداول شریک صلح ددوهم شریک پراجازه باندې موقوفه ده اوچې کله دوهم شریک نیمه کپړه اخلي نوداجازت دعقددی ځکه جائزدی.

(۳)البته که اول شريک (صلح کوونکی) ددوهم شريک لپاره په رُبع دين ضامن شي نوبيادوهم شريک له اول شريک څخه دنيمي کېړې اخيستلوحق نه لري ځکه دشريک اول په مقبوضه کېړه کې ددوهم شريک حق په قدردرُبع دين دی چې په هغه سره شريک اول ورته ضامن شوی دی.

(۴)که له دواړوشريکانوڅخه يوه خپل نيم قرض وصول کړنودوهم شريک ته جائزدی چې دهغه په وصول کړي قرض کې ورسره شريک شي ځکه اول شريک پردين مشاع باندي قابض دی نودوهم ورسره شريک کيدای شي،دباقی دين مطالبه هغوئ په دواړوله مديون څخه کولای شي ځکه چې په مقبوض مقدارکې هغوئ سره شريکان شونوپه باقی کې هم بالضرورشرکت برقرارپاتی وي.

(۵)که يوه شريک له مقروض څخه دخپلې حصې په بدل کې سامان واخيست نودوهم شريک ته اختياردی که له اصل مقروض څخه خپله حصه طلبوي (ځکه دهغه قرض داصل مقروض پرذمه پاتی دی)اوکه غواړي نواول شريک دي درُبع دين ضامن وګرځوي ځکه اول شريک دقرض په عوض دسامان په اخيستلوسره بغيردچشم پوشي خپله حصه په پوره توګه وصول کړي ده نودرُبع دين په ضامن کيدوکې پرهغه باندي هيڅ تاوان نشته.

(۶)دوه کسان سره يوشول په يوه بوري غنموکې يې له دريم چاسره عقدسلم وکړاوسل روپۍ رأس المال يې مقررکړ،له دوشريکانوڅخه يوه دخپلې حصې پنځوس روپۍ ورکړي ،له هغه وروسته يوه شريک دخپلې نيمي بوري په بدله کې پر رأس المال (پنځوس روپۍ)باندي له مسلم اليه سره صلح وکړه اوله رأس المال څخه يې خپله حصه واخيسته سلم يې پريښودنوکه دوهم شريک اجازه ورنکړي نودطرفينورحمهماالله په نزدداصلح جائزه نه ده ځکه که چيرته دغه صلح ديوه شريک په حصه کې جائزه وبلله شي نوپه دي صلح کې قبل القبض ددين (يعني رأس المال چې دمسلم اليه پرذمه دين دی)تقسيم لازميږي اوقبل القبض تقسيم ددين باطل دی،اوکه ددواړوشريکانوپه حصه کې جائزه وبلله شي نوددوهم شريک اجازه ضروري ده چې هغه نشته،دامام يوسف رَحِمَهُ الله په نزدداصلح جائزه ده هغه داپرنوروديونوباندي قياسوي نولکه څرنګه چې په نوروديونوکې که يوشريک دخپلې حصې څخه صلح کوي نوداجائزه ده همدارنګه داهم جائزه ده.

**فائده** :دطرفينورحمهماالله قول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رَحِمَهُ الله :قوله لايصح عندهماالخ وبقولهمااخذكثيرمن المشائخ واقتصرعليه كثيرمن اصحاب المتون والشروح واليه مال صاحب الهداية وملتقى الابحر. (هامش الهداية:۳/ ۲۵۳)

(۷)وَاِنْ اَخْرَجَتِ الْوَرَثَةُ اَحَدَهُمْ عَنْ عَرْضٍ اَوْ عَقَارٍ بِمَالٍ اَوْ عَنْ ذَهَبٍ بِفِضَّةٍ اَوْ بِالْعَكْسِ صَحَّ قَلَّ اَوْ كَثُرَ وَعَنْ نَقْدَيْنِ وَغَيْرِهِمَا بِاَحَدِ النَّقْدَيْنِ (۸)لاَ اِلاَّ اَنْ يَكُوْنَ الْمُعْطٰى اَكْثَرَ مِنْ حَظِّهِ مِنْهُ (۹)وَلَوْ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ عَلَى النَّاسِ فَاَخْرَجُوْهُ لِيَكُوْنَ الدَّيْنُ لَهُمْ بَطَلَ (۱۰)وَاِنْ شَرَطُوْا اَنْ يُبْرِئَ الْغُرَمَاءَ مِنْهُ صَحَّ (۱۱)وَلَوْ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ مُحِيْطٌ بَطَلَ الصُّلْحُ وَالْقِسْمَةُ.

**ترجمه** :اوکه ويوست وارثانوله خپل منځه يوتن له سامان څخه ياله ځمکې څخه څه مال يې ورکړيايې سره زرورکړل يايې سپين زرورکړل يادهغه برعکس نوداصحيح دی که عوض کم وي که زيات وي ياله نقدينواوغيرنقدينوڅخه احددنقدينو ورکړي دانه دی صحيح ترهغه چې زيات نه وي ورکړل شوی عوض

دهغه ترحصه چې په ميراث كې يې كيږي اوكه په تركه كې قرض وو پرخلكو باندي بيا ورثه ؤيوله دوئ څخه ويوست ددي لپاره چې دين دوئ ته ورپاتی شي نوباطل دی اوكه دوئ شرط كړداچې دی به بري كوي قرضداران له خپلې حصې څخه نوبيا صحيح دی اوكه پرمړه باندي دين محيط وونو باطليږي صلح اوتقسيم.

**تشريح** :(۷)كه يوڅوك وفات شواوهغه په تركه كې سامان ياځمكه پريښوده اوورثه له يوه وارث سره داسي صلح وكړي چې هغه ته يوڅه مال وركړي له ميراث نه يې خارج كړي نوداصلح صحيح ده كه هغه مال كم وي چې وارثانوده ته وركړی دی اوكه زيات وي ځكه داصلح چې بيع وګڼله شي صحيح كيدل يې ممكن دی ګواكي دغه يووارث خپله حصه دميراث پرنوروورثه ؤباندي دمصالح عليه په عوض خرڅوي،البته ددي به خيال ساتي چې مصالح عليه اوحصه دميراث مختلف الجنس وي چې بيا ربوا لازمه نه شي،لكه چې تركه سامان ياځمكه وي اومصالح عليه مال وي ياتركه سره زروواوورثه ده ته سپين زرور كړي يابرعكس يعني تركه سپين زروو .ورثه دغه وارث ته سره زرور كړي نوداټول صورتونه جائزدي،كه عوض لږ ووكه ډير،ځكه دابيع دجنس په خلاف الجنس ده په دي كې مساوات ضروري نه دی مګرڅرنګه چې بعض صورتونه ددي بيع صرف دی نوپه هغو كې تقابض في المجلس شرط دی .

(۸)قوله لامالم يكن المعطى اكثرمن حظه منه اى لايصح الصلح مالم يكن المعطى اكثرمن حظه منه،يعني كه تركه سره زر،ياسپين زراواسباب اوځمكه وه اوورثه دغه وارث ته يواځې سره زرياسپين زرور كړي نوداصلح نه ده جائزه،ترڅوچې هغه سره زرياسپين زرچې دغه وارث ته وركړل شوي دي ترهغه مقدارزيات نه وي كوم چې هغه ته دهغه جنس دحصی څخه وررسيږي ددي لپاره چې دهغه حصه دهغه سره برابره شي اوزائدمقدارده دهغه حق په مقابل كې شي چې ده ته له باقی ميراث څخه ورسيږي اوداځكه ضروري دی چې دهغوئ داصلح ورباته مفضي نه شي .

(۹)كه دميت په تركه كې پرخلكوباندي څه پورونه وواوورثه له يووارث سره په دي شرط باندي صلح وكړي چې دادين به دتركه په شان دنوروو ارثانولپاره وي نوداصلح په دين اوعين دواړو كې جائزه نه ده ځكه هغه باقی ورثه دخپلې حصې دين مالكان وګرځول حال داچې له مديون نه سوا كوم بل څوك ددين مالك ګرځول باطل دی اوپه كوم حصه ددين كې چې صلح باطله شي نوپه كل كې باطليږي ځكه دايو عقد دی .

(۱۰)البته ددي دصحيح كيدوحيله داده چې داشرط كړي چې صلح كوونكی قرضداران له خپلې حصې څخه بري كړي اودخپلې حصې لپاره قرضدارانوته رجوع نه كوي نوبياداصلح جائزه ده ځكه دااسقاط دحق دی يعني خپل حق له قرضدارانونه ساقطول دی اويامديون ددين مالك ګرځول دی چې هغه جائزدی .

(۱۱)كه دميت پرذمه دومره قرض ووچې دهغه پرټول له تركه باندي محيط وي نوپه دي صورت كې له يوه وارث سره دهغه له حصې نه صلح كول اوتركه تقسيمول دواړه فضول اونامناسب كاردی ځكه په دي صورت كې ورثه دهغه دتركه مالكان نه ګرځي نودورثه ؤله يوه وارث سره دهغه له حصې څخه صلح كول ياتركه تقسيمول باطليږي .

## كتاب المضاربة

## دا كتاب د مضاربة په بيان كې دى

مضاربت.له ضرب في الارض ،څخه مشتق دى په معنى د سفر كولو او مضاربت ته ځكه مضاربت وايي چې په دي كې هم مضارِب د ګټې د طلب لپاره په ځمكه كې سفر كوي،شرعًا هغه عقد د شركت في الربح دى چې له يو جانبه مال وي او له بله جانبه عمل وي،د غه مال ته رأس المال او صاحب مال ته ربّ المال او كاركوونكي ته مضارب وايي.

له ماقبل سره يې مناسبت دا دى چې مضاربت د مصالحت په شان دى په دي اعتبار چې له مضاربت او مصالحت څخه هر يو يوا ځي ديوه جانب څخه د وجود بدل مقتضي دي.

• د مضاربت لپاره څو شرطونه دي :**نمبر ١**-رأس المال به له اثمانو څخه وي .**نمبر ٢**-رأس المال به عين وي دين به نه وي . **نمبر ٣**-رأس المال به مضارب ته حوال وي چې په هغه كې تصرف ممكن وي .**نمبر ٤**-منافع به د دواړو ترمنځ مشاعًا وي ديوه لپاره به متعين مقدار نه وي كه نه بيا دا عقد فاسديږي.
**نمبر ٥**-د عقد په وخت به د هريوه حصه معلومه وي.
**نمبر ٦**-د مضارب حصه به خالص په منافع كې وي په رأس المال كې به نه وي كه نه بيا فاسديږي.

(١)هِيَ شَرِكَةٌ بِمَالٍ مِنْ جَانِبٍ وَعَمَلٍ مِنْ جَانِبٍ (٢)وَالْمُضَارِبُ أَمِينٌ وَبِالتَّصَرُّفِ وَكِيلٌ وَبِالرِّبْحِ شَرِيكٌ وَبِالْفَسَادِ أَجِيرٌ وَبِالْخِلَافِ غَاصِبٌ (٣)وَبِاشْتِرَاطِ كُلِّ الرِّبْحِ لَهُ مُسْتَقْرِضٌ وَبِاشْتِرَاطِهِ لِرَبِّ الْمَالِ مُسْتَبْضِعٌ (٤)وَإِنَّمَا تَصِحُّ بِهِ الشَّرِكَةُ (٥)وَيَكُونُ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا مُشَاعًا (٦)فَإِنْ شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا زِيَادَةَ عَشْرٍ فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ وَلَا يُجَاوِزُ عَنِ الْمَشْرُوطِ.

**ترجمه** :مضاربت شركت دى له يوه جانبه په مال سره او بل جانب په عمل سره او مضارب امين دى او له تصرف وروسته وكيل دى او له نفع وروسته شريک دى او د مضاربت په فساد سره اجير دى او په مخالفت كولو سره غاصب دى او په شرطولو سره دكل منافع دخپل ځان لپاره قرض اخيستونكى دى او په شرطولو سره دكل منافع د ربّ المال لپاره مستبضع دى او صحيح دى مضاربت په هغه كې چې شركت پكې صحيح دى او نفع د دوئ ترمنځ مشاعًا كيږي بيا كه يې شرط كړ ديوه لپاره لس زيات نو د مضارب لپاره اجرت مثل كيږي او تر مشروط زيات نه كيږي.

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله د مضاربت اصطلاحي تعريف داسي كړى دى چې مضاربت هغه عقد ته ويل كيږي چې پكې له يوه جانبه (يعني د ربّ المال ) له جانبه مال وي او له بل (يعني مضارب )جانب څخه عمل او مزدوري وي او په ګټه دواړه سره شريكان وي.

(٢)مضارب چې كوم مال اخلي دى په هغه كې تر تصرف كولو مخكې امين وي ځكه د مالک په اجازه سره پر مال باندي قابض دى په داسي حال كې چې پر دغه مال باندي دده قبضه دعوض يا رهن په شان هم نه ده او داسي قابض امين وي،نو كه دا مال چيرته هلاک شي نو پر مضارب باندي تاوان نه راځي ځكه پر امين باندي تاوان نه وي،او چې كله مضارب په دغه مال كې تصرف شروع كړي نو دى ددي مال په باره كې وكيل ګرځي ولى دى په هغه كې د مالک لپاره په حكم سره تصرف كوي او داسي متصرف وكيل وي ،او چې كله

مضارب په دې مال کې ګټه ترلاسه کړي نو دی له ربّ المال سره شریک ګرځي ځکه دی دخپل عمل په وجه دمال دیوه جزء مالک شو او که مضاربت په یوه وجه سره فاسد شي نو بیا دا معامله په اجاره بدلیږي آن چې مضارب یعني کارکوونکی دخپل کار داجرت مثل مستحق کیږي لکه په اجاره فاسده کې چې کارکوونکی د جرت مثل مستحق کیږي او که مضارب دربّ المال دحکم مخالفت وکړنو دمال غاصب شمارل کیږي ځکه دهغه له طرفه دغیر (یعني ربّ المال) پرمال باندې تعدی راغله او دغیرپرمال باندې تعدّی کوونکی غاصب شمارل کیږي نو په دغه صورت کې مضارب ددې مال ضامن ګرځي ځکه غاصب خوضامن وي.

(۳) او که کل نفع دمضارب لپاره شرط وي نو دی مستقرض کیږي ګواکې ده له ربّ المال څخه دقرض په توګه مال اخیستی دی ولې مضارب خودکل نفع مالک نه شي کیدای مګر داکه دمال مالک شي ځکه نفع دمال فرع ده نو چې کله کل نفع دمضارب لپاره شرط کړای شي نو دی دکل مال هم مالک ګرځي او دکل مال دمالک کیدوصورت همدا دی چې هغه قرض اخیستونکی وګڼل شي او که کل نفع دربّ المال لپاره شرط وه نو مضارب مستبضع (مستبضع هغه چاته وایي چې دبل په مال سره تجارت وکړي او ټوله ګټه دمال مالک ته ورکړي) ګرځي یعني دغه عقد اوس عقدمضاربت نه دی پاتی بلکې عقدبضاعت شو او مضارب دربّ المال په حق کې محسن (احسان کوونکی) شمارل کیږي.

(۴) مضاربت نه دی صحیح مګر په هغه مال کې چې پکې شرکت صحیح وي یعني دشیخینو رحمهما الله په نزد خالص په دراهمو او دنانیرو کې او دامام محمد رحمه الله په نزد په فلوس نافقه ؤکې هم صحیح دی چې مکمل بیان یې په باب الشرکة کې تیر شوی دی، نو په سامان، مکیلي او موزوني شیانو کې مضاربت صحیح نه دی ځکه چې نبي کریم ﷺ: له ربح مالم یضمن (یعني دداسې شي ګټه چې دی یې ضامن نه وي) څخه منع فرمایلې ده. چې په دې شیانو کې مضاربت وربح مالم یضمن ته مفضي ده هغه په دې ډول چې سامان دمضارب په لاس کې امانت دي دهلاکت په صورت کې مضارب دسامان ضامن نه دی نو له دغه سامان نه چې کومه ګټه دي حاصلوي هغه ربح مالم یضمن کیږي، خلاف له نقدینو چې که مضارب په هغو باندې یوشی واخلي دده پرذمه ثمن واجبیږي ځکه نقدین په متعین کولو سره نه متعین کیږي نو له دغو ثمنو نه چې کومه ګټه ده ته په لاس ورځي ربح دماضمن (یعني دداسې شي ګټه چې دی یې ضامن دی) ده نه چې ربح دمالم یضمن.

(۵) او دمضاربت دصحت لپاره شرط دادی چې منافع ددواړو ترمنځ شائع وي په دې ډول چې دیوه لپاره له منافعو څخه متعین دراهم شرط نه کړي که مضارب یاربّ المال دخپل ځان لپاره متعین مقدار مثلاً لس درهم زیات شرط کړل نو عقد فاسدیږي ځکه په دې سره دمتعاقدینو شرکت منقطع کیږي ځکه ممکن چې نفع یوازې هم هغه متعین دراهم شي چې یو یې مستحق بلل شوی دی او په دغه مقدار کې هغه بل عاقد ورسره شریک نه شي کما مرفی باب الشرکة.

(۶) او که دیوه لپاره متعین دراهم شرط کړي نو دغه عقد مضاربت فاسدیږي او اوس مضارب ته اجرت مثل یعني دهغه دمزدوري اجرت ورکول کیږي ځکه هغه عقد مضاربت وکړ خپلې منافع او دمزدورۍ عوض یې غوښت چې دفساد عقد په وجه یې ونه موندنو اوس هغه ته مزدوري ورکوله کیږي او پوره نفع دربّ المال

کيږي ولی دادهغه دملکيت ثمره ده،مګرکوم مقدارچې مشروط وودامام ابويوسف رحمه الله په نزدترهغه مقدارزيات اجرت مثل نه ورکول کيږي ځکه داجاره فاسده همداحکم دی چې دهغه اجرت ترمقدارمشروط زيات نه وي،اودامام محمد رحمه الله په نزدپوره مزدوري(اجرت مثل) ورکول کيږي که څه هم ترمقدارمشروط زيات وي.

(٧) وَكُلُّ شَرْطٍ يُوجِبُ جَهَالَةَ الرِّبْحِ يُفْسِدُهُ (٨) وَإِلَّا لَا وَيَبْطُلُ الشَّرْطُ كَشَرْطِ الْوَضِيعَةِ عَلَى الْمُضَارِبِ (٩) وَيَدْفَعُ الْمَالَ إلَى الْمُضَارِبِ (١٠) وَيَبِيعُ بِنَقْدٍ وَنَسِيئَةٍ وَيَشْتَرِي وَيُوَكِّلُ وَيُسَافِرُ وَيُبْضِعُ وَيُودِعُ (١١) وَلَا يُزَوِّجُ عَبْدًا وَلَا أَمَةً (١٢) وَلَا يُضَارِبُ إلَّا بِالْإِذْنِ أَوْ اعْمَلْ بِرَأْيِك (١٣) وَلَمْ يَتَعَدَّ عَمَّا عَيَّنَهُ مِنْ بَلَدٍ وَسِلْعَةٍ وَوَقْتٍ وَمُعَامِلٍ كَمَا فِي الشَّرِكَةِ.

**ترجمه**: اوهرهغه شرط چې جهالت پيداکوي په نفع کې هغه مضاربت فاسدوي که نه پيايي نه فاسدوي اوباطليږي شرط لکه نقصان شرطول پرمضارب باندي اوورکوي به مال و مضارب ته دی به بيع کوي په نقدوسره ياپه پورسره اواخلي به اووکيل به مقرروي اوسفربه کوي اوپه بضاعت به يې ورکوي اوامانت به يې ورکوي اونکاح به نه ورکوي مريي ته اونه دمنځې اوپه مضاربت به يې نه ورکوي مګرپه اجازه سره ياپه دي وينا سره چې دخپلې رايه مطابق عمل وکړه اوتجاوزبه نه کوي ترهغه چې ربّ المال متعين کړی وي ښار،سامان،وخت اومعامله لکه په شرکت کې.

**تشريح**:(٧)کوم شرط چې دنفع دجهالت سبب ګرځي هغه شرط عقدمضاربت فاسدوي مثلاربّ المال داشرط کړي چې زه دمضاربت مال مضارِب ته په دي شرط ورکوم چې هغه به يوکال خپل سرای ماته داوسيدولپاره راکوي مضارب داشرط قبول کړنوداشرط دجهالت نفع سبب دی ځکه هغه نيمه ګټه دسرای کرايه وګڼلا اوڅه ګټه يې دمضارب دعمل عوض،مګردامعلومه نه ده چې دمضارب دعمل عوض څومره دی اودسرای کرايه څومره ده نوځرنګه چې داشرط دنفع جهالت سبب دی ځکه نودامضاربت فاسددی.

(٨)قوله والالای وان لم يوجب الشرط جهالة الربح لايفسدالعقد،يعنې که يې چيرته داسي شرط ولګاوه چې دجهالت نفع سبب نه وولکه پرمضارب باندي شرطول دنقصان چې که نقصان راغی هغه به دمضارِب پرذمه وي نوپه داسي شرط سره عقدمضاربت نه فاسديږي ولی په دي شرط سره دمضارب دعمل حصه نه مجهوله کيږي البته خپله داشرط باطليږي.

(٩)قوله ويدفع المال الی المضارب ای ومن شرط صحة المضاربة ان يدفع المال الی المضارب،يعنې دمضاربت دصحت لپاره شرط دادی چې ربّ المال به مال مضاربت ومضارب ته سپاري چې هغه ته ګټه حاصلول ممکن وي ځکه بغيرددي چې رأس المال ومضارب ته وسپارل شي دمضارب لپاره له هغه څخه نفع حاصلول ممکن نه دی،همدارنګه مضاربت داجاره په معنی سره ده اورأس المال محل دی نومضارب ته يې حواله کول ضروري دی.

(١٠)که مضاربت مطلق وويعنې ديووخت،يامکان ياسامان په يوه خاصه نوعه کې په تصرف کولوسره مقيدنه وونومضارب لره په نقداوپه پورخريداوفروخت کول اوپه هغوکې دتصرف کولولپاره څوک وکيل ګرځول اومال مضاربت له خپل ځان سره په سفروړل اومال مضاربت چاته په بضاعت (بضاعت

دادی چې چاته مال ورکړي چې هغه یې خرچ کړي اوددي مال ټول منافع او کل ثمن صاحب مال ته واپس کړي) ورکول او هغه چاته په امانت ښودل وغیره ټول جائزدي ځکه عقد مطلق دی او مقصود حصول دنفع دی چې بغیردتجارت نه حاصلیږي نوداعقددتجارت ټولواقسامواودتجارانو ټولوعاداتولره شاملیږي اومذکورټول اعمال دتجارانوله عاداتوڅخه دي .

(۱۱)البته مضارب ته دااختیارنشته چې دمضاربت په مال سره دیوه مریې له چاسره نکاح وکړي اوند دااختیارلري چې دمضاربت منځه چاته په نکاح ورکړي ځکه دا تجارت نه دی او عقد مضاربت یوازې توکیل بالتجارة لره متضمن دی .

(۱۲)قوله ولایضارب ای ولایعطی المال مضاربة،یعنې مضارب مال مضاربت بل چاته په مضاربت ورکول جائزنه دی ځکه ددي ډول مال مضاربت نفع یودریم چایعنې مضارب ثانی ته رسیږي حال داچې رب المال په دي باندي راضي نه دی ،همدارنګه شی دخپل مثل سره په قوت کې برابروي نویوبل ته متضمن نه شي کیدای نویو مضاربت بل ته نه متضمن کیږي البته که رب المال مضارب ته ددي صریح اجازه ورکړي یارب المال مضارب ته ووایي چې ته دخپلې رایه مطابق دعمل کولو اختیارلرې که غواړې کوه یې،ځکه داهم درب المال له جانبه ددي خبرې اجازه ده چې ته رأس المال بل ته په مضاربت ورکولای شې.

(۱۳)که رب المال داشرط کړچې په فلان ښاریافلان معین سامان کې به تجارت کوې نو مضارب لره دشرط په پرېښودلوسره تجارت کول ناجائزدی ولی مضاربت توکیل دی اووکالت په یوه شي پورې مخصوصول مفیددی نویه مخصوص کیدوسره په هغه کې تخصیص راځي همدارنګه که رب المال دمضاربت لپاره معلوم وخت مقررکړنو دهغه په تیریدوسره عقد باطلیږي ځکه مضاربت توکیل دی چې په کوم وخت سره موقت کړی شي ترهغه وخته پوري دی،یارب المال یوڅوک متعین کړچې له هغه سره به تجارتي معامله کوې نو مضارب به له هغه څخه تجاوزنه کوي ځکه تجارت داشخاصوپه مختلف کیدوسره مختلف کیږي اومالک په معاملاتوکې پرمعلوم چاباندي اعتمادکړی دی نودهغه خلاف کول ناجائزدی،لکه یوشریک چې دبل شریک په دي ډول وینا سره په داسي امورو کې تجاوزنه شي کولای .

> (۱۴)ولم یشتر من یعتق علی المالک (۱۵)او علیه ان ظهر ربح و ضمن ان فعل (۱۶)فان لم یظهر ربح صح (۱۷)فان ظهر عتق حظه و لم یضمن لرب المال و سعی المعتق فی قیمة نصیب رب المال.

**ترجمه** :اونه به اخلي هغه چې آزادیږي پرمالک باندي،یاپرمضارب باندي که ظاهره وه نفع او ضامن ګرځي که یې داسې وکړل او که یې نفع ظاهره نه وه نوبیا صحیح دی بیاکه یې نفع ظاهره وه نوآزادیږي دهغه حصه اونه ضامن کیږي ورب المال ته او ګټي به معتق درب المال دحصې قیمت .

**تشریح** :(۱۴)مضارب لره دااختیارنشته چې دی درب المال پلار،زوی یاداسي څوک چې پرمالک (رب المال) باندي آزادیږي، واخلي ځکه مضاربت دتحصیل منافع لپاره وضع شوي دی چې په خریداوفروخت سره ممکن دی اومذکوره افرادد مالک (رب المال) په ملک کې دراتلو وروسته نه شي

خرڅيدلای ځکه قاعده داده چې خپل ذورحم محرم په اخيستلوسره پخپله آزاديږي ،که يې بياهم هغه واخيستل نودخپل ځان لپاره يې اخيستی دی دمضاربت لپاره نه دي ځکه دکوم خريدنفاذچې پرمشتري باندي ممکن وي هغه پرمشتري باندي نافذيږي .

(۱۵)قوله اوعليه وان ظهرربح ای لم يشترمن يعتق علی المضارب ان ظهرفی المال ربح ،يعني که په مال مضاربت کې په خريداوفروخت سره نفع ظاهره وه نومضارب لره نه ده جائزه چې هغه داسي څوک واخلي چې پرده باندي آزاديږي ځکه په دي صورت کې په منافعوکې دحصه په مقدارد مضارب حصه آزاديږي چې دهغې څخه درب المال حصه هم فاسديږي ځکه دمريې په څه حصه آزاديدوسره کل آزاديږي نودرب المال حصه هم آزاديږي،اوکه بياهم مضارب داسي څوک واخيست چې پررب المال يامضارب باندي آزاديږي نودمال مضاربت ضامن ګرځي ځکه ده ګواکي دخپل ځان لپاره اخيستی دی دمضاربت لپاره يې نه دی اخيستی نوله مال مضاربت څخه دثمن په ورکولو دمال مضاربت ضامن ګرځي .

(۱۶)اوکه په مال مضاربت کې تراوسه پوري نفع نه وه ظاهره شوې نوبيادمضارب لپاره دداسي مريې اخيستل جائزدی (چې دمضارب ذورحم محرم وي)ځکه په مال کې مضارب شريک نه دی نوپه دغه مال سره په اخيستلوباندي دامريې پرمضارب با . ی نه آزاديږی اودمضارب لپاره يې بياخرڅول جائزدی .

(۱۷)بياکه تراخيستلووروسته دمريې قيمت زيات شونوپه دي زيادت کې دمضارب هم حصه پيداکيږي نودهغه دحصه په اندازه آزاديږي ځکه :اذاملک الرجل ذارحم محرم عتق عليه (يعني څوک چې دخپل ذی رحم محرم مالک شي هغه پرده باندي آزاديږي)ليکن مضارب دربّ المال لپاره دهيڅ شي ضامن نه ګرځي ولی په قيمت لوړيدوکې دمضارب هيڅ صنع اواختيارنشته البته مريی بايدچې درب المال دحصې په قيمت کې کوشش وکړي ويې ګټي اورب المال ته يې ورکړي ځکه درب المال ماليت له دي مريې سره ودريد .

(۱۸)معه ألف بالنصف فاشتری به امة قيمتها ألف فولدت ولدا يساوی الفا فادعاه موسرا فبلغت قيمته ألفا وخمس مائة سعی لرب المال في ألف وربعه او اعتقه (۱۹)فان قبض الألف ضمن المدعي نصف قيمتها.

**ترجمه** :له مضارب بالنصف سره زرروپۍ دي بيايې په هغوباندي يوه منځه واخيسته چې دهغې قيمت زرروپۍ دي بيادهغې داسي ماشوم پيداشوچې دزرورروپوسره برابردی بيامضارب دهغه دعوی وکړه دغنی په حالت کې بيادماشوم قيمت ويونيم زرته ورسيدنوماشوم به دربّ المال لپاره ديوزرياربع ګټلولپاره کوشش کوي يابه ربّ المال دی آزادوي ،بياکه رب المال زرروپۍ قبض کړي نومدعي (مضارب) دنصف قيمت ضامن ګرځي .

**تشريح** :(۱۸)له مضارب سره پرنصف منفعت زرروپۍ دي هغه په دي روپوباندي يوه داسي منځه واخيسته چې قيمت يې زرروپۍ دي اوله هغې سره وطی وکړه چې له هغې څخه ديوزرقيمت لرونکی ماشوم پيداشواومضارب دهغه دنسب دعوی وکړه په داسي حال کې چې مالک غني هم دی بيادماشوم قيمت يونيم زرشونودمضارب دعوی صحيح ده ځکه دنفع دظاهريدوپه وجه دمضارب ملکيت راغی دغه ماشوم دده زوی

شوا و هغه دحصې په مقدار آزادېږي، او مضارب درب المال دحصې ضامن نه ګرځي ځکه دغه آزادي دملکيت او نسب په وجه ثابته شوې ده چې پکې دمضارب فعل لره هيڅ دخل نشته البته رب المال اختيارلري که غواړي چې داماشوم دده لپاره يوزردوه نيم سوه درهم وګټي (يعني زررويې رأس المال اودوه نيم سوه نفع) او که غواړي نو هغه دي آزاد کړي.

(۱۹) بيا که رب المال له مرېي څخه يوزررويې وصول کړي نو هغه لره دا حق شته چې له مضارب (چې دمرېي دنسب مدعي دی) څخه دمرېي دمور يعني منځې نصف قيمت واپس واخلي وجه يې داده چې هغه خپل رأس المال چې زردرهم وو پوره وصول کړل نو اوس دا ظاهره شوه چې ټوله منځه په نفع کې پاتې ده نو هغه هم دشرط موافق ددواړو ترمنځ نصفانصف کيږي.

## باب المضارب يضارب

### داباب په دي بيان کې دی چې مضارب مضاربت کوي

دمضارب اول داحکامو له بيانولو وروسته مصنف رحمه الله دمضارب ثاني احکام بيانوي ځکه ثاني تراول وروسته وي ځکه يې دهغه احکام هم وروسته ذکر کړي دي.

(۱) فَإِنْ ضَارَبَ الْمُضَارِبُ بِلَا إِذْنٍ لَمْ يَضْمَنْ مَا لَمْ يَعْمَلِ الثَّانِي (۲) فَإِنْ دَفَعَ بِإِذْنٍ بِالثُّلُثِ وَقِيلَ لَهُ مَا رَزَقَ اللَّهُ فَبَيْنَنَا نِصْفَانِ فَلِلْمَالِكِ النِّصْفُ وَلِلْأَوَّلِ السُّدُسُ وَلِلثَّانِي الثُّلُثُ (۳) وَلَوْ قِيلَ لَهُ مَا رَزَقَكَ اللَّهُ فَبَيْنَنَا نِصْفَانِ فَلِلثَّانِي ثُلُثُهُ وَالْبَاقِي بَيْنَ الْمَالِكِ وَالْأَوَّلِ نِصْفَانِ (۴) وَلَوْ قِيلَ لَهُ مَا رَبِحَ فَبَيْنَنَا نِصْفَانِ وَدَفَعَ بِالنِّصْفِ فَلِلثَّانِي النِّصْفُ وَاسْتَوَيَا فِيمَا بَقِيَ.

**ترجمه**: که مضارب کوم څوک مضارب وګرځاوه بغير اجازت نو ضامن نه ګرځي ترڅو چې عمل ونکړي هغه بل، بيا که يې ورکړه په اجازه سره په دريمه نفع او ورته وويل شول چې کوم رزق چې الله تعالی درکړي هغه به زما او ستا ترمنځ نصف نصف وي نو دمالک لپاره نصف کيږي او دمضارب اول لپاره سدس او دثاني لپاره دريمه کيږي، او که ورته وويل شوه چې کوم رزق چې الله تعالی درکړي هغه زموږ دواړو ترمنځ نصف نصف دی نو دمضارب ثاني لپاره دريمه دګټې کيږي او باقي دمالک او مضارب اول ترمنځ نصف نصف کيږي، او که يې ورته وويل چې په دي سره چې تاڅه وګټل هغه زموږ داو ترمنځ نصف نصف کيږي او ورېې کړه په نصف سره نو دمضارب ثاني لپاره نصف دی او په باقي کې دواړه برابر دي.

**تشريح**: (۱) که مضارب درب المال له اجازې بغير مال کوم بل چاته په مضاربت ورکړنو مضارب اول خالص په مال ورکولو سره ضامن نه ګرځي ترڅو چې مضارب ثاني عمل دتجارت شروع نکړي که مضارب ثاني ته نفع حاصله شي يانه ځکه دمضارب ثاني دعمل شروع کول مضاربت دی چې دهغه مضارب اول اجازه نه لري نو دی په عمل سره ضامن کيږي قبل العمل مضاربت نشته نو ضامن کيږي هم نه ظاهر الرواية همدا دی او همدا دصاحبينو رحمهما الله قول دی وبه يفتی، او له امام صاحب رحمه الله څخه دحسن رحمه الله روايت دی چې مضارب ثاني په مذکور مال کې په خالص تصرف کولو سره هم نه ضامن کيږي ترڅو چې هغه ته نفع حاصله شوې نه وي ځکه چې ترڅو نفع نه وي نو مضارب ثاني دوکيل په منزله دی او مضارب اول ته جائز دی چې

ځوک وکیل مقرر کړي او چې کله مضارب ثانی ته نفع حاصله شي نو مضارب اول د مالک لپاره په کل مال سره ضامن ګرځي ځکه اوس مضارب اول له رب المال سره په ګټه کې غیر (یعني مضارب ثانی) شریک کړ.

**فائده**: ظاهر الروایة مفتی به دی لمافی الدرالمنتقی: المضارب یضارب فان ضارب المضارب بلااذن فلاضمان مالم یعمل فی ظاهر الروایة وهو قولهما رحمهما الله وبه یفتی. (الدر المنتقی: ۳/ ۴۵۳) وقال العلامة الرافعی رحمه الله: وعلیه الفتوی کمانقله عبدالحلیم عن المنصوریة معزیا للقاضی خان (تقریرات الرافعی: ۳/ ۲۴۲)

(۲) که رب المال مضارب ته د مال ورکولو په وخت وویل: څو مره ګټه چې الله تعالی درکړي هغه زمونږ ترمنځ نصف نصف ده او بل چاته په مضاربت ورکولو اجازه یې هم ورکړه بیا مضارب بل چاته په مضاربت بالثلث ورکړنو دا جائز دی ځکه دوهم عقد د رب المال په اجازه سره شوی دی، او رب المال ته د کل نفع نصف ورکول کیږی ځکه د عقد په وخت دا خبره طې شوې وه او مضارب ثانی ته ثلث ورکول کیږي ځکه د هغه لپاره هم دا ثلث شرط شوی وو او مضارب اول ته باقی مانده سدس ورکول کیږي ځکه د هغه لپاره هم دا پاتېږي مثلاً د شپږ و درهمو نفع څخه درې رب المال ته ورکول کیږي دوه مضارب ثانی ته یو مضارب اول ته.

(۳) که په مذکور صورت کې رب المال د خطاب په صیغه سره وویل: کومه ګټه چې الله تعالی تاته درکړي هغه زمونږ ترمنځ نصف نصف ده نو مضارب ثانی ته ثلث ورکول کیږي او باقی دوه ثلثان د رب المال او مضارب اول ترمنځ نصف نصف کیږي ځکه رب المال د خپل ځان لپاره د هغه مقدار نصف مقرر کړی دی کوم چې مضارب اول ته حاصل شوی دی او مضارب اول ته دوه ثلثه حاصل شوي دي ځکه یو ثلث د مضارب ثانی لپاره شرط کړای شوی وو.

(۴) او که رب المال و مضارب اول ته داسي وویل چې څه ګټه چې الله تعالی تاته درکړي هغه زما او ستا ترمنځ نصف نصف کیږي، بیا مضارب اول بل مضارب ته د نصف نفع په شرط سره مال ورکړنو اوس دوهم مضارب ته نصف نفع ورکوله کیږي ځکه د اول مضارب او ثانی مضارب ترمنځ هم دا خبره طې شوې وه او د رب المال له طرفه مضارب اول ته دا اختیارهم حاصل وو چې بل چاته په مضاربت مال ورکولای شي. نو دوهم مضارب د نصف مستحق ګرځي او په باقی نصف کې مضارب اول او رب المال برابر شریکان کیږي ځکه رب المال د خپل ځان لپاره خالص د هغه مال نصف شمارلی وو چې مضارب اول یې وګټي او حال دا چې مضارب اول یواځې نصف ګټلی دی ولی دوهم نصف خو مضارب ثانی یو وړ. نو د غه نصف د دوئ دواړو ترمنځ برابر تقسیمیږي.

(۵) ولو قیل له مارزق الله فلی نصفه او ماکان من فضل فبیننا نصفان فدفع بالنصف فللمالک النصف وللثانی النصف ولاشیء للاول (۶) ولو شرط للثانی ثلثیه ضمن الاول للثانی سدسا (۷) وان شرط للمالک ثلثه ولعبده ثلثه علی ان یعمل معه ولنفسه ثلثه صح.

**ترجمه**: او که ورته وویل شوه مضارب اول ته چې کوم رزق الله تعالی تاته درکړي نو زما لپاره د هغه نصف دی یا که کومه ګټه وه هغه زما او ستا ترمنځ نصف ده او په نصف سره یې ورکړنو د مالک لپاره نصف کیږي او د مضارب ثانی لپاره نصف کیږي او د مضارب اول لپاره هیڅ نشته او که یې شرط کړل د ثانی لپاره دوه ثلثه

نوضامن گرځي اول دثاني لپاره په سدس سره، او که يې شرط کړ درب المال لپاره ثلث او دهغه دمريي لپاره ثلث په دې شرط چې هغه به هم کارکوي له ده سره او دخپل ځان لپاره ثلث نو صحيح دی .

**تشریح** :(۵)که رب المال وویل :څه چې الله تعالی درکوي دهغه نصف زمادی یايې ورته وویل کومه ګټه چې وي هغه به زموږ ترمنځ نصف نصف وي بيا مضارب بل چاته په مضاربت بالنصف سره مال ورکړنو نصف نفع دمضارب ثاني کيږي او نصف درب المال کيږي او مضارب اول ته هيڅ نه ورکول کيږي ځکه رب المال چې نصف ربح دخپل ځان لپاره شرط کړه له هغه څخه مراد دکل ربح نصف دی او څرنګه چې مضارب اول دمضارب ثاني لپاره نصف ربح شرط کړي ده ځکه نو مضارب اول ته هيڅ شی نه وررپاتيږي نو ده لره هيڅ نشته .

(۶)که په مذکورصورت کې دمضارب ثاني لپاره دوه ثلثه طی کړي نو نصف نفع درب المال کيږي او نيمه ګټه دمضارب ثاني کيږي او مضارب اول به مضارب ثاني ته شپږمه حصه له خپله ماله ورکوي ځکه اول مضارب دثاني لپاره داسي شی شرط کړی دی چې رب المال يې مستحق دی نو درب المال په حق کې دهغه شرط نه نافذ کيږي ځکه په دې کې درب المال دحق ابطال راځي، ليکن دثاني لپاره مذکور مقدار مقررول في نفسه صحيح دی نو دهغه پوره کول پر مضارب اول باندې لازم دی .

(۷)که مضارب درب المال لپاره ثلث نفع طی کړ او درب المال دمريي لپاره يې ثلث دنفع په دې شرط طی کړ چې هغه به له ده سره کارکوي او يو ثلث يې دخپل ځان لپاره مقرر کړنو دا جائزدی که مريی ماذون وي او که غيرماذون وي ځکه دمريي لپاره ثلث دربح شرط کول په حقيقت کې دهغه دمولی يعنې رب المال لپاره شرط دی نو ګواکې درب المال لپاره يې دوه ثلثه طی کړي دي ځکه نو دا جائزدی او دمريي کارکول شرطول مفسدنه دی ځکه هغه ددې اهل دی چې دخپل مولی په مال کې په مضاربت سره کاروکړي .

(۸)وَتَبْطُلُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا أَوْ بِلُحُوقِ الْمَالِكِ مُرْتَدًّا(۹)وَيَنْعَزِلُ بِعَزْلِهِ إِنْ عَلِمَ(۱۰)وَإِنْ عَلِمَ وَالْمَالُ عُرُوضٌ بَاعَهَا ثُمَّ لَا يَتَصَرَّفُ فِي ثَمَنِهَا (۱۱)وَلَوِ افْتَرَقَا وَفِي الْمَالِ دُيُونٌ وَرَبِحَ أُجْبِرَ عَلَى اقْتِضَاءِ الدُّيُونِ(۱۲)وَإِلَّا لَا يَلْزَمُهُ الِاقْتِضَاءُ وَيُوَكِّلُ الْمَالِكَ عَلَيْهِ(۱۳)وَالسِّمْسَارُ يُجْبَرُ عَلَى التَّقَاضِي.

**ترجمه** : او باطليږي ديوه په مرګ سره يا په دې سره چې مالک مرتدشي و دارحرب ته ولاړشي ،او معزوليږي دهغه په معزوليدو سره که هغه ته معلومه شي،او که ورته معلوم شی حال دا چې مال سامان وي نو هغه دې خرڅ کړي بيا دې دهغو په ثمنو کې تصرف نه کوي او که دواړه سره جدا شول او په مال کې قرضونه دي او نفع ده نو مجبور کړای کيږي دقرضونو په وصولو باندې که نه پر ده لازم نه دی وصولول او وکيل دې وګرځوي مالک پر هغه باندې او دلال مجبور کړای کيږي پر وصولولو باندې .

**تشریح** :(۸)که رب المال یا مضارب مړشونو مضاربت باطليږي ځکه مضاربت توکيل دی چې دموکل يا وکيل په مرګ سره باطليږي همدارنګه که رب المال مرتدشو (نعوذبالله)دارحرب ته ولاړی نو هم مضاربت باطليږي ځکه په دې صورت کې دمالک (رب المال)مِلک زائليږي دورثه وُطرف ته منتقل کيږي نو دا په منزله دمرګ دی .

(۹)اومضارب درب المال په معزولېدوسره معزولېږي په دي شرط چې هغه ته دخپل معزولېدو علم وشي ځکه مضارب درب المال له طرفه وکيل دی او وکيل که قصداً معزولوي نو دامعزولي دهغه پرعلم باندي موقوفه کيږي،نوکه رب المال مضارب معزول کړی وومګرمضارب په دي خبرنه ووچې بيايې يوشی واخيست يايې خرڅ کړنو دي تصرف په حق کې دی معزول نه شمارل کيږي بلکې دهغه داتصرف صحيح دی.

(۱۰)اوکه هغه ته دخپل معزولېدوعلم وومګرله هغه سره مال موجودووچې سامان وويعنې درأس المال له جنس څخه مغائروونوهغه خرڅولای شي اومعزولي يې له هغه مانع نه ګرځي ولی ربح دمضارب حق دی چې بغيردنقدونه ظاهره کيږي نوځکه هغه ته دفروخت حق حاصل دی بيادهغه په قيمت سره کوم بل شی اخيستل ورته جائزنه دی ځکه له معزولېدووروسته دسامان خرڅولواجازت دضرورت په وجه وونوردمزيدفروخت ضرورت نشته.

(۱۱)که رب المال اومضارب دعقدله فسخ کولووروسته سره جداشول اومال مضاربت پرخلکوباندي قرض وواومضارب لره په تجارت کې نفع حاصله شوې وه نومضارب له قرضدارانوڅخه دقرض پروصول کولوباندي مجبورکړای کيږي ځکه مضارب داجيرپه شان دی اونفع دأجرت غوندي ده نوداجيرپه شان مضارب پراتمام عمل باندي مجبورکړای کيږي.

(۱۲)قوله والاالايلزمه الاقتضاء اى وان لم يكن فى المال ربح لايلزمه الاقتضاء،يعنې که مضارب ته نفع حاصله شوې نه وه نوهغه نه مجبورکړای کيږي ځکه په دي صورت کې مضارب وکيل محض اومتبرع دی اوپرمتبرع باندي جبرنه کيږي البته هغه ته ويل کيږي چې مالک ته دقرضونودوصولولولپاره وکيل پيداکړه ځکه دعقدحقوق دعاقدطرف ته راجع کيږي اورب المال عاقدنه دی نوهغه بغيردوکيل جوړولونه دحق وصولي نه شي کولای هغه لره وکيل پيداکول ضروري دی چې دهغه حق ضائع نه شي.

(۱۳)بعضوحضراتوددلال اوسمسارترمنځ دافرق بيان کړی دی چې دلال هغه دی چې په اجرت باندي خريداوفروخت کوي اوسمسارهغه دی چې دبائع اومشتری ترمنځ سفيرمحض وي،اوبعضو دافرق بيان کړی دی چې دلال هغه دی چې مالک ورته دفروخت لپاره اسباب ورکړي وي اوسمسارهغه دی چې مال ورسره نه وي مګردی مشتري لټوي راولي يې،بهرحال سمساردمال پروصولولوباندي مجبورکړای کيږي ځکه سمسارعادةً دخلکولپاره په اجرت باندي خريداوفروخت کوی نودعادت په حکم داپه منزله داجاره صحيحه دی ځکه پرهغه باندي وصولي دثمن واجب ده.

**فائده**:کله وخت انسان ددي فرصت نه شي موندلای چې خپله يوکارترسره کړي ځکه نودی يودلال(ايجنټ) ته اجرت ورکړي هغه کارېري وکړي،ددي اجرت په باره کې دفقهاؤاحناف رحمهم الله عبارات مختلف دي،مګردخلکودضرورت اوحاجت په نظرکې نيولوسره دجوازقول مختاراومفتی به دی،البته دعقدپه وخت تعين داجرت ضروري دی قال فى التاتارخانية:وفى الدلال والسمساريجب اجرالمثل وماتواضعوا عليه ان فى كل عشرة دنانير كذا فذاك حرام عليهم،وفى الحاوى:سئل محمدبن سلمة عن اجرة السمسارفقال ارجوانه لاباس به وان كان فى الاصل فاسدالكثرة التعامل وكثيرمن هذاغيرجائزفجوزوه لحاجة الناس اليه كدخول الحمام.(ردالمحتار:۵/ ۴۳)وقال:اجرة السمساروالمنادى والحمامى والصكاك ومالايقدرفيه الوقت ولاالعمل تجوزلماكان للناس به حاجة.(ردالمحتار:۵/ ۳۲)والله سبحانه وتعالى اعلم.(احسن الفتاوى:۷/ ۲۷۳)

(۱۴) وَمَا هَلَكَ مِنْ مَالِ الْمُضَارَبَةِ فَمِنَ الرِّبْحِ فَإِنْ زَادَ الْهَالِكُ عَلَى الرِّبْحِ لَمْ يَضْمَنِ الْمُضَارِبُ (۱۵) وَإِنْ قَسَمَ الرِّبْحَ وَبَقِيَتِ الْمُضَارَبَةُ ثُمَّ هَلَكَ الْمَالُ أَوْ بَعْضُهُ تَرَادَّا الرِّبْحَ لِيَأْخُذَ الْمَالِكُ رَأْسَ مَالِهِ وَمَا فَضَلَ فَهُوَ بَيْنَهُمَا وَإِنْ نَقَصَ لَمْ يَضْمَنِ الْمُضَارِبُ (۱۶) وَإِنْ قَسَمَ الرِّبْحَ وَفَسَخَا ثُمَّ عَقَدَاهَا فَهَلَكَ الْمَالُ لَمْ يَتَرَادَّا الرِّبْحَ الْأَوَّلَ.

**ترجمه**: او هغه چې هلاک شي له مال د مضاربت څخه هغه له نفع څخه دی، پس که چیرته زیات شي هلاک شوی پر نفع باندي نو مضارب يې ضامن نه ګرځي او تقسیم کړای شوه نفع او باقي پاتې شو مضاربت بیا هلاک شو کل مال یا بعض نو دواړه به ربح رارد کړي د دي لپاره چې واخلي مالک خپل رأس المال او څه چې پاتې شي هغه د دوئ دواړو ترمنځ کیږي او که کم شو نو مضارب نه ضامن کیږي او که تقسیم کړای شوه نفع او فسخ کړی شو مضاربت بیا يې ازسرِ نو عقد مضاربت وکړ او هلاک شو مال نو لومړنی نفع به نه رار دوي.

**تشریح**: (۱۴) هغه څه چې له مال مضاربت څخه هلاک شي هغه له نفع څخه هلاک کیږي نه له رأس المال څخه ځکه نفع تابع ده او رأس المال اصل دی او هلاکت د تابع طرفته راګرځول اولی وي لکه په نصاب زکوة کې چې هلاک د عفو جانب ته راګرځول کیږي او که هلاک شوی مال تر نفع زیات شي نو پر مضارب باندي ضمان نه راځي ځکه مال مضاربت د مضارب په قبضه کې مقبوض علی وجه الامانة دی او پر امین باندي د هلاک کیدو په صورت کې ضمان نه راځي.

(۱۵) که رب المال او مضارب د عقد مضاربت په باقي پاتې کیدو سره نفع تقسیموي بیا ټول مال یا بعض مال هلاک شو نو دواړه به خپل وصوله کړای شوې نفع بیرته راوړي تر دي چې د مالک اصل رقم پوره شي ځکه د رأس المال تر وصول کولو مخکي د نفع تقسیمول صحیح نه دی ولې رأس المال اصل دی او نفع تابع ده نو دواړه دي نفع بیرته راوړي لومړی دي رأس المال پوره کړي بیا چې د رأس المال تر مکمل کیدو وروسته څه پاتې شي نو هغه د دوئ ترمنځ مشترک کیږي ځکه دا نفع ده چې پکې دوئ دواړو د شرکت عقد کړی دی ،او که په رأس المال کې کمی پاتې شو یعنې د ټولو منافعو په جمع کولو سره بیا هم د هغه نقصان پوره نه کړای شو نو مضارب نه ضامن کیږي ځکه مضارب امین دی.

(۱۶) او که دواړو نفع تقسیم کړه مضاربت يې ختم کړ له هغه بعد يې ازسرِ نو عقد مضاربت وکړ نو له عقد ثاني وروسته که کل مال یا بعض مال هلاک شو نو لومړی ځل چې نفع تقسیم شوې ده هغه به بیرته نه راوړي ځکه لومړی مضاربت د مال تر هلاکت مخکي په فسخ کیدو سره تام شوی دی نو د دوهم عقد نقصان د لومړي عقد په منافعو سره نه پوره کیږي.

**فصل**

په دي فصل کې مصنف رحمه الله د مزید فائدی لپاره د افعال مضارب څه داسي احکام ذکر کړي دي چې په تیر شوي فصل کې نه دي ذکر شوي.

(۱) وَلَا تَفْسُدُ الْمُضَارَبَةُ بِدَفْعِ الْمَالِ إِلَى الْمَالِكِ بِضَاعَةً (۲) فَإِنْ سَافَرَ فَطَعَامُهُ وَشَرَابُهُ وَكِسْوَتُهُ وَرُكُوبُهُ فِي مَالِ الْمُضَارَبَةِ وَإِنْ عَمِلَ فِي الْمِصْرِ فَنَفَقَتُهُ فِي مَالِهِ كَالدَّوَاءِ (۳) فَإِنْ رَبِحَ أَخَذَ الْمَالِكُ مَا أَنْفَقَ مِنْ رَأْسِ الْمَالِ (۴) فَإِنْ بَاعَ الْمَتَاعَ مُرَابَحَةً حَسَبَ مَا أَنْفَقَ عَلَى الْمَتَاعِ لَا عَلَى نَفْسِهِ (۵) وَلَوْ قَصَرَ أَوْ حَمَلَهُ بِمَالِهِ وَقِيلَ لَهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ (۶) فَإِنْ صَبَغَهُ أَحْمَرَ فَهُوَ شَرِيكٌ بِمَا زَادَ الصَّبْغُ فِيهِ وَلَا يَضْمَنُ.

**ترجمه**: او نه فاسدیږي مضاربت په مال ورکولو سره مالک ته دبضاعت په ډول. او که سفر وکړي مضارب نو دهغه خوراک څښاک او دهغه جامې او دهغه سواري به له مال مضاربت څخه وي او که کار وکړي په ښار کې نو دهغه نفقه به له خپل مال څخه وي لکه دوا او که یې نفع وکړه نو وابه خلي مالک هغه چې ده مصرف کړي دي له رأس المال څخه او که یې مال خرڅ کړ په کته سره نو حساب به کړي هغه چې ده مصرف کړي دي پر سامان باندې نه پر خپل ځان باندې او که یې کپړه وګنډله یا یې سامان بار کړ په خپل مال سره او ویل شوي وو ده ته چې دخپلې رایه مطابق عمل کوه نو دی احسان کوونکی دی او که یې سور رنګ ورکړ نو دی شریک ګڼل کیږي په هغه کې چې تر رنګید وزیات شي په هغه کې او ضامن نه ګرځي.

**تشریح**: (۱) که مضارب مال دمضاربت اصل مالک یعنې رب المال ته په بضاعت (بضاعت دا دی چې یو چانه مال ورکړي چې هغه یې خرڅ کړي او ددغه مال ټول منافع او کل ثمن صاحب مال ته واپس ورکړي) ورکړ نو دائمه ثلاثه ؤ په نزدددوی تر منځ مضاربت نه ختمیږي. دامام زفر رحمه الله په نزد مضاربت ختمیږي ځکه رب المال دمضاربت په مال کې خپله تصرف وکړ او دی په هغه کې دمضارب وکیل هم نه شي کیدای ګواکي هغه له مضارب څخه خپل مال واپس اخیستی دی نو ځکه مضاربت ختمیږي. زموږ دلیل دا دی چې دمضارب او مال تر منځ مالک یعنې رب المال په پوره ډول تخلیه کړې وه او مضارب ته په هغه کې د تصرف کولو حق ورکول شوی وو نو رب المال په تصرف کې دهغه له طرفه وکیل کیدای شي نو دمضارب ورب المال ته مال مضاربت په بضاعت ورکول صحیح دی.

(۲) که مضارب درب المال په اجازه سره دتجارت لپاره سفر وکړي نو دهغه خوراک. څښاک. جامې سواري او ټول ضروریات به له مال مضاربت څخه پوره کیږي البته فضول خرچي به نه کوي ځکه د انسان نفقه په کار کې دمشغول کیدو په مقابله کې وي لکه قاضي او امام چې دخلکو په خدمت مشغول وي ځکه د هغوی نفقه پر بیت المال باندې وي نو په حالت دسفر کې دمضارب خرچه له مال مضاربت څخه کیږي. او که مضارب پخپل ښار کې اوسي کار کوي نو دهغه ذاتي خرچه خپله دهغه له مال څخه کیږي له مال مضاربت څخه نه کیږي ولې مضارب چې تر څو پخپل ښار کې وي نو دی له خپل اصلي سکونت سره اوسیږي د ده ذاتي خرچه له مال مضاربت څخه نه کیږي. لکه ددوا. مصرف چې که دی پخپل ښار کې اوسي یا په سفر کې له خپل مال څخه به یې کوي ځکه دوا. په دې وجه چې له عوارضو څخه او له موهوماتو نه ده نو ددوا. خرچه نه واجبیږي لکه دښځې ددوا. خرچه چې دزوج پر ذمه نه ده.

(۳) کله چې مضارب په مال مضاربت کې ګټه وکړي نو ده چې له رأس المال نه کومې پیسې دخپل ځان په نفقه کې مصرف کړي دي رب المال به لومړی له نفع څخه هغه ورواخلي چې اصل رقم پوره شي بیا چې څه باقي شو هغه به تقسیم کړي نو به دمضارب خرچه له نفع څخه شي ولې ده چې کوم مصرف کړی دی هغه دهلاک شده مال په شان دی او دهلاک شده مال په باره کې دا خبره مخکې تیره شوه چې هغه به د ربح په طرف راګرخول کیږي نو دنفقې خرچ به هم د ربح په طرف راګرخول کیږي.

(۴)اومضارب چې له مال مضاربت کوم څه مرابحةً خرڅول غواړي نوپرهغه چې کوم مصرف شوی دی مثلاً دلال، دهوبي، رنګریزوغیره دهغواجرت به له اصل قیمت سره ضم کړي داسي به ووایې چې دامانه په دومره پروت دی یعنې دشي قیمت به سره له مصرفه ورو ښيې اوکوم څه چې ده پرخپل ځان مصرف کړي دي هغه به له اصل قیمت سره نه شاملوي ځکه داعام عرف دی چې کوم څه پرمال باندي مصرفيږي هغه ورسره یوځای کیږي اوڅه چې پرخپل ځان باندي مصرفيږي هغه نه ورسره یوځای کیږي.

(۵)رب المال ومضارب ته وویل چې ته پخپله رایه کارکوه، مضارب په کل مال دمضاربت کپړه واخیسته اودهغه دګنډلوخرچه یې له خپله ځانه ورکړه یایې سامان واخیست دهغه دیوځای څخه بل ځای ته دانتقالولوخرچه یې له خپله جیبه ورکړه نوداخرچه دمضارب له طرفه تبرع (احسان) شمارل کیږي درب المال پرذمه نه کیږي ځکه رأس المال خوله هغه سره نه دی پاتی نومزیدخرچ کول پررب المال باندي پورکیږي چې رب المال یې اجازه نه ده ورکړې نوپررب المال باندي پوراړول صحیح نه دی بلکې دمضارب له طرفه تبرع ده ځکه رب المال ته درجوع کولوحق نه لري.

(۶)که مضارب په مال مضاربت سره سپین رنګ تان واخیست اوله خپله ځانه یې خرچه په وکړه سوررنګ یې ورکړنودرنګ په وجه چې کوم قیمت زیات شوپه هغه کې مضارب ورسره شریک کیږي اودمالک لپاره دسپین تان ذمه وارنه ګرځي ځکه رنګ خپل مال عین دی چې په کپړه پوري قائم دی آن تردي که چیرته دغه رنګینه کپړه خرڅه شي نومضارب ته درنګ دحصې پیسې ورکولي کیږي اودسپینې کپړې دحصه ثمن پرمضاربت باندي راځي مثلاً غیررنګینه کپړه په سل درهمه قیمت خرڅیږي له رنګید وروسته یونیم سل درهمه شونوسل درهمه پرمضاربت دي اوپنځوس درهمه دمضارب لپاره دهغه دمال په بدله کې حق کیږي، اودمالک لپاره دسپین تان دقیمت ذمه وارنه ګرځي ځکه مضارب په دی باره کې ماذون دی ولی رب المال ده ته ویلي ووچې ته دخپلې رایه مطابق کارکوه.

(۷)مَعَهُ بِالنِّصفِ فَاشتَرَى بِهِ بَزًّا وَبَاعَهُ بِأَلفَينِ وَاشتَرَى بِهِمَا عَبدًا فَضَاعَا غَرِمَ الأَلفَ وَالمَالِكُ أَلفًا (۸)وَرُبعُ العَبدِ لِلمُضَارِبِ وَبَاقِيهِ عَلَى المُضَارِبَةِ (۹)وَرَأسُ المَالِ أَلفَانِ وَخَمسُ مِائَةٍ وَيُرَابِحُ عَلَى أَلفَينِ (۱۰)وَإِن اشتَرَى مِنَ المَالِكِ بِأَلفٍ عَبدًا اشتَرَاهُ بِنِصفِهِ رَابَحَ بِنِصفِهِ.

**ترجمه**: زررو پی دي له مضارب سره بیایې په هغه باندي کپړه واخیسته اوخرڅه یې کړه په دوه زره اوواخیست په هغو دووزرو مریی بیادوه زره ضائع شوې نودواړه دي یوزرورکړي اومالک دی یوزر، اوڅلورمه حصه دمریې دمضارب کیږي اوباقی پرمضاربت باندي پاتیږي اورأس المال دوه نیم زره کیږي اومرابحت به کوي په دوه زره باندي اوکه یې واخیست له مالک څخه مریی په زرروپی چې هغه اخیستی ووپه نصف یعنې پنځه سوه نومضاربت به کوي پرنصف یعنې پنځه سوه باندي.

**تشریح**: (۷)له مضارب بالنصف سره زرروپی وې اوهغه په دي روپو کتاني کپړه واخیسته اوپه دوه زره یې خرڅه کړه بیایې په هغو دووزرویو مریی واخیست اودمریې قیمت یې لاورکړی نه ووچې هغه

دوه زره هلاکې شوې نوپه دي صورت کې به یوزردرهم مالک اومضارب په دواړووركوي یعنې پنځه سوه یواوپنځه سوه بل ورکوي اوپنځه سوه به فقط مالک ورکوي ځکه چې کله دکړې خرڅیدووروسته مال له یوه زره دوه زره شونوپه مال کې یوزرنفع راغله اوهغه ددواړوترمنځ په نصف نصف شوه نومضارب ته له هغوڅخه پنځه سوه ورسیږي له هغه وروسته چې یې کله په دوه زره مریی واخیست نوهغه ددواړو ترمنځ مشترک شویعنې ربع دمریې دمضارب شواودري حصې دمالک شوې بیادثمن تراداکیدو مخکي دوه زره هلاکې شوې نوتاوان پردواړوباندي بقدرملک راځي نوربع یعنې پنځه سوه پرمضارب کیږي اوباقي پنځلس سوه پرمالک باندي،ځکه یې وویل چې یوزربه په دواړوورکړي یعنې پنځه سوه به مضارب اوپنځه سوه به مالک ورکړي اویوزربه یواځي مالک ورکړي همدا ډول پرمالک باندي پنځلس سوه اوپرمضارب باندي پنځه سوه راځي .

(۸)اوس دمریې یوه ربع چې دمضارب مملوک دی هغه له مضاربت څخه خارجیږي اوباقي پرمضاربت باندي پاتیږي دمضارب حصه له مضاربت څخه ځکه خارجه شوه چې داپرهغه مضمون دی اومال دمضاربت امانت دی اوددوئ دواړوترمنځ منافات دی درب المال حصه پرمضاربت باندي برقرارپاتیږی ځکه په دي کې هیڅ منافات نشته .

(۹)بیارأس المال دوه نیم زره کیږي ځکه یوزرخورب المال په شروع کې ورکړې وې اوس یې پنځلس سوه تاوان ورکړنوټول رأس المال دوه نیم زره شو،لیکن که مضارب غواړي چې دامریی مرابحة خرڅ کړي نودی به قیمت دوه زره ورته ښیې داسي به نه ورته وایې چې ماته په پنځه ویشت سوه پروت دی ځکه مریی خوېې په دوه زره اخیستی دی .

(۱۰)که مضارب له رب المال څخه په یوزرداسی مریی واخیست چې رب المال په پنځه سوه اخیستی وونواوس که مضارب غواړي چې هغه مرابحةً خرڅ کړي نواصل قیمت به خالص پنځه سوه ورته ښیې ځکه درب المال پرمضارب باندي خرڅول که څه هم خپل ملک دخپل مال په عوض کې خرڅول دی مگردمقاصدودمختلف کیدوپه وجه دابیع جائزه گڼله شوي ده چې ضرورت په دفع شي ،لیکن پرهغه باندي دمرابحه بناء کول جائزنه دی ځکه دمرابحه مدارله شبهې څخه پراحترازبنادی نودغه مرابحه دمالک پرخریدباندي کیږي دمالک اومضارب ترمنځ چې کوم عقدشوی دی هغه معدوم گڼل کیږي .

(۱۱)معه ألف بالنصف فاشترى به عبدا قيمته ألفان فقتل رجلا خطأ فثلثة أرباع الفداء على المالك وربعه على المضارب والعبد يخدم المالك ثلثة أيام والمضارب يوما.

**ترجمه**: زر روپۍ دي له مضارب بالنصف سره هغه په دي روپو باندي مريی واخيست چې قيمت يې دوه زره دي بيا هغه يو سړی وواژه په خطا سره نو دريږ حصې فديه پر مالک باندي کيږي او يوه څلورمه حصه پر مضارب باندي او مريی به د مالک خدمت کوي دري ورځې او د مضارب به يوه ورځ خدمت کوي.

**تشريح**: (١١) که له مضارب سره يو زر درهم په نصف نفع شرط سره وو بيا ده هغو په عوض يو مريی واخيست چې د هغه قيمت دوه زره درهمه وو بيا دغه مريې يو سړی قتل کړ نو د دغه مريې د قتل فديه دريږ حصې پر رب المال باندي کيږي او يوه څلورمه يې پر مضارب باندي کيږي ځکه فديه د ملکيت خرچه دی نو په قدر د ملک مقرريږي او ملکيت د دوئ دا ډول وو يعني دريږ حصې د رب المال وې او يوه حصه د مضارب ځکه رأس المال يو زر درهمه وو او د مريې حالا قيمت دوه زره درهمه دي نو له دوهم زري څخه نصف يعني پنځه سوه د مضارب کيږي نو فديه هم په هغه تناسب ده. څرنگه چې مريی څلور حصې شو نو له فديه ادا کولو وروسته هغه د مالک او مضارب ترمنځ لاعلی وجه المضاربة مشترک کيږي ولی مضاربت په فديه ورکولو سره پای ته ورسيد نو دري ورځې به د مالک خدمت کوي او يوه ورځ به د مضارب.

(١٢) معه الف فاشترى به عبدا فهلك الثمن قبل النقد دفع المالك الفا آخر ثمنه وثمنه رأس المال جميع ما دفع (١٣) معه الفان فقال دفعت الي الفا وربحت الفا وقال المالك دفعت الفين فالقول للمضارب (١٤) معه الف فقال هو مضاربة بالنصف وقد ربح الفا وقال المالك بضاعة فالقول للمالك.

**ترجمه**: زر درهمه دي له مضارب سره بيا هغه په دي روپو باندی مريی واخيست او هغه هلاک شو ترثمنو ترادائيگی مخکي نو مالک به يو زر نورې ورکوي که بيا هلاک شو بيا به يې ورکوي که بيا هلاک شو بيا. او رأس المال کل هغه رقم دی چې ده ورکړی دی. دوه زره درهمه دي له مضارب سره بيا ده وويل مالک ته چې تا ماته زر درهمه راکړي وو او زر درهمه ما نفع وکړه مالک ورته وويل چې ما دوه زره درهمه درکړي وو نو قول د مضارب معتبريږي. له مضارب سره زر درهمه دي دی وايي چې دا په مضاربت بالنصف دي او نفع يې زر درهمه شوه مالک وايي چې بضاعت دی نو قول د مالک معتبريږي.

**تشريح**: (١٢) که له مضارب سره د مضاربت زر درهمه وو هغه د دي درهمو نو په عوض يو مريی واخيست د ثمن ترادا کولو مخکي هغه ضائع شو نو رب المال به مضارب ته دوباره زر درهمه ورکوي د دي لپاره چې دی ثمن ادا کړي بيا که ترادائيگی مخکي هغه هم ضائع شوې نو رب المال به دريم ځل زر درهمه ورکوي ترڅو چې د مريې ثمن ادا نکړي. او څو ځله چې هغه مضارب ته مال ورکړی هغه ټول رأس المال گرځي مثلاً که يې دري ځله زر درهمه ورکړل نو رأس المال دري زره کيږي که يې څلور مرتبه ورکړي وو نو رأس المال څلور زره درهمه کيږي او مضارب ضامن نه گرځي ځکه د مضارب په لاس کې چې کوم مال وي هغه امانت وي او مضارب د هغه مال په حق کې امين وي او امين ضامن نه گرځي.

(١٣) که له مضارب سره دوه زره درهمه وو هغه رب المال ته وويل چې زر درهمه خو رأس المال وو چې تا راکړي وو او يو زر ما نفع حاصله کړې ده. رب المال ورته وويل چې نه. بلکې ما تاته دوه زره درهمه درکړي

وړ دا دوه زره درهمه رأس المال دی نو دمضارب قول معتبر يږي .امام ابوحنيفة رحمه الله په شروع کې ويلي وو چې درب المال قول معتبر دی او همدا دامام زفر رحمه الله قول دی ځکه مضارب پررب المال باندې په نفع کې دشرکت مدعي دی اورب المال له هغه نه منکردی اوقول دمنکرمعتبردی .مګر وروسته امام صاحب رحمه الله له خپل دغه قول نه رجوع وکړاوويې ويل چې دمضارب قول معتبردی همدادصاحبينو رحمهما الله قول دی وجه يې دا ده چې درب المال اومضارب اختلاف په حقيقت کې په مقدارمقبوض کې دی اودمقبوض په مقدارکې دااختلاف په صورت کې دقابض قول معتبردی نوپه مذکورصورت کې دمضارب قول معتبر يږي .
(كذا فى الهداية :٣/ ٢٧٠)

(١۴)که له چاسره زردرهمونه ووهغه مالک ته وويل چې داروپی په نيمه ګټه شرط سره مال مضاربت دی اويوزرماګټه کړي ده اومالک وايي چې دادمضاربت مال نه دی بلکې مادبضاعت لپاره (بضاعت دادی چې چاته ورکړي ددې لپاره چې هغه يې خرڅ کړي اودهغه ټول منافع اوکل ثمن صاحب مال ته ورکړي)درکړي وي نودمالک قول معتبر يږي ځکه مضارب دمضاربت په دعوی کولوسره په ګټه کې دشرکت مدعي شواومالک په نفع کې دهغه له شرکت نه منکردی اوقول دمنکرمعتبروي .

## كتاب الوديعة

### داکتاب دوديعت په بيان کې دی

وديعت له وَدَع څخه مشتق دی په معنی دترک،اوامانت ايښودل شوي شي ته ځکه وديعت وايي چې هغه له امين سره پرېښودل کيږي اوپه شريعت کې :تسليط الغير على حفظ المال (دخپل مال پرحفاظت باندي غيرته دقدرت ورکولو) ته وايي .

خپل مال چې له بل چاسره دحفاظت لپاره پرېږدي هغه مودِع اومستودِع (بكسر الدال فيهما)وايي اوله چاسره چې مال ساتل کيږي هغه ته مودَع اومستودَع (فتح الدال فيهما)وايي اومذکورمال ته وديعت اومودَع وايي،اودايداع لغوي معنی ده :تسليط الغير على حفظ شئ سواء كان مالا اوغيرمال (يعني غيرديوشي پرحفاظت باندي مسلطول که هغه شی مال وي اوکه غيرمال وی).

په ايداع کې مال له مودَع سره اوپه مضاربت کې له مضارب سره امانت وي ځکه مصنف رحمه الله له كتاب المضاربت وروسته دكتاب الوديعة احكام ذکرکړي دي .

دامانت اووديعت ترمنځ دعام خاص مطلق نسبت دی په وديعت کې له غيرڅخه حفاظت کول قصداً مطلوب وي اوپه امانت کې کله بغير قصدهم کيږي مثلاهوادېوچاجامه دبل چاپه غيږه کې ورواچول نوداکپړه له هغه سره امانت ده وديعت نه ده .

دوديعت لپاره شرط دادی چې هغه شی قابل قبض وي چې دهغه حفاظت کول ممکن وي نوکه يې تښتيدلی مرغی يادا سي مال چې په درياب کې ډوب ووديعت کښېښود نو دا صحيح نه دی اودوديعت حکم وجوب دحفاظت دی .

(١)الايداع تسليط الغير على حفظ ماله والوديعة مايترك عند الامين (٢) وهي امانة فلايضمن بالهلاك (٣) وللمودع ان يحفظها بنفسه وبعياله (٤) فان حفظها بغيرهم ضمن (٥) الاان يخاف الحرق او الغرق فيسلمها الى جاره او فلك آخر.

**توجمه** :ايداع مسلطول دغيردى دخپل مال پرحفاظت باندى او وديعت هغه دى چې له امين سره پرېښودل شى، اودا امانت دى نوضامن كيږي نه په هلاكيدو سره يې، او مودَع لره اختيار دى كه دهغه مال حفاظت پخپله كوي اوكه يې پخپلو كور والاوو كوى نو كه يې حفاظت وكړه نوروخلكو بيا ضامن كيږي مگر داكه ويريدى له سوځيدو يا غرقيدو څخه بيادي وركړي دامال خپل گاونډي ته يابلې كښتى ته.

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله دايداع اصطلاحى تعريف داسي كړى دى چې خپل مال دحفاظت لپاره بل چاته وركولو ته ايداع وايي او وديعت لغةً وشرعًا هغه شى دى چې له امين سره دحفاظت لپاره وساتلى شي.

(٢)وديعت له مودَع سره امانت وي كه دمودَ له زيادت بغيرهلاك شي نومودَع نه په ضامن كيږي لقوله عليه السلام:ليس على المودع غيرالمغل ضمان (مودَع كه خائن نه وونوپرده باندي ضمان نشته)همدارنگه خلكه دوديعت ايښودلوته ضرورت لري نو كه مودِمودَع ضامن كړونو بيا خلك دوديعت له ايښودلو څخه منع كوي چې په دي سره دخلكو مصلحتونه معطل كيږي.

(٣)مودَع لره دااختيار دى چې دوديعت حفاظت پخپله وكړي يايې پخپل اهل وعيال سره وكړي ځكه په كورسره دحفاظت كولونه چاره نشته ولى دوديعت دحفاظت لپاره هروخت په كوركې اوسيدل ممكن نه دى او بهرته دوتلو په صورت كې هروخت وديعت له ځان سره گرځول هم ناممكن دى ،اوله عيال څخه مراددادى چې يوځاى سره اوسيږي.

(٤)كه مودَع مال وديعت له خپل كوربغيربل چاته دحفاظت لپاره وركړاوله چاسره يې وديعت كښېښودنو دصورت په هلاكت كې مودَع ضامن گرځي ځكه صاحب مال دمودَع په قبض كولوراضي دى نه دغيرپه قبض سره،ولى خلك دامانت په ساتلوكې مختلف وي څوك قابل اعتمادوي او ځينى لاپرواه غوندي خلك وى نوغيرته وركول دمالك درضابغيروشو ځكه نو كه امانت هلاك شو امين ضامن گرځي.

(٥)خوكه چيرته په اضطراري حالت كې مودَع مال دوديعت غيرته دحفاظت لپاره وركړمثلادمودَع په كوركې اورولگيد مودَع دحفاظت په غيرمال وديعت دخپل گاونډى كورته ورووړ،يامودَع په كښتى كې سپورووادهغې كښتى دغرقيدوويره وه هغه مال وديعت په كومه بله كښتى كې واچاوه نوپه دغوصورتونوكې كه مال هلاك شو بيامودَع نه ضامن كيږي ځكه په دي صورت كې دحفاظت همدا طريقه متعينه ده نو مالك هم يقينًا په دي راضي كيږي.

(٦)فان طلب ربها فحبسها عن ربها قادراعلى تسليمها (٧) او خلطها بماله حتى لايتميز ضمنها (٨) فان اختلط بلافعله اشترك (٩) ولوانفق بعضها فرد مثله فخلطه بالباقي ضمن الكل (١٠) وان تعدى فيها ثم ازال التعدى زال الضمان (١١) بخلاف المستعير والمستاجر (١٢) وان اقرارهفقد جخوده.

**ترجمه**: که طلب وکړ دهغه مالک پس ده منع کړه په داسي حال کې چې قادروو پرسپارلو دهغه ،یایې ګډکړله خپل مال سره په دي ډول چې تمیزیې نه شوای کیدای نونه ضامن کیږي،اوکه سره ګډشول دهغه کاروائی بغیرنودواړه شریکان کیږي،اوکه یې خرڅ کړبعض امانت پس بیایې واپس کړدهغه په اندازه اوګډیې کړله باقي سره نودټول ضامن ګرځي،اوکه یې زیادتی وکړه په امانت کې بیایې زیادتی بیرته ختمه کړه نوضمان هم ختمیږي خلاف له مستعیراومستاجرنه اودده له اقراروروسته له انکاره دده .

**تشریح**: (۶)که صاحب ودیعت پخپله یادوکیل په ذریعه له مودَع څخه خپل مال طلب کړمګرموِدَع منع کړحال داچې دی دهغه پرسپارلوباندي قادرهم وونوکه چیرته ودیعت له هغه سره هلاک شویامودَع دهغه ضامن ګرځي ځکه هغه تعدّی وکړه امانت یې وګرځاوه نوغاصب شواوغاصب ضامن ګرځي .

(۷)که مودَع مال ودیعت له خپل مال سره داسي ګډکړچې ددواړوترمنځ فرق نه کیدی نومودَع ضامن ګرځي ځکه داډول ګډول دمال هلاکت دی ولی په داسی حالت کې دمودِع خپل حق ته رسیدل ناممکن دی .دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدمودِع اوس پرمال ودیعت باندي اختیارنه لري ځکه ودیعت من کل وجه هلاک شوی دی اوس دمودِع لپاره خپل عین حق وصولول متعذردی نومودِع دي دهغه ضمان واخلي،دصاحبینورحمهماالله په نزدمودِع لره اختیارشته که غواړي نوضمان دي واخلي اوکه غواړي له مودَع سره په مخلوط مال کې شریک شي .

(۸)که مال ودیعت دمودَع له کاروائی بغیرپه مال ګډشی مثلاله دراهمو دکې تیلۍ پرې شوې دراهم سره ګډشول نودعدم تعدّی په وجه مودَع ضامن نه ګرځي بلکې دواړه بالاتفاق شریکان کیږي پرمودَع باندي ضمان نه راځي ځکه ضمان بغیرتعدّی نه واجبیږي اودمودَع له جانبه تعدّی نه ده راغلې .

(۹)که مودَع څه ودیعت دخپل مقصدلپاره مصرف کړاوباقي ضائع شونودمصرف شوي په اندازه ضامن ګرځي دضائع شده مال ضامن نه ګرځي ځکه په ضائع شده کې دمودَع تعدّی نشته،یاکه چیرته مودَع دودیعت څه مقدارمصرف کړبیایې له خپل مال څخه دمصرف کړي په اندازه په باقي مانده ودیعت کې ګډکړبیاداپیښه شوه چې پوره ودیعت (باقي مانده اودمودَع ګډشوی مال)هلاک شونو مودَع دکل ضامن ګرځي ځکه مودَع دودیعت څه حصه دخپل مقصدلپاره مصرف کړه هلاکه یې کړه بیایې چې کله دهلاک شده په عوض کې خپل مال دباقي مانده ودیعت سره ګډکړنودهغه داګډکړی مال خپله دمودَع ملک دی نودا ودیعت له خپل مال سره ګډیدل شولهذادادمودَع له جانبه استهلاک شمارل کیږي ځکه په داسی حال کې دمودِع خپل عین حق ته رسیدګي ناممکنه ده ،کمامر .

(۱۰)که مودَع پرمال ودیعت باندي یوقسم تعدّی وکړه مثلاودیعت یوحیوان وومودَع پرهغه باندي سپورشویاکپړه وه مودَع هغه واغوستله یامریی وومودَع له هغه نه خدمت واخیست بیامودَع خپله دغه تعدّی ختمه کړه دودیعت حفاظت یې خپله شروع کړنوبیاکه مال ودیعت هلاک شومودَع نه په ضامن کیږي ځکه سبب دضمان یعني تعدّی نه ده پاتی نوضمان هم نه پاتیږي .

**فائده**: امام شافعي رحمه الله فرمايي چې په مذكورصورت كې مودَع نه بري كيږي ځكه مودَع چې كله يوځل تعدي په وجه ضامن شونو عقدوديعت رفع شوولى وديعت امانت دى دامانت اوضمانت ترمنځ منافات دى. احناف رحمهم الله جواب وركوي چې دمودِع له جانبه امربحفظ الوديعة تراوسه پوري باقي دى ځكه هغه دټول وخت دحفاظت لپاره وديعت وركړى وو پاتى شوپه زمانه دتعدّى كې چې عقدوديعت رفع شوى وو هغه په دي خاطرچې دهغه نقيض يعني ضمان ثابت وواوس چې كله نقيض رفع شونوعقدوديعت بيرته راوګرځيد.

(۱۱)يعني كه مستعيراومستاجرله تعدّى كولوروسته تعدّى ختمه كړي مثلاً مستاجريو حيوان په دي كرايه كړى وو چې پرهغه به دوه منه غنم باروي بيايې پرهغه څلورمنه غنم باركړل، اوبيايې بيرته مالك ته وركړنوله ضمان څخه نه بري كيږى ځكه دبرى كيدومداربردي دى چې هغه شى مالك ته حقيقتًاوګرځوي په دي ډول چې شى مالك ته په قبض وركړي يايې تقديراوګرځوي لكه دمودَع قبض چې حكمًادمودِع قبض شمارل كيږي اودمستعيراومستاجر عمل ځرنګه چې دخپل ذاتى منفعت لپاره وي نوددوئ دواړوقبضه پر مال باندي دخپل ځان لپاره وي ځكه نودهغوئ له جانبه نه حقيقةً راګرځيدل راغلل اونه حكمًانوله ضمان څخه نه بري كيږي خلاف له مودَع نه چې دهغه قبض دمالك دقبض په شان دى نوچې كله هغه تعدّى ختمه كړه نودمالك طرف ته حكمًاراګرځيدل راغلل ځكه پرهغه ضمان نه راځي.

(۱۲)قوله واقراره بعدجحوده، يعني كه مالك له مودَع څخه خپل وديعت طلب كړمګرمودَع انكاروكړويې ويل زماسره ستاهيڅ وديعت نشته نوبياكه وديعت هلاك شونومودَع نه ضامن كيږي ځكه چې كله مالك وديعت طلب كړنوهغه ګواكي مودَع دوديعت له حفاظت څخه معزول كړنواوس كه مودَع وديعت ګرځوي نوغاصب ګڼل كيږي دوديعت دهلاكت په صورت كې مودَع ضامن نه ګرځي.

(۱۳)وله ان يسافر بها عند عدم النهي والخوف(۱۴)ولو اودعا شيئا لم يدفع المودع الى احدهما حظه حتى يحضر الآخر(۱۵)وان اودع رجل عند رجلين ما يقسم اقتسماه وحفظ كلٌ نصفه ولو دفع الى الآخر ضمن(۱۶)بخلاف ما لا يقسم(۱۷)ولو قال له لا تدفع الى عيالك او احفظ في هذا البيت فدفعها الى من لا بد له منه(۱۸)او حفظها في بيت آخر من الدار لم يضمن(۱۹)وان كان له منه بدٌ او حفظها في دار اخرى ضمن.

**ترجمه**: اومودَع ته جائزدى چې امانت په سفركې ورسره يوسي په وخت كې دعدم ممانعت اوعدم خوف. اوكه دوو كسانو امانت كښېښودېوشى نومودع دي نه وركوي ديوه حصه ترهغه چې حاضرشي بل اوكه وديعت كښېښودېوه سړي دووكسانوته داسي شى چې تقسيميدى نودواړه دي هغه تقسيم كړي اومحفوظ دي كړي هريوخپله حصه اوكه يې وركړهغه بل ته نوضامن ګرځي خلاف دهغه شي چې نه تقسيميږي. اوكه يې مودع ته وويل چې خپل كوروالاوته به يې نه وركوې يايې ورته وويل چې په دي كوټه كې به يې ساتې نوده هغه چاته وركړچې له هغه څخه يې چاره نه وه يامحفوظ كړدكورپه يوه بله كوټه كې نونه ضامن كيږي. اوكه دده له هغه څخه چاره وه يايې په بل مكان كې وساته نوضامن ګرځي.

**تشريح**: (۱۳)دمودع لپاره داجائزدى چې مال وديعت په سفريوسي په دي شرط چې مالك منع نه وي كړي يادمال وديعت دضائع كيدوخطره نه وي كه څه هم هغه وزنى شى وي په وړلوكې سوارلي ته ضرورت لري

او په وړلوکې پر هغه باندې خرچه راځي ځکه د مالک له طرفه د حفظ وديعت امر مطلق دی نو لکه څرنګه چې په يو زمانه پورې مقيد نه دی همدارنګه په مکان پورې هم مقيد نه دی همدا د امام ابو حنيفة رحمه الله قول دی. د صاحبينو رحمهما الله په نزد که مال وديعت وزنی وو په وړلوکې د سوارۍ محتاج وو او پر وړلو باندې يې خرچه راتله نو بيا نه ده جائز ځکه په دې صورت کې پر وديعت باندې خرچه راځي او ظاهره خبره ده چې مالک په هغه باندې نه راضي کيږي.

**فائده**: د امام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی لما في الدر المختار: ولو اودعا شيئا مثليا او قيميا لم يجز ان يدفع المودع الى احدهما حظه في غيبة صاحبه (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۴/ ۵۵۶) او که مودَع ورکړنو بيا مودَع ضامن ګرځي که نه؟ په دې کې د ائمه ؤ اختلاف دی. د امام صاحب رحمه الله په نزد ضامن ګرځي او د صاحبينو رحمهما الله په نزد نه ضامن کيږي. د امام صاحب رحمه الله قول راجح دی لما في الدر المختار: ولو دفع هل يضمن في الدرر نعم وفي البحر الاستحسان لا لكن هو المختار، قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله هو المختار) قال المقدسي خلاف لما عليه الائمة الاعيان بل عامة المتون عليه متفقون وقال الشيخ قاسم اختار النسفي قول الامام المحبوبي وصدر الشريعة ابو السعود عن الحموي. (الدر المختار مع الشامية: ۴/ ۵۵۶)

(۱۴) که دوو کسانو له مودَع سره يو شی وديعت کېښېښود بيا له هغو دوو کسانو څخه يو راغی د خپلې حصې د واپس کولو مطالبه يې وکړه نو د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد مودَع لره د هغه حصه ورکول جائز نه دی ترڅو چې هغه بل نه وي حاضر شوی ځکه دی تقسيم شده حصه طلبوي حال دا چې د هغه حق مشاع دی، او د صاحبينو رحمهما الله په نزد مودَع لره د هغه حصه ورکول جائز دی ځکه دی د خپل نصف حصه طلبګار دی چې ده و مودَع ته سپارلې وه. د امام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دی.

(۱۵) که يوه سړي دوو کسانو ته يو قابل تقسيم شی وديعت کېښېښود نو له دوئ څخه يو ته دا جائز نه ده چې هغه ټول شی د بل په حفاظت کې ورکړي بلکې دوئ دواړه دي هغه تقسيم کړي هر يو دي د خپل نصف حفاظت وکړي ځکه مالک په دې نه دی راضي چې له دواړو څخه يو د پوره وديعت حفاظت وکړي. او که يوه خپله حصه بل ته ورکړه او هغه هلاک شوه نو ضامن کيږي ځکه هغه چې بل ته ورکړه خپله يې د هغه حفاظت پرېښود.

(۱۶) البته که دا شی قابل تقسيم نه وو نو بيا له دوئ دواړو څخه يو د بل په اجازه د هغه حفاظت کولای شي. ځکه مالک پوهيږي چې همه وخت د وديعت د حفاظت لپاره د دوئ دواړو جمع کيدل ناممکن دی نو دی په دې راضي دی چې له دواړو څخه يو د کل وديعت حفاظت وکړي.

(۱۷) که مالک مودَع ته وويل چې مال وديعت خپل کورو الا و ته مه سپاره. مګر مودع وديعت د خپل کورو الاو څخه داسي چا ته ورکړ چې د هغه د حواله کولو څخه يې هيڅ چاره نه ده: لکه د مثلا خپلې بي بي ته يې ورحواله کړنو اوس که وديعت هلاک شو نو مودَع نه ضامن کيږي ځکه مودَع لره د دې شرط په رعايت کولو سره د وديعت حفاظت ممکن نه دی ولې چې کله هم دی بکوره ووځي نو په کورکې چې څه وي هغه ټول بي بي ته حواله دي نو دا شرط د نه مفيد کيدو په وجه لغوه دی ځکه د مالک د دې شرط رعايت نه کول کيږي.

(۱۸)كه مالک مودَع ته وويل چې وديعت به ستاسي دكورپه فلانی كوټه كې ساتې ، مګرمودَع ددي كورپه بله خونه كې وساته،اووديعت هلاک شونومودَع نه ضامن كيږي ځكه دمالک داشرط غيرمفيددی ولی ديوه كوردوې خوني په حفاظت څه فرق نه لري .

(۱۹)كه مالک وديعت له داسي چاسره كښېښودچې چاته له وركولوبغيريې چاره كيدله مثلاوديعت يوه ګوتمی وه چې مودَع يې خپله حفاظت كولای شوای مګرده خپلې بي بي ته دحفاظت لپاره وركړه نود هلاكت په صورت كې مودَع ضامن كيږي ځكه خلک دامانت په باره كې مختلف وي اودحفاظت كولولپاره دخلكوفكرونه مختلف وي نوداسي چاته مودَع ضامن كيږي چې مالک اجازه نه وي وركړې يامالک ديوه سرای خونه ورته ښودلې وه اومودَع دبل كورپه خونه كې وساته نودهلاكت په صورت كې مودَع ضامن كيږي ځكه دوه كورونه په حفاظت كې متفاوت كيدای شي نودمالک داشرط مفيدنه دی .

(۲۰)وَمُودَعُ الْغَاصِبِ ضَامِنٌ(۲۱)لامُودَعُ الْمُودَعِ(۲۲)مَعَهُ أَلْفٌ اِدَّعٰى رَجُلانِ كُلٌّ أَنَّهُ لَهُ أَوْدَعَهُ اِيَّاهُ فَنَكَلَ لَهُمَا فَالأَلْفُ لَهُمَا وَعَلَيْهِ أَلْفٌ آخَرُ بَيْنَهُمَا.

**ترجمه** :اودغاصب امين ضامن دی،نه دامين امين،له مودَع سره زرروپۍ دي دووكسانودعوی وكړه هريوه وويل چې دازمادي مال،ما امانت ايښي دي له ده سره اومودَع ددواړولپاره انكاروكړنودازردهغوی دواړولپاره كيږي اوپرمودَع باندي زرنوري لازميږي هغه ددوی دواړوترمنځ تقسيميږي .

**تشريح** :(۲۰)يوچاشی غصب كړبل چاته يې په طريقه دوديعت كښېښودبياهغه شی له مودَع څخه هلاک شونومودَع ضامن ګرځي ځكه هغه دمالک (مغصوب منه) داجازت بغيروديعت قبض كړی وويا چې كله مالک له مودَع څخه ضمان واخلي نومودَع به له غاصب څخه تاوان واخلي .

(۲۱)قوله لامودع المودع ای لايضمن مودع المودع،يعنې كه يوچاشی له بل چاسره وديعت كښېښوداوهغه داشی له بل چاسره وديعت كښېښودحال داچې مالک دهغه اجازه نه ده وركړې بياوديعت له هغه بل دوهم امين سره هلاک شونودامام صاحب رحمه الله په نزدمالک له مودع المودع يعنې دوهم امين څخه تاوان نه شی اخيستلای بلكې له اول څخه به يې اخلي اودصاحبينورحمهما الله په نزدمالک لره اختياردی كه له اول څخه تاوان اخلي اوكه له دوهم څخه،ځكه دوهم ديوه امين شخص له لاسه وديعت قبض كړی دی نولكه څرنګه چې مودَع الغاصب ضامن ګرځي همدارنګه مودَع المودَع هم ضامن ګرځي ،دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې مودَع المودَع دضامن له لاسه نه دی قبض كړی بلكې دامين له لاسه يې قبض كړی دی ولی مودَع اول خالص دوديعت په حواله كولوسره ودوهم ته ضامن نه ګرځي ترڅوچې هغه ورڅخه جدانه شي نوچې كله دمودَع المودَع له جانبه كوم موجب ضمان فعل نه دی صادرشوی ځكه هغه ضامن نه ګرځي .

(۲۲)كه له چاسره يوزردرهمه وويا په هغه باندي دووكسانودعوی وكړه هريوه وويل چې دازردرهمه زمادي ماله ده سره امانت ايښي وونوله مدعی عليه څخه ددي دواړومدعيانولپاره قسم اخيستل كيږی ځكه ددواړودعوی صادقه كيدای شي بياكه هغه قسم واخيست نودمدعيانولپاره هيڅ شی نه كيږی

ځکه دمدعی علیه قسم اخیستل ددي دلیل دی چې په دی زرودرهموکې ددوئ هیڅ حصه نشته ،اوکه هغه له قسم اخیستلو څخه انکاروکړنوزردرهمونه ددواړومدعیانولپاره کیږي اوپرمدعی علیه باندي یوزرنوردرهم لازمیږي چې دمدعیانوترمنځ په نصف نصف تقسیم شي ځکه دمدعی علیه له قسم اخیستلوڅخه انکارکول ددواړومدعیانوپه دعوی اقراردی نودهریوه لپاره یویوزردرهم کیږي اوکه هغه په دوئ کې له یوه څخه قسم واخیست اودبل پردعوی یې له قسم اخیستلوڅخه انکاروکړنوزر درهمونه ددوهم لپاره کیږي ځکه له قسم څخه انکارکول دهغه ددعوی اقراردی.

## كتاب العارية

### داکتاب دعاریة په بیان کې دی

عاریت له عاریةٌ په معنی دعطیه څخه مشتق دی اویادعارطرف ته منسوب دی ځکه عاریةٌ شی غوښتل دعیب وعارباعث دی اوپه شریعت کې عبارت دی له تملیک دمنافع بلاعوض.

شی په عاریةً اخیستونکي ته مُستَعِیراوشی ورکوونکي ته مُعِیراوهغه شي ته مُعَاراو مُستَعاراوعاریت ویل کیږي،عاریةٌ یوشی اخیستل اوورکول جائزدی (یعنې دملک منفعت لپاره مفیددی)ځکه عاریت یوډول احسان اودخیرکار ی چې شریعت تل دهمداسي کارونوترغیب ورکوي.

دکتاب العاریة له کتاب الودیعة سره مناسبت دادی چې دواړه امانت دي بیاودیعت خالص امانت دی دیوشي تملیک نه دی اوپه عاریت کې دامانت ترڅنګ تملیک المنفعة بلاعوض هم شته نودادنی څخه داعلی په طرف دترقي په قصد مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ مخکي ودیعت ذکرکړی دی اوس عاریت ذکرکوي. ۱

دعاریة لپاره رکن دمُعیرله طرفه ایجاب دی دمستعیرقبلیدل دائمه ثلاثه ؤپه نزدشرط نه دی، ۲

اودعاریة حکم دمستعارامانت کیدل دی که دمستعیرله طرفه دتعدّی کولوپه وجه مستعارهلاک شي نومستعیربالاجماع ضامن ګرځي اوکه بې لاتعدّی هلاک شوبیانه ضامن کیږي. ۱

(۱) وَهِيَ تَمْلِيكُ الْمَنْفَعَةِ بِلَا عِوَضٍ (۲) وَتَصِحُّ بِأَعَرْتُكَ وَأَطْعَمْتُكَ أَرْضِي وَمَنَحْتُكَ ثَوْبِي وَحَمَلْتُكَ عَلَى دَابَّتِي وَأَخْدَمْتُكَ عَبْدِي وَدَارِي لَكَ سُكْنَى وَدَارِي لَكَ عُمْرَى سُكْنَى (۳) وَيَرْجِعُ الْمُعِيرُ مَتَى شَاءَ (۴) وَلَوْ هَلَكَتْ بِلَا تَعَدٍّ لَمْ يَضْمَنْ (۵) وَلَا تُؤْجَرُ وَلَا تُرْهَنُ كَالْوَدِيعَةِ فَإِنْ آجَرَ فَعَطِبَتْ ضَمِنَ (۶) وَيُعِيرُ مَا لَا يَخْتَلِفُ بِالْمُسْتَعْمِلِ.

**ترجمه**:عاریة مالک ګرځیدل دی دمنافعوبلاعوض،اوصحیح دی په دي الفاظوسره ماتاته په عاریت درکړی دی ماتاته دخوراک لپاره ځمکه درکړې ده ماخپله کپړه تاته درکړي ده ماته پرخپل سواري سپورکړی یې ماستاخدمت لپاره خپل مریی درکړی دی زماسرای ستاداوسیدلولپاره دی زماسرای ستالپاره دتمام عمرلپاره دی اومعیررجوع کولای شي چې کله وغواړي اوکه هلاک شوله تجاوزبغیرنومستعیرضامن نه ګرځي اوپه کرایه یې نه شي ورکولای اورهن یې نه شي کښیښودلای دودیعت په شان بیاکه یې په کرایه ورکړاوهغه هلاک شونوضامن کیږي اوعاریةٌ ورکولای شي هغه شی چې نه مختلف کیږي دمستعمِل په بدلیدوسره.

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله دعارية شرعي تعريف داسي كړى دى چې دخپل شي دمنافعوبل څوک مالک وګرځوي دي ته عارية وايي دمنفعت په قيدسره احترازراغى له هبه څخه ځكه په هبه كې دعين تمليک وي نه دمنفعت اوپه بلاعوض قيدسره احترازراغى له اجاره څخه ځكه په اجاره كې هم تمليک منفعت دی مګربلاعوض نه بلكې په عوض سره.

(۲)عاريت په لاندې الفاظوسره صحيح كيږي :**نمبر ۱**- أعرتک (ماتاته په عارية دركړى دى) ځكه دغه لفظ په عارية كې صريح دى. **نمبر ۲**- اطعمتک ارضی (ماتاته دخوراک لپاره ځمكه دركړې ده)په دې لفظ سره عارية ځكه صحيح ده چې ځمكه خودخوراک لپاره نه وركوله كيږي نومجازًاله دې څخه دځمكې حاصلات مراددي.

**نمبر ۳**-منحتک ثوبی (ماتاته عطية زماكپړه دركړې ده)وحملتک علی دابتی (ماته پرخپل سوارلي باندې سپور كړى يې) په دې دووالفاظوسره عارية هغه وخت صحيح كيږي چې كله له هغوڅخه هبه اراده نه كړاى شي ولى دادوه الفاظ دتمليک عين اومنفعت دواړواحتمال لري چې منفعت يې ادنى دى نوپه وخت دعدم نيت كې هغه پرمنفعت (عاريت )باندې حمل كيږي.

**نمبر ۴**-اخدمتک عبدی (ماتاته خپل مريى ستادخدمت لپاره دركړ)ځكه داله مريي څخه دخدمت اخيستلواجازه ده.

**نمبر ۵**-داری لک سکنی (زماسراى ستاداوسيدولپاره دى)ولى ددې معنى داده چې ددې سراى سكونت ستالپاره دى.

**نمبر ۶**- داری لک عمری سکنی (زماسراى تمام عمرستاداوسيدولپاره دى)په دې قول كې لکَ كه څه هم دتمليک عين لپاره دى خوچې كله دهغه تميزلفظ دسُكنى راوړل شوچې په عارية كې محكم دى نودهغه په وجه لفظ دلکَ هم پرتمليک منفعت باندې حمل كوي،لفظ دعُمرى مفعول مطلق دى تقديردعبارت داسي دى :اَعمرتُهالک عُمرى سَكنى ،اوسُكنى له نسبته ومخاطب ته تميزدى.

(۳)معيرچې كله وغواړي له عاريت څخه رجوع كولاى شي خپل شى له مستعيرڅخه واپس اخيستلاى شي ځكه عاريت تمليک دمنافع دى اومنافع حالًابعدحال پيداكيږى نوكومې منافع چې تراوسه نه دي په وجودكې نه دي راغلې هغه دمستعيرپه قبضه كې نه دي واقع شوې نودمتبرع (يعني معير)رجوع كول امتناع عن التمليک ده چې دى يې حق لري.

(۴)څرنګه چې مستعارشوى شى دمستعيرپه لاس كې امانت دى نوكه دمستعيردتعدّى بغيرهلاک شي مستعيرنه ضامن كيږي البته كه دمستعيردتعدّى په نتيجه كې هلاک شي نوبيامستعير ضامن كيږي لكه امين چې په تعدّى كولوسره ضامن ګرځي.

(۵)مستعيرلره دانه ده جائزه چې مستعارشوى شى كوم بل چاته په كرايه وركړي ځكه اعاره تراجاره كمتره ده ولى اجاره عقدمعاوضه ده اواعاره عقدمعاوضه نه ده اوشى خپل مافوق لره نه متضمن كيږى نوپه اعاره كې مستعيرته داجاره اختيارنه وي اومستعارشوى شى دوديعت په شان درهن په ډول هم چاته

اینودلی نه شي ځکه له مرهون څخه دضرورت په وخت قرضه اداکیدای شي او مستعیرلره نه ده جائزه چې له بل څخه په مستعارشوی شي دهغه داجازت بغیرخپل قرض اداکړي، مستعیرلره نه ده جائزه چې مستعارشوی شي په کرایه ورکړي خوکه بیاهم مستعارشی چاته په کرایه ورکړي اوهغه هلاک شي نومستعیرضامن کرځي ځکه دمعیرداجازت بغیرمستعارشی غیرته په اجاره ورکولوکې مستعیرتعدی کوونکی ګڼل کیږي.

(۶)البته مستعیرلره داجائزه ده چې مستعارشی بل چاته په عاریة ورکړي په دي شرط چې مستعارداسي شی وی چې دمستعمِل په اختلاف سره نه متغیرکیږی ولی عقدعاریت تملیک دمنافع دی نومستعیراول چې دکوم شي مالک شوی دی هغه په قدردملک بل هم مالک ګرځولای شي البته که معیرمستعیرلره صراحةً منع کړی ووچې مستعارشی به بل چاته عاریةً نه ورکوي اومستعیردحکم په مخالفت سره مستعارشی غیرته په عاریة ورکړاوهغه شی هلاک شونواول مستعیردمعیر دحکم دمخالفت په وجه ضامن ګرځي.

**الالغاز**:ای مستعیرملک المنع بعدالطلب؟

**فقل**:اذاطلب السفینة فی لجة البحراو السیف لیقتل به ظلمااو الظئر بعدماصار الصبی لایاخذالاثدیها.(الاشباه والنظائر)

(۷)فَلَو قَیَّدَهابِوَقتٍ اَو مَنفَعَةٍ اَو بِهِمَالایَجاوِزُ عَمَّاسَمَّاهُ وَاِن اَطلَقَ لَهُ اَن یَنتَفِعَ اَیَّ نَوعٍ فِی اَیِّ وَقتٍ شَاءَ(۸)وَعَارِیَةُ الثَّمَنِ وَالمَکِیلِ وَالمَوزُونِ وَالمَعدُودِ قَرضٌ(۹)وَاِن اَعَارَاَرضًالِلبِنَاءِاَولِلغَرسِ صَحَّ(۱۰)وَلَهُ اَن یَرجِعَ وَیُکَلِّفَ قَلعَهُمَا(۱۱)وَلَایَضمَنُ مَانَقَصَ اِن لَم یُوَقِّت وَاِن وَقَّتَ وَرَجَعَ قَبلَهُ ضَمِنَ مَانَقَصَ بِالقَلعِ(۱۲)وَاِن اَعَارَهَالِیَزرَعَهَالَاتُؤخَذُحَتّٰی یَحصُدَ وَقَّتَ اَولَا.

**ترجمه**:اوکه مالک مقیدکړی وي په خاص وخت یاخاص نفع سره یاپه دواړوسره نوتجاوزدي نه کوي ترهغه چې متعین کړی یې دی اوکه یې مطلق پرې ایښی وونودهغه لپاره جائزدی چې نفع واخلي هرقسم کوم وخت چې غواړي اوعاریت ورکول دثمینواومکیلي اوموزوني شیانواوعددي شیانوقرض دی اوکه یې ځمکه په عاریت ورکړه دتعمیرلپاره یاددرختولګولولپاره نوصحیح ده اومعیرلره جائزه ده چې واپس یې واخلي اودی مکلّف کړي ددي دواړوپه له منځه وړلوباندي اونه ضامن کیږي دهغه چې نقصان راغلی دی که یې وخت معین کړی نه وواوکه یې وخت معین کړی ووترهغه مخکې یې واپس واخیست نوضامن ګرځي دهغه نقصان چې دآبادي دړنګیدو یاپه کښلودرختوسره راغلی وي اوکه یې ځمکه عاریةً ورکړې وه ددي لپاره چې ویې کري نوواپس به یې نه اخلي ترڅوهغه کښت ونه ریبل شي که یې وخت معین کړی وواوکه یې نه ومعین کړی.

**تشریح**:(۷)که معیرپه دي وخت کې چې مستعیرته مستعارورکوي داقید ولګاوه چې دابه یواځې دجمعې په ورځ مثلااستعمالوي یابه فلان قسم کټه ورڅخه اخلي مثلامستعارحیوان ومعیرداقید ولګاوه چې له دي څخه به خالص دسوارلي فائده اخلي باربه نه پروړي یایې ددواړو(متعین وخت او متعین فائده)قیدلګولی وونومستعیربه دمعیرله دي تعین څخه تجاوزنه کوي ځکه داله ملک غیرڅخه انتفاع ده نوچې دڅرنګه انتفاع هغه اجازه ورکوي یواځې هغه جائزه ده ترهغه تجاوزجائزنه دی .اوکه معیرهیڅ قسم

قيدنه وولګولی نو مستعيرچې څرنګه غواړي اوترڅه وخته چې غواړي فائده حاصلولای شي ځکه دمعيرله طرفه دمطلق فائده حاصلولو اجازه ده نوپه اطلاق سره دعمل کولوچې څرنګه غواړي ترڅه وخته غواړي فائده حاصلولای شي.

(۸)ثمنين (يعني دراهم اودنانير)کيلی شيان (لکه غنم،اوربشي)وزني شيان (لکه شات وغيره)عددي متقارب شيان (لکه جوز،هګی وغيره) په عاريت ورکول قرض ګڼل کيږي ولی عاريت په تمليک دمنافعو دی اوله دغوشيانوڅخه انتفاع ممکن نه ده مګرداکه دغه اعيان تلف کړي نوداب‌الضرورة دتمليک عين مقتضي دی اوتمليک عين ياپه هبه ياقرض سره ممکن دی بيا په دي دواړو(هبه اوقرض)کې ادنی قرض دی نوقرض ثابتيږي.

(۹)که يوڅائ‌مکه په عاريت واخيسته ددي لپاره چې په هغی کې آبادي وکړي يادرختې پکې ولګوي نوداجائزه ده ځکه دسکنی په شان يومنفعت دی اودامنفعت داجارې په ذريعه حاصليدای شي نوداعارې په ذريعه حاصلول يې هم صحيح کيږي.

(۱۰)په مذکورصورت کې معيرلره داجائزه ده چې له عاريت څخه رجوع وکړي خپله ځمکه واپس واخلي ځکه داخبره مخکي تيره شوې ده چې داعقدغيرلازم دی نوددي عقدماتول جائزدی. اومعيرچې کله خپله ځمکه اخلي نومستعيرپه دي مجبورکړای کيږي چې آبادي رنګه کړي اودرختې وکاږي ځکه دي شيانو دمعيرځمکه مشغوله کړې ده نوپرفارغه کيدويې مستعيرمجبورکړای کيږي.

(۱۱)بيادرختوپه کښلوسره دمستعيرنقصان ضرورراځي نوکه دمستعاروركولوپه وخت کې يوه موده نه وه مقرره شوې نوبيامعيرنه ضامن کيږي ځکه مستعيرخپله دوکه شوی دی معيرهيڅ دوکه نه ده ورکړې ولی مستعيرپوهيږي چې معيردواپس کولوحق لري بياهم درختې پکې لګوي نودی خپل ځان ته دوکه ورکوي اوکه دمستعاروركولوپه وخت يوه معينه موده مقرره شوي وه اومعيرده‌غې مودې تيريد کيدومخکي ځمکه واخلي نوچې په کښلوسره دمستعيرکوم نقصان راځی معيرده‌غه ضامن دی ځکه معيرمستعيرته دوکه ورکړې ده ولی دوخت په مقررکيدوسره مستعيرپوهيږي چې تروخت مخکی رجوع نه کوي داچې ده تروخت مخکي رجوع وکړه نودوکه ورکوونکی معيرشوپه دي وجه معيرضامن ګرځي.

(۱۲)که مستعيرپه دي غرض ځمکه اخيستې وه چې دابه وکړي نومالک دخپلې ځمکې اخيستلواختيارنه لري ترڅوچې کښت ريبل شوی نه وي که يې وخت مقررکړی وي اوکه يې نه وي مقررکړی ولی کښت ددرختوپه شان نه دی ځکه دکښت لپاره وخت معلوم راځي اودرختولره هيڅ وخت معلوم نشته اودکښت رسيدوتروخته دي مستعيرته ځمکه داجرت مثل په عوض پريږدي چې په دي کې دجانبينو رعايت دی.

(۱۳) ومؤنة الرد على المستعير والمودع والموجر والغاصب والمرتهن (۱۴) وان رد المستعير الدابة الى اصطبل مالكها (۱۵) او العبد الى دار المالك برئ (۱۶) بخلاف المغصوب والوديعة (۱۷) وان رد المستعير الدابة مع عبده او اجيره مشاهرة او مع عبد رب الدابة او اجيره برئ (۱۸) بخلاف الاجنبي (۱۹) ويكتب المعار انک اطعمتني ارضک.

**ترجمه**: او دواپس کيدو مصرف پر مستعير او مودع او موجر او غاصب او مرتهن باندې ده او که واپس کړ مستعير حيوان د مالک د حيوانانو ځای دريدو ته يا يې مريی د مالک سرای ته ور ووست نو دی بري کيږي خلاف له مغصوب او وديعت نه او که واپس کړ مستعير حيوان له خپل مريي يا خپل ماهانه مزدور يا د حيوان د مالک له مريي يا د هغه له مزدور سره نو بري کيږي خلاف له اجنبي (بيگانه) څخه او ودي ليکي معار چې تا ماته عاريةً خپله ځمکه راکړې ده.

**تشريح**: (۱۳) د مستعار پر واپس کيدو چې څو مره مصرف راځي هغه به د مستعير پر ذمه وي ولی د مستعار واپس کيدل د مستعير پر ذمه واجب دي نو پر واپس کيدو چې کوم خرچه راځي هغه به هم د مستعير پر ذمه وي، او د وديعت پر واپس کيدو چې کوم مصرف راځي هغه د مودِع (وديعت ساتونکي) پر ذمه واجبه ده ځکه د وديعت د حفاظت فائده مودِع ته رسيږي او د وديعت د واپس کيدو فائده هم مودع ته رسيږی نو د واپس کيدو خرچه يې هم د مودِع پر ذمه راځي او په اجاره دوړي شي پر واپس کيدو چې کوم مصرف راځي هغه په ذمه د مؤجر (يو شی په اجاره ورکوونکي) واجب دی ځکه د مستاجر پر ذمه د هغه شي د واپس کيدو چې په اجاره يې وړی دی مصرف واجب نه دی بلکې خالص تخليه او موجر ته قدرت ورکول واجب دی نو مصرف د واپس کيدو يې د مستاجر پر ذمه نه راځي بلکې د موجر پر ذمه کيږي او د مغصوبه شي پر واپس کيدو چې کوم مصرف راځي هغه د غاصب پر ذمه واجب دی ځکه د مغصوب شي واپس کيدل پر غاصب واجب دی نو د واپس کيدو مصرف هم له مالک څخه د ضرر دفع کيدو لپاره پر غاصب باندې واجبيږي، او د رهن بنو دل شوي شي د واپس کيدو مصرف د مرتهن پر ذمه واجب دی ولی د مرتهن قبض وصولي قبض دی نو دی قابض لنفسه دی نو د واپس کيدو مصرف د هغه پر ذمه راځي د راهن پر ذمه نه کيږي.

(۱۴) که مستعير يو حيوان په عاريت اخيستی و وبيايې هغه د مالک د ځارويو دريدو ځای ته ورساوه وروسته هغه هلاک شو نو د قياس تقاضا خو داده چې مستعير ضامن شي ځکه هغه مستعار مالک ته نه دی رسولی، ليکن استحساناً نه ضامن کيږي وجه د استحسان داده چې دا عام عادت دی چې د عاريت حيوانان د مالک د ځارويو تر ځايه رسوي نو په مذکور صورت کې مستعير مستعار په متعارفه طريقه مالک ته رسولی دی ځکه هغه نه ضامن کيږي.

(۱۵) قوله او العبد الى دار المالک برئ اى ان رد المستعير العبد الى دار المالک برئ المستعير من الضمان، يعني که مستعير يو مريی عاريةً راوستلی و وبيايې د مالک تر کوره پوري ورساوه خاص مالک ته يې ورنکړ نو بيا که مريی له دغه وروسته هلاک شو نو د لته هم د قياس تقاضا داده چې مستعير ضامن وي خو استحسان دا دی چې

مستعيرضامن نه شي ځکه مستعيرمستعارپه متعارفه طريقه سره ترمالکه پوري ورساوه ځکه نه ضامن کيږي.

(۱۶)خلاف له غصب شوي شي نه چې دهغه ومالک ته سپارل ضروري دي غيرله سپارلو غاصب نه بري کيږي ولې غاصب مغصوب قبض کړی دی زياتي يې کړي ده دازيادتي يې هلته زائليږي چې حقيقة مغصوب شی مالک ته تسليم کړي همدارنګه که مودَع وديعت دمالک ترکوره ورساوه خپله مالک ته يې ورنکړيياکه وديعت هلاک شونومودَع نه بري کيږي بلکې ضامن ګرځي ځکه مالک په دي نه دی راضي چې وديعت دده ترکوره پوري ورسيږي يادده په کورنۍ کې بل چاته وسپارل شي که نه يايې ولی وديعت مودَع ته ورکاوه.

(۱۷)که يوچادبل چايوحيوان مستعارراووست بيايې هغه خپل مريې ياخپل مزدورته ورکړيياکه هلاک شونومستعيربري کيږي ضامن نه ګرځي ولی حيوان له مستعيرسره امانت دی نوده لره اختيارشته چې په داسې چادهغه حفاظت وکړي چې دده له عيال ځخه وي لکه په وديعت کې نوچې کله مستعيردخپل مريې يامزدورپه ذريعه دمستعارحفاظت کولای شي نوددوئ په ذريعه يې واپس کولای هم شي همدارنګه که يې مستعيردمالک دمريي يامزدورپه لاس واپس کړي هم دی بري کيږي ځکه مالک په دي راضی دی ولی که يې خپله مستعيرواپس کړي نوهم يې مالک خپل مريې ته په لاس ورکوي اوله مزدورڅخه هغه مزدورمرادی چې له ده سره په کلنۍ يامياشتنۍ مزدوري سره مزدوروي.

(۱۸)قوله بخلاف الاجنبی ای ان ردالمستعيرالدابة مع اجنبی فهلکت لايبراعن الضمان،يعني که چيرته مستعير مستعارکړی حيوان داجنبي په ذريعه واپس کړي نودهلاکت په صورت کې مستعيرنه بري کيږي بلکې ضامن ګرځي ولی داجنبي په لاس ورکولوسره مستعيرمتعدّي شمارل کيږي نوځکه ضامن ګرځي.

(۱۹)که چاخالي ځمکه بل چاته دکښت کرلولپاره عارية ورکړه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدبه مستعيرپه عاريت نامه کې داسي وليکې :اِنک أطعمتنی (تاماته داځمکه دکرلولپاره راکړې ده)او صاحبين رحمهماالله فرمايي داسي به وليکې :اِنکَ اَعَرتَنِی (تاماته عارية راکړې ده)ځکه اعرتنی دعاريت لپاره صريح وضع شوی لفظ دی اوپه لفظ موضوع سره خط ليکل بهتردی لکه دمکان په عارية کې چې په اتفاق داسي ليکې انّک اعرتنی ،داسي نه ليکل کيږي چې اِنک اَسکَنتَنِی ،دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې لفظ داطعام پرمقصودباندي زيات دلالت کوي ولی دالفظ په کښت پوري مختص دی اولفظ دعاريت له کښت نه علاوه آبادي وغيره ته هم شامل دی نوکوم لفظ چې په زراعت پوري مختص دی هغه ليکل بهتردی.

## كتاب الهبة

### داکتاب دهبّه په بيان کې دی

دکتاب الهبة له کتاب العارية سره مناسبت دادی چې په هبّه اوعاريت دواړوکې تمليک بلاعوض راځي بيايې عاريت پرهبّه باندي ځکه مقدم کړی دی چې ترقی له ادنی ځخه واعلی ته راشي،دامکنه ده چې دعاريت دتقديم وجه داوي چې عاريت په منزله دمفرددی اوهبّه په منزله دمرکب دی ولی په هبّه کې تبرع

بالعين ده او تبرع بالعين مركب ده نسبت وتبرع بالمنفعة ته ولې د تبرع بالعين په صورت كې كله متبرع عليه بنفسه له عين څخه فائده حاصلوي او كله دهغه له منافعو څخه او د تبرع بالمنفعة په صورت كې يواځې له منافعو څخه فائده حاصليږي او مفرد تر مركب مقدم وي.

هبه په لغت كې دې ته وايي چې بل چاته يو شى وركړاى شي چې دهغه لپاره نافع وي كه مال وي كه غير مال لكه: وَهبتُ له مالا ووَهَب الله فلانًا ولَدا صالحًا، او په شريعت كې تمليك بلاعوض ته هبه وايي هبه كوونكي ته واهب او كوم شى چې هبه شوى دى هغه ته موهوب او چاته چې هبه كيږي هغه ته موهوب له وايي او اتهاب په معنى د قبول الهبه سره.

دهبه د صحت لپاره شرطونه په واهب كې دادي چې عاقل، بالغ او مالک وي او په موهوب كې دادي چې موهوب مقبوض غير مشاع وي او مميز غير مشغول وي. دهبه ركن ايجاب او قبول دى. حكم دهبه موهوب له لره د غير لازم ملک ثبوت دى.

(۱)هي تمليك العين بلاعوض (۲) وتصح بايجاب (۳) كوَهبتُ ونَحلتُ وأطعمتُك هذا الطعامَ وجعلتُه لكَ وأعمرتُك هذا الشيء وحملتُك على هذه الدابّة ناويًا به الهبةَ وكسوتُك هذا الثوبَ وداري لك هبةً تسكنها (۴) لاهبةً سُكنى أو سُكنى هبةً (۵) وقبولٍ (۶) وقبضٍ في المجلس بلا اذنه (۷) وبعده به (۸) في محوزٍ مقسومٍ (۹) ومشاعٍ لايقسم (۱۰) لافيما يقسم فان قسمه وسلّمه صحّ.

**ترجمه**: هبه مالک ګرځيدل دى دعين بلاعوض، او صحيح ده په ايجاب سره لكه: ماتاته هبه كړى دى. عطيه مې دركړى دى او دخوراک لپاره مې داطعام تاته دركړى دى ستالپاره مې وګرځاوه داشى او تول عمر مې دركړى دى تاته داشى دركړى دى او سپور مې كړې ته پر دې حيوان باندې. په دې سره يې نيت دهبه كړى وي او وامې غوستله تاته داكپړه او زماسراى تاته هبه دى ته پكې اوسه. نه په دې وينا سره چې داوسيدو لپاره هبه دى يا اوسيدل يې هبه دى او په قبلولو سره او په قبض سره په مجلس كې بلا اجازته او له مجلس وروسته په اجازت سره په مقبوض او مقسوم كې او مشترک چې تقسيميداى نه شي نه په تقسيميدونكي كې بيا كه يې تقسيم كړاو حواله يې كړنو صحيح ده.

**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله دهبه اصطلاحي تعريف داسي كړى دى چې يو څوک ديوشي بلاعوض مالک وګرځوي دې ته هبه ويل كيږي د تمليک العين په قيد سره اعاره له تعريفه خارجه شوه ځكه په هبه كې تمليک منافع دى تمليک عين نه دى او د بلاعوض په قيد سره احترازراغى له تمليک بالعوض څخه ځكه تمليک بالعوض معنى بيع ده. له بلاعوض قيد څخه معلوميږي چې دادهبه بلاعوض تعريف دى د مطلق هبه تعريف نه دى.

(۲) هبه په ايجاب او قبول سره صحيح كيږي ځكه هبه هم دنورو عقودو (چې په ايجاب او قبول سره منعقديږي) په شان يو عقد دى نو په هبه كې هم ايجاب او قبول ضروري دى. او هغه وخت تاميږي چې كله دموهوب له له طرفه په مجلس كې قبض راشي ولې په هبه كې د موهوب لپاره ملک ثابتيږي او دملک د ثبوت لپاره قبض كول ضروري دى.

(۳)په کوموالفاظوسره چې هبه منعقده کیږي هغه دادي :وَهبتُ (ماهبه کړې ده)نحلتُ (ماعطیهٔ ورکړ)په دي کې په لومړي لفظ سره هبه ځکه منعقده کیږي چې هغه دهبه په معنی کې صریح دی اودوهم دهبه په معنی کې مجازًا مستعمل دی همدارنګه په اطعمتک هذاالطعام(ماتاته داخوراک درکړ)سره هم هبه منعقده کیږي ولی دلفظ داطعام چې کله داسي شي ته اضافت وشي چې عین هغه شی خوړل کیږي نوله هغه ځخه تملیک دعین مرادیږي اوکه داطعام اضافت وداسي شي ته وشي چې عین هغه شی نه خوړل کیږي لکه اَطعمتُک هذه الارض (ماتاته داځمکه دخوراک لپاره درکړي ده)نوپه دي صورت کې داطعام معنی عاریت ده.

همدارنګه په جعلتُ هذاالشئ لک (ماداشی ستالپاره ګرځولی دی ) سره هم هبه منعقده کیږي لقوله علیه السلام:فمن اعمر عمری فهی للمعمرله ولورثته من بعده(یعني که چابل چاته عمری ورکړه نوداد معمرله لپاره ده اوله هغه وروسته دهغه دورثه ؤلپاره ده)همدارنګه داالفاظ :حملتک علی هذه الدابة،(ماته پردغه سوارلي باندي سپورکړی یې)که دهبه په نیت سره وونو هبهٔ منعقده کیږي ځرنګه چې داالفاظ په هبه کولو کې صریح نه دي ځکه چې حمل سپرلوته وایې نوداعاریت کیږي خوهبه لره هم محتمل دی نودنیت په وخت پرهبه باندي محمول کیږي.

همدارنګه په کسوتُک هذاالثوب (ماداکپړه تاته دآغوستلولپاره درکړه )سره هم هبه منعقده کیږي ځکه کسوتک لفظ دتملیک لپاره استعمالیږي ویل کیږي :کسی الامیرفلانًاثوبا(امیرفلان ته جامه وروآغوستنه)یعني مالک یې وګرځاوه.

همدارنګه په داری لک هبهٔ (زماسرای ستاداوسیدولپاره دی)سره هم هبه منعقده کیږي ځکه په لفظ دلک کې لام دتملیک لپاره دی اوتسکنهاموهوب له ته مشوره ورکول اوپرمقصودباندي تنبیه کول دی دهبهٔ لپاره تفسیرنه دی داسي شولکه یوڅوک چې ووایې هذاالطعام لک تاکله.

(۴)قوله لاهبهٔ سکنی اوسُکنی هبهٔ ای داری لک هبهٔ سُکنی اوداری لک سکنی هبهٔ،لفظ دهبهٔ دحال یاتمیزواقع کیدوپه وجه منصوب دی ځکه په داری لک،کې ابهام دی مطلب داچې که واهب داسي ووایې :داری لک هبهٔ سُکنی (زماسرای ستاداوسیدولپاره دی)یاداسي ووایې :داری لک سکنی هبهٔ نوپه دي سره هبه نه کیږي ولی لفظ دسکنی دتملیک منافع لپاره محکم دی نوپه دي لفظ سره عاریت راځي نه هبه که لفظ دهبه مقدم کړي اوکه یې مؤخرکړي،په دي باره کې قاعده داده چې که لفظ دایجاب پرتملیک عین دال وونوهبه کیږي اوکه پرتملیک دمنافع دال وونوعاریت دی اوکه یې ددواړواحتمال درلودنوبیانیت معتبریږي اوکه یې دسُکنی لفظ پرعاریهٔ ذکرکړنوپه طریقه اولی سره عاریت کیږي.

(۵)قوله وقبولٍ،په جرسره معطوف دی دمصنف رحمه الله پردي قول :بایجابٍ،تقدیردعبارت داسي دی :وتصح ایضابقبول من الموهوب له (یعني هبه صحیح کیږي دموهوب له په قبلولوسره )ځکه هم دنوروعقودو(هغه چې په ایجاب اوقبول سره منعقدکیږي)په شان یوعقد دی نوپه هبه کې هم ایجاب اوقبول ضروري دی.

(۶)او هبه هغه وخت تاميږي چې كله د موهوب له له طرفه په مجلس كې قبض راشي ولې په هبه كې موهوب له لره ملك ثابتيږي او د ملك دثبوت لپاره قبض كيدل ضروري دی پس كه چيرته موهوب له د عقد هبه په مجلس كې مال موهوب د واهب د حكم بغير قبض كړنو دا استحساناً جائز دی ځكه د واهب له طرفه ايجاب د موهوب له لپاره دلالةً اذن بالقبض دی.

(۷)او كه موهوب له له مجلس هبه څخه د جلاكيدو وروسته موهوب قبض كړنو دا جائز نه دی ځكه د موهوب له قبض كول د قبول په منزله دی او قبول په مجلس عقد پورې خاص دی نو هغه چې په منزله د قبول دی هغه هم. البته كه واهب موهوب له ته له مجلس وروسته د قبض اجازه وركړه نو بيا موهوب له ره قبض كول جائز دی ځكه د واهب اجازه وركول په منزله د عقد جديد دی.

(۸)قوله في محوز مقسوم و مشاع الخ اى وتصح الهبة في محوز مقسوم الخ،يعنې هغه شی له تقسيم وروسته هم قابل انتفاع وي تقسيم وهغه ته ضرر نه رسوي نو د داسي شي هبه كول جائز نه دی مګر دا كه محوز وو (يعنې له ملك د واهب او حقوق د واهب څخه فارغ وو)ځكه پر درختو باندې د لګيدلو ميوو هبه له درختې بغير او پر ځمكه د ولاړ كښت هبه د ځمكې بغير جائز نه ده ولې په دې صورتو كې موهوب شی په دې وجه چې د واهب ملك ورسره متصل دی په كامل ډول نه مقبوض كيږي همدا رنګه د داسي شي مقسوم كيدل هم شرط دی ولې په تقسيميدو سره د هغه كامل قبض ممكن دی نو په ناقص قبض اكتفاء نه كوله كيږي او بلاتقسيم قبض قاصر دی.

(۹)قوله ومشاع لا يقسم اى وتصح الهبة في مشاع لا يقسم،يعنې هغه شی چې نه تقسيميږي چې په تقسيم سره بالكل قابل انتفاع نه پاتيږي (لكه يو مريی يا يو حيوان)يا هغه انتفاع چې تر تقسيم مخكې اخيستله كيده وروسته تر تقسيم نه اخيستله كيږي (لكه كوچنی كوټه يا كوچنی حمام وغيره)نو د هغه مشاعاً يعنې بغير تقسيم هبه جائز ده ولې په داسي شي كې خالص قبض قاصر ممكن دی نو په هغه اكتفاء كيدای شي.

(۱۰)قوله لا فيما قسم اى لا تصح الهبة فيما قسم،يعنې كه يو چا د يو قابل تقسيم مشترك شي يو غير مقسومه ټكړه هبه كړه نو دا هبه نه ده صحيح ځكه په قابل تقسيم شي كې بلاتقسيم قبض قاصر دی چې پر هغه اكتفاء نه كوله كيږي البته كه واهب بلاتقسيمه هبه وكړه بيا يې تقسيم كړ موهوب يې وموهوب له ته وسپاره نو دا جائز دی ځكه د هبه اتمام په قبض سره راځي او د قبض په وخت كې شيوع او شركت نشته نو ګواكې واهب مقسوم غير مشترك شی هبه كړ.

**فائده** :يو روايت دا دی چې د مشاع شي هبه هغه وخت فاسده ده چې اجنبي ته هبه كړای شي او كومه چې شريك جائيداد ته وي هغه ته د غير منقسم شي هبه هم صحيح ده او بعض فقهاؤ دا مختاره كړې هم ده قال في الدر وفي الصيرفية عن العتابي وقيل يجوز لشريك وهو المختار (۴/۴۸۰)

مګر دا قول د ظاهر مذهب خلاف دی ځكه نو بغير مجبوري پر دې قول عمل كول صحيح نه دی او غالبا ننن سبب چې د جائيداد په تقسيم كې ځو مره پريشاني راځي د دا د مجبوري او سختي په حد كې داخل دی نو په دې صورت كې كه په دغه روايت باندې عمل وكړای شي چې د شريك لپاره هبه بغير تقسيم صحيح شي

نو گنجائش شته او له قبض کولو وروسته دي ته مفيد ملک ويل کيږي خوبهترصورت دا دی چې دآئنده لپاره جائيداد تقسيم کړای شي يادي بيع کړای شي او بيع زباني هم کافی ده دتحرير ضرورت نشته .(امداد الاحکام ۳۸/۴:)

مطلب دادی چې شريک ته دغير منقسم شي دهبه کولو لپاره دايوه حيله اختيار يدلای شي چې پرهغه خپله حصه خرڅه کړي او بيا قيمت هغه ته هديه کړي دوهم صورت دادی چې په انتهائی کم قيمت سره يې خرڅ کړي چې ادائيگی يې پر موهوب له باندي سخت نه وي .(جديد معاملات کی شرعی احکام :۷۸/۲)

(۱۱) وان وهب دقيقا في بر لا وان طحن وسلم وكذا الذهن في السمسم والسمن في اللبن (۱۲) وملك بلاقبض جديد لو في يد الموهوب له (۱۳) وهبة الاب لطفله تتم بالعقد (۱۴) وان وهب له اجنبي تتم بقبض وليه (۱۵) وامه واجنبي لو في حجرهما وبقبضه ان عقل (۱۶) ولو وهب اثنان دارا لواحد صح لا عكسه (۱۷) واصح تصدق عشرة وهبتها الفقيرين لا لغنيين.

**ترجمه** :او که يې هبه کړل غنم په اوړو کې نو صحيح نه دی که څه هم ژرنده يې کړي بيا يې تسليم کړي او همدارنګه تيل په لمرمخه کې او غوړي په شيدو کې ،او مالک ګرځي بغير له جديد قبض که هغه د موهوب له په لاس کې وو او دپلار هبه دخپل زوی لپاره تاميږي په عقد سره او که اجنبي هبه وکړه ماشوم ته نو تاميږي دهغه دولي يا دهغه دمور يا اجنبي په قبض کولو سره که دا ماشوم دده دوئ په پرورښت کې وو او دماشوم په قبض کولو سره که هغه هوښيار وو او که هبه کړدو وکسانو يو مکان ديو چا لپاره نو صحيح دی دهغه عکس صحيح نه دی .او صحيح ده دلسو درهمو نو صدقه او هبه کول دوو فقيرانو لره نه دوو مالدارانو لره .

**تشريح** :(۱۱)که چاهغه غنم چې په اوړو کې وو هبه کړل نو داهبه فاسده يعني باطله ده که چيرته واهب داغنم ژرنده کړل موهوب له ته يې حواله کړل نو هم داهبه جائزه نه ده ولی دهبه په وخت کې موهوب شی معدوم دی او معدوم شی محل دملک نه ګرځي نو ځکه داعقد باطل دی ،همدارنګه که يو څوک داسي تيل هبه کړي چې په لمرمخي کې وي نو داهبه فاسده يعني باطله ده که څه هم هغه داتيل له لمرمخې نه راوباسي موهوب له ته يې ورکړي .لماقلنا .همدارنګه که يو څوک داسي کوچي (مکهن)هبه کړي چې په شيدو کې وي نو هم داهبه باطله ده که څه هم مکهن له شيدو څخه رابيل کړي موهوب له ته يې وسپاري لماقلنا.

(۱۲)که موهوب شی دموهوب له په لاس کې وو نو په هبه سره موهوب له دهغه مالک ګرځي که څه نوی قبض ونه کړي ځکه عين موهوب دهغه په لاس کې دی او قبض شرط دی .

(۱۳)که پلار خپل نابالغ ماشوم ته يو شی هبه کړ نو ماشوم په عقد هبه سره دهغه مالک ګرځي که څه هم تجديد قبض ونه کړي ځکه دماشوم پلار دهغه له طرفه قبض کوي او حال داچې دموهوب شی دپلار په قبض کې موجود دی نو بس همدغه قبض دهبه دقبض قائم مقام کيږي جديد قبض ته ضرورت نشته .

(۱۴)که ديتيم لپاره يو شی چا اجنبي (بيګانه) هبه کړ او دهغه ولي موهوب شی قبض کړ(له ولي څخه مراددهغه دپلار وصي يا ديتيم نيکه يا دهغه وصي دی)نو جائز دی ځکه داخلک دپلار قائم مقام دي نو پر يتيم باندي ددوئ ولايت حاصل دی داخلک ديتيم له طرفه هبه قبض کولای شي .

(۱۵) قوله وانه ای ولتم الهبة بقبض امه واجنبی الخ .یعنې که یتیم دمور په پروربنت کې وونو دیتیم لپاره دمور قبض کول جائز دی ولی کوم امور چې دماشوم یا دهغه دمال دحفاظت طرف ته راجع وي په هغو کې یې دمور ولایت حاصل دی او هبه قبض کول دیتیم دحفاظت له بابه دی ولی هغه له مال بغیرژوندنه شي کولای .همدارنګه که یتیم داجنبي په پروربنت او تربیت کې وونو دهغه لپاره داجنبي قبض کول جائز دی ولی اجنبي له په ده باندي ولایت معتبره حاصل دی همدا وجه ده چې یو بل اجنبي داماشوم دده له لاسه نه شي ایستلای نودغه اجنبي دهرداسي امر مالک ګرځي چې دماشوم په حق کې خالص نافع وي او که ماشوم خپله موهوب شی قبض کړنو دا هم جائز دی په دي شرط چې ماشوم عاقل او هوښیار وي ولی ماشوم دخالص نافع امر په باب دبالغ په شان دی .

(۱۶) که دووکسانو سرای (یا هرهغه شی چې قابل تقسیم وي) یوچا ته هبه کړنو دا جائز دی ځکه هغوئ مجموع مکان حواله کړ او موهوب له پر مجموع مکان باندی قبضه وکړه نو دلته شیوع نشته .او که ددي عکس وي یعنې یوه سړي دووکسانو ته یوسرای هبه کړ او دهریوه حصه یې بیان نه کړه نو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد دا هبه جائزه نه ده ځکه دا په دوئ دواړو کې هریوه ته نصف مشاع هبه ده نو دلزوم شیوع په وجه دا هبه ناجائزه ده .دصاحبینو رحمهما الله په نزد دا هبه صحیح ده ځکه دا دوئ دواړو ته په یوه ځل هبه ده په دي وجه ددوئ تملیک یو دی نو شیوع نه راځي .

**فائده** :دامام ابو حنیفة رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار :وهب اثنان دار الواحد صح لعدم الشیوع وبقلبه لا عنده للشیوع فیما یحتمل القسمة اما مالا یحتمله کالبیت فیصح اتفاقا (الدر المختار علی هامش رد المحتار :۴/ ۵۷۳) وقال الشیخ عبد الحکیم الشهید رحمه الله :واختاروا قول الامام ابی حنیفة رحمه الله وعلیه مشی اصحاب الشروح والفتاوی ولم ینقل عن واحد منهم المیل الی قولهما .(هامش الهدایة :۳/ ۲۸۵)

(۱۷) که لس درهمونه دووفقیرانو ته صدقه یا هبه کړي نو دا صحیح دی او که یې دوومالدارانو (غنیانو) ته هبه یا صدقه کړي نو بیا نه دی صحیح ،دا دامام ابوحنیفة رحمه الله مسلک دی. دصاحبینو رحمهما الله په نزد غنیانو له هم صحیح دی ،دامام صاحب رحمه الله دلیل دادی چې هبه او صدقه یوله بل ځخه مجاز دی یعنې چې کله فقیر ته هبه ورکړي هغه مجازاً صدقه ده (ځکه دهبه او صدقه ترمنځ معنوي اتصال دی. هغه دا چې په دواړو کې تملیک بلاعوض دی) او په صدقه کې په تقسیم سره قبض شرط نه دی نو دوو یا دیرو فقیرانو ته دمشترک شي هبه جائزه شوه ځکه دا هبه په معنی دصدقه ده .او که دوو غنیانو ته مشترکه صدقه ورکړای شوه نو دا جائزه نه ده ځکه غني له صدقه مجازاً هبه ده .بیا دصدقه او هبه ترمنځ فرق دادی چې په صدقه سره آلهي رضا مقصود وي او دا دوو فقیرانو ته په ورکولو کې هم یوه ده نو شیوع نه ثابتیږي او غنیانو ته په هبه کولو کې خپله دهغوئ خوشحالول مقصود وي او غنیان دوه دي ځکه شیوع ثابتیږي .

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار :واذا تصدق بعشرة دراهم او وهبها لفقیرین صح لان الهبة للفقیر صدقة والصدقة یراد بها وجه الله تعالی وهو واحد فلا شیوع .لا لغنیین لان الصدقة علی الغنی هبة فلا تصح للشیوع ای لا تملک حتی لو قسمها وسلمها صح (الدر المختار علی هامش رد المحتار :۴/ ۵۷۴)

## باب الرّجوع في الهبة

### داباب دهبه واپس اخيستلو په بيان كښې دى.

دهبه حكم دا دى چې موهوب له لره په موهوب شي كښې غيرلازم مِلك ثابتيږي نو چې كله دموهوب له مِلك غيرلازم دى نو واهب لره رجوع كول او موهوب شى له موهوب له څخه واپس اخيستل جائز كيږي (كه څه هم ديانةً مكروه دى) مګر څه داسي امورهم شته چې دهغو په وجه سره واهب لره رجوع فى الموهوب نه جائزه كيږي دهغو امورو دبيانول ضروري دى په همدي وجه مصنف رحمه الله په دي باب كښې ددغو موانعو بيان كړى دى.

(۱) صحّ الرّجوع فيها (۲) ومنع الرّجوع دَمعُ خزقه فالدّال الزيادة المتصلة كالغرس والبناء والسّمن (۳) والميم موت أحد المتعاقدين (۴) والعين العوض فان قال خذه عوض هبتك او بدلها او بمقابلتها فقبضه الواهب سقط الرّجوع (۵) وصحّ عن اجنبي (۶) وان استحق نصف الهبة رجع بنصف العوض (۷) وبعكسه لا حتّى يرد مابقي ولو عوض النّصف رجع بما لم يعوض (۸) والخاء خروج الهبة من ملك الموهوب له (۹) وبيع نصفها رجع في النّصف كعدم بيع شيء (۱۰) والزّاء الزّوجية (۱۱) فلو وهب ثم نكحها رجع وبالعكس لا (۱۲) والقاف القرابة فلو وهب لذي رحم محرم منه لا يرجع فيها (۱۳) والهاء الهلاك فلو ادعاه صدق.

**ترجمه**: صحيح ده رجوع كول په هبه كښې، او منع كوي دا رجوع (دَمعُ خَزقه) له دال څخه زيادت متصله مراد دى لكه درختي لګول او آبادي كول او دحيوان چاغيدل. او له ميم څخه داحد متعاقدينو مرګ مراد دى او له عين څخه عوض مراد دى كه يې وويل چې دا واخله ستا دهبه عوض ياستا دهبې بدله يادهغې په مقابل كښې نو واهب قبض كړي بيا يې حق درجوع ساقطيږي او صحيح دى عوض اخيستل له اجنبي څخه او كه دبل چا مستحقه شوه نيمه هبه نو رجوع دي وكړي دنصف عوض په باره كښې او ددي په عكس كښې نه ترڅو چې هغه باقي ردنه شي او كه يې عوض وركړ دنصف نو واپس دي واخلي هغه چې عوض يې نه دى وركړى او له خاء څخه دهبه خارج كيدل مراد دى دموهوب له له ملك څخه او په نصف خرڅولو سره دي واپس واخلى باقي نصف لكه دشي نه خرڅيدو په صورت كښې او له زا، څخه زوجيت مراد دى كه يې هبه وكړه بيا يې له هغي سره نكاح وكړه نو رجوع كولاى شي نه دهغه په عكس كښې او له قاف څخه قرابت مراد دى كه يې هبه وكړه خپل ذى رحم محرم ته نو رجوع نه شي كولاى په هغه كښې او له ها، څخه هلاكت

مراد دى كه يې دعوى دهلاكت وكړه نو تصديق يې كيږي.

**تشريح**: (۱) كه واهب يوه اجنبي (بيګانه) ته يو شى هبه كړا و موهوب له موهوب شى قبض هم كړ نو اوس واهب لره په هبه كښې رجوع كول او موهوب شى واپس اخيستل جائزدى په دي شرط چې له راتلونكو موانعو څخه يو مانع موجود نه وي ځكه دخلكو عادت دادى چې له هبې څخه دهغوئ مقصود عوض اخيستل وي نو دعوض دنه ترلاسه كولو په صورت كښې واهب لره دفسخ اختيار شته ځكه په دغه عقد كښې دفسخ كيدو صلاحيت شته او دا حكم قضاءً دى ديانةً رجوع فى الهبه مكروه ده.

(۲): لته مصنف رحمه الله درجوع فی الهبه څه موانع ذکرکوي درجوع فی الهبه اووه (۷)موانع دي مجموعه يې (دَمع خَزقه) (اوښکوزخمي کړ) په دي حروفو سره هم دغواوو موانعوته اشاره ده چې تفصيل يې مصنف رحمه الله خپله بيان کړی دی :

**نمبر ۱**-فرمايې چې په دال سره زيادت متصله ته اشاره ده يعنې که په عين موهوب کې يو داسي زيادت راشي چې په هغه سره دموهوب قيمت لوړشو مثلاً موهوب ځمکه وه موهوب له په هغې کې درختي ولګولې يايې آبادي پکې وکړه ياموهوب يوحيوان وو موهوب له هغه ښه وپالی چاغ يې کړنو په دغه صورت کې واهب رجوع نه شي کولای ځکه که راهب له زيادت بغيررجوع کول غواړي نو داممکنه نه ده اوکه له زيادت سره رجوع کول غواړي نو داهم نه شي کيدلای ځکه دغه زيادت په هبه کې داخل نه دی ځکه په دي کې درجوع حق نه لري۔

**نمبر ۲**-(۳)اوله ميم څخه داحد دمتعاقدينو مرګ ته اشاره ده يعنې که احدله متعاقدينو (واهب ياموهوب له )څخه يو مړشي نوهم په هبه کې رجوع نه شي کيدلای ولی که موهوب له مړشونو ملک دهغه ورثه ؤته منتقل کيږي نو لکه دهغه په ژوندکې چې دانتقال ملک وروسته واهب لره رجوع جائزه نه ده همدارنګه له مړکيدو وروسته هم دانتقال ملک په وجه واهب ته رجوع کول جائزه نه ده اوکه واهب مړشو نوځکه چې دهغه ورثه دعقدهبه په لحاظ اجنبي دي ځکه هغوئ درجوع حق نه لري۔

**نمبر ۳**-(۴)اوپه عين سره دعوض طرف ته اشاره ده يعنې که موهوب له واهب ته دهغه دهبي عوض ورکړورته ويې ويل خُذهَذاعِوَض هِبتک اَوبَدلاعَنهَااَوفِی مُقَابَلتِها(يعنې داواخله ستادهبي عوض دی ياستادهبي بدله ده ياستادهبي په مقابله کې )يايې بل داسي لفظ ووايه چې تصريح پکې وه چې دادکل موهوب عوض دی اوواهب هغه عوض قبض هم کړنو دواهب حق درجوع ساقطيږي ولی دواهب مقصود عوض ووهغه حاصل شو۔

(۵)همدارنګه که يو داجنبي دموهوب له له طرفه تبرعاياپه امردموهوب له واهب ته دهغه دهبي عوض ورکړاو واهب هغه قبض هم کړنو دواهب حق درجوع ساقطيږي ځکه عوض ورکول دحق داسقاط لپاره دی نو دااجنبي له طرفه هم صحيح کيږي لکه دخلع اوصلح عوض چې داجنبي له جانبه صحيح کيږي۔

(۶)که موهوب له واهب ته دموهوب شي عوض ورکړوروسته دنصف موهوب يومستحق پيداشو نو موهوب له خپل نصف عوض له واهب څخه واپس اخيستلای شي ځکه دنصف په عوض په مقابله کې چې کوم نصف موهوب ووهغه موهوب له ته سالم پاتی نه شواوموهوب له عوض ددي لپاره ورکړی وو چې دده ته کل موهوب په لاس ورشي نو چې کله بعض موهوب فوت شونو دهغه په اندازه عوض دي واپس واخلي۔

(۷)قوله وبعکسه لاحتی يرد مابقی ای ان استحق نصف العوض لايرجع الواهب فی الهبة بشیء حتی يرد الواهب مابقی من العوض اودادي په عکس کې نه يعنې که دموهوب له له طرفه داداکړای شوي عوض نصف يوبل څوک مستحق پيداشونو واهب دانه شي کولای چې خپل نصف موهوب واپس واخلي ځکه څومره عوض چې باقي دی هغه ابتداءً دکل موهوب عوض کيدای شي اوکوم چې ابتداءً دکل عوض کيدای شي هغه بقاءً هم دکل عوض

كيداي شي .البته كه واهب دباقي مانده عوض موهوب له ته واپس وركړنو داجائزه ده اوبيادې خپل كل موهوب له موهوب له څخه واپس اخيستلاى شي ځكه واهب خپل حق درجوع په دي وجه ساقط كړچې پوره عوض ده ته سالم ورپاتې شي او چې كله پوره عوض سالم پاتې نه شونو ده لره حق شته چې دباقي مانده عوض واپس كړي او په هبه كې رجوع وكړي ولې اوس داهبه بلاعوض ده چې واهب حق دزجوع لري او كه موهوب له دنصف هبه عوض وركړى ووبيا واهب هغه نصف واپس اخيستلاى شي دكوم چې موهوب له عوض نه دى وركړى ځكه دانصف موهوب بلاعوض دى چې په دي كې واهب حق درجوع لري.

**نمبر ۴**-(۸) اوپه خاء سره دخروج طرف ته اشاره ده يعني كه موهوب دموهوب له له ملك څخه خارج شي (خرڅ يې كړي يايې بل چاته هبه كړي) نوبيا واهب رجوع نه شي كولاى ځكه له مِلك څخه پروتلوپربل جاپه خرڅولوا وهبه كولوباندې خو واهب موهوب له مسلط كړى دى اوس واهب دهغه دماتوولو حق نه لري.

(۹) او كه موهوب له نصف موهوب خرڅ كړنو واهب په باقي مانده نصف كې رجوع كولاى شي ځكه رجوع بقدر ممتنع مانع ده كوم حصه چې دموهوب له له ملك څخه نه ده وتلې په هغه كې رجوع كول صحيح دي مثلا واهب موهوب له ته ځمكه هبه كړه موهوب له نيمه ځمكه خرڅه كړه نوپه باقي نصف كې واهب رجوع كولاى شي په مذكورنصف كې رجوع كول داسې دى لكه موهوب له چې له موهوبه ځمكې نه هيڅ نه وي خرڅه كړې نو واهب خالص دنيمې ځمكې واپس اخيستو اختيارلري داچې په دې صورت كې دټولې موهوبه ځمكې واپس اخيستلو اختيارلري نودنصف دواپس اخيستلو اختيار په طريقه اولى سره لري.

(۱۰) اوپه زاء سره دزوجيت طرف ته اشاره ده يعني كه احدله زوجينو څخه په حالت دزوجيت كې بل ته يوشى هبه كړي نوهم واهب حق درجوع نه لري ځكه په دي كې هم دصورت قرابت په شان صله رحمي مقصودده چې هغه حاصله شوه ځكه اوس واهب دموهوب شي واپس اخيستلو حق نه لري.

الالغاز: اى اب وهب لابنه وله الرجوع؟

فقل: اذا كان الابن مملوكا لاجنبي وجهه انه اذا كان مملوكا تكون الهبة لمالكه لان المملوك لايملك. (الاشباه والنظائر)

(۱۱) كه چاپردۍ ښځې ته يوشى هبه كړبيايې له هغې سره نكاح وكړه نورجوع كولاى شي ځكه معتبروخت دهبه دى اودهبې په وخت كې زوجيت قائم نه وو او واهب ته عوض دهبې نه دى وركول شوى ځكه حق درجوع لري. او كه ددي برعكس وشويعنې خپلې ښځې ته يې يوشى هبه كړبيايې هغې ته طلاق بائن وركړنورجوع نه شي كولاى ځكه معتبروخت دهبې دى اوپه وخت دهبه كې نكاح قائمه ده نوپه دي كې هم په صورت دقرابت په شان صله رحمي مقصوددى چې هغه مقصود حاصل شوځكه واهب رجوع نه شي كولاى.

(۱۲) اوپه قاف سره دقرابت طرف ته اشاره ده نوكه يوچاخپل ذى رحم محرم ته يوشى هبه كړبيا واهب درجوع حق نه لري ځكه په دي هبه سره مقصودصله رحمي وه چې هغه حاصله شوه ځكه په موهوب كې حق درجوع نه لري.

(۱۳) اوپه هاء سره هلاكت طرف ته اشاره ده يعني كه موهوب شى هلاک شونو هم واهب رجوع نه شي كولاى ځكه بعينه هلاک شده واپس كول ممكن نه دى اودمثل واپس كول ځكه لازم نه دى چې موهوب شى

دهغه پر ذمه مضمون نه وو که موهوب له دموهوب شی دهلاکت دعوی وکړه نو دهغه تصدیق کول کیږي ونی دی واهب ته دواپس کولو له وجوب څخه منکر دی او قول دمنکر معتبر دی .

(۱۴)وإنما يصح الرجوع بتراضيهما أو بحكم الحاكم (۱۵)فإن تلفت الموهوبة واستحقها مستحق وضمن الموهوب له لم يرجع على الواهب بما ضمن (۱۶)والهبة بشرط العوض هبة ابتداء فيشترط التقابض في العوضين وتبطل بالشيوع (۱۷)بيع انتهاء فترد بالعيب وخيار الرؤية وتؤخذ بالشفعة

**ترجمه** :اوصحیح ده رجوع ددواړو په رضامندي سره یادحاکم په فیصله سره که هلاک شو موهوب شی یادهغه مستحق پیدا شو او ضمان یې واخیست له موهوب له څخه نو بیارجوع نه شي کولای پر واهب باندي دهغه په باره کې چې ضمان یې ورکړی دی او هبه په شرط دعوض هبه وي ابتداءً نو شرط دی قبض کول ددواړو عوضینو او باطلیږي په شیوع سره او بیع ده انتهاءً نو واپس کیدای شي دعیب او خیار رؤیة په وجه سره او اخیستل کیدای شي په حق شفعه سره .

**تشریح** :(۱۴)داخبره مخکي معلومه شوې ده چې واهب ته حق درجوع حاصل دی مګر درجوع کولو دوه صورتونه دي :**نمبر ۱**-داچې واهب او موهوب له دموهوب پر واپس کولو باندي سره راضي شي . **نمبر ۲**-واهب دحاکم په محکمه کې عارضه وکړي چې زما موهوب له موهوب له څخه واپس را واخلئ .نو که واهب دقاضي دقضاء بغیر یادخپل منځي رضامندي بغیر موهوب شی واپس واخیست داجائز نه دی ځکه په هبه سره چې دو .. نرم مقصود دی د .. نه په حاصلید و او نه حاصلیدو کې خفاء ده ولی که چیرته دواهب مقصود ثواب ووهغه خو حاصل شوا وکه یې مقصود عوض لاس ته راوړل ووهغه نه دی حاصل شوی نو په دي کې تردد پیدا شو نو دفیصلي لپاره دقاضي قضاء یادطرفینو رضامندي ضروري ده .

(۱۵)که مال موهوب دموهوب له څخه ضائع شي بیادهغه تلف شده موهوب یو بل څوک خپل استحقاق ثابت کړي له موهوب له څخه ضمان واخلي نو موهوب له له واهب څخه هیڅ شی نه شي اخیستلای ځکه هبه عقد تبرع ده نو دموهوب له لپاره دموهوب شي دسلامتي حق نشته .

(۱۶)که واهب په شرط دمعین عوض سره هبه وکړه نو داابتداءً هبه ده په دي کې دهبې شرائط معتبریږي نو دعوضینو قبض په مجلس عقد کې ضروري دی ځکه داابتداءً په اعتبار دتسمیه هبه ده .او په شیوع سره باطلیږي ځکه هبة المشاع صحیح نه ده کما مر .

(۱۷)قوله بیع انتهاء ای الهبة بشرط العوض بیع انتهاء،یعني په هبه په شرط دعوض کې چې دعوضینو قبض راشي نو داعقد صحیح دی او س انتهاءً دادبیع په حکم کې ده ځکه په دي کې له جانبینو څخه عوض راغی نو دعیب او خیار رؤیة په وجه ردیدای شي اوکه احدله عوضینو ځمکه وه نو شفیع هغه په خیار شفعه سره اخیستلای شي ځکه دعقد بیع په وجه په دي کې دشفیع لپاره حق شفعه هم ثابت دی .

## فصل

دا فصل دا ستثناء، تعليق وغيره په بيان کې دی، د مصنفينو رحمهم الله داعادت دی چې د کتاب په آخر کې مسائل شتّی بيانوي په دی فصل کې مصنف رحمه الله دا ډول متفرق قسم مسائلی ذکر کړي دي :

(۱) وَمَنْ وَهَبَ اَمَةً اِلَّا حَمْلَهَا (۲) اَوْ عَلَى اَنْ يَرُدَّهَا عَلَيْهِ اَوْ يُعْتِقَهَا اَوْ يَسْتَوْلِدَهَا اَوْ دَارًا عَلَى اَنْ يَرُدَّ عَلَيْهِ شَيْئًا مِنْهَا اَوْ يُعَوِّضَهُ شَيْئًا مِنْهَا صَحَّتِ الْهِبَةُ وَبَطَلَ الْاِسْتِثْنَاءُ وَالشَّرْطُ (۳) وَمَنْ قَالَ لِمَدْيُوْنِهِ اِذَا جَاءَ غَدٌ فَهُوَ لَكَ اَوْ اَنْتَ بَرِيٌّ مِنْهُ اَوْ اِنْ اَدَّيْتَ اِلَيَّ نِصْفَهُ فَلَكَ نِصْفُهُ اَوْ اَنْتَ بَرِيٌّ مِنَ النِّصْفِ الْبَاقِيْ فَهُوَ بَاطِلٌ

**ترجمه**: که چا منځه هبه کړه مګر نه دهغې حمل، یاپه دي شرط چې هغه یې بیرته واپس کوي ده ته یایې آزادوي یایې ام ولده ګرځوي یایې سرای په دي شرط هبه کړچې له هغه ځخه به ده ته یو څه حصه یادهغې عوض ورکوي نو هبه صحيح ده او باطلېږي استثناء او شرط او که چا و ويل خپل مقروض ته چې کله سبا شي نو هغه قرض ستا دی یاته بري یې له هغه ځخه یایې و ويل چې که تا ادا کړ ماته نصف قرض نو باقی نصف ستادی یاته بري یې له باقی نصف ځخه نو دا باطل دی .

**تشریح**: (۱) که واهب منځه هبه کړه مګر دهغې حمل یې مستثنی کړیه دي ډول چې له منځې سوا خالص حمل هبه کړي نو هبه په منځه او حمل دواړو کې صحيح کيږي او استثناء باطلیږي ځکه حمل یو وصف او تابع دی لکه اطراف د منځې (یعنې لاسونه پښې وغیره) نو چې دهغه په مستقل ډول هبه صحيح نه دی نو استثناء یې هم صحيح نه ده نو دواهب حمل مستثنی کول شرط فاسد دی او هبه په شرط فاسد سره نه باطلیږي .

(۲) همدارنګه که یې منځه په دي شرط سره هبه کړه چې موهوب له به دا منځه هغه ته واپس ورکوي یاپه دي شرط چې موهوب له به هغه آزادوي یاداچې موهوب له به یې ام ولده ګرځوي یایې هغه ته یو سرای هبه کړيه دي شرط چې موهوب له به له دغه سرای ځخه څه حصه واهب ته واپس ورکوي یا به دهغه څه عوض ورکوي نو په دغو ټولو صورتونو کې هبه جائزه ده یعنې منځه او سرای دموهوب له ملک ګرځي او شرطونه باطل دي ځکه دا ډول شرطونه دمقتضاء عقد مخالف دي نو په دي سره هبه نه باطلیږی بلکې خپله شرطونه فاسديږي .

(۳) که دیو چا زر درهمونه پر چا باندي وو بیا قرض غوښتونکي هغه ته وويل چې کله سبا ورځ شي نو دا درهمونه ستادي یایې ورته وويل چې ته له دغو درهمونو ځخه بري یې یایې ورته وويل چې کله تا ماته نصف یعنې پنځه سوه درهمونه ادا کړل نو باقی نصف ستادي، یاته له باقی نصف ځخه بري یې نو دغه تمليک یا برائت باطل دی ځکه دغه هبه یا ابراء بالفعل نه ده بلکې پر شرط معلق ده چې سبا ورځ راشي یاداچې ته ماته نصف اداکړي . او په شرط پوري معلق کول یوازې په داسي معاملاتو کې جائزدی چې داسقاطاتوله قبيل ځخه وي لکه طلاق او عتاق ځکه په طلاق کې فقط داوی چې دښځې له ذمي ځخه خپل ملکيت دنکاح ساقط کړي او په عتاق کې دمملوک له غاړي خپل ملکيت ساقط کړي نو په دي شيانو کې تعليق بالشرط صحيح دی مثلاً داسي ویل چې که تا فلان کار وکړنو ته طلاقه یې یا ته آزاد یې دغه تعليق صحيح دی مګر هغه معاملات چې محضاً اسقاط نه وي بلکې محض تمليک وي یامن وجه تمليک من وجه اسقاط وي په هغو کې تعليق

بالشرط جائزنه دی او دا ثابته خبره ده چې له دین څخه بري کول محض اسقاط نه دی بلکې من وجه تملیک دی نو له دین څخه بري کول په شرط پورې معلق کول صحیح نه دی نو مذکوره ابراء هم باطله ده.

(۴) وصح العمری للمعمر له حال حیوته ولورثته بعده وهی ان یجعل داره له عمره فاذا مات ترد علیه (۵) لا الرقبی ای ان مت قبلک فهو لک (۶) والصدقة کالهبة لاتصح الا بالقبض ولا فی مشاع یحتمل القسمة ولا رجوع فیها.

**ترجمه**: او صحیح ده عمری د معمر له لپاره د هغه په ژوند کې او د هغه د ورثه ؤ لپاره له هغه وروسته او هغه داده چې وګرځوي خپل سرای د معمر له لپاره د هغه تر ژوند پورې بیا چې کله هغه مړ شي نو واپس کیږي پر مالک باندې، نه رقبی یعني که زه تر تا مخکې مړ شوم نو هغه ستاده، او صدقه د هبې په شان ده چې صحیح نه ده مګر په قبض سره او نه صحیح کیږي په مشاع کې چې قابل د تقسیم وي او نشته رجوع په هغه کې.

**تشریح**: (۴) عمرَی داده چې یو سړی بل ته وو ایي چې زه دا زما سرای تا ته در کوم ستا تر ژوند پورې او چې کله ته مړ شې نو ده یې واپس اخلم نو د عمرَی دا صورت جائز دی د امکان د معمر له ده تر ژونده پورې کیږي د هغه له مرګ وروسته د هغه ورثه ؤ ته ورکول کیږي د معمر له مالک ګرځیدل صحیح دی او د معمِر دا شرط چې کله ته مړ شې نو زه خپل سرای بیرته واپس اخلم باطل دی ځکه عمرَی هم په حقیقت کې هبه ده او هبه په شرط فاسد سره نه باطلیږي.

(۵) قوله لا الرقبی ای لاتصح الرقبی، یعني رقبَی صحیح نه ده، رقبیَ داده چې د سرای مالک بل چا ته وو ایي داري لک رَقبَی. یعني که زه تر تا مخکې مړ شوم نو دا سرای ستا دی او که ته تر ما مخکې مړ شوې نو زما دی. د طرفینو رحمهما الله په نزد رقبَی باطله ده لان النبی ﷺ اجاز العمری ورد الرقبی (یعني نبي کریم ﷺ عمرَی جائزه بللې او رقبی یې رده کړې ده) همدارنګه په دې کې یو د بل مرګ ته منتظروي نو په دې کې د تملیک تعلیق بالخطر دی چې جائز نه دی نو چې کله رقبَی باطله شوه نو د رقبَی په ډول ورکول شوی سرای عاریت کیږي. د امام ابویوسف رحمه الله په نزد رقبَی جائزه ده ځکه په داری لک سره تملیک حاصل شو بیا د واهب رقبی ویل شرط فاسد دی او هبه په شرط فاسد سره نه باطلیږي خپله هغه شرط باطلیږي.

**فائده**: د طرفینو رحمهما الله قول راجح دی لمافی الدر المختار: لاتجوز الرقبی لانها تعلیق بالخطر (الدر المختار علی هامش رد المحتار: ۴/ ۴۸۰) حو شیخ عبدالحکیم شاولیکوټی شهید رحمه الله د هدایه پر هامش د مذکوری مسئلی تفصیل داسې بیان کړی دی: وعلم انه اختلف الائمة فی حکم الرقبی وتفسیرها اختلافا وکذا وقع الخلاف بینهما وبین ابی یوسف رحمه الله لکن منشا الاختلاف بینهم هو الاختلاف فی تفسیرها فان کان کما قال ابویوسف رحمه الله فالصحیح والمختار قوله وان کان کما قالا رحمهما الله فالقول قولهما فعلی المفتی ان یکون بصیرا وعارفا باصطلاح الناس فی الفاظهم ومحاوراتهم فیفتی بما هو المراد عندهم. (هامش الهدایة: ۳/ ۲۹۰)

(۶) صدقه د هبې په شان ده ځکه د هبې غوندې صدقه هم یو تبرع او احسان دی نو د هبې په شان بغیر د قبض کولو نه صحیح کیږي او په داسې مشترک شي کې چې قابل د تقسیم وي صدقه کول هم مشاع نه جائز کیږي دلیل یې هغه دی چې په هبه مشاع کې تیر شوی دی البته د هبې او صدقه تر منځ فرق دادی چې په صدقه کې د متصدق علیه له قبض وروسته رجوع جائزه نه ده ځکه په صدقه کې مقصود ثواب دی چې هغه حاصل شوی دی او په هبه کې د موهوب له له قبض وروسته د واهب رجوع کول جائزه ده لمامر.

## كتاب الاجارة

### داكتاب داجارې په بيان كې دى

اجاره لغةً داُجرت نوم دى .اجرت داجير مزدوري ته وايې او اجرهغه دى چې استحقاق يې ديوه نيک كارپه كولو سره وي ،څكه دهغه په ذريعه دعا كول كيږي چې ويل كيږي :آجرک الله واعظم الله آجرک .او داهم ممكن دى چې اجاره مصدر شي څكه اجاره په لغت كې دمنافعو خرڅولو ته وايې .

امام قدورى رحمه الله داجارې شرعى تعريف داسې كړى دى :الاجارة عقد على المنافع بعوضٍ ،يعنې اجاره داسې عقد دى چې پر منافعو باندې په عوض واقع كيږي ،او څينو داسې تعريف كړى دى :الاجارة عقد على منفعة معلومة بعوضٍ معلومٍ الى مدة معلومة ) يعنې معلوم منفعت دمعلوم عوض په بدله كې ترمعلومې مودې پورې خرڅولو ته اجاره ويل كيږي .

په كرايه وركړل شوي شي ته مأجور ،مؤجَر او مستاجَر (بفتح الجيم) وايې او (ماجور) چې په كرايه وركوي هغه ته آجر ،مُكارى (ضم الميم) او موجِر (بكسر الجيم) وايې او ماجور چې په كرايه اخلې هغه ته مستاجر (بكسر الجيم )ويل كيږي او اجير مزدور ته ويل كيږي .

**فائده** :داجارې دصحت لپاره لاندې شرطونه دي :(١)عاقدين به اهليت داجارې لري يعنې عاقدين به عاقل ،بالغ او هوښيار وي (٢)عقدبه دعاقدينو په رضامندۍ سره وي (٣)منفعت به معلوم وي يعنې دابه معلوم وي چې دكوم كارلپاره كوم شى دڅومره مودې لپاره په كرايه اخيستى دى چې بيا وروسته جنجال پيدا نه شي مثلاً كه يو مكان په كرايه وركړي نو لومړى به مكان وويني او داخبره به سره طى كړي چې دڅومره وخت لپاره مستاجرله دې څخه فائده اخلي (۴)داجرت مقدار به معلوم وي چې وروسته بيا جګړه نه وي (۵)معقود عليه به قابل دانتفاع وي غصب كړاى شوى مكان په كرايه وركول جائزنه دى ولى كرايه دارلره له هغه څخه فائده اخيستل ناممكنه ده (۶)معقود عليه كاربه داجير پرذمه فرض نه وي نو څكه دلمانځه كولو او روژه نيولو لپاره څوک په مزدوري نيول ناجائزدى او پر هغه اجرت حاصلول حرام دى .

له ماقبل سره يې مناسبت دادى چې په اجاره او هبه دواړو كې دتمليک معنى پيدا كيږي البته په هبه كې تمليک عين او په اجاره كې تمليک منافع دى مصنف رحمه الله هبه تر اجاره څكه مخكې ذكر كړه چې عين اقوى او مقدم وي ترمنفعت ،همدارنګه په هبه كې عدم عوض وي او په اجاره كې عوض وي او په ممكناتو كې عدم تر وجود مقدم وي .

( ١ )هي بيع منفعة معلومة باجرٍ معلومٍ ( ٢ )و ماصح ثمناً صح اجرة ( ٣ )و المنفعة تعلم ببيان المدة كالسكنى و الزراعة فتصح على مدة معلومة اى مدة كانت ( ۴ )ولم يزد في الاوقاف على ثلث سنين ( ۵ )او بالتسمية كالاستيجار على صبغ الثوب و خياطته ( ٦ )او بالاشارة كالاستيجار على نقل هذا الطعام الى كذا.

**توجمه** :هغه خرڅول د معلومې نفع د معلوم اجرت په عوض او كوم شى چې ثمن كيدل يې صحيح وي دهغه اجرت كيدل صحيح دى او نفع معلوميږي دمودې په بيانولو سره لكه كښت كارى او او سيدل نو صحيح دى په

معلومه موده سره هره موده چې وي او نه دي زياتيږي موده په او قافو کې پر دريو کالونو باندي يا د عمل په نامه يا د لو سره لکه کپړه په اجرت رنګول او ګنډول يا په اشاره کولو سره لکه په اجرت وړل د اغله تر فلان ځای پوري.

**تشریح** :(۱)مصنف رحمه الله داجارې اصطلاحي تعريف داسې کړی دی چې مثلاً ديو سرای یا سواري وغيره معلوم منفعت د معلوم اجرة په عوض خرڅولو ته په شريعت کې اجاره ويل کيږي.

**فائده** :دقياس تقاضا داده چې اجاره بايد جائزه نه وي ځکه په اجاره کې معقود عليه (يعني منفعت) معدوم وي ولی منافع وروسته پيدا کيږي او د معدوم بيع ناجائزه ده مګر د کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ دواړو ځخه داجارې صحت معلوميږي :قال الله تعالى:حكاية عن شعيب عليه السلام:(إني أريد أن أنكحك إحدى ابنتي هاتين على أن تأجرني ثماني حجج)وقال عليه السلام:من استاجر اجيرا فليعلمه اجره.

(۲)کوم شی چې په عقد کې ثمن کيدای شي هغه په عقد اجاره کې اجرة کيدای شي ځکه اجرة دمنفعت ثمن دی نو هغه پر ثمن مبيع باندي قياسيږي مګر دا ضروري نه ده چې کوم شی دمبيع ثمن نه شي کيدای هغه په اعقد اجاره کې هم اجرة نه شي کيدای بلکې داکيدای شي چې يو شی دمبيع ثمن نه شي کيدای مګر ثمن منفعت کيدای شي لکه په سرای کې اوسيدل په اجرت سره يا حيوان دباروړلو لپاره د کرايه کول.

(۳)داجارې دصحت لپاره دمنفعت معلومول ضروري دی يا دمنفعت معلومولو درې طريقې دي :کله داجارې دمودې په بيانولو سره دمنفعت مقدار معلوميږي مثلاً سرای و نه دکرايې لپاره يا ځمکې دکښت لپاره تر معلومې مودې پوري په اجاره ورکول چې په دې سره منفعت معلوميږي نو دا اجاره صحيح ده که موده کمه وي او که زياته وي البته دوقف په شيانو کې اجاره تر دريو کالو زياته جائزه نه ده چې يا مستاجر په هغه دملکيت دعوه و نه کړي هو المختار للفتوی .(مجمع الانهر:۳/ ۵۱۴)

(۴)قوله او بالتسمية اى وتعلم المنفعة بالتسمية ،يعني دمنفعت معلومولو دوهمه طريقه داده چې منفعت کله دمعقود عليه عمل په بيانولو او نوم اخيستلو سره معلوميږي مثلاً يو چا بل چاته کپړه درنګولو يا ګنډلو لپاره په اجرة ورکړه نو چې کله دکپړې او دهغې درنګولو درنګ او په ګنډلو کې دګنډلو قسم بيان کړي منفعت معلوميږي يا حيوان په اجرة بو ځي تر معلوم ځای پوري معلوم مقدار بار پر بار وي يا تر معلوم ځای پوري پر هغه باندي سوريږي نو هم منفعت معلوميږی ځکه دا اجاره صحيح ده.

(۵)قوله او بالاشارة اى وتعلم المنفعة بالاشارة ،يعني دمنفعت دمعلومولو دريمه طريقه داده چې منفعت کله دمعقود عليه په تعين او دهغه طرفته په اشاره کولو سره معلوميږي مثلاً يو سړی مزدور کړي چې هغه داغله ترفلاني ځای پوري ورسوي نو غلې ته په اشاره کولو سره او دمسافت په بيانولو سره منفعت معلوميږي ځکه دا اجاره صحيح ده.

(۱)والأجرة لاتملك بالعقد بل بالتعجيل او بشرطه او بالاستيفاء او بالتمكن منه (۷)فان غصب منه سقط الأجرة (۸)وللرب الدار والأرض طلب الاجر كل يوم (۹)وللجمال كل مرحلة (۱۰)وللقصار والخياط بعد الفراغ من عمله (۱۱)وللخباز بعد اخراج الخبز من التنور (۱۲)فان أخرجه فاحترق له الاجر ولاضمان (۱۳)وللطباخ بعد الغرف (۱۴)وللبان بعد الاقامة

**ترجمه**: او اجرة مملوک کیږي نه په عقد سره بلکې په پیشګي ورکولو سره یا د پیشګي په شرطولو سره یا په پوره نفع حاصلولو سره یا پر نفع د قادر کیدو سره بیا که غصب شوله ده څخه نو اجرة ساطیږي او صاحب د سراۍ او خاوند د ځمکې لره د اجرت طلبولو حق شته هره ورځ او د اوښ مالک لره پر هر منزل باندي او درزي او دوبي لره د هغوئ له عمل څخه د فارغ کیدو وروسته او نانوائي ته له تنور څخه د ډوډۍ راویستلو وروسته بیا که د ډوډۍ راویسته هغه وسوځله نو ده لره اجرت شته او ضمان نشته او اشپز لره له کتغ راویستلو وروسته او خښتي جوړونکي لره د خښتو دریدلو وروسته .

**تشریح** :(۶)موجریوائې دعقداجاره په انعقادسره داجرت مالک نه کیږي ځکه دعقدحکم دمنفعت له ظاهرکیدو وروسته وي اوپه اجاره کې دعقدپه وخت منفعت موجودنه وي نوپه نفس عقدسره موجر داجرت مالک نه ګرځي بلکې دڅلوروشیانوڅخه دیوه په وجودسره موجرداجرت مستحق ګرځي : **نمبر-۱**چې مستاجربغیرشرط خپله اجرت پیشګي ورکړي مثلایوه کمپنۍ خپله ملازمینوته دمیاشتي په شروع کې پیشګي تنخواه ورکړي نوملازم داجرت مالک ګرځي په دي صورت کې داجرت دمالک کیدو معنی داده چې مستاجرله هغه څخه اجرت واپس نه شي اخیستلای **نمبر-۲** دعقدپه وخت آجر داجرت دپیشګي اخیستل شرط کړي نودشرط په وجه داجرت تسلیمول واجبیږي ،هسي خودبرابري لپاره حکم دادی چې کله معقودعلیه حاصل کړي نواجرت به ورکوي خوچې کله هغه پیشګي ورکړي یایې دپیشګي ورکول شرط کړنومساوات چې دمستاجرحق ووهغه خپله باطل کړنودمعقودعلیه ترحاصلولومخکي موجرداجرت مالک ګرځي . **نمبر-۳** مستاجرچې معقودعلیه یعنې منفعت حاصل کړي نوهم موجرداجرت مستحق ګرځي ځکه داعقدمعاوضه دی نوچې کله مستاجرمنفعت حاصل کړي بدل یې واجبیږي .**نمبر-۴** مستاجرچې کله دمنفعت پرحاصلولوقادرشي نوهم موجرداجرت مستحق کیږي ځکه پرشي باندي قدرت پیداکول بعینه دهغه شي قائم مقام کیږي نوګواکي مستاجرپوره نفع حاصله کړه .

(۷)بیاکه په اجرت اخیستل شوی شی له مستاجرڅخه غصب کړای شي نوکه داجارې په موده کې دمنفعت ترحصول مخکي غصب کړای شی کل اجرت ساقطیږي اوکه په بعض موده کې غصب کړای شي نوبعض اجرت ساقطیږي ځکه دمستاجردحصول منفعت تمکن ختم شو.

(۸)دځمکې اومکان خاوندلره هره ورځ داجرت دطلبولو حق شته یعنې چاچې مکان کرایه کړی وي یایې ځمکه کرایه کړې وي نوآجرلره هره ورځ داجرت دطلبولو حق شته په دي شرط چې داجرت داستحقاق وخت یې نه وي بیان کړی ولی هره ورځ اوسیدل منفعت مقصوده دی ،البته که مستاجردعقدپه وخت داجرت داستحقاق کوم معلوم وخت متعیّن کړی وومثلاچې سرای یې کرایه کاوه ورته ویلي یې ووچې داشرط دی چې ددوومیاشتوپه پوره کیدوسره به اجرت درکوم بیاآجریوائې هغه وخت (یعنې دوې میاشتې وروسته )داجرت مطالبه کولای شي ترهغه مخکي یې نه شي کولای .

(۹)قوله وللجمال كل مرحلة اى ولصاحب الحمل ان يطالب الاجرة كل مرحلة، يعني كه چامثلاً وبنې ترمكې مكرمې پوري كرايه كړې وونو داوبنې خاوندلره پرهرمزله باندې داجرت دطلبولو حق شته ځكه هرمزل طي كول منفعت مقصوده دى ،امام ابوحنيفة رحمه الله مخكې په دې قائل ووچې دمودې ترتيريدو اودسفرترپاى ته رسيدومخكې آجرداجرت دمطالبې حقدارنه دى بيايې مذكورقول ته رجوع وكړه .

**فائده** :نن سبادسفرلپاره اورګاډي اوبسونه استعماليږي اوعام معمول دادى چې په دې كې ترسفركولو مخكې اجرت دټكټ په شكل وصوليږي ددغه ټكټ حيثيت داجاره وثيقه دى داګوياددې خبرې سند دى چې ماكرايه اداكړه ځكه نومالره په دې كې دسفركولوحق شته دعامې اجارې اودغې معاملې ترمنځ يواځې دومره فرق دى چې دلته اجرت يعني كرايه مخكې نه وصول كيږي چې په نظم كې سهولت وي .

په بس اواورګاډي كې اصل آجردبس مالك اوحكومت وي مسافرين دكرايه دارانواومستاجرينو حيثيت لري ټكټ وركوونكې دحكومت وكيل وي چې كله داخبره معلومه شوه چې حكومت دبغيرټكټ دسفركولواجازه نه ده وركړې نواوس په هيڅ صورت كې بغيرټكټ سفركول صحيح نه دى كه څه هم داورګاډي اوبس ذمه واران بغيرټكټ دتلواجازه وركړې له ټكټ بغيرسفر،سفرمعصيت دى اودغاصب حيثيت لري . (ماخوذازجديدفقهى مسائل :۱/ ۲۷۳)

(۱۰)قوله وللقصاروالخياط بعدالفراغ عن عمله اى وللقصاروالخياط ان يطالب الاجرة بعدالفراغ عن عمله ،يعني دوبي اودرزي چې كله دعمل څخه فارغ شي بياداجرت دطلبولو حق لري ترڅوچې دمعقودعليه عمل څخه فارغ نه شي داجرت مستحق نه ګرځي ځكه ددوبي اودرزي بعض عمل دمستاجرلپاره دانتفاع قابل نه دى ځكه نوبعض عمل داجرت موجب نه دى مګرداكه په وخت دعقدكې يې داشرط كړى وي چې اجرت به دعمل ترتكميل كيدومخكې راكوي نودشرط په وجه بيادى دعمل ترتكميل مخكې داجرت مستحق ګرځي .

(۱۱)قوله وللخباز بعداخراج الخبزمن التنوراى وللخبازان يطالب الاجرة بعداخراج الخبزمن التنور ،يعني كه يوچانانواى په مزدوري راووست چې دمستاجرپه كوركې كبنيني اوديوه درهم په عوض څودوډۍ پخې كړي نوچې ترڅوپوري يې ډوډۍ له تنورڅخه راويستلې نه وي داجرت مستحق نه ګرځي ځكه ددې عمل تكميل هغه وخت راځي چې ډوډۍ له تنورڅخه راوباسي اودعمل ترتكميل مخكې داجرت مستحق نه ګرځي كمامر.

(۱۲)اوكه نانواى له تنورڅخه ډوډۍ راوايستلې بياهغه ډوډۍ دده له عمل بغيروسوځل شوې نودى دخپل اجرت مستحق ګرځي ځكه ده دمستاجرپه كوركې كاركړى دى هغه معقودعليه كار مستاجرته سپارل شوى دى اونانواى ددې تاوان هم نه ضامن كيږي ولې دده له طرفه هيڅ جرم نه دى راغلى ډوډۍ دده له فعل بغيروسوځل شوې .

(۱۳)قوله وللطباخ بعدالغرف اى للطباخ ان يطالب الاجرة بعدالغرف ،يعني كه يوچااشپزپه مزدوري راووست چې دواده ديګونه پاخه كړي نوله ديګ څخه كتغ راويستل پليټونه ډكول داشپزذمه ده ځكه ددې عمل تكميل دپليټونوپه ډكوالي سره راځي اوداخبره مخكې تيره شوه چې دعمل ترتكميل مخكې موجرداجرت مستحق نه ګرځي .

(۱۴)قوله واللبان بعدالاقامة ای وللذی يتخذاللبن من الطين ان يطالب الاجرة بعدمااقام اللبن.يعني كه يو چا خښتې جوړونکی دخښتو ایستلو لپاره په مزدوري بوت نو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد چې کله خښتې وچې شي ويې دروي بيا اجير داجرت مستحق ګرځي ځکه داعمل دخښتو په درولو سره تاميږي،او دصاحبينو رحمهما الله په نزد چې کله اجير خښتې يوه پربله سره ووډي تکيه يې کړي بيا داجرت مستحق دی ځکه دخښتو په وډلو سره داعمل تکميږي و.

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله قول راجح دی لمالي الدّر المختار:وقالابعدتشريجه ای جعل بعضه علی بعض وبقولهمايفتی ابن کمال معزياللعيون :وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله :وقولهمااستحسان زيلعی سبب کونه المفتی به .(الدرالمختارمع الشامية :۵/ ۱۲)داختلاف ثمره په هغه صورت کې معلوميږي چې که تروډلو مخکې خښتې ضائع شي نو دامام صاحب رحمه الله په نزد دمستاجر له مال څخه دي او دصاحبينو رحمهما الله په نزد داجير له مال څخه ضائع شمارل کيږي.

(۱۵)ومن لعمله أثر في العين کالصباغ والقصار يحبسها للأجر (۱۶)فان حبس فضاع فلاضمان ولاأجر (۱۷)ومن لاأثر لعمله کالحمال والملاح لايحبس للاجر (۱۸)ولايستعمل غيره ان شرط عمله بنفسه (۱۹)وان أطلقه له أن يستاجر غيره (۲۰)وان استاجره ليجی بعياله ومات بعضهم فجاء بمن بقی فله اجره بحسابه (۲۱)ولااجر لحامل الكتاب للجواب (۲۲)أولحامل الطعام ان رده للموت.

**ترجمه** :دچا چې عمل لره اثر په عين شي کې وي لکه رنګريز او دوبي هغه ګرځولای شي هغه شی دمزدوري لپاره بيا که يې وګرځاوه او هغه ضائع شو نو ضمان نشته او نه مزدوري شته او دچا چې دعمل اثر په شي کې نه وي لکه پلنډي او کښتي وان هغه نه شي ګرځولای شی دمزدوري لپاره او کار به په غير نه کوي که يې شرط کړی وو کار کول په ده سره او که يې مطلق ورکړی وو نو هغه لره جائزدی چې غير ته يې په کرايه ورکړي او که يې څوک مزدور کړی وو چې دده کورنی راولي بيا له هغو څخه ځینی کسان مړه شول مزدور هغه باقي کسان راوستل نو ده لره اجر شته په هغه حساب سره او اجرت نشته دخط دجواب وړونکي لره يا دخوراک وړونکي ته که يې هغه رد کړی وو دمکتوب اليه دمرګ په وجه.

**تشريح** :(۱۵)هر هغه اجير چې کاريې په عين شي کې اثرلري چې په هغه شي کې دده دعمل اثر ښکاريږي لکه رنګريز يا دوبي نو داسي اجير دخپلې مزدوري دوصول لپاره هغه شی مثلاً کپړه ګرځولای شي ځکه معقودعليه وصف قائم في الثوب دی نو دی دبدل دوصول لپاره کپړه ګرځولای شي.

(۱۶)بيا که مزدور هغه شی وګرځاوه له ګرځيدو وروسته هغه شی هلاک شي نو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد مزدور ضامن نه ګرځي ځکه دهغه له طرفه هيڅ تعدّی نه ده راغلې نولکه څرنګه چې هغه شی پخوا امانت وو هم هغسې پاتي دی خو مزدور ته اجرته نه ورکول کيږي ځکه معقود عليه تر تسليميدو مخکې هلاک شوی دی.

**فائده** :دصاحبينو رحمهما الله په نزد څرنګه چې شی تر ګرځولو مخکې مضمون وو وروسته هم مضمون ګرځي البته مالک ته اختيار دی که غواړي دهغه شي دقيمت هغه تاوان دي واخلي چې تر عمل مخکې وو او اجرت دې نه ورکوي او که يې خوښه وي هغه تاوان دي واخلي چې تر عمل وروسته وي او مزدوري دي ورکړي.

(۱۷)هر هغه اجير چې عمل لره يې اثر په عين شي کې نه وي نو داجرت دوصولولو لپاره شی نه

شي ګرځولای لکه پلنډي او ملاح (کښتۍ وان) ځکه معقود علیه نفس عمل دی (یعني بار پورته کول) او هغه په عین شي کې قائم نه دی نو دهغه ګرځول متصور نه دی نه دګرځولو حق نه لري بیاکه له ګرځولو وروسته هلاک شونو ګرځوونکی دغاصب په شان ضامن ګرځي.

(۱۸)که مستاجر پر کاریګر باندي داشرط ایښی ووچي کار به خپله کوي مثلاً ورته ویې ویل اعمل بنفسک ولاتعمل بیدغیرک .نوبیا کاریګرلره دااختیار نشته چي په بل سړه کار وکړي بلکي خپله به یې کوي ځکه مستاجرله هغه بغیر دبل چا په کار باندي راضي نه دی نو که ده هغه کار په بل سړه وکړ دی داجرت مستحق نه کیږي.

(۱۹)اوکه مستاجر دکاریګر لپاره عمل مطلق پرېښودنو دی هغه کار خپله هم کولای شي او دهغه لپاره مزدور هم نیولای شي ځکه داجیر پر ذمه کار واجب دی چي خپله دی یې هم پوره کولای شي اوله بل ځخه هم کار اخیستلای شي لکه دقرض اداکول چي خپله یې اداکړي یا یې دوکیل په ذریعه اداکړي دواړه طریقې جائزي دي.

(۲۰)که مستاجر یو سړی په دې مزدور کړچي مثلاً مستونګ ته ولاړشي زما اهل خانه کوټې ته راولي مزدور چي هلته ولاړ ی معلومه شوه چي دمستاجر دکورنۍ ځوکسان مړه شوي دي هغه باقي مانده راوستل نو چي ځومره کسان یې راوستلي دي دهغه مزدوري په هغه حساب سره ورکوله کیږي مثلاً ټول لس کسان وو پنځه مړه شوي دي نو نیمه مزدوري به ورکوله کیږي ځکه هغه بعض معقود علیه پوره کړی دی دهغو مره عوض مستحق ګرځي مګر داهغه وخت چي اجیر ته دهغه تعداد مخکي ورمعلوم کړي که نه بیا پوره اجور کول کیږي.

(۲۱)زید یو سړی ددې لپاره مزدور کړی ووچي دده خط بکر ته یوسي او دهغه جواب راوړي بیا داسي وشول چي کله مزدور بکر ته ورسید هغه مړ شوی ووځکه مزدور خط واپس راووړنو دشیخینو رحمهما الله په نزد مزدور ته هیڅ مزدوري نه ورکوله کیږي ځکه معقود علیه خط وړل او بیرته واپس راوړل دی داچي کله ده خط واپس راووړ دخط جواب یې نه دی راوړی نو معقود علیه فوت شو ځکه داجرت مستحق نه ګرځي .دامام محمد رحمه الله په نزد دیوه طرف وړلو مزدوري ورکوله کیږي ځکه اجرت دتلو او راتلو دمشقت عوض دی دخط وړلو عوض نه دی ځکه دخط وړل خو هیڅ مشقت نه دی نو ده نیم کار کړی دی ځکه دنصف اجرت مستحق ګرځي.

**فائده** :متونو دصاحبینو رحمهما الله قول اختیار کړی دی چي ددوئ دقول دراجح کیدو علامه ده مګر عرف دامام محمد رحمه الله دقول مؤید دی نو ددواړو قولینو ترمنځ تطبیق داسي دی چي که معقود علیه خط وړل اوله هغه طرفه جواب راوړل وونو دشیخینو رحمهما الله قول راجح دی او که معقود علیه تګ راتګ وونو دامام محمد رحمه الله قول راجح دی کماقال المفتي غلام قادر النعماني حفظه الله تعالى :القول الراجح هو تطبيق بين القولين لان قول الشيخين رحمهما الله قول المتون و العرف يؤيد قول محمد رحمه الله ,فان كان المعقود عليه نقل الكتاب و الرجوع بالجواب فالعمل على قول الشيخين رحمهما الله وان كان المعقود عليه هو الذهاب و الرجوع فالعمل على قول محمد رحمه الله .(القول الراجح: ۲/۲۲۷)

(۲۲) يايې ددي لپاره مزدورنيولى وو چې له كوره دفلان لپاره ډوډۍ راوړسوي مزدورېه داسي حال كې ډوډۍ راوړسوله چې مرسل اليه مړشوى وو، مزدور ډوډۍ بيرته واپس راوړه نوپه اتفاق سره اجرت نه وركول كيږي، وجه دفرق يې داده چې دكوم شي په ورتګ كې محنت او مشقت نه وي لكه دخط وړل نوپه هغه كې دامام محمد رحمه الله په نزد معقود عليه قطع مسافت ده نوپه لومړي صورت كې معقود عليه پيدا شوى دى ځكه دى داجرت مستحق ګرځي اوپه كوم شي كې چې مشقت وي لكه ډوډۍ وړل په دي كې معقود عليه ترمرسل اليه پوري دهغه شي وررسول دى نوپه دوهم صورت كې معقود عليه نه دى موجود شوى ځكه داجرت مستحق نه ګرځي او دشيخينو رحمهما الله په نزدپه دواړو صورتونو كې معقود عليه ترمرسل اليه پوري دهغه شي رسول دى چې په دواړو صورتونو كې نه دى موجود شوى ځكه داجرت مستحق نه ګرځي.

## باب مايجوز من الاجارة ومايكون خلافا فيها

دا باب دهغو اجارو په بيان كې دى چې جائز دي او په كومو كې چې اختلاف دى

تردى مخكي مصنف رحمه الله داجارې مقدمات ذكر كړل بيا څرنګه چې اجاره درې قسمه ده: جائز، مختلف فيه او فاسده، مصنف رحمه الله ددو ولومړنيو قسمينو احكام بيان كړي دي ددريم قسم تفصيل يې مخته په مستقل باب كې بيان كړى دى.

(۱) صَحَّ إجَارَةُ الدُّوْرِ وَالحَوَانِيتِ بِلَا بَيَانِ مَا يَعمل فِيهِمَا وَلَهُ أنْ يَعمل كُلَّ شَيْءٍ إلَّا أنَّهُ لَا يُسكِنُ حَدَّادًا أو قَصَّارًا أو طَحَّانًا (۲) وَالأرَاضِي لِلزِّرَاعَةِ (۳) إنْ بَيَّنَ مَا يَزرَعُ فِيهَا أو قَالَ عَلَى أنْ يَزرَعَ مَا شَاءَ (۴) وَلِلبِنَاءِ وَالغَرسِ فَإنْ مَضَتِ المُدَّةُ قَلَعَهُمَا وَسَلَّمَهَا فَارِغَةً (۵) إلَّا أنْ يَغرمَ المُوجِرُ قِيمَتَهُ مَقلُوعًا وَيَتَمَلَّكَهُ أو يَرضَى بِتَركِهِ فَيَكُونُ البِنَاءُ وَالشَّجَرُ لِهَذَا وَالأرضُ لِهَذَا (۶) وَالرَّطبَةُ كَالشَّجَرَةِ

**ترجمه**: صحيح دى دسرايو او دكانو كرايه كول بغير بيان دهغو كارونو چې په هغو كې كيږي او هغه ته جائز دى چې په هغو كې هر كار وكړي مګر نه شي پكې اوسيدلاى پښ او دوبي او ژرندې والا او صحيح ده دځمكي كرايه كول دكښت لپاره كه يې بيان كړ هغه شى چې په ځمكه يې كري يا يې ورته وويل چې ويې كره څه چې ستا خوښه وي او دآبادي جوړولو او درختو لګولو لپاره كه موده تيره شوه نو هغه دي وباسي ځمكه دي فارغه كړي ورته ودي سپاري مګر داكه موجر دهغه قيمت وركړي په داسي حال چې ختلي وي او دهغو مالک وګرځي يا راضي شي دهغو پرترک باندي بيا آبادي او درختي دهغه كيږي او ځمكه دده كيږي او رطبى د درختي په شان دي.

**تشريح**: (۱) سرايونه او دكانونه كرايه كول جائزدى كه څه هم بيان ونكړي چې په دي كې څه كار كوو ځكه متعارف عمل په دي كې اوسيدل دى نوداكرايه كول داوسيدو لپاره وي او په اوسيدلو كې تفاوت نشته ځكه نوداعقد صحيح دى بلكې مستاجرپه هغو كې هر كار كولاى شي ولى داعقد مطلق دى موجر كوم خاص كار كول شرط كړى نه دى مګر پښ او دوبي او دلويه ژرندې والاپه هغه كې نه شي اوسيدلاى ځكه په دي

کارونو سره عمارت کمزوری کیږي البته که په عقد کې دا شرط ولګوي چې په دي کې له مذکورو کارونو څخه يو کارکوم بيا جائز دی ولی په دي صورت کې د دکان مالک راضي دی.

**فائده**: نن سبا د سرايونو او دکانونو، عام رواج ګرځيدلی دی چې يو نوم يې حق قرار هم دی ډيرو ختونه د سرای مالک يا د دکان مالک خپل سرای يا دکان ډيرې مودې لپاره په کرايه ورکوي اوله کرايې علاوه څه پيسي پريوه ځای اخلي (ايډوانس) کرايه دار چې پريوه ځای روپۍ ورکړي د دي حقدار کيږي چې دا کرايه دار تر ډيره وخته ترژونده پوري باقی وساتي ډير ځله کرايه دار خپل حق بل کرايه دار ته منتقل کوي اوله هغه څخه پريوه ځای روپۍ وصولوي او دي معاملې ته په عرف کې ايډوانس ويل کيږي بيا د روپو اداکولو وروسته هغه بل سړی د سرای او دکان له مالک څخه د عقد اجاره حقدار ګرځي يا که چيرته د سرای يا دکان مالک له کرايه دار څخه سرای او دکان بيرته واپس اخلي نو د هغه پر ذمه لازمه ده چې کرايه دار ته دومره روپۍ ورکړي چې پرهغه دواړه سره راضي شي د غه پريوه ځای چې روپۍ اخلي دي ته په مختلفو عربي هيوادو کې خلو، ويل کيږي چې په پاکستان او هندوستان کې (ايډوانس) يا سلامی ورته وايي د دي څه حکم دی دا اخيستل جائز دی که نا جائز؟

شرعا الين دين دواړه ناجائز دي ځکه دا روپۍ يا رشوت دی يا د مجرد حق عوض دی که يو چا داسي معامله وکړه نو دواړه فريق دي توبه وباسي او دا روپۍ دي واپس کړي دا پر لازم دی قال العلامة الصابونیؒ: اذاانتهت مدة الاجّارة فعلى المستاجران يسلمها لصاحبها وليس له حق فى ان يخليها لغيره على ان ياخذ منه مبلغا فى نظير الاخلاء كمايفعله بعض الناس اليوم لان ملک الدار او الدکان لصاحبها المالک وهذاالذى يسميه الناس حق الخلو او حق نقل القدم ليس بالامر الشرعى. (جديدمعاملات کی شرعی احکام: ۱/۲۱۹)

**فائده**: د مولانا خالد سيف الله رحمانی صاحب په باره کې موږ مخکي ويلي وو چې نوموړی په ډيرو مسائلو کې نرمي اختياروي له هغو څخه يو داد (ايډوانس) مسئله ده ديوې درازې مقالې په پای کې مولانا صاحب ليکي: د دغو تفصيلاتو په رڼا کې زما رايه داده ۱- چې حق خلو چې د حق قبضه څخه عبارت دی يو مستقل حق دی او د هغو حقوقو له جملې څخه دی چې خريد و فروخت يې کيدای شي ۲- که د سرای مالک له کرايه دار څخه پيشګي روپۍ اخلي نو دی حق د قبض خرڅوي او بيا د سرای خريدار د سرای مالک ګرځي چاته چې يې غواړي په کوم قيمت چې يې زړه غواړي خرڅولای يې شي خپله پر مالک يا پر بل کرايه دار باندي ۳- له دي سره ماهانه کرايه له قبضی سره سره له دي سرای نه د انتفاع عوض دی چې د سرای مالک يې د مالک په حيث حقدار دی.

له دي څخه دا خبره معلومه شوه چې په کوموصورتونو کې چې کرايه دار اصل مالک ته ايډوانس نه دی ورکړی په هغو صورتونو کې دی د معاهدې مطابق يوازي د انتفاع حق لري چې د هغه عوض د کرايه په نامه سره اداکولای شي دی د حق قبضه مالک نه دی چې پر بل چايې خرڅ کړي يا يې خپله د سرای مالک ته حواله کړي قيمت يې حاصل کړي دا د فقير شخصی رايه ده په کومه کې چې د حيلو او تاويلاتو پرځای د حقائقو او واقعاتو په بناء حق خلو يو مستقل او قابل خريد و فروخت حق او له قبيلې د مال څخه شمار کړای شوی دی. (جديد فقهی مسائل: ۴/ ۱۴۳)

(۲) قوله والاراضى للزراعة اى وصح اجارة الاراضى للزراعة. يعني ځمکې دزراعت لپاره په کرايه اخستل جائز دي ځکه زراعت دځمکي منفعت مقصوده او معهود دی، او س مستاجر لره دځمکې داوبيد او اوبه اودتګ راتګ لاره ورکوله کيږي که څه هم دعقد په دوران کې دا شرط ونه لګوي ځکه اجاره دانتفاع لپاره منعقد کيږي چې انتفاع له ځمکې نه بغير داوبو او لاري ممکنه نه ده.

(۳) البته ځمکه چې دزراعت لپاره کرايه کوي ددي شي بيان ضروري دی کوم چې مستاجر يې په ځمکه کري که نه بيا عقد اجاره نه صحيح کيږي ځکه په ځمکه کې دکرلو شيان متفاوت وي ځينی يې دځمکې لپاره مضروي نو تعين ضروري دی چې بيا مفضی ونزاع ته نه شي البته که آجر وويل چې په دي ځمکه چې ته کوم شی ته کري ويې کره بيا چې دمستاجر خوښه وي هغه شی پري کرلای شي بيا مفضي وجنجال ته نه کيږي.

(۴) قوله وللبناء والغرس اي وصح اجارة الاراضى للبناء والغرس. يعني خالی ځمکه دآبادي جوړولو يا درختو لګولو لپاره کرايه کول جائز دی بيا دموده پې له ختميدو وروسته که چيرته موجر دآبادي او درختو پر ترک باندي راضي نه وو نو مستاجر دي خپله آبادي ړنګه کړي درختې دي وکاږي خالي ځمکه دي موجر ته حواله کړي ځکه دآبادي او درختو هيڅ انتهاء نشته نو په قرار پاتی کيدو کې دځمکې ضرر دی نو له مالک څخه ددفع ضرر لپاره مستاجر ته دخپلې آبادي او درختو کښلو حکم وکړای شي.

(۵) البته که دځمکې مالک مستاجر ته دړنګو شويو آباديو او ختلو درختو دقيمت پرورکولو باندي راضي شي نو دا جائز دی او له قيمت ورکولو وروسته دځمکې مالک دآبادي او درختو مالک ګرځي. او که دځمکې مالک دمستاجر دآبادي او درختو پر خپله ځمکه باندي پربرقرار ساتلو باندي راضي شو نو دا هم جائز دی ځکه حق دځمکې د مالک دی نو ده لره اختيار شته چې خپل حق حاصل نه کړي او په دي صورت کې دځمکې مالک ګرځي آبادي او درختي دمستاجر کيږي او دځمکې مالک خپله ځمکه د درختو مالک ته عارية ورکوونکی دی.

(۶) او د رطبه هغه حکم دی کوم چې د درختو دی يعني چې کله موده پوره شي نو هغه به کاږي ځکه درطاب ريښې ترډيره وخته وي نو په يو خل کرلو سره ترډيره وخته پوري پاتيږي نو د درختو په شان ددي هم هيڅ انتها، نشته په پاتی کيدو کې يې دځمکې دمالک ضرر دی ځکه دکښلو حکم ورکول کيږي
رطبه يو قسم نرم وابنه دی چې په فارسي کې سپستي او په پښتو کې شپيشتې يا (رشکه) ويل کيږي.

(۷) والزرع يترك باجر المثل الى ان يدرك (۸) والدابة للركوب والحمل والثوب للبس فان اطلق ازكب والبس من شاء (۹) وان قيد براكب او لابس فخالف ضمن ومثله مايختلف بالمستعمل (۱۰) ومالا يختلف به بطل تقييده كمالو شرط سكنى واحد له ان يسكن غيره (۱۱) وان سمى نوعا وقدرا ككر بر له حمل مثله واخف لا اضر كالملح.

**ترجمه**: او کښت پرينبودل کيږي په اجر مثل سره تر هغه پوري چې پخيږي او صحيح دی حيوان اجاره کول دسوريدو لپاره يا دبار وړلو لپاره او کپړه داغوستلو لپاره بيا که يې مطلق پري ايښی وو نو سپور دي کړی او وروادي غوندي هرچا ته چې دده خوښه وي او که يې مقيد کړی وو ديو چا په سوريدو سره يا ديو چا په

آغوستلو سره بيامخالفت وکړي نو دی ضامن کيږی همدارنګه هغه شيان دي چې مختلف کيږي
داستعمالو ونکي په مختلف کيدو سره او هغه شيان چې نه مختلف کيږي داستعمالو ونکي په مختلف
کيدو سره دهغو تقييد باطل دی لکه چې شرط کړي ديوچا او سيدل په سرای کې نو ده لره جائزدی چې بل چاته
يې ورکړي او که يې معين کړه نوع يامقدار لکه يوه پيمانه غنم نو ده لره جائزدی دهغه په شان شی راوړل
ياترهغه خفيف نه ترهغه زيات مضرشی لکه مالګه .

**تشريح :**(۷)يوچاځمکه دکښت لپاره ترمعلومې مودې پورې کرايه کړه بيامو ده داجارې تيره شوه خو کښت
لاپوخ شوی نه دی نوکښت به په اجرت مثل سره تربخيدوپورې پرځمکه باندې پريږدې ځکه دکښت
دپخيدويوه انتهاء معلومه ده نوترپخيدوپورې پرځمکه باندې په پريښودلوکې دجانبينورعايت دی په دې
ډول چې دځمکې مالک ته به کرايه ورکوله شي اومستاجرته به خپل کښت ورپوخ شي .

(۸)قوله والدابة للركوب اى صح اجارة الدابة للركوب الخ ،يعني حيوانان دسوريدويابارو وړلو لپاره په کرايه
نيول جائزدی ځکه اجاره ديوشي پرعين منفعت مقصوده باندې منعقده کيږي اوحيوان ترمعلومې مودې
پورې کرايه کول منفعت معلومه مقصوده دی بيا که يې عقدمطلق کړی وو ديومعلوم شخص سپريدل يې
شرط کړی نه وونومستاجر هرڅوک پرې سورلای شي داطلاق عقدپه وجه سره همدارنګه که يې کپړه
دآغوستلولپاره کرايه کړې وه اوعقدمطلق شوی وو ديومعلوم سړي اغوستل يې شرط کړی نه وونودادې هم
هغه حکم دی چې مستاجريې هرچاته ورکولای شي .

(۹)اوکه موجرداشرط لګولی ووچې فلان معلوم شخص به پرې سوريږي يافلان معلوم شخص به
يې آغوندي بياکه مستاجرکوم بل څوک پرحيوان باندې سپور کړيايې بل چاته جامه دآغوستلولپاره ورکړه
بياکه دغه حيوان هلاک شويا کپړه ورکه شوه نومستاجرضامن کيږي ځکه خلک په سپريدلو اوآغوستلوکې
مفتاوت وي نوتعين صحيح دی اومستاجرلره تجاوزکول ناجائزدی ،همداحکم په هرهغه شي کې دی چې
داستعمالو ونکي په اختلاف سره مختلف کيږي مثلا يوچاخيمه مستاجرته په کرايه ورکړه بيامستاجربل چاته
داوسيدولپاره عاريةً ورکړه بياکه تلف شوه نومستاجرضامن کيږي لماقلنا .

(۱۰)البته هغه شيان چې داستعمالو ونکي په اختلاف سره نه مختلف کيږي مثلاپه سرای يادکان کې
يوڅوک اوسيدل ددغوشيانوحکم دادی چې که موجرديومعلوم سړي سکونت شرط کړی ووبيا هم
مستاجرکولای شي چې بل چاته يې ورکړي ځکه په سرای کې داوسيدوپه باره کې خلک تفاوت نه لري
نومستاجريې هرچاته ورکولای شي البته کوم خلک چې تعميرته تاوان رسوي لکه پښ وغيره هغه دعرف په
وجه له دې څخه خارج دي چې تفصيل يې مخکې تيرشوی دی .

(۱۱)که يوچاحيوان کرايه کړی ووچې پردې باندې بارراوړم اودبارنوع اومقداريې بيان
کړمثلادوې پيمانې غنم راوړم نومستاجرپرهغه باندې هرهغه شی راوړای شي چې په مشقت کې دغنموپه
شان وي لکه اوربشې ياداچې ترغنموهم کم وزنه وي لکه يوقسم زنې چې تيل ورڅخه وزي ځکه په
غنمواواوربشوکې کوم تفاوت نشته اوزنې خوترغنمولاکم وزنه دي نوداتراجازه لاندې داخل دي البته

داسي شيان چې په وزن کې ترغنموزيات وي مثلالکه مالګه ،اورسپنه ،پيتل وغيرده هغو دراوړلو اجاره نشته ځکه په هغوکې مشقت زيات دی چې مالک نه په راضي کيږي نوقاعده داده چې کوم څوک دعقدپه وجه ديومعلوم منفعت مستحق ګرځي هغه دغه منفعت يادغه قسم منفعت ياترهغه کم منفعت حاصلولای شي مګرترهغه زيات منفعت حاصلول دهغه لپاره ناجائزدی .

(۱۲)وَإِنْ عَطِبَتْ بِالْارْدَافِ ضَمِنَ النِّصْفَ(۱۳)وَبِالزِّيَادَةِ عَلَى الْحَمْلِ الْمُسَمَّى مَازَادَ(۱۴)وَبِالضَّرْبِ وَالْكَبْحِ(۱۵)وَنَزْعِ السَّرْجِ وَالْإِيكَافِ وَالْاسْرَاجِ بِمَا لَا يُسْرَجُ بِمِثْلِهِ(۱۶)وَسُلُوكِ طَرِيقٍ غَيْرِ مَاعَيَّنَهُ وَتَفَاوَتَا(۱۷)وَحَمْلِهِ فِي الْبَحْرِ الْكُلَّ وَإِنْ بَلَغَ فَلَهُ الْاجْرُ(۱۸)وَبِزَرْعِ رَطْبَةٍ وَإِذْنِ بِالْبُرِّ مَانَقَصَ وَلَا أَجْرَ(۱۹)وَبِخِيَاطَةِ قَبَاءٍ وَأَمَرَ بِقَمِيصٍ قِيمَةُ ثَوْبِهِ وَلَهُ أَخْذُ الْقَبَاءِ وَدَفْعُ أَجْرِ مِثْلِهِ.

**ترجمه** :که حيوان هلاک شوپه سواري سوررولوسره نودنصف ضامن ګرځي اوترمعين بارزيات باروړلوسره ضامن ګرځي په زيادت سره اوپه وهلواوقيضه کشولوسره دځين په ليري کولواوپه کته يا(ځل )ترلوسره اوپه داسي ځين سره چې هغه قسم ځين نه پري نبودل کيږي اوپرلاره تلل له معلومې لارې بغيرچې ددواړولاروترمنځ تفاوت وي اوپه درياب کې په باررولوسره دټول ضامن ګرځي اوکه يې ورساوه اجرت ورکول کيږي اودشپيشتوپه کرلوسره چې دغنمواجازه يې ورکړې وي دنقصان ضامن ګرځي اواجرت نه ورکول کيږي اوپه قباء ګنډلوسره چې دقميص جوړولوامريې ورته کړی وي ضامن ګرځي دکپړي دقيمت اوداهم ورته جائزدی چې قباء واخلي اودهغې اجرت مثل ورکړي .

**تشريح** :(۱۲)که يې حيوان دسوريدولپاره کرايه کړی ووبياده پخپل ځان پسې بل سواري هم سپورکړاوحيوان هلاک شونومستاجردنصف قيمت ضامن ګرځي بوج ته اعتبارنه ورکول کيږي مثلاداوړل به ورته وايي چې دمستاجروزن مثلايوه برخه دی اودبل سواري وزن دوهمه برخه دی نوضمان هم دوې برخې کيږي ځکه کله دسواري دناقابليت په وجه وزن نه لري خوبياهم حيوان زخمي کوي اوکله بيايوانسان ډيروزن لري خودتجربه کاري په وجه پرحيوان باندي سپک وي ليکن داهغه وخت چې کله حيوان ددواړوطاقت درلودی اوکه يې ددواړوطاقت نه درلودنودهلاکت په صورت کې دکل قيمت ضامن کيږي .

(۱۳)قوله وبالزيادة على الحمل الخ ای ان عطبت بالزيادة على الحمل الخ ،يعنې که يې يوحيوان کرايه کړی ووديومتعين مقداربارراوړلولپاره بياده پرهغه باندي ترمتعين مقدارزيات بارراووړچې حيوان هلاک شونومستاجردزيات بوج په اندازضامن کيږي ځکه حيوان دماذون اوغيرماذون بوج له مجموعې څخه هلاک شواوسبب دهلاکت همداباردی نوضمان پردواړوباندي تقسيميږي په دې شرط چې زيات باردمسمی بارله جنس څخه وي اوپه حيوان کې دهغه قسم باروړلوطاقت وي بياکه زيات باردمسمی له جنس څخه نه ووبيادومره زيات ووچې حيوان داقسم بارنه شي وړلای نوبيادکل قيمت ضامن کيږي .

(۱۴)قوله وبالضرب ای ان عطبت الدابة بالضرب والكبح الخ ،يعنې که يې حيوان وواهه يايې قيضه راکش کړه هغه هلاک شونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدمستاجردکل قيمت ضامن ګرځي اودصاحبينو رحمهماالله په نزدکه په متعارفه طريقه سره يې کش کړي ياووهي نوبيانه ضامن کيږي ځکه متعارف په عقدمطلق کې داخل

دي چې دهغه اجازه دموجرله طرفه شوې ده امام ابوحنیفة رحمه الله فرمايي چې اجازه په سلامتي سره مقيده ده ولې دضرب وغيره بغيرهم ورل کيدای شي نودشرط دنه موجوديت په وجه مستاجرضامن ګرځي.

فائده: دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله: قوله وقالا لایضمن اذافعل فعلامعتارفاالخ وبقولهماقالت الائمة الثلاثة وعلی قوله جزت عامة المتون وعلیه الفتوی کمافی الهندیة وغیرها نعم قال فی درالمختارنقلاعن غایة البیان عن التتمة والاصح رجوع الامام الی قولهماالخ وانکررواية الرجوع شارحه ابن العابدین الشامی رحمه الله فی هذه المسئلة فلیتامل عندالفتوی (هامش الهدایة ۲۹۷/۳).

(۱۵) که يې حيوان له ځين سره کرايه کړيايې ځين ورڅخه ليري کړاوداسي کته يا (ځل) يې وروتړله چې پرداقسم حيوان باندي نه تړل کيږي بيا که حيوان هلاک شونومستاجرضامن کيږي ځکه دمالک اجازه کټي اوځل ته شامله نه ده ولی کته اوځل دځين له جنس څخه نه دي همدارنګه که مستاجريوداسي ځين باندي کښيښودچې پردغه قسم حيوان باندي نه بنودل کيده مثلازيات وزني وواوبياحيوان هلاک شونومستاجرضامن ګرځي ځکه دمالک اجازه داسي ځين ته نه ده شامله نودمخالفت په وجه ضامن ګرځي.

(۱۶) قوله وسلوک طریق غیرماعینه ای ان عطبت بسلوک طریق الخ، يعني که مستاجرپلنډي ته وويل چې زمادابارپرفلانی لاره باندي ترفلان ځايه پوري ورسوه هغه باربورته کړاوله معلومې لارې نه بغيرپربله لارولاړی نوکه ددواړولاروترمنځ فرق ووپه زيات وکم کې يايه امن اوبې امنې کې اودمستاجرمال هلاک شونوپلنډي دټول مال ضامن ګرځي ځکه مستاجرچې دخاصې لارې قيدلګولی ووهغه قيدمفيددی نوچې پلنډي دهغه مخالفت وکړضامن ګرځي.

(۱۷) قوله وحمله فی البحرالکل ای یضمن ایضابحمله فی البحرالکل، يعني که يوچامزدورددي لپاره کرايه کړی ووچې دمستاجرمال پروچه لاره باندي ورسوي مګرمزدورددرياب له لارې ولاړی نودهلاکت په صورت کې مزدوردټول مال ضامن ګرځي ځکه دوچې اوبحري لارې ترمنځ ډيرفرق دی ليکن که مزدورمال ترخپل منزل پوري ورساوه بيادااجرت مستحق ګرځي ځکه دمستاجرمقصودحاصل شولفظ دالکلّ چې مصنف رحمه الله ويلی دی له وبالضرب څخه بياتروحمله فی البحرپوري ترټولومسائلوپوري متعلق دی.

(۱۸) قوله وبزرع رطبة الخ ای ویضمن بزرع رطبة الخ، يعني که مالک دځمکې په ځمکه کې دغنموکرلو اجازه ورکړې وه مستاجرپه هغې باندي شپيشتې وکرلې په هغې سره چې ځمکې ته کوم نقصان ورسيددهغه مستاجرضامن ګرځي ځکه په شپيشتوسره ځمکې ته زيات نقصان رسيږي ځکه دهغې ريښې په ځمکه کې خورېږي اوزيات اوبيدلوته ضرورت لري نوده له مالک څخه داسي مخالفت وکړچې دمالک لپاره ډيرمضرهم دی ځکه ضامن ګرځي اومالک ته دځمکې اجرت نه ورکول کيږي ځکه دمخالفت په وجه مستاجراوس مستاجرنه دی پاتی بلکې غاصب شواوپرغاصب باندي اجرت نشته بلکې تاوان وي.

(۱۹) قوله وبخیاطة قباء ای یضمن بخیاطة قباء الخ، يعني که يوچادرزي ته کپړه ورکړه ورته ويې ويل چې ديوه درهم په عوض له دي څخه قميص راجوړکړه، درزي له هغه څخه قباء جوړه کړه نودکپړې مالک له درزي څخه دخپلې کپړې دقيمت تاوان اخلي اوهغه ته دااختيارهم شته چې که يې خوښه وي نوقباء دې واخلي درزي ته دې اجرت مثل ورکړي ځکه قباء له يوه لحاظه قميص دی چې له هغې څخه دقميص په شان نفع اخيستله

كيداى شي او په يوه لحاظ له قميص نه مخالفه ده نو په قباء جوړيدوكې موافقت او مخالفت دواړه راځي ځكه مالک ته اختيار دى چې د امخالفت وګڼي تاوان واخلي او يايې موافقت وګڼي قباء واخلي اجرت مثل وركړي

## باب الاجارة الفاسدة

دا باب د اجارې فاسدې په بيان كې دى

مصنف رحمه الله چې د اجارې صحيحه له بيان څخه فارغ شو نو د اجاره فاسده بيان يې شروع كړ د اجارې صحيحى د تقديم وجه ظاهره ده چې د اهل اسلام په عقودو كې اصل صحت دى او فساد عارض دى او اصل احق بالتقديم دى.

(١) يَفسُدُ الاجارة الشرطُ وَلَه اَجرُ مِثلِه لايُجاوِزُ بِه المُسمّى (٢) فَاِن اَجَرَ دَارًا كُلَّ شَهرٍ بِدِرهَمٍ صَحَّ فِى شَهرٍ فَقَط اِلّا اَن يُسمّى الكُلَّ (٣) وَكُلَّ شَهرٍ سَكَنَ سَاعَةً مِنهُ صَحَّ فِيهِ (٤) وَاِن استَاجَرَ هَا سَنَةً صَحَّ وَاِن لَم يُسَمِّ اَجرَ كُلِّ شَهرٍ (٥) وَابتِدَاءُ المُدَّةِ وَقتُ العَقدِ فَاِن كَانَ حِينَ يُهَلُّ يُعتَبَرُ الاَهِلَّةُ وَاِلّا فَالاَيّام

**ترجمه**: شرط اجاره فاسدوي او د مزدور لپاره اجرت مثل دى چې زائد نه وي تر متعين مقدار ريا كه يې په اجرت وركړ سراى هره مياشت په يوه درهم نو صحيح كيږي يوائې په يوه مياشت كې مګر دا كه يې بيان كړي ټولې مياشتې او په هره مياشت كې چې يو ساعتكى پاتې شو نو په هغې كې صحيح كيږي او كه يې سراى ديو كال لپاره كرايه كړ نو صحيح دى كه څه هم اجرت د هرې مياشتې بيان نه كړي او ابتداء د مودې د عقد له وخت څخه دى كه چيرته عقد هغه وخت شوى وو چې مياشت وليدله شوه نو اعتبار مياشتو لره دى كه نه بيا په ورځو حساب ورته كيږي.

**تشريح**: (١) په كومو شرطونو سره چې بيع فاسديږي په هغو سره اجاره هم فاسديږي ځكه چې اجاره عقد معاوضه دى د بيع په شان فسخ كيږي اقاله قبلوي نو اجاره په منزله د بيع ده په كومو شرطونو سره چې بيع فاسديږي په هغو سره اجاره هم فاسديږي مراد هغه شرطونه دي چې د مقتضى عقد خلاف وي لكه پر اجير خاص باندي دا شرط لګول چې د مال د هلاكت په صورت كې ته ضامن يې، او د اجارې د فاسد كيدو په صورت كې د اجير لپاره اجرت مثل واجبيږي ليكن تر مسمّى زيات نه وركول كيږي په دې شرط چې مسمّى معلوم وي كه مسمّى زيات وي او كه كم وي ځكه پر مسمّى باندې دواړه راضي شوي دي. د امام زفر رحمه الله په نزد مسمّى واجبيږي هر څو مره چې وي.

(٢) كه يو چا سراى د مياشتې په يوه درهم كرايه كړى وو نو دا عقد يوائې ديوې مياشتې لپاره صحيح كيږي ځكه دا يوه مياشت يقيني معلومه ده نو په مذكور صورت كې په يوه مياشت كې اجاره صحيح كيږي په باقي مياشتو كې فاسديږي ځكه هغه مجهولې دي، په دې سلسله كې قاعده داده چې

کلمه دکُل چې کله پريوداسي شي باندي داخله شي چې هيڅ انتهاءيې نه وي اوافر ديې دمعلوم نه وي نو دادمعلوم فردخواته راګرځي ځکه په عموم سره عمل کول متعذروي نويوه مياشت دځکه چې معلومه ده ځکه په هغې کې اجاره صحيح ده البته که يې ټولې مياشتې بيان کړي مثلاد پنځو مياشتو لپاره هره مياشت په يوه درهم کرايه کوم نوبيا په ټولو کې صحيح کيږي ځکه مانع زائل شوولې اوس موده معلومه شوه .

(۳) بياله يوې مياشتې وروسته که دراتلونکې مياشتې په شروع کې مستاجر ديوه ساعتکي لپاره په دکان کې پاتې شونو په هغې کې هم اجاره صحيح کيږي لهذا دمياشتې تريايه پوري موجر مستاجر ايستلای نه شي همدا حکم دهرې هغې مياشتې دی چې په اول کې يې مستاجر په کرايه شوي دکان کې پاتې شي ځکه دمستاجر دپاتې کيدو په وجه دد واړو رضامندي راځي چې په هغه سره عقد تاميږي .

(۴) که يوچا دکال لپاره سرای مثلاپه لس درهمه کرايه کړنوداجائزدی که څه هم دهرې مياشتې کرايه بيان نه کړي ځکه پرمياشتوباندي له تقسيم بغيردټولې مودې اجرت معلوم دی نوداداسي شولکه يوڅوک ديوې مياشتې لپاره سرای په يوه درهم کرايه کړي نوداجائزدی که څه هم دهرې ورځې کرايه بيان نه کړي .

(۵) داجارې دمودې ابتداء هغه وخت شمارله کيږي چې کله دمتعاقدينوترمنځ عقدوشي ځکه داجارې په حق کې ټول وختونه برابردي اوپه داسې صورتونو کې هغه زمانه متعينه کيږي چې په عقدپوري متصله وي لکه په قسم کې مثلايوچاقسم واخيست چې والله زه نه فلان سره يوه مياشت خبرې نه کوم نوچې کله يې قسم واخيست مياشت له هغه وخته شمارله کيږي په کومه شپه چې يې مياشت وليدله که چيرته عقداجاره په هغه شپه ترسره شونودکال دټولو مياشتو شماره مياشتې له ليدلوڅخه کيږي ځکه په مياشتو کې اصل اعتبارمياشتې ته وي اوکه عقداجاره دمياشتې دليدلوپه شپه ترسره نه شوبلکې په منځ کې يوه ورځ وشونوهره مياشت دورځوله لحاظه اعتباريږي يعنې هرې ديرش ورځې يوه مياشت شمارله کيږي ځکه ورځې دمياشتې بدل دي کمافي قوله ﷺ : صوموالرؤيته وافطروالرؤيته فان غم عليكم الهلال فاكملوا عدة شعبان ثلاثين يوما) يعنې دمياشتې په ليدوسره روژه نيسئ روژه ماتوئ که مياشت پټه او مشتبه شي نوبيادبرات دمياشتې ديرش ورځې پوره کوئ .

(۱) وصح اخذاجرة الحمام والحجام (۷) لااجرة عسب التيس (۸) والاذان والحج والامامة وتعليم القرآن والفقه والفتوى اليوم على جواز الاستيجار لتعليم القرآن (۹) ولايجوز على الغناء والنوح والملاهي (۱۰) وفسد اجارة المشاع الامن الشريك

**ترجمه**: او صحيح دی اجرت اخيستل دحمام او ښکر کينولو نه اجرت دنرحيوان (منده) خيژولو او دآذان او حج او امامت او دقرآن دتعليم او فتوی په نن زمانه کې دقرآن دتعليم داجرت اخيستو پر جوازده او جائزنه دی اجرت اخيستل دسندرو ويلو او پر مړي دواويلاکولو او باجې غږولو او فاسده ده اجاره دمشاع مګر نه خپل شريک ته.

**تشريح**: (۶) دموجرلپاره دحمام (دغسل کولو ځای) اجرت اخيستل جائزدی ځکه نبي کريم ﷺ دجحفه نومې ځای کې حمام ته داخل شوی وو، پاتی شو دا وبو اندازه او دمستاجر په حمام کې دپاتی کيدو موده که څه هم مجهول دي ليکن دخلکو دتعامل په وجه هغه جائزګڼل شوي دي دحجام (ښکرکينوونکي) اجرت هم جائزدی ځکه نبی کريم ﷺ ښکرلګولی وو او دهغه يې وښکرکينوونکي ته اجرت هم ورکړی وو، همدارنګه پر ښکرلګولو باندي اجرت ورکول په معلوم عمل معلوم اجرت سره اجاره ده ځکه جائزدی.

(۷) قوله لااجرة عسب التيس ای لايصح اخذ الاجرة على عسب التيس، يعني نرحيوان (منده) پر مادی حيوان باندي دخيژولو اجرت اخيستل جائزنه دی لقوله ﷺ ان من السحت عسب التيس (نرحيوان پر مادی باندي خيژول حرام دی) مراد پر عسب التيس باندي اجرت اخيستل دی، همدارنګه له عسب التيس څخه چې کومه فائده مقصوده ده هغه غيرمعلومه ده ولی کله له هغه څخه حمل واخيستل شي او کله نه واخيستل شي.

(۸) قوله والاذان والحج ای لايصح اخذ الاجرة على الاذان الخ، يعني پر آذان، حج، امامت، دقرآن کريم پر تعليم دفقهي پر تعليم او نورو عباداتو باندي اجرت اخيستل جائزنه دی لقوله ﷺ: اقرؤا القرآن ولا تاکلوا به (قرآن واياست او دهغه عوض مه خورئ) په دي باب کې اصل دا دی چې هر هغه طاعت چې په هغه پوري مسلمان مختص وي پر هغه اجرت اخيستل جائزنه دی او مذکوره امور داسي دی چې په هغو پوري مسلمان مختص دی نو ځکه پر هغو اجرت اخيستل ناجائزدی، مګر پر دغو طاعاتو باندي اجرت نه اخيستل دمتقدمينو قول دی متاخرينو دضرورت پر بناء دجواز فتوی ورکړي ده لکه صاحب هدايه رحمه الله چې ليکلي دي: وبعض مشائخنا استحسنوا الاستيجار على تعليم القرآن لانه ظهر توانی فی الامور الدينية ففی الامتناع يضيع حفظ القرآن وعليه الفتوی. (الهداية: ۳/ ۳۰۱)

(۹) دسندرو غږولو، پر مړي دواويلاکولو او دباجو وهلو وغيره لپاره هيچا ته په اجرت اخيستل جائزنه دی ځکه دا پر معصيت باندي اجاره ده چې جائزه نه ده ځکه دعقد اجاره په وجه شرعًا معقود عليه تسليم واجبيږي حال دا چې شرعًا پر هيچا باندي دداسي شي واجبيدل جائزنه دی چې دهغه شي په وجه دی شرعًا ګناهګار وي، چې بيا دا معصيت شرع ته منسوب نه شي بيا هم که مستاجر اجرت ورکړ نو اجير لره جائزنه دی بلکې واپس کول يې واجب دی.

(۱۰) دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد مشترک غيرمقسوم شی له خپل شريک نه علاوه کوم بل چاته په اجاره ورکول ناجائزدی مثلاله مشترک سرای يا مشترک مريې څخه خپله حصه له شريک نه علاوه کوم بل چاته په اجاره ورکړي که مستاجر شی قابل دتقسيم وي لکه ځمکه او که قابل تقسيم نه وي لکه مريی، وجه يې داده چې هغه داسي شی په اجاره ورکړی دی چې مقدورالتسليم نه دی ځکه تسليم په قبض کيدو سره راځي او قبض پر معين شي باندي وارديږي حال دا چې مشاع شی غيرمعين دی او دصاحبينو رحمهما الله اجارة

المشاع (مشترک غیرمقسوم شی اجاره کول) جائزدی ځکه داجارې مدار پرمنفعت دی او په غیرمقسوم شي کې منفعت موجود دی او دمنفعت وصول هم همداسې ممکن دی چې مستاجر اوهغه بل شریک وارمقرر کړي نفع حاصله کړي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ قول راجح دی البته که یوچاپل شریک ته مشترک شی په اجاره ورکړنو اجائزدی ځکه په دې صورت کې کل نفع دهغه پرملک باندې حاصلیږي نوشیوع نشته که څه هم په نسبت کې اختلاف دی چې بعض نفع په حکم دملک سره اوبعض نفع په حکم داجارې سره حاصله ده مګر دامضرنه دی لمافي الدر المختار :وتفسد ايضا بالشيوع بان يوجر نصيبا من داره او نصيبه من دار مشتركة من غير شريكه او من احد شريكه ..........الااذا آجر كل نصيبه او بعضه من شريكه فيجوز وجوازه بكل حال وعليه الفتوى زيلعي وبحر معزيا للمغنى ،لكن رده العلامة قاسم في تصحيحه بان مافي المغنى شاذ مجهول القائل فلايعول عليه قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ اللهُ :(قوله فلايعول عليه )المعول عليه مافي الخانية ان الفتوى على قول الامام وبه جزم اصحاب المتون والشروح فكان هو المذهب وعليه العمل اليوم.(الدر المختار مع الشامية:۵/۳۳)

(۱۱)وَصَحَّ اسْتِئْجَارُ الظِّئْرِ بِأَجْرَةٍ مَعْلُومَةٍ وَبِطَعَامِهَا وَكِسْوَتِهَا(۱۲)وَلَا يَمْنَعُ زَوْجُهَا مِنْ وَطْئِهَا فَإِنْ حَبِلَتْ أَوْ مَرِضَتْ فُسِخَتْ(۱۳)وَعَلَيْهَا إِصْلَاحُ طَعَامِ الصَّبِيِّ(۱۴)فَإِنْ أَرْضَعَتْهُ بِلَبَنِ شَاةٍ فَلَا أَجْرَ(۱۵)وَلَوْ دَفَعَ غَزْلًا لِيَنْسِجَهُ بِنِصْفِهِ أَوْ اسْتَأْجَرَهُ لِيَحْمِلَ طَعَامَهُ بِقَفِيزٍ مِنْهُ(۱۶)أَوْ لِيَخْبِزَ لَهُ كَذَا الْيَوْمَ بِدِرْهَمٍ لَمْ يَجُزْ.

**ترجمه** :اوصحیح دی په اجرت راوستل دشیدې ورکونکې ښځې په معلوم اجرت سره اودهغې پرخوراک اودهغې پرجامه اونه دې ګرځوي دهغې خاوندله هغې سره له وطی کولونه بیاکه چیرته حامله شوه یاناروغه شوه نواجاره فسخ کیږي اوپرهغې باندې لازم دی دماشوم خوراک تیارول اوکه یې هغه ماشوم ته دحیوان شیدې ورکړې نو اجرت یې نه کیږي اوکه یې وُرته ورکړل چې ویې اوودې په نیمی باندې یامزدورکرایه کړي چې دده غله یوسي له هغې غلې څخه په یوه پیمانه باندې یاددې لپاره چې ده ته ډوډۍ ورپخه کړي دومره اوره نن ورځ دیوه درهم په عوض نوداجائزنه دی.

**تشريح** :(۱۱)شیدې ورکونکې ښځه په معلوم اجرت سره مزدورول جائزدی لقوله تعالى :( فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ) همدارنګه پردې باندې له وختونو دخلکوتعامل راروان دی،همدارنګه شیدې ورکونکې ښځه دامام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ په نزددهغې دخوراک اوڅښاک اوجامې په عوض اجاره کول جائزدی مګرد صاحبينو رحمهما الله په نزددخوراک اوڅښاک اوجامو په عوض نه ده جائزځکه اجرت مجهول دی،دامام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ دلیل دادی چې داجهالت مفضي ونزاع ته نه دی ځکه دشفقت پراولاد په وجه خلک دشیدې ورکونکې ښځې په خوراک .څښاک اوجامو کې ډیره پراخي کوي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ قول راجح دی لمافي الملتقى الابحر:استيجار الظئر باجر معلوم وكذا بطعامها وكسوتها خلافا لهما لوله استحسان وقولهما قياس (والاستحسان مقدم غالبا على القياس)ملتقى الابحر:۳/۵۳۶)

(۱۲)مستاجرته داحق نشته چې هغه دشيدې ورکونکې ښځې خاوندله هغې سره له وطی کولونه منع کړي ځکه دادخاوندحق دی چې مستاجرېې نه شي باطلولای.که چیرته دغه ښځه حامله شوه یانارو غه شوه نو ددې ښځې دشيدوورکولو نه دصحت خرابيدواندېښنه ده نودماشوم ولیان داجارې دفسخ کیدوحق لري.

(۱۳)پردغه ښځه باندي لازمه ده چې دماشوم غذابرابره کړي داډول چې ډوډی یابل سخت شی وژدويې وريې کړي اوخپله داسي خوراک ونه کړي چې په هغه سره شيدې خرابي شي بياماشوم ته تاوان رسوي همدارنګه دکوموشيانوچې عرف جاري وي هغه ددې پرذمه دعرف په وجه لازميږي.

(۱۴)که دغه ښځه دشيدوورکولوپه موده کې ماشوم ته دحيوان شيدې ورکړي اوداخبره خپله ددې له اقرارڅخه يادګواهانوپه ګواهي سره ثابته شي نوبيادغه ښځه داجرت مستحقه نه ګرځي ځکه دهغې پرذمه چې کوم كارواجب وو(يعني شيدې ورکول ماشوم ته)هغه كاردې نه دی ترسره کړی ځکه دحيوان شيدې یې ورکړي دي نواجاري ددي وه چې خپل تی ورکړي نه داچې دحيوانانوشيدې په خوله کې ورکړي ځکه داجرت مستحقه نه ګرځي.

(۱۵)که چاکښي والاته وُرته ورکړل چې له دي څخه چې کومه جامه تياره شي دهغه نصف ستامزدوري ده نودااجاره فاسده ده ځکه په دي صورت کې دمزدورمزدوري هغه شی دی چې دمزدوردعمل څخه پيداشونوداقفيزالطحان په معنی دی چې نبي كريم ﷺ منع ورڅخه فرمايلي ده ، قفيزالطحان دادی چې ديوچاغويی یاخرکرايه کړي چې پردې باندي ترژرندې پوري غنم يوسه چې کله هغه اوړه شول له هغوڅخه يوه پيمانه اوړه دغوايي مالک ته په اجرت ورکړي ،همدارنګه که چامزدورته وويل چې داغله ترفلان ځايه پوري ورسوه له دي څخه يوه پيمانه تاته درکوم نوداصورت هم جائزنه دی ځکه داهم دقفيزالطحان په معنی دی.

(۱۶)که له نانوائي سره داډول عقدوشوچې نن ورځ به دومره اُوړه دیوه درهم په عوض ډوډی پخوې نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدداصورت هم ناجائزدی اودصاحبينورحمهماالله په نزدجائزدی ځکه ددي عقددصحيحوالي لپاره عمل معقودعليه بلل کيږي حتی که چيرته هغه په نيمه ورځ له كارڅخه فارغ شونوپوره مزدوري ورکوله کيږي اوکه په دغه ورځ کې فارغ نه شونوسباورځ هم پرده باندي كاركول لازم دی نو چې کله معقودعليه عمل دی اوعمل معلوم دی نوداعقدجائزکيږي،دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې دلته معقودعليه مجهول دی ځکه مستاجروخت اوعمل دواړه سره جمع کړي دي اوله وخت څخه معلوميږي چې معقودعليه منفعت دی اوله عمل څخه معلوميږي چې عمل دی اودعمل په معقودعليه کيدوکې دمستاجرفائده ده اوپه منفعت کې دموجيرفائده ده چې په آخرکې داخبره مفضي ونزاع ته ده ځکه نوداصورت ناجائزدی.

(۱۷)وإن استاجر أرضا على ان يكربها ويزرعها أو يسقيها ويزرعها صح(۱۸)فان شرط أن يثنيها أو يكري أنهارها أو يسرقنها(۱۹)أو يزرعها بزراعة ارض اخرى لا كاجارة السكنى بالسكنى(۲۰)وإن استاجر لحمل طعام بينهما فلا اجر له كراهن استاجر الرهن من المرتهن

**ترجمه** :او که يې کرايه کړه ځمکه په دې شرط يوې کوې به يې او کري به يې يا داچې اوبوي به يې او کري به يې نو صحيح ده او که يې دا شرط کړچې دوباره به يې يوې کوي يا داچې ويالې به يې کاروي يا داچې انبار (کهاد) به ورکوي يا داچې کري به يې دبلې ځمکې دکښت په عوض نو صحيح نه ده لکه اجاره کول داوسيدلو په عوض داوسيدلو او که يې اجاره کړه چې داسې غله به ورځني حاصلوي چې ددوئ دواړو ترمنځ مشترکه وي نو ده لره اجرت نه کيږي لکه راهن چې کرايه کړي رهن له مرتهن ځخه.

**تشريح** :(١٧)که چايو ځمکه په دې شرط اجاره کړه چې دا به يوې کوي بيابه يې کري يا اوبوي به يې او کري به يې نو دا اجاره صحيح ده ځکه په عقداجاره سره هغه دزراعت مستحق شوا وزراعت له يوې کولو او اوبولو بغير نه شي کيداى نو يوې کول او ځمکه اوبول واجب شول او قاعده داده چې هر هغه شرط چې دمقتضى عقد موافق وي په هغه سره عقد نه فاسديږي .

(١٨)او که يې دا شرط ولګاوه چې ځمکه به دوباره کري يا داچې کومې ويالې چې دځمکې په طرف راغلي دي هغه به کاروي يا داچې ځمکې ته به کهاد ورکوي نو دا شروط فاسد دي ځکه ددې کارونو اثر تر اجاره وروسته هم باقي پاتيږي او دا له مقتضياتو دعقد ځخه نه دي او کوم شرط چې دعقد دمقتضى خلاف وي هغه اجاره فاسد وي همدارنګه په دې کې دمالک فائده هم ده او هغه شرط په کوم کې چې داحد المتعاقدينو فائده وي هغه موجب دفساد دى .

(١٩)همدارنګه که يې يوه ځمکه دزراعت لپاره په اجاره ورکړه دبلې ځمکې دزراعت په عوض مثلاً زيدله بکر ځخه ځمکه دزراعت لپاره په دى شرط اجاره کړه چې دهغه په عوض کې دزيد ځمکه بکر دزراعت لپاره واخلي نو دا هم ناجائزدى ځکه زموږ په نزد دا قاعده ده چې که له طرفينو سره جنسيت موجود وو نو پور حرام دى،دا داسې صورت دى لکه يو ځوک چې خپل سراى بل چاته ورکړي داوسيدو لپاره او خپله دهغه په سراى کې واړوي دا اوسيدل عوض وي دا ناجائزدى ځکه اجاره دضرورت په بناء خلاف قياس جائزه کړاى شوي ده او دجنس منفعت داتحاد په وخت کې هيڅ ضرورت نشته .

(٢٠)که ددوو کسانو ترمنځ غله مشترکه وه له هغوئ ځخه يوه بل ته خپله حصه غله وړل په اجاره ورکړل هغه ته وله غله يو وړه ويې رسوله نو زموږ په نزد دغه وړونکي ته نه اجرت مسمّى او نه اجرت مثل ورکول کيږي ځکه دغلې په هرجزء کې چې ده وړې ده دى خپله يکې شريک دى نو دى دخپل ځان لپاره عامل دى بل شريک ته معقود عليه سپارل نه راغلل ځکه دى داجرت مستحق نه ګرځي لکه راهن چې له مرتهن سره يو شى رهن اينې وي بيا يې په اجاره ورځخه واخلي دا ناجائزدى ځکه خپله راهن دهغه شي مالک دى مرتهن خويې مالک نه دى نو دلته اجاره نه راځي ځکه اجاره تمليک دمنافع په عوض ته ويل کيږي او تمليک من غير مالک متصور نه دى .

(٢١)فإن استأجر أرضاً ولم يذكر أنه يزرعها أو أي شيء يزرع فزرعها ومضى الأجل فله المسمى (٢٢)وإن استأجر حماراً إلى مكة ولم يسم ما يحمل فحمل ما يحمل الناس فنفق لم يضمن وإن بلغ مكة فله المسمى (٢٣)فإن تشاحا قبل الزرع والحمل نقضت الإجارة دفعا للفساد

**ترجمه** :او كه يې اجاره كړه ځمكه او دا بيان يې ونكړچې په دي كې به څه كوي يا به څه په كري بيايې وكرله او موده تيره شوه نو ده لره مقرر اجرت شته او كه يې خر كرايه كړ ترمكې پوري او دا يې بيان نه كړچې څه شي به پري باروي بيايې هغه بار پري راووړچې خلك يې راوړي بيا دغه سواري هلاك شونو دى نه ضامن كيږي او كه يې بار ترمكې پوري ورساوه نو ده لره مقرر اجرت كيږي او كه يې جنجال سره راغی مخكي تركښت كرلو او مخكې تربار وړلو نو اجاره دي ماته كړي د فساد دفع لپاره .

**تشريح** :(۲۱) كه چا ځمكه كرايه كړه او دا بيان يې ونه كړچې په دي به يوشی كري يا بل څه او كه يوشی كري نو څه به كري كه مالك عامه اجازه نه وه ورته كړې نو بيا دا اجاره فاسده ده ځكه ځمكه د مختلفو كارونو لپاره اجاره كيږي چې له هغو څخه ځيني د ځمكې لپاره نقصان ده وي او بعض نقصان ده نه وي نو د معقود عليه د مجهول كيدو په وجه اجاره فاسده ده خو كه بيا هم مستاجر كښت پري وكاره او موده هم تيره شوه نو استحسانا اجاره صحيح كيږي او مستاجر لره اجرت مسمى كيږي ځكه د معقود عليه جهالت چې موجب د فساد و و هغه د مودې تر مكمل كيدو مخكي ختم شو .

(۲۲) كه چا يو خر تر مكې مكرمې پوري اجاره كړ او دا بيان يې ونه كړچې څه شی پري راوړي بيايې هغه بار راووړچې خلك يې عام راوړي بيا دغه خر هلاك شونو مستاجر نه ضامن كيږي ځكه اجاره شوی شی له مستاجر سره امانت وي او امانت كه له تعدي بغير هلاك شي نو په هغه كې بيا ضمان نه راځي دلته د مستاجر له جانبه هيڅ قسم زيادتي نه ده راغلي ځكه نه ضامن كيږي ليكن څرنګه چې معقود عليه په عقد كې نه دى بيان شوى ځكه دغه عقد فاسد وو چې معقود عليه يې مجهول دى ،بيا كه ده تر مكې مكرمې پوري بار ورساوه نو استحسانا دا اجرت مسمى مستحق ګرځي ځكه د عقد فساد د جهالت په وجه وو چې وروسته هغه رفع كړای شو .

(۲۳) كه په مذكوره مسائلو كې په لومړي صورت كې تركښت كرلو او په دوهم صورت كې تربار راوړلو مخكي دواړو (موجر او مستاجر) د قاضي په مجلس كې جګړه سره وكړه نو د فساد دليري كولو لپاره دي اجاره ماته كړای شي ځكه په ځمكې ديوشي تر كرلو او پر خره باندي تربار راوړلو مخكي د معقود عليه د جهالت په وجه فساد ثابت پاتيږي .

## باب ضمان الأجير

### دا باب د اجير د ضامن كيدو په بيان كې دى

مصنف رحمه الله چې كله د اجارې له انواعو (اجاره صحيحه او اجاره فاسده) له بيان څخه فارغ شونو د ضمان يې شروع كړ ځكه ضمان له هغو عوارضو څخه دى چې پر اجاره باندي مرتب كيږي او د شي عوارض له شي وروسته وي ځكه د اجارې د احكامو له بيانولو وروسته د ضمان احكام بيانوي

(۱) الأجير المشترك من يعمل لغير واحد و لا يستحق الأجر حتى يعمل كالصباغ و القصار (۲) و المتاع في يده غير مضمون بالهلاك (۳) و ما تلف بعمله كتخريق الثوب من دقه و زلق الحمال و انقطاع حبل يشد به الحمل و غرق السفينة من مده مضمون (۴) و لا يضمن به بنی آدم.

**ترجمه**: اجیر مشترک هغه دی چې دډیرو کسانو لپاره کارکوي او مستحق د اجرت نه کیږي ترڅو چې کار وکړي لکه رنګریز او دوبي او سامان دده په لاس کې غیر مضمون وي په هلاکیدو سره او هغه چې تلف شي دده په عمل سره لکه څیري کیدل د جامي د دوبي په ټکیدو سره او بښویدل د مزدور او پرې کیدل د رسۍ چې بار په تړي او ډوبیدل د کښتۍ د ملاح (کښتۍ وان) په کشیدو سره مضمون ګرځي او د انسان نه ضامن کیږي.

**تشریح**:(۱)اجیر (مزدور)پر دوه قسمه دی :۱-نمبر اجیر مشترک ۲-نمبر اجیر خاص.

اجیر مشترک هغه دی چې دډیرو کسانو کارکوي لکه رنګریز او دوبي یا بلا توقیت دیوه سړي کارکوي او اجیر خاص هغه دی چې دیوه معلوم سړي کارکوي په معین وخت کې .داجیر مشترک له احکامو څخه دا دی چې ترڅو پوري کار ونه کړي د اجرت مستحق نه ګرځي لکه رنګریز.دوبي څکه معقود علیه عمل دی ترڅو چې مستاجر معقود علیه ونه سپاري اجرت نه واجبیږي.

(۲)داجیر مشترک په لاس کې سامان امانت دی که چیرته دغه سامان داجیر له زیادتي بغیر هلاک شي نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد مزدور نه ضامن کیږي که څه هم دضمان شرط یې لګولی وي څکه سامان قبض کول دمستاجر په اجازه سره شوی دی نو د ودیعت او عاریت په شان دی مضمون نه ګرځي . دصاحبینو رحمهما الله په نزد مزدور ضامن ګرځي څکه حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه داډول مزدور ضامن ګرځولی وو .همدارنګه که له مزدور څخه ضمان ساقط شي یا احتیاط نه کوي متاخرینو داجیر او مستاجر ترمنځ دصلح بالنصف فتوی ورکړې ده.

(۳)کوم شی چې داجیر مشترک په عمل سره هلاک شي لکه ددوبي په ټکیدو سره دکپړې څیري کیدل یا دلاپرواهي په وجه سره دمزدور په ښوهیدلو سره مال تلف شي یا هغه رسۍ چې مال په تړي دهغې په شکیدو سره مال تلف شي یا دملاح (کښتۍ وان )په کشیدو سره کښتۍ ډوبه شي مال ضائع شي نو په دغو ټولو صورتونو کې اجیر مشترک ضامن ګرځي څکه داجیر دعمل په وجه مال ضائع شو او اجیر لره عرفًا او شرعًا دعمل صالح اجازه شته دعمل مفسد اجازه نشته ورته .

(۴)البته اجیر مشترک د انسان ضامن نه کیږي که دکښتۍ په ډوبیدو سره کوم انسان غرق شي یا له سواري څخه وغورځي مرشي نو اجیر نه ضامن کیږي که څه هم داجیر په څغلولو او کشولو سره وي څکه د انسان تاوان دعقد په وجه نه دی واجبیږي بلکې دقتل یا زخمي کیدو په جنایت سره واجبیږي په داسې حال کې چې دکښتۍ کشول وغیره جنایت نه دی څکه د ماذون فیه دی.

(۵)فان انکسر دن في الطريق ضمن الحمال قيمته في مكان حمله ولا اجر له او في موضع انكسر واجره بحسابه (۶)ولا يضمن حجام او بزاغ او فصاد ان لم يتعد الموضع المعتاد (۷)والخاص يستحق الاجر بتسليم نفسه في المدة وان لم يعمل كمن استوجر شهرا للخدمة او لرعي الغنم (۸)ولا يضمن ما تلف في يده او عمله.

**ترجمه** :که مات شو منګی په لاره کې نو ضامن کیږي پورته کوونکی دهغه دقیمت چې دپورته کیدو په ځای کې یې کوم قیمت وي او ده لره اجرت نه کیږي یا په هغه ځای کې چیرته چې مات شوی دی او دده مزدوري دهغه حساب څخه کیږي او نه ضامن کیږي ښکر لګوونکی او ستن لګوونکی او رګ خلاصوونکی که یې

تجاوز ونکړله معتادځای څخه او اجيرخاص مستحق کيږي دمزدوري دخپل ځان په تسليمولوسره په موده کې که څه هم کارېې نه وي کړی لکه يوڅوک چې مزدورکړای شي ديوې مياشتې لپاره يادپسونودپوولولپاره
اونه ضامن کيږي دهغه چې دده په لاس کې تلف شي ياددده په عمل سره .

**تشريح** :(۵)که مستاجرمزدورته وويل چې زمادشاتو (عسلو)منګی ترفلان ځای پوري ورسوه مزدورمنګی راپورته کړپه لاره کې منګی ورڅخه مات شونوله کوم ځای نه چې هغه منګی راپورته کړی ووهلته چې په څوباندي منګی خرڅيږي هغومره قيمت به مزدورومالک ته ورکړي اوده ته مزدوري نه ورکوله کيږي ياکه دمنګي مالک غواړي چيرته چې منګی مات شوی دی هلته چې په څوباندي خرڅيږی هغه قيمت دي له مزدورڅخه واخلي اوحساب دي وکړي ترهغه ځايه چې څومره مزدوري دمزدورحق کيږي هغه دي ورکړي مثلاکه په نيمه لاره کې مات شوی وي نونيمه مزدوري دي ورکړي بيادمنګي ضمان ځکه واجب دی چې هغه اجيرمشترک ووچې دده په حرکت سره مال ضائع شونودی ضامن ګرځي ځکه دده ته دعمل مفسداجازه نه وه که داماتيدل دده په ښوهيدلوسره وي اوکه درسی په شکيدوسره په کومه رسی چې منګی تړلی دی ځکه داهريودهغه فعل دی چې ده بي احتياطي کړي ده اومستاجرته اختيارځکه شته چې دلته دوې خبرې دي يوه داچې منګی دعمل په دوران کې مات شوی دی اوبوج پورته کول عمل واحددی نوګواکې تعدّی له ابتداء څخه واقع شوې ده بله داچې داباړپورته کول دمالک په اجازه سره شوی دی نوله دي څخه معلوميږي چې له ابتداء څخه تعدّی نه ده راغلې بلکې دماتيدوپه وخت کې تعدّی راغلې ده نوچې دی کومه خبره اختياروي هغه سمه ده همدي وجهي ته په کتوسره دباړيدلوځای ته اعتبارورکول کيږي اودوهمي وجهي ته په کتوسره دماتيدوځای ته اعتبار ورکول کيږي .

(۶)که ښکرلګوونکي ښکرولګاوه ياداغ والاچاته داغ ورولګاوه يادرګ خلاصوونکي دچارګ خلاص کړاوله هغه څخه څوک مړشونوکه جرّاح ترحدتجاوزنه ووکړی نونه ضامن کيږي ځکه جراح دعقدپه کولوسره ددي عمل التزام وکړاودعقدپه وجه داعمل دهغه پرذمه واجب دی اوله وجوب سره ضمان نه يوځای کيږي اوکه جرّاح ترحدتجاوزکړی وونوضامن کيږي ځکه دتجاوزکولوهغه ته اجازه نشته .

**فائده** :که يوناروغ ته دتجربه کاراوماهرډاکټراوحکيم دتجويزکرده نسخي مطابق دارودرمل ورکړل شي اوپه هغه سره ناروغ مړشي نوهيڅ ديت اوضمان نشته اوکه دارووکوونکی نه ډاکټرووانه يې دحکيم دتجويزکرده نسخي مطابق داروورکړل يايې ترتجويزکرده نسخه زيات مقداردارووركړل چې ناروغ ورڅخه مړشونوبيادارووركوونکی ضامن دی پرهغه باندي ديت اوکفاره دواړه واجبيږي لمالی الحديث (ابوداؤد:۲/ ۲۸۲کتاب الديات)قال النبي ﷺ من تطبب ولايعلم منه طب فهوضامن (حقانيه:۵/۲۱۳)

(۷)داجيرخاص له احکاموڅخه يوحکم دادی چې کله هغه په معقودعليهاموده کې خپل ځان حاضرکړي نوداجرت مستحق ګرځي که څه هم کارونکړي لکه يوڅوک چې مزدورديوې مياشتې خدمت ياپسونوپوولولپاره په اجاره راولي اواجيرخپل ځان دکارکولولپاره حاضرکړي نوداجرت مستحق ګرځي

ځکه معقودعليه تسليم دنفس دی چې ده هغه کاروکړپه دي صورت کې معقودعليه عمل نه دی نودعمل کولوبغيرهم دی داجرت مستحق کيږي .

(۸)اودوهم حکم دادی چې داجيرخاص په لاس کې سامان امانت دی نودهلاکت په صورت کې پراجيرباندي ضمان نشته ،همدارنګه که چيرته داجيرخاص په عمل معتادسره يوشی هلاک شي نوهم نه ضامن کيږي ځکه په دي صورت کې منافع دمستاجرمملوک دي نوچې کله مستاجراجيرته په خپل ملک کې دتصرف کولوحکم ورکړاحکم ورکول يې صحيح دی اواجيردمستاجرقائم مقام شونوګواکي دافعل مستاجرکړی دی ځکه اجيرنه په ضامن کيږي البته که داجيرپه عمل غيرمعتادسره سامان هلاک شونوبيااجيرضامن کيږي .

## باب الاجرة على احد الشرطين

داباب پريوه شرط باندي داجرت کولوپه بيان کې دی

مصنف رَحِمَهُ اللّٰهُ چې کله په يوه شرط داجارې له بيان څخه فارغ شواوس يې په دوويازياتوشرطوباندي داجارې بيان شروع کړځکه دوه له يوه وروسته وي په ډيرونسخوکې دغه عبارت نشته ممکن چې يوه کاتب داعبارت زيات کړي وي .

(۱)وَصَحَّ تَرْدِيدُ الأَجرِ بِتَرْدِيدِ العَمَلِ فِي النَّوعِ نَوعًا(۲)وَزَمَانًا فِي الأَوَّلِ(۳)وَفِي الدُّكَانِ وَالبَيتِ وَالدَّابَّةِ مَسَافَةً وَحَملًا

**ترجمه** :اوصحيح داجرت ترديد دعمل دترديدپه وجه دکپړي دنوع په اعتبارسره اودزماني په اعتبارسره په اول کې اوپه دکان کې اوپه سرای کې اوپه سواري کې دمسافت په اعتبارسره اودبارپه اعتبارسره .

**تشريح** :(۱)په کپړه کې داجرت ترديدصحيح دی دعمل په ترديدسره دنوع په اعتبارسره مثلاً مستاجر درزي ته ووېل چې که دغه کپړه ماته فارسي طرزراجوړوي نويودرهم درکوم اوکه يې رومي طرز راوګنډي نودوه درهمونه درکوم نودمستاجردغه ترديدپه اجرت اوعمل کې صحيح دی اواجيرچې په دغودووعملونوکې هريوعمل وکړي دهغه اجرت مستحق ګرځي همدارنګه که اجيرته په دريوشيانوکې اختيارورکړای شي نوهم جائزدی اوکه په څلوروشيانوکې اختيارورکړل شي نوجائزنه دی کمافی البيع چې په دوواودريوکې اختيارورکول کيږي مګرپه څلوروکې اختيارورکول جائزنه دی په دريوکې دترديددجوازوجه حاجت دی چې په دريوکې په ترديدسره حاجت پوره کيږي ځکه دري پرجيد،وسط اوردي باندي مشتمل وي نوځکه په څلوروکې دترديدحاجت نشته .

(۲)مذکورصورت دترديدفی النوع صورت ووچې فارسی طرزګنډل يوه نوع دی اورومي طرز ګنډل دوهمه نوع ده اوکه مستاجرپه زمانه کې ترديدوکړنوکه په مخکې موده کې اجيرعمل کړی وي نو صحيح دی داجرت مسمی مستحق ګرځي اوکه يې په بله موده کې عمل کړی وي نوصحيح نه دی داجرت مثل مستحق

کیږي مثلاً مستاجروویل چې که چیرته داجامه تانن وګنډله نویودرهم درکوم اوکه دي سباوګنډلې نونصف درهم درکوم بیاکه اجیرنن ورځ وګنډلې نوداامام ابوحنیفة رحمه الله په نزددیوه درهم مستحق کیږي اوکه یې سباورځ وګنډلې نوداجرت مثل (دیوچاداجرت مثل څخه مراددادی چې دهغه په شان سړیه هغومره عمل باندي څومره اجرت اخلي هغه اجرت به دده هم کیږي) مستحق ګرځي نه داجرت مسمّی (اجرت مسمّی هغه دی چې دعقدپه وخت متعین شي) لیکن اجرت مثل هم ترنصف درهم زیات نه ورکول کیږي ځکه په دوهمه ورځ کې همدا مسمّی دی چې اجیرپري راضي وو، دصاحبینو رحمهما الله په نزددواړه شرطونه جائزدي په کوم ورځ چې وګنډي دهغې ورځې داجرت مسمّی مستحق ګرځي.

**فائده**: دصاحبینو رحمهما الله قول راجح دی لماقال الشیخ عبدالحکیم الشهید رحمه الله: واعلم ان قول الامام والصاحبین رح مذکورفی المتون والشروح والفتاوی من غیرالتعرض الی الترجیح والتصحیح صراحة الاان مافی المجلة وشروحها اختیارلقولهماحیث قال فی المادة (۵۰۲) وکذالک لوساوم احدالخیاط علی ان یخیط له جبة بشرط ان خاطهاالیوم فله کذاوان خاطهاغدافله کذاتعتبرالشروط الخ وفی شرحهاقال والحکم المذکورفیهاوهوصحة عقدالاجارة مع اعتبارالشرطین هوقولهماوهوالذی مشت علیه المجلة. (هامش الهدایة: ۳/۳۰۹)

(۳) قوله وفی الدکان والبیت والدابة مسافة وحملای صح تردیدالاجربترديدالعمل فی الدابة من حیث المسافة والحمل، یعني په دکان اوسرای کې هم تردیدفی العمل صحیح دی مثلاً آجرمستاجرته وویل که په دې دکان یاسرای کې ځوک دعطرفروشي کارکوې نوبیایې کرایه دمیاشتې یودرهم دی اوکه دپښې کارېکې کوي نودوه درهمه کرایه ده داامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدداجائزدی مستاجرچې هرڅه کوي آجردهغه داجرت مسمّی مستحق ګرځي، دصاحبینو رحمهما الله په نزدداجاره فاسده ده اوپه سوارلي کې تردیددمسافت اوبارپه اعتبارسره صحیح دی مثلاً آجرمستاجرته وویل که ته دغه سوارلي ترمکې مکرمې پوري بیایې نودومره کرایه ده اوکه یې ترمدینې منورې پوري بیایې نوبیادومره کرایه ده یایې ورته وویل چې که چیرته پردې سوارلي باندي دوه منه غنم باروي نودومره کرایه ده اوکه دوه منه پري باروي نوبیادومره کرایه ده داامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدداتردیدجائزدی مستاجرچې هرڅه کوي آجردهغه داجرت مسمّی مستحق ګرځي ځکه مستاجرته ددوومختلفواوصحیحوعقدونوپه منځ کې اختیارورکړل شوی دی ځکه نوداصحیح دي کمافی مسئلة الرومیة والفارسیة، اودصاحبینو رحمهما الله په نزدداجاره فاسده ده ځکه اجرت مجهول دی ځکه دامعلومه نه ده چې له دووعملونوڅخه کوم عمل کوي اودکوم اجرت مستحق کیږي.

**فائده**: داامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لماقال المفتی غلام قادرالنعمانی: القول الراجح هوقول ابی حنیفة رحمه الله قال العلامة ابراهیم الحلبی رحمه الله: ولوقال ان اسکنت هذاالحانوت عطارافبدرهم اوحدادافبدرهمین جاز خلافالهما (القول الراجح: ۲/۲۳۶)

## باب اجارة العبد

داباب دمریي داجارې په بیان کې دی،

مصنف رحمه الله دآزادشخص داحکاموڅخه فارغ شودمریي احکام یې شروع کړل وجه دتاخیریې داده چې دمریي رتبه ترآزادوروسته ده ځکه یې احکام هم وروسته ذکرکړي دي.

(۱) وَلَا يُسَافِرُ بِعَبْدٍ اِسْتَاجَرَ لِلْخِدْمَةِ بِلَا شَرْطٍ (۲) وَلَا يَأْخُذُ الْمُسْتَاجِرُ مِنْ عَبْدٍ مَحْجُورٍ أَجْرًا دَفَعَهُ لِعَمَلِهِ

**ترجمه**: اوپه سفربه يې نه بيايې هغه مريی چې اجاره کړې يې وي دخدمت لپاره له شرط بغیراو نه دي اخلي مستاجرله محجورمريي څخه اجرت چې ورکړې يې وي ده ته دهغه دکارپه وجه.

**تشريح**: (۱)چاچې مريی دخدمت لپاره اجاره کړی وي اومستاجرمقيم دی اومعروف بالسفرنه وو نومستاجربه هغه مريی په سفرنه شي بيولای ځکه دسفرپه خدمت کې مشقت دی ترڅوچې هغه يې التزام ونکړي نه لازميږي البته که مستاجردعقدپه وخت کې پرهغه باندي په سفردتلوشرط لګولی وويا معروف بالسفروونوبيايې په سفربيول جائزدی ځکه شرط ملزم دی او المعروف کالمشروط داسي دی.

(۲)که يومريې ته دمولی له طرفه دمزدوري کولواجازه نه وي اوهغه خپله په مزدوري لګياشي اومستاجرهغه ته دهغه دعمل مزدوري ورکړي وروسته معلومه شي چې هغه خومحجوردی دمزدوري کولواجازه يې نه درلوده اودهغه مزدوري کول صحيح نه وونومستاجرله هغه مريي څخه مزدوري واپس نه شي اخيستلای ځکه داجارې فسادمولی دحق دمراعاتولوپه وجه سره وواوله عمل وروسته حق درعايت په دي کې دی چې اجاره صحيحه وبلله شي اجرت واجب وګڼل شی ځکه نومستاجرلره دمزدوري واپس اخيستل جائزنه دی.

(۳) وَلَا يَضْمَنُ غَاصِبُ الْعَبْدِ مَا أَكَلَ مِنْ أَجْرِهِ (۴) وَلَوْ وَجَدَهُ رَبُّهُ أَخَذَهُ وَصَحَّ قَبْضُ الْعَبْدِ أَجْرَهُ (۵) وَلَوْ آجَرَ عَبْدَهُ هٰذَيْنِ الشَّهْرَيْنِ شَهْرًا بِأَرْبَعَةٍ وَشَهْرًا بِخَمْسَةٍ صَحَّ وَالْأَوَّلُ بِأَرْبَعَةٍ (۶) وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي إِبَاقِ الْعَبْدِ وَمَرَضِهِ حُكِّمَ الْحَالُ (۷) وَالْقَوْلُ لِرَبِّ الثَّوْبِ فِي الْقَمِيصِ وَالْقَبَاءِ وَالْحُمْرَةِ وَالصُّفْرَةِ (۸) وَالْأَجْرِ وَعَدَمِهِ

**ترجمه**: اونه ضامن کيږي غاصب دمريي دهغوروپوچې دمريي له اجرت څخه يې خوړلې وي اوکه پيداکړدغه اجرت دده مالک نوواديي خلي ورڅخه اوصحيح دی قبضول دمريي خپلې مزدوري لره اوکه يې اجاره کړدچامريی دوې مياشتې يوه مياشت په څلورروپۍ اويوه مياشت په پنځه روپۍ نوصحيح دی اولومړۍ مياشت دڅلوروپه عوض کيږي اوکه ددواړوترمنځ اختلاف راغی دمريي په تښتېدو يادهغه په ناروغ کيدوکې نوحال دي حکم وګرځوي اوقول دکپړې دمالک معتبريږي په قميص اوجبه ګنډلواوسوريازيړرنګ ورکولوکې اوپه اجرت اونه اُجرت کې.

**تشريح**: (۳)که چادبل چامحجورمريی غصب کړمريي خپل ځان په مزدوري لګياکړاوغاصب له مريي څخه دهغه مزدوري يوړه ويې خوړه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددمريي دواپس کولوپه وخت کې غاصب دهغه دمزدوري ضامن نه ګرځي اودصاحبينو رحمهما الله په نزدغاصب ضامن ګرځي ځکه دمحجورمريي اجاره استحساناصحيح ده نودهغه مزدوري دمولی مال دی چې غاصب خوړلی دی ځکه غاصب ضامن ګرځي،دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل داقاعده ده چې دمحفوظ مال په تلف کولوسره تلف کوونکی ضامن

کيږي په داسي حال کې چې مربی اودهغه مزدوري محفوظ نه دي ځکه مربی اودهغه مزدوري دمالک يادهغه دنائب په قبضه کې نه دي ځکه ضمان هم نشته.

(۴)البته که مولی اجرت بعينه دمربي په لاس کې موجودپيدا کړنوهغه دي واخلي ولی هغه خپل عين مال پيدا کړ ځکه دمال دنه محفوظ کيدوڅخه عدم مِلک نه لازميږي اوکه مربي خپل ځان په مزدوري لګيا کړاومستاجرهغه ته اجرت ورکړنوپه اتفاق سره پراجرت باندي دهغه قبضه صحيح ده ځکه دعقدمباشرخپله مربی دی اودعقددحقوقوتعلق له عاقدسره وي نودمربي قبض صحيح دی اودمربي داتصرف نافع هم دی دکوم چې ده لره يې اجازشته.

(۵)که يوچامربی دوې مياشتې په دي ډول په اجاره ورکړچې يوه مياشت به څلوردرهمه مزدوري وي اويوه مياشت به پنځه درهمه وي نوده په عقدکې دوې مياشتې نکره ذکرکړي دي چې وخت يې معلوم نه دی ځکه داعقدبايدجائزنه شي مګردعاقل بالغ کلام له بي کاره کيدوڅخه ساتل ضروري دی نودعقددجائزکيدولپاره کومه مياشت چې لومړی ذکرشوې ده هغه په عقدپسي متصله مياشت ګڼله کيږي يعنې کومه مياشت چې له عقدوروسته شروع کيږي هغه لومړی مياشت ګڼله کيږي اوڅلور درهمه عوض لري اودوهمه هغه مياشت ده چې ترهغې وروسته وي.

(۶)که چايوه مياشت مربی په اجرت واخيست اودمياشتې په شروع کې يې هغه قبض کړله هغه وروسته يې دمياشتې په پای کې وويل چې دامربی دمياشتې په شروع کې تښتيدلی وياناروغ شوی وواومولی له دي خبري څخه انکاروکړچې هغه اوس ستاتراتګ مخته تښتيدلی ياناروغ شوی دی نوحال به حکم ګرځول کيږي يعنې که ددوئ دخصومت په وخت کې مربی تښتيدلی ياناروغ وونوموجوده حال به فيصل وګرځوي وبه وايې چې واقعًامربی له عقدسره په متصل وخت کې تښتيدلی ياناروغ دی نودمستاجرقول دهغه له قسم سره معتبريږي اواجرت نه واجبيږي اوکه هغه مربی په دي وخت کې صحت مندراوستی وونوهم موجوده وخت فيصل ګرځي ويل کيږي چې دعقدله وخت څخه تراوسه نه دامربی تښتيدلی دی اونه ناروغ شوی دی ځکه بيادموجرقول معتبريږي.

(۷)که دجامې دخاونديعنې مستاجراودرزي يعنې اجيرترمنځ اختلاف شومستاجروويل چې مادجُبّه(چپنه) ګنډلودرته ويلي ووتاقميص ګنډلی دی ،يادجامې خاونديعنې مستاجررنګريزيعنې اجيرته وويل چې دمادسوررنګ درته ويلي ووتازېړرنګ ورکړی دی مګراجيروايي چې نه !بلکې تاماته دقميص ګنډلوويلي ووياداي دزېړرنګ راته ويلي وونوقول دجامې دخاوند(مستاجر)معتبردی ځکه اجازه دجامې دخاوندله طرفه حاصليږي نودی دهغې په کيفيت زيات خبرداروي آن که چيرته هغه داصل اجازت څخه انکاروکړي نودهغه قول معتبردی نودصفت دانکارپه صورت کې هم دهغه قول معتبردی خوله هغه څخه به قسم اخيستل کيږي ځکه دی دداسي شي انکارکوي چې که دی دهغه اقراروکړي نوپرده باندي لازميږي اوداسي منکرته قسم ورکول کيږي.بياکه دجامې خاوندقسم واخيست نوبيادرزي (اجير)ضامن ګرځي ځکه ده دغيرپه مِلک کې دهغه داجازت بغيرتصرف کړی دی.

(۸)قوله والاجر وعدمه اى لواختلف رب الثوب والصانع فى الاجر وعدمه فالقول لرب الثوب ،يعني كه دجامې خاوند وويل چې تازمالپاره بغيراجرت كاركړى دى اوكاريګروويل چې نه بلكې په اجرت سره مې كړى دى نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزد دجامې دخاوندقول معتبردى ځكه دجامې خاوندله اجرت څخه منكردى اوكاريګردهغه داعي دى اوقول دمنكرمعتبروي ،امام ابويوسف رحمه الله فرمايې چې كه دجامې خاونددكاريګرحريف وو(يعني تردې مخكې كاروبارپه اجرت سره وو)نوبيادكاريګرداجرت مستحق ګرځي كه نه ووحريف بيانه ګرځي ځكه ددوئ ترمنځ سابقه معامله جهت داجرت متعين كوي،امام محمد رحمه الله فرمايې چې كه كاريګرپه دې مشهوروو چې داكارپه اجرت سره كوي نوبياقول دكاريګرمعتبردى كه نه بيادجامې دخاوندقول معتبردى ولى كاريګرچې دكوم كارلپاره خپل ځان متعين كړى دى نوداپراجرت باندې دتصريح قائم مقام دى .

## باب فسخ الاجارة

### داباب داجارې دفسخ په بيان كې دى

ددې باب دوروسته كيدووجه ظاهره ده ځكه فسخ دعقدتروجوددعقدوروسته وي نوددې باب ذكرپه آخركې مناسب دى .

(۱)تفسخ بالعيب وخراب الدار وانقطاع ماء الضيعة والرحا(۲)وتنفسخ بموت احدالمتعاقدين ان عقدها لنفسه(۳)وان عقدها لغيره لا كالوكيل والوصي والمتولي في الوقف(۴)وتفسخ بخيار الشرط والرؤية(۵)والعذر وهو عجز العاقد عن المضي في موجبه الا بتحمل ضرر زائد لم يستحق به كمن استاجر رجلا ليقلع ضرسه فسكن الوجع او ليطبخ له طعام الوليمة فاختلعت منه او حانوتا ليتجر فافلس او آجره ولزمه دين بعيان او بيان او باقرار ولا مال له سواه(۶)او استاجر دابة للسفر فبدا له منه(۷)لا للمكاري

**ترجمه** :فسخ كيږي په عيب سره اودسراى په ورانيدوسره داوبوپه منقطع كيدوسره له ځمكې اوژرندې نه اوفسخ كيږي ديوه دمتعاقدينوپه مرګ سره كه يې عقدكړى وودخپل ځان لپاره اوكه يې عقدكړى وودغيرلپاره بيانه فسخ كيږي لكه وكيل اووصي اودوقف متولي اوفسخ كيږي په خيارشرط اوخيار رؤيت سره اوعذرسره چې هغه عاجزكيدل دعاقددى دعقدله موجب پوره كيدوڅخه مګردزيات ضررپه برداشت كولوسره چې دهغه مستاجرمستحق نه دى دعقدپه وجه لكه څوك چې يوسړي ته اجرت وركړي چې هغه ده ته غاښ وروكاږي بيايې دغاښ دردختم شويايې اشپزبووت چې ديګونه پاخه كړي دواده په دې منځ كې ښځې خلع وكړه له خاوندسره يايې دكان كرايه كړچې تجارت پكې وكړي بيادغه سړى مفلس شويايې په كرايه وركړبياپرهغه باندې قرض راغى په ظاهرسره يادهغه په بيان اواقرارسره اوهغه لره له دغه دكان پرته نورمال نشته يايې حيوان دسفرلپاره كرايه كړبيابنكاره شوده لره يومانع دسفرنه داچې كرايه وركوونكي ته مانع ورپېښ شي .

**تشريح** :(۱)اجاره دعيب په وجه فسخ كيږي مثلاً كه په مستاجرسراى كې يوداسې عيب پيداشي چې په سراى كې داوسيدولپاره مضروي نومستاجرداجاره فسخ كولاى شي ځكه په دې صورت كې انتفاع

بلاضرر ممکنه نه ده همدارنګه که هغه کرایه شوی سرای ویران شي یا دکښتي څمکې یادژرندې اوبه منقطع شي او هغه قابل دانتفاع پاته نه شي نواجاره فسخ کیږي ځکه معقودعلیه (منافع) قبل القبض فوت شوې داداسي دی لکه قبل القبض چې مبیع فوت شي.

**فائده**: ژرنده هغه مشین چې په اوبو چلیږي غنم اوره کوي اوپخوا به دویالوپرغاړه باندي لګیدی چې اوبه په زورتیري شي اوداوبوله پریشرڅخه ژرنده وچلیږي اوس خوژرنده په برق اوانجن سره چلوي پخوان سستم ختم شو.

(اشرف الهدایه)

(۲) که له متعاقدینو څخه یو مړشو اوعقدیې دخپل ځان لپاره کړی وونواجاره پخپله فسخ کیږي ځکه دموجردمرګ په صورت کې که چیرته مستاجرله مستاجره شي څخه نفع حاصلوي نوله ملک دغیرڅخه منتفع کیدل لازمیږي (اوداکارجائزنه دی) ځکه دموجرله مرګه وروسته شی دهغه دوارثانو کیږي اودمستاجردمرګ په صورت کې دغیرله ملک څخه داجرت ادائیګی راځي چې داهم ناجائزه ده ځکه دمستاجرملک دورثه ؤطرف ته منتقل کیږي.

(۳) البته که عقداجاره عاقددخپل ځان لپاره نه بلکې دغیرلپاره کړی وونودعاقددمرګ په وجه اجاره نه فسخ کیږي مثلاعقداجاره وکیل ،وصي یادعقدمتولی وقف کړی وویاوکیل.وصي یامتولی مړشونواجاره نه فسخ کیږي ځکه په دي صورت کې له ملک غیرڅخه منتفع کیدل یااجرت اداکول نه لازمیږي ولی مستحق دعقدموجوددی

(۴) په اجاره کې خیارشرط اوخیاررؤیة شرطول صحیح دی مثلاداسي وواېي چې مالره دري ورځي اختیاردی که مي وغوښته اجاره برقرارساتم اوکه مي خوښه نه شوه ردوم یې نوداصحیح دی ځکه اجاره عقدمعاوضه دی دکوم لپاره چې په مجلس عقدکې قبض ضروري نه دی اودفسخ بالاقاله احتمال لري نودبیع په شان په دي کې هم خیارشرط جائزدی همدارنګه که مستاجروویل چې زه یې ووینم نومالره دبراقرارساتلو اوردولواختیارشته داهم صحیح دی ځکه عقد دمتعاقدینو درضامندي بغیرنه تامیږي اودمتعاقدینورضامندي له علم بغیرنه ظاهره کیږي نوله رؤیت اوعلم بغیرعقدنه تامیږي ځکه نوخیاررؤیت شرط کول صحیح دی نوچې کله له خیارشرط اوخیاررؤیت سره اجاره صحیح ده نوصاحب خیاردخیارپه وجه اجاره فسخ کولای شي.

(۵) قوله وبالعذر ای تفسخ الاجارة بالعذر ،یعني اجاره دداسي عذرونوپه وجه فسخ کیږي دکوموپه وجودسره چې مستاجرخپل مطلب نه شي پوره کولای که یې پوره کوي نوله ده سره به ضررلاحق کیږي کوم چې دعقدپه وجه پرده لازم نه وومثلایوسړي ددردپه وجه یوسړی دغاښ ایستلولپاره په اجاره راووست هغه لاغاښ نه دی ایستلی چې دغاښ دردختم شونواجاره فسخ کیږي ځکه که دغه اجاره برقراره وساتله شي نواجیردمستاجرسم روغ غاښ ورکاږي چې داضرردعقدپه وجه لازم نه دی نوداداسي یوعذردی چې داجارې له برقرارساتلوڅخه مانع دی ،همدارنګه که یوڅوک دواده ددیګونو پخولولپاره یواشپزپه اجاره راولي

خو د ديگونو د تيارېدو په كار د پيل كولو څخه مخكې مستاجر له خپلې ښځې سره خلع وكړه نو اجاره فسخ كيږي ولې كه اجير ديگونه پخوي نو د مستاجر مال بغير د وليمه ضائع كيږي چې دعقد په وجه پرهغه لازم نه دى نو داهم داجارې دبرقرار ساتلو مانع دى همدارنگه كه يو چا په بازار كې دكان كرايه كړ چې تجارت به پكې كوي يادهغه مال تجارت ضائع شو يا يو چا سراى يادكان په كرايه وركړى وو بيا آجر مفلس شو او د و مره قرض يې پرذمه راغى چې دادا كولو لپاره يې له ده سره له دغه په كرايه وركړې سراى او دكان څخه علاوه نور بل مال هم نشته چې قرض پرې اداكړي كه دا قرض د ټولو خلكو په حضور كې وو يا په گواهانو سره ثابت شو يا خپله دده په اقرار سره ثابت شو نو اجاره فسخ كيږي ولې كه آجر اجاره فسخ نه كړي دكان او سراى خرڅ نه كړي نو دوخت حاكم دى بندي كوي چې په دې كې دده داسې ضرر دى چې دعقد په وجه پرده نه دى لازم شوى نو دا داجارې دبرقرار ساتلو څخه مانع دى .

(۶) يا مثلا يو چا حيوان دسفر لپاره كرايه كړ بيا دهغه رايه بدله شوه او ده لره دسفر په نسبت په نه سفر كولو كې مصلحت ښكاره شو نو په دې صورت كې هم اجاره فسخ كيږي ولې كه اجاره برقراره وساتي نو په دې كې دمستاجر داسې ضرر دى چې دعقد په وجه پرده نه دى لازم شوى .

(۷) قوله لا للمكارى اى لايكون عذرا ان بدا للمكارى المانع من السفر، يعنې كه آجر حيوان په كرايه وركړ او دحيوان دنگراني لپاره خپله آجر هم دسفر كولو اراده كړي وه مگر د آجر رايه بدله شوه او ده لره دسفر په نسبت په عدم سفر كې مصلحت ښكاره شو نو آجر لره دا عذر نه دى چې هغه د دې په وجه باندې عقد اجاره فسخ كړي ځكه آجر لره دا ممكن دى چې خپله په كور كې كښيني او دحيوان دنگراني لپاره يو مزدور يا مريى وليږدوي .

## مسائل متفرقه

### متفرقه (بيلا بيلې مسئلې)

دمصنفينو رحمهم الله عادت دى چې دكتاب په آخر كې له تيرو بابونو سره متعلق څه داسې نادرې مسائلې ذكر كوي چې له كوم خاص باب سره تړاو نه لري لكه مصنف رحمه الله چې هم دكتاب الاجاره په آخر كې داسې څه مسائلى ذكر كړي دي

(۱) ولو احرق حصائد ارض مستاجرة او مستعارة فاحترق شئ فى ارض غيره لم يضمن (۲) وان اقعد خياط او صباغ فى حانوته من عليه العمل بالنصف صح (۳) وان استاجر جملا ليحمل عليه محملا وراكبين الى مكة صح وله المحمل المعتاد ورؤيته احب

**ترجمه** : او كه يې وسوځل كښنت دهغې ځمكې چې په اجاره شوې وه او يا په عارية اخيستله شوې وه بيا وسوځل شو يو شى د بل چا په ځمكه كې نو هغه نه په ضامن كيږي او كه كيناو د درزي يا رنگريز په خپل دكان كې هغه څوك چې پرده باندې كار وو په نصف عوض نو دا صحيح دى او كه يې اوښ كرايه كړ چې پرهغه باندې كجاوه كښيږدي او دوه سواريان پرې سواره كړي تر مكې مكرمې پورې نو صحيح دى او جائز دى ده لره مروجه كجاوه اېښودل او دهغه ليدل زيات غوره دى .

**تشريح** :(۱)که يوه بزګر د اجاره شوي ځمکې يا د عارية د ځمکې د ريبل شوي کښت پاتې شوني وسوځاوه چې دهغه په وجه د بل چا په ځمکه کې هم يو شي وسوځل شو نو دهغه دا بزګر ذمه وار نه ګرځي ځکه ضمان هغه وخت واجبيږي چې په قصد سبب د تلف اختيار کړای شي او دلته هغه عمداً دا کار نه دی دا داسي دی لکه يو څوک چې په خپل مِلک کې څاه وکاږي اويوسړی په هغه څاه کې مړشي نو د څاه کيندونکی نه ضامن کيږي حصائد د حصيدة جمع ده معنی ريبل شوی کښت مګر دلته دکښت هغه حصه مراد ده چې دکښت له ريبلو وروسته پر ځمکه باندي پاته وي.

(۲)يو درزي يا رنګريز چې يو څوک پخپل دکان کې کينوي چې دی له خلکو څخه د جامو ګنډلو کارونيسي د کاندارته يې ورکړي او معامله په نصف وي نو د قياس تقاضا داده چې دا بايد جائز نه شي ځکه دا په حقيقت کې بل چا مالک د دکان ته د دکان يوه حصه په کرايه ورکړي ده چې ته دلته کينه له خلکو څخه کارونه نيسه او نصف مزدوري مالک دکان ته د کرايه په ډول ورکړي ظاهره ده چې دا اجرت مجهول دی ځکه جائز نه دی مګر استحساناً داصحيح دی ځکه دا په حقيقت کې اجاره نه ده بلکې شرکت صنائع دی په کوم کې چې کارپردوا ړو باندي کيږي که څه هم يو د مهارت په وجه کارکوي او بل دوجاهت په وجه کارونه قبلوي او شرکة صنائع جائز دی نو چې څوک يې کينولی دی هغه دخپل وجاهت په وجه له خلکو څخه کارونه نيسي او درزي يا رنګريز د خپل مهارت له مخي هغه کارونه سرته رسوي نو چې څه حاصل شي دهغه مجهول کيدل مضر نه دی.

(۳)که چا اوښ کرايه کړ چې پردي اوښ باندي به ترمکې مکرمې پوري (غيرمعين )کجاوه او په هغې کې دوه کسان سوروي نو دی پر هغه باندي معتاد (مروّجه) کجاوه ښودلی شي په دي صورت کې که څه هم کجاوه مجهوله ده مګر مقصود انسان دی هغه معلوم دي او کجاوه تابع ده نو دا جهالت مضر نه دی ځکه له کجاوه څخه چې معتاد کجاوه واخيستله شي جهالت رفع کيږي او که د اوښ خاوند کجاوه خپله ووينې نو ډيره ښه ده ځکه په ليدو سره جهالت سره بلکل ختميږي.

(۴)ولمقدارزادوأكل منه زدعوضه (۵)وتصح الاجارة وفسخها والمزارعة والمعاملة والمضاربة والوكالة والكفالة والإيصاء والوصية والقضاء والامارة والطلاق والعتق والوقف مضافا (۶)لاالبيع واجازته وفسخه والقسمة والشركة والهبة والنكاح والرجعة والصلح عن مال وابراء الدين

**ترجمه** :او که يې اُوښ کرايه کړ د خاص مقدار توښه راوړلو لپاره بيا يې څه وخوړل له هغې څخه نو وردي کړي دهغه عوض او صحيح ده اجاره او فسخ د اجارې او مزارعت او معامله او مضاربت او وکالت او کفالت او وصي ګرځول او وصيت کول او قاضي ګرځيدل او امير ګرځيدل او طلاق ورکول او آزادول او وقف کول وخت ته په اضافت سره نه بيع او اجازه د بيع او فسخ د بيع او قسمت او شرکت او هبه او نکاح او رجعت او صلح له ماله کول او له قرض څخه بري کول.

**تشريح** :(۴)قوله ولمقدارزادوأكل منه زدعوضه اي ان استاجر جملا لمقدار زاد واكل منه زدعوضه،يعني که د چا د يو معين مقدار توښه رسولو لپاره اوښ کرايه کړ بيا په لاره کې مستاجر له هغې توښې څخه څه خوراک وکړ چې په هغه سره د توښې

مسمّی مقدار کم شونو مستاجر له دا جائزده چې څومره يې خوړلي وي هغومره دي ورکړ کړي څکه مستاجر په تړله لار د مسمّی بار راوړلو مستحق دی نو هغه کمی دي پوره کړي.
(۵) مستقبل زماني ته په منسوبولو سره لاندې عقود صحيح دي: (۱) عقد اجاره کول صحيح دی مثلا څوک په شعبان کې ووايي چې ماخپل سرای د رمضان له شروع څخه تاته په کرايه درکړی دی نو دا اجاره صحيح ده ځکه اجاره تمليک منافع لره متضمنه ده او منافع شيئاً فشيئاً موجوديږي نو مستقبل ته يې منسوبول جائزدی
(۲) پراجاره باندې قياس فسخ د اجارې هم مستقبل زماني ته منسوبول جائزدی مثلا لکه څوک چې په شعبان کې ووايي ماچې کوم سرای تاته په کرايه درکړی دی هغه اجاره ما د رمضان د مياشتې له شروع کيدو سره فسخ کړې ده نو دا صحيح دی (۳) مزارعت مستقبل زماني ته منسوبول صحيح دی مثلا يو څوک په شعبان کې ووايي زارعتک ارضی من اول رمضان، ماخپله ځمکه د رمضان له شروع څخه تاته د زراعت لپاره درکړي ده
(۴) مساقات يعني کښت ته داوبو ورکولو معامله مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی مثلا څوک په شعبان کې ووايي ساقيتک بستاني من اول رمضان، ماتاته خپل باغ د رمضان له شروع څخه په مساقات درکړی دی کښت او مساقات چې کوم حضرات جائزګڼي هغوئ دا اجاره ګڼي ځکه يې د مستقبل زماني منسوبول جائزدی (۵) مضاربت مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی مثلا رب المال چاته په شعبان کې ووايي دفعت اليک هذا المال مضاربة من اوّل رمضان، ماتاته د رمضان له شروع څخه دامال په مضاربت درکړی دی
(۶) همدارنګه وکالت د مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی مثلا موکل د شعبان په مياشت کې يوچاته ووايي وکلتک من اوّل رمضان. ماته د رمضان په ابتداء کې وکيل ګرځولی يې ځکه دادواړه (مضاربت او وکالت )له قبيلې د اطلاقاتو څخه دي او قاعده داده چې کوم شی له قبيل د اطلاقاتو څخه وي هغه مستقبل طرفته منسوبول جائزدی (۷) کفالت مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی ځکه کفالت ابتداءً د مال التزام کول دی ځکه نو د مستقبل طرف ته د هغه منسوبول او په شرط متعارف پوري معلقول جائزدی (۸) څوک وصی ګرځول مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی ځکه په وصي ګرځولو کې وصي د خپل مرګ وروسته په تصرفاتو کې د خپل ځان قائم مقام ګرځول دی نو د مستقبل طرف ته منسوبول يې جائزدی (۹) همدارنګه ديوچا لپاره وصيت کول تمليک المال بعد الموت دی نو دا هم د مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی (۱۰) قاضي تاکل او امير تعين کول مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی ځکه رسول الله ﷺ حضرت زيدبن حارثه ﷺ د سريه امير وګرځاوه او ويې فرمايل که زيد شهيد شو بيا به حضرت جعفر ﷺ اميروي که هغه هم شهيد شو بيا حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ اميروي نو ذمه واري مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی (۱۱) همدارنګه طلاق ورکول آزادول او وقف کول مستقبل طرف ته منسوبول جائزدی مثلا خاوند د شعبان په مياشت کې خپلې ښځې ته ووايي د رمضان په شروع کې ته طلاقه يې يا مولی خپل مريي ته په شعبان کې ووايي د رمضان د شروع څخه ته آزاد يې يا يو څوک ووايي زما فلانی ځمکه زما له وفات وروسته وقف ده.
(۶) قوله لاالبيع واجازته وفسخه الخ ای لايصح البيع واجازته وفسخه الخ، يعني مستقبل طرف ته منسوبول نه دی جائز مثلا چې څوک داسې ووايي زه داخپل شی سبا خرڅوک نو دا صحيح نه دی همدارنګه د بيع اجازت

مستقبل طرف ته منسوبول هم صحيح نه دی مثلا یو فضولي شخص یو شی خرڅ کړنو څرنګه چې دا بیع دمالک پراجازه موقوفه ده او مالک وویل زه سباددي بیع اجازه درکوم نوداصحیح نه دی همدارنګه په مذکورصورت سره بیع فسخ کول ،تقسیم کول ،شرکت،هبه کول ،نکاح کول ،له طلاق څخه رجوع کول ،په مال صلح کول قرض معافول داټولې معاملاتې مستقبل طرف ته منسوبول صحیح نه دي
ځکه داتملیکات دي او دهغوتنجیزفی الحال ممکن دی نو مستقبل ته دمنسوبولو ضرورت یې نشته.

## كتاب المكاتب

### داكتاب دمكاتب په بيان كې دى

مكاتب،له كتبَ يَكتُب كتابَةً څخه لغةً په معنى دجمع كولو ،له همدي څخه كُتَيبةٌ په معنى دلښكرعظيم سره او كتابت په معنى دجمع كولودحروفو ،او شرعًا مريي يدًا يعني دتصرف له لحاظه بالفعل او درقبه له لحاظه دبدل كتابت له ادائيګۍ وروسته آزادولوته كتابت وايې مثلاخپل مريي ته ووايې چې كه تاماته لس زره درهمه راادا كړل نوته آزادیې ،دغولسوزرو درهموته بدل كتابت ویل کیږي دکتابت رکن ایجاب اوقبول دی او شرط یې دبدل کتابت معلومول دی.

له ماقبل سره مناسبت یې دادی چې له کتابت او اجارې څخه هریو داسې عقد دی په کوم کې چې دغیرمال په مقابله کې اصالةً مال حاصلیږي همدارنګه اجاره او کتابت دواړه په دې کې سره شریک دي چې په دواړو کې ملک رقبه دیوه لپاره وي او منفعت دبل لپاره کیږي.

( ١ ) اَلكِتَابَةُ تحرِيرُ المَملُوكِ يَدًا فِي الحالِ وَرَقَبَةً فِي المَآلِ ( ٢ ) كَاتَبَ مَملُوكَه وَلَو صَغِيرًا يَعقِلُ بِمَالٍ حَالٍ أَو مُؤَجَّلٍ أَو مُنَجَّمٍ وَقَبِلَ صَحَّ ( ٣ ) وَكَذَا إِن قَالَ جَعَلتُ عَلَيكَ الفًا تُؤَدِّيه نُجُومًا أَوَّلُ النَّجمِ كَذَا وَآخِرُه كَذَا فَإِذَا أَدَّيتَه فَأَنتَ حُرٌّ وَإِلَّا فَقِنٌّ ( ٤ ) فَيَخرُجُ مِن يَدِه دُونَ مِلكِه ( ٥ ) وَغَرِمَ إِن وَطِئ مُكَاتَبَه اوجنى عليها او على وَلَدِهَا أَو اتلف مَالَهَا

**ترجمه**: کتابت آزادول د مریي دی یدا فی الحال او رقبة فی المآل ،مکاتب یې کړ خپل مریی که څه هم هوښیار ماشوم وو د مال په عوض کې فورًا یا په موده سره یا په قسطو سره او مریي قبول کړ نو صحیح دی ،همدارنګه که مولی ورته وویل چې ماستا پر ذمه زر روپۍ کړي دي دا به ته اداکوې په قسطو سره لومړی قسط به دومره وي آخري قسط به دومره وي چې کله تا دا روپۍ اداکړي نوته آزاد یې که نه بیا غلام یې،نو وځي ده له لاسه نه دده له ملک نه او تاوان به ورکوي که یې وطی وکړه له خپلې مکاتبې منځې سره یایې جنایت وکړپردې باندې یا دهغې پر بچي باندې یایې مال ورتلف کړ.

**تشریح**: (۱) مصنف رحمه الله دکتابت اصطلاحي تعریف داسې کړی دی چې مریی دتصرف له لحاظه فی الحال او درقبه په اعتبار سره فی المآل (دبدل کتابت له ادائیګۍ وروسته ) آزادولو ته کتابت ویل کیږي.

(۲) چې کله مولی خپل مریی یا منځه دیو داسې معلوم مال په عوض مکاتب کړي چې پرده باندې شرط کړای شوی دی او مریی داعقد قبول کړي نو مریی مکاتب ګرځي که څه هم مریی نابالغ ماشوم وي ځکه دکتابت رکن (ایجاب او قبول ) او شرط (یعني معلوم مال ) پیداشو ثابت صحیح دی،برابردی که مولی

پرمريي باندي دكل مال ادائيگى فى الحال شرط كړي مثلاً ورته ووايي چې كه تالس زره روپۍ فى الحال اداكړې نوته آزاديې يا پوروړسره وكړي ياترمعلوم وخته پوري په قسطونو ادائيگى شرط كړي دادرې واړه صورتونه جائزدي ځكه داعقدمعاوضه دى اودادثمن فى البيع په شان دي نولكه څرنگه چې ثمن فى البيع حالاوصولول هم جائزدى اوپوراوپه قسطونواداكول هم جائزدى همدا سي مال كتابت هم دى .

(٣)همدا رنگه كه چاخپل مريي ته وويل چې ماپرتاباندي زردرهم ايښي دي چې هغه به ته په قسطونوسره اداكوې لومړى به دومره وي اوآخري قسط به دومره وي يعنې مقداراووختيې دواړه بيان كړل يايې وويل چې كه تادادرهم اداكړل نوته آزاديې اوكه ته عاجزشوې نوته مريى يې داكتابت صحيح دى ځكه مولى كتابت په تفسيرسره بيان كړاوپه عقودوكې معاني ؤلره اعتبارروي اودلته دكتابت معنى موجوده ده چې كله مطلق كتابت صحيح كيږي نودتفسيرپه صورت كې خوپه طريقه اولى صحيح كيږي .

(٤)بياچې كله كتابت صحيح شونومريى دمولى له لاسه وځي ددي لپاره چې دكتابت مقصديعنې دعوض پراداكولوباندي هغه قدرت حاصل كړي مگردمولى له ملک څخه نه وځي لقوله ﷺ :المكاتب عبدمابقى عليه درهمٌ (مكاتب مريى دى ترڅوچې پرهغه باندي يودرهم پاته وي )همدا رنگه كتابت عقدمعاوضه دى چې مساوات غواړي نوكه مريى دمولى له ملک څخه ووځي نوبياخومريى آزاديږي مگردهغه عوض يعنې مال مولى ته تراوسه نه دى په لاس ورغلى نومساوات پاته نه شوځكه مريى دمولى له ملک څخه نه وځي .

(٥)كه مولى دخپلې مكاتبې سره وطى وكړه نوپرمولى باندي دهغې دمهرتاوان لازميږي ځكه مولى له هغې سره داسي يوعقد(يعنې عقدكتابت )كړى دى چې دهغه په وجه ده خپل ځان دمنځې په ذات اومنافعوكې دتصرف كولوڅخه منع كړى دى اووطى خودمنځې له منافعوڅخه ده نودمنځې دمنافعوپه تلفولوسره دى ضامن گرځي،همدارنگه كه مولى پرخپله مكاتبه يادهغې پربچي باندي جنايت وكړيامولى دمكاتبې مال تلف كړنوپرمولى باندي په دي دريوواړو صورتونوكې تاوان لازميږي ځكه دمكاتبې دذات ،اولاداوگټې په حق كې مولى داجنبي (بيگانه) چاپه شان دى نوڅرنگه چې اجنبي دمذكوروجناياتوپه وجه ضامن كيږي همدا رنگه مولى هم ضامن گرځي .

(٦)وإن كاتبه على خمرٍ او خنزيرٍ او قيمته او عينٍ لغيره (٧) او مالٍ ليذ دسيّده وصيفا فسد (٨) فإن أدّى الخمر عتق وسعى في قيمته ولم ينقص من المسمّى وزيدعليه (٩) وصح لو على حيوانٍ غير موصوف (١٠) او كاتب كافر عبده الكافر على خمرٍ وأيّ أسلم له قيمة الخمر (١١) وعتق بقبضها

**ترجمه** :كه يې مكاتب وگرځاوه مريى پرشرابو ياخنزيريادمريي پرقيمت يادبل چاپرشي باندي يادسلو په عوض په دي شرط چې ده ته به مالک دخدمت لپاره مريى وركوي نوداكتابت فاسديږي . بياكه يې شراب اداكړل نوآزاديږى اوخپل به گټې كوشش به كوي اوكم نه شي اخيستلاى ترمسمّى مقداراوزيات اخيستلاى شي اوصحيح دى كه يې مكاتب وگرځاوه پرحيوان غيرموصوف باندي، يامكاتب وگرځاوه كافرخپل

کافرمریی پرشرابو باندي اوهریو چې په دوئ کې اسلام راوړي مولی لره دشرابو قیمت کیږي اوآزادیږي دشرابوپه قبض کولو سره هم .

**تشریح** :(۶)قوله وان کاتب علی خمر ،له خپلو معطوفاتو سره داشرط شو ،فسدیې جزاء ده ،یعنې که مسلمان خپل مسلمان مریی دشرابو یاخنزیرپه عوض یاخپله دهغه مریي دقیمت په عوض مکاتب وګرځاوه مثلاً ورته ویې ویل :(کاتبتک علی قیمتک ) نو داکتابت فاسد دی په لومړي صورت (یعنې شرابو او خنزیرپه صورت ) کې خو ځکه فاسد دی چې شراب اوخنزیر دمسلمان په حق کې مال متقوم نه دی نو ګواکې داعقدکتابت بلابدل شو ځکه فاسدیږي ،اودمریي دقیمت په صورت کې ځکه فاسدیږي چې دهغه قیمت هرډول مجهول دی اومجهول بدل کتابت دکتابت عوض ګرځول صحیح نه دی ،همدارنګه که مولی مریی دبل چادمعلوم شي مثلاً آس یاکپړې په عوض کې مکاتب وګرځاوه نوداکتابت هم فاسد دی ځکه مریی دبل چاد شي پرسپارلو قادرنه دی حال داچې پرمعقود علیه باندي قادرکیدل دعقد دصحت لپاره شرط دی .

(۷)که چاخپل مریی دسلو دینارونو په عوض په دي شرط مکاتب وګرځاوه چې مولی به مکاتب ته دخدمت لپاره یو غیرمعلوم مریی ورکوي نو دطرفینو رحمهما الله په نزد داکتابت هم فاسد دی .دامام ابویوسف رحمه الله په نزدصحیح دی ځکه مطلق مریی دبدل کتابت صلاحیت لري نوله بدل کتابت څخه دهغه استثناء کول هم صحیح کیږي نودلته درمیانه مریی مرادیږي اوسل دیناره دداسي مریي پرقیمت باندي تقسیمیږي څومره حصه چې دهغه دقیمت په مقابله کې راشي هغه حصه ساقطیږي اودباقي په عوض کې دی مکاتب ګرځي ،دطرفینو رحمهما الله دلیل دادی چې دلته له دنانیرو څخه دمریي استثناء داختلاف جنس په وجه صحیح نه ده بلکې استثناء دهغه دقیمت په اعتبارسره کیدای شي اوپه قیمت کې دمقدار او وصف له لحاظه داتهائي جهالت پربناء دبدل کتابت صلاحیت نه لري .

(۸)بیاکه مکاتب مولی ته شراب یاخنزیرورکړل نو مکاتب آزادیږي ولی شراب اوخنزیرفی الجمله مال دی که څه هم دمسلمانانو په حق کې مقوّم نه دی ،مګرمریی به خپل قیمت ګټي مولی ته به یې ورکوي ځکه دفساد عقدپه وجه پرمکاتب باندي ردّرقبه واجب دی مګردآزادي په وجه ردّرقبه متعذردی نوځکه دقیمت ردیدل واجب دی ،مګرداقیمت به ترمسمّی (یعنې شرابو او خنزیرتر قیمت) کم نه وي ولی مولی په دي نه راضي کیږي چې ترمسمّی په کم باندي مریی مکاتب وګرځي اوزیات ورکولای شی ځکه مکاتب پرفاسدعقدباندي اقدام کړی حال داچې دی پوهیږي چې په عقد فاسد کې قیمت واجبیږي نودی دقیمت پراداکولو باندي راضي شوی دی که څه هم قیمت ترمسمّی زیات وي .

(۹)قوله وصح لوعلی حیوان ای صح عقدالکتابة لو کاتب رجل عبده علی حیوان غیرموصوف ،یعنې که چاخپل مریی دیوداسي حیوان په عوض کې مکاتب وګرځاوه چې دهغه جنس معلوم ووچې پسه دی یاآس مګروصف یې معلوم نه ووچې اعلی دی که ادنی نو داسي عقد کتابت صحیح دی ځکه جهالت یسیردی وصف داوسط درجه حیوان طرف ته راګرځي یعنې مکاتب به اوسط درجه حیوان مولی ته ورکوي اوکه یې جنس هم نه وو بیان کړی نوبیادسخت جهالت په وجه عقد کتابت نه صحیح کیږي .

(۱۰) قوله او كاتب كافر عبده اى وصح عقد الكتابة ان كاتب كافر الخ يعني كه يو ه كافر خپل كافر مريي پر معلوم مقدار شرابو باندي مكاتب وګرځاوه نو دا جائز دى ځكه شراب دهغوئ په حق كې داسې مال دى لكه زموږ په حق كې سركه نو لكه زموږ په نزد چې پر سُركه باندي عقد كتابت صحيح دى ددوئ لپاره دشرابو په عوض صحيح دى، بيا كه دمولى او مريي څخه هر يو مسلمان شو نو مولى ته به دشرابو قيمت وركوي ځكه مسلمان له دي څخه منع دى چې خپله دشرابو مالك ګرځي يا بل څوک دشرابو مالک ګرځوي او په مذكور صورت كې دشرابو په حوالو كولو سره دا لازميږي ولى كه مكاتب مسلمان شو نو مسلمان بل څوک څرنګه دشرابو مالك ګرځوي او كه مولى مسلمان شو نو مسلمان دشرابو مالک ګرځي.

(۱۱) او چې كله مولى دشرابو قيمت قبض كړي نو مريى آزاديږي ځكه په عقد كتابت كې د معاوضه معنى موجوده ده او په عقد معاوضه كې له احد المتعاقدينو څخه ديوه لپاره دعوض سلامتي دهغه بل لپاره دعوض سلامتي واجبوي.

## باب ما يجوز للمكاتب ان يفعله او لا يفعله

داباب دمكاتب لپاره دجائزاوناجائزافعالو په بيان كې دى

مصنف رحمه الله دكتابت صحيحه اوفاسده داحكامو له بيان څخه فارغ شو نو يې په هغو امورو پيل وكړ چې دمكاتب لپاره جائز يا ناجائز دي ځكه جائز تصرفات پر عقد صحيح باندي موقوف دي.

(۱) للمكاتب البيع والشراء والسفر وان شرط ان لا يخرج من المصر (۲) وتزويج امته (۳) وكتابة عبده (۴) والولاء له ان ادى بعد عتقه والا لسيده (۵) لا التزوج بلا اذن (۶) والهبة والتصدق الا بيسير (۷) والتكفل والاقراض واعتاق عبده ولو بمال او بيع نفسه وتزويج عبده (۸) والاب والوصى فى رقيق الصغير كالمكاتب ولا يملك مضارب وشريك شيئا منه

**ترجمه**: جائز دى مكاتب لره خريد وفروخت او سفر كه څه هم مالک دا شرط كړى وي چې له ښاره به نه وځي، او دخپلې نكاح كول او دخپل مريى مكاتب ګرځول او ولاء ده لره كيږي كه ادا كړي دده له آزاديدو وروسته كه نه دده مالک لره كيږي نه نكاح كول بيله اجازې او هبه او صدقه كول مګر لږ مقدار، او كفيل كيدل او قرض وركول او خپل مريى آزادول كه څه هم دمال په عوض كې وي او خپل ځان خرڅول او دخپل مريي نكاح كول پلار او وصي دماشوم دمريى په حق كې دمكاتب په شان دي او مالک نه ګرځي مضارب او شريک په دي كې دهيڅ شي.

**تشريح**: (۱) څرنګه چې مكاتب دعقد كتابت په وجه يداً آزادوي يعني دى دداسې ځينو تصرفاتو مالک ګرځي دكومو په نتيجه كې چې دى ترمقصود يعنې حريت پورې رسيږي ظاهره ده چې دا دول تصرفات بيع او شراء دي نو مكاتب لره خريد او فروخت جائز دي او كله دخريد او فروخت دسفر حاجت وي نو سفر هم كولاى شي كه څه هم مولى دسفر نه كولو شرط پرې لګولى وي بيا هم سفر كولاى شي ځكه دا شرط د مقتضاء عقد خلاف دى او په صلب عقد يعنې احد البدلين كې داخل نه دى نو دا شرط باطل دى او عقد صحيح دى.

(۲)قوله ولتزويج امته اى وجازللمكاتب تزويج امته،يعني كه مكاتب دخپلې منځې نكاح وكړه نوداجائزدى ځكه دمنځې نكاح وركول دمال گټلوله قبيل څخه دى ولى چې ددې په ذريعه دى دمهرمالک گرځي نو مكاتب لره دخپلې منځې نكاح وركول جائزدى .

(۳)قوله وكتابة عبده اى وجازللمكاتب كتابة عبده،يعني كه مكاتب له خپلومريانوڅخه يومريى مكاتب وگرځاوه نوداااستحساناجائزدى وجه داستحسان داده چې دمريي په مكاتب كولوسره ده لره مال حاصلېږي نوځرنگه چې مكاتب لره دمريانوخريدوفروخت دمال دحاصلولولپاره جائزدى همداسي دمريي دمكاتب كولوهم ده لره اجازه شته بلكې كله خولاپه نسبت دبيع كتابت ډيرگټوروي ځكه كتابت ملک نه زائلوي ترڅوچې بدل كتابت وصول شوى نه وي اوبيع بنفسه ملک زائلوي .

(۴)بياكه مكاتب ثانى (مكاتب المكاتب) دمكاتب اول له آزاديدووروسته بدل كتابت وراداكړنو دمكاتب ثانى ولاء مكاتب اول لره ده ځكه په دې صورت كې مكاتب اولى دخپلې ازادي په وجه دولاء اهل دى نوولاء دمريي ده لره كيږي ،اوكه مكاتب ثاني دمكاتب اولى ترآزاديدومخكې بدل كتابت وراداكړنودمكاتب ثانى ولاء دمكاتب اول مولى لره كيږي ځكه په مكاتب ثانى كې هم ددغه مولى يوقسم ملكيت وونوداعتاق نسبت فى الجمله دهغه طرف ته صحيح دى په داسي حال كې چې په دغه صورت كې دمكاتب اول طرف ته داعتاق نسبت صحيح نه دى ځكه هغه خپله غلام دى داعتاق اهليت نه لري .

(۵)قوله لاالتزوج بلااذن اى لايجوزللمكاتب التزوج بلااذن،يعني كه مكاتب دمولى داجازت بغيرنكاح وكړه نوداجائزنه ده ولى كتابت له قيام ملک سره سره له مريي څخه دتصرف كولوپابندي ختمولوته ويل كيږي چې دا ترمنزل مقصود(يعني حصول آزادي) پوري وسيله وگرځي اونكاح كول ددغه مقصدوسيله نه ده بلكې په دې كې نوره هم مخله ده نونكاح كول دده لپاره ناجائزه ده البته كه مولى اجازه وركړه بياجائزه ده ولى پرمكاتب باندي دنكاح پابندي دمولى دحق په وجه وه نوچې دى اجازه وركوي بياجائزه كيږي .

(۶)قوله والهبة والتصدق اى لايجوزللمكاتب الهبة والتصدق الايسير،يعني مكاتب دهبه كولواوصدقه كولواختيارنه لري ځكه داله قبيل دتبرعات څخه دي اومكاتب دتبرعاتواجازه نه لري البته ديوڅه دمعمولي شي دهبه كولواجازه لري ځكه داله ضرورياتودتجارت څخه ده اوقاعده داده چې څوک دكوم شي مالک گرځي هغه دهغه دتوابعواوضرورياتوهم مالک گرځي اومكاتب لره داجائزنه ده چې هغه ديوچاكفيل شي ياچاته قرض وركړي ياخپل مريى ازادكړي كه څه هم په عوض دمال وي ياخپل ځان خرڅ كړي ياخپل مريي ته نكاح وروكړي ځكه داشيان محض تبرعات دي اودتجارت له ضرورياتوڅخه هم نه دي نومكاتب لره داامورجائزنه دي،همدارنگه مكاتب خپل مريى په دي وجه هم نه شي آزادولاى چې په مكاتب كې دآزادولواهليت نشته ،اومكاتب خپل ځكه نه شي خرڅولاى چې دمريي خپل ځان خرڅول خپل ځان آزادول دي چې دهغه دى مالک نه دى .

(۷)داحنافو رحمهم الله په نزدپلاراووصي لره دماشوم دمملوک په حق كې هغه اختيارات شته كوم چې مكاتب لره دخپلې گټې په مريي كې حاصل دي مثلاًدپلاراووصي لپاره دماشوم دمنځې نكاح كول اودهغه

مملوک مکاتب گرځول جائزدی،اودکوموامورواختیارچې دمکاتب دخپل مریي په باره کې نه لري دهغوامورواختیارپلاراووصي ته هم نشته مثلاً دماشوم مریی آزادول یادهغه نکاح کول ځکه پلاراووصي هم دمکاتب په شان دماشوم په مال کې دګټې کولواختیارلري دتبرعاتواختیارنه لري،البته مضارب اوشریک له دغومذکوروامورو څخه دکوم امرهیڅ اختیارنشته که دشرکت دقسم څخه وي ځکه هغوئ ته یواځې دتجارت کولواختیارشته دنکاح کول اومکاتب گرځول له تجارت څخه نه دي .

(۹)ولواشترى أباه أوابنه تكاتب عليه (۱۰)ولواشترى أخاه ونحوه لا (۱۱)ولواشترى أم ولده معه لم يجزبيعها (۱۲)وان ولدله من أمته ولد تكاتب عليه وكسبه له (۱۳)ولوزوج امته من عبده فكاتبهما فولدت دخل في كتابتها وكسبه لها .

**ترجمه** :که مکاتب واخیست خپل پلاریاخپل زوی نومکاتب کیږي پرده باندي اوکه یې واخیست خپل وروریابل قریب نه مکاتب کیږي،اوکه یې واخیسته خپله امّ ولده له بچي سره یوځای نوجائزنه دی دهغې خرڅول،اوکه دده دخپلې منځې څخه زوی پیداشونوهغه مکاتب گرځي پرده باندي اودهغه گټه کاروکسب دپلارکیږي اوکه یې په نکاح کړه خپله منځه خپل مریي ته بیایې دواړه مکاتب وگرځول بیادمنځې ماشوم پیداشونوماشوم دموره په کتابت کې داخلیږي اودهغه گټه دمورکیږي .

**تشریح** :(۹)که مکاتب خپل پلار(مراداصول دي)یازوی (مرادفروع دي)واخیست نوهغه هم دده په کتابت کې داخلیږي ځکه مکاتب که څه هم خپل پلاریازوی آزادولای نه شي مگرپه قدردامکان لپاره دتحقق دصله رحمي خوبې مکاتب گرځولای شي .

(۱۰)که مکاتب خپل یوداسي قریب واخیست چې دولادت رشته یې نه ورسره درلوده لکه ورور،خور،آکا وغیره نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدداخلک دده په کتابت کې نه داخلیږي، دصاحبینو رحمهما الله په نزد داخلیږي. صاحبین رحمهما الله دغیرولادت رشته دولادت پررشته باندي قیاسوي ځکه صله رحمي واجبیدل دواړولره شامل دی ،دامام ابوحنیفة رحمه الله دلیل دادی چې مکاتب یواځې پرکاروبارباندي قادروي حقیقي مِلک خوهغه لره نه حاصلیږي (ځکه په ده کې رقیت موجوددی ) اوخالص قدرت علی الکسب دولادت په رشته کې دصله رحمي لپاره کافی کیږي مگرپه نوروقرابتونو کې دصله رحمي لپاره کافي نه دی .

**فائده** :دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی :لماقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :قوله لم يدخل في كتابته عندابي حنيفة رحمه الله الخ،والراجح قوله الامام ابي حنيفة رحمه الله وهوالاستحسان نقله ابن النجيم في البحرالرائق نقلاعن الذخيرة وكذاصرح به في الهندية المعروف بالعالمگيرية(هامش الهداية:۳/۳۲۳)

(۱۱)که مکاتب خپله امّ ولده دهغې دبچي سره یوځای واخیسته نوماشوم دپلارپه کتابت کې داخلیږي ځکه په تیره مسئله کې دابیان وشوچې زوی دپلارپه کتابت کې داخلیږي نودماشوم خرڅول جائزنه دی مگرخپله امّ ولده له هغه سره په کتابت کې نه داخلیږي،البته دماشوم په تبع سره ام ولدهم نه شي خرڅولای

(۱۲)كه دمكاتب دمنځې له ده څخه بچی پيدا شو او مكاتب دهغه دنسب دعوى وكړه نو داستيلاد دنه جائزكيدو باوجودنسب ثابتيږي او ماشوم له پلار سره په كتابت كې داخليږي ځكه مكاتب پلار كه څه هم هغه آزادولاى نه شي مګرپه قدردامكان دتحقق صله رحمي لپاره يې مكاتب ګرځوي لهذااوس ماشوم دپلارپه حكم كې كيږي،اودماشوم ګټه دپلاركيږي ځكه ماشوم دهغه دمملوك په حكم كې دى نوګټه دكاروبارېې دپلاركيږي .

(۱۳)كه مولى دخپل مريي واده دخپلې يوې منځې سره وكړييايې دواړه مكاتب وګرځول بيا دوهغوئ بچی پيدا شو نو داماشوم دمورپه كتابت كې داخليږي اودماشوم ګټه مورته وركوله كيږي ځكه ماشوم په اوصاف حكميه ؤكې دمورتابع وي همداوجه ده چې ماشوم په آزادي اوغلامي كې دمورتابع وي نوپه كتابت كې هم دمورتابع كيږي او دهغه ګټه دموركيږي .

(۱۴)مُكاتَبٌ أو مَاذُونٌ نَكَحَ بِإذنٍ حُرَّةً بِزَعمِهَا فَوَلَدَتْ فَاستُحِقَّتْ فَوَلَدُهَا عَبدٌ (۱۵)وَإن وَطِىَ أمَةً بِشِرَاءٍ فَاستُحِقَّتْ أو بِشِرَاءٍ فَاسِدٍ فَرَدَّتْ فَالعُقرُ إلى المُكاتَبَةِ (۱۶)وَلَو بِنِكاحٍ أُخِذَ مُذْ عَتَقَ

**ترجمه** :مكاتب ياماذون مريي نكاح وكړه په اجازه سره له يوې آزادې ښځې سره دهغې په ګمان سره بيايې ماشوم پيدا شو بيا ادبل چامستحقه وګرځيده نو داماشوم زوى يې مريى ګرځي او كه يې وطى وكړه له منځې دخريدپه ذريعه بياهغه دبل چامستحقه وګرځيده ياپه ذريعه دخريد فاسدسره بياهغه واپس كړاى شوه نوعقرپه مكاتبت واجبيږي او كه په ذريعه دنكاح وي نوماخوذكيږي دهغه وطى په وجه كله چې آزادشي .

**تشريح** :(۱۴)كه مكاتب ياماذون دخپل مولى په اجازه سره له يوې داسې ښځې سره نكاح وكړه چې هغه دعوى دحريت كوي اودمكاتب له هغې څخه زوى پيدا شو بيايوچاپردې ښځه خپل استحقاق ثابت كړيعنې دايې ثابته كړه چې دازما منځه ده پس هغه مستحق دامنځه يوړه نوهغه بچی يې مملوك كيږي ځكه داماشوم له دوومملوكينو څخه پيدا شوى دى نولهذا دى هم مملوك كيږي .

(۱۵)يعنې كه مكاتب ياماذون فى التجارة مريي يوه منځه په شراء صحيح سره واخيسته دمولى داجازې بغيريې له هغې سره وطى وكړه بيادهغې كوم بل څوك مستحق پيدا شو او منځه يې يوړه نوپرمكاتب اوماذون باندې ددې وطى مهرواجبيږي چې داداثيګى لپاره يې فى الحال دهغوئ مواخذه كيږي يعنې ترآزاديدوپورې هغوئ ته مهلت نه وركول كيږي همدارنګه كه مكاتب په فاسد خريد سره منځه واخيسته اوله هغې سره يې وطى وكړه بيايې هغه واپس كړه نودهغې دعقرپه باره كې دده مواخذه په حالت دكتابت كې كيږي ځكه تصرف كله صحيح وي او كله فاسد ،كله چې مولى دى مكاتب وګرځاوه يايې ده دتجارت اجازه وركړه نودادتصرف دواړوقسمونوته شامليږي نوګواكې مولى هغه ته ددواړوقسمونواجازت وركړى دى نو دهغه تاوان دمولى په حق كې هم ظاهريږي ځكه دده مواخذه (ګرفت) په همدغه دكتابت په حالت كې كيږي ترآزادي پورې مهلت نه وركول كيږي .

(۱۶)قوله ولوبنكاح أخذبه اى لووطى الامة بنكاح اخذبه مذعتق،يعنې كه مكاتب دمولى داجازت بغيرله

منځې سره نكاح وكړه وطی يې ورسره وكړه بيا دهغې يو مستحق پيدا شونو دمهرلپاره في الحال دهغه مواخذه نه كيږي بلكې له آزاديدو وروسته له هغه څخه مهر اخيستل كيږي ځكه نكاح كول خو ګټه نه ده نو عقد كتابت هغې ته نه شامليږي لهذا دمولى له طرفه دنكاح اجازت هم نشته ځكه نودنكاح په وجه چې كوم تاوان راغلى دى هغه به دمولى په حق كې نه ظاهره كيږي .

## فـــصـــل

دافصل دمدبّر، اُمّ ولد وغيره دكتابت په بيان كې دى

دسابق فصل دمسائلو له جنسه يې يوه بله نوع مسائل په دي فصل كې ذكركړي دي ځكه يې دمستقل فصل عنوان وركړى دى .

(۱)وَلَدَتْ مُكَاتَبَةٌ مِن سَيِّدِهَا مَضَتْ عَلَى كِتَابَتِهَا أَوْ عَجَزَتْ وَهِيَ أُمُّ وَلَدِهِ (۲)وَإِن كَانَتْ أُمَّ وَلَدِهِ أَوْ مُدَبَّرَهُ صَحَّ وَعَتَقَتْ مَجَانًا بِمَوْتِهِ (۳)وَسَعَى الْمُدَبَّرُ فِي ثُلُثَي قِيمَتِهِ أَوْ كُلِّ الْبَدَلِ بِمَوْتِهِ فَقِيرًا (۴)وَإِن دَبَّرَ مُكَاتَبَهُ صَحَّ فَإِن عَجَزَ بَقِيَ مُدَبَّرًا (۵)وَإِلَّا سَعَى فِي ثُلُثَي قِيمَتِهِ أَوْ ثُلُثَي الْبَدَلِ بِمَوْتِهِ مُعْسِرًا (۶)وَإِن أَعْتَقَ مُكَاتَبَهُ عَتَقَ وَسَقَطَ الْبَدَلُ

**ترجمه** :دمكاتبې منځې ماشوم پيدا شو دخپل مولى څخه نوپر خپل كتابت دي پاتې شي يا دي خپل ځان عاجزو ښيې دا به دهغه اُم ولده شي او كه يې مكاتب كړ خپل امّ ولد يا خپل مدبّر نو صحيح دى او مفت آزاديږي دمولى دمرګ پس او مدبّر به دخپل قيمت په دوه ثلثه اداكولو كې كوښښ كوي يا كل بدل كتابت دمولى په مرګ سره په حالت دفقر كې او كه يې مدبّر كړ خپل مكاتب نو صحيح دى بيا كه هغه خپل ځان عاجز كړ نومدبّر پاتيږي كه نه بيا به ګټي دخپل قيمت دوه ثلثه يا دبدل كتابت دوه ثلثه دمولى په مرګ سره په حالت دفقر كې او كه يې آزاد كړ خپل مكاتب نو آزاديږي او بدل كتابت ساقطيږي .

**تشريح** :(۱)كه مولى خپله منځه مكاتبه كړه بيا له مولى څخه دهغې ماشوم پيدا شو نو منځې لره اختيار دى كه غواړي پر عقد كتابت دي پاته شي له مولى څخه دي خپل مهر واخلي او دبدل كتابت په اداكولو سره في الحال آزاديږي او كه غواړي خپل ځان دي دبدل كتابت دادا كولو څخه عاجزه كړي ام ولده به پاته شي دمولى له مرګ وروسته آزاديږي وجه دا اختيار داده چې هغې لره له دوو جهتونو حق دحريت حاصل شويو دكتابت دجهت څخه دوهم دامّ ولد كيدو دجهت څخه نو ځكه دد واړو اختيار وركول كيږي .

(۲)كه مولى خپله ام ولده مكاتبه وګرځوله نو داكتابت جائزدى ځكه دمولى مِلك په ام ولده كې باقي دى لهذا دهغه داتصرف (مكاتبه ګرځول ) صحيح دى بيا كه دبدل كتابت دادا كيدو څخه مخكې مولى مړشو نو بدل دهغه دذمې څخه ساقطيږي ځكه دى دام ولد كيدو په وجه آزاديږي او كتابت باطل شو ،همدارنګه كه مولى خپله مدبره منځه مكاتبه وګرځوله نو دا هم جائزدى ځكه هغه كه څه هم دتدبير په ذريعه دمولى دمرګ وروسته آزاديږي ليكن في الحال دكتابت په ذريعه دآزادي حاصلولو ته هغه محتاجه ده لهذا مولى ته جائزدى چې هغه مكاتبه وګرځوي .

(۳)يياكه دبدل كتابت داداكيدوځخه مخكي مولى په حالت دفقركې مړشواوله دغې مدبره ماسوا هغه بل هيڅ شى نه درلودنوداامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددغې مدبره مكاتبه ته اختياروركول كيږي كه يې خوښه وي دخپل قيمت دوه ثلثه دي وګټي ورثه ؤته دي وركړي اوكه يې خوښه ده كل بدل كتابت دې وګټي ،داامام ابويوسف رحمه الله په نزدله دغودووځخه چې كوم يوكم وي هغه دي وګټي،داامام محمد رحمه الله په نزددبدل كتابت ددووثلثواودقيمت ددووثلثوځخه چې كوم يوكم وي هغه دي پيداكړي.دلته په دووخبروكې اختلاف دى يوه داچې دې لره اختيارشته كه نه؟ دوهمه داچې په كوم شي كې داسعى كوي دهغه مقدارڅه دى ؟ امام ابويوسف رحمه الله په مقداركې له امام ابوحنيفة رحمه الله سره دى اوپه نفى اختياركې له امام محمد رحمه الله سره دى.

داامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادى چې اعتاق تجزيه قبلوي نومدبره مذكوره دتدبيرپه وجه ديوه ثلث آزادي مستحقه ګرځيدلې ده اودوه برخې رقبه مملوكه مكاتبه پاته ده اودهغې دآزادي دوه جهتونه په دووعوضينوسره حاصل دي يومعجّل په ذريعه دتدبيراويومؤجل په ذريعه دكتابت نودى په دواړكې مختاردى.

**فائده** :داامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:ولوكاتب شخص ام ولده اومدبره صح وعتقت ام الولد مجانًابموته بالاستيلادوسعى المدبرفى ثلثى قيمته ان شاء اوسعى فى كل البدل بموت سيده فقيراالخ، (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/ ۷۳)وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد رحمه الله :وقول الامام الاعظم ابى حنيفة رحمه الله هوالصحيح كذافى الفتاوى الهندية نقلاعن المضمرات (هامش الهداية:۳/۳۲۶)

(۴)كه مولى خپل مدبرمكاتب وګرځاوه نوداجائزدى ځكه مدبرچې مكاتب كړي هغه ته په دوه جهته حريت حاصليږي يعني دتدبيراوكتابت په وجه،اوددي دواړوترمنځ هيڅ منافات نشته،يياكه هغه خپل ځان دبدل كتابت اداكولوځخه عاجزكړنومدبرپاتيږي بلكې هغه لره اختياردى كه غواړي چې دتعجيل حريت لپاره پرعقدكتابت پاته شي اوكه غواړي خپل ځان دي عاجزكړي مدبربه شي ځكه پرمملوك لازم نه دى چې هغه به مكاتب پاته وي.

(۵)قوله والاسعى اى وان لم يعجزسعى الخ،يعني كه هغه خپل ځان دبدل كتابت اداكولوځخه عاجزنه كړبلكې كتابت يې اختياركړاودبدل كتابت اداكولوځخه مخكي دتنګي په حالت كې مولى مړشواوله دغه مدبرسوايې بل هيڅ هم نه درلودنوداامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدهغه مختاردى كه غواړي دوه برخې مال كتابت دمې پيداكړي ورثه ؤته دې وركړي اوكه غواړي دخپل قيمت دوه برخي دي پيداكړي ورثه ؤته دې وركړي،دصاحبينورحمهماالله په نزدهغه اختيارنه لري بلكې له هغوځخه چې كوم يوكم وي هغه به اداكوي .دلته يواځې په مختاركيدوكې اختلاف دى چې داعتاق پرتجزيه اونه تجزيه باندي مبني دى لكه چې لږمخكې داخبره تيره شوه چې داامام صاحب رحمه الله په نزداعتاق تجزيه قبلوي اودصاحبينو رحمهماالله په نزديې نه قبلوي ،پاتى شومقداردتولوپه نزددوه برخې متعين دى.

**فائده** :دصاحبينورحمهماالله قول راجح دى لماقال العلامة ابن عابدين الشامى رحمه الله :وقولهماالظهركمافى المواهب ابوالسعودعن الحموى(ردالمحتار:۵/۷۳)

(۶)که مولی مکاتب مریی دبدل کتابت اداکولوڅخه مخکي آزادکړنودی دهغه په آزادیدوسره آزادیږي ځکه دمولی ملک تراوسه قائم دی اوهغه پخپل ملک کې دتصرف کولواختیارلري اوبدل کتابت له هغه څخه ساقطیږي ځکه دبدل کتابت التزام هغه ددي لپاره کړی ووچې ده ته آزادي ورپه برخه شي اوس خوهغه ته آزادي بغیردبدل کتابت ورپه برخه شوه نوبدل کتابت ساقطیږي .

(۷)وَإِن كَاتَبَه عَلَى أَلفٍ مُؤَجَّلٍ فَصَالَحَه عَلَى نِصفٍ حَالٍّ صَحَّ (۸)مَاتَ مَرِيضٌ كَاتَبَ عَبدَه عَلَى أَلفَينِ إِلَى سَنَةٍ وَقِيمَتُه أَلفٌ وَلَم تُجِزِ الوَرَثَةُ أَدَّى ثُلُثَي البَدَلِ حَالًا وَالبَاقِي إِلَى أَجَلِه أَو رُدَّ رَقِيقًا (۹)وَإِن كَانَت عَلَى أَلفٍ إِلَى سَنَةٍ وَقِيمَتُه أَلفَانِ وَلَم يُجِيزُوا أَدَّى ثُلُثَي القِيمَةِ حَالًا أَو رُدَّ رَقِيقًا

**ترجمه** :که یې مکاتب کړمریی دیوزرموجل په عوض بیایې له هغه سره صلح وکړه پرفوري نصف باندي نوداصحیح دی مړشومریض چې مکاتب کړی یې ووخپل مریی پردوه زره روپۍ باندي تریوه کاله پوري اودده قیمت زرروپۍ دی اوجائزونه کړل ورثه ؤموده نودبدل دوه برخې به فوراً اداکوي اوباقی ترهغه مودې پوري یادي وګرځي غلامي ته،اوکه یې مکاتب کړمریی په یوزرتریوه کاله پوري اودهغه قیمت دوه زره روپۍ دی اوورثه موده نه مني نودقیمت دوه برخې دي اداکړي فوراًیادي دغلامي طرف ته وګرځي .

**تشریح** :(۷)که مریی په یوزرروپۍ پورباندي مکاتب کړي مثلاًپه یوه کال کې دزرودرهمونو اداکیدو وعده شوې وه بیاهغه له خپل مولی سره پرپنځه سوه نقددرهمونوباندي صلح وکړه نومقتضی دقیاس خوداده چې دابایدچې جائزنه وي ځکه پنځه سوه په عوض دزرودرهمونوکې سودلازمیږي په دي ډول چې کله مملوک پنځه سوه اداکړي نوداپنځه سوه له هغوزرونه دپنځه سوه په مقابله کې شوې چې دده پرذمه دین دي اوباقی پنځه سوه مکاتب لره دمودې په عوض کې سالمې پاتی شوې حال داچې موده مال نه دی نودامقابلة المال بغیرالمال شوه اوداسوددی،مګراستحساناداجائزدی ځکه موده که څه هم فی نفسه مال نه دی لیکن دمریي په حق کې هغه دمال په حکم کې دی په دي وجه چې دی له مودې بغیردبدل کتابت پراداکولوباندي قادرنه دی اوبدل کتابت هم من وجه مال دی من کل الوجوه مال نه دی که نه دهغه کفالت به صحیح کیدای حال داچې دبدل کتابت کفالت صحیح نه دی نوپه دي لحاظ سره دواړه برابرشول مقابلة المال بالمال شوه په دي سره سودنه لازمیږي .

(۸)که یوه مریض خپل مریی چې قیمت یې یوزردرهم دي ددووزروپه عوض دیوه کال په موده مکاتب کړبیاهغه مړشواوله هغه مریي پرته یې بل هیڅ مال نه ووپریښی اودمولی ورثه ؤموده نه منله بلکې فی الحال یې دبدل کتابت غوښتنه وکړه نودشیخینو رحمهما الله په نزدبه هغه دبدل کتابت یعنې دووزرودوه ثلث فی الحال اداکوي اوباقی یوثلث به ترخپلې ټاکلې مودې پوري اداکوي ځکه ټول مسمی یعنې دوه زره درهم درقبه مقابل دي حتی چې دعوض احکام پرټولودوه زره باندي جاري کیږي اودورثه ؤحق تررقبه پوري معلق دی نودهغه تربدل یعنې دوه زره درهمه پوري هم معلق کیږي اوموده ورکول معنی اسقاط حق دی ګواکې له حق څخه یې څه ساقط کړنودهغه اعتباردټول مال له ثلث څخه کیږي ځکه دمریض اختیاریوائې په یوه ثلث دترکه کې چلیږي نوموده ورکول کمول دټول مسمی یعنې دووزرودثلث څخه

معتبرېږي په دي شكل له كل مسمّى څخه يوثلث دمولى حق ساقطېږي اودوه ثلثه دورثه ؤحق به في الحال اداكوي، اوكه يې داسي نه شوكولاى نوعقد كتابت دي ختم كړي غلام دي شي.

(۹)كه يوه مريض خپل مريى چې دهغه قيمت دوه زره درهمه دي ديوزرپه عوض كې ترېوكال مودې پوري مكاتب كړبيادى مړشواوله دغه مريي سِوايې نورمال نه درلوداودمولى ورثه ؤددي عقداجازه نه وركوله نومكاتب ته دي وويل شي چې دخپل ټول قيمت (دوه زره) دوې برخې في الحال اداكړه كه نه بيرته غلام ګرځول كيږي ځكه دلته مريض په مقدارا ومودة دواړوكې كمى كړى دى نوثلث له دواړو څخه معتبرېږي يعنې دهغه تصرف يواځې په يوه دريمه كې معتبرېږي په باقي دووبرخوكې دورثه ؤدحق په وجه دده تصرف نه معتبرېږي.

(۱۰)حرٌ كاتب عَبدٌ بالفٍ وَاَدّى عَتَقَ(۱۱)فَانْ قَبِلَ العَبدُ فَهُوَ مُكَاتَب(۱۲)وَاِنْ كَاتَبَ الحَاضِرَ وَالغَائِبَ وَقَبِلَ الحَاضِرُ صَحَّ(۱۳)وَاَيُّهُمَا اَدّى عَتَقَا(۱۴)وَلايَرجِعُ عَلى صَاحِبِه(۱۵)وَلايُؤخَذُ الغَائِبُ بِشَيءٍ وَقَبُولُه لَغوٌ(۱۶)وَاِنْ كَاتَبَتِ الاَمَةُ عَنْ نَفْسِهَا وَعَنْ اِبْنَينِ صَغِيرَينِ لَهَا صَحَّ وَاَيُّ اَدّى لَمْ يَرجِع

**ترجمه**: يوه آزادسړي عقد كتابت وكړدمريي له جانبه دزرروپوپه عوض كې اواداېې هم كړې نودى آزادېږي اوكه مريي قبول وكړنودى مكاتب ګرځي اوكه يې مكاتب وګرځول حاضراوغائب اوقبول حاضروكړنوصحيح دى اوهريوچې يې له دواړونه اداكړي نودواړه آزاديږي اورجوع به نه كوي پرخپل ملګري باندي اومواخذه نه كيږي دغائب په هيڅ شي سره اودغائب قبلول بي فائدي دى اوكه عقد كتابت وكړي منځه دخپل ځان دطرفه اودخپلودووبچيانودطرفه نوصحيح دى اوهريوچې يې اداكړي پرهغه بل باندي رجوع نه شي كولاى.

**تشريح**: (۱۰)كه يوه آزادسړي ديوه مريي مولى ته وويل چې ته خپل دغه مريى ديوزرروپوپه عوض په دي شرط مكاتب كړه چې كه ماتاته زرروپۍ دراداكړې نودى به آزادوي مولى دهغه دوينامطابق مريى مكاتب وګرځاوه اوهغه سړي زرروپۍ اداكړې نومريى دشرط په وجه آزاديږي يعنې دكتابت په وجه نه آزاديږي بلكې دشرط په وجه آزاديږي ځكه آزادي ديوزرروپوپراداكيګي باندي معلقه وه هغه شرط پرځاى شونوآزادي راغله.

(۱۱)اوكه مريى دزرروروپوتراداكيګى مخكې په دغه عقدباندي خبرشواوداعقدېې قبول كړنوبيادى مكاتب ګرځي ځكه غيرچې دده له طرفه عقدكتابت كوي فضولي دى اودفضولي عقد داصيل پراجازه باندي موقوف وي نوعقدكتابت دده پراجازه باندي موقوف كيږي اودمريي قبليدل اجازه ده نوداعقدكتابت صحيح دى مريى دهغه په وجه مكاتب كيږي.

(۱۲)كه دچادوه مرييان وويوحاضراوبل غائب وو،كوم چې حاضردى هغه خپل مولى ته وويل چې ما اوفلان غائب په زرروپۍ مكاتب وګرځوه مولى مكاتب وګرځول اوحاضرمريي قبول وكړنودقياس تقاضاخوداده چې كتابت يواځې دحاضر په حق كې صحيح وي دغائب په حق كې صحيح نه شي ځكه هغه

بواځې پرخپل ځان باندې ولایت لري پرغائب باندې هغه څه ولایت لري نوداعقددغائب په حق کې دهغه پراجازه باندې موقوف کیږي، مګراستحسانا ددواړوکتابت صحیح دی ځکه حاضرعقدکتابت خپل ځان ته منسوب کړخپل ځان یې اصیل وګرځاوه اوغائب یې دخپل ځان تابع وګرځاوه اودتابع کتابت هم مشروع دی لهذاغائب هم مکاتب ګرځي .

(۱۳)بیاپه مذکورصورت کې چې هربدل کتابت اداکوي مولی دهغه پراخیستلوباندې مجبورکړای کیږي اوهغوئ دواړه مریان آزادیږي ځکه ددواړودآزادي شرط پرځای شولهذادواړه آزادیږي،دحاضرداداځیګی په صورت کې مولی ځکه مجبورکړای کیږي چې بدل کتابت خودهغه پرذمه دئ اودغائب دادائیګی په صورت کې ځکه مجبورکړای کیږي چې بدل کتابت که څه هم دهغه پرذمه واجب نه دی مګرځرنګه چې دی دهغه په ذریعه دآزادي شرف حاصلوي لهذادی بلکل اجنبي نه دی .

(۱۴)بیاله دواړومریانوڅخه چې کوم یوبدل کتابت اداکړي هغه پردابل باندې رجوع نه شي کولای ولی که یې حاضراداکوي نوهغه خوخپله ذمه واري پوره کوي ځکه اصل عاقددی اوداسې اداکوونکی هیچاته درجوع حق نه لري اوکه یې غائب اداکوي نوهغه په دې ادائیګی کې متبرع دی او متبرع هیچاته درجوع حق نه لري .

(۱۵)اوله غائب څخه هیڅ نه اخیستل کیږي یعنې مولی دغائب مریي څخه دبدل کتابت دمطالبې حق نه لري ځکه هغه دحاضرپه کتابت کې تبعًاداخل دی دهغه پرذمه هیڅ شی نشته بیاکه دغه غائب مریی عقدکتابت قبول کړي نوپه دې سره هیڅ تبدیل نه راځي ځکه کتابت دحاضربرذمه لازم شوی دی نودغائب قبلیدل یاردیدل هیڅ اثرنه لري .

(۱۶)که یوه منځه دخپل طرف څخه اودخپلودوو ماشومانودطرفه څخه عقدکتابت وکړي نواستحسانا داعقدصحیح دی لماقلنافی مسئلة الغائب،اودکتابت له طی کیدووروسته که نه دغودریوواړوڅخه هریودکتابت کل رقم اداکړي هغه له بل څخه هیڅ شی نه شي اخیستلای اودري واړه آزادیږي ځکه منځې خپل ځان په کتابت کې اصیل اوبچیان یې تابع ګرځولي دي اوتابع هم آزادیږي کمامرّفی المسئلة السابقة .

## باب كتابة العبد المشترك

### داباب دمشترک مریي دکتابت په بیان کې دی

مصنف رحمه الله چې کله دغیرمشترک مریي دکتابت له بیان څخه فارغ شونودمشترک دکتابت بیان یې شروع کړوجه دتاخیریې داده چې اصل عدم اشتراک دی اشتراک خلاف اصل دی اوخلاف اصل له اصل وروسته ذکرکول مناسب دی

(۱) عَبْدٌ لَهُمَا اَذِنَ اَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ اَنْ يُكَاتِبَ حَظَّهُ بِاَلْفٍ وَيَقْبِضَ بَدَلَ الْكِتَابَةِ فَكَاتَبَ وَقَبَضَ بَعْضَهُ فَعَجَزَ فَالْمَقْبُوضُ لِلْقَابِضِ (۲) اَمَةٌ بَيْنَهُمَا كَاتَبَاهَا فَوَطِئَهَا اَحَدُهُمَا فَوَلَدَتْ فَادَّعَاهُ ثُمَّ وَطِئَ الْآخَرُ فَوَلَدَتْ فَادَّعَاهُ فَعَجَزَتْ فَهِيَ اُمُّ وَلَدٍ لِلْاَوَّلِ (۳) وَضَمِنَ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا وَنِصْفَ عُقْرِهَا وَضَمِنَ شَرِيكُهُ عُقْرَهَا وَقِيمَةَ الْوَلَدِ وَهُوَ ابْنُهُ (۴) وَاَيٌّ دَفَعَ الْعُقْرَ اِلَى الْمُكَاتَبَةِ صَحَّ

**ترجمه** :يو مريي دى د دوو كسانو هريوه خپل ملگري ته اجازه وركړې ده چې د ده حصه مكاتب كړي په زررو پيو. اوبدل كتابت واخلي بيا هغه مكاتب كړ او څه يې قبض كړ بيا مريي عاجز شو نو هغه مقبوض شى د قابض كيږي ،يوه منځه د دوو كسانو دواړو مكاتبه كړې ده بيا يوه له هغوئ نه وطى كړه او ماشوم يې پيدا شو وطى كوونكي دعوه وكړه د هغه بچي بيا هغه بل وطى كړه او بچى يې پيدا شو هغه دعوى وكړه بيا منځه عاجزه شوه نو دا اُمّ ولده گرځي د اول لپاره او هغه ضامن گرځي د شريک لپاره په نصف قيمت او نصف عقر سره او ضامن گرځي شريک د ده د منځې د عقر او د ماشوم د قيمت او ماشوم د هغه زوى گرځي او هر يو چې وركوي عُقر مكاتبې ته نو صحيح دى.

**تشريح** :(۱) كه يو مريي د دوو كسانو سره شريک وو او له دواړو څخه هر يوه خپل ملگري ته دا اجازه وركړې وه چې په دغه مريي كې زما حصه د زرو روپو په عوض مكاتب وگرځوه او بدل كتابت قبض كړه بيا هغه د مريي له مكاتب كيدو وروسته د زرو، روپو څه حصه وصول كړه بيامريي د باقي مانده له ادائيگى څخه عاجز شو نو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد وصول شده حصه د هغه شريک كيږي چا چې وصول كړې دي او د صاحبينو رحمهما الله په نزد مريي د دواړو مكاتب كيږي او كومه حصه روپې چې هغه اداكړې دي هغه د دواړو مالكانو ترمنځ مشتركې دي،دا اختلاف پر يوه بل اختلاف باندي مبني دى هغه دا چې د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد د اعتاق په شان كتابت هم تجزيه قبلوي او د صاحبينو په نزد تجزيه نه قبلوي نو د امام صاحب رحمه الله په نزد كتابت د هغه شريک پر حصه باندي پاتيږي چا چې مكاتب كړى دى ځكه كتابت تجزيه قبلوي،او د صاحبينو رحمهما الله په نزد د خپلې حصې د كتابت اجازه وركول د كل مريي د مكاتب كولو اجازه ده ځكه كتابت تجزيه نه قبلوي نو دى په نصف مريي مكاتب كولو كې اصيل دى او د باقي نصف په مكاتب كولو كې د شريک له طرفه وكيل دى نو دا د دواړو ترمنځ مكاتب شو او وكيل چې څه وصول كړي دي هغه د دواړو ترمنځ مشترک كيږي.

**فائده** :د امام صاحب رحمه الله قول راجح دى لما قال الشيخ عبد الحكيم الشهيد رحمه الله :واعلم ان الخلاف في مثل هذه المسائل مبنى على الاختلاف الواقع بين الامام والصاحبين في مسئلة اعتاق بعض العبد وقد صرحوا بان الصحيح هناک قول الامام صرح به بدر المنتقى شرح الملتقى نقلا عن القهستاني وغيره فعلى هذا لايخفى الترجيح في كثير من مسائل هذا الكتاب اعنى كتاب المكاتب فان كثيرا منها مبنية على هذا الاصل كما هو المصرح.(هامش الهداية:۳/ ۳۳۰)

(۲) كه يوه منځه د دوو كسانو ترمنځ مشتركه وه او دواړو هغه مكاتبه كړه بيا له دوئ دواړو څخه يوه له هغې سره وطى وكړه او د هغه زوى پيدا شو چې هغه يې دعوى هم وكړه چې دا له ما څخه دى نو د ماشوم نسب د هغه څخه ثابتيږي له هغه وروسته دوهم شريک له هغې سره وطى وكړه چې ور څخه يې زوى پيدا شو او دوهم شريک دعوى وكړه چې دا له ما څخه دى نو د هغه نسب ثابتيږي بيا دغه مكاتبه د بدل كتابت له اداكولو څخه

عاجزه شوه نوداداول مدعي اُمّ ولده ګرځي ځکه چې کله له دواړوڅخه يوه دماشوم دنسب دعوی وکړه نودهغه دعوی صحيح ده ولی په دي مکاتبه کې دهغه ملکيت قائم دی اودهغه حصه ام ولده وګرځيده اوچې کله دوهم شريک هم دعوی وکړه نودهغه دعوی هم صحيح ده ځکه ظاهرادهغه هم ملک قائم دی ليکن چې کله منځه دبدل کتابت څخه عاجزه شوه نوکتابت ختم شواوټوله منځه داول مدعي امّ ولده کيږي ځکه دکتابت په حال کې اُمّ ولده کيدل داول ترحصي پوري محدودووچې مکاتب يادهغه يوه حصه ديو ملک څخه بل ملک ته نه منتقل کيږي اوچې کله دادبدل کتابت داداکولوڅخه عاجزه شوه نواوس هغه مانع نشته نوټوله منځه داول دملک طرف ته منتقل کيدای شي لهذااُمّ ولده کيدل داول ترحصی پوري محدودنه پاتيږي بلکې ټوله منځه داول امّ ولده ګرځي.

(۳)اوس اول شريک دوهم ته دنصف منځې دورکولوضامن ګرځي ځکه هغه دده دحصي مالک شواونصف مهربه ورکوي ولی ده له مشترکې منځې سره وطی کړي ده اودوهم شريک به دمنځې کل مهراول ته ورکوي ځکه هغه په حقيقت کې ددابل له ام ولده سره وطی کړي ده اول شريک به ددوهم شريک دبچي قيمت هم ورکوي اوهغه دده زوی کيږي ځکه دوهم شريک په منزله دمغرور(دوکه شده خاوند،مغرورهغه چاته ويل کيږي چې دملک يمين ياملک نکاح په اعتمادله يوې ښځې سره صحبت وکړي اوله هغه څخه ماشوم پيداشي بياداښځه دبل چامستحقه وګرځي )دی ځکه کله چې ده وطی کړې ده هغه وخت بظاهره دده ملک قائم وواودمغروربچی له هغه څخه ثابت النسب اوپه قيمت آزادیږي.

(۴)اوله دواړوشريکانوڅخه چې هريومکاتبې ته دهغې دعاجزکيدوڅخه مخکې مهرورکړي جائزدی ځکه کتابت چې ترڅوپوري باقی وي دمهردقبض کولوحق خپله هغه لره دی ځکه دهغه دخپل ځان دمنافعواختصاص حاصل دی اوچې کله دادبدل کتابت له اداکولوڅخه عاجزه شي نومهردي مولی ته واپس ورکړي ځکه اوس دهغې دمنافعوسره دهغې دمولی اختصاص ظاهرشو.

(۵)وَإِنْ دَبَّرَ الثَّانِي وَلَمْ يَطَأْهَا فَعَجَزَتْ بَطَلَ التَّدْبِيرُ وَهِيَ أُمُّ وَلَدٍ لِلْأَوَّلِ وَضَمِنَ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا وَنِصْفَ عُقْرِهَا وَالْوَلَدُ لِلْأَوَّلِ (۶)وَإِنْ كَاتَبَاهَا فَحَرَّرَهَا أَحَدُهُمَا مُوسِرًا فَعَجَزَتْ ضَمِنَ لِشَرِيكِهِ نِصْفَ قِيمَتِهَا وَرَجَعَ بِهِ عَلَيْهَا (۷)عَبْدٌ لَهُمَا دَبَّرَهُ أَحَدُهُمَا ثُمَّ حَرَّرَهُ الْآخَرُ مُوسِرًا فَلِلْمُدَبِّرِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُعْتِقَ نِصْفَ قِيمَتِهِ (۸)وَإِنْ حَرَّرَهُ أَحَدُهُمَا ثُمَّ دَبَّرَهُ الْآخَرُ لَا يُضَمِّنُ الْمُعْتِقَ

**ترجمه**: که دوهم شريک مدبره کړه منځه او وطی يې ورسره ونکړه بياهغه عاجزه شوه نوتدبيرباطليږي اودااُمّ ولده ګرځي داول لپاره اودی ضامن ګرځي خپل شريک ته دنصف قيمت اودنصف عقراوماشوم داول کيږي اوکه دواړو منځه مکاتبه کړه بياآزاده کړه له دواړوڅخه يوه دغنی په حالت کې بياهغه عاجزه شوه نوضامن کيږي دخپل شريک لپاره دهغی دنصف قيمت اورجوع به کوي په هغه سره پرمنځه باندي،يومريی دی ددووکسانوبيايوه مدبرکړبياهغه بل آزادکړدغنی په حالت کې مدبِرلره داحق شته چې ضمان واخلي له معتِق څخه دمريي دنصف قيمت اوکه آزادکړيوه بياهغه بل مدبرکړنوضمان به نه اخلي له آزادوونکي څخه.

**تشریح** :(۵)که یوه منځه ددووکسانو سره شریکه وه اودواړوهغه مکاتبه کړه بیا له دوئ څخه یوه له هغې سره وطی وکړه اوهغې ماشوم پیداشوچې ده یې دادعوی وکړه چې داله ماڅخه دی نودماشوم نسب له هغه څخه ثابتیږي اوشریک ثاني له مذکوره مکاتبه سره وطی نه ده کړې بلکې هغه یې مدبره وګرځوله بیامنځه دبدل کتابت له اداکیدوڅخه عاجزه شوه نوتدبیرباطلیږي اومنځه داول لپاره امّ ولده ګرځي ولی لومړی شریک ددوهم شریک دحصې هغه وخت مالک شوی ووچې کله یې له مکاتبې سره وطی کړې وه اوس ددوهم شریک هغې لره مدبره ګرځول دبل په ملک کې تصرف دی حال داچې منځه مدبره ګرځول هغه وخت صحیح کیږي چې کله په هغې کې ملکیت قائم وي ،ځرنګه چې دامکاتبه داول لپاره امّ ولده وګرځیده بیادی دخپل شریک دحصې هم مالک شولهذادی دشریک ثاني لپاره دمنځې دنصف قیمت اونصف مهرضامن ګرځي په نسبت خوځکه ضامن کیږي چې ده مکاتبه امّ ولده کړه دشریک دنصف حصې مالک شوی دی اودنصف مهرځکه ضامن ګرځي چې ده له مشترکې منځې سره وطی کړې ده اوکوم ماشوم چې پیداشوی دی هغه داول زوی کیږي ځکه چې ده دهغه دنسب دعوی کړې وه چې صحیح هم وه ولی دی دمکاتبې مالک وو.

(۶)اوکه دواړوشریکانومذکوره منځه مکاتبه کړه بیایوه آزاده کړه اوآزادوونکی غني هم دی بیامنځه دبدل کتابت له اداکولوڅخه عاجزه شوه نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدآزادوونکی به خپل شریک ته دمنځې نصف قیمت ورکوي اوبیابه یې دی له منځې څخه وصولوي ځکه دامام صاحب رحمه الله په نزدآزادي تجزیه قبلوي (ټکړې ټکړې )کیدای شي ځکه دده نصف حصه آزادول صحیح شواودده په وجه دنصف منځې دآزادیدوڅخه دهغه بل شریک په حصه کې هیڅ فسادنه دی راغلی بلکې هغه حصه مکاتبه پاتیږي لهذاآزادوونکی دمنځې دعاجزکیدوڅخه مخکې ضامن کیږي هم نه خوچې کله هغه دبدل کتابت داداکیدوڅخه عاجزه شوه نواوس دهغه په حصه کې فسادظاهرشواوپه داسې صورت کې که شریک ثاني غني وونوده لره دري اختیارات دي یوداچې خپله حصه آزاده کړي دوهم داچې مملوک یې ورته وګټي دریم داچې تاوان واخلي اوځرنګه چې ده تاوان اخیستل اختیارکړی دی نوآزادوونکی به تاوان ورکوي اوبیابه ددغه تاوان په باره کې منځې ته رجوع کوي ځکه آزادوونکی دساکت یعنې مکاتب کوونکي قائم مقام شو.

(۷)که یومریی ددووکسانوترمنځ مشترک وو له دوئ څخه یوه هغه مدبرکړبیاهغه بل دامریی آزادکړاودابل غني هم دی نومدبرکوونکي ته دري اختیارات دي که غواړي له خپل شریک څخه دي نصف قیمت دمدبرپه حساب واخلي یعنې دمدبرمریي نصف قیمت دي واخلي اوکه غواړي په مریي دي ګټه وکړي اویادي آزادکړي ځکه دامام صاحب رحمه الله په نزدتدبیرتجزیه قبلوي نودیوه شریک مدبرکول دهغه ترحصه پوري محدودپاتیږی لیکن په دي سره دهغه بل حصه خرابیږي ځکه دوهم شریک ته دري اختیارات ورکول کیږي یعنې آزادول،په مریي ګټه کول اوتاوان اخیستل،که یې له شریک څخه تاوان اخیسته نودمدبرکیدوپه حساب سره به یې اخلي ځکه دشریک آزادول په مدبرپوري متصل شوی دی په مریي پوري نه دی متصل شوی لهذاتاوان به هم دمدبردحسابه اخلي.

(۸)که دشریکینو څخه یوه مخکې خپله حصه آزاده کړه نودوهم شریک ته مذکوردري اختیارات حاصلیږي ځکه شریک اول ددوهم حصه خرابه کړه بیاکه هغه بل دامریې مدبرکړ نومدبرکوونکې له آزادوونکي څخه تاوان نه شي اخیستلای باقي دوه اختیارات ده لره حاصل دي یعنې یادي مریې آزادکړي یادي په هغه کټه وکړي ځکه مدبرآزادول یاپه هغه سره کټه کول ممکن دی .

## باب موت المکاتب وعجزه وموت المولی

داباب دمکاتب دمرګ او دهغه دعجزاو دمولی دمرګ په بیان کې دی

ددغه دباب دتاخیروجه ظاهره ده چې مذکوره امور(یعنې دمکاتب مرګ،دمکاتب عجزاودمولی مرګ) له عقدکتابت وروسته وي نودهغوا حکام وروسته بیانول مناسب دی

(۱)مکاتب عجز عن نجم وله مال سیصل لم یعجزه الحاکم الی ثلثة ایام(۲)والا عجزه وفسخها او سیده برضاه(۳)وعاد احکام الرق وما فی یده لسیده(۴)وان مات وله مال لم تفسخ وتؤدی کتابته من ماله وحکم بعتقه فی آخر حیاته(۵)وان ترک ولدا ولد فی کتابته لاوفاء سعی کابیه علی نجومه فاذا ادی حکم بعتقه وعتق ابیه قبل موته(۶)ولو ترک ولدا مشتری عجل البدل حالا او رد قنا

**ترجمه** :یومکاتب عاجزشوله قسط څخه اوده لره مال شته چې په نژدي وخت کې په لاس راتلونکی دی نودوخت حاکم دي دی تردریو ورځوپوري عاجزنه ګڼي،که نه بیادي عاجزوګڼي اوکتابت دي فسخ کړي یادي فسخ کړي دهغه مولی دده په رضامندي سره اوراګرځي دمریي احکام اوهغه شی چې دده په لاس کې دی هغه دده مولی کیږي اوکه چیرته دی مړشواوده لره مال وونوکتابت نه فسخ کیږي اواداکول کیږي بدل کتابت دده له مال څخه اوحکم کول کیږي دهغه په آزادي سره دهغه دژوندپه آخري حصه کې اوکه یې پریښودی ماشوم چې دده دکتابت په ورځوکې پیداشوی وواووفاء نه وه راغلې نوماشوم دي سعي وکړي دپلارپه شان دقسطونوپه اداکولوکې چې کله یې آداکړل نوحکم کول کیږي دده په آزادي سره اودده دپلارپه آزادي سره ددده ترمرګ مخته اوکه یې پریښودا خیستل شوی ماشوم نوهغه به فورابدل کتابت اداکوي که نه بیرته غلام ګرځي

**تشریح** :(۱)که یوچاخپل مریی په قسطونوسره مکاتب کړی ووبیاهغه دقسط اداکولوڅخه عاجزشو بیاکه دده پریوچاباندي دومره قرض ووچې دهغه په قبض کیدوسره قسط اداکیدای شوای یاده ته له یوخوا څخه څه مال راتلونکی وونودوخت حاکم دي دده په عاجزګڼلوکې تلوارنه کوي بلکې تردریو ورځوپوري دي انتظاروکړي ځکه په دي کې دطرفینو(مولی اومریي دواړو)رعایت دی اودري ورځې داسې یوه موده ده چې دعذرونوداظهارلپاره مقرره شوې ده لکه قرضدارته چې دري ورځې وخت ورکول کیږي لهذامذکورمکاتب ته هم دري ورځې مهلت ورکول کیږي .

(۲)قوله والاعجزه وفسخهااي وان لم یکن له مال سیصل الیه فی ثلاثة ایام فسخ الحاکم الکتابة الخ ،یعنې که دده لپاره دحصول مال هیڅ لاره نه وه نودطرفینورحمهماالله په نزددي قاضي پرهغه باندي دعاجزکیدوحکم وکړي اوکتابت دي فسخ کړي یاکه مکاتب راضي وونومولی دي هغه فسخ کړي ځکه روایت دی چې حضرت عمر

ﷺ ديوه قسط ځخه دعاجزعقدكتابت فسخ كړی وواوپه غيرمدرک بالقياس معامله كې داثرورو دخبرمرفوع درجه لري، اوامام ابويوسف رحمه الله فرمايې چې ترڅوپوري پرهغه باندي پيوسته دوه قسطونه رانه شي ترهغه پوري به حاكم دهغه دعجزحكم نه كوي ځكه له حضرت علي ﷺ ځخه مروي دي چې ترڅوپرمكاتب باندي دوه قسطونه رانه شي نودی دي دغلامي طرف ته ردكړای شي امام ابويوسف رحمه الله ته جواب وركول كيږي چې دحضرت علي ﷺ اثرديوقسط راتلوپه صورت كې ساكت دی لهذا له هغه ځخه استدلال كول صحيح نه دی.

**فائده** :دطرفينو رحمهما الله قول راجح دی لمافي الدرالمختار:مكاتب عجز عن اداء نجم ان كان له مال سيصل اليه لم يعجزه الحاكم الى ثلاثة ايام لانها مدة ضربت لابلاء الاعذار والاعجزه الحاكم في الحال قال العلامة ابن عابدين الشامي رحمه الله :(قوله والاعجز الخ) اى ان لم يرج له مال وهذا عندهما وهو الصحيح قهستاني عن المضمرات وقال ابويوسف رحمه الله لايعجزه حتى يتوالى عليه نجمان لقول علي ﷺ اذاتوالى عليه نجمان رد في الرق وحملاه على الندب اى يندب ان لايرده قبلهما لتعارض الآثار (الدرالمختار مع الشامية:۵/۷۷)

الالغاز:اى كتابة ينقضها غير المتعاقدين؟

فقل :اذاكان المكاتب مديونا فللغرماء نقضها.(الاشباه والنظائر)

(۳)كه دمكاتب دعجزفيصله وشوه كه قاضي دی عاجزګڼلی وي يا په خپلې رضامندي ده خپل ځان عاجزګڼلی وي نوپرده باندي واپس درقيت احكام راګرځي ځكه كتابت فسخ شو او څه ګټه چې دده په لاس كې وي هغه دده دمولی كيږي ځكه داخبره ظاهره شوه چې دادهغه دمريي ګټه ده او داځكه چې ګټه يامكاتب ته وقف وه يادهغه پرمولی باندي په دي ډول چې كه يې مال كتابت اداكړنو پرمكاتب باندي وقف دی كه نه دهغه پرمولی باندي مګراوس دعجزپه وجه توقف زائل شولهذا اداكسب دمولی دی.

(۴)كه مكاتب دبدل كتابت له اداكولو مخكي مړشو او په تركه كې يې مال پريښودنو عقد كتابت نه فسخ كيږي بلكې له تركه ځخه بدل كتابت اداكول كيږي او دهغه دژوند په آخري جزء كې دهغه دآزادي حكم وركول كيږي ځكه عقد كتابت عقد معاوضه دی له متعاقدينو ځخه ديوه يعني مولی په مرګ سره نه فسخ كيږي نو دبل يعني مريي په مرګ سره نه باطليږي ځكه عقد معاوضه دمساوات مقتضي دی او دبدل كتابت دادائيګي وروسته كه څيرته مال پاته شوهغه دده وارثانوته وركول كيږي او دمكاتب اولادتبعاللوالدآزاديږي همدادحضرت ابن مسعود ﷺ قول دی وبه اخذ علمائنا الثلاثة.

(۵)كه مكاتب دومره مال نه پريښودچې دبدل كتابت دادائيګي لپاره كافي شي البته يوداسي تنكی ماشوم يې پريښودچې دده دكتابت په ورڅو كې پيداشوی وونوهغه به مزدوري كوي دخپل پلاربدل كتابت له قسطونوسره مطابق اداكوي له هغه وروسته حكم وركول كيږي دهغه دپلاردآزادي دهغه ترمرګ مخته او ماشوم هم آزاديږي ځكه ماشوم دهغه په كتابت كې داخل دی او دماشوم ګټه دپلارد ګټې په شان ده لهذادی به دقسطونو په ادائيګي كې دخپل پلارخليفه وي دانوداسي كيږي چې ګواكې پلارمال پري ايښی دی.

(۶)كه مكاتب يوداسي ماشوم پريښودی چې مكاتب په حال دكتابت كې اخيستی وونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدډې ماشوم ته يې ويل كيږي چې ياخو في الحال بدل كتابت اداكړه كه نه ته دغلامي طرف ته راګرځول كيږي ،دصاحبينو رحمهما الله په نزدددي ماشوم حكم :هغه ماشوم په شان دی چې په حال

دکتابت کې پيداشوی وو ،صاحبين رحمهما الله په حال دکتابت کې اخيستل شوی ماشوم په حال دکتابت کې پيداشوي ماشوم باندي قياسوي،اودامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې داخيستل شوي اوپيداشوي ماشوم ترمنځ فرق شته هغه دادی چې پيداشوی ماشوم دعقدپه وخت له پلارسره متصل دی ځکه دعقدحکم ترهغه پوري سرايت کوي او اخيستل ماشوم نه په وخت دعقدله پلارسره متصل دی چې حکم دعقدتر ده پوري ورسيږي اونه دهغه طرف ته دعقداضافت شوی دی .

(۷)وَإِنِ اشْتَرى ابنه فَمات وتَرَك وفاءً وَرِثَه ابنه(۸)وكذا لو كان هو وابنه مكاتبين كتابة واحدة(۹)ولو ترك ولدا من حرة ودينا وفاءً بمكاتبته فجنى الولد فقضي به على عاقلة الأم لم يكن ذالك قضاءً بعجز المكاتب(۱۰)وإن اختصم موالي الأم والأب في ولائه فقضي به لموالي الأم فهو قضاء بالعجز

**ترجمه** :اوکه واخيست مکاتب خپل زوی اومړشواووفا،ميراث يې پريښودده زوی وارث کرځي همدارنګه که وودی اوزوی يې دواړه مکاتب په يوه عقدکتابت سره اوکه يې زوی پاته وولدآزادي ښځې څخه اودومره قرض چې هغه کافي وودده دبدل کتابت بياهغه ماشوم يوجنايت وکړچې دهغه دتاوان فيصله وکړای شوه دموريرعاقله باندي نودادمکاتب دعجزفيصله نه ګڼله کيږي اوکه دموراوپلاردمولی ګانو جنجال راغی دماشوم په ولاء کې اوفيصله وشوه دموردمولی ګانوپه حق کې نودادهغه دعاجزکيدو فيصله ده .

**تشريح** :(۷)که يوه مکاتب خپل زوی واخيست بيايې داپلارمړشواودومره مال يې پريښودچې په هغه سره بدل کتابت اداکيدای شوای نودازوی وارث ګرځي ځکه چې کله دمکاتب پلاردژوندپه آخري لحظه کې دهغه دآزاديدوحکم وکړای شي نوپه همدي وخت کې دهغه دزوی دآزادي حکم هم ورکول کيږي ځکه زوی په کتابت کې دخپل پلارتابع دی نوګواکې آزادزوی دآزادپلارميراث پيداکړ.

(۸)قوله وكذا لو كان هو وابنه مكاتبين كتابة واحدة اى كذا يرث الابن عن ابيه اذا كان المكتب وابنه مكاتبين كتابة واحدة، يعني مذکورحکم هغه وخت هم صحيح دی چې کله مکاتب اودهغه زوی دواړه په يوه عقدسره مکاتب شوي وي بياپلارمړشي اودومره مال پريږدي چې په هغه سره بدل کتابت اداکيدای شي نوزوی دهغه وارث ګرځي ولی چې کله دمکاتب دژوندپه آخرکې دهغه دآزادي حکم ورکول کيږي که دده زوی نابالغ وونويا خودخپل پلارتابع ګرځي آزاديږي اوکه بالغ وونوپلاراوزوی دواړه يوشخص ګڼل کيږي ياچې کله دپلاردآزادي حکم ورکول شونوپه هغه وخت کې دهغه دزوی آزادي حکم هم کيږي کمامرّ.

(۹)که مکاتب مړشواوده له يوې آزادي ښځې څخه يوماشوم پريښوداوپرخلکويې دومره قرض هم پريښودچې په هغه سره دده بدل کتابت اداکيدای شي له قرض سوايې بل هيڅ شی نه دی پري ايښی بيادهغه دغه زوی يوڅوک ناحقه قتل کړاوددیت حکم دهغه دآزادي موريرعاقله باندي ورکول شوځکه مکاتب که څه هم دومره دين پري ايښی دی چې په هغه سره بدل کتابت اداکيدای شي ليکن عين شی يې نه دی پاته لهذاتراداتيګی مخکې دهغه دآزادي حکم نه شي ورکول کيدای نودی به مکاتب پاته وي ځکه دديت حکم دهغه دموريرعاقله باندي ورکول کيږي نوداحکم دهغه مکاتب دعاجزکيدوحکم نه دی ځکه قاضي چې

دموږپرعاقله باندي ددیت حکم کوي دادهلک کتابت نورهم مستحکم کوي ځکه داددي مقتضي دی چې ماشوم دمورله مولی ګانوسره ملحق وي مګرله دي احتمال سره چې دامکاتب ماشوم آزادشي خپله ولاء دپلاردموالی ؤطرف ته کش کړي دقاضي داسي فیصله چې په هغی سره حکم دکتابت مستحکم کیږي دمکاتب دعاجزکیدوفیصله نه وي.

(۱۰)البته که په مذکورصورت کې ماشوم دمکاتب له مرګ وروسته مړشوییادموراو پلار دآزادوونکیوددي ماشوم په ولاء کې سره جنجال شویعنې دواړوفریقودهغه ترکه وغوښته دمورمولی ګان وایې چې دادغلامي په حالت کې مړشوی دی لهذاولاء موږته بایدراکول شي اودپلارمولی ګان وایې چې هغه آزادمړشوی دی لهذاولاء بایدموږته راکول شي اوحاکم دموردمولی ګانولپاره دولاء فیصله وکړي نودافیصله دمکاتب دعاجزکیدوفیصله شمارله کیږي ځکه داجنجال په مقصودي ډول په ولاء کې راغلی دی چې دکتابت پربقاء اوعدم بقاء باندي مبنی دی ځکه چې که چیرته کتابت فسخ شوی وي نومذکورماشوم دغلامي په حالت کې مري اودماشوم ولاء دموردمولی ګانولپاره بالاستحکام ثابتیږي اوکه چیرته کتابت باقي وي اوبدل کتابت اداکړای شي نوماشوم آزادمري اوولاء دپلاردمولی ګانوطرف ته منتقله کیږي اودامجتهدفیه مسئله ده ځکه دقاضی په دي کې فیصله کول په یوه مجتهدفیهامسئله کې فیصله ده چې په اتفاق نافذیږي بیاچې کله ده دموردمولی ګانوپه حق کې فیصله وکړه نودادمکاتب دعاجزکیدو فیصله شمارله کیږي.

(۱۱)وَمَاأَدَّى الْمُكَاتَبُ مِنَ الصَّدَقَاتِ وَعَجَزَ طَابَ لِسَيِّدِهِ(۱۲)وَإِنْ جَنَى عَبْدٌ فَكَاتَبَهُ سَيِّدُهُ جَاهِلًا بِهَا فَعَجَزَ دَفَعَ أَوْ فَدَى(۱۳)وَكَذَا إِنْ جَنَى مُكَاتَبٌ وَلَمْ يَقْضِ بِهِ فَعَجَزَ فَإِنْ قَضَى بِهِ عَلَيْهِ فِي كِتَابَتِهِ فَعَجَزَ فَهُوَ دَيْنٌ يُبَاعُ فِيهِ(۱۴)وَإِنْ مَاتَ السَّيِّدُ لَمْ تَنْفَسِخِ الْكِتَابَةُ وَيُؤَدِّي الْمَالَ إِلَى وَرَثَتِهِ عَلَى نُجُومِهِ(۱۵) وَإِنْ حَرَّرُوهُ عَتَقَ مَجَّانًا وَإِنْ حَرَّرَ الْبَعْضُ لَمْ يَنْفُذْ عِتْقُهُ

**ترجمه**:اوهغه څه چې مکاتب له صدقاتوڅخه اداکړي وي بیادی عاجزشي نوداحلال دي دهغه دمولی لپاره که جنایت وکړمریي بیامولی مکاتب کړدامریی په داسي حال کې چې مولی دده په جنایت خبرنه وویادی عاجزشونومولی به مریی ورکوي یابه فدیه ورکوي اوهمدارنګه که جنایت وکړمکاتب اوتراوسه دفدیه حکم نه ووصادرشوی چې هغه عاجزشواوکه حکم وکړای شودفدیه پرهغه باندي دهغه په کتابت کې بیادی عاجزشونوداقرض دی په دي کې دامریی خرڅول کیږي اوکه مولی مړشونوکتابت نه فسخ کیږي اومال به اداکوي دهغه ورثه ؤته دهغه دقسطونوپه مطابق اوکه ورثه ؤدی آزادکړنوبیادی آزادیږي مفت اوکه ځینوله هغوئ نه آزادکړنودهغوئ آزادیدل نه نافذه کیږي.

**تشریح**:(۱۱)که دمکاتب مولی داسي څوک ووچې هغه لره صدقات جائزنه وواومکاتب له خلکوڅخه صدقات وصولول مولی ته یې په بدل کتابت کې ورکولې بیامکاتب دکل بدل کتابت له اداکیدوڅخه عاجزشونومکاتب چې کوم مالونه دصدقاتومولی ته اداکړي دي هغه مولی لره حلال دي ځکه ملکیت تبدیل شوځکه مکاتب هغه دصدقه په ډول حاصل کړي وواومولی دبدل کتابت په ډول همدي حکم ته په حدیث

شريف كې هم اشاره ده چې پيغمبرعليه السلام دحضرت بريره ﷺ په باره كې فرمايلي ووچې :لهاصدقة ولنا هدية (دبريرې ﷺ لپاره صدقه ده زموږلپاره هديه ده ) .

(۱۲)كه مريي كوم جنايت وكړبيامولى هغه مكاتب كړپه داسې حال كې چې مولى دهغه په جنايت ناخبره ووبيامكاتب دبدل كتابت له اداكيدوڅخه عاجزشونومالك لره يې اختياردى چې يامجنى عليه (پرچاباندې چې مريي جنايت كړى دى ) ته دامريى وركړي اويادجنايت فديه وركړي ځكه په اصل كې دمريي دجرم حكم همدادى چې مريى وركول شي يافديه وركوله شي بيادلته مولى مريى مكاتب كړى دى ظاهره خبره ده چې اوس خومريى نه شي وركولاى نومطلب داشوچې مولى له دووخبروڅخه يوه اختياركړي دا يعنې فديه وركول يې اختياركړل مګرځرنګه چې مولى دمكاتب ګرځولوپه وخت كې دهغه په جرم خبرنه ووبياچې كله هغه دى مكاتب كړنودادفديه اختيارولوپه معنى نه دى يعنې له هغه څخه دانه لازميږي چې اوس به فديه وركوي البته مكاتب كول ځرنګه چې خپله دمريي وركولوڅخه مانع وو اوس چې داعذرختم شونواصل حكم راوګرځيديعنې مجنى عليه ته دمريى وركولواوفديه وركولوڅخه مولى يواختيارولاى شي

(۱۳)همدارنګه كه مكاتب جرم وكړاوتراوسه دفديه وركولوحكم پرمكاتب باندې نه ووشوى چې هغه عاجزشونوهم مولى لره اختياردى چې يامريى وركړي اويافديه وركړي ځكه دادمريي جنايت دى اودمريي دجنايت حكم دادى چې مولى ته دمريي په وركولواوفديه په وركولوكې اختياروي على ماعُرِف.اوكه پرمكاتب باندې دكتابت په حالت كې دجرم دفديه حكم شوى وو(فديه دهغه دقيمت اوتاوان څخه چې كوم يوكم وي هغه وي) بياهغه دبدل كتابت داداكيدوڅخه عاجزشونودافديه دهغه پرذمه قرض كيږي چې دهغى لپاره دامريى خرڅول كيږي ځكه دقاضى دحكم په وجه دجرم فديه دهغه دغاړې څخه دهغه دقيمت طرف ته منتقله شوه .

(۱۴)كه دمكاتب مولى مړشونوكتابت نه فسخ كيږي ځكه دكتابت په فسخ كيدوسره دمكاتب حق باطليږي هغه په دې چې كتابت دآزادي سبب دى اوآزادي دمكاتب حق ده اودچادحق سبب هم دهغه حق كيږي نوكتابت دهغه حق شواوحق دمرګ په وجه نه باطليږي لهذادې مكاتب ته ويل كيږي چې بدل كتابت دقسطونوسره سم دمولى ورثه ؤته اداكړه اوورثه دهغه حق دمودې هم نه شي ساقطولاى ځكه موده هم دمكاتب حق ده ورثه حق نه لري چې هغه ساقط كړي ..

(۱۵)بياكه ټولوورثه ؤدى آزادكړنواستحساناًمفت آزاديږي اومال دكتابت دده له ذمي څخه ساقطيږي وجه داستحسان داده چې داپه اصل كې مكاتب له بدل كتابت څخه بري كول دى اوچې كله مكاتب له عوض كتابت څخه بري شونودى آزاديږي،اوكه دمولى له ورثه ؤڅخه يوه نفردامكاتب آزادكړنودهغه آزاديدل نه نافذكيږي ځكه دادهغه مالك نه دى اوداځكه چې مكاتب لكه ځرنګه چې دملك په نورو اسبابوسره دچامملوك نه شي ګرځيداى همدارنګه دوراثت په سبب هم دچامملوك نه كيږي البته دمكاتب پرذمه چې كوم مال دى هغه دورثه طرف ته منتقل كيږي .

## باب الوَلاء

داباب دولاء په بیان کې دی

ولاء بفتح الواؤ په لغت کې دنصرت اومحبت په معنی ده ،اوشرعاداسې قرابت حکمیه ته ویل کیږي کوم چې له عتق یاعقدموالات (عقدموالات له دې څخه عبارت دی چې یوکس له بل سره دامعاهده وکړي چې که ماکوم جنایت وکړنودهغه تاوان پرتادی اوکه زه مړشوم نوته به زماوارث یې ،صاحب عقدته مولی الموالات ویل کیږي )څخه حاصل وي اولنی یعنی حاصل من العتق ته ولاء العتاقة ویل کیږي اودوهم (یعنی حاصل من الموالات )ته ولاء الموالات ویل کیږي .دولاء حکم استحقاق میراث دی .

له کتاب المکاتب څخه وروسته یې کتاب الولاء په دې وجه ذکرکړچې ولاء دکتابت له اثاروڅخه ده په دې وجه چې دبدل کتابت له اداء کولوڅخه وروسته ملک رقبه زائلیږي مکاتب ازادیږي نوولاء ثابتیږي اودشئ اثرله شئ څخه وروسته وي .

(۱)الوَلاءُلِمَنْ أَعْتَقَ وَلَوبِتَدبِيرٍ وَكِتَابَةٍ وَاسْتِيلادٍ وَمِلْكِ قَرِيبٍ (۲)وَشَرطُ السَّائِبَةِ لَغْوٌ (۳)وَلَوْ أَعْتَقَ حَامِلاً مِنْ زَوجِهَا القِنِّ لايَنتَقِلُ وَلاءُ الحَملِ عَن مولى الأمِّ أبَدًا (۴)فَإِنْ وَلَدَتْ بَعْدَ عِتقِهَا لأَكثَرَ مِن سِتَّةِ أَشْهُرٍ فَوَلاؤُهُ لِمَولَى الأُمِّ (۵)فَإِنْ عَتَقَ العَبدُ جَرَّ وَلاءَ ابنِهِ إِلَى مَوالِيهِ

**ترجمه** :ولاء هغه لره ده کوم چې غلام ازادکړي اګرکه دتدبیرپه ذریعه یادکتابت یاام ولدګرځولویاد قریب دمالکیدلوپه ذریعه سره وي ،اودولاء دنه حاصلیدلوشرط لغودی ،اوکه یې ازاده کړه داسې مینځه چې حامله وي له خپل داسې خاوندڅخه چې غلام وي نونه منتقل کیږي دحمل ولاء دمورله ازادونکی څخه هیڅکله ،اوکه یې وزیږاوله خپلې ازادي څخه ترشپږومیاشتوپه زیات وخت کې نوهم به دده ولاء دمورازادونکی لره وي ،اوکه ازادشوغلام نوکښوي دی دخپل زوی ولاء دخپلوازادونکو طرف ته .

**تشریح** :(۱)دغلام اومینځې ولا(ترکه )ازادکونکی ته رسیږي خواه که ازادي دمدبرکولوپه وجه سره حاصله شوي وي یادمکاتب کولوپه وجه سره یادام ولدکولوپه وجه سره اویادکوم قریب داخیستلوپه وجه سره دی ازادشوی وي ولی چې مولی دغلام درقیت په لیرې کولوسره دی ژوندی کړی دی په دې وجه به مولی دده وارث وي لکه چې پلاردزوی وارث وي.

(۲)که مولی په اعتاق کې داشرط ولګاووچې داغلام به سائبه وي یعنی له ازادي څخه وروسته به دهیچاپه ولاء کې نه وي بلکه دی به خودمختاره وي زه دده وارث نه یم اوکه ده کوم جنایت وکړنوزه دهغه دیت هم نه اداء کوم نوداشرط باطل دی اولاء به هغه ته حاصلیږي څوک چې دی ازادکړي ولی چې داشرط دنص حدیث یعنی قوله علیه السلام ﴿ الْوَلاءُلِمَنْ أَعْتَقَ ﴾ (چاچې ازادکړی دی ولاء هغه لره ده )خلاف دی .

(۳)که دچاغلام دکوم بل چاله مینځې سره نکاح وکړه بیادمنیځې بادارمینځه ازاده کړه اوحال داچې دامینځه له دې غلام څخه حامله ده نومینځه ازادیږي اوتبعاددې حمل هم ازادیږي ،اودحمل ولاء به دمورمولی ته ورکول کیږي اوداولاء به دمورله مولی څخه بل چاته هیڅ کله نه منتقل کیږي ولی چې داحمل دمورپه ازادونکی باندې بالقصدازادشوی دی یعنی دمورمولی قصداازادکړی دی په دې وجه چې دی دمورجزء دی کوم چې بالقصداعتاق قبلوي لهذادده ولاء به دمورله ازادونکی څخه هیڅ کله نه منتقل کیږي .

(۴)كه په مذكوره صورت كې مينځې له خپلې ازادي څخه ترشپږو مياشتو په زيات وخت كې ماشوم وزيږاوونوددي ولاء به هم دمورازادونكى ته حاصليږي ولى چې داحمل دمورپه تبعيت سره ازادشوپه دي وجه چې دمورله عتق څخه وروسته دى له مورسره متصل دى لهذا په ولاء كې به هم دمورتابع وي .

(۵)مګرځرنګه چې داعتاق په وخت كې محقق الوجودنه دى په دي وجه دده اعتاق مقصودي نه دى لهذادده ولاء دمورازادونكى لره ابدي نه ده بلكه كه ددي ماشوم پلارازادكړاى شونوهغه دماشوم ولاء خپل طرف ته كښوي اوولاء به دمورله مولى څخه په منتقليدواوس دپلاردمولى طرف ته ځې وجه يې داده چې ولاء بمنزله نسب ده اونسب دپلارطرف ته منسوب وي نوولاء به هم پلارلره وي .

(٦)عَجَمِيٌّ تَزَوَّجَ مُعْتَقَةً فَوَلَدَتْ فَوَلَاءُ وَلَدِهَا لِمَوَالِيهَا وَإِنْ كَانَ لَهُ وَلَاءُ الْمُوَالَاةِ (٧) وَالْمُعْتِقُ مُقَدَّمٌ عَلَى ذَوِي الْأَرْحَامِ مُؤَخَّرٌ عَنِ الْعَصَبَةِ النَّسَبِيَّةِ (٨) فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلَى ثُمَّ الْمُعْتِقُ فَمِيرَاثُهُ لِأَقْرَبِ عَصَبَةِ الْمَوْلَى (٩) وَلَيْسَ لِلنِّسَاءِ مِنَ الْوَلَاءِ إِلَّا مَا أَعْتَقْنَ أَوْ أَعْتَقَ مَنْ أَعْتَقْنَ أَوْ كَاتَبْنَ أَوْ كَاتَبَ مَنْ كَاتَبْنَ

**ترجمه** :يوعجمي نكاح وكړه له ازادي شوي ښځې سره هغې ماشوم وزيږاوونوولاء ددي دماشوم به ددي ازادونكولره وي اګركه عجمي له چاسره عقدموالات كړى وي ،اوازادونكى مقدم دى پرذوى الارحامواومؤخردى له نسبي عصبه څخه ،نوكه مړشوازادونكى بيامړشوازادكړل شوى نودده ميراث به دازادونكى قريبي عصبه لره وي .اونشته ښځولره ولاء مګردهغه كوم چې دوئ ازادكړى وي يادوئ ازادكړل شوي ازادكړى وي يادهغه كوم چې دوئ مكاتب كړى وي يادوئ مكاتب شويومكاتب كړى وي .

**تشريح** :(۶)كه حرالاصل عجمي دچاله ازادكړل شوي مينځې سره نكاح وكړه بيايې له ده څخه اولادپيداشو نودطرفينوپه نزدداولادولاء ددي معتقې ښځې مولى ته حاصليږي اګركه دد ي عجمي خاوندله چاسره عقد موالات هم كړى وي نودعقدموالات والاته نه حاصليږي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدداولادولاء ددوئ پلارته حاصليږي ولى چې ولاء بمنزله نسب ده اونسب داباؤله جانب څخه وي .دطرفينودليل دادى چې ولاء عتاقه قوى اوداحكامو په حق كې معتبره ده حتى چې په دي كې دكفائت اعتبارهم وي (په دي دول چې معتق عجم دمعتق عرب كف نه دى )،همدارازولاء عتاقه فسخ نه قبلوي حال داچې ولاء موالات فسخ قبلوي اوقوى لره پرضعيف ترجيح حاصله وي لهذادمولى عتاقه له وجودسره مولى موالات ته ولاء نه حاصليږي.

**فائده**:دطرفينوقول راجح دى لمافي الدر المختار:عجمي له مولى موالاة نكح معتقه فولدت منه فولاء ولدها لموالاها القوة ولاء العتاقة حتى اعتبر فيه الكفاءة وهذا عندهما(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/۸۳)

(۷)يعنى په ولاء عتاقه سره عصوبت ثابتيږي ده لهذاله ذوى الفروضو څخه وروسته اوله ذوى الارحامو څخه مقدم ده كه دازادشوى ذوى الفروض نه وي مګرنسبي عصبات وي نوهغوئ هم له ازادونكى څخه دميراث په باب كې مقدم دي ولى چې نسبي عصوبت له سببي عصوبت څخه مقدم دى .نوكه دازدشوى نسبي عصبات نه وي نودده ميراث به ازادونكى لره وي .

(۸)كه مولى وړاندي مړشوبيادده ازادكړل شوى غلام مړشونودازادشوى ميراث به دمولى په عصباتوكې ترټولوډيرقريب ته حاصليږي مثلاكه دمولى پلاراوزوى وارث وي يانيكه اوورور وارث وي

نو په لومړني صورت کې دا ازاد شوي ميراث زوی ته حاصلیږي ولی چې زوی اقرب العصبات دی او په دوهم صورت کې نیکه ته حاصلیږي ولی چې نیکه له ورور څخه اقرب عصبه دی.

(۹) ښځو ته د معتق میراث نه حاصلیږي ولی چې ولاء د میراث په باب کې موجب عصوبت ده او ښځو لره عصوبت نشته لهذا دوئ لره ولاء هم نشته البته په لاندینیو صورتونو کې ښځو لره هم ولاء وي، کوم غلام چې ښځې ازاد کړی یا د ښځې ازاد کړای شوي ازاد کړنو د ده میراث ښځې ته حاصلیږي، یا کوم چې ښځې مکاتب کړی یا د ښځې مکاتب کړای شوي مکاتب کړنو د ده میراث ښځې ته حاصلیږي.

## فصل

### دا فصل د ولاء الموالات په بيان کې دی

مصنف رحمه الله د ولاء العتاقه له بیان څخه فارغ شو نو د ولاء الموالات بیان یې شروع کړ د ولاء عتاقه د تقدیم وجه دا ده چې ولاء عتاقه له ولاء موالات څخه قوی ده په دې وجه چې ولاء عتاقه له ثابتیدلو څخه وروسته هیڅ کله نه فسخ کیږي حال دا چې ولاء موالات فسخ قبلوي، او قوی احق بالتقدیم دی.

(۱) أسْلَمَ رَجُلٌ علی يدِ رَجُلٍ وَوَالاهُ علی أنْ يرِثَهُ وَيَعْقِلَ عنه أو علی غيرِهِ وَوَالاهُ صَحَّ (۲) وَعَقْلُهُ علی مَوْلاهُ وَإِرْثُهُ له إنْ لم يَكُنْ له وارِثٌ (۳) وهو آخِرُ ذَوِي الأرْحامِ (۴) وله أنْ يَنْتَقِلَ عنه إلی غيرِهِ بِمَحْضَرٍ من الآخَرِ ما لم يَعْقِلْ عنه (۵) وَلَيْسَ لِلْمُعْتَقِ أنْ يُوَالِيَ أحَدًا (۶) وَلَوْ وَالَتْ امْرَأَةٌ فَوَلَدَتْ تَبِعَهَا فيه

**ترجمه**: اسلام قبول کړیو کس د بل پر لاس باندي او له هغه سره یې موالات وکړه دي چې هغه به د ده وارث وي او تاوان به ورکوي د ده له طرف څخه یا یې د کوم بل چا پر لاس اسلام قبول کړ او له ده سره یې موالات وکړنو صحیح ده، او د ده تاوان به د ده پر مولی وي او د ده میراث به هم مولی لره وي که نه وو ده لره کوم وارث، او هغه له ذوی الارحامو څخه اخیری ذی رحم دی، او ده لره جائز ده چې منتقل شي له خپل مولی څخه د بل طرف ته د هغه په موجودوالی کې تر څو چې هغه تاوان نه وي ورکړی د ده له طرف څخه، او جائز نه ده ازاد کړل شوی لره چې موالات وکړي له بل چا سره، او که موالات وکړ ښځې بیا یې ماشوم وزیږاوو نو ماشوم به د مور تابع وي په عقد کې.

**تشریح**: (۱) که یو غیر مسلم د کوم مسلمان پر لاس اسلام قبول کړ او دي نوي مسلمان له ده سره موالات وکړ (د کومو دوو کسانو په منځ کې چې په دي شان قول او اقرار وشي چې موږ به یو له بله په دي شان سره مدد کونکي اوسو چې که دیوه کس پر ذمه کوم دیت لازم شي نو هغه بل به یې پر غاړه اخلي او که یو مړ شي نو هغه بل به یې وارث وي دا عهد عقد موالات دی او په دوئ کې هر کس ته مولی الموالات ویل کیږي) یعنی نوي مسلمان شوی وویل زما له مرګ څخه وروسته به ته زما د ټول مال وارث یې او که له ما څخه کوم جنایت وشو نو زما له طرف څخه به ته دیت ورکوي، یا خوي یې اسلام دیوه پر لاس قبول کړ او عقد موالات یې له بل سره وکړ نو په دي دواړو صورتونو کې دا عقد صحیح دی ولی چې د هر یوه مال د هغه حق دی لهذا هغه چې په کوم ځای کې د هغه مصروفو و غواړي کولی یې شي، له ظاهر عبارت څخه دا معلومیږي چې د عقد موالات کونکی

حدوث اسلام شرط دی حال دا چې داسې نه ده بلکه د ده مجهول النسب والی شرط دی ممکنه ده چې د مصنف رحمه الله د هم همدا غرض وي .

(۲)کله چې عقد موالات صحيح شي نوله نوی مسلمان شوی شخه د صدور جنايت په صورت کې به د نوی مسلمان شوي له طرف شخه هغه کس ديت ورکوي او د نوی مسلمان شوي له مرګ شخه وروسته به هغه کس د ده وارث وي ليکن شرط دا دی چې نوی مسلمان شوی به د کوم چا ازاد کړل شوی نه وي او د ده به کوم وارث هم نه وي نو د ده ميراث به له ده سره د عقد موالات کونکی لره وي او که د دي نوی مسلمان شوی موالات کونکی کوم وارث وي نو هغه د ده په ميراث ورولو کې له عقد موالات کونکی شخه مقدم دی ولی چې هغه شرعی وارث دی لهذا د هغه حق د عقد موالات په وجه سره باطليدای نه شي .

(۳)اوپه ذوی الارحامو کې تر ټولو آخري درجه د عقد موالات کونکی ده يعنی که له نورو ذوی الارحامو شخه څوک موجود وي نو ميراث به د هغه وي مولی الموالات به محروم وي ولی چې نور ذوی الارحام د قرابت په وجه سره وارث دي کوم چې له عقد موالات شخه قوی دی ولی چې قرابت د ماتيدلو متحمل نه دی حال دا چې عقد موالات ماتيدلی شي .

(۴)عقد موالات کونکی لره دا جائزده چې له چا سره چې ده عقد موالات کړی دی د هغه په موجود والی کې له هغه شخه په اوښتلوله بل سره عقد موالات وکړي وجه يې داده چې عقد موالات د وصيت په شير غيرلازم عقد دی لهذا له هغه شخه اوښتل جائز دي ،ليکن شرط دا دی چې د ده د جنايت په صورت کې د ده مولی اول د ده له طرف شخه په عاقله جوړيدلو سره شه ديت نه وي اداء کړی ،کنه نو بيا د ده لره له مولی اول شخه د بل طرف ته اوښتل جائز نه دي ولی چې اوس د ده له ولاء سره د مولی اول حق تړل شوی دی .

**فائده** :له کومې محکمې سره چې د چا تعلق وي هغه محکمې والا د ده عاقله دي که يې له محکمې سره تعلق نه وي نو د ده د خاندان والا ته عاقله ويل کيږي .

(۵)ازاد کړل شوي لره له چا سره عقد موالات کول جائز نه دی ولی چې د معتق ميراث د معتق لپاره لازمی دی په دې وجه چې ولاء عتاقه محتمل نقض نه ده حال دا چې عقد موالات غيرلازم دی نوله بقاء لازم سره غيرلازم نه ظاهريږي .

(۶)که کومې ښځې له کوم نارينه سره عقد موالات وکړيا له دي شخه وروسته د ښځې داسې ماشوم وزيږيد و چې د هغه پلار معلوم نه وو نو دا ماشوم هم د خپلې مورپه موالات کې د مورپه تابع کيدلو سره شامليږي ولی چې ولاء د نسب په شان ده او د داسې ماشوم په حق کې محض نافع ده د کوم ماشوم چې پلار معلوم نه وي نو ښځې لره دا ولايت حاصل دی لکه چې د داسې ماشوم لپاره د هبې د قبلولو ولايت چې مورلره حاصل ده ،مګر دا په هغه وخت کې چې د ماشوم پلار معلوم نه وي کنه نو د پلار د معلوموالی په صورت کې دا ماشوم د مورپه حکم کې نه شي کيدای .

## كتاب الإكراه

داکتاب د اکراه په بيان کې دی

په كتاب الاكراه اوموالات كې مناسبت دادى چې په دواړوكې دمخاطب حال له حرمت څخه حلت ته متغير كيږي په دي ډول سره چې په موالات كې كه عقدموالات نه وي نومولى لره دبل چامال اخيستل حرام ووعقد موالات وشونوحلال شو ،همداشان په اكراه كې له اكراه څخه وړاندي مكره لره چې دكوم كارمباشرت حرام وو له اكراه څخه وروسته حلال شو.

اكراه په لغت كې په كوم ناخوښه كارباندي مجبوره كولوته ويل كيږي اوپه شريعت كې دكوم انسان له بل سره داسې فعل كول په كوم سره چې دهغه په اختياركې فسادراشي مګردهغه اهليت باقى پاتې وي .

(۱)هو فعل يفعله الإنسان بغيره فيزول به الرضا (۲)وشرطه قدرة المكره على تحقيق ما هدد به سلطانا كان او لصا وخوف المكره وقوع ما هدد به (۳)فلو أكره على بيع او شراء او إقرار او إجارة بقتل او ضرب شديد او حبس مديد خير بين أن يمضي البيع او يفسخ (۴)ويثبت به الملك عند القبض للفساد (۵)وقبض الثمن طوعا إجازة كالتسليم طائعا

**ترجمه** :هغه يوكاردى كوم چې كوي يې انسان له بل سره اوزائليږي دهغه په وجه سره دهغه رضامندي، اوددي شرط قادروالى دى دمكرِه دهغه شئ په كولوپه كوم سره چې ده ويرولى دى خواه كه هغه بادشاه وي ياغل وي اودمكرَه ويريدل دهغه شئ له وقوع څخه په كوم شئ چې يې دى ويرولى دى ،نوكه اكراه وكړل شوه په اخيستلواوخرڅولوياپه اقراركولوياپه اجاره وركولوباندي پرقتل كولوياپه سختووهلويا دطويل قيدپه اختار(دهمكى )سره نواختياربه وركول كيږي دبيع په باقى پرينښودلواوفسخ كولوكې. اوثابتيږي دده په بيع سره ملك دقبضې په وخت دفساد په وجه سره ،اوثمن قبض كول په خوښي سره اجازت دى لكه دمبيع سپارل په خوښي سره .

**تشريح** :(۱)مصنف ﷫ داكراه اصطلاحى تعريف په دي شان كړى دى چې اكراه دي ته ويل كيږي چې انسان له بل سره داسې فعل وكړي دكوم په وجه سره چې دهغه رضامندي زائله شې ،دمكرَه دخوښى زوال ضروري دى په دي شرط چې اصل اختيارباقى وي .

(۲)داكراه حكم هغه وخت ثابتيږي كله چې اكراه له داسې كس څخه متحققه شې چې دى چې دكومې خبري دهمكى (اختار)وركوي هغه دى واقع كولى هم شې خواه كه مكرِه سلطان وي ياكوم غل وي ،ولى چې كله مكرِه په مذكوره بالاصفت سره متصف وي نومكرَه چې پركوم كارمجبوره كوي هغه دعجزپه وجه سره له هغه كارڅخه دمنع كيدلوقدرت نه لري لهذاداكس مكرَه دى اوداكراه همداتعريف دى چې دانسان په اختياركې فسادراشي دادصاحبينوقول دى .دامام ابوحنيفه ﷫ په نزداكراه صرف له سلطان څخه متحققه كيږي .مګردادزماني اختلاف دى دحجة اوبرهان اختلاف نه دى .اوداهم شرط دى چې پرچاچې زوركړل شوى دى هغه ته غالب ګمان داوي چې كه مادده دوينامطابق عمل ونه كړنوله كوم شئ څخه چې دى ماويروي هغه خامخاكوي اوكه ده لره دمهددبه (په كوم شئ سره چې دى ويروي )دواقع كولوغالب ګمان نه وي نوبيادى مكرَه نه شمارل كيږي .

(۳)که یو چا څوک دخپل مال پرخرڅولو یا دکوم سامان پراخیستلو مجبورکړ، یایې دچا پاره مثلا دزرورو پوپه اقرارکولو مجبورکړ، یایې مثلا دخپل کورچاته په کرایه ورکولو مجبورکړاو مکرِه دی دقتل یاضرب شدید یاتراوږدي مدي پوري دقید کولو دهمکی (اختار) په ورکولوسره مجبورکړ، مکرَه دده له دهمکی څخه په ویریدلوسره مجبورا مذکوره مال خرڅ کړیایې واخیستی یایې مذکوره اقرار وکړیایې کورپه اجاره ورکړ نومکرَه لره داکراه له ختیمدلو څخه وروسته اختیاردی که یې خوښه وي نودابیع وغیره دي نافذکړي او که یې خوښه وي نوبیع وغیره دي فسخ کړي اوخپله مبیع وغیره دي واپس واخلي ولی چې داخیستلو او خرڅولو وغیره دصحت شرط دادی چې متعاقدین به یوله بله سره راضي وي حال داچې اکراه خورضا ختموي په دي وجه دبغیر رضا کیدلو په وجه سره داعقد صحیح (لازم) نه دی.

(۴) اوپه داسې بیع وغیره سره دمشتری ملک ثابتیږي مگرهغه وخت چې دی پرمبیع قبضه وکړي ولی چې داسې بیع فاسده وي ولی چې شرط بیع یعنی رضانه ده موجوده شوي اوپه فوات شرط سره بیع فاسدیږي اودبیع فاسدي همدا حکم دی چې له دي څخه وروسته دمشتری په مبیع په قبضه کولو سره ملک ثابتیږي.

(۵) که مکرَه داکراه په وجه بیع وکړه بیایې دمبیع ثمن په خوښی سره قبض کړي نودادده له طرف څخه دبیع دنفاذ اجازت دی ولی چې په خوښی سره دثمنو قبلول دبیع داجازت علامه ده لکه چې په خوښی سره دمبیع په تسلیمولو کې چې وي مثلا یو څوک دخپل شئ پرخرڅولو مجبورکړل شو بیا ده په خوښی سره مبیع مشتری ته وروسپاره نو دمبیع په خوښی سره سپارل دمکرَه له طرف څخه دبیع اجازت شمارل کیږي ولی چې په خوښی سره دمبیع تسلیمول دده درضا علامه ده او همدا رضا شرط ده.

(۶) وَإِنْ هَلَکَ الْمَبِیعُ فِي یَدِ الْمُشْتَرِي وَهُوَ غَیْرُ مُکْرَهٍ وَالْبَائِعُ مُکْرَهٌ ضَمِنَ قِیمَتَهُ لِلْبَائِعِ وَلِلْمُکْرَهِ أَنْ یُضَمِّنَ الْمُکْرِهَ (۷) وَعَلَی أَکْلِ لَحْمِ خِنْزِیرٍ وَمَیْتَةٍ وَدَمٍ وَشُرْبِ خَمْرٍ بِضَرْبٍ أَوْ قَیْدٍ لَمْ یَحِلَّ (۸) وَحَلَّ بِقَتْلٍ وَقَطْعٍ وَأَثِمَ بِصَبْرِهِ (۹) وَعَلَی الْکُفْرِ وَإِتْلَافِ مَالِ مُسْلِمٍ بِقَتْلٍ وَقَطْعٍ لَا بِغَیْرِهِمَا یُرَخَّصُ (۱۰) وَیُثَابُ بِالصَّبْرِ وَلِلْمَالِکِ أَنْ یُضَمِّنَ الْمُکْرِهَ

**ترجمه**: او که هلاک شو مبیع دمشتری په لاس کې په دي حال کې چې دی مکرَه نه وي او بائع مکرَه وي نوضامن دی ددي دقیمت بائع لره او مکره لره داحق شته چې ضمان له مکرِه څخه واخلي، (او که یې اکراه وکړه) دخنزیر دغوښي په خوړلو یا دمرداري په خوړلو یا دشراب په څښلو باندي دقید کولو یا وهلو په دهمکی سره نو نه حلالیږي، او حلال دي دقتل او قطع عضو په دهمکی سره او گناه گاریږي په صبر کولو سره، (او که یې اکراه وکړه) په کفر کولو یا دمسلمان دمال په تلف (ضائع) کولو باندي دقتل یا قطع عضو په دهمکی سره نه له دي څخه دعلاوه په دهمکی سره نو رخصت ورکول کیږي، او ثواب ورکول کیږي په صبر کولو سره او مالک لره جائز ده چې ضمان واخلي له مکرِه څخه.

**تشریح**: (۶) یو چا بائع دخپل شئ پرخرڅولو مجبورکړ هغه دمجبوري په وجه خرڅ کړ مگرمشتری یې نه وو مجبور کړی بلکه هغه په خوښی سره مبیع واخیستله. نو مشتری لره په کار ده چې بیع ماته کړي او مبیع بائع ته بیرته ورکړي، لیکن که ده لا داسې نه وو کړي چې مبیع دمشتری په لاس کې هلاکه شوه نو اوس بائع لره

اختيار دی که يې خوښه وي نو مشتری دي د مبيع د قيمت ضامن جوړ کړي ولی چې اصل هلاکت خو د ده له لاسه شوی دی او که يې خوښه وي نو چاچې مجبور کړی وو هغه دي ضامن جوړ کړي ولی چې دده د مجبور کولو په وجه سره مبيع د مشتری لاس ته تللی وه نو ګويا دبائع مال مشتری ته مکرِه ورکړی دی لهذا مکرَه لره حق شته چې دی له مکرِه څخه ضمان واخلي.

(۷)قوله وعلى اكل لحم الخنزيرالخ اى لواكره على اكل لحم الخنزيرالخ ،يعنى که چاپوڅوک دخنزيردغوښې په خوړلو يادمرداري په خوړلو يادوينې په څښلو يادشرابوپه څښلو مجبورکړاومکرِه اکراه په حبس (بند)يا ضرب سره وکړه مثلاً وي ويل ،مرادره وخوره کنه نوتابه بندي کړم ياوبه دي وهم ،نوکه له دي قيداوضرب څخه دده دژوندياکوم عضو دضائع کيدلو خطره نه وي نو مکرَه لره داجائزنه ده چې مرداره وخوري ياشراب وغيره وڅښې ولی چې دادي شيانو جرمت په نص قطعي سره ثابت دی لهذا بغيرله سختې مجبوري اوضرورت څخه نه شي مباح کيدای اودلته څه سخته مجبوري نشته ولی چې سخته مجبوري به هغه وخت وای چې دده دژوندياکوم عضو دضائع کيدلو خطره وي نو دداسې معمولي ضرورت په وجه سره داشيان مباح نه ګرځي.

(۸)هوکه يې دی داسې مجبورکړچې دده ژوندته خطره وي يادکوم عضو دضائع کيدلو خطره وي نوده لره ګنجائش شته بلکه واجب ده چې هغه کاربه کوي پرکوم چې دی مجبوره شوی دی ،اوکه ده صبروکړترڅوچې هغه له ده سره هغه کاروکړدکوم چې يې دهمکی ورکړي وه بياهم ده مرداره ونه خوړه نومکرَه ګناه ګاردی ولی چې په داسې حالت کې شريعت ده لره دمردارخوړل مباح کړي دي بياهم دی له هغه څخه منع شونوداپه خپل هلاکت باندي له بل سره تعاون شمارل کيږي په دي وجه دی ګناه ګاردی.

(۹)قوله وعلى الكفرواتلاف مال المسلم اى لواكره على كلمة الكفرواتلاف مال المسلم الخ ،يعنى که چامسلمان ته دوهلويابندي کولويازولني وراچولو دهمکی ورکړه اووي ويل په الله سره کفروکړه (يعنى کافرشه )،يادبل مسلمان مال تلف کړه ،نودااکراه نه شمارل کيږي ولی چې اوس تيره شوه چې دادهمکيانې په شراب څښلو کې اکراه نه شمارل کيږي نوپه کفراودبل مسلمان دمال په تلف کولو کې خوپه طريقه اولی سره اکراه نه دي .حتی که مکرِه داسې دهمکی ورکړه چې له هغې څخه ددژوندته خطروويادکوم عضو دضائع کيدلو خطره وه نوبيادګنجائش شته چې کوم څه چې مکرِه وايي هغه ظاهره کړي لقوله تعالى ﴿إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ﴾ نوکه ده داسې کلمات پرژبه ظاهري کړي اوحال داچې دده زړه مطمئن بالايمان دی نوپرده ګناه نشته ولی چې په داسې صورت کې ايمان حقيقة نه زائليږي ولی چې تصديق قلبی موجود دی حال داچې په صبرکولو کې نفس حقيقة ضائع کيږي لهذا دمکرِه دمطلوب اظهارجائزدی اوپه دي صورت کې دبل دمال دتلف کولو اجازت په دي وجه دی چې دغيرمال دضرروت پروخت مباح ګرځي لکه په حالت دمخمصې کې .اوضرورت دلته متحقق دی په دي وجه ددي مال تلف کول مباح دي ،اوپرکفرد مجبوره کولو په صورت کې دي توريه وکړي يعنى په ښکاره دي يولفظ ووايي اوله هغه څخه دي بله معنی مرادکړي.

(١٠)ليکن که په مذکوره بالاصورت کې مکرَه صبروکړترڅوچې مکرِه دی قتل کړاوده کفرښکاره نه کړنومکرَه ماجوردی ولی چې امتناع عن الکفرداعزازدين لپاره عزيمت دی ،اوصاحب مال لره جائزده چې له مکرِه څخه تاوان واخلي ولی چې اصل متلف مکرِه ده مکرَه خوصرف دده لپاره دآلې درجه لري.

(١١)وَعَلى قَتْلِ غَيْرِهِ بِقَتْلٍ لَا يَرْخَصُ وَإِنْ قَتَلَهُ أَثِمَ وَيُقْتَصُّ مِنَ الْمُكْرِهِ فَقَطْ(١٢)وَعَلى عَتَاقٍ وَطَلَاقٍ فَفَعَلَ وَقَعَ(١٣)وَرَجَعَ بِقِيمَتِهِ وَنِصْفِ الْمَهْرِ إِنْ لَمْ يَطَأْهَا(١٤)وَعَلى الرِّدَّةِ لَمْ تَبِنِ امْرَأَتُهُ

**ترجمه**:اوکه(اکراه وکړل شوه)دبل پرقتل کولوباندې دقتل په دهمکی سره نورخصت نشته نوکه ده قتل کړنوگناه گاردی اوقصاص به اخيستل کيږي صرف له مکرِه څخه ،اوکه(اکراه وکړل شوه)په ازادولويا طلاق ورکولوباندې اوده وکړل نوواقع کيږي ،اورجوع به کوي په قيمت دهغه او نصف مهرکه يې له هغې سره وطی نه وه کړي ،اوکه(اکراه وکړل شوه)پرمرتدوالی باندې نونه بائنه کيږي دده ښځه.

**تشريح**:(١١)قوله وعلی قتل غيره الخ ای لواکره علی قتل غيره الخ ،يعنی که پريوچادبل چاپه وژلوکې اکراه وکړل شوه اواکراه يې په دې ډول وکړه چې که تادی قتل نه کړنوزه به تاقتل کړم نومکرَه لره داگنجائش نشته چې هغه دبل پرقتل اقدام وکړي بلکه صبربه کوي ترڅوچې خپله قتل کړای شې ،نوکه مکرَه غيرقتل کړنوگناه گاريږي ولی چې دکوم مسلمان قتل کول دهيڅ ضرورت په وجه سره مباح نه گرځي نودڅوندياداعضودخطرپه وجه سره هم مباح نه گرځي ،اوکه مکرَه داغيرقتل کړنودمقتول قصاص به له مکرِه څخه اخيستل کيږي په دې شرط چې قتل عمدوي ولی چې اصل قاتل مکرِه دی مکرَه خوصرف دآلې په درجه کې دی ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدبه په دواړوکې له يوه څخه هم قصاص نه اخيستل کيږي ولی چې حدمن وجه دمکرَه طرف ته مضاف دی چې دقتل مباشردی اومن وجه دمکرِه طرف ته مضاف دی ولی چې هغه پرقتل باعث دی په دې ډول په قاتل کې شبه پيداشوه اودشبه په وجه سره قصاص ساقطيږي.

**فائده**:دطرفينوقول راجح دی لماقال الشيخ عبدالحکيم الشهيد:قوله وهذاعندابی حنيفه ومحمدالخ ،واکثرالمشائخ علی قولهمافلهذااقتصراصحاب المتون بقولهماوالشروح اظهرواترجيح دليلهما،والله اعلم بالصواب (هامش الهداية:٣/٣٣٧)

(١٢)قوله وعلی اعتاق وطلاق الخ ای لواکره علی اعتاق الخ ،يعني که څوک دخپل غلام په ازادولومجبورکړای شويا خپلې ښځې ته په طلاق ورکولومجبورکړای شواومکرَه طلاق ورکړيايې غلام ازادکړنومذکوره اموررواقع کيږي ولی چې په اکراه سره دمکرَه رضاختميږي حال داچې په مذکوره امورو کې رضاشرط نه ده همداوجه ده چې طلاق او عتاق مع الهزل صحيح دي کمامرفی الطلاق.

(١٣)اومکرَه به دخپل غلام قيمت له مکرِه څخه اخلې ولی چې ملک مکرَه خومکرِه تلف کړی دی اومکرَه خوصرف آله ده .اودطلاق په صورت کې که طلاق قبل الدخول وي نوخاوندبه دخپلې مطلقې نصف مهرله مکرِه څخه اخلي ولی چې مکرِه پرخاونددطلاق ورکولوپه اکراه کولوسره نصف مهرلازم کړحال داچې قبل الدخول مهرعلی شرف السقوط ووپه دې ډول چې دښځې له طرف څخه دمعصيت (مثلاارتدادوغيره)په وجه سره تفريق راغلی وای نومهرساقطيدوحال داچې مکرِه دطلاق په ذريعه هغه موکدکړلهذامکرِه به

ضامن وي .ليكن كه خاوند وطى كړي وي نو پر مكرِه هيڅ نه لازميږي ولى چې په دې صورت كې مهر په وطى سره موكدشوى دى دطلاق په وجه سره نه دى موكدشوى .

(۱۴) قوله وعلى الردة لم تبن زوجته اى لو اكره على الردة فاجرى كلمة الكفر على لسانه وقلبه مطمئن بالايمان لم تبن امرأته ،يعنى كه څوك په مرتدوالى مجبوركړاى شو نو كه مكرَه دكفر كلمه پرژبه جاري كړه مګرد ده زړه مطمئن وو نو دده ښځه له ده څخه نه بائنه كيږي ولى چې دكفر كلمه دفرقت لپاره نه ده وضع شوي البته دتغير اعتقاد (كوم چې باطني شئ دى) په وجه سره فرقت واقع كيږي او دمكرِه اكراه كول دتغير اعتقاد دنه موجودوالى دليل دى لهذا فرقت نه واقع كيږي .

## كِتَابُ الْحَجْرِ

### داكتاب دحجر په بيان كې دى

حجر په لغت كې مطلق منع كولو ته ويل كيږي له همدې وجه عقل ته هم حجرويل كيږي ولى چې عقل له قبائحو څخه مانع دى او په همدې وجه حطيم ته حجرويل كيږي ولى چې هغه له بيت الله شريف څخه منع كړاى شوى دى ، اوشرعاً تصرف قول له نفاذ څخه منع كولو ته حجرويل كيږي ،تصرف قولى كوم چې له ژبې سره متعلق وي لكه بيع ،شراء ،هبه وغيره اوتصرف فعلى كوم چې له جوارحو سره متعلق وي لكه قتل ،اتلاف مال وغيره ،نو كه محجورخپل كوم شئ خرڅ كړي يا له چا څخه څه واخلي نو دده خرڅولو يا اخيستلو هيڅ اعتبار نه كيږي ،او كه يې په لاس او پښو سره چا ته تاوان ورسا وو نو دهغه تاوان به وركوي ولى چې دمحجور په فعل كې حجر نه وي .

دكتاب الاكراه له كتاب الحجر سره مناسبت دادى چې په اكراه او حجر دواړو كې اختيار سلب كيږي بيا اكراه څرنګه چې په تاثير كې ډيره قوى ده ولى چې په دې كې ددا سې كس اختيار سلب كيږي دكوم چې اختيار صحيح او ولايت كامل دى حال دا چې په حجر كې ددا سې كس اختيار سلب كيږي دكوم په ولايت كې چې قصور دى لهذا اكراه داقوى والى په وجه سره احق بالتقديم ده .

(۱) هو مَنْع عن التَّصَرُّفِ قَوْلاً لا فِعْلاً بِصِغَرٍ وَرِقٍّ وَجُنُونٍ (۲) فَلَا يَصِحُّ تَصَرُّفُ صَبِيٍّ وَعَبْدٍ بِلَا إِذْنِ وَلِيٍّ وَسَيِّدٍ وَلَا تَصَرُّفُ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ بِحَالٍ (۳) وَمَنْ عَقَدَ مِنهم وهو يَعْقِلُهُ يُجِيزُهُ الْوَلِيُّ اوْيَفْسَخُهُ (۴) وَإِنْ أَتْلَفُوا شَيْئاً ضَمِنُوا

**ترجمه** :هغه منع كول دي له تصرف قولي څخه نه له فعلي څخه دكم عمري ،غلامي او ليونتوب په وجه سره ،نو صحيح نه دى تصرف دنابالغ او دغلام دولي او مولى له اجازت څخه بغير او نه تصرف دمجنون مغلوب په هيڅ حال كې ،او څوك چې عقد وكړي له دوئ څخه په داسې حال كې چې په هغه پوهيږي نو جائز دي كړي هغه ولى يا دي فسخ كړي ،او كه دوئ تلف كړ كوم شئ نو ضامن كيږي .

**تشريح** :(۱)حجر اصطلاحی هغه ته ويل کيږي چې دکم عمري ياغلامې ياجنون په وجه سره صرف له زباني تصرفاتو څخه منع وکړي نه له فعلي تصرفاتو څخه مثلا که له دوئ دريو څخه کوم يو خپل کوم شئ خرڅ کړي ياله چاڅخه يوشئ واخلي نوددوئ داخيستلو اوخرڅولو اعتبار به نه کيږي اوکه په لاس اوپښوسره چاته تاوان ورسوي نو دهغه تاوان به ورکول کيږي ولی چې ددوئ په فعل کې حجر نه وي ،حجرثابتونکي اسباب دري دي کم عمري ،رقيت يعنی غلام يامينځه والی ،جنون (ليونتوب )،نابالغ په دي وجه محجوردی چې که غيرمميزوي نوعديم العقل دی اوکه مميزوي نوناقص العقل دی ،اومجنون په دي وجه محجوردی چې عديم العقل دی ،اوغلام په دي وجه محجوردی چې په قرض کې په اخته کيدلوسره دبل مملوک جوړيږي نو دمولی دحق درعايت لپاره شرعادده تصرفات قوليه غيرمعتبردي .

(۲)نودنابالغ تصرف قولی دنقصان عقل په وجه سره صحيح نه دی (له عدم صحت څخه مرادعدم نفاذدی عدم انعقادمرادنه دی )مګرداچې ولی اجازت ورکړي ولی چې دولی اجازت داهليت علامه ده ،له نابالغ څخه عاقل نابالغ مراددی نودغيرعاقل تصرف جائزنه دی اګرکه دده ولی ده اجازت ورکړي ،اوعاقل نابالغ هغه دی کوم چې په دي پوهيږي چې بيع سالبه ده اوشراء جالبه ده يعنی په بيع سره شئ له لاسه وځي اوپه شراء سره شئ لاس ته راځي ،په عاقل اوغيرعاقل کې په دي ډول سره تميزکيدای شي چې مثلانابالغ ته روپۍ ورکړي که ده دکاندارته روپۍ ورکړي اوسودايې واخيسته بيايې دروپودغوښتلولپاره ژړاشروع کړه نوداغيرعاقل دی کنه نوعاقل دی ،همداشان دغلام تصرف قولی هم جائزنه دی مګرداچې مولی اجازت ورکړي ولی چې دمولی دحق لپاره محجورګرځول شوی ووکله چې مولی په خپله اجازه ورکوي نودی په خپله په سقوط حق راضی شوپه دي وجه اوس دغلام تصرف قول جائزدی ،اودمغلوب العقل مجنون تصرف په هيڅ حال کې هم جائزنه دی اګرکه ولی دده تصرف جائزکړي ولی چې مجنون په خپلي ګټې اوتاوان نه پوهيږي په دي وجه شريعت دده دقولی تصرفاتو اعتبارنه کوي .

(۳)که له دوئ څخه کوم يو (منهم دجمع صيغه ده مګرله دي څخه مراددوه دي يعنی صبی اورقيق )کوم شئ خرڅ کړيايې واخيستی په دي شرط چې دی په بيع پوهيږي (چې په بيع سره دمالک ملک له مبيع څخه سلب کيږي اودمشتری ملک ثابتيږي )اودبيع قصدلري (يعنی داثبات حکم اراده يې کړي وي هازل نه وي )نودده ولی لره اختياردی که يې خوښه وي دابيع دي نافذه کړي اوکه يې خوښه وي فسخ دي کړي ولی چې ممکنه ده چې ددوئ کړی عقددي مفيدوي اوممکنه ده چې مضروي ،که مفيدوونوولی يامولی دي دهغه اجازت ورکړي ،نوکه ولی اجازه وکړه نوجهت مصلحت متعين شوپه دي وجه به داعقدنافذوي .

(۴)اوکه له دوئ څخه (نابالغ ،غلام اومجنون څخه )کوم يوه دچاکوم شئ تلف کړنوپرمتلف باندي دهغه ضمان لازم دی ولی چې ددوئ په اقوالوکې حجردی په افعال جوارح کې حجرنشته لهذاددوئ افعال معتبردي اوموجب ضمان دي .

(۵)وَلَايَنفُذُ إِقرَارُ الصَّبِيِّ وَالمَجنُونِ (۶)وَيَنفُذُ إِقرَارُ العَبدِ فِي حَقِّهِ لَا فِي حَقِّ مَولَاهُ فَلَو أَقَرَّ بِمَالٍ لَزِمَهُ بَعدَ الحُرِّيَّةِ (۷)وَلَو أَقَرَّ بِحَدٍّ أَو قَوَدٍ لَزِمَهُ فِي الحَالِ (۸)لَا بِسَفَهٍ (۹)فَإِن بَلَغَ غَيرَ رَشِيدٍ لَم يُدفَع إِلَيهِ مَالُهُ حَتَّى يَبلُغَ خَمسًا وَعِشرِينَ سَنَةً وَنَفَذَ تَصَرُّفُهُ قَبلَهُ (۱۰)وَيُدفَعُ إِلَيهِ مَالُهُ إِن بَلَغَ المُدَّةَ مُفسِدًا

**ترجمه**:اونه نافذيږي اقرار دنابالغ اوليونى ،اونافذيږي اقرار دغلام دده په خپل حق كې نه دده دمولى په حق كې نوكه ده اقرار وكړ دمال نو لازميږي پر ده له ازادي څخه وروسته ،اوكه يې اقرار وكړ دحد يا قصاص نو لازميږي فى الحال ،نه دبې عقلې په وجه سره ،نوكه بالغ شو دى بې عقل نونه به وركول كيږي ده ته مال ترڅو چې دى ورسيږي پنځه ويښت كالو ته اونافذيږي دده تصرف له دې څخه وړاندې ،او وركول كيږي به ده ته مال كله چې دى ورسيږي پنځه ويښت كلو ته اګركه دى مفسد وي .

**تشريح** :(۵)دا پر ماقبل باندې تفريع ده يعنى دنابالغ اوليونى هيڅ عقد صحيح نه دى اونه ددوئ اقرار صحيح دى اونه ددوئ طلاق وركول صحيح دي اونه ددوئ اعتاق (ازادول )صحيح دي ولى چې ددوئ اقوال معتبر نه دي ﴿لقوله ﷺ رفع القلم عن ثلاثة عن النائم حتى يستيقظ وعن المبتلى حتى يبرا وعن الصبى حتى يحتلم﴾(يعنى له دريو كسانو څخه قلم پورته كړل شوى دى يوله ويده څخه ترڅو چې دى روا ينښ شي اوله مجنون څخه ترڅو چې دى روغ شي اوله نابالغ څخه ترڅوچې دى بالغ شي )،همدراز په شريعت كې داقوالو اعتبار په اهليت پورې معلق دى حال داچې په دوئ كې اهليت نشته .

(۶)پاتې شو غلام نو دهغه اقوال په خپل حق كې نافذ دي ولى چې په ده كې اهليت (يعنى اقرار مع القصد) موجود دى ليكن دده دمولى په حق كې نافذ نه دي دمولى دجانب په رعايت كولو سره .نوكه غلام پر خپله ذمه دمال اقرار وكړ (مثلا وي ويل چې زما پر ذمه دزيد زر درهمه دي )نو له ازادي څخه وروسته به پر ده لازم وي ولى چې له ازادي وروسته په ده كې اهليت موجود دى او مانع منتفى دى مګر فى الحال به پر ده لازم نه وي ولى چې دا اقرار على الغير يعنى اقرار على المولى دى او پر غير اقرار كول معتبر نه دى نو فى الحال څرنګه چې مانع (يعنى دمولى حق )موجود دى په دي وجه به فى الحال نه نافذيږي .

(۷)اوكه غلام دحد يا قصاص اقرار وكړ نو فى الحال نافذيږي ولى چې دحد او قصاص په حق كې غلام پر خپله اصلي ازادي باندې برقرار پاتې شوى دى ولى چې حدود او قصاص له خواص ادميت څخه دي او غلام دادمى والى په حيثيت سره مملوك نه دى بلكه دمال والى په حيثيت سره مملوك دى نو كله چې په حدودو او قصاص كې غلام پر خپله ازادي باندې براقرار دى نو دا اقرار دحر دا اقرار په څير دى لهذا فى الحال نافذ دى .

(۸)قوله لا بسفه اى لا يحجر على الحر العاقل بسبب سفه ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دسفيه (ناپوهه )كله چې هغه ازاد ،عاقل اوبالغ وي نو دهغه تصرف په خپل مال كې جائز دى اګركه فضول خرڅه اومفسد وي مال په هغو شيانو كې مصرفوي په كوم كې چې دده هيڅ غرض نه وي اونه كوم مصلحت وي مثلا مال په درياب كې اچوي يا يې په اورسوځوي ،وجه داده چې دده دولايت په ختمولو كې دده ادميت ختمول او دى له څارويو سره يو ځاى كول دي كوم چې له فضول خرڅې څخه ډير نقصان پيښونكى دى لهذا سفيه به محجور نه ګرځول كيږي ،دصاحبينو په نزد پر داسې سفيه باندې به حجر كيږي او دده په خپل مال كې داسې تصرفات كول صحيح نه دي كوم چې له هزل سره نه صحيح كيږي مثلا بيع ،اجاره ،صدقه وغيره ،ولى چې سفيه فضول خرڅې كوي نو دده

دخپلې خيرخواهی لپاره به دی محجور گرځول کیږي لکه څرنگه چې نابالغ صرف دهمده دخيرخواهی لپاره محجور کیږي.

**فائده**:دصاحبينو قول راجح دی لماقال العلامة ابن عابدين الشامي:(قوله وبه)ای بقولهمايفتی به صرح قاضيخان فی كتاب الحيطان وهوصريح فيكون اقوی من الالتزام كذاقال الشيخ قاسم فی تصحيحه ومراده ان ماوقع فی المتون من القول بعدم الحجر علی الحر مصحح بالالتزام ومارقع فی قاضيخان من التصريح بان الفتوی علی قولهماتصريح بالتصحيح فيكون هو المعتمد وجعل عليه الفتوی مولا نافی فوائدالمنح وفی حاشية الشيخ صالح وقدصرح فی كثيرمن المعتبرات بان الفتوی علی قولهماوفی القهستانی عن التوضيح انه المختار واقتی به البلخی وابوالقاسم كماذكره فی المنح عن الخانية (ردالمحتار:۱۰۳/۵)

(۵)البته امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې كه كوم هلک دناپوهۍ په حالت كې بالغ شي نو دده مال به ده ته نه سپارل کیږي ترڅو چې دی پنځه ويشت كاله ته ونه رسيږي ،كه ده له پنځه ويشتو كلو څخه وړاندې په خپل مال كې تصرف وكړنو نافذيږي ولی چې اهليت موجود دی ،صاحبين فرمايي چې پرسفيه به حجركیږي او په مال كې له تصرف څخه به منع كیږي كه ده كوم شئ له خپل مال څخه خرڅ كړنو دابيع نافذه نه ده (همدا قول مفتی به دی كمامر)هوكه په دې بيع كې دده كوم مصلحت وونو حاكم دي دهغه په لحاظ لوسره دابيع نافذه كړي .

(۱۰)البتة كله چې دی دپنځه ويشتو كلو شي نو مال دي ده ته وسپارل شي اگركه دی مفسد وي اوله ده څخه دپوهې اثارظاهرنه وي ولی چې له بلوغ څخه وروسته له ده څخه دمال منع كول دتاديب په دول وو اوله دې عمرڅخه وروسته غالبه داده چې څوک ادب نه حاصلوي ولی چې دحضرت عمر رضی الله عنه ارشاددی چې عقل انتهاته رسيږي كله چې ادمی دپنځه ويشتو كالو شي لهذا له پنځه ويشتو كالو څخه وروسته به له ده څخه مال نه منع كیږي .

**فائده**:دصاحبينو په نزد ترڅو چې له ده څخه دپوهې اثار نه وي ښكاره شوي ده ته به دده مال نه وركول كیږي او دده په خپل مال كې تصرف كول ناجائزدی لقوله تعالی ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾ باری تعالی حكم كړی دی چې دپوهې داثارو په ښكاره كيدلو سره ددوئ اموال دوئ ته وسپاری ،له دي څخه فهميږي چې كه دپوهې اثارښكاره نه وي نو دوئ ته به ددوئ اموال نه وركول كیږي.

(۱۱)وفسق وغفلة(۱۲)وَدَيْنٍ وَإِنْ طلب غرمائُهُ وَحَبْسٍ لِيَبِيعَ مَالَهُ فِي دَيْنِهِ(۱۳)وَلَوْ مَالُهُ وَدَيْنُهُ دَرَاهِمَ قَضَى بِلَا أَمْرِهِ(۱۴)وَلَوْ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ وَلَهُ دَنَانِيرُ أَوْ بِالْعَكْسِ بِيعَ فِي دَيْنِهِ(۱۵)وَلَمْ يُبَعْ عَرْضُهُ وَعَقَارُهُ(۱۶)وَالْمُقِرُّ(۱۷)وَإِنْ أَفْلَسَ مَتَاعٌ عَيْنٍ فَبَائِعُهُ أُسْوَةُ الْغُرَمَاءِ

**ترجمه** :اونه دفسق اوغفلت اوقرض په وجه سره اوكه طلب كړي دده قرضخواه نوبندي دي كړي دی ترڅو دی خرڅ كړي خپل مال په خپل قرض كې ،نو دده مال اودده قرض دراهم وي نو اداء كیږي به دده له اجازې څخه بغير،اوكه دده قرض دراهم وي اوله ده سره دنانيروي يابرعكس وي نو خرڅيږي به دده په قرض كې ،اونه به خرڅيږي دده سامان اودده ځمكه ،اونه دمفلسی په وجه سره ،نو كه مفلس شودكوم شئ اخيستونكی نو خرڅونكی برابردي له قرضخواهانو سره .

**تشريح** :(۱۱)قوله وفسق وغفلة ای لايحجر بفسق وغفلة ،يعنی پرفاسق باندې حجرنه كیږي كه هغه دخپل مال لپاره مصلح وي ولی چې حجردا سراف اوتبذير دمنع كولو لپاره مشروع شوی دی حال داچې دی خودخپل مال لپاره

مصلح قرض شوى دى ،يافسق اصلي (كوم چې له بلوغ څخه وړاندي فاسق وي ،اوفاسق بالغ شوى وي دافسق اصلي دى )اوفسق طارى (كوم چې وروسته له بلوغه فاسق شوى وي دافسق طارى دى )برابردي دصاحبينوپه نزد فاسق كه دخپل مال لپاره مصلح نه وي بلكه مفسدوي نوپرده به حجر كيږي ،همدشان پرغافل هم حجرنه كيږي ولى چې منقذبن عمر و ﷺ دكوروالاونبى كريم ﷺ ته دمنقذدغفلت شكايت وكړمګرنبى كريم ﷺ منقذمحجورنه كړبلكه منقذته يې وفرمايل چې دبيع پروخت وايه لا خلابة (دهوكه نه )،غافل هغه كس دى كوم چې عاقل غيرمفسدوي مګرپه مفيدوتصرفاتونه پوهيږي ،دصاحبينوپه نزددسفيه په شان پرغافل هم دده دخيرخواهى لپاره حجركيږي.

(۱۲)قوله ودين اى لايحجرعلى احدبسبب دين ،امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي چې زه څوك دقرض په وجه سره نه محجوره وم ولى چې دى بالغ اوعاقل دى لهذادده تصرفات جائزدي ،كه پرده قرض واجب شي اودده قرضخواه (قرض غوښتونكى )دده بندي كول يامحجورول وغواړي نوزه به دى محجورنه كړم ولى چې په حجركولوكي دده اهليت ختم كول دي اودقرض خواه دضرردفع كولوپه خاطرداسې كول جائزنه دي ،هوكه قرضخواهانودده دبندي كولومطالبه وكړه نوحاكم دي دى ترهغه پوري بندي كړي ترڅوچې دى په خپله دخپل قرض په اداء كولوكي خپل مال خرڅ نه كړي ولى چې دمقروض ټال مټول (ځنډكول )ظلم دى نوددفع ظلم لپاره به حاكم دى بندي كړي ،دصاحبينوپه نزدبه مقروض محجوركيږي .

**فائده**:دصاحبينو قول راجح دى لمافى الدرالمختار:لايبيع القاضى عرضه ولاعقاره للدين خلافالهماوبقولهمايفتى اختيار وصححه فى تصحيح القدورى ،قال العلامة ابن عابدين (قوله خلافالهماوبه يفتى )الاولى ان يقول وقالايبيع وبه يفتى كمالايخفى (الدرالمختارمع الشامية ۵/۱۰۵:

(۱۳)نوكه قرض دراهم وواوله مقروض سره مال هم دراهم وونوقاضى به دمديون له اجازي بغيردده قرض اداء كړي ولى چې قرضخواه كه په خپله دمقروض دهغه جنس مال وموندي دكوم جنس چې پرده قرضه ده نودى دمديون له رضاڅخه بغيرداخيستلى شي اوقاضى خوصرف دده كومك كونكى دى.

(۱۴)اوكه قرض دراهم وواوله مقروض سره مال دنانيروويادادي عكس وويعنى قرض دنانيروواوله مقروض سره مال دراهم وونوقاضى به دقرض داداء كولولپاره دنانيرخرڅ كړي اودمقروض له اجازي څخه بغيربه دده قرضه اداء كړي داحكم استحساناً دى داستحسان وجه داده چې دراهم اودنانيرپه ثمنيت اوماليت كي جنس متحددي همداوجه ده چې دزكوة په باب كي يوله بل سره ضم كيږي ،ليكن صورة مختلف دي نودوحدت جنس په اعتبارسره قاضى ته ولايت تصرف حاصل دى اوداختلاف صورة په وجه سره قرض خواه ته ولات اخذحاصل نه دى نوپه دواړوشبهوپه عمل كولوسره داحكم وركړل شوچې قاضى دي دنانيرخرڅ كړي اودمقروض له اجازت څخه بغيردي دين اداء كړي .

(۱۵)كه دمقروض مال اسباب اوجائيدادوي نوامام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي چې قاضى دي داد قرضو داداء كولولپاره نه خرڅوي البته مقروض دي بندي كړي ترڅوچې هغه قرضه اداء كړي ولى چې ددينونوداداء كولولپاره داسبابوخرڅول متعين نه دي لهذاقاضى به داسبابوپه خرڅولوكي دمديون قائم مقام نه دي

صاحبين فرمايي چې كه مديون په خپله اسباب اوجائيداد خرڅ نه كړي نو قاضي لره اختيار دى چې دى ددیونو اداء كولو لپاره داجائيداد خرڅ كړي ولى چې دديونو اداء كولو لپاره اسباب خرڅول په خپله پر ده واجب دي نو كله چې دي په خپله دا نه خرڅوي نو قاضي به دده قائم مقام وي .

**فائده:** دصاحبينو قول مفتى به دى لمافى الدرالمختار:لايبيع القاضى عرضه ولاعقاره للدين خلافالهماوبه اى بقولهمايفتى اختيار وصححه فى تصحيح القدورى (الدر المختار على هامش رد المختار: ۱۰۵/۵)

(۱۶) قوله والافلاس اى لايحجر بسبب الافلاس ،امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي چې زه مفلس دافلاس په وجه سره نه محجور كوم ولى چې دى بالغ اوعاقل دى لهذا دده تصرفات جائزدي ،هو قاضي دي دى بندي كړي ترڅو چې دده مال ښكاره شي او كه په بندي كولو سره دده څه مال ښكاره نه شو نو قاضي دي دى پرېږدي ،البته قاضي به اوس دمديون او قرضخواهانو ترمنځ حائل نه جوړېږي .دصاحبينو په نزد دمقروض مفلس قرضخواه كه پر ده حجر طلب كړي نو قاضي دي پر ده حجر وكړي او دى دي له بيع ،تصرف او اقرار كولو څخه منع كړي ترڅو په دي اعمالو سره دده دنوري زياتي مالي خساري (تاوان) په وجه سره قرضخواهانو ته نقصان ونه رسيږي .

(۱۷) كوم څوك چې مفلس وي اوله ده سره دچا كوم شئ بعينه موجود وي كوم چې مفلس له ده څخه اخيستى وو نو ددي شئ مالك له نورو قرضخواهانو سره برابر شريک دى په ټولو كې به برابر تقسيمېږي ولى چې كله بائع داشئ مشترى ته وسپارو نو ددي شئ له عين څخه دخپل حق په سقوط او دمشترى پر ذمه كې كيدلو باندي راضي شو نو دنور قرضخواهانو په شان شو .

## فصل فى حد البلوغ

دافصل دمدت بلوغ په بيان كې دى

بلوغ لغة په معنى دوصول دى او په اصطلاح كې دحد صغر انتهاء ته بلوغ ويل كيږي .كم عمري څرنګه چې له اسبابو دحجر څخه ده په دي وجه ددي انتهاء بيانول ضروري شو ،په دي وجه مصنف رحمه الله په دي فصل كې دكم عمري انتهاء بيان كړي ده .

(۱) بلوغ الغلام بالاحتلام والاحبال والانزال والا فحتى يتم له ثماني عشرة سنة (۲) والجارية بالحيض والاحتلام والحبل والا فحتى يتم لها سبع عشرة سنة (۳) ويفتى بالبلوغ فيهما بخمس عشرة سنة (۴) وادنى المدة في حقه اثنتا عشرة سنة وفي حقها تسع سنين (۵) فان راهقا وقالا قد بلغنا صدقا واحكامهما احكام البالغين

**ترجمه** :دهلک بالغ والى په احتلام ،حامله كولو او انزال سره وي كنه نو كله چې پوره شي اتلس كاله او دانجلى بالغ والى په حيض او احتلام او حامله كيدلو سره وي كنه نو كله چې پوره شي اوولس كاله او فتوى به وركول كيږي ددواړو دپنځلسو كلو په عمر كې ،او ادنى مدت دهلک په حق دولس كاله دي او دانجلى په حق كې نهه كاله دي ،نو كه هغوئ بلوغ ته قريب شول او ويې ويل چې موږ بالغ شو نو ددوئ تصديق به كيږي او ددوئ احكام به دبالغانو په شان وي .

**تشریح** :(۱)هلک له دري امورو څخه په یوه بالغ کیږي /نمبر۱–په احتلام سره ./نمبر۲ـ په انزال سره ./نمبر۳ـ احبال یعنی له ښځې سره په وطی کولو دهغې حامله کولو سره ،که له دي دریو څخه کومه علامه ونه موندل شوه نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد چې کله دا تلسو کالو شي نو بالغ شمارل کیږي.

(۲)انجلۍ هم له دري امورو څخه په یوه بالغه کیږي .نمبر۱ـ په حیض راتلو سره ./نمبر۲ـ په احتلام سره ./نمبر۳ـ په حامله کیدلو سره . که له دي دریو امورو څخه کومه علامه ونه موندل شوه نو کله چې دا وولسو کالو شي نو بالغه شمارل کیږي .

(۳)دصاحبینو په نزد که په هلک او انجلۍ کې له پورته ذکر شویو دبلوغ له علامو څخه کومه علامه ونه موندل شوه نو کله چې پنځلس کاله پوره شي نو بالغ شمارل کیږي ولی چې عام عادت دادی چې بلوغ له پنځلسو کالو څخه نه مؤخر کیږي .

**فائده**:دصاحبینو قول مفتی به دی لمافی الدرالمختار:فان لم یوجدفیهماشئ فحتی یتم لکل منهماخمس عشرة سنة به یفتی لقصر اعمار اهل زماننا وهو روایةعن الامام وبه قالت الائمة الثلاثة ،وقال ابن عابدین:(قوله به یفتی)هذا عندهما وهو روایةعن الامام وبه قالت الائمة الثلاثة وعند الامام حتی یتم له ثمانی عشر سنة ولها سبع عشر سنة(الدر المختار مع الشامیة:۵/۱۰۷)

(۴)دهلک په حق کې لږترلږه هغه مده چې په هغه کې دی بالغ کیدای شي دولس کاله دي او دانجلۍ په حق کې نهه کاله دي ولی چې کله په دي مده کې هم دبلوغ علامه ښکاریږي ،نو که کومه علامه ښکاره نه شوه او انجلۍ او هلک مذکوره مدي ته ورسیدل او دوئ په دومره مده کې دبالغ والی دعوی وکړه نو ددوئ قول به اوریدل کیږي (یعنی تصدیق به یې کیږي )،او که یې له دومره مدې څخه وړاندي دبلوغ دعوه وکړه نو نه به اوریدل کیږي ولی چې ظاهر حال یې تکذیب کوي .

(۵)کله چې هلک یا انجلۍ مراهق (یعنی قریب البلوغ )شي او ددوئ بلوغ او عدم بلوغ معلومیدل مشکل شي او دوئ وایې چې موږ بالغ شو نو ددوئ قول معتبر دی او ددوئ احکام دبالغانو په شان دي ولی چې دا داسې خبره ده کومه چې ددوئ له طرف څخه معلومیدای شي نو کله چې دوئ خبر ورکړ او ظاهر حال هم ددوئ تکذیب نه کوي نو ددوئ قول به قبلیږي .

## كتاب المأذون

داکتاب دماذون داحکامو په بیان کې دی

مأذون له اذن څخه دی لغة په معنی داجازت ورکولو دی ،او په شریعت کې فک الحجر و اسقاط الحق ته ویل کیږي یعنی غلام (بوجه رقیت )او نابالغ (بوجه کم عمري )چې ممنوع عن التجارة وو دمولی او ولی له طرف څخه ددي پابندي ختمولو او مولی او ولی ته چې کوم دپابندي لګولو حق حاصل وو دهغه ساقطولو ته اذن ویل کیږي ،او له چا څخه پابندي ختمه شي هغه ته مأذون ویل کیږي .

له ماقبل سره یې مناسبت ظاهر دی ولی چې اذن دخپل وجود په اعتبار سره سبقت حجر غواړي چې اول به له کوم کار څخه حجروي بیا به اذن وي نو کله چې دوجود په اعتبار سره اذن پر حجر مرتب دی نو د ذکر په اعتبار سره هم اذن پر حجر مرتب شو .

(١)الإذن فك الحجر, وإسقاط الحق (٢) فلا يتوقت, ولا يتخصص) (٣) ويثبت بالسكوت إن رأى عبده يبيع ويشتري (٤) وإن أذن له عاما لا بنوع شيء يبيع ويشتري ويوكل بهما ويرهن ويسترهن ويستأجر ويضارب ويؤجر نفسه ويقر بدين وغصب الوديعة (٥) ولا يتزوج ولا يزوج مملوكه ولا يكاتب, ولا يعتق ولا يقرض ولا يهب (٦) ويهدي طعاما يسيرا ويضيف من يطعمه ويحط من الثمن بعيب

**ترجمه** :اذن حجرلري كولوا وحق ساقطولوته ويل كيږي ،نونه داموقت ده اونه په كوم شئ پسې خاص ،اوثابتيږي په خاموش پاتې كيدلو سره كه يې وليدى خپل غلام چې اخيستل اوخرڅول يې كول ،نوكه يې عام اجازت وركړنه دكوم خاص شي دا خيستلونو اخيستل دي كوي اوخرڅول دي كوي ،وكيل دي جوړوي ددې دواړولپاره ،په رهن دي ايږدي اوپه رهن دي اخلي ،په كرايه دي اخلي اومضاربت دي كوي اوخپل ځان دي په اجرت وركړي اواقراردي كوي دقرض اودغصب اودوديعت ،اوخپله نكاح دي نه كوي اونه دي دخپل مملوك نكاح كوي اونه دي مكاتب جوړوي اونه دي ازادوي اونه دي قرض وركوي اونه دي هبه وركوي ،اوهديه وركولى شي لږخورك اودعوت كولى شي هغه ته كوم چې ده ته دعوت كوي اوكمولى شي ثمن دعيب په وجه سره .

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله دمأذون تعريف په دې ډول كړى دى چې وړاندې چې دژبنى تصرفاتوڅخه دحجراومنع كولو كوم تفصيل تيرشوى دى هغه حجرختمول اومتولى ته چې كوم دحجرحق وو دهغه ساقطول اذن دى اوله چاڅخه داحجرساقط كړاى شي هغه ته مأذون ويل كيږي .

(٢)اوڅرنګه چې ددې تصرفاتودااجازه له قبيلې داسقاطاتوده لهذادااجازت تركوم وخت پورې محدودنه پاتې كيږي هومحجوركيداى شي حتى كه چاخپل غلام ته ديوې ورځې لپاره اجازت وركړه نوترڅوچې مولى دى محجورنه كړي دى دهميشه لپاره مأذون ګرځي ولې چې اسقاطات تركوم وخت پورې محدودنه وي .همداشان كه مولى غلام ته ديوخاص قسم دتجارت اجازت وركړمثلاوې ويل ،اذنت لک فی التجارۃ فی البرفقط.(ماته صرف په غنموكې دتجارت كولواجازت دركړى دى)نودااجازت په يوخاص قسم تجارت پورې مخصوص نه دى بلكه هغه دتجارت په ټولواقساموكې مأذون دى ولې چې اذن عبارت دى له پابندې ختم كولوڅخه اوله اسقاط حق څخه اوكله چې مولى خپل حق ساقط كړنودغلام ملكيت ظاهريږي نودابه په كومه خاصه نوع پورې مخصوص نه وي .

(٣)پيادمولى له طرف څخه لكه څرنګه چې دااجازت صراحة ثابتيږي همداشان دلالة هم ثابتيږي مثلاچاخپل غلام په اخيستلواوخرڅولووليدى اوپه ته خوله پاتې شونودازموږپه نزددمولى له طرف څخه ده لره اجازت دى اوداغلام مأذون ګرځي ولې چې كه مولى دده په دې عمل راضي نه واى نوله خلګوڅخه ددفع ضررلپاره به يې دى منع كړى واى .

(٤)كه مولى خپل غلام ته دتجارت عام اجازت وركړپه كوم خاص قسم تجارت پورې يې مقيدنه كړ مثلاداسې ووېل اذنت لک فی التجارۃ (ماتاته دتجارت كولواجازت دركړى دى )نوغلام هرقسم تجارت كولى شي ولې چې اسم تجارت عام دى جنس تجارت ته شامل دى نومأذون چې څه وغواړي اخيستلى يې شي

اوځه چې وغواړي خرڅولی يې شي ولی چې اخيستل اوخرڅول اصل التجارت دي ،البته که يې دکوم مخصوص شئ داخيستلواجازت ورکړنوداإذن عام نه دی ولی چې دمخصوص شئ اخيستل داستخدام له قبيلې څخه دی نوکه دداي په وجه سره غلام مأذون وګرځول شي نودمولی لپاره به باب استخدام بندشي، همداشان مذکوره غلام خپل وکيل بالبيع والشراء هم جوړولی شي اوله چاسره رهن هم ايښودلی شي له چا څخه رهن هم اخيستلی شي اوچاته شئ په اجاره سره هم ورکولی شي اوله چاڅخه شئ په اجاره سره هم اخيستلی شي اوچاته خپل مال په مضاربت سره هم ورکولی شي ولی چې دادتجاروله معمولاتوڅخه دي، اومذکوره غلام خپل ځان له چاسره مزدورکولی هم شي ولی چې دمولی له طرف څخه اذن اکتساب منافع ته متضمن دی اودخپل ځان په مزدوري ورکولوکې هم منافع حاصليږي ،همداشان دمأذون پرخپل ځان دقرض اقرارکول يادکوم شئ دغصب کولواقرارکول جائزدی ولی چې اقراردتجارت له توابعواولوازموڅخه دی اوکه دمأذون اقرارصحيح نه وي نوخلک به له ده سره داخيستلواوخرڅولوله معاملې څخه ځان ساتي .

(۵)مأذون لره جائزنه ده چې خپله نکاح وکړي ولی چې نکاح کول دتجارت له قبيلې څخه نه ده حال داچې ده ته دمولی له طرف څخه صرف دتجارت اجازت دی ،همدراز په نکاح کولوکې دمولی ضررهم دی ولی چې دمنکوحې نفقه اومهردمأذون پرذمه لازميږي ،همداشان که دطرفينوپه نزددمأذون غلام په مال کې که غلام يامينځه وي نومأذون دهغوئ نکاح هم نه شي کولی ،حال داچې دامام ابويوسف رحمه الله په نزددمينځې دنکاح کولواختيارعبدمأذون لره حاصل دی ،همداشان که دمأذون په مال کې غلام وي نوده لره دهغه دمکاتب جوړولواختيارنشته اونه دی دهغه دازادولواختيارلري ،اونه چاته قرض ورکولی شي اونه کوم شئ بعوض يابغيرعوض هبه کولی شي ولی چې داټول ياخوابتداءاوانتهاء تبرع دي اوياصرف ابتداءا (لکه هبه بعوض) تبرع دي اوتبرعات دمولی له طرف څخه په اذن فی التجارت کې داخل نه دي .

(۶)البته که لږطعام هبه کړي ياکوم داسې څوک ميلمه کړي کوم څوک چې دی ميلمه کوي نوداجائزده ،ياداسې څوک ميلمه کړي کوم چې دی نه ميلمه کوي نوداهم جائزده ولی چې داتجارانودزړونودمائل کولولپاره له ضروريات تجارت څخه دي ،اومأذون غلام لره داجائزده چې دی په مبيع کې دعيب په وجه سره دمشتري له ذمې څخه دعيب په اندازه قيمت کم کړي ولی چې داهم دتجارانوله عادتونوڅخه دي.له عيب څخه زيات نه شي کمولی شي ولی چې داتبرع ده حال داچې مأذون لره دتبرعاتواجازت نشته .

(۷)وَدَيْنُهُ مُتَعَلِّقٌ بِرَقَبَتِهِ وَيُبَاعُ فِيهِ إِنْ لَمْ يَفْدِهِ سَيِّدُهُ (۸)وَقُسِمَ ثَمَنُهُ بِالْحِصَصِ وَمَا بَقِيَ طُولِبَ بِهِ بَعْدَ عِتْقِهِ (۹)وَيَنْحَجِرُ بِحَجْرِهِ إِنْ عَلِمَ بِهِ أَكْثَرُ أَهْلِ سُوقِهِ (۱۰)وَبِمَوْتِ سَيِّدِهِ وَجُنُونِهِ وَلُحُوقِهِ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا (۱۱)وَبِالْإِبَاقِ وَالِاسْتِيلَادِ (لَا بِالتَّدْبِيرِ (۱۲)وَضَمِنَ بِهِمَا قِيمَتَهُمَا لِلْغُرَمَاءِ (۱۳)وَإِنْ أَقَرَّ بِمَا فِي يَدِهِ بَعْدَ حَجْرِهِ صَحَّ

**ترجمه** :اودغلام قرضه متعلقه وي دده له رقبې سره خرڅيږي به دهغې په عوض کې که فديه ورنه کړي دده مولی ،اوتقسيميږي به دده ثمن دحصوپه مطابق اوکوم چې باقی پاتې شي دهغه مطالبه به کيږي دده له ازادي څخه وروسته ،اودی محجورګرځي دده له محجورکولوسره که خبرشي په دي اکثربازاروالا ،اودده دمولی په وفات کيدلوسره اوپه ليونی کيدلوسره اودارالحرب ته په تللوسره دارتدادپه حال کې ،اودغلام په تښتيدلو

سره اودمينځې په ام ولد جوړولو سره نه په مدبرکولو سره ، اوضامن گرځي ددې په وجه سره دده دقيمت قرضخواهانولره ، اوکه يې اقرار وکړله حجرڅخه وروسته دهغه مال چې دده په لاس کې دی نوصحيح دی .

**تشريح**:(۷)په عبدماذون چې کومې قرضې دتجارت په وجه سره واجبې شې مثلاً په اخيستلواوخرڅولواوپه اجاره اخيستلواووركولووغيره کې ماذون مقروض شې نوداقرضې به دده له رقبې سره متعلقې وي ولی چې داقرضې دمولی له طرف څخه داذن په وجه سره دمولی په حق کې ظاهرېږي اوکومې قرضې چې دمولی په حق کې ظاهري شې هغه دغلام له رقبې سره متعلقې وي ،نو قاضی به دی خرڅ کړي اودده له قيمت څخه به دقرضخواهانو قرضې اداء کړي ،هوکه مولی له خپل طرف څخه دغلام دقرضې فديه قرض خواهانوته ورکړي نوبيابه غلام نه خرڅېږي ولی چې اوس دغلام له رقبې سره دقرضخواهانو حق متعلق پاتې نه شو .

(۸)که مولی دغلام دقرضې فديه ورنه کړه بلکه غلام يې خرڅ کړنو دغلام ثمن به دقرضخواهانو دحصوپه مقدارباندې تقسيمېږي ،بياهم که څه قرضه باقی پاتې شوه نودهغې مطالبه به له غلام څخه له ازادي وروسته کيږي ولی چې قرضه دده پرذمه ثابته شوې ده قرضخواهانوخپله ټوله قرضه نه ده وصول کړې اورقبه کافی نه شوه لهذاقرضخواهانوته به له ازادي څخه وروسته دمطالبې حق وي ،مگردباقی قرضې لپاره به دی دوهم ځل نه خرڅېږي ولی چې په دې کې دمشتري نقصان دی .

(۹)که مولی عبدماذون محجورکړنوهغه محجورگرځي په دې شرط چې دبازاراکثروخلک دهغه په محجوروالی خبرشوي وي ترڅوله ده سره معامله کونکوته ضرر پېښ نه شې ولی چې دبازارخلگوته دده دمحجوروالی علم نه وي نوغلام چې له حجرڅخه وروسته کوم تصرف کوي په دې که پرده قرض لازم شونوداقرض به دده له گټې يارقبې سره متعلق نه وي بلکه دده له ازادي څخه وروسته به داقرضې له ده څخه وصول کيږي نوپه دې سره دمعامله کونکوحق مؤخرگرځي په کوم کې دهغوئ نقصان دی حال داچې معامله کونکوله ده سره په دې اميدمعامله کړې وه چې که دی قرضه اداء نه کړي نوموږبه يې دده له رقبې ياگټې څخه وصول کړوحال داچې دده ازادي هم موهومه ده يقيني نه ده .

(۱۰)قوله وبموت سيده ای وينحجرايضابموت سيده وجنونه الخ ،يعنی که دعبدماذون مالک مړشويامجنون شو يامرتدشو(نعوذبالله )اودارالحرب ته ولاړی نوعبدماذون محجورگرځي اگرغلام اودبنارخلگوته ددې علم نه وي ولی چې دمولی له طرف څخه اذن اواجازت پرمولی باندې يوغيرلازم تصرف دی نوددې دبقاء هم هغه حکم دی کوم چې ددې ابتداء دی ،نولکه څرنگه چې ابتداء اپه مولی کې داذن داهليت وجودضروري دی همداشان بقاء هم دهغه وجودضروري دی حال داچې دمرگ اوجنون په وجه سره په مولی کې اهليت اذن نيستي کيږي ،همداشان په مرتدکيدلو(نعوذبالله )اودارالحرب ته په تللوسره اهليت اذن ختميږي ولی چې داموت حکمی دی همداوجه ده چې دده مال دده په وارثانو کې تقسيمېږي .

(۱۱)قوله وبالاباق والاستيلاداي وينحجرايضابالاباق والاستيلادالخ ،يعنی که عبدماذون له مولی څخه وتښتي نوهم دی محجورگرځي ولی چې په اذن سره دمولی حق ساقطيږي حال داچې مولی له خپل سرکش غلام څخه دخپل

حق په ساقطولو راضي نه دی لهذا هغه دلالة محجور گرځي او داذن په شان حجرهم دلالة ثابتيږي همداشان كه دمأذونه مينځې له خپل مولى ځخه ماشوم پيداشې نودامحجوره گرځي ولى عادت دادی چې دمينځې دماشوم له پيداكيدلو ځخه وروسته مولى ددي له كور ځخه په وتلو اوله خلگو سره په تعلقاتو ساتلو راضي نه وي نوداعادت ددي دمحجوروالى دليل دی اودليل حجرهم دصريح حجرپه شان دی.قوله لاالتدبير اى لاتحجر الامة الماذونة بالتدبير ،يعنى كه مولى خپله مينځه مدبره كړه نودابالاجماع محجوره نه گرځي ولى چې دمحجوروالى هيڅ دليل نشته.

(۱۲)يعنى كه مولى مأذونه مينځه ام ولده يامدبره جوړه كړه نو كه پردي دخلگو قرضې وي نو مولى به ددي له قيمت ځخه قرضخواهانو ته تاوان وركوي ولى چې ام ولده او مدبره خرڅول جائزنه ده نوده په ام ولده يامدبره جوړلو سره داسې محل تلف كړله كوم سره چې دقرضخواهانو حق متعلق وو په دي وجه به مولى ددي له قيمت ځخه قرضخواهانو ته تاوان وركوي.

(۱۳)كه پر عبد مأذون باندي مولى حجرولگاوونوله حجر ځخه وروسته دده اقرار جائزدی په هغه مال كې كوم چې دده په قبضه كي دی مثلاً ده اقرار وكړچې له ماسره چې كوم مال دی هغه دفلان كس امانت دی يامال ه فلان ځخه غصب كړی دی يازماپرذمه دفلان قرض دی نودااقرار جائزدی دادامام ابو حنيفه رحمه الله مسلک دی .دليل دادی چې حقيقة اوبالفعل دغلام قبضه باقي ده اودحجرپه وجه سره چې حكما دده قبضه باطليږي هغې لره شرط دادی چې مال مقبوض دده له ضرورت ځخه زائداو فارغ وي حال داچې دده اقراركول ددي خبري دليل دی چې تراوسه دده ضرورت باقي دی لهذا دده قبضه معتبره ده نوپه دي كې اقرارهم صحيح دی .حال داچې دصاحبينو په نزدله حجر ځخه وروسته دعبد مأذن اقرار په هغه مال كې چې ده په قبضه كې وي جائزنه دی .دصاحبينو دليل دادی چې داقرارصحيح والى كه دمولى له طرف ځخه داجازت په وجه سره وي نو هغه خود حجرپه وجه سره زائل شواو كه دغلام په مال دقبضې په وجه سره وينو حجرخودده قبضه على المال هم باطله كړه ولى چې دمحجور قبضه شرعا غير معتبره ده لهذا دصحت اقرار هيڅ وجه نشته.

**فائده**:دامام ابو حنيفه رحمه الله قول راجح دی لماقال ابراهيم بن محمد الحلبي :واقراره بعد الحجر بدين اوبان مافي يده امانة لغيره اوغصب منه صحيح فيقضى ممافي يده لامن رقبته لانهاليست من كسبه بل من كسب مولاه هذاعندالامام خلافالهما فانهما قالالايصح اقراره وهو القياس لان المصحح هوالاذن وقدزال وبه قالت الائمة الثلاثة وجه الاستحسان ان المصحح هواليدوهي باقية حقيقة وبطلان اليدحكمابالحجر فراغ مافي يده من الاكتساب عن حاجته والاقرار دليل على تحققها(مجمع الانهر :۷۰/۴)

(۱۴)ولايملک سيدُهُ مافي يدِهِ لو احاطَ دَيْنُهُ بمالِهِ ورقبتِه(۱۵)فبطل تحريره عبدامن كسبه(۱۶)وان لم يحط صح(۱۷)ولم يصح بيعُهُ من سيدِه الا بمثلِ القيمةِ(۱۸)وان باعَ سيِّدُهُ منه بمثلِ القيمةِ او اقلَّ صحَّ(ويَبطُلُ الثمنُ لو سلَّم قبلَ قبضِهِ وله حبسُ المبيعِ بالثمن(۱۹)وصحّ اعتاقُهُ وضمِنَ قيمتَهُ للغرمائِهِ(۲۰)وطولبَ بمابقي للغرمائِهِ بعدَ عتقِهِ

**ترجمه** :اومالک نه دی دده مالک دهغه مال كوم چې دده په لاس كې دی كه محيط وودده قرض دده پرمال اودده پررقبې .نوباطل دی دمولى ازادول هغه غلام لره كوم چې دعبد مأذون له گټې ځخه وي .اوكه قرض محيط نه وينوصحيح دی .اوصحيح نه دی خرڅول دعبد مأذون پر خپل مولى باندي مگرپه قيمت مثل سره

اوکه خرڅ کړ: عبد مأذون مولی پر ده باندي په قیمت مثل یاله دي څخه پرکم نوصحیح دی او باطلیږي ثمن که بې وسپاری مبیع له قبضي څخه وړاندي او ده لره جائزده مبیع منع کول دثمن په وجه سره ،اوصحیح دی دعبد مأذون ازادول اوضامن ګرځي دده دقیمت دده قرضخواهانولره ،اومطالبه به کیږي د مابقی دده له ازادي څخه وروسته.

**تشریح**:(۱۴)پرعبد مأذون که دومره اندازه قرض واجب شو چې دده پرمال اورقبې دواړو محیط شونوپه دې صورت کې چې کوم مال له ده سره وي دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدمولی دهغه مالک نه دی ولی چې له دې سره دقرضخواهانو حق متعلق شوی دی اومولی دخپل مأذون غلام دهغه مال مالک ګرځي کوم مال چې دمأذون له حاجت څخه زائدوي حال داچې مذکوره مال خودمأذون له حاجت څخه زائدنه دی لهذامولی به دي مالک نه وي.

(۱۵)نوکه په مذکوره بالاصورت کې مولی دعبدمأذون دغلامانوازادول وغواړي نوهغه نه ازادیږي ولی چې اعتاق له غیرمالک څخه صادریږي ،حال داچې دصاحبینوپه نزدپه داسې صورت کې مولی دهغه مال مالک ګرځي کوم چې دعبدمأذون په لاس کې دی نوکه مولی دده دغلامانوازادول وغواړي نوازادیږي.

**فائده**:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار:احاط دینه بماله ورقبته لم یملک سیده مامعه فلم یعتق عبدمن کسبه بتحریر مولاه وقالا یملکه فیعتق وعلیه قیمته موسرا اولو معسرا فلهم ان یضمنوا العبد المعتق ثم یرجع علی المولی،وقال العلامة ابن عابدین:(قوله وقالا یملکه)لانه وجد سبب الملک فی کسبه وهو ملک رقبته ولهذا یملک اعتاقه ووطء الماذونة وله ان ملک المولی انما یثبت خلافة عن العبد عند فراغه من حاجته والمحیط به الدین مشغول بها فلا یخلفه فیه (الدر المختار مع الشامیة:۵/۱۱۷)

(۱۶)هوکه دومره قرض نه وو چې دده ټول قیمت اودده په قبضه کې پرموجومال محیط وي بلکه کم وي نوپه دې صورت کې بالاتفاق دمولی په ازادولوسره هغه غلام ازادیږي ولی چې معمولی قرض خوپه هرحال پرمأذون راځي نوکه دادمولی ملک لره مانع وګرځول شي نومولی لره به دمأذون له ګټې څخه دانتفاع ټول باب بندشي نودغلام له مأذون ګرځولو څخه چې کوم مقصود دی په هغه مقصود کې خلل راځي.

(۱۷)که عبدمأذون مقروض پرخپل مولی باندي کوم شئ په قیمت مثل یاترقیمت مثل په زیات قیمت سره خرڅ کړي نوداجائزدی ولی چې په دې کې تهمت نشته اوکه یې په لږنقصان سره خرڅ کړي نودابیع جائزه نه ده ولی چې دمأذون له مال سره دقرضخواهانو حق متعلق شوی دی نوپرخپل مولی په کم قیمت سره په خرڅولو کې دتهمت امکان دی چې قرضخواهانو ته دنقصان رسولو لپاره دي دمالک اومملوک په منځ کې خفیه (پټه) معاهده شوي وي.

**فائده**:لیکن مذکوره بالادجوازحکم به په هغه صورت کې وي چې پرغلام قرض باندي وي ولی چې دقرض په شکل کې دده مولی داجنبی کس په شان وي اودغلام دنه مقروض والی په صورت کې دمولی اوغلام په منځ کې اخیستل اوخرڅول صحیح نه دي ولی چې په دې صورت کې دټولو مالک مولی دی.

(۱۸)که مولی په خپل مأذون اومقروض غلام باندي کوم شئ په مثل قیمت یاکم قیمت سره خرڅ کړي نوداجائزدی ولی کله چې غلام مقروض دی نومولی دده له ګټې څخه اجنبی دی اوپه دې بیع کې تهمت هم

نشته او دقرض خواهانو نفع ده لهذا له جواز څخه هيڅ شئ مانع نه دى .بياكه مولى پرثمنو له قبضي کولو څخه وړاندې مبيع عبد مأذون ته تسليم كړاو ثمن دين وي عين نه وي نو هغه ثمن باطليږي (يعنى مولى دهغه مطالبه نشي كولى )ولى چې په دي صورت كې ثمن دمولى لپاره دغلام پرذمه قرض دي حال داچې مولى لره داحق نشته چې دغلام پرذمه ثمن واجب كړي ،كله چې ثمن باطل شونوگويامولى پرده بلاقيمته خرڅ كړ.هوكه مولى مبيع له ځان سره وساتي ترڅو چې ثمن وصول كړي نوداجائزده ولى چې بائع لره دمبيع له ځان سره دساتلو حق شته .

(۱۹)كه مولى خپل مأذون مقروض غلام ازادكړنوداجائزده ولى چې تراوسه دمولى ملک باقى دى لهذا دخپل ملک په موجب مولى په ده كې تصرف كولى شې البته مولى به دده قرضخواهانو ته دده دقيمت په اندازه ضامن وي ولى چې دقرض خواهانو حق دده له رقبې سره متعلق شوى دى مولى په ازادولو سره دهغوئ حق تلف كړ.

(۲۰)اوكه مولى دده قيمت قرض خواهانو ته وركړمگردهغوئ دين اداء نه شويعنى قيمت له قرض څخه لږ وونو دباقى دين مطالبه به قرض خواهان دده له ازاديدلو څخه وروسته كوي ولى چې مولى خوبقدرقيمت دقرض خواهانو حق تلف كړى دى اوباقى دين دغلام پرذمه پاتې دى لهذا دهغه مطالبه به له ده څخه كيږي .

(۲۱)فإن باعه سيده وغيبه المشتري ضمن الغرماء البائع قيمته (۲۲)وإن رد عليه بعيب رجع بقيمته وحق الغرماء في العبد (۲۳)أو مشتريه (۲۴)أو اجازوا البيع وأخذوا الثمن (۲۵)وإن باعه سيده وأعلم بالدين فللغرماء رد البيع (۲۶)وإن غاب البائع فالمشتري ليس بخصم لهم

**ترجمه** :اوكه خرڅ كړعبدمأذون دده مولى اوغائب كړدى مشترى نوضمان به اخلي قرض خواه له بائع څخه دده دقيمت بياكه هغه بيرته پرده ردكړاى شو دعيب په وجه سره نوبيرته به اخلي دده قيمت اودقرض خواهانو حق په غلام كې وي .يادي له مشترى څخه واخلي ،يادي جائزكړي بيع اوثمن دي واخلي .اوكه خرڅ كړمولى اوبيان يې كړمشترى لره قرض نوقرضخواهان حق لري دبيع دردولو .اوكه غائب شوبائع نومشترى خصم ته دى دقرضخواهانو .

**تشريح** :(۲۱)كه مولى خپل مأذون غلام خرڅ كړحال داچې پرهغه دومره قرض دى كوم چې دده پررقبه محيط دى اومشتري پرده قبضه وكړه اوغائب يې كړنوقرضخواهان اختيارلري كه يې خوښه شوه نوله بائع يعنى مولى څخه دي دهغه دقيمت په قدرتاوان واخلي ولى چې ددوئ حق له دي غلام سره متعلق شوى وونوله بائع څخه په دي وجه دتاوان داخيستلو اختياردى چې ده غلام خرڅ كړاومشترى ته يې تسليم كړچې په هغه سره دقرضخواهانو حق تلف شو .

(۲۲)بياكه قرضخواهانوله بائع يعنى مولى څخه دهغه دقيمت په اندازه تاوان واخيستى بيادكوم عيب په وجه سره دغلام خپل مولى ته ردكړاى شونومولى لره داختيارشته چې داغلام وركړي اوخپل قيمت بيرته واخلي اواوس به دقرضخواهانو حق په دي غلام كې وي ولى چې دتاوان اخيستلو سبب(يعنى دغلام خرڅول اوتسليمول )زائل شو .

(۲۳)قوله اومشتريه داجمله معطوفه ده دمصنف رحمه الله پردي قول البائع باندي ،تقدير دعبارت دادی ضمن الغرماء البائع ان شاء وان شاء واضمن المشتری ،یعنی دقرضخواهانو خوښه ده که له بائع څخه تاوان اخلي اوکه له مشتري څخه تاوان اخلي اوله مشتری څخه دتاوان اخيستلو اختيارپه دي وجه شته چې مشتری ددوئ په حق قبضه کړي ده اوهغه يې غائب کړی دی.

(۲۴)اوقرضخواهانولره دااختيارهم شته چې که يې خوښه وي نودبيع په اجازه ورکولوسره دي له بائع څخه وهغه ثمن وصول کړي ولی چې دغلام په رقبه کې حق ددوئ دی نوپه هغه کې هرقسم اختياردی اواجازه لاحقه داجازه سابقه په شان ده يعنی له بيع څخه وروسته ددوئ اجازه داسې ده لکه له بيع څخه وړاندي چې دوئ اجازه ورکړي وي ،خلاصه داده چې قرضخواهان دري قسمه اختيارلري ،که يې خوښه وي نوله مولی څخه دي دغلام دقيمت په قدرتاوان واخلي اوکه يې خوښه وي نوله مشتري څخه دي تاوان واخلي اوکه يې خوښه وي نوبيع دي نافذه کړي اوله بائع څخه دي ثمن وصول کړي لمامر.

(۲۶)که مولی دامأذون مديون په کوم کس باندي خرڅ کړاوهغه يې په قرض خبرکړيعنی مشتري ته يې وويل چې داغلام مقروض دی بياهم هغه واخيستی نوقرضخواهانولره اختياردی چې بيع رد کړي ولی چې له دي غلام سره ددوئ حق متعلق شوی دی اوددوئ حق دادی چې په غلام کاروکړي اوکټه ترلاسه کړي يادده له رقبې څخه خپل قرض وصول کړي اوپه له دي دواړوڅخه په هريوه کې فائده ده په غلام په کټه ترلاسه کولوکې دافائده ده چې پوره قرضه حاصليږي اګرکه په تاخيرسره وي اوله رقبې څخه په وصولولوکې دافائده ده چې في الحال وصوليږي ليکن شايدچې کمه وي اودمولی غلام پرمشتري په خرڅولوکې دقرضخواهانودا حق ختميږي په دي وجه دوئ ته اختيارورکړل شوی دی چې که يې خوښه وي نودابيع دي ردکړي .

(۲۶)اوکه بائع غلام خرڅ کړاوپه ثمن له قبضې کولوڅخه وروسته غائب شونومشتري دقرضخواهانوخصم نه دی يعنی که مشتری ددوئ له قرض څخه انکاروکړي نوددوئ لره دااختيارنشته چې مشتری مدعی عليه جوړکړي ولی چې دادعوی فسخ عقدته متضمنه ده حال داچې عقدبائع اومشتری کړی دی نوددي فسخ کول به پرغائب بائع باندي حکم وي حال داچې پرغائب باندي حکم جائزنه دی.

(۲۷)ومن قدم مصرا وقال أنا عبد زيد فاشتری وباع لزمه کل شيء من التجارة (۲۸)ولايباع حتی يحضر سيده فإن حضر واقر باذنه بيع والا فلا (۲۹)وإن أذن للصبي أو المعتوه الذي يعقل البيع والشراء وليه فهو في الشراء والبيع کالعبد المأذون له

**توجمه**:اوکوم کس چې راغی کوم ښارته اووي ويل چې زه دزيد غلام يم بياده اخيستل اوخرڅول وکړل نولازميږي پرده هرشئ دتجارت .اوخرڅيږي به نه ترڅوته چې حاضرشي دده مالک نوکه هغه راغی اواقراريې وکړده ته داجازت ورکولونوخرڅيږي به که نونه .اوکه اجازت ورکړنابالغ اومعتوه ته کوم چې پوهيږي په اخيستلواوخرڅولودده ولی نوهغه په اخيستلواوخرڅولوکې دعبدمأذون په شان دی.

**تشريح**:(۲۷)که کوم کس کوم ښارته راغی اووي ويل چې مثلازه ده زيدغلام يم بياده اخيستل اوخرڅول وکړل نوکوم شئ چې دتجارت له قسم څخه وي هغه پرده استحسانالازميږي ولی چې که ده خپل مأذون والی

بيان كړنو استحساناًبه دده تصديق كيږي په دي وجه چې خلګ له داسې كس سره بلاشرط معاملات كوي او دمسلمانانو په كوم عمل باندي جمع كيدل حجة دى دكوم په وجه سره چې قياس پرېښودل كيږي .

او كه ده داخبره ونه كړه چې زمامولى زه مأذون كړى يم نو بياهم دده تصرف جائزدى ولى چې ظاهره داده چې داغلام مأذون دى ولى چې دغلام عقل اودين ده لره له دي څخه مانع دى چې له خپلو اختياراتو څخه په تجاوزكولو سره دحرامو ارتكاب وكړي لهذا همدا به فهميږي چې دى دخپل مولى له طرف څخه مأذون دى په دي وجه كوم شئ چې دتجارت له قسم څخه وي هغه پرده لازميږي .

(۲۸)ليكن كه پرده قرض لازم شواوده له كسب څخه نه شواداء كيداى نودى به په قرض كې نه خرڅيږي ترڅوچې دده مولى حاضرنه شي ولى چې دخپلې رقبې په باره كې دده قول قابل قبول نه دى په دي وجه چې هغه خالص دمولى حق دى په خلاف دده دكسب چې هغه خپله دغلام حق دى ،بياكه مولى حاضرشواو وي ويل چې داواقعي مأذون دى نواوس به دى په قرض كې خرڅيږي ولى چې اوس داقرض دمولى په حق كې هم ظاهرشواوكوم قرض چې دمولى په حق كې ښكاره شي په هغه كې غلام خرڅيږي او كه مولى وويل چې دامأذون نه دى محجوردى نونه به خرڅيږي اوده په محجوروالى كې دمولى قول قبول اومعتبردى ،هو كه قرضخواهانو په ګواهانو سره دده مأذون والى ثابت كړنو بيابه خرڅيږي لان الثابت كالثابت عيانا.

(۲۹)كه دنابالغ اومعتوه (كم فهمه )ولى نابالغ اومعتوه ته دتجارت اجازه وركړه نوهغه په اخيستلو اوخرڅولو كې دعبدمأذون په شان كيږي يعنى ددوئ تصرف نافذيږي په دي شرط چې په اخيستلو او خرڅولوپوهيږي (په اخيستلو اوخرڅولوله پوهيدوڅخه مراددادى چې په دي پوهيږي چې په خرڅولوسره يوشئ له لاسه وځي اوقيمت لاس ته راځي اوپه اخيستلوسره قيمت له لاسه وځي اوشئ راځي )وجه يې داده چې دمأذون نابالغ اومعتوه له طرف څخه اخيستل اوخرڅول داسې مشروع تصرف دى كوم چې په شرعي ولايت سره له داسې كس څخه صادرشوى دى كوم ته چې ددي كارلياقت (وړتيا )حاصل دى اوپه محل صالح كې صادرشوى دى ولى چې مبيع مال متقوم دى لهذا ددوئ تصرف لازميږي .

## كتاب الغصب

### داكتاب دغصب په بيان كې دى

غصب لغة ديوشي په زوراخيستلوته ويل كيږي كه هغه شى مال وي اوكه غيرمال وي اوشرعاً اخذمال متقوم محترم بلااذن مالكه بلاخفية (يعنى په غيرخفي ډول سره دچاقيمتي اومحترم مال بغيردمالك له اجازت څخه اخيستلوته شرعاًغصب ويل كيږي )،مذكورمال ته مغصوب اومال وړونكى ته غاصب اوصاحب مال ته مغصوب منه ويل كيږي.

دكتاب الغصب له كتاب الماذون سره مناسبت دادى چې په دواړوكې تصرف په اذن سره نافذيږي يعنى لكه څرنګه چې دعبدمأذون تصرف دمولى په اذن سره نافذيږي همداشان دغاصب تصرف هم دمالك په اذن سره

نافذیږي ،هودومره فرق شته چې دمأذون تصرف په اذن سابق سره نافذیږي اودغاصب تصرف په اذن لاحق اومؤخرسره نافذیږي په دي وجه یې په ترتیب کې هم کتاب الغصب له کتاب المأوذن څخه مؤخرکړ.

دغصب حرمت په کتاب الله اوسنت رسول الله ﷺ سره ثابت دی قال الله تعالی ﴿لاتأکلوا اموالکم بینکم بالباطل﴾ وقال تعالی ﴿ان الذین یاکلون اموال الیتامی ظلما انما یاکلون فی بطونهم نارا﴾ وقال ﷺ ﴿حرمة مال المسلم کحرمة دمه ومن غصب شبرا من ارض طوقه الله یوم القیامة من سبع أرضین﴾.

دغصب حکم دادی چې که غاصب په دي خبروي چې دامال دغیردی نوګناه ګارېږي اومغصوب که موجودوي نودهغه ردول اوکه هلاک شوی وي نودهغه تاوان ورکول پرغاصب لازم دی ،اوکه غاصب ته دغصب پروخت دامعلوم نه وي چې دادغیرمال دی نوبیادی نه ګناهګارېږي هواخیرني دوه حکمونه اوس هم شته.

(۱)هو إزالة اليد المحقة بإثبات اليد المبطلة (۲)فالاستخدام والحمل على الدابة غصب لا الجلوس على البساط (۳)ويجب رد عينه في مكان غصبه أو مثله إن هلك وهو مثلي (۴)وإن انصرم المثلي فقيمته يوم الخصومة (۵)وما لا مثل له فقيمته يوم غصبه)(۶)فإن ادعى هلاكه حبسه الحاكم حتى يعلم أنه لو بقي لأظهره ثم قضى عليه ببدله

**ترجمه** :هغه زائلول دي دحق قبضې په باطله قبضه ثابتولو سره ،نوخدمت اخیستل اوپرسورلی باندي بارارول غصب دی نه کښېنستل پرفرش باندي ،اوواجب دی واپس کول بعینه دهغه شئ دغصب په ځای کې یادهغه مثل که هغه هلاک شوی وواوهغه مثلي وو ،اوکه ختم شودهغه مثل نودهغه قیمت دخصومت دورځې والا ،اودکوم چې مثل نه وي نودهغه قیمت واجب دی دغصب دورځې والا ،اوکه یې دعوی وکړه دهغه دهلاکیدونوبندي به کړي دی حاکم ترڅوچې معلومه شي چې که هغه باقي وای نوده به ښکاره کړی وای بیادي فیصله وکړي پرده دهغه دبدل.

**تشریح** :(۱)مصنف صاحب رحمه الله دغصب اصطلاحي تعریف په دي ډول کړی دی چې دحقدارقبضه ختمول اوناحقه قبضه کولوته شرعاغصب ویل کیږي په دي شرط چې مغصوب شئ منقولی اومال متقوم اومحترم وي نه که مغصوب شئ منقولي نه وي لکه ځمکه،یاغیرمتقوم وي لکه شراب ،یاغیرمحترم وي لکه دحربی مال ،نوغاصب ضامن نه دی .

(۲)نودبل چایه غلام په زورخدمت کول غصب دی همداشان دچاآس وغیره اخیستل اوپه هغه بارارول غصب دی ولی چې غاصب دغیرپرمال ناحقه قبضه کړې ده له کومې سره چې دمالک دقبضې زوال لازمي دی نوغصب تعریف پردي صادق دی په دي وجه دي ته غصب ویل صحیح دی ،اوکه کوم کس پرخپل فرش باندي ناست وي کوم بل کس ورغی اوله ده سره پرفرش کښېنستی نوداناسته په غصب کې شامله نه ده ولی چې پرفرش کښېنستل په فرش کې تصرف نه دی لهذاپه دي صورت کې دمالک تصرف اوقبضه ختمه شوي نه ده.

(۳)که غاصب کوم شئ غصب کړنوکه مغصوب شئ بعینه دغاصب په لاس کې موجودوي نوله کوم ځای څخه چې یې غصب کړی دی په هغه ځای کې هغه شئ مغصوب منه ته واپس کول واجب دي لقوله ﷺ «لایحل

لاحد کم ان یاخذ مال اخیه لاعبا و لا جاذا، وان اخذه فلیرذه علیه ؛ ،همدراز غاصب دمغصوب منه مقصودي قبضه ختمه کړي ده لهذا له مغصوب منه څخه ددفع ضررلپاره دغاصب قبضه منسوخ کوم ضروري ده ،اوکه بعینه مغصوب شئ دهلاکت په وجه سره موجودنه وواومغصوب مثلی شئ (کیلی یاوزنی یاعددي غیرمتفاوت )وي نوبیاددي مثل اوبدل واپس کول واجب دی لقوله تعالی ﴿فمن اعتدی علیکم فاعتدوا علیه بمثل ما اعتدی علیکم﴾(څوک چې پرتاسې زیاتوب وکړي تاسې پرهغه زیاتوب وکړي همدومره څومره چې هغه کړی دی).

(۴)اوکه مغصوب مثلی شئ وومګرله دنیاڅخه دهغه شئ وجودختم شونوبیاپرغاصب دمغصوب شئ قیمت ورکول واجب دی ،بیاداامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددخصومت دورځې قیمت ورکول لازم دی ولی چې اصل واجب خودمغصوب شئ مثل دی البته له مثل څخه دعجزپه وجه سره دوجوب قیمت طرف ته انتقال وشولیکن له مثل څخه دقیمت طرف ته انتقال صرف دانقطاع مثل په وجه سره نه کیږي بلکه دقاضی په قضاء سره کیږي په دي وجه دخصومت دورځې قیمت ورکول لازم دی ،دامام ابویوسف رحمه الله په نزددغصب دورځې قیمت ورکول لازم دی ،اودامام محمد رحمه الله په نزددهغه ورځې قیمت واجب دی په کومه ورځ چې دمغصوب منه مثل له بازارڅخه منقطع شوی دی.

**فائده**:په دي مسئله کې دترجیح اقوال مختلف دي لیکن څرنګه چې اکثرومشائخوداامام محمد رحمه الله په قول فتوی ورکړي ده په دي وجه همداراجح اومفتی به دی لمافی الشامیة :(قوله ورجحا)ای قول ابی یوسف وقول محمدوکان الاولی ان یقول ایضا ای کمارجح قول الامام ضمنالمشی المتون علیه وصریحاقال القهستانی وهو الاصح کمافی الخزانة وهو الصحیح کمافی التحفة وعندابی یوسف یوم الغصب وهو اعدل الاقوال کماقال المصنف وهو المختار علی ماقال صاحب النهایة وعندمحمدیوم الانقطاع وعلیه الفتوی کمافی ذخیرة الفتاوی وبه افتی کثیرمن المشائخ (ردالمحتار:۱۲۸/۳)،وقال الشیخ عبدالحکیم الشهید:ان التصحیح مختلف لکن الراجح من الاقوال ترجیح قول همام المختار للفتوی قول محمدوبه یفتی (هامش الهدایة:۳/۳۷۰)

(۵)اوکه مغصوب شئ مثلی نه وي مثلاعددی متفاوت وي یاغلام وي کوم څاروی وي نوبیاپرغاصب باندي دغصب دورځې قیمت واجب دی ولی چې اصل خودادی چې مثل کامل (کوم چې صورة ومعنی مثل وي )اداء کړای شي لیکن دمغصوب شئ دمثلی نه کیدلوپه وجه سره څرنګه چې دمثل کامل اداء کول متعذردی لهذاپه مثل معنوی یعنی قیمت به اکتفاء کیږي ولی چې قیمت هم دشئ قائم مقام وي.

(۶)که غاصب دعوی وکړه چې مغصوب شئ له ماڅخه هلاک شوی دی نوصرف دغاصب په وینا سره ،چې له ماهلاک شوی دی ،به حاکم دده تصدیق نه کوي بلکه دمبالغه ی ایصال الحق الی المستحق لپاره به حاکم دی بندي کړي ترڅو چې دحاکم غالب ګمان شي چې که شئ دغاصب په لاس کې پاتی وای نوهغه به خامخابښکاره کړی وای اوس چې کله غاصب مغصوب نه ښکاره کوي نودا علامه ده چې مغصوب شئ له غاصب څخه هلاک شوی دی لهذا اوس به حاکم دمغصوب دبدل یعنی مثل یاقیمت دورکولو فیصله وکړي ولی چې ردِعین متعذردی.

**الغاز**:ای مودع یضمن بلاتعد؟

**فقل** :هومودع الغاصب اذاهلک عنده المغصوب فللمالک ان یضمنه.(الاشباه والنظائر)

(۷)والغصب فيما ينقل (۸)فإن غصب عقارا وهلك في يده لم يضمنه (۹)وما نقص بسكناه وزراعته ضمن النقصان كما في النقلي (۱۰)وإن استغله تصدق بالغلة كما لو تصرف في المغصوب الوديعة وربح (۱۱)وملك بلا حل انتفاع قبل أداء الضمان بشيء وطبخ وطحن وزرع واتخاذ سيف وإناء (۱۲)غير الحجرين (۱۳)وبناء على ساجة

**ترجمه**:اوغصب په هغه کې وي کوم چې منقول وي ،نوکه چاځمکه غصب کړه اوهغه ضائع شوه دده په لاس کې نوهغه به دهغې ضامن نه وي ،اوکوم نقصان چې پيداشي دده په اوسيدولوسره ياپه کرلوسره نوضامن دی دنقصان لکه په منقولي شيانوکې ،اوکه يې له ځمکې څخه غله (حاصلات)حاصل کړل نوصدقه به کړي داغله لکه چې که ده تصرف وکړپه مغصوب اوودیعت کې اونفع يې حاصله کړه ،اومالک گرځي داتنفاع له حلال والی څخه بغيرد ضمان له اداء کولو څخه وراندي ،په کبابولواوپخولواواوړه کولواوکرلواوتوره جوړلو سره ،اوله سروزرواوسپينوزروڅخه په علاوه کې په لوښي جوړولوسره ،دساگون په لرگي په عمارت جوړولوسره دسال په لرگي سره .

**تشريح** :(۷)دشيخينوپه نزدغصب صرف په منقولي شيانوکې متحقق کيږي په غيرمنقوله کې غصب نشته ولی چې ديد(قبضه )مالک ازاله هغه وخت وي کله چې منقولی شی په منتقل کولوسره په خپله قبضه کې راوستل شي حال دا چې په عقار(غيرمنقوله شيانو)کې نقل اوتحويل ممکن نه دی.

(۸)نوکه چاعقار(غيرمنقولي شيان مثلاځمکه يامکان وغيره )غصب کړياهغه په کوم اسماني افت سره هلاک شومثلادسيلاب په غلبه سره ځمکه ډوبه شوه نودشيخينوپه نزدپرغاصب ضمان نشته ولی چې غصب په معنی دازالة يدالمالک عن المملوک (دمالک قبضه له مملوک څخه زائلول )متحقق نه دی په دي وجه چې ځمکه پرخپل محل بلانقله قرار ده غاصب صرف مالک له ځمکې څخه ليري ساتلی دی نودافعل په مالک کې تصرف دی په عقارکې نه دی دادسې ده لکه چې مالک له خپلو څارويو څخه ليري وساتل شي ،دامام محمد رحمه الله په نزدغاصب عقارضامن دی ولی چې دغاصب دبل پرځمکه په قبضه کولوسره لامحاله دمالک قبضه زائليږي نودقبضه محقه ازاله اودقبضه مبطله ثبوت موجودشواوهمدا غصب دی لهذا غاصب ضامن دی.

**فائده**:په مفتی به قول کې په دي دول څه تفصيل دی چې که مغصوبه ځمکه دوقف ځمکه وه نودامام محمد رحمه الله قول مفتی به دی اوکه دوقف ځمکه نه وه نودشيخينوقول مفتی به دی لمافی الدرالمنتقی :فلوغصب عقارافهلک فی يده لايضمن خلافالمحمدوبقوله قالت الائمة الثلاثة ,وبه يفتی فی الوقف ,وبقولهمافی غيرالوقف وعقاراليتيم کالوقف کمافی المنح وغيرها(الدرالمنتقی :۸۱/۳)

(۹)په غصب شوي ځمکه کې چې دغاصب په فعل سره کوم نقصان راشي مثلادغاصب په اوسيدلويا دځمکې په کرلوسره نقصان راغی نوباتفاق ائمه ثلاثه غاصب دهغه ضامن دی ولی چې دااتلاف دی اودااتلاف په وجه سره دځمکې ضمان واجبيږي اودضمان اتلاف لپاره داشرط نه دی چې ځمکه دمتلف په قبضه کې وي ،لکه چې دمنقولی شيانوحکم دی چې په اتلاف سره چې په دوئ کې څومره اندازه تغيرراشي هغه به غاصب اداء کوي .

(۱۰)که غاصب له معصوب شئ څخه منفعت حاصل کړمثلامغصوب غلام ووغاصب هغه په مزدوري ولګاووچي په هغه سره غلام ته نقصان ورسید واوغاصب دهغه ضمان اداکړنوغاصب دي دده مزدوري هم صدقه کړي لکه څرنګه چي څوک په عین مغصوب یاودیعت کي کوم تصرف وکړي مثلاهغه خرڅ کړي چي په هغه سره ده ته نفع حاصله شي نودنفع دصدقه کولو حکم دی ،دادطرفینو مسلک دی ،امام ابویوسف رحمه الله فرمیي چي دمنفعت صدقه کول واجب نه دی ولی غاصب ته چي کومه نفع حاصله شوي ده هغه دده په ضمان کي حاصله شوي ده ولی چي غاصب دده ضامن دی اودده په ملک کي حاصله شوي ده ولی چي له ضمان اداء کولو څخه وروسته مضمون مملکوک ګرځي اوملک دغصب وخت ته منسوب کیږي نوکله چي نفع دده په ملک کي حاصله شوي ده نو دهغي صدقه کول واجب نه دي .دطرفینو دلیل دادی چي نفع اګرکه دده په ملک کي حاصله شوي ده مګر څرنګه چي دسبب خبیث (یعنی دغیرپه ملک کي په تصرف کولو سره )حاصله شوي ده اوقاعده ده چي کوم شئ دسبب خبیث په ذریعه سره حاصل وي دهغه صدقه کول واجب دی.

(۱۱)که مغصوبه شئ دغاصب په فعل سره داسي متغیرشي چي دهغه نوم اواکثر مقاصدزائل شي نوله هغه څخه دمغصوب منه ملک زائلیږي غاصب یي مالک ګرځي اومغصوب منه ته به تاوان ورکوي مثلامغصوب پسه ووغاصب ذبح کړاوکباب یي کړیایي پوخ کړ،یامغصوب غنم ووغاصب اوړه کړل یایي په څمکه کي وکرل .یااوسپنه وه غاصب له هغي څخه توره جوړه کړه اویاپیتل ووغاصب له هغه څخه لوښی جوړکړنوپه دي ټولو صورتونو کي داحنافو په نزد غاصب ددي مالک ګرځي ،مګرپه مذکوره ټولو صورتونو کي مغصوب منه ته له تاوان ورکولو څخه وړاندي غاصب لره له مغصوب شئ څخه فائده اخیستل استحساناحلال نه دي ولی چي دبدل له اداء کولو څخه وړاندي په اباحت انتفاع کي دغصب دروازه خلاصیږي لهذامالک دبدل په اداء کولو سره له راضی کولو وړاندي له مغصوب شئ څخه انتفاع حرامه ده.

(۱۲)البته که غاصب سپین یاسره زرغصب کړل اوله هغوڅخه یي درهم یادینار یالوښی جوړکړنودامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد دمغصوب منه ملک له دي څخه نه زائلیږي لهذامغصوب منه به همدادرهم وغیره اخلي اوغاصب لره به هیڅ نه وني ولی چي عین مال من کل الوجوه باقی دی ولی چي اوس دي ته ذهب اوفضه ویل کیږي اواوس هم داموزوني دي اواوس هم په دي کي رباجاري کیږي ،دغاصب په فعل سره په دي کي جودت پیداشوی دی کوم چي په اموال ربویه کي متقوم نه دی ،مګرصاحبین فرمایي چي غاصب ددي مالک ګرځي اوپرده دمغصوب مثل واجبیږي .

**فائده**:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمنتقی :وان جعل الفضة اوالذهب دراهم اودنانیراوآنیة لایملکه وهولمالکه بلاشئ علیه اوله عنده وعندهمایملکه الغاصب وعلیه مثله لاجل انه صنعة متقومة قلنالم یزل الاسلم ولامعظم المنافع والصنعة غیرمتقومة فی مال الربا(الدرالمنتقی:۴/۸۶)

(۱۳)قوله وبناء علی ساجة ای یملک الغاصب بلاحل انتفاع قبل اداء الضمان بناء الغاصب علی ساجة ،یعنی که چادساګون لرګی غصب کړاوپرهغه یي عمارت جوړکړنوپه دي سره دمالک ملک زائلیږي اوپرغاصب ددي قیمت

لازميږي ولې چې اوس دابل شئ جوړشوا وپه عين مغصوب ردولو كې دغاصب داسې ضرردى په كوم كې چې مغصوب منه ته هيڅ فائده نه رسيږي حال داچې دمغصوب منه دضررجبيره په ضمان سره كيږي.

(١٤) ولو ذبح شاة أو خرق ثوبا فاحشا ضمن القيمة وسلم المغصوب إليه أو ضمن النقصان (١٥) وفي الخرق اليسير ضمن نقصانه (١٦) ولو غرس أو بنى في أرض الغير قلعا وردت (١٧) وإن نقصت الأرض بالقلع ضمن له البناء والغرس مقلوعا ويكون له (١٨) وإن صبغ أو لت السويق بسمن ضمنه قيمة ثوب أبيض، ومثل السويق أو أخذهما وغرم ما زاد الصبغ والسمن

**ترجمه**: اوكه غاصب ذبح كړپسه ياېې څيري كړه جامه ډيره نوضامن دى دقيمت اومغصوب شئ دې وركړي ده ته يادې دنقصان ضمان واخلي. اوپه لږڅيرولوكې دې ضمان واخلي دنقصان. اوكه يې درختي ولګولې ياېې عمارت جوړكړدبل پرځمكه كې نوپه كښلوسره به ځمكه واپس كوي. اوكه نقصه شوه ځمكه په كښلوسره نومالك ضامن دى دكښل شوى عمارت اودرختې دقيمت اوعمارت اودرختې دمالک دې. اوكه يې جامه ورنګوله ياېې ستوپه غوړوكې ګډكړل نومالک به تاوان اخلي دسپينې جامې او دمثل ستودقيمت يادې جامه اوستوواخلي اوورديې كړي هغه چې زياتوب راغلى په رنګ سره اوپه غوړوسره.

**تشريح**: (۱۴) كه چاديوكس پسه ياكوم بل ماكول اللحم ځاروى دمالک له اجازت څخه بغيرذبح كړياېې دچاجامه ډيرڅيري كړه په كوم سره چې دجامې اكثرمنافع ختمې شوي نومالک لره اختيار دى كه يې خوښه وي نه له ده څخه دې دپسه اوجامې قيمت واخلي اومذبوح پسه اوڅيري شوي جامه دې ده ته وركړي اوكه يې خوښه وي نودنقصان په اندازه تاوان دې واخلي اوپسه اوجامه دې له ځان سره وساتي ولې چې د منفعت اتلاف دى په دې دول سره چې دباروړلو، شيدې اونسل وغيره په شان مقاصد فوت شول اودختې منافع ځكه چې اوس هم پاتې دي چې پوخ يې كړي اوويې خوري. همدا شان جامه ده چې عين جامه اوځينې منافع هم پاتې دي لهذا مالک لره دواړه اختياره شته.

(۱۵) اوكه چادبل چاجامه لږڅيري كړه نوځكه چې عين مال په هرقسم سره قائم دى صرف په هغه كې يوعيب پيداشولهذا هغه به دعيب په اندازه دنقصان ضامن وي اوجامه به دمالک په ملک كې پاتې وي.

(۱۶) كه غاصب ځمكه غصب كړه اوپه هغه كې درختې شنې كړي ياېې عمارت جوړكړنوغاصب ته به وويل شي چې له ځمكې څخه درختې وكاږه اوعمارت ړنګ كړه اوخالي ځمكه مالک ته واپس كړه ولې چې ځمكه حقيقة نه غصب كيږي نودمالک ملک اوس هم پاتې دى غاصب ځمكه مشغوله كړې ده لهذا غاصب ته به ويل كيږي چې ځمكه فارغه كړه.

(۱۷) كه دغاصب ددرختوپه كښلواوعمارت په ړنګولوسره ځمكې ته نقصان رسيدونومالک ته اختيار دى چې دى غاصب ته دكښل شويودرختواوړنګ شوي عمارت قيمت وركړي نوعمارت اودرختې به له ځمكې سره دمالک ملک شي اودا په دې وجه چې په دې كې ددواړورعايت دى اوله دواړو څخه دفع ضرردى.

(۱۸) كه غاصب دبل چاجامه غصب كړه اورنګ يې وركړياېې ستوغصب كړاوپه غوړوكې يې ګډكړل نومالک لره اختيار دى كه يې خوښه وي نوله غاصب څخه دې دسپينې جامې قيمت اودخپل ستومثل واخلي اوغصب شوي جامه اوستودې دې غاصب ته وركړي اوكه يې خوښه وي نوغصب شوې جامه اوستودې

واخلي اوکوم رنګ اوغوړي چې غاصب زيات کړي دي دهغه دي غاصب ته توض ورکړي ولی چې په دي کې دجانبينو رعايت دی.

## فصل

### دافصل له غصب سره متعلق دمتفرقومسائلوپه بيان کې دی

دمصنفينوعادت دادی چې په سابقه ابوابو کې چې کومې مسائلي له بيان څخه پاتې کيږي هغه د فصل فی المتفرقات ،ياباب المتفرقات ترعنوان لاندي بيانوي ،دلته هم زمورمصنف رحمه الله له غصب سره متعلق همداسي څومسائلي بيان کړي ددي.

(۱) لو غيّب المغصوب وضمن قيمته ملكه (۲) والقول في القيمة للغاصب مع يمينه والبينة للمالك (۳) فإن ظهر وقيمته أكثر، وقد ضمنه بقول المالك أو ببينته أو بنكول الغاصب فهو للغاصب، ولا خيار للمالك (۴) وإن ضمنه بيمين الغاصب فالمالك يمضي الضمان أو يأخذ المغصوب ويرد العوض

**ترجمه**: که غاصب غائب کړمغصوب شئ اوضمان يې ورکړدهغه دقيمت نوهغه يې مالک ګرځي ،اوپه قول قيمت کې دغاصب قول معتبردی دهغه له قسم سره اوبينه دمالک معتبرده ،بياکه هغه ښکاره شواوقيمت يې زيات وواوده دهغه ضمان ورکړی وي دمالک دقول يابينه ياپه خپله دغاصب دانکارپه وجه سره نوهغه شئ دغاصب دی اواختيارنشته مالک ته ،اوکه ده دهغه ضمان ورکړی وي په خپله دغاصب پرقسم نومالک دي همداضمان برقراروساتي يادي واخلی مغصوب شئ اوواپس دي کړي عوض.

**تشريح**: (۱) که غاصب کوم شئ غصب کړاوغائب يې کړاومالک ته يې دهغه شئ قيمت ورکړنوغاصب ددي مغصوب شئ مالک ګرځي ولی چې مالک (مغصوب منه) خودشئ مغصوب دبدل (يعنی قيمت) بکماله مالک شوی دی اومبدل (يعنی شئ مغصوب) له ملک څخه دبل ملک طرف ته دمنتقل والی صلاحيت لري لهذامبدل اوس دمغصوب منه له ملک څخه په منتقل کيدلوسره دغاصب ملک ته راځي ترڅوبدلان دشخص واحد (مغصوب منه) په ملک سره جمع نه شي.

(۲) بياکه دمالک اوغاصب په منځ کې دمغصوب شئ دقيمت په باره کې اختلاف واقع شو (مالک ډيرقيمت يادوي اوغاصب لږ) اوله دواړوسره بينه نه وي نوقول به دغاصب مع اليمين معتبروي ولی چې مالک دزيادت مدعی دی اوغاصب له دزيادت څخه انکارکوي اودبينه دنه وجودپه وخت کې قول دمنکرمع اليمين معتبروي .ليکن که مالک اوغاصب دواړوپرخپله مدعی باندي ګواه پيش کړل نودمالک ګواه معتبردي دغاصب ګواه به معتبرنه وي ولی چې غاصب دزيادت پرنفی باندي بينه قائموي اوحال داچې پرنفی بينه معتبره نه ده.

(۳) بياکه شئ مغصوب کوم وخت له غاصب سره ښکاره شواوددهٔ قيمت له هغه مقدارڅخه زيات ثابت شوکوم چې غاصب دتاوان په ډول سره مالک ته ورکړی وواوهغه تاوان هم غاصب دمالک دقول مطابق يادمالک دګواه مطابق ياپه خپله دغاصب دانکاردقسم په وجه سره ورکړی وونوپه دي دري واړه

صورتونوکې شئ مغصوب دغاصب ملک ګرځي مالک ته دقیمت دواپس کولو اودشئ مغصوب داخیستلو اختیارنشته په دې وجه چې مالک دهمدې مقدارمدعي وواوپرهمدې راضي شوی وو.
(۴)لیکن که صورت داسې پیښ شوی وو چې غاصب دخپل قول مطابق په قسم اخیستلوسره تاوان اداء کړی وونواوس مالک لره اختیاردی که یې خوښه وي نوشئ مغصوب دې واخلي اودغاصب له طرفه ورکړل شوی قیمت دې واپس کړي اوکه یې خوښه وي نوهمدا قیمت دې برقراروساتي اوشئ مغصوب دې غاصب ته وربېږدي داختیاربه دې وجه دی چې په دې مقدارسره دمالک رضاپوره نه وه ولې چې دی دزیادت مدعي وومګردعدم حجة په وجه سره یې کم اخیستی وو.

(د)وَإِنْ بَاعَ الْمَغْصُوبَ فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ نَفَذَ بَيْعُهُ، وَإِنْ حَرَّرَهُ فَلَمْ ضَمَّنَهُ لَا(٦)وَزَوَائِدُ الْمَغْصُوبِ أَمَانَةٌ(٧)فتضمن بالتعدي أو بالمنع بعد طلب المالك(٨)وَمَا نَقَصَتِ الْجَارِيَةُ بِالْوِلَادَةِ مَضْمُونٌ وَيُجْبَرُ بِوَلَدِهَا(٩)وَلَوْ زَنَى بِمَغْصُوبَةٍ فَرُدَّتْ فَمَاتَتْ بِالْوِلَادَةِ ضمن قيمتها، ولا تضمن الحرة

**ترجمه**:اوکه غاصب خرڅ کړ مغصوب شئ بیاتاوان واخیستی له ده څخه مالک نونافذیږي دده بیع اوکه یې ازادکړبیامالک له ده څخه تاوان واخیستی نوازادي صحیح نه ده.دمغصوب زیادت امانت دی.نوضامن کیږي په تعدی کولویاپه منع کولوباندې دمالک له غوښتني څخه وروسته،اوکوم نقصان چې پیداشوپه مینځه کې دولادت په وجه سره هغه مضمون دی اوپوره کیږي به ددې دماشوم په ذریعه.اوکه یې زنا وکړه له مغصوبې سره بیاهغه ردکړای شوه اوهغه مړه شوه دولادت په وجه سره نوضامن دی دهغې دقیمت اوضامن نه دی دازادې ښځې.

**تشریح**:(۵)که چادبل چاغلام غصب کړاوخرڅ یې کړبیامالک له ده څخه تاوان واخیستی نودغاصب بیع نافذیږي اوکه یې هغه ازادکړبیامالک تاوان واخیستی نودغاصب ازادي نه نافذیږي وجه ده فرق داده چې دغاصب ملک ناقص وي ولی چې ثابت بالضرروة دی لهذاهغه دخرڅولوپه حق کې خومعتبروي مګردازادي په حق کې معتبرنه وي همداوجه ده چې مکاتب په خپله ګټه کې اخیستل اوخرڅول کولی شي مګردخپلې ګټې غلام نه شي ازادولی.
(۶)که مغصوبه شئ په کومه ذریعه له غاصب سره زیات شي مثلاً دمغصوبه مینځې.پسه یاکوم بل څاروي بچی پیداشي یاپه مغصوب باغ کې میوه پیداشي داټول له غاصب سره امانت دي نوکه داشئ له غاصب سره هلاک شي نوپرغاصب یې تاوان نه لازمیږي ولی چې غصب خودبل پرمال په دې ډول قبضه کولوته ویل کیږي په کومې سره چې دمالک قبضه زائله شي کمامرحال داچې په مذکوره بالاشیانوباندې خودمالک قبضه بالکل راغلې نه وه لهذاداشیان مغصوب نه دي بلکه په یدغاصب کې امانت دي.
(۷)لیکن که په دې شیانوکې دغاصب له طرف څخه تعدی متحققه شوه مثلاً غاصب هلاک کړل یایې وخوړل یایې خرڅ کړل اویامالک طلب کړل مګرغاصب ورنه کړل نوپه دې دووصورتونوکې که داشیان هلاک شول نوغاصب ضامن دی ولی چې دمنع اوتعدي په وجه سره غاصب ددې شیانوهم غاصب شمارل کیږي.
(۸)که غاصب دچامینځه غصب کړه اودهغې له مولی اوزوج څخه ماسواله بل چاڅخه ماشوم وزیږید نودولادت په وجه سره چې دمینځې په قیمت کې کوم نقصان راشي دهغه به غاصب ضامن وي مګردمینځې

دانقصان به په ماشوم پوره كيږي په دي دول سره څومره نقصان چې دمينځې په قيمت كې راغلى دى كه ددي ماشوم دهمدومره قيمت وي نوپر غاصب څه ضمان نه شته او كه ماشوم دكم قيمت وي نودده قيمت په اندازه به له غاصب څخه ضمان ساقطيږي ولى چې دلته دزيادت اونقصان دواړوسبب (يعني ولادت ياقرارنطفه) متحددى لهذا ولادت نقصان نه شمارل كيږي په دي وجه موجب ضمان هم نه دى لكه چې چاغه مينځه غصب كړي اوهغه دنګره شي .له دي وروسته بيرته چاغه شي نودنقصان دپوره كيدلوپه وجه سره ضامن نه دى .
(۹)كه چادبل چامينځه غصب كړه اوله هغې سره يې زناوكړه چې په دي سره داحامله شوه بياده مالك ته واپس كړه له مالك سره دادولادت په دوران كې دولادت په وجه سره مړه شوه نوغاصب به ددي دهغه قيمت ضامن وي كوم چې دحامله كيدلوپه ورځ وو ولى چې غاصب په داسې حال كې غصب كړه چې په مينځه داسبب تلف موجودنه وواوپه داسې حال كې يې واپس كړه چې دتلف سبب موجوددى نوپركوم طرزچې ده غصب كړي وه پرهغه طرزيې واپس نه كړه لهذا غاصب ضامن دى ،اوكه چادمينځې په شان ازاده ښځه ونيوله اوزنايې ورسره وكړه اووروسته دماشوم دزيږيدلوپه سبب سره هغه ښځه مړه شوه نوزناكونكى به په دي باره كې هيڅ تاوان نه اداء كوي ولى چې غصب په اموالوكې وي اوتاوان هم په اموالوكې وي اوازاده ښځه مال نه ده چې ددي پرنيونكى تاوان لازم شي هودزناسزا وركول بله خبره ده .

(۱۰)ومنافع الغصب وخمر المسلم وخنزيره بالاتلاف (۱۱)وضمن لو كانا للذمي (۱۲)وان غصب خمرا من مسلم فخللها او جلد ميتة فدبغ فللمالك اخذهما ورد مازاد الدباغ (۱۳)وان اتلفهما ضمن الخل فقط (۱۴)ومن كسر معزفا او اراق سكرا او منصفا ضمن وصح بيع هذه الاشياء (۱۵)ومن غصب ام ولد او مدبرة فماتت ضمن قيمة المدبرة لا ام الولد

**ترجمه** :او(ضامن نه دى )دمغصوب شئ دمنافعو ،دمسلمان دشرابو اوده دخنزيرپه تلف كولوسره .اوضامن دى كه دذمي وو .اوكه يې غصب كړل له مسلمان څخه شراب بيايې له هغو څخه سركه جوړه كړه يايې غصب كړدمرداري پوست (څرمن )بيايې هغه ته دباغت وركړنومالك لره جائزدى چې دادواړه واخلي اوواپس كړي كوم قيمت چې زيات شوى دى په دباغت سره .اوكه غاصب دادواړه تلف كړل نوضامن دى صرف دسركې .اوكوم كس چې مات كړي دغزلوآلې ياتوى كړي سكر(دمستى شربت )يامنصف نوضامن دى اوصحيح ده بيع ددي شيانو .اوچاچې غصب كړه ام ولده يامدبره مينځه اوهغه مړه شوه نوضامن دى دمدبرې دقيمت نه دام ولدي دقيمت .

**تشريح** :(۱۰)قوله ومنافع الغصب اى لايضمن منافع الغصب .يعني غاصب دمغصوب شئ دمنافعوضامن نه دى مثلا :يوچايې داسې غلام غصب كړكوم چې نانوايې ووتريوي مياشتې پوري يې له ځان سره معطل وساتو يايې په خدمت مصروف كړبيايې واپس كړنوغاصب دده ددي يوې مياشتې دمنافعوضامن نه دى ولى چې دمنافع دغاصب په ملكيت پيداشوي دي اوانسان په خپل ملكيت كې دپيداشوى شئ ضامن نه وي .وكه كوم مسلمان ياذمي دمسلمان شراب ياخنزيرتلف كړنوضامن نه دى ولى چې خمر او خنزير دمسلمان په حق كې مال نه دي په خپله ذى مأموربالاتلاف دى .البته كه دغاصب په استعمالولوسره په مغصوب شئ كې نقصان راغلى نوغاصب دهغه ضامن دى ولى چې ده دعين مغصوب خينې اجزاء ضائع كړي دي .

(۱۱)قوله وخمر المسلم الخ ای لایضمن خمر المسلم الخ ،یعنی که غاصب دمسلمان شراب یاخنزیر تلف کړنو غاصب ضامن نه دی ولی چې شراب او خنزیر دمسلمان په حق کې مال متقوم نه دي ،او که مسلمان دکوم ذمی شراب یادوه خنزیر تلف کړنو مسلمان دهغه ضامن دی ولی چې خمراوخنزیر دذمی په حق کې مال دي نو خمراوخنزیر دذمیانو په حق کې داسې دي لکه زموږ په حق کې سرکه اوپسه .نولکه څرنګه چې غاصب دمسلمان دسرکې اوپسه په غصب کولو او یاتلف کولو سره ضامن کیږي همداشان به دذمی دشرابو او خنزیر په تلف کولو سره هم ضامن وي .

(۱۲)که چاد کوم مسلمان شراب غصب کړل اوله هغو څخه یې سرکه جوړه کړه یعنی له سایې څخه یې په ګرمې کې اوله ګرمې څخه یې په سایه کې په ایښودلو سره سرکه جوړه کړه یایې دمردارپوستکی له مسلمان څخه غصب کړ یایې هغه ته دباغت ورکړنو ددي دواړو شیانو اخیستل مالک ته جائز دي که مالک سرکه اخیستله نوغاصب ته له څه ورکولو بغیر یې اخیستلی شي او که دپوستکی داخیستلو صورت وونو په دباغت سره چې دپوستکی څومره په قیمت کې څومره زیادت راغلی دی هغه به غاصب ته واپس کوي.وجه ده فرق داده چې شراب سرکه جوړول هغولره پاکول دي لکه نجسه جامه پریمنځل نو په سرکه جوړولو سره مالیت ثابت نه شواوداصل مالک پرملک باندي باقی پاتې شوه په دي وجه به له څه ورکولو بغیر اخلي په خلاف ددباغت مذکوره چې دهغه په وجه سره په پوستکی کې دغاصب یو قیمتي مال ګډشو(په دي شرط چې دباغت یې په کوم قیمتي شئ سره کړی وي )په دي وجه به دومره مقدار واپس کوي څومره چې په دباغت سره زیات شوی دی.

(۱۳)اوکه دادواړه غاصب تلف کړل نو دامام صاحب په نزد غاصب صرف دسرکې ضامن دی یعنی دهغې قیمت به ورکوي ولی چې سرکه مال متقوم دی او دمالک پرملک پاتې ده لهذا دهغې په تلف کولو سره غاصب ضامن دی ،غاصب دپوستکی ضامن نه دی ولی چې دمردارپوستکی مال متقوم نه دی البته دغاصب په فعل سره په هغه کې تقوم پیداشوی دی یعنی غاصب په هغه کې دخپل قیمتی مال په استعمالولو سره هغه متقوم جوړ کړی دی لهذا دتقوم ترحده پوستکی دغاصب دمال اوفعل تابع دی او دغاصب مال او فعل مضمون نه دي یعني په تلف کولو سره پرغاصب ضمان نه راځي نو دهغه تابع یعنی پوستکی به هم مضمون نه وي ،حال داچې دصاحبینو په نزد غاصب دمدبوغ پوستکی دقیمت هم ضامن دی ولی چې هغه هم دمالک پرملک پاتې دی.

(۱۴)که چادبل دغزلو آلات (مثلاستار یاسارنګی وغیره )مات کړل یایې دچهوارون شراب یامنصف شراب (منصف هغه شرابو ته ویل کیږي کوم چې دومره پاخه کړای شي چې نیمایې پاتې شي )توی کړل نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدبه دی تاوان ورکوي اوددي شیانو بیع جائزده ،دصاحبینو اوعامو علماوو په نزددی ضامن نه دی اوددي شیانو بیع جائزنه ده ولی چې داشیان دمعصیت لپاره وي ماتونکی ددي په ماتولو سره دامربالمعروف حق اداء کړی دی ﴿لقوله ﷺ من رای منکم منکرا فلیغیر بیده فان لم یستطع فبلسانه فان لم یستطع فبقلبه وذالک اضعف الایمان ﴾دامام صاحب دلیل دادی چې له دي شیانو څخه په جائزه طریقه سره فائده اخیستل کیدای شي

لهذا في نفسه دا شيان قيمتي شيان دي اګر که په غلط استعمال سره له دوئ څخه ناجائزه فايده اخيستل کيږي او په غلط استعمال سره دشئ ماليت نه باطليږي لهذا ماتونکی ضامن دی.

**فائده:** دصاحبينو قول راجح دی لمافي الدرالمختار: وقالا لايضمن ولايصح بيعها وعليه الفتوى ملتقى ودرر وزيلعي وغيره واقره المصنف ,وقال العلامة ابن عابدين: (قوله وقال الخ) هذا الاختلاف في الضمان دون اباحة اتلاف المعازف وفي مايصلح لعمل اخر والالم يضمن شيئا اتفاقا وفيما اذا فعل بلا اذن الامام والا لم يضمن اتفاقا وفي غير عود المغني وخابية الخمار والا لم يضمن اتفاقا لانه لولم يكسرها عاد لفعله القبيح وفيما اذا كان لمسلم فلو لذمي ضمن اتفاقا قيمته بالغا مابلغ وكذا لو كسر صليبه لانه مال متقوم في حقه قلت لكن جزم القهستاني وان الكمال ان الذمي كالمسلم فليحرر (الدرالمختار مع الشامية: ۵/۱۴۹) ,وقال العلامة الحصكفي: وقالا لايضمن اصلا ولايجوز بيعها وعليه الفتوى لكثرة فساد الزمان كما في الكافي والمنح والدرر والغرر وغيرها ,وكذا القهستاني والبرجندي وابن الملک وغيرهم بزيادة ان هذا الاختلاف في الضمان دون اباحة اتلاف المعازف الخ (الدرالمنتقى: ۳/۹۷)

(۱۵) که چادبل چا ام ولده مينځه يامدبره مينځه غصب کړه بيا هغه دغاصب په لاس کې مړه شوه نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دمدبري دقيمت ضامن دی او دام ولدي دقيمت ضامن نه دی .دصاحبينو په نزد دواړو دقيمت ضامن دی ولی چې مدبره خو بالاتفاق مال متقوم دی په دي وجه به ددي تاوان ورکوي او ام ولده دصاحبينو په نزد دمدبري په شان متقومه ده په دي وجه به ددي تاوان هم ورکوي .حال دا چې دامام صاحب په نزد ام ولده متقومه نه ده په دي وجه ددي تاوان نشته.

**فائده:** دصاحبينو قول راجح دی لماقال ابراهيم ابن محمد الحلبي: ولو غصب ام ولد فماتت في يده فلاضمان عليه عندالامام لعدم تقومها عنده خلافا لهما فان عندهما يضمن قيمتها لتقومها عندهما ,وبقولهما قالت الائمة الثلاثة (مجمع الانهر: ۳/۹۸) .وقال الشيخ عبدالحكيم الشهيد: الراجح قولهما وهو قول الائمة الثلاثة وعليه الفتوى كذا صرح به في المبسوط للامام شمس الائمة السرخسي وابن الهمام في فتح القدير (هامش الهداية: ۳/۳۸۶)

## كِتَابُ الشُّفْعَةِ

### دا کتاب دشفعې په بيان کې دی

شفعه له شفع څخه مأخوذه ده لغة ديو ځای کولو په معنی ده دوتر (واحد) ضد ده ,او فيمانحن فيه کې هم ځرنګه چې شفيع مأخوذ (يعنی مشفوعه ځمکه) له خپل ملک سره يو ځای کوي په دي وجه سره دي ته شفعه ويل کيږي.

شفعه شرعا تملک العقار جبرا على المشتري بماقام عليه ,يعنی دا خيستل شوي ځمکې جبرا په هغه قيمت سره مالک کيدل په کوم قيمت چې مشتري ته لويدلي ده مثلا چا خپل کور پر کوم اجنبي باندي خرڅ کړ بيا دبائع دکور څنګ ته همسايه دشفعه دعوی وکړه چې ددي کور حقدار زه يم نو دهمسايه دشفعه دعوی به قبليږي او له مشتري څخه به دا کور همسايه ته په مثل ثمن سره ور اخيستل کيږي.

شفيع هغه کس دی کوم ته چې حق شفعه حاصل دی مشفوع هغه ځمکه ده له کومې سره چې حق شفعه تعلق نيولی وي او مشفوع به دشفيع هغه ملک دی دکوم په وجه سره چې ده ته حق شفعه حاصل دی.

دكتاب شفعه له كتاب الغصب سره مناسبت دادى چې په غصب او شفعه دواړوكې دغير دمال مالک والى بغيرله رضامندي دهغه څخه متحقق كيږي بيا غصب اګركه غيرمشروع عمل دى مګر دغصب داحكامو دكثرت په وجه سره دده دمعرفت ضرورت ډيروو په دي وجه يې دغصب احكام مقدم ذكر كړل .

(١) هي تملك البقعة جبرا على المشتري بما قام عليه (٢) وتجب للخليط في نفس المبيع ثم للخليط في حق المبيع كالشرب والطريق إن كان خاصا ثم للجار الملاصق (٣) وواضع الجذوع على الحائط جار والشريك في خشبة على الحائط (٤) على عدد الرؤوس (٥) بالبيع وتستقر بالإشهاد (٦) وتملك بالأخذ بالتراضي أو قضاء القاضي

**ترجمه** :هغه مالک كيدل دي دځمكې پرمشتري باندي په جبر كولو سره په دومره باندي په څومره چې مشتري ته لويدلي ده ،او ثابتيږي شريک فى نفس المبيع ته بيا شريک فى حق المبيع ته لكه شرب او لاره كه داخاص وو بيا همسايه ته كوم چې متصل وي ،او پر ديوال لرګې اېښودونكى او كوم چې شريک وي پر ديوال په اېښودل شوي لرګي كې همسايه دي ،دشفيعانو دشمار مطابق ،په بيع كيدلو سره او مستحكم كرځي په ګواه پيښولو سره ،او په ملک كې راځي ځمكه په رضا سره يا دقاضي په قضاء سره .

**تشريح** :(١)مصنف رحمه الله دشفعه اصطلاحي تعريف په دي ډول كړى دى چې دځمكې كومه حصه چې مشتري ته په كوم قيمت لويدلي ده هغه قيمت مشتري ته په جبراوركولو سره دهغي مالكيدلوته شفعه ويل كيږي ،تملک ،بمنزله جنس دى كوم چې تملک عين او تملک منافع دواړوته شامل دى ،اوبقعة ،فصل اول دى له تملک منافع څخه احترازوشو او جبراً فصل ثاني دى له بيع څخه احترازوشولى چې بيع جبراً نه وي بلكه بالتراضي وي .

(٢)په كومه ځمكه كې حق شفعه ترټولو دمخه هغه كس ته واجبيږي (له وجوب څخه مراد ثبوت دى ولي چې دحق شفعه په پرېښودلو سره څوك ګناهګاريږي په دي وجه چې شفعه شفيع لره واجب ده پر شفيع واجب نه ده) كوم چې په نفس مبيع كې شريک وي ولى چې دنبى كريم ﷺ ارشادمبارک دى چې چاچې ځمكه دخپل شريک له اجازت څخه بغير خرڅه كړه نو دده شريک دهغې ډيرحقداردى ،كه له بائع سره په نفس مبيع كې څوک شريک نه وو يا شريک خوو مګر هغه دشفعي دعوى ونه كړه نو بيا هغه كس ته ثابتيږي كوم چې په حق مبيع كې شريک وي لكه چې څوک دځمكې په اوبو او لاره كې شريک وي مثلاً دواړوته له يوه ځاه څخه اوبه راځي يا دادواړو لاره يوه وي ،بيا كه په حق مبيع كې هم شريک نه وو يا هغه هم دشفعي دعوه ونه كړه نو بيا هغه همسايه ته حق شفعه ثابتيږي چې له مشفوعه ځمكې سره دده ځمكه متصله وي ولى چې دنبى كريم ﷺ ارشادمبارک دى ﴿ الشريک احق من الخليط والخليط احق من الشفيع ﴾ (په نفس مبيع كې شريک په حقوق مبيع كې له شريک څخه ډيرحقداردى او په حقوق مبيع كې شريک له همسايه څخه ډيرحقداردى ).

**فائده**:كه يو كس صرف شريک فى المبيع دى او بل كس شريک فى المبيع هم دى او شريک فى الحقوق هم دى نو دادواړه برابردي لان الاعتبار لقوة الدليل لا لكثرته (احسن الفتاوى :۷/۳۵۸)

**فائده**:كه په كوم ځاى كې ځمكه خرڅه شي يو كس دشريک فى الشرب كيدلو په وجه سره دشفعه دعوى وكړي او دوهم دشريک فى الطريق كيدلو په وجه سره دشفعه دعوى وكړي نو شريک فى الشرب مقدم دى له

شریک فی الطریق څخه لمافی الشامیة :ولو شارکه احدفی الشرب وآخرفی الطریق فصاحب الشرب اولی قال فی الدرالمنتقی (۵/۱۵۵)

(۳)دکورپردیوال باندي لرګي اينبودونکی اودکورپردیوال باندي په اينبودل شوي لرګي کې شریک کس شریک فی الدارنه شمارل کیږي لهذاهغه دشرکت په وجه سره شفیع نه دی هوهمسایه شمارل کیږي لهذاداسې کس دجوارپه وجه سره شفیع دی ولی چې شرکت هغه دی کوم چې په ځمکې شریک وي اوپه لرګیانواینبودلوسره په ځمکې کې شریک نه ګرځي نوکه کوم کس په همدي کورکې شریک وي یاپه لاره کې شریک وي نوهغه دلرګیانوپه اينبودونکی باندي مقدم دی.

(۴)قوله علی عددالرؤس ای تجب الشفعة علی عددالرؤس ،یعنی که په کومه مشفوعه ځمکه کې څودمساوي درجې لرونکي شفیع ګان جمع شي نومشفوعه ځمکه به ددوئ په منځ کې ددوئ دعددرؤس په مطابق تقسیمیږي یعنی څومره شفیع ګان چې دي ځمکه به په هغومره حصوویښل کیږي ولی چې سبب استحقاق یعنی اتصال ملک په ټولوکې سره برابردی، لهذااختلاف املاکواعتباربه نه کیږي مثلایوکورددریوکسانوپه منځ کې مشترک دی په کوم کې چې نصف دیوه اوثلث ددوهم اوسدس ددریم دی ،اوس صرف صاحب نصف خپله حصه خرڅه کړه نوباقی شرکاء که شفعه غواړي نوهریوبه دخرڅې شوي حصي دنصف مستحق وي دمقدارملک یعنی مابه الشفعة اعتباربه نه کیږي ،حال داچې دامام شافعي رحمه الله په نزددهریوه دسهامونه مقداربه حق شفعه وي نوپه مذکوره بالاصورت کې به صاحب ثلث ددوثلثانومستحق وي اوصاحب سدس به دیوه ثلث مستحق وي.

(۵)قوله بالبیع ای تجب الشفعة بالبیع ،یعنی دحق شفعه ثبوت له عقدبیع څخه وروسته کیږي ولی چې عقدبیع دشفعه لپاره شرط دی اوشرط پرمشروط مقدم وي ،اوپه دي کې استحکام هغه وخت پیداکیږي کله چې شفیع ته دبیع دعلم په راتلوسره سمدستی هغه دشفعي طلب وکړي اوپرخپله دعوی شفعه باندي ګواه قائم کړي مثلاخلګوته ووایې چې تاسې ګواه اوسئ چې ماپه دي مکان کې شفعه طلب کړي دي وجه داده چې شفعه کمزوری حق دی کوم چې اعراض سره باطلیږي نودشفعي طلب اوپرهغه ګواه جوړول ضروري دی ترڅوچې دامعلوم شي چې شفیع لره په خپل دي حق کې رغبت شته له دي څخه معرض نه دی.

(۶)شفیع دمشفوعه ځمکې هغه وخت مالک جوړیږي کله چې مشتری په خوښی سره مشفوعه ځمکه شفیع ته وسپاري یاقاضی دشفیع په حق کې په فیصله کولوسره مشفوعه ځمکه شفیع ته حواله کړي ولی چې دمشتری ملک تام شوی دی په دي وجه اوس مشفوعه ځمکه دشفیع طرف ته نه منتقل کیږي مګردمشتری په رضاسره یاد قاضی په قضاء سره.

## باب طلب الشفعة والخصومة فيها

دا باب دشفعې دطلب کولواوپه دي کې دخصومت کولوپه بیان کې دی

څرنګه چې شفعه له طلب اوخصومت څخه بغیرنه ثابتیږي په دي وجه مصنف رحمه الله شفعه اودطلب کیفیت په دي باب کې بیان کړی دی.

(١) فإن عَلِمَ الشَّفِيعُ بالبيعِ أَشْهَدَ في مَجْلِسِهِ على الطَّلَبِ ثُمَّ على البائعِ لو في يَدِهِ (٢) ثُمَّ لا تَسْقُطُ بالتأخيرِ (٣) فإن طَلَبَ عندَ القاضي سألَ المُدَّعى عليه فإن أَقَرَّ بِمِلْكِ ما يَشْفَعُ بِهِ (٣) أو نَكَلَ أو بَرْهَنَ الشَّفِيعُ سألهُ عن الشِّرَاءِ فإن أَقَرَّ بهِ أو نَكَلَ أو بَرْهَنَ الشَّفِيعُ قَضَى بها

**ترجمه**: كه علم حاصل شي شفيع لره دبيع نو ګواه دي جوړكړي په خپل همدي مجلس كې پر طلب شفعه باندي ياپربائع باندي كه دده په قبضه كې وي ياپرمشترى باندي يا له څمكي سره ،بياشفعه نه ساقطيږي په تاخيرسره ،نوكه يې طلب كړه دقاضي په مخكې نوسوال دي وكړي قاضي له مدعى عليه څخه نوكه هغه اقراروكړ ددي څمكي دملك دكومې په وجه سره هغه شفعه طلب كوي ،ياپې انكاروكړياشفيع بينه پېښ كړه نوسوال دي وكړي له ده څخه دخرڅولو په متعلق نوكه ده اقراروكړ ددي ياپې انكاروكړيابينه پېښ كړه شفيع نوحكم دي وكړي قاضي پردي .

**تشريح**: (١) په شفعه كې شفيع لره دري قسمه طلب (غوښتنه) ضروري ده يوداچې كله شفيع په دي خبرشي چې زماشريک ياهمسايه خپل مكان خرڅ كړى دى نودى دي اول كارداوكړي چې په همدي مجلس كې دي پرطلب شفعه باندي ګواه جوړكړي (مرادفوراً شفعه طلب كول دي ګواه جوړول ضروري نه دي) دي ته طلب مواثبت ويل كيږي .دوهم طلب دادى چې له اول طلب څخه وروسته كه څمكه تراوسه دمالک په لاس كې وي نوپرمالک دي ګواه قائم كړي يادي پرمشتري ګواه قائم كړي يادي له څمكې سره ګواه قائم كړي دي ته طلب تقريراوطلب اشهادويل كيږي ددي صورت دادى چې شفيع ګواهانوته ووايي چې فلانكى كس دامكان اخيستى دى ماته حق شفعه حاصل دى اومايه مجلس علم كې شفعه طلب كړي ده اوس يې هم طلبوم تاسې پردي ګواه اوسئ ،دريم طلب دادى چې له دوهم طلب څخه وروسته دي قاضي ته ورشي حق شفعه دي طلب كړي دي ته طلب خصومت ،طلب تمليک ،اوطلب استحقاق ويل كيږي ،ددي صورت دادى چې شفيع قاضي ته ووايي چې فلانكى كس په فلانكى ښاركې كوراخيستى دى دكوم چې حدود دادي اوزه په فلانكى سبب سره ددي شفيع يم لهذا ته حكم ورته وكړه چې دى داكورماته وسپاري ،مصنف رحمه الله په ،اشهد فى مجلسه على الطلب سره داول قسم طرف ته اشاره فرمايلې ده ،اوپه ،ثم على البائع الخ، سره يې ددوهم قسم طرف ته اشاره كړي ده اوپه ،فان طلب عند القاضي، سره يې ددريم قسم طرف ته اشاره كړي ده .

(٢) څرنګه چې له طلب ثانى څخه وروسته په شفعه كې ټينګښت پيداكيږي لهذا له دي څخه وروسته كه يې طلب ثالث مؤخركړنودامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدحق شفعه نه ساقطيږي ولى كوم حق چې له ثبوت او استقرارڅخه وروسته ترڅوچې ساقط نه كړاى شي په خپله نه ساقطيږي وعليه الفتوى .دامام محمد رحمه الله په نزدكه يې په طلب ثالث كې تريوي مياشتې پوري بلاعذره تأخير (ځنډ) وكړنوشفعه ساقطيږي ولى چې دزيات تاخيرپه صورت كې دمشترى ضردى په دي وجه چې هغه به دشفعي ددعوى له ويري څخه په دي كې تصرف نه شي كولى .

**فائده**: دامام محمد رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار: وقيل يفتى بقول محمدان اخره شهرابلاعذربطلت كذافى الملتقى يعنى دفعاللضرر قلنادفعه يرفعه للقاضى ليامره بالاخذاوالترک ،قال العلامة ابن عابدين: (قوله قلناالخ) اى فى الجواب عن ذالک وظاهر كلام الشارح ان يميل الى ظاهر الرواية كالمصنف وهوخلاف ظاهر كلامه فى شرحه على الملتقى والجواب عنه ان ليس كل أحديقدرعلى المرافعة

وقد لايخطر بباله ان دفع الضرر بذالک خصوصا بعد ماذا بلى اوغرس فان الضرر اشدو للشاهدات غير مرة من جانب طلبه بعد عدة سنين لقصد الاضرار وطمعا فى غلاء السعر فلا جرم كان سدهذا الباب اسلم والله اعلم (الدر المختار مع الشامية: ۱۵۹/۵)

(۳) کله چې شفيع قاضی ته راشي او دعوی وکړي چې مثلاً زيد فلانکی کور اخيستی دی زه په فلانکی سبب سره دهغه شفيع يم په دي وجه زه طلب شفعه کوم نو قاضی به له مدعی عليه (يعنی مشتری) څخه پوښتنه وکړي ددي ځمکې يامکان دملکيت په باره کې دکوم په وجه سره چې شفيع دشفعه مطالبه کوي چې ايا واقعی دادشفيع ملک دی ؟نو که مشتری دشفيع دملکيت اقرار وکړنو په دي ځمکه يامکان باندي دشفيع ملکيت ثابتيږي ،اوکه مشتری اقرار ونه کړنو بيابه ده ته په دي ډول قسم ورکول کيږي چې والله زه نه يم خبر چې شفيع مالک دی دهغه دکوم چې دده دعوی کړي ده يعنی دهغې ځمکې يامکان دکوم په وجه سره دی دشفعه دعوی کوي .

(۴) اوکه مشتری له مذکوره بالاقسم څخه انکار وکړ يا شفيع پر مذکوره بالادعوی باندي ګواه پيش کړل نو په دي دووصورتونوکې هم دکومې ځمکې يامکان په وجه سره چې شفيع دعوی کوي پر هغه دشفيع ملکيت ثابتيږي ،له دي څخه وروسته به قاضی له مدعی عليه (مشتری) څخه پوښتنه وکړي چې آيا واقعی تامذکوره مکان اخيستی دی؟که هغه اقرار وکړي نو شفيع ته حق شفعه حاصليږي ،اوکه مشتری انکار وکړنو شفيع ته به وويل شي چې ګواه پيش کړه چې مشتری (زيد) واقعی داکور اخيستی دی ولی چې له ثبوت بيع څخه بغير شفعه نه ثابتيږي نوکه شفيع (دزيد) اخيستل په ګواهانوسره ثابت کړل نوهم شفيع ته حق شفعه حاصليږي،اوکه شفيع هم له ګواه پيښولو څخه عاجز شونوله مشتری څخه به په دي ډول قسم واخيستل شي چې والله ماداکورنه دی اخيستی ياوالله شفيع پر دي کور په دي ډول دشفعه مستحق نه دی په کوم ډول چې ده ذکرکړی دی .ليکن که مشتری له قسم اخيستلو څخه انکار وکړنو په دي صورت کې هم شفيع ته حق شفعه حاصليږي نو په دي دربوواړو صورتونوکې به قاضی داحکم وکړي چې ددي مکان داخيستلو حق دي شفيع ته حاصل دی لهذا فوراً (دستی) دي ده ته ورکړل شي .

(۵) وَلَا يَلْزَمُ الشَّفِيعَ إِحْضَارُ الثَّمَنِ وَقْتَ الدَّعْوَى بَلْ بَعْدَ الْقَضَاءِ (۶) وَخَاصَمَ الْبَائِعَ لَوْ فِي يَدِهِ (۷) وَلَا يَسْمَعُ الْبَيِّنَةَ حَتَّى يَحْضُرَ الْمُشْتَرِي فَيَفْسَخَ الْبَيْعَ بِمَشْهَدِهِ وَالْعُهْدَةُ عَلَى الْبَائِعِ (۸) وَالْوَكِيلُ بِالشِّرَاءِ خَصْمٌ لِلشَّفِيعِ مَالَمْ يُسَلِّمْ إِلَى الْمُوَكِّلِ (۹) وَلِلشَّفِيعِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَالْعَيْبِ ,وَإِنْ شَرَطَ الْمُشْتَرِي الْبَرَاءَةَ مِنْهُ

**ترجمه** :اولازم نه ده پر شفيع باندي حاضرول دثمنو ددعوی پر وخت بلکه دقاضی له حکم څخه وروسته. او مخاصمت دي وکړي له بائع سره که مبيع دده په لاس کې وي ،اونه دي اوري قاضی بينه ترڅو چې حاضر شي مشتری نو فسخ دي کړي بيع دده په موجودوالی کې او ذمه واري پر بائع ده ،او اخيستلو وکيل خصم دی دشفيع ترڅو چې دی ونه سپاري مبيع موکل ته ،او شفيع لره خيار رؤيت او خيار عيب شته اګر که شرط لګولی وي مشتری له عيب څخه د برأت .

**تشريح** :(۵) شفيع لره په شفعه کې خصومت او منازعت جائز دی اګر که دقاضی مجلس ته دمشفوعه ځمکې ثمن (روپۍ) رانه وړي ولی چې دقاضی له قضاء څخه وراندي پر شفيع ثمن لازم نه دي لهذا دثمنو حاضرول هم

لازم نه دي ،بيا چې کله قاضي د شفيع په حق کې د مشفوعه ځمکې فيصله وکړي نو اوس پر شفيع باندي ثمن راوړل لازم دي همدا ظاهر روايت دی.

(۶)که شفيع بائع د قاضي په مجلس کې حاضر کړ او مبيع تر اوسه د بائع په لاس کې ده مشتری ته يې تسليم کړې نه ده نو شفيع له بائع سره د شفعه په باره کې جنجال کولی شي په دې وجه چې قبضه د بائع ده لهذا د مالک په شان له بائع سره خصومت صحيح دی.

(۷)ليکن شفيع چې کوم بيّنه پر بائع پيښوي قاضي به هغه نه اوري ترڅو چې مشتری هم حاضر نه وي ولې چې پر مبيع قبضه د بائع ده او د مبيع مالک مشتری دی لهذا د دوئ دواړو وجود ضروري دی او د دوئ په موجودوالی کې به قاضي بيع فسخ کوي ،او د مبيع له تسليمولو څخه وړاندي عهده يعنی ذمه واري پر بائع ده يعني که د مبيع کوم مستحق ښکاره شو نو شفيع لره به د ثمنو ضامن بائع وي ولې چې د عقد حقوق له عاقد سره متعلق وي.

(۸)يعني د اخيستلو وکيل د شفيع خصم دی ترڅو چې هغه مبيع موکل ته ونه سپاري مثلاً چا دبل چا لپاره کورواخيستی نو په شفعه کې به خصم (مدعی عليه )وکيل يعنی خريداروي ولې چې خصومت د عقد له حقوقو څخه دی او د عقد حقوق له عاقد سره متعلق وي او عاقد دلته اخيستونکی يعنی وکيل دی لهذا شفيع به اخيستونکی يعنی وکيل ته د ثمن په حواله کولو سره کور اخلي .هو که اخستونکی کور خپل موکل ته حواله کړنو بيا به مدعی عليه موکل وي ولې چې د مبيع موکل ته له سپارولو څخه وروسته د اخيستونکی قبضه باقي نه پاتې کيږي او نه اخستونکی د دې مالک دی.

(۹)شفيع د اړ مشفوعه د خيار عيب يا خيار رؤيت په وجه سره واپس کولی شي ولې چې د شفعي د حق په سبب سره د کوروړل د خريد (اخيستلو)په منزله کې دی نو لکه څرنګه چې د اخيستلو په صورت کې مشتری لره خيار شته همدا شان به د شفعه د حق په وجه سره د وړلو په صورت کې هم شفيع لره اختيار وي ،اګر که مشتری بائع له هر قسمه عيب څخه بری کړی وي مثلاً مشتری بائع ته د بيع پروخت وويلې وي چې که په دې مبيع کې کوم عيب ښکاره شو نو ته له دې څخه بری يې نو د شفيع په حق کې د مشتری دا وينا لغوه ده ولې چې مشتری د شفيع نائب نه دی لهذا د مشتری په ساقطولو سره د شفيع حق نه ساقطيږي.

(۱۰)وَإِنْ اخْتَلَفَ الشَّفِيعُ وَالْمُشْتَرِي فِي الثَّمَنِ فَالْقَوْلُ لِلْمُشْتَرِي (۱۱)وَإِنْ بَرْهَنَا فَلِلشَّفِيعِ (۱۲)وَإِنْ ادَّعَى الْمُشْتَرِي ثَمَنًا وَادَّعَى بَائِعُهُ أَقَلَّ مِنْهُ وَلَمْ يَقْبِضْ الثَّمَنَ أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِمَا قَالَ الْبَائِعُ (۱۳)وَإِنْ قَبَضَ أَخَذَهَا بِمَا قَالَ الْمُشْتَرِي (۱۴)وَحَطُّ الْبَعْضِ يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ لَا حَطُّ الْكُلِّ (۱۵)وَالزِّيَادَةُ

**ترجمه**:او که اختلاف وکړ شفيع او مشتری په ثمنو کې نو د مشتری قول به معتبروي ،او که دواړو بينه پيش کړل نو د شفيع بينه به معتبروي ،او که دعوی وکړه مشتری د ثمنو او دعوی وکړه بائع له دې څخه د لږ او تر اوسه په ثمنو قبضه نه وه کړي نو وړي به يې شفيع په هغه قيمت باندی کوم چې بائع وايې ،او که يې قبضه کړي وه

نو وربه يې په هغه قيمت کوم چې مشتري وايي ،او بعض ثمن ساقطول ظاهرېږي د شفيع په حق کې نه ټول ثمن ساقطول ،او په ثمنو کې اضافه کول .

**تشريح** :(۱۰)که شفيع او مشتری په ثمنو کې اختلاف وکړ مثلاً مشتری وويل ما دا مکان په دوه زره اخيستی دی او شفيع وايي يا بلکه تا په زر روپۍ اخيستی دی نو د مشتری قول مع اليمن معتبردی ولی چې شفيع د کم قيمت په اداء کولو سره پرده د استحقاق دار دعوی کوي او مشتری په کم قيمت باندي د هغه له استحقاق څخه منکر دی او قول منکر مع اليمين معتبردی .

(۱۱)که له شفيع او مشتری څخه هريوه په مذکوره بالاصورت کې په خپله دعوی باندي ګواه پيش کړل نو د طرفينو په نزد د شفيع ګواه معتبردي ولی چې ګواه د کوم شئ د الزام (کوم شئ پرچالازمول )لپاره وي او د شفيع ګواه ملزم دي په دي وجه چې د شفيع د ګواه د قبلولو په صورت کې پر مشتری باندي مکان شفيع ته سپارل لازم ګرځي حال دا چې د مشتری ګواه ملزم نه دي ولی چې د مشتری د ګواه د قبلولو په صورت کې شفيع لره بيا هم اختيار شته که يې خوښه وي نو مکان دي واخلي او که يې خوښه وي نو دي پريږدي .د امام ابويوسف رحمه الله په نزد د مشتری ګواه معتبردي په دي وجه چې ګواه د امر زائد لپاره مثبت وي او زيادت ثابتونکي ګواه اولی وي .

**فائده** :د طرفينو قول راجح دی لمافی الدر المختار :(وان برهنافالشفيع احق )لان بينته ملزمة ,وقال العلامة ابن عابدين :(قوله لان بينته ملزمة )ای للمشتری بخلاف بينة المشتری لان الشفيع مخير والبينات للالزام فالاخذ ببينته اولی اتقانی (الدر المختار مع رد المحتار : ۵/۱۶۱)

(۱۲)که بائع او مشتری په ثمنو کې اختلاف وکړ مشتری ثمن زيات يادوي او بائع لږ يادوي او حال دا دی چې بائع تر اوسه پر ثمنو قبضه نه ده کړي نو شفيع به يې پر هغه قيمت وړي کوم چې بائع يادوي ،ولی چې که ثمن حقيقة هم هغه وي کوم چې بائع يادوي بيا خو ظاهره ده چې پر شفيع هغه لازم دي او که هغه وي کوم چې مشتری يادوي نو دا به ګڼل کيږي چې بائع له خپل طرف څخه مشتری لره قيمت کم کړی دی نو دا کمی د شفيع په حق کې هم ظاهرېږي .

(۱۳)او که بائع پر ثمنو قبضه کړي وي نو بيا به يې شفيع په هغه قيمت وړي کوم چې مشتری يادوي او د بائع د قول طرف ته به التفات نه کيږي ولی بائع چې کله ثمن وصول کړي نو بائع له منځ څخه په وتلو اجنبی شو او س اختلاف د شفيع او مشتری په منځ کې پاتې شو د کوم تفصيل چې تير شو چې په داسې صورت کې د مشتری قول مع اليمين معتبروي .

(۱۴)که بائع له مشتری څخه څه روپۍ کمې کړي نو هم دومره مقدار له شفيع څخه هم ساقطيږي ولی چې د بائع له طرف څخه چې اسقاط ثمن کله له اصل عقد سره يو ځای شو نو او س ثمن هغه شو کوم چې باقی پاتې شو ،او که بائع له مشتری څخه ټول ثمن ساقط کړل نو له شفيع څخه هيڅ نه ساقطيږي ولی چې د کل ثمن د ساقطولو په صورت کې دا خو بيع بلا عوضه ده (کومه چې باطله ده )يا هبه ده په دواړو صورتونو کې شفيع لره حق شفعه نشته .

(۱۵)قوله والزيادة اى لايظهر الزيادة فى حق الشفيع ،يعنى كه مشترى بائع ته په عقدكې له معلوم شویو ثمنو څخه زيات وركړنو دازیادت دشفیع پرذمه لازم نه دى ولى چې په دې كې دشفيع ضرردى په دې وجه چې هغه له دې څخه پرلړوروپه دوړلو مستحق ګرځیدلی وو.

(۱۶)وَإِنِ اشْتَرَى دَارًا بِعَرْضٍ أَوْ عَقَارٍ أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِقِيمَتِهِ وَبِمِثْلِهِ لَوْ مِثْلِيًّا )(۱۷)وَبِحَالٍّ لَوْ مُؤَجَّلًا أَوْ يَصْبِرُ حَتَّى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ فَيَأْخُذَهَا(۱۸) وَبِمِثْلِ الْخَمْرِ ,وَقِيمَةِ الْخِنْزِيرِ إِنْ كَانَ الشَّفِيعُ ذِمِّيًّا(۱۹)وَبِقِيمَتِهَا لَوْ مُسْلِمًا)(۲۰)وَبِالثَّمَنِ وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ لَوْ بَنَى الْمُشْتَرِي أَوْ غَرَسَ أَوْ كُلِّفَ الْمُشْتَرِي قَلْعَهُمَا(۲۱)وَإِنْ قَلَعَهُمَا الشَّفِيعُ فَاسْتُحِقَّتْ رَجَعَ بِالثَّمَنِ فَقَطْ(۲۲)وَبِكُلِّ الثَّمَنِ إِنْ خَرِبَتِ الدَّارُ أَوْ جَفَّ الشَّجَرُ(۲۳)وَبِحِصَّةِ الْعَرْصَةِ إِنْ نَقَضَ الْمُشْتَرِي الْبِنَاءَ )وَالنَّقْضُ لَهُ(۲۴)وَبِثَمَرِهَا إِنِ ابْتَاعَ أَرْضًا وَنَخْلًا وَثَمَرًا أَوْ أَثْمَرَ فِي يَدِهِ(۲۵)وَإِنْ جَذَّهُ الْمُشْتَرِي سَقَطَ حِصَّتُهُ مِنَ الثَّمَنِ

**ترجمه** :اوكه يې واخيستى مكان دسامان ياځمكې په عوض نوورې به يې شفيع دهغه دقيمت په عوض اودهغه دمثل په عوض كه مثلي وو،اوفوري (دستي )به يې وركوي كه هغه معيادي وي يادي صبروكړي ترڅوچې تيره شي مده بيادي واخلي ،اوپه مثل شرابواوقيمت خنزيرباندي دي واخلي كه شفيع ذمى وي ،اودې دواړودقيمت په عوض دي واخلي كه هغه مسلمان وي ،اوپه ثمنواودعمارت په قيمت اوددرخت دقيمت په عوض واخلي كه عمارت جوړكړمشترى ياېې درختې ولګولي يادي مجبوركړي مشتري ددې په كنيلوباندي اوكه داكارونه شفيع وكړل بياځمكه دكوم بل چابنكاره شوه نواخلي به ثمن فقط،اوټول ثمن دي وركړي اووادي خلي كه خراب شومكان ياوچې شوي درختې ،اودحصې په مطابق دي خالى ځمكه واخلي كه مشتري رنګ كړى وي عمارت اوملبه (دعمارت سامان )به دمشترى وي ،اوله ميوې سره به يې وړي كه يې اخيستي وي ځمكه له درختواوميوې سره ياميوه پيداشوي وي دمشترى په قبضه كې ،اوكه ماتې كړي دامشترى نوساقطيږي همدومره حصه له ثمنو څخه.

**تشريح** :(۱۶)كه چاكوم كوردسامان ياځمكې په بدله كې واخيستى نوشفيع به داددې سامان ياځمكې دقيمت په عوض كې وړي اوكه مشترى دمثلي شئ په عوض كې (يعنى دكيلي ياوزني ياعددى متقارب شئ په عوض )اخيستى وي نوشفيع به داددې دمثل په عوض وړي ولى مشترى چې دكوم شئ په عوض دځمكې مالک كيږي شفيع دهغه دمثل په عوض مالک ګرځي ،بياكه هغه لره مثل كامل وي يعنى صورة ومعنى مثل وي لكه چې مشترى دمكيلي ياموزونى شيانوپه عوض كې مكان اخيستى وي ،نوشفيع دمثل كامل په عوض كې ددې مالک ګرځي اوكه مثل كامل نه وي لكه چې مشتري دسامان ياځمكې په عوض مكان اخيستى وي نوشفيع دمثل ناقص يعنى قيمت په عوض مالک ګرځي.

(۱۷)قوله وبحال لومؤجلااى اخذهابثمن حال لوكان الثمن مؤجلا،يعنى كه مشترى مان له بائع څخه په ثمن مؤجل (پور)سره اخيستى وي نوشفيع لره اختياردى كه يې خوښه وي نوپه نقدثمن(نغدوريو) سره دي واخلي اوكه يې خوښه وي نودهغه مدې دتيريدلوانتظاردي وكړي دكومې چې بائع مشترى ته مهلت وركړى دى كله چې دامده تيره شي بيادي واخلي ،مګردمشتري په شان يې په ثمن مؤجل سره نه شي وړلى ولى چې كه بائع مشترى ته په مهلت وركولوراضى دى نودادي خبري لره مستلزم نه دى چې شفيع ته هم پرمهلت

ورکولو راضي دی ولی چې خلک په معاملاتو کې متفاوت دي لهذا د بائع له رضا څخه بغیر شفیع لره مهلت نه ثابتیږي.

(۱۸) که یوه ذمی له بل ذمی څخه د شرابو یا خنزیر په عوض کې مکان واخیستی او شفیع هم ذمی دی نو شفیع به د امکان په مثل شراب او قیمت خنزیر سره وړي ولی چې د ا بیع فیمابینهم صحیح ده او د شفعه حق د مسلمان په څیر ذمی لره هم شته او شراب دوئ لره داسې دي لکه زموږ لپاره چې سرکه ده او خنزیر داسې دی لکه زموږ لپاره چې پسه دی، نو شراب څرنګه چې له ذوات الامثالو څخه دي په دي وجه به شفیع د شرابو په مثل ورکولو سره مکان اخلي او خنزیر له ذوات القیمو څخه دی په دي وجه به شفیع د خنزیر د قیمت په ورکولو سره مکان وړي.

(۱۹) قوله وبقیمتهما لو مسلما ای یاخذ بقیمة الخمر والخنزیر لو کان الشفیع مسلما، یعنی که په مذکوره صورت کې شفیع مسلمان وي نو هغه به د شرابو او خنزیر د واړو په صورت کې د قیمت په ورکولو سره مکان اخلي، خنزیر څرنګه چې مثلی شئ نه دی په هر صورت به یې قیمت ورکوي او شراب اگر که مثلی دي مګر مسلمان لره څوک د هغو مالک جوړول ممنوع دی لهذا د مسلمان په حق کې د اغیر مثلی شمارل کیږي.

(۲۰) قوله وبالثمن وقیمة البناء ای ویاخذ الشفیع بالثمن وقیمة البناء الخ، یعنی که مشتری په مشفوعه ځمکه کې کور جوړ کړیایې باغ ولګاوه بیا د شفیع په حق د شفعه فیصله وشوه نو اوس شفیع لره اختیار دی که یې خوښه وي نو د مشفوعه ځمکې او رنګ شوي عمارت او کېنبل شوي باغ قیمت په ورکولو سره دي واخلي او که یې خوښه وي نو مشتری ته دي د خپل تعمیر او باغ د کېنبلو حکم وکړي ولی چې مشتری په داسې محل کې تعمیر کړی دی له کوم سره چې د غیر مضبوط حق تړلی دی او صاحب حق مشتری ته د تعمیر حکم هم نه دی ورکړی لهذا مشتری ته به د خپل تعمیر د رنګولو حکم ورکول کیږي.

(۲۱) او که شفیع د شفعه د حق په وجه سره ځمکه واخیستله او په هغې کې یې مکان جوړ کړیایې باغ کېښېنو د بیا د دې ځمکې کوم مستحق ښکاره شوا و مستحق شفیع ته د درختو او تعمیر د کېنبلو حکم وکړ نو که شفیع مکان له بائع څخه وړی وي نو په دي صورت کې به شفیع له بائع څخه ثمن واپس اخلي او که یې له مشتری څخه وړی وي نو په دي صورت کې به له مشتری څخه ثمن واپس اخلي څرنګه چې شفیع لره مبیع نه ده تسلیم شوي په دي وجه د رجوع بثمنو حقدار دی، پاتې شو د تعمیر او د رختو قیمت نو هغه له هیچا څخه نه شي اخیستلی په دي وجه چې د تعمیر او د رختو قمیت خو په هغه صورت کې واپس اخیستلی شي په کوم کې چې د ه ته دهوکه ورکړل شوي وي حال دا چې په دي صورت کې خو مشتری یا بائع شفیع ته دهوکه نه ده ورکړي بلکه شفیع په خپله په دعوی کولو سره دوئ په ځمکه ورکولو مجبور کړي وو.

(۲۲) قوله وبکل الثمن ای یاخذ الشفیع بکل الثمن ان خربت الدار الخ، یعنی که د مشتری په قبضه کې مشفوع مکان منهدم (رنګ) شو یا تعمیر وسو ځیدو او یا باغ وو د هغه درختي وچې شوي په دي شرط چې دا په آفت سماوی سره وي د چا په فعل سره نه وي نو شفیع لره اختیار دی که یې خوښه وي نو د ټول ثمن په اداء کولو سره دي مکان واخلي ولی چې تعمیر او درختي تابع دي د کوم په مقابله کې چې ثمن نه وي لهذا د دوئ د کمښت او زیاتو ب په

وجه سره به په ثمنو کې کمښت یازیاتوب نه کیږي، او که یې خوښه وي نو د شفعه دعوی دي پرېږدي ولی چې شفیع له حق شته چې هغه د مال په عوض دکورله مالک جوړید لو څخه منع شي .

(۲۴) قوله وبحصة العرصة ای ویأخذ الشفیع بحصة العرصة الخ :یعنی که د مشفوعة ځمکې عمارت مشتری رنګه کړه نوله شفیع څخه د عمارت په اندازه قیمت ساقطیږي او دشفیع که خوښه وي نو خالي ځمکه دهغې په حصه ثمنو سره اخستلی شي او که یې خوښه وي نو بالکل دي پرېږدي ولی چې تعمیروغیره اوس د مشتری د اتلاف په وجه سره مقصودي شئ شوپه دي وجه به دوس ددي په مقابل کې ثمن راځي لهذاټول به پرځمکه اوتعمیرباندي تقسیم کړای شي دځمکې په حصه کې چې څومره ثمن کیږي شفیع به دهغه په عوض ځمکه واخلي ،اودتعمیرملبه (سامان )دمشتری حق دی ،شفیع ته دسامان دوړلو حق نشته ولی چې سامان په جلاوالی سره اوس تابع نه شوپاتې چې دځمکې په تبع سره دشفیع حق جوړشي .

(۲۵) قوله وبثمرها ای یأخذ الشفیع بثمرها :یعنی که چا ځمکه له درختو او میوي سره یوځای واخیسته او دبیع په وخت یې دمیوي ذکرهم وکړنوشفیع به یې له میوي سره وړي ولی چې دپیدائښې اتصال په وجه سره میوه دځمکې تابع ده ،همداشان که یې ځمکه له درختوسره یوځای واخیستله بیاپردرختوباندي میوه پیداشوه نوهم به شفیع ځمکه له میوي سره وړي ولی چې په اصل مبیع کې ثابت شوی حق دمتولد من المبیع طرف ته هم سرایت کوي لهذا په میوه کې هم دشفیع حق ثابتیږي .

(۲۶) او که میوه مشتری وښکوله نوله شفیع څخه به دمیوي په اندازه قیمت ساقطیږي ولی چې په بیع کې دمیوي په ذکرکولو سره میوه هم مقصودا په بیع کې داخله شوي ده لهذا ددي په مقابله کې به هم ثمن وي .

## بَابُ مَا تَجِبُ فِيهِ الشُّفْعَةُ وَمَا لَا تَجِبُ

داباب دهغوشیانوپه بیان کې دی په کوموکې چې شفعه واجبیږي اوپه کوموکې چې شفعه نه واجبیږي کله چې مصنف رحمه الله دنفس ثبوت شفعه له بیان څخه فارغ شونوپه تفصیل یې شروع وکړه چې په کوموشیانوکې شفعه واجبیږي اوپه کوموکې نه واجبیږي ،ولی چې تفصیل بعد الاجمال اوقع فی النفس وي.

(۱) إنما تجب الشفعة في عقار ملك بعوض هو مال (۲) لا في عرض وفلك وبناء ونخل بيعا بلا عرصة (۳) ودار جعلت مهرا أو أجرة أو بدل خلع (۴) أو بدل صلح عن دم عمد أو عوض عتق (۵) أو وهبت بلا عوض مشروط (۶) أو بيعت بخيار للبائع (۷) أو بيعت فاسدا ما لم يسقط الفسخ بالبناء (۸) أو قسمت بين الشركاء (۹) أو سلمت شفعته لم ردت بخيار رؤية أو شرط أو عيب بقضاء (۱۰) وتجب لو ردت بلا قضاء أو تقايلا

**ترجمه** :ثابتیږي شفعه په هغه ځمکې کې کومه چې مملوکه شي په داسې عوض سره کوم چې مال وي .نه په اسبابوکې اوپه کښتئ کې اوپه عمارت کې اوپه درختوکې کومې چې خرڅې شوي وي بغیرله ځمکې څخه ،اوپه هغه کورکې کوم چې مقررشوی وي مهریااجرت یابدل خلع ،یادصلح ددم عمدله طرف څخه یادازادي عوض ،یاهبه کړل شوی وي بلاعوض مشروط ،یاخرڅ شوی وي دبائع له خیارسره ،یاخرڅ شوی وي په بیع فاسدي سره ترڅوچې نه وي فاسدشوی حق دفسخ په عمارت جوړلوسره ،یاتقسیم کړل شوی وي په

شرکاؤکې ،یاپرېښودل شوي وي دهغه شفعه بیاواپس کړل شوی وي دخیارؤیت یاخیارشرط یاخیارعیب په سره دقضاء په ذریعه سره ،او واجیبږي که واپس کړل شوی وی بلاقضاء یادواړو اقاله کړي وي .

**تشریح** :(۱)شفعه په هره داسې ځمکه ،مکان وغیره کې ثابتیږي دکوم چې مشتری دمال په عوض کې مالک شي ولی چې دشرعی شرط رياعت ممکن دی یعنی مشتری چې دکوم مال په بدله کې مالک جوړشوی دی شفیع هم دهغه دمثل په اداء کولو سره دهغې مالک کیدای شي .

(۲)قوله لافی عرض وفلک الخ ای لاتجب الشفعة فی عرض وفلک الخ ،یعنی په منقولي سامانو او کښتیانو کې شفعه نشته لقوله ﷺ﴿ لَا شُفْعَةَ إِلَّا فِي دَارٍ رَبْعٍ او خائط﴾ (له مکان اوباغ ځخه په علاوه کې شفعه نشته )همدراز حق شفعه خلاف قیاس ثابت دی نودقیاس په ذریعه سره منقولی شیان له غیرمنقولی شیانوسره نه شي ملحق کیدای ،همداشان که عمارت یاباغ له ځمکې ځخه بغیرخرڅ کړای شي نوپه دي کې هم شفعه نشته ولی چې صرف عمارت اودرختولره دوام نشته نوداهم له منقولاتو ځخه دي اوپه منقولي شیانو کې شفعه نشته ،البته که یې له عمارت او درختوسره ځمکه هم خرڅه کړي وي نوبیاتبعاللارض په دوئ کې هم شفعه ثابتیږي .

(۳)قوله ودارجعلت مهراالخ ای لاتجب الشفعة فی دارجعلت مهراالخ ،یعنی که مشتری دمال په عوض دځمکې مال نه ووجوړشوی نوپه داسې ځمکه کې به هم شفعه نه وي لهذاپه داسې کورکې شفعه نشته کوم چې کوم کس دنکاح پروخت دښځې په مهرکې ورکړي ولی چې ښځه دمال په عوض کې مالکه نه ده جوړه شوي ،اوپه داسې کورکې هم شفعه نشته کوم چې مالک دکوم بل کورلپاره اجرت مقررکړي یعنی ددي په بدله کې مالک کوم بل مکان په کرایه ونیسي.اوپه داسې کورکې هم شفعه نشته دکوم په بدله کې چې ښځه له خپل خاوندسره خلع (دښځې دمال په عوض کې طلاق اخیستلوته خلع ویل کیږي )کړي وي یعین کوم کورچې دخلع دبدل په ډول سره خاوندته ورکوي په داسې مکان کې هم شفعه نشته .

(۴)اوپه داسې مکان کې هم نشته دکوم پرمالک چې دیوچادقتل کولو قصاص واجب وي بیاهغه دمقتول له ورثه وسره پردي کوردقصاص په بدله کې مصالحت کړی وي یعنی دمقتول ورثه ته یې په صلح کې ورکړي ،اوپه داسې مکان کې هم شفعه نشته کوم چې غلام خپل مالک ته ورکړي او خپل ځان دهغه په بدله کې ازادکړي ،ولی چې شفعه په مبادلة المال بالمال کې وي په مبادلة المال بغیرالمال کې نه وي ولی چې په شفعه کې شفیع دهغه عوض مثل ورکوي کوم چې دځمکې اخیستونکی مالک ته ورکړی دی نوکه مالک ته حاصلیدونکی عوض مال نه وي نوشفیع دهغه دمثل په ورکولوباندي قادرنه دی لهذاشفعه نه ثابتیږي .

(۵)قوله اووهبت بلاعوض مشروط ای لاتجب الشفعة فی داروهبت بلاعوض مشروط،یعنی که واهب کوم مکان چاته بلاعوض هبه کړنو دهغه شریک یاهمسایه لره دشفعه حق نشته ولی چې هبه مبادلة المال بالمال نه ده حال داچې شفعه په مبادلة المال بالمال کې ثابتیږي ،البته که هبه مشروط بالعوض وي (مثلاواهب ووایې وهبت لک هذه الدارعلی کذامن الدراهم )نوحق شفعه ثابتیږي ولی چې هبه بالعوض ابتداء هبه ده انتهاء بیع ده لهذاپه داسې صورت کې به شفیع لره حق وي .

(۶)قوله او بیعت بخیار البائع ای لاتجب الشفعة فی داربیعت بخیار البائع ،یعنی که بائع بشرط خیارکوم مکان خرڅ کړنو شفیع لره حق شفعه نشته ولی چې دشرط خیارپه وجه سره دبائع ملک نه زائلیږي نوګویاخرڅ کړی یې نه دی لهذاشفیع لره حق شفعه نشته ،بیاکه بائع دبیع په نافذولو سره خیارساقط کړنو شفعه ثابتیږي ولی چې اوس دزوال ملک مانع زائل شواوبیع لازمه شوه .

**فائده:** اوکه چاپه شرط دخیارسره مکان واخیستی نوشفیع لره شفعه ثابتیږي ولی چې دمشتری دخیارشرط په صورت کې دبائع دملک دزائلیدلو لپاره هیڅ مانع نشته .

(۷)قوله او بیعت فاسدا ای لاتجب الشفعة فی داربیعت بیعافاسدا ،یعنی که چاکوم مکان په بیع فاسدي سره واخیستی نوپه دي مکان کې شفیع لره حق شفعه نشته ولی چې له قبضې څخه وړاندي دبائع ملک نه ده زائل شوی اوله قبضې څخه وروسته داعقدواجب الفسخ دی حال داچې په اثبات شفعه کې فسخ عقدنشته بلکه دفسادتقریردی په دي وجه جائزنه دی ،البته که په بیع فاسده کې حق فسخ ساقط شومثلا مشتری په اخیستل شوي ځمکه کې تعمیرجوړکړیایې مبیع وړاندي خرڅه کړه نوپه دي سره حق فسخ ساقطیږیاودمشتری پرذمه قیمت واجبیږي په دي وجه په داسې صورت کې شفیع لره حق شفعه ثابتیږي ولی چې مانع زائل شو .

(۸)قوله او قسمت بین الشرکاء ای لاتجب الشفعة لجارهم بالقسمة فی دارقسمت بین الشرکاء ،یعنی که په کومه ځمکه کې څوکسان شریک وي بیاهغوئ په خپل منځ کې داځمکه تقسیم کړي نودي تقسیم په وجه سره ددوئ همسایه لره حق شفعه نشته ولی چې تقسیم مبادلةالمال بالمال نه دی حال داچې شفعه په مبادلة المال بالمال کې واجبیږي .

(۹)قوله اوسلمت شفعته ثم ردت الخ ای لاتجب الشفعة فی داراشتریت وسلم الشفیع ثم ردت الداربخیاررؤیة الخ ،یعنی که چاکوم مکان واخیستی اوشفیع دشفعه دعوی ونه کړه بیامشتری دخیاررؤیت یاخیارشرط یاخیارعیب په وجه سره دقاضی په حکم مکان واپس کړنوداځرنګه چې من کل الوجوه فسخ ده عقدجدیدنه دی لهذااوس شفیع لره حق شفعه نشته .

(۱۰)البته که مشتری له قضاء قاضی څخه بغیرمبیع واپس کړه اویابائع اومشتری په خپل منځ کې اقاله وکړه نوشفیع لره اوس حق شفعه حاصل دی ولی چې دادبائع اومشتری په حق کې خوفسخ بیع ده اودکوم دریم په حق کې بیع جدیده ده نودشفیع په حق کې دبیع جدیدوالی په وجه سره شفیع لره حق شفعه حاصل دی .

**فائده:** له کوم مسجدیامدرسې سره که متصل کومه ځمکه یادوکان وغیره خرڅ شي نودمسجددمتولی مدرسې دمهتمم لپاره دمسجداومدرسې په وجه سره دشفعې حق نشته .(ملخص ازامدادالاحکام :۴/۱۷۰)

## باب مایبطل به الشفعة

داباب دهغوامورو په بیان کې دی په کوموسره چې شفعه باطلیږي

دشئ بطلان تقاضاکوي چې اول به شئ موجودوي په دي وجه مصنف رحمه الله اول هغه اموربیان کړل په کوموسره چې شفعه ثابتیږي اوس له دي ځایه هغه اموربیانوي په کوموسره چې شفعه باطلیږي .

(۱) وَتبطلُ بِترك المُواثبةِ او التقرير (۲) وبالصُلح عن الشُفعةِ على عِوَضٍ وَعَليه رَدُهُ (۳) وَبِموتِ الشَفيع لا المُشتري (۴) وَبِبيع مايَشفعُ بِه قَبلَ القَضاء بالشُفعةِ (۵) وَلا شُفعةَ لِمَن باعَ او بِيعَ له (۶) او ضَمِنَ الدرك عن البائع (۷) وَمَن ابتاعَ او ابتيع له فَلَهُ الشُفعةُ (۸) وَإن قِيلَ لِلشَفيع انها بيعت بِالف فَسَلَّمَ ثُمَّ عَلِمَ انها بِيعت بِاقَلَّ او بِبُرٍّ او شَعيرٍ قِيمتهُ الف او أكثر فلهُ الشُفعةُ (۹) وَلَو بَانَ انها بِيعت بِدَنانيرَ قِيمتُها الف فَلا شُفعةَ لَه

**ترجمه**: اوباطليږي د طلب مواثبت يا طلب تقرير په پرېښودلو سره، او له شفعې څخه په صلح كولو سره په كوم عوض باندې او پر شفيع واجب ده د عوض واپس كول، او د شفيع په مرګ سره نه د مشتري په مرګ سره، او په خرڅولو سره د هغه شئ د كوم په وجه سره چې د شفعه دعوى كوي د شفعه له حكم كولو څخه وړاندې، او څوك چې واخلي يا واخيستل شي د ده لپاره نو هغه لره شفعه ده، او كه وويل شول شفيع ته چې مكان خرڅ شوى دى په زرروپۍ ده شفعه پرېښوده بيامعلومه شوه چې هغه خرڅ شوى دى په لږ ويا د غنمو په عوض يا د اوربشو په عوض د كومو قيمت چې زرروپۍ يا له دې څخه زيات دى نو ده لره شفعه شته، او كه ظاهره شوه چې هغه خرڅ شوى دى په دنانيرو سره د كومو چې قيمت زرد رهمه دى نو شفعه نشته.

**تشريح**: (۱) كه شفيع په بيع خبر شو او سره له قدرته يې طلب مواثبت پرېښودى نو د هغه حق شفعه باطليږي ولې چې ده له طلب شفعه څخه اعراض وكړاو وړاندې تيره شوه چې شفعه كمزورى حق دى په اعراض سره باطليږي، همداشان كه شفيع طلب مواثبت خو وكړ، مګر طلب تقرير او اشهاد يې پرېښودي يعنې پر بائع يا مشترى يا له ځمكې سره يې ګواهان جوړ نه كړل نو ځرنګه چې دا هم له حق شفعه څخه د اعراض دليل دى لهذا شفعه باطليږي.

(۲) قوله وبالصلح من الشفعة على عوض اى تبطل الشفعة اذاصالح المشترى الشفيع على عوض، يعنې كه مشترى له شفيع سره دده د له حق شفعه څخه په كوم عوض صلح وكړه نو د شفيع حق شفعه باطليږي، او عوض به هم بيرته مشترى ته وركوي (مثلا شفيع مشترى ته وويل چې زرد رهمه راكړه زه حق شفعه پرېږدم، كه مشترى وركړل نو د شفيع حق شفعه باطليږي او زرد رهمه به بيرته مشترى ته واپس كوي) ولې چې د خپل حق شفعه په بدل كې عوض اخيستل د اعراض دليل دى لهذا حق شفعه باطليږي، او حق شفعه ځرنګه چې محض د مالك جوړيدلو حق دى مالك جوړ شوى نه دى لهذا د هغه عوض اخيستل هم صحيح نه دي په دې وجه به عوض بيرته واپس كوي.

(۳) قوله وبموت الشفيع لاالمشترى اى تبطل الشفعة بموت الشفيع لابموت المشترى، يعنې كه شفيع له بيع وروسته او د شفعه له فيصلې څخه وړاندې مړ شو نو شفعه باطليږي ولې چې د مرګ په وجه سره د شفيع ملكيت ختميږي په دې وجه دده حق شفعه هم ساقطيږي، او وارث لره بې شكه چې ملك ثابتيږي مګر د وارث ملك له بيع وروسته ثابتيږي حال دا چې شفيع لره ملك د بيع له وخت څخه د قاضي تر قضاء پورې شرط دى نو ځرنګه چې وارث لره د بيع پروخت ملك ثابت نه دى لهذا وارث لره حق شفعه هم نشته، او كه مشترى مړ شي نو شفعه نه باطليږي ولې چې د شفعه مستحق يعنې شفيع موجود دى او د حق شفعه سبب (اتصال ملك) هم متغير شوى نه دى لهذا حق شفعه نه ساقطيږي.

(۴)قوله وبيع مابشفع به الخ اى وتبطل الشفعة ببيع الدارالتى يشفع بهاالخ .يعنى كه شفيع دقاضى له طرف دشفعه دفيصلې له كولو وړاندې خپل هغه جائيداد خرڅ كړدكوم په وجه سره چې هغه دشفعه دعوى كوي نودهغه حق شفعه باطليږي ولى چې دمشفوعه ځمكې له مالک جوړيدلو څخه وړاندې سبب استحقاق شفعه (يعنى اتصال ملک )زائل شولهذا حق شفعه هم باطليږي .

(۵)كه دبائع وكيل دبائع مكان خرڅ كړاوحال داچې همدا وكيل ددې مكان شفيع هم دى نوده لره حق شفعه نشته ولى چې په خرڅولو سره دده له طرفه يوعقدتام شوپه كوم كې چې دى دبائع وكيل وواوس كه دى دشفعه په حق سره دامكان وړي نودى به مشترى وي لهذادعقدسابقه عقددماتولوسعى (كوشش )دى كوم چې جائزنه دى .

(۶)همداشان كه كوم كس دبائع له طرف څخه ددرک ضامن شي (دضامن بالدرک معنى داده چې څوک مشترى ته ووايي چې له فلان شئ بې فكره واخه كه دهغه شئ كوم مستحق ښكاره شونوستادرپيودادا، كولوزه ضامن يم )اوحال داچې داضامن په خپله شفيع هم دى نوده لره حق شفعه نشته ولى چې دسابق عقدتقريراوتصحيح دهمدې ضامن له طرف څخه شوي ده اوس كه دى دشفعه دعوى كوي نودادعقدسابق دماتولوسعى ده كومه چې جائزنه ده .

(۷)كه څوک دمشترى له طرف څخه په وكيل جوړيدلوسره كوم مكان واخلي اوحال داچې دى ددې مكان شفيع هم دى نودې وكيل لره حق شفعه شته ولى چې حق شفعه داعراض په اظهارسره باطليږي نه درغبت په اظهارسره .اودشراء په صورت كې اظهاررغبت دى نه داعراض اظهار ،لهذاحق شفعه نه باطليږي .همداشان كه كوم كس لره مكان واخيستل شوحال داچې دى دهغه شفيع هم دى مثلا مضارب په مال مضاربت سره كوم مكان واخيستى حال داچې رب المال دهغه مكان شفيع هم دى نورب المال ته حق شفعه ثابتيږي ولى چې دلته داعراض هيڅ دليل موجودنه دى .

(۸)كه شفيع ته داخبررسيدوچې فلانى كور(په كوم كې چې شفيع لره حق شفعه حاصل دى )په يوزردرهمه خرڅ شوده حق شفعه پريښود .بيامعلومه شوه چې داكورخوله زرودراهمو څخه په لږوخرڅ شوى دى ياپه دمره غنمويااوربشوخرڅ شوى دى دكوموقيمت چې زرياله دې څخه هم زيات دى نودشفيع ترک شفعه باطل دى بلكه شفيع لره اوس هم حق شفعه حاصل دى ولى چې اول خوده دكثرت ثمن په وجه سره پريښى وودكوم جنس چې ده ته خبررسيدلى ووهغه جنس ده لره متعذروواوس څرنگه چې دهغه په خلاف خبره ښكاره شوه په دې وجه ده لره حق شفعه ثابت دى ولى چې داختلاف ثمن په وجه سره په رغبت كې اختلاف وي .

(۹)كه په مذكوره بالاصورت كې وروسته معلومه شوه چې هغه كورخوپه دومره ديناروخرڅ شوى دى چې دهغوقيمت زردرهمه دى نودقياس تقاضاخوداده چې شفيع لره حق شفعه ثابت وي مگراستحساناشفيع لره حق شفعه نشته ولى چې ديناراودرهم دثمنيت په حق كې يوجنس دي لهذاله يوه څخه اعراض له بل څخه عراض شمارل كيږي .

(۱۰) وَإِنْ قِيلَ لَهُ إِنَّ الْمُشْتَرِيَ فُلَانٌ فَسَلَّمَ فَبَانَ أَنَّهُ غَيْرُهُ فَلَهُ الشُّفْعَةُ (۱۱) وَإِنْ بَاعَهَا إِلَّا ذِرَاعًا فِي جَانِبِ الشَّفِيعِ فَلَا شُفْعَةَ لَهُ (۱۲) وَإِنِ ابْتَاعَ مِنْهَا سَهْمًا بِثَمَنٍ ثُمَّ ابْتَاعَ بَقِيَّتَهَا فَالشُّفْعَةُ لِلْجَارِ فِي السَّهْمِ الْأَوَّلِ فَقَطْ (۱۳) وَإِنِ ابْتَاعَهَا بِثَمَنٍ ثُمَّ دَفَعَ ثَوْبًا عَنْهُ فَالشُّفْعَةُ بِالثَّمَنِ لَا بِالثَّوْبِ

**ترجمه**: اوکه وویل شول شفیع لره چې مکان اخیستی دی فلانکی ده شفعه پرېښوده بیا ښکاره شو چې اخیستونکی بل څوک دی نو ده لره شفعه شته، او که یې خرڅ کړ مکان مګر یو ګز د شفیع په طرف کې نو شفعه نشته ده لره، او که یې واخیسته له مکان څخه یوه حصه د ثمنو په عوض بیا یې واخیستی باقی مکان نو حق شفعه همسایه لره صرف په اولی حصې کې شته، او که یې واخیستی مکان د ثمنو په عوض بیا یې ورکړه جامه دهغو په بدل کې نو شفعه به په ثمنو وي نه په جامه سره.

**تشریح**: (۱۰) که شفیع ته داخبر ورسید و چې دمکان اخیستونکی فلانکی (مثلازید) دی نوده شفعه پرېښوده بیامعلومه شوه چې اخیستونکی خو کوم بل څوک (مثلابکر) دی نو شفیع لره اوس هم حق شفعه ثابت دی ولې چې انسان لره دځینو خلکو همسایتوب دهغوئ دښو اخلاقو په وجه قبول وي او دځینو همسایتوب دهغوئ دبد و اخلاقو په وجه سره نه خوښوي نو دشفیع اولنی لره دشفعه پرېښودل ددوهم لپاره دشفعه پرېښودلو ته مستلزم نه دي.

(۱۱) که چا مکان خرڅ کړ مګر له شفیع سره په متصل طرف کې یې دیوه ګز په اندازه پرېښود تر څو شفیع لره حق شفعه ثابته نه شي نو شفیع له حق شفعه څخه محرومېږي ولې کومه حصه چې خرڅه شوي ده همسایه دهغې شفیع نه دی او د کومې حصې چې همسایه دی هغه خرڅه شوي نه ده.

(۱۲) که مشتری دکور څه برخه (مثلاً سمه حصه) دمعینو ثمنو (مثلاً زر درهمو) په عوض واخیسته چې دهغې خبر شفیع ته ورسید و مګر هغه دشفعه دعوی ونه کړه بیا مشتری پاتې نهه حصې واخیستی نو په اولنی حصه کې شفیع لره حق شفعه وو ولې چې هغه همسایه وو مګر په پاتې نهه حصو کې دشفعه حق نه لري ولې چې مشتری داولنی حصې په اخیستلو سره دبائع شریک جوړ شو او په حق شفعه کې شریک له همسایه څخه مقدم دی یعنی دشریک په موجودوالی کې همسایه دشفعه حق نه لري په دې وجه اوس شفیع لره دشفعه حق نشته.

(۱۳) که مشتری مکان دثمنو په عوض واخیستی بیا یې بائع ته دمسمی ثمنو پر ځای جامه ورکړه نو شفیع به دشفعه دحق په وجه سره مکان په مسمی ثمنو سره ورې نه دجامې په بدله کې ولې چې دمکان عوض ثمن مسمی دي دجامې دورکولو اجازه خو دبائع او مشتری په منځ کې دبل عقد په وجه سره مشتری ته حاصله شوي ده دعقد اول په وجه سره نه ده لهذا شفیع به یې دثمن مسمی په عوض ورې.

(۱۴) وَلَا تُكْرَهُ الْحِيلَةُ لِإِسْقَاطِ الشُّفْعَةِ وَالزَّكَاةِ (۱۵) وَأَخَذَ حَظَّ الْبَعْضِ بِتَعَدُّدِ الْمُشْتَرِي لَا بِتَعَدُّدِ الْبَائِعِ (۱۶) وَإِنِ اشْتَرَى نِصْفَ دَارٍ غَيْرِ مَقْسُومٍ أَخَذَ الشَّفِيعُ حَظَّ الْمُشْتَرِي بِقِسْمَتِهِ (۱۷) وَلِلْعَبْدِ الْمَدْيُونِ الْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ مِنْ سَيِّدِهِ كَعَكْسِهِ (۱۸) وَصَحَّ تَسْلِيمُ الشُّفْعَةِ مِنَ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ وَالْوَكِيلِ

**ترجمه**: او مکروه نه ده حیله کول دشفعه او زکوة دساقطولو لپاره، او اخیستل دځینو دحصې دتعدد دمشتری په وجه سره ده نه دتعدد دبائع په وجه سره، او که یې واخیستی نصف مکان غیر مقسوم نو اخلي به شفیع دمشتری

حصه دده له تقسيم سره ،او عبد مأذون مديون لره حق شته دشفعه په ذريعه سره داخيستلو له خپل مولى څخه
لكه چې ددي په عكس كې ،اوصحيح دى پرېښودل دشفعه دپلار،وصي او وكيل له طرف څخه.

**تشريح**:(۱۴)دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دحق شفعه له ثبوت څخه وړاندي داسقاط شفعه لپاره حيله كول مكروه نه دي ولى چې له ثبوت حق څخه وروسته په حيله كولوسره دچادحق په دفع كولوكې دهغه ضرراوپرهغه ظلم دى حال داچې له ثبوت څخه وړاندي امكان ثبوت ختم كول ظلم نه دى ،دامام محمد رحمه الله په نزدله ثبوت څخه وړاندي هم مكروه ده ولى چې شفعه له شفيع څخه ددفع ضررلپاره مشروع شوي ده نوكه موږدحيلي اجازه وركړونوله شفيع څخه موضررختم نه كړ،دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:واماالحيلة لدفع ثبوتها ابتداء فعند ابى يوسف لاتكره وعند محمدتكره (وبه يفتى بقول ابى يوسف فى الشفعة (الدرالمختار على ردالمحتار:۵/۱۸۳)،همدا اختلاف دزكوة دساقطولپاره په حيله كې هم دى يعنى دامام ابويوسف رحمه الله په نزدجائزاودامام محمد رحمه الله په نزدمكروه ده ،دامام محمد رحمه الله پرقول فتوى ده لمافى الشامية:وفى الزكاة (يفتى )على قول محمدوهذاالتفصيل حسن(ردالمحتار:۲/۲۲)

(۱۵)څوكسانويوه ځمكه واخيسته اوخرڅونكى يودى نوداخيستونكودتعددپه وجه سره به اخذشفعه هم متعدده وي يعنى شفيع لره داجائزده چې هغه دمتعددواخيستونكومتعددي حصي دشفعه دحق په وجه سره واخلي اوداهم جائزده چې دكوم يوه اخيستونكى حصه واخلي اودنورحصي پرېږدي ،اوكه خرڅونكي څوكسان وي اواخيستونكى يووي نواخذشفعه به متعدده نه وي بلكه شفيع به ياخوټوله ځمكه اخلي يابه ټوله پرېږدي دفرق وجه داده چې كه په دي دوهم صورت كې شفيع دځمكې بعض حصه واخلي اوبعض پرېږدي نوپرمشترى دعقدتفريق لازميږي په كوم كې چې دمشترى ضرردى حال داچې شفعه ددي لپاره مشروع شوي ده ترڅوله شفيع څخه ضرردفع شي نوكه دشفعه په وجه سره دمشترى ضررله شفيع څخه هم ډيروي نوداسې شفعه مشروع نه ده ،په خلاف داول صورت ولى چې په هغه كې شفيع ديوه مشترى قائم مقام ګرځي چې په هغه سره په نوروMشتريانوتفريق صفقه نه لازميږي لهذادهغوئ ضررهم نشته په دي وجه داصورت مشروع دى.

(۱۶)كه بائع له مكان څخه نصف حصه پربل چاخرڅه كړه اوكومه حصه چې يې خرڅه كړي وي هغه غيرمقسومه ده بيامشترى اوبائع په خپل منځ كې تقسيم وكړنوشفيع لره داحق دى چې كومه حصه چې له كومه ځايه هم دمشترى په برخه رسيدلي ده هغه په شفعه واخلي كه هغه حصه دشفيع په طرف كې وي اوكه نه وي يادي شفعه پرېږدي ،شفيع لره داحق نه شته چې دى تقسيم مات كړي ولى چې تقسيم قبضي لره متمم دى په دي وجه چې له تقسيم څخه بغيردمنفعت تكميل نه كيږي اوشفيع دمشترى قبضه نه شي ماتولى نوكوم چې متمم قبضه وي هغه هم نه شي ماتولى.

(۱۷)مأذون مقروض غلام لره جائزده چې دشفعه ددعوى په كولوسره دمولى مكان وغيرواخلي مثلادمولى دمكان څنګ ته دده دمأذون مقروض غلام مكان دى مولى خپل مكان خرڅ كړنوغلام لره جائزده چې دى دشفع دعوى وكړي اودمولى دامكان واخلي لكه څرنګه چې ددي عكس جائزدى مثلامأذون مقروض غلام مكان خرڅ كړنودده مولى لره داجائزده چې دشفعه دعوى وكړي دامكان واخلي ولى چې په شفعه وړل

دا خيستلو په درجه کې دى او کله چې پر غلام محيط قرض دى نو په دي وخت کې په غلام او مولى کې يو ه لره له هغه بل څخه کوم شئ اخيستل جائزوي نو د شفعه په وجه سره يو ه لره د هغه بل مکان ورل به هم جائزوي.
(۱۸) که کوم داسې مکان خرڅ شو په کوم کې چې يو ماشوم لره حق شفعه ثابت وي او د ماشوم پلار يا وصى يا وکيل له حق شفعه څخه دست بردار شي يعنى شفعه پريږدي نو د شيخينو په نزد د دوئ شفعه پريښودل صحيح ده ،حال دا چې د امام محمد رحمه الله د پلار وغيره شفعه پريښودل نه معتبروي ولى چې حق شفعه داسې حق دى کوم چې ماشوم لره ثابت دى د کوم د ابطال حق پلار وغيره نه لري لکه څرنګه چې دوئ لره د ده د حق قصاص د ابطال حق نشته ،د شيخينو دليل دادى چې په شفعه يو قسم تجارت دى په کوم کې چې د نفع او نقصان دواړو احتمال شته او پر ماشوم د پلار وغيره ولايت شفقتى دى او کله په ترک شفعه کې شفقت وي لهذا مصلحت په همدي کې دى چې پلار وغيره لره د ترک شفعه اختيار روي.

## كِتَابُ الْقِسْمَةِ

## دا کتاب د قسمت (تقسيم) په بيان کې دى

قسمة د اقتسام نوم دى لکه چې قدرت د اقتدار نوم دى ،او شرعا د حقوقو تمييز او د حصو تعديل ته قسمة ويل کيږي. د قسمة سبب د ټولو شرکاؤ يا د ځينو شرکاؤ له خپل ملک څخه على وجه المخصوص د انتفاع طلبول دي .د قسمت رکن هغه فعل دى په کوم سره چې په حصو کې افراز او تمييز حاصل شي لکه په مکيلي شئ کې کيل او په موزونى کې وزن او په عددى کې عدد .او د قسمة شرط دادى چې په قسمة سره به منفعت نه ختميږي ،او د قسمة حکم د شريک حصه په جلا ډول سره متعين کول دى .د جواز قسمة دليل دادى چې نبى کريم ﷺ خيبر پر صحابه کرامو ﷺ تقسيم کړى وو.
له کتاب الشفعه سره د کتاب القسمة مناسبت دادى چې قسمة او شفعه دواړه د حصه شائعه له نتائجو څخه دي ولى چې د شفعه په اسبابو کې تر ټولو قوى سبب شرکت فى نفس المبيع دى ،بيايې د شفعه احکام د قسمة په احکامو له دي وجه مقدم کړي دي چې تملک بالشفعة کله کله د قسمة لپاره سبب ګرځي او سبب له مسبب څخه مقدم وي په دي وجه يې د شفعه احکام مقدم ذکر کړل.

(۱) هِيَ جَمْعُ نَصِيبٍ شَائِعٍ فِي مُعَيَّنٍ (۲) وَتَشْتَمِلُ عَلَى الْإِفْرَازِ وَالْمُبَادَلَةِ (۳) وَهُوَ الظَّاهِرُ فِي الْمِثْلِيِّ فَيَأْخُذُ حَظَّهُ حَالَ غَيْبَةِ صَاحِبِهِ وَهِيَ فِي غَيْرِهِ فَلَا يَأْخُذُ (۴) وَيُجْبَرُ فِي مُتَّحِدِ الْجِنْسِ عِنْدَ طَلَبِ أَحَدِ الشُّرَكَاءِ لَا فِي غَيْرِهِ

**ترجمه**: هغه جمع (يو ځاى) کول دي د هغه حصې کومه چې شائع وي ،او قسمة مشتمل دى د حصه په جلا کولو باندي او پر مبادله باندي ،او افراز غالب وي په مثلى شيانو کې نو ورلى شي خپله حصه د ملګري د غائب والى په حالت کې او مبادله غالبه وي په غير مثلى کې نو نه شي ورلى ،او جبر به کول کيږي په متحد الجنس کې له شرکاء څخه د يو ه د طلب پر وخت نه په غير متحد الجنس کې.
**تشريح**: (۱) مصنف رحمه الله د قسمة اصطلاحى تعريف په دي ډول کړى دى چې په يو معين شئ کې شائع حصه يو ځاى کولو ته قسمت ويل کيږي مثلا يو مکان د څو کسانو په منځ کې مشترک دى نو د دي مکان په هر جزء کې

دهريوه شريک حصه شائعه شته نو کله چې دامکان پردي شرکاء تقسيم شي نو دمکان په اجزاء کې دهريوه منتشره حصه اوس مجتمع (يو ځای) شوه دهغه دي منتشرو اجزاء ديو ځای کولو نوم قسمة دی.

(۲) تقسيم پر دوو خبرو مشتمل وي (۱) افراز يعنی ديوه حصه دهغه بل له حصې څخه جلا کول (۲) مبادله يعنی ديوه حصه دبل په حصه بدليدل. افراز يعنی ديوه حصه دهغه بل له حصې څخه جلا کيدل خو په تقسيم کې ښکاره ده، پاتې شوه مبادله نو هغه هم په تقسيم کې موندل کيږي ولی دتقسيم په نتيجه کې چې څه ديوه په حصه کې جمع شول له هغه څخه بعض خو دده حق دی او بعض دبل شريک حق وو او دهغه بل شريک حصه هم همداشان ده چې له هغې څخه څه دده حق دی او څه دمخکنی شريک حق وو مثلاً زيد او بکر دواړيو کور وانيستی نو ددواړو په ملکيت کې شيوع ده بيا چې يې کله تقسيم کړ نو يو طرف زيد ته ورسيد او بل طرف بکر ته حال دا چې ددواړو په ملکيت کې شيوع وه نو کومه حصه چې زيد ته رسيدلې ده په هغه کې دبکر حصه وه او د بکر په حصه کې دزيد حصه وه او س ګواکي زيد له خپلې حصې سره دبکر حصه يو ځای کړه او دده دحصې په بدله کې يې هغه حصه ورکړه کومه چې دزيد په هغه طرف کې وه چې دبکر په حصه کې دی، نو په تقسيم کې يو شريک دبل شريک حق دخپل هغه حق په عوض کې وړي کوم چې دبل شريک په حصه کې دده پاتې شوی دی او همدا مبادله ده.

(۳) نو څرنګه چې په قسمة کې دافراز او مبادله دواړه اړخه شته مګر په مثلی شيانو کې (مکيلات موزنات اوعددی متقارب شيان) افراز ډير ښکاره ده ولی چې دمثلی شيانو په ابعاضو او افرادو کې تفات نه وي مثلاً له مشترک غنمو څخه چې کوم يو شريک وړئ هغه په ظاهراو باطن هراعتبار سره دهغه مثل وي کوم چې دوهم شريک وړي په دي وجه په مثلی شيانو کې دافراز معنی غالبه ده.

يا څرنګه چې په افراز کې خپل عين حق وړل کيږي لهذا په مثلی شيانو کې دشريک دنه موجودوالی په صورت کې هم هغه خپله حصه وړلی شي ولی چې داخپله حصه وړل دي کوم لره چې دشريک وجود ضروري نه دی، او په غير مثلی شيانو (لکه حيوانات، اوعروض) کې دتفاوت په وجه سره دمبادله معنی ډيره ښکاره ده ولی چې په دوو اسانو کې ډير فرق وي نو کومه يوه حصه خپل حق ګڼل ممکن نه دي لهذا ديوه شريک دنه وجود په صورت کې هغه بل شريک لره دخپلې حصې دوړلو حق نشته ولی چې مبادلې لره دهغه بل شريک وجود ضروري دی.

(۴) که مشترک شيان متحد الجنس وي مثلاً صرف اوزي وي يا صرف جامي وي او له شرکاء څخه کوم يوه له قاضی څخه دقسمة مطالبه وکړه او نور شريکان په تقسيم راضی نه وي نو قاضی به جبرا دوئ په منع کې تقسيم کوي ولی چې په مذکوره صورت کې دمبادلي معنی ډيره ظاهره ده او په مبادله کې چې کله له ده سره دغير حق متعلق وي نو دقاضی جبر جاري کيږي. او که مختلف الجنس وي مثلاً او ښان، اسان او پسونه وغيره وي نو قاضی نور شريکان په قسمت نه شي مجبور کولی ولی چې په مختلف الجنس شيانو ديخې ډير تفاوت په وجه سره مساوات او برابري مشکله ده، البته که ټول شريکان په تقسيم راضی شي نو بيا ددوئ درضا او خوښی په وجه سره تقسيم جائز دی ولی چې حق ددوئ دی.

(۵) وندب نصب قاسم رزقه في بيت المال ليقسم بلا اجر (۶) والانصب قاسم يقسم باجر (۷) بعدد الرءوس (۸) ويجب ان يكون عدلا امينا عالما بالقسمة (۹) ولا يتعين قاسم واحد (ولا يشترك القسام (۱۰) ولا يقسم العقار بين الورثة باقرارهم حتى يبرهنوا على الموت وعدد الورثة (۱۱) ويقسم في المنقول والعقار المشترى (۱۲) ودعوى الملك

**ترجمه**: او مستحب دی قاسم مقرر کول چې دهغه تنخواه له بيت المال څخه وي ترڅو هغه تقسيم وکړي بلا اجرته، کنه نو مقرريږي به قاسم کوم چې تقسيم کوي په اجرت سره، دشرکاء دعدد رؤس مطابق، او واجب ده چې قاسم عادل وي امين وي عالم بالقسمة وي، او متعين کيږي دي نه صرف يو قاسم او نه دي شريکان کيږي تقسيم کونکی، او نه دي تقسيميږي ځمکه دورثه وپه منځ کې ددوئ په اقرار سره ترڅو چې هغوئ ثبوت پيش کړي پر مرگ او دورثه وپر شمار، او تقسيميږي به منقولی مال او اخيستل شوي ځمکه، او دملک مطلق په دعوی کې.

**تشريح**: (۵) يعنی قاضی ته په کار ده چې دی يو داسې قاسم (تقسيم کونکی) مقرر کړي چې دهغه تنخواه بيت المال څخه وي ترڅو هغه دخلکو په منځ کې بغيرله مزدوری اخيستلو دجائيداد نو تقسيم کوي ولی چې تقسيم دعمل قضاء له جنس څخه دی په دې دول چې په تقسيم سره دقطع جدال (دجنجال دختمولو) تکميل کيږي لهذا دقاسم رزق دقاضی له رزق سره مشابه شو په دې وجه به دده رزق هم دقاضی د رزق په شان له بيت المال څخه وي، همدراز قاسم هم دقاضی او مفتی په شان دعامو خلکو دمفاد لپاره وي لهذا دقاضی او مفتی په شان به دقاسم رزق هم له بيت المال څخه وي.

(۶) قوله والا فينصب قاسم يقسم باجرای وان لم يتيسر نصب قاسم رزقه من بيت المال ينصب قاسم وجعل رزقه على المتقاسمين، يعنی که قاضی داسې قاسم مقررنه کړچې دهغه تنخواه له بيت المال څخه وي نو بيا دې داسې قاسم مقرر کړي کوم چې له متقاسمينو څخه په اجرت اخيستلو سره تقسيم وکړي او اجرت به له متقاسمينو څخه په دې وجه اخلي چې دتقسيم نفع متقاسمينو ته رسيږي نو دقاسم اجرت به هم دمتقاسمينو په ذمه وي.

(۷) قوله بعدد رؤس ای يجب على المتقاسمين الاجرة على عدد رؤسهم، يعنی دتقسيم اجرت دامام صاحب په نزد دمتقاسمينو دشمار په حساب سره دی دملکيت په حساب سره نه دی ولی چې اجرت دتميز الحصص په مقابله کې دی په کوم کې چې هيڅ تفاوت نشته لکه دکثير والاحصه چې جلاکيږي همداشان دقليل والاحصه جلاکيږي بلکه کله خو دقليل والاد حصه په جلاکولو کې دومره مشقت وي کوم چې دکثير والاپه حصه کې نه وي لهذا اجرت به دملکيت په حساب سره نه وي. دصاحبينو په نزد به اجرت دتقسيم حصص په حساب سره وي ولی چې اجرت دتقسيم ملک بوج او خرچه ده نو بقدر ملک به وي.

**فائده**: دامام صاحب قول راجح دی لمافی الهندية: واجرة القسام اذا استاجر الشركاء للقسمة فيما بينهم على عدد الرؤس لا على مقادر الانصباء (هندية: ۵/۲۲۱) وقال العلامة الحصكفی: وهو على عدد الرؤس) مطلقا لا الانصباء خلافا لهما، قال العلامة ابن عابدين: (قوله خلافا لهما) حيث قالا الاجر على قدر الانصباء لانه مؤنة الملک وله ان الاجر مقابل بالتميز وهو قد يصعب في القليل وقد ينعكس فتعذر اعتباره فاعتبر اصل التميز ابن كمال (الدر المختار مع الشامية: ۵/۱۸۰)

(۸)ضروري ده چې قاسم به عادل پرهيزګار امانت دار او په تقسيم پوه وي په دې وجه چې تقسيم دعمل قضاء له جنس څخه دی لهذا د قاضی صفات په تقسيم کونکی کې هم ضروري دي ،همدارازپه دې وجه هم دقاسم امين والی اوعالم بالقسمة والی ضروري دی چې دامين پرقول اعتماد او دامين پرقسمة قدرت ضروري دی او د دې شيانو لپاره دقاسم امين والی اوعالم بالقسمة والی ضروري دی .

(۹)قاضی دې خلک په يو ه قاسم نه مجبوروي يعنی خلک دې پر دې نه مجبوروي چې دتقسيم لپاره به صرف همدا يو کس په اجرت نيول کيږي بل کس به نه نيول کيږي ولی چې دتقسيم لپاره څوک په اجرت نيول عقد اجاره ده او په عقود و کې جبر نه وي ،همدرازتقسيم کونکي به داسې نه پرېږدي چې هغوئ په خپل منځ کې شرکت وکړي ولی چې په دې ډول سره به هغوئ په يو بل په اعتماد کولو سره بيخې ډير اجرت اخلي په کوم کې چې دعامو خلکو نقصان دی .

(۱۰)که قاضی ته شرکاء حاضرشول او ددوئ په قبضه کې مکان يا ځمکه ده او دعوی يې وکړه چې موږته دا ځمکه له فلانی ميت څخه په ميراث کې پاتې شوي ده لهذا دازموږپه منځ کې تقسيم کړه نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدبه قاضی داځمکه نه تقسيموي ترڅوچې داخلک دخپل مورث پرمرګ اودهغه دوارثانو په شمار باندې ګواهان پېش نه کړي ولی چې ددې ځمکې تقسيمول قضاء علی الميت ده په دې وجه چې ځمکه ترتقسيم وړاندې دميت ملک ده نو دصرف دعوی بلا بيّنه په وجه سره قضاء علی الميت صحيح نه ده .

**فائده**:دصاحبينو په نزدبه قاضی ځمکه صرف دوارثانو په اعتراف سره تقسيموي ولی چې ددې خلکو قبضه ددوئ دملکيت دليل ده او ددوئ اقرار ددوئ دربنتيا ګوئي نښه ده او ددوئ کوم مزاحم هم نشته لهذا قاضی به يې ددوئ په منځ کې تقسيموي ،البته دتقسيم په تحرير کې به داسې ليکي چې ما داځمکه ددې خلکو په وينا سره تقسيم کړې ده ترڅو دقاضی داتقسيم صرف تر دوئ محدود پاتې شي له دوئ څخه علاوه پر کوم بل شريک داحکم ونه شي .

(۱۱)که مال مشترک له ځمکې څخه علاوه منقولی شئ وو او څوکسانو دعوی وکړه چې داموږته په ميراث کې رسيدلی دی لهذا داپرموږتقسيم کړه نو بالاتفاق به يې قاضی تقسيموي ولی چې دمنقولی شئ په تقسيم کې فائده ده په دې وجه چې منقولی شئ دحفاظت محتاج دی نو له تقسيم څخه وروسته چې هريو ته څه په لاس ورشي هغه ده هغه حفاظت کوي ،او که دځمکې قابضينو دادعوی وکړه چې داځمکه موږ اخيستې ده اوله قاضی څخه يې دتقسيم کولو مطالبه وکړه نو هم به بالاتفاق قاضی داتقسيموي په دې وجه چې له بيع څخه وروسته داځمکه دبائع په ملک کې پاتې نه شوه نو ددې تقسيمول قضاء علی الغير نه ده .

(۱۲)قوله وعوی الملک ای ويقسم فی دعوی الملک ،يعنی که قابضينو صرف دخپل ملکيت دعوی وکړه اوملک سبب يې بيان نه کړ چې داځمکه څرنګه زموږ په ملک کې راغلي ده او له قاضی څخه يې دتقسيم غوښتنه وکړه نو هم به يې قاضی تقسيموي ولی چې په دې صورت کې قابضينو دملک غيرا قرار نه دی کړی لهذا دقاضی تقسيم قضاء علی الغير نه ده .

(۱۳) وَلَوْ بَرْهَنَا أَنَّ الْعَقَارَ فِي أَيْدِيهِمَا لَمْ يُقْسَمْ حَتّٰى يُبَرْهِنَا أَنَّهُ لَهُمَا (۱۴) وَلَوْ بَرْهَنَا عَلَى الْمَوْتِ وَعَدَدِ الْوَرَثَةِ، وَالدَّارُ فِي أَيْدِيهِمَا وَمَعَهُمَا وَارِثٌ غَائِبٌ، أَوْ صَبِيٌّ قُسِمَ بِطَلَبِهِمَا (۱۵) وَنُصِبَ وَكِيلٌ أَوْ وَصِيٌّ يَقْبِضُ نَصِيبَهُ (۱۶) وَلَوْ كَانُوا مُشْتَرِينَ وَغَابَ أَحَدُهُمْ، (۱۷) أَوْ كَانَ الْعَقَارُ فِي يَدِ الْوَارِثِ الْغَائِبِ (۱۸) أَوْ حَضَرَ وَارِثٌ وَاحِدٌ لَمْ يُقْسَمْ

**ترجمه**: كه دوو شريكانو بيّنه پيښ كړه چې ځمكه ددوئ په قبضه كې ده نو تقسيم به نه كول كيږي ترڅو چې دوئ دا ثابته كړي چې هغه ځمكه ددوئ دواړو ده ،اوكه دوه شريكان بيّنه پيښ كړي پر مرگ اودورثه وپر تعداد باندې اومكان ددوئ دواړو په قبضه كې وي اوله دوئ دواړو سره يو بل وارث هم وي كوم چې غائب وي يا ماشوم وي نو تقسيم به كيږي ددوئ دواړو په غوښتنه سره ،اومقرريږي به وكيل يا وصى چې هغه قبض كړي دهغه حصه ،اوكه هغوئ اخيستونكي وو اوغائب ووله دوئ څخه يو ،يا ځمكه دغائب وارث په قبضه كې وه يا دماشوم په قبضه كې وه ،يا حاضر وو صرف يو وارث نو تقسيم به نه كيږي .

**تشريح** :(۱۳) كه يوه ځمكه ددوو كسانو په قبضه كې وي اودواړو پردې قبضه گواه پيښ كړل بيا يې له قاضى څخه دتقسيمولو غوښتنه وكړه نو قاضى به داځمكه ددوئ په منځ كې نه تقسيموي ترڅو چې دوئ پردې باندې گواه پيښ نه كړي چې داځمكه زموږ ملك ده ولى چې احتمال شته چې دادي دكوم بل چا ځمكه وي ددوئ په قبضه كې دي اجارة يا اعارة وي لهذا ترڅو چې په گواهانو سره ددوئ ملكيت ثابت نه شي ترهغه وخته به تقسيم نه كيږي ،په دې مسئله اوتيره شوي مسئله كې فرق دادى چې هلته له قبضي سره دملك دعوى هم شته يعنى قابضين دخپل ملكيت دعوى هم كوي اودلته صرف قبضه ده دملك دعوى نشته .
(۱۴) اوكه دوه وارثان قاضى ته راغلل اودخپل مورث پر وفات اودوارثانو پر تعداد يې گواهان پيښ كړل اومورثى كور ددوئ په قبضه كې وو اوله دوئ دواړو سره يو بل وارث هم وو كوم چې فى الحال غائب دى ياله دوئ سره يو وارث نابالغ ماشوم وو نو قاضى به دا كور ددې حاضر وو وارثانو په مطالبه سره تقسيموي.
(۱۵) قاضى به دغائب له طرف څخه وكيل اودنابالغ له طرف څخه وصى مقرروي كوم چې دغائب اونابالغ حصه قبض كړي ولى چې په دې كې دغائب اونابالغ رعايت اوددوئ فائده ده .
(۱۶) كه دتقسيم غوښتونكي وارثان نه وو بلكه اخيستونكي وو مگر له دې اخيستونكو څخه يو غائب وو نو قاضى به دحاضرينو په غوښتنه سره كور نه تقسيموي ولى چې په وارث اواخيستونكى كې فرق دى په دې ډول چې دوارث ملك دخلافت ملك دى نوله وارثانو څخه يو دميت له طرفه خصم اوبل دخپل ځان له طرفه خصم دى په دې ډول دقاضى قضاء دمتخاصمينو په حضور كې شمارل كيږي حال دا چې دمشترى ملك جديد دى نو حاضر دغائب نائب نه شي جوړيدلى په دې ډول په دې صورت كې دقاضى حكم قضاء على الغائب شمارل كيږي كوم چې جائز نه ده .
(۱۷) همداشان كه ټوله ځمكه يادهغې بعض حصه دهغه وارث په قبضه كې وي كوم چې غائب دى نو دحاضرينو په غوښتنه سره به قاضى تقسيم نه كوي ولى چې قبضه دغائب ده نو دغائب يادهغه دوكيل له حضور څخه بغير دقاضى تقسيم كول قضاء على الغائب ده كوم چې ناجائز ده ،همداشان كه ځمكه دنابالغ په

نیضه کې وي نوهم به څمکه نه تقسیمیږي ولی چې دادصغیرله طرف څخه دکوم خصم حاضربغیرقضاء علی الصغیرده کومه چې ناجائزده ولی چې خصم حاضرنه دی اوپه خپله صغیرخصم نه دی.

(۱۸)که له وارثانوڅخه یوحاضرشواودتقسیم مطالبه یې وکړه نوقاضی به تقسیم نه کوي اګره که هغه دمورث پرمرګ اودوارثانوپه تعدادباندي ګواه هم پیښ کړي ولی چې تقسیم کول دقاضی حکم دی اودقاضی حکم لره دمدعی اومدعی علیه وجودضروري دی حال داچې داخویوفرددی نویوفردبه یامدعی جوړیږي یامدعی علیه ،دواړه نه شي کیدای.

(۱۹)وَقُسِمَ بِطَلَبِ أَحَدِهِمْ لَوِ انْتَفَعَ كُلٌّ بِنَصِيبِهِ وَإِنْ تَضَرَّرَ الْكُلُّ لَمْ يُقْسَمْ إِلَّا بِرِضَاهُمْ وَإِنِ انْتَفَعَ الْبَعْضُ وَتَضَرَّرَ الْبَعْضُ لِقِلَّةِ حَظِّهِ قُسِمَ بِطَلَبِ ذِي الْكَثِيرِ فَقَطْ(۲۰)وَيُقْسَمُ الْعُرُوضُ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ(وَلَا يُقْسَمُ جِنْسَانِ(۲۱)وَالْجَوَاهِرُ وَالرَّقِيقُ(۲۲)وَالْحَمَّامُ وَالْبِئْرُ وَالرَّحَا إِلَّا بِرِضَاهُمْ(۲۳) دُورٌ مُشْتَرَكَةٌ،(۲۴)أَوْ دَارٌ وَضَيْعَةٌ أَوْ دَارٌ وَحَانُوتٌ قُسِمَ كُلٌّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَةٍ

**ترجمه**:اوتقسیمیږي به دیوشریک په غوښتنه سره که نفع اخیستلی شوای هریوه پرخپله حصه باندي اوکه دټولو نقصان وونوتقسیم به نه کیږي مګردټولوپه خوښه سره اوکه ځینوفائده اخیستلی شوای اوځینوته ضرروودحصي دکموالی په وجه سره نوتقسیمیږي به دډیري حصي والاپه غوښتنه سره ،اوتقسیمیږي به اسباب(سامان)چې دیوه جنس وي اونه به تقسیمیږي ددووجنسونووالا،او(نه به تقسیمیږي)جواهراوغلام ،حمام اوڅاه اوژرنده مګردټولوپه خوښه سره ،څومشترک مکانونه دي ،یامکان اوځمکه ده یامکان اودوکان دي نوتقسیمیږي به هریوه ځانته ځانته.

**تشریح**:(۱۹)که له شرکاؤڅخه هریوه په خپله حصه باندي وروسته له قسمة نفع اخیستلی شوای نوله شرکاؤڅخه دیوه په غوښتنه سره به قاضی تقسیم کوي ولی چې په تقسیم کې دمطالبه کونکی دمنفعت تکمیل دی اوتقسیم دده حق دی لهذاپرقاضی تقسیم کول واجب دی .که مشترک شئ دومره کوچنی ووچې په تقسیم کې دهرشریک ضرروونوقاضی به تقسیم نه کوي ولی چې جبرعلی القسمة دتکمیل منفعت لپاره دی حال داچې په دي صورت کې خوتفویت منفعت دی تکمیل نه دی ،همدرازپه داسې صورت کې دتقسیم طلب کولوالامتعنت دی بلاوجه دبل چاته نقصان رسوي لهذاحاکم به دده غوښتنه نه مني .البته که ټول شرکاءپه قسمة راضي وي نوقاضی به تقسیم کوي ولی چې حق خوددوئ دي اودوئ پرخپل کاربنه پوهیږي چې په تقسیم کې ددوئ څه ګټه ده.

(۲۰)که هغه شئ داسې وي چې له شرکاءڅخه یوخوله تقسیم وروسته له خپلې حصي څخه دکثرت په وجه سره انتفاع حاصلوی شي اودهغه بل په وجه دقلت حصه نقصان وي نوکه ډیرحصي والامطالبه وکړه نوقاضی به تقسیم کوي ولی چې دی له خپلي حصي څخه نفع اخیستلی شي لهذادده مطالبه معتبره ده ولی هغه بل ته اګرکه ضرردی مګردچاحق دغیردضررپه وجه سره نه باطلیږي ،اوکه لږحصي والامطالبه وکړه نوقاضی به تقسیم نه کوي ولی چې دتقسیم دمطالبه کونکی نقصان دی بیاهم مطالبه کوي نودی متعنت دی لهذادده مطالبه معتبره نه ده.

**الالفاظ**:ای شرکاءفیمایمکن قسمته اذاطلبوهالم یقسم؟

**نقل**: السکة الغیر النافذة لیس لهم ان یقسموها وان اجمعوا علی ذالک. (الاشباه والنظائر)

(۲۱) یعنی که په سامان کې څوکسان سره شریک وي اوهغوئ دتقسیم مطالبه وکړه نوکه عروض ټول یوجنس وي نوقاضی به تقسیم کوي ولی چې دمتحد الجنس والی په وجه سره مقصودیودی نوله تقسیم څخه تعدیل فی القسمة اوتکمیل المنفعة حاصلیږي په دي وجه داتقسیم جائزدی .اوکه عروض مختلف الجنس وي نوقاضی به بعض په بعضوکې نه تقسیموي چې څینوشرکاؤته بعض اجناس ورکړي اوڅینونوروته بیانوربعض اجناس ورکړي ولی چې په اجناسوکې اختلاط نشته نوپه تقسیم سره تمیزنه راځي بلکه په تقسیم سره بعض اجناس دبعضوپه عوض کې ولاړل کوم لره چې دطرفینوتراضی ضروري ده دقاضی جبر جائزنه دی.

(۲۲) قوله والجواهر والرقیق ای لایقسم الجواهر والرقیق ،یعنی امام ابوحنیفه رحمه الله فرمایي چې قاضی به مشترک جواهرات اوغلامان (جبرا) نه تقسیموي ولی چې په انسانانوکې باطنی تفاوت بیخي ډیردی نودادعروض مختلف الاجناسوپه شان دي اوپه جوهراتوکې خوترانسانانوهم ډیرتفاوت دی په دي وجه به یې قاضی نه تقسیموي ،صاحبین فرمایي چې غلامان صرف نارینه یابنځینه وونوغلامان به تقسیموي دمتحد الجنس والی په وجه سره کمافی الابل والغنم.

**فائده**: دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی اللباب: قال الامام بهاء الدین فی شرحه الصحیح قول ابی حنیفة رحمه الله واعتمده المحبوبی والنسفی وصدرالشریعة وغیرهم کذافی التصحیح (اللباب فی شرح الکتاب علی هامش الجوهرة: ۲/۳۱۹). وقال العلامة الحصکفی: ولاالرقیق وحده لفحش التفاوت فی الآدمی وقالایقسم لوذکورافقط واناثافقط کماتقسم الابل والغنم ورقیق المغنم ولاالجواهر (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۵/۱۸۳)

(۲۳) قوله والحمام والبئروالرحی الخ ای لایقسم الحمام والبئروالرحی الخ ،یعنی قاضی به حمام ،څاه ،اوژرنده نه تقسیموي همداشان هرهغه شئ چې طرفینولره مضروي هغه به نه تقسیموي ولی چې له تقسیم څخه وروسته په دوئ کې دهریوه شریک حصه دقابل انتفاع نه کیدلوپه وجه سره دټولوضرردی البته که شرکاء راضی وي بیاتقسیم کول صحیح دی ولی چې حق ددوئ دی اودوئ پرخپل کاربنه پوهیږي چې په تقسیم کې ددوئ څه ګټه ده.

(۲۴) یعنی که څومکانونه دڅوشریکانوسره مشترک وي اوپه یوه ښارکې وي نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدبه قاضی له دي څخه هریوجلاجلاتقسیموي ولی چې مکانونه داختلاف مقاصدواواختلاف محال اودهمسایه ګانوپه وجه سره اجناس مختلفه دي نویوکوردبل کورپه عوض کې په تقسیمولوکې برابري ممکنه نه ده په دي وجه به داسې تقسیم نه کوي مګرکه شرکاء په دي ډول تقسیم کولوراضی وي نوبیادي تقسیم کړي لماقلنا.صاحبین فرمایي چې که بعض مکانونه په بعضوکې تقسیمول دشرکاء په حق بنه وودهریوه ترجلاجلاتقسیمولوڅخه نوقاضی به بعض دنوروبعضوپه عوض کې تقسیموي ولی چې قاضی له محافظت حقوقوسره پرفعل اصلح ماموردی.

**فائده**: دمام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی اللباب: قال الاسبیجابی الصحیح قول الامام وعلیه مشی البرهانی والنسفی وغیرهما (اللباب فی شرح الکتاب علی هامش الجوهرة: ۲/۳۲۰) وقال العلامة ابن عابدین: اقول ولعل هذافی زمانهم والافالمنازل والبیوت

ولو من دار واحدة تتفاوت تفاوتا فاحشا في زماننا يدل عليه قولهم هنا لان البيوت لا تتفاوت في معنى السكنى ولهذا الاجر اجرة واحدة في كل محلة وكذا ماذكره في خيار الرؤية والاقازهم هناك بقول زفر من انه لابد من رؤية داخل البيوت لتفاوتها تامل (ردالمحتار: ۵/۱۸۳)

(۱۲۳) او که ځمکه او مکان مشترک وي یا مکان او دوکان مشترک وي نو هر یو به علیحده تقسیموي ولې چې جنس مختلف دی او برابري ممکنه نه ده.

(۲۵) وَيُصَوِّرُ الْقَاسِمُ مَا يَقْسِمُهُ وَيَعْدِلُهُ وَيَذْرَعُهُ وَيُقَوِّمُ الْبِنَاءَ (۲۶) وَيُفْرِزُ كُلَّ نَصِيبٍ بِطَرِيقِهِ وَشِرْبِهِ (۲۷) وَيُلَقِّبُ الْأَنْصِبَاءَ بِالْأَوَّلِ وَالثَّانِي وَالثَّالِثِ وَيَكْتُبُ أَسَامِيَهُمْ وَيُقْرِعُ فَمَنْ خَرَجَ اسْمُهُ أَوَّلًا فَلَهُ السَّهْمُ الْأَوَّلُ وَمَنْ خَرَجَ ثَانِيًا فَلَهُ السَّهْمُ الثَّانِي (۲۸) وَلَا تَدْخُلُ فِي الْقِسْمَةِ الدَّرَاهِمُ إلَّا بِرِضَاهُمْ (۲۹) وَإِنْ قُسِمَ وَلِأَحَدِهِمْ مَسِيلٌ أَوْ طَرِيقٌ فِي مِلْكِ الْآخَرِ لَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْقِسْمَةِ صُرِفَ عَنْهُ إنْ أَمْكَنَ وَإِلَّا فُسِخَتْ الْقِسْمَةُ

**ترجمه**: او نقشه دې جوړې کړي قاسم د هغه کوم چې دی تقسیموي او برابر دې کړي هغه او په گز سره دې ناپ کړي او د عمارت قیمت دې ولګوي، او جلا دې کړي هره حصه د هغې له لارې او د اوبو له حق سره، او نوم دې کېږدي په حصو باندې اول، دوهم، دریم، او ودې لیکي د شرکاؤ نومان او قرعه اندازي (هیسکه) دې وکړي نو د چا نوم چې اول راووځي هغه لره اوله حصه ده او د چا نوم چې دوهم راووځي هغه لره دوهمه حصه ده، او نه دې داخلوي په تقسیم کې دراهم مګر د دوئ په خوښه سره، او که تقسیم وکړل شو او د کوم یو او به یا د تګ راتګ لاره د هغه بل په ملک کې پاتې شوه حال دا چې د تقسیم پروخت یې دا شرط نه وو لګولی نو ودې ګرځوي له ده څخه که ممکنه وه که نه نو فسخ دې کړي تقسیم.

**تشریح**: (**۲۵**) د تقسیم طریقه داده چې قاسم چې کوم شئ (یعنی ځمکه، مکان وغیره) تقسیموي اول دې پر کاغذ د هغه نقشه جوړه کړي تر څو د هغه یاد ساتل ممکن وي او هغه دې پر سهام قسمة باندې برابر تقسیم کړي او په گز سره دې ناپ کړي تر څو د ځمکې مقدار معلوم شي او که په هغې کې عمارت وي نو د هغه قیمت دې ولګوي ولې چې د عمارت مالیت په قیمت لګولو سره معلومېږي او د عمارت قیمت دې په دې وجه لګوي چې کله کله په اخر کې د دې ضرورت پیښیږي.

(۲۶) یا دې د هر شریک حصه له لارې او د اوبو له حصې سره جلا کړي تر څو د بعض شرکاؤ د حصه له بعضو نورو سره تعلق پاتې نه شي او په حصو کې تمیز محتقق شي.

(۲۷) یا دې دیوې حصې نوم اول کېږدي او کومه چې له هغه سره متصله ده د هغې نوم د ي دوهم کېږدي یا دریم علی هذا القیاس دې د پاتې نور نوم کېږدي یا دې د کاغذ په جلا جلا ټوټو باندې د هر صاحب حصه نوم ولیکي یا دې قرعه اندازي وکړي د کوم نوم چې اول راووځي هغه ته به له حصو څخه اوله حصه وي او د چا نوم چې دوهم راووځي هغه لره به دوهمه حصه وي وهلم جرا.

(۲۸) په تقسیم کې دې دراهم او دنانیر نه شاملوي مثلا یو مکان د دوو کسانو په منځ کې مشترک دی د تقسیم پروخت قاسم داسې ووایي چې چا چې فلانی حصه ویوړه هغه څرنګه چې لره هغه بلې حصې څخه لویه ده لهذا هغه به دا بل شریک ته دومره دراهم ورکوي نو په دې شان تقسیم دې نه کوي ولې چې تقسیم په مشترک شئ کې جاري کیږي او مشترک خو ځمکه ده دراهم او دنانیر مشترک نه دي، البته که شرکاء په تقسیم کې

ددراهموپه شاملولوباندي راضي وي نوبيا جائزده ولی چې په تقسيم کې ددراهموادنانيروپه داخلولوسره تقسيم عقدمعاوضه جوړېږي اوپه معاوضاتوکې جبرنه وي البته په خپل منځې رضاسره جائزدي.
(۲۹)بياکه قاسم دشرکاء په منځ کې تقسيم وکړاوديوه شريک داوبولاره دبل شريک په حصه کې راغله يادیوه دتګ اوراتګ لاره دهغه بل شريک په حصه کې راغله اوحال داچې ددي شرط په تقسيم کې نه وولګول شوی نوکه دمسيل اولاري دبل شريک له حصي څخه اړول ممکن وي نوده لره اختيارنشته چې دبل شريک په حصه کې دتګ راتګ اواوبولاره جوړه کړي ولی چې په دي کې دبل شريک ضرردی لهذادی به خپله لاره دهغه له حصي څخه اړوي ،اودلاري وغيره دهغه بل شريک له حصي څخه اړول ممکن نهوونوبيادي داتقسيم فسخ کړي ولی چې په دي تقسيم کې خلل دی لهذابيرته دي له سره نوی تقسيم وکړي.

(۳۰)سفلٌ له علوٌ وسفلٌ مجرّدٌ وعلوٌ مجرّدٌ قوّم كلّ واحدٍ على حدةٍ وقسّم بالقيمة (۳۱)وتقبل شهادة القاسمين إن اختلفوا (۳۲)ولو ادّعى احدهم أنّ من نصيبه شيئا في يد صاحبه وقد أقرّ بالاستيفاء لم يصدّق إلّا ببيّنة (۳۳)وإن قال استوفيت وأخذت بعضه صدّق خصمه بحلفه (۳۴)وإن لم يقرّ بالاستيفاء وادّعى أنّ ذا حظّه ولم يسلّم إليه وكذّبه شريكه تحالفا وفسخت القسمة

**ترجمه** :کښته مکان دی اوپرهغه بالاخانه ده اوصرف کښته مکان دی اوصرف بالاخانه ده نوقيمت به لګول کيږي دهريوه عليحده اوتقسيمږي به دقيمت په اعتبارسره ،اوقبليږي به قاسمانوګواهي که شرکاء اختلاف وکړ،اوکه دعوی وکړه له شرکاء څخه يوه چې زماله حصي څخه څه دبل شريک په قبضه کې ده حال داچې ده اقرارکړی وودپوره حق دوصول کولونوده تصديق به نه کيږي مګرپه بيّنه سره ،اوکه يې وويل چې ماپوره حق وصول کړی وومګرتابعض حصه لاندي کړه نوتصديق به کيږي دده دخصم دهغه له قسم سره ،اوکه يې اقرارنه ووکړی دپوره حق دوصول کولواودعوی يې وکړه چې دازماحق دی کوم چې ماته نه دی راکړل شوی اودده تکذيب وکړدده شريک نودواړه به قسم اخلي اوفسخ کيږي به تقسيم.
**تشريح** :(۳۰)که يوسفل سره له بالاخاني مشترک وي اويوسفل بغيرله بالاخاني مشترک وي اويوه بالاخانه مشترکه وي بغيرله سفله نودهريوه به په جلاجلاقيمت سره اندازه لګول کيږي اودقيمت په حساب سره به تقسيميږي له دي څخه ماسواپه کومه بله طريقه سره تقسيم کول معتبرنه دی ،داداامام محمد رحمه الله مسلک دی ،دشيخينوپه نزدبه يې په ګزسره ناپ کړي اوتقسيم به يې کړي ،دامام محمد رحمه الله دليل دادی چې سفل دداسې کارونولپاره په کارراځي دکومولپاره چې بالاخانه په کارنه شې راتلای مثلاپه سفل کې څاه ،زيرزميني (تهه خانه )،اواصطبل (داسانه طويله )جوړول ممکن دي اوپه بالاخانه کې ممکن نه دي نودبرابرتقسيمولوهيڅ صورت نشته ماسواله دي چې دهريوه په قيمت سره اندازه ولګول شي.
**فائده**:دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لمافي الهندية: ومحمد رحمه الله في ذالک کله يعتبر المعادلة بالقيمة وعليه الفتوى(الهندية:۵/۲۰۴).وقال العلامة الحصکفي :(سفل له )اى فوقه (علو)مشترکان (وسفل مجرد)مشترک والعلو لآخر (وعلو مجرد)مشترک والسفل لآخر (قوم کل واحد)من ذالک (عليحدة وقسم بالقيمة عند محمد وبه يفتى (الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۵/۱۸۵)
(۳۱)که تقسيم کونکوشرکاء په خپل منځ کې اختلاف وکړمثلايوه شريک وويل زماله حصي څخه څه څمکه دفلانی په حصه کې ده حال داچې هغه منکردی بيادووقاسمانوګواهي ورکړه چې مدعی خپله حصه پوره

پوره وري ده نودشیخینوپه نزدبه دقاسمانوگواهي قبلیږي ،حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزدقاسمانوگواهي معتبره نه ده ولی چې قاسم پرخپل فعل (یعنی دتقسیم پرفعل )گواهي ورکوي حال داچې پرخپل فعل گواهي معتبرنه ده ،دشیخینودلیل دادی چې هغوئ پرخپل فعل گواهي نه ده ورکړي بلکه دمدعی پرفعل یې گواهي ورکړي ده چې مدعی خپله حصه پوره پوره وړي ده لهذاددوئ گواهي معتبره ده .

ف:دشیخینو قول راجح دی لماقال العلامة الحکفی:انکربعض الشرکاء بعدالقسمة استیفاء نصیبه وشهدالقاسمان بالاستیفاء لحقه تقبل وان قسمابأجرفی الاصح ،وقال العلامة ابن عابدین :(قوله تقبل )لانهماشهدابالاستیفاء وهوفعل غیرهمالابالقسمة وفی الجوهرة هذاقولهماوقال محمد لاتقبل وهوقول ابی یوسف اولاً وبه قال الشافعی وقیل اذاقسمابأجرلاتقبل اجماعاً واصح انه لافرق بین القاسم القاضی وغیره سواء (الدرالمختارمع الشامیة:۵/۱۸۶)(کذافی القول الراجح: ۲/۲۸۱)

(۳۲)که پرشرکاؤکې یوه په تقسیم کې دغلطی دعوه وکړه اووي ویل کوم څه چې ماته په تقسیم کې رسیدلي وو له هغه څخه فلانی شئ زمادفلانی ملکري په قبضه کې دی ،یعنی په غلطی سره داشئ دهغه قبضه ته رسیدلی دی حال داچې مدعی دتقسیم پروخت په خپله گواهي ورکړې وه چې ماخپل حق پوره وصول کړی دی نوپه دي دعوی کې به دده دقول تصدیق نه کیږي مگرداچې مدعی پرخپله دي دعوی باندي گواه پیش کړي ولی چې دی له تقسیم څخه وروسته دفسخ دعوی کوي نوبغیرله گواهانوبه دده دقول تصدیق نه کیږي .

(۳۳)که له تقسیم څخه وروسته له متقاسمینو څخه یوه وویل چې ماخپله حصه پوره وصول کړه بیایې وویل چې زماله حصي څخه تاته وړي دي ،اومدعاعلیه له دي څخه منکردی نوله مدعی څخه به دبینه مطالبه وکړل شي که هغه بینه پیش نه کړای شوه نومدعی علیه قول به سره له یمینه معتبروي ولی چې مدعی پرده دغصب دعوی کوي اودی منکردی اوقول دمنکرمع الیمین معتبروي .

(۳۴)که مدعی مذکوردعوی وکړه چې دتقسیم پروخت ماته ترفلانی حده پوري حصه رسیدلي وه اوده مدعی علیه په قبضه کې یې دیوي حصي طرف ته په اشاره کولوسره وویل چې مدعی علیه زمادا حصه ماته نه ده سپارلي حال داچې مدعی له دي څخه وړاندي پرخپل ځان دوصول حق گواهي نه ده ورکړي .اودده شریک (مدعی علیه )دده تکذیب وکړنودواړه به قسم اخلي اوتقسیم به فسخ کړي ولی چې دوئ دواړوله تقسیم څخه په حاصل شوی مقدارکې اختلاف کړی دی نوداختلاف دمبیع اوثمنوپه مقدارکې له اختلاف سره مشابه شولهذاتحالف واجب دی .

(۳۵)وَلَوْظَهَرَغَبْنٌ فَاحِشٌ فِي الْقِسْمَةِ تُفْسَخُ(۳۶)وَلَوِاسْتُحِقَّ بَعْضٌ شَائِعٌ مِنْ حَظِّهِ رَجَعَ بِقِسْطِهِ فِي حَظِّ شَرِيكِهِ وَلَاتُفْسَخُ الْقِسْمَةُ (۳۷)وَلَوْظَهَرَفِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ رُدَّتْ(۳۸)وَلَوْتَهَايَآفِي سُكْنَى دَارٍ ,أَوْدَارَيْنِ أَوْخِدْمَةِ عَبْدٍ,أَوْعَبْدَيْنِ ,أَوْغَلَّةِ دَارٍ أَوْدَارَيْنِ صَحَّ)(۳۹)وَفِي غَلَّةِ عَبْدٍ أَوْعَبْدَيْنِ ,أَوْبَغْلٍ أَوْبَغْلَيْنِ ,أَوْرُكُوبِ بَغْلٍ ,أَوْبَغْلَيْنِ أَوْثَمَرِ شَجَرَةٍ ,أَوْلَبَنِ شَاةٍ لَا

**ترجمه** :اوکه ظاهرشودیرغبن په تقسیم کې نوفسخ کیږي به ،اوکه مستحق ښکاره شودبعض شایع دده په حصه کې نورجوع به کوي دهمدي مطابق دشریک په حصه کې اوفسخ کیږي به نه تقسیم ،اوکه ښکاره شوپه ترکه کې قرض نوردکیږي به تقسیم ،اوکه یې نوبت مقررکړپه اوسیدنه کې ددوویایوه مکان یادیوه یادوو غلامانوپه خدمت کې یادیوه یادوومکانوپه حاصلاتوکې نوصحیح دی .اودیوه دووغلامانویادیوه یادوو خچرانویادیوه یادووخچرانوپه سورلی کې یاددرختي په میوه کې یادبزي په شیدوکې نوصحیح نه دی .

**تشریح** :(۳۵)که له تقسیم څخه وروسته په تقسیم کې غبن فاحش ښکاره شوه مثلادیوي بزې قیمت سل روپۍ دی قاضي دتقسیم پروخت زرروپۍ کړځولی وونوتقسیم به فسخ کیږي ولی چې دقاضی ذمه واري عادلانه تقسیم کول دي اوکله چې غبن فاحش ښکاره شونومعلومه شوه چې دقاضی تقسیم پرعدل مبنی نه دی .یوقول دادی چې دمتقاسمینوپه خوښه سره تقسیم شوي وي نودغبن فاحش په وجه سره تقسیم نه فسخ کیږي مګرصحیح داده چې دغبن فاحش دښکاره کیدلوپه وجه سره په هرحال کې تقسیم فسخ کیږي .

(۳۶)که له تقسیم څخه وروسته دیوه شریک دڅه غیرمعیني حصي دریم کس مستحق ښکاره شومثلایو مکان ددوکسانوپه منځ کې مشترک وونصف دیوه اونصف دبل وو ،له تقسیم څخه وروسته دیوه دغیرمعین نصف حصي دریم کس مستحق ښکاره شونودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدبه تقسیم نه فسخ کیږي دکوم یوه دحصي دنصف چې مستحق ښکاره شوهغه لره داحق حاصل دی چې دمستحق په اندازه دي له خپل شریک څخه ویوسي یعنی په مذکوره صورت دي دخپلي حصي ربع (کومه چې دټول مکان ثمن دی )له خپل شریک څخه یوسي خرنګه چې ددي نقصان جبیره په مذکوره طریقه سره ممکنه ده لهذاتقسیم به نه فسخ کیږي .امام ابویوسف رحمه الله فرمایي چې دریم کس ښکاره شواوتقسیم دده په خوښه نه دی شوی لهذاداتقسیم صحیح نه دی نوداتقسیم به فسخ کیږي لهذا ابیرته به له سره نوی تقسیم کیږي ،

**فائده**:دطرفینو قول راجح دی لمافی الدر المختار:(ولی) استحقاق (بعض شائع من نصیبه لاتفسخ) جبر اخلافاللثانی ،قال ابن عابدین الشامی:ان قول محمد کقول الامام وهو الاصح کمافی الهدایة(الدر المختار مع الشامیة:۱۸۷/۵)

(۳۷)که وارثانوترکه تقسیم کړه بیاپرمیت دخلګوقرض ثابت شونوکه قرض پرترکه محیط وي اوکه محیط نه وي په دواړوصورتونوکې به تقسیم فسخ کیږي ولی چې که قرض محیط وي نوترکه دپوروړوحق دی .وارثانودنورحق تقسیم کړی دی په دي وجه به تقسیم فسخ کیږي اوکه قرض محیط نه وي نوځرنګه چې له ترکه سره دغرماء حق ترلی دی په دي وجه داتقسیم صحیح نه دی په دي وجه به فسخ کیږي .البته که وارثانودپوروړوقرض اداء کړیاپوروړوقرض معاف کړنوبیابه تقسیم نه فسخ کیږي ولی کوم شئ چې له تقسیم څخه مانع ووهغه اوس پاتي نه شو ،بقول محشی مذکوره بالامسئله دکنزالدقائق په اکثرونسخوکي نشته .

(۳۸)تهایؤله مهایات څخه ده دفقهاؤپه اصطلاح کې دمنافعوتقسیم ته ویل کیږي .کله چې مصنف رحمه الله دقسمة اعیان له بیان څخه فارغ شونودقسمة منافع بیان یې شروع کړ.صورت مسئله دادی چې دووکسانوپه یومشترک مکان کې نوبت مقررکړچې یوه میاشت به په دي کې یواوسیږي اوبله میاشت به بل اوسیږي .یایې په دوومشترکومکانوکې نوبت مقررکړچې په یوه مکان کې به یواوسیږي اوپه بل کې به هغه بل اوسیږي نودااستحسانا جائزدی لقوله تعالی ﴿لها شرب ولکم شرب یوم معلوم﴾ داد حضرت صالح علیه السلام داوښې په باره کې نازل شوی دی چې یوه ورځ به اوبوڅښلونوبت ددي اوښې وي اویوه ورځ به دنوروخلګو دڅارویو نوبت وي .همدارازنبی کریم ﷺ په غزوه بدرکې یواوښ په دریوکسانوکې تقسیم کړی ووهغوئ پردي په نوبت سره سوریلی کوله .همدارازپردي ...مت اجماع هم ده .همداحکم په یوه یادووغلامانوپه نوبت نوبت دخدمت

کولو هم دی مثلا يوه ورځ به ديوه خدمت کوي او بله ورځ به دبل خدمت کوي ،يا به يو غلام ديوه خدمت کوي او بل به دبل خدمت کوي ،همدا شان دا حکم ديوه يا دوو مشترکو مکانو دکتني هم دی مثلا ديوي مياشتي گټه به يي يو وړي او دبلي مياشتي گټه به يي بل وړي يا ديوه مکان گټه به يو وړي او دبل گټه به بل وړي .

(۳۹)قوله ولوفي غلة عبداوعبدين الخ اى لوتهايئافي غلة عبداوعبدين الخ ،يعني كه دووشريكانو ديوه غلام يا دوو غلامانو په گټه کي يا ديوه خچر يا دوو خچرانو په گټه کي نوبت مقرر کړ ،يا ديوه خچر يا دوو خچرانو په سورلي کي ،يا ديوي درختي په ميوه کي ،يا ديوي بزي په شيدو کي يي نوبت مقرر کړنو دا ته صورتونه صحيح نه دي ،اولني او دريم صورت بالاتفاق صحيح نه دی ولی چي په نوبت کي تعاقب دی يعني يوله بله وروسته دی نو په گټه کي دزيادت او کمښت احتمال دی لهذا برابري نه شي کيدای .او دوهم او څلورم صورت دامام صاحب په نزد جائز نه دی ولی چي دنوبت مقررولو جواز دضرورت پر اساس دی او دلته ضرورت نشته ولی چي اجرت تقسيمدلی شي .دصاحبينو په نزد جائز دی ولی چي دا تحاد وخت په وجه سره په دواړو کي مساوات ممکن دی .او پنځم او شپږم صورت په دي وجه جائز نه دی چي رکوب (سپرتيا) دراکب په وجه سره متفاوته وي لهذا په دواړو کي برابري نشته .او اووم او اتم صورت هم بالاتفاق په دي وجه ناجائز دی چي نوبت خو دضرورت په اساس په منافعو کي جائز شوی دی حال دا چي ميوه او شيدي خوله اعيانو څخه دي په دي کي تقسيم جاري کيدای شي په دي وجه تهايؤ جائز نه ده .

## كِتَابُ الْمُزَارَعَةِ

### دا کتاب دمزارعت په بيان کي دی

مزارعة له زرع (په معنی دکرلو ،تخم پاشلو) څخه دی او په شريعت کي عقد على الزرع ببعض الخارج (يعني دحاصلاتو په بعض حصه باندي دکښت کولو عقد کولو) ته مزارعة ويل کيږي ،مزارعت ته مخابره او محاقله هم ويل کيږي .

دکتاب المزارعة له کتاب القسمة سره مناسبت دا دی چي په مزارعة کي هم له کښت څخه چي کوم حاصلات حاصليږي هغه دمزارع او دځمکي دمالک په منځ تقسيميږي ،نو دتقسيم املاک ترحده په دواړو کي اشتراک موجود دی په دي وجه دقسمة دا حکامو له ذکر کولو څخه وروسته مصنف رحمه الله دمزارعة احکام ذکر کړي دي .

(۱)هِيَ عَقْدٌ عَلَى الزَّرْعِ بِبَعْضِ الْخَارِجِ (۲) وَتَصِحُّ بِشَرْطِ صَلَاحِيَّةِ الْأَرْضِ لِلزِّرَاعَةِ وَأَهْلِيَّةِ الْعَاقِدَيْنِ وَبَيَانِ الْمُدَّةِ وَرَبِّ الْبَذْرِ وَجِنْسِهِ وَحَظِّ الْآخَرِ وَالتَّخْلِيَةِ بَيْنَ الْأَرْضِ وَالْعَامِلِ وَالشَّرِكَةِ فِي الْخَارِجِ (۳) وَأَنْ تَكُونَ الْأَرْضُ وَالْبَذْرُ لِوَاحِدٍ وَالْعَمَلُ وَالْبَقَرُ لِآخَرَ ,أَوْ تَكُونَ الْأَرْضُ لِوَاحِدٍ وَالْبَاقِي لِآخَرَ أَوْ يَكُونَ الْعَمَلُ لِوَاحِدٍ وَالْبَاقِي لِآخَرَ

**ترجمه** :هغه عقد دی پر کرهنه دبعض حاصلاتو په عوض کي ،او دا صحيح دی په دي شرط چي قابله وي ځمکه دکرهني او اهل وي متعاقدين او بيان شوی وي مدت ،او دتخم والا او کښت جنس او دهغه بل حصه

اوتخليه وي دځمکې اومزارع په منځ کې اوشرکت وي په حاصلاتو کې ،اوداچې وي ځمکه اوتخم ديوه
اوغويي اوکاردبل ياوي ځمکه ديوه اوباقي دهغه بل ياوي کارديوه اوباقي دهغه بل.

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله دمزارعت اصطلاحي تعريف په دي ډول کړی دی چې مزارعت دکښت کولو هغه عقدته ويل کيږي کوم چې دځمکې دحاصلاتو په بعض حصه مثلاً ثلث يا ربع وغيره باندي منعقدشي ،داشرط دی چې دبعض حاصلاتو په عوض کې به وي نوکه ټول حاصلات دځمکې مالک لره وي نودامزارعت نه دی بلکه استعانت بالعامل دی اوکه ټول حاصلات عامل لره وي نوهم مزارعت نه بلکه دمالک له طرف څخه عامل ته ځمکه په عارية سره ورکول دي.

(۲)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد په ثلث اوربع ياکم وزيات سره مزارعت باطل دی لان النبی ﷺ نهی عن المخابرة (وهی المزارعة)يعني نبی کريم ﷺ له مخابره څخه منع فرمايلې ده ،اومخابره مزارعت ته ويل کيږي ،همداشان يوه وجه دفسادداهم ده چې په مزارعت کې اجرت مجهول يابالکل معدوم وي په دي وجه جائزنه دی .دصاحبينو په نزدمزارعت په ثلث اوربع وغيره سره جائزدی ولي کله چې نبی کريم ﷺ خيبرفتح کړنودهغه ځای يهوديې پرهغه ځای برقرار وساتل اوداامعامله يې ورسره وکړه چې کوم حاصلات چې وي دهغه نصف به مسلمانانوته ورکوي ،نوکه مزارعت جائزنه وای نونبی کريم ﷺ به ولی کاوو.همداراز مزارعت خوعقدشرکت بين المال والعمل دی نولکه څرنگه چې مضاربت جائزدی چې په هغه کې هم ديوه مال اودبل عمل وي نوهمداشان مزارعت هم بايد جائزوي.

**فائده**:دامت دتعامل اودخلکو دضرورت په وجه سره فتوی دصاحبينو پرقول ده لمافی الدرالمختار:(وعندهماتصح وبه يفتی )للحاجة وقياساعلی المضاربة (الدرالمختار:۵/۱۹۳)له همدي وجه مصنف رحمه الله راتلونکي مسائلي دصاحبينو پرمسلک متفرع کړي دي.

دصاحبينو په نزددصحت مزارعت لپاره څوشرطونه دي (۱)ځمکه به دزراعت قابله وي داشرط په دي وجه دی چې له دي څخه بغيرمقصودنه حاصليږي .(۲)دځمکې مالک اوکښت کونکی به دواړه اهل عقديعنی عاقل بالغ وي ولی چې دمتعاقدينوله اهليت څخه بغيرعقدنه صحيح کيږي اوله عقل اوبلوغ څخه بغيرعاقداهل عقدنه دي .(۳)دزراعت دمدي بيانول ضروري دي چې ديوه کال لپاره ده ياددووکالولپاره ،ولی چې دمدت مجهول والی داختلاف سبب جوړيږي مثلاً دځمکې مالک به دخپلي ځمکې دزرفارغه کولومطالبه کوي اومزارع به دډيرمدي لپاره دفصل پرځمکه دبرقرار ساتلوتقاضاکوي .(۴)دايبان کول ضروري دی چې تخم به دچاوي دځمکې دمالک يا دمزارع ترڅوچې دامعلومه شي چې معقودعليه څه شئ دی دځمکې منافع دي اوکه دمزارع منافع يعني که تخم دمزارع وي نومطلب به يې داوي چې هغه دځمکې منافع حاصلوي اوکه تخم دځمکې دمالک وي نومطلب به يې داوي چې هغه دمزارع منافع حاصلوي ،(۵)اودتخم جنس معلومول ضروري دی چې غنم کري يااوربښې وغيره ولی چې دتخم بعض اقسام دځمکې لپاره مضروي اوبعض غيرمضر ،لهذا دتخم معلومول ضروري دی ترڅومفضی للنزاع نه شي.

(۶)دچاله طرفه چې تخم نه وي دهغه حصه معلومول ضروري ده ولې چې هغه دخپلې حصې مستحق دشرط په وجه سره وي نودهغه حصه معلومول ضروري ده كنه نودشرط په وجه سره به استحقاق څرنګه ثابت شي .(۷)دځمكې مالک به دځمكې اودمزارع په منځ كې تخليه كوي چې په ځمكه كې دزميندارهيڅ دخل پاتې نه شي داشرط په له دي وجه دي ترڅوچې دمزارع عمل كول ممكن شي (۸)اودصحت مزارعت لپاره داهم شرط دی چې دځمكې په حاصلاتوكې به دمزارع اورب الارض په منځ كې اشتراک دشيوع په طريقه سره وي ولې چې مزارعت انتهاء شركت دی ،نوكه په حاصلاتوكې اشتراک مشاعاشرط نه شي بلكه دكوم يوه لپاره دڅه معلوموحاصلاتومثلالس قفيزه شرط ولګول شي نودامزارعت باطل دی ولې چې په دي سره شركت منقطع كيږي په دي وجه چې كيداى شي چې دځمكې ټول حاصلات دي صرف لس قفيزه وي نوهغه بل ته دهيڅ شئ دنه پاتې كيدلوپه وجه سره شركت منقطع كيږي .

(۳)دصاحبينوپه نزددمزارعت دري صحيح اوجائزصورتونه دي په دي وجه له دي صورتونوڅخه ديوه وجودهم شرط دی .نمبر۱- ځمكه اوتخم به ديوه له طرف څخه وي غويي اوكاربه دبل له طرف څخه وي ،داصورت جائزدی ولې چې په دي صورت كې دځمكې مالک مستاجردی عامل يې دبعضوحاصلاتوپه عوض په اجاره نيولی دی اوغويي داجيردعمل تابع دي ولې چې دعمل آله ده اوداداسې صورت دی لكه چې مستاجرخياط اجيركړي ترڅوهغه په اجاره سره په خپله ستنه دمستاجرجامي وګنډي لهذاداجائزدی .

نمبر۲- ځمكه ديوه وي اوكار،غويي اوتخم دبل وي داصورت هم جائزدی ولې چې ددي حاصل دادی چې دتخم مالک دځمكې دمالک ځمكه په كرايه باندي اخلي دځمكې دبعضوحاصلاتوپه عوض كې كوم چې جائزدی .نمبر۳- كه ځمكه ،تخم اوغويي ديوه وي اوعمل دبل وي نوداهم جائزدی ولې چې ددي حاصل دادی چې دځمكې مالک كاركونكی دځمكې دمالک په الاتوسره دكاركولولپاره مزدوركړی دی نوداداسې ده لكه مستاجرچې خياط اجيركړي ترڅودمستاجرپه ستنه سره دمستاجرجامي وګنډي لهذاداجائزده .

(۴)فإن كانت الأرض والبقر لواحد والعمل والبذر لآخر ,(۵)أو كان البذر لأحدهما والباقي لآخر ,(۶)أو كان البذر والبقر لواحد والباقي لآخر (۷),أو شرط لأحدهما قفزانا مسماة (۸)أو ما على الماذيانات والسواقي ,(۹)أو أن يرفع رب البذر بذره ,أو أن يرفع الخراج ,والباقي بينهما فسدت (۱۰)فيكون الخارج لرب البذر وللآخر أجر مثل عمله ,أو أرضه ولم يزد على ما شرط

**ترجمه** :نوكه وه ځمكه اوغويي ديوه اوتخم اوكاردبل ،يااوتخم ديوه اوباقي دبل ،يااوتخم اوغويي ديوه اوباقي دبل ،يادواړوشرط ولګاوديوه لپاره دمعين قفيز،يادلښتيانودحاصلاتو ،ياداچې وړي به دتخم والاخپل تخم يابه اول اداء كوي خراج اوپاتي به ددواړومشترک وي نوفاسددی ،نووي به حاصلات دتخم دوالااودهغه بل لپاره به اجرت مثل وی دهغه دعمل يادهغه دځمكې اوزيات به نه وركول كيږي له هغه مقدارڅخه كوم چې دواړوشرط كړی دی .

**تشريح** :(۴)له دي ځخه وراندي مصنف ﷫ دجوازشرائط بيان كړي وواوس له دي ځايه شروط فساديانوي .لكه چې فرمايي چې كه ځمكه اوغويي ديوه وي اوكاراوتخم دبل وی نودظاهرالروايت مطابق داصورت باطل دی ولې چې په دي صورت كې دتخم مالک ځمكه په كرايه اخيستی ده اواجرت يې

دحاصلاتو څخه حصه مقررکړی دی ،اوغوایان یې هم دځمکې پرمالک لازم کړي دي نوګویاده غوایان دځمکې تابع ګرځولي دی حال داچې غوایان دځمکې تابع ګرځول صحیح نه دي ولی چې دغوایانومنفعت دځمکې څیرول دي اودځمکې منفعت دکښت شنه کول دي په دواړوکې ډیرفرق دی حال داچې تبعیت لپاره اتحادضروري دی.

(۵)که تخم دیوه له طرفه وي اوځمکه ،غویې اوکارتول دبل له طرف څخه وي نوداصورت هم ناجائزدی ولی چې دلته دځمکې مالک عامل جوړیږي حال داچې وړاندې تیره شوه چې په ځمکه کې به دځمکې دمالک هیڅ دخل نه وي.

(۶)اوکه تخم اوغویې دیوه وي اوځمکه اوعمل دبل وي یعنی دکاښتکارله طرف څخه تخم اوغویې وي اودځمکې دمالک له طرف څخه ځمکه اوکاروي نوداصورت هم ناجائزدی ولی چې په دې صورت کې هم دځمکې مالک عامل جوړیږي حال داچې داجائزنه ده.

(۷)اودصحت مزارعت لپاره داهم شرط دی چې دځمکې په حاصلاتوکې به دمزارع اورب الارض په منځ کې اشتراک دشیوع په طریقه سره وي ولی چې مزارعت انتهاء شرکت دی نوکه په حاصلاتوکې اشتراک مشاعاشرط نه شې بلکه دکوم یوه لپاره دڅه معلوموحاصلاتومثلالس قفیزه شرط ولګول شې نودامزارعت باطل دی ولی چې په دې سره شرکت منقطع کیږي په دې وجه چې کیدای شې چې دځمکې ټول حاصلات دې صرف لس قفیزه وي نوهغه بل ته دهیڅ شئ دنه پاتې کیدلوپه وجه سره شرکت منقطع کیږي.

(۸)همداشان هغه حاصلات کوم چې دلښتیانوپه شاواخواوي دیوه لپاره شرط کړل نودمزارعت داصورت باطل دی ولی چې په دې کې هم دصورت سابقه په شان دانقطاع شرکت امکان دی ولی کیدای شې چې حاصلات صرف په لښتیانوشنه شې ،ماذیانات اوسواقی هغه لښتیانوته وایې چې له نهرڅخه کوچني وي دواړه مرادف الفاظ دي.

(۹)همداشان که دواړوداشرط ولګاوو چې دچاله طرفه چې تخم وي هغه به لومړی له حاصلاتوڅخه دتخم اندازه وړي اوکوم چې باقی پاتې شې هغه به ددواړومشترک وي نوداصورت هم ناجائزدی ولی چې په دې سره هم شرکت منقطع کیږي په دې وجه چې کیدای شې چې دځمکې ټول حاصلات دې دتخم په اندازه وي نوهغه بل ته به هیڅ پاتې نه شې .همداشان که ځمکه خراجي وه اوپه مزارعت کې داشرط ولګول شوچې دځمکې له حاصلاتوڅخه به لومړی خراج اداء کوو پاتې به ددواړوپه منځ کې مشترک وي نوکه پرځمکه خراج متعین مقداروو مثلاپنځوس منه نوداصورت هم ناجائزدی ولی چې په دې سره هم شرکت منقطع کیږي په دې وجه چې کیدای شې چې دځمکې ټول حاصلات دې پنځوس منه وي.

(۱۰)قوله فیکون الخارج لرب البذرای اذافسدت المزارعة فیکون الخارج لرب البذر،یعنی که عقدمزارعت فاسدشونوټول حاصلات به دتخم والاوړي په دې وجه چې داحاصلات دده دملک (تخم) نماء (زیادت) دی ،اوهغه بل ته به دده دعمل اجرت مثل ورکوي که هغه عامل وي ،یابه دده دځمکې اجرت مثل ورکوي که هغه دځمکې مالک وي ،مګرداجرت مثل په له مقدارڅخه زیات نه وي کوم چې دعقدپروخت شرط کړل شوی وو مثلاعامل ته

یې دنصف حاصلاتو شرط لګولی وونو اوس به دا اجرت مثل له نصف حاصلاتو څخه زیات نه وي ولی چې له نصف حاصلاتو څخه دزیات حق په ساقطولو خودی په خپله راضی شوی وو ،دادشیخینو مسلک دی حال داچې دامام محمد رحمه الله په نزد به اجرت مثل ورکوي که له شرط شوی مقدار څخه کم وي او که زیات وي .

**فائده**: دشیخینو قول راجح دی لمافي اللباب :قال في التصحيح ومشی علی قولهما المحبوبي والنسفي (اللباب في شرح الکتاب علی هامش الجوهرة ک ۱/۳۸۰)

**مسئله** :دیو کس ځمکه ده دوهم کښت کونکی دی اودریم کس برمه ده چې په هغې سره ځمکې ته اوبه ورکوي حاصلات په دریو برخو ویښل کیږي هریوه ته یوه یوه حصه ورکول کیږي ،دمزارعت دا صورت جائزنه دی بلکه ټول حاصلات به دځمکې دمالک او مزارع په منځ کې تقسیمیږي اودبرمي مالک ته به اجرت مثل دنغدو په صورت کې حاصلیږي (ملخص ازاحسن الفتاوی :۷/۳۷۸)

(۱۱) وإن صحت فالخارج على الشرط وإن لم يخرج شيء فلا شيء للعامل (۱۲) ومن أبى عن المضي أجبر إلا رب البذر (۱۳) وتبطل بموت أحدهما (۱۴) فإن مضت المدة والزرع لم يدرك فعلى المزارع أجر مثل أرضه حتى يدرك (۱۵) ونفقة الزرع عليهما بقدر حقوقهما كأجرة الحصاد والرفاع والدياس والتذرية (۱۶) فإن شرطاه على العامل فسدت

**ترجمه** :اوکه عقد مزارعت صحیح شونو حاصلات به دشرط مطابق وي او که هیڅ شئ نه شو حاصل نو هیڅ به نه وي عامل لره .اوکوم چې انکار وکړي دمعاملي له پوره کولو څخه نو هغه به مجبورکیږي مګر دتخم والا .اوباطلیږي دکوم یوه په مرګ سره ،اوکه مدت ختم شو او کښت نه وو پوخ شوی نو پرمزارع اجرت مثل دی دځمکې ترڅو چې پوخ شي ،اودکښت خرڅ به پردواړو وي ددواړو دحقوقو په اندازه لکه دیړي کولو اجرت .دوړلو اجرت ،اودپاکولو اجرت ،اوکه دواړو داشرط ولګاوه چې خرڅه به پرعامل وي نو مزارعت فاسدیږي .

**تشریح** :(۱۱) دصحت مزارعت لپاره چې کوم شرائط دي متعاقدینو دهغو په رعایت کولو سره عقد مزارعت وکړاو مثلاً حاصلات یې نصف نصف تقسیمول شرط کړل نو کوم حاصلات چې وي هغه به دشرط مطابق تقسیمیږي ولی عقد چې کله صحیح وي نو مسمی واجبیږي ،اوکه په کومه وجه سره هیڅ حاصلات ونه شول نو عامل ته به هیڅ اجرت نه حاصلیږي ولی چې مزارعت یا خو اجاره ده یا شرکت دی ،که اجاره وي نو داجاري په عقد صحیح کې مسمی واجبیږي کوم چې دلته معدوم دی لهذا دغیر مسمی مستحق نه دی ،اوکه شرکت وي نو شرکت خو په حاصلات کې دی له حاصلاتو ماسوا په بل شئ کې نه دی او حاصلات شوی نه دي لهذا دهیڅ شئ مستحق نه دی .

(۱۲) که دشروط صحت مطابق دمزارعت معامله دمتعاقدینو ترمنځ فیصله شوه اوس که له متعاقدینو څخه هغه یو چې دهغه تخم نه وو دمعامله له پوره کولو څخه منع شو نو حاکم به هغه پر معامله کولو مجبوروي په دي وجه چې په عقد پوره کولو کې ده ته هیڅ نقصان نه رسیږي اوعقد هم لازم شوی دی لهذا هغه به په پوره کولو مجبوره کیږي ،البته که کوم داسې عذر پیښ شو چې په هغه سره اجاره فسخ کیدله نو په هغه سره مزارعت هم فسخ کیږي .اوکه تخم والاله تخم پاشلو څخه ورانډې له کارکولو منع شو نو هغه به دمزارعت په پوره

کولو نه مجبوره کیږي ولی چې بغیر دهغه له نقصان څخه دامعامله نه شې پوره کیدلی په دي وجه چې هغه به خپل تخم په ځمکه کې هلاکوي بیابه داعقدپوره کیږي په کوم کې چې فی الحال نقصان دی .
(۱۳)که له متعاقدینو څخه کوم یو مړشي نو دقیاس تقاضاداده چې عقدمزارعت باطل شې ولی چې مزارعت عقد اجاره دی او داجاري حکم وړاندي تیرشوی دی چې داحدالمتعاقدین په مرگ سر ه باطلیږي ،لیکن استحسـان دادی چې که کښت شین شوی وي نو عقدنه باطلیږي بلکه عقد اجاره به اوس هم پاتي وي ترڅوچې کښت وریبل شې بیاپه باقی مده کې باطل دی ولی چې دعقدترمذکوره مدت پوري په برقرارساتلوکې ددواړورعایت دی .
(۱۴)که دمزارعت مدت ختم شومگر کښت تر اوسه پوري اوم دی نوعامل به دخپلي حصي په اندازه دځمکي اجرت مثل اداء کوي ترڅوچې کښت پخیږي مثلا یوه میاشت دکښت ترپخیدلو اوریبلوپوري پاته ده نودیوي میاشتې اجرت مثل به ورکوي ولی چې په دي کې بقدرالامکان دجانبینورعایت دی ،لیکن څرنگه چې اوس عقدمزارعت ختم شوی دی اوکښت ددواړومشترک دی لهذاله دي څخه وروسته به هریودخپلي حصي په اندازه دمصرف اوکارذمه واروي .
(۱۵)قوله کاجرالحصادالخ ای کمایجب علیهمااجرالحصادوغیره مطلقا،یعنی په مذکوره بالاصورت کې پرهریوه دخپلي حصي په اندازه مصرف لازم دی لکه څرنگه چې که کښت پوخ شې که په مدت پوره شوی وي اوکه نه وي نوله دي څخه وروسته دکښت دریبلو ،یوځای کولو ،دغلي دپاکولو اجرت پردواړودحصصوپه اندازه دی ولی چې دکښت په تکمیل سره عقدهم پای ته ورسیدی اومال دمتعاقدین په منځ کې مشترک شونوځکه به هم پردواړه وروي .
(۱۶)اوکه دکښت له پخیدلو څخه وروسته اعمال (مثلا ریبل ،یوځای کول ،وغیره )صرف دعامل پرذمه لازم کړل شول نوداعقدفاسددی ولی چې داداسې شرط دی چې عقديې مقتضی نه دی اوله متعاقدینو څخه دیوه فائده هم ده اوداسې شرط عقدفاسدوي ،لیکن له امام ابویوسف رحمه الله څخه مروی ده چې دکښت له پخیدلو څخه وروسته مذکوره اموردعامل پرذمه لگول مفسدعقدنه دي .
**فائده**:دبلخ مشائخودخلگودتعامل په وجه سره دامام ابویوسف رحمه الله پرقول فتوی ورکړي ده لمافی الدر المختار:(وصح اشتراط العمل) کحصادودیاس ونسف علی العامل (عندالثانی للتعامل وهوالاصح )وعلیه الفتوی (الدر المختار علی هامش ردالمختار:۵/۱۹۸)

## كتاب المساقاة

### داکتاب دمساقات په بیان کې دی

مسـاقات له سقی څخه دی په معنی ده اوبه کولو ،شرعاهغه عقددی چې یو کس خپل باغ ته ددی لپاره ورکړي ترڅو هغه يې اصلاح وکړي اوپالنه يې وکړي اوعامل ته له حاصلاتو څخه معلومه حصه ورکړي ،اهل مدینه مسـاقات ته معامله وایي .

دمساقات له مزارعت سره مناسبت ظاهردی چې دواړه دملک دمنفعت دتحصیل لپاره مشروع عقوددي همداوجه ده چې دحکم ،شرائطو او اختلاف ائمه کې مساقات دمزارعت په شان دی .په دواړوکې فرق صرف دومره دی چې په مزارعت کې دکرکیل د آلاتووغیره په ذریعه سره دکښت پالنه کیږي اوپه مساقات کې ددرختو اصلاح وغیره وي .بیامناسب خوداووچې دمساقات احکام یې له مزارعت څخه وړاندي ذکرکړي وای ولی چې دمساقات جوازله ډیروعلماؤ څخه منقول دی اوپه احادیثوکې هم واردډی چې نبی کریم ﷺ له خیبروالوسره دمساقات معامله کړي وه ،لیکن دمزارعت دمسائلودکثرت په وجه سره دهغه داحکامودپیژندلوډیرضرورت ووپه دي وجه مصنف رحمه الله مزارعت مقدم کړ،همدارازپه دي کې هم دامام ابوحنیفه رحمه الله اوصاحبینو هغه اختلاف دی کوم چې په مزارعت کې تیرشو.

**فائده**:په مساقات کې هم فتوی دصاحبینوپرقول ده لماقال العلامة ابراهيم ابن محمدالحلبی :(وهی)المساقاة (كالمزارعة حكما)حيث يفتی على صحتها(وخلافا) حيث تبطل عندالامام،وتصح عندهما كالمزارعة وبه قالت الائمة الثلاثة(مجمع الانهر:۴/۱۴۸)

(١)هِيَ مُعَاقَدَةُ دَفْعِ الْأَشْجَارِ إلَى مَنْ يَعْمَلُ فِيهَا عَلَى أَنَّ الثَّمَرَ بَيْنَهُمَا (٢)وَهِيَ كَالْمُزَارَعَةِ (٣)وَتَصِحُّ فِي الشَّجَرِ وَالْكَرْمِ وَالرِّطَابِ وَأُصُولِ الْبَاذِنْجَانِ (٤)فَإِنْ دَفَعَ نَخْلًا فِيهِ ثَمَرَةٌ مُسَاقَاةً وَالثَّمَرَةُ تَزِيدُ بِالْعَمَلِ صَحَّتْ ،وَإِنْ انْتَهَتْ لَا كَالْمُزَارَعَةِ (٥)وإذا فَسَدَتْ فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ مِثْلِهِ (٦)وَتَبْطُلُ بِالْمَوْتِ (٧)وَتُفْسَخُ بِالْعُذْرِ كَالْمُزَارَعَةِ بِأَنْ يَكُونَ الْعَامِلُ سَارِقًا أو مَرِيضًا لَا يَقْدِرُ عَلَى الْعَمَلِ

**ترجمه**:هغه باهم عقددی ددرختوورکولوهغه کس ته کوم چې به دهغوپالنه کوي په دي شرط چې میوه به ددواړومشترکه وي ،اوهغه دمزارعت په شان دی ،اوصحیح دی په خرماووکې اوپه درختوکې اوپه انګوروکې اوپه رطبه کې اوبانجنوپه بټوکې ،اوکه یې ورکړي دخرمادرختې پرمساقات اومیوه لویه دله په عمل سره نوصحیح دی اوکه یې لوییدل پای ته رسیدلي وونوصحیح نه دی لکه مزارعت ،اوکله چې مساقات فاسدشي نوعامل لره به اجرمثل وي ،اوعقدمساقات باطلیږي په مرګ سره ،اوفسخ کیږي دعذرپه وجه سره دمزارعت په شان مثلاً عامل غل وي یادومره ناروغه وي چې پرعمل قادر نه وي.

**تشریح**:(۱)مصنف رحمه الله دمساقات اصطلاحي تعریف په دي ډول سره کړی دی چې مساقات هغه عقدته ویل کیږي چې کوم کس خپل باغ داسې کس ته ورکړي چې هغه یې پالنه وکړي په دي شرط یې ورکړي چې په دي کې چې څه حاصلات وشي هغه به موږدواړه په خپل منځ کې تقسیموو.

(۲)مساقات په ټولو احکامو ،شروطو او اختلاف کې دمزارعت په شان دی چنانچه دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددمیوي دجزءشائع په عوض کې مساقات دمزارعت په شان ناجائزدی اودصاحبینوپه نزدجائزدی.

**فائده**:دصاحبینوقول مفتی به دی لمافی الهندية :المعاملة فی الاشجار والكرم بجزء من الثمر فاسدة عند ابی حنيفه وعندهما جائزة اذا ذكر مدة معلومة وسمی جزء مشاعا والفتوی على انه تجوز وان لم يبين المدة كذا فی السراجية (الهندية:۵/۲۷۸)

(۳)یعنی مساقات دصاحبینوپه نزدجائزدی په خرماووانوروودرختوکې ،په انګوروکې ،په سبزیانوکې ،اودبانجنوپه بوټوکې ولی چې دمساقات جوازدحاجت اوضرورت په وجه سره دی اوحاجت په مذکوره ټولوشیانوکې شته.

(۴)كه دباغ مالک عامل ته دخرماووباغ په مساقات سره وركړي كوم كې چې خامي خرماوي وي كومې چې دعامل په پالنه سره نوري لويدلي شواى نودمساقات داصورت دضرورت پراساس جائزدى ،اوكه ميوه پخ شوي وه دعامل په پالنه سره نوري نه شواى لويدلي اودعامل دكوم عمل مزيدضرورت نه وونودمساقات داصورت جائزنه دى ولي چې عامل دخپل عمل په وجه سره مستحق ګرځي نوكله چې ميوه پخ شوي ده نودده دعمل هيڅ دخل پاتي نه شولهذاداصورت ناجائزدى لكه چې په مزارعت دكښت له پخيدلوڅخه وروسته ځرنګه چې دعامل دعمل ضرورت نه پاتې كيږي لهذااوس داچاته په مزارعت سره وركول ناجائزدى.

(۵)كه په كومه وجه سره مساقات فاسدشونوعامل ته به اجرمثل وركول كيږي ولي چې مساقات فاسده داجاره فاسده په معنى كې دى نولكه ځرنګه چې په اجاره فاسده كې اجيرته اجرمثل وركول كيږي نوپه مساقات كې به هم اجرمثل وركول كيږي ،ليكن اجرمثل به په عقدكې له مشروط مقدارڅخه زائدنه وي كمامر.

**مسئله** :يوكس خپله ځمكه چاته په دي شرط وركوي چې په دي كې باغ ولګوه .دباغ په درختوكې به دى دنصف مالک وي ددي دري صورتونه جوړيږي (۱)كه يې له باغ سره په ځمكه كې هم دشركت شرط ولګوى نوعقدفاسددى (۲)كه يې په ځمكه كې دشركت شرط ونه لګاووليكن دعقدمده يې بيان نه كړه نوداعقدهم فاسددى (۳)صرف په درختوكې دشركت شرط ولګول شواودعقدمده هم معينه كړل شوه نوداعقدصحيح دى اودعقدمدي په ختميدلوسره به دځمكي مالک لره اختياروي چې په نصف قيمت سره درختي واخلى يايې وكاږي ،اوپه دوهم صورت كې دټولودرختومالک عامل دى اودځمكي مالک لره به دځمكې اجرمثل وركول كيږي اوده لره به اختياروي چې درختي واخلي ياله عامل څخه دكښلومطالبه وكړي .په اول صورت كې دجوازحيله داكيداى شي چې دځمكي نيمايي دباغ دنيمايي په عوض خرڅه كړي اوعامل دي په اجرقليل سرداجيركړي (ملخص ازاحسن الفتاوى :۷/۳۷۸)

(۶)داحدالمتعاقدين په مرګ سره هم مساقات باطليږي ولي چې مساقات داجاري په معنى كې دى اوداجاري حكم تيرشوچې داحدالمتعاقدين په مرګ سره باطليږي لهذامساقات هم داحدالمتعاقدين په مرګ سره باطليږي ،ليكن استحسان داتقاضاكوي چې كه دځمكي مالک مړشواوميوه تراوسه كچه وه نودميوي ترپخيدلوپوري دي عامل پردي عمل برقراروساتل شي ولي چې عامل لره له عمل څخه په منع كولوكي ضرردى حال داچې په عمل برقرارساتلوكې دوراثانوهيڅ ضررنشته.

(۷)دكوموعذرونوپه اساس چې مزارعت فسخ كيږي دهغوعذرونوپه وجه سره مساقات هم فسخ كيږي مثلاعامل غل دى دميوي له پخيدلوڅخه وړاندي يې غلاكوي نوپه دي كې دځمكي دمالک داسي نقصان دى چې ده دهغه التزام نه دى كړى لهذاهغه مساقات فسخ كولى شي .همداشان كه عامل داسي مريض شوچې كاريې نه شوكولى نوهم به عقدمساقات فسخ كيږي ولي چې په داسي صورت كې به هغه په مزدورانوسره كاركوي كوم چې ده لره نقصان دى اوده ددي التزام نه دى كړى .

## كِتَابُ الذَّبَائِحِ

### دا کتاب د ذبيحو په بيان کې دی

دكتاب الذبائح له ماقبل سره مناسبت دادی چې مزارعت او ذبح دواړه في الحال دمال اتلاف (ضائع کول) او في المآل انتفاع وي ،يعنی لکه څرنګه چې په مزارعت کې تخم په ځمکه کې دفن کيږي تر څو په مستقبل کې نفع حاصله شي همداشان ذبح کونکی خپل څاروی فناکوي تر څو دهغه له غوښې څخه نفع حاصله کړي .

(۱) هي جمع ذبيحة وهي اسم لمايذبح والذبح قطع الأوداج (۲) وحل ذبيحة مسلم وكتابي وصبي وامرأة وأخرس وأقلف (۳) لامجوسي ووثني ومرتد ومحرم (۴) وتارك اسم الله عمدًا وحل لو ناسيا (۵) وكره أن يذكر مع اسم الله غيره وأن يقول عند الذبح اللهم تقبل من فلان، وإن قال قبل التسمية والإضجاع جاز (۶) والذبح بين الحلق واللبة

**ترجمه** :هغه جمع ده د ذبيحه او هغه نوم دی دهغه کوم چې ذبح کيږي او ذبح قطع کول (پريکول )د رګو ،او حلاله ده ذبيحه د مسلمان او د کتابی او د نابالغ او د ښځې او د ګونګي او د غير مختون (ناسنته ).نه د مجوسي او بت پرست او مرتد او محرم ،او د قصدا بسم الله پرېښودونکی او حلاله ده که يې هيره شي ،او مکروه ده دا چې ذکر کړي د الله تعالی له نامه سره د بل چا نوم يا وو ايې د ذبح کولو پر وخت ای الله قبول يې کړي د فلانی له طرفه ،او که يې وويل له بسم الله ويلو او چپه کولو وړاندي نو جائز ده ،او ذبح د حلق او له سينې څخه د پورته هډوکي په منځ کې وي .

**تشريح** :( ۱)ذبائح د ذبيحة جمع ده او ذبيحة مذبوح څاروی ته ويل کيږي او مجازاً هغه څاروی ته ويل کيږي کوم چې عنقريب ذبح کيږي ،بيا ذبح پردوه قسمه ده اختياري او اضطراري .مصنف رحمه الله د ذبح اختياري تفصيل مقدم کړی دی چې داسې يې فرمايلي دي چې ذبح د غاړې د مخصوصو څلورو رګو پريکولو ته ويل کيږي ،او داج د ودج جمع ده له دي څخه مراد حلقوم (په کوم سره چې ساه وځي ننوځي )،مری (په کوم سره چې غذاء د ننه ځي )او د حلقوم او مری ښی او کيڼ هغه دوه پنډ رګونه (په کومو کې چې د وينې سيلان وي )دي .

**فائده**:دا ټولو ته معلومه ده چې په دنيا کې د غوښې د خوراک دستور او رواج انتهايي قديم دی ليکن له اسلام څخه وړاندي د څارويو د غوښو د خوړلو عجيبې عجيبې طريقې بغيرله کومې پابندي اختيار کړل شوي وي. د مردار غوښه خوړل کيدله .د ژوندی څاروی څه اندامونه (د ضرورت مطابق )پريکيدل خوړل کيدل. د څارويو د روح کښلو لپاره هم انتهايي بی رحمانه سلوک کيدی ،چيرته به په لرګيانو سره په وهلو ،او چيرته به د غشو په باران کولو سره د څارويو روح ايستل کيدله .

اسلام تر ټولو وړاندي خو دا تفريق وکړ چې د مردار غوښه يې حرامه کړه ،کومه چې د انسان جسماني او روحاني دواړه صحتونه برباد ونکي ده .هغه څاروي يې حرام کړل د کومو په غوښه سره چې د انسان اخلاق مسموم (زهرجن )کيږي ،لکه خنزير ،پښو ،سپی ،ځناور وغيره .بيا کوم څاروي چې يې حلال وګرځول د هغو د غوښو په خوړلو کې يې هم داسې پاکه طريقه وښودله چې په هغې سره ناپاکه وينه بيخي ډيره ووځي .او څاروی ته ډيره تکليف ورسيږي .په طبی اصولو د انساني صحت او غذائي اعتدال کې له دي څخه ښه کومه طريقه نه شي کيدلی لکه څرنګه چې د موجوده زماني ډاکټرانو په طبی تحقيق سره ثابته کړي ده .په هرحال اسلام

دڅارویو دغوښې په خوړلو کې انسان ازادنه دی پریښی چې لکه څرنګه چې د درختو میوي اوسبزیات وغیره چې څرنګه یې هم خوښه وي پریکړي اووي خوري ،همداشان دي څاروي هم څرنګه یې خوښه وي وخوري.
دابنکاره خبره ده چې دانسان غذاء که له نباتاتو څخه وي اوکه له حیواناتو څخه وي ،ټول دالله تعالی پیداکړل شوي نعمتونه دي اوپه دي حیثیت سره هرخورک دالله تعالی دنوم په اخیستلو سره خوړل اوله خورک څخه په فارغه کیدلو دالله تعالی شکراداء کول سنت اسلام دی ،کوم چې نبی کریم ﷺ په خپل قول اوفعل سره دومره عام کړچې هغه یواسلامي شعارجوړشو ،لیکن دڅارویوپه ذبح کولو باندي دالله تعالی دنوم ذکرکولو معامله له دي څخه څه وړاندي ده چې دڅاروی غوښه بغیرله دي څخه نه حلالیږي ،کوم غافل انسان چې ترکاري، میوه وغیره بغیردالله تعالی له نامه څخه پري کړي نوده ته غافل ،تارک سنت خوویل کیږي لیکن دده خورک ته حرام نه شي ویل کیدلی ،په خلاف دڅاروی چې دده دذبح پروخت دبسم الله ویل دده دحلالوالی شرط دی، له دي څخه بغیرکه دذبح ټول آداب پرځای هم کړای شي نوبیاهم څاروی مرداراوحرام دی.
حضرت شاه ولی الله قدس سره په حجة البالغة کې لیکي ،چې دڅارویو معامله دعامونباتاتي مخلوقات په شان نه ده ، ولی چې په دوئ کې دانسان په څیرروح ده ،دانسان په څیردلیدلو ،اوریدلو ،بویولو ، اودګرځیدو راګرځیدو آلات اواعضاء دي ،دانسان په څیرپه دوئ کې احساس اواراده اوتریوه حده ادراک هم موجوددی، ددي سرسري تقاضاداوه چې دڅارویو خورک مطلقاحلال نه وای لیکن دحکمت الهیه تقاضاوه چې ده انسان مخدوم کائنات جوړکړله څارویو څخه خدمت اخیستل ،دهغوئ شیدي څښل اودضرورت پروخت په ذبح کولوسره یې دهغوئ غوښه هم دانسان لپاره حلاله کړه ،مګرله دي سره یې ددي دحلالوالی لپاره څوارکان اوشرائط هم راوښودل چې له هغو څخه بغیرڅاروی نه حلالیږي (جواهر الفقه :۲/۳۶۹تا۳۷۰)
(۲)دمسلمان ذبیحه حلاله ده په دي شرط چې دالله پرنامه ذبح وکړي لقوله تعالی ﴿ وحرمت علیکم المیتة والدم ........الاماذکیتم ﴾(حرام کړل شوي دي پرتاسې مرداراووینه ..........مګرکوم چې تاسې ذبح کړی)په کاف خطاب سره مسلمانانوته خطاب دی .همداشان داهل کتابو ذبیحه هم حلاله ده لقوله تعالی ﴿وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ﴾ (داهل کتابو ذبیحه حلاله کړل شوي ده ستاسي لپاره )،له طعام څخه مرادمذبوح څاروی دی ولی چې مطلق طعام خودهرکافرحلال دی له حضرت ابن عباس ﷺ څخه هم دطعام همدا تفسیرمروی دی .همداشان دنابالغ ،ښځې ،ګونګی اوغیرمختون (چې سنت شوی نه وي )ذبیحه هم حلاله ده په دي شرط چې په تسمیه اوذبح پوهیږي ولی چې دذبیحه دحلالوالی مدارپه مسلمان اوکتابی والی سره ده نه په بالغ اومذکروالي وغیره سره .ګونګی اګرکه تسمیه نه شي ویلی مګردادعذرپه وجه سره ده لهذادده دصاحب ملت والی دتسمیه قائم مقام دی.
**فائده**:اوس صورت حال دادی چې یهودیان خواوس هم دذبح کولوپروخت دخپلومذهبي قواعدواهتمام کوي، چې دذبح پروخت دالله تعالی نوم هم ذکرکوي اوعروق اربعه دشریعت مطابق پریکوي ،لیکن عیسایانوټول شیان پریښي دي ،اوس هغوئ نه خودالله تعالی نوم ذکرکوي اونه هم دعروق اربعه په مشروع

طریقه دپریکولو اهتمام کوي په دي وجه دیهودیانو ذبیحه زموږلپاره جائزده اودعیسایانو ذبیحه جائزنه ده (تقریرترمذی ۲/۲۳۶)

**فائده**: که دذابح په باره کښ معلوم نه وي چې دده څه عقائد دي ؟یادامعلوم نه وي چې ده په کومه طریقه سره څاروی ذبح کړی دی ؟دداسې ذبیحه په باره کښ حکم مختلف دی (۱)که دمسلمانانو ښاروي یعني ددي ښاراکثره ابادي مسلمانان وي ،دداسې ښارپه بازارونوکښ چې کومه غوښه خرڅیږي دهغې خورک حلال دی ،اګرکه موږدذبح کیدلوپه وخت کښ نه وی لیدلی ،اونه دامعلوم وي چې ذبح کونکی دبح کولوپروخت بسم الله ویلي وه اوکه یې نه وه ویلي ؟وجه یې داده چې په اسلامي ښارکښ چې کوم شئ خرڅیږي دهغه په باره کښ به همدا ګڼل کیږي چې دادشریعت داحکاموافق دي اوموږته په مسلمانانود حسن ظن دلرلوحکم شوی دی .(۲)که دکوم ښاراکثره ابادي کفارغیراهل کتاب وي ،نوددي ښارپه بازارکښ چې کومه غوښه خرڅیږي هغه دمسلمانانولپاره حلاله نه ده ،ترڅوچې کومه غوښه چې اخیستل کیږي دهغې په باره کښ دیقین په درجه کښ یادغالب ګمان په درجه کښ دامعلومه نه شي چې دادهغه څاروی غوښه ده کوم چې مسلمان یاکتابی په شرعي طریقه سره ذبح کړی دی .داصورت بالکل واضح دی (۳)دلوړدوهم صورت حکم دهغه ښارپه باره کښ هم دی دکوم ابادي چې دمسلمان ،بت پرست اوآتش پرست په منځ کښ مخلوطه وي .په دي وجه چې دکومې غوښې په باره کښ چې شک پیداشي هغه حلاله نه ده ترڅوچې ددي حلالوالی ظاهرنه شي ددی دلیل دحضرت عدی بن حاتم ﷺ هغه حدیث دی کوم چې وړاندي تیرشوپه کوم کښ چې نبی کریم ﷺ هغه ښکارحرام ګرځولی وودکوم په ښکارکښ چې داسې بل سپی هم شامل شې چې دهغه دپریښودلوپروخت بسم الله نه وي ویل شوي .(۴)که دکوم ښاراکثره ابادي داهل کتابووي نوددي ښاردغوښوهم هغه حکم دی کوم چې دمسلمانانودښاردی (یعنی دهغه ښارغوښه اخیستل اوخوړل حلال دي )په دي وجه چې دذبح په معامله کښ دهغوئ حکم دمسلمانانوپه شان دی .لیکن که دیقین یاغالب ګمان په درجه کښ معلومه شي چې ددي ښاراهل کتاب په شرعي طریقه سره څاروي نه ذبح کوي نوپه دي صورت کښ ددي ښارغوښه اخیستل اوخوړل جائزنه دي ،ترڅوچې دامعلومه نه شي چې بعینه داغوښه کومه چې زه اخلم په شرعي طریقه سره دذبح شوی څاروی غوښه ده ،اونن دمغربي ملکونوداکثروښارونوهمدا حکم دی (فقهی مقالات :۴/۲۴۴تا۲۴۹)

**فائده**: دښځې ذبح کړل شوی بلاشبه حلال دی ،کوم کسان چې دي ته حرام وایې هغوئ ګنهګاردي ،البته څرنګه چې ښځې په دي کارلږپوهیږي اودضعف قلب په وجه داحتمال هم شته چې لاس دي نه وچلیږي ،په دي وجه بلاضرورته نن صبا دوئ ته دذبح کارسپارل مناسب نه دی ،لیکن په حلالوالی کښ یاهم شبه نشته یعنی جائزدی (امدادالمفتیین :۲/۹۵۷)

(۴)قوله لامجوسی ای لایحل ذبیحة مجوسی ،یعنی دمجوسیانو(داورعبادت کونکي ،یادلمرعبادت کونکي )ذبیحه حلاله نه ده ولی چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی ﴿سنّوا بهم سنّة أهل الكتاب غير ناكحي نسائهم ولا آكلي ذبائحهم﴾ (یعنی له مجوسیانوسره داهل کتابوپه شان معامله کوئ مګرله دوئ سرهٔ نکاح مه کوي اوددوئ ذبیحه مه خورئ )،همداراز مجوس نه حقیقة اهل توحیددي اونه دتوحیدمدعیان دي په دي وجه ددوئ ذبیحه حلاله نه

ده .همداشان دبت پرستانو ذبیحه هم حلاله نه ده ولی چې بت پرست هم دمجوسیانو په شیر مشرک دي دکوم سماوي ملت اعتقادنه لري .همداشان دمرتد ذبیحه هم حلاله نه ده ولی چې دمرتدهیڅ مذهب نه وي په دي وجه چې که هغه دکوم سماوی دین طرف ته منتقل شوی وي پر هغه دی نه پرینبودل کیږي .همدشان دمحرم بالحج یامحرم بالعمره ذبیحه (مراددښکارذبح کول دي )هم حلاله نه ده ولی چې ذبح کول فعل مشروع دی حال داچې دمحرم لپاره دښکارذبح کول غیرمشروع دی لهذاداذبح نه شمارل کیږي .البته که محرم غیرصیدذبح کړي نوحلال دی ولی چې غیرصیدذبح کول فعل مشروع دی په دي وجه چې حرم دبزي وغیره لپاره دامن ځای نه دی .

(۴)قوله وتارک التسمية عمدااى لايحل ذبيحة تارک التسمية عمدا ،یعنی که ذبح کونکي دذبح کولوپروخت عمداً تسمیه پرینبوده که ذابح مسلمان وي اوکه اهل کتاب وي نوده ذبیحه مرداره ده نه به خوړل کیږي لقوله تعالى (ولاتاكلوا مما لم يذكر اسم الله عليه)(یعنی پرکوم چې دالله تعالی نوم نه دی ذکرشوی هغه مه خورئ)، اوکه تسمیه عمداً نه بلکه په هیره سره پاتې شوه نوحلاله ده ولی چې په دي صورت کې هم په حرام گرځولوکې حرج عظیم دی ولی چې انسان له نسیان څخه لرخالي وي .

**فائده**:علماکرامودا هم لیکلی دي چې سوره برأت (کوم چې دکفارودقتل پرحکم مشتمل دی )له بسم الله الرحمن الرحیم څخه خالي اینبودل شوی دی ولی چې بسم الله درحمت کلمه ده کومه چې دموقع مقتضی نه ده. همداشان دڅاروی دذبح پروخت هم صرف بسم الله الله اکبرویل مقررشوی دی دبسم الله الرحمن الرحیم دویلوحکم نه دي شوی ولی چې دذبح په صورت کې دقهراوعذاب شکل دی اوداد کلمه رحمت (یعنی بسم الله الرحمن الرحیم چې په دي کې درحمان اورحیم لفظونه شته )مقتضی نه دی .(مظاهرحق : ۴/۴۶)

**الالغاز**: ای مسلم عاقل ذبح وسمى ولم تحل؟

**فقل**: داسمى ولم يرد بها التسمية على الذبيحة. (الاشباه والنظائر)

**دمشینې ذبیحي حکم** :دمشین په ذریعه سره څاروی ذبح کول ناجائزاوغیرشرعي دی البته که چادمشین په ذریعه سره څاروی ذبح کړنودهغه غوښه خوړل حلال دي ،په دي شرط چې ذبح کونکی مسلمان وي یعنی بټن مسلمان وهلی وي اودبټن دوهلوپروخت یې بسم الله ویلي وي ،غرض داچې دداسې ذبیحي په حلت کې څه شبه نشته مگرمعهذاداطریقه بلاشبه غلطه اوناجائزده فقط والله تعالی اعلم (مأخوذازاحسن الفتاوی ۷/۴۷۶:)

**سوال** :اوکه ډیرڅاروي دمشین لاندي ودرول شي اویوځل بسم الله هم وویل شي نوایاهغه ټولو څارویو د حلال والی لپاره کافی ده یاصرف داول څاروي لپاره کفایت کوي اونورټول څاروي مرداریږي؟

**ځواب** :ددي متعلق دنصوصواواصول شرعیه مقتضی داده چې بسم الله ویل اوذبح دواړه متصل واقع وي، معمولی دیوونیم منټ اندازه تقدیم هیڅ اثرنه لري ،ځکه له دومره فرق کولوڅخه لاچاري ده مگرله دي څخه که ډیرتقدیم وشونوداتسمیه به دذبح دنه متصل والی په وجه سره کالعدم گرځي اوڅاروی به مرداریږي ......په مبسوط کې دامام محمد رحمه الله په حواله دانقل شوی دي اذارأيت الذابح يذبح الشاتين والثلاثة فيسمى على الاولى

ربدع التسمية على غير ذالك عمدا قال يا كل الشاة اللتى سمى عليها ولا ياكل ماسوى ذلك (بدائع الصنائع: ۵/۴۹)............ البته كه يې دوه بزې يو ځاى كړې اوپه يوه وخت كې يې ددواړوپرغاړه چاړه تيره كړه نودا تسميه ددواړولپاره كافى ده اودواړه حلال يږي لواضجع شاتين وامر السكين عليهما معا فانه تجزى فى ذالك تسمية واحدة (بدائع: ۵/۵۰)

دروايات مذكوره په رڼايې كې تربحث لاندې مسئله :دېرڅاروي ترمشين لاندې ودرول شي اوپه بسم الله ويلوسره ددوئ غاړې پرې كړل شي ،په دې كې په غيرمشروع طريقه سره ذبح كولوله ګناه څخه علاوه صرف هغه څاروي حلال دي پركوموچې چاره په يووخت كې تيره شوي ده ،په دې شرط چې دمشين دچاړې دچلولوپروخت بسم الله ويل شوي وي اودځينوصحابه كرامو ﷺ په نزدداهم دذبح دغيرمشروع طريقه دكيدلوپه وجه سره حرام دي ،اودكوموڅارويوپه غاړه چې چاره له بسم الله ويلووروسته تدريجا تيره شوي ده هغه دترك تسميه په وجه سره دجمهوروپه نزدحرام اومرداردي (جديد معاملات كى شرعى احكام: ۳/۱۰۶)

**فائده**:دذبح پروخت دالله تعالى نوم ذكركول ضروري دى ليكن بسم الله په عربي ژبه سره ويل ضروري نه ده چې كه څوك دذبح پروخت ووايې چې دالله په نوم ذبح كوم بياهم جائزدى ،په احسن الفتاوى :۷/۴۰۵.كې دي لان الفقهاء رحمهم الله لم يشترطوا العربية ولوكان لذكروه ،ليكن افضل اومستحب همداده چې په عربي كې داسې وويل وايې بسم الله الله اكبر............اوكه نابالغ دذبح طريقه زده وي اويادالله تعالى په نامه سره ذبح وكړي نودده ذبيحه هم حلاله ده .همداشان دګونګي مسلمان ذبيحه هم حلاله ده لمافى الشامية ۵/۲۹۷:وشرط كون الذابح مسلما حلالا الى ...........قوله ولوالذابح مجنونا او امرأة اوصبيا يعقل التسمية والذبح ويقدر اواقلف اواخرس (جديد معاملات كى شرعى احكام: ۳/۹۴)

(۵)دذبح پروخت دالله تعالى له نامه سره بل څوك ذكركول يا داشان ويل اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ من فُلَانٍ مكروه دي ،ددې درې صورتونه دي (۱)دبل چاذكردعطف په ډول سره متصل وكړي مګرعطف ونه كړي لكه چې داسې وايې بِاسْمِ اللّٰهِ. مُحَمَّدٌ رسول الله نودامكروه ده اوذبيحه حلاله ده ولى چې دلته يې نبى كريم ﷺ له الله تعالى سره شريك كړى نه دى كه شريك كول مقصودواى نومحمدبه مجروروي حال داچې محمدمجرورنه دى بلكه مرفوع دى مګرڅرنګه چې يې صورة دالله تعالى له نامه سره غيريوځاى كړى دى په دې وجه دامكروه تحريمي ده .(۲)دذبح پروخت دالله تعالى له نامه سره دبل چانوم په عطف كولوسره ذكركړي بِاسْمِ اللهِ وَمُحَمَّدٍ رسول الله نوپه دې صورت كې داذبيحه دما اهل لغيرالله كيدلوپه وجه سره حرامه ده ولى چې دتسميه پروخت يې له الله تعالى سره غيرذكركړى دى (۳)دذبح پروخت ضورة ومعنى په هراعتبارسره دبل چاذكردالله تعالى له نامه څخه جلا وكړي مثلاله تسميه اوذبيحه څپه كولووړاندې ياله ذبح څخه وروسته ووايې اللهم تقبل من فلان .نوداصورت جائزدى ولى چې په دې صورت كې له الله تعالى سره دچادشريكولوهيڅ شائبه نشته .

(۶)دذبح اختياري دحلق اولبه (دسيني لوړهدوكى)په منځ كې وي ولى چې له حضرت ابن عباس ﷺ څخه مروى ده الذكوة فى الحلق واللبة (ذبح دحلق اولبه په منځ كې وي )،باتي شوه ذبح اضطراري نوپه هغې كې دذبح محل متعين نه دى بلكه دبدن په هره حصه كې زخم جوړول اووينه بهول كافى ده .

(۷) والمذبح المريء والحلقوم والودجان وقطع الثلاث كاف (۸) ولو بظفر وقرن وعظم وسن منزوع وليطة ومروة وما أنهر الدم (۹) إلا سنا وظفرا قائمين (۱۰) وندب حد الشفرة (۱۱) وكره النخع وقطع الرأس والذبح من القفا (۱۲) وذبح صيد استأنس وجرح نعم توحش أو تردى في بئر (۱۳) وسن نحر الإبل وذبح البقر والغنم وكره عكسه وحل (۱۴) ولم يذك جنين بذكاة أمه

**ترجمه** :اومذبح مرئ ،حلقوم اودوه شاه رګه دي اوپريکيدل د دريو کافي دي ،اګرکه په نوک ياښکرياهډوکي ياغابس سره وي کوم چې کنبل شوی وي يادنرکل په پوستکي ياپه تيره ډبره ياپه داسې شئ سره وي کوم چې وينه وبهوي ،مګرغابس اونوک کوم چې دواړه په خپل ځای وي ،اومستحب ده دچاړي تيره کول ،اومکروه ده دهډوکي ترمازغوپوري پري کول اودسرپري کول اوذبح کول دڅټ له طرف څخه ،اوذبح کيږي به هغه ښکارکوم چې مانوس وي اوزخمي دي کړای شي هغه څاروی کوم چې وحشي شي ياولويږي څاه ته ،اوسنت دی نحرکول داوښ اوذبح کول دغوااوبزي اومکروه دی ددي عکس مګرحلال دی ،اونه ذبح کيږي جنين دده دموريه ذبح کيدلوسره .

**تشريح** :(۷)په ذبح کې څلوررګونه پري کيږي حلقوم (دساه دتلوراتلولاره )اومرئ (دخورک ښک لاره )اودوجان (دوه شاه رګه کوم چې دحلقوم اومرئ په ښی اوکيڼ طرف کې واقع دي )،نوکه يې داڅلوررګونه پري کړل نوبالاتفاق دداسې څاروی خوړل حلال دي لقوله ﷺ أفر الأوداج بماشئت﴾(پري کړه دوه رګونه په په کوم شئ چې وغواړي )اوداج جمع دی چې دهغي لږترلږه دري افرادوي لهذاله دي څخه دوه شاه رګه اومرئ (نرخره )مراددي اودادري داسې دي چې له حلقوم څخه بغيرنه شې پري کيدلی لهذابالضرورة حلقوم هم په پري کيدونکورګوکې شامله شوه په دي ډول په ذبح کې پري کيدونکي رګونه څلورشول .اوکه اکثر(يعنی دري )رګونه پري شول له څلوروڅخه هردري چې وي نوهم دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دهغه خوړل حلال دي ،دصاحبينوپه نزددحلقوم اومرئ اواحدالودجين پري کيدل ضروري دي .

**فائده**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندية :وان قطع اکثرهافکذالک عندابی حنيفة وقالالابدمن قطع الحلقوم والمرئ واحدالودجين والصحيح قول ابی حنيفة لماان للاکثرحکم الکل (هندية:۵/۲۸۷)

**فائده**:په حديث شريف کې مطلقاعروق ثلاثه ذکرشوي دي دحلق اومرئ نوم نشته ،له عروق څخه داسې عروق مراددي دکوموپه پري کيدلوکې چې توصيه فی اخراج الروح والدم وي نوکه په مافوق العقده باندي دحلق اومرئ اطلاق هم نه وي نوبياهم په هرکيف عروق خوموجوددي دکوموقطع چې دتوصية فی اخراج الروح باعث ده لهذادمافوق العقده په حالت کې هم دعروق ثلاثه دمنقطع کيدلوپه وجه سره ذبيحه حلاله ده (ازاحسن الفتاوی :۷/۴۲۲).له اهل تجربه څخه معلومه شوي ده چې دذبح عروق په فوق العقده ذبح کولوسره هم پري کيږي لهذاددي په حلت کې شبه نشته (عزيزالفتاوی :۱/۷۰۸)

(۸)قوله ولو بظفروقرن ای يجوز الذبح ولو بظفروقرن الخ ،يعنی په پري شوي نوک اوښکر،په کنبل شوي غابس وليطه (دبانس تيره پوستکی )اومروه (سپينه نری تيره ډبره )سره دڅاروی ذبح کول جائزدي همداشان په هرداسې تيره شئ سره هم ذبح کول جائزدي کوم چې رګونه پري کوي اووينه بهوي ولی چې دذبح حقيقت هم درګوپري کول اووينه بهول دي.

(۹)مګر په خپل ځای قائم (يعنی کوم چې له انسان او ځاروی څخه جلا شوی نه وي )غابښ او نوک سره ذبح کول جائزنه دي اګرکه رګونه پرې کوي او وينه بهوي لقوله ﷺ ﴿كُلُّ ما أنْهَرَ الدَّمَ ما خَلا الظُّفُرَ وَالسِّنَّ﴾ (يعنی کوم شئ چې وينه بهوي په هغه سره ذبح شوی خورئ مګر په غابښ او نوک سره ذبح شوی مه خورئ)،همدا راز پر دي دامت اجماع هم ده .

(۱۰)دذابح لپاره مستحب ده چې دځاروي له ځملولو وړاندي خپله چاړه تيره کړي لقوله ﷺ ﴿وإذا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ وَلْيُحِدَّ أحَدُكُم شَفْرَتَهُ﴾ (يعنی کله چې تاسې ذبح کوی نو په ښه طريقه سره ذبح وکړئ او له تاسې څخه ذبح کونکی دي خپله چاړه تيره کړي ).

**فائده**:سليقه مندی دهرعمل روح ده او شريعت ددي ډير ساتونکی دی ده په هرهرشئ کې ددي تعليم ورکړی دی او تاکيدېې هم کړی دی ،دځاروی ذبح کول خوله ده څخه داعلی او افضل مخلوق يعنی انسان دغذاء په خاطرحلال کړای شوی ده ليکن په ذبح کولو کې چې کوم تکليف دي ځاروي ته رسيږي دهغه متعلق تاکيد دی چې دا ډيرلږ وي ،لکه چې دچاړي له وړاندي څخه دتيره کولو حکم دهمدي لپاره دی چې څومره رګونه چې پري کيږي زرترزره پري شي او داځاروی دژوندا و مرګ له کش مکش څخه زرنجات ومومي .او ز ا( چاړه وغيره )چې څومره تيره وي همدومره به تکليف هم کم وي او د جسم او روح تعلق به هم په دي سره زرمنقطع کيږي ،دراحت ورکولو يو مطلب دا هم بيان شوی دی چې له ذبح کولو څخه وروسته دی ښه يخيدلو ته پريږدي .نبی کريم ﷺ دچاړو دتيره کولو او دهغوله ځارويو څخه دپټولو حکم فرمايلې دی ،او په تلوارسره يې دذبح کولو حکم فرمايلې دی ،او دځاروی په وړاندي يې دچاړي له تيره کولو څخه منع فرمايلې ده ،داکار بايدله وړاندي څخه وشي يعنی چاړي دځارويو په وړاندي تيري نه کړای شي او په تلوارسره دذبح کولو حکم فرمايلي دی (مسائل رفعت قاسمی :۵/۱۱۶)

**فائده**:له ذبح کولو څخه وړاندي دځاروی بې هوشه کول خلاف سنت دی ،شريعت چې کومه ذبح کول دحلال والی شرط ګرځولی دی ددي علت لکه څرنګه چې له نصوصو څخه واضح دی دادی چې بهيدونکي وينه دذبيحه له بدن څخه ووځي او دسائنس له قواعدو څخه ددي قوی احتمال دی چې دځاروی طبيعت :ده دهوش په حالت کې قوی وي ،او څومره درجه کې چې بې هوشي وي همدومره اندازه دده طبيعت ضعيف وي ،او ديني خارجول دطبيعت کار دی ،نو څومره چې طبيعت قوي وي وينه به ډيره خارجيږي .او څومره چې په طبيعت کې ضعف وي وينه به کمه خارجيږي ،نو قصدا دطبيعت ضعيفه کول دويني دلږ ايستلو اهتمام کول دي ،کوم چې دشارع له مقصود سره صريح مزاحمت دی دا خوشرعي خلاف ورزي ده ، او وينه په بدن کې ډيره موجوده ده سره له دي چې لږ وځي هغه له غوښي سره ګډيږي ،او حال دا چې دځاروی په خپله مړه کيدلو سره تول وينه په غوښه کې دګډيدلو په وجه سره دطب نبوی ﷺ دمنشاء خلاف دی او په بې هوش کولو سره او بيا ذبح کولو سره خو څه ناڅه وينه په غوښه کې خامخا شامليږي او دا له شريعت څخه خلاف دی .او که په کومه وجه سره بلاتدبير اختياري وي (يعنی له بې هوشه کولو بغير دکوم ځاروی وينه کمه ووځي )په دي کې مکلف معذور دی له دي څخه دحرمت کراهت حکم نه کول کيږي (امداد الفتاوی :۳/۶۰۸)

(۱۱):بع نره دچاړي ترنخاع (حرام مغز)پوري رسول مكروه ده همداشان دڅاروی له يخيدلو څخه وړاندې دځ روی سرپري كول هم مكروه دي ولی چې په دي كې بلافائدې حيوان ته عذاب وركول دي كوم چې منهی عنه دی .همداشان كه چاېزه دځې له طرف څخه ذبح كړله او هغه ترهغه وخت پوري ژوندی وه چې دهغې هغه رگونه هم پري شول دكوموچې پري كول ضروري دي نوداهم مكروه ده بياهم دا سې به خوړل كيږي ولی چې مكروه فعل حرمت نه ثابتوي ،اوكه بزه دضروري رگونوله پري كيدلو څخه وړاندې مړه شوه نونه به خوړل كيږي ولی چې ددي مرگ په ذبح سره نه دی واقع شوی.

**فائده**:دحيوان دذبح كولوپروخت دلاندې اموررعايت بايدوكړل شي ،(۱)حيوان ته نه ذبح كولوڅخه وړاندې بايدخورک وركړل شي اوبه وروڅښل شي وږی تږی ساتل مكروه دی .(۲)مذبح ته دبيولوپروخت په كښولوسره بيول مكروه دي .(۴)په اساني سره دي حيوان څملول شي بي ځايه سختي كول مكروه دي .(۴)دقبلي طرف ته په مخ كرځولوسره دي په كيڼ اړخ څملول شي چې روح يې په اساني سره ووځې ،له دي څخه خلاف كول مكروه دي (۵)له څلوروپښوڅخه دي دري وروتړي .(۶)چاړه دي تيره كړي ،په پڅه چاړه سره ذبح كول مكروه دي (۷)كه چاړه تيره كوي نوله حيوان څخه دي پټه تيره كړي ولی چې حيوان ته مخامخ تيره كول مكروه دي (۸)دحيوان له څملولووړاندې دي چاړه تيره كړي ،وروسته دچاړي تيره كول مكروه دي (۹)په حديث شريف كې دي چې يوكس حيوان څملا وواوچاړه يې تيره كوله ددي په ليدلوسره نبی كريم ﷺ وفرمايل ته بزي ته له يوڅل څخه زيات مرگ وركول غواړي ،(۱۰)ديوه څاروي دبل مخ ته ذبح كول مكروه دي .(۱۱)په سختی سره دي ذبح نه كوي چې سربې پري شي ياترحرام مغز(په غاړه كې دننه سپين رگ )پوري چاړه ورسيږي ولی چې دامكروه ده (۱۲)له غاړي څخه لوړذبح كول مكروه دي اومنع دي ولی چې په دي حيوان ته له ضرورت څخه زياته ايذاء رسول دي (۱۳)له ذبح څخه وروسته دحيوان له يخيدلووړاندې دي سرنه جلاكوي اونه دي پوستكی كاږي ولی چې دامكروه ده (فتاوی رحيميه :۱۰/۶۸)

**فائده**:كه دذبح كولوپروخت دچرگې سرپري شي نوددي څه حكم دی .الجواب باسم ملهم الصواب :قصداًداسې كول مكروه دي ،بلاقصده څه كراهت نشته ،غوښه په هرصورت مكروه نه ده والله سبحانه وتعالی اعلم (احسن الفتاوی :۷/۴۰۷)

(۱۲)كوم ښكارچې مانوس وي نودهغه ذكاة (ذبح )داده چې مابين الحلقوم واللبة ذبح كړای شي ولی چې ذبح اختياري (ذبح اختياري هغه ده چې په هغې كې په مذكوره بالاطريقي سره په ذبح كولوقدرت وي )كه مقدوره وي نوذبح اضطراري (ذبح اضطراري هغه ده چې په هغې كې په كوم ځای چې هم په زخم لگولوسره وينه بهول كيږي )كافی نه ده .اوكوم حيوان چې پيدائشي وحشي وي ياوپه وحشي كيدلوسره وتښتي ياپه څاه كې ولويږي په دي دول چې اوس دده ذبح اختياري مقدوره نه وي نودهغه ذكاة ذبح اضطراري ده كوم چې په نيزه سره اوزخمي كول دي ولی چې په مذكوره صورتونوكې همدامقدورده.

(۱۳)په اوښ كې مستحب دادی چې نحركړای شي (نحردادی چې له سينې څخه لوړچې دحلقوم كومه حصه يوځای شوي ده چيرته چې غوښه لږوي هغه پري كړای شي )ولی چې همدامتوارث ده اواوښ درگوديوځای

کېدلو ځاى هم دى لهذا دلته ټول رګونه پرې کېږي ،ضابطه داده چې دکوم حيوان چې هم غاړه اوږده وي هغه دې نحر کېږي ،او دغوا ،بزې وغيره په حق کې ذبح کول مستحب ده ولې چې ددوئ رګونه هلته جمع وي چېرته چې ذبح کېږي ،او که يې ددې عکس وکړيعنى اوښ يې ذبح کړاوغوا ،بزه وغيره يې نحر کړه نودحصول مقصود (يعنى وينه بهول )په وجه سره داهم جائزده مګر دخلاف سنت په وجه سره مکروه ده .

(۱۴)که چاا وښه نحر کړه ياېې غوااوبزه حلاله کړه بياېې ددې په نس کې مړبچې ومونډى نوداامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددموړذبح کول دده ذبح نه شمارل کېږي بلکه دى به عليحده ذبح کېږي ولې چې دموړپه ذبح کولوسره دجنين وينه نه بهېږي لهذادى به نه خوړل کېږي که يې وېښتان شنه شوي وي اوکه نه وي (يعنى خلقت يې تام شوى وي اوکه نه وي ).حال داچې دصاحبينوپه نزدکه يې خلقت تام شوى وونوخوړل کېږي اوکه نه ووتام شوى نونه خوړل کېږي .

**فائده**:داامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:وفى منظومة النسفى قوله ان الجنين مفرد بحکمه لم يتذکى بذکاة امه لحذف المصنف ان وقالا ان تم خلقه اکل لقوله ﷺ ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ ,حمله الامام على التشبيه اى کذکاة امه بدليل انه روى بالنصب وليس فى ذبح الام اضاعة الولدلعدم التيقن بموته (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/۲۱۳),وفى اللباب:قال فى التصحيح واختارقول ابى حنيفة الامام البرهانى والنسفى وغيرهما(اللباب على هامش الجوهرة:۲/۲۳۸)

## فَصْلٌ فِيمَا يَحِلُ اكله وما لا يَحِلّ

دافصل دهغه شيانوپه بيان کې دي دکوموچې خورک حلال دى اودکوموچې خورک حلال نه دى کله چې مصنف رحمه الله دذبح له تفصيل څخه فارغ شونودهغه حيواناتوتفصيل يې شروع کړدکوموچې خوړل حلال دي اودکوموچې خوړل حلال نه دي ولې چې له مشروعيت ذبح څخه اصل مقصودتوسل الى الاکل دى ،بياېې دذبح تفصيل په دې وجه مقدم کړچې ذبح دماکول حيوان لپاره شرط ده اوشرط له مشروط څخه مقدم وي .

(۱)لَا يُؤْكَلُ ذُو نَابٍ وَمِخْلَبٍ مِن سَبُعٍ وَطَيرٍ (۲)وَحَلَّ غُرَابُ الزَّرْعِ لَا الأَبْقَعُ الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ (۳)وَالضَّبُعُ وَالضَّبُّ (۴)وَالزُّنْبُورُ وَالسُّلَحْفَاةُ وَالْحَشَرَاتُ (۵)وَالْحُمُرُ الْأَهْلِيَّةُ وَالْبَغْلُ وَحَلَّ الْأَرْنَبُ (۶)وَذَبْحُ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ يُطَهِّرُ لَحْمَهُ وَجِلْدَهُ (۷)إلَّا الْآدَمِيَّ وَالْخِنْزِيرَ (۸)وَلَا يُؤْكَلُ مَائِيٌّ إلَّا السَّمَكَ غَيْرَ طَافٍ وَحَلَّ بِلَا ذَكَاةٍ كَالْجَرَادِ (۹)وَلَوْ ذَبَحَ شَاةً فَتَحَرَّكَتْ ,أَوْ خَرَجَ الدَّمُ حَلَّ ,وَإِلَّا لَا إنْ لَمْ يَدْرِ حَيَاتَهُ ,وَإِنْ عَلِمَ حَلَّ ,وَإِنْ لَمْ تَتَحَرَّكْ وَلَمْ يَخْرُجْ الدَّمُ

**ترجمه**:نه دې خوړل کېږي دداړوو الا وېنجې والاله ځناوروا ومرغانو څخه ،او حلال دى دکښت کارغه نه برګ کارغه کوم چې مردار خوري ،اونه ګورکښ اوسمساره ،اومچمچې او کيشف اوپه ځمکې اوسيدونکي حيوانان ،اوکورني خره اوخچر اوآس او حلال دى سوى ،اوذبح کول دداسې حيوان کوم چې نه خوړل کېږي پاکوي دهغه غوښه اودهغه پوستکى ،ماسواله انسان اوخنزير څخه ،اونه دې خوړل کېږي درياېي حيوانان مګرماهى کوم چې داوبوپرسرنه وي راغلى اوحلال دى بلاذبح دملخ په شان ،اوکه يې ذبح کړه بزه او هغې حرکت وکړياوينه ووتله نوحلاله ده کنه نونه ده که معلوم نه وي دهغې ژوند اوکه معلوم وي نوحلاله ده اګرکه حرکت ونه کړي اونه وينه ووځي .

**تشريح** :(۱)دهرقسم ذی ناب (هغه غوښه خوړونکی حيوان چې دهغه هغه دوه لوی غاښونه وي دکوموپه ذريعه سره چې هغه غوښه پرې کوي ياښکارنيسي )څناورخوړل جائزنه دي ولی چې نبی کريم ﷺ دخيبرپه ورځ فرمايلي وو ﴿ أكل كل ذي ناب من السباع حرام ﴾ (يعنی له څناوروڅخه دهرذی ناب خوړل حرام دي)، اوپه مرغانوکې دهرذي مخلب (مرادهغه مرغه دی کوم چې په خپلوتيروپنجوسره ښکارمرکوي )خوړل جائزنه دي ولی چې په حديث شريف کې دي چې نبی کريم ﷺ دهمدي خيبرپه ورځ خاطفه حرام گرځولي دي اوله خاطفه څخه مرادهغه مرغه دی کوم چې له هوا څخه په حمله کولوسره شئ پورته کوي لکه بازوغيره.

(۲)دکښت دکارغه خوړل جائزدي کوم ته چې زاغ ويل کيږي ولی چې هغه دانه خوري مردارنه خوري لهذاهغه له سباع الطيرڅخه نه دی ،البته غراب ابقع (يعنی په کوم کې چې سپين اوتوررنگ گډشوی وي ،دده غاړه دپښوپه نسبت ډيره سپينه وي )به نه خوړل کيږي ولی چې هغه مردارخوري.

(۳)قوله والضبع والضب ای لايحل اكل الضبع والضب ،يعنی دضبع (بجو،گورکښ ،دڅناوروپه جنس کې له سپي څخه لړلوی اودلوی سروالاقوی حيوان دی )خوړل جائزنه دي ولی چې ضبع له څناوروڅخه دی ،اوضب (سمساره )خوړل جائزنه دي لحديث ابی داؤدان رسول الله ﷺ ﴿نهی عن اكل لحم الضب﴾ (يعنی نبی کريم ﷺ دسماري له خوړلوڅخه منع فرمايلې ده ).دائمه ثلاثه په نزدسمساره حلاله ده ولی چې حضرت عباس ﷺ فرمايي چې دنبی کريم ﷺ پردسترخوان سمساره خوړل شوه که حرامه وای نونه به خوړل کيده ،احناف ددي ځواب ورکوي چې داپه ابتداء اسلام باندي محمول ده ولی چې داسلام په ابتداء کې صرف دري شيان حرام وو قال الله تعالی ﴿قُل لَا أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ إِلَّا أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ ﴾ وروسته ډيرشيان حرام کړل شول.

(۴)قوله والزنبورای لايحل اكل الزنبور،يعنی دمچ مچی ،کشف اوهرقسم حشرات الارض (چنيجان ياکوچنی کوچنی حيوانان لکه چونگښه ،موږک ،سرطان ،اوماروغيره )خوړل جائزنه دي ولی چې داله خباثثوڅخه دي قال الله تعالی(وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ )(يعنی حراموي هغه پردوئ خبائث ).

(۵)دکورنيوخروخوړل جائزنه دی ﴿ لحديث ثعلبة الخشني أنه قال حرّم رسول الله صلى الله عليه وسلم لحوم الحمر الأهلية ﴾ (يعنی نبی کريم ﷺ دکورنيوخروغوښه حرامه وگرځوله )،همداشان دخچرغوښه خوړل هم جائزنه ده که هغه دخري له نس څخه پيداشوی وي ولی چې له خري څخه دپيداکيدلوپه وجه سره به دده هم هغه حکم وي کوم چې دده اصل دی .دامام ابوحنيفه ﷫ په نزددآس غوښه خوړل مکروه تحريمي ده ولی چې دادښمن دويرولوآله ده نواحترامادده خوړل مکروه دي ،حال داچې دصاحبينوپه نزددآس غوښه خوړل (له کراهت تنزيهی سره )جائزده ﴿لحديث جابربن عبدالله ﷺ قال اكلنالحم الفرس علی عهدرسول الله ﷺ ﴾ (يعنی موږدنبی کريم ﷺ په زمانه کې دآس غوښه وخوړله ).اودوئ په خوړلوکې څه حرج نشته ولی چې نه داله څناوروڅخه دی اونه مردارخوري لهذادادهوسی مشابه دی.

**فائده**:دآس دغوښې په باره کې دامام صاحب قول راجح دی لمافی الهندية:يكره لحم الخيل فی قول ابی حنيفة خلافالصاحبيه ...وقال الشيخ الامام السرخسی ماقاله ابوحنيفة احوط وماقالاالاوسع (الهندية :۵/۲۹۰)وقال ابن عابدين الشامی :(قوله وعليه الفتوی

)لهومكروه كراهة التنزيهية وهوظاهر الرواية كمافي الكفاية وهو الصحيح على ماذكره فخرالاسلام وغيره قهستاني ثم نقل تصحيح كراهة التحريم عن الخلاصة والهداية والمحيط والمغني وقاضيخان والعمادي وغيرهم وعليه المتون (ردالمحتار: ۵/۲۱۴)

**فائده**: دبعض نسل حيوانانوپه باره كې مشهوره ده چې ددوئ دنسل كشي لپاره دخنزيرماده منويه دټيسټ ټيوب په ذريعه يادجفتى (وطى )په ذريعه استعماليږي له كوم څخه چې بچي پيداكيږي داسې غواته جرمنى ياغيرملكي غواويل كيږي دداسې غوادغوښي څه حكم دى ؟نوپوه شه چې دحيواناتونسل له مورڅخه ثابتيږي ،دنرد ماده منويه هيڅ اعتبارنشت لكه چې فقهاوليكلي دي چې كه له بزې سره كوم ځناوروطى وكړي نوبچى دموريه تابع كيدلوسره حلال دى ،لهذادجرمنى غواياكوم بل حيوان چې دهغه مورحلال حيوان وي نوهغه ذبح كول اودهغه غوښه خوړل شرعاجائزدي ،لماقال العلامة الكاساني في البدائع الصنائع: ۵/۶۹:حتى ان البقرة الاهلية اذانزعهاثوروحشي فولدت فانه يجوزان يضحى به وان كانت البقرة وحشية والثوراهلياًلم يجزلان الاصل في الولدالام لانه ينفصل عن الام (جديدمعاملات كې شرعي احكام: ۳/۳۹)

(۶)كه چاداسې حيوان ذبح كړچې دهغه غوښه خوړل حلال نه وي نودهغه پوستكى اوغوښه پاكيږي نوكه په اوبوكې دداسې ذبح شوى حيوان غوښه ولويږي نوهغه نه مرداريږي ولې چې دذبح اثردادى چې په دي سره رطوبات اوبهيدونكي وينه ختميږي اونجس هم همدادوه شيان دي دپوستكي اوغوښي ذات نجس نه دى لهذاكله چې دازائل شول نوپوستكى اوغوښه پاكيږي لكه چې په دباغت سره پاكيږي ،دامام شافعي رحمه الله په نزدپه ذبح كولوسره پوستكى اوغوښه نه پاكيږي ولې چې دذبح اثرپه اباحت لحم كې اصل دى اودغوښي اوپوستكي په طهارت كې تابع دى اوتابع له اصل څخه بغيرنه وي نوكله چې په ذبح كولوسره دداسې حيوان غوښه مباح نه گرځي نوپاكيږي هم نه .

(۷)البته دانسان اوخنزيرغوښه په ذبح كولوسره نه پاكيږي يادانسان په غوښه كې دذبح دعدم تاثيروجه دانسان مكرم اومحترم والى دى اوپه خنزيركې دعدم تاثيروجه دخنزيرنجس العين والى دى .

(۸)داوبوپه حيواناتوكې (دسمندر،درياب وغيره )له ماهى ماسواهيڅ حيوان هم حلال نه دى لقوله تعالى ﴿ويحرم عليهم الخبائث﴾(يعنى حراموي هغه پردوئ خبائث )اوله ماهى ماسوادااوبونورحيوانات له خبائثوڅخه دي ولې چې هغه طبائع سليمه مكروه بولي ،اوله ماهيانوڅخه هم دطافى (كوم ماهى چې په اوبوكې په خپل مرگ سره ومري اودااوبوپرسرراشي اودهغه نس داسمان طرف ته وي هغه ته طافى ويل كيږي )خوړل مكروه ده لقوله ﷺ ﴿وماطفى فلاتاكلوه﴾ (يعنى كوم چې سرچپه شوى وي هغه مه خورئ)،دملخ خوړل حلال دي ،دماهى اوملخ دذبح كولوضرورت هم نشته لقوله ﷺ ﴿أحلت لنا ميتتان السمك والجراد﴾ (يعنى زموږلپاره حلال كړل شوي دي دوه مردي يعنى ماهى اوملخ ).

**فائده**: دامام شافعي رحمه الله په نزددسمندرټول حيوانات حلال دي مگرخنزير،سپى اوانسان جائزنه دي لقوله تعالى (أحل لكم صيد البحر)(ستاسې لپاره ددرياب ښكارحلال كړل شوى دى )،همدراز په حيوان كې اصل حرامونكى شئ وينه ده حال داچې داوبوپه حيواناتوكې وينه نه وي ولې چې وينه لرونكى حيوان په اوبوكې نه شي اوسيدلاى .

**فائده**:دجيهنگي خوړل جائزدي اوکه يا؟دجيهنگي په باره کې دحضرت شيخ الاسلام مفتی محمدتقی عثمانی دامت برکاتهم يوتحقيق نقل کوم ،فرمايي ،دلغت ډيروماهرينو(پوهانو)ددي خبري صراحت کړی دی چې جينهگادماهی يوقسم دی لکه چې ابن دريدپه جمهرة اللغة کې ليکلي دي چې ،واربيان ضرب من السمک ،اربيان (جينهگا)دماهی يوقسم دی (جلد۳،صفحه ۴۱۴)دلغت په مشهورکتاب قاموس اوتاج العروس کې هم جينهگاپه ماهی کې شمارکړی دی (جلد۱،صفحه ۱۴۶)،همداشان علامه دميری په خپل کتاب حيواة الحيوان کې فرمايلي دي چې الروبيان هوسمک صغيرجداًاحمر،جينهگاډيرکوچنی ماهی دی دکوم چې رنگ سوروي (جلد۱،صفحه ۴۷۳)

دلغت دماهرينوددي تصريحاتوپراساس له احنافوڅخه ډيروحضراتودجينهگې دحلال والی فتوی ورکړې ده ،لکه صاحب فتاوی حماديه وغيره .زموږشيخ المشائخ حضرت مولانااشرف علی تهانوی رحمه الله په خپل کتاب امدادالفتاوی کې فرمايلي دي دماهی څه خواص لازمه په کوم دليل سره نه دي ثابتي شوي چې دهغوئ په انتفاء سره سمکيت منتفی شي ،اوس مدارصرف دعدول مبصرينوپه معرفت باندي دی ،اوس وخت له ماسره حيواة الحيوان ددميري په کوم کې چې له ماهيات حيوانات څخه بحث شوی دی ،موجوددی ،په دي کې تصريح ده ،الروبيان هوسمک صغيرجدا،په هرحال احقرته په اوس وخت کې خودده دسمک (ماهی )والی په باره کې بالکل اطمينان دی ولعل الله يحدث بعدذالک امرا،والله اعلم (امدادالفتاوی ۴/۱۰۳:)

ليکن دموجوده زماني دعلم حيواناتوماهرين (پوهان )جينهگاپه ماهی کې نه شماري ،بلکه ددوئ په نزدجينهگاداوبودحيواناتومستقل قسم دی ،دوئ وايي چې جينهگادژوبو له خاندان څخه يوفردری نه چې دماهی کوم قسم دی ،دماهرين حيواناتوپه نزددماهی تعريف دادی :هوحيوان ذوعمودفقری يعيش فی الماء ويسبح بعواماته ويتنفس بغلصمته ،هغه دربړ دهډوکی درلودونکی حيوان دی ،کوم چې په اوبوکې اوسيږي ،په خپله وزرونوسره لامبوهي ،اوپه شونډانو سره ساه اخلي (انسائيکلوپيډياآف بريټانيکا:۹/۳۰۹،مطبوعه ۱۹۵۰ء)

ددي تعريف له مخي جينهگاپه ماهی کې داخل نه دی ،ولی چې په جينهگې کې دملاهډوکی هم نشته اونه جينهگاپه شونډانو سره ساه اخلي ،همداراز جديدعلم حيوان ،حيوانات په دوولويوقسمونوتقسيموي ،(۱)الحيوانات الفقريه (vertebrate)(۲)الحيوانات الغيرالفقريه (invertebrate)

اول قسم دهغه حيواناتودی په کوموکې چې دملاهډوکی وي اوپه کوموکې چې اعصابي نظام هم موجودوي اودوهم قسم دهغوحيواناتودی په کوموکې چې دملاهډوکی نه وي اوپه کوموکې چې اعصابي نظام هم موجودنه وي .ددي تقسيم په لحاظ سره ماهی دحيواناتوپه اول قسم کې شمارل کيږي حال داچې جنيهگاپه دوهم قسم کې شمارل کيږي ،دانسائيکلوپيډياآف بريټانيکا(۶/۳۶۳مطبوعه ۱۹۸۸ء)مطابق دنوي فيصده حيواناتوتعلق له دي دوهم قسم سره دی ،همداراز داقسم حشرات الارض ته هم شامل دی .

همداشان مستانی په دائرة المعارف کې دماهی تعریف په دې الفاظوسره کړی دی ،حیوان من خلق الماء وآخررتبة الحیوانات الفقریة دمه احمریتنفس فی الماء بواسطة خیاشیم وله کسائرالحیوانات الفقریة هیکل عظمی ،ماهی په اوبوکې اوسیدونکی حیوان دی ،دریړهډوکي لرونکوحیواناتوکې دده درجه په اخیرکې ده ،دده وینه سره ده پوزي دنلوپه ذریعه سره ساه اخلي ،اودنوروریړهډوکولرونکوحیواناتوپه شان دده دبدن جثه هم دیره لویه وي (دائرة المعارف :جلد ۱۰ صفحه ۶۰)

محمدفریدوجدی دماهی تعریف په دې ډول کړی دی ،السمک من الحیوانات البحریة وهویکون فی الرتبة الخامسة من الحیوانات الفقریة دمهاباردا حمر،یتنفس من الهواء الذائب فی الماء بواسطة خیاشیمهاوهی محلاة باعضاء تمکنهامن المعیشة دائمافی الماء وتعرم فیه بواسطة عوامات ولبعضهاعوامة واحدة ،ماهی له سمندري حیواناتوڅخه دی اودریړهډوکي لرونکوحیواناتوکې دده درجه پنځم نمبرده دده وینه یخه اوسره ده ،په اوبوکې له تحلیل شویوهواګانوڅخه دخیشوم په ذریعه هغه ساه اخلي اوهغه په داسې اعضاء سره ښائسته دی دکوموپه کومک سره چې ده لره همیشه په اوبوکې اوسیدل آسان دي ،ماهی دخپلووزروپه ذریعه سره په اوبوکې لامبووهي اودځینوماهیانوصرف یووزروي.

دماهی داتعریفات پرجینهګي نه صادقیږي ،ددې تعریفاتوله مخې جنیهګاپه دې وجه له ماهی څخه خارجیږي چې په جینهګي کې دملاهډوکی نه وي لهذاکه موږدماهرین حیواناتودقول اعتباروکړو نوجینهګاماهی نه دی اوپه دې صورت کې دحنفیه وداصل مذهب مطابق دهغه خوړل جائزنه دي.

لیکن دلته سوال داپیداکیږي چې آیادجینهګي په ماهی والی یانه ماهی والی کې به دماهرینوحیواناتوددې علمي تحقیقاتواعتبارکیږي اوکه دعرف عام یعنی په خلګوکې دمتعارف اصطلاحی مفهواعتباربه کیږي ؟اوپه دې کې هیڅ شک نشته چې که ددووځایونوعرف په خپل منځ کې مختلف وي نوپه دې صورت کې به داهل عربوعرف معتبروي ،ولی په حدیث کې چې له مرده سمندري حیواناتوڅخه دسمک (ماهی )کومه استثناء چې شوې ده هغه دعربي ژبې په اساس شوې ده (لهذادکوم حیوان په سمک کې په داخلیدلویانه داخلیدلوکې به دعربي ژبې عرف معتبروي ،مترجم )اوداخبره وړاندې تیره شوه چې ابن درید ،فیروزآبادی ،زبیدی اودمیري په شان ماهرین لغت پردې متفق دي چې جینهګاماهی دی.

لهذاددې تفصیل مطابق له احنافوڅخه چې کوموحضراتودعلم حیوان ،دبیان کړي تعریف په رڼایې کې جینهګاله ماهی څخه خارج ګڼلی هغوئ ددې خورک ممنوع ګرځولی دی ،اوکوموحضراتوچې داهل عربودعرف مطابق جینهګاپه ماهي کې شمارکړی دی هغوئ دجوازفتوی ورکړې ده.

دجوازقول په دې وجه راجح معلومیږي چې په دې شان مسائلوکې دشریعت مزاج دادی چې هغه دخلګودعام عرف اعتبارکوي ،فنی باریکیانوته نه ګوري ،لهذادفتوی ورکولوپروخت دجینهګي په مسئله کې سختي کول مناسب نه دي ،بالخصوص په داسې حال کې چې په بنیادي ډول سره دامسئله اجتهادي ده چې دائمه ثلاثه په نزددجینهګي په حلال والی کې هیڅ شبه نشته ،همداراز په کومه مسئله کې دفقهاواختلاف

دتخفيف باعث دى البته بياهم دجينهكې له خورک څخه احتراز كول ډير مناسب او ډيرا حوط او ډيراولى دى .فقط والله سبحانه وتعالى اعلم (فقهى مقالات جلد ۳ ،صفحه ۲۱۷ تا ۲۲۱)

(۹) كه چاناروغه بزه ذبح كړه اودذبح كولوپروخت هغې څه حركت وكړيا له هغې څخه وينه راووتله نوهغه حلاله ده اوكه نه هغې حركت وكړاونه دهغي وينه ووتله نوهغه حلاله نه ده ولى چې دحركت اووينې داوړيايوه وجوددژوندعلامه ده لهذاذابح ژوندى بزه حلاله كړي ده په دي وجه حلاله ده ،اوددواړو (حركت اووينه) نه وجوددمرګ علامه ده لهذابه ګڼل كيږي چې ده مرداره بزه ذبح كړي ده په دي وجه حلاله نه ده ،هوكه په كومه ډول سره دذبح پروخت په دي كې ژوندمعلوم شي نوهغه په ذبح كولوسره حلال ګرځي اګركه نه هغه حركت وكړي اونه وينه ووځي اوكه ژوندمعلوم نه وي نوحلاله نه ده ولى چې اصل بقاء ماكان على ماكان دى نودشک په وجه سره دژونددزوال حكم نه كول كيږي .

## كِتَابُ الاُضحِيَّة

### داكتاب داضحيه په بيان كې دى

اضحيه په لغت كې هغه حيوان ته ويل كيږي كوم چې دضحى پروخت ذبح كړل شي بيا په كثرت سره په هغه حيوان كې مستعمله شوه كومه چې دقرباني په ورځو كې هروخت ذبح كړاى شي ،اوشرعاً مخصوص حيوان دقربت په نيت سره په مخصوص وخت كې ذبح كولوته ويل كيږي .

ذبح عامه ده كه په نيت دتقرب وثواب وي يادالله تعالى پرنامه دخورک لپاره ذبح شوي وي اواضحيه خاص هغه ده كومه چې دتقرب په نيت سره ذبح كړاى شي نوله ذبائح څخه وروسته داضحيه ذكركول تخصيص بعدتعميم دى .

داضحيه لپاره شرط دادى چې اضحيه كونكى به مسلمان وي اود ومره غنى شرط ده په څومره سره چې صدقه فطرواجبيږي ،داشرائط چې په چاكې موجودشي كه مذكروي اوكه مؤنث نوپرهغه اضحيه واجب ده ،داضحيه سبب وخت يعنى ايام نحردي ،داضحيه ركن دهغه څاروى ذبح كول دي دكوم چې داضحيه په ډول سره ذبح كول جائزدي ،داضحيه حكم په دنياكې دواجب اداء كول دى اوپه عقبى كې ثواب موندل دي.

(۱) تَجِبُ على حُرٍّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ مُوسِرٍ عن نَفْسِهِ لاعن طِفْلِهِ شَاةٌ اوسُبْعُ بَدَنَةٍ (۲) فجريوم النَّحْرِ إلى آخِرِ أيَّامِهِ (۳) وَلَا يَذْبَحُ مِصْرِيٌّ قبل الصَّلَاةِ وَذَبَحَ غَيْرُهُ (۴) وَيُضَحِّي بِالجَمَّاءِ وَالخَصِيِّ وَالثَّوْلَاءِ (۵) لَا بِالعَمْيَاءِ وَالعَوْرَاءِ وَالعَجْفَاءِ وَالعَرْجَاءِ وَمَقْطُوعِ أَكْثَرِ الأُذُنِ او الذَّنَبِ او العَيْنِ او الأَلْيَةِ (۶) وَالأُضْحِيَّةُ مِنَ الإِبِلِ وَالبَقَرِ وَالغَنَمِ وَجَازَ الثَّنِيُّ مِنَ الكُلِّ وَالجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ

**ترجمه** :واجب ده پرازاد ،مسلمان ،مقيم ،غنى باندي له خپل طرف څخه نه دده دكوچنى اولادله طرف څخه يوه بزه يااومه حصه داوښ ياغوا ،دعيدالاضحى په ورځ له طلوع فجرڅخه بياداايام نحرتراخيرپوري ،اوذبح دي نه كوي دښاروالادااخترله لمانځه څخه وړاندي اوذبح دي كوي دغيرښاروالا ،اوقرباني كولى شي دبي

ښکره او خصی اوليوني ،نه درانده او کانه او انتهايي کمزور او ګوډ او داکثر غوږ او لکی او غابښ او سترګې يالم دړې کړل شوي ،او قرباني داوښ او غوا او پسه او بزي وي او جائزدی ثنی له ټولو څخه او جذع له پسه څخه.

**تشريح** :(۱)قرباندي په هر ازاد ،مسلمان او مقيم (که په ښار کې وي يا په کلو کې وي )واجب ده او شرط دادی چې غنی (دصدقة الفطرغنی مراد ده )وي ولی چې دنبی کريم ﷺ ارشاددی ﴿من وجد سعة فلم يضح فلا يقربن مصلانا ﴾(کوم غنی چې قرباني ونه کړي هغه دي زموږ عيدګاه ته نږدې نه راځي )ظاهره ده چې داسي شديدوعيد په غيروجوب کې نه وي ،دکوچنيانو له طرف څخه دي قرباني نه کوي همداظاهرالرواية دی مګرحسن ابن زياد رحمه الله له امام ابوحنيفه رحمه الله نقل کړی دی چې دکوچنيانو له طرف څخه دي هم قرباني کوي هغه يې پرصدقة نطرقياسوي ،هرکس دي يوه بزه ذبح کړي يادي داووکسانو له طرف څخه يواوښ ياغوا ذبح کړي ،اوپه اوښ او غوا کې هريوله او وڅخه دلږوکسانولپاره هم کافی دی ،دقياس تقاضاخوداده چې دبزي په شان دهرکس له طرف څخه يو اوښ يا يوه غوا اوي مګرپه حديث شريف کې دي حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې موږله نبی کريم ﷺ سره غوا او اوښ داووکسانو له طرف څخه قرباني کړه ،دبزي په باره کې څرنګه چې نص نشته لهذا هغه په خپل اصل پاتي ده.

**فائده**:له غنی کيدلو څخه مراد دادی چې دضرورت اصليه ماسوادنصاب مالک وي ،له ضرورت اصليه څخه مرادهغه ضرورت دی کوم چې له نفس ياعزت سره متعلق وي يعنی دهغه دنه پوره والی په وجه سره دنفس ياعزت دتللوخطره وي مثلاخورک څښک ،جامي اغوستل ،اوداوسيدلو مکان ،اهل صنعت وحرفت لپاره دهغوئ دکارکولو اوزار،باقی لوی لوی ديګونه ،غټ غټ فرشونه ،شاميانې ،ريډيو،ټيپ ريکارډر، اوټلويژون ،وی سی ار وغيره داټول په اسباب ضروريه کې داخل نه دي ،په دي وجه ددي په مالک باندي قرباني واجب ده ،په داسي حال کې چې ددي قيمتونه نصاب ته رسيږي .

**فائده**:که دڅوورونو مال مشترک وي نوهغوئ ټول برابرحصه لرونکی دي او قرباني پرهغه کس واجب ده له کوم سره چې له حاجات ضروريه څخه فارغ بقدرنصاب مال موجود وي ،نو که ددي ورونو مال مشترک دومره اندازه قيمت لري چې له قرض اداء کولو څخه وروسته دهريوه حصه نصاب ته رسيږي نوپه دوئ کې پربالغانو باندي قرباني فرض ده ،پرنابالغونشته .اوپرکوموچې فرض ده له هغوئ څخه پرهريوه يوه بزه يادغوا ،غوايي ،ګاميښي ،او اوښ يا اوښې اومه حصه قرباني کول ضروري ده ،اوداټولوله مشترک مال څخه صرف ديوې بزي ذبح کول کافی نه دي ،همداشان که يوه بزه دقرباني په نيت سره ددوکسانوله طرف څخه ذبح کړای شي نوکه فرض قرباني اداء کول مقصود وي اوکه نفلي ،ناجائزده (کفايت المفتی :۸/۱۷۸)

**فائده**:پرقرباني دااشکال کيږي چې په دري ورځوکې په يوه وخت په لکهاوځاروي هلاکيږي نوددي مضراثرپرقومي اقتصاد دالويږي چې ځاروي به کم شي اوټول کال به خلکوته دغوښي په حصول کې مشکلات پيداشي ليکن داخيالات صرف دهغه انسان پرذهن مسلط کيږي کله چې هغه دخالق کائنات دقدرت کامله اودهغه دنظام تحکم له مشاهدي څخه بالکليه غافل شي .حال داچې دقدرت نظام په ټول عالم

کې له همیش څخه دادی چې کله په دنیاکې دکوم شئ ضرورت ډیروي نو الله رب العالمین دهغه شئ پیداوارهم ډیروي اوکله چې ضرورت کمیږي نوپیداوارهم کمیږي.
حضرت مولانامفتی محمدشفیع صاحب نورالله مرقده فرمایي :چې الله تعالی چې کوم اشیاء صرف (مصرف کیدونکي شیان )دانسان اوحیوان لپاره پیداکړي دي ترڅوچې هغه مصرفیږي دهغوبدل من جانب الله پیداکیږي ،دکوم شئ چې مصرفیدل زیات وي الله تعالی دهغه پیداوارهم زیاتوي ،په څارویوکې بړي اوغواوي ترټولوزیاتي مصرفیږي چې هغه په ذبح کولوسره خوړل کیږي ،اوپه شرعي قربانیواوکفاراتواوجنایاتوکې هغه ذبح کیږي ،هغه چې څومره په کارکیږي الله تعالی همدومره دهغوپیداوارزیاتوي دکوم چې په هرځای کې مشاهده کیږي ،چې دبزوتعدادهروخت دڅاړي لاندي له اوسیدلوباوجودپه دنیاکې ډیردی ،دسپیواوپشوګانوتعداددومره نه دی حال داچې دسپی اوپشي نسل په ظاهره بایدډیروای چې هغه په یوه نس کې ترڅلوروپنځو بچیانوپوري پیداکوي ،بزه اوغوازیات سي زیات دوه بچیان پیداکوي ،غوابزه هروخت ذبح کیږي ،سپی اوپشي ته څوک لاس نه وروړي ،مګربیادامشاهده ناقابل انکارده چې په دنیاکې دغوااوبزوتعداددسپی اوپشي په نسبت ډیردی ،له کله څخه چې په هندوستان کې دغواپرذبیحه باندي پابندي لګیدلي ده له هغه وخت څخه هلته دغواپیداوارپه همدي نسبت سره کم شوی دی ،کنه نوهرکلی اوهرکوربه له غواوو څخه ډک وای کومي چې دنه ذبح کیدلوپه وجه سره پاتي شوي دي.
عربوچې له کله څخه په سورلی اوباروړلوکې له اوښانوڅخه کاراخیستل لرکړهلته داوښانوپیداوارهم لږشو،په دي سره دملحدانه شبه ازاله وشوه کومه چې داحکام قرباني په مقابله کې داقتصادي اومعاشي تنګی داندیښني په وړاندي کولوسره کیږي .(معارف القران :۷/۳۰۳)
**فائده**:کوم حاجی چې په اتم تاریخ منی ته له روانیدلوڅخه وړاندي په مکه مکرمه کې پنځلس ورځي یاله دي څخه زیات وخت مقیم اوسیدلی وي نودده پرذمه دحج له قرباني ماسوایعنی دمال قرباني (اضحیه )هم واجب ده اوکوم چې داسي نه وي یعنی مقیم نه وي نوځرنګه چې دمسافرپرذمه قرباني واجب نه ده په دي وجه پرمسافرحاجی دمال قرباني واجب نه ده صرف دحج تمتع یاحج قران قرباني واجب ده (جدید معاملات کي شرعی احکام :۳/۱۲۲)
(۲)قرباني تردریوورځوپوري جائزده یوه یوم النحریعنی لسم ذی الحجه اودوه ورځي له دي څخه وروسته یعنی یولسم اودولسم ذی الحجه ولی چې له حضرت عمراوحضرت علی اوحضرت ابن عباس ﷺ څخه مروی ده چې هغوئ وویل ایام نحردري دي أَوَّلُهَا أَفْضَلُهَا.ظاهره داده چې هغوئ داله نبی کریم ﷺ څخه اوریدلي ده ولی چې دمقادیروپه مقررکولوکې درأي دخل نه وي ،امام شافعی ﷫ فرمایي له یوم النحرڅخه وروسته تردریوورځوپوري قرباني جائزده په دي ډول دده په نزدقرباني په څلورو ورځوکې جائزده.
(۳)دقرباني وخت دلسم ذی الحجه له طلوع فجرڅخه شروع کیږي ،لیکن دښارخلګوته ترهغه وخت پوري قرباني کول جائزنه ده ترڅوچې امام المسلمین داخترله لمانځه څخه فارغ نه شي .یادلمرپه زوال کیدلوسره

دلمانځه وخت تیرشي نوهم قرباني ذبح کول جائزده ولی چې دبناری په حق کې شرط دادی چې دده داخترلمونځ یاداخترد لمانځه وخت له قرباني ذبح کولو څخه وړاندي وي که له دي دواړه څخه یوموجودنه شونودفقدان شرط په وجه سره قرباني جائزنه ده ،هودکلیوو الاوته له طلوع فجرڅخه وروسته قرباني ذبح کول جائزده ولی چې پردوئ صلوة عید فرض نه دی نوتقدیم الصلوة یاتقدیم وقت الصلوة هم شرط نه دی.

**فائده**:دیوملک داوسیدونکی واجب قرباني په بل ملک کې دکولودلاندینیومختلفوصورتونوشرعي حکم واضح کړه.

(۱)عموماًپه سعودی عربیه کې له هندوستان څخه په جهت مغرب کې دواقع کیدلوپه وجه سره اسلامي تاریخ یوه ورځ مقدم وي اودهغه په نسبت په هندوستان کې اسلامي تاریخ یوه ورځ مؤخروي ،په داسي صورت کې که په هندوستان کې اوسیدونکی په سعودی کې اوسیدونکی کوم کس دخپلي واجب قرباني هلته کولولپاره وکیل جوړکړي اودلوړذکرشوی تفصیل مطابق په سعودی کې چې کومه ورځ لسم ذی الحجه وي په هغه ورځ دلته په هندوستان کې نهم ذی الحجه وي نوپه سعودی کې اوسیدونکی وکیل دلته داوسیدونکی کس قرباني په اوله ورځ کولی شي که یا؟

(۲)په کوم ملک کې چې اسلامي تاریخ عموماًیوه ورځ مقدم وي اودهغه ځای اوسیدونکی کس په داسي ملک کې کوم کس دقرباني وکیل جوړکړي چیرته چې اسلامي تاریخ دمؤکل دملک په نسبت یوه ورځ مؤخروي نوپه دي صورت کې دقرباني وکیل په خپل ملک کې دقرباني په دریمه ورځ دمؤکل قرباني کولی شي که یا؟حال داچې په دي ورځ دمؤکل په ملک کې ددیارلسم ذی الحجه کیدلوپه وجه سره دقرباني وخت ختم شوی دی؟

(۳)په کومودوملکوکې چې دلمرطلوع اوغروب دمقدم اومؤخرکیدلوپه وجه سره دشپي اوورځي ابتداء څوګانتي (ساعتونه )مقدم اومؤخروي په داسي دوو ملکوکې په مؤخرابتداء والاملک کې اوسیدونکی دخپلي قرباني وکیل په مقدم ابتداء والاملک کې څوک جوړکړي نوداوکیل په خپل ملک کې دقرباني په اوله ورځ دقرباني په ابتدائي وخت کې دمؤکل له طرف څخه قرباني کولی شي اوکه یا؟که وکیل لره داولي ورځي په ابتداء کې قرباني کول جائزنه وي نوبیاهغه څه وخت قرباني کولی شي؟بینواتوجروا!

**الجواب**:حامداومصلیاومسلما:په بل ملک کې دچاپه وکیل جوړلوسره دقرباني دکولومختلف صورتونه چې په سوال کې مذکوردي دهغودحکم دمعلومولواوفهمولولپاره اولأله سوال سره متعلق دځومسائلوزده کول ضروري دي ،دامسائل په لاندي ډول سره دي؟

(۱)داحقیقت درښاورځي په شان واضح دی چې په دنیاکې په ټولوملکونواوټولوښارونوکې دشپي اوورځي پیل په یوه وخت نه وي بلکه له تقدیم اوتاخیرسره وي اوهمدشان په ټولوعلاقواوملکونوکې اسلامي تاریخ هم یوشان نه وي بلکه یوله بل څخه په لیري علاقواوملکونوکې اسلامي تاریخ مقدم اومؤخروي.

(۲)په هرملک کې په مقامي ډول سره دقرباني دورځوپه شروع کیدلوسره دهغه ځای په اوسیدونکو دشرائطوموجودوالی په صورت کې قرباني واجیبږي اوپه یوه ځای کې هم دقرباني دوخت له شروع

کيدلو څخه وړاندي دهغه ځای په اوسيدونکوباندي قرباني نه واجبيږي ،(۳)هرځای دلسم ذوالحجه دصبح صادق په طلوع کيدلوسره دقرباني وخت شروع کيږي .
(۴)له قرباني واجبيدلو څخه وړاندي که قرباني ذبح کړای شوه نو قرباني نه اداء کيږي ،قبل الوجوب دقرباني په نيت سره که قرباني ذبح کړای شي نودقرباني دوخت له شروع کيدلو څخه وروسته اودقرباني واجب کيدلو څخه وروسته به **دوهم ځل قرباني** کوي .لکه چې کوم کس دکوم وخت فرض لمونځ دلمانځه له وخت شروع کيدلو څخه وړاندي اداء کړي نوفرض اداء نه شول اودوخت له شروع کيدلو څخه وروسته به دوهم ځل لمونځ اداء کوي .(۵)دکوم کس پرذمه دقرباني له واجبيدلووروسته دقرباني کولودصحيح والی لپاره دقرباني څاروی چې چيرته وي دهغه ځای دقرباني دوخت شروع کيدل اوباقی پاتي کيدل شرط دی .
(۶)په مالدارمقيم کس له قرباني واجبيدلو څخه وروسته که دده متعين شوی وکيل په خپل ځای کې دقرباني دوخت له شروع کيدلووروسته قرباني ذبح کړي نوصحيح اوجائزده .(۷)که دمؤکل په ځای کې دقرباني وخت شروع نه وي اودوکيل په ځای کې شروع وي نووکيل لره په ځای کې دمؤکل له طرف څخه دده واجب قرباني کول جائزنه ده اګرکه دقرباني دڅاروی په ځای کې دقرباني وخت شروع شوی وي .(بدائع :۴/۱۹۸/۲۲۱.شامی :۵/۱۹۸/۲۰۲)
دلوړذکرشويو مسائلوله تفصيل څخه وروسته په سوال کې دذکرشويو مختلفو صورتونو ځواب فهمول آسان دی کوم چې په لاندي ډول سره دی .
(۱)په دي صورت کې دسعودی اسلامي تاريخ ددي ځای له اسلامي تاريخ څخه يوه ورځ مقدم وي نوپه سعودی کې دقرباني والاوکيل دلته داوسيدونکی کس له طرف څخه دقرباني په اوله ورځ واجب قرباني نه شي کولی ،وکيل لره دهغه ځای دقرباني په دوهمه ورځ قرباني کول ضروري دي ،که وکيل دهغه ځای په اوله ورځ يعنی په لسم ذی الحجه قرباني وکړه نو دمؤکل له طرف څخه واجب قرباني نه ده اداء شوي اوده لره دوهم ځل قرباني کول ضروري ده .
(۲)په دي صورت کې په اولنی ملک کې داوسيدونکی کس وکيل په خپل ملک کې دقرباني په دريمه ورځ دمؤکل له طرف څخه قرباني کولی شي ولی چې دمؤکل پرذمه دقرباني له واجبيدلو څخه وروسته دهغې داداء دصحيح والی اوجائزوالی لپاره دقرباني څاروی چې په کوم ځای کې وي دهغه ځای دقرباني دوخت بقاء ضروري ده اګرکه دمؤکل په ځای کې دقرباني وخت ختم شوی وي .
(۳)په دي صورت کې دقرباني دمالک له طرف څخه دقرباني وکيل په خپل ملک کې دقرباني داولي ورځې په پيل کې قرباني نه شي کولی بلکه دقرباني مالک چې په کوم ځای کې اوسيږي په هغه ځای کې دصبح صادق له طلوع څخه وروسته وکيل په خپل ځای کې دهغه له طرف څخه دهغه واجب قرباني ذبح کولی شي ،که له دي څخه وړاندي وکيل دمؤکل له طرف څخه قرباني ذبح کړي نودمؤکل پرذمه دقرباني له واجب کيدلو څخه وړاندي اداء شوي شمارل کيږي لهذا دمؤکل له طرف څخه **واجب** قرباني نه ده اداء شوي اومؤکل لره په خپل ځای کې دقرباني دوخت له شروع کيدلو څخه وروسته اوبيرده له قرباني واجبيدلو څخه وروسته

دوهم ځل قرباني كول ضروري ده لكه چې فرض لمونځ له وخت څخه وړاندي اداء شي نو فرض نه اداء كيږي اودوخت له شروع كيدلو څخه وروسته دوهم ځل فرض لمونځ اداء كول ضروري وي .فقط والله تعالى اعلم (عصرحاضركى مسائل كاحل ،۳۲۵تا ۲/۳۲۸)

**مسئله** :په يوځاى كې چې داخترلمونځ اداء شي نوټولو (ښاروالاو)لره قرباني كول جائزده كه (لمونځ )په مسجدكې وي اوكه په عيدگاه كې وي ،په معذوراوروغ كې هيڅ فرق نشته قال العلامة الحصكفي رحمه الله :واول وقتها بعدالصلوة ان ذبح في مصراى بعداسبق صلاة عيدولوقبل الخطبة لكن بعدهااحب ,وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله :(قوله بعداسبق صلوة عيد)ولوضحى بعدماصلى المسجدولم يصل اهل الجبانة اجزاه استحسانالانهاصلوة معتبرة حتى لواكتفوابهااجزاتهم وكذاعكسه هداية (ردالمحتار:۵/۲۰۲)والله سبحانه وتعالى اعلم(احسن الفتاوى :۷/۵۲۴)

(۴)دجماء څاروى (يعنى دكوم چې پيدائشي ښكرنه وي )قرباني جائزده ولى چې له ښكرسره كوم مقصودمتعلق نه دى ،همداشان دخصى څاروى قرباني جائزده ولى چې دده غوښه ډيرغوړه وي ،همداشان دثولاء څاروى (يعنى ليونى څاروى )قرباني جائزده په دي شرط چې وابنه خوري ولى چې داسي جنون مقصودته مخل نه وي .

**فائده**:كه دكوم څاروى ښكرمات شوى وي نودهغه قرباني جائزده ،ليكن كه دڅاروى ښكرترمغزپوري مات شوى وي نوبيادهغه قرباني جائزنه ده لمافي الشامية :(قوله يضحى بالجماء )هي التى لاقرن لهاخلقة وكذالعظماء التى ذهب بعض قرنهابالكسراوغيره فان بلغ الكسرالى المخ لم يجزقهستانى (ردالمحتار:۵/۲۲۷)

(۵)قوله لابالعمياء والعوراء اى لايجوزان يضحى بالعمياء والعوراء ،يعنى دړانده څاروى قرباني جائزنه ده ،همداشان دعوراء (يعنى يوسترگي )څاروى قرباني جائزنه ده ،همداشان دداسي گوډڅاروى قرباني جائزنه ده كوم چې ترمذبح خاني پوري نه شي تلى ،اوداسي كمزوري څاروى قرباني جائزنه ده دكوم په هډوكوكې چې مغزنه وي ولى چې دنبى كريم ﷺ ارشاددى چې څلورنقصه په قرباني كې جائزنه دي ،يوهغه چې له سره هيڅ نه وينې بل هغه چې واضح مريض وي بل هغه چې واضح گوډوي ،اوبل هغه چې انتهائي كمزوروي ،همداشان دهغه څاروى قرباني هم جائزنه ده دكوم چې لكى ياغوږپرې وي يااكثرپرې وي ولى چې له حضرت على رضي الله عنه څخه مروى ده چې نبى كريم ﷺ ماته حكم وكړچې موږپه غوږوگوروسترگې اوغوږونه، اوذبح نه كړوصاف ړونداوهغه چې غوږونه يې غوڅ كړاى شوي وي.اوكه دلكى اوغوږاكثره برخه پاتي وي نوجائزده ولى چې للاكثرحكم الكل ،همداشان دداسي څاروى قرباني جائزنه ده دكوم چې غاښونه مات وي يايې سترگه وتلي وي يايې له نيمايي څخه زيات لم پرې شوى وى ولى چې دالله تعالى په حضوركې هديه وركول دي نوهغه خودي داسي ناقصه نه وي چې خلك يې لاهم نه خوښوي .

(۶)قرباني داوښ ،غوااوبزي وي ولى چې شرعاهمدوئ قرباني معلومه شوي ده له دوئ څخه دغيرقرباني له نبى كريم ﷺ څخه مروى نه ده ،اوله مذكوره څارويوڅخه دثنى ياله ثنى څخه دزيات عمروالاقرباني صحيح ده له ثنى څخه دكم عمروالاقرباني صحيح نه ده ،بياپه اوښانوكې ثنى هغه دى چې پنځه كلنى وي اوپه غوااوگاميښي كې دوه كلنى ثنى ده اوپه پسه اوبزي كې يوكلنى ثنى دى ،البته په پسه كې جذع يعنى

شپږمیاشتنی هم جائزده په دي شرط چې چاغ اوتازه وي په دي دول چې که په ثنی ګانوکې ایله کړای شي نوفرق یې نه کیږي ﴿لقوله ﷺ یجوز الجذع من الضأن أضحیۃ﴾ (دپسه جذع په قرباني کې جائزدی).

(۷) وإن مات أحد السبعة، وقال الورثة: اذبحوا عنه، وعنكم صح، (۸) وإن كان شريك الستة نصرانيا أو مريدا اللحم لم يجز عن واحد منهم (۹) ويأكل من لحم الأضحية، ويؤكل غنيا، ويدخر (۱۰) وندب أن لا ينقص الصدقة من الثلث وأطعموا القانع والمعتر ويتصدق بجلدها أو يعمل منه نحو غربال وجراب (۱۱) وندب أن يذبح بيده إن علم ذلك (۱۲) وكره ذبح الكتابي (۱۳) ولو غلطا، وذبح كل أضحية صاحبه صح، ولا يضمنان)

**ترجمه**: اوکه مړشویوله اووشریکانوڅخه اوویل وارثانوچې ذبح یې کړئ دادمړی له طرف څخه اوله خپل طرف څخه نوصحیح دی ،اوکه وودشپږواووم شریک نصرانی یامرتدیاصرف دغوښونیت کونکی نوجائزنه ده دکوم یوه له طرف څخه په دوئ کې ،اوخوړلی شي دقرباني غوښه اوخوړلای یې شي په غني باندي اوذخیره کولی یې شي ،اومستحب ده داچې لږنه کړي صدقه له ثلث څخه اوصدقه دي کړي ددي پوستکی یادي جوړه کړي کڅوړه یاغلبیل (چھونکی )،اومستحب ده چې ذبح وکړي په خپل لاس سره که په ذبح کولوپوهیدی ،اومکروه ده په کتابی ذبح کول ،اوکه دوه کسان غلطي وکړي هریوذبح کړي دهغه بل قرباني نوددواړوله طرف څخه صحیح ده اویوهم ضامن نه دی .

**تشریح** :(۷)که دقرباني په اوښ یاغواکې اوه کسان شریک وواوله قرباني کولووړاندي له دوئ څخه یومړشواودده وارثانونوروشریکانوته وویل چې تاسي له خپل طرفه اوددي مړی له طرف څخه داڅاروی قرباني کړئ نوکه هغوئ داسې وکړل نودډولوله طرف څخه قرباني اداء کیږي ولی چې مقصودقربت حاصلول دي اودمیت له طرف څخه په قرباني کولودامقصودحاصلیږي په دي وجه چې نبی کریم ﷺ دخپل امت له طرف څخه قرباني کړي وه .

**فائده**:داوښ یاغواپه قرباني کې دشریکانوتعداداوه ضروري دی که له اوو څخه زیات کسان شریک شول نودیوه قرباني هم نه صحیح کیږي ،مولانامفتی رشیداحمدصاحب نورالله مرقده لیکي :دغواپه څیرپه اوښ کې هم زیات ترزیات اوه کسان شریکیدلی شي که له اوو څخه زیات شول نودیوه قرباني هم نه صحیح کیږي .والله سبحانه وتعالی اعلم (احسن الفتاوی :۷/۵۰۷)

(۸)که له شپږوشریکانوسره اووم شریک نصراني وویااووم مرتدشو(العیاذبالله )یاله شریکانوڅخه یوه دقرباني نیت نه ووکړی بلکه دغوښي دحاصلولوپه نیت ورسره شریک شوی وونوپه دي دریوواړوصورتونوکې دیوه له طرف څخه هم قرباني نه صحیح کیږي ولی چې شرط دادی چې دټولوشریکانونیت به ثواب اوتقرب حاصلول وي اګرکه دتقرب اوثواب لاري مختلفي وي مثلایوه دقرباني اوبل دهدی اوبل دتمتع نیت کړی وي نوقرباني صحیح کیږي ،اوپه مذکوره بالاصورتونوکې څرنګه چې داشرط یعنی دتقرب نیت دځینوشرکاوله طرف څخه نه دی متحقق شوی لهذادیوه له طرف څخه هم قرباني نه صحیح کیږی ولی چې په اراقة الدم کې تجزی نه شته چې دځینوله طرف څخه تقرب وي اودځینوله طرف څخه تقرب نه وي .

**فائده**:كه دغواپه قرباني كې اوه كسان شريک شول نودغوښي دتقسيم پروخت دي غوښه په اندازه سره نه تقسيموي بلكه په برابربرابروزن كولوسره دي تقسيم كړي ولې چې كه ديوه په حصه كې زياته غوښه ولاړه نودادسود په حكم دكيدلو په وجه سره ګناه عظيم جوړيږي ددې زياتې غوښې خوړل هم جائزنه دى ،هو البته كه له غوښې سره سراوپښې يادپوستكى ټوټې هم شامل كړاى شي نواوس په اندازه سره تقسيم كول هم جائزدي په دې شرط چې سراوپښې په هره حصه كې وي لمالى الدرالمختار:ويقسم اللحم وزنالاجزافاالااذاضم معه من الاكارع اوالجلد(الدر المختار على هامش رد المحتار:٥/٢٢٣)

**فائده**:كه دغواپه قرباني كې ديوكوراوسيدونكي ورونه ياقريبان سره شريكان وي نودغوښې دتقسيمولوضرورت نشته ،كه وغواړي نوغوښه دې يوځاى كښيږدي اوخوري دې ،په شامى كې ددې تصريح شوې ده چې تقسيمول لازم نه دى ،كه يې تقسيم كړي اوكه يې ونه كړي نوهيڅ حرج نشته (عزيز الفتاوى :١/٧١٨)

**فائده**:همداشان كه ټول شريكان دغوښې له تقسيمولوڅخه وړاندې فقراء ته صدقه كول وغواړي نوداهم جائزدي ،مولانامفتى رشيداحمدصاحب نورالله مرقده ليكي :كه څوكسان په څاروى كې شريكان وي اوهغوئ ټول غوښه په خپل منځ كې نه تقسيموي بلكه په خپله خوښه اورغبت سره يې يوځايې پرفقراء اواحباء كې تقسيمول ياپخول اوهغوئ ته ميلمستياكول وغواړي نوجائزدي ،قال العلامة ابن عابدين رحمه الله :(قوله ويقسم اللحم)انظر هل هذه القسمة متعينة اولاحتى لواشترى لنفسه ولزوجته واولاده الكبار بدنة ولم يقسموها تجزيهم ولاوالظاهر انها لاتشترط لان المقصود منها الاراقة وقد حصلت (رد المحتار: ٥/٢٠٢)والله سبحانه وتعالى اعلم(احسن الفتاوى:٧/٥٠٤)

**فائده**:دحرام كسب والاكس كه دغواپه قرباني كې شريک شي نوپه دې سره دنوروشريكانوپرقرباني اثرپريوځي كه ياپه دې باره كې دحضرت مولانامفتى رشيداحمدصاحب نورالله مرقده له احسن الفتاوى څخه يوه فتوى بلفظه نقل كوم .سوال :په يوه غواكې دبينک ياانشورنس ملازم ياكوم داسې كس شريک شوچې دهغه ټوله ياكثره امدنى حرامه ده وددې په شركت سره دنورشريكانوپرقرباني څه اثرپريوځي كه يا؟بينواتوجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب

په دې صورت كې ديوه قرباني هم صحيح نه شوه ،قال العلامة الحصكفى رحمه الله :وان مات احدالسبعة المشتركين فى البدنة وقال الورثة اذبحوا عنه وعنكم صح عن الكل استحسانالقصدالقربة من الكل ولوذبحوها بلااذن الورثة لم يجزهم لان بعضها لم يقع قربة وان كان شريک الستة نصرانيااومريداللحم لم يجزعن واحدمنهم لان الاراقة لاتتجزأ هداية ،وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله :(قوله وان كان شريک الستة نصرانياالخ) وكذااذاكان عبدااومدبرايريدالاضحية لان نيته باطلة لانه ليس من اهل هذه القربة فكان نصيبه لحمافمنع الجوازاصلابدائع (ردالمحتار:٥/٢٠٧)(احسن الفتاوى:٧/٥٠٣)

(٩)قرباني كونكى لره اختياردى كه يې خوښه وي دقرباني غوښه دې خپله وخوري اوخپلوماشومانوته دې وروخوروي اوكه يې خوښه وي نواغنياءاوفقراءته دې وروخوروي اوكه يې خوښه وي نودخپل ځان لپاره يې ذخيره كولوهم شي ولې چې نبى كريم ﷺ فرمايلي ووچې ماتاسې دقربانيودغوښوله خوړلومنع كړې واست

نو اوس یې خوری او ذخیره یې کړئ ،اوکله چې داجائزده چې صاحب قرباني یې په خپله وخوري حال داچې هغه غني دی نونورو غنیانو ته یې هم ورخورولی شي.

(۱۰)مګرمستحب داده چې صدقه له یوه ثلث څخه کمه نه کړي ولی چې دمصرفولوجهات دري دي خوړل ،ذخیره کول لماروینا او بل چاته دخوراک لپاره ورکول لقوله تعالی (وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ)(یعنی وربې کړه دخوراک لپاره صابر اوبې صبرته )لهذا په دري جهاتو به اثلاثا تقسیمیږي ،دقرباني پوستکی که یې خوښه وي نوصدقه دي کړي ولی چې پوستکی دقرباني جزء دی او که یې خوښه وي له هغه څخه دي کوم داسي شئ جوړکړي چې په کورکې کاریږي مثلاتوشه دان ،غلبیل وغیره ،البته په خرڅولوسره یې قیمت پرخپل ځان نه شي مصرفولی یعنی په پوستکی کې دتمول په نیت سره څه تصرف نه شي کولی.

**فائده**:دقرباني پوستکی بعینه مسجدته ورکول (په دي شرط چې هغه بعینه دمسجدپه کارکي استعمال شي یعنی خرڅ نه کړای شي )همداشان له هغه څخه بوشکه جوړول اومسجدته ورکول جائزدي ولی چې دپوستکی بعینه تصدق صدقه نافله ده اوصدقه نافله مسجدته ورکول جائزده اوچې پوستکی خ څ کړي نو دهغه قیمت مسجدته ورکول جائزنه دی ولی چې دقیمت تصدق واجب دی اوصدقه واجبه لپاره تملیک شرط دی او مسجد محل تملیک نه دی.

همداشان دپوستکی قیمت دمسجددملازمینواونورواوقافوپه تنخواه ګانوکې ورکول هم جائزنه دی همداشان بعینه پوستکی یادهغه قیمت دمسجدمؤذن یاامام ته دهغه دخدمت په معاوضه کې ورکول هم جائزنه دي ،البته که یې دامام اومؤذن دمقررکولوپروخت صاف ورته ویلي وي چې دقرباني په پوستکوکې ستاهیڅ حق نه وي له دي څخه وروسته بعینه پوستکی یادهغه قیمت ورکړل شي نوجائزدی اوبه صورت ثانیه کې دده فقیروالی شرط دی ،همداشان دهغه قیمت دمسجدپه جوړښت کې صرف کول هم جائزنه دی .هوبعینه پوستکی که دمسجدیااوقافوپه کارکي استعمال کړای شي نوجائزدی مثلادمسجدیامدرسي لپاره بوښکه جوړه کړای شي.

بنوهاشموته بعینه پوستکی ورکول صحیح دی بیاکه هغوئ بعینه پوستکی استعمال کړي یایې خرڅ کراوییسي یې استعمال کړي ولی چې دپوستکی بعینه تصدق صدقه نافله ده اوصدقه نافله بنوهاشم ته ورکول جائزده مګرکه پوستکی خرڅ کړي نودهغه قیمت بنوهاشم ته ورکول جائزنه دی ولی چې دقیمت تصدق واجب دی اوهغوئ دصدقات واجبه ومصرف نه دي (امدادالاحکام :۴/۲۰۶)

**فائده**:دقرباني پوستکی که دقرباني والاچاته ورکړي اوهغه کس کوم ته چې پوستکی ورکړل شوی دی ،پوستکی خرڅ کړي کوم معلم (ښوونکی )ته یې په تنخواه کې ورکړي یایې دمسجدپه تعمیرکې مصرف کړي نوجائزدی لیکن که یې دقرباني والاپه خپله خرڅ کړي نوبیادی ددي پوستکی روپۍ دمعلم وغیره په تنخواه یامسجدکې نه شي مصرفولی بلکه صدقه کول لازم دی (کفایت المفتی :۸/۲۲۷)

**فائده**:که چاله قرباني وروسته پوستکی په اوربوخ کراوویې خوری نوپرده ضمان نشته ؟............الجواب باسم ملهم الصواب :دبیع په صورت کې داشرط ده چې په باقی پاتي کیدونکی شئ

به يې بدلوي ،په خپله په استعمالولو کې داشرط نه دی ،په دي وجه خوړل جائزدي ،والله تعالی اعلم بالصواب (احسن الفتاوی :۷/۵۲۲)

(۱۱)افضل داده چې خپله قرباني په خپل لاس سره ذبح کړي په دي شرط چې ذبح کول يې زده وي ولی چې داعبادت دی اوداسي عمل چې عبادت وي په خپله سرته رسول افضل دی ،ليکن که يې بل ته دذبح کولو حکم وکړنوهم جائزدی ولی چې نبی کريم ﷺ له خپل ځان سره سل اوښان بيولي وو له هغو څخه يې څه بالاشپيته په خپل لاس سره ذبح کړي وو اوپاتي يې په حضرت علی رضی الله عنه ذبح کړي وو.

(۱۲)قرباني په کوم اهل کتاب ذبح کول مکروه ده ولی چې داداسي کاردی کوم چې قربت اوثواب دی او اهل کتاب دقربت اوثواب اهل نه دي .البته دمسلمان په امرسره که ده ذبح کړه نوجائزده ولی چې داهل کتابوذبيحه صحيح ده ،البته که يې په مجوسی اوبت پرست وغيره سره ذبح کړه نوجائزنه ده ولی چې دمجوسي بت پرست وغيره ذبيحه حلاله نه ده نوکه هغه ذبح کړه نودڅاروی غوښه به حلاله نه وي .

(۱۳)که دووکسانوپه خپل منځ کې په دي ډول غلطي وکړه چې هريوه دهغه بل دقرباني څاروی ذبح کړنودقياس تقاضاداده چې داجائزنه وي اوهريوهغه بل ته ضامن شي ولی چې هريوه دخپل ملګري له اجازي څخه بغيرذبح کړي ده لهذادمتعدی کيدلوپه وجه سره به ضامن وي ،مګراستحسانادداړوله طرف څخه جائزدی اوله دواړوڅخه پريوه هم ضمان نشته ولی چې دهريوه څاروی دهغه په تعين سره دقرباني لپاره متعين شونوګوياد لالةً دمالک له طرف څخه هرداسي کس ت دذبح کولواجازه شته کوم چې دذبح اهل وي لهذاهريوه ذبح کول جائزده اوهريودهغه بل له طرف څخه دوکيل والی په وجه سره ضامن هم نه ګرځي.

## كتاب الكراهية

### داکتاب دمکروه شيانوپه بيان کې دی

کراهية دنه خوښولوپه معنی دی نودادمحبت اوخوښي ضد دی ،نومکروه خلاف مندوب اوخلاف محبوب ته ويل کيږي ،په کتاب الاضحيه کې ډيرمسائلي داسي وي دکوموحکم چې کراهت وو لکه په شپه کې قرباني ذبح کول ،دقرباني شيدي لوښل ،اودهغي وړی پرې کول وغيره نومصنف رحمه الله مناسبه وګڼله چې دکراهت تفصيل بيان شي په دي وجه يې له کتاب الاضحيه وروسته کتاب الکراهية ذکرکړی دی.

ف:ځيني علماپه دي ځای کې دکتاب الحظروالاباحة عنوان اينبی دی دابنه عنوان دی ولی چې دحظرمعنی منع ده اودا باحت معنی جوازده اوپه دي کې ممنوع اوجائزدواړه قسمه مسائلي بيان شوي وي ،اوځيني علماء دکتاب الاستحسان عنوان اينبی دی ولی چې په دي کې دڅه داسي شيانوذکردی کوم چې شريعت مستحس ګرځولي دي ،اوځينودکتاب الزهدوالورع عنوان اينبی دی ولی چې په دي کې دڅه داسي شيانوذکردی دکوموچې شريعت اجازت ورکړی دی ليکن زهددهغودترک مقتضی دی .

(۱) اَلْمَكْرُوهُ إِلَى الْحَرَامِ أَقْرَبُ ،وَنَصَّ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ كُلَّ مَكْرُوهٍ حَرَامٌ

ترجمه :مکروه حرام ته ډيرنږدي دی اوتصريح کړي ده امام محمد رحمه الله چې هرمکروه حرام دی

**تشريح:** (۱)شيخينو دتعارض ادله په وجه سره مكروه امر(حرمت ته په ترجيح وركولوسره )حراموته ډيرنږدې بللى دى ،حال داچې امام محمد رحمه الله فرمايي چې هرمكروه حرام وي ،مګركله چې امام محمد رحمه الله ته په مكروه كې نص قطعي په لاس نه ورځي نودى هغه لره دحراموپرځاى په مكروه سره تعبيركوي نوداامام محمد رحمه الله په نزددمكروه نسبت حراموته داسي دى لكه دواجبونسبت الى الفرض ته .دااختلاف دمكروه تحريمي په باره كې دى تركومه چې مكروه تنزيهي دى نوهغه بالاتفاق اقرب الى الحلال وي .

**ف:** دشيخينو قول مختاردى لمافي الدرالمختار:(وعندهما)وهوالصحيح المختارومثله البدعة والشبهة (الى الحرام اقرب)فالمكروه تحريما(نسبته الى الحرام كنسبة الواجب الى الفرض)(الدرالمختارعلى هامش ردالمختار:۵/۲۳۷)

## فَصْلٌ فِي الاَكْلِ وَالشُّرْبِ

دافصل دخوراک اوڅښاک دشيانوپه بيان كې دى

كتاب الكراهية په څوفصلومشتمل دى له هغوڅخه دالومړى فصل دخورک اوڅښاک دشيانوپه بيان كې دى چې دخورک كوم شيان حرام اوكوم مكروه اوكوم مباح دي ددي فصل دتقديم وجه داده چې دخورک څښاک شيانوته حاجت ډيروي .

(۱) كُرِهَ لُبْسُ الأَثَانِ (۲) وَالأَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالإِدْهَانُ وَالتَّطَيُّبُ مِنْ إِنَاءِ ذَهَبٍ وَفِضَّةٍ لِلرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ (۳) وَحَلَّ الشُّرْبُ مِنْ إِنَاءٍ مُفَضَّضٍ وَالرُّكُوبُ عَلَى سَرْجٍ مُفَضَّضٍ وَالْجُلُوسُ عَلَى كُرْسِيٍّ مُفَضَّضٍ ، وَيَتَّقِي مَوْضِعَ الْفِضَّةِ (۴) وَيُقْبَلُ قَوْلُ الْكَافِرِ فِي الْحِلِّ وَالْحُرْمَةِ (۵) وَالْمَمْلُوكِ وَالصَّبِيِّ فِي الْهَدِيَّةِ وَالإِذْنِ وَالْفَاسِقِ فِي الْمُعَامَلاتِ لا فِي الدِّيَانَاتِ (۶) وَمَنْ دُعِيَ إِلَى وَلِيمَةٍ وَثَمَّةَ لَعِبٌ وَغِنَاءٌ يَقْعُدُ وَيَأْكُلُ

**ترجمه** :مكروه دي دخرې شيدې ،اوخورک اوڅښک اوتيک لګول اوخوشبويي لګول دسرو اوسپينوزروله لوښى څخه نارينه اوښځي لره نه دمسواوښيښي اوبلوراوعقيق له لوښيوڅخه ،اوحلال دي څښل له هغه لوښي څخه چې دسره اوسپين پري كارشوي وي اوسپريدل پرهغه ځين چې سره اوسپين زرپرې كارشوي وي اوكښيناستل پرهغه څوكۍ باندي چې سره اوسپين زرپرې كارشوي وي اوليري داوسي دسپينوزروله ځايه ،اومنل كيږي به دكافرخبره په حلت اوحرمت كې ،اودغلام اونابالغ په هديه كې اوپه اجازت كې اودفاسق والاپه معاملاتوكې ،نه په دياناتوكې ،اوچاته چې دعوت وركړل شودوليمي لپاره اوپه هغه ځاى كې لهولعب اوغزلي وي نوكښي دي ني اوخورک دي وكړي .

**تشريح** :(۱)دخرې شيدې مكروه تحريمي دي ولى چې شيدي له غوښي څخه پيداكيږي لهذادخرې شيدې دهغې دغوښي په شان مكروه تحريمي دي .

(۲)دسرواوسپينوزروپه لوښوكي نارينه اوښځوتولولره خورک ،څښک ،تيل لګول ،اوخوشبولګول جائزنه دي ولى چې له حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه مروى ده چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل دسرواوسپينوزروپه لوښى كې مه څښئ اومه ريښم اوديباج په تن كوئ په دي وجه چې هغه دپه دنياكې دكافرانولپاره دي اوستاسي لپاره په اخرت كې دي ،درانګ (يوقسم عمده سيسه )شيشه ،بلور(يوقسم شيشه ،سپين اوشفاف جوهر)اوعقيق (سوررنګى قيمتى ډبره )دلوښوپه استعمالولوكې څه حرج نشته ولى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم دپيتل له لوښى څخه

اودس اوغسل فرمايلي دی اورانګ وغيره دپيتل په شان دي دسروراوسپينوپه معنی سره نه دي لهذا دهغو استعمال جائز دی.

**الالغاز**: ای الاناء من غیر النقدین ولیس مغصوبا ولا مملوکا للغیر یحرم استعماله؟

**فقل**: المعمد من اجزاء الادمی (الاشباه والنظائر)

(۳)په کومولوښو چې دسپينوزرو ملمع (سپين زرکارشوي) وي په هغوکې څښل دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد جائزدي، همداشان پرکوموڅيزونوچې دسپينورزوملمع وي پرهغوسپريدل اوپه کومه کرسی چې دسپينو زرو ملمع وي پرهغه کښينستل دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد جائزدی په دي شرط چې دسپينوزرو له ځايه ځان وساتي ولی چې که چادسپينوزروګوتمی په ګوته کړی وي اوپه لپه کې يې اوبه وڅښلي نوځرنګه چې خوله پرسپينوزرونه لګيږي په دي وجه مکروه نه ده نومذکوره بالاشيان هم مکروه نه دي ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزدمکروه دي.

ف: دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندیة: ولاباس بالشرب والاکل من الاناء ملعب مفضض.....وعن ابی یوسف انه کره جمیع ذالک قول محمد معه وقیل مع ابی حنیفة....وفی البزازیة والصحیح قول ابی حنیفة کذافی المضمرات (الهندیة: ۵/۳۳۴)،مګرپه دي زمانه کې دامام ابويوسف رحمه الله پرقول عمل کول اولی دی سدالباب استعمال الذهب والفضة للرجال لان العوام لایمیزون بین موضع الفضة وغیرها).

(۴)دکافرقول دحلال اوحرام په باره کې مقبول دی له حلال اوحرام څخه مرادحلت اوحرمت دی کوم چې دمعاملات په ضمن کې وي نوپه معاملاتوکې دکافرخبره معتبره ده حتی که چاله خپل مجوسی مزدورڅخه له بازاره غوښه راوغوښته هغه غوښه راوړه اووي ويل چې دادمسلمان ياکتابی ذبيحه غوښه ده نومالک لره دهغې خوړل جائزدي ولی چې کافرعاقل هم دی اوخپل مذهب داعتقادپه وجه سره درواغ هم بدګڼي لهذاخبرصحيح دی په دي وجه معتبردی.

(۵)قوله والمملوک والصبی فی الهدیة والاذن ای یقبل قول المملوک والصبی فی الهدیة والاذن ،يعنی په هديه اواذن فی التجارت کې دغلام اونابالغ په قول اعتبارکول جائزدی مثلاکوم غلام يانابالغ چاته وويل چې زمامولی يازماپلارستاليپاره داهديه راکړي ده نوهغه لره ګنجائش شته چې هغه قبوله کړي ولی چې عادت جاريه دادی چې خلک په دوئ سره هداياوي ليږي اواذن فی التجارت ورکوي ،اوپه معاملاتو(لکه وکالت ،مضاربت ،وغيره )کې دفاسق قول منل کيږي ولی چې معاملات دهرقسم خلګوپه منځ کې کيږي نوکه دعادل والی شرط ولګول شي نودابه مفضی الی الحرج شي.

(۶)قوله لافی الدیانات ای لایقبل قول الفاسق فی الدیانات ،يعنی په دياناتو(مثلاداوبوپه پاکوالی يانجس والی باندې دلوکې )له عادل څخه ماسوادبل چاخبره نه معتبريږي ولی چې دمعاملاتوپه شان دددي وقوع ډيره نه ده په دي وجه دعادل والی شرط په دي کې لګول لازمي دی لهذاله مسلمان عادل ماسوادبل چاخبره به نه منل کيږي ،دابايديادوساتل شي چې معاملات دبندګانوترمنځ وي لکه وکالت ،مضاربت وغيره ،اوديانات دبنده ګانواالله تعالی په منځ کې وي لکه دخورک دحلال والی ياحرام والی خبرورکول.

(۷) که څوک دولیمي میلمستیاته وغوښتل شوهلته په تللوسره ده ولیدل چې لهو اولعب شروع دی یاغزلي شروع دي نوپه کښینستلو او ډوډی خوړلو کې څه حرج نشته ولی چې دعوت قبلول مسنون دی په حدیث شریف کې دي چې څوک دعوت نه قبلوي هغه زمانانافرماني وکړه لهذا دکوم بل چا دفسق په وجه سره به دعوت نه پرېښودل کیږي لیکن دا حکم دهغو خلګو لپاره دی کوم چې دقوم پیښوانه وي اوکه هغه عالم دین وي او دفسق په منع کولو قادروي نومنع دي کړي اوکه قادرنه وي نو هلته دي نه کښیني ولی چې په دي سره ددین اوعلم بدنام کیږي.

## فصلٌ في اللبسِ

### دا فصل دا غوستلو په بیان کې دی

له خورک څښک څخه وروسته دنوروشیانو په نسبت ډیرضرروت داغوستلو دشیانو دی په دي وجه یې دنوروشیانوله بیان څخه وړاندي داغوستلو دشیانو بیان مقدم کړ.

(۱) حَرُمَ لِلرَّجُلِ لَا لِلْمَرْأَةِ لُبْسُ الْحَرِيرِ (۲) إِلَّا قَدْرَ أَرْبَعِ أَصَابِعَ (۳) وَحَلَّ تَوَسُّدُهُ وَافْتِرَاشُهُ (۴) وَلُبْسُ مَا سَدَاهُ حَرِيرٌ وَلُحْمَتُهُ قُطْنٌ أَوْ خَزٌّ (۵) وَعَكْسُهُ حَلَّ فِي الْحَرْبِ فَقَطْ (۶) وَلَا يَتَحَلَّى الرَّجُلُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ إِلَّا بِالْخَاتَمِ وَالْمِنْطَقَةِ وَحِلْيَةِ السَّيْفِ مِنَ الْفِضَّةِ (۷) وَالْأَفْضَلُ لِغَيْرِ السُّلْطَانِ وَالْقَاضِي تَرْكُ التَّخَتُّمِ (۸) وَحَرُمَ التَّخَتُّمُ بِالْحَجَرِ وَالْحَدِيدِ وَالصُّفْرِ وَالذَّهَبِ (۹) وَحَلَّ مِسْمَارُ الذَّهَبِ يُجْعَلُ فِي حَجَرِ الْفَصِّ وَشَدُّ السِّنِّ بِالْفِضَّةِ (۱۰) وَكُرِهَ إِلْبَاسُ ذَهَبٍ وَحَرِيرٍ صَبِيًّا (۱۱) لَا الْخِرْقَةُ لِوُضُوءٍ وَمُخَاطٍ وَالرَّتَمُ

**ترجمه**: حرام دي دنارینه لپاره نه دښځي لپاره دوریښمو جامه په تن کو ل، مګرپه اندازه دڅلوروګوتو، او حلال ده پروریښمو تکیه کول او دهغو نالی، او دهغې جامي په تن کول چې دهغې داوږدوالي تارونه د وریښمو وي او دساره تارونه یې دپنبه یا وړیو وي، او ددي عکس حلال دی صرف په جنګ کې، اونارینه دي زینت نه حاصلوي په سرو او سپینوزرو سره مګرګوتمۍ او کمربندا و دتوري کیڼه له سپینوزرو څخه، او افضل دی دغیرسلطان او قاضی لپاره دګوتمۍ ترک کول، او حرام دی ګوتمۍ په ګوته کول ددبري او اوسپيني او دپيتل او دسروزرو او حلال دي دسروزرو میخ کوم چې ولګول شي دغمی په سوری کې اوتړل دغاښ دسپینوزرو په تارسره نه په سروزرو سره، او مکروه دي وربه تن کول دسروزرو او وریښمو ماشوم ته، نه دسمال دا او داسه دا وبو دوچولو یا پوزې دپاکولو لپاره او تار دخبري دیادساتلو لپاره.

**تشریح**: (۱) دحریر (وریښمو څخه جوړه شوي جامه) په تن کول دنارینه ولپاره حلال نه دي اوښځولره حلال دي ولی چې دحضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه حدیث دی ان رسول الله ﷺ قال أُحِلَّ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ لِلْإِنَاثِ مِنْ أُمَّتِي وَحُرِّمَ عَلَى ذُكُورِهَا (یعنی حریراوسره زرزما دامت دښځولپاره حلال کړای شوی دی او دامت دنارینه ولپاره حرام کړل شوي دي).

(۲)دورېښمو په تن کول حرام دي البته په لږه اندازه کې معاف دي اوقليل مقداردريويا څلورګوتوسره برابردی ولی چې نبی کريم ﷺ ددريو او څلوروګوتوپه اندازه له ورېښمو څخه منع نه کوله اودنبی کريم ﷺ په باره کې منقول دي چې ده ﷺ داسي جبه په تن کوله چې دکومي چې جهالردورېښموو.

(۳)پرورېښمو په تکيه کولواوپرهغه په څملاستلوکې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد څه مضائقه نشته ولی چې په دي کې استخفاف بالحريردی نودداسي ده لکه پرنالی باندي تصويرونه پرکوم چې کښيناستل جائزدي اوپه تن کول يې جائزنه دي ،دصاحبينوپه نزدپرحريروتکيه کول اوپرهغوڅملاستل هم مکروه دي ولی چې په حديث شريف کې عام ممانعت دی کوم چې تکيه وغيره ټولوته شامل دی.

(۴)دداسي جامي په اغوستلوکې څه حرج نشته چې دهغي تانا(هغه تارکوم چې دجامي په اوږدوالی په طرف کې وي )دورېښموي اوبانا(هغه تارکوم چې دجامي په جوړلوکې دعرض په طرف کې وي )دوريويا خزووي (خز:دکوم چې تاناورېښموي اوباناديواوبووالاحيوان دوېښتانووي )ولی چې جامه خو هغه وخت جامه وي چې جوړه کړای شي اوجوړېدل يې په باني سره وي نوبانامعتبردی نه تانا.

(۵)اوددي پورته ذکرشوي جامي عکس (يعنی دکومي چې باناله ورېښموي اوتاناله وريويا خزڅخه وي )بالاتفاق دجنګ په دوران کې اغوستل جائزدي ولی چې له دي څخه دښمن ويرېږي .اوپه عاموحالاتوکې جائزنه ده ولی چې ضرورت نشته .پاتي شوخالص ورېښم نودهغودجنګ په وخت کې په اغوستلوکې اختلاف دی دصاحبينوپه نزددجنګ پروخت يې په اغوستلوکې څه حرج نشته په دي وجه چې په جنګ کې ددي ضرورت وي ولی چې توره يې نه شي پري کولای اودښمن هم له دي څخه ويرېږي ،دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددجنګ په وخت کې هم دهغواغوستل مکروه دي ولی چې نبی کريم ﷺ دورېښمو له اغوستلوڅخه مطلقامنع فرمايلي ده هيڅ تفصيل يې نه دی بيان کړی چې په غيرجهادکې مکروه ده اوپه جهادکې مکروه نه ده ،اودجنګ په حالت کې نوري جامي هم کارکولی شي لهذادهغوضرورت نشته.

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الهندية :ولاباس بلبس الحرير والديباج فی الحرب وقيل يکره وهوالاصح (الهندية ۵/۳۳۱:

ف:نن صبامصنوعي ورېښم استعمالېږي دهغواستعمال جائزدي اګرکه په عرف کې هغوته ورېښم ويل کېږي ،هوکه دکومي جامي اصلي ورېښمن والی په تحقيق سره ثابت شي نودهغي استعمال دنارينه ولپاره جائزنه دی (احسن الفتاوی:۸/۶۶)

**دلباس اجمالي بنيادي اصول** :دلباس متعلق دکوم خاص هيئت اووضع شريعت پابندي نه ده لګولي ،البته دلباس حدوديې مقررکړي دي له هغوڅخه بايدتجاوزونه شي ،نوکوم لباس چې په دي شرعي حدودوکې وي هغه ته شرعي لباس ويل کېږي کنه نوخلاف شرع ورته ويل کېږي ،هغه حدوددادي (۱)لباس به دومره کوچنی ،نرم ،ياچست نه وي چې هغه اندامونه ښکاره شي دکوموچې پټول واجب دي ،بلکه لباس بايدداسي وي چې په هغه سره مکمل عورت پټېږي .(۲)په لباس کې دي دکافرانواوفاسقانونقالي اوتشبه نه غوره کوي .(۳)له

کوم لباس څخه چې تکبر او تفاخر او اسرف او تنعم مترشح کیږي له هغه څخه دي اجتناب وشي .(۴)مال دارکس دي دومره کمزوری لباس نه په تن کوي چې لیدونکی دی مفلس وګنې ،(۵)له خپل مالی استطاعت څخه ډیر قیمت دلباس اهتمام دي نه کوي .(۶)نارینه دي پرتوګ ،لنګ او پاجامه وغیره دومره نه کښته کوي چې ښیدي یا دپیډیو څه حصه په هغه کې پټه شي .(۷)دنارینه ولپاره داصلي وریښمو لباس په تن کول حرام دي .(۸)نارینه دي ښځینه لباس او ښځې دي دنارینه لباس نه په تن کوي .(۹)لباس باید صاف ستهراوي ،نارینه ولره سپین لباس ډیرخوښ کړل شوی دی .(۱۰)خالص سورلباس دنارینه ولپاره مکروه دی ،البته که کوم بل رنګ ورسره ګډوي یا سري لیکي لرونکی وي نو مضائقه نشته .(جدید معاملات کې شرعی احکام :۳/۴۵)

(۶)دنارینه ولپاره دسرو او سپینو زورګینه په تن کول جائزنه ده ولی چې دنبی کریم ﷺ ارشاددی چې وریښم او سره زرزما دامت پرنارینه وحرام دي اودښځو لپاره حلال دي ،اوسپین زرد سروزرو په حکم کې دي لهذا دسپینو زروګینه په تن کول هم جائزنه ده .البته دسپینو زرو ګوتمۍ جائزده او سنت دادی چې یو مثقال (مثقال څلورماشي څلوررتی وي )په اندازه یا له دي څخه لږوي ،همداشان که منطقه (کمربند )اودتوري ګینه دسپینو زرو وي نو په دي کې هم څه حرج نشته په دي شرط چې دسپینو زرو پرځای لاس نه لګیږي ولی چې ددي په اباحت کې اثارموجود دي ،ښځو لره دسرو او سپینو زرو ګینه په تن کول جائزدي .

(۷)نارونیه ولره دسپینوزروګوتمۍ په ګوته کول جائزده مګرله سلطان اوقاضی ماسوا دنورو خلکو په حق کې ددي ترک افضل دی ولی چې نور خلک دي ته ضرروت نه لري حال دا چې سلطان او قاضی دا دمهرپه ډول استعمالوي .

**فــائده**:دځینو کسانو غاښونه شوري اودځینو خوځیږي له دي څخه وروسته ځیني کسان دسرو یا سپینو زرو پوښونه ورکوي شرعا دا جائزده او که یا له دي سره دا ودا سه او غسل حکم څه دی؟

واضح دي وي چې داسي پوښ ورکول څرنګه چې په ضرورت کې داخل دی او په ایسته کولو کې حرج دی هغه مدفوع دی لهذا داسي پوښ ورکول جائزدی اوبي له ایسته کولو یې اودس اوغسل صحیح کیږي ونظائرها مشهورة وفی کتب القوم مشهورة بل نصوا علی جواز اتخاذ الاسنان من الذهب وشدها به ولو کان مانعا عن صحة الغسل لما اجوا به (احسن الفتاوی:۲/۳۲)

(۸)دډبري ،پیتل او سروزورګوتمۍ په ګوته کول دنارینه لپاره حرامه ده ،دډبري دګوتمۍ دحرمت وجه داده چې له ډبرو څخه خلک بتان جوړوي نو داله ژر سره مشابه شوه او دپیتل دګوتمۍ په باره کې وارددي چې نبی کریم ﷺ دیوکس په لاس کې دژړو ګوتمۍ ولیدله نووي فرمایل ماته له تاڅخه دبتانو بوئ راځي ،لهذا دژړو پرګوتمۍ به داورسپیني ګوتمۍ قیاسیږي ،اودیوبل کس په لاس کې داورسپیني ګوتمۍ ولیدله نووي فرمایل زه پرتا دجهمنیانو ګینه وینم ،اودسروزرو دګوتمۍ په باره کې دځینو حضراتو رأیه داده چې په دي کې څه حرج نشته ولی چې سره زرا او سپین زرد واړه یو جنس دي په دواړو کې اصل حرمت دی لیکن کله چې دسپینو زرو ګوتمۍ جائزده نو دسروزرو ګوتمۍ به هم جائزوي ،مونږ ځواب ورکوو چې دمهرجوړولو ضرروت په ادنی یعنی سپین زرو پوره کیږي په دي وجه دسروزرو دګوتمۍ دجوړلو ضرورت نشته .

(۹)كه دګوتمي دغمى په سورى كې دسروزرومېخ ټک وهول شي نوداجائزدى ولى چې دسروزرومېخ په دي وخت كې تابع دى لكه چې په جامه كې نقش نګاردى اوحكم پرمېتوع جاري كيږي نه پرتابع.

**سوال**:نن سباولايتي ګهړياني (ساعتونه )دسرواوسپينوچې كوم رائج دي دهغواستعمال جائزدى كه ناجائز،دننه پرزي يې ټولي داورسپيني وي بالاخول چې وي په هغه كې هم غالب حصه دنوروهاتووي اولږدسروري،همداراز داهم بيان كړئ چې آياپه داسي شيانوبه زكوة وركول كيږي اوكه يا،اودهم تحرير كړئ چې فاونټين قلم (ولايتي قلم )په كوم كې چې دسرونب (دقلم سر)وي دهغه استعمال هم جائزدى اوكه ناجائز؟بينوا اتوجروا.

**جواب**:داولايتي ساعتونه دكوموچې كيس دسرواوسپينووي په دي كې څرنګه چې نوردهاتونه غالب اوسره اوسپين مغلوب وي په دي وجه دادسرواوسپينوپه حكم كې نه دي بلكه دعامودهاتوپه څيرپه اسباب اومتاع كې داخل دي ،(صرح به فى الهداية وغيرها)لهذادهغواستعمال نارينه ولره جائزدى اوزكوة هم دسرواوسپينوپه څيرپرهغونشته ،البته كه دتجارت ساعتونه وي نودعام تجارتي مالونوپه څيرپرهغوهم زكوة شته ،په فاونټين قلم كې هم چې كوم نب وي هغه هم غالبادسرونه وي په دي وجه جائزدى (جديدمعاملات كې شرعى احكام:۳/۹۱)

(۱۰)هلكانوته سره ياوريښم وريه تن كول مكروه دي ولى چې كله دنارينه وپه حق كې تحريم ثابت شواوپه تن كول حرام شول نووريه تن كول به هم حرام وي لكه دشرابوڅښل چې حرام دي ورڅښل هم حرام دي ،نوماشوم اګركه نابالغ دى مكلف نه دى ليكن دهغه ولى لره دامكروه ده چې ماشوم ته سره ياوريښم وريه تن كړي.

(۱۱)قوله لاالخرقة لوضوء اى لاتكره الخرقة لوضوء ،يعني داوداسه داوبوداوچولولپاره يادپوزي دپاكولولپاره دسمال ساتل ،يادكومې خبري ديادساتلولپاره پرګوته تارتړل مكروه نه دي دځينوعلماء رأيه داده چې له متكبرينوسره دمشابهت په وجه مكروه دي ،مګرصحيح داده چې په خلكوكې دداسي دسمال ساتلوعادت په عامه بناړونوكې عام دى اومارآه المسلمون حسنا فهو عندالله حسن.اودرتم (ديادساتلو لپاره پرګوته تارتړل )په باره كې مروى ده چې نبى كريم ﷺ ځينوصحابه كرامو ﷺ ته دصحيح غرض لپاره ددي امركړى وولهذادامكروه نه ده.

## فصل في النظر واللمس

### دافصل دكتلواولاس لګولوپه بيان كې دى

كله چې مصنف رحمه الله داغوستلوله مسائلوڅخه فارغ شونوڅرنګه چې داستبراء له مسائلوڅخه دكتلو دمسائلووقوع كثيره ده اودكثرت وقوع تقاضاداده چې له استبراء څخه وړاندي دليدلومسائل بيان شي په دي وجه مصنف رحمه الله هم دكتلومسائل وړاندي بيان كړي.

(۱) لاينظر إلى غير وجه الحرة وكفيها (۲) ولاينظر من اشتهى إلى وجهها إلا الحاكم والشاهد، (۳) وينظر الطبيب إلى موضع مرضها (۴) وينظر الرجل إلى الرجل إلا العورة (۵) والمرأة للمرأة والرجل كالرجل للرجل (۶) وينظر الرجل إلى فرج أمته وزوجته (۷) وزوجه محرمه ورأسها وصدرها وساقها وعضدها لا إلى ظهرها وبطنها وفخذها (۸) ويمس ما حل النظر إليه

**ترجمه**:نه دي گوري دازادي ښځي له مخ اوورغويو علاوه ته ،اونه دي گوري هغه كوم ته چې شهوت وي ددي مخ مگرحاكم اوشاهد ،اوكتلى شي طبيب دهغې دمرض ځاى ،اوكتلى شي نارينه دبل نارينه بدن ماسوا له ستر ځخه ،اوښځه دښځې اونارينه په حق كې داسي ده لكه نارينه چې دنارينه په حق دى ،اوليدلى شي نارينه دخپلي مينځي اوښځې فرج ،اودخپلي محرمي مخ اوسراوسينه اوپنډلياني اوځنگلي نه دهغې نس اوشااوورنونه ،اولاس وروړلى شي هغه اندام ته دكوم طرف ته چې كتل حلال دي .

**تشريح**:(۱)دنارينه لپاره دكومي ازادي پردى ښځې بدن ته كتل جائزنه دي ماسوادهغې له مخ اوورغويو ځخه لقوله تعالى (ولايبدين زينتهن إلا ما ظهر منها) (ښځې دي خپل ښائست نه ښكاره كوي مگرهغه چې له دي ځخه ښكاره شئ وي )حضرت على اوحضرت ابن عباس ﷺ ددي ايت په تفسيركې فرمايي چې له ماظهرمنهاځخه مرادرانجه اوگوتمى دي ،بيادحال په ذكركولوسره محل مراددى يعني له رانجوځخه مرادستركې اوهغه په مخ كې وي نوله رانجوځخه مرادمخ دى اوله گوتمى ځخه مرادگوته ده اوهغه په ورغوي كې ده نوله گوتمى ځخه مرادورغوى دى لهذا له ماظهرمنهاځخه مخ اوورغوي مراددي ،همداراز دمخ اولاسونوپه ښكاره كولوكې ضرورت دى ولى چې ښځې ته له نارينه وسره داخيستلو اوخرڅولو ضرورت پيښيږي اوپه لاروكې دتگ راتگ ضرورت پيښيږي .

(۲)ليكن كه كوم ځوک دپردى ښځې مخ ته په كتلوسره له شهوت ځخه په امن نه شوپاتي كيدلاى نوهغه دي دهغې مخ ته هم نه گوري ولى چې نبى كريم ﷺ په شهوت سره كتلوته دسترگوزناويلې ده ،البته كه ضرورت ووبياجائزده مثلا قاضى چې كله پريوه اجنبى ښځه حكم كول وغواړي همداشان شاهدچې كله پريوه اجنبى ښځه شاهدي وركول وغواړي نوهغه لره دهغې ښځې مخ ته كتل جائزدى اگركه ده ته دشهوت دپيښيدلوويره وي ولى چې قاضى لره دحكم په ذريعه اوشاهدلره دشاهدي په ذريعه دخلكودحقوقودژوندي كولوحاجت دى اوداضرورت ښځې ته له كتلوبغيرنه پوره كيږي په دي وجه له خوف شهوة باوجوددوئ لره داجنبى ښځې مخ ته كتل جائزدى .

(۳)طبيب (ډاكټر)ته جائزده چې دښځې له جسم ځخه دمرض ځاى ته وگوري ولى چې ضرورت دى ،دكتلوطريقه به يې داوي چې دمريضي ټول بدن دي ماسوادمرض له ځايه پټ وساتل شي بيادي طبيب دادمرض ځاى ته وگوري ،اوتركومه چې ممكنه وي خپل نظردي كښته وساتي ولى كوم شئ چې دضرورت په وجه سره جائزوي هغه صرف دضرورت ترحده وي .

**ف**:مفتى محمدشفيع رحمه الله په خپل تفسيرمعارف القران كې دښځې پردى نارينه ته دمخ دښكاره كولودعدم جوازتصريح كړي ده لكه چې فرمايي :اودابنكاره ده چې دحسن اوزينت اصل مركزدانسان مخ دى اوزمانه دفتني ،فساد،اوغلبه هوى اوغلفت ده په دي وجه ماسوا له مخصوص ضرورتونو مثلا علاج معالجه ياكومه

شدیده خطره وغیره ښځې لره دغیرمحارمو په مخ کې خپل مخ قصدا ښکاره کول ممنوع دي او نارینه ولره دهغې طرف ته قصدا نظر کول هم بغیرله ضرورت شدیده جائزنه دي (معارف القران :۶/۴۰۶)

او حضرت تهانوي نورالله مرقده په بهشتی زیورکې لیکي :ځواني ښځې لره دپردي کس په مخ کې مخ ښکاره کول صحیح نه دي اونه دي داسي ځای دریږي چیرته چې یې کوم بل پردی کس ووینې (بهشتی زیور:ص۲۵۷)

ف:حضرت شیخ الاسلام مولانامفتی محمدتقی عثمانی صاحب دامت برکاتهم دشرعي پردي تفصیل بیان فرمایلې دی .فرمایي :دشرعي پردي دکومي چې په قرآن اوسنت کې حکم ورکړل شوی دی دري درجي دي (اعلی درجه ،متوسط درجه ،اوادنی درجه )اوهره درجه دپردي اوسترپه لحاظ سره له بلي درجي لوړه اواعلی ده اوفوقیت لري اوداټولي درجي په قرآن اوحدیث سره ثابتي دي اوله دي څخه کومه درجه نه ده منسوخه شوي .البته په مختلفو حالاتو دښځو طرف ته دمختلفودرجوحکم متوجه کیږي هغه دري درجي په لاندي ډول سره دي .

**اوله درجه** :دښځوخپل جسم دخپل کورپه څلورودیوالونویاپردي اوهودج وغیره کې داسي پټول چې دهغوئ ذات اودهغوئ لباس اودهغوئ دظاهري اوپټ زینت کومه حصه اودهغوئ دجسم کومه حصه مخ اولاسونه وغیره کوم پردي نارینه ته ښکاره نه شي .

**دوهمه درجه** :دښځوپه څادري یابرقع سره په دي ډول پرده کول چې مخ ،اولاسونه اوپوره جسم اودزینت لباس ښکاره نه شي بلکه دښځې پوره بدن له سرڅخه ترپښوپوري پټ وي .

**دریمه درجه** :دښځې په څاروغیره سره په دي ډول پرده کول چې دهغې مخ اولاسونه اوپښې لڅې وي .

اوله درجه اصل ده اودهغې ثبوت :دښځوپه پرده کې اصل خواوله درجه ده ،هغه داچې ښځه په کورکې دننه پاتې شي اوبلاضرورت له کورڅخه راونه وځي (دضرورتونوبیان به ان شاء الله وړاندي راشي )ددي دلیل دقرآن کریم ایت دی چې (وقرن فی بیوتکن)(سورة الاحزاب:۳۳)ظاهردی چې داحکم ازواج مطهراتولره خاص نه دی ،په دي وجه چې له دي ایت څخه وړاندي اوله دي آیت څخه وروسته چې کوم احکام دي هغه بالاجماع په امهات المؤمنین پوري خاص نه دي ،بل ځای الله ﷻ فرمایلې دي (واذاسألتموهن متاعافسئلوهن من وراء حجاب )(سورة الاحزاب:۵۳)،یعنی کله چې تاسي له ازواج مطهراتوڅخه کوم شئ غواړي نودپردي له شاپې غواړي .داآیت دحضرت زینب رضی الله عنها دولیمي پرموقع نازل شواوپه همدي وخت کې دهغې اودنورونارینه وترمنځ یوه پرده واچول شوه ،همداشان دالاندینی حدیث هم پرهمدي دلالت کوي عن ابن مسعود رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال:المرأة عورة فاذاخرجت استشرفهاالشیطان (اخرجه الترمذی وقال حدیث حسن صحیح غریب)....................الخ .

ددوهمي درجي ثبوت :لیکن ځیني وختونه ښځې لره دخپل طبعي حوائجولپاره له کورڅخه دوتلوضرورت پېښیږي په دي صورت کې دي لره له خپل کورڅخه وتل جائزدي ،په دي شرط چې هغه په برقع یاڅادرسره خپل ځان داسي پټ کړي چې دهغې دبدن کومه حصه ښکاره نه وي ،داد حجاب دوهمه درجه ده .دحجاب دادوهمه درجه هم په قرآن کریم سره ثابته ده په قرآن کریم کې الله تعالی ارشادفرمایلې دی (یاایهاالنبی قل

لازواجک وبناتک ونساء المؤمنین یدنین علیهن من جلابیبهن )(الاحزاب :۵۹)،ای نبی ﷺ !ته خپلوازواجوته اوخپلولورانوته اودنورومسلمانانوښځوته ووایه چې پرخپل ځان څاردونه راوځروي .ظاهره ده چې پرښځې دڅادرله ځرولو څخه مقصوددادی چې دهغې پوره بدن حتی چې دهغې مخ هم پټ شي .اودحضرت عبدالله بن عباس ﷺ دروایت مطابق جلباب هغه څادرته ویل کیږي کوم چې له پورته څخه نیولی بیاترکښته پوري ټول جسم پټ کړي ........له حضرت بن عباس اوحضرت قتاده ﷺ څخه داهم مروی ده چې ښځه دي خپل جلباب په خپل تندی وپیچي اودي تري اوبیادي پرخپله پوزه وپیچي ،اگرکه دواړه سترگې ښکاره شي ،لیکن خپل سینه اودمخ اکثره برخه دي پټه کړي (روح المعانی :۲۲/۸۹)په هرحال داایت پردي خبره دلالت کوي چې ښځه کله چې دکوم ضرورت په وجه له کوره راوځي نودهغې لپاره شرعاداحکم دی چې خپله مخ پټ ي اوراووځي .

دحجاب ددریمي درجي ثبوت :دحجاب دریمه درجه داده چې کله ښځه له خپل کورڅخه راوځي نودهغې بدن له سرڅخه بیاترښوپوري پټ وي ،البته دضرورت په وخت خپل مخ اولاسونه ښکاره کړي په دي شرط چې له فتني څخه مامونه وي .دحجاب په دي دریمه درجه دقران کریم دسورة نوردایت دلالت کوي (وقل للمؤمنات یغضضن من ابصارهن ویحفظن فروجهن ولایبدین زینتهن الاماظهرمنها)(سورة نور:۳۱)یعنی ته ﷺ مسلمانوښځوته ووایه چې هغوئ خپل نظرونه کښته وساتي اودخپلوشرمگاووحفاظت وکړي اوخپل زینت ښکاره نه کړي مگرکوم چې په هغي کې ښکاره شئ دی ،دماظهرمنهاپه تفسیرکې دمفسرینواختلاف دی له حضرت عبدالله بن عباس ،حضرت عبدالله بن عمراوحضرت عائشه ﷺ څخه مروی ده چې دي حضراتودماظهرمنهاتفسیرپه وجه اوکفینوسره کړی دی ،دحضرت عطاء ،حضرت عکرمه ،حضرت سعیدبن جبیر ،حضرت ابوالشعثاء ،حضرت امام ضحاک ،اوحضرت ابراهیم نخعی رحمهم الله تعالی هم همداقول دی ،البته حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دماظهرمنهاتفسیرپه څادراوجلباب سر کړی دی .دلومړي تفسیرمطابق داآیت پردي دلالت کوي چې ښځې لره دضرورت پروخت دمخ اولاسونوښکاره کول جائزدي .

اوداحدیث هم پردي دلالت کوي عن عائشة ﷺ ان اسماء بنت ابی بکردخلت علی النبی ﷺ وعلیهاثیاب رقاق فاعرض عنهاوقال :یااسماء ان المرأة اذابلغت المحیض لم یصلح ان یری منهاالاهذاوهذااواشارالی وجهه وکفیه (ابوداؤد)له حضرت عائشه صدیقه ﷺ څخه روایت دی چې یوځل حضرت اسماء بنت ابی بکرنبی کریم ﷺ ته په دي ډول سره راغله چې دهغې پرتن نرمي جامي وي ،نبی کریم ﷺ له هغې اعراض وفرمایه اوهغې ته یې وفرمایل چې ای اسماء !کله چې ښځه بالغه شي نودامناسبه نه ده چې دهغه دجسم کومه حصه ولیدل شي ماسوالة دي څخه اوله دي څخه اونبی کریم ﷺ مخ اولاسونوته اشاره وکړه .......الخ.

ترکومه چې دښځې مخ اولاسونوته دکتلوپه باره کې دفقهاءدمذاهبوتعلق دی نودټولوفقهاءپردي اتفاق دی چې که دلذت حاصلولوپه نیت سره کتل وي یادکتلوپه نتیجه کې دداسي فتني خطره وي کومه چې مفضی الی الخلوة وي نوپه دي صورت کې کتل جائزنه دي بلکه په داسي صورت کې دښځې مخ اولاسونوته دکتلوپه حرمت کې دهیڅ اختلاف نشته ،لیکن که نارینه په فتنه کې له مبتلاء کیدلوڅخه محفوظ وي اوپه

کتلوسره دلذت حاصلول هم مقصودنه وي نوددي په جوازکې اختلا ف دی ،دحنفيه اومالکيه وپه نزدپه داسې صورت کې دمخ اولاسونوطرف ته کتل جائزدي اوداکثرشوافعواوبعض حنابله وهم همدامذهب دی ليکن دشوافعواوحنابله وپه نزدمختارمذهب مطلقادعدم جوازدی اګرکه دشهوت اوفتني انديښنه نه وي ..........الخ.

په هرحال دټول بحث خلاصه داده چې ښځې ته دقرآن کريم په ذريعه ددي خبري حکم ورکړل شوی دی چې هغه دي په خپل کورکې اوسيږي اوبلاضرورته دي له کوره نه راوځي اوکه هغه دکوم ضرورت په وجه راوتله نو دي له حکم دادی چې په برقع ياڅادرسره خپل مخ پټ کړي اوداچې خپل مخ به نه ښکاره وي .البته دوه صورتونه له دي څخه مستثنی دي :يوداچې دمخ دښکاره کولوداسې ضرورت وي چې دمخ په پټولوکې نقصان کيدای شي ،لکه په په رش (ګڼه ګوڼه )کې درفتارپه دوران کې ،يادکوم بل ضرورت پروخت مثلادشاهدي وغيره دورکولوپه وخت کې .دوهم صورت دادی چې دکسب اوکارپروخت بلاقصده دهغې مخ ښکاره کيږي .البته په دي دووصورتونوکې نارينه وته حکم دادی چې هغوئ دي خپل نظرونه کښته ساتي .والله سبحانه اعلم (تفهی مقالات :۴۲تا۴/۸۸)

(۴)نارينه دبل نارينه (اګرکه بې ږيري وي په دي شرط چې دشهوت ويره نه وي )ټول جسم ته کتلی شي ماسوالدنامه څخه نيولي بياترزنګنونوپوري درمياني جسم ته لقوله ﷺ عورة الرجل مابين السرة الی رکبتيه (يعنی دنارينه واجب السترپدن له نامه څخه ترزنګنوپوري دی ).

ف:داحنافوپه نزدنوه په سترکې شامل نه دی اوزنګنونه شامل دي ،دامام شافعي رحمه الله په نزدددي برعکس دی ،زموږدليل دنوه دنه واجب السترپه باره کې دنبی کريم ﷺ ارشادمبارک دی چې العورة مادون سرته حتی تجاوزرکبتيه (يعنی دنارينه واجب السترپدن له نامه څخه نيولي حتی چې له زنګنوڅخه تجاوزوکړي ).اودزنګنوپه باره کې دنبی کريم ﷺ ارشاددی عورة الرجل مابين سرته الی رکبته (يعنی دنارينه واجب السترجسم دنامه اودهغه ددواړوزنګنومنځ دی )په دي روايت کې رکبته غايه ده اوغيه کله په مغياکې داخله وي اوکله نه وي مګردلته په دخول کې احتياط دی لهذاموږاحتياطادغايه (زنګنونه )په مغيا(واجب الستر)کې ددخول حکم وکړ.همداراز له حضرت ابوهريره رضی الله عنه راوی دی چې نبی کريم ﷺ وفرمايل زنګنونه واجب السترري.

(۵)قوله والمراة للمراة والرجل كالرجل للرجل ای المراة فی النظر الی المراة والرجل كالرجل فی النظر الی الرجل ،يعنی يوي ښځې لره دبلي ښځې دومره اندازه جسم ته کتل جائزدي څومره چې نارينه لره دنارينه جسم ته کتل جائزدي ولی چې مجانست موجوددی اوشهوت غالبامعدوم دی کمافی النظرالرجل الی الرجل .همداشان ښځې لره دنارينه له جسم څخه هغواعضاء ته کتل جائزدی کوموته چې دنارينه له جسم څخه نارينه کتلی شي په دي شرط چې دشهوت ويره نه وي ولی چې کوم اعضاء چې په سترکې داخل نه دي هغوته په کتلوکې نراوښځه يوشان دي لکه چې دهرکس لباس اوسورلی ته نراوښځه ټول کتلی شي .

(۶)نارينه لره دخپلي مينځي (مرادداسي مينځه ده چې ده لره حلاله وي په دي سره احترازوشوله مجوسيه مينځي څخه )اودخپلې زوجي شرمګاه ته کتل جائزدي داقول ددي امراجازت دی چې نارينه لره دخپلې مذکوره مينځې اوزوجي ټول بدن ته په طريقه اولی سره کتل جائزدي الاصل فيه قوله ﷺ (قال غض بصرک إلا عن زوجک وأمتک)(يعنی خپلې سترګې بندي کړه ماسوا له خپلې ښځې او مينځې څخه )،ليکن ښه داده چې له نارينه او ښځې څخه يوهم دهغه بل فرج ته ونه ګوري ولی چې ويل کيږي چې له دي څخه دنسيان ناروغي پيدا کيږي .

(۷)نارينه لره جائزده چې دخپلو محرماتو (مثلاً مور،خور،عمه ،خاله وغيره )مخ ،سر،سيني ،پنډليانو او څنګلوته وګوري ولی چې محارم په خپل منځ کې يوبل ته بلااجازته اوشرمه ځې راځي نوکه دي اعضاءته کتل حرام وګرځول شي، نوحرج ته به نوبت ورسيږي اوحرج شرعامدفوع دی ،البته دخپلو محرماتو نس ،شا او ورنوته کتل جائزنه دي ولی چې ښځې ته دخپلو محارمو په مخ کې دمواضع زينت دښکاره کولو اجازت ورکړل شوی دی اونس،شاا وورون له مواضع زينت څخه نه دي په دي وجه دادخپلو محارمو په مخ کې ښکاره کول جائزنه دي .

(۸)نارينه لره چې له ذوات محارم څخه دکومواعضاء ليدل جائزدي دهغو مس (لاس لګول )کول هم جائزدي ولی چې نبی کريم ﷺ به حضرت فاطمه ﷺ پرسرمچوله اوفرمايل به يې چې زه له دي څخه دجنت خوشبويي محسوسوم .همداراز دسفرپروخت ددي ضرورت پيښيږي اودمحرمه والی په وجه سره شهوت هم کم دی ،البته که دشهوت ويره وه بيا دي نه ورته ګوري اونه دي مس کوي .

(۹)وَأَمَةُ غَيْرِهِ كَمَحْرَمِهِ(۱۰)وَلَهُ مَسُّ ذَلِكَ إِنْ أَرَادَ الشِّرَاءَ وَإِنْ اشْتَهَى(۱۱)وَلَا تَعْرِضُ الْأَمَةُ إِذَا بَلَغَتْ فِي إِزَارٍ وَاحِدٍ(۱۲)وَالْخَصِيُّ وَالْمَجْبُوبُ وَالْمُخَنَّثُ كَالْفَحْلِ(۱۳)وَعَبْدُهَا كَالْأَجْنَبِيِّ(۱۴)وَيَعْزِلُ عَنْ أَمَتِهِ بِلَا إِذْنِهَا وَعَنْ زَوْجَتِهِ بِإِذْنِهَا

**ترجمه** :اودغيرمينځه دمحرمي په شان ده ،اونارينه لره جائزده هغې ته لاس وړول کله چې اراده وکړي دهغې داخيستلو اګر که شهوت وئ ،اوسامني نه انی دي جائی مينځي لره کله چې هغه حداشتهاءته ورسيږي په يوه لنګ کې ،اوخصي اومجبوب اونرښځي دنارينه په شان دي ،اودښځې غلام داجنبی نارينه په شان دی ،اوعزل کولی شي له خپلې مينځې څخه ددي له اجازته بغيرا وله ښځې څخه دهغې په اجازت سره .

**تشريح** :(۹)دبل چامينځه دمحرمي په شان ده يعنی نارينه لره چې څومره اندازه دخپلو محارمو ښځو بدن ته کتل جائزدی هغومره اندازه دبل چادمينځي بدن ته کتل هم جائزدي ولی چې مينځه دخپل مولی دضرورتونو لپاره دکارکولو په جاموکې دباندي وځي ،نوددي حال له ټولو نارينه وسره داسي دی لکه دښځې حال له خپلو محارمو سره چې له هغوئ څخه ټول بدن عمومانه شي پټيدلای نوددي ضرورت په وجه سره مينځه دمحرماتو په شان ګرځول شوي ده .

(۱۰)دبل چادمينځي کومواعضاءته چې کتل جائزدي داخيستلو پروخت دهغو اعضاء مس کول هم دضرورت په وجه سره جائزدي اګرکه ده لره دشهوت ويره وي ،ليکن دعلماء رأيه داده چې داخيستلو پروخت

دشهوت له وجودسره نظرخو جائزدی ولی چې ضرورت دی لیکن مس کول ناجائزدي ولی چې دا یوقسم استمتاع ده اودبل چاپه مینځه سره استمتاع جائزنه ده .

(۱۱)کله چې مینځه داشتهاء حدته ورسیږي یعنی ددي په شان سره وطی کیدای شي نوهغه دي په بازارکې دخرڅولولپاره په یوه ازارکي نه بیایې په کوم سره چې صرف مادون السرة الی الرکبة پټ شوي وي بلکه هغې ته قمیص هم وراغوندي ولی چې وراندي تیره شوه چې دمینځې نس اوشا واجب الستر دي اوکله چې هغه دجماع قابله شي نوهغه دبالغي په حکم کې ده لهذا اوس دي لره نس اوشالڅه پرینبودل جائزنه دي .

(۱۲)یعنی خصی ،مقطوع الذکر اومخنث (نربنځی )پردی ښځې ته په کتلوکې دروغ کس په شان دي په دي وجه چې حضرت عائشه ﷺ فرمایې چې خصی کول مثله ده ،نوکوم شئ چې له خصی کیدلو څخه وراندي حرام ووهغه دده خصی والی نه مباح کوي ،اومقطوع الذکر څرنګه چې په موښلوسره منی خارجولی شي لهذا اهم دعامونارینه وپه حکم کې دی .اوبدکارنربنځی څرنګه چې فاسق نارینه دی لهذا دهغه هم هغه حکم دی کوم چې دعامونارینه ودی .

(۱۳)دښځې غلام دخپلې مالکي په حق کې داجنبی نارینه په شان دی یعنی دکومې ښځې غلام لره داجائزنه دی چې خپلې مالکي ته وګوري ماسواله هغواعضاء څخه کوم چې اجنبی کس له دي ښځې څخه لیدلی شي ولی چې داغلام دنورونارینه وپه شان نارینه دی اودخپلې مالکي محرم هم نه دی اونه یې خاونددی اوکوم زیات ضرورت هم نشته ولی چې دی له کورڅخه دباندي کارونه کوي په دي وجه دی داجنبی نارینه وپه حکم کې دی .

(۱۴)نارینه لره له خپلې مینځې څخه دهغې اجازت څخه بغیرعزل کول (یعنی دانزال پروخت نطفه دباندي تویول )جائزدی ولی چې نبی کریم ﷺ دیوي مینځې مولی ته ویلې وواعزل انت ان شئت (که ستازړه غواړي نوعزل کوه )،همداراز په دي وجه هم چې په وطی کې دمینځې حق نشته ،هوله خپلې ښځې څخه بغیردهغې له اجازته عزل کول جائزنه دی ولی چې نبی کریم ﷺ له ازادي ښځې څخه له عزل کولوڅخه منع فرمایلې ده ،همداراز په دي وجه هم چې په وطی کې ددي حق دی لهذا دهغې له اجازت څخه بغیرخاوندعزل نه شي کولای .

## فصل في الاستبراء وغيره

دافصل داستبراء رحم وغیره په بیان کې دی

استبراء لغة مطلق براءت اوصفائي طلب کولوته ویل کیږي اوپه اصطلاح کې دیوه حیض په ذریعه سره صفائي طلب کولوته ویل کیږي یعنی له اخیستل شوي مینځې سره دي وطی نه کوي ترڅوهغې ته یو حیض ورنه شي یاوضع حمل ونه شي ولی چې کیدای شي چې دادي له خپل مخکنی مولی څخه حامله وي نوله استبراء څخه وراندي په وطي کولوکې داوبواونسابواختلاط لازمیږي ،له وغیره څخه دمصافحي ،معانقي اودمچې اخیستلواحکام مرادي .

(۱) من ملک أمة حرم عليه وطؤها ولمسها والنظر إلى فرجها بشهوة حتى تستبرئ (۲) وكره تقبيل الرجل ومعانقته في إزار واحد ولو كان عليه قميص واحد جاز كالمصافحة

**ترجمه**: كوم كس چې مالک شي د مينځې نو حرام ده له هغې سره وطی کول، او هغې ته لاس وروړل او کتل د هغې شرمگاه ته په شهوت سره ترڅوچې هغه استبراء وکړي. له چاسره دوه مينځې دي كومې چې سره خوندي دي له هغو دواړو څخه ده مچه واخيستله په شهوت سره نو حرام ده له كومې يوي سره وطی کول او دواعی وطی ترڅوچې د هغې بلې شرمگاه پرخپل ځان حرامه نه کړي په ذريعه د ملک يا په ذريعه د نكاح يا په ذريعه د عتق. او مكروه ده له نارينه څخه مچه اخيستل، او معانقه کول صرف په تهبند کې، او كه وي پر هغه قميص نو جائز ده لكه مصافحه كول.

**تشريح**: (۱) کوم کس چې د كومې مينځې مالک شي نو پر هغه له هغې سره وطی کول، مس کول او د هغې فرج ته په شهوت سره کتل حرام دي ترڅوچې په وضع حمل يا يوه حيض سره استبراء وکړي ولی چې په غزوه اوطاس کې مسلمانانو قيدی ښځې وموندلي نو نبی كريم ﷺ حكم وفرمايه چې له كومې حاملې ښځې سره وطی مه كوئ ترڅوچې وضع حمل وشي او له كومې غيرحاملې ښځې سره وطی مه كوئ ترڅوچې هغې ته حيض ورشي. د حديث د نوي ملک د موجوديدلو په صورت کې د وجوب استبراء لپاره مفيد دی.

(۲) كه د كوم كس په ملک دوه مينځې وي كومې چې په خپل منځ کې سره خوندي وي (مراد دوه داسي مينځې دي كومې چې په يوه وخت کې ديوه كس په نكاح کې نه شي سره جمع كيدای) هغه له هغوئ دواړو څخه په شهوت سره مچه واخيستله نو ځكه چې جمع بين الاختين نكاحا وملكا جائز نه ده لهذا دا كس اوس له هغوئ دواړو څخه له يوي سره هم نه وطی نه كولی شي او نه دواعی وطی (مثلا مچه اخيستل، په شهوت سره لاس وروړل، په شهوت سره د هغې فرج ته كتل) ترڅوچې هغه له دي دواړو څخه د كومې يوي فرج پر خپل ځان له دريو طريقو څخه د كومې يوي په ذريعه سره حرام نه کړي هغه دري طريقي دا دي له دواړو څخه كومه يوه بل چا ته په ملک کې ورکړي خواه په هغه يې خرڅه کړي يا يې هغه ته هبه کړي، كومه يوه بل چا ته په نكاح ورکړي، له دواړو څخه يوه ازده کړي.

(۳) يونارينه لره د بل نارينه څخه مچه اخيستل او غاړه غړی كيدل په داسي حالت کې مكروه ده چې هغه صرف يو تهبند (لنگ) تړلی وي ولی چې له اتصال الجلد بالجلد څخه د شهوت راپورته كيدلو ويره ده، او كه يې پر تهبند كرته هم اغوستي وه نو په دي وخت کې بلاكراهته جائز ده ولی چې نبی كريم ﷺ له حضرت جعفر طيار ﷺ سره معانقه وفرمايله كله چې هغه له حبشي څخه تشريف راوړ او د هغه ستركي يې مچ کړي لهذا مچه اخيستل او معانقه كول دواړه جائز دي لكه څرنگه چې مصافحه كول جائز دي ولی چې مصافحه كول متوارث دي وقال ﷺ من صافح أخاه المسلم وحرك يده في يده تناثرت ذنوبه.

ف: بغيرله كومې شديدي مجبوري غيرمحرمې ښځې ته لاس وروړل شرعا لويه گناه ده، رسول الله ﷺ دا د لاس زنا بللې ده، لكه چې په بخاري شريفې په راويت کې دي چې اليدان تزنيان وزناهما البطش، يعني د لاسونو هم زنا شته. د لاسونو زنا داده چې (د پردی نارينه او ښځې) يو بل نيول، وقال ﷺ ان يطعن في رأس احدكم بمخيط من

حدید خیر له من ان یمس امرأة لاتحل له ،رواه الطبرانی والبیهقی .یعنی په خپل سرکې ستن دننه کول ډیرښه دي تردې چې داسې ښځه مس کړي کومه چې ده لره حلاله نه وي (جدید معاملات کې شرعی احکام : ۸۴/)

ف:نارینه چې له نارینه یا ښځه له ښځې څخه مچه واخلي دملاقات یادرخصتی په وخت کې که په شهوت سره وي نومکروه تحریمي ده اوکه داعزاز واکرام په غرض سره وي نوجائزده .دکوم عالم اونیک صالح کس دلاس مچول تبرکا جائزدي ،همداشان دمتدین حاکم اوسلطان عادل دمخ مچول هم جائزدي اوځینو حضراتو ویلي دي چې سنت دي .دغیرعالم اوغیرعادل دمچې اخیستلواجازت نشته .اوکه دهغه داسلام تعظیم اواکرام مقصود وي نوجائزده اوکه حصول دنیامقصود وي نومکروه ده .

ف:دځینوجهلاؤعادت دی چې دملاقات پروخت خپل لاس مچوي نودامکروه ده دکوم چې اجازت نشته اوهمدشان دبل لاس مچول په داسې حال کې چې هغه عالم یاعادل نه وي مکروه ده ،دعلماء اوامراء په مخ کې ځمکه مچول مکروه ده اودذي کونکی اوپه دي راضی کیدونکی دواړه ګنهګاردي په دي وجه چې دادبتانوله عبادت سره مشابه ده .

ف:دراتلونکي دتعظیم لپاره دریدل مندوب دي ،خپل ځان لره قیام خوښول مکروه دي اوکه دهغه له خوښولوبغیرخلک ودریږي نومکروه نه ده .

ف :مصافحه داده چې په مخامخ دریدلوسره دلاس ورغوی دبل دلاس له ورغوي سره یوځای کړي اوسنت داده چې مصافحه په دواړولاسونوسره وي اودملاقات پروخت له سلام څخه وروسته وي اوپه مصافحه کې بټه ګوته ونیسي په دي وجه چې په دي کې یورګ دی دکوم په کښیکښلوسره چې محبت پیدا کیږي .

ف:دعصرله لمانځه اودفجرله لمانځه څخه وروسته اوله جمعي اوعیدینوڅخه وروسته دمصافحي رواج بدعت له کوم څخه چې احترازواجب دی (اشرف الهدایة)

## فصل في البيع والاحتكار والاجارة وغيرها

دا فصل دبیع ،احتکاراواجارې وغیره په بیان کې دی

دبیع بیان یې دخورک څښک اولمس اووطی له بیان څخه مؤخرکړولی چې ددي افعالواثردانسان له بدن سره متصل دی اوپه کوم کې چې اتصال ډیروي هغه احق بالتقدیم دی .

(۱) كُرِهَ بَيْعُ الْعَذِرَةِ لَا السِّرْقِينِ (۲) لِمَنْ رَأَى أَمَةً قَالَ بَكْرٌ وَكَّلَنِي زَيْدٌ بِبَيْعِهَا (۳) وَكُرِهَ لِرَبِّ الدَّيْنِ أَخْذُ ثَمَنِ خَمْرٍ بَاعَهَا مُسْلِمٌ لَا كَافِرٌ (۴) وَاحْتِكَارُ قُوتِ الْآدَمِيِّ وَالْبَهِيمَةِ فِي بَلَدٍ يَضُرُّ بِأَهْلِهِ (۵) لَا غَلَّةَ ضَيْعَتِهِ ، وَمَا جَلَبَهُ مِنْ بَلَدٍ آخَرَ (۶) وَلَا يُسَعِّرُ السُّلْطَانُ إِلَّا أَنْ يَتَعَدَّى أَرْبَابُ الطَّعَامِ عَنِ الْقِيمَةِ تَعَدِّيًا فَاحِشًا

**ترجمه** :مکروه ده دپاخانې بیع نه دګوبرو ،جائزده دزید مینځه اخیستل (دکومې متعلق چې )بکرووېل چې زه وکیل جوړکړی یم زید دهغې دخرڅولو ،اومکروه ده قرضخواه لره ثمن اخیستل دهغه شرابو کوم چې خرڅ کړي وي مسلمان نه کافراو(مکروه ده )احتکاردانسانانودغذاء اودحیواناتودغذاء په داسې ښارکې چې

احتكار مضروي ددي ښار والاته نه دخپلي ځمكې دغلي اوهغه غله چې راوړي يې وي له بل ښارڅخه ،اونرخ دي نه مقرروي سلطان مگر داچې تجاوزوكړي غله خرڅونكي له اصل قيمت څخه ډيرتجاوز.

**تشريح** :(۱)دپاخاني بيع مكروه ده ولي چې هغه نجس العين ده اوپه عام ډول دخلگوله هغې څخه دفائدي اخيستلو عادت هم نشته ،البته كه له خاوري ياايروسره گډه وي نوبيا جائزده ولي چې په خاوره اوايره كې گډه پاخانه داسي داه لكه دزيتون په تيلوكې چې نجاست گډشي نولكه څرنگه چې په دي قسم روغن زيتون سره انتفاع جائزده همداشان په خاوره كې په گډه پاخانه سره هم انتفاع جائزده .اودگوبروليدووغيره بيع جائزده ولي چې گوبروغيره مال دی په دي وجه چې دځمكي دتقويت لپاره په ځمكه كې اچول كيږي اوهرمال محل بيع ده نوگوبرهم محل بيع ده لهذادگوبروغيره بيع جائزده .

(۲)قوله له شراء امة زيدالخ اى يجوزله شراء امة زيدالخ ،يعنى كه په بازاركې كومه مينځه خرڅيدله خالدته دامعلومه وه چې دامينځه دزيدده يوبل كس مثلابكروايې چې زيدزه ددي دخرڅولووكيل جوړكړى يم نوخالدلره جائزده چې دامينځه واخلي اوله دي سره وطى وكړي يعنى ده لره ددي ضرورت نشته چې دبكردوكالت لپاره گواه طلب كړي ولي چې په معاملاتوكې ديوه عاقل مميزانسان قول معتبروي كه نارينه وي اوكه ښځه ،مسلمان وي اوكه كافر،عادل اوكه فاسق ،البته شرط دادی چې بائع ثقه كس وي يادمشتري غالب گمان داوي چې بائع صادق دی ،كنه نوخالدلره ددا سي مينځې اخيستل جائزنه دي .

(۳)كه دكوم مسلمان پرچاپورباندي وي اومقرض دشرابوپه خرڅولوسره دهغه قرض اداء كوي نوكه مقروض كس مسلمان وي نوقرضخواه لره ددي پيسواخيستل حلال نه دي ولي چې دشرابوخرڅونكي مسلمان ددي شرابودثمنومالک شوی نه دی بلكه ددي مالک خومشتري دی لهذادشرابومالک لره دغيرملک دهغه له خوښي بغيرورېل اوقرضخواه ته وركول جائزنه دی .اوكه دشرابوخرڅونكي مقروض ذمي كافروي نوقرضخواه لره ددي پيسواخيستل حلال دي ولي چې ذمي دشرابوپه خرڅولوسره دقيمت مالک گرځي لهذاقرضخواه لره ددي پيسوپه اخيستلوكې څه حرج نشته .

(۴)قوله واحتكارقوت الادمي والبهيمة في بلديضرباهله اى يكره الاحتكارقوت الادمي والبهيمة في بلديضرباهله ،يعنى دانسانانودغذاء (غنم ،اوربشي ،وريزي وغيره )اودحيوانانودغذاء (بوسه ،چاره )احتكار(دگرانيدلوپه انتظاركې ايښودل اونه خرڅول ترڅوچې له گراني وروسته ډيره گټه وكړي )مكروه ده حال داچې دښارخلگوته په دي كې نقصان وي لقوله ﷺ المحتكرملعون (يعنى احتكاركونكى ملعون دی )،اوكه اهل ښارته مضرنه وي نومكروه نه دی .

ف :هغه احتكارله كوم څخه چې په حديث كې منع شوي ده دهغه تعريف علامه نووي رحمه الله داليكلي دی چې غله دغلاء اوگراني په وخت كې دتجارت په نيت سره اخيستل اوايښودل اوفي الحال نه خرڅول دزيات گرانيدلوپه انتظاركې ترڅوچې زياتي پيسي ترلاسه كړي ،اومنع په هغه صورت كې ده چې داغله په خپل ښاركې واخلي اووي ساتي ،اوكه يې له كوم بل ځاى څخه راوړي وي ،ياپې دارزاني په زمانه كې واخيستله

اويايې وساتي دګرانۍ په زمانه کې دخرڅولولپاره نوپه دي کې څه حرج نه شته داحتکارممنوع نه دی (الدرالمنضود: ۵/۳۸۷)

(۵)قوله لاغلة ضيعته ای لايکره احتکارغلة ارضه ،يعنی چاچې دخپلي ځمکې غله دګرانيدلولپاره وساتله يايې له کوم بل ښارڅخه راوړه اودګرانيدلوپه انتظارکې يې وساتله نوداکس محتکرنه شمارل کيږي اول خوپه دي وجه احتکارنه دی چې دادده خالص حق دی دنوروحق له دي سره متعلق شوی نه دی ،اودوهم په دي وجه احتکارنه دی چې دعاموخلګوحق له هغې غله سره متعلق وي کومه چې په ښارکې جمع کړای شي اوکومه چې له فناء ښارڅخه راوړل شي پاتي شوه له کوم ليري ښارڅخه راوړل شوي غله نوله هغې سره دعاموخلګوحق متعلق نه دی نو احتکارهم نه دی .

(۶)يعنی سلطان لره دامناسبه نه ده چې هغه په خپله رأيه سره پرخلګوکوم نرخ مقررکړي ولی چې ثمن دعاقدحق دی دهغه دمقررولوحق هم هغه لره دی ،هوکه غله خرڅونکي له حدڅخه تجاوزوکړي دومره ګراني شروع کړي په کومه کې چې دعاموخلګوضرروي نوبيادي داهل رأيه په مشوره سره نرخ مقررکړي ترڅوخلګ دهغوئ له ظلم اوستم څخه محفوظ پاتي شي .

(۷)وَجَازَ بَيْعُ الْعَصِيرِ مِن خَمَّارٍ (۸)وَإِجَارَةُ بَيْتٍ لِيَتَّخِذَهُ بَيْتَ نَارٍ أَوْ بِيعَةً أَوْ كَنِيسَةً أَوْ يُبَاعَ فِيهِ خَمْرٌ بِالسَّوَادِ (۹)وَحَمْلُ خَمْرٍ لِذِمِّيٍّ بِأَجْرٍ (۱۰)وَبَيْعُ بِنَاءِ بُيُوتِ مَكَّةَ وَأَرَاضِيهَا (۱۱)وَتَعْشِيرُ الْمُصْحَفِ وَنَقْطُهُ (۱۲)وَدُخُولُ ذِمِّيٍّ مَسْجِدًا (۱۳)وَعِيَادَتُهُ (۱۴)وَخِصَاءُ الْبَهَائِمِ وَإِنْزَاءُ الْحَمِيرِ عَلَى الْخَيْلِ (۱۵)وَقَبُولُ هَدِيَّةِ الْعَبْدِ التَّاجِرِ وَإِجَابَةُ دَعْوَتِهِ وَاسْتِعَارَةُ دَابَّتِهِ وَكُرِهَ كِسْوَتُهُ الثَّوْبَ وَهَدِيَّتُهُ النَّقْدَيْنِ

**ترجمه**:جائزده شيره خرڅول پرشراب جوړونکی باندي ،اوکورپه کرايه ورکول ترڅوپه هغې کې اتشکده ، ديهودوعبادت خانه ،يادنصاری ؤعبادت خانه جوړه شي ياخرڅ کړای شي په هغه شراب په کليوکې ،اوذمی شراب اوچتول پرمزدوري ،اوخرڅول عمارت دمکې مکرمې دمکانونواودهغې ځمکه ،اودقرآن پرهرولسوآيتونونښان لګول اونقطي لګول اوقرآن ښائسته کول ،اوداخليدل دذمی په مسجدکې ،اودهغه پوښتنه کول دناروغي په حالت کې ،اوخصی کول دڅارويواودخروپراسانوخيږول ،اوقبلول هديه دتاجرغلام اوقبلول دهغه دعوت دميلمستيااوپه استعاره وړل دهغه دڅاروی اومکروه ده دتاجرغلام جامه ورپه تن کول اوهديه کول دهغه نقدينولره .

**تشريح**:(۷)دانګوروشيره پرداسي کس خرڅول جائزده دکوم په باره کې چې دامعلومه وي چې هغه له دي څخه شراب جوړوي ولی چې معصيت له عين شيره سره متعلق نه دی بلکه دشيره له تغيره وروسته دی ،همدرازپه شيره کې داصلاحيت شته چې له هغې څخه جائزشيان جوړل کړای شي نوفسادپه نفس شيره کې نه دی بلکه دمشتري په اختيارولوکې دی ،اوپه ايام فتنه کې معصيت څرنګه چې له عين سلاح سره متعلق دی په دي وجه په دي ورځوکې سلاح خرڅول مکروه ده ولی چې موږپه بديوکې له تعاون اوکومک کولوڅخه منع کړل شوي يو .

(۸)قوله واجارة بيت ليتخذفيه بيت نار ای جازاجارة بيت ليتخذفيه بيت نار ،يعنی که کوم مسلمان خپل مکان په کليوکې پرکرايه ورکړترڅوپه هغه کې دمجوسيانواتشکده (مجوسيان داورعبادت کوي دعبادت لپاره يې

جلاخایونه جوړکړي دي په هغوکې اوربلیږي هغوته اتش کده ویل کیږي )جوړه کړي یاپه هغه کې دیهودوعبادت خانه جوړه شي یانصاری په هغه کې خپل گرجاگهر(کلیسا)جوړه کړي یاپه کلیوکې مکان ددي لپاره په کرایه ورکړي چې په هغه کې شراب خرڅ کړای شي نودامام صاحب په نزدداجائزده اودصاحبینوپه نزدجائزنه دي ولی چې په دي ټولوکې پرگناه اعانت دی اوموږپه گناهونوکې له کومک کولوڅخه منع شوي یو ،دامام صاحب دلیل دادی چې اجاره دکورپرمنفعت وارده شوي ده نه پرمذکوره اموروباندي همداوجه ده چې که دي خلگوپه مکان کې مذکوره شیان جوړنه کړل بیابه هم دمکان په ورسپارلوکرایه جاري کیږي اومکان په کرایه ورکولوهیڅ گناه نشته بلکه گناه خوپه مستاجرکې ده اومستاجرفاعل مختاردی اودفاعل مختاردعمل کوم بل کس ذمه وارنه وي .

ف :دسوادیعنی کلیوقیددکوفي دبیاباني علاقوپه اعتبارسره دی چې دکوفي اکثربیاباني خلگ ذمیان وو له کوفي ماسواپه نوربیاباني علاقوکې کافرانولره دعبادت خانودجوړلوگنجائش نشته ولی چې هلته داسلام شعائرظاهره شوي دي .

(۹)کوم مسلمان دذمی شراب په مزدوري ورسره وړي نودامام صاحب په نزدداجائزدی اودصاحبینوپه نزدجائزنه ده ولی چې داپرگناه اعانت دی په دي وجه جائزنه دی .دامام صاحب دلیل دادی چې گناه په شراب څښلوکې ده اوشراب مختارڅښي اودفاعل مختاردفعل نسبت دبل طرف ته نه شي کیدلای .اودشرابوله وړلوسره څښل لازم نه دی بلکه کله شراب دتویولویاسرکه جوړلولپاره وړل کیږي .

ف :دصاحبینوقول راجح دی لماقال العلامة ابن عابدین:(قوله وحمل خمرذمی)قال الزیلعی وهذاعنده وقالاهومکروه لانه ﷺ لعن فی الخمرعشرة وعدمنها حاملها وله ان الاجارة علی الحمل وهولیس بمعصیة ولاسبب لها وانماتحصل المعصیة بفعل فاعل مختار ولیس الشرب من ضرورات الحمل لان حملها قدیکون للاراقة وللتخلل فصار کمااذااستاجره لعصرالعنب اوقطعه والحدیث محمول علی الحمل المقرون بقصدالمعصیة اهـ زادفی النهایة وهذاقیاس وقولهمااستحسان (ردالمحتار:۵/۲۷۷)

(۱۰)قوله وبیع بناء بیوت مکة ای جازبیع بناء بیوت مکة ،په مکه مکرمه کې دخپلومکانونودعمارت خرڅول خوبالاتفاق جائزدی ولی چې هغه دجوړونکی ملکیت دی ،البته ځمکه خرڅول یې مختلف فیه ده دامام صاحب په نزدمکروه ده اودصاحبینوپه نزدجائزده ولی چې ټول شرعي احکام په دي ځمکوکې ظاهریږي مثلاً څوک مړشي نودهغه په ځمکه کې بالاتفاق میراث جاري کیږي اووارثان هغه تقسیمولی شي نوبیع به یې هم جائزوي .دامام صاحب دلیل دادی چې دکعبة الله بیع وقف کیدلوپه وجه سره جائزنه ده اومکه مکرمه دکعبې فناء ده لهذادهغې بیع هم جائزنه ده .

ف :په متن کې مذکورقول دصاحبینودی اوهمدامفتی به دی لمافی الدرالمختار:(و)جاز(بیع بناء بیوت مکة وارضها)بلاکراهة وبه قال الشافعی وبه یفتی(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۵/۲۷۸)

(۱۱)قوله وتعشیرالمصحف ای جازتعشیرالمصحف ،یعنی په قرآن مجیدکې له هرولسوآیتونوڅخه وروسته نښان لگول جائزدی ولی چې آیتونه توقیفي دي په هغوکې درأیه هیڅ دخل نشته اوتعشیردآیتونودحفاظت لپاره دی لهذاتعشیرهم مستحسن دی ،اودااعراب داظهارلپاره نقطي (مراداعراب دی )لگول جائزدی ولی چې

عجمي خلک بغيرله اعراب څخه قران مجيدنه شي لوستلای .دقران مجيدپه سپينوياسروزروسره په بنائسته کولوکې څه حرج نشته په دي وجه چې په دي کې دقرآن مجيد تعظيم اوبزرګي ده .

(۱۲)قوله ودخول ذمی فی مسجدای جازدخول ذمی فی مسجد،یعنی په مسجدحرام اوټولومسجدونوکې دذميانوداخليدل داحنافوپه نزدجائزده دشوافعوپه نزدپه مسجدحرام کې جائزنه ده په نورومساجدوکې جائزده لقوله تعالی (إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا)(مشرکين ناپاک دي نوله دي کال څخه وروسته دي دوئ مسجدحرام ته نه داخليږي )،داحنافودليل دادی چې دنبی کريم ﷺ په خدمت کې دقبيله بنوثقيف وفدحاضرشوکوم چې په دي وخت کې کافران وونبی کريم ﷺ هغوئ په مسجدحرام کې واوسول ،همدراز دکافربدن ناپاک نه دی بلکه دهغه عقيده ناپاکه ده اوداعتقادپه خرابي سره دمسجدناپاکوالی نه لازميږي .

(۱۳)قوله وعيادته ای جازعيادة المسلم ذميا،یعنی مسلمان لره دذمی په عيادت کې څه حرج نشته ولی چې دايوقسم نيکي ده اواسلام دنيکي له کارڅخه منع نه کوي ،همدراز داثابته ده چې نبی کريم ﷺ دخپل همسايه يهودی عيادت فرمايلی وواوهلته په تللوسره نبی کريم ﷺ هغه ته دکلمه تلقين وکړکوم چې هغه قبول کړاومسلمان مرشوپرکوم چې نبی کريم ﷺ دالله تعالی شکراداء کړ.

(۱۴)قوله وخصاء البهائم ای جازخصاء البهائم ،یعنی دحيوانانوپه خصي کولوکې څه مضائقه نشته ولی چې په دي کې فائده ده په دي وجه چې خصي څاروی چاغ وي اودهغه غوښه ډيره ښه وي ،اودخره پراس په خيږلوکې څه حرج نشته ولی چې له دي څخه خچرپيداکيږي اوپرخچرنبی کريم ﷺ سپورشوی دی نوکه په دي کې څه حرج وای نونبی کريم ﷺ نه پرسپريدو.

ف:دبعض نسل حيوانانوپه باره کې مشهوره ده چې ددوئ دنسل کشی لپاره دخنزيرماده منويه دټيسټ ټيوب په ذريعه يادجفتی (وطی )په ذريعه استعماليږي له کوم څخه چې بچی پيداکيږي داسې غواته جرمنی ياغيرملکي غواويل کيږي دداسې غوادغوښي څه حکم دی ؟نوپوه شه چې دحيواناتونسل له مورڅخه ثابتيږي ،دنردماده منويه هيڅ اعتبارنشت لکه چې فقهاوليکلي دي چې که له بزي سره کوم څناوروطی وکړي نوبچی دمورپه تابع کيدلوسره حلال دی ،لهذادجرمنی غواياکوم بل حيوان چې دهغه مورحلال حيوان وي نوهغه ذبح کول اودهغه غوښه خوړل شرعاجائزدي ،لماقال العلامة الکاسانی فی البدائع الصنائع:۵/۶۹:حتی ان البقرة الاهلية اذانزعليهاثوروحشي فولدت فانه يجوزان يضحی به وان کانت البقرة وحشية والثوراهليالم يجزلان الاصل فی الولدالام لانه ينفصل عن الام (جديدمعاملات کے شرعی احکام:۳/۳۹)

ف:څرنګه چې په حيواناتوکې دنسب لحاظ ساتل شرعاضروري نه دی اوپه حيواناتوکې نسل دمورتابع وي لهذاپردي اساس دحيوانانودافزائش نسل (يعنی دنسل دزياتوالي )لپاره انجکشن (ستن )لګول کوم قبيح عمل نه دی (ملخص ازفتاوی حقانية :۲/۳۹۹)

(۱۵)دغلام ماذون فی التجارة هديه قبلولواودهغه دعوت قبلول اودهغه کوم څاروی په استعارة بيول جائزدي دقياس تقاضاخوداده چې له مذکوره امورو څخه يوهم جائزنه وي ولی چې دامحض تبرعات دي

اوغلام دتبرع اهل نه دی مګراستحساناد جائزګرځول شوي دي داستحسان وجه داده چې هدیه ورکول اواخیستل وغیره دتجارت له ضروراتوڅخه دي ،همدارازحضرت سلمان فارسی ﷛ له ازادیدلوڅخه وړاندي نبی کریم ﷺ ته هدیه پیښ کړي وه اونبی کریم ﷺ قبول کړي وه اوثابته ده چې نبی کریم ﷺ دغلامانودعوت قبول فرمایو ،لیکن که هغه جامې یادراهم یادنانیرپه هدیه کوي نودامکروه ده ولی چې دادتجارت له ضروراتوڅخه نه دي او محض تبرع ده دکوم چې غلام اهل نه دی .

(۱۶) وَاسْتِخْدَامُ الْخَصِيِّ (۱۷) وَالدُّعَاءُ بِمَقْعَدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ (۱۸) وَبِحَقِّ فُلَانٍ (۱۹) وَاللَّعِبُ بِالشِّطْرَنْجِ وَالنَّرْدِ وَكُلِّ لَهْوٍ (۲۰) وَجَعْلُ الرَّايَةِ فِي عُنُقِ الْعَبْدِ (وَحَلُّ قَيْدِهِ) (۲۱) وَالْحُقْنَةُ (۲۲) وَرِزْقُ الْقَاضِي (۲۳) وَسَفَرُ الْأَمَةِ وَأُمِّ الْوَلَدِ بِلَا مَحْرَمٍ (۲۴) وَشِرَاءُ مَا لَا بُدَّ لِلصَّغِيرِ مِنْهُ وَبَيْعُهُ لِلْعَمِّ وَالْأُمِّ وَالْمُلْتَقِطِ لَو فِي حِجْرِهِمْ) (۲۵) وَتُؤَجِّرُهُ أُمُّهُ فَقَطْ

**ترجمه**: او (مکروه دی )خدمت اخیستل له خصي څخه ،اودعاء غوښتل پرعرش دعزت باری تعالی دموضع انعقادسره ،اوبحق فلان دعاغوښتل ،اوبازی کول دشطرنج اونردشیراوهرقسم لهولعب ،اواچول دغلامی دنښان دغلام په غاړه کې اوحلال دی غلام بندي کول ،اوحقنه کول ،اودقاضی تنخوامقررول ،اوسفرکول دمینځې اوام ولدبغیرله محرم څخه ،اواخیستل دداسي شئ له کوم څخه چې چاره نه وي صغیرلره اوخرڅول اکااوموراوملتقط لره که هغه ددوئ په پالنه کې وي ،اوپرمزدوري یې ورکولی شي ماشوم دهغه مورفقط.

**تشریح** :(۱۶)قوله واستخدام الخصی ای یکره استخدام الخصی ،یعنی له خصیانوڅخه خدمت اخیستل مکروه ده ولی چې له خصیانوڅخه په خدمت اخیستلوکي درغبت ښکاره کول ددي عمل باعث دي حال داچې داعمل (ځان خصی کول )مثلاه اوحرام دی نبی کریم ﷺ له دي څخه منع کړي ده .

(۱۷)قوله والدعاء بمقعدالعزمن عرشک ای ویکره الدعاء بمعقدالعزمن عرشک ،عرش څرنګه چې حادث دی لهذاپه دعاء کې داسي الفاظ ویل مکروه دي په کوموکې چې دالله تعالی دعزت لپاره دقرارځای عرش ثابت شي مثلاپه دي ډول دعاء کول اسئلک بمعقدالعزمن عرشک ولی چې معقدله عقدڅخه دی دغوټې دتړلودځای په معنی ،نومعنی داشوه چې زه له تاڅخه سوال کوم ستاله عرش سره دعزت دغوټې دتړلودمقام په واسطه سره ،نوپه دي کې عرش ته دعزت دتړلومقام ویل موهم دحدوث دي په دي وجه چې عرش حادث دی نوله عرش متعلق عزت به هم حادث وي حال داچې الله تعالی له خپلوټولوصفاتوسره قدیم دی ،امام ابویوسف رحمه الله داسي دعاء جائزه ګڼي ولی چې په حدیث شریف کې شته ، اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِمَعْقِدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ, وَمُنْتَهَى الرَّحْمَةِ مِنْ كِتَابِكَ وَبِاسْمِكَ الْأَعْظَمِ وَجَدِّكَ الْأَعْلَى, وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ ،احوط امتناع ده لمانی الدرالمنتقی :۲۲۳/۴:والاحوط الامتناع لکونه خبرواحدفیمایخالف القطعی.

(۱۸)قوله وبحق فلان ای یکره الدعاء بان یقول بحق فلان ،یعنی په دعاء کې داسي ویل چې ای الله بحق فلان زماحاجت پوره کړي داهم مکروه ده ولی چې پرالله تعالی دهیچاحق نشته بلکه هغه چې چاته څه ورکوي محض دهغه فضل دی .

**ف**:لیکن که حق دحرمت ،عظمت اووسیله په معنی واخیستل شي نوپه دي کې څه حرج نشته له حدیث شریف څخه هم ددي تاکید کیږي قال ﷺ اللهم انی اسالک بحق السائلین علیک.

(۱۹)قوله واللعب بالشطرنج اى ويكره اللعب بالشطرنج ،يعنى په شطرنج (شطرنج دشين په كسره سره دادسنسكرت لفظ دى كوم چې په اصل كې له چترنګ څخه معرب دى ،په هندوستان وغيره كې يومشهوره بازى ده په كومه كې چې په شپږقسمه ګټوسره بازى كيږي كوموته چې شاه ،فرزين ،فيل،اسپ ،رخ اوپيدل ويل كيږي )اونردشير(چوسر ،يوقسم بازى ده كومه چې اردشيربن بابک شاه ايران ايجادكړي وه )اوهرقسم عبثه بازى مكروه ده اوكه په دي كې څه راكړه وركړه شرط وي نوبيادجوا(قمار)كيدلوپه وجه سره حرامي دي اوكه داسي كوم شرط نه وي نوبيادعبث اولغووالى په وجه سره ممنوع دي په حديث شريف كې له خپلې ښځې سره له ملاعبت ،شهسواري اوغشي ويښتلو ماسواټولي بازياني حرامي ګرځول شوي دي قال ﷺ كُلُّ لَعِبِ ابنِ آدمَ حرامٌ إلّا ثلاثةً مُلاعبةُ الرَّجلِ أهلَهُ، وتأديبُهُ لفرسِهِ، ومُناضلتُهُ بقوسِهِ.

ف:داسي بازي اوتماشي چې په هغوكې څه معتدبهافائده ددين اودنيانه وي هغه ټولي ممنوع اوناجائزي دي خواه كه پرهغوبازي ولګول شي ياپه انفرادي ډول سره وشي لهذاكبوتربازى ،پتنګ بازي ،بيټربازى ،مرغ بازى ،چوسر ،شطرنج ،تاش ،دسپيانوريس وغيره ټول دهمدي ناجائزصورت افراددي (جواهرالفقه ۲/۳۵۲:)

ف:له كوموبازيانوڅخه چې څه دنيوي يادينې فوائدحاصليږي هغه جائزدي ،په دي شرط چې دهمدي فوائدوپه نيت سره وكول شي محض دلهواولعب په نيت سره نه وي ليكن ددي په كولوكومه معاوضه ياانعام شرط مقررول جائزنه دي مثلاًدګيندبازى چې له دي څخه جسماني ورزش جوړيږي اوكيږي (لهذاوالى بال ،فټ بال ټول جائزدي )يادلاټې وغيره بازى يادپهلوانانوغيرايستل وغيره كوم چې په قوت جهادكې معين كيداى شي ،همداشان معمه بازى ،شعربازى ،تعلمي تاش دبايللويا ګټلوبازى لګول ،مګرپه دي كوم رقم يامعاوضه مقررول جائزنه دي بلكه قمارحرام دى (جواهرالفقه )

(۲۰)قوله وجعل الراية فى عنق االعبداى ويكره جعل الراية فى عنق العبد،يعنى دغلام په غاړه كې دغلامي نښان اچول جائزنه دى دكوم چې صورت دادى چې داورسپيني دروندطوق دغلام په غاړه كې واچوي ظالمانوخلګوبه غلام دتكليف وركولولپاره دغلام په غاړه كې داورسپيني طوق اچاووچې دهغه دثقل په وجه سره به هغه خپل سرته حركت نه شووركولى نوداځرنګه چې محض ظلم دى په دي وجه ممنوع دى ،هودغلام په پښوكې زولني اچول جائزدي ترڅوغلام ونه تښتي اوداطريقه په مسلمانانوكې رائجه پاتي شوي ده .

(۲۱)قوله والحقنة اى حل الحقنة للتداوى ،يعنى حقنه كول (يعنى دپاخاني په لاره سره دننه دوائي رسول )جائزدى په دي شرط چې په دي سره صرف دكومې ناروغي علاج كول مقصودوي دقوت دحاصلولولپاره نه وي ولى چې دتداوى اباحت په احاديثوسره ثابت دى .

(۲۲)قوله ورزق القاضى اى وحل رزق القاضى من بيت المال ،يعنى كه اميرالمؤمنين قاضى ته له بيت المال څخه رزق وركړي اوقاضى يې قبول كړي نوپه دي كې څه حرج نشته ولى چې په خپله نبى كريم ﷺ عتاب ابن اسيدمكې مكرمي اوحضرت على ﷺ ديمن عامل مقرركړل اودهغوئ لپاره يې نفقه مقرره كړه .همدراز

ځرنګه چې قاضي دمسلمانانودامورولپاره محبوس دی په دي وجه به دهغه نفقه هم دمسلمانانوله مال ځخه وي اودمسلمانانومال بيت المال دی.

(۲۳)قوله وسفرالامة وام الولدبلامحرم ای وحل سفرالامة وام الولدبلامحرم ،يعنى که مينځه اوام ولدبغيرله محرم ځخه سفروكړي نوپه دي كي څه حرج نشته ولی چې ددوئ په حق کې (په ليدلواومس كولوكې )ټول خلګ دمحارموپه درجه کې دي ،مګرداداهل صلاح دزماني خبره ده نن دفسق اوفجوراوفسادپه دي زمانه کې ددي اجازت نشته.

(۲۴)قوله وشراء مالابدای وحل شراء مالابدالخ ،يعنى اكالره جائزده چې دخپل وروردنابالغ اولادلپاره دهغه دضرورت شئ واخلي ياپي خرڅ كړي ،همداشان مورلره جائزده چې هغه دخپل نابالغ اولادلپاره دهغه دضرورت شيان واخلي ياپي خرڅ كړي ،همداشان لاوارث ماشوم ترڅوچې دملتقط په پالنه کې وي نوهغه لره هم ددي ماشوم دضرورت دشيانوخرڅول اواخيستل جائزدي دوئ لره دااجازت په دي وجه دی چې په دي كي دنابالغ ضررد فع کيږي کنه نونابالغ لره به نقصان وي.

ف:دنابالغ په حق کې تصرف پردري قسمه دی (۱)کوم چې محض مفيدوي لکه چې ماشوم ته يوشئ هبه كول ددي قسم تصرف هرچالره اختيارشته كه هغه دماشوم ولی وي ياكوم پردی كس وي (۲)په كوم كې چې دماشوم محض ضرروي لکه دماشوم غلام ازادول اودهغه ښځي ته طلاق وركول ددي قسم دتصرف اختيارهيچالره نه شته ،(۳)کوم چې متردد بين النفع والنقصان وي لکه دماشوم کوم شئ خرڅول وغيره ددي قسم تصرف اختياردماشوم پلار،نيكه اودهغه وصيانولره دی کوم بل چالره ددي اختيارنشته.

(۲۵)اكااوملتقط لره داجائزنه ده چې ماشوم پرمزدوري ولګوي ،البته مورلره داحق حاصل دی چې هغه ماشوم له يوچاسره مزدوركړي په دي شرط چې ماشوم دموريه پرورش كي وي ولی چې مورلره داحق شته چې دماشوم منافع بلاعوضه تلف كړي مثلاً په ماشوم خپل خدمت وكړي حال داچې اكااوملتقط لره داحق نشته چې هغوئ دماشوم منافع بلاعوضه تلف كړي.

## كِتَابُ إِحْيَاءِ الْمَوَاتِ

داكتاب داحياء الموات په باره کې دی

داحياء لغوی معنی ده کوم شئ ژوندی کول ،اوموات په لغت کې مالاروح فيه (په کوم کې چې روح نه وي (بالارض لامالک لها(داسي ځمکه دکومي چې مالک نه وي )ته ويل کيږي ،اوشرعااحياء موات غيرابادي ځمکه په تعميرياكښت كولوسره دانتفاع قابل جوړلوته ويل کيږي.

شرعي تعريف يې امام قدوری رحمه الله په دي ډول کړی دی الموات مالاينتفع به من الارض لانقطاع الماء عنه اولغلبة الماء عليه اوماأشبه ذالک ممايمنع الزارعة (يعنى ارض موارت هغه ځمکه ده کوم چې په يوه وجه سره دانتفاع قابله نه وي كه اوبودمنقطع والی په وجه سره وي اوكه دډيرواوبودراتلوپه وجه سره وي ياپه دي شان دکوم بل سبب په وجه سره كوم چې له كښت كولوځخه مانع وي ،مثلاً پرځمکه ريګ يادبري ډيري شي ياځمکه بنوره شي.

كتاب احياء الموات له كتاب الكراهية سره مناسبت دادى چې په دي كتاب كې هم ډيرمكروه احكام اوډيرغيرمكروه احكام ذكرشوي دي ،علامه عينى رحمه الله يې دمناسبت وجه په دي ډول بيان كړي ده چې موات ناقابل انتفاع دي اوسره اوسپين زر،اووريښم هم ناقابل انتفاع دي ولى چې دسرواوسپينوزروپه لوښوكې خوړک څښک حرام دى اووريښم دنارينه ولپاره ناقابل انتفاع دي ،البته دومره فرق شته چې موات عادة دانتفاع قابل نه ده اومذكوره شيان شرعاناقابل انتفاع دي.

(۱)هي أرض تعذر زرعها لانقطاع الماء عنها أو لغلبته عليها غير مملوك وبعيد من العامر (۲) ومن أحياه بإذن الإمام ملكه (۳) وإن حجر لا (۴) ولا يجوز إحياء ما قرب من العامر (۵) ومن حفر بئرا في موات فله حريمها أربعون ذراعا من كل جانب) (۶) وحريم العين خمسمائة (۷) فمن حفر في حريمها منع منه (۸) وللقناة حريم بقدر ما يصلحه (۹) وما عدل عنه الفرات ولم يحتمل عوده إليه فهو موات وإن احتمل لا) (۱۰) ولا حريم للنهر

ترجمه :موات ځمكه ده دكومې چې متعذروي كرل داوبودمنقطع والى په وجه سره له دي څخه داوبودغلبې په وجه سره پردي اوغيرمملوک وي اوابادي ته نږدې نه وي ،اوچاچې اباده كړه داسې ځمكه :بادشاه په اجازت سره نومالک گرځي دهغې ،اوكه يې دډبروپانړ جوړكړنونه ،اوجائزنه ده ابادول دهغې ځمكې كومه چې نږدې وي آبادي ته ،اوكوم كس چې څاه وكندي په بنا ره ځمكه كې نو هغه لره دهغه حريم دى څلوېښت گزه له هرطرف څخه ،اودچشمې حريم پنځه سوه گزه دى له هرجانب څخه ،نوكوم كس چې څاه وكندي دهغه په حريم كې نومنع كيږي به له هغه ،اوكاريزلره حريم دى په اندازه دضرورت دهغه ،اوهغه ځمكه چې له هغه څخه وگرځي فرات اواحتمال نه وي دهغه دراگرځيدلودهغې طرف ته نوهغه موات ده اوكه احتمال وي نونه ده ،اوحريم نشته دلښتى.

تشريح :(۱)مصنف رحمه الله دموات شرعي تعريف په دي ډول كړى دى چې موات هغه ځمكه ده په كومه كې چې كښت كول مشكل وي داوبودمنقطع والى په وجه سره يادډيرواوبودراتلوپه وجه سره پرهغې اودچامملوكه نه وي ،له ابادي څخه ليرې وي .له ابادي څخه ليرې والى داامام ابويوسف رحمه الله په نزدشرط دى ولى ظاهره ده چې كومه ځمكه كلي ته نږدې وي له هغې څخه دهغه داوسيدونكوانتفاع منقطع نه وي نوموات هم نه ده نودحكم مدارپرقرب اوبعددى .حال داچې داامام محمد رحمه الله په نزدشرط دادى چې دكلي داوسيدونكوانتفاع حقيقة له دي ځمكې څخه منقطع وي نوداسې ځمكه موات ده اگركه كلي ته نږدې وي.

ف:دامام محمد رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:واعتبرمحمد عدم ارتفاق اهل القرية به وبه قالت الثلاثة .قلت وهذا ظاهرالرواية وبه يفتى.........عن قاضيخان ان الفتوى على قول محمد(الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۵/۳۰۷)

(۲)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدچاچې كومه غيراباده ځمكه دامام المسلمين په اجازت سره اباده كړه نوهغه دهغې مالک گرځي اوچاچې دامام له اجازت څخه بغيراباده كړه نوهغه دهغې مالک نه گرځي ولى چې غيراباده ځمكه هم له مال غنيمت څخه ده اوپه مال غنيمت كې چالره داحق نشته چې دى هغه دامام له اجازت څخه بغيريوسي .اودصاحبينوپه نزددامام له اجازت څخه بغيرهم ابادونكى مالک گرځي ولى چې داماال مباح دى اوپرمال مباح چې څوک وراندې قابض شي هغه دهغه دى.

ف:دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الدرالمختار:(ان اذن له الامام فی ذالک) وقالا یملکها بلااذنه الخ وفی الشامیة :وقول الامام هو المختار ولذاقدمه فی الخانیة والملتقی کعادتهما وبه أخذ الطحاوی وعلیه المتون الخ (الدرالمختار مع الشامیة:۵/۳۰۷)

ف:بعض وختونه حکومت کومه ویرانه (بنجره) ځمکه دځوکلونولپاره کوم چاته په لیزیااجاره سره ورکوي لیکن داليزاوجاره موجب ملک نه دي بلکه ترڅومره مدت پورې چې ځمکه په لیزوغیره سره حاصل کړل شوي وي دهغه مدت له ختمیدلو څخه وروسته به ځمکه بیرته حکومت ته واپس کیږي (فتاوی حقانیة:۶/۴۱۵)

(۳)قوله وان حجر لا ای ان حجر ارض الموات لایملکه ،یعنی که چاله غیرابادي ځمکې څخه دخلګو دمنع کولولپاره له غیرابادي ځمکې څخه دنښي په ډول سره ډبروپاڼ راتاوکړ مګرتردریوکلونوپورې یې ځمکه اباده نه کړای شوه نوداکس به ددي ځمکې مالک نه ګرزي بلکه امام دي له هغه (محجر)څخه هغه ځمکه واخلي اوکوم بل ته دي ورکړي ولی چې تحجیراحیاء نه ده اوامام خوهغه ته ددي مقصدلپاره ورکړي وه چې هغه داابادکړي ترڅو دهغې له عشراوخراج څخه مسلمانانوته ګټه ورسیږي لیکن کله چې دامقصود حاصل نه شونودتحصیل مقصودلپاره به یې بل چاته ورکړي .

(۴)کومه ځمکه چې ابادي ته نږدې وي هغه موات نه ده په دي وجه دهغې احیاء هم جائز ه نه ده بلکه هغه به داهل قریه دڅرځای اوکهلیان (دپرې شوي فصل داچولوځای )لپاره پریښودل کیږي ولی چې له دي ځمکې سره دکلي دخلګوحق متعلق دی ولی چې په داسې ځمکه کې دځمکې والاوحاجت ثابت دی لهذاموات نه ده .

(۵)چاچې په ځنګل(غیراباده ځمکه )کې څاه وکندی نوداکس دڅاه دحریم (دڅاچارچاپیره )هم مالک ګرځي په دي وجه چې له څاه څخه بغیرله حریمه کامل نفع نه شي اخیستل کیدای نوکه هغه څاه څارویوته داوبوورکولولپاره وي نودهغه حریم له هرجانب څخه څلویښت ګزه دی ولی چې مقصوددڅاه له مالک څخه دضرردفع ده اودضرردفع له دي څخه په لږمقدارکې ممکنه نه ده .اوکه څاه دکښتونوداوبوکولولپاره وي نودهغه حریم شپیته ګزه دی ولی چې دداسې څاه لپاره په حدیث شریف کې شپیته ګزه حریم ثابت دی .اودشپیتوزراعوقول دصاحبینودی ،اودامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددهغه حریم هم څلویښت ګزه دی ولی چې په حدیث شریف کې راغلي دي ﴿من حفر بئرا فله ما حولها أربعون ذراعا﴾ اوداحدیث شریف عام دی په دي کې دڅارویوداوبولواودکښتونوداوبه کولوهیڅ فرق نه دی بیان شوی اودامام صاحب اصول دادي چې پرخاص مختلف فیه باندي له عمل کولو څخه پرعام متفق علیه عمل کول اولی دی .

ف:دامام ابوحنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافی الشامیة :(قوله ویفتی بقول الامام )وقدم الافتاء بقولهماایضالکن ظاهرالمتون والشروح ترجیح قوله فانهم قرروادلیله وأیده بمالامزید علیه واخرفی الهدایة دلیله فاقتضی ترجیحه ایضا کماهوعادته وذکرترجیحه العلامه قاسم فی تصحیحه(ردالمحتار:۵/۳۰۸)

(۶) که چاغیراباده ځمکه وکندله اوله هغې څخه جاري چشمه (چینه )راووتله نودچشمې حریم له هرطرف څخه پنځه سوه ګزه دی ولی چې په حدیث شریف کې دچشمې لپاره حریم پنځه سوه ګزه مقررشوی دی ،همداراز چشمه دزراعت لپاره رایستل کیږي نوضروري ده دداسې ځای موجودوالی په کوم کې چې اوبه

ولاړي شي اوداسي حوض موجودوالی په کوم کې چې اوبه جمع شي اوداسي لښتی موجودوالی په کوم کې چې اوبه ترکښت پوري ولاړي شي ددي وجوه پراساس دچشمي حریم ډیرمقررشوی دی .

(۷)نوکه کوم کس دبل چادڅاه یاچینې په حریم کې څاه کندل وغوښتل نوهغه به منع کیږي ولی چې داولنی دڅاه په کندلوسره پرحریم دهغه حق ثابت شوی دی نودهغه بل دڅاه په کندلوسره داولنی حق فوت کیږي یادهغه په حق کې خلل راځي په دي وجه اولنی لره حق شته چې هغه له څاه کندلو څخه منع کړي .

(۸)کاریزلره دومره حریم دي دڅومره چې ضرورت وي ،له امام محمد رحمه الله څخه یوراویت دادی چې داستحقاق حریم په سلسله کې کاریږدڅاه په شان دی .ځینې حضرات وایې چې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزدکاریزلره ترهغه وخته هیڅ حریم نشته ترڅوچې دهغه اوبه پرځمکه نه وي ښکاره شوي اوکله چې ښکاره شي نوبیادچینې حکم لري لهذادهغه لپاره به حریم پنځه سوه ګزه وي .

ف:دامام محمد رحمه الله قول راجح دی لمااخرصاحب الهداية التعليل لقوله ولم يتعرض لذكرتعليل قولهماوهذاامارة الترجيح لقول الراجح عندصاحب الهداية ،وقال ابن عابدين :(قوله وعن محمدكالبئر)قال الاتقاني قال المشائخ الذى فى الاصل اى من ان القناة كالبئر قولهماوعنده لاحريم لهاالانهابمنزلة النهرمالم يظهرماؤهاعلى وجه الارض ولاحريم للنهرعنده فان ظهركالعين الفوارة حريمهاخمسمائة ذراع(ردالمحتار:۵/۳۰۹).

(۹)ددریاب اوبه کله کله خپل ځای پریږدي په بل طرف بهیدل شروع کوي نوکه دفرات (دکوفي ددریاب نوم دی )دریاب یادجلي دریاب (دبغداددریاب نوم دی )خپل ځای پریښودنوکتل کیږي به چې دي ځای ته داوبودیرته راتللوامکان شته اوکه یا.په دوهم صورت کې که داځای دڅاحریم نه وي نودامووات دی لهذادامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددامام په اجازت سره ددي احیاء جائزده .په اولنی صورت کې ددي احیاء جائزنه ده ولی چې داتراوسه ددریاب په حکم کې ده په کوم کې چې دعاموخلګوحق دی لهذاددي احیاء اګرکه دامام په اجازت سره وي جائزنه ده ،دفرات اودجلي خصوصیت نشته بلکه دهردریاب همدا مذکور حکم دی .

(۱۰)که دچالښتی دبل په ځمکه کې تیرشوی وي نودصاحبینوپه نزددلښتی لره حریم شته یعني لړترلړه به دلښتی پنډلونه دلښتی والاوي ترڅوهغه پردي تګ وکړای شي اودلښتی دکندلوپروخت دهغه خاوره پردي واچوي ولی چې دلښتی لپاره دپنډل وجودضروري دی نوظاهره داده چې پنډل به دلښتی دمالک وي .دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزددلښتی لره حریم نشته ولی چې پنډل هم دځمکې له جنس څخه دی لهذاظاهره داده چې پنډل دصاحب ارض دی اوقول دهغه معتبردی کوم لره چې ظاهرالحال ګواه وي لاداچې دلښتی مالک ګواه پیش کړي چې پنډل زمادی ولی چې ګواه دخلاف ظاهرداثبات لپاره وي .

ف:دصاحبینوقول راجح دی ولی چې له حریم څخه بغیرله لښتی څخه کامله انتفاع ممکنه نه ده لمافى الشامية:قوله والنهرفى ملك الغيرلاحريم له الخ )قيل ان هذه المسئلة على ان من احياء نهرالى موات لايستحق له حريماعندهمايستحقه وقال عامتهم الصواب ان يستحقه بالاجماع القانى عن شروح الجامع الصغيرثم نقل عن المحققين ايضاانهاليست مبنية على ذالك وان للنهرفى الموات حريمااتفاقاومثله فى الاختيار (ردالمحتار:۵/۳۱۰)

## فصل في الشرب

## دافصل داوبودنوبت په بيان کې دی

کله چې مصنف رحمه الله دارض موات داباد ولوله بيان څخه فارغ شونواوس له احياء موات سره دمتعلقو مسائلو يعنی داوبودنوبت وغيره احکام بيانوي ولی چې داحياء موات لپاره احتياج دی داوبودنوبت اوداوبونوبت محتاج اليه دی ،هسی خود محتاج اليه مقدم والی مناسب دی مګرځرنګه چې داحياء موات فروعات ډيردي په دي وجه احق بالتقديم دی .

(۱)هو نصيب الماء (۲)الأنهار العظام كدجلة والفرات غير مملوك ولكل أن يسقي أرضه، ويتوضأ به، ويشرب به وينصب الرحى عليه، ويكري نهرا منها الى أرضه إن لم يضر بالعامة (۳)وفي الأنهار المملوكة والآبار والحياض لكل شربه وسقي دوابه لا أرضه، (۴)وإن خيف تخريب النهر لكثرة البقر يمنع (۵)والمحرز في الكوز والحب لا ينتفع به إلا بإذن صاحبه

**ترجمه** :هغه حصه ده داوبو ،لوی لښتيان لکه دجله اوفرات غيرمملوک دي اوهرکس لره جائزده چې خپلي ځمکې ته اوبه ورکړي اوادس وکړي له دي څخه اوابه وڅښې له دي څخه اوجوړه کړي ژرنده پردي اووکندي له دي څخه لښتيان دخپلو ځمکو طرف ته که مضرنه وي عامو خلګولره ،اوله مملوکو لښتيانو،څاه ګانواوحوضونوڅخه هريوه لره داوبوڅښلوحق شته اوخپلوڅارويوته داوبوورکولوحق شته نه خپلوځمکوداوبولو ،اوکه ويره وي دلښتی دخرابيدلو دغوايانودکثرت په وجه سره نومنع کيږي به ،اوکومې چې محفوظي وي په کوزه کې اوپه منګيانوکې فائده به نه اخيستل کيږي له هغوڅخه مګرداچې اجازت ورکړي دهغومالک .

**تشريح** :(۱)شرب دشين په کسره سره داوبونوبت ته ويل کيږي قال الله تعالی (لها شرب ولكم شرب يوم معلوم)،اوپه شريعت کې شرب وايي داوبوهغه حصي ته له کومې څخه چې په خپل نوبت کې نفع واخيستل شي دکښتونو داوبولو لپاره يادڅارويوداوبولولپاره .

(۲)لوی لښتيان لکه دجله اوفرات ،دادچامملوک نه دي په دي کې دټولوخلګوحق شته ولی چې داسي لښتيان دچاپه قبضه اوملک کې نه دي لهذاله دي څخه چې کوم څوک هم وغواړي خپله ځمکه دي اوبه کړي ،اودس دي وکړي ،ودي څښي،پردي دي ژرنده جوړه کړي اوکه وغواړي نوله دي څخه دي نورلښتيان کارکړي اوخپلې ځمکې ته دي بوځي په دي شرط چې له لښتي کندلوڅخه عاموخلګوته څه نقصان ونه رسيږي ولی چې له مباح شئ څخه انتفاع په دي صورت کې جائزه نه ده په کوم کې چې عاموخلګوته ضرروي ولی چې له عامه خلګوڅخه ضرردفع کول واجب دي .

(۳)اوکوم لښتيان ياڅاه ګان ياتالاب چې دچاپه ملک کې وي نوله هغوئ څخه هريوه ته داوبوڅښلواوڅارويوته داوبوورکول جائزدي لقوله ﷺ (المسلمون شركاء الماء والكلأ والنار)(ټول مسلمان په اوبو،وښواواورکې شريکان دي )،البته له دي څخه دځمکې اوبه کول جائزنه دي ولی چې ددي کومه انتهاء نشته لهذاپه دي کې دمالک ضرردی په دي وجه جائزنه ده .

(۴) او كه د مملوك لښتي د ډير غوايانو وغيره د راتلو په وجه سره د خرابيدلو ويره وي نو مالك لره جائزده چې خلك له دي څخه منع كړي ولی چې اصل حق خود مالك دی د نورولپاره حق شرب خود ضرورت په اساس مو ثابت كړي وو ليكن كله چې اصل مالك ته ضرر رسيږي نو د نورو د حق د ثابتو لو كوم معنی نشته ، ولی چې په دي صورت كې د مالك منفعت باطليږي .

(۵) او چا چې او به په كوزه ، منگی وغيره لوښو كې محفوظي كړي نو هغه د محفوظ كونكی ملك دی او س په دي كې د عامو خلكو حق نشته ولی چې دا او به د دي محرز ملك دي نو د اداسي شوه لكه څوك چې ښكار ونيسي نو له دي څخه د عامو خلكو حق ختميږي ، البته د مذكوره بالا راويت په وجه سره د محرز په ملك كې شبه ده لهذا كه څوك داسي او به غلا كړي نو د هغه لاس نه پري كيږي ، او كه مالك اجازه وركړه نو پياله دي قسم ابو څخه فائده اخيستل جائز ده .

ف: كه كوم كس له قدرتي چيني څخه د پائپ د كښنولو په وجه سره او به حاصلي كړي نو په پائپ كې دا او بو په راتلو سره د پائپ د مالك ملك ثابتيږي (ملخص از احسن الفتاوی : ۸/۴۶۳)

(۶) وَكَرْيُ نَهْرٍ غَيْرِ مَمْلُوكٍ مِن بَيْتِ الْمَالِ) فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ شَيْءٌ يُجْبَرُ النَّاسُ عَلَى كَرْيِهِ (۷) وَكَرْيُ مَا هُوَ مَمْلُوكٌ عَلَى أَهْلِهِ وَيُجْبَرُ الْآبِي عَلَى كَرْيِهِ (۸) وَمُؤْنَةُ كَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ عَلَيْهِمْ مِنْ أَعْلَاهُ فَإِنْ جَاوَزَ أَرْضَ رَجُلٍ بَرِئَ (۹) وَلَا كَرْيَ عَلَى أَهْلِ الشَّفَةِ (۱۰) وَتَصِحُّ دَعْوَى الشِّرْبِ بِغَيْرِ أَرْضٍ

**ترجمه**: او صفائي د غير مملوك لښتي يا ويالي به له بيت المال څخه وي او كه نه وي په هغه كې څه نو مجبوره كيږي خلك د هغه پر صفائي ، او صفائي د مملوك لښتي يا ويالي به د هغه پر مالك وي نو مجبوره كيږي به انكاركونكی د هغه پر صفائي ، او د صفائي مصرف د مشتركو ويالو پر شريكانو دي له لوړ طرف څخه نو كله چې تيره شي وياله د چا له ځمكې څخه نو هغه بری كيږي ، او نه شته صفائي پر څښونكو ، او صحيح ده داوبو د نوبت دعوی له ځمكې څخه بغير .

**تشريح**: (۶) د غير مملوكي ويالي كيندل به بيت المال سره كوي ولی چې دا د عامو خلكو د مصلحت لپاره ده او بيت المال هم د عامو خلكو د مصلحت لپاره وي ، او كه په بيت المال كې دومره پيسي نه وي نو پيا دي امام المسلمين په زور سره پر خلكو وكړي ولی چې امام د خلكو د څارني لپاره مقرر شوی دی ، او په هم داسي پريښودلو كې د خلكو ډير نقصان دی لهذا امام به هغوئ پر دي مجبوره كوي ، هم دا راز مروی ده چې حضرت عمر ﷺ پر هم داسي موقع خلك مجبوره كړي وو خلكو پر دي له ده ﷺ څخه شكايت وكړنو ده ﷺ په ځواب كې وفرمايل چې كه تاسي ازاد پريښودل شي نو تاسي به خپل اولادونه خرڅ كړي .

(۷) كومې ويالي چې د خلكو مملوكې وي نو هغه به هغه كيندي د كومو چې په هغوكې حق دی ولی چې دا د هم دي خلكو مخصوص حق دی او الغرم بالغنم (بوج د فائدي په اندازه وي) او كه له هغوئ څخه له دي كار څخه انكار وكړي نو هغه به مجبوره كيږي تر څو ضرر عام دفع شي .

(۸) او كه كوم لښتي يا وياله د څو خلكو سره مشتركه وي نو د هغه كيندل او جوړول پر هغو خلكو دی كوم چې په هغه كې شريكان دي او كيندل به له لوړي خوا شروع كوي او د هغه مصرف به پر هغوئ ټولو د شرب او ځمكو په

تناسب سره وي ليكن دچاله ځمكې څخه چې كيندل وړاندي ځې نوو وړاندي پرهغه مصرف نشته ولى چې مصرف پرمنافع اخيستونكووي اودچاله ځمكې څخه وياله تيره شي نودهغې منافع له هغه سره متعلقي نه پاتي كيږي لهذادهغه پرذمه به دوړاندي مصرف نه وي ،دادامام صاحب مذهب دى ،دصاحبينوپه نزدبه تراخره پوري پرتهولووي ولى چې داسفل محتاج له څرنګه چې كښته خلګ دي لوړخلګ هم دي ولى چې لوړخلګ هم دزياتواوبودبهولومحتاج دي كنه نوداوبودجمع كيدلوپه وجه سره به دهغوئ كښتونه خراب شي اوداوبوبهيدلولاره كښته ده .

**ف**:دامام صاحب قول راجح دى لمافى الشامية :الفتوى على قول الامام كمافى الكفاية وغيرهاعن الخانية والقهستانى عن التمة (ردالمحتار:۵/۳۱۴)

(۹)له ويالي څخه پراوبوڅښونكوباندي له كيندلوڅخه هيڅ لازم نه دي ولى چې اول خوهغوئ غيرمحدوداومجهول دي اوپرغيرمحدوداومجهولوكسانوكوم شئ لازمول بي معنى دي اودوهمه وجه داده چې هغوئ تابع دي اوحكم پرمتبوع جاري كيږي نه پرتابع .

(۱۰)كه دچاځمكه نه وي اوهغه له ويالي څخه دشرب دعوى وكړي نودقياس تقاضاخوداده چې دهغه دعوى مسموع نه وي مګراستحساناًدهغه دعوى صحيح ده ولى چې كيداى شي چې څوک خپله ځمكه خرڅه كړي اوحق شرب خرڅ نه كړي لهذادهغه دعوى صحيح ده .

(۱۱)نهربين قومٍ اختصموافي الشرب فهوبينهم على قدرأراضيهم (وليس لأحدأن يشق منه نهراًأوينصب عليه رحى أودالية أوجسراًأويوسع فم النهر (۱۲) أويقسم بالأيام,وقدوقع القسمة بالكوى أويسوق نصيبه إلى أرض له أخرى ليس لهافيه شرب بلارضاهم (۱۳) ويورث الشرب, ويوصى بالانتفاع بعينه,(۱۴) ولايباع,ولايوهب (۱۵) ولوملأأرضه ماءً فنزت أرض جاره أوغرقت لم يضمن

**ترجمه** :يولښتى ياوياله دكوم قوم په منځ كې مشترک دى هغوئ جنجال وكړاوبوپه نوبت كې نوهغه به دهغوئ په منځ كې په اندازه دهغوئ دځمكووي اونشته كوم يوه لره اختيارچې له هغه څخه لښتى وكاروي ياپردي ژرنده ياپل جوړكړي لويه كړي دلښتى خوله ،يااوبوتقسيم دورخوپه اعتبارسره وكړي حال داچې تقسيم شوى وي دورخونوپه اعتبارسره يابوځې اوبه خپلې بلې ځمكې ته كومې لره چې په دي لښتى كې داوبوحق نشته دشريكانوله خوښى څخه بغير،اوپه ميراث وړل كيږي داوبونوبت اووصيت كيداى شي دبعينه له دي څخه دنفع اخيستلو،اوخرڅيداى نه شي اونه هبه كيداى شي ،اوكه يې ډكه كړه خپله ځمكه له اوبوڅخه نونقصان ورسيدى دهمسايه ځمكې ته ياهغه ډوبه شوه شوه نوضامن نه دى .

**تشريح** :(۱۱)كه يولښتى دډيروكسانوترمنځ مشترک وي اوهغوئ په خپل منځ كې په مقدارشرب كې اختلاف وكړي نودهغوئ په منځ كې به دهغوئ دځمكوپه تناسب سره شرب تقسيميږ ولى چې له شرب څخه مقصوددځمكې اوبه كول دي اوددي حاجت دځمكې دقلت اوكثرت په وجه سره مختلف وي نوظاهره داده چې داوبوحق به دهغه دځمكې اودهغه دحاجت په اعتبارسره وي ،اوله هغوئ څخه به كوم يوه ته دنوروشريكانوله اجازت څخه بغيرداحق نه وي چې لښتى وكيندي ياپرلښتى ژرنده جوړه كړي ياپرهغې رهټ

ولګوي ياپرهغه پل جوړکړي يادلښتى خوله پراخه کړي ولى چې په دي کې د مشترک لښتى کناره ماتيږي ،
همدارازدژرندي اوپل وغيره په صورت کې به ځاى هم نيسي کوم چې دشرکاء له اجازت څخه بغير ممنوع دى .
ف چكى (ژرنده)يعنى په اوبوسره چليدونكي دغنمواوړه كولوژرنده كومه چې به پخوا دلښتى پرغاړه
جوړيده چيرته چې به شوه ځاى وغيره ووترځوچې اوبه په زورسره ولګيږي اوداوبوپه زورسره ژرنده وچليږي
اوس خوپه بجلى سره اوپه انجن (ماشين)سره چليږي اوهغه پخوانى رواج ختم شو(اشرف الهداية)
(۱۲)قوله اويقسم بالايام وقدوقعت القسمة بالكوى اى ليس لاحدهم ان يقسم بالايام الخ ،همدشان كه له وړاندي څخه
داوبوتقسيم دموريانوپه اعتبارسره شوى ووچې دهريوه كښت ته اوبودراتلولپاره په لښتى كې مورى جوړه
شوي وه اوس له شركاء څخه كوم يوداوبوتقسيم دورځوپه اعتبارسره كول غواړي چې يوه ورځ به ټول لښتى
دياييي اوبله ورځ بل شريك الخ نوده لره دا اختيارنشته لان القديم يترک على حال ولى چې په دي كې دهريوه
حق بېكاره شوى دى .
(۱۳)قوله اويسوق شربه الى ارض له الخ اى ليس لاحدان يسوق شربه الى ارض له ،همداشان له شريكانو څخه كوم يوه لره
داحق نشته چې هغه دنوروشريكانوله اجازي بغيردلښتى اوبه خپلي بلي ځمكې ته بوځي دكومي ځمكې چې
شرب په دي لښتى كې نه شته ولى چې له مرورزماني څخه وروسته ويره ده چې هغه به په ددي ځمكې لپاره هم
په دي وياله كې دشرب دعوى وكړي لهذاهغه به له وړاندي څخه لامنع كيږي .
(۱۴)اوپه شرب كې ميراث هم جاري كيږي ولى چې دامالى حق دى لهذاپه دي كې ميراث جاري كيږي
،اوددي له عين څخه دانتفاع وصيت هم جائزدى چې فلانكى دي له دي څخه خپله ځمكه دوه ورځې اوبه كوي
اوباقى ورځې به زمادوارثانووي ولى چې دموصى به جهالت وصيت لره مانع نه دى ولى چې په وصيت كې
اتهائي وسعت دى حتى چې دمعدوم وصيت اودمعدوم لپاره هم جائزدى .البته دشرب بيع اوهبه كول صحيح
نه دي ولى چې په مقداركې جهالت دى معلومه نه ده چې څومره اوبه به راشي ،ظاهرالرواية دعدم جوازدى
،خيني مشائخ دبيع په جوازقائل دي ،دضرورت شديده پروخت دهغوئ دقول داختيارولوګنجائش شته
(ازاحسن الفتاوى :۸/۴۶۴)
(۱۵)كه چاخپله ځمكه په معتادطريقه سره اوبه كړه اوله دي څخه اتفاقادهمسايه ځمكه خرابه شوه يادوبه
شوه نوپه اوبه كونكى هيڅ تاوان نشته ولى چې دهغه له طرف څخه ظلم اوتيرى نه دى متحقق شوى په دي
وجه چې دهغه مقصدصرف دخپلي ځمكې اوبه كول وونه دبل دځمكې خرابول اوپرمتسبب غيرمتعدي
باندي ضمان نه وي .

## كتاب الاشربة

داكتاب داشربه په بيان كې دى

اشربه دشراب جمع ده لغة هرهغه مائع شى دى كوم چې څښل كيږي كه حلال وي اوكه حرام وي لكه اوبه ،رس
،شربت ،شات وغيره اوشرعًا نوم دى دهغوحراموشرابوكوم چې نشه كونكي وي .مصنف صاحب رحمه الله له

مسائل شرب څخه وروسته كتاب الاشربه په دي وجه ذكر كړچې په شرب او اشربه دواړو كې اشتراك لفظى موجود دى ،او د اشربه ځيني قسمونه حرام دي په دي وجه يې شرب له اشربه څخه مقدم كړ.

**الحكمة** :حكمة حرمة الخمرهى ام الخبائث وراس المصائب و النقائص ،ضررهايتناول الروح و الجسد و المال و الولد و العرض و الشرف ،فكم خربت دورا واذهبت عقارا او اقامت فتنا و اثارت محنا و ولدت احنا و نقلت العقل من حالة التفكير و التدبير و الحكمة و الرشاد الى الجنون و البغى و الفساد ،وكم احدث من العداوة و البغضاء بين الاخ و اخيه ،و الابن و ابيه ،وكم فرقت الاصدقاء ،وشتت شمل الاخلاء ،يشربها الصعلوك فيخيل له انه الخليفة على العرش ،و الجبان فيرى نفسه فارس بنى عبس ،و الغبى فيقول انا اياس فى الذكاء و ارسطو فى الحكمة ،و الجاهل فينادى اناحبر الامة ،فلامكنت ياعقار و شلت يمينك ايها الخمار و سحقالكم ايها الاشرار (حكمة التشريع)

قَالَ رَحِمَهُ اللهُ (۱) وَالشَّرَابُ مَا يُسْكِرُ (۲) وَالْمُحَرَّمُ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ الْخَمْرُ ,وَهِيَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الْعِنَبِ إذَا غَلَا وَاشْتَدَّ وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ وَحَرُمَ قَلِيلُهَا وَكَثِيرُهَا (۳) وَالطِّلَاءُ ,وَهُوَ الْعَصِيرُ إنْ طُبِخَ حَتَّى ذَهَبَ أَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ (۴) وَالسَّكَرُ ,وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الرُّطَبِ (۵) وَنَقِيعُ الزَّبِيبِ ,وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الزَّبِيبِ وَالْكُلُّ حَرَامٌ إذَا غَلَا وَاشْتَدَّ وَحُرْمَتُهَا دُونَ حُرْمَةِ الْخَمْرِ

**ترجمه** :شراب هغه دي چې نښه راوړي ،او حرام له هغو څخه څلور دي ،خمر ،هغه خامي اوبه دى د انګورو كله چې جوش وخوري او خنډي شي او ځګونه وغورځوي او حرام دي له دي څخه لږ او ډير ،طلاء ،هغه شيره ده كله چې پخه شي حتى چې ختم شي له دوو ثلثو څخه لږ ،سكر هغه خامي اوبه دي دلند وخرماوو ،او نقيع الزبيب هغه خامي اوبه دي د كشمشو او داټول حرام دي كله چې جوش وخوري او خنډي شي او د دي حرمت لږ دى له حرمت خمر څخه نو نه كافر كيږي د دي حلال ګڼونكى بخلاف د خمرو.

**تشريح** :(۱)مصنف رحمه الله د شرابو اصطلاحي تعريف كړى دى چې د شريعت په اصطلاح كې شراب هغه دي كوم چې نښه راوړي او مست او بې هوشه كړي.

(۲)د حرامو اشربه وڅلور قسمونه دي /**نمبر ۱**.خمر ،دا د انګورو نيښتيځل شوي اوبه دي كله چې پريښودل شي ترڅو چې هغه جوش وخوري او تيزي او قوي شي او ځګونه وغورځوي ،دا د امام ابو حنيفه رحمه الله قول دى ،د صاحبينو په نزد چې كله تيز شي او مسكر شي نو دا خمر دي ځګونه غورځول شرط نه دي ولى چې له ځګ غورځولو څخه بغير هم خمر ورته ويل كيږي .امام صاحب رحمه الله ځګ غورځول شرط ګرځولى دى ولى چې د خمر احكام قطعي دي په ځګ غورځولو سره شبه ختميږي او قطعي خمر جوړيږي ،د صاحبينو قول راجح دى لمافى الشامية :(قوله وهو الاظهر) واعتمده المحبوبى و النسفى وغيرهما وصحح قاسم وقال فى غاية البيان و اما اخذ بقولهما رفعا لتجاسر العوام لانهم اذاعلموا ان ذالك يحل قبل الزبد يقعون فى الفساد (ردالمحتار:۵/۳۱۸).او بالاجماع د خمر قليل او كثير دواړه حرام دي ولى چې د خمر قليل مقدار داعى الى الكثير وي.

/**نمبر ۲**.دوهم شئ طلاء ده كوم ته چې باذق هم ويل كيږي هغه داده چې د انګورو نښتيځل شوي اوبه دومره پخي كړاى شي چې په پخولو سره هغه له دوو ثلثو څخه لږ و چې شي او له يو ثلث څخه زياتي باقي پاتي شي ،د ځينو حضراتو رأيه داده چې كله يو ثلث وچې شي نو دي ته طلاء ويل كيږي او كله چې نصف وچې شي نو دي ته منصف ويل كيږي او كله چې لږ پخې شي نو دي ته باذق ويل كيږي او ټول حرام دي كله چې جوش وخوري ،خنډي شي او دمخكنى اختلاف مطابق ځګونه وغورځوي ./نمبر۳.(۴)دريم شئ سكر دى يعنى

دپخولندوخرماوورس كوم چې جوش وخوري اوخنډ شي اومسكرشي ددي په حرمت دصحابه كرامو ﷺ اجماع ده.

/نمبر ۳.(۵)څلورم شئ نقيع زبيب دى هغه دكشمشوخامي اوبه دي كله چې جوش وخوري اوخنډي شي نو داحرام دى ،اودااخيرني دري قسمه شراب هغه وخت حرام دي كله چې جوش وخوري اوخنډي شي ليكن ددي دريوحرمت دخمروپه نسبت كم دى ولى چې دخمروحرمت قطعي دى حال داچې ددي دريوحرمت په اجتهادسره دى همداوجه ده چې دخمرويوڅاڅكى څښونكى ته حدورکول كيږي حال داچې ددي دريو څښونكى ته حدنه وركول كيږي ترڅوچې په نشه كې مشت نه شي ،اوهمداوجه ده چې ددي دريوحلال ګڼونكى ته كافرنه ويل كيږي په خلاف دخمروچې دهغوپرحلال ګڼونكى به دكفرفتوى لګول كيږي.

(٦)وَالحَلَالُ مِنها أَربَعةٌ نَبِيذُ التَّمرِ وَالزَّبِيبِ إن طُبِخَ أَدنَى طَبخَةٍ وَإنِ اشتَدَّ إذَا شَرِبَ مَالَا يُسكِرُهُ بِلَالَهوٍ وَطَرَبٍ (٧)وَالخَلِيطَانِ (٨)وَنَبِيذُ العَسَلِ وَالتِّينِ وَالبُرِّ وَالشَّعِيرِ وَالذُّرَةِ طُبِخَ أَوْلَا (٩)وَالمُثَلَّثُ العِنَبِيُّ)(١٠)وَحَلَّ الِانتِبَاذُ فِي الدُّبَّاءِ وَالحَنتَمِ وَالمُزَفَّتِ وَالنَّقِيرِ (١١)وَخَلُّ الخَمرِ سَوَاءٌ خُلِّلَت أَو تَخَلَّلَت (١٢)وَكُرِهَ شُربُ دُردِيِّ الخَمرِ وَالِامتِشَاطُ بِهِ وَلَا يُحَدُّ شَارِبُهُ إلَّا إذَا سَكِرَ

**ترجمه** :اوحلال له دوئ څخه څلوردي نبيذتمراونبيذزبيب كه پاخه كړاى شي لږاګركه خنډشي كله چې وڅښي دومره اندازه چې نشه يې نه كړي بلالهولعب،اونبيذشهداوانځراوغنم اواوربشي اوجواركه پاخه كړاى شي اوكه پاخه نه شي اومثلث عنبى ،اوحلال دي نبيذجوړول په دباء اوحنتم اومزفت اونقيركې ،اودشرابوسركه كه جوړه كړاى شوي وي ياجوړه شوي وي ،اومكروه دي دشرابوكچره څښل اوپه هغوسره سرخيشتول اوحدبه نه جاري كيږي دهغوپه څښونكى له نشه كيدلوڅخه بغير.

**تشريح** :(۶)څلورقسمه شراب حلال دي مصنف رحمه الله په لوړعبارت كې داڅلورقسمه مع شرائط حلت بيان كړي دي /نمبر۱.نبيذتمروزبيب(هغه اوبه په كوموكې چې چهواري ياوڅكې واچولي شي اوپرېښودل شي ترڅوچې دهغوحلاوت په اوبوكې ووځي ،اول ته نبيذتمراودوهم ته نبيذزبيب ويل كيږي )كله چې له دي دواړوڅخه هريولږشانته پاخه كړاى شي .دادشيخينوپه نزدله لاندي شرائطوسره حلال دي اګركه په دي كې شدت راشي اوځګونه وغورځوي ،اول شرط دادى چې دومره اندازه وڅښي دكوم په باره كې چې دڅښونكى غالب ګمان داوي چې دامانه نشه كوي ،دوهم شرط دادى چې دلهواوطرب په نيت سره نه وي بلكه دتقويت بدن لپاره وي ،دامام محمد رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نزدپه هرحال حرام دي.

**ف**:فتوى دامام محمد رحمه الله پرقول ده لمافي الدرالمختار:(وحرمهامحمد)اى الاشربة المتخذة من العسل والتين ونحوهما،قال العلامة ابن عابدين تحت (قوله ونحوهما)كالتمروالزبيب والعنب فالمرادالاشربة الاربعة التى هى حلال عندالشيخين اذاغلت واشتدت والافلاتحرم كثيرهاالفاقا(قوله وبه يفتى)اى بقول محمديفتى.........لقوله ﷺ كُلُّ مُسكِرٍ خَمرٌ وَكُلُّ خَمرٍ حَرَامٌ(الدرالمختارمع الشامية ۵/۳۲۲:)

/نمبر ۲.(۷)خليطان (چې دخرماواووڅكواوبه سره ګډي شي اولږپخي شي ياپرېښودل شي ترڅوچې جوش وخوري اوخنډي شي نودي ته خليطان ويل كيږي )هم حلال دي ،منقى يوقسم لوى لوى كشمش دي (چې ځيني خلک وڅكي ورته وايي) ./نمبر ۳.دشاتو.انزرو.غنمو.اوربشواوجوارونبيذهم دشيخينوپه

نزدحلال دي که پاخه کړای شي اوکه يا،مګردلته هم دنبيذالتمروالزبيب شرائط معتبردي .دامام محمد رحمه الله په نزدداهم مطلقاحرام دي که قليل وي اوکه کثير،په دي کې هم فتوی دامام محمد رحمه الله پرقول ده تقدم الحوالة تحت نبيذ التمروالزبيب.

/نمبر ۴.مثلث عنبی يعنی دانګورونښتيځل شوي اوبه کله چې دومره پخې شي چې دوه ثلثه ختمي شي اوصرف يوثلث پاتي شي اګرکه په دي کې جوش اوتيزوالی پيداشي اوځګونه وغورځوي نوداهم دشيخينوپه نزدبشرائط مذکوره حلال دي ،دامام محمد رحمه الله په نزدمطلقاحرام دي ولی چې له حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه مروی ده چې نبی کريم ﷺ وفرمايل ،مااسکرکثيره فقليله حرام (دکوم چې کثيرنشه راوړي دهغه قليل هم حرام دي )،په دي کې هم دزماني دفسادپه وجه سره فتوی دامام محمد رحمه الله پر قول ده تقدم الحوالة تحت نبيذ التمروالزبيب.

(۱۰)په دباء (له کدوڅخه جوړشوی لوښی ته دباء ويل کيږي )حنتم (دزرغون رنګ دخاورې کوزې ته حنتم ويل کيږي )مزفت (دتارکول په شان يوشئ دی کوم ته چې زفت ويل کيږي کله چې پريولوښی دهغه پالش وشي نوهغه لوښی ته مزفت ويل کيږي )اونقير(د لرګي چې منځ ويستل شوی وي هغه لوښي ته نقيرويل کيږي ) کې دنبيذوپه جوړلوکې څه حرج نشته ،دجاهليت په زمانه کې به خلګوپه دي لوښوکې شراب جوړول کله چې دشرابوحرمت نازل شونونبی کريم ﷺ ددي لوښوله استعمال څخه منع وفرمايله ترڅودشرابونفرت په زړوکې کښيني بياخه وخت وروسته چې کله مقصدحاصل شونونبی کريم ﷺ ددي لوښوداستعمال اجازت ورکړاولومړی حکم يې منسوخ کړ.

(۱۱)قوله وخل الخمرسواء خللت اوتخللت ای وحل خل الخمرسواء خللت اوتخللت ،يعنی کله چې له شرابوڅخه په خپله سرکه جوړه شي يادیوشئ په اچولوسره سرکه جوړه کړای شي لکه چې مالګه ياګرمي اوبه په کې واچول شي نوهغه حلاليږي ولی چې دسرکي په جوړيدلوسره موجب حرمت وصف مفسدزائليږي په دي وجه حلاليږي ،له شرابوڅخه سرکه جوړل مکروه هم نه ده ولی چې دسرکي په جوړلوکې دشرابواصلاح ده اواصلاح مباح ده .

(۱۲)دشرابوکچره (لکه چې دتيلوغيره کچره وي کوم چې دلوښي په پای کې سره جمع شي همداشان دشرابوهم کچره وي )څښل اوپه هغوسره سرخشتول هم مکروه دی ولی چې په کچره کې دشرابواجزاء دي اوله حراموڅخه نفع اخيستل حرام دي ،البته دکچره پرڅښونکي حدنه جاري کيږي ترڅوچې دکچري له څښلوڅخه نشه نه شي ولی چې له دي څخه طبيعتونه نفرت کوي نودناقص والی په وجه سره دي ته دشرابوحکم نه شي ورکول کيدلای بلکه له خمروڅخه دعلاوه شرابوپه حکم کې دي .

ف عموماپه مشرباتواومأکولاتوکې الکحل (يوبې رنګه ،آتش ګير،الوتونکی سياله ماده کومه چې له ميټهاسون خصوصاله ګلوکوزڅخه بذريعه تخميرجوړيږي .کوم چې دشرابواصل دی ،اسپرټ)له تعفن (بدبويه کيدلو)څخه دحفاظت په خاطراچول کيږي نودااستعمال په ضرورت کې داخل دی په تلهی کې نه دی لهذاجائزدی (ازاحسن الفتاوی :۸/۴۸۹)

ف: دالكحل (اسپرټ)څوقسمونه دي (۱)هغه اسپرټ كوم چې د منقى ،انګورويا خرماوو له شرابوڅخه جوړشوي وي ،دا قسم بالاتفاق ناپاک دي ،په كومه دواء كې چې ګډشوي وي هغه هم ناپاكه او څښل يې حرام دي ،البته دشديد اضطرار په حالت كې دداسي دواء دڅښلورخصت شته اودشديد اضطرار حالت دادی چې دماهرمعالج ظن غالب داوي چې دي مريض ته په كومه بله دواء سره شفاء نه حاصليږي نوپه داسي صورت كې ددي قسم اسپرټ دګډشوي دواء دخوړلو بقدرضرروت ګنجائش شته ففى النهاية عن الذخيرة الاستشفاء بالحرام يجوزاذاعلم ان فيه شفآء ولم يعلم دواءاخر (البحر الرائق: ۱/۱۲۲)

(۲)دوهم قسم هغه اسپرټ دي كوم چې له مذكوره شيانوڅخه علاوه له كوم بل شئ مثلا ،اوربشو ،آلو، شاتووغيره له شرابوڅخه جوړشوي وي نوددي په طهارت اوحرمت كې دفقهاء اختلاف دی دامام اعظم ابوحنيفه اوامام ابويوسف په نزددا پاک دي اودومره اندازه څښل يې هم حلال دي چې په هغه سره نشه نه شي ،(په دي شرط چې څښل يې دلهولعب په نيت سره نه وي )اودامام محمد رحمه الله په نزددانجاست خفيفه دي اوددي لږاندازه څښل هم جائزنه دي ،فتوی اګركه په عاموحالاتوكې دامام محمد رحمه الله پرقول وركړل شوي ده مګرپه اسپرټوكې څرنګه چې عموم بلوی ده ،لهذاپه كومه دواء كې چې دوهم قسم اسپرټ ياالكحل ګډشوي وي دهغې په باره كې ګنجائش شته چې دامام اعظم اوابويوسف پرقول عمل وكړل شي ،اګركه تقوی اواحتياط دامام محمد رحمه الله پرقول په عمل كولوكې دی .

(۳)دريم قسم هغه اسپرټ دي كوم چې له يوقسم شرابوڅخه هم نه وي جوړشوي بلكه له كوم بل پاک اوحلال شئ څخه مثلاله منقى ،خرما ،آلو ،اوربشو ،شهدوغيره څخه جوړشوي وي دابالاتفاق دټولوپه نزدپاک دي اوپه كومه دواء كې چې ګډشوي وي هغه هم پاكه اوحلاله ده .

لوړذكرشوی تفصيل هغه وخت دی كله چې معلومه وي چې اسپرټ كوم قسم دي اوكه معلومه نه وي چې داكوم قسم دي نوڅرنګه چې دناپاكي ظن غالب نه دی ،بلكه محض شبه ده چې كيدای شي چې له قسم اول څخه وي نومحض ددي شبه پراساس به ددي دنجاست ياحرمت حكم نه لګول كيږي ،لهذاپه كومه دواء كې چې داسي اسپرټ ياالكحل وي چې دهغه په باره كې معلومه نه وي چې له مذكوره دريوقسمونوڅخه له كوم قسم څخه دي نوددداسي دواء دخوړلواوڅښلوګنجائش شته اوپركومې جامې چې داسي دواء يااسپرټ ولګيږي هغې ته ناپاكه نه ويل كيږي ،كه له پريمنځلوڅخه بغيرلمونځ په كې اداء شي نولمونځ صحيح كيږي البته كوم كس چې له داسي اسپرټوڅخه هم پراجتناب قدرت لري نوترڅومره حده چې اجتناب وكړي ښه ده (جديدمعاملات كې شرعی احكام :۱/۹۷)،دحضرت شيخ الاسلام مفتی محمدتقی عثمانی صاحب دامت بركاتهم رأيه داده چې په دي وخت كې ډيرمقدارالكحل هغه دي كوم چې له انګوراوخرماوڅخه علاوه له نوروشيانوڅخه جوړيږي ،فرمايي :ان معظم الكحول التی تستعمل اليوم فی الادوية والعطوروغيرهالاتتخذمن العنب اوالتمر انماتتخذمن الحبوب اوالقشوراوالبترول وغيره (تكملة فتح الملهم:۳/۶۰۸)

# كتابُ الصَّيد

## داکتاب دښکار په بیان کې دی

صید لغة مصدر دی دښکار کولو په معنی او هغه شئ ته هم صید ویل کیږی کوم چې ښکار کیږي که ماکول وي او که غیر ماکول، او په اصطلاح کې هر هغه حیوان دی کوم چې طبعا وحشی وي او خپل حفاظت په خپله کولی شي او بغیر له حیلي (چل) څخه نه شي نیول کیدلای.

دکتاب الصید له ماقبل سره مناسبت دادی چې صید او اشربه دواړه غفلت پیدا کونکي شیان دي، بیا یې داشربه بیان په دي وجه مقدم کړچې په اشربه کې غفلت دصید په نسبت ډیر دی لهذا اشربه دقوي والی په وجه سره أحق بالتقدیم دي.

(۱) هو الاِصْطِيادُ (۲) وَيَحِلُّ بِالْكَلْبِ الْمُعَلَّمِ وَالْفَهْدِ وَالْبَازِي وَسَائِرِ الْجَوَارِحِ الْمُعَلَّمَةِ (وَلَابُدَّ مِنَ التَّعْلِيمِ (۳) وَذَا بِتَرْكِ الْأَكْلِ ثَلَاثًا فِي الْكَلْبِ وَبِالرُّجُوعِ إِذَا دَعَوْتَهُ فِي الْبَازِي (۴) وَمِنَ التَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْإِرْسَالِ وَمِنَ الْجَرْحِ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ (۵) فَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْبَازِي أُكِلَ، وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْكَلْبُ أَوِ الْفَهْدُ لَا، (۶) وَإِنْ أَدْرَكَهُ حَيًّا ذَكَّاهُ (۷) وَإِنْ لَمْ يُذَكِّهِ أَوْ خَنَقَهُ الْكَلْبُ وَلَمْ يَجْرَحْهُ أَوْ شَارَكَهُ كَلْبٌ غَيْرُ مُعَلَّمٍ أَوْ كَلْبُ مَجُوسِيٍّ أَوْ كَلْبٌ لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ عَمْدًا حَرُمَ

**ترجمه**: هغه ښکار کول دي، او حلال دی په تعلیم یافته سپي، پړانګ، بازا و نورو تعلیم یافته حیوانانو سره او ضروري ده تعلیم یافته والی، او داپه خوړک پریښودلو سره دی دري ځله دسپی په حق کې او په بیرته راتلو سره دی کله چې یې راوغواړي دباز په حق کې، او (ضروري ده) بسم الله ویل دپریښودلو پروخت او (ضروري ده) زخمي کول که پر هر ځای کې هم وي، نو که خوړک وکړله دي څخه باز نو خوړل کیږي به او که خوړک وکړسپی یا پړانګ نو نه، او که یې ومونډی ښکار ژوندی نو ذبح دي کړي، او که یې ذبح نه کړ یا یې غاړه ورخپه کړه سپی او زخمي یې نه کړ هغه یا شریک شوله هغه سره غیر تعلیم یافته سپی دمجوسی سپی یا داسي سپی چې پر هغه عمدا بسم الله نه وه ویل شوي نو ښکار حرام دی.

**تشریح**: (۱) مصنف رحمه الله دصید لغوی معنی بیان کړي ده چې صید مصدر دی له صاد یصید صیدا څخه دښکار کولو په معنی پر مفعول هم ددي اطلاق کیږي ویل کیږي صید الامیر ای مصیوده ویعنی هغه شئ کوم چې ښکار شي.

(۲) په تربیت یافته سپی، پړانګ، بازا و تولو زخمي کونکو تربیت یافته حیوانانو سره ښکار کول جائز دی لقوله ﷺ لعدی بن حاتم الطائی رضی الله عنه اذا ارسلت کلبک المعلم وذکرت اسم الله علیه فکل وان اکل منه فلا تاکل لانه انما امسکه علی نفسه (یعنی کله چې تاخپل تعلیم یافته سپی پریښودا و پر هغه دي دالله تعالی نوم ذکر کړی وي نو خوره او که سپی له هغه څخه خوړک کړی وو نو مه خوره په دي وجه چې سپی ښکار دخپل ځان لپاره نیولی دی)، مګر دخنزیر، یږ، او زمري ښکار له دي څخه مستثنی دی ولی چې هغه جائز نه دی. مګر ښکار کونکی حیوان لره دري شرطونه دي یو دا چې هغه به تعلیم یافته وي، دوهم شرط دادی چې ښکاری حیوان په بسم الله ویلو سره پریښودل شي، دریم شرط دادی چې هغه ښکار زخمي کړي، ددي دریو شرطونو دلیل دباری تعالی دا ارشاد دی (يَسْئَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ............ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ) (خلک

اوکوم ،،،،،،،،،په دي ايت مبارکه کې له تعلمونهن څخه دتعليم شرط معلوم شو ،اوله من الجوارح څخه دزخمي کولو شرط معلوم شو ،اوله اذکروا اسم الله عليه څخه دبسم الله ويلو شرط معلوم شو.
(۳)ييا دسپي اودده په شان ټولو ځناورو تعليم يافته اوتربيت يافته والى دادى چې دري ځله ښکار ونيسي مګر دهغه غوښه وغيره ونه خوري ،دبازاونورو ځيرونکو مرغانو تربيت يافته والى دادى چې کله ته هغه راوبولي نوهغه راشي ولى عادة چې کوم شئ حيوان ته مرغوب وي دهغه پرېښودل دهغه دتربيت يافته والى علامه ده ،نودسپى عادت دادى چې شئ اخلي اوتښتي کله چې يې داعادت پرېښود نودادهغه دتربيت يافته والى علامه ده اودباز عادت وحشت اوتنفردى نوپه رابللو سره راتلل دهغه دتربيت يافته والى علامه ده .
(۴)قوله ومن التسمية اى ولابد من التسمية ،يعنى تسميه هم ضروري ده يعنى دتربيت يافته حيوان په ښکار پسې دپرېښودلو پروخت دي پرېښودونکى بسم الله الله اکبروايي نوکله چې کوم کس خپل تربيت يافته سپى يابازياشاهين په ښکارپسې دپرېښودلو پروخت پرهغه بسم الله الله اکبروو ايې اوهغه ښکار ونيسي اوزخمي يې کړي اوله زخمو څخه ښکار مړشي نودهغه خوړل جائزدى .اوداهم ضروري ده چې ښکار به زخمي کوي که يې زخمي نه کړ؛ وښکار مړشونوهغه حلال نه دى دازخمي کول دذبح اضطراري درجه لري اوپه ذبح اضطراري کې چې دبدن په کومه حصه کې هم زخم وشي هغه کافي ده .
(۵)که باز،شاهين اونورو ښکاري مرغانو څخه کوم يوه ښکار ونيواوله هغه څخه يې خورک پيل کړنوهغه ښکاربه خوړل کيږي ولى چې دښکار نه خوړل دمرغانو په تعليم کې شامل نه دى ،اوکه سپى ،ياپړانګ ياله نورو ځناورو څخه کوم يوه ښکار ونيو اوله هغه څخه يې پخپله خورک پيل کړنو اوس به دانه خوړل کيږي ولى چې دځناورو ښکار خوړل دنه تعليم يافته اوتربيت يافته والى علامه ده .
(۶)که ښکار کونکى سپى ياکوم بل ښکارى حيوان په ښکار پسې ايله کړ هغه ولاړى ښکاريې ونيو اوسپى ايله کونکى هم په داسې حال کې وررورسيدو چې ښکار ژوندى نواوس دهغه ذبح کول واجب دي ولى چې په حديث شريف کې دي فان امسک عليک وادرکته حيا فاذبحه (که سپى ستاپاره ونيو اوتاهغه ژوندى وموند نوهغه ذبح کړه )،همداراز دسپى وغيره مړکول دذبح بدل دى اوله حصول مقصود بالبدل څخه وړاندي په قدرت على الاصل سره دبدل حکم ساقطيږي .نوکه هغه ذبح کول پرېښودل ترڅو چې ښکار مړشو نواوس دهغه خوړل جائزنه دي ولى چې له قدرت على الذبح باوجود په نه ذبح کولو سره هغه مرداريږي .
(۷)اوکه ښکار کونکى ښکار ژوندى وموند مګرهغه يې ذبح نه کړ نودهغه خوړل جائزنه دي لماقلنا .اوکه سپى دښکار غاړه خپه کړه اومړيې کړيايې په سينه ټکرورسره وکړه اوقتل يې کړ اوښکاريې مجروح نه کړنودا ښکاربه نه حوړل کيږي ولى چې دښکار داسې زخمي کول چې دهغه وينه ووځي شرط دى کوم چې په غاړه خپه کولو وغيره سره نه حاصليږي .همداشان که له تربيت يافته سپى سره بل غيرتربيت يافته سپى دښکار په وژلو کې شريک شو ،يادکوم مجوسي سپى له هغه سره شريک شو ،ياداسې سپى چې دهغه دپرېښودلو پروخت عمداتسميه ويل ترک شوي وي نوداسې ښکار خوړل جائزنه دى ولى چې مبيح اومحرم جمع شول نواحتياطابه دحرمت طرف ته ترجيح ورکول کيږي .

(۸) وَإِنْ أَرْسَلَ مُسْلِمٌ كَلْبَهُ فَزَجَرَهُ مَجُوسِيٌّ فَانْزَجَرَ حَلَّ وَلَوْ أَرْسَلَهُ مَجُوسِيٌّ فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ فَانْزَجَرَ حَرُمَ) (۹) وَإِنْ لَمْ يُرْسِلْهُ أَحَدٌ فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ فَانْزَجَرَ حَلَّ (۱۰) وَإِنْ رَمَى وَسَمَّى وَجَرَحَ أَكَلَ وَإِنْ أَدْرَكَهُ حَيًّا ذَكَّاهُ, وَإِنْ لَمْ يُذَكِّهِ حَرُمَ, (۱۱) وَإِنْ وَقَعَ سَهْمٌ بِصَيْدٍ فَتَحَامَلَ وَغَابَ وَهُوَ فِي طَلَبِهِ حَلَّ, وَإِنْ قَعَدَ عَنْ طَلَبِهِ ثُمَّ أَصَابَهُ مَيِّتًا لَا (۱۲) وَلَوْ رَمَى صَيْدًا فَوَقَعَ فِي مَاءٍ أَوْ عَلَى سَطْحٍ أَوْ جَبَلٍ ثُمَّ تَرَدَّى مِنْهُ إِلَى الْأَرْضِ حَرُمَ وَإِنْ وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ ابْتِدَاءً حَلَّ

**ترجمه**: اوكه يې ايله كړ خپل سپى بيا وشكاره هغه مجوسي نو هغه تيز شو نو ښكار حلال دى، اوكه ايله كړ هغه مجوسي بيا وشكاره هغه لره مسلمان نو هغه تيز شو نو حرام دى، اوكه ايله نه كړ سپى هيچا بيا وشكاره هغه لره مسلمان نو هغه تيز شو نو حلال دى، اوكه يې غشى وار كړ او بسم الله يې وويله او زخمي يې كړ نو خوړل كيږي به اوكه يې موند ژوندى نو ذبح دي كړي اوكه يې ذبح نه كړ نو حرام دى، اوكه ولگيدى غشى پر ښكار او هغه دغشي په وړلو سره غائب شو او ښكاري دهغه په طلب كې وو نو بيا يې وموند مړ شوى نو حلال دى اوكه كښينستى دهغه له طلب كولو څخه بيا يې وموند هغه مړ نو حلال نه دى، اوكه يې وويشت ښكار يا هغه ولويدى په اوبو كې يا پر بام يا پر غره ولويدى له هغه ځاى څخه پر ځمكه ولويدى نو هغه حرام دى اوكه ولويدى پر ځمكه ابتداء نو حلال دى.

**تشريح**: (۸) كه كوم مسلمان خپل تربيت يافته سپى په ښكار پسې ايله كړ په دامابين كې كوم مجوسي سپى وشكاره دكوم په وجه سره چې سپى نور تيز شو او ولاړى ښكار يې ونيو نو هغه ښكار حلال دى ولې چې دمجوسي دشكارلو په وجه سره ارسال مسلم نه ختميږي ولې چې دكوم فعل ختميدل له هغه څخه په قوى يا برابر فعل سره وي حال دا چې دمجوسي للكارنا خو كمتر دى لهذا په دي سره دمسلمان فعل نه ختميږي، اوكه مجوسي خپل سپى په ښكار پسې ايله كړ په دي مابين كې مسلمان وشكاره كوم چې سپى ومانه او ولاړى ښكار يې ونيو نو نه به خوړل كيږي ولې چې شكارل له ارسال څخه كمتر دى په همدي وجه سره په سابق كې دحرمت شبه نه وه ثابته شوي نو حلت په درجه اولى سره نه ثابتيږي.

(۹) اوكه سپى چانه وه ايله كړى بلكه هغه په خپله په ښكار پسې منډي كړي په دي مابين كې كوم مسلمان هغه وشكاره كوم چې هغه قبول كړ او نور تيز شو او ولاړى ښكار يې ونيو نو دهغه په خوړلو كې څه حرج نشته ولې چې دسپى منډه وهل او دمسلمان زجر په درجه كې سره برابر دي نو دسپى منډه دمسلمان په زجر سره منسوخه كيږي لهذا اوس به داسي گڼل كيږي چې سپى مسلمان په ښكار پسې ايله كړى دى په دي وجه دښكار خوړل حلال دي.

(۱۰) كه چا دښكار طرف ته غشى وار كړ او دغشي دوارولو پر وخت يې بسم الله وويله غشى ولاړى او پر ښكار ولگيد او ښكار يې زخمي كړ او هغه مړ شو نو هغه حلال دى ولې چې دغشى په وارولو سره هغه ذابح (ذبح كونكى) شو په دي وجه چې غشى دذبح آله ده او څرنگه چې دا ذبح اضطراري ده لهذا دښكار ټول بدن دذبح محل دى دغاړي پري كول ضروري نه دي. اوكه يې په مذكوره بالا صورت كې ښكار ژوندى وموند نو دهغه ذبح كول ضروري دي اوكه يې ذبح نه كړ نو حلال نه دى لما مر في مسئلة وان ادرك المرسل الصيد حيا الخ.

(۱۱) كه په ښكار غشى ولگيد او هغه په مشقت سره دزخم په برداشتولو سره منډه واخيسته حتى چې دښكاري له نظر څخه غائب شو او ښكاري مسلسل دهغه په تلاش كي وو تر څو چې صيد مذكور يې مړ وموند نو خوړل

کیږي به ولی چې ښکاري مفرط نه دی اوذبح اضطراري یې کړی ده نودصید مرګ به لاهغې ځخه شمارل کیږي ،اوکه په دي مابین کې ښکاري له تلاش کولو ځخه کنبینستی نواوس دمړه موندلوپه صورت کې هغه حلال نه دی ولی چې کیدای شي چې مرګ دي په کوم بل سبب سره واقع شوی وي اوپه دي باب کې موهوم دمتحقق په شان دی .

(۱۲)که چاښکارپه غشی وویشت بیاهغه په اوبو کې ولویدا ومړشونو حلال نه دی ولی چې کیدای شي چې په اوبو کې دغرقیدلوپه وجه سره دي مړشوی وي .همداشان که له غشی لګیدلو وروسته هغه پربام یاپرغره ولویدی بیاله هغه ځایه پرځمکه ولویدی اومړشونوهم به نه خوړل کیږي ولی کیدای شی چې له بام یا غره ځخه درالویدلوپه وجه سره دي مړشوی وي .اوکه ابتداء پرځمکه ولویدی نوحلال دی ولی چې له دي ځخه ځان ساتل ممکن نه دي نوکه په دي صورت کې هم دحرمت حکم وکړل شي نودباب اصطیاددروازه به وتړل شي.

(۱۳)وماقتله المعراض بعرضه او البندقة حرم (۱۴)وان رمی صیدا فقطع عضوا منه اکل الصید لا العضو (۱۵)وان قطعه اثلاثا والاکثر مما یلي العجز اکل کله (۱۶)وحرم صید المجوسي والوثني والمرتد (۱۷)وان رمی صیدا فلم یثخنه فرماه الثاني فقتله فهو للثاني وحل (۱۸)وان اثخنه فللاول وحرم الصید لمن اخذه (۱۹)وضمن الثاني للاول قیمته غیر مانقصته جراحته (۲۰)وحل اصطیاد مایؤکل لحمه ومالایؤکل

**ترجمه**:اوکوم ښکارچې قتل کړي معراض غشی دعرض په طرف سره یابندقه نوهغه حرام دی ،اوکه یې وویشت ښکارنوپرې یې کړه له هغه ځخه کوم عضونوخوړل کیږي به ښکارنه عضو ،اوکه یې پرې کړپردري حصې کولوسره اواکثرحصه دلکۍ طرف ته وه نوخوړل کیږي به ټول ښکار ،اوحرام دی دمجوسي اوبت پرست اومرتدښکار ،اوکه یې وویشت ښکاراوهغه یې سست نه کړبیاوویشتی کوم بل چاا وقتل یې کړهغه نوهغه دهغه بل دی اوحلال دی ،اوکه یې سست کړی وونوداول دی اوحرام دی ،اوضامن دی ثاني اول لره دهغه دقیمت ماسواله هغه ځخه چې کم کړی دی دهغه زخم ،اوحلال دی ښکارکول دهغه حیوان دکوم چې غوښه خوړل کیږي اودهغه دکوم چې غوښه نه خوړل کیږي .

**تشریح** :(۱۳)پرکوم ښکارچې بغیرله تیرې خوا ځخه غشی عرضا ولګیږي اوښکارمړشي نوحلال نه دی ولی چې بغیرله تیرو ځخه غشی په عرضالګیدلوسره ښکارنه زخمي کیږی بلکه داسي غشی ښکارځپي اوماتوي حال داچې دښکارزخمي کیدل ضروريږ دي ترڅودذبح معنی متحققه شي علی ماقدمنا .اوکه دغشی تیره طرف ولګیدا وښکاریې زخمي کړنوحلال دی ولی چې دذبح معنی متحققه شوه ،اوداسي ښکاربه هم حلال نه دی کوم چې بندقه (بندقه دختې ګردي لوټې ته ویل کیږي کوم چې په غلیل کې ایښودل کیږي اوښکارپرکیږي )ولګیږي اوله هغه ځخه مړشي ولی چې بندقه ښکارځپي اوماتوي زخمي کوي یې نه ولی چې داهم داسي دی لکه پرکوم ښکارچې غشی عرضا ولګیږي .

**ف**:سوال دادی چې کوم کس په بسم الله ویلوسره دټوپک یاتوپنګچې وغیره په ګولی سره ښکاروکړي اوهغه ښکارهلاک شي نوهغه حلال دی اوکه یا؟دامسئله دمتقدمینوفقهاؤپه کتابو کې نشته په دي وجه چې په هغه

زمانه کې بندوق وغيره رواج نه وواودعلماء عصرپه منځ کې په دي مسئله کې اختلاف دی ،دعلماء عصريوجماعت داحيوان حلال ګڼي حال داچې بل جماعت يې حلال نه ګڼي ،کوم حضرات علماء چې دحيوان حلال ګڼي هغوئ فرمايي چې په حقيقت کې په کوم وخت کې چې ګولۍ لګيږي نوهغه ګولۍ پوري وري وځي ...اوبيادګولۍ دوتلوپه وجه سره دومره وينه ووځي چې ډيروخت په چاړه سره دذبح کولوپروخت هم دومره وينه نه ووځي ،لهذاذبح چې کوم اصل مقصددی چې وينه په حيوان کې دننه پاتي نه شي ،بلکه دباندي ووځي ،دامقصدپه دي سره حاصليږي لهذاپه ګولۍ سره شوی ښکارحلال دی.

کوم حضرات علماء چې داحيوان حرام ګڼي هغوئ فرمايي چې دبندوق ګولۍ په خپله غوڅونکې نه وي ،په دي وجه چې هغه تيره نه وي اوکله چې په ښکارلګيږي نودهغې په نتيجه کې ښکارزخمي کيږی البته څرنګه چې هغه ګولۍ له ليري څخه اوپه تيزرفتارسره راځي په دي وجه هغه جسم څيري کوي اودننه ځي کنه نوپه دي ګولۍ کې په خپله دجارح اومحددوالی اودجسم دڅيري کولوصلاحيت نشته په دي وجه هغه ګولۍ دمحددپه حکم کې داخله نه ده ،بلکه دمثقل په حکم کې ده ،په دي وجه په ګولۍ سره ښکارشوی حيوان حلال نه دی ،لکه چې علامه شامي په ردالمحتارکې فرمايلي دي چې دګولۍ دلګيدلوپه وجه سره چې کوم مرګ واقع کيږي هغه داندفاع عنيف يعنی شديدثقل په وجه سره واقع کيږي ............حضرت ګنګوهی اوزموږدعلماء ديوبندڅخه دډيروحضراتوهمدافتوی ده چې په ګولۍ سره ښکارشوی حيوان حلال نه دی ترڅوچې هغه باقاعده ذبح نه کړای شي .....بايديادوساتل شي چې مذکوره بلااختلاف هغه وخت دی چې کله ګولۍ تېره اوتيزه څوکه لرونکي نه وي ليکن که ګولۍ داسي جوړه شوي وي چې تېره اوتيزه څوکه لرونکي وي نوپه دي صورت کې هغه حيوان بالاتفاق حلال دی (تقريرترمذی ۲/۱۳۲)

(۱۴)که چاښکارپه غشي وويشت کوم چې دښکارکومه عضوه يې پري کړه اوښکارمړشونوښکاربه خوړل کيږي ولی چې زخمي کيدل (ذبح اضطراري )متحققه شوه ليکن پري شوی عضوبه نه خوړل کيږي لقوله ﷺ ماابين من الحی فهوميت (يعنی کوم چې له ژوندی څخه جلاکړل شوي وي هغه مرداره ده ).

(۱۵)که غشی ښکاراثلاثاپه دي ډول سره پري کړچې دښکاراکثره برخه دلکۍ په طرف کې پاتي شوه اولږبرخه دسرطرف ته نوټول ښکارحلال دی ولی چې اوداج (دکوم حيوان هغه رګونه چې دذبح پروخت پري کيږي )زړه له دماغ سره نښلوي نوکله چې دسردطرف ثلث پري شونوپه دي سره رګونه پري کيږي لکه څرنګه چې په ذبح کې رګونه پري کيږي ګواکې داحيوان ذبح شولهذاداحلال دی ،اوکه دسرطرف ته له نيمايي څخه زيات پري شواودلکۍ طرف ته له نيمايي څخه لږپاتي شونودابه ګڼل کيږي چې داله ژوندي حيوان څخه يوعضوپري شوی دی لهذادسرطرف حلال دی اودلکۍ طرف مرداردی نه به خوړل کيږي.

(۱۶)که مجوسي يامرتديابت پرست ښکارووينښتی اوهغه مړشونونه خوړل کيږي ولی چې داکسان دذبح اختياري اهل نه دي بلکه ددي کسانوذبح شوی حيوان مردارشمارل کيږي ،نودذبح اضطراري اهل هم نه دي البته داهل کتابوښکارحلال دی ولی چې اهل کتاب دذبح اختياري اهل دي نودذبح اضطراري اهل به هم وي.

(۱۷)که ښکاروویشت غشی پرولګید مګرهغه یې کمزوری نه کړاوله حیزامتناع (له خپل حفاظت کولو )څخه یې نه وو ایستلی چې بل کس دغشي په ویشتلو سره قتل کړنو داددوهم کس دی ولی چې په حقیقت کې دوهم کس دا ښکار کړی دی اودنبی کریم ﷺ ارشاددی الصید لمن اخذه (یعنی ښکاردهغه دی چاچې ونیو )اودا ښکارحلال دی ولی چې اول خوداله حیزامتناع څخه نه دی ایستلی لهذا دهغه ذبح اضطراري (یعنی دجسم په کومه حصه کې زخم کول )معتبردی کوم چې ددوهم کس په ویښتلو سره حاصله شوه .

(۱۸)اوکه اول په ویشتلو سره هغه داسي کمزوری کړچې اوس هغه په حیزامتناع (دخپل ځان دحفاظت قابل ) نه شو یاتي بیابل کس هغه په ویښتلوسره قتل کړنو دا ښکارداول دی ،اوداحلال نه دی ولی چې کیدای شي چې ددې مرګ دي ددوهم په ویښتلوسره حاصل شوی وي اوددوهم کس ویښتل ذبح اضطراري ده حال داچې ددې خوذبح اختیاري اوس مقدوره ده ولی چې داول په ویښتلوسره اوس هغه په تښتیدلو یاالووتلوسره نه شي کولی لهذا ذبح اضطراري اعتبارنشته .

(۱۹)اوپه دې دوهم صورت کې دوهم کس داول لپاره دښکارد قیمت ضامن دی ولی چې ددوهم په ویښتلوسره دهغه مملوک ښکارتلف شوالبته له قیمت څخه به دزخم په اندازه کمیږي یعنی دښکارپه قیمت کې چې داول په زخمي کولوسره څومره نقصان راغلی دی هغه به کمیږي ولی چې ثانی دوال زخمي ښکار تلف کړی دی لهذا پرهغه به ضمان هم دزخمي ښکاروي .

(۲۰)یعنی دماکول اللحم اوغیرماکول اللحم دواړو قسمو حیوانانو ښکارجائزدی ولی چې دښکاري دماکول اللحم حیوان ښکارکول خوله غوښي اوبقیه اجزاء څخه دانتفاع سبب دی اودغیرماکول اللحم ښکارکول له پوستکی ،ویښتانو ،ښکرونو وغیره څخه دانتفاع سبب دی کوم چې جائزاموردي لهذاددواړو قسمو حیوانانو ښکارکول جائزدی .

## كتاب الرهن

### داباب دګروي په بیان کې دی

له کتاب الصید څخه وروسته دکتاب الرهن دراوړلو وجه داده چې له صیداورهن دواړو څخه مقصود دسبب مباح په ذریعه سره دمال تحصیل دی .رهن لغة حبس یعنی دکوم شي منع کولوته ویل کیږي قال الله تعالی (كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ )(هرنفس به په خپلو اعمال کفریه کې محبوس وي )اوپه شریعت کې داسي مالی شی دکوم حق په عوض کې بندولوته ویل کیږي له کوم څخه چې دحق وصولي ممکنه وي .

ګروشوي شی ته رهن (من قبیل اطلاق المصدروارادة المفعول )اومرهون ویل کیږي اومرتهن رهن اینبودنکي اوراهن رهن ورکونکي ته ویل کیږي .

(۱)هو حبس شيء بحق يمكن استيفاؤه منه كالدين (۲)ولزم بإيجاب وقبول (۳)وتم بقبضه محوزا مفرغا مميزا (۴)والتخلية فيه وفي البيع قبض (۵)وله أن يرجع عن الرهن ما لم يقبضه (۶)وهو مضمون بالأقل من قيمته ومن الدين (۷)فلو هلك وقيمته مثل دينه صار مستوفيا دينه ,وإن كانت

أَكْثَرَ مِنْ دَيْنِهِ فَالْفَضْلُ أَمَانَةٌ وَبِقَدْرِ الدَّيْنِ صَارَ مُسْتَوْفِيًا ,وَإِنْ كَانَتْ أَقَلَّ صَارَ مُسْتَوْفِيًا بِقَدْرِهِ وَرَجَعَ الْمُرْتَهِنُ بِالْفَضْلِ (۸) وَلَهُ أَنْ يُطَالِبَ الرَّاهِنَ بِدَيْنِهِ وَيَحْبِسَهُ بِهِ (۹) وَيُؤْمَرُ الْمُرْتَهِنُ بِإِحْضَارِ رَهْنِهِ وَالرَّاهِنُ بِأَدَاءِ دَيْنِهِ أَوَّلًا

**ترجمه** :اوهغه منع كول دي دكوم شي دداسي حق په بدله كې دكوم چې وصول كول له هغه (رهن) څخه ممكن وي لكه قرض ،اولازميږي په ايجاب اوقبول ،اومرتهن په قبضه سره په داسي حال كې چې هغه مجتمع وي اومفرّغ اومميزوي ،اوتخليه كول په رهن كې اوپه بيع كې دقبضي په حكم كې دي ،اوراهن لره جائزده چې رجوع وكړي له رهن څخه ترڅوچې مرتهن هغه قبض نه كړي ،اوهغه مضمون دى له دين اوقيمت څخه دكمترپه عوض كې ،نوكه هغه شى هلاک شواودهغه قيمت دهغه دپوربرابروي نومرتهن دخپل دين وصول كونكى شواوكه قيمت زيات وي دهغه له دين څخه نوزائدامانت دى اوبقدردين وصو ل كونكى شواوكه قيمت كم وي نوبقدرقيمت وصول كونكى شواومرتهن به وصول كوي زائد ،اومرتهن لره جائزده چې مطالبه وكړي له راهن څخه دخپل دين اوبندي كولى شي هغه ددين په وجه سره ،اوامربه كيږي مرتهن ته دمرهون دحاضرولواوراهن ته دهغه ددين داداء كولوله دي څخه وړاندي.

**تشريح** :(۱)رهن په لغت كې حبس الشئ يعني دكوم شى منع كولوته ويل كيږي اوشرعي تعريف يې مصنف ﷫ په دي ډول كړى دى حبس الشئ بحق يمكن استفياؤه منه ،يعني دكوم شي منع كول دداسي حق په بدله كې چې دهغه وصول كول له رهن څخه ممكن وي مثلاً دزيدپربكرزرروپۍ قرض دي زيدددي قرض په بدله كې دبكربندوق درهن په ډول له ځان سره كښيښودنوكه په خپل وخت بكردزيدقرض اداء نه كړنوزيدله دي بندوق څخه خپل قرض وصول كولاى شي.

(۲)رهن په ايجاب اوقبول سره منعقدكيږي ولى چې رهن هم يوعقددى نودنوروعقودوپه شان رهن هم په ايجاب اوقبول سره منعقدكيږي ،بنه به داواى چې مصنف ﷫ دلزم بايجاب وقبول پرځاى ينعقدبايجاب وقبول ويلي واى ولى چې رهن په ايجاب اوقبول سره منعقدكيږي لازميږي نه .اوپه قبضه سره رهن تام اولازميږي قبضه دلزوم رهن لپاره شرط ده لقوله تعالى (فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ)باري تعالى دلته رهن دمقبوض والى په صفت سره متصف كړى دى اوكله چې دنكري وصف بيانيږي نوهغه عام وي نومعلومه شوه چې رهن له وصف قبض سره مشروع دى.

(۳)قوله وقبضه اى لزم الرهن بقبضه ،ليكن په ځينونسخوكې ويتم بقبضه دى اومعنى همدا صحيح ده ،يعنى كله چې مرتهن پررهن قبضه وكړي نوعقدرهن په دريوشرطونوسره تاميږي يوداچې رهن به محوز(يعني مجتمع غيرمتفرق وي نوميوه پردرختوبغيرله درختواوكښت پرځمكه بغيرله ځمكې په رهن اينبودل صحيح نه دي ولى چې محوزنه دي )وي ،اودوهم شرط دادى چې رهن به مفرغ (يعني مشغول بحق راهن به نه وي مثلاً داسي كورپه رهن اينبودل جائزنه دي په كوم كې چې راهن په خپله اوسيږي يايې خپل سامان په هغه كې اينبى وي ولى چې مفرغ نه دى )وي ،اودريم شرط دادى چې رهن به مميز(يعني رهن به مشاع نه وي مثلاً دمشترک غلام نصف ياثلث درهن په ډول سره اينبودل جائزنه دي ولى چې رهن مميزنه دى )وي.

(۴)اوتخليه په رهن اوبيع كې قبضه شمارل كيږي يعنى كه راهن په مرهون شي اومرتهن كې داسي تخليه وكړي چې كه هغه داپه خپله قبضه كې اخيستل وغواړي نوورى يې شي ،ياباتع په همدي شان سره خپل خرڅ كړى شى دمشترى مخ ته كښيښنودچې كه هغه په هغه قبضه كول وغواړي نوقبضه كولى شي نودادي دواړولره قبضه شمارل كيږي ولى چې تخليه له تسليم يعنى رفع الموانع عن القبض څخه عبارت ده اوتسليم لره حكم بالقبض ضروري دى لهذاتخليه قبضه شمارل كيږي .

ف:نن صبادرهن يونوى صورت داهم متعارف شوى دى چې شى مرهون دمرتهن په قبضه كې نه وركول كيږي ،بلكه هغه بدستوردراهن په قبضه كې پاتي كيږي اوهغه دااستعمالوي ليكن په سركاري كاغذاتوكې داليكل كيږي چې فلانى شى (مثلاموټر)له مرتهن سره رهن دى دكوم چې نتيجه داراوځي چې كه مرتهن ته ترمقرروخت پوري خپل قرض وصول نه شي نوهغه لره داحق حاصل دى چې هغه داشى مرهون په بازاركې خرڅ كړي اوخپل قرض وصول كړي ،دي ته په عربي كې الرهن السائل يعنى بهيدونكى رهن ويل كيږي ،درهن داصورت بايد جائزشي ولى چې په دي صورت كې چې كله مرتهن په كاغذاتوقبضه وكړه نوګوياهغه په مرهون شي باندي قبضه وكړه له دي څخه وروسته هغه مرهون شى راهن ته دعارية استعمال لپاره وركړلهذاداصورت بايد جائزشي ،البته مرهون شى ترڅوچې دراهن په استعمال كي وي ترهغه وختـه پوري به دهغه په ضمان كې وي (ماخوذازتقريرترمذى :۱/۱۷۸)

(۵)ترڅوچې مرتهن پررهن قبضه نه وي كړي نوراهن لره اختياردى كه يې خوښه وي نوشى مرهون دي مرتهن ته وسپاري اوكه يې خوښه وي نوله رهن څخه دي رجوع وكړي ولى چې دعقدرهن لزوم دمرتهن پرمرهون په قبضه كولوسره كيږي كوم چې تراوسه نه ده شوي لهذاداعقدپرراهن لازم نه دى اوله غيرلازم عقدڅخه رجوع كول صحيح ده .

(۶)كله چې راهن مرهون شى مرتهن ته حواله كړي نواوس مرهون دمرتهن په ضمان كې داخليږي (يعنى دهلاكت په صورت كې به مرتهن ضامن وي )ولى چې درهن په مضمون والى دصحابه كرامواجماع ده ،نوكه مرهون له مرتهن سره دهغه له تعدى بغيرهلاك شونومرهون له خپل قيمت اوقرض څخه په اقل سره مضمون دى يعنى كه دمرهون قيمت كم وي نومرتهن به دقيمت په اندازه ضامن وي اوكه قرض دمرهون له قيمت څخه كم وي نومرتهن به دقرض په اندازه ضامن وي اودزائد قيمت ضامن به نه وي ولى چې مرتهن به دهمدومره ضامن وي له څومره څخه چې دده قرض وصول كيداى شي اوهغه دقرض په اندازه دى .

(۷)نوكه مرهون هلاك شودمرتهن په لاس كې اودمرهون قيمت اوقرض سره برابروونودابه ګڼل كيږي چې مرتهن خپل حق وصول كړولى چې دمرهون قيمت دمرتهن له ذمې سره متعلق وو ،اوكه دمرهون قيمت له قرض څخه زائدوي نوزائده حصه به دمرتهن په لاس كې امانت وي ولى چې دمرهون شى همدمره حصه مضمونه ده له څومره څخه چې وصولي كيداى شي ،اوكه دمرهون قيمت له قرض څخه كم وي نودقيمت په اندازه به له راهن څخه قرض ساقطيږي اوپاتي قرض به مرتهن له راهن څخه اخلي ولى چې دقرض وصولي دمرهون

دماليت په اندازه سره وي يعنى دمرهون چې څومره قيمت وي قرض به هغومره وصول شمارل كيږي دباقي پاتي قرض په باره كې به مرتهن په راهن رجوع كوي.

(۸)مرتهن دوخت په پوره كيدلوسره له راهن څخه دخپل قرض مطالبه كولى شي ولى چې اصل حق خودمرتهن دراهن پرذمه پاتي دى لهذامرتهن ته دمطالبي حق شته اوكه راهن دمرتهن حق نه اداء كوي بلكه تال مټول كوي نوبندي كولى يې هم شي ولى چې دچادحق په اداء كولوكې تال مټول كول ظلم دى اوبند دظلم بدله ده.

(۹)كله چې مرتهن دخپل قرض مطالبه وكړي نوده ته به دمرهون شي دحاضرولوحكم كيږي ولى چې پررهن قبضه دوصولولوقبضه ده نوداجائزنه ده چې دوصولولوله قبضي سره سره دقرض مطالبه وكړي اوپرهغه هم قبضه وكړي ،بياچې كله مرتهن مرهون شى حاضركړي نوراهن ته به حكم وركول كيږي چې لومړى ته دده قرض اداء كړه ولى چې مرهون متعين شى دى په دي كې دراهن حق متعين دى اودمرتهن په دراهموكې حق متعين نه دى ولى چې هغه غيرمتعين دي لهذادبرابري دثابتولولپاره به لومړى راهن ته دقرض داداء كولوحكم كيږي ترڅودمرتهن حق هم متعين شي.

(۱۰)فَإِنْ كَانَ الرَّهْنُ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ لَا يُمَكِّنُهُ مِنَ الْبَيْعِ حَتَّى يَقْضِيَهُ الدَّيْنَ فَإِذَا قَضَى سَلَّمَ الرَّهْنَ (۱۱) وَلَا يَنْتَفِعُ الْمُرْتَهِنُ بِالرَّهْنِ اسْتِخْدَامًا وَسُكْنَى وَلُبْسًا وَإِجَارَةً وَإِعَارَةً (۱۲) وَيَحْفَظُهُ بِنَفْسِهِ وَزَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ وَخَادِمِهِ الَّذِي فِي عِيَالِهِ (۱۳) وَضَمِنَ بِحِفْظِهِ بِغَيْرِهِمْ وَبِإِيدَاعِهِ وَتَعَدِّيهِ قِيمَتَهُ (۱۴) وَأُجْرَةُ بَيْتِ حِفْظِهِ وَحَافِظِهِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ وَأُجْرَةُ رَاعِيهِ وَنَفَقَةُ الرَّهْنِ وَالْخَرَاجُ عَلَى الرَّاهِنِ

**ترجمه**: اوكه مرهون شى دمرتهن په قبضه كې وي نوقدرت دي نه وركوي راهن ته دخرڅولوترڅوچې هغه دده قرض اداء نه كړي نوكله چې هغه قرض اداء كړي نومرهون شى دي هغه ته وسپاري ،اوفائده دي نه اخلي مرتهن له مرهون څخه دخدمت اخيستلواوداوسيدلواوداغوستلواوپه اجاره دوركولواوپه عارية دوركولو،اوحفاظت دي كوي دمرهون په خپله اوپه خپله ښځه اوپه خپل اولاداوپه خپل هغه خادم سره كوم چې دده په عيال كې دى ،اوضامن دى په حفاظت كولوله دي څخه دعلاوه په ذريعه سره اوودويعت په ذول سره په وركولواوپه تعدى كولوسره دهغه دقيمت ،اواجرت دمرهون دحفاظت دكوراودهغه دمحافظ پرمرتهن دى اواجرت دمرهون دشپون اوخرچه دمرهون اوخراج دراهن پرذمه دى.

**تشريح**: (۱۰)كه رهن دمرتهن په قبضه كې وي نوترڅوچې دهغه له قيمت څخه خپل قرض وصول نه كړي ترهغه وخته دي راهن درهن دخرڅولوقدرت نه وركوي ولى چې درهن حكم ددين تراداء كولوپوري رهن له مرتهن سره محبوس اينبودل دي حال داچې دراهن هغه لره خرڅول داحبس باطلوي ،كله چې راهن قرض اداء كړي نومرتهن ته به ويل كيږي چې رهن راهن ته وسپاره ولى چې دمرتهن دين كوم چې درهن له تسليمولو څخه مانع وو هغه اوس پاتي نه شو.

(۱۱)مرتهن دي له مرهون شي څخه نفع نه اخلي نوكه مرهون غلام وونوپه هغه دي خدمت نه كوي اوكه مكان وونوپه هغه كې دي نه اوسي اوكه جامه وه نونه دي په تن كوي اونه دي مرهون شى چاته په كرايه وركوي ولى

چې مرتهن ته صرف دمرهون شي له خپل ځان سره منع کولو حق شته نه له هغه ځخه دنفع اخیستلو ،همداشان مرهون شی چاته په عاریه سره ورکول هم جائزنه دی ولی چې کله مرتهن په خپله له مرهون شی ځخه نفع نه شي اخیستلای نوبل ځوک هم پرهغه نه شي مسلط کولای .

فائده :مرتهن لره له مرهون شی ځخه نفع اخیستل جائزنه دي اګرکه راهن دهغه اجازت ورکړي ولی چې دمرتهن په حق کې داسود جوړیږي اوسود دچاپه اجازه ورکولوسره نه رواکیږي نن صباغالبه داده چې خلک دنوورځمکې پررهن ددي لپاره اخلي ترځودهغې له حاصلاتو ځخه نفع حاصله کړي نواګرکه دعقدپروخت ددي شرط ونه لګول شي بیاهم ناجائزده ولی چې المعروف کالمشروط دی .

ف:مولاناخالدسیف الله رحماني صاحب فرمایي :دحنابله ویه نزدپه دي مسئله کې ډیرتفصیلات هم شته اودمعمول مطابق داقوالوکثرت اواختلاف هم .حاصل دادي چې (۱)له رهن ځخه دنفع اخیستلوشرط صحیح نه دی .شرط فاسددی (۲)مال مرهون اخراجاتومتقاضی دی اوکه دسورلی لائق یاشیدي کونکی حیوان صورت وي نودهغه اخراجات پوره کول اوله هغه ځخه نفع اخیستل جائزدي اګرکه رهن ایښودونکی اجازت نه وي ورکړی (۳)داسي شیان کوم چې دحیوانانوله قبیلي ځخه نه وي لکه مکانات وغیره ،له هغوئ ځخه نفع اخیستل جائزنه ده .نه بلااجازته اونه دهغه په اجازت سره ،هودمکان دمروجه کرایه په اداء کولوسره مرتهن په خپله په دي کې قیام کولای شي

له دي تفصیلاتو ځخه وروسته عرض دی چې دشریعت مزاج ته نږدي رأیه هغه معلومیږي کومه چې دامام احمدبن حنبل دمکاناتووغیره په باره کې ده .په اصولي ډول سره پرمال مرهون دمالک په اجازت سره هم نفع اخیستل باید جائزنه شي ولی چې داکل قرض جرنفعافهوربوا(له کوم قرض ځخه چې نفع حاصله کړای شي هغه سوددی )مصداق معلومیږي ،اودسوداخیستل اوورکول په اجازت سره هم صحیح نه دي.

په دي وجه له مال مرهون ځخه دانتفاع په سلسله کې داتفصیل دی چې که خرخونکی له مال رهن ځخه داستفادي شرط نه وولګولی ،له وړاندي ځخه ددي کس دنوروخریدارانوله مال مرهون ځخه انتفاع معلومه اومعروفه نه وه اوپه دي علاقه کې هم له مال مرهون ځخه دانتفاع رواج اوچلن نه وویاخودخریدارپه اجازه سره له دي ځخه استفاده کیدلای شي اوکه له مذکوره دریوخبروځخه یوه خبره متحققه شوه نوانتفاع جائزنه ده وولی چې دخریداوفروخت په معامله کې دیوفریق له طرف ځخه داسي اضافه مشروطول دکومي چې هغه کومه معاوضه نه اداء کوي ربواده اودفقهاءپه نزدمعروف هم دمشروط په حکم کې دی المعروف کالمشروط شرطالکه چې دعلامه ابن همام رحمه الله بیان دی :والغالب من احوال الناس انهم انمایریدون عندالدفع الانتفاع ولولاه لمااعطاه الدراهم وهو بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهومایعین المنع (فتح القدیر:۹/۷۹)(جدیدفقی مسائل :۱۵۸/۶)

ف:که له عقدرهن ځخه وروسته دقرض له اداء کولووړاندي راهن غائب شي اودهغه کوم وارث هم نه وي نومرتهن دي درهن له قیمت ځخه خپل قرض وصول کړي ،دباقی مرهون حکم دلقطي دی لهذاهغه پرفقراء مصرفول صحیح دي (ماخوذازامدادالاحکام:۴۹۴/)

(۱۲)مرتهن به درهن حفاظت په خپله كوي يادي په خپله ښځه اولوى اولادسره كوم چې دده په عيال كې شامل وي كوي اوپادي په خپل داسي غلام سره كوم چې دده په عيال كې شامل وي (دچاپه عيال كې له شامليدلوڅخه مراددادى چې يوځاي ګذړوندسره كوي )ولى چې عادة خلګ په همدي كسانوسره دشي حفاظت كوي لهذادخلګودعادت په وجه سره په مذكوره بالاافرادوسره درهن حفاظت كول صحيح دى .

(۱۳)كه مرتهن په كوم داسي چاسره درهن حفاظت وكړكوم چې دده په عيال كې شامل نه وه ،يايې مرهون شى چاته په امانت وركړيامرتهن په تعدى كولوسره په خپله هغه تلف كړنودرهن دهلاكت په صورت كې مرتهن درهن دقيمت ضامن دى ولى چې په مذكوره دريوسره صورتونوكې مرتهن تعدى كونكى شمارل كيږي .

(۱۴)په كوم كوركې چې دمرهون حفاظت كيږي دهغه كرايه اودمرهون دمحافظ مزدوري دمرتهن پرذمه دي ولى چې دمرهون حفاظت پرمرتهن واجب دى لهذاپرحفاظت چې كومه خرچه راځي هغه به دمرتهن پرذمه وي ،اوكه مرهون مال څاروي وي نودشپون تنخواه اودمرهون نان نفقه دراهن پرذمه دي ،همدشان كه مرهون خراجي ځمكه وي نودهغې خراج هم دراهن پرذمه دى ،كوم كس قسم خرچه پرراهن اوكوم قسم خرچه پرمرتهن ده ،په دي سلسله كې قاعده كليه داده چې دمرهون دمصلحت اوبقاء لپاره چې كومي خرچې ته احتياج وي هغه دراهن پرذمه ده اوكومه خرچه چې دمرهون له حفاظت سره متعلقه وي هغه دمرتهن پرذمه ده .

## بَابُ مَا يَجُوزُ ارْتِهَانُهُ وَالارْتِهَانُ بِهِ وَمَا لَا يَجُوزُ

داباب دهغوشيانوپه بيان كې دى دكوموچې درهن په ډول سره اېښودل اودكوموپه عوض كې چې رهن اېښودل جائزوي اوكوم چې جائزنه وي .

كله چې مصنف رحمه الله درهن له اجمالي بيان څخه فارغ شونوپه تفصيل يې شروع وكړه چې كوم شيان درهن په ډول اېښودل اودكوموشيانوپه عوض كې رهن اېښودل جائزدي اوكوم كوم جائزنه دي ،ولى چې تفصيل له اجمال څخه وروسته راځي .

(۱)لَا يَجُوزُ رَهْنُ الْمُشَاعِ (۲)وَلَا الثَّمَرَةِ عَلَى النَّخْلِ دُونَهَا وَلَا زَرْعٍ فِي الْأَرْضِ دُونَهَا وَلَا نَخْلٍ فِي الْأَرْضِ دُونَهَا (۳)وَالْحُرِّ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ وَأُمِّ الْوَلَدِ (۴)وَلَا بِالْأَمَانَاتِ (۵)وَبِالدَّرَكِ (۶)وَالْمَبِيعِ (۷)وَإِنَّمَا يَصِحُّ بِدَيْنٍ وَلَوْ مَوْعُودًا (۸)وَبِرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ وَثَمَنِ الصَّرْفِ وَالْمُسْلَمِ فِيهِ (۹)فَإِنْ هَلَكَ صَارَ مُسْتَوْفِيًا

**ترجمه** :صحيح نه ده په رهن اېښودل دمشاع اوپردرختولګيدلي ميوي له درختوبغيراودځمكي كښت له ځمكي بغيراوپه ځمكه كې درخته بغيرله ځمي اودازاداومدبراوام ولداونه دامانت په عوض ،اونه رهن بالدرک اونه رهن بعوض مبيع اوصحيح دى دقرض په عوض كې اګركه هغه موعودوي ،اودبيع سلم درأس المال په عوض اودثمن صرف په عوض اودمسلم فيه په عوض كې ،نوكه هلاک شونوشومرتهن دخپل حق وصولونكى .

**تشريح** :(۱)شى مشاع (مشترک غيرمنقسم شى )له چاسره په رهن اېښودل جائزنه دى ولى چې له رهن څخه مقصوداستحكام اومضبوطي ده ترڅوراهن له قرض څخه انكارونه كړي اواستحكام لره ضروري ده چې رهن

له مرتهن سره مسلسل محبوس وي او مرتهن له ددين تر اداء كولو پوري د رهن د محبوس ولو حق وي حال دا چې شي مشاع مسلسل محبوس نه شي اينبودل كيدلای ولې چې په دي كې د راهن د بل شريک حق دی كوم چې په مرهون كې د خپل حق نوبت غواړي مثلاً هغه غواړي چې يوه ورځ مرهون شی له ماسره وي او يوه ورځ له مرتهن سره ،ظاهره ده چې په دي سره د مرتهن دائمي قبضه فوتيږي .

ف:دامام شافعي رحمه الله په نزد دشي مشاع په رهن سره اينبودل جائزدي ولې چې دده په نزد د رهن حكم دا دی چې هغه خرڅ كړای شي او شی مشاع خرڅيدلای شي نو هغه د رهن په ډول سره اينبودل هم جائزدی.

(۲)قوله والثمرة على النخل اى لايصح رهن الثمرة على النخل ،يعنی دداسي ميوي په رهن سره اينبودل كومه چې پر درختووي بغيرله درختوڅخه جائزنه دي ولې چې دامحوزنه دي .همداشان كښت بغيرله ځمكې څخه او درختي بغيرله ځمكې څخه په رهن اينبودل جائزنه دي ولې چې دا هم محوزنه دي كمامر، همدا راز مرهون له داسي شي سره خلقة متصل دی كوم چې مرهون نه دی نو دا د مشاع په درجه كې دی .

(۳)قوله والحروالمدبروالمكاتب اى لايصح رهن الحروالمدبروالمكاتب ،يعنی آزادكس ،مدبر،مكاتب او ام ولده له چاسره په رهن اينبودل جائزنه دي ولې چې آزادكس خوله سره مال نه دی او باقی مال دي مگر په دوئ كې د حريت دپيداكيدلو په وجه سره له دوئ څخه وصوليابي ممكنه نه ده حال دا چې رهن دوصوليابي لپاره اينبودل كيږي لهذا مذكوره شيان په رهن اينبودل جائزنه دي .

(۴)قوله ولابالامانة اى لايصح الرهن بالامانة الخ ،يعنی دامانت په فهرست كې دشامليدونكوشيانوپه عوض رهن اينبودل صحيح نه دی لكه چې يوشی له چاسره په وديعت اينبودل شوی وي او له مودَع (له چاسره چې امانت اينبودل شوی وي )څخه دهغه په عوض كې رهن وغوښتل شي .ياكوم شی دعاريت (كوم څوک دكوم شي دمنافعو بغيرله عوض څخه مالكولوته عاريت ويل كيږي )په ډول سره چاته وركړل شوی وي اوله مستعير(چاته چې شی عارية وركول شوی وي )څخه دهغه په عوض كې رهن وغوښتل شي نو دا صحيح نه دی وجه داده چې رهن د دين مضمون په عوض كې اينبودل صحيح دي حال دا چې مذكوره شيان مضمون نه دي ولې چې كه مال وديعت له مودَع يامستعار(په عاريه اخيستل شوی شی )له مستعيرڅخه هلاک شي نو دا كسان ضامن نه دي .

(۵)قوله وبالدرک اى لايصح الرهن بالدرک ،يعنی رهن بالدرک صحيح نه دی ،درک د خساري او نقصان په معنی سره .كله په دي ډول سره وي چې كوم كس كوم شی اخلي مگر هغه ويريږي چې چيرته ددي كوم مستحق بنكاره نه شي نو يو دريم كس ده ته وايي چې ته بې فكره اوسه دمستحق دښكاركيدلو ذمه واريم كه مستحق ښكاره شو نو زه به له بائع څخه ستا ثمن واپس اخلم ،دي ته كفالت بالدرک ويل كيږي او دا جائزدی ليكن كه دادريم كس ددي احتمالي استحقاق په عوض كې له مشتري سره كوم شی په رهن كښيږدي نو دا جائزنه دی ولې چې رهن ددي لپاره اينبودل كيږي ترڅو دضرورت پروخت له هغه څخه وصولي وكړای شي دلته پرضامن كوم واجب حق نشته ولې چې تراوسه دمستحق دنه ښكاركيدلو په وجه سره پربائع دمشتري كوم حق نه دی لازم شوی نو پرضامن هم كوم حق لازم نه دی نو وصولي به دكوم شي وي .

(۶) قوله وبالمبيع اى لايصح الرهن بالمبيع ،يعنى كه بائع دمبيع په عوض كې له مشتري سره كوم شى رهن كښيښودنه داجائزنه دى ولى چې مبيع مضمون بغيره دى اودمضمون بغيره په عوض كې رهن ايښودل صحيح نه دى ،مضمون بغيره هغه شي ته ويل كيږي دكوم په هلاكيدلو سره چې مثل ياقيمت هيڅ شى نه واجبيږي البته دهغه په عوض كې چې كوم شى حاصليدونكى ووهغه اوس نه حاصليږي لكه دبائع په قبضه كې چې مبيع دى اوهغه له ده سره هلاک شي نوپرده هيڅ ضمان نه واجبيږي البته دبيع [illegible] وجه سره ثمن ساقطيږي نودمبيع په عوض كې رهن ايښودل صحيح نه دي ولى رهن چې دكوم شي په عوض كې دى هغه مضمون بغيره دى .

(۷) يعنى رهن ايښودل جائزنه دي مگردد ين مضمون (مضمون داسم مفعول صيغه ده هغه دين دكوم چې مستقرض ضامن وي )په بدله كې ولى چې رهن ددين دوصولي لپاره ايښودل كيږي نوكه دين نه وي نووصولي به دكوم شي وي .اوددين په عوض كې رهن ايښودل صحيح دي اگركه هغه دين موعودوي مثلاً يوكس له بل سره وعده وكړه چې زه به تاته زردرهمه قرض دركړم ليكن تراوسه يې وركړي نه دي اوددي موعودقرض په بدله كې هغه رهن كښيښودنودارهن جائزدى ولى چې دخلگوعمومي عادت دادى چې لومړى رهن ايږدي بياقرض وركوي نوكه داناجائزوگڼل شي نودقرض دروازه به وتړل شي لهذاموعودقرض ته دموجودپه درجه وركول سره داجائزگرځول شوى دى .

(۸) قوله وبرأس مال السلم وثمن الصرف اى يصح اخذ الرهن برأس مال السلم ولمن الصرف ،يعنى دبيع سلم درأس المال په عوض كې اودبيع صرف دثمن په عوض كې اودبيع سلم دمسلم فيه په عوض كې رهن ايښودل صحيح دي .دامام زفر رحمه الله په نزدصحيح نه دي ولى چې درهن حكم دحق وصولول دي حال داچې ددي شيانوپه بدله كې درهن ايښودلوپه صورت كې دحق وصولول نه بلكه په حق كې تبديلي راځي يعنى رأس المال بل شى دى اودرهن په ايښودلو سره په بدله كې كوم بل شى وركول كيږي .زموږدليل دادى چې په مذكوره شيانواورهن كې په ذاتى لحاظ سره اگركه مجانست نشته مگرمن حيث المالية مجانست شته اوله رهن ځخه وصولي من حيث المالية وي لهذادا په حق كې تبديلي نه بلكه دحق وصولي ده ،پاتي شوعين رهن هغه خوله مرتهن سره امانت دى .

(۹) كه دبيع صرف دثمن يادبيع سلم درأس المال په عوض كې كوم شى رهن كښيښودل شونوكه په همدي مجلس كې قبل الافتراق رهن هلاک شي نوبيع صرف اوبيع سلم تاميږي ،كه دمرهون قيمت له ثمن صرف يارأس المال سره برابروي نوحكمامرتهن دخپل حق وصولونكى گڼل كيږي ولى چې من حيث المالية اتحادجنس موجوددى اوقبضه هم متحققه شوي ده .

(۱۰) وَلِلْأَبِ أَنْ يَرْهَنَ بِدَيْنٍ عليه عَبْدًا لِطِفْلِهِ (۱۱) وَصَحَّ رَهْنُ الْحَجَرَيْنِ وَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ فَإِنْ رَهَنَتْ بِجِنْسِهَا وَهَلَكَتْ هَلَكَتْ بِمِثْلِهَا مِنْ الدَّيْنِ وَلَا عِبْرَةَ لِلْجَوْدَةِ (۱۲) وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا على أَنْ يَرْهَنَ الْمُشْتَرِي بِالثَّمَنِ شيئا بِعَيْنِهِ فَامْتَنَعَ لم يُجْبَرْ وَلِلْبَائِعِ فَسْخُ الْبَيْعِ إلَّا أَنْ يَدْفَعَ الْمُشْتَرِي الثَّمَنَ حَالًّا أو قِيمَةَ الرَّهْنِ رَهْنًا (۱۳) ,وَإِنْ قال لِلْبَائِعِ أَمْسِكْ هذا الثَّوْبَ حتى أُعْطِيَكَ الثَّمَنَ فَهُوَ رَهْنٌ

**ترجمه** :اوپلارلره جائزده چې په رهن كښيږدي دخپل قرض په عوض كې دخپل زوى غلام .اوصحيح دى په رهن ايښودل دسرواوسپينوزرواومكيلي اوموزني شيانونوكه رهن ايښودل شوى وودهغه دجنس په عوض

كې نو هلاكيږي همدمروه اندازه له دين څخه او اعتبار نشته دښوا وكوته و ،اوچاچې خرڅ كړغلام په دي شرط چې په رهن به ايږدي مشتري دثمن په عوض كې يو معين شى او هغه منع شونونه شي مجبوره كيداى او بائع ته اختيار دى چې بيع فسخ كړي مګر داچې وركړي مشتري ثمن فى الحال يادرهن قيمت په رهن كښيږدي ،اوكه يې وويل بائع لره چې كښيږده داجامه ترڅوچې زه تاته اداء كړم ثمن نو هغه رهن دى .

**تشريح** ،(۱۰)پلارلره جائزده چې هغه دخپل نابالغ زوى غلام دخپل قرض په عوض كې له قرضخواه سره په رهن كښيږدي ولى چې پلارلره دزوى پرمال باندي ولايت حاصل وي دكوم په وجه سره چې هغه دهغه مال له چاسره دامانت په ډول ايښودلاى شي حال داچې دامانت په صورت كې دمال حفاظت ډيرنشته ولى چې كه هلاك شي نوپرمودَع ضمان واجب نه دى حال داچې درهن ايښودلوپه صورت كې له امانت څخه حفاظت ډيردى ولى چې دهلاكيدلوپه صورت كې مرتهن دهغه ضامن وي لهذا دنابالغ مال له چاسره درهن په ډول په طريقه اولى ايښودلاى شي .

(۱۱)اودحجرينو (يعنى دراهم اودنانيرو )اودمكيلي اوموزوني شيانوپه رهن ايښودل جائزدي ولى چې له رهن څخه مقصود دحق وصوليابي ده كوم چې له مذكوره شيانو څخه وصول كيداى شي ،نوكه مذكوره شيان دخپل جنس په عوض كې رهن ايښودل شوي وي اوهلاك شول مثلاً ديومن غنمو قرض په بدله كې يو من غنم درهن په ډول سره كښيښودل شول اومرهون هلاك شونوددي يومن غنموپه اندازه دين (يومنم غنم )هم هلاك (ساقط)كيږي اګركه مرهون شى اودين په ښه والي اوجوړښت كې سره مختلف وي ولى چې په اموال ربويه كې له خپل جنس سره دمقابلي پروخت جودت غيرمعتبردى.

(۱۲)كه چاپه دي شرط غلام خرڅ كړچې مشتري به دهغه دثمن په عوض كې كوم معين شى درهن په ډول سره ايږدي نوداجائزدى اوس كه مشتري ددي شي معين له رهن ايښودلو څخه منع شونومشتري به نه مجبوره كيږي ولى چې عقدرهن نه دى تام شوى په دي وجه چې عقدرهن په قبضه سره تاميږي كوم چې دلته نه ده متحقق شوي ،البته بائع لره اختياردى كه يې خوښه وي نودرهن په پرېښودلودي راضي شي اوكه يې خوښه وي نوبيع دي فسخ دي كړي ولى چې په بيع كې وصف مرغوب فيه (يعنى رهن ايښودل )فوت شو ،همداشان كه مشتري دمبيع ثمن نقدوركړل نوهم بائع لره دبيع دفسخ كولواختيارنشته ولى چې مقصود حاصل شواويامشتري دبائع له طرف څخه دشرط كړل شوى شى مرهون قيمت درهن په ډول سره كښيږدي نوبائع لره دفسخ بيع اختيارنشته ولى چې دمشروط رهن مقصودله قيمت څخه حاصليږي.

(۱۳)كه چاكومه جامه ددراهموپه عوض كې واخيسته بيامشتري بائع ته وويل ته داجامه له ځان سره كښيږده ترڅوچې زه تاته ثمن دركړم نوداجامه له بائع سره رهن ده ولى چې اګركه ده درهن لفظ نه دى ويلي مګرپه دي كلام كې درهن معنى موجوده ده ولى چې ده وويل چې دثمن ترورکولويې كښيږده ،اوهمدادرهن حقيقت دى اوپه عقودوكې دمعانى اعتبار وي .

(۱۴) وَلَوْ رَهَنَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفٍ لَا يَأْخُذُ أَحَدَهُمَا بِقَضَاءِ حِصَّتِهِ كَالْمَبِيعِ (۱۵) وَلَوْ رَهَنَ عَيْنًا عِنْدَ رَجُلَيْنِ صَحَّ وَالْمَضْمُونُ عَلَى حِصَّةِ دَيْنِهِ فَإِنْ قَضَى دَيْنَ أَحَدِهِمَا فَالْكُلُّ رَهْنٌ عِنْدَ الْآخَرِ (۱۶) وَبَطَلَ بَيِّنَةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ رَهَنَهُ عَبْدَهُ وَقَبَضَهُ (۱۷) وَلَوْ مَاتَ رَاهِنُهُ وَالْعَبْدُ فِي أَيْدِيهِمَا وَبَرْهَنَ كُلُّ وَاحِدٍ عَلَى مَا وَصَفْنَا كَانَ فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُهُ رَهْنًا بِحَقِّهِ

**ترجمه**: اوكه يې رهن كښېښودده دوه غلامان دزروپه عوض كې نونه شي وړلى كوم يو دهغه دحصې په اداء كولوسره لكه په مبيع كې ،اوكه يې رهن كښېښودمعين شى له دووكسانوسره نوصحيح دى اومضمون پرهريوه باندې دهغه ددين حصه ده نوكه يې اداء كړدكوم يوه قرض نوټول شى به رهن وي له هغه بل سره،اوباطله ده بينه له دواړوڅخه دهريوه پركوم كس باندې چې هغه رهن ايښى وو له ده سره خپل غلام اوقبض كړى يې ووهغه ،اوكه مړشودهغه راهن اوغلام ددواړومرتهنانوپه قبضه كې وواوهريوه بينه پيش كړه لكه څرنګه چې موږبيان وكړنوكيږي به دهريوه په لاس كې نصف غلام رهن دهغه دحق په عوض كې .

**تشريح**: (۱۴)كه چادزرودراهموپه عوض كې دوه غلامان رهن كښېښودل اودايې معلوم نه كړچې په دوئ كې هريودڅومره قرض په عوض كې رهن دى اوس پېښه داوشوه چې ده ديوه دقيمت په اندازه سره قرض اداء كړنوراهن له دواړوغلامانوڅخه يوله مرتهن څخه نه شي وړلاى ترڅوچې پاتې قرض اداء نه كړي ولې چې داد واړه غلامان راهن لره په قضاء دين كې دباعثيت دمبالغې په غرض سره ددين دهرجزء جزء په عوض كې محبوس دي ،همداحكم دمبيع هم دى مثلاكه يوكس له بل څخه دوه غلامان دزرودراهموپه عوض كې واخيستل بيايې بائع ته پنځه سوه وركړي نومشتري لره داحق نشته چې له بائع څخه يوغلام اوس وصول كړي بلكه كله چې هغه پوره ثمن اداء كړي بيابه ده ته مبيع حواله كيږي لماقلنا.

(۱۵)كه پرچا [illegible] ووكسانودين وومقروض ددواړوددين په عوض كې يوشى رهن كښېښودنودارهن صحيح دى اوټول شى له دوئ دواړوڅخه له هريوه سره رهن دى په دې وجه چې په يوه معامله كې دټول شي طرف ته رهن اضافت كړل شوى دى اوپه رهن كې شيوع نشته (ولې چې تعددمستحقين په محل واحدكې تعددنه ثابتوي )اودرهن حكم ددين په مقابله كې دمرهون شي محبوس والى دى په كوم كې چې تجزى نشته په دې وجه به داشى له دواړوسره محبوس وي .دمرهون دهلاكيدوپه صورت كې به هريوبقدرحصه دين ضامن وي ولې چې دحق په وصولي كې تجزي كيداى شي نودهلاكت پروخت هرمرتهن دخپلې حصې وصولونكى ګرځي لهذامرهون به دهريوه ددين په اندازه سره مضمون وي .اوكه راهن له دوئ دواړوڅخه دكوم يوه دين اداء كړنواوس به پوره مرهون شى دهغه بل په قبضه كې رهن پاتې كيږي ترڅوچې هغه هم خپل قرض وصول نه كړي ولې چې پوره شى له دوئ څخه له هريوه سره بلاتفريق رهن دى لكه چې دمرتهن ديووالې په صورت كې.

(۱۶)له زيداوبكرڅخه هريوه دعوى وكړه چې له خالدسره چې كوم غلام دى ده هغه غلام له موږسره درهن په توګه ايښى وواوپركوم چې موږقبضه كړې وه يعنى هريوه دادعوى وكړه چې ده له ماسره رهن ايښى وواوهريوه پرخپله دعوى ګواه هم پيش كړل نوددواړوبينه باطله ده قاضى به ديوه په حق كې هم فيصله نه كوي ولې چې دواړه دخپل مرتهن والى اوديوكس دراهن والى اودهغه ديوه غلام درهن والى مدعى دي حال داچې دامحاله ده ولې چې يوغلام له دووكسانوڅخه له هريوه سره په يوه وخت كې رهن نشي كيداى اودكوم يوه په حق كې

په فيصله ورکولو سره ترجيح بلامرجحه راځي اودواړولره دنصف نصف دفيصلي کولوپه صورت کې شيوع راميږي کومه چې باطله ده کمامر،لهذادواړو مدعيانوګواهيانې باطلې دي .
(۱۷)اوکه په مذکوره بالاصورت کې راهن مړشواوغلام ددي دواړومدعيانوپه قبضه کې وواوله دواړوڅخه هريوه له ده سره ددي غلام پررهن والي ګواه پيش کړل نوقاضي به له دواړومدعيانوڅخه هريوه لره دنصف غلام درهن والي فيصله وکړي کوم چې به هغوئ دخپل خپل حق لپاره خرڅ کړي داحکم استحساناً دی ولی چې دراهن په ژوندکې درهن مقصددادی چې مرتهن هغه دوصولي لپاره له خپل ځان سره کنبيږدي اودراهن دمرګ په صورت کې درهن حکم دادی چې هغه خرڅ کړای شي اوقرض اداء کړای شي نوپه لومړی صورت کې شيوع مضره ده په دي وجه موږهغه باطل وګرځوی اوپه دوهم صورت کې شيوع مضره نه ده په دي وجه مواجازت ورکړ .

## باب الرهن يوضع على يدعدل

داباب دمرهون شي له عادل سره داېښودلوپه بيان کې دی

مصنف دراهن اومرتهن له ذات سره متعلق له احکاموفارغ شونودهغوئ دنائب يعنی عادل سره دمتعلقه احکامويبان يې شروع کړولی چې نائب هميشه له اصل څخه وروسته وي ،راهن اومرتهن چې دشي مرهون کوم :ريم کس ته په سپارلوراضي شي هغه کس ته عادل ويل کيږي .

(۱) وضعاالرَّهنَ على يَدَيْ عَدْلٍ صَحَّ وَلَا يَاخذه أحَدُهُمَا منه حقهما وَيَهْلِكُ في ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ فَإِنْ وَكَّلَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ أو الْعَدْلَ أو غَيْرَهُمَا بِبَيْعِهِ عِنْدَ حُلُولِ الدَّيْنِ صَحَّ فَإِنْ شُرِطَتْ في عَقْدِ الرَّهْنِ لم يَنْعَزِلْ بِعَزْلِهِ وَبِمَوْتِ الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنِ وَتَبْطُلُ بِمَوْتِ الْوَكِيلِ حتى لَا يَقُومَ وَارِثُهُ وَلَا وَصِيُّهُ مَقَامَهُ

**ترجمه** :دواړو کېښېښودمرهون شی له عادل سره نوصحيح دی اونه شي وړلی هغه له دوئ څخه يوهم له عادل څخه اوهلاکيږي دمرتهن په ضمان کې ،اوکه وکيل جوړکړراهن مرتهن لره يادادريم عادل کس لره يااله دي دوڅخه علاوه کوم بل چالره دمرهون شي دخرڅولودوخت په پوره کيدلوسره نوداصحيح دی ،اوکه وکالت شرط کړل شوپه عقدرهن کې نووکيل نه معزوليږي دراهن په معزولولوسره ،اودراهن اومرتهن په مړه کيدلوسره ،اووکيل لره جائزده دهغه خرڅول دراهن دورثه وپه عدم موجودوالي کې ،اوباطليږي دوکيل په مرګ سره ،اونه به خرڅوي مرهون راهن يامرتهن مګردهغه بل په خوښه سره .

**تشريح** :(۱)که راهن اومرتهن له کوم عادل سره درهن په اېښودلوراضي شول نوداجائزده ولی چې پررهن قبضه دمرتهن حق ده کله چې هغه دخپل حق په اسقاط باندي راضي دي نوله صحت څخه کوم شی مانع نشته اوس له راهن اومرتهن څخه يوه لره هم له عادل څخه دااخيستلوحق نشته ولی چې دثالث په لاس کې دحفاظت کولوپه لحاظ سره له رهن سره دراهن حق متعلق دی اودحق دوصولولوپه لحاظ له رهن سره دمرتهن حق متعلق دی لهذاکوم يوه لره دهغه بل دحق دباطلولوحق نشته .که مرهون له ثالث سره هلاک شونودمرتهن په ضمان کې هلاکيږي ولی چې دماليت په حق کې دثالث قبضه دمرتهن قبضه وي .

(۲)که راهن مرتهن یاعادل له دي دواړوڅخه ماسوابل کس دمدت دین په تیریدلوسره دمرهون دخرڅولو وکیل جوړکړنوداوکالت جائزدی په دي وجه چې راهن دمرتهن شي مالک دی اومالک لره اختیاروي چې څوک وغواړي هغه دي دخپل مال دخرڅولو وکیل جوړکړي.

(۳)اوکه دعقدرهن پروخت وکالت شرط کړل شومثلا راهن ووایې چې زه داشی په رهن ایږدم په دي شرط سره چې دقرض دمیعادپه پوره کیدلوسره فلانکی کس زماله طرف څخه وکیل دی چې داخرڅ کړي نواوس راهن لره داحق نشته چې وکیل معزول کړي اوکه یې معزول کړنوهغه نه معزول کیږي ولی چې داوکالت دعقدرهن له اوصافوڅخه یووصف اوله حقوقوڅخه یوحق جوړشوی دی فیلزم بلزوم اصله (ای رهن).

(۴)قوله وبموت الراهن والمرتهن ای لم یعنزل الوکیل بموت الراهن والمرتهن ،یعنی که راهن یامرتهن مړشونوهم مذکوروکیل نه معزولیږي په دي وجه چې دراهن په مرګ سره رهن نه باطلیږي ولی چې دموکل دمرګ په وجه سره چې چیرته هم وکالت باطلیږي دوارثانودحق په وجه سره وي ولی چې ملکیت دوراثانوطرف ته منتقل کیږي مګردلته داسي نه ده ولی چې دمرتهن حق دوارثانوله حق څخه مقدم دی اودمرتهن په مرګ سره په دي وجه نه معزولیږي چې مرتهن خودی وکیل نه دی جوړکړی لهذامرتهن دوکیل له وکالت څخه اجنبي دی اوداجنبي په مرګ سره وکیل نه معزولیږي.

(۵)دراهن په ژوندکې وکیل لره جائزوچې دراهن په نه موجودوالی کې مرهون خرڅ کړي لهذادراهن له مرګ څخه وروسته هم ده لره داحق پاتي کیږي چې دراهن دوارثانودنه موجودوالی په صورت کې مرهون خرڅ کړي.

(۶)اوکه وکیل مړشوخواه که وکیل په خپله مرتهن وي یاعادل وي یاکوم بل کس وي نودوکیل وکالت ختمیږي دوکیل وارثانویاوصی ته داحق نه منتقل کیږي ولی چې په وکالت کې میراث نه جاري کیږي ولی چې میراث په هغوحقوقوکې جاري کیږي کوم چې مورث لره واجب وي نه په هغوحقوقوکې کوم چې دمورث پرذمه واجب وي.

(۷)له راهن اومرتهن څخه یوه لره هم داحق نه شته چې هغه مرهون شی دهغه بل له رضااوخوښي څخه بغیرخرڅ کړي مرتهن خوپه دي وجه داحق نشته چې مرهون دراهن ملک دی اودراهن له طرف څخه اجازه نشته ،اوراهن لره په دي وجه داحق نشته چې دمرهون په مالیت کې دراهن په نسبت دمرتهن حق ډیردی نوپه دي صورت کې راهن مبیع مشتري ته په حواله کولوقادرنه دی حال داچې دبائع لپاره ضروري ده چې دمبیع پرحواله کولوبه قدرت لري.

(۸)فإن حل الأجل وغاب الراهن أجبر الوكيل على بيعه كالوكيل بالخصومة من جهة المطلوب إذا غاب موكله أجبر عليها (۹) وإن باعه العدل وأوفى مرتهنه ثمنه فاستحق الرهن وضمن فالعدل يضمن الراهن قيمته أو المرتهن ثمنه وإن مات الرهن عند المرتهن فاستحق وضمن الراهن قيمته مات بالدين وإن ضمن المرتهن رجع على الراهن بالقيمة وبدينه

**ترجمه** :که یې موده پوره شوه اوراهن غائب وونووکیل مجبورکړای کیږي پربیع دهغه شي لکه وکیل بالخصومة له جهة دمطلوب چې کله غائب شي موکل دهغه نومجبورکړای کیږي اوکه عادل خرڅ کړاومرتهن

خپل ثمن ترلاسه کړي بيا رهن مستحق شو او ضامن شونو عادل راهن لره ضامن کيږي دهغه دقيمت يا مرتهن لره دهغه دپيسو اوکه رهن مړشونه مرتهن سره بيا مستحق وګرځيدی او راهن ضامن شو دهغه دقيمت اوکه مرتهن ضامن شو رجوع دي وکړي پر راهن باندي په قيمت او په دين سره.

**تشريح** :(۸)که دقرض داداء کولو وخت راورسيد او راهن غائب وو او هغه وکيل دکوم په قبضه کې چې مرهون شی دی هغه دهغه شی له خرڅولو څخه انکار کوي نو قاضی به پر وکيل جبر وکړي تر څو هغه مرهون شی خرڅ کړي ولی چې دوکيل په انکار کولو کې دمرتهن دحق ابطال دی او دبل حق له ابطال څخه دساتلو لپاره جبر کول جائزدی .همدا حکم دوکيل بالخصومت هم دی مثلاً کوم کس بل څوک وکيل بالخصومت جوړ کړ او موکل غائب شو او وکيل دقاضی په مخ کې له خصومت څخه انکار وکړ نو وکيل به پر خصومت مجبوره کيږي لما قلنا .

(۹)له کوم عادل سره چې يې رهن ايښی وو هغه دوخت په پوره کيدلو سره مرهون شی خرڅ او ثمن يې مرتهن ته ورکړي بيا کوم بل کس په مرهون شي کې خپل استحقاق ثابت کړ چې دهغه په وجه سره عادل ضمان اداء کړ نو عادل لره اختيار دی که يې خوښه شوه نو له راهن څخه دي ضمان واخلي ولی چې عادل دهمدي راهن وکيل وو نو کومه ذمه واري چې پر عادل راځي دهغه په سلسله کې به هغه راهن ته رجوع کوي .او که يې خوښه شوه نو له مرتهن څخه دي ضمان واخلي ولی چې عادل دضمان داداء کولو په وجه سره دمرهون مالک ګرځي نو ثمن هم دعادل کيږي او عادل ثمن مرتهن ته له دي وجهې حواله کړي وي چې هغه په خپل ګمان سره مرهون شی دراهن ملک ګڼلی وو ليکن کله چې معلومه شوه چې دراهن ملک نه دی بلکه خپله دعادل ملک دی نو هغه دخپل حق مرتهن ته په ورکولو راضی نه دی په هر حال اوس دا معلومه شوه چې دمرتهن ثمن وصول کولو ناحقه دي لهذا عادل لره حق شته چې له مرتهن څخه ثمن بيرته واخلي .بيا که ده له راهن څخه ضمان اخيستی نو دمرهون دپوره قيمت ضمان به اخلي او که يې له مرتهن څخه ضمان اخيستی نو صرف دومره ضمان به اخلي څومره چې يې مرتهن ته ورکړي وي .

(۱۰)که دمرتهن په قبضه کې مرهون غلام مړشو بيا دهغه مستحق ښکاره شو نو مستحق لره اختيار دی که يې خوښه وي له راهن څخه دي ضمان واخلي او که يې خوښه وي له مرتهن څخه دي ضمان واخلي ولی چې ددواړو له طرف څخه زياتی متحقق شوی دی دراهن له طرف څخه زياتی دا دی چې هغه دغير غلام دخپل قرض په بدله کې رهن ايښی دی او دمرتهن زياتی دا دی چې هغه دمستحق پر غلام دهغه له اجازت څخه بغير قبضه کړي ده .بيا که راهن ضمان اداء کړ نو په دي صورت کي داغلام دمرتهن دقرض په عوض کې مړشوی دی نو ګوا کي دمرتهن قرض مړشو (يعنی ساقط شو )لهذا اوس به راهن مرتهن ته هيڅ شی نه ورکوي ولی چې هغه دقرض په بدل کې دغلام قيمت ورکړی دی .

(۱۱)او که مستحق له مرتهن څخه تاوان واخيستی نو مرتهن به له راهن څخه دغلام هغه قيمت هم اخلي کوم چې ده مستحق ته ورکړی دی او خپل قرض به هم وصول کړي .قيمت به له دي وجهي اخلي چې مرتهن دراهن له طرف څخه مغرور (دهوکه شوی )دی او قاعده ده چې پر مغرور کوم تاوان راځي هغه به له دهوکه ورکونکی

ځخه وصول كوي او دين به په دي وجه وصول كوي چې كله دهغه دصولولو قبضه ماته شوه نو دقرض حق يې بيرته را وګرځيدو.

## باب التصرف في الرهن والجناية عليه وجنايته على غيره

داباب په مرهون شي كې دتصرف كولو او پرهغه دجنايت كولو او مرهون دجنايت على الغير په بيان كې دى.
په مرهون شي كې تصرف كول او پرهغه جنايت كول يادهغه پريو چاجنايت كول داطبعاله نفس رهن ځخه وروسته وي نو وضعا هم مصنف ﷫ ددي امورو احكام مؤخر كړل تر ځو وضع دطبع مطابق وي.

(۱) وَيتوقف بَيعُ الرَّاهِنِ على إجازةِ مرتهنهِ او قضاءِ دَيْنِه (۲) وَنَفَذَ عتقهُ وَطولِبَ بِدَيْنِه لو حالًا) وَلو مؤجلًا أخذ منه قيمةَ العَبدِ وَجعلتْ رَهنًا مكانهُ (۳) وَلو مُعسِرًا سعى العَبدُ في الأقلِّ من قيمتِه وَمن الدَّينِ وَيَرجعُ به على سيِّدِه (۵) وَإتلافُ الرَّاهِنِ كإعتاقِه (۵) وَإن أتلفهُ أجنبيٌّ فالمرتهنُ يضمنهُ قيمتهُ وَيكونُ رَهنًا عِندهُ (٦) وَخرجَ من ضمانهِ بإعارتِه من رَاهنِه فلو هلكَ في يَدِ الرَّاهنِ هلكَ مجانًا (۷) وَبرجوعِه عادَ ضمانهُ.

**ترجمه**: موقوفه پاتې كيږي دراهن بيع دمرتهن په اجازې پورې يا په اداء كولو پسې دهغه دپور، او نافذيږي دهغه آزادول او مطالبه به كيږي له هغه ځخه دقرض كه فوري وي او كه ميعادي وي نو اخيستل كيږي به له هغه ځخه دغلام قيمت او اينبودل كيږي به رهن دغلام په عوض كې، او كه راهن مفلسه وي نو سعايت به كوي غلام دخپل قيمت او قرض ځخه په كم كې او بيا به رجوع كوي په دي باره كې پر خپل مولى، او تلف كول دراهن دده دآزادولو په شان دي او كه تلف كړ هغه اجنبي نو مرتهن به تاوان اخلي له هغه ځخه دهغه دقيمت او هغه قيمت به رهن وي له ده سره، او وځي دمرتهن له ضمان ځخه راهن ته دعارية وركولو په وجه سره نو كه هلاک شو له راهن سره نو مفت هلاكيږي، او په واپس كولو سره را اګرځي ضمان.

**تشريح**: (۱) كه راهن دمرتهن له اجازې ځخه بغير مرهون شى خرڅ كړ نو دابيع موقوفه ده ولى چې دمرهون شى له مـ ليت سره دمرتهن حق متعلق دى لهذا دمرتهن له اجازي ځخه بغير دابيع نه نافذيږي. او كه مرتهن اجازت و. كړ يا راهن دمرتهن قرض اداء كړ نو بيع نافذيږي ولى چې مانع زائل شو.

(۲) كه مرهون غلام وو راهن دمرتهن له اجازت ځخه بغير هغه آزاد كړ نو آزادي يې نافذيږي ولى چې راهن عاقل بالغ او داحكام شرعيه مكلف دى لهذا دهغه تصرف به نه لغو كيږي. پاتې شوه بيع هغه په دي وجه سره جائزه نه وه چې پر مرهون شى دراهن قبضه نه وه حال داچې په بيع كې پر مبيع دبائع قبضه ضروري ده تر ځو تسليم ممكن وي، او په آزادولو كې ځرنګه چې دتسليم ضرورت نشته لهذا دآزدونكى قبضه هم ضروري نه ده. اوس كه راهن مالداروي او دين فوري وي نو له راهن ځخه به ددين داداء كولو مطالبه كيږي او كه دين مؤجل وي نو له راهن ځخه به دغلام قيمت اخيستل كيږي او دمعياد تر پوره كيدلو پورې به بطور رهن اينبودل كيږي ولى چې راهن دمرتهن دوصولي قبضه ختمه كړي ده لهذا مرتهن به دغلام قيمت له خپل ځان سره درهن په ډول ايږدي تر ځو دقرض دوصولولو لپاره استيثاق حاصل وي.

(۳) كه راهن تنګ لاسى (مفلس) وي نو دغلام په قيمت او دين كې چې كوم يو لږ وي دهغه په اندازه دي په غلام كسب وكړي ولى چې كله له معتِق ځخه دحق وصولول متعذر شول نو چاچې دهغه له اعتاق ځخه ګټه

اخيستي ده پر هغه به رجوع كيږي لكه څرنګه چې مشترک غلام كوم يو شريک آزاد كړي نو كه آزدونكى مفلس وي نو په غلام كسب كول كيږي .بيا چې څو مره قرض غلام اداء كړي كله چې مولى غنى شي نو هغه به له خپل مولى څخه بيرته اخلي ولى چې معتَق دهغه قرضه اداء كړي ده او غلام په دي اداء كولو كې مضطر دى متبرع نه دى لهذا هغه لره پر خپل مولى در جوع كولو حق شته .

(۴) او د راهن مرهون لره هلاكول داسي ده لكه د راهن مرهون لره آزادول يعنى پورته ذكر شوى تفصيل په دي صورت كې هم دى چې راهن رهن هلاک كړي البته په دي صورت كې مرتهن په هلاک شوى غلام سعاية (كسب )نشي كولاى ولى چې په هلاک شوى غلام كسب كول محال دي .

(۵) كه كوم اجنبى كس مرهون هلاک كړنو له دي اجنبى كس څخه په ضمان اخيستلو كې خصم مرتهن دى نو له اجنبى څخه به د رهن قيمت واخلي او له ځان سره به يې بطور رهن كښيږدي ولى تر كله چې رهن قائم وي دعين رهن حقدار مرتهن دى او قيمت دعين قائم مقام دى لهذا د قيمت د وصولولو حق به هم د مرتهن وي .

(۶) او كه مرتهن مرهون شى راهن ته عاريةً وركړ او راهن پر هغه قبضه وكړه نو مرهون د مرتهن له ضمان څخه خارجيږي (يعنى اوس د هلاک په صورت كې مرتهن ضامن نه دى )ولى چې د راهن په قبض كولو سره د مرتهن موجب ضمان قبضه ختمه شوه نو كه د راهن په قبضه كې هلاک شو نو بلاشي هلاكيږي ولى چې د خپل مالک په لاس كې هلاک شوى دى .

(۷) ثوله وبرجوعه عادضمانه اى وبرجوع الرهن الى يدالمرتهن عادالضمان ،يعنى مرتهن لره دا حق شته چې هغه راهن ته په عاريت سره وركړى مرهون شى بيرته ويسي ولى چې دضمان له حق څخه په ماسوا كې عقد رهن پر خپل حال پاتي دى ،نو بيا كه مرتهن له راهن څخه مرهون بيرته واخيستى نو د مرتهن ضمان هم بيرته راګرځي ولى چې دضمان سبب يعنى قبضه بيرته را وګرځيده .

(۸) وَلَوْ أَعَارَهُ أَحَدُهُمَا أَجْنَبِيًّا بِإِذْنِ الْآخَرِ سَقَطَ الضَّمَانُ وَلِكُلٍّ أَنْ يَرُدَّهُ رَهْنًا (۹) وَإِنْ اسْتَعَارَ ثَوْبًا لِيَرْهَنَهُ صَحَّ (۱۰) وَلَوْ عَيَّنَ قَدْرًا أَوْ جِنْسًا أَوْ بَلَدًا فَخَالَفَ ضَمِنَ الْمُعِيرُ الْمُسْتَعِيرَ أَوْ الْمُرْتَهِنَ (۱۱) وَإِنْ وَافَقَ وَهَلَكَ عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ صَارَ مُسْتَوْفِيًا وَوَجَبَ مِثْلُهُ لِلْمُعِيرِ على الْمُسْتَعِيرِ (۱۲) وَلَوْ افْتَكَّهُ الْمُعِيرُ لَا يَمْتَنِعُ الْمُرْتَهِنُ إنْ قَضَى دَيْنَهُ

**ترجمه** :او كه مرهون شى وركړ كوم يوه اجنبى ته دهغه بل په اجازت سره نو ساقطيږي ضمان او هر يوه لره حق شته چې هغه رد كړي او رهن يې كړي ،او كه يې استعارة واخيسته جامه تر څو هغه په رهن كښيږدي نو صحيح ده ،او كه يې متعين كړ مقدار ،جنس او ښار او هغه مخالفت وكړنو تاوان به اخلي معيرله مستعير څخه يا له مرتهن څخه ،او كه يې دهغه موافق كار وكړ او جامه ضائع شوه له مرتهن سره نو شو مرتهن خپل حق وصولونكى او واجبيږي همدومره معيرلره پر مستعير باندي ،او كه خلاسه كړه جامه معير نو له جامي وركولو دي منع نه كړي مرتهن كه راهن دده قرض اداء كړى وي .

**تشريح** :(۸) كه په راهن او مرتهن كې كوم يوه دهغه بل په اجازت سره مرهون كوم اجنبى كس ته عارية وركړنو دضمان حكم ساقطيږي نو كه هغه له مستعير سره هلاک شي نو هيڅوک يې ضامن نه دى مستعير خو په دي وجه ضامن نه دى چې دهغه قبضه ،دامانت قبضه ده او امين ضامن نه وي ،او مرتهن په دي وجه ضامن نه

دی چې هغه خود قبضي په وجه سره ضامن وو کله چې قبضه پاتې نه شوه نوضمان هم نه پاتې کيږي .اوراهن اومرتهن هريوه لره دااختيارشته چې له مستعيرڅخه مستعارشی واپس واخلي اويرته يې په رهن کښيږدي دعقدجديدضرورت نشته ولې چې تراوسه دهغه رهن والی په خپل حال پاتې دی .

(۹)زيدمثلاله خالدڅخه جامه عاريةً واخيستله ترڅوهغه له کوم بل کس سره په رهن کښيږدي اوله هغه څخه قرض واخلي اوخپل ضرورتونه پوره کړي نوداجائزدی ولې چې دادمعير(خالد)له طرف څخه تبرع ده .بياکه خالدکوم مقدارمتعين کړی نه وي يعنی دايې نه وي ويلي چې ددومره قرض په بدل کې رهن کښيږده له دې څخه په زيات ياکم کې يې مه ايږده نومستعير(زيد)چې هغه دڅومره مقدارپه عوض کې رهن کښيږدي جائزدی ولې چې اجازت مطلق دی .

(۱۰)اوکه معيرکوم مقدارمتعين کړی وومستعيرله هغه څخه دزيات ياکم په عوض کې په رهن کښيښوديامعيردکوم متعين جنس په باره کې ويلي ووچې ددې په بدل کې يې په رهن کښيږده دکوم بل شي اجازت يې ورنه کړمستعيرله هغه څخه مخالفت وکړ،ياپې دکوم خاص ښارقيدلګولی ووچې په دې ښارکې يې رهن کښيږده هغه دهغه خلاف وکړنوداجائزنه دی ولې معيرچې دکوم ښاراوکوم مقداراوجنس قيدلګولی ووپه هغه کې ضرورڅه فائده شته لهذادهغه مخالف کول جائزنه دي .بياکه مستعيردمعيردحکم مخالفت وکړاومستعارشی هلاک شونومعيرلره اختياردی که يې خوښه وي نوله مستعيرڅخه دي ضمان واخلي اوکه يې خوښه وي نوله مرتهن څخه دي ضمان واخلي ولې چې له مستعيراومرتهن څخه هريودمعيرپه حق کې زياتی کونکی دی نومستعيردغاصب په شان دی اومرتهن دغاصب الغاصب په شان دی .

(۱۱)اوکه مستعيردمعيردحکم مطابق کاروکړمثلادڅومره مقدارپه عوض کې چې يې درهن ايښودلواجازه ورکړې وه ياپه کوم ښارکې چې يې درهن ايښودلواجازه ورکړې وه دهغه مقدارپه عوض کې اوپه هغه ښارکې يې په رهن کښيښوداوس هغه جامه له مرتهن سره هلاکه شوه نوکتل کيږي به که دمستعاراومرهون شي قيمت دقرض برابريازيات وي نودمذکورحکم مطابق دمرتهن قرض له راهن څخه ختميږي ولې چې دمرتهن قبضه دوصولي قبضه ده لهذادهلاکت مرهون په وجه سره مرتهن قرض وصولونکی شمارشوی دی .نوڅومره قرض چې ووهمدومره روپۍ دمعيرپرمستعيرلازمي شوي ولې چې مستعيردمعيرله مال څخه خپل همدومره قرض اداء کړی دی .

(۱۲)اوکه مستعاردمرهون له قيمت سره برابروي اودراهن دتنګ لاسي په وجه سره معيردمرهون شي خلاصول وغوښتل نومرتهن ته دمنع کولوحق نشته که يې دهغه قرض اداء کړولې چې که کوم متبرع دقرض اداء کول وغواړي نوبې شکه پرمرتهن جبرنه شي کولای ليکن که قرض اداء کونکی متبرع نه وي نوبياپرمرتهن درهن دواپس کولولپاره جبرکيدای شي اوپه مذکوره صورت کې معيرمتبرع نه دی ولې چې دعاريت دورکولوپه وخت کې که څه هم هغه متبرع دی مګرپه خلاصولوکې هغه متبرع نه دی بلکه هغه خپل مال خلاصوي لهذادمعيراداء کول دراهن داداء کولوپه شان ده ،نومرتهن لره دمرهون دمنع کولوحق نشته که يې منع کوي نوپه زوربه تري اخيستل کيږي .

(۱۳) وَجِنَايَةُ الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنِ عَلَى الرَّهْنِ مَضْمُونَةٌ (۱۴) وَجِنَايَتُهُ عَلَيْهِمَا وَعَلَى مَالِهِمَا هَدَرٌ (۱۵) وَإِنْ رَهَنَ عَبْدًا يُسَاوِي أَلْفًا بِأَلْفٍ مُؤَجَّلٍ فَرَجَعَتْ قِيمَتُهُ إِلَى مِائَةٍ فَقَتَلَهُ رَجُلٌ وَغَرِمَ مِائَةً وَحَلَّ الْأَجَلُ فَالْمُرْتَهِنُ يَقْبِضُ الْمِائَةَ قَضَاءً مِنْ حَقِّهِ وَلَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ (۱۶) وَلَوْ بَاعَهُ بِمِائَةٍ بِأَمْرِهِ قَبَضَ الْمِائَةَ قَضَاءً مِنْ حَقِّهِ وَرَجَعَ بِتِسْعِمِائَةٍ (۱۷) وَإِنْ قَتَلَهُ عَبْدٌ قِيمَتُهُ مِائَةٌ فَدُفِعَ بِهِ افْتَكَّهُ بِكُلِّ الدَّيْنِ (۱۸) وَإِنْ مَاتَ الرَّاهِنُ بَاعَ وَصِيُّهُ الرَّهْنَ وَقَضَى الدَّيْنَ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَصِيٌّ نَصَبَ لَهُ الْقَاضِي وَصِيًّا وَأَمَرَ بِبَيْعِهِ)

**ترجمه**: او جنایت د راهن او مرتهن پر مرهون شي باندي مضمون دی او جنایت د مرهون پر دوئ دواړو او د دوئ پر مال غیر مضمون دی او که یې رهن کښېښود غلام کوم چي برابر دی له زرو روپو سره د زرو روپو مؤجلو په عوض کې او لړ شو د هغه قیمت تر سلو پوري بیا هغه لره چا قتل کړ او هغه سل تاوان اداء کړ او مده پوره شوه نو مرتهن به قبضه کوي په سلو د خپل حق د وصول کولو په جهت سره او نه به واپس اخلي له راهن څخه څه، او که خرڅ کړ هغه مرتهن په سل روپۍ د راهن په اجازت سره نو قبضه به کوي پر سلو د خپل حق د اخیستلو په وجه سره او وړي به له راهن څخه نهه سوه، او که هغه داسي غلام کړ د کوم قیمت چي سل روپۍ دی نو قاتل به ورکول کیږي د مقتول په عوض کي او راهن به هغه خلاص کړي د ټول پور په عوض کې، او که راهن مړ شو نو خرڅوي به د هغه وصي مرهون شی او اداء به کړي دین او که نه وو د هغه کوم وصي نو مقرر به کړای شي هغه لره وصي او هغه ته به حکم ورکول شي د هغه د خرڅولو.

**تشریح**: (۱۳) که پر مرهون باندي په خپله راهن جنایت وکړ نو دا مضمون (موجب ضمان) دی ولی چي په دي سره د مرتهن محترم حق کوم چي په رهن پسي متعلق دی فوتیږي لهذا مالک د ضمان به د ضمان په حق کې اجنبي ګرځول کیږي. همدا شان که مرتهن پر مرهون باندي جنایت وکړ نو دا هم مضمون دی نو د مرتهن قرض له راهن څخه د جنایت په اندازه سره ساقطیږي ولی چي راهن مالک دی مرتهن د هغه په مملوک مال باندي تعدی وکړه او هغه یې فوت کړ په دي وجه مرتهن ضامن کیږي.

(۱۴) او که مرهون په راهن یا مرتهن یا له دوئ څخه د کوم یوه پر مال جنایت وکړ نو دا مفت دی (یعني موجب ضمان نه دی) په دي شرط چي جنایت موجب قصاص نه وي که موجب قصاص وو نو قصاص به اخیستل کیږي. د مرهون جنایت پر مرهون په دي وجه هدر دی چي دا پر مالک د خپل مملوک جنایت دی او د مملوک جنایت پر مالک که موجب مال وي نو هغه معتبر نه وي. او پر مرتهن د جنایت په صورت کې په دي وجه ضمان نشته چي مرهون دا جنایت د مرتهن په ضمانت کې کړی دی لهذا له دي جنایت څخه خلاصول د مرتهن پر ذمه دی نو په یوه طرف کې پر مرتهن لره ضمان واجب شي او بل طرف ته پر مرتهن ضمان واجب شي په دي کې هیڅ فائده نشته لهذا دا جنایت موجب ضمان نه دی.

(۱۵) که مقروض له قرض خواه سره خپل یو غلام بطور رهن کښېښود د کوم قیمت چي د رهن پر ورځ زر درهمه وو او قرض هم زر درهمه دی بیا د غلام قیمت کم شو او صرف سل درهمه شو بیا دا غلام چا قتل کړ او قاتل سل درهمه د هغه د قیمت ضمان اداء کړ بیا د قرض مده ختمه شوه نو مرتهن به د خپل حق د وصولولو په ډول سره پر سل درهمه قبضه وکړي او په پاتي نهه سوه درهمه به پر راهن رجوع وکړي ولی چي هغه ابتداء د خپل قرض

وصولونكى ګرځول شوى وو او كه صرف قيمت كم شوى واى غلام نه واى هلاک شوى نو په دي سره پر مرتهن ضمان نه واجبيد و بلكه هغه به عين غلام سپارلى واى او خپل تول قرض به يې وصول كاوو.

(۱۶) او كه په مذكوره بالاصورت كې مرهون مړ نه شو بلكه راهن مرتهن ته حكم وكړ چې مرهون خرڅ كړه هغه په سل روپى خرڅ كړ او داسل درهم يې د خپل قرض په بدل كې وصول كړي نو پاتي نهه سوه درهمه اوس هم دراهن پر ذمه پاتي دي او مرتهن به دهغو په باره كې پر راهن رجوع كوي ولى كله چې مرتهن دراهن په حكم سره خرڅ كړ نو داداسي ده لكه راهن چې په خپل خرڅ كړى وي او كه هغه خپله خرڅ كړى واى او ثمن سل درهم يې مرتهن ته وركړى واى نو نهه سوه درهمه به دراهن پر ذمه پاتي واى لهذا په مذكوره صورت كې هم همدا حكم دى.

(۱۷) او كه دا صورت پېښ شو چې راهن چې كوم غلام دزرو دراهمو په عوض كې رهن ايښى وو له مرتهن سره دموجود والى په وخت كې كوم غلام دامرهون غلام قتل كړ او د قاتل غلام قيمت صرف سل درهمه وو يا بحكم شرع همدا قاتل غلام مرتهن ته مرهون غلام په بدله كې وركړل شو نو دشيخينو په نزد به راهن مرتهن ته خپل تول پور وراداء كړي ار دمرهون قائم مقام قاتل غلام به واخلي ولى چې قاتل غلام دمرهون قائم مقام دى لهذا په نفس غلام كې تغير نه شو واقع نو داداسي شوه ګويا اولنى غلام موجود دى او دهغه قيمت كم شوى دى.

ف: دشيخينو قول راجح دى لما في الدر المختار: (ولو قتله عبد قيمته مائة فدفع به افتكه) الراهن وجوبا (بكل الدين)........وقال محمد ان شاء افتكه بكل دينه او ترکه على المرتهن بدينه وهو المختار كما في الشرنبلالية عن المواهب لكن عامة المتون والشروح على الاول (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۳٦۹/۵)

(۱۸) كه راهن مړ شو نو دهغه وصى (كوم ته چې وصيت وكړل شي) به مرهون شى خرڅ كړي او دمرتهن قرض دي اداء كړي ولى چې رهن دراهن يا مرتهن په مرګ سره نه باطليږي او وصى دموصى قائم مقام وي لهذا دموصى په شان به وصى هم دمرهون په خرڅولو سره دمرتهن قرض اداء كړي. او كه دراهن كوم وصى نه وي نو قاضى به دميت كوم وصى مقرر كړي او دي مقرر شوى وصى ته به حكم وكړي چې مرهون خرڅ كړه او دمرتهن قرض اداء كړه.

## فصل

دا فصل دمتفرقات رهن په بيان كې دى، څرنګه چې دمصنفينو عادت دى چې دمتفرقاتو ذكر دكتاب په اخير كې كوي په دي وجه مصنف رحمه الله دا فصل دكتاب الرهن په اخير كې راوړى.

(۱) رَهَنَ عَصِيرًا قِيمَتُهُ عَشَرَةٌ بِعَشَرَةٍ فَتَخَمَّرَ ثُمَّ تَخَلَّلَ, وهو يساوي عَشَرَةً فَهُوَ رَهْنٌ بِعَشَرَةٍ (۲) وَإِنْ رَهَنَ شَاةً قِيمَتُهَا عَشَرَةٌ فَمَاتَتْ فَدُبِغَ جِلْدُهَا وهو يساوي دِرْهَمًا فَهُوَ رَهْنٌ بِدِرْهَمٍ (۳) وَنَمَاءُ الرَّهْنِ كَالْوَلَدِ وَالثَّمَرِ وَاللَّبَنِ وَالصُّوفِ لِلرَّاهِنِ وهو رَهْنٌ مع الْأَصْلِ وَيَهْلِكُ مَجَّانًا (۴) وَإِنْ هَلَكَ الْأَصْلُ وَبَقِيَ النَّمَاءُ فُكَّ بِحِصَّتِهِ وَيُقْسَمُ الدَّيْنُ على قِيمَتِهِ يوم الْفِكَاكِ وَقِيمَةِ الْأَصْلِ يوم الْقَبْضِ, وَسَقَطَ من الدَّيْنِ حِصَّةُ الْأَصْلِ وَفُكَّ النَّمَاءُ بِحِصَّتِهِ (۵) وَتَصِحُّ الزِّيَادَةُ في الرَّهْنِ لَا في الدَّيْنِ (٦) وَمَنْ رَهَنَ عَبْدًا بِأَلْفٍ فَدَفَعَ عَبْدًا آخَرَ رَهْنًا مَكَانَ الْأَوَّلِ وَقِيمَةُ كُلٍّ أَلْفٌ فَالْأَوَّلُ رَهْنٌ حتى يَرُدَّهُ إلَى الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنُ في الْآخَرِ أَمِينٌ حتى يَجْعَلَهُ مَكَانَ الْأَوَّلِ

**ترجمه** : رهن يې كيښوده شيره دكومې چې قيمت لس درهمه دي دلس درهمو په عوض كې نوهغه شراب جوړشول بيا سركه جوړه شوه اوهغه برابره ده له لس درهمو سره نوهغه رهن دي دلسو درهمو په عوض . اوكه يې رهن كيښوده بزه چې دهغې قيمت لس درهمه دي دلس درهمو په عوض كې اوهغه مړه شوه بيا دهغې پوستكي پوخ كړاى شواوهغه برابروو له يوه درهم سره نوهغه رهن دي ديوه درهم په عوض كې .اودرهن زياتوب لكه بچى اوميوه اوشيدي اوورى ټول دراهن دي اوهغه به رهن وي له اصل سره اوهلاكيږي به مفت.اوكه زياتوب باقي پاتي شواوهلاك شواصل نوخلاصيږي به دهغې دحصي په موافق نوتقسيميږي به قرض دهغه په قيمت كوم چې دخلاصولوپه ورځ وي اوداصل پرقيمت كوم چې دقبضي په ورځ وونوساقطيږي له قرض څخه داصل حصه اوخلاصيږي به زياتوب دهغه دحصي په عوض كې .اوصحيح ده زيادت كول په مرهون كې نه په قرض كې .اوكه يې په رهن كيښودغلام دزروپه عوض كې بيايې وركړبل غلام بطوررهن داول پرځاى اوقيمت دهريوه زروي نوهغه اول رهن دى ترڅوچې مرتهن يې واپس كړي راهن ته اومرتهن دهغه بل غلام په حق كې امين دى ترڅوچې هغه رهن كړي داول پرځاى .

**تشريح** :(۱)كه زيدله بكرڅخه لس درهمه قرض واخيست بيايې دهغه په بدل كې دانګوروشيره په رهن كيښوده چې دهغې قيمت هم لس درهمه ووبياله دي شيري څخه شراب جوړشول اوبيابه خپله شرابو څخه سركه جوړه شوه اواتفاقاددي سركې قيمت هم لس درهمه دى نواوس به داسركه دلسودرهمو په عوض كې رهن شمارل كيږي ولى چې دانګورشيره اوسركه دواړه مبيع جوړيدلاى شي اوكوم شى چې مبيع جوړيدلاى شي هغه مرهون هم جوړيدلاى شي په مابين كې اګركه هغه شيره شراب جوړشوي وي مګرهغه ځرنګه چې دبقاء عقدپه حالت كې ده اوبقاء شراب هم محل عقدجوړيدلاى شي مثلاًچادانګوروشيره واخيستله اوله قبضي كولوڅخه وړاندي له هغې شيري څخه شراب جوړشول نوعقدپه هغوكې برقرارپاتي كيږي .

(۲)اوكه راهن دلسودراهموقرض په بدله كې يوه بزه په رهن كيښوده چې دهغې قيمت هم لس درهمه دي اوهغه بزه له مرتهن سره هلاكه شوه نودمرتهن قرض ساقطيږي ليكن كه يې دهغې بزي پوستكى وايستى اودباغت يې وركړاودهغه قيمت يودرهم وونواوس ګويادرهن نهه حصي هلاكې شوي اويوه حصه باقي ده لهذادقرض هم نهه حصي هلاكې اويوه حصي باقي شمارل كيږي اوداپوستكى به ديوه درهم په عوض كې رهن شمارل كيږي .

(۳)له مرتهن سره چې په رهن كې كومه نماء (زياتوب )راځي مثلاًدرهن بچى ،ميوه ،شيدي اوورى وغيره هغه ټول دراهن دي ولى چې دراهن دمملوك نماء اوزياتوب دى اودانماء به هم له خپل اصل سره رهن وي ولى چې نماء داصل تابع ده .اوكه نماء هلاكه شوه نوپرمرتهن ضمان نه راځي ولى كوم شى چې داصل مقابل وي له هغه څخه دتابع هيڅ حصه نه وي ولى چې تابع مقصودا په عقدكې داخل نه دى .

(۴)اوكه اصل مرهون هلاك شي اونماء باقي پاتي شي نونماء به بقدرحصه دين خلاصيږي ولى چې نماء اوس دخلاصون په وجه سره مقصوده شوه اوتابع چې كله مقصودشي نودهغه مقابل كې قيمت وغيره راځي .اوس به داځرنګه معلوميږي چې نماء دڅومره اندازه قرض په بدل كې محبوسه ده نودديّ صورت داد‌ي چې

داصل دهغې ورځي قيمت په كومه ورځ چې مرتهن په هغه قبضه كړي ده او دنماء دهغې ورځي قيمت په كومه ورځ راهن هغه خلاصوي به معلوم كړي او پر هغو دواړو به دمرتهن قرض تقسيم كړای شي نو كوم چې داصل په مقابل كې راشي دقرض هغه مقدار به ساقطيږي او كوم مقدار چې دنماء په مقابل كې راشي راهن به دهغه په اداء كولو سره نماء خلاصه كړي مثلا قرض لس درهمه دی او داصل مرهون (مثلا) بزي قيمت دقبضي په ورځ لس درهمه دي او دنماء (مثلا دبزي دبچي) قيمت دخلاصولو په ورځ پنځه درهمه دي نو د دواړو قيمت پنځلس درهمه شو اوس به قرض پر مجموعه قيمت باندي تقسيم كړای شي نو ددين دوه ثلثه (يعنى شپږ درهمه او ديوه درهم دوه ثلثه) داصل (بزي) په مقابل كې راځي لهذا دقرض دامقدار به ساقطيږي او ددين يو ثلث (يعنى دري درهمه او ديوه درهم يو ثلث) دنماء په مقابله كې راځي كوم چې به راهن اداء كوي او نماء به خلاصوي.

(۵) په رهن كې زيادت كول جائز دی مثلا يو كس يوه جامه دلسو روپو په بدل كې رهن ايښې وه له دې څخه وروسته يې يوه بله جامه رهن كېښوده نو دا جائزده ولی چې دا داسې ده لكه په ثمن او مثمن كې چې زيادت وكړي نو لكه څرنگه چې په ثمن او مثمن كې زيادت كول جائزده همداشان په رهن كې هم زيادت كول جائزده ،لهذا په مذكوره صورت كې دواړه جامې دلسو روپو په عوض كې رهن دي .مگر په دين كې دطرفينو رحمهما الله تعالى په نزد اضافه كول جائز نه ده مثلا په مذكوره صورت كې راهن وويل ماته نوري پنځه روپۍ هم په قرض راكړه او زما هغه جامه كومه چې له تاسره دلسو روپو په عوض رهن وه اوس دي دپنځلسو روپو په عوض كې رهن وي ،نو دطرفينو په نزد دا جامه دزيات شوي دين په عوض كې رهن نه ده ولی چې په دين كې اضافه په رهن كې شيوع پيدا كوي په دې ډول سره چې مثلا راهن يوه جامه دزرو روپو په عوض كې رهن ايښې وه بيا مرتهن قرض زيات كړ دوه زره يې كړ نو اوس دجامې نصف غير معين دزرو روپو په بدل كې رهن شو او نصف غير معين دهغو نورو زرو روپو په بدل كې رهن شو نو په جامه كې شيوع پيدا شوه او دا وړاندي تيره شوه چې رهن مشاع جائز نه دی .حال دا چې دامام ابويوسف رحمه الله په نزد په قرض كې هم اضافه جائزده .

ف: دطرفينو قول راجح دی لمافى اللباب :قال ابويوسف رحمه الله تجوز الزيادة فى الدين ايضا قال فى التصحيح واعتمد قولهما النسفى وبرهان الائمة المحبوبى كماهوالرسم (اللباب فى شرح الكتاب :۱/۳۰۵).وقال العلامة الحصكفى :(والزيادة فى الرهن تصح )وتعتبر قيمتها يوم القبض ايضا(وفى الدين لا)تصح خلافاللثانى والاصل ان الالحاق باصل العقدانمايتصور اذاكانت الزيادة فى معقود به او عليه والزيادة فى الدين ليست منهما(الدر المختار على هامش رد المحتار:۵/۳۴۲)

(۶) كه پر څلور زره درهمه قرض وو هغه دهغه په بدل كې يو داسې غلام رهن كېښود چې دهغه قيمت زر درهمه دی بيا راهن مرتهن ته داول پر ځای يو بل غلام بطور رهن وركړ او دهر يوه غلام قيمت زر درهمه دی نو دوهم غلام له مرتهن سره امانت دی او اول غلام رهن دی تر څو چې مرتهن هغه راهن ته واپس كړي نو كه په همدې مابين كې اول غلام هلاک شو نو دمرتهن قرض ساقطيږي ولی چې درهن دهلاكت په صورت كې قرض ساقطيږي .او دوهم غلام له مرتهن سره امانت دی په دې وجه چې اول غلام دمرتهن په ضمان كې دی لهذا دوهم غلام دهغه په ضمان كې نه داخليږي ولی چې راهن او مرتهن ديوه غلام په ضمان كې په داخليدلو راضي دي د دواړو په دخول راضي نه دي ،بيا چې كله مرتهن اول غلام واپس كړي نو اوس دوهم غلام دهغه پر ځای رهن شمارل كيږي.

## كتاب الجنايات

### داكتاب دجناياتو په بيان كې دى

جنايات دجناية جمع ده لغة دتعدى اوتجاوزپه معنى ده ،اودشريعت په اصطلاح كې دفعل حرام نوم دى كه ددي فعل وقوع په مال كې وي اوكه په نفس كې وي ،مگردلته دفقهاؤپه عرف كې جنايت له هغه تعدى څخه عبارت دى كوم چې دانسان په نفس يا اطرافو (لكه لاس ،پښې ،پوزه او غوږوغيره )كې واقع شوى وي.

دكتاب الجنايات له كتاب الرهن سره مناسبت دادى چې رهن اودجناياتو احكام دواړه محافظ دي ،رهن دمال دحفاظت لپاره دى اودجناياتو احكام دنفوسو دحفاظت لپاره دي ،اوڅرنگه چې مال دنفس دحفاظت ذريعه اووسيله ده او وسيله اوذريعه احق بالتقديم وي په دي وجه كتاب رهن مقدم كړاى شو.

(۱)موجب القتل عمدا, وهو ماتعمد ضربه بسلاح ونحوه في تفريق الأجزاء كالمحدد من الحجر والخشب والليطة والنار الإثم والقود عينا (۲)إلا أن يعفى لا الكفارة (۳) وشبهه, وهو أن يتعمد ضربه بغير ما ذكر, (۳)الإثم والكفارة ودية مغلظة على العاقلة لا القود) (۳)والخطأ, وهو أن يرمي شخصا ظنه صيدا أو حربيا فإذا هو مسلم أو غرضا فأصاب آدميا (۵) وما جرى مجراه كنائم انقلب على رجل فقتله (۶) الكفارة والدية على العاقلة (۷)والقتل بسبب كحافر البئر وواضع الحجر في غير ملكه الدية على العاقلة لا الكفارة (۸) والكل يوجب حرمان الإرث إلا هذا (۹) وشبه العمد في النفس عمد فيما سواها

**ترجمه**:دقتل موجب په داسي حال كې چې هغه عمدا وي اوهغه دادى چې قصد وكړي دوهلو په اسلحه سره اوپه هغه سره كوم چې داسلحي په شان وي دبدن داجزاء په جلاكولوكې لكه تيره لرگى اوډبره اودبانس پوستكى او اور گناه ده او متعين قصاص ،مگر داچې معاف كړاى شي نه كفاره ،اوموجب شبه عمد اوهغه دادى چې قصد وكړي دوهلوله مذكوره شيانو څخه په ماسوا سره ،گناه ده او ديت مغلظه ده پر عاقله باندي نه قصاص ،اوموجب قتل خطاء ،اوهغه دادى چې وويشتي كوم كس دښكارپه گمان سره يا دحربي كافرپه گمان سره حال داچې هغه مسلمان وي يا واروكړي پرنښان باندي اوهغه ولگيږي پرانسان باندي ،اودجارى مجرى خطاء موجب لكه چې ويده راواوړي پر كوم كس باندي اوهغه قتل كړي ،كفاره ده اوديت دى پر عاقله ،اودقتل بسبب موجب لكه دڅاه كيندونكى يا دډبري اوښودونكى دبل په ملك كې ،ديت دى پر عاقله نه كفاره ،دټول اقسام واجبوي له وراثت څخه محروموالى مگردا آخري قسم ،اوشبه عمد په وژلوكې ،عمد دى له دي څخه په ماسواكې.

**تشريح**:هسي خو دقتل بيخې ډير قسمونه دي مگرراتلونكي احكام يعني قصاص ،ديت ،كفاره وغيره چې له دقتل له كوموا قساموسره متعلق دي هغه اقسام پنځه دي /نمبر۱:قتل عمد /نمبر۲:شبه عمد /نمبر۳:قتل خطاء /نمبر۴:قائم مقام خطاء /نمبر۵:قتل بسبب .دكوموتفصيل چې مصنف صاحب په راتلونكي عبارت كې بيان فرمايلى دى.

(۱)قتل عمد دادى چې دانسان په اسلحه سره دوهلوقصد وكړي يا په داسي شي سره دوهلوقصد وكړي كوم چې دانسان داجزاء په پري كولوكي داسلحي قائم مقام وي لكه تيره لرگى ،ډبره ،دبانس پوستكى اواوروغيره .وجه داده چې دقتل عمد لپاره قصد ضروري دى اوقصديومخفى شى دى پركوم چې بلادليله

خبرتيامکنه نه دہ اوکله چې قاتل داسي آلات استعمال کړل په کوم سره چې قتل واقع کيږي نوداقتل دقصد دليل دی په دې وجه به دې ته قتل عمدويل کيږي .دقتل عمدحکم دادی چې قاتل سخت گناه گاردی ولی چې له شرک بالله څخه وروسته دانسان قتل له اکبرالکبائرڅخه دی اوله قاتل څخه به قصاص اخيستل کيږي اوقصاص متعين دی لقوله تعالى (كتب عليكم القصاص في القتلى).دامام شافعی يوقول دادی چې قصاص متعين نه دی بلکه دمقتول اوليا، دقصاص اوديت په اخيستلوکې مختاردي .قوله موجب القتل .مرفوع مبتدا، دی اوالاثم والقودعينا .ددې لپاره خبردی وهوماتعمدالى النار.جمله معترضه ده.

ف:دقصاص لفظي معنی مماثلت ده .مراددا دی چې څومره ظلم چې کوم څوک پربل چاوکړي هغومره بدله دهغه بل لپاره اخيستل جائزده .له هغه څخه زيادت کول جائزنه ده .په همدا وجه ده چې دشريعت په صطلاح کې قصاص ويل کيږي دقتل کولواوزخمي کولوهغي سزاته په کومه کې چې دمساوات اومماثلت رعايت کړل شوي وي.

ف:دقصاص اخيستلوحق اگرکه دمقتول داولياؤدی .مگرباجماع امت هغوئ لره دخپل دې حق په خپله دوصولولو اختيارنشته .چې په خپله قاتل ووژني بلکه ددې حق دحاصلولولپاره دسلطان مسلم يادهغه دکوم نائب حکم ضروري دی .ولی چې قصاص په کوم صورت کې واجبيږي په کوم کې نه واجبيږي .دهغه جزئيات هم دقيق دي کوم چې هرکس نشي معلومولای .له دې څخه علاوه دمقتول اوليا په خپله غصه کې دمغلوب کيدلوپه وجه سره زيادتي هم کولای شي .په دې وجه باتفاق علماء امت دقصاص دحق دحاصلولولپاره داسلامي حکومت طرف ته رجوع کول ضروري ده (معارف القرآن :۴۳۷/۱)

(۲)البته که دمقتول اوليا، قاتل معاف کړي يا له هغه سره صلح وکړي نوبيابه قصاص نه اخيستل کيږي ولی چې قصاص اخيستل داوليا، حق دی نوهغوئ يې معافولی هم شي .اودقتل عمدپه صورت کې پرقاتل کفاره نشته ولی چې قتل عمدگناه کبيره ده اوپه کفاره کې دعبادت معنی شته لهذاگناه کبيره دکفاري لپاره سبب نه شي گرځيدلای .امام شافعی په قتل عمدکې هم دکفاري دوجوب قائل دی هغه قتل عمدپرقتل خطاء قياسوي.

(۳)قتل شبه عمددامام ابوحنيفه رحمه الله په نزددادی چې قاتل په داسي شي سره دوژلوقصدوکړي کوم چې نه اسلحه وي اودا سلحي قائم مقام وي اوداشبه عمدپه دې وجه دی چې قاتل داسي آله استعمال کړي ده کومه چې غالباپه قتل کې نه استعماليږي بلکه په دې آله سره دغيرقتل يعنی تاديب وغيره قصد کيږي نودعمديت دمعنی دقاصروالي په وجه سره به دې ته شبه عمدويل کيږي .دصاحبينوپه نزدشبه عمددادی چې قاتل په داسي شي سره دمقتول دوژلوقصدوکړي په کوم سره چې غالباقتل نه کيږي .لهذادصاحبينوپه نزدکه قاتل په لويه ډبره ياپه لوي لرگي سره وژل وکړل نوداشبه عمدنه بلکه قتل عمددی ولی چې په دې سره غالباقتل واقع کيږي نوداقتل لره دوضع شوي آلي په درجه کې ده .دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة ابراهيم ابن محمدالحلبي:وعنه(اى عن ابى حنيفه)انمايجب اذاجرح وهوالاصح(مجمع الانهر:۳/۳۱۹)

(۴)قوله والاثم والكفارة اى موجب شبه عمدالاثم والكفارة ،يعني دشبه عمدعلى اختلاف القولين حكم دادى چې قاتل ګناه ګاربږي ولى چې قاتل دوژلو قصدكړى دى او دقاتل پرعاقله (له كومې محكمې سره چې دچاتعلق وي هغه محكمي والاد هغه عاقله دي او كه يې له محكمې سره تعلق نه وي نو دهغه دخاندان والاته عاقله ويل كيږي )ديت دى ولى چې شبه عمددبارى تعالى ددي ارشاد(ومن قتل مومناخطاء الخ )په قضيه كې داخل دى .اوديت مغلظه (يعني سل اوښان چې له هغوئ څخه به پنځه ويښت يوكلني وي اوپنځه ويښت به دوه كلني اوپنځه ويښت به دري كلني اوپنځه ويښت به څلوركلني وي )دى ولى چې پردي دصحابه كرامو ﷺ اجماع ده .اوشبه عمدموجب قصاص نه دى يعني دشبه عمدپه صورت كې به له قاتل څخه قصاص نه اخيستل كيږي ولى چې دقتل آلي ته په كتلوسره شبه عمدله قتل خطاء سره مشابه دى .قوله وشبهه اى وموجب شبهه،مرفوع مبتداء دى اوالاثم والكفارة ددي لپاره خبردى ،اووهوان يتعمدضربه الخ ،جمله معترضه ده .

**فائده** :دديت په باره كې قاعده داده چې كوم ديت چې براه راست په قتل سره واجبيږي هغه دقاتل پر خاندان واجبيږي او كه له قتل څخه وروسته په مصالحت وغيره سره واجب شونو هغه پرخپله پرقاتل واجبيږي .

(۵)قوله والخطاء اى وموجب الخطاء ،قتل خطاء پردوه قسمه دى /نمبر١:خطاء في القصد./نمبر٢:خطاء في الفعل .خطاء في القصددادى چې كوم كس په دي ګومان سره ووژني چې ښكاردى يامعلومه شي چې هغه انسان وو .ياكوم كس حربي وګڼي اووي وژني اوهغه مسلمان وي .اوخطاء في الفعل دادى چې كوم څوك دښكاريانښاني لورته غشى واركړي اوهغه دنښاني پرځاى پرانسان ولګيږي .قوله والخطاء اى وموجب الخطاء ،معطوف عليه اوماجرى مجراه ،معطوف دى ،معطوف سره له معطوف عليه مرفوع مبتداء دى اوالكفارة والدية على العاقلة ،ددي لپاره خبردى ،او ،وهوان يرمى شخصاالخ ،جمله معترضه ده .

(۶)قوله وماجرى مجراه اى موجب ماجراى مجراه ،دقتل څلورم قسم دخطاء قائم مقام دى ،دخطاء قائم مقام دادى چې كوم كس مثلا دخوب په حالت كې اړخ بدل كړي او كوم بل څوك ترده لاندي شي اومړشي ،په خطاء اوقائم مقام كې فرق دادى چې په خطاء كې دقاتل له طرف څخه قصددقتل شته حال داچې په قائم مقام خطاء كې دقاتل له طرف څخه قتل نشته ولى چې نائم دكوم شي قصدنه شي كولاى .

(٧)قوله والكفارة والدية على العاقلة اى موجب الخطاء ومايجرى مجراه الكفارة والدية على العاقلة،دقتل خطاء (دواړه قسمه )اودقائم مقام خطاء حكم دادى چې په دي كې پرقاتل كفاره ده اودقاتل پرعاقله ديت دى لقوله تعالى (فتحرير رقبة مؤمنة و دية مسلمة الى اهله) (يعني رقبه مؤمنه دي آزاده كړي اودمقتول والاؤته دي ديت وركړي ) .

څرنګه چې په قتل قائم مقام خطاء كې هم هغه حكم دى كوم چې دخطاء دى دقتل خطاء په دواړو قسمونوكې پرقاتل ګناه نشته ،مګرمراددقتل دګناه نفي ده في نفسه فعل له ګناه څخه خالي نه دى ولى چې دغشي ويشتلوپروخت چې له كوم احتياط بايد كاراخيستل شوى واى ده هغه احتياط ونه كړ .

(٨)قوله والقتل بسبب اى موجب القتل بسبب ،دقتل پنځم قتل بسبب ده،قتل بسبب دادى چې مثلاچادحاكم له اجازت څخه بغير دبل چاپه ځمكه كې څاه وكيندى ياپه هغه كې څوك ولويږي اومړشي ياپې دهمداسي

خمکې دلاري په منځ کې ډېره کښېنوده چې له هغې سره په ټکر کيدلوباندې څوک مړشودي ته قتل بسبب په دي وجه ويل کيږي چې دڅاه کيندونکی دمقتول په وژلوکې متعمدنه دی اونه مخطی دی هودڅاه په کيندلوکې هغه په تعدی کولوسره دقتل سبب جوړشو.

(۹)يعنی دقتل بسبب حکم دادی چې دڅاه کيندونکي پرعاقله ديت دی ولی چې دی دتلف کولوسبب جوړشوی دی ،البته پرده کفاره نه واجبيږي ولی چې دی بنفسه دقتل مباشرنه دی ،قوله والقتل بسبب ای موجب القتل بسبب ،مرفوع مبتداء دی او،الدية علی العاقلة ،دي لره خبردی ،اوکحافرالبيرالخ ،دقتل بالسبب تفسيردی.

دقتل يونوی قسم :دساؤت افريقې څيني مسلمانوډاکټرانودارالعلوم ديوبندله حضرت مولانامفتی نظام الدين صاحب څخه دقتل ديونوی قسم په باره کې سوال کړی دی دهغوسوال اودحضرت مفتی صاحب ځواب دهمده په الفاظونقل کوم .فرمايي :يوتهينزيا(euthansia)يايوتهينزيامطلب دادی چې مريض کوم چې په شديدتکليف کې مبتلاء وي ،اودهغه دژوندي پاتي کيدلوکوم اميدنه وي ياهغه ماشومان کوم چې ترغيرمعمولي حدپوري معذوروي ،اودهغوئ ژوندمحض يوقسم بوج وي دداسي مريضانواوماشومانوژوندختم کول ترڅوهغوئ له تکليف څخه نجات ومومي ،اوپه آساني سره پرهغوئ مرګ راشي .يوتهنزياپردوه قسمه ده (۱)ايکټيو(actiye)(۲)پسيو(passive).

دايکټيويوتهنزياصورت دادی چې ډاکټرانوله مريض ته ترمرګ پوري درسولولپاره کوم مثبت عمل کول په کاروي ،مثلاً دکينسرمريض کوم چې په شديدتکليف مبتلاء وي ياهغه مريض کوم چې دبې هوشي ښکاروي ،همدراز ددي په باره کې دډاکټرانوداخيال وي چې دده دژوندانه اوس کوم اميدنشته ،داسي مريض ته ددرددکمونکي تيزه دواپه ډېره اندازه کې ورکول کيږي ،په کومه سره چې دمريض ساه دربږي .همداشان کله داسي مريض دکوم په سرکې چې شديدزخم لګيدلی وي ،يادمننجائټس په شان ناروغي په وجه سره بې هوشه وي اودهغه دروغتياکوم امکان دډاکترانوپه نزدنه وي محض په مصنوعي تدبيرونوسره دهغه ساه چلول کيږي ،که دامصنوعي آله ليري کړای شي نودمريض دساه تلل راتلل بنديږي ،په داسي حالاتوکې دامصنوعي آلات ليري کول ترڅومريض په مکمل ډول سره مړشي ،داهم دايکټيويوتهنزيايوقسم دی.

(۲)دپسيوتوتهيريامطلب دادی چې دمريض دمړه کولولپاره کوم عمل اوتدبيرنه کيږي ،بلکه دهغه دژوندي پاتي کيدلولپاره چې کوم ضروري علاج کول په کاروي هغه نه کيږي ،اوهغه مريض مړکيږي ،مثلاً دکينسريابې هوشي يادماغي زخم يامننجائټس مريض په نمونيه اخته شي کوم چې قابل علاج دی ،ليکن ډاکترددي مريض علاج ونه کړي ،ترڅودده مرګ زرترزره واقع شي ،همداشان داسي ماشومان کوم چې په شديدډول سره معذوروي مثلاً دهغوئ دملاپه هډوکي کې داسي خرابي وي دکومي په وجه سره چې دهغه پښې مفلوجې وي ياپه بولوياپاخانه قابوباقي نه پاتي کيږي ،دماشوم دماغ دپيدائش په وخت کې مجروح شوی وي ،په داسي حالت کې ټول ژوندمريض يودروندبارګرځي .اوس که داسي ماشومانوته نمونيه ياکوم بل قابل علاج مرض پيداشي ،نودهغوئ دعلاج په نه کولوسره هغوئ ته له ژوندانه څخه دنجات

وي اودهغه دروغتياكوم امكان دډاكترانوپه نزدنه وي محض په مصنوعي تدبيرونوسره دهغه ساه چلول كيږي ،كه دامصنوعي آله ليري كړاى شي نودمريض دساه تلل راتلل بنديږي ،په داسي حالاتوكې دامصنوعي آلات ليري كول ترڅومريض په مكمل ډول سره مړشي ،داهم دايكټيويوتهنزياپوقسم دى.

(۲)دپسيوتوتهنزيامطلب دادى چې دمريض دمړه كولولپاره كوم عمل اوتدبيرنه كيږي ،بلكه دهغه دژوندي پاتې كيدلولپاره چې كوم ضروري علاج كول په كاروي هغه نه كيږي ،اوهغه مريض مړكيږي ،مثلاً كينسريابې هوشي يادماغي زخم يامننجائټس مريض په نمونيه اخته شي كوم چې قابل علاج ده ،ليكن ډاكتردي مريض علاج ونه كړي ،ترڅودده مرګ زرترزره واقع شي ،همداشان داسي ماشومان كوم چې په شديدډول سره معذوروي مثلاً دهغوئ دملاپه هډوكي كې داسي خرابي وي دكومي په وجه سره چې دهغه پښي مفلوجې وي ياپه بولوياپاخانه قابوباقي نه پاتې كيږي ،دماشوم دماغ دپيدائش په وخت كې مجروح شوى وي ،په داسي حالت كې ټول ژوندمريض يودروندبارګرځي .اوس كه داسي ماشومانوته نمونيه ياكوم بل قابل علاج مرض پيداشي ،نودهغوئ دعلاج په نه كولوسره هغوئ ته له ژوندانه څخه دنجات وركولوصورت اختيارول پسيويوتهنزياده .په هرحال ديوتهنزيامقصدمريض اودهغه اعزّاته له طويل تكاليفوڅخه نجات وركول دي.

نوآياپه مذكورالصدرصورت كې اسلام عمداً كوم داسي فعل اجازت وركوي دكوم په ذريعه سره چې كوم مريض ته له شديدوتكاليفوڅخه دنجات وركولولپاره ترمرګه رسول كيږي ،اوآيااسلام ددي مقصدپه خاطردمعالجي دپريښودلواجازت وركوي ؟

الجواب :لومړى مسئله ،ديوتهنزيا(۱،۲)ددي دواړوتدبيرونومقصدغرض مريض لره يادهغه متعلقينولره له تكاليفوڅخه نجات وركول يادهغوئ تكاليف كمول مذكوردي ،په دي وجه لومړى خبره خوداده چې ددي تجربه هيڅ الره نشته اونه كيداى شي ،چې په طبعي مرګ كې ډيرتكليف وي ياپه غيرطبعي مرګ كې ډيروي په دي وجه چې تجربه خوبه هغه څاته وي كوم چې له مرګ څخه وروسته ژوندى شي اوبيان وكړي اوداسي نه شوي ده اونه كيداى شي .بلكه مشاهده ددي خلاف ده ،په طبعي مرګ كې اكثره تكليف كم ليدل كيږي ،اوپه غيرطبعي مرګ كې ډيرليدل كيږي.

همداشان په متعين مريض اوپاى وازي كې مشاهده اكثره ددي ده چې دپاى وازى په پالنه كې په ظاهره تكليف ښكاريږي .مګرله مرګ څخه وروسته سكون اوتسلي ډيره زركيږي ،چې څومره چې دده په وس كې ووهغه يې وكړل وړاندي دقدرت خبره وه كومه چې دده په اختياركې نه ده په دي وجه ډيرزرصبراوسكون حاصليږي .په خلاف دغيرطبعي مرګ چې دهغه رنج اوغم ډيروختونه دماغ خرابوي ،ياله كلنواوزمانو وروسته ختميږي.

اوكه داشبه وي چې ډيروختونه مريض اوپاى وازپه دي تكليف اوسختۍ كې كلنوكلنومبتلاء وي ،اوپه دي تدبيرونوسره زرله دي تكاليفوڅخه خلاصيږي ،نوددي ځواب دادى چې ددنياژوندځووړځې اومحض عارضي دى ،اوآخرت دائمي دى ،اواصلي ژونددائمي اوابدي وي ،كوم چې دآخرت ژونددى ،هلته كله هم

مرګ نه راځي ،دلته که په ويريدلوسره غيرطبعي مرګ طاري کړای شي نوله دي څخه په ويريدلوداسي کونکی دآخرت ژوند دهميشه لپاره تباه اوبربادېږي ،اوکله مرګ هم نه راځي چې خلاصي حاصله شي ،په دي وجه عقلاهم داجانب مرجح نه شي کيدلای چې ددي په وجه سره دي دمذکوره تدابيرواجازت ورکړل شي ،غرض دتجربي اومشاهدي وغيره په حيثيت سره داجازت هيڅ مرجح نشته.

دوهمه خبره داده چې اګرکه په تجربه يامشاهده وغيره دلائلوسره کومه فيصله ونه شي بياهم دصادق اومصدوق په خبره سره داخبره متعينه ده چې مؤمن لره په طبعي مرګ اوشهادت کې تکليف ډيرلږوي اوغيرمؤمن لره په هرحال کې تکليف ډيرزيات وي ،ارشادربّانی (والنازعات غرقاوالناشطات نشطا)کې هم همداخبره ښودل شوي ده چې که طبعي مرګ وي ياغيرطبعي مرګ وي په دواړوحالتونوکې مومن لره تکليف لږوي ،نوکه ددواء وغيره په ذريعه سره غيرطبعي مرګ طاري کړای شي نومريض خوشهيد کيږي اودااګرکه دده لپاره ښه ده مګردغيرطبعي مرګ طاري کونکی اکثره وختونه دقتل دګناه په وبال کې مبتلاء کيږي ،اوډيروختونه ديت اوضمان وغيره واجب الاداء ګرځي اوتوبه کول هم لازم ګرځي ،لکه څرنګه چې دهغه حمل په ساقطولوکې دقتل دګناه وبال راځي په کوم کې چې دروح دراتلوګمان وي ،اوپه ځينوصورتونوکې ديت اوضمان هم شرعالازميږي اوکله چې دروح دمحض ګمان اواحتمال په صورت کې داسزااووبال دی ،نودروح ديقينا موجودوالی په صورت کې چې کوم وبال وي هغه ظاهردی ،په داسي موقع کې لږترلږه دقتل ګناه خوضروروي.

درواياتوجمع کولوداوخت محل نه دی ،احاديثوته په رجوع کولوسره ددي تفصيل معلوميدلای شي ،چې مريض ته چې کوم غيراختياريه تکاليف رسيږي اوهغه پرهغوصبرکوي اوخپل خدای ﷻ ته يې سپاري نوهغه لره داتکاليف دهغه دګناهونوکفاره جوړيږي ،اوپه آخرت کې يې درجاتي لوړيږي ،اوښه ژوندورکول کيږي ،حتی که مړکيدونکی معصوم يانابالغ وي ،نودهغه په دي تکليفونوسره دهغه والدينواومتعلقينوپای وازانوته کله چې هغوئ پردي صبرکوي اودکلفت په برداشتولوسره يې الله ﷻ ته تفويضوي نودهغوئ ګناه هم ختميږي اوآخرت يې ښائسته کيږي.

بالکل همداحال دبالغينواوغيرمعصومينودمتعلقينواوپای وازانوهم وي چې په دي تکاليفوصبر کونکو اودهغه دصحت اوروغتياپه تدبيرمشغول پاتي کيدونکولپاره داتکاليف کفاره ذنوب اوپه آخرت کې ددرجاتودلوړوالي ذريعه جوړيږي ،اوبياهميشه هميشه ترابدالاباد پوري راحت اوسکون ورته حاصليږي.

په دي وجه له دواړوتدبيرونوڅخه دکوم يوه تدبيرحکم يااجازت په شريعت مقدسه کې هيڅکله نشته ،البته ددواړوتدبيرونوپه حکم کې فرق دادی چې په نمبراکې غيرطبعي مرګ په دواء وغيره سره طاري کولوکې خوپرداسي کونکي دقتل ګناه اووبال راځي ،ډيروختونه شرعاديت اوضمان وغيره هم لازميږي ،اوپه نمبر٢کې داحکم (يعنی دقتل ګناه وغيره )خونه شته ،ليکن ترک تدبيراودصحت لپاره ترک سعی فعل مذموم اوقبيح اودشريعت له منشاء څخه خلاف ده اوکه دسستي اولاپرواهي په وجه سره که داسي وکړای شي نومؤاخذه به هم ضروروي .(نظام الفتاوی :١/٣٨٩تا٣٩٢)

## باب مایوجب القود ومالا یوجبه

دا باب دهغو امورو په بیان کې دی کوم چې موجب قصاص دي او کوم چې موجب قصاص نه دي

مصنف رحمه الله دقتل دانواعو له بیان څخه فارغ شو نو په تفصیل یې شروع وکړه چې کومه نوعه موجب قصاص ده او کومه دقصاص موجبه نه ده.

(۱) یجب القصاص بقتل کل محقون الدم علی التابید عمدا (۲) ویقتل الحر بالحر وبالعبد (۳) والمسلم بالذمي لا بالمستامن (۴) والرجل بالمرأة والکبیر بالصغیر والصحیح بالأعمی وبالزمن وناقص الأطراف وبالمجنون والولد بالوالد (۵) ولا یقتل الرجل بالولد والأم والجد والجدة کالأب (۶) وبعبده ومدبره ومکاتبه وبعبد ولده وبعبد ملک بعضه (۷) وان ورث قصاصا علی ابیه سقط (۸) وانما یقتص بالسیف

**ترجمه**: واجبیږي قصاص دهر داسي کس په عمدا وژلو سره کوم چې محفوظ الدم وي دهمیشه لپاره. او قتل کیږي به حر، دحر او غلام په بدله کې، او مسلمان دذمي په بدله کې او مسلمان او ذمي نه قتل کیږي دمستامن په بدله کې، اونارینه دښځې په بدله کې اوبالغ دنابالغ په بدله کې اوروغ دړانده، شل، ناقص الاعضاء اولیوني په بدله کې اوزوی دپلار په بدله کې، اونه قتل کیږي کوم کس دزوی په بدله کې اومور او نیکه اوانا دپلار په شان دي. او مالک (نه قتل کیږي) دخپل غلام اومدبر اومکاتب او دخپل زوی دغلام په بدله کې کوم چې مالک وي دهغه دبعض. اوکه وارث شو دقصاص پر خپل پلار باندي نو ساقطیږي. اوقصاص به اخیستل کیږي په صرف توره سره.

**تشریح**: (۱) قصاص هغه وخت واجبیږي (ثابتیږي) کله چې مقتول داسي کس وي چې دهغه وینه دهمیشه لپاره محفوظه وي او عمدا وژل شوی وي لکه مسلمان او ذمي. په خلاف دواده شوي زاني او مرتد چې محفوظ الدم نه دي. همداشان حربي کافر او مستامن دی ولی چې حربي خو محقون الدم نه دی او مستامن اګر که په دارالاسلام کې محقون الدم دی مګر داعلی التابید نه دی بلکه کله چې هغه واپس دارالحرب ته ولاړشي نو هغه مباح الدم ګرځي.

(۲) ازادکس ازاد په بدل کې هم قتل کیږي اودغلام په بدل کې هم قتل کیږي اوغلام هم دازاد او غلام دواړو څخه دهریوه په بدل کې قتل کیږي ولی چې دباری تعالی ارشاد (ان النفس بالنفس) (یعنی نفس دي د نفس په مقابل کې قصاص کړای شي) مطلق دی. همدرازپه قصاص کې مساوات ضروري دی اوپه مذکوره کسانو کې دمعصوم الدم والی په اعتبار سره مساوات موجود دی.

ف: دامام شافعي رحمه الله په نزد آزاد قاتل دغلام مقتول په بدل کې نه شي قتل کیدای ولی چې دقصاص لپاره په قاتل اومقتول کې دمساوات موجودوالی ضروري دی حال داچې حر مالک او غلام مملوک دی اوپه مالک اومملوک کې مساوات نشته لهذا قصاص به هم نه وي. احناف ځواب ورکوي چې مساوات دعصمت تر حده په دواړو کې موجود دی یعنی حر او غلام دواړه معصوم الدم دي ولی چې دعصمت حصول په اسلام اوپه دارالاسلام کې دموجودوالي په وجه سره ثابتیږي اوداد دواړه خبري په غلام اوحر دواړو کې متحققي دي لهذا ثابته شوه چې ددواړو په منځ کې مساوات شته لهذا دیوه به له هغه بل څخه قصاص هم اخیستلی کیږي.

(۳)قوله والمسلم بالذمي اي يقتل المسلم بالذمي ،يعني مسلمان به دذمي كافرپه بدل كې قصاصيږي ولى چې نبى كريم ﷺ مسلمان دذمي په بدل كې قتل كړى وو .همداراز ذمي ځرنگه چې دعلى التابيد محفوظ الدم والى په وجه سره له مسلمان سره مساوي دى په دي وجه به دذمي په بدله كې مسلمان قتل كيږي .البته مسلمان اوذمي به دمستامن په بدله كې نه قصاصيږي ولى چې مستامن دعلى التابيدنه محفوظ الدم والى په وجه سره له مسلمان اوذمي سره مساوي نه دى.

(۴)قوله والرجل بالمراة والكبير بالصغير اى يقتل الرجل بالمراة والصغير بالكبير الخ ،يعني نارينه به دښځې په بدل كې قتل كيږي اولوى به دكوچني په بدل كې ،اوصحيح اعضاء والابه دناقص الاعضاء په بدل كې اوعاقل به دمجنون په بدل كې اوروغ به دړانده په بدل كې ،اودشل په بدله كې اوزوى به دپلارپه بدله كې قتل كيږي ولى چې په نصوصوكې تعميم دى .همدرازدعصمت ترحده په دي تولوكې مساوات موجوددى اوپه دي باب كې همدامساوات فى العصمة معتبردى ولى چې كه دقصاص لپاره دهرقسم مماثلت اعتباروكړاى شي نودقصاص دروازه به بنده شي دكوم په نتيجه كې به چې فتنې ډيرې شي .

(۵)پلاربه دزوى په بدل كې نه قتل كيږي لقوله ﷺ لايقادالوالدبولده والسيدبعبده (له پلارڅخه به دخپل زوى په بدل كې قصاص نه اخيستل كيږي اوله مولى څخه به دخپل غلام په بدل كې قصاص نه اخيستل كيږي ).همداراز پلاردزوى دژوندانه سبب دى نوزوى لره داستحقاق نه شي حاصليداى چې هغه پلارفناء كړي .همدا حكم دنيكه ،انا ،دموردپلار ،اودموردموروان علاهم دى لماپينا .

(۶)قوله وبعبده اى لايقتل المولى بعبده ،يعني كه مولى خپل غلام يامدبريامكاتب قتل كړنودهغوئ په بدله كې به مولى نه قتل كيږي ولى چې په دي صورت كې دقصاص وارث مولى دى نوخپل ځان لره به پرخپل ځان قصاص واجبول لازم شي كوم چې باطل دى .كه چادخپل زوى غلام قتل كړنوهم به قاتل نه قتل كيږي ولى چې زوى هم پرخپل پلاردقصاص مستحق نه شي گرځيدلاى .همداشان كه يې كوم داسي غلام قتل كړچې دهغه دبعض حصي قاتل مالك دى نوهم به قاتل نه قتل كيږي ولى چې په قصاص كې تجزى نشته چې دهغه دخپلې حصي قصاص خو وانه خيستل شي اودهغه بل دحصي قصاص واخيستل شي .

(۷)كه كوم څوك پرخپل پلاردقصاص وارث شي نوقصاص ساقطيږي ولى چې فرع پرخپلو اصولو قصاص نه شي واجبولى .ددي صورت دادى چې چاخپل خسرقتل كړاودقاتل له زوجي څخه ماسوادمقتول هيڅ وارث نشته بياله قاتل څخه دقصاص له اخيستلوړاندي دابنځه مړه شوه نوددي ښځې زوى (كوم چې دقاتل له نطفې څخه دى )ددي قصاص وارث شوكوم چې دده پرپلارواجب دى نودا قصاص ساقطيږي .

(۸)قصاص به په توره سره اخيستل كيږي په كوم بل شي سره نه اگركه قاتل له توري اواسلحي ماسواپه كوم بل شي سره مقتول كړى وي لقوله ﷺ لاقودالابالسيف (يعني قصاص نشته مگرپه توره سره )،مگرله توري څخه مراداسلحه بياكه توره وي ياكلاشينكوف وي وغيره .

ف:امام شافعي رحمه الله فرمايي چې قاتل چې په كوم فعل سره مقتول قتل كړى وي په دي شرط چې هغه فعل مشروع وي نوله قاتل سره به هغه فعل كيږي ولى چې يوه يهودي ديومسلماني ښځې سرددوو ډبروپه منځ كې

اېښې وو او ټكولې يې وو ،نو نبي كريم ﷺ حكم وفرمايه چې ديهودي سردې هم هداسې وروټكول شي ،احناف ځواب وركوي چې مذكور يهودي مشهور فسادي وو په دي وجه نبي كريم ﷺ سياسة هم داشان حكم فرمايلې وو د نبي كريم ﷺ دا حكم قصاصانه وو .

(۹) مكاتب قتل عمداً وترك وفاءً ووارثه سيده اقتص (۱۰) ولم يترك وفاءً وله وارث يقتص (۱۱) وان ترك وفاءً ووارثاً لا (۱۲) وان قتل عبد الرهن لايقتص حتى يجتمع الراهن والمرتهن (۱۳) ولأبي المعتوه القود والصلح لا العفو بقتل وليه (۱۴) والقاضي كالأب (۱۵) والوصي يصالح فقط (۱۶) والصبي كالمعتوه (۱۷) وللكبار القود قبل كبر الصغار وان قتله بمر يقتص ان اصابه الحديد والا لا كالخنق والتغريق (۱۸) ومن جرح رجلاً عمداً وصار ذا فراش ومات يقتص (۱۹) ومن مات بفعل نفسه وزيد وأسد وحية ضمن زيد ثلث الدية

**ترجمه** :كوم مكاتب قتل كړاى شو عمداً او هغه پرېښود دكتابت په اندازه مال او دهغه وارث صرف دهغه مالك دى ،يا هغه نه وو پرېښې دكتابت په اندازه مال او دهغه كوم وارث وونو قصاص به اخيستل كيږي ،او كه يې پرېښود دبدل كتابت په اندازه مال او وارث نو نه ،او كه قتل كړاى شو مرهون غلام نو قصاص به نه اخيستل كيږي ترڅو چې يو ځاى شي راهن او مرتهن ،او دمعتوه پلار له صرف قصاص او صلح ده نه معاف كول دهغه دولي په قتل كولو سره ،او قاضي دپلار په شان دى ،او وصي صرف صلح كولى شي ،او نابالغ دمعتوه په شان دى ،او بالغ وارثانو له قصاص شته دنابالغو له بالغ كيدلو څخه وړاندې او كه قتل كړاى شو څوك په كدال سره نو قصاص به اخيستل كيږي كه ورسيدى ده ته داوسپنې والا طرف كه نه نو نه لكه ترغاړه نيول او ډوبول،او چاچې زخمي كړ كوم څوك عمداً يا هغه صاحب فراش پاتې شو او مړ شو نو قصاص به اخيستل كيږي ،او كه مړ شو په خپل فعل سره او دزيد او زمري او ماړ په فعل سره نو ضامن دى زيد د ثلث ديت .

**تشريح** :(۹)كه چا مكاتب عمداً قتل كړ او هغه دومره مال پرېښود چې په هغه سره بدل كتابت اداء كيداى شواى او له مولى څخه ماسوا كوم بل څوك دهغه وارث نه وو نو دشيخينو رحمهما الله تعالى په نزد به له قاتل څخه قصاص اخيستل كيږي او دقصاص اخيستلو حق مولى لره دى .دامام محمد رحمه الله په نزد مولى لره دقصاص اخيستلو حق نشته ولې چې دقصاص اخيستلو په سبب كې اشتباه ده په دي وجه چې كه ومنل شي چې هغه دازادي په حالت كې مړ شوى دى نو دقصاص اخيستلو سبب ولاء ده ،او كه داو منل شي چې دغلامي په حالت كې مړ شوى دى نو دقصاص اخيستلو سبب ملك دى لهذا مولى لره دقصاص اخيستلو حق نشته ،دشيخينو رحمهما الله تعالى دليل دادى چې په دواړو صورتونو كې دقصاص اخيستلو حق مولى لره حاصل دى ولې چې مولى معلوم دى او حكم (يعني قصاص وصول كول )هم متحد دى سبب اګر كه مشتبه ده مګر دا حكم لره مضر نه دى .

**ف**:دشيخينو قول راجح دى :كما قال ابراهيم ابن محمد الحلبي :وكذا يقتص المولى ان كان له وفاء ولا وارث له غيره سيداى المكاتب عند الشيخين لان حق الاستيفاء للمولى يتعين لانعدام الوارث وتعدد السبب لايقتضي تعدد الحكم لايؤدي الى المنازعة لاتحاد الحكم للمولى ،خلافاً لمحمد فان عنده لايقتص المولى لانه لايستوفى لاشتباه سبب الاستيفاء وهو الولاء ان مات حراً والملك ان مات عبداً(مجمع الانهر:۴/۳۱۷)وقال محشي الكنز:بان اختلاف السبب لايفضي الى المنازعة من الفتح والعيني بتوضيح زيادة (وعليه المتون )(هامش الكنز:ص ۴۵۰)

(١٠)كه چامكاتب قتل كړ مگر هغه دومره مال نه پرېښود چې په هغه سره بدل كتابت اداء شي اودهغه ورثه هم موجود وي نوپه دي صورت كې بلاتفاق قصاص اخيستل كيږي اودقصاص اخيستلو حق مولى لره دى ولى كله چې ده دومره مال نه دى پرې ايښى چې په هغه سره بدل كتابت اداء شي نوهغه دبدل كتابت له اداء كولو څخه عاجزشونوهغه غلام مړشوى دى لهذاحق قصاص صرف مولى لره حاصل دى .

(١١)كه چامكاتب عمداقتل كړاوهغه دبدل كتابت په اندازه مال پرېښوداوله مولى څخه علاوه دمقتول نووارثان هم شته نوپه دي صورت كې هيچالره دقصاص اخيستلو حق حاصل نه دى اگركه ورثه له مولى سره يوځاى شي ولى چې په دي صورت كې دقصاص په مستحق كې اشتباه ده په دي وجه چې كه ازادمړشوى وي نومستحق قصاص ورثه دي اوكه غلام مړشوى وي نومستحق قصاص مولى دى .

(١٢)كه چامرهون غلام قتل كړنوتنهاراهن يامرتهن لره دقصاص اخيستلو حق نشته بلكه ددواړويوځاى كيدل شرط دي مرتهن خوپه دي وجه يواځي دقصاص اخيستلوحقدارنه دى چې مرتهن دغلام مالک نه دى .اوراهن يواځي په دي وجه حقدارنه دى چې كه راهن دقصاص متولى شي نوپه دي سره دمرتهن حق فى الدين باطليږي ولى چې له قاتل څخه په قصاص اخيستلوسره رهن بلابدله هلاكيږي اودبلابدل هلاكت رهن په صورت كې دمرتهن حق فى الدين باطليږي .

كه چادكوم معتوه (پاگل )كوم قريب قتل كړنودمعتوه پلارلره له قاتل څخه دقصاص اخيستلواوله هغه سره دصلح كولوحق شته نه دمعافولومثلادكوم معتوه زوى چاعمداقتل كړنواوس ددي معتوه پلارلره داحق حاصل دى چې دخپل دي لمسى قصاص واخلي ولى چې پلارلره دخپل معتوه زوى پرنفس باندي ولايت حاصل دى اوقصاص اخيستل دولايت على النفس له باب څخه دى لهذاپلارلره دقصاص اخيستلوحق شته .همداشان دمعتوه پلارلره داحق هم حاصل دى چې هغه له قاتل سره پرمال باندي صلح وكړي ولى چې په دي كې دمعتوه فائده ده چې هغه دمال مالک گرځي كوم چې به دده په كارراشي .مگرپلارلره داحق نشته چې هغه قصاص معاف كړي ولى چې په دي كې دمعتوه نقصان دى .

(١٣)لكه څرنگه چې پلارلره دقصاص اخيستلواوصلح كولواختيارشته همداشان قاضي لره هم شته ولى چې قاضي اوپلاردواړولره ولايت حاصل دى په دي وجه چې كه كوم كس عمداقتل كړاى شي اودهغه كوم ولي نه وي نودهغه قصاص به سلطان وصول كوي اوقاضي دسلطان نائب دى لهذاقاضي لره به هم دقصاص اخيستلوحق حاصل وي .

(١۴)اوكه په مذكوره بالاصورت كې دمعتوه پلارهم نه وي البته دپلاروصى وي نوهغه صرف پرمال صلح كولى شي قصاص نه شي اخيستلى ولى چې دقصاص اخيستلوحق هغه وخت وي چې هغه لره پرنفس ولايت حاصل وي اووصي لره دمعتوه پرنفس ولايت حاصل نه دى .

(١٥)اونابالغ ماشوم په مذكوره بالاحكم كې دمعتوه په شان دى يعنى كه دهغه كوم ولى چاقتل كړمثلادهغه اخيافي ورور(صرف په مورگه ورور)چاقتل كړاودهغه نابالغ پلارموجودوي نودهغه پلارلره اختيارشته كه يې خوښه وي نوله قاتل څخه دي قصاص واخلي اوكه يې خوښه وي نوپرمال دي صلح ورسره وكړي ولى چې

پلارله دنابالغ پرنفس ولايت حاصل دى .مګرپلارله دقصاص دمعافولوحق نشته ولى چې په دي کې دنابالغ نقصان دى .

(۱۶)يوكس چاعمداقتل كړاودهغه په اولياءكې بعض نابالغ دي اوبعض بالغ نودداامام ابوحنيفه رحمه الله په نزبالغين له قاتل څخه قصاص اخيستلى شي دنابالغودبالغ كيدلوانتظاركول ضروري نه دي .اودصاحبينو په نزدبه دنابالغانوتربلوغ پوري مؤخركيږي ولى چې قصاص دټولو مشترک حق دى لهذادټولو په وصولوسره به وصوليږي حال داچې په نابالغوکې دخپل دي حق دوصولولوصلاحيت نشته .دامام صاحب دليل دادى چې دقصاص حق ټولوته برابرحاصل دى متجزي نه دى ولى چې دده سبب يعنى په قرابت كې تجزي نشته نوكله چې بالغينولره كامل حق حاصل دى نودنابالغوپه وجه سره به بالغان دخپل دي حق له وصولولوڅخه نه منع كيږي .

ف:دامام صاحب قول راجح دى كماعلم من صنيع صاحب الهداية حيث اخردليله وهذاترجيح قول الراجح عندصاحب الهداية وقال العلامة الحصكفى :(وللكبارالقودقبل كبرالصغار)خلافالهمالان الاصل ان كل مالايتجزأاذاوجدسببه كاملاثبت لكل على الكمال كولاية انكاح وامان(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/۳۹۳)

(۱۷)كه كوم كس په بيلچه سره قتل كړاى شونوكه پرهغه اورسپينه لګيدلي وه نودهغه په بدله كې به قاتل قصاصيږي ولى چې دبيلچې په تيره طرف سره قتل كول په آله قتل سره قتل كول دي لهذاله قاتل څخه به قصاص اخيستل كيږي اوكه پرهغه لركى لګيدلى وونوقاتل به نه قصاصيږي بلكه پرهغه به ديت واجب وي ولى چې پردي دقتل عمدتعريف نه صادقيږي .لكه چې يوڅوک كوم بل څوک ترغاړه ونيسي اويايې په اوبوكې په ډوبولوقتل كړي نوله قاتل څخه قصاص نه اخيستل كيږي بلكه پرهغه ديت واجبيږي په دي كې دصاحبينواختلاف دى اوددااختلاف مبنى دى دامام صاحب اوصاحبينوپرهغه اختلاف باندي كوم چې دقتل شبه عمدپه تعريف كې دى .

(۱۸)كه چاعمداكوم كس زخمي كړاومجروح صاحب فراش شواوپرهمدي حال پاتي شوترڅوچې مړشونوپرجارح قصاص لازميږي ولى چې دمرګ سبب (زخم )متحقق شولهذادمرګ وقوع به له همدي څخه ګڼل كيږي ولى چې ظاهراكوم داسي شى نه دى موندل شوى كوم چې دسبب حكم باطل كړي .

(۱۹)كه چاخپل ځان زخمي كړاوبل كس مثلازيدهم دى زخمي كړاوزمري هم دى زخمي كړاومارهم وچيچى بياهغه له دي ټولوزخمونوڅخه مړشونوپرزيدثلث ديت لازميږي ولى چې دزمري اومارفعل جنس واحددى ولى چې دنه مكلف والي په وجه سره ددواړوفعل په دنيااوآخرت دواړوكې لغوه دى اوپه خپل دمقتول فعل جلاسبب دى كوم چې په دنياكې لغوه اوپه آخرت كې معتبردى ولى چې په اخروي اعتبارسره دده دافعل ګناه ده كوم چې به له ده سره حساب كيږي اودزيدفعل جلاسبب دى كوم چې په دنيااواخرت دواړوكې معتبردى نومقتول ددريوسببونوپه وجه سره مړشوى دى اودزيدفعل ددي دريويوثلث دى لهذاپرده به ديت هم يوثلث لازميږي .

(۲۰)ومن شهرعلى المسلمين سيفاوجب قتله ولاشيء بقتله)(۲۱)ومن شهرعلى رجل سلاحاليلااونهارافي المصراوغيره اوشهرعليه عصاليلافي مصراونهارافي غيره فقتله المشهورعليه فلاشيء عليه(۲۲)وان شهرعصانهارافي مصرفقتله المشهورعليه قتل به(۲۳)وان شهر

(۲۴)وَعَلى هذا الصَّبِيُّ وَالدَّابَّةُ(۲۵)وَلَوْ ضَرَبَهُ الشَّاهِرُ فَانْصَرَفَ فَقَتَلَهُ الْآخَرُ فَإِنَّ الْمَجْنُونَ عَلى غَيْرِهِ سِلَاحًا فَقَتَلَهُ الْمَشْهُورُ عَلَيْهِ عَمْدًا تَجِبُ الدِّيَةُ بِهِ الْقَاتِلُ(۲۶)وَمَنْ دَخَلَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ لَيْلًا فَأَخْرَجَ السَّرِقَةَ فَاتَّبَعَهُ فَقَتَلَهُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ)

**ترجمه** :اوكوم كس چې راوباسي توره پرمسلمانانوباندي نوواجب دى دهغه قتل كول اوهيڅ نه واجبيږي دهغه په قتل كولوسره ،اوچاچې راويستله پركوم كس اسلحه په شپه كې ياپه ورځ كې په ښاركې ياپه غيرښاركې ياېې راواچته كړه پرهغه لاټۍ په شپه كې په ښاركې ياپه ورځ كې په غيرښاركې نوبياقتل كړه لره مشهورعليه نوهيڅ نه دى واجب پرهغه ،اوكه يې رااوچته كړه پرده لاټۍ په ورځ كې په ښاركې نوقتل كړهغه لره مشهورعليه نوقتل كيږي به دهغه په عوض كې ،اوكه راوويستله مجنون اسلحه پربل چاباندي بياقتل كړهغه لره مشهورعليه عمدانوديت واجبيږي ،اوپرهمدي حكم ده نابالغ اودابه ،اوكه وواهه يوڅوك توره راايستونكي اوولاړى بياقتل كړهغه لره بل چانوقتل كيږي به قاتل ،چاته چې راغى كوم كس اوراويست ده دغلامال بيامالک په هغه پسي شواوقتل يې كړهغه نوهيڅ نه دي واجب پرهغه باندي .

**تشريح** :(۲۰)كه چاپرمسلمانانو توره راوكښله يعني دمسلمانانودوژلواراده يې وكړه نوپرمسلمانانو واجب ده چې هغه قتل كړيَ ولى چې داباغي دى اودبغاوت په وجه سره دهغه عصمت اوحفاظت ختم شوى دى لهذادهغه قتل كول جائزدى.همداراز دهغه له قتل كولوڅخه بغيرله خپل نفس څخه مدافعت هم مشكل دى لهذادهغه قتل كول جائزدى ،اوچاچې هغه قتل كړپرهغه هيڅ نه واجبيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ (مَنْ شَهَرَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ سَيْفًا فَقَدْ أَبْطَلَ دَمَهُ (چاچې پرمسلمانانوتوره راوكښله نوهغه خپله وينه باطله كړه ).

(۲۱)همداشان كه چاپربل چاپه ښاركې ياله ښارڅخه دباندي اسلحه راوكښله كه په شپه كې وي اوكه په ورځ كې وي ،ياېې په شپه كې په ښاركې لاټۍ راوكښله ياېې له ښارڅخه دباندي په ورځ كې لاټۍ راوكښله نومشهورعليه (پرچاچې لاټۍ راكښل شوي ده )هغه قتل كړنوپرهغه هيڅ واجب نه دي لماقلنا .

**فائده** :لاټۍ رااوچتونكي لره په ښاركې دشپې اوپه ورځ كې دځنګل قيدپه دي وجه ولګول شوچې په لاټۍ سره اګركه انسان زرنه قتل كيږي مګرپه شپه كې ياپه ځنګل كې كوم كومک كونكى نه شي پيداكيداى كوم چې دى خلاس كړي لهذااوس مشهورعليه په خپله دفاع كې دهغه په قتل كولوكې مجبورشمارل كيږي .

(۲۲)اوكه په ښاركې په ورځ كې يوكس پربل لاټۍ رااوچته كړه مشهورعليه (پركوم كې چې لاټۍ رااوچته شوي ده )په قابوپيداكولوسره لاټۍ اوچتونكى قتل كړنوله مشهورعليه څخه به قصاص اخيستل كيږي ولى چې لاټۍ داسلحې په شان نه ده يعني په دي سره انسان زرنه وژل كيږي اوپه ښاركې دى كومک كونكى پيداكولى شي چې دى خلاس كړي لهذاده دقتل اقدام كول زياتى (ظلم )دى په دي وجه به له ده څخه قصاص اخيستل كيږي .

(۲۳)كه مجنون پركوم كس باندي اسلحه راوكښله مشهورعليه هغه عمداقتل كړنودطرفينوپه نزدپرقاتل ديت واجب دى اودامام ابويوسف رحمه الله په نزدديت نه واجبيږي ولى چې دمجنون فعل معتبردى نوپه دي سره دهغه عصمت ساقط شمارل كيږي لهذاپرقاتل هيڅ نه واجبيږي .دطرفينودليل دادى چې داصحيح نه ده چې دمجنون فعل دهغه عصمت ساقطوي ولى چې په مجنون كې اختيارصحيح نه دى همداوجه ده چې كه هغه

څوک قتل كړنو پرده قصاص نه واجبيږي لهذا دمجنون عصمت نه ساقطيږي يعنى دهغه قتل كول جائزنه دى . بيادي تقاضاخوداده چې پرقاتل قصاص واجب شي ليكن څرنګه چې دقاتل په حق كې يوامرمبيح موجوددى په دي وجه پرقاتل قصاص نشته ديت واجب دى اوهغه امرمبيح دمجنون شردفع كول دي .

ف:دطرفينوقول راجح دى لمافى الدرالمختار:وان شهرالمجنون على غيره سلاحافقتله المشهورعليه (عمداتجب الدية )فى ماله (الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/۳۸۸)،وقال ابراهيم ابن محمدالحلبي :وعن ابى يوسف لاتجب الدية فى الصبى والمجنون ويجب الضمان فى الدابة ،وقال الشافعى رحمه الله لاتجب فى الكل لانه قتله دفعاعن نفسه ولنا ان الفعل من هذه الاشياء غيرمتصف بالحرمة فلم يقع بغيافلاتسقط العصمة به لعدم الاختيار الصحيح ولهذالايجب القصاص على الصبى والمجنون بقتلهماولاالضمان بفعل الدابة واذالم يسقط كان قضيته ان يجب القصاص لانه قتل نفسامعصومة الاانه لايجب القصاص لوجودالمبيح وهودفع الشرفيجب الدية فى الادمى والقيمة فى الدابة (مجمع الانهر:۴/۳۲۲)

(۲۴)همداشان كه كوم نابالغ پربل كس توره راوكښله اوهغه داهلك قتل كړنو پرهغه هم ددي هلک ديت لازم دى لماقلنا،على هذ القياس كه دڅاڅاروي پرڅاحمله وكړه اوهغه داڅاروى قتل ك نوپرهغه دڅاروي قيمت لازميږي لماقلنا .

(۲۵)كه څاپه ښاركې پربل كس اسلحه راوكښله اومشهورعليه يې څه زخمي كړاوولاړى اوس يې دوهم ځل ـ وهلواراده نشته مشهورعليه په هغه پسي شواوهغه يې قتل كړنوله قاتل څخه به قصاص اخيستل كيږي ولې كله چې شاهرمشهورعليه پريښوداودوهم ځل يې دوهلواراده نشته نوشاهرمحارب پاتي نه شولهذاهغه معصوم الدم شونو كه مشهورعليه اوس هغه قتل كړي نويومعصوم الدم كس به يې قتل كړى وي اودمعصوم الدم كس قتل كول موجب قصاص دى .

(۲۶)دڅاكورته غل داخل شواومال مسروق يې دباندي راويستى اووتښتيدودكورمالک هغه تعقيب كړاوغل يې قتل كړنوپرقاتل هيڅ نه واجبيږي لِقَولِهِ عليه الصَّلاةُ وَالسَّلام [قَاتِل دُونَ مَالِكَ (دخپل مال لپاره جنګ وكړه )،همدارازپه دي وجه هم چې ابتداء كورته دننه په داخليدلوسره دخپل مال دحفاظت لپاره دهغه قتل كول جائزدى نوانتهاءً له كورڅخه دباندي دخپل مال دبيرته اخيستلولپاره هم دهغه قتل كول جائزدى ،په دي شرط چې دى بغيرله قتل كولوله هغه څخه خپل مال نه شي اخيستلاى .

## بَابُ الْقِصَاصِ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ

دباب دنفس څخه دعلاوه قصاص په بيان كې دى

كله چې مصنف رحمه الله دنفس دقصاص له بيان څخه فارغ شونوله نفس څخه كم يعنى داعضاؤ(اندامونو) دقصاص په بيان يې شروع وكړه ولې چې جزء دكل تابع دى اوكل متبوع دى اومتبوع احق بالتقديم دى .

(۱)يُقْتَصُّ بِقَطْعِ الْيَدِ من الْمِفْصَلِ, وَإِنْ كانت يَدُ الْقَاطِعِ أَكْبَرَ وَكَذَا الرِّجْلُ وَمَارِنُ الْأَنْفِ وَالْأُذُنُ (۲)وَالْعَيْنُ إنْ ذَهَبَ ضَوْءُهَا وَهِيَ قَائِمَةٌ, وَإِنْ قَلَعَهَا لا (۳)وَالسِّنُّ وَإِنْ تَفَاوَتَا (۴)وَكُلُّ شَجَّةٍ تَتَحَقَّقُ فيها الْمُمَاثَلَةُ) وَلَا قِصَاصَ في عَظْمٍ (۵)وَطَرَفَيْ رَجُلٍ وَامْرَأَةٍ (۶)وَحُرٍّ وَعَبْدٍ وَعَبْدَيْنِ (۷)وَطَرَفِ الْكَافِرِ وَالْمُسْلِمِ سِيَّانِ (۸)وَقَطْعِ يَدٍ من نِصْفِ سَاعِدٍ وَجَائِفَةٍ بَرِئَ منها (۹)وَلِسَانٍ وَذَكَرٍ (۱۰)إلَّا أَنْ يَقْطَعَ الْحَشَفَةَ (۱۱)وَخُيِّرَ بين الْأَرْشِ وَالْقَوَدِ إنْ كان الْقَاطِعُ أَشَلَّ او نَاقِصَ الْأَصَابِعِ (۲ )او كان رَأْسُ الشَّاجِّ أَكْبَرَ

**ترجمه** :قصاص به اخیستل کیږي دلاس په پریکولوکې له مړوندڅخه اګرکه دقاطع لاس لوی وي اوهمداشان پښه ده اودپوزي نرمی اوغوږ.اوسترګه ده که ختم شي دهغې نوراوسترګه قائمه پاتي شي اوکه يې وکښله سترګه نونه .اوغاښ اګرکه متفاوت وي ،اوهرهغه زخم په کوم کې چې متحقق کیدای شي مماثلت . اوقصاص نشته په هډوکی کې ،اودنارینه اوښځې په اطرافوکې ،اودازاداوغلام اودووغلامانوپه اطرافوکې .اودمسلمان اوکافرطرف یوشان دي ،اوپه لاس پریکولوکې له نیمايې مړوندڅخه اوپه جائفه زخم کې له کوم څخه چې جوړشوی وي ،اوپه ژبه اوذکرکې .مګرداچې پري کړی وي دذکرسر.اواختیاربه ورکول کیږي په قصاص اودیت کې.که دقاطع لاس شل یاناقص الاصابع وي ،یاوي دزخم کونکی سرلوی .

**تشریح** :(۱)که چې :مدادچالاس له مفصل (بند)څخه پري کړنودپري کونکي لاس به پري کیږي لقوله تعالی (والجروح قصاص)(دزخمونوبدله دهغوبرابرده ).اګرکه دقاطع لاس دمقطوع له لاس څخه لوی وي ولی چې دلاس کارنیول دي لهذادلاس په کوچني والی یالوی والی سره دلاس په منفعت کې څه فرق نه راځي .همداحکم دپښي په پري کولو(په دي شرط چې له بندڅخه يې پري کړي وي )اودپوزي دنرمي برخي اودغوږدپري کولوپه صورت کې هم دی ولی چې په دي ټولوصورتونوکې دقصاص په اخیستلوکې دمماثلت رعایت ممکن دی .

**ف**:قصاص څرنګه چې له مماثلت څخه خبرورکوي لهذااصول دادي چې دجنایت فیمادون النفس هرهغه صورت په کوم کې چې مماثلت کیدای شي په هغه کې به قصاص وي له په مذکوره بالاصورتونوکې .اوپه کوم صورت کې چې مماثلت متعذروي نوقصاص به نه وي لکه دمړونداوڅنګلي په منځ کي اويادڅنګې اواوږي په منځ کي لاس پري کړای شي نودمماثلت رعایت ممکن نه دی لهذاقصاص نشته .

(۲)قوله والعین ان ذهب ضوزهاوهی قائمة ای یقتص فی ضرب العین ان ذهب ضوزهاوهی قائمة .یعنی که چاکوم بل څوک پرسترګه وواهه اوسترګه پرخپل ځای پاتي وه مګرصرف دهغې رڼائي ختمه شوه نودمماثلت دممکن والی په وجه سره قصاص اخیستل کیږي .اودقصاص اخیستلوصورت يې دادی چې دضارب پرمخ اودوهمه سترګه به لندي وړی کښېنودل شي اودکومې سترګې رڼائي چې ورختموي دهغې په مقابل کې به ګرمه شیشه کښېنودل شي نودهغې رڼائي به ختمه شي همداله صحابه کرامو ﷺ څخه منقول ده .اوکه چاڅوک پرسترګه وواهه اوهغه يې دباندي راویستله نوپرده قصاص نشته ولی چې دسترګي په راکښلوکې مماثلت ممکن نه دی ،البته دیت به اخلي .

(۳)قوله والسن وان تفاوتا ای یقتص فی قلع السن وان تفاوتا .یعنی که چادبل کس غاښ وروکښی نوپه دي کې قصاص شته لقوله تعالی (والسن بالسن )(دغاښ په بدل کې غاښ دی ).اګرکه دقالع اومقلوع په غاښونوکې فرق وي چې دیوه غاښ لوی وي اودهغه بل غاښ کوچنی وي ولی چې په دي سره دغاښ په منفعت کې هیڅ فرق نه راځي .

(۴)اصول دادي چې هرهغه زخم چې په هغه کې مماثلت ممکن وي په هغه کې قصاص شته لقوله تعالى: والجروح قصاص )(دزخمونو بدله دهغوئ برابره ده ).او چيرته چې مماثلت ممکن نه وي هلته قصاص نشته .نو که چا دبل هډوکی ورمات کړنو ځرنګه چې دقصاص په اخيستلو کې دکمي بيشي داحتمال په وجه سره مماثلت متعذر دی لهذا قصاص نه واجبيږي .البته دغاښ دماتولو په صورت کې قصاص شته لقوله عمر و ابن مسعود رضی الله تعالى عنهما لاقصاص في عظم الا في السن (دحضرت عمر او حضرت ابن مسعود رضی الله تعالى عنه قول دی چې په هډوکی کې قصاص نشته مګرپه غاښ کې شته ).

(۵)قوله وطرفی رجل وامرأة ای لاقصاص ايضافي طرفي رجل وامرأة .يعنی دنارينه اوښځې په اطرافو کې قصاص نشته يعنی دجنايت فيمادون النفس په صورت کې دنارينه اوښځې په منځ کې قصاص نشته لهذا که نارينه دښځې لاس وربري کړيا ښځې دنارينه لاس وربري کړنو له يو ه ځخه هم قصاص نه اخيستل کيږي .

(۶)قوله وحر وعبد ای لاقصاص بين حر وعبد .يعنی دآزاد او غلام او ددوو غلامانو په منځ کې هم په فيمادون النفس کې قصاص نه شته ولی چې دانسان اطراف داموالو په درجه کې اينبودل شوي دي لهذا په دوئ کې مماثلت شرط دی ښکاره خبره ده چې دنارينه او ښځې په اطرافو کې دتفاوت في القيمة په وجه سره مماثلت نشته همداشان دحر او غلام په اطرافو کې او ددوو غلامانو په اطرافو کې هم دتفاوت في القيمة په وجه سره مماثلت نشته په دي وجه قصاص نه واجبيږي .

(۷)البته دمسلمان او کافر(مراد ذمی کافر دی )په منځ کې په اطرافو (اعضاء)کې قصاص واجب دی ولی چې دمسلمان او کافر دواړو د اطرافو قيمت شريعت يو مقرر کړی دی لهذا مساوات او مماثلت متحقق کيدای شي په دي وجه دمسلمان او کافر په اطرافو کې قصاص واجبيږي .

(۸)قوله وقطع يدمن نصف الساعد ای لاقصاص في قطع يدمن نصف الساعد .يعنی که چا دبل کس لاس دبازو په منځ کې وربري کړيا يې بل څوک ټه جائفه زخم (کوم زخم چې تردننه پوري سرايت وکړي )سره زخمي کړيا هغه له دي زخم ځخه جوړ شونو په دي دوو صورتونو کې په جنايت کونکی باندي قصاص نشته ولی چې دمماثلت رعايت ممکن نه دی په دي وجه چې بازو خو هډوکی دی په کوم کې چې مماثلت متعذر دی کمامر .او له جائفه زخم ځخه عموما انسان نه جوړيږي نو دقصاص اخيستلو په صورت دجنايت کونکی دنه روغيدلو غالب ګمان دی حال دا چې اول خو روغ شوی وو لهذا دمماثلت رعايت ممکن نه دی .

(۹)قوله ولسان وذکر ای لاقصاص في قطع لسان وذکر .يعنی که چا دبل چاژبه وربري کړه .يايي ذکروربري کړنو قصاص نه واجبيږي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزد که يې ژبه ياذکر له بيخ ځخه وربري کړی وونو قصاص واجبيږي که نو نه واجبيږي ولی چې له بيخ ځخه دپريکولو په صورت کې مماثلت ممکن دی په دي دول چې دهغه بل والا به هم له بيخ ځخه وربري کړي .زمونږ دليل دادی چې ژبه او ذکر کله منقبض وي او کله خلاس وي يعنی اوږده کيږي لهذا دمساوات اعتبار ممکن نه دی .

(۱۰)البته که يو چا دبل کس حشفه (دعضوتناسل سر)(يعنی سنت شوی ځای )وربري کړنو قصاص به اخيستل کيږي ولی چې دقطع ځای معلوم دی نو دلاس له بند ځخه دپريکولو په شان په دي کې هم مماثلت

ممكن دی په دي وجه قصاص واجبيږي ،هوكه يې دحشفي بعض حصه وريږي كړه نودمماثلت دنه ممكن والي په وجه سره به قصاص نه اخيستل كيږي .

(۱۱)كه يوچادبل كس سالم لاس وريږي كړاودپړي كونكی لاس شل وويايې ګوتي كمي وي نودچاچې لاس پري شوی دی هغه لره اختيار دی كه يې خوښه وي دجانی معيوب لاس دي وريږي كړي اوپه دي صورت كې هغه لره دي ماسوا هيڅ شی نشته اوكه يې خوښه وي نودلاس پوره ديت دي واخلي وجه يې داده چې كامل حق وصولول خومتعذردي ولی چې دجانی خوكامل لاس نشته نوله دي څخه علاوه به څه چاره وي چې په چشم پوشي كولوسره پرناقص راضي شي اوله خپل حق څخه په لږراضي كيدل اوچشم پوشي كول ده لره جائزده .نودداسي ده لكه چې څوک دبل چامثلي شی تلف كړي بيااتفاقادتلف شوی شی صرف كمزوری قسم په بازاركې پاتي شي نوصاحب حق لره اختياردی كه يې خوښه وي نودهمدي كمزوري شي په اخيستلودي راضی شي اوكه يې خوښه وي دخپل شي قيمت دي واخلي .

(۱۲)كه چاكوم بل څوک پرسرووا هه اوزخم دهغه دسردواړه طرفه (يعنی راسته اوچپه )ونيول اوحال داچې دشاج يعنی سرماتونكي سردمشجوج (يعنی څوک چې زخمي كړای شوی دی )له سرڅخه لوی دی دازخم دهغه دسردواړه طرفه نه نيسي نومشجوج لره اختيار دی كه يې خوښه وي نودخپل زخم په اندازه دي قصاص واخلي ،اودايې هم په اختياركې ده چې له كوم طرف څخه چې وغواړي شروع دي كړي ،اوكه يې خوښه وي نوكامل ديت دي واخلي وجه داده چې دشاج دسردواړوطرفونوپه ماتولوكې دشاج پرجنايت زياتی دی كوم چې جائزنه دی اودمشجوج دزخم په اندازه په ماتولوكې دومره عيب نه لاحق كيږي څومره چې مشجوج ته لاحق شوی دی نوپه دي شان سره دمشجوج حق ناقص پاتي كيږي لهذامشجوج لره اختيار دی .

## فَصل

### دافصل له دم عمد څخه دمصالحت وغيره په بيان كې دی

څرنګه چې دصلح تصورله جنايت څخه وروسته دی په دي وجه يې له جنايت څخه وروسته دصلح احكام په مستقل فصل كې ذكركړل .

(۱) وَإِنْ صُولِحَ على مَالٍ وَجَبَ حَالًا وَسَقَطَ الْقَوَدُ (۲) وَيَتَنَصَّفُ إِنْ أَمَرَ الْحُرُّ الْقَاتِلُ وَسَيِّدُ الْقَاتِلِ رَجُلًا بِالصُّلْحِ عن دَمِهِمَا على أَلْفٍ فَفَعَلَ (۳) فَإِنْ صَالَحَ أَحَدُ الْأَوْلِيَاءِ عن حَظِّهِ على عِوَضٍ او عَفَا فَلِمَنْ بَقِيَ حَظُّهُ من الدِّيَةِ (۴) وَيُقْتَلُ الْجَمِيعُ بِالْفَرْدِ (۵) وَالْفَرْدُ بِالْجَمْعِ اكْتِفَاءً (۶) فَإِنْ حَضَرَ وَاحِدٌ قُتِلَ لَهُ وَسَقَطَ حَقُّ الْبَقِيَّةِ كَمَوْتِ الْقَاتِلِ

**ترجمه** :اوكه صلح وكړل شوپرمال باندي نوواجبيږي مال فی الحال اوساقطيږي قصاص ،اونصف به اخلي كه امركړی ووازادقاتل اودقاتل غلام مالک چاته دصلح كولودوئ دويني له طرف څخه په زرباندي اوهغه صلح وكړه ،اوكه صلح وكړي كوم يوله اولياء څخه دخپلي حصي له طرف څخه پرعوض باندي يامعاف كړي خپل حق نوكوم چې باقي پاتي دي هغوئ ته به حصه حاصليږي صرف له ديت څخه ،اوقتل كيږي به

جماعت ديوه په بدله كې اويو دجماعت په بدل كي اكتفاء ،او ته حاضرشي يونوسل كيږي به دهغه لپاره اوساقطيږي دباقي پاتي شويوورثه حق لكه چې دقاتل دمړكيدلوپه صورت كې.

**تشريح** :(۱)كه دقاتل اومقتول اولياءپه كوم معلوم مال باندي صلح وكړه چې قاتل به دومره مال وركړي اودمقتول اولياء به له حق قصاص څخه لاس په سركيږي نوداصحيح ده له قاتل څخه قصاص ساقطيږي اومصالح عليه مال پرهغه في الحال واجب گرځي كه په لږمال صلح شوي وي اوكه په پرډيرمال لقوله تعالى فمن عفى له من اخيه شئ فاتباع بالمعروف واداء اليه باحسان )(هغه قاتل كوم ته چې دهغه دمقتول وروړله طرفه څخه څه معافي حاصله شي نوتابعداري كول په كاردي ددستورموافق اوپه ښه طريقه سره دهغه اداء كول په كاردي )،همدراز قصاص دوارثانوداسي حق دى كوم چې په معافولوسره ساقطول جائزدى نودعوض په اخيستلوسره ساقطول يې هم جائزدي ،اودمصالح عليه في الحال واجبيدلووجه داده چې دامال دمتعاقدينوپه رضامندي سره واجب شوى دى اوقاعده داده چې كوم مال چې دعقدپه سببه كې دمتعاقدينوپه خوښه سره واجب شي هغه في الحال واجب الاداء وي.

(۲)زيدآزاددى اوبكردخالدغلام دى زيداوبكرساجدقتل كړدكوم په وجه سره پردوئ دواړوقصاص واجب شولېكن په دوئ كې زيداودبكرمولى خالدزاهدوكيل جوړكړچې هغه دساجدله وراثانوسره دزرودرهموپه عوض كې صلح وكړي زاهدصلح وكړه نواوس به زردرهمه زيداوخالدنصف نصف اداء كوي دى چې دازردقصاص بدل دي اوقصاص پردوئ دواړوبرابردى نودقصاص بدل به پردواړوبرابر وي.

(۳)كه دمقتول له وراثانوڅخه يوه دڅه عوض په بدل كې له قاتل سره مصالحت وكړيايوه خپل حق قصاص معاف كړنودباقى وارثانوحق هم ساقطيږي ولى چې هركس لره دخپلې حصي دوصولوليا ساقطولوحق حاصل دى نوكله چې يوه دخپلې حصي په بدله كې پرڅه عوض صلح وكړه يايې خپله حصه معاف كړنودوارثانوحق قصاص هم ساقطيږي ولى چې قصاص تجزى نه قبلوي لهذادهغوئ حصه په مال يعنى ديت باندي بدليږي اوپه ديت كې ټول وارثان برابرشريک دي اومال تجزى هم قبلوي لهذاديوه دخپلې حصي په ساقطولوسره دنوروحصي نه ساقطيږي.

(۴)كه يوجماعت كوم كس عمداقتل كړنوله هغوئ ټولوڅخه به قصاص اخيستل كيږي ولى چې دصنعاءاوه كسان ديوه كس په قتل كې سره شريک شوي وونوحضرت عمر رضي الله عنه ټول قتل كړل اووي فرمايل چې كه ټول اهل صنعاءهم په گډه سره داكاركړى واى نومابه ټول قتل كړى واى.

(۵)قوله والفردبالجمع اكتفاء اى يقتل الفردبالجمع اكتفاء بذالک للباقين،يعنى كه يوه كس يوجماعت قتل كړاودمقتولينواولياء دقصاص اخيستلولپاره حاضرشول نوقاتل به ددي ټولوله طرف څخه قتل كيږي اوپرهمدي به اكتفاء كيږي له دي څخه علاوه به دمقتولينوداولياءلپاره هيڅ هم نه وي ولى چې هغوئ ټول دده پرقتل سره جمع شول اوپه خروج ريح كې تجرى نشته لهذادابه گڼل كيږي چې هريوه خپل پوره حق قصاص على سبيل الكمال حاصل كړى.

**ف**:امام شافعي رحمه الله فرمايي چې كه قاتل ټول علی سبيل التعاقب قتل كړي وي نو اولني لره به له قاتل څخه قصاص واخيستل شي او دباقي لپاره به دقاتل په تركه كې ددیت حكم وكړل شي اوكه يې ټول دفعة وژلي وي ياېې وړاندي وروسته قتل كړي وي مګر اول معلوم نه وي نوبيابه قرعه (ايسكه) اچول كيږي دكوم يوه نوم چې راووتی دهغه لپاره به قتل كيږي اودباقي پاتې شويو لپاره به ددیت حكم وكړل شي.

(۶)كه دمقتولينوله اوليا، څخه كوم يو حاضرشونوبيابه هم دهغه لپاره قاتل قتل كيږي اودباقي پاتي شويو حق ساقطيږي ولی چې دهغوئ حق په قصاص كې دی اودقصاص محل فوت شونو داسي شو لكه هغه قاتل چې مړشي پركوم چې قصاص وي نوقصاص هم ساقطيږي ولی له كوم محل څخه قصاص وصوليږي هغه محل ختم شولهذا قصاص هم ساقطيږي.

(ت)ولاتقطع يدرجلين بيدوضمنا ديتها(۱)وان قطع واحد يمينى رجلين فلهما قطع يمينه ونصف الدية(۹)فان حضر واحد فقطع يده له فللآخر عليه نصف الدية(۱۰)وان اقر عبد بقتل عمد يقتص به(۱۱)وان رمى رجلا عمدا فنفذ السهم منه الى آخر يقتص للاول وللثاني الدية)

**ترجمه**:اونه به پري كيږي ددووكسانولاس ديوه لاس په بدل كې اودواړه به ضامن ګرځي دلاس ددیت.اوكه پري كړيوه كس ددووكسانوښي لاس نودهغوئ دواړولپاره دهغه لاس پري كول اونصف ديت اخيستل دي .نوكه حاضرشويواوپري يې كړدهغه لاس نوهغه بل لره پرده نصف ديت دی .اوكه اقراروكړغلام دقتل عمدنوقصاص به اخيستل كيږي دهغه په وجه سره .اوكه يې وويشتی كوم كس اوهغه بل طرف ته غښی ووتی اوبل كس كې ولګيدنوقصاص به اخيستل كيږي اولنی لره اودوهم لره ديت دی.

**تشريح**:(۷)كه دووكسانوپه ګډه سره ديوكس لاس وربري كړنوپه دوئ دواړوكې به له يوه څخه هم قصاص نه اخيستل كيږي ولی چې په دوئ دواړوكې هريوه بعض لاس پري كړی دی په دي وجه چې انقطاع يد ددوئ دواړوپه زورسره حاصل شوي ده اومحل يعنی لاس متجزی هم دی لهذا له دوئ دواړو څخه به دهريوه طرف ته دبعض يددپري كولو اضافت كيږي نوكه په دوئ كې دهريوه پوره لاس پري كړای شي نوپه جنايت اوقصاص كې به مماثلت پاتي نشي .اوپردوئ دواړودمقطوع كس نصف ديت واجب دی ولی چې ديوه لاس ديت دپوره نفس دديت نصف دی اودوئ دواړويولاس پري كړی دی لهذاپردوئ دواړونصف ديت اوپرهريوه دنصف ديت نيمايې يعنی دديت څلورمه حصه واجبيږي.

(۸)كه يوكس ددووكسانوښي لاسونه وربري كړل بياهغوئ دواړه دقصاص اخيستلولپاره حاضرشول نوهغوئ دواړلره حق دی چې دهغه لاس وربري كړي اوله هغه څخه نصف ديت واخلي اوهغه ديت په خپل منځ كې نصف نصف تقسيم كړي وجه يې داده چې هغوئ دواړه داستحقاق په سبب كې سره برابر دي نودواړه به په استحقاق كې هم سره برابروي.

(۹)اوكه له هغوئ دواړو څخه يودقصاص اخيستلولپاره حاضرشواوهغه دمجرم لاس وربري هم كړنوهغه بل لره به پرمجرم اوس صرف نصف ديت وي وجه داده چې حاضرلره دثبوت حق په وجه سره خپل حق وصولول جائزدی اودخپل حق په وصولي كې دومره تاخيركول چې هغه بل هم حاضرشي پرده واجب نه ده .اوكله چې ده خپل حق وصول كړ(يعنی دمجرم لاس يې وربري كړ)نوهغه بل لره دخپل حق دوصولولومحل باقي پاتي نه

شو په دي وجه دهغه حق په ديت كې متعين شو په دي وجه به اوس هغه بل لره صرف نصف ديت وي. او دهغه حق له معافولو يا وصول عوض څخه بغير نه ساقطيږي.

(۱۰) كه غلام دچا دعمداً قتل كولو اقرار وكړنو پر غلام قصاص لازميږي ولى چې له غلام څخه په قصاص اخيستلو كې پر غلام څه تهمت نشته (په دي وجه چې له مولى څخه زيات دغلام نقصان دی). البته كه غلام پر ځان باندي دچا دمال اقرار وكړنو داځرنگه چې دمولى دحق دابطال اقرار دی نو دتهمت په وجه سره صحيح نه دی.

(۱۱) كه چا يو څوک عمداً په گولۍ يا غشي سره وويشت او هغه دهغه له بدن څخه ووتله او پر بل كس ولگيدله او په دي سره دواړه مړه شول نو قتل اول ځرنگه چې عمد دی لهذا دهغه په وجه سره پر ده قصاص لازميږي او قتل ثاني ځرنگه چې قتل خطاء دی لهذا دهغه په وجه سره دقاتل پر عاقله (خاندان) باندي ديت واجبيږي.

## فَصل

### دا فصل دتعدد دجنايت په بيان كې دی

كله چې مصنف رحمه الله ديوه جنايت له بيان څخه فارغ شو نو دجنايات متعددو بيان يې شروع كړو لی چې دوه له يوه څخه وروسته وي.

(۱) ومن قطع يدَ رجلٍ، ثمَّ قتلهُ أخِذ بالأمرينِ لو عمدينِ او مختلفينِ أو خطأينِ تخلّلَ بينهما برءٌ او لا إلّا في خطأينِ لم يتخلّلْ بينهما برءٌ فتجب ديةٌ واحدةٌ (۲) كمن ضربهُ مائةَ سوطٍ فبرأ من تسعينَ ومات من عشرةٍ (۳) وإن عفا المقطوعُ عن القطعِ فمات ضمنَ القاطعُ الديةَ (۴)، ولو عفا عن القطعِ وما يحدثُ منه أو عن الجنايةِ لا (۵) فالخطأُ من الثلثِ والعمدُ من كل المالِ.

**ترجمه**: او چا چې پري كړ دچا لاس بيا يې قتل كړ هغه نو مواخذه به وي له هغه څخه ددواړو شيانو اگر كه عمداً وي يا خطاء وي يا مختلف وي ددي دواړو په منځ كې روغتيا راغلي وي يا نه وي مگر په هغو دوو خطاوو كې چې دهغوئ په منځ كې روغتيا نه وي راغلي چې په هغوئ كې صرف يو ديت واجبيږي، لكه چې څوک يو بل كس سل دُرّي ووهي بيا هغه جوړ شي له نيوي څخه او مړ شي له لسو څخه، او كه يې معاف كړ مقطوع له فعل قطع څخه بيا هغه مړ شو نو ضامن دی قاطع دديت، او كه يې معاف كړ له فعل قطع څخه او كوم چې پيدا كيږي له هغه څخه يا يې جنايت معاف كړ نو نه، نو دخطاء په صورت كې به ديت له ثلث څخه معافيږي او په عمد كې به له ټول مال څخه.

**تشريح**: (۱) چا چې دچا لاس وربري كړ او بيا يې قتل كړ نو ددي شپږ صورتونه دي (۱) دواړه فعلونه عمداً صادر شوي وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوي وي (۲) دواړه عمداً صادر شوي وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوی نه وي (۳) دواړه فعلونه خطاء صادر شوي وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوي وي (۴) دواړه فعلونه خطاء صادر شوي وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوي نه وي وي (۵) لاس يې عمداً وربري كړی وي او قتل خطاء شوی وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوي وي (۶) لاس يې خطاء وربري كړی وي او قتل عمداً صادر شوی وي او په منځ كې دمجروح لاس روغ شوي نه وي وي. نو په مذكوره شپږ وصورتونو كې به له هغه څخه ددواړو فعلونو بدله اخيستل كيږي البته دخطاء په هغو دوو صورتونو كې

چې په هغوئ کې لاس روغ شوی نه وي يعنی په څلورم اوشپږم صورت کې ،چې په دي دووصورتونوکې به دفعلونوپه سزاکې تداخل وي اوپه دواړوکې يوديت واجبيږي .دلته قاعده داده چې اصلاً ه عقوباتوکې تداخل دی اول فعل ددوهم لپاره متمم گرځول کيږي الاداچې که ددواړوجمع کول ممکن نه وي ياخوپه دي وجه چې ددواړوفعلونوحکم سره جلا وي مثلاقطع خطاء وي اوقتل عمداوي ياددي عکس وي اوياخوله فعل اول څخه مجروح روغ شوی وي نوپه دي دووصورتونوکې ځرنگه چې تداخل ممکن نه دی لهذادهريوه فعل سزابه هم جلا جلا وي .نوددي قاعدي له مخي په پورته ذکرشويوشپږوصورتونوکې دڅلوم اوشپږم صورت په سزاکې تداخل کيږي اوپه پاتي څلورصورتونوکې تداخل نشته .

(۲)يعنی لکه ځرنگه چې دپورته ذکرشويودووصورتونوپه سزاکې تداخل کيږي همداشان که يوچاڅوک ن حفه سل دري ووا هه اوله هغوڅخه يې نيوي دوري په ملاووا هه اولس دري يې پرسرووا ه له اولنيوي دروڅخه هغه مړنه شوبلکه روغ شواوداخيرنيولسودروپه وجه سره مړشونوصرف دورستنيولسودرودديت واجبيږي دلومړنيونيوي دروهيڅ ضمان نه واجبيږي ولی کله چې ي نيوي دروڅه اثرباتي نه شونودهغوضمان هم نه واجبيږي هودلومړنيونيوي روپه وجه سره به قاضی هغه ته تعزيرورکوي ترڅوآينده داسي حرکت ونه کړي .

(۳)که زيددبکرلاس ورپري کړبکرزيدمعاف کړيادهمدي زخم په وجه سر بکر مړشونوپرزيدديت واجبيږي نومړنی معافی ختمه شوه ولی چې بکرخوزيد له قطع يدڅخه معاف کړی ووقتل خوېې نه وومعاف کړلهذادزيدپرذمه ديت واجبيږي .اوکه بکرزيدته داسي وويل چې ماقطع معاف کړي ده اوله قطع څخه پيداکيدونکی اثرمي هم معاف کړی دی ،يايې داسي وويل چې زه دده داخطاء بخښم ،اوس که بکردلاس دپري کيدلوپه وجه سره مړشونوپرزيددقتل ديت نه واجبيږي ولی چې دبکرپه قول سره دقتل معافی هم ثابتيږی .

(۴)يعنی که مقطوع قاطع معاف کړمثلاوي ويل ،چې ماقطع معاف کړي ده اوله قطع څخه پيداکيدونکی اثرمي هم معاف کړی دی ،بيامقطوع له همدي قطع څخه مړشونودمقطوع قاطع لره دامعافول صحيح دي ليکن ځرنگه چې دمقطوع له طرف څخه داتبرع ده او تبرع دمرض په حالت کې له ثلث مال څخه نافذيږي .

(۵)نوکه قاطع خطاء دده لاس ورپري کړی وونودهغه معافی به له ثلث مال څخه وي ولی چې دخطاء موجب مال دی اوله مال سره دوارثانوحق متعلق شوی دی لهذادقاطع معافی به له ثلث مال څخه وي ،نوکه مقطوع لره هيڅ مال نه وي نوقاطع ته ثلث ديت ورمعاف دی اودديت دوه ثلثه دقاطع پرعاقله دمقطوع وارثانوته ورکول لازم دي ،اوکه قاطع عمدادمقطوع لاس ورپري کړی وونودقاطع معافی به دمقطوع له ټول مال څخه وي ولی چې دعمدموجب قصاص دی اوقصاص مال نه دی لهذادمقطوع دمريض والي په صورت کې دوراثانوحق له هغه سره نه دی متعلق شوی لهذاپه دي صورت کې به معافی له ټول مال څخه وي .

(٦)وإن قطعت امرأة يد رجل عمدا فتزوجها على يده ثم مات فلها مهر مثلها (٧) والدية في مالها وعلى عاقلتها لو خطأ (٨) وإن تزوجها على اليد وما يحدث منها أو على الجناية فمات منه فلها مهر مثلها (ولا شيء عليها لو عمدا (٩) ولو خطأ رفع عن العاقلة مهر مثلها ولهم ثلث ما ترك وصية (١٠) ولو قطع يده فاقتص له فمات الأول قتل به (١١) وإن قطع يد القاتل وعفا ضمن القاطع دية اليد

**ترجمه**:اوكه پري كړ ښځې دنارينه لاس عمدااونارينه له دي سره نكاح وكړه پرڅپل لاس بياهغه مرشونو ښځي لره دهغې مهرمثل دی ،اوديت به ددي له مال څخه وركول كيږي اوددي پرقوم به وي كه يې خطاء وريري كړی وو ،اوكه يې نكاح وكړه دهغه پرلاس اوڅه چې پيداكيږي له دي څخه ياپرجنايت باندي ياهغه مرشوله دي څخه نوښځي لره به مهرمثل وي اوپردي به هيڅ نه وي كه عمدااوواوكه خطاء وونورفع كيږي ددي له عاقله څخه ددي مهرمثل اوهغویٰ لره به وي ثلث تركه دوصيت په ډول سره ،اوكه دچالاس پرې شواودهغه قصاص واخيستل شوبيامړشواول نوقتل كيږي به دهغه په بدل كې ،اوكه يې پري كړدقاتل لاس اوبيايې معاف كړه نوضامن دی قاطع دلاس ددیت .

**تشريح** :(۶)كه كومي ښځې دكوم كس لاس وريري كړكه عمداوي اوكه خطاء وي نوپرښځه ضمان واجبيږي ،مگرنارينه وويل چې ته له ماسره نكاح وكړه . اودلاس پري كولوپه وجه سره چې زماكوم حق ستاپرذمه دی هغه به مهروي ښځې داقبول كړنونكاح وشوه اوپرښځې چې كوم تاوان لازم ووهغه مهرگڼل كيږي ليكن بياداسي پيښه وشوه چې خاوندقطع يدپه وجه سره مړشونونكاح خوصحيح ده البته كوم مهرچې يې مقرركړی ووهغه صحيح نه دی لهذاښځې لره مهرمثل واجبيږي وجه يې داده چې نكاح دلاس پرارش وشوه بياچې كله قطع يدقتل طرف ته سرايت وكړنومعلومه شوه چې دقطع يدهيڅ ارش نشته نومسمی معدوم شولهذامهرمثل واجبيږي .

(۷)اودخاوندوارثانوته به ديت وركول كيږي ولی چې خاوندقطع يدمعاف كړی وودقتل معافي يې نه وه كړي ،بياكه ښځې عمداالاس پري كړی وونوديت دښځې په مال كې واجبيږي ولی چې داقتل عمددی اودقتل عمدتاوان عاقله نه شي برداشت كولی ،اوكه ښځې خطاء ددہ لاس وريري كړی وونوديت دښځې پرعاقله واجبيږي ولی چې دقتل خطاء ديت پرعاقله وي .

(۸)اوكه مقطوع كس له لاس پري كونكي ښځې سره په قطع يداوله قطع يدڅخه چې كوم اثرپيداكيږي يادي دجنايت په بدل كې نكاح وكړه بيامقطوع له قطع څخه مرشونوښځې لره مهرمثل واجبيږي ولی چې موجب عمدقصاص دی اوقصاص مال نه دی لهذامهرمثل واجبيږي لكه چې دخنزيرياشرابو دمهرمقرر كولوپه صورت كې چې مهرمثل واجبيږي ،اودخاوندوارثانولره پرښځه هيڅ شی نه واجبيږي كه هغې عمداپري كړی وو ولی چې كله ده قصاص مقرركړكوم چې ددي صلاحيت نه لري نودا(يعني قصاص مهرمقرركول )پرسقوط قصاص دده رضاده لهذاقصاص له اصل څخه ساقط شوپه دي وجه وارثانولره دښځې پرذمه هيڅ نه واجبيږي .

(۹)قوله ولوخطاء رفع عن العاقلة مهرمثلهاای لوكان القطع خطاء رفع عن العاقلة مهرمثلها ،يعني كه ښځې دده لاس خطاء وريري كړی وونودښځې له عاقله څخه ددي مهرمثل په اندازه سره ديت مرتفع كيږي ولی چې په دي صورت كې دجنايت موجب ديت دی اوديت دمال والی په وجه سره مهرجوريدای شي ،ليكن مقطوع په دي صورت كې دمرض الموت مريض شمارل كيږي ،اوقاعده داده چې دمرض الموت مريض كه داسي كاروكړي كوم چې

ددہ له حوائج اصلیه څخه وي نو هغه دده له ټولې ترکې څخه معتبروي .او که داسې کاروکړي کوم چې دده له حوائج اصلیه څخه نه وي نو په دي کې هغه دمرض الموت مریض شمارل کیږي او دده دا تصرف صرف په ثلث ترکه کې نافذیږي یعنی داسې کارته دوصیت درجه ورکول کیږي.اونکاح کول څرنګه چې له حوائج اصلیه څخه ده په دي وجه به دښځې مهرمثل له ټول مال څخه معتبروي لهذادمهرمثل په اندازه به له ټول مال څخه ساقطیږي او دښځې پرعاقله دلته دیت لازم شو یعنی لس زره درهمه او دښځې مهرمثل مثلاً اوه زره درهمه دي نوله عاقله څخه خواوه زره درهمه دمهرمثل ساقط شول او څرنګه چې مقطوع پوره دیت مهرمثل ګرځولی وولهذا پاتې دري سوه هم باید ساقط شوی وای لیکن له اوه زره څخه په زیات کې دمقطوع تصرف په مرض الموت کې دمبتلا والی په وجه سره وصیت شمارل کیږي په دي وجه زائد صرف له ثلث ترکه څخه ساقطیږي لهذا که دمقطوع نوره ترکه هم وه کومه چې ددي دري زره دوچنده ده نوله عاقله څخه دادري زره هم ساقطیږي ،او که له دي دري زرو څخه علاوه دمقطوع نور مال نه وي نوله دي څخه یو زر ساقطیږي او دښځې عاقله به دوه زره درهمه دمقطوع وارثانو ته اداء کوي .

(۱۰)که چا یو بل کس لاس وریري کړاوله قاطع څخه ددي قصاص واخیستل شو بیامقطوع اول له همدي قطع ید څخه مړ شو نو مقطوع ثانی (قاطع )به دمقطوع اول په بدله کې قتل کیږي ولی چې داول له مرګ څخه ښکاره شوه چې جنایت دقتل عمدووا ودمقطوع اول حق له مقطوع ثانی څخه دنفس دقصاص اخیستلوو حال دا چې ده دقطع ید قصاص اخیستی دی او دقطع ید دقصاص په اخیستلو سره دقتل دقصاص حق نه ساقطیږي .

(۱۱)که چا کوم کس قتل کړ دمقتول وارث دقاتل لاس وریري کړ بیا له قاتل څخه چې کوم قصاص اخیستل ود مقتول وارث هغه معاف کړنو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد به دمقتول وارث دي قاتل ته دقطع ید دیت ورکوي ،اوصاحبین فرمایي چې دیت به نه ورکوي ولی چې دمقتول وارث خپل حق وصول کړی دی په دي وجه چې ده لره خود قتل دنفس بجمیع اجزاء دتلف کولو حق حاصل دی لهذا دقاتل دلاس په تلف کولو سره دهغه دیت دمقتول پرو ارث نه لازمیږي .دامام صاحب دلیل دادی چې دمقتول د وارث حق خوله قاتل څخه قصاص اخیستل وو او کله چې هغه قصاص معاف کړبیا دقاتل لاس پري کول ددي وارث له طرف څخه زیاتی شو لهذا دی به دلاس دیت ورکوي .

ف :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لماقال العلامة الحصکفی:وان قطع ولی القتیل ید القاتل وبعد ذالک عفا عن القتل ضمن القاطع دیة الید لانه استوفی غیر حقه لکن لایقتص للشبهة وقالالاشئ علیه (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار: ۵/۳۰۱).وقال الشیخ غلام قادر النعمانی حفظه الله :القول الراجح هو قول ابی حنیفه رحمه الله لان قوله قوله المتون ,قال العلامة ابو البرکات النسفی وان قطع ید القاتل وعفا ضمن القاطع دیة الید(القول الراجح: ۲/۳۳۵)

## باب الشَّهادَةِ في القَتلِ

دا باب دقتل په باره کې دګواهی ورکولو په بیان کې دی

مصنف رحمه الله شهادت فی القتل له حکم قتل څخه وروسته ذکر کړولی چې شهادت فی القتل له قتل سره متعلق امردی او متعلق شی له شي څخه په درجه کې کم وي په دي وجه هغه مؤخر ذکر کول مناسب دی.

(۱) ولا يقيد حاضر بحجته إذا أخوه غاب عن خصومته فإن بعد لا بد من إعادته ليقتلا (۲) ولو خطأ أو دينا لا (۳) فإن أثبت القاتل عفو الغائب لم يقد (۴) وكذا لو قتل عبدهما وأخذهما غائب (۵) وإن شهد وليان بعفو ثالثهما لغت فإن صدقهما القاتل فالدية لهم أثلاثا (۶) وإن كذبهما فلا شيء لهما وللآخر ثلث الدية (۷) وإن شهدا أنه ضربه فلم يزل صاحب فراش حتى مات يقتص

**ترجمه**: اوقصاص نه شي اخيستلی حاضر په خپل حجت سره په داسي حال کې چې دده ورور غائب وي له خصومت څخه بیا که هغه راغی نو ضروري ده دبینه اعاده ترڅو هغوئ دواړه قصاص واخلي. اوکه دخطاء یاقرض دعوه وي نو نه. بیاکه ثابت کړقاتل معافول دغائب نو نه به قتل کیږي. اوهمداشان که قتل کړای شوددواړو غلام اویوله دوئ څخه غائب وو. اوکه گواهي ورکړه دوو ولیانو ددریم په معاف کولو نو لغو ده بیاکه تصدیق وکړد دي دواړو قاتل نو دیت به دوئ لره اثلاثاوي. اوکه یې تکذیب وکړ ددوئ دواړو نو هیڅ نشته دوئ دواړولره اودریم لره ثلث دیت دی. اوکه دوو کسانو گواهي ورکړه چې ده هغه ویشتلی وو بیاهغه صاحب فراش پاتي شو ترڅو چې مړ شو نو قصاص به اخیستل کیږي.

**تشریح**: (۱) قوله ولایقید ای لایقتص. که څوک قتل شو او دده د قصاص مستحق دمقتول دوه زامن وي اوله دي دواړو څخه یو غیرحاضروي اودوهم په گواهانو سره داقتل ثابت کړي نواوس داحاضر له دي قاتل څخه قصاص نه شي اخیستلی ترڅو چې دده ورورراته شي اوکله چې هغه غیرحاضرراشي نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد به غائب له خپل طرف څخه بیرته دعوه وکړي اوگواه به پیش کړي ترڅوله قاتل څخه دوئ دواړه په گډه سره قصاص واخلي. اودصاحبینو په نزد پرغائب بیرته گواه وړاندي کول ضروري نه دي بلکه دده نه راتلو سره دي بغیرله گواه وړاندي کولو قاضی دقصاص فیصله وکړي. دامام صاحب او صاحبینو بنیاد دي اختلاف په دي کې دی چې دوارثانو حق په قصاص کې دوارثت په طریقه سره دی اوکه دخلافت په طریقه سره. دحق قصاص بطریق خلافت مطلب دادی چې دمورث دملک له ثابتیدلو څخه بغیر دوارثانو ملکیت ثابت شي. اودحق قصاص بطریق وراثت مطلب دادی چې داحق لومړی مورث لره ثابتیږي اوبیاپوره پوره وارث ته حاصلیږي. اوقاعده داده چې دوارثانو ملکیت چې په کوم ځای کې بطریق وراثت وي په هغه ځای کې له وارثانو څخه هریو په خصومت کې دنورو لولو قائم مقام شمارل کیږي اوله دوئ څخه یو دباقي وارثانوله طرف څخه خصم جوړیدلی شي. اوپه خلافت کې له وارثانو څخه کوم یو دنورو وارثانوله طرف څخه خصم نه شي جوړیدلای. نو دصاحبینو په نزد دقصاص دملک ثبوت دوارثت په طریقه سره دی لهذا یو وارث دنورو له طرف څخه خصم کیدای شي په دي وجه غائب ورورلره دوهم ځل دگواه پیش کولو ضرورت نشته. اودامام صاحب رحمه الله په نزد دقصاص دملک ثبوت دخلافت په طریقه سره دی لهذا یو وارث دنورو له طرف څخه خصم نه شي جوړیدلای په دي وجه غائب ورور لره دوهم ځل دگواه وړاندي کول ضروري دي.

ف: دا امام صاحب قول راجح دی لما اخر صاحب الهدایة دلیله وقدمه صاحب الملتقی علی هامش مجمع الانهر، وقال المفتی غلام قادر حفظه الله: القول الراجح هو قول ابی حنیفة ........ وقال العلامة ابراهیم الحلبی، فلو اقام احدبنین حجة بقتل ابیهما عمدا والآخر غائب لزم اعادتهما بعد عود الغائب خلافا لهما (القول الراجح: ۵ ۳۳/۲)

(۲) قوله ولو خطاء او دینا ای لو کان القتل خطاء او کان الحق الذی ادعاه دینا لایعید بینة اجماعا، یعنی که خطاء قتل شوی وو او د مقتول له دوو زامونو څخه یو حاضر او بل غائب وو او حاضر په ګواهانو سره قتل خطاء ثابت کړیا غائب راغی نو بالاتفاق پر غائب لازم نه دی چې هغه قتل خطاء دوهم ځل په ګواهانو سره ثابت کړي ،همدا حکم په دي صورت کې هم دی چې د داسي دوو ورونو پلار پر یو چاڅه قرض پریښی وي یعنی د قرض په صورت کې هم د غیر حاضر ورور له راتګ څخه وروسته دوهم ځل په ګواهانو سره د قرض د ثابتولو ضرورت نشته ولی چې د قتل خطاء او قرض موجب مال دی او په مال کې د ملک ثبوت په طریقه د وارثت سره وي نو یو وارث د باقی وراثانو قائم مقام ګرځي په دي وجه غائب لره دوهم ځل د ګواه وړاندي کول ضرورت نشته.

(۳) که د قصاص اخیستلو ده وورونه مستحق وو له دوارو څخه یو غائب وو حاضر قتل په ګواهانو سره ثابت کړ مګر قاتل دعوی وکړه چې دده غائب ورور خپل حق قصاص ماته را معاف کړی دی او خپله داعوی یې په ګواهانو سره ثابته کړه نو اوس به له قاتل څخه قصاص نه اخیستل کیږي ولی چې ګواکی قاتل دا دعوی وکړه چې ستا حق له قصاص څخه ساقط شوی دی او د مال طرف ته منتقل شوی دی او قاتل د خپلي دي دعوی اثبات صرف په دي دول سره ګولای شي چې د غائب له طرف څخه عفو ثابته کړي کومه چې ده په ګواهانو سره ثابته کړه او په دي صورت کې حاضر د غائب له طرف څخه خصم ګرځي نو کله چې قاتل خپله دعوی په ګواهانو سره ثابته کړه نو د قاضی دا فیصله چې واقعي غائب ده ته خپل حق قصاص ....ر معاف کړی دی داقضاء علی الغائب نه ده لهذا قصاص ساقطیږي.

(۴) همدا حکم په دي صورت کې هم دی چې یو غلام د دوو کسانو په منځ کې مشترک وي او هغه لره څوک عمدا قتل کړي او له دوارو شریکانو څخه یو غائب دی نو دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد اوس دا حاضر له قاتل څخه قصاص نه شي اخیستلای ترڅو چې دوهم رانه شي او دعوی وکړي او ګواه پیښ کړي ،او که قاتل په ګواهانو سره ثابته کړه چې غائب زه معاف کړی یم نو حاضر د غائب له طرف څخه هم خصم دی او له قاتل څخه قصاص ساقطیږي لما قلنا.

(۵) که د مقتول دري وارثان وي او له دوئ څخه دوو داګواهي ورکړه چې دریم خپل حق قاتل ته معاف کړی دی نو داګواهي لغوه ده او معافی به د دي دوارو ګواهي ورکونکوله طرف څخه شمارل کیږي ولی چې هغوئ په خپل ګمان سره په دي دول ګواهي ورکولو سره د قصاص پر ځای خپل ځان لره مالی نفع (دیت) اختیاروي لهذا دا په خپله د دوئ ا .صرف څخه معافی شمارل کیږي ولی چې د دوئ ګمان دا دی چې قصاص ساقط شوی دی او د دوئ دا ګمان صرف د دوئ په حق کې معتبر دی ،نو که قاتل د دوئ دوارو تصدیق وکړ مګر مشهود علیه د دوئ تصدیق ونه کړ نو دیت به د دوئ تر منځ په دري ثلثه تقسیمیږي ولی کله چې قاتل د دوئ دوارو تصدیق وکړ نو ګویا دوئ لره یې د دیت دوو ثلثو اقرار وکړ نو دده دا اقرار خو صحیح دی مګر قاتل د خپل تصدیق سره

پرځای دادعوه هم کوي چې دډریم حق ساقط شوی دی حال داچې هغه دده تصدیق نه کوي لهذا دقاتل قول به معتبرنه وي اودډریم دحصې دیت پرده واجب دی.

(۶)اوکه قاتل ددوئ دواړو تکذیب وکړنواوس به له دیت څخه دوئ دواړوته هیڅ نه ورکول کیږي ولی چې دوئ دواړودډریم پرعفوپه ګواهي ورکولوسره داقرار وکړچې ددوئ حق قصاص باطل شوی دی نوددوئ اقرارپه خپله ددوئ په حق کې صحیح دی اودوئ دادعوه هم وکړه چې ددوئ حصه په مال بدله شوې ده نوپه دې دعوی کې له بینه بغیرددوئ تصدیق نه شي کیدای .البته دریم ته به یوثلث دیت ورکول کیږي ولی چې دلومړنیودووپرده دعفودعوی کول اودده انکارکول دلومړنیودووله طرف څخه ددې دریم په حق کې دابتداء عفوپه درجه کې ده په دې وجه دده حق قصاص په مال سره بدلیږي .

(۷)که دووګواهانوګواهي ورکړه چې فلانکی کس مثلاً زید عمداً ووهه کړ(په دې شرط چې په اسلحه یې قتل کړی وي )اوزیدله همدې وهلوڅخه مسلسل صاحب فراش پاتي شوبالآخرهغه ددې زخم په وجه مړشونوله قاتل څخه به قصاص اخیستل کیږي ولی چې دګواهانومذکوره ګواهي داسې ده لکه چې هغوئ پر قتل عمدسره ګواهي ورکړې وي اودقتل عمدپه ګواهي سره پرقاتل قصاص واجبیږي .

(۸)وَإِنِ اخْتَلَفَ شَاهِدَا الْقَتْلِ فِي الزَّمَانِ أَوِ الْمَكَانِ أَوْ فِيمَا وَقَعَ بِهِ الْقَتْلُ أَوْ قَالَ أَحَدُهُمَا قَتَلَهُ بِعَصًا, وَقَالَ الْآخَرُ لَمْ أَدْرِ بِمَاذَا قَتَلَهُ بَطَلَتْ (۹) وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ قَتَلَهُ, وَقَالَا لَا نَدْرِي بِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلَهُ وَجَبَ فِيهِ الدِّيَةُ (۱۰) وَإِنْ أَقَرَّ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَّهُ قَتَلَهُ, وَقَالَ الْوَلِيُّ قَتَلْتُمَاهُ جَمِيعًا لَهُ قَتْلُهُمَا, وَلَوْ كَانَ مَكَانَ الْإِقْرَارِ شَهَادَةٌ لَغَتْ

**ترجمه** :اوکه اختلاف وکړدقتل دووګواهانوپه وخت کې یاپه مکان کې یادقتل په آله کې یاوویل یوه له دوئ څخه چې ده دی قتل کړپه لاټۍ سره اوو ویل دوهم چې ماته نه ده معلومه چې په کوم شي سره یې قتل کړی دی نوګواهي باطلیږي ،اوکه دووګواهي ورکړه چې ده قتل کړی دی اوموږ نه یوخبرچې په کوم شي سره یې قتل کړی دی نوواجبیږي دیت ،اوکه له دووڅخه هریوه اقرار وکړچې ماقتل کړی دی اوویل ولی چې تاسي دواړوپه ګډه سره دی قتل کړی دی نوده لره جائزده ددې دواړو قتل کول اوکه وي داقرارپرځای ګواهي نولغوه ده.

**تشریح** :(۸)که دووګواهانودقتل ګواهي ورکړه لیکن دقتل په زمانه کې دواړواختلاف وکړیوه وویل چې درمضان په لسم یې قتل کړی دی اودوهم وویل چې درمضان په شلم یې قتل کړی دی .یایې دقتل په مکان کې اختلاف وکړمثلاً یوه وویل په کوټه کې یې قتل کړی دی اودوهم وویل چې په پښین کې یې قتل کړی دی .یایې دقتل په آله کې اختلاف وکړیوه وویل چې په لاټۍ سره یې قتل کړی دی اودوهم وویل چې په توره سره یې قتل کړی دی ،یایوه وویل چې په لاټۍ سره یې قتل کړی دی اودوهم وویل چې ماته نه ده معلومه چې په کوم شي سره یې قتل کړی دی .نوپه دې ټولوصورتونو کې دګواهانوګواهي باطله ده ولی چې قتل دوه ځله نه شي کیدای په دې وجه دلسم رمضان قتل جلا دی اودشلم رمضان قتل جلا دی ،دکوټه قتل جلا دی اودپښین قتل جلا دی نوپه هریوه قتل یویوګواه دی لهذا دګواهانودنصاب دنه پوره والی په وجه سره داګواهي معتبرنه ده.

(۹) که ګواهانو ګواهي ورکړه چې مثلازيد عمر قتل کړاووي ويل چې موږته نه ده معلومه چې په څه شي سره يې قتل کړنوپر قاتل ديت واجبيږي دقياس تقاضاخوداده چې داګواهي معتبره نه وي ولی چې دقتل مجهول ګواهي ده په دي وجه چې که آله قتل مجهوله وي نوقتل به هم مجهول وي ليکن استحسانا داګواهي معتبره ګڼل شوي ده ولی چې ګواهانودمطلق قتل ګواهي ورکړي ده اومطلق مجمل نه دی چې له بيان څخه وړاندي ممکن العمل نه وي بلکه مطلق ممکن العمل وي لهذادقتل په موجب کې ادانی (يعنی ديت) به واجب ګڼل کيږي.

(۱۰) اوکه له دووکسانو څخه هريوه اقرار وکړچې فلانکی ماقتل کړی دی اودمقتول ولی وايې چې تاسي دواړوپه ګډه سره قتل کړی دی نوولی لره ددوئ دواړوقتل کول جائزدي ولی چې له دواړوڅخه هريوه دانفرادا قتل اوپرخپل ځان دقصاص اقرارکړی دی اوپرمقرباندي دقصاص په واجبيدلوکې مقرله دمقرتصديق کړی دی البته په انفرادا قتل کې يې دهغه تکذيب وکړاومقرله که په بعض مقربه کې دمقرتکذيب کوي نوپه دي سره باقی اقرارنه باطليږي لهذادمقتول ولی لره له دوئ دواړوڅخه قصاص اخيستل صحيح دي .اوکه مذکوره صورت داقرارپرځای په شهادت کې پيښ شي نوشهادت لغوه دی مثلادووکسانوګواهي ورکړه چې عمرفلانکی کس مثلازيدقتل کړی دی اودوه نورګواهي ورکړي چې ده لره فلانکی کس مثلابکرقتل کړی دی اودمقتول ولی ووايې چې دوئ دواړوقتل کړی دی نوولی لره ددوئ دواړوقتل کول جائزنه دي ولی چې مشهودله که په بعض مشهودبه کې دشاهدتکذيب کوي نوپه دي سره دشاهدفسق ثابتيږي لهذادداسي شاهدشهادت معتبرنه دی.

## بَابٌ فِي اعتِبارِ حَالَةِ القَتلِ

داباب دحالت قتل په اعتبارکې دی

احوال څرنګه چې دذواتولپاره صفات دي په دي وجه مصنف رحمه الله له قتل اومتعلقات قتل څخه وروسته دقتل احوال ذکرکړل.

(۱) المُعتبر حالةُ الرمي فتجبُ الدِيةُ بردةِ المرمي إليه قبل الوصولِ لا بإسلامه (۲) وَالقِيمةُ بِعتقِه (۳) وَلا يَضمنُ الرَّامي بِرجوعِ شاهدِ الرَّجمِ بَعدَ الرمي (۴) وَحلُّ الصَّيدِ بردةِ الرامي لا بإسلامه (۵) وَوجبَ الجزاءُ بحِلِّهِ لا بإحرامه

**ترجمه** :معتبردغبنی ويښتلووخت دی نوواجبيږي ديت دمرمی اليه په مرتدکيدلوسره له غبنی رسيدلوڅخه وړاندي نه دهغه په مسلمانيدلوسره .اوقيمت دغلام په ازاديدلوسره ،اونه ضامن کيږي دډبروغورځونکی درجم دګواه په رجوع کولوسره له رمی څخه وروسته ،اوحلال دی ښکاردغبنی ويښتونکی په مرتدکيدلوسره نه دهغه په مسلمانيدلوسره .اوواجبيږي جزاء په حلاليدلوسره نه په احرام تړلوسره .

**تشريح** :(۱)دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دغشي ويشتلو دحالت اعتبار دى نه دغشي دلګيدلو دحالت نو كه غشي ويشتونكي دمسلمان طرف ته غشي واركړله غشي لګيدلو څخه وړاندي هغه مرتدشو (العياذبالله )نودامام صاحب په نزدپرغشي ويشتونكي ديت واجبيږي .اودصاحبينوپه نزدپرغشي ويشتونكي هيڅ نه واجبيږي ولى ده چې كوم كس تلف كړى دى هغه دتلف پروخت دمرتدكيدلوپه وجه سره غيرمعصوم دى اودغيرمعصوم په تلف كولوسره هيڅ نه واجبيږي .دامام صاحب دليل دادى چې دضمان لزوم دفعل په سبب سره وي ولى چې دانسان په وس كې صرف دده فعل دى اوهغه دلته غشي ويشتل دى پاتي شوغشي لګيدل هغه دده دوس خبره نه ده نودغشي ويشتلوپه حالت كې دى قاتل وګرځيدواويه دي وخت كې مقتول مسلمان وولهذاديت واجبيږي .همداوجه ده چې كه چادا سلام په حالت كې دښكارطرف ته غشي و' كړاوله غشي لګيدلوڅخه وړاندي هغه مرتدشو(العياذبالله )ياغشي ولاړى اوپرښكارولګيداوپه دي سره ښكارمړشونودذي خورک حلال دى معلومه شوه چې اعتباردغشي دويشتلوحالت ته دى .هسي خودقياس تقاضاداده چې پرغشي ويشتونكي قصاص لازم شي ولى چې ده محفوظ الدم مسلمان قتل كړى دى ليكن دشبه په وجه سره قصاص ساقط دى ديت واجب دى .اوكه چاكافرپه غشي وويشت اوهغه له غشي لګيدلوڅخه وړاندي اسلام قبول كړنوبالاتفاق ، غشي ويشتونكي باندي ديت نه واجبيږي ولى چې دغشي ويشتلوپه حالت كې دده وينه مباح وه ولهذادده غشي ويشتل موجب ضمان نه ده .

ف:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى .اودصاحبينوله خپل قول څخه رجوع ثابته ده لمافي البحر الرائق:والأصل في مسائل هذا الكتاب ان يعتبر وقت الرمي بالاتفاق وانما عدل ابويوسف ومحمد عن ذالك فيما اذارمى الى مسلم فارتدو العياذبالله قبل الاصابة ان حاومرنالدعلى مابناه في اول هذاالفصل (البحر الرائق:۸/۳۲۶)

(۲)قوله والقيمة بعتقه اى تجب القيمة بعتق العبد بعدالرمي قبل الاصابة .يعني كه غشي ويشتونكي دچادغلام په طرف غشي واركړله غشي لګيدلوڅخه وړاندي مالک هغه ازادكړياغشي پرغلام ولګيداوغلام مړشونوپه غشي ويشتونكي دغلام قيمت واجبيږي نه ديت .ولى چې غشي ويشتونكي دغشي ويشتلوپه وخت كې دغلام قاتل دى اودغشي ويشتلوپه حالت كې هغه غلام ووولهذادده قيمت واجب دى .

(۳)پركوم كس ګواهانوګواهي وركړه چې ده داحصان په حالت كې زناكړي ده قاضي دهغوى دګواهي مطابق دهغه دسنګساركولوحكم وركړاوس يوچادهغه طرفته ډبره واركړه له ډبري لګيدلوڅخه وړاندي دزناله ګواهانوڅخه كوم ګواه له خپلې ګواهي څخه رجوع وكړه نوددډبري ويشتونكي ضامن نه دى ولى چې دډبري دويشتلودحالت اعتباردى اوپه دي وخت كې مشهودعليه مباح الدم وو .البته په رجوع كونكي ګواه باندي ضمان لازميږي كه هغه يواځي رجوع وكړه نوپرده ربع ديت لازميږي اوكه څلورووارو ګواهانورجوع وكړه نوكامل ديت لازميږي.

(۴)كه كوم مسلمان دښكارطرف ته غشي واركړاوپرښكارترلګيدلووړاندي غشي ويشتونكي مرتدشو(العياذبالله )ياهغه غشي پرښكارولګيداوپه دي سره ښكارمړشونوحلال دى ولى چې دغشي دويشتلودحالت اعتباردى اوپه دي وخت كې غشي ويشتونكي مسلمان دى لهذادده ښكار حلال دى اوكه

مجوسي غښي وار كړاوله غښي لګيدلو څخه وراندي هغه مسلمان شونوښكار حلال نه دى ولى چې دغښي دوښتلو دحالت اعتبار دى اوپه دي وخت كې هغه مجوسى دى لهذا ده ښكار حلال نه دى.

(۵) اوكه كوم محرم دښكار طرف ته غښى واركړاوپرښكار ترلګيدلو وراندي دى له احرام څخه ووتى بيا غښى پرښكار ولګيدا وپه دي سره ښكار مړشو نوپر غښى ويښتونكى دښكار جزاء لازمه ده ولى چې دړمي دحالت اعتبار دى اوپه حالت رمى كې هغه محرم وواوپرمحرم دښكار جزاء لازميږي ،اوكه چاله غښى ويښتلو څخه وروسته احرام وتاړه بياغښى پرښكار ولګيدنوپرده دښكار جزاء نه ده لازمه ولى چې دغښى ويښتلو پروخت هغه محرم نه دى او اعتبار دحالت رمى دى.

# كِتَابُ الدِّيَات

داكتاب ددياتوپه بيان كې دى

ديات ددية جمع ده .شرعاهغه مال ته ويل كيږي كوم چې دنفس بدل وي .اوارش هغه مال ته ويل كيږي كوم چې له نفس څخه په كم جنايت كې واجب وي .دكتاب الديات مناسبت له جناياتوسره ظاهر ده چې ديت پرانسان دجنايت ... دوموجبو (قصاص اوديت) څخه يو دى،ياخرنګه چې په قصاص كې داحياء معنى دديت په نسبت زياته ده په دي وجه يې دقصاص بيان له ديت څخه مقدم كړ.

(۱) دِيَةُ شِبهِ الْعَمْدِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَرْبَاعًا مِن بِنْتِ مَخَاضٍ إِلَى جَذَعَةٍ وَلَا تَغْلِيظَ إِلَّا فِي الْإِبِلِ (۲) وَالْخَطَأُ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَخْمَاسًا ابْنُ مَخَاضٍ وَبِنْتُ مَخَاضٍ وَبِنْتُ لَبُونٍ وَحِقَّةٌ وَجَذَعَةٌ (۳) اَوْ اَلْفُ دِينَارٍ اَوْ عَشَرَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ (۴) وَكَفَّارَتُهُمَا مَا ذُكِرَ فِي النَّصِّ (۵) وَلَا يَجُوزُ الْإِطْعَامُ وَالْجَنِينُ (۶) وَيَجُوزُ الرَّضِيعُ لَوْ أَحَدُ أَبَوَيْهِ مُسْلِمًا (۷) وَدِيَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى النِّصْفِ مِن دِيَةِ الرَّجُلِ فِي النَّفْسِ وَفِيمَا دُونَهَا وَدِيَةُ الذِّمِّيِّ وَالْمُسْلِمِ سَوَاءٌ

**ترجمه** :دشبه عمدديت سل اوښان دي په څلورقسمه له بنت مخاض څخه ترجذعه پوري اوتغليظ نشته مګرپه اوښانوكې اودخطاء ديت سل اوښان دي پنځه قسمه ابن مخاض اوبنت مخاض اوبنت لبون اوحقه اوجذعه ،يازرديناره يالس زره درهمه دي اوددي دواړوكفاره هغه ده كومه چې مذكوره ده په نص كې اوجائزنه ده خورك وركول اوكوم بچى چې دموريه نس كې وي اوجائزده شيدي خورونكى،ماشوم كه دهغه له موراوپلار څخه كوم يومسلمان وي اودښځي ديت نيمايي ده دنارينه دديت په نفس كې اوله نفس څخه په كم كې اودمسلمان اوذمي ديت برابر دى.

**تشريح** :(۱)په قتل شبه عمدكي دقاتل پرعاقله ديت مغلظه دى ،دشيخينوپه نزدديت مغلظه څلورقسمه اوښان دي يعنى پنځه ويشت بنت مخاض ،پنځه ويشت بنت لبون ،پنځه ويشت حقي ،اوپنځه ويشت جزعي دي ولى چې نبى كريم ﷺ په څلورقسمه اوښانو فيصله فرمايلې وه .دامام محمد رحمه الله په نزدسل اوښان په دريي قسمه سره دي ديرش جزعي ،ديرش حقي ،اوڅلويښت ثنيه ياثنى دي ثنى هغه اوښ دى چې پنځه كاله يې پوره شوي وي اوپه شپږم كې شروع وي اوثنيات به حامله هم وي (دشيخينوقول راجح دى)،اوپه دي كې تغليظ صرف دڅلوروقسمه يادري قسمه اوښانوپه لازمولوكې دى .اومذكوره بالاتغليظ صرف په هغه صورت كې دى چې ديت داوښانوپه ذريعه سره داداء كولواراده وي اوله اوښانوڅخه

ماسوادراهمو اودنانيرو اداء كولوپه صورت كې تغليظ نشته ولې چې تغليظ توقيفي دى كوم چې صرف داونبانوپه صورت كې دى .

(٢)قوله والخطاء اى دية الخطاء مائة من الابل ،دقتل خطاء په وجه سره پرعاقله ديت اوپرخپله پرقاتل كفاره واجب ده لقوله تعالى (ومن قتل مؤمنا خطاء فتحرير رقبة مؤمنة ودية مسلمة إلى أهله)(يعني چاچې كوم مسلمان خطاء قتل كړنورقبه مؤمنه دي ازاده كړي اودمقتول والاوته دي ديت وركړي ).اوپه قتل خطاء كې ديت سل اوښان په پنځه قسمه سره دي شل بنت مخاض ،شل ابن مخاض ،شل بنت لبون ،شل حقې ،اوشل جذعي دي ولې چې همداتفصيل دحضرت ابن مسعود ﷺ په روايت كې مروى دى ،همدرازپه قتل خطاء كې قاتل معذوروي په دي وجه پرده په واجب شوي ديت كې بايدتخفيف وي اوپه مذكوره ديت كې دشبه عمددصورت په نسبت تخفيف دى ولې چې هلته څلورياددري قسمه داوښانواداء كولوحكم وودلته دپنځه قسمه اوښانوحكم دى .

(٣)قوله اوالف دينار اوعشرة آلاف درهم اى دية القتل خطاء امامائة من الابل اخماسا اوالف دينار من الذهب اوعشرة آلاف درهم من الورق ،يعني كه دقتل خطاء ديت په سروزروسره اداء كيږي نويوديت زرديناره دى اوكه په سپينوزروسره اداء كيږي نولس زره دراهم دي ولې چې له حضرت ابن عمر ﷺ څخه مروى ده چې نبى كريم ﷺ ديومقتول دديت په باره كې دلسوزروحكم فرمايلي وو .دامام مالك رحمه الله اوامام شافعي رحمه الله په نزددولس زره درهمه دي .اوپه دراهمواودنانيروكې وزن سبعه معتبردى (يعني ددرهم وزن دري ماشي يوه رتي اوديوي رتي پنځمه حصه ده ، اوددينارووزن څلورماشي اوڅلوررتي دي په دي ډول داواومثقالواولسودرهموو وزن برابريږي همدي ته وزن سبعه ويل كيږي ).

(٤)په قتل شبه عمداوقتل خطاء كې پرقاتل كفاره لازمه ده اوكفاره هغه ده كومه چې په آيت مبارك كې مذكوره ده چې يومؤمن غلام به ازادوي كه غلام نه وويابه پرلپسي دوه مياشتي روژه نيسي قال الله تبارك وتعالى (ومن قتل مؤمنا خطاء فتحرير رقبة مؤمنة ودية مسلمة الى اهله .........فمن لم يجد فصيام شهرين متتابعين )(اوكوم څوك چې كوم مسلمان په خطاء سره قتل كړي نوپرهغه ديومسلمان مملوک ازادول دي اودمقتول والاوته دي ديت وركړي ..........بياكوم كس ته چې په لاس ورنه شي نومتواتر(متصلي )دوه مياشتي روژي دي )مذكوره آيت اگركه دقتل خطاء په باره كې واردشوى دى مگرپه حق قتل كې شبه عمدهم خطاء دى.

(٥)مگرپه دي دووصورتونوكې شپيتومسكينانوته خورک وركول كفايت نه كوي ولې چې دشپيتومسكينانودخورک په باره كې نص نه دى واردشوى اومقاديرتوقيفي دي په رأيه سره مقررول يې صحيح نه دي ،اوكوم غلام چې په كفاره كې اداء كيږي دهغه مسلمان والى اوسليم الاعضاء والى ضروري دى لهذاكوم ماشوم چې دموريه نس كې وي هغه په كفاره كې آزادول كافى نه دى ولې چې دهغه په باره كې معلومه نه ده چې سليم الاعضاء دى اوكه نه دى .

(٦)اوكه غلام شيدي رودونكى ماشوم وي اودهغه له مورااوپلارڅخه كوم يومسلمان وي نودهغه په ازادولوسره كفاره اداء كيږي ولې چې داحدالابوين په مسلمان والى سره ماشوم هم مسلمان شمارل كيږي

او ماشوم ځرنګه چې ښکاره دی لهذا دغه سليم الاطراف والی هم به ښکاره وي په دې وجه دداسې غلام په کفاره کې ازادول صحيح دي .

(۷)دښځې ديت مطلقاً دنارينه ددیت نصف دی که په نفس کې وي اوکه په اطرافو کې وي لقوله ﷺ دية المرأة على النصف من دية الرجل (دښځې ديت دنارينه ددیت نصف دی )داروايت له حضرت علي ؓ موقوفاً او مرفوعاً دواړه قسمه مروی دی .همدارازدښځې حال دنارينه له حال څخه ناقص دی اودښځې منفعت دنارينه له منفعت څخه کم دی لهذا دانقصان به په ديت کې هم ظاهريږي .اودمسلمان اوذمي ديت برابر دی ولې چې دنبي کريم ﷺ ارشادمبارک دی دية کل ذي عهد في عهده ألف دينار (دهرذمي ديت په داسې حال کې چې هغه پرخپل عهدذمه باندې باقي پاتې وي زرديناره دی ).همدراز دادحضرت ابوبکرصديق ؓ اوحضرت عمر ؓ فيصله هم ده .دامام شافعي ؒ په نزدذمي که يهودی يانصراني وي نو دهغه ديت څلورزره درهمه دی اوکه مجوسي وي نو دهغه ديت اته سوه درهمه دی .اودامام مالک ؒ په نزدديهودي اونصراني ديت شپږزره درهمه دی .

## فصل

دافصل له نفس څخه دکم ددیت په بيان کې دی

مصنف ؒ چې دنفس ددیت له بيان څخه فارغ شونودملحقاتو ددیت په بيان يې شروع وکړه ولې چې ملحق بالشئ له شئ څخه وروسته وي .

(۱)في النفس والمارن واللسان والذكر والحشفة والعقل والسمع والبصر والشم والذوق واللحية إن لم تنبت وشعر الرأس (۲)والعينين واليدين والشفتين والحاجبين والرجلين والأذنين والأنثيين وثديي المرأة الدية (۳)وفي كل واحد من هذه الأشياء نصف الدية وفي أشفار العين الدية وفي أحدها ربعها (۴)وفي كل أصبع من أصابع اليدين أو الرجلين عشرها وما فيها مفاصل ففي أحدها ثلث دية الأصبع ونصفها لو فيها مفصلان (۵)وفي كل سن خمس من الإبل أو خمسمائة درهم (۶)وكل عضو ذهب نفعه ففيه دية كيد شلت وعين ذهب ضوءها

**ترجمه** :په نفس کې اوپه پوزه کې اوپه ژبه کې اوپه ذکرکې اوپه حشفه کې اوپه عقل کې اوپه سمع کې اوديدکې اوپه قوت شامه کې اوپه قوت ذائقه کې اوپه ږيره کې که بيرته نه شوه راشنه اودسرپه ويښتانوکې (ديت دی ).اوپه سترګوکې اوپه لاسونوکې اوپه شونډوکې اووريځوکې اوپه پښوکي اوپه غوږوکې اوپه خايوکې اودښځې په تيانوکې ديت دی .اوله دې شيانوڅخه په هريوه يوه کې نصف ديت دی اودسترګوپه بڼوکې پوره ديت دی اوپه يوه بانه کې ربع ديت دی .اوپه هره ګوته کې دلاسواودپښولسمه حصه ددیت ده اوپه کومه ګوته کې چې ځوبنده وي نوله هغوئ څخه په هريوه کې ثلث ديت دی اونصف ديت دی که په هغې کې دوه بنده وي اوپه هرغاښ کې پنځه اوښان دي ياپنځه سوه درهمه دي .اوهرهغه اندام چې دهغه نفع ختمه شي نوپه هغه کې ديت دی لکه چې لاس شل شي اودسترګوروڼائي ختمه شي .

**تشريح**:(۱)قوله وفي النفس والمارن واللسان الخ .داټول معطوفات خبرمقدم اوالدية يې مبتدا ، مؤخره ده .يعنې په نفس كې ديت دى كه صغيروي اوكه كبير ،وضيع وي اوكه شريف ،مسلم وي اوكه ذمي ولې چې په حرمت اوعصمت كې داټول برابردي .اوپوزي دنرمي حصي په پرې كولوكې كامل ديت دى اودژبې په پرې كولوكې كامل ديت دى اودذكراوحشفي په پرې كولوكې كامل ديت دى اوكه يې څوک پرسرداسې وواهه چې دهغه عقل زائل شونوپرهغه كامل ديت دى اوپه كېږلو .اوږندولوكې ديت دى .اودچادبويولو اوڅكلودقوت په ختمولوكې ديت دى كه چادبل ژير يادسرويښتان داسې وروخريل چې بيرته راشنه نه شول نوپرهغه كامل ديت دى .دانساني اعضاء په باره كې قاعده كليه داده چې دچادعضوپه پرې كولوسره كه دهغه عضوكامل منفعت ختم شويا له هغه اندام څخه چې كوم جمال مقصودووهغه زائل شونودادنفس انساني دضائع كولوپه شان دى لهذاپردي كامل ديت نفس واجبيږي نومذكوره بالااعضاء همداسې دي چې دځينوپه پرې كولوسره كامل منفعت زائليږي اودځينوپه پرې كولوسره مقصودي جمال زائليږي په دې وجه په هغوئ كې كامل ديت دى .

(۲)ددواړوسترګوپه ضائع كولوكې كامل ديت دى ،ددواړولاسونوپه پرې كولوكې كامل ديت دى .په دواړوشونډوكې كامل ديت دى ،ددواړووريزوپه غوڅولوكې كامل ديت دى ،دواړوپښوپه پرې كولوكې كامل ديت دى ،په دواړوغوږونوكې كامل ديت دى ،په دواړوخايوكې كامل ديت دى اودښځې په دواړوتيانوكې كامل ديت دى .ددې ټولودليل هغه قاعده كليه ده كومه چې په مخكنى مسئله كې تيره شوه .

(۳)له مذكوره بالادووا عضاء څخه كه يې يوضائع كړنونصف ديت واجبيږي ولې چې ديوه عضوپه پرې كولوسره نصف منفعت يانصف جمال فوت كيږي لهذاديت به هم نصف واجب وي ،اودسترګوځلورسره بانوګان كه يې داسې وكښل چې بيرته راشنه نه شول نودكامل جمال دفوت كيدلوپه وجه سره په دې كې پوره ديت واجبيږي اوپه دووكې نصف اوپه يوه كې ربع ديت واجبيږي لمابينا .

(۴)ددواړولاسونواودواړوپښولولس ګوتوڅخه په هريوه ګوته كې دپوره ديت عشردى ولې چې نبي كريم ﷺ فرمايلي دي په هرګوته كې لس اوښان دي .ښكاره خبره ده چې لس اوښان دپوره ديت لسمه حصه ده ،اوټولې ګوتې په منفعت كې دمساوات په وجه سره په ديت كې هم سره برابري دي .په كوموګوتوكې چې دري بندونه دي كه يې له هغوڅخه يوبندپرې كړنودګوتې دديت ثلث واجبيږي .اوپه كوموګوتوكې چې دوه بندونه دي په هغوكې كه يې يوپرې كړنودګوتې دديت نصف واجبيږي بدل به پرمبدل تقسيميږي .

(۵)كه چادچاغاښ خطاء مات كړنوپه هرغاښ كې دپوره ديت نصف عشردى يعنې پنځه اوښان واجبيږي لقوله ﷺ في كل سن خمس من الابل (په هرغاښ كې پنځه اوښان دي )،بياغاښونه اوداړي ټول په حكم كې سره برابردي ولې چې په داړوكې دژولومنفعت دى نوپه ضواحكوكې زينت دى .

(۶)كه چاڅوک په كوم عضووواهه اودهغه منفعت ختم شونواګركه هغه عضوپرخپل ځاى پاتې وي نوهم پوره ديت واجبيږي لكه چې دپرې كولوپه صورت كې پوره ديت واجبيږي مثلاپرلاس يې وواهه شل

شويايې پرسترګه وواهه سترګه باقي وه مګرديديې ختم شونوپوره ديت واجبېږي ولې چې له اعضاء څخه مقصودمنفعت دی نود منفعت ختميدل دعضودپرې کيدلوپه شان دی.

## فصل في الشِّجَاج

### دافصل دسردزخمونوپه بيان کې دی

کوم زخم چې پرمخ اوسرباندې وي هغه ته شجة ويل کيږي اوجمع يې شجاج ده اودپاتي جسم زخم ته جراحة ويل کيږي چې جمع يې جراحات دي ،له نفس څخه دکم درجه والاجنايتونواوديتونوکې شجاج هم داخل دی ليکن دکثرت مسائلوپه وجه سره منصف رحمه الله دشجاج احکام په مستقل فصل کې بيان فرمايلي دي.

(۱) وفي المُوضِحَة نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَة وفي الهَاشِمَة عُشْرُهَا وفي المُنَقِّلَة عُشْرٌ وَنِصْفُ عُشْرٍ وفي الآمَّة وَالجَائِفَة ثُلُثُهَا (۲) فإن نَفَذَتْ الجَائِفَة فَثُلُثَاهَا (۳) وفي الحَارِصَة وَالدَّامِعَة وَالدَّامِيَة وَالبَاضِعَة وَالمُتَلَاحِمَة وَالسِّمْحَاق حُكُومَةُ عَدْلٍ (۴) وَلَا قِصَاصَ في غَيْرِ المُوضِحَة (۵) وفي أَصَابِعِ اليَد نِصْفُ الدِّيَة وَلَوْ مع الكَفِّ وَمَعَ نِصْفِ سَاعِدٍ نِصْفُ الدِّيَة وَحُكُومَةُ عَدْلٍ

**ترجمه** : په موضحه کې د ديت شلمه حصه ده اوپه هاشمه کې لسمه حصه ده اوپه منقله کې لسمه اوشلمه حصه ده اوپه آمه ياجائفه کې ثلث ديت دی اوکه يوبل طرف ته ووزي جائفه نودوه ثلث دديت دي ،اوپه حارصه اودامعه اودامیه اوباضعه اومتلاحمه اوسمحاق کې دعادل فيصله ده ،اوقصاص نشته له موضحه څخه په ماسواکې ،اوديوه لاس په ګوتوکې نصف ديت دی اګرکه له ورغوي سره وي اوله نيمايي بازوسره نصف ديت دی اودعادل فيصله ده.

**تشريح** :(۱)شجاج دسراومخ زخم ته ويل کيږي اودپاتي نورجسم زخم ته جراحت ويل کيږي ،دسراومخ زخمونه پرلس قسمه دي ./**نمبر ۱**:حارصه :داهغه زخم دی چې په پوستکی کې خراش وکړي اوبس (يعنی ګرزاري يې کړي )./**نمبر ۲**:دامعه :داهغه زخم دی چې وينه خوښکاره شي مګرونه بهيږي لکه په سترګوکې اوښکه چې ښکاريږي خومګربهيږي نه ./**نمبر ۳**:داميه :داهغه دی چې وينه هم وبهيږي ./**نمبر ۴**:باضعه :داهغه دی په کوم کې چې غوښه پرې شي ./**نمبر ۵**:متلاحمه :داهغه دی په کوم کې چې( دباضعه په نسبت )ديره غوښه پرې شي مګرسمحاق ته ونه رسيږي ./**نمبر ۶**:سمحاق :داهغه دی په کوم کې چې غوښه پرې شي اوسمحاق ته ورسيږي سمحاق دغوښې اودسردهډوکی ترمنځ نرمه پرده ده ./**نمبر ۷**:موضحه :داهغه دی چې هډوکی ښکاره شي ./**نمبر ۸**:هاشمه :داهغه دی په کوم کې چې هډوکی هم مات شي ./**نمبر ۹**:المنقلة :داهغه دی په کوم کې چې هډوکی په ماتيدلوسره له خپله ځايه وښوري ./**نمبر ۱۰**:آمه :داهغه دی کوم چې ام دماغ ته ورسيږي ام دماغ هغه پرده ده چې په هغې کې دماغ دی.

که موضحه خطاء وي نوپه دې کې نصف عشرديت (پنځه اوښان )دي ،په هاشمه کې عشرديت (لس اوښان )دي ،په منقله کې دعشرديت اونصف عشرديت مجموعه (يعنی پنځلس اوښان )دي ،په آمه کې ثلث ديت واجب دی لقوله ﷺ وفي المُوضِحَة خمس من الإبل وفي الهاشمة عشر وفي المنقلة خمسة عشر وفي الآمة ثلث الدية (يعنی په موضحه

کې پنځه اوښان دي او په هاشمه کې لس او په منقله کې پنځلس او په آمه کې ثلث دیت دی ).او په جائفه زخم کې ثلث دیت دی لقوله ﷺ في الجائفة ثلث الدية (په جائفه کې ثلث دیت دی )،او جائفه هغه زخم دی کوم چې ترجوفه ورسیږي که په سینه کې وي یا په نس کې وي یا په ملا وغیره کې وي .

(۲)که جائفه زخم یو بل طرف ته ووتی نو دا دوه جائفې ګڼلې کیږي لهذا دیت دوه ثلثه واجبیږي کما قضی بذلک ابوبکر رضي الله عنه .

(۳)له موضحه څخه په کمه درجه کې چې کوم شپږقسمه زخمونه دي یعنی حارصه ،دامعه ،دامیه ،باضعه ،متلاحمه ،اوسمحاق ،په دې کې دامام ابوحنیفه رحمه الله دمذهب مطابق نه قصاص شته اونه دیت بلکه حکومت عدل دی یعنی عادل کس چې څه فیصله وکړي هغه واجبیږي ولی چې ددې شپږقسمه زخمونولپاره کوم تاوان مقرر نه دی او هسې بې زایه یې پرېښودل هم صحیح نه دي لهذا په دې کې دعادل فیصله معتبره ده ،دکوم چې صورت دامام طحاوی رحمه الله دقول مطابق داده چې کوم سالم غیرزخمي غلام دي قیمت کړای شي بیا دي دوهم ځل له زخم سره قیمت کړای شي او بیا دي ددواړو قیمتونو په منځ کې تفاوت ته وکتل شي که هغه تفاوت دقیمت نصف عشروونو دیت دعشرنصف دي واجب کړای شي او که تفاوت دربع عشرپه اندازه وونو ربع عشر دیت دي واجب کړای شي .

له پورته ذکرشویو لس قسمه زخمونو څخه په اووم قسم (یعنی موضحه )کې قصاص شته په دې شرط چې عمداوي ولی چې قصاص مساوات غواړي او په موضحه کې مساوات ممکن دی په دې ډول چې تر هډوکي دپرې کړای شي او پرې دي شو دل شي ،له موضحه څخه لوړچې کوم درې قسمه زخمونه دي په هغوکې بالاتفاق قصاص نشته ولی چې مساوات متعذر دی .

(۴)اوله موضحه څخه چې په کښته درجه کې کوم زخمونه دي په هغو کې دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد قصاص نشته .دامام محمد رحمه الله په نزدله سمحاق څخه ماسوا په دانورکې قصاص شته او همدا ظاهر الروایة دی او همدا صحیح ده ولی چې مساوات ممکن دی په دې ډول سره چې دمجروح دزخم په ناپولو سره دې جارح همدومره اندازه زخمي کړي .

(۵)دیوه لاس په ټولو ګوتو کې نصف دیت دی ولی چې په یوه ګوته کې عشر دیت (لس اوښان )دي نو په پنځو ګوتو کې نصف دیت (پنځوس اوښان )کیږي ،او که یې له ګوتو سره ورغوی هم پرې کړنو هم نصف دیت لازمیږي ولی چې ورغوی دګوتو تابع دی .که یې ګوتې له نیمایې بازو سره پرې کړې نو په ګوتو او ورغوی کې نصف دیت دی او په نیمایې بازو کې حکومت عدل (دکوم چې صورت مخکې ذکرشو)دی ولی چې بازو دګوتو او ورغوی تابع نه دی او هغه همداسې بې زایه هم نه شي پرېښودل کیدای لهذا په دې کې به دعادل فیصله معتبره وي .

(٦)وفي قطع الكف وفيها أصبع أو أصبعان عشرها أو خمسها ولا شيء في الكف (٧)وفي الأصبع الزائدة (٨)وعين الصبي وذكره ولسانه إن لم تعلم صحته بنظر وحركة وكلام حكومة عدل (٩)شج رجلا موضحة فذهب عقله أو شعر رأسه دخل أرش الموضحة في الدية (١٠)وإن ذهب سمعه أو بصره أو كلامه لا وإن شجه موضحة فذهبت عيناه أو قطع أصبعا فشلت أخرى أو قطع المفصل الأعلى فشل ما بقي أو كل اليد أو كسر نصف سنه فاسود ما بقي فلا قود (١١)وإن قلع سنه فنبتت مكانها أخرى سقط الأرش (١٢)وإن أقيد فنبتت سن الأول يجب

**ترجمه** :او د ورغوی په پري کولو کې په داسي حال کې چې په هغه کې یوه ګوته یا دوه ګوتي وي د دیت لسمه حصه ده یا پنځمه حصه ده او په ورغوی کې هیڅ نشته ،او په زیاته ګوته کې ،او د ماشوم په سترګه کې او د هغه په ذکر کې او په ژبه کې که معلوم نه وه د هغه صحت په لیدلو او حرکت کولو او خبري کولو سره دیو عادل فیصله ده .زخمي یې کړ کوم کس نو د هغه عقل ختم شو یا یې د سر ویښتان نو داخلیږي د موضحه تاوان په دیت کې ،او که باقي پاتي نه شو د هغه سماعت او دید یا ګویائي نونه ،او که یې ولګاو پر کوم کس موضحه زخم نو ضائع شو دده دواړه سترګي یا یې پري کړه د هغه ګوته نو شل شوه دوهمه ګوته یا لوړ بند نو شل شو باقي پاتي یا یې ټول لاس شل شو یا یې نصف دانت مات کړ نو تور شو باقي نو قصاص نشته او که یې وکښی د چاغابنې بیا راشین شو د هغه پر ځای بل یو نو ساقطیږي تاوان او که یې قصاص واخیستل شو بیا راشین شو د اول کس غابښ نو تاوان واجبیږي .

**تشریح** :(۶)که چاد بل کس ورغوی وریري کړ په کوم کې چې صرف یوه ګوته وه پاتي څلور ګوتي نه وي نو پر قاطع باندي عشر دیت یعنی لس اوښان واجبیږي او که ګوتي دوي وي نو خمس دیت یعنی شل اوښان واجبیږي .او په ورغوی کې هیڅ نه واجبیږي ولی چې ګوتي اصل دي او ورغوی تابع دی په دي وجه چې د لاس منفعت بطش (نیول )دی او نیول د ګوتو په وجه سره حاصلیږي .

(۷)قوله وفی الاصبع الزائدة وعین الصبی الخ ،له خپلو ټولو معطوفاتو سره خبر مقدم دی او حکومة عدل مبتداء مؤخره ده .یعنی که چاد بل زیاته ګوته وریري کړه نو د آدمیت د شرافت په خاطر په دي کې حکومة عدل دی ولی چې دا د انسان جزء دی اګر که د دي منفعت یا زینت نشته .همدا شان که چاد کوم ماشوم سترګه یا ذکر یا ژبه وریري کړه او تراوسه د دي اعضاء روغ والی نه و معلوم شوی یعنی د ستر ګو دید .د ذکر حرکت کول او د ژبي خبري کول معلوم نه وو نو په دي کې حکومت عدل دی ولی چې د دي اعضاء منفعت معلوم نه دی په دي وجه کامل دیت نه شي واجبیدلای لهذا دیوه عادل فیصله په دي کې معتبره ده .بیا ماشوم که په سترګه سره دید کولای شي او په ژبه سر خبري کولای شي او دده ذکر حرکت کولای شي نو دا د دي اعضاء د روغ والی علامت دی .

**الالغاز**:ای جان اذامات المجنی علیه فعلیه نصف الدیة واذا عاش فعلیه الدیة؟

**فقل** :الختان اذاقطع حشفة الصبی خطا باذن ابیه فان مات الصبی وجب علی الخاتن نصف الدیة وان عاش فعلی الخاتن الدیة کلها(الاشباه والنظائر)

(۸)که چا د بل پر سر باندي داسي موضحه زخم ولګاو د کوم په وجه سره چې د هغه عقل ختم شو نو پر جارح ټول دیت لازمیږي او د موضحه تاوان هم په دي کې داخلیږي ولی چې د عقل په ختمیدلو سره د ټولو اعضاء منفعت فوتیږي نو داسي ده لکه څوک چې په موضحه زخم سره زخمي کړای شي او بیا هغه له دې څخه مړشي نو د موضحه تاوان په کل دیت کې داخلیږي .همدا شان که له موضحه زخم څخه وروسته د هغه د سر ویښتان داسي ضائع شول چې بیرته راشنه نه شول نو د سر د ویښتانو په ضائع کیدلو کې کل دیت دی او د دي زخم تاوان هم په دي کې داخلیږي ولی چې جزء په کل کې داخل وي .

(۹)كه دمذكوره موضحه زخم په وجه سره دمجروح قوت سامعه ياباصره ياقوت كلام ختم شونو پرجارح له ديت سره سره دډي زخم تاوان هم لازم دى داصورت دتيرشوى صورت په شان نه دى چې دزخم تاوان په ديت كې داخل شي بلكه داعضاء مختلفه دتلف كولو په شان دزخم تاوان په ديت كې نه داخليږي ولى چې له دي منافعو څخه هريو منفعت مستقل دى .په خلاف دعقل چې دهغه منفعت دټولو اعضاء طرف ته راګرځي.

**الالغاز**:اى رجل قطع اذن انسان وجب عليه خمسمائة دينار وان قطع راسه فعليه خمسون دينارا؟!

**فقل**:اذاخرج راس المولود فقطع انسان أذنه ولم يمت فعليه ديتها وان قطع رأسه فعليه الغرة وغرة الغلام يساوى خمسين دينارا (الاشباه والنظائر).

(۱۰)كه چادبل سرداسي ورزخمي كړچې دهغه په وجه سره دهغه دواړه سترګي ضائع شوي يايې دچاګوته وړيري كړه دكوم په وجه سره چې بله متصله ګوته هم شله شوه يايې برسيره بندپري كړدكوم په وجه سره چې باتي پاتي ګوته هم شله شوه يايې ټول لاس ضائع شو ياچادبل نصف غاښ ورمات كړاوپه دي سره پاتي غاښ هم تورشونو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزدپه دي ټولوصورتونو كې تاوان واجب دى قصاص نه واجبيږي ولى چې قصاص مساوات غواړي اودلته مساوات ممكن نه دى اوچيرته چې مساوات ممكن نه وي هلته قصاص نه وي په دي وجه قصاص نه واجبيږي اوكله چې قصاص واجب نه شونو تاوان به وركوي .اوهمدا راجح ده لمافى اللباب :والصحيح قول ابى حنيفة وعليه مشى البرهانى والنسفى وغيرهما تصحيح (اللباب فى شرح الكتاب على هامش الجوهرة :۲/۱۷۲)

(۱۱)كه چادكوم كس غاښ وروكښى بيادهغه پرځاى بل غاښ راشين شونو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دي جرمانه ساقطه شوه ولى چې دغاښ دمنفعت اوزينت په بيرته راګرځيدلو سره دمجروح دحق جبيره وشوه .دصاحبينو په نزد دغاښ كښونكي پرذمه پوره تاوان لازم دى ولى چې دكښونكي له طرف څخه دموجب تاوان جنايت صدورشوى دى ،پاتي شونوى غاښ راشين كيدل نو دالله تعالى له طرف څخه نوى نعمت اواحسان دى.

**ف**:دامام ابوحنيفه رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:(الاان قلعت )السن (فنبت اخرى فانه يسقط الارش عنده كسن صغير)خلافالهما(الدرالمختار على هامش ردالمحتار:۵/۳۱۵)

(۱۲)اوكه زيددبكرغاښ وروكښى بكرقصاص دزيدغاښ وروكښى بيادبكرغاښ راشين شونو پربكرلازمه ده چې دى به دزيددغاښ ارش يعنى پنځه سوه درهمه اداء كوي ولى چې دبكردغاښ په راشنه كيدلو سره معلومه شوه چې ده دزيدغاښ ناحقه وركښلى وولهذاپربكردزيددغاښ ديت لازميږي .

(۱۳)وان شج رجلا فالتحم ولم يبق له اثر او ضرب فجرح فبرا وذهب اثره فلاارش (۱۴)ولا قود بجرح حتى يبرأ(۱۵)وكل عمد سقط فيه قود بشبهة كقتل الاب ابنه عمدا فديته فى مال القاتل (۱۶)وكذا ما وجب صلحا او اعترافا ولم يكن تصدق لعشر (۱۷)وعمد الصبى والمجنون خطأ وديته على عاقلته ولاتكفير فيه ولا حرمان عن الميراث والمعتوه كالصبي

**ترجمه** :او که یې زخمي کړ کوم کس یا هغه زخم ډک شو او نه شو پاتې دهغه اثر یا یې وواهه او زخمي یې کړ یا هغه روغ شو او نه شو پاتې دهغه اثر نو تاوان نشته ،او قصاص نشته دزخم تر څو چې روغ شي ،او هر هغه عمد دکوم چې قصاص ساقط شي دشبه په وجه سره لکه قتل کول دپلار زوی لره نو دهغه دیت دقاتل په مال کې دی ،او همداشان کوم چې واجب شي په صلح یا اقرار سره یا کم وي له نصف عشر څخه ،او عمد دنابالغ او مجنون خطاء دی او دهغه دیت دهغه پر عاقله دی ،او نشته کفاره په دې کې او نه محروم والی او معتوه دنابالغ په شان دی .

**تشریح** :(۱۳)که یو چا دبل چا سر ورزخمي کړ یا هغه زخم ډک شو او دهغه اثر پاتې نه شو او ویښتان ونیو ،یا یې پر نور جسم وواهه او هغه زخمي شو یا هغه زخم ډک شو او دهغه اثر پاتې نه شو نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد له جارح څخه جرمانه ساقطیږي ولی چې دجرماني لازمونکی عیب دمجروح پریدن باندي اوس پاتې نه شو او صرف درد او الم موجب جرمانه او تاوان نه دی همدا وجه ده چې که څوک بل څوک ووهي مګر زخمي یې نه کړي نو پر ضارب څه تاوان نشته .دامام ابو یوسف رحمه الله په نزد پر جارح د درد رسولو جرمانه واجب ده ولی چې موجب دیت عیب اګر که زائل شو مګر له زخم څخه حاصل شوی درد خو نه دی زائل شوی او دجرماني مقدار به یو عادل کس بیانوي .دامام محمد رحمه الله په نزد پر جارح باندې دطبیبن اجرة او ددواء خرڅه واجب ده ولی چې پر مجروح باندې دطبیب اجرة او ددواء قیمت دجارح دفعل په وجه سره لازم شوی دی .

ف:دامام ابو حنیفه رحمه الله قول راجح دی لمافي الشامية :وفي البرجندي عن الخزانة والمختار قول ابي حنيفة ،درمختى وعليه اعتمد المحبوبي والنسفي وغيرهما لكن قال في العيون لايجب عليه شئ قياسا وقالا يستحسن ان تجب حكومة عدل مثل اجرة الطيب (ردالمحتار:۵ /۳۱۵)

(۱۴)که چا کوم کس زخمي کړ نو له جارح څخه به قصاص نه اخیستل کیږي تر څو چې مجروح روغ شي ولی چې نبی کریم ﷺ دمجروح له روغیدلو څخه وړاندې دقصاص له اخیستلو منع فرمایلې ده .همداراز په زخمونو کې دحال اعتبار نشته بلکه دانجام اعتبار دی په دې وجه چې فی الحال دهغه حال معلوم نه دی کیدای شي چې زخم ډیر شي او دهلاکت نفس سبب وګرځي لهذا له روغیدلو څخه وروسته یوه خبره یقیني کیږي چې پر جارح دزخم تاوان دی یا داتلاف نفس تاوان .

(۱۵)مصنف رحمه الله یو اصول بیانوي چې هر هغه قتل چې په هغه کې دکومې شبهې په وجه سره له قاتل څخه قصاص ساقط شي او دیت واجب شي مثلا پلار زوی عمدا قتل کړ نو پر قاتل (پلار) باندې قصاص نشته بلکه له ده څخه به دیت اخیستل کیږي ،نو داشان دیت دقاتل په مال کې واجبیږي پر عاقله نه واجبیږي ،او دادیت به قاتل په دریو کلونو کې اداء کوي .

(۱۶)همداشان هر هغه مالي جرمانه کومه چې پر قاتل دصلح یا دقاتل دقتل خطاء داقرار کولو په وجه سره واجبه شوي وي هغه به هم دقاتل له مال څخه اداء کیږي پر عاقله واجبه نه ده لقول عمر رضی الله عنه لايعقل العاقلة صلحا ولا اعترافا(یعنی خاندان مال صلح او مال اقرار نه شي برداشتولای ) .همداراز په دې صورت کې څرنګه چې دیت دعقد په وجه سره واجب شوی دی او عاقله دعقد په وجه سره واجب شوی دیت نه شي برداشتولای بلکه دقتل په وجه سره واجب شوی دیت برداشتوي .همداشان هغه دیت چې دپوره دیت شلمه حصه نه وي بلکه

کمه وي نو داسي دیت هم پر عاقله نه دی بلکه پخپله د مجرم په ذمه وي ولی چې عاقله دیت برداشتوي تر څو پر قاتل څه تخفیف وي حال دا چې دا کوم زیات مقدار نه دی چې مجرم یې په خپله نه شي برداشتولای.

(۱۷) نابالغ او مجنون که عمدا کوم جرم کوي نو هغه هم خطاء شمارل کیږي لهذا د دوئ د جرم په صورت کې د دوئ پر عاقله دیت واجبیږي ولی چې د دوئ لره قصد صحیح نشته په دي وجه چې عمد او قصد خو په علم پسي موقوف دي او د علم ذریعه عقل دی حال دا چې په مجنون کې عقل بالکل نشته او په نابالغ کې ناقص دی لهذا د دوئ له طرف څخه عمد او قصد نه شي متحقق کیدلای همدا وجه ده چې دوئ ګناه ګار یږي هم نه.

(۱۸) همدا شان که ماشوم (نابالغ) یا مجنون خپل کوم قریب قتل کړي د کوم چې دی وارث دی نو د دوئ دا قتل د قتل خطاء په حکم کې دی او سره له دي چې په قتل خطاء کې کفاره لازمیږي مګر پر ماشوم او مجنون کفاره هم نشته او د مقتول له میراث څخه هم نه محرومیږي ولی چې دا قتل د دوئ په حق کې ګناه نه ګڼل کیږي لهذا نه پر دوئ کفاره شته او نه له میراث څخه محرومیږي، او په لوړ ذکر شوی حکم کې معتوه د ماشوم په حکم کې دی.

## باب في الجنين

### دا باب د جنین په بیان کې دی

جنین فعیل په معنی د مفعول یعنی مجنون سره دی او مجنون د مستور په معنی دی. جنین هغه ماشوم دی کوم چې تر او سه د مور په رحم کې مستور وي او کله چې پیدا شي نو هغه ته ولید ویل کیږي له دي څخه وروسته هغه ته رضیع ویل کیږي. جنین څرنګه چې د جزء من الکل په حکم کې دی په دي وجه مصنف ﷫ د ده احکام د اجزاء حقیقه د احکامو له بیانولو څخه وروسته ذکر کړي دي. یا په دي ډول وو ایه چې په انسان او د انسان په متعلقاتو د جنایت له بیان څخه چې فارغ شو نو د من وجه انسان احکام یې شروع کړل او من وجه انسان جنین دی.

(۱) ضرب بطن امرأة فألقت جنينا ميتا تجب غرة نصف عشر الدية) فإن ألقته حيا فمات فدية (۲) وإن ألقته ميتا فماتت الأم فدية وغرة وإن ماتت فألقته ميتا فدية فقط (۳) وما يجب فيه يورث عنه ولا يرث الضارب فلو ضرب بطن امرأته فألقت ابنه ميتا فعلى عاقلة الأب غرة ولا يرث منها (۴) وفي جنين الأمة لو ذكرا نصف عشر قيمته لو كان حيا وعشر قيمته لو أنثى)

**ترجمه**: وار یې وکړ د ښځې پر ګېډه نو وا چاوه هغې ماشوم مړ نو واجبیږي غره، او هغه د دیت لسمه حصه ده او که یې وا چاوه هغه ژوندی بیا هغه مړ شو نو دیت واجبیږي، او که یې وا چاوه مړ بیا مور مړه شوه نو دیت او غره واجبیږي او که مور مړه شوه بیا هغې مړ ماشوم وا چاوه نو صرف دیت شته، او کوم چې واجبیږي په دي کې هغه په میراث کې وړل کیږي له دي څخه او وارث نه دی وهونکی او که یې وو هله خپله ښځه پر ګېډه نو وا چاوه هغې هلک مړ نو د پلار پر عاقله غره ده او میراث نه شي وړلی له دي څخه، او د مینځې په ماشوم کې که هغه مذکر وي شلمه حصه ده د ده د قیمت که ژوندی وای او لسمه حصه ده د هغه د قیمت که مؤنث وو.

**تشريح** :(۱)كه چاښځه پرنس په لغته يابل شي سره ووهله چې دهغه په وجه سره هغې جنين (مړماشوم )واچاوونوپه دي كې پرضارب باندي يوه غره واجب ده ولی چې دبنوهذيل يوي ښځې بله ښځه پرنس وهلې وه چې په هغه سره مضروبه ښځه او دهغې جنين دواړه مړه شول ،نونبی كريم ﷺ دښځې ددیت اودجنين دغره حكم فرمايلې وو .غرة الشئ .خيار الشئ اواول الشئ ته ويل كيږي غرة الشهرپه معنی داول الشهر،اوپه اصطلاح كې غره ددیت دلسمي حصي نصف ته ويل كيږي څرنگه چې دامقاديرپه ديت كې ترټولو كښته درجه او اول ديت دی په دي وجه دي ته غره ويل كيږي ،يعنی كه جنين مذكروونودنارينه ددیت نصف العشر(شلمه حصه يعنی پنځه سوه درهمه )واجب دي اوكه جنين مؤنث وونودښځې ددیت عشر(لسمه حصه يعنی پنځه سوه )واجب دي .دنارينه ددیت شلمه حصه اودښځې ددیت لسمه حصه دواړه پنځه سوه كيږي ولی چې دښځې ديت دنارينه ددیت نصف دی .اوكه مضروبه ښځې ژوندی ماشوم واچاوو بياهغه مړشونوپرضارب باندي كامل ديت واجبيږي ولی چې ضارب ماشوم له پيداكيدلوڅخه وړاندي دوهلوپه ذريعه سره خطاء ضائع كړ.

(۲)اوكه مضروبه ښځې مړماشوم واچاووبياموروهم مړه شوه نوپرضارب دموردقتل په وجه سره ديت اودجنين په وجه سره غره واجبيږي ولی چې دتعدداثرپه وجه سره فعل هم متعددشمارل كيږي لهذادادوه جنايتونه شمارل كيږي .اوكه دضارب په ضرب سره اول مورمړه شوه بيادهغې له نس څخه مړماشوم ووتی نوپرضارب صرف دموردیت واجب دی اوپه جنين كې هيڅ نه واجبيږي ولی چې ظاهره داده چې دجنين دمرگ سبب دمورمرگ دی ولی چې دده ژوند دمورله ژوندڅخه اودده ساه اخيستل دمورله ساه اخيستلوڅخه ده نودده مرگ دمورپه مرگ سره متحقق شوی دی.

(۳)څه چې په جنين كې واجبيږي كه غره وي اوكه ديت نوهغه دده دوارثانودی ولی چې داد نفس بدل دی اوبدل عن المقتول ورثه لره دی .ليكن كه ضارب هم دده وارث وونوهغه به له ميراث څخه محروم وي مثلاً كه چاخپله ښځه په نس كې په لغته ووهله چې په دي سره هغې مړماشوم واچاوونودضارب (پلار )پرعاقله غره ده اوضارب په دي غره كې دميراث مستحق نه دی ولی چې قاتل ته ميراث نه وركول كيږي .

(۴)كه چامينځه پرنس ووهله چې په دي سره هغې ماشوم واچاوونوماشوم كه مذكروونودهغه په ژوندی پيداكيدلو دهغه دقيمت نصف عشريعنی شلمه حصه واجبيږي ،اوكه هغه مؤنث وي نولسمه حصه واجب ده .دمور دقيمت اعتبارنشته ولی چې واجب مقداردجنين دنفس بدل دی لهذادهغه اندازه به دده په ذات سره كيږي وفی هذه صورة تفضيل الانثی علی الذكرفی الارش .

(د)فان حرر دسيده بعد ضربه فالقته فمات ففيه قيمته حيا ولاتجب الدية وإن مات بعد العتق (۲)ولا كفارة في الجنين (۷)وإن شربت دواء لتطرحه او عالجت فرجها حتى أسقطته ضمن عاقلتها الغرة إن فعلت بلا إذن)

**ترجمه** :نوكه ازادكړهغه لره دهغه مولی دهغه له وهلوڅخه وروسته اوهغې ماشوم واچاوواوهغه مړشونوپه دي كې دهغه قيمت دی دژوندی والی .اوكفاره نشته په جنين كې .كه ښځې دواء وڅښله ترڅوحمل ضائع

كړي يا يې څه شی كښيښود په خپله شرمګاه كې حتی چې هغه يې وا چاوونو ضامن ګرځي ددې عاقله دغره كه دي كړی وي بلا اجازته.

**تشريح** :(۵)كه چا دبل كس مينځه پرنس په لغته ووهله او ترا وسه هيڅ نه ووشوي چې مالک اعلان وكړچې ددې مينځې په نس كې چې كوم ماشوم دی هغه ماازاد كړله دې څخه وروسته مينځې ژوندی جنين واچاووبيا هغه مړشونو په دې صورت كې پرضارب دژوند ماشوم قيمت لازميږي يعنی كه هغه ماشوم ژوندی وای نو دهغه ماشوم چې څه قيمت وای هغه پرضارب لازميږي دقياس تقاضا داده چې ديت واجب شي ولی چې له خروج څخه وروسته ماشوم ژوندی او آزاد دی مګر كوم ضرب چې ددې ماشوم دمرګ سبب دی هغه ددې ماشوم درقيت په حالت كې واقع شوی دی لهذا دهغه داعتبار كولو په وجه سره قيمت واجبيږي ولی چې وړاندې ذكرشوه چې اعتبار درمی حالت لره دی.

(۶)دچا په وهلو سره چې جنين ولويد او مړشونو پرضارب كفاره واجبه نه ده بې شكه مندوبه ده .دائمه ثلاثه په نزد كفاره واجب ده ولی چې ضارب قاتل دی .زموږ دليل دادی چې كفاره په قتل كې واجبيږي حال دا چې دجنين ژوند معلوم نه دی نو قتل هم يقيني نه دی .مذكوره اختلاف هغه وخت دی چې په وهلو سره مړ ماشوم ولويږي او كه ژوند ماشوم ولويد بيا مړشونو بالاتفاق كفاره واجب ده.

(۷)كه كومې ښځې دخپل حملي دضائع كولو په غرض سره كومه دواء وڅښله يا يې وخوړله يا دبولو په ځای كې څه شی كښيښود چې دهغه په وجه سره حمل ضائع شونو كه ښځې داكار دخپل خاوند له اجازت څخه بغير كړی وونو دښځې پر عاقله نصف عشر ديت يعنی دديت شلمه حصه لازميږي ولی چې ښځې په تعدی كولو سره حمل ضائع كړ لهذا پردې ضمان واجبيږي او دا ضمان به دښځې عاقله برداشتوي او ښځې ددې دميراث مستحقه نه ده ولی چې ښځې قاتله ده .او كه ښځې دخاوند په اجازت سره حمل ضائع كړنو هيڅ وركول نه لازميږي ولی چې دښځې له طرف څخه زياتی نه دی موجود شوی.

## باب ما يحدثه الرجل في الطريق

داباب دهغو شيانو په بيان كې دی كوم چې انسان په لاره كې جوړوي

مصنف چې دقتل دمباشرت له احكامو څخه فارغ شونو قتل لره دسبب جوړيدونكي شيانو احكام يې شروع كړل څرنګه چې داول وقوع كثيره او بلا واسطه ده په دې وجه يې دهغه احكام وړاندې ذكر كړل.

(۱)وَمَنْ أَخْرَجَ إِلَى الطَّرِيقِ الْعَامَّةِ كَنِيفًا أَوْ مِيزَابًا أَوْ جُرْصُنًا أَوْ دُكَّانًا فَلِلْكُلِّ نَزْعُهُ (۲)وَلَهُ التَّصَرُّفُ فِي النَّافِذِ إلَّا إذَا أَضَرَّ وَفِي غَيْرِهِ لَا يَتَصَرَّفُ إلَّا بِإِذْنِهِمْ (۳)فَإِنْ مَاتَ أَحَدٌ بِسُقُوطِهَا فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ كَمَا لَوْ حَفَرَ بِئْرًا فِي طَرِيقٍ أَوْ وَضَعَ حَجَرًا فَتَلِفَ بِهِ إنْسَانٌ (۴)وَلَوْ بَهِيمَةً فَضَمَانُهَا فِي مَالِهِ

**ترجمه** :چا چې راويستله دشارع عام طرف ته بيت الخلاء يا ناوه يا چهجا يا دكان نو هر كس لره حق شته دهغه دماتولو ،او ده لره دتصرف حق شته په نافذه كوڅه كې مګر دا چې مضروي او په غيرنافذه كې دې تصرف نه كوي مګر داهل كوڅې په اجازه سره ،نو كه مړشو څوک دهغه په لويدلو سره نو دهغه ديت دده پر عاقله دی لكه

چې څوک وکيندي څاه په لاره کې ياکنبېږدي دبره اوضائع شې په دي سره کوم انسان ،اوکه څاروی وي نودهغه ضمان به دده په مال کې وي.

**تشريح** :(۱)که چادشارع عام طرف ته بيت الخلاراويستله ،ياېې ناوه ولګوله ،ياکومه چوتره يادکان جوړکړنوهرکس لره ددي شيانودماتولو اختيارشته ولی چې په دي شيانوسره خلګوته ضرررسيږي وقال ﷺ لا ضرر ولا ضرار في الإسلام (په اسلام کې ضرراوضرارنشته )يعنی نه ابتداء ضرررسول جائزدی اونه چاته دضرررسولوپه نتيجه کې هغه لره زيات ضرررسول جائزدی .همداراز په شارع عام (عامه لار)کې دتېرولو خلګوحق شته لهذاهريوه لره دااختيارشته چې داضرردفع کړي.

(۲)اوپه داسي کوڅه کومه چې هغه بل طرف ته ووځي په هغې کې مذکوره بالاشيان جوړول صحيح دي په دي شرط چې خلګوته په دي سره تکلف ونه رسيږي ولی چې په داسي ګلۍ کې هريوه لره دتيريدلوحق شته نوددا سي شي دجوړولوحق به هم وي کوم چې خلګولره مضرنه وي ولی چې داسي شيان دتيريدلوپه درجه کې دي کله چې دتيريدلوحق لري نوددي شيانوجوړلوحق هم لري ،اوکومه ګلۍ چې هغه بل طرف ته نه ووځي (يعنی بنده وي )په هغې کې مذکوره شيان جوړول اوتصرف کول جائزنه دي ترڅوچې ددي کوڅې اوسيدونکي ددي اجازت ورنه کړي ولی چې داسي کوڅه دهمدي خلګوملک وي همداوجه ده چې په هرحال کې له دوئ څخه هريوه لره دشفعه حق حاصل دی لهذاپه دي کې هيڅ قسم تصرف ددوئ له اجازت څخه بغيرجائزنه دی.

(۳)که چاپه لاره کې له مذکوره شيانوڅخه کوم شی جوړکړهغه په کوم کس راولويدل چې په دي سره هغه کس مړشونودجوړونکي پرعاقله باندي دهغه ديت واجبيږي ولی چې ددي کس دضائع کيدلوسبب همدی شونوداداسي ده لکه چې څوک دمسلمانانوپه لاره کې څاه وکيندي يادبره کښيږدي بيادهغه په وجه سره کوم انسان ضائع شي نودضائع شوی.ديت ددي فاعل پرعاقله لازم دی ولی چې دافاعل په خپل دي کارکې له حدڅخه تجاوزکونکی دی لهذاکوم نقصان چې دده له فعل څخه پيداشي نوهغه ددي ضامن دی.

(۴)قوله ولوبهيمة فضمانهافي ماله ای لوکان الهالک بسقوط نحوالکنيف بهيمة فضمانهافي مال المخرج ،يعنی که دده ددي فعل په وجه سره کوم څاروی تلف شونودهغه تاوان دفاعل په مال کې واجبيږي ولی چې خاندان مالی تاوان نه شي برداشتولای ،صرف دنفس تاوان برداشتوي.

(۵)وَمَن جَعَلَ بالوعَةً في طَرِيقٍ بِأَمرِ سُلطانٍ اَو في مِلكِهِ اَو وَضَعَ خَشَبَةً فِيهَا اَو قَنطَرَةً بِلا إِذنِ الإِمَامِ فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ المَرَّ وَ عَلَيهَا لَم يَضمَن (۶)وَمَن حَمَلَ شَيئًا في الطَّرِيقِ فَسَقَطَ عَلَى إِنسَانٍ ضَمِنَ وَلَو كَانَ رِدَاءً قَد لَبِسَهُ فَسَقَطَ لا (۷)مَسجِدٌ لِعَشِيرَةٍ فَعَلَّقَ رَجُلٌ مِنهُم قِندِيلاً أَو جَعَلَ فِيهِ بِوَارِيَ أَو حَصَاةً فَعَطِبَ بِهِ رَجُلٌ لَم يَضمَن وَإِن كَانَ مِن غَيرِهِم ضَمِنَ (۸)وَإِن جَلَسَ فِيهِ رَجُلٌ مِنهُم فَعَطِبَ بِهِ أَحَدٌ ضَمِنَ إِن كَانَ فِي غَيرِ الصَّلاةِ وَإِن كَانَ فِيهَا لا

**ترجمه** :اوچاچې جوړه کړه موری په لاره کې دبادشاه په اجازه سره ياپه خپل ملک کې ياېې کيښودلرګی په لاره کې ياېې پل جوړکړيادبادشاه له اجازت څخه بغيربياکوم کس قصدوکړدتيريدلوپردي نوضمان نشته ،اوچاچې اوچت کړکوم شی په لاره کې اوهغه ولويدی پرکوم انسان باندي نوضامن ګرځي ،اوکه وي هغه څادرکوم چې ده په تن کړی وي اوهغه ولويدی نوضامن نه دی ،يومسجددی دکوم قوم اوځوړندکړله دوئ

څخه یوکس په هغه کې قندیل یایې خپورکړیه دي کې پوزی یادبري یاهلاک شوپه دي سره کوم نس نوضامن نه دی اوکه له اهل محلې څخه ماسوابل چاایښي وي نوضامن دی ،اوکه کښېنستې په مسجدکې کوم کس له اهل محله څخه یاهلاک شوددہ په وجه سره کوم کس نوضامن دی که په لمانځه کې نه ووا وکه په لمانځه کې وونوضامن نه دی.

**تشریح** :(۵)که کوم کس په لاره کې چوبچه (موری،اوپه دیوال کې داسې سوری چې په هغه سره دننه اوبه دباندې راوځي )وکیندله نوکه یې دسلطان په اجازت سره داکارکړی وي یایې په خپله ځمکه کې کیندلی وي ،یایې دسلطان له اجازت څخه بغیرپه لاره کې لرګی ایښی وي یایې پل جوړکړیاکوم کس قصداً لته تیریداوپه دي کې ولوید هلاک شونوپه دي څلورواړه صورتونوکې ددي کس په ذمه هیڅ نه واجبیږي په لومړی صورت کې خوپه دي وجه پرده ضمان نشته چې هغه دسلطان په اجازت سره دي لهذا کیندونکی زیاتی کونکی نه شمارل کیږي ،اوپه دوهم صورت کې په دي وجه ضامن نه دی چې ده په خپل ملک کې تصرف کړی دی اوپه خپل ملک کې هغه دتصرف مجازدی لهذا پرده ضمان نشته ،اوپه آخري دووصورتونوکې ځرنګه چې هغه کس قصداً په لرګی یاپل تیرشوی دی لهذا دهلاکت نسبت په خپله دتیریدونکی طرف ته کیږي نه دپل جوړونکی اولرګی ایښودونکی وطرف ته .

(۶)که کوم کس په لاره له خپل سامان سره روان وواوهغه سامان ولویداوپه هغه سره کوم انسان هلاک، شونودسامان والاضامن دی اوکه هغه څادراغوستې وواوهغه څادرولویداودهغه په وجه سره کوم کس هلاک شونوپرڅادر والاضمان نشته په دواړوصورتونوکې وجه دفرق داده چې سامان وړونکی دسامان دحفاظت په قصدکولوسره تک کوي لهذا دلته دسلامتی دوصف قیدلګول کیږي (یعنی دده مرورپه دي شرط سره مشروط دی چې کوم بل کس به ته ضررنه رسیږي )ولی چې دده په قصداودحفاظت داراده په وجه سره پرده څه تنګی نشته او دڅادراغوستونکی مقصددڅادرحفاظت نه وي نوکه په دي صورت کې دسلامتی دوصف قیدولګول شي نوحرج لازمیږي په دي وجه دڅاراغوستل بغیرله کوم قید څخه جائزګرځول شوی دی .

(۷)دکوم قوم مسجددی په هغه کې له همدي قوم والاڅخه یوکس قندیل ځوړندکړیایې پوزی خپورکړیایې په هغه کې ډبري خپري کړي بیاپه دي سره اتفاقاً کوم انسان مړشونودقندیل وغیره ایښودونکی کس باندي څه ضمان نشته .اوکه ددي کارونوکونکی له اهل محله څخه نه وي بلکه کوم بل غیرکس وي نوهغه ضامن ګرځي وجه فرق داده چې دمسجددامورواتنظام داهل مسجدکاردی لهذا دهغوئ فعل مطلقاً مباح دی، دسلامتی په قیدسره مشروط نه دی ،اوځرنګه چې دمسجدانتظام له اهل محله څخه ماسوادنوروخلګوکارنه دی لهذا دهغوئ فعل به دسلامتی په شرط سره مشروط وي اوچیرته چې داشرط موجودنه شي نوهغه به ضامن وي دادامام صاحب قول دی اودصاحبینوپه نزدپردی کس که هم داکارونه وکړي نوضامن نه دی ولی چې دادثواب کاردی پردي هغه ته ثواب ورکول کیږي لهذا پردی کس هم داهل مسجدپه شان دی .

ف:دصاحبینوقول راجح دی کمالی الشامیة :قال العلامة ابن عابدین رحمه الله :فانه نقل عن الحلوانی ان اکثرالمشائخ اخذوابقولهماوعلیه الفتوی(ردالمحتار:۵/۳۲۲)

(۸)نه اهل مسجد څخه كوم كس په مسجد كې ناست وو كوم بل كس له هغه سره ټكرشو او هلاک شو نو كه هغه كس لمونځ اداء كاوو نو بالاتفاق ضامن نه دی او كه يې لمونځ نه اداء كاوو نو دامام صاحب په نزد ضامن دی ولی چې مسجد دلمانځه لپاره جوړ شوی دی لهذا دلمانځه داداء كولو او نه اداء كولو دحالتونو په منځ كې تفاوت ظاهرول ضروري دی دكوم چې صورت دادی چې دلمونځ كونكی لپاره كښينستل مطلقامباح او دلمونځ نه اداء كونكی لپاره په شرط دسلامتی سر مباح وګرځول شي .اودصاحبينو په نزد ضامن نه دی ولی چې مسجد دلمانځه اوذكر دواړو لپاره جوړېږي نو كله چې دجماعت لمونځ اداء كوي نو لږ انتظارخو به كوي لهذا بغيرله لمانځه هم په مسجد كې كښينستل مباح شول نو بغيرله لمانځه ناست كس به هم ضامن نه وي .همدرازكه هغه په لمانځه كې وي نو بالاتفاق ضامن نه دی او په حديث شريف كې راغلي دي چې كوم كس دلمانځه پۀ انتظاركې كښيني هغه هم په لمانځه كې شمارل كيږي لهذا بغيرله لمانځه كس هم په لمانځه كې شمارل كيږي لهذا داسي كس هم ضامن نه ګرځي .

**ف**:دصاحبينو پر قول فتوی ده لمافی الشامية:فانه نقل الحلوانی ان اكثر المشائخ اخذوا بقولهما وعليه الفتوی ونقل عن صدر الاسلام ان الاظهر ماقالاه لان الجلوس من ضرورات الصلوة فيكون ملحقا بها وفی العينی بقولهما قالت الثلاثة وبه يفتی (ردالمحتار:۵/۳۲۲)

## فَصلٌ في الحَائِطِ المَائِلِ

دافصل دكاږه (ړنګيدونكي) ديوال په بيان كې دی

مصنف صاحب دمباشرت قتل او قتل لره دسبب جوړيدونكو داحكامو له بيانولو څخه وروسته اوس دداسي قتل احكام بيان وي كوم چې له جماداتو يعنی كاږه ديوال سره متعلق دي ،هسي خو مناسب داوه چې دافصل يې له جناية البهيمة څخه مؤخركړی وای ترڅو دجماداتو له بيان څخه دحيواناتو احكام مقدم وای ليكن څرنګه چې دجرصن ،ميزاب وغيره له مسائلو سره ددي فصل مناسبت وو په دي وجه يې دحيواناتو احكامو څخه دا مقدم كړل.

(۱)حائط مائل إلى طريق العامة ضمن ربه ماتلف به من نفس او مال إن طالب بنقضه مسلم او ذمي ولم ينقضه في مدة يقدر على نقضه (۲)وإن بناه مائلا ابتداء ضمن ماتلف بسقوطه بلا طلب (۳)وإن مال إلى دار رجل فالطلب إلى ربها (۴)فإن أجله أو أبرأه صح بخلاف الطريق (۵)حائط بين خمسة أشهد على أحدهم فسقط على رجل ضمن خمس الدية (۶)دار بين ثلاثة حفر أحدهما فيها بئرا أو بنى حائطا فعطب به رجل ضمن ثلثي الدية

**ترجمه** :يوديوال كوږ شو دشارع عام طرف ته نو ضامن ګرځي دهغه مالک دهغه كوم چې ضائع شي په هغه سره نفس يا مال كه مطالبه كړي وي دهغه دچپه كولو كوم مسلمان ياذمی اوده نه وي چپه كړی په دومره موده كې چې په هغه كې دی قادروي دهغه په چپه كولو ،او كه ده كوږ جوړ كړله ابتداء څخه نو ضامن ګرځي دهغه كوم چې ضائع شي دهغه په چپه كيدلو سره بلامطالبه ، اوكه كوږ شو دچادمكان طرف ته نو دمطالبي حق مالک مكان لره دی ،او كه هغه مهلت وركړي ده ته ياپې بری كړي نو صحيح دی په خلاف دلاري ،يوديوال

مشترک دی دپنځو په منځ کې ګواه پېښ کړای شول له دوی ځخه پر یوه بیا دیوال پر چارا ولوید نو ضامن ګرځي دخمس دیت .یو مکان مشترک دی دد ریوتر منځ وکیندی په هغه کې له دوی ځخه یوه څاه یایې جوړ کړ دیوال یا هلاک شو په دي سره یو کس نو ضامن ګرځي دد و وثلثو د دیت .

**تشریح** :(۱)که دچا دیوال دمسلمانانو دعامي لاري طرف ته کوږ شو خلګو له مالک ځخه دهغه دچپه کولو مطالبه وکړه او پردي ګواه هم قائم کړل مګر هغه دیوال چپه نه کړ حال داچې دومره مده تیره شوه چې که ده غوښتی نو دیوال یې چپه کولی شوای مګر ده چپه نه کړ ،بیا دادیوال چپه شو نو په دي سره چې کوم مال یانفس تلف شي مالک به دهغه ضامن وي ولی چې خلګو مطالبه وکړه او ده له قدرت سره دیوال سـ نه کړ نو داد ده له طرف ځخه تعدی ده لهذا ضامن کیږي .البته دنفس ضمان پر عاقله دی اود مال ضمان د دیوال پر مالک دی .دمصنف رحمه الله داویل چې .خلګو له ده ځخه د دیوال چپه کولو مطالبه کړی وي .داقید احترازي دی لهذا که خلګو دچپه کولو مطالبه نه وه کړي او په دي سره کوم نفس یا مال ضائع شو نو مالک ضامن نه دی .دچپه کولو په مطالبه کې مسلمان .ذمی .ماذون فی الخصومت غلام اونابالغ ټول سره برابر دي ولی چې داټول اهل خصومت دي او په حق مرور کې ټول سره برابر دي .

(۲)که چاله پیله دیوال کوږ جوړ کړ او هغه چپه شر او په هغه سره څوک هلاک شو نو دخلګو له طرف ځخه دچپه کولو له مطالبي بغیر هم مالک ضامن کیږي ولی چې داله پیل ځخه زیات اوتجاوز دی په دي وجه چې داسي دیوال له پیل ځخه دلاري سورنیسي .نو داسي ده لکه چې څوک په لاره کې ډبره کښیږدي یا څاه وکیندي او په دي سره څوک هلاک شي .

(۳)که دچا دیوال دبل چا دکور طرف ته کوږ شو نو دچپه کولو دمطالبي حق صرف مالک مکان لره دی ولی چې په مکان کې صرف دمالک حق دی لهذا دمطالبي حق به صرف همده لره وي .هو که کوم کرایه دار وغیره په دي کور کې اوسیږي نو هغه لره هم حق دی چې له مالک ځخه دکاږه دیوال دسمولو مطالبه وکړي .

(۴)او که دمکان مالک د دیوال مالک ته مهلت ورکړ یایې هغه له دي ځخه بری کړ نو دا صحیح ده نو ـ که په دي دیوال سره څوک ضائع شو نو د دیوال مالک ضامن نه دی ولی چې ده ته دکاږه شوی دیوال دبرقرار ساتلو حق ورکړل شوی دی .البته که دچا دیوال دعامي لاري طرف ته کوږ شوی وي او قاضی د دیوال مالک ته مهلت ورکړ یایې هغه بری کړ بیا په دي سره څه نقصان پیښ شو نو د دیوال مالک بری نه دی ولی چې داد عامو مسلمانانو حق دی قاضی لره په عامه مسلمانانو دمفید تصرف حق حاصل دی دمضر تصرف حق نه لري .

(۵)که یو دیوال کوم چې دپنځو کسانو په منځ کې مشترک وي دلاري طرف ته مائل شو (کوږ شو )لیکن دچپه کولو لپاره ګواه پر یوه پیښ کړای شول یعنی دچپه کولو مطالبه په دي پنځو کې صرف له یوه ځخه وکړل شوه له پاتي څلورو ځخه ونه کړل شوه نو که له دي دیوال ځخه څه نقصان پیښ شو نو پاتي څلور به ضامن نه وي ولی چې له دوی ځخه مطالبه نه ده شوی او صرف داکس له کوم ځخه چې مطالبه شوي ده دخمس دیت ضامن دی ولی چې مطالبه له همدي یوه ځخه شوي وه لهذا هغه دخپل ملک په اندازه سره ضامن ګرځي .

(۶)که کوم مکان ددریو کسانوپه منځ کې مشترک وي له دوئ څخه یوه دهغونوروددوو له اجازت څخه بغیرپه دې مکان کې څاه وکینده یایې دیوال جوړکړچې په هغه کې په لویدلوسره یاله هغه سره په ټکرکیدلوسره کوم انسان هلاک شونوڅاه کیندونکی اودیوال جوړونکی به ددیت ددوو ثلثوضامن وي ولی چې داکس دخپلونوروددووشریکانوپه حصه کې دتصرف کولوپه وجه سره تجاوزکونکی دی اوځرنګه چې په خپله حصه کې تجاوزکونکی نه دی لهذادخپلې حصي پرده څه ضمان نشته اودخپلوملګروپه حصوکې دتجاوزپه وجه سره ضامن دی اوښکاره خبره ده چې دده دملګروده حصې دي لهذادی به ددوثلثوضامن وي .دصاحبینوپه نزددنصف دیت ضامن دی ولی چې څاه کیندونکی دخپل ملکیت په اعتبارسره متعدی نه دی اودشریکینودملکیت په اعتبارسره متعدی دی نودتلف دوه قسمونه شول لهذادیت به هم پردواړونصف نصف منقسمیږي .

**ف**:دامام صاحب قول راجح دی کمایعلم من صنیع الهدایة حیث اخردلیله وهذاترجیح قول الراجح عندصاحب الهدایة ,وقال العلامة الحصکفی:(داربین ثلاثة حفراحدهم فیهابئرااوبنی حائطافعطب به رجل ضمن ثلثی الدیة )لتعدیة فی الثلثین وقدحصل التلف بعلة واحدة فیقسم بالحصة وقالاانصافالان التلف قسمان معتبروهدر(الدرالمختارعلی هامش ردالمحتار:۶ ۲ ۴/۵)

## بَابُ جِنَايَةِ الْبَهِيمَةِ وَالْجِنَايَةِ عليهاوَغيرِ ذٰلک

داباب دځاورې دجنایت اوپرځاروې دجنایت وغیره په بیان کې دی

کله چې مصنف ﷫ دانسان دجنایت داحکامو له بیان څخه فارغ شونودځارویودجنایت احکام یې شروع کړل ددې باب دتاخیروجه داده چې انسان رتبةً له ځاروی څخه مقدم دی نوذکرایې هم مقدم کړترڅوذکرله رتبې سره برابرشي .مګرسوال دادی چې دجنایت مملوک ذکرخوله دې باب څخه وروسته راځي حال داچې هغه خوهم انسان دی ؟ځواب :مناسب خودغه ووچې داباب یې له جنایت مملوک څخه وروسته ذکرکړی وای مګرځرنګه چې دځارویوله جماداتوسره هم مناسبت شته چې په دواړوکې قوت نطق نشته اوپه تیرشوی فصل کې دجماداتوذکرووپه دې وجه یې دجماداتوله بیان څخه وروسته دځارویواحکام ذکرکړل .

(۱)ضَمِنَ الرَّاكِبُ مَاوَطِئَتْ دَابَّتُهُ بِيَدٍاَوْرِجْلٍ اَوْرَأْسٍ اَوْكَدَمَتْ اَوْخَبَطَتْ(۲)لَامَانَفَحَتْ بِرِجْلٍ اَوْذَنَبٍ إِلَّاإِذَاأَوْقَفَهَافِي الطَّرِيقِ,(۳)وَإِنْ أَصَابَتْ بِيَدِهَااَوْرِجْلِهَاحَصَاةًاَوْنَوَاةًاَوْأَثَارَتْ غُبَارًااَوْحَجَرًاصَغِيرًافَفَقَأَعَيْنًالَمْ يَضْمَنْ,وَلَوْكَبِيرًاضَمِنَ(۴)فَإِنْ رَاثَتْ اَوْبَالَتْ فِي طَرِيقٍ لَمْ يَضْمَنْ مَنْ عَطِبَ بِهِ وَإِنْ أَوْقَفَهَالِذٰلِكَ وَإِنْ أَوْقَفَهَالِغَيْرِهِ ضَمِنَ)(۵)وَمَاضَمِنَهُ الرَّاكِبُ ضَمِنَهُ السَّائِقُ وَالْقَائِدُ(۶)وَعَلَى الرَّاكِبِ الْكَفَّارَةُلَاعَلَيْهِمَا

**ترجمه** :ضامن دی سپوردهغه کوم چې لاندې کړي دده سورلی په خپله مخکینۍ یاوروستنۍ پښه سره یادسرپه ټکرسره یایې وخوري یاټاپ ووهي ،نه دهغه کوم چې په لغته ووهي یایې په لکۍ سره ووهي مګرهغه وخت کله چې دی هغه ودروي په لاره کې ،اوکه وپاشلې هغې په مخکنی یاوروستنی پښه سره ډبره یادخرمازوړی یایې ګرزیاکوچنۍ ډبره اوهغې ویستله سترګه نوضامن نددی اوکه غټه ډبره وي نوضامن دی ،اوکه هغې لیدوکړل یایې بولې وکړې په لاره کې نوضامن دی دهغه کوم چې ددې په وجه سره هلاک شي اګرکه یې درولې وي په لاره کې دهمدې لپاره اوکه یې درولې وه دکوم بل کارلپاره نوضامن دی اودکوم چې ضامن وي سپوردهغه ضامن دی سائق اوقائدهم ،اوپرسپاره کفاره شته نه په سائق اوقائدباندې .

**تشريح** :(۱)کوم کس چې په سورلی باندې سپوروي نو هغه چې څه په خپله مخکښې یاورستني پښه سره خراب کړي ،یادسرپه ټکرسره څوک ووهي ،یايې په خپلوغابښوسره پرې کړي یايې په څنګ وواهه نوپه دې ټولوصورتونوکې پرسپاره باندې ضمان راځي ولې چې دمسلمانانوپه عامه لاره کې هرمسلمان لره تګ کول مباح دې په دې شرط چې له ممکن الاحترازاموروڅخه ځان وساتي نوکه له ممکن الاحترازاموروڅخه ځان نه ساتي نوضامن کيږي ولی چې په عامولاره کې تګ کول من وجه په خپل حق کې اومن وجه دبل په حق کې تصرف دی لهذادااباحت دسلامتی په شرط سره مشروط دی اومذکوره امورممکن الاحترازدي (ولی چې په لاره دتګ کولولپاره داامورضروري نه دي )بیاهم هغه ځان ونه ساتی لهذاضامن ګرځي .

(۲)قوله لاما نفحت برجل اوذنب ای لایضمن الراکب مانفحت برجل اوذنب ،یعنی دهغه ضامن نه دی کوم چې څاروی په لغته یاپه خپله لکۍ سره ووهي ،البته که سپاره سورلی په لاره کې ودرولي بیاهغې په لغته وهلویالکۍ سره چاته څه نقصان ورساوونوپه دې صورت کې سپورضامن دی ،په دې باره کې قاعده داده چې دمسلمانانوپه عامه لاره کې تګ کول ټولولره مباح دی مګرپه دې قیدسره مقیددی چې له کوم ضررڅخه ځان ساتل ممکن وي له هغه څخه به ځان ساتي اوله غیرممکن الاحترازڅخه دځان ساتلوقیدنشته .نودڅاروی چالره ترینولاندي کولویاپرې کولوڅخه احترازممکن دی په دې وجه دهغه سپورضامن دی اودڅاروی له لغتي وهلویاپه لکۍ سره وهلوڅخه ځان ساتل ممکن نه دی په دې وجه دهغه سپورضامن نه دی اوپه لاره کې دڅاروی له درولوڅخه احترازممکن دی لهذاضامن دی .

**ف**:زموږپه موجوده زمانه کې چې کومې سورلیاني رائجې دي ،مثلاسائیکل ،رکشه ،موټر،ټیکسي ،بس ،ټرک وغیره ،ددې ټولوحکم دراکب دابه په شان دی ،لهذاکه ددې سورلیانوپه وجه سره چاته نقصان ورسیدونوراکب ضامن دی ،البته په دسورلیانوکې دمخکې اوشاته په نقصان رسولوکې څه تفریق نشته لکه څرنګه چې په څاروی کې تفریق شته ،په دې وجه چې څاروی متحرک بالاراده دی لهذاکه څاروی له شاڅخه څوک په لغته وواهه نوهغه دراکب طرف ته نشي منسوب کیدلای ،په خلاف دموټرچې هغه متحرک بالاراده نه دی په دې وجه دموټرهرحرکت دراکب طرف ته منسوبیږي ،لهذاهغه (دمباشروالی په وجه سره )په هرصورت کې ضامن دی ................البته دډرائیورمباشروالی ضروري دی که نه نوضامن نه دی مثلایوکس په صحیح طریقه سره دټریفک داصولومطابق موټرروان کړی دی ناڅاپه یوکس صرف دیوه فټ په فاصله دموټرمخته راټوپ کړاوهلاک شونوپه دې صورت کې دامباشرت دسائق سیاره (ډرائیور)طرف ته نه منسوبیږي بلکه دابه ویل کیږي چې ګویادې کس خودکشي (ځان وژنه )وکړه ،لهذادمباشرت نسبت به په خپله دده دذات طرف ته کیږي ،دډرائیورطرف ته به نه کیږي ،لهذاډرائیورضامن نه دی .(تقریرترمذی :۱/۳۳۴)

**ف**:همداشان که یوچاصحیح سلامت موټرپرشارع عام (عامه لار)باندې داصولومطابق روان کړ دسفرپه منځ کې ناڅاپه موټرکې داسې خرابي پیداشوه چې دهغې په وجه سره موټردډرائیورله کنټرول څخه ووتی اوکوم کس يې وواهه یایې دچاکوم شی تلف کړنوپه دې صورت کې ډرائیورضامن نه دی لماقال شیخ الاسلام مفتی

محمدتقي العثماني مدظلهم :اذا كانت السيارة سليمة قبل السير بها وكان السائق يتعهدها تعهدا معروفا ثم طرأ عليها خلل مفاجئ في جهاز من جهزتها حتى خرجت السيارة من قدرة السائق وتمكنه من ضبطها فصدمت انسانا فقد افتت اللجنة الدائمة للبحوث والافتاء في المملكة العربية السعودية بانه لاضمان على السائق وكذالك لو انقلبت بسبب ذالك على احد او شيء فمات او تلف فلا ضمان عليه (بحوث في قضايا فقهية معاصرة :ص ۳۱۳)

ف: او که حادثه د کوم دریم کس په فعل سره واقع شوه مثلاً ډرائیور د اصولو مطابق موټر چلاوه چې کوم بل کس د روان موټر مخ ته یو کس ورټیل واهه موټر پر هغه تیر شو نو په دې صورت کې هغه ټیل وهونکی کس ضامن دی ډرائیور ضامن نه دی .او که له حادثې څخه متاثر کس په خپله کوم داسې فعل وکړ کوم چې د حادثې لپاره زیات مؤثر سبب جوړ شو مثلاً ډرائیور د اصولو مطابق موټر چلاوه چې ناڅاپه کوم کس په دومره کمه فاصله کې د موټر مخ ته راغی چې اوس موټر درول او هغه کس ساتل ډرائیور له ممکن نه وو نو په دې صورت کې هم ډرائیور ضامن نه دی (ماخوذ عن بحوث في قضايا فقهية معاصرة :ص ۳۱۲)

(۳) که د چاسورلی منډې وهلې او د منډو په وجه سره یې شګې ،دخرمازنې ،ګرزاو غبار یا کوچنی ډبرې پاشلې او په هغه سره د چاستر ګه ړنده شوه نو سپور کس ضامن نه دی او که غټه ډبره وې نو بیا سپور ضامن نه دی ولې چې له شګو او غیره څخه د رفتار په دوران کې ځان ساتل ممکن نه دی او له لویو ډبرو څخه ځان ساتل ممکن دی (ولې چې څاروی د سپاره د نه تجربې په وجه سره غټې ډبرې غورځوي )په دې وجه په لومړیو صورتونو کې ضامن نه دی او په اخري صورت کې ضامن دی .

(۴) که روان څاروی په لاره کې خوشایې یا بولې وکړې او په هغه سره په شویدلو کوم انسان مړ شو نو سپور ضامن نه دی ولې چې په لاره کې د څاروی تګ کول له خوشایو او بولو څخه ډیر لږ خالي وي لهذا دا د تګ له ضروریاتو څخه دی له کوم څخه چې ځان ساتل ممکن نه دي اګر که سپاره څاروی د بولو وغیره لپاره درولی وي ولې چې ځینې څاروی داسې وي کوم چې له درولو څخه بغیر بولې نه کوي نو د هغه د درولو ضرورت دی په دې وجه په دې سره که کوم کس هلاک شي نو سپور ضامن نه دی .او که یې هسې درولې وي بیا هغې بولې وکړې او په هغه کوم څوک وشویدو او هلاک شو نو اوس سپور ضامن دی ولې چې دا درول بلاضرورته دي په دې وجه په دې صورت کې سپور تجاوز کونکی شمارل کیږي .

(۵) په کوموصورتونو کې چې پر راکب ضمان واجبیږي په هغو کې پر سائق (د شاله طرف څخه شړونکی )او قائد (د مخ له طرف څخه کښونکی )باندې هم ضمان واجبیږي ولې لکه څرنګه چې راکب د هلاکت سبب دی همداشان د څاروي شړونکی او کښونکی هم د هلاکت سبب دی په دې وجه چې هغه څاروی محل هلاکت ته قریب کړی دی دا دده له طرف څخه تجاوز دی لهذا ضامن ګرځي .

(۶) البته د پښو دلاندې کولو په صورت کې پر راکب کفاره هم شته ولې چې راکب د قتل مباشر دی په دې وجه چې دده د بوج په وجه سره انسان مړ شوی دی پاتې شو د څاروی بوج نو هغه د انسان د بوج تابع دی په دې وجه د مباشرت قتل نسبت د انسان طرف ته کیږي .حال دا چې په سائق او قائد باندې کفاره نشته ولې چې دا دواړه د قتل مباشر نه دي بلکه مسبب دي ولې چې په مقتول او دوئ کې هیڅ قسم اتصال نشته او پر مسبب کفاره نشته .

(٧) ولو اصطدم فارسان أو ماشيان فماتا ضمن عاقلة كل واحد منهما دية الآخر (٨) ولو ساق دابة فوقع السرج على رجل فقتله ضمن (٩) ولو قاد قطارا فوطئ بعير إنسانا ضمن عاقلة القائد الدية فإن كان معه سائق فعليهما (١٠) وإن ربط بعيرا على قطار رجع عاقلة القائد بدية ما تلف على عاقلة الرابط (١١) ومن أرسل بهيمة وكان لها سائقا فأصابت في فورها ضمن (١٢) وإن أرسل طيرا أو كلبا ولم يك سائقا له (١٣) أو انفلتت دابة فأصابت مالا أو آدميا نهارا أو ليلا لا (١٤) وفي فقء عين شاة القصاب ضمن النقصان (١٥) وفي عين بدنة الجزار والحمار والفرس ربع القيمة

**ترجمه**: او كه سره ټكر شوي دوي سورلياني يا دوه پياده كسان او دواړه مړه شول نو ضامن كيږي د هر يوه عاقله دهغه بل د ديت او كه يې وشاړه څاروى او ولويد و دهغه زين پر يوچا او هغه يې قتل كړ نو ضامن دى. او كه يې كش كړ د اوښانو قطار نو بيا تر پښو لاندي كړ او ښ كوم انسان نو ضامن كيږي د كشونكي عاقله د ديت او كه وي له هغه سره شړونكى هم نو پر دواړو دى. او كه يې تړلى وو اوښ په قطار پسې نو وادي خلي د قائد عاقله كوم تاوان چې شوى وي د تړونكي له عاقله څخه، او چاچې خوشې كړ څاروى او هغه له شا پسې وو شړونكى او هغه نقصان وكړ له خلاصيدو سره سمدستي نو ضامن به وي، او كه يې پرېښود مرغه يا سپى او نه شا يې ونه شړ و، يا وتښتيد و څاروى او هغه نقصان وكړ يا د مال يا د انسان په شپه كې يا په ورځ كې نو ضامن نه دى. او په سترگه ايستلو كې د قصاب د بزې ضامن گرځي د نقصان، او د قصاب د غوا او اوښ په سترگه ايستلو كې او د آس او خره په سترگه ايستلو كې ضامن گرځي د ربع قيمت.

**تشريح**: (٧) كه دوه سورلياني يا دوه پياده كسان په خپل منځ كې خطاء سره ټكر شول او دواړه مړه شول نو د هر يوه پر عاقله باندي د هغه بل يوه ديت واجبيږي ولى چې د هر يوه په مرگ كې اگر كه په خپله د مړه د فعل دخل هم شته مگر د مرگ نسبت د غير د فعل طرف ته كيږي ولى چې د هر يوه خپل فعل خو مباح دى موجب ضمان نه دى. اگر كه د ده ملگري فعل (په لاره تگ كول) هم مباح دي ليكن د چا فعل مباح چې پر غير واقع كيږي نو هغه موجب ضمان وي. شرط دا دى چې دواړه به آزاد وي او كه دواړه غلامان وي نو پر هيچا هيڅ هم نه لازميږي.

(٨) كه چا څاروى د شاله طرف څخه وشاړه اتفاقا د هغه زين پر يو چا ولويد چې په هغه سره هغه هلاك شو نو شړونكى ضامن دى ولى چې هغه د قتل سبب دى او قاعده داده چې په سبب كې تعدى موجب ضمان ده او تعدى هغه دلته دا كړې ده چې زين يې تړلى نه دى او كه يې تړلى وي نو مضبوط يې نه دى تړلى.

(٩) كه كوم كس د اوښانو قطار روان كړى وي او هغه قطار څوك تر پښو لاندي كړي نو پر قطار كښونكي قائد باندي ضمان لازميږي ولى چې پر قطار كښونكي باندي د قطار حفاظت لازم دى كوم چې ده نه دى كړى او قاعده داده چې په سبب قتل كې تعدى وي نو هغه موجب ضمان ده په دي وجه قائد ضامن دى. او كه له ده سره سائق د شاله طرف څخه شړونكى هم وي نو په دي صورت كې سائق او قائد دواړه ضامن دي ولى چې د قتل په سبب جوړيدلو كې سائق او قائد مساوي دي.

(١٠) كه كوم كس د اوښانو قطار روان كړى وي بل چا د هغه په بې خبري كې له شا څخه په قطار پسې خپل اوښ وتاړه بيا هغه اوښ څوك هلاك كړ نو پر قطار والا باندي ديت واجبيږي ولى چې هغه د ومره غفلت ولي وكړ كه هغه غفلت نه واى كړى نو كوم بل كس د هغه په قطار پسې اوښ نه شواى تړلاى لهذا دا د ده له طرف څخه تعدى

ده په دي وجه ضامن دی ،بیا به دقائد خاندان درابط له خاندان څخه دادیت وصول کوي ولی چې دقائد عاقله درابط دعمل په وجه سره په دیت اداء کولو مجبورشول.

(۱۱)که چاحیوان (سپی )پرینبوداودی له وراندي څخه دهغه شړونکی ووحیوان فوراپرچاحمله وکړه اوهلاک یې کړنوسائق دهغه ضامن دی ولی چې دسوق په وجه سره دحیوان فعل تلف دده طرف ته منتقل کیږي.

(۱۲)اوکه چامرغه خوښی کړاوله شاه څخه یې وشاړه هغه فوراڅوک هلاک کړنودی ضامن نه ګرځي ولی چې مرغه دسوق (شړلو )احتمال نه لري لهذاسوق اوعدم سوق دهغه په حق کې برابردي .همداشان که چاسپی خوښی کړاوله شاڅخه یې ونه شاړه هغه څوک هلاک کړنوضامن نه دی ولی چې په حیوانانوکې سوق معتبردی نودسپی دخوښی کولوپه صورت کې دسوق دنه وجودپه وجه سره دسپی فعل دمرسل طرف ته نه مضافیږي .امام ابویوسف رحمه الله په ټولوصورتونوکې ضمان واجب کړی دی ترڅودخلګواموال له ضائع کیدلوڅخه محفوظ پاتي شي وعليه الفتوى لمافي الدر المنتقى :وعن ابى يوسف انه يضمن اى احتياطالاموال الناس كمافى المجتبى ونحوه (الدالمنتقى:۴/۳۷۷)

(۱۳)همداشان که کوم څاروی په خپله وتښتیدواوپه دي سره دچانفس یامال ته تاوان ورسیدوکه شپه وي اوکه ورځ وي دڅاروی مالک ضامن نه دی ولی چې له مالک څخه کوم داسي فعل نه دی صادرشوی چې دڅاروی فعل دهغه طرف ته منسوب کړای شي لهذامالک ضامن نه دی.

(۱۴)که چادقصاب دبزي سترګه ویستله نوبه دي سره چې دبزي په قیمت کې څومره اندازه کمي راځي هغه به له ده څخه اخیستل کیږي ولی چې له بزي څخه مقصودغوښه ده لهذاصرف نقصان واجبیږي .دقصاب قیداتفاقی دی که نه بزه چې دهرچاوي دهغې همداحکم دی.

(۱۵)قوله وعين بدنة الجزاروالفرس والحماربربع القيمة اى وفى قفاء عين بدنة الجزاروالفرس والحماربربع القيمة ،يعنى دقصاب دغوااواوښ دسترګي په ایستولوکې اودآس اوخره دسترګي په ایستلوکې دربع قیمت ضامن ګرځي ولی چې مروی ده چې نبی کریم ﷺ دڅاروی په سترګه کې دڅلورمي دقیمت فیصله فرمایلې وه اوحضرت عمر رضي الله عنه هم همداسي فیصله فرمایلې وو.دلته

## باب جناية المملوك والجناية عليه

داباب دمریي دجنابت اوپرمریي باندي دجنایت کولوپه بیان کې دی

مصنف رحمه الله چې کله دمالک یعني حردجنایت له بیان څخه فارغ شونودمریي دجنایت بیان یې شروع کړڅرنګه چې مریی رتبةً ترازادموخردی ځکه یې ذکرًاهم موخرکړی دی چې ذکردرتبه مطابق شي،ترحیوان دمریي رتبه بلنده ده مګرڅرنګه چې دحیوان جنایت دراکب،سائق اوقائدپه اعتبارسره وواوداخلک مالک دي ځکه یې دحیوانانودجنایت بیان مقدم کړ.

(۱)جنايات المملوك لاتوجب الاّدفعًا واحدًا لومحلاله والاقيمة واحدة(۲)جنى عبده خطاء دفعه بالجناية فيملكه اوفداه بارشها(۳)فان فداه فجنى فهى كالاولى(۴)وان جنى جنايتين دفعه بهمااوفداه بارشهما(۵)فان اعتقه غيرعالم بالجناية ضمن الاقل من قيمته ومن الارش

(۶) ولو عالما بها لزمه الارش كبيعه (۷) وتعليق عتقه بقتل فلان ورميه وشجه ان فعل ذالك (۸) عبد قطع يد حر عمدا ودفع اليه فحرره فمات من اليد فالعبد صلح بالجناية وان لم يحرره رده على سيده ويقاد

**ترجمه**: دمريي جنايتونه نه واجبوي مګر سپارل يوځل که هغه محل وي ده لره که نه يو اځي يو قيمت ،يو مريي جنايت وکړ خطاءً نو وردي کړي هغه دجنايت په بدله کې بيا هغه ددي مريي مالک ګرځي اويادي فديه ورکړي دهغه ذمه وان بيا که ده فديه ورکړه اوهغه بيا جنايت وکړ نو ددغه جنايت حکم دلومړي جنايت په شان دی اوکه يې دوه جنايتونه وکړل نو وردي کړي مريی ددواړو په بدله کې يادي فديه ورکړي ددواړو تاوان اوکه يې آزاد کړ هغه په داسي حال کې چې دی له جنايت بې خبره وو نو ضامن کيږي په کم دده دقيمت اوتاوان نه اوکه دی په جنايت خبروو نو لازميږي پرده باندي تاوان لکه خرڅول دده،اودده آزاديدل دفلان ترقتل کولو يادهغه دويشتلو يازخمي کولو پوري معلق وي که مريی ددي کارونو مرتکب وو،يوه مريي ديوآزاد چالاس غوڅ کړ قصداً اودی هغه ته ورکړل شو بيا هغه دی آزاد کړ بيا هغه سړی دلاس دزخم په وجه مړشو نو مريی صلح شو له جنايت نه اوکه هغه آزاد کړی نه وو نو بيا دی واپس خپل مالک ته ورکول کيږي اوله ده څخه قصاص اخيستل کيږي .

**تشريح** :(۱)که يو منځي يامريي ډيرنقصانات کړي وو نو ددوئ پرمولی باندي فقط يوځل دوئ نقصان والاووته حواله کول واجب دی په دي شرط چې په ده کې دحواله کولوصلاحيت وي يعنې له دغونقصانووروسته هغه آزادشوی نه وي اونه مکاتب يامدبر ګرځيدلی وي اوکه چيرته هغه ددي قابل نه وي يعنې مولی هغه آزاد کړی وي يامکاتب يامدبر کړی وي نو دی به يې فقط يوځل نقصان والاووته ورکوي يعنې دهرهرنقصان والاته دهغه پوره پوره قيمت ورکول دده پرذمه لازم نه دي بلکې په يوځل ورکولوسره دی بري کيږي .

(۲)که يوه مريي خطاءً يوجنايت وکړ (که يې خوک وژلی وي يايې ترهغه کم جنايت کړی وي) نودهغه مولی ته ويل کيږي چې تاله اختياردی يادامريی دجنايت ولي ته ورکړه اويادهغه فديه ورکړه .وجه يې داده چې دجنايت خطاء دیت پرعاقله باندي کيږي اودمريي عاقله دهغه مولی دی بيا که مولی مريی ورکړنوولي دجنايت دهغه مالک ګرځي اوهغه لره له ده سوا بل شی نه کيږي اوکه مولی فديه ورکړه نودتاوان په اندازه فديه به ورکوي دخطاء قيدپه دي وجه ورسره ويل شو يدی چې که مريي په قصديوڅوک وواژه نوپه هغه صورت کې دامذکورحکم نه دی بلکې پرمريي باندي قصاص شته .

(۳)که دمولی دفديه ورکولوورسته مريي بياجرم وکړنو ددغه جرم هغه حکم دی کوم چې دمخکيني جنايت وونومولی ته بياحکم ورکول کيږي چې يامجنی عليه ته مريی ورکړه اويادهغه فديه ورکړه څکه لومړی جنايت په فديه ورکولوسره ختم شو ددغه نوی جرم ابتدائي جرم شمارل کيږي .

(۴)که مريي جرم وکړاومالک دهغه دجرم فديه لانه وه ورکړي چې مريي بل جرم وکړنومولی ته يې ويل کيږي چې يادامريی ددواړوجرمونومستحقينوته ورکړه اوددواړه مجنی عليهما به په قدردخپل حق هغه سره تقسيم

کړي او يا دي مولى هر فريق ته د هغه د نقصان په اندازه فديه ورکړي ځکه لومړى جرم د غلام په رقبه پورې معلق کيدل د دوهم جنايت تعلق نه منع کوي لهذا د دواړو جناياتو تاوان به ورکوي.

(۵) که مولى مجرم مريى آزاد کړ او حال دا چې مولى د مريي په جرم باندي خبر نه وو نو د ده مولى د ده تر قيمت او جنايت چې کوم يو کم وي په هغه سره ضامن گرځي ولى چې کله ده ته د مريي د جرم علم نشته نو د مولى عمل (اعتاق العبد) دا نه گڼل کيږي چې هغه د مريي فديه ورکول اختيار کړي دي ځکه بيله علمه د يو شي اختياريدل نه شي کيداى البته ده داسي يو رقبه آزاده کړي ده چې په هغې پورې د ولى جنايت حق معلق شوى دى لهذا پر ده باندي ضمان لازميږي .بيا د تاوان او قيمت تر منځ چې کوم يو کم وي هغه پر لازميږي وجه يې دا ده چې که چيرته تاوان کم وي نو پر مولى باندي له تاوان علاوه کوم بل شى نه لازميږي ځکه به هم دا تاوان ورکوي او که قيمت کم وو نو مولى به په قدر د قيمت ضائع کړى وي زيات يې نه دى کړى لهذا پر مولى باندي هم دا قيمت لازميږي .

(۶) او که مولى د مريي په جنايت باندى خبر وو بيا هم ده هغه مجرم مريى آزاد کړ نو بيا يو اخي تاوان لازميږي ځکه با وجود د علم داسي تصرف کړى دى چې د هغه په وجه اوس مريى مجنى عليه ته نه شي ورکول کيداى نو داسي دي وويل شي چې مولى گواکي فديه ورکول خوښ کړى دى ولى مخيرين الشيئين چې کله يو داسى فعل اختيار کړي چې په هغو دوو کې د يوه د اختيار لو ځخه مانع وي نو بيا د ده لپاره هغه بل متعين دى لکه د اعتاق په صورت کې چې د مولى د علم او نه علم په وجه علحده عليحده احکام دي همدا رنگه که مولى د امريى خرڅ کړ نو هم د ده د علم او نه علم جلا جلا احکام دي ځکه د خرڅيدو په صورت کې هم مريى مجنى عليه ته نه شي ورکول کيداى .

(۷) قوله تعليق عتقه الخ: دا مجرور دى د ماتن پر قول :کبيعه .باندي عطف دى اى وکتعليق عتق العبد بقتل فلان الخ .يعني که يو چا د خپل مريي آزاديدل د يو چا تر قتل پورې معلق کړ مثلا مريي ته يې وويل که تا فلان شخص ووژلو نو ته آزاد يې .يا دي يو څوک په ډبره (تيگه) وويشت يا يې د هغه په سر ماتيدو پورې معلق کړ مثلا ورته ويې ويل که تا فلان په ډبره وويشت يا دي د هغه سر زخمي کړ نو ته آزاد يې نو مريي د غه مشروط کار وکړ آزاديږي ځرنگه چې تر آزاديدو وروسته اوس دا مريى مجنى عليه ته نه شي ورکول کيداى نو په د غو صورتونو کې هم مولى د فديه اختيار وونکى شمارل کيږي .

(۸) که د چا مريي عمدًا د يو چا لاس غوځ کړ په دي سره مالک مريى مجنى عليه ته ورکړ يا د قاضي په قضاء سره يا بيله قضاء . د قاضي او مجنى عليه هغه مريى آزاد کړ بيا د غه سړى د لاس د زخم ځخه مړ شو نو د مريي پر سابق مالک باندي هيڅ شى نه واجبيږي او مريى بدل صلح گڼل کيږي داسي ويل کيږي چې له جنايت نه ولد جنايت ځخه پر پيدا شوي اثر باندي پر د غه مريي باندي صلح واقع شوي وه .او که مجنى عليه مريى نه وو آزاد کړى نو د هغه سړي د مړکيدو وروسته مريى سابق مالک ته ورکول کيږي او د مجنى عليه اولياء اختيار لري چې يا دا مريى قصاصًا قتل کړي او يا يې معاف کړي ځکه چې کله مجنى عليه دى آزاد کړى نه دى

اوله لاس غوڅيدو څخه يې مرګ را منځ ته شو نو دا خبره ظاهره شوه چې د لاس ديت واجب نه وو بلکې قصاص واجب وو لهذا قصاص اخيستل کيږي. البته د مقتول اولياء اختيار لري که قصاص اخلي او که يې معاف وي.

(۹) جنى مأذون مديون خطأ فحرره سيده بلا علم عليه قيمته لرب الدين وقيمته لولي الجناية (۱۰) مأذونة مديونة ولدت بيعت مع ولدها في الدين وإن جنت فولدت لم يدفع الولد له (۱۱) عبد زعم رجل أن سيده حرره فقتل وليه خطأ لا شيء له عليه (۱۲) قال معتق لرجل قتلت أخاك خطأ وأنا عبدك وقال بعد العتق فالقول للعبد (۱۳) وإن قال لها قطعت يدك وأنت أمتي وقالت بعد العتق فالقول لها (۱۴) وكذا كل ما أخذ منها إلا الجماع والغلة

**ترجمه**: ماذون مديون مريي جنايت وکړ خطاءً او مالک دی آزاد کړیله علمه نو پر مالک باندي يو قيمت لازميږي د قرض غوښتونکي لپاره او يو قيمت د ولي جنايت لپاره. ماذونه مديونه منځه وه ماشوم يې پيدا شو نو څخه دي کړای شي سره له ماشوم د قرض لپاره او که يې جنايت وکړ بيا يې بچی پيدا شو نو بيا يې دا بچی نه ورکول کيږي ديو چا مريي دی يو بل سړي ګمان وکړ چې د دي مريي مالک دا مريی آزاد کړی دی بيا دغه مريي ولي د ګمان کوونکي قتل کړ خطاءً نو د ګمان کوونکي پر هغه مالک باندي هيڅ شی نشته معتق وويل يو چا ته چې ما ستا ورور وژلی وو په خطاء سره په داسی حال کې چې زه ستا مريی وم او هغه وويل چې نه ته آزاد وو وروسته دي وژلی دی نو د مريي قول معتبريږي او که يې منځې ته وويل چې ما ستا لاس په داسي حال کې غوڅ کړی وو چې ته زما منځه وې او منځې وويل چې نه له آزاديدو وروسته دي غوڅ کړی دی نو د منځې قول معتبريږي. همدارنګه په هر هغه شي کې چې له منځې څخه اخيستل شوی وي مګر نه جماع او غله.

**تشريح**: (۹) که يو ماذون فی التجارة مريي يو جنايت وکړ چې زر روپۍ قرض هم پر باندي دی او مالک دی آزاد کړيه داسي حال کې چې مالک تر دي وخته دهغه په جنايت علم نه لري نو بيا پر مالک باندي دوه ضمانه واجبيږي يو ضمان (يعني د مريي قيمت) د قرض غوښتونکي لپاره او بل ضمان د مجنی عليه لپاره ځکه هغه دوه حقه تلف کړي دي چې د هغو څخه هر يو جلا جلا مضمون دی او هغه دوه حقه د جنايت د اولياؤ لپاره د مريي رقبه او د قرض غوښتونکو لپاره د مريي خرڅول دی.

(۱۰) ديو چا ماذونه فی التجارة منځه وه چې د خلکو د مره قرضه پر باندي وه چې د هغې تر قيمت زيات دوه له هغه وروسته د هغې زوی پيدا شو نو د قرض غوښتونکو لپاره د امنځه سره له بچي خرڅول کيږي او که داسي منځې کوم جنايت کړی وو بيا يې ماشوم پيدا شو نو بيا که مولی غوښتل چې منځه مجنی عليه ته ورکړي نو د منځې بچی نه شي ورکولای وجه د فرق يې دا ده چې قرض يو وصف حکمي دی چې د منځې پر ذمه واجب دی چې د منځې د غاړې څخه د هغې د خرڅيدو په صورت کې وصوليږي او د وصف حکمي په باره کې قاعده دا ده چې هغه د ماشوم طرف ته هم سرايت کوي لهذا منځه سره د بچي هم خرڅول کيدای شي او د جنايت په صورت کې مجنی عليه ته ورکول پر منځه واجب نه دی بلکې پر مولی باندي واجب دی نو د مولی د امنځه

ورکول وصف حکمي نه دی بلکې فعل حقیقي دی او د فعل حقیقی په باره کې قاعده داده چې هغه د ماشوم طرف ته سرایت نه کوي لهذا په دې صورت کې ماشوم ولي د جنایت ته نه ورکول کیږي.

(۱۱) د بکر دمریي په باره کې زید دعوی وکړه چې بکر دا مریی آزاد کړی دی اتفاقاً دغه مریي د زید دا ولیاؤ څخه یو څوک خطاء قتل کړ نو زید د لره د بکر پر ذمه هیڅ شی نه لازمیږي ځکه زید پخپله دعوی او خیال سره (چې بکر خپل مریی آزاد کړی دی ) دا ثابته کړه چې د بکر پر ذمه نه مریی ورکول واجب دی او نه د تاوان فدیه ورکول واجب ،البته دی پخپل خیال داسي ګڼي چې ددي مریي پر عاقله باندي دیت شته نو څرنګه چې دهغه دا دعوی بلا حجت ده لهذا دا دعوی یې هم قابل قبول نه کیږي.

(۱۲) که چا خپل مریی آزاد کړ بیا دغه مریي خپل آزاد وونکي ته وویل چې ما ستا ورور هغه وخت خطاء وژلی ووچې زه مریی وم او هغه آزاد وونکي ورته وویل چې نه ! بلکې تا هغه وخت وژلی ووچې ته آزاد شوی وې،نو د مریي قول معتبر یږي ځکه مریي جنایت منافی الضمان حالت ته منسوب کړی دی نو دی پر خپل ځان باندي د ضمان د وجوب څخه منکر دی او دده آزاد وونکی مدعي دی چې ضمان ستا پر ذمه شته په داسي موقع کې د منکر قول مع الیمین معتبر یږي.

(۱۳) یو چا خپله منځه آزاده کړه بیا یې خپل آزاد وونکي ته وویل چې ماستا لاس هغه وخت غوځ کړی ووچې زه ستا منځه وم او هغه ورته وایي چې نه ! بلکې تا هغه وخت غوځ کړی ووچې کله ته آزاده شوې وې،نو د منځې قول معتبر یږي ځکه مولی لومړی د ضمان د سبب اقرار وکړ بیا یې داسي دعوی وکړه چې دی له ضمان څخه بري کوي نو دده قول نه معتبر یږي.

(۱۴) له جماع او ګټې سِوا هر هغه شی چې له دغې منځې څخه اخیستل شوی دی په هغه کې هم دا حکم دی چې د منځې قول معتبر یږي مثلاً مولی وویل چې ماله تا څخه مال اخیستی دی په داسي حال کې چې ته زما منځه وې هغه وایي نه! بلکې هغه وخت دي اخیستی ووکله چې زه آزاده شوې وم نو د منځې قول معتبر یږي البته په جماع او ګټه کې که دا اختلاف راغی نو استحساناً د مولی قول معتبر یږي مثلاً مولی ورته وویل چې ماله تاسره هغه وخت وطی وکړه کله چې ته زما منځه وې او هغه وایي چې نه !بلکې هغه وخت چې زه آزاده وم،یا مولی ورته ووایي چې ما ستا ګټه هغه وخت اخیستی ده چې ته زما منځه وې هغه وایي نه ! بلکې هغه وخت چې زه آزاده وم،په دغو دواړو صورتونو کې د مولی قول استحساناً معتبر یږي.

(۱۵) عَبْدٌ مَحْجُورٌ أَمَرَ صَبِيًّا حُرًّا بِقَتْلِ رَجُلٍ فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَةِ الصَّبِيِّ وَكَذَا إِنْ أَمَرَ عَبْدًا عَبْدٌ (۱۶) قَتَلَ رَجُلَيْنِ عَمْدًا وَلِكُلٍّ وَلِيَّانِ فَعَفَا أَحَدُ وَلِيَّيْ كُلٍّ مِنْهُمَا دَفَعَ سَيِّدُهُ نِصْفَهُ إِلَى الْآخَرَيْنِ أَوْ فَدَاهُ بِالدِّيَةِ (۱۷) فَإِنْ قَتَلَ أَحَدَهُمَا عَمْدًا وَالْآخَرَ خَطَاءً فَعَفَا أَحَدُ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ فَدَى بِالدِّيَةِ لِوَلِيِّ الْخَطَاءِ وَبِنِصْفِهَا لِلْآخَرِ وَلِيِّ الْعَمْدِ أَوْ دَفَعَهُ إِلَيْهِمْ أَثْلَاثًا (۱۸) عَبْدٌ لَهُمَا قَتَلَ قَرِيبَهُمَا فَعَفَا أَحَدُهُمَا بَطَلَ الْكُلُّ

**ترجمه**:یوه محجور مریي امر کړ آزاد هلک دیو چا په وژلو باندي،هلک هغه سړی قتل کړ نو دهغه دیت دهلک پر عاقله باندي کیږي او همدا رنګه که امر کړ مریي بل مریی ،یوه مریي دوه انسانان قتل کړل عمداً او دهریوه دوه ولیان دي بیا له دوو ولیانو څخه هریوه معاف کړ نو وردي کړي دهغه مولی نیم مریی هغه نورو دوو ته اویا دي فدیه ورکړي په دیة سره او که یې قتل کړ یو عمداً او بل خطاء بیا معاف کړ د عمد له دوو ولیانو څخه یوه

نوفديه دكل دية دي وركړي دخطادووليانوته اونصف ديت دي وركړي دعمديوه ولي ته يادي وركړي مريي هغه ته اثلاثا،ددووكسانومريي قتل كړدهغوئ يوقريب يامعاف كړله هغوئ نه يوه نوباطليږي ټول .

**تشريح** :(۱۵)كه يومحجورمريي يونابالغ هلك ته ووېل چې فلان شخص ووژنه ،هغه هلک دده دوېناسره سم هغه فلان قتل كړنوديت دقاتل هلک پرعاقله باندي واجبيږي پرهلک باندي هيڅ شی نه واجبيږي .ځكه دقتل صدورله مريي څخه نه بلكې له هلک څخه شوی دی اودماشومانوافعال معتبريږي نولهذاديت دماشوم پرعاقله باندي كيږي،همدارنګه كه يوه محجورمريي بل مريي ته داسې ووېل چې فلان سړی ووژنه ماموړمريي هغه وواژه نوقصاص له قاتل مريي څخه اخيستل كيږي كه قتل عمداً وونه له آمرڅخه لماقلنا .

(۱۶)ديوچامريي دوه كسان ووژل اودمقتولينوڅخه هريوه دوه وليان درلودل ديوه دوه وليان زيداوبكردي اودبل دوه وليان خالداوعمردي له قاتل څخه قصاص نه وواخيستل شوی چې دهريوه مقتول له دووليانوڅخه يوه يوه (مثلاًزيداوخالد) خپل حق معاف كړنواوس له قاتل څخه قصاص نه شي اخيستل كيدای البته باقي دووليانوهريوه بكراوعمرله نصف ديت يعني پنځه زره درهمه كيږي مجموعه زردرهمونه واجبيږي،يادي مولی دوئ دواړوته نيم مريی وركړي ځكه كه څلورواړه اولياء حقداروای نودمريي وركولوپه صورت كې به دڅلوروا ستحقاق يواځي په يوه مريي كې وواوچې كله څلورونه دوويې خپل معاف كړنوله حق څخه نيم ساقط شواوفقط نيم باقي دی لهذاباقي دووليانوته يواځي نيم مريی وركول كيږي اودفديه وركولوپه صورت كې دڅلورووا ړوحق شل زره درهمه ووځكه ددووكسانوديت دومره كيږي ليكن چې كله له څلوروڅخه دووخپل حق معاف كړنونصف حق ساقط شوفقط نصف باقي دی لهذامولی به دواړوته فقط لس زره درهمه وركوي .

(۱۷)اوكه مريي دواړه عمداًنه ووقتل كړي بلكې يويې عمداًاوبل يې خطاءً قتل كړی ووياداعمداًقتل شوي له دووليانو څخه يوه خپل حق معاف كړنواوس له قاتل څخه قصاص نه شی اخيستل كيدای البته مولی به پنځلس زره درهمه وركوي چې له هغوڅخه پنځه زره دعمداًمقتول دهغه ولي دي چې خپل حق يې نه دی معاف كړی اولس زره دخطاء مقتول ددووليانودي ځكه دقتل خطاء دوليانوپه حق لس زره درهمه كې معافي وغيره نه ده راغلي لهذاهغوئ ته پوره ديت يعني لس زره درهمه وركول كيږي اودقتل عمددوليانوڅخه يوه خپل حق معاف كړی دی ځكه دهغه بل حق پنځه زره درهمه وركول كيږي اوكه مولی مريي وركاوه نومريی به هغوئ درې واړوته اثلاثاوركړي يعني دمريي دوه ثلثه به دقتل خطادوليانولپاره وي اويوثلث به يې دقتل عمدله دوو،وليانوڅخه ديوه لپاره شي چاچې خپل حق نه دی معاف كړی لماقلنا.

(۱۸)كه ددووكسانويومشترک مريی ووهغه مريي ددي دواړويوقريب قتل كړيياله هغوئ دواړونه يوه هغه معاف كړنودامام صاحب رحمه الله په نزدقصاص اومال دواړه باطل شويعني نه اوس هغه بل شريک له مريي څخه قصاص اخيستلای شي اونه ديت،ځكه ترمعافي مخكې ددواړوحق دقصاص په ډول واجب شوی ووچې شيوع پكې وه لكه په ملک كې چې شيوع وي اوس چې كله يوه حق معاف كړنودهغه حصه ساقطه شوه دهغه بل حق هم له قصاص څخه مال ته بدل شواودهغه حق نصف دی نوپه دي كې ترددد دی چې دغه بل

شريک ته چې کوم سړی ورکول کيږي دا دکوم نصف بدل دی ځکه لکه څرنګه چې په دې کې دا احتمال شته چې بنايي دا به دهغه نصف بدل وي کوم چې دهغه بل حق دی همدارنګه دا احتمال هم شته چې دهغه نصف بدل وي کوم چې معاف کړای شوی دی او مال د شک او تردد په وجه نه واجبيږي. امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې معافي کوونکی به يا هغه بل ته خپل نصف حصه مريی ورکوي او يا به څلورمه حصه د ديت ورکوي

**فائده**: د امام صاحب رحمه الله قول راجح دی بعلم من صنع صاحب الهداية حيث اخر دليله وهذا الترجيح قول الراجح عنده.

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله: فان قتل عبده قريبهما وان عفا احدهما بطل كله وقالا يدفع الذي عفا نصف نصيبه للآخر او يفديه بربع الدية وقيل محمد مع الامام ووجهه انه انقلب بالعفو مالا والمولى لايستوجب على عبده دينا فلا تخلفه الورثة فيه والله اعلم (الدر المختار على هامش رد المحتار: ۵/ ۳۲)

## فصل

### دا فصل پر مريي د جنايت په بيان کې دی

مصنف رحمه الله د مريي پر غير باندې د جنايت کولو له بيان څخه فارغ شو نو خپله پر مريي او مملوک باندې د جنايت احکام يې شروع کړل ځکه فاعل (جنايت کوونکی فاعل وي) وجوداً پر مفعول (مجني عليه مفعول وي) باندې مقدم وي نو ذکراً يې هم مقدم کړی دی چې ذکر او وجود سره مطابق شي.

(۱) قتل عبد خطاء تجب قيمته ونقص عشرة لو كانت قيمته عشرة آلاف او اكثر وفي الامة عشرة من خمسة آلاف (۲) وفي المغصوب تجب قيمته ما بلغت (۳) وما قدر من دية الحر قدر من قيمته ففي يده نصف قيمته (۴) قطع يد عبد فحرره سيده فمات منه وله ورثة غيره لايقتص (۵) والا اقتص منه (۶) قال احدكما حر فشجا فبين في احدهما فارشهما للسيد (۷) فقاء عيني عبد دفع سيده عبده واخذ قيمته او امسكه ولا ياخذ النقصان (۸) جنى مدبر او ام ولد ضمن السيد الاقل من القيمة ومن الارش (۹) فان دفع القيمة بقضاء فجنى اخرى شارك الثاني الاول (۱۰) ولو بغير قضاء اتبع السيد او ولي الجناية

**ترجمه**: ووژل شو مريی په خطاء سره نو واجبيږي د هغه قيمت او کميږي لس درهمه که يې قيمت لس زره يا تر هغه زيات وو او په مينځه کې لس کميږي له پنځه سره څخه. او په مغصوب مريي کې واجبيږي د هغه قيمت څومره چې وي او څومره مقدار چې مقرر وي د آزاد د ديت څخه هغه مقرريږي د مريي قيمت نو د ده په لاس کې دی نصف قيمت د هغه غوڅ کړای شو لاس د مريي او آزاد کړ هغه خپل مالک بيا هغه له دغه لاس څخه مړ شو او هغه لره وارث وو بل څوک نو قصاص نه شي اخيستلای که نه بيا قصاص اخيستلای شي. ورته ويې ووېل: نه تاسو د واړو څخه يو آزاد دی او هغوی زخمي کړای شول بيا په دوی کې ديوه د آزادي بيان وشو نو د هغه تاوان مالک لره کيږي يو چا ورنډې کړې دواړې سترګې د مريي ورديې کړې د هغه مولی مريی او د هغه قيمت واخلي يا دې وګرځوي او نقصان دې نه اخلي. جنايت وکړ مدبر يا ام ولد نو مالک ضامن ګرځي د اقل له قيمت او تاوان څخه. بيا که ده ورکړ قيمت د قاضي په قضا سره بيا هغه بل جنايت وکړ نو شريک کيږي دوهم له اول سره او که يې د قاضي له قضاء بغير ورکړ نو دوهم سړی دې په مالک پسې شي يا د لومړي جنايت په ولي پسې.

**تشريح** :(۱)كه يوچادبل چامريى په قتل خطاء سره ووواژه نوپرهغه باندي [illegible] واجبيږي.مگرداقيمت به ترلس زره درهمه زيات نه وي ځكه دكامل (يعني حر) ديت لس زره درهمه دى نوكه دمريي (چې ناقص ) دقتل په صورت كې هم دلسوزرودرهموحكم وركړل شي نودكامل اوناقص ترمنځ مساوات راځي .نوكه دوژل شوي مريي قيمت لس زره درهم ياترهغه زيات وونودني لپاره چې دمملوك مرتبه ترآزادكمه ثابته شي بايدله لسوزرودرهمونوڅخه لس درهم كم كړي، همداحكم دمنځې هم دى چې كه دهغې قيمت دآزادې ښځې ترديت يعني پنځوزرودرهمونه زيات وونوله پنځوزروڅخه دې لس درهم كم كړي .

(۲)اوكه چايومريى غصب كړيياهغه دغاصب په لاس كې هلاک شونوپه دي صورت كې دمريي پوره قيمت واجبيږي هرڅومره چې وويعني كه څه هم ترلس زره زيات وي پوره قيمت واجبيږي ځكه دغصب وروديرمال باندي كيږي ځكه دغصب په وجه واجب ضمان دمال مقابل كيږي لهذادمريي ماليت چې څومره وي هغه پوره واجبيږي .

(۳)يعني هرهغه مقدارچې دآزادديت په ډول مقرروي هغه دمريي دقيمت په ډول مقرريږي لهذاچيرته دحرنصف ديت وي هلته دمريي نصف قيمت دى ځكه په مريي كې قيمت داسې دى لكه په حركې ديت.نوكه چادمريي لاس ورغوڅ كړنوپرهغه باندي دمريي نصف ديت واجبيږي ليكن داقيمت به ترپنځه كم پنځه زره درهمه زيات نه وي ځكه له انسان څخه لاس دهغه نصف دى نوپركل باندي قياسيږي كوم حكم چې دكل مريي په باره كې دى هغه يې دنصف يعني لاس په باره كې دى نودحراومريي د فرق لپاره له پنځوزرودرهمونوڅخه پنځه درهمه كميږي .

(۴)كه چادزيددمريي لاس ورغوڅ كړبيازيددغه مقطوع اليدمريى آزادكړترآزاديدووروسته دهغه زخم په وجه دامريى مړشونوكه ددغه مريي له مولى بغيرنوروارثان هم وي نوپه دغه صورت كې په اتفاق سره له قاتل څخه قصاص نه اخيستل كيږي بلكې دلاس تاوان اوترعتق مخكې چې كوم نقصان راغلى دى هغه واجبيږي ځكه من له الحق مشتبه دى ځكه كه دلاس غوڅيدووخت ته اعتباروي نوحق دمولى كيږي اوكه دمرگ وخت ته اعتباروي نوحق دوارثانو كيږي لهذادشبهې په وجه قصاص ساقط دى .

(۵)قوله والاّاقتص اى وان لم يكن للعبدورثة غيرالسيدالتقص من القاطع.يعني كه دمريي له مولى علاوه كوم بل وارث نه وونودشيخينورحمهماالله په نزدپه دي صورت كې قصاص واجبيږي،اودامام محمد رحمه الله په نزدپه دي صورت كې هم قصاص نه واجبيږي ځكه دلته سبب دحق مختلف دى ولى دلاس غوڅيدودوخت په اعتبارسره دمولى حق دملكيت په وجه دى اوله مرگ وروسته دمولى حق دولاء په طريقه سره دى اوپه قابل احتياط اموروكې دسبب اختلاف دمستحق داختلاف په درجه كې دى نودلته هم په مستحق كې شبه پيداشوې ده ځكه دلته هم قصاص نه واجبيږي .دشيخينورحمهماالله دليل دادى چې داخبره يقيني ده چې په دواړوصورتونوكې مولى لره ولايت حاصل دى يعني مقتضى له (مولى) معلوم دى اوحكم دقصاص

متحد دی نو خامخا قصاص واجبیږي په لومړي صورت کې مقتضی له مجهول دی چې مولی دی او که وارث؟ لهذا دغه صورت پر هغه باندي قیاسول نه صحیح کیږي.

**فائده** :دشیخینو رحمهما الله قول راجح دی لماقال العلامة الحصکفی رحمه الله :اقتص منه عندهما ان کان وارثه سیده فقط والا فلا اتفاقا لاشتباه من له الحق کمامر وعندمحمد رحمه الله لاقصاص اصلا وعلیه ارش الید ومانقصه الی حین العتق وقولهما اصح (الدر المنتقی فی شرح الملتقی:۳/ ۳۹۱)

(۶)که چا خپلو دوو مریانو ته وویل چې له تاسو دواړو څخه یو آزاد دی او آزاد کړده یې معلوم کړی نه وو چې یو بل چا دواړو سرونه زخمي کړل چې په هغه کې تاوان واجبیږي بیا که ده معتَق معلوم کړنو هم د دواړو تاوان مولی ته ورکول کیږي ځکه که څه هم له دوئ څخه یو آزاد شوی دی چې تاوان خپله هغه ته ورکول کیږي مګر د لته عتق مبهم دی پر معلوم باندي نه دی وارد شوی او زخم پر معین باندراغلی دی نو د زخم په حق کې دوئ دواړه پوره مملوک شمارل کیږي او چې کله دواړه مملوک ثابت شول نو د دواړو تاوان مولی ته ورکول کیږي.

(۷)زید د بکر د مریي دواړې سترګې وروایستلې نو څرنګه چې په دواړو سترګو کې پوره قیمت واجبیږي لهذا بکر دي د اخپل مریی زید ته ورکړي او له زید څخه د هغه پوره قیمت واخلي او که مریی نه ورکوي نو د امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد بکر له زید څخه نقصان هم نه شي اخیستلای او د صاحبینو رحمهما الله په نزد نقصان اخیستل جائز دی ځکه په اطرافو کې مالیت معتبر دی نو پر نورو ټولو اموالو باندي قیاسیږي نو لکه څرنګه چې په نورو اموالو کې داجائزه ده چې په قدر نقصان ضمان واخلي همدارنګه په مذکور صورت کې هم ضمان اخیستل صحیح کیږي، دامام صاحب رحمه الله دلیل دادی چې د مریي په اطرافو کې له مالیت سره آدمیت هم ملحوظ دی لهذا هغه پر محض اموالو باندي قیاسول صحیح نه دی او د آدمیت حکم دادی چې ضمان پر اجزاؤ باندي نه منقسم کیږي نو چې کله د آزاد سترګې ورباسي خو دا حکم نه دی چې د سترګو او نورو اعضاؤ ترمنځ حساب کیږي بیا د تلف شده اجزاؤ ضمان واجب وګڼل شي او باقي په قدر د ضمان واجب نه وي.

**فائده** :دامام صاحب رحمه الله قول راجح دی لمایعلم من صنیع صاحب الهدایة حیث اخر دلیله وهذا ترجیح قول الراجح عند صاحب الهدایة وایضا رجحه ابراهیم بن محمد الحلبی صاحب مجمع الانهر، حیث قال: لهما انه فی الجنایة بمنزلة المال فاوجب ذالک تخییر المولی علی الوجه المذکور کمافی سائر الاموال، وله ان المالیة وان کانت معتبرة فی الذات فالآدمیة غیر مهدرة فیه وفی الاطراف ومن احکام الادمیة ان لاینقسم الضمان علی الجزء الفائت والقائم بل یکون بازاء الفائت لاغیر ولایتملک الجثة ومن احکام المالیة ان ینقسم علی الجزء الفائت والقائم فقلنا بانه لاینقسم اعتبار اللآدمیة ویتملک الجثة اعتبار اللآدمیة وهذا اولی مماقالاه لان فیماقالاه اعتبار جانب المالیة فقط. (مجمع الانهر:۳/ ۳۹۲)

(۸)که مدبر یا ام ولد خطاءً یو جنایت وکړ نو مولی به د هغه د قیمت او تاوان څخه چې کوم یو کم وي د هغه ضامن کیږي ځکه د مولی تدبیر یا استیلاد د مدبر او ام ولد له ورکولو څخه مانع دی لیکن څرنګه چې دی بلا اختیار دی لهذا دا داسې دی لکه یو څوک چې خپل جنایت کار مریی قبل العلم بالجنایة آزاد کړي.

(۹)او که مدبر یا ام ولد له یوه جنایت وروسته بل جنایت وکړ حال دا چې مولی د قاضي په حکم د لومړي جنایت ولي ته د هغه قیمت ورکړی وو نو اوس پر مولی باندي هیڅ شی نه واجبیږي ځکه د مریي د ټولو جنایتونو بدل پر مولی باندي یو قیمت واجبوي او یو قیمت د لومړي جنایت ولي ته په ورکولو کې مولی متعدي هم نه دی

لهذا له هغه يوه قيمت نه علاوه پر مولى باندې هيڅ نه واجبيږي، البته ددوهم جنايت ولي دې دلومړي جنايت په ولي پسې شي اوله هغه سره دې په قيمت کې شريک شي چې هغه اخيستى دى ولى دلومړي جنايت ولي دا سې شی قبض کړی دی چې په هغه پوري دبل جنايت دولي حق متعلق شوی وو.

(۱۰)اوکه مولى دلومړي جنايت ولي ته دقاضى دفيصلې بغيرقيمت ورکړي نوددوهم جنايت ولي ته اختيارشته چې ياپه مولى پسې شي ځکه مولى په اختيارسره هغه شى دلومړي جنايت مستحق ته ورکړى دى په کوم پوري چې ددوهم جنايت دولي حق متعلق شوی دی لهذا دا مولى دطرفه ددوهم جنايت دولي په حق کې تعدى شمارله کيږي نوځکه ددوهم جنايت ولي له مولى څخه دمطالبې اختيار لري، بيا چې ددوهم جنايت ولي ته څومره ضمان ورکړي هغه به دلومړي جنايت له ولي څخه واپس واخلي ځکه هغه بلا حق هغه قبض کړى دى اوکه يادې دوهم ولي دلومړي جنايت په ولي پسې شي ځکه هغه ددوهم ولي حق ناجائز قبض کړی دی.

## بَابُ غَصْبِ الْعَبْدِ وَالْمُدَبَّرِ وَالصَّبِيِّ وَالْجِنَايَةِ فِي ذَالِكَ

دا باب دمريي، مدبر او ماشوم دغصب کولو اوپه هغه وخت کې له هغوئ څخه دجنايت دواقع کيدو په بيان کې دى تردې مخکې فقط دمريي دجنايت على العبد بيان وشو په دغه باب کې دجنايت مع الغصب دواړو ذکر دى نو دا په منزله دمرکب له مفرده دى او مفرد ترمرکب مقدم وي.

(۱)قَطَعَ يَدَ عَبْدِهِ فَغَصَبَهُ رَجُلٌ وَمَاتَ مِنْهُ ضَمِنَ قِيمَتَهُ أَقْطَعَ (۲)وَإِنْ قَطَعَ يَدَهُ فِي يَدِ الْغَاصِبِ فَمَاتَ مِنْهُ بَرِئَ (۳)غَصَبَ مَحْجُورٌ مِثْلَهُ فَمَاتَ فِي يَدِهِ ضَمِنَ (۴)مُدَبَّرٌ جَنَى عِنْدَ غَاصِبِهِ ثُمَّ عِنْدَ سَيِّدِهِ ضَمِنَ قِيمَتَهُ لَهُمَا وَرَجَعَ بِنِصْفِ قِيمَتِهِ عَلَى الْغَاصِبِ وَدَفَعَ إِلَى الْأَوَّلِ ثُمَّ رَجَعَ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ (۵) وَبِعَكْسِهِ لَا يَرْجِعُ بِهِ ثَانِيًا (۶)وَالْقِنُّ كَالْمُدَبَّرِ غَيْرَ أَنَّ الْمَوْلَى يَدْفَعُ الْعَبْدَ هُنَا وَثَمَّهُ الْقِيمَةَ

**ترجمه** :يوچا دخپل مريي لاس ورغوڅ کړبيا بل سړي هغه غصب کړاوهغه مړشوله دغه لاس غوڅيدو څخه نودلاس غوڅ شوي مريي دقيمت ضامن کيږي، اوکه غوڅ کړای شو دهغه لاس دغاصب په قبضه کې بيامړشوله لاس څخه نوغاصب بري کيږي غصب کړمحجورمريي دخپل ځان په شان بل مريي بياهغه مړشودده په قبضه کې نوضامن کيږي، مدبرجنايت وکړدخپل غاصب په وړاندې بيادخپل مالک په وړاندې نوضامن کيږي دقيمت ددواړو لپاره او اخلي به دهغه نصف قيمت له غاصب څخه اوورکوي به يې واول ته بيابه اخلي نصف قيمت له غاصب څخه، اوددې په عکس کې به يې نه اخلي هغه دوباره، اومريي دمدبرپه شان دى سوا له دې نه چې مالک به دلته مريي ورکوي او هلته به قيمت.

**تشريح** :(۱)چا دخپل مريي لاس ورغوڅ کړبيا په دغه حال کې بل چا هغه مريي غصب کړاو دغاصب په قبضه کې دهغه زخم په وجه مړشو نوپرغاصب باندې دهغه قيمت واجبيږي مګرپوره قيمت نه بلکې دلاس غوڅيدوپه وخت کې چې دهغه کوم قيمت وي هغه واجبيږي.

(۲)اوکه يوڅل غاصب غصب کړبيا مالک دغاصب په وړاندې دهغه لاس ورغوڅ کړچې بيا دغاصب په قبضه کې دهغه لاس څخه مړشونوپه دغه صورت کې پرغاصب باندې هيڅ شى نه واجبيږي ددواړو صورتونوترمنځ فرق دادى چې لکه څرنګه چې بيع سبب دمِلک دى همدارنګه غصب هم سبب دمِلک دى اوترسبب مِلک

... ... بقه زخم سرايت ختميږي لهذا په لومړي صورت کې دغصب په وجه سرايت ختم شوولی دا ... داسي شولکه په يو آسماني آفت سره چې مړشوځکه نوپه دغه صورت کې دلاس غوڅ شوي مريي قيمت واجيبږي. ويه ... هم صورت کې څرنګه چې مالک دغاصب په قبضه کې دمريي لاس ورغوڅ کړی دی نو ... اسي وګڼه چې هغه لومړی له غاصب څخه هغه قبض کړی دی بيايې دهغه لاس ورغوڅ کړی دی ځکه چې کله مالک په هغه حالت کې دمريي لاس ورغوڅوي نودی پرمريي باندي استيلا ، هم لري لهذا دلاس غوڅيدل دمالک په قبضه کې شمارله کيږي ځکه غاصب بري کيږي .

(۳)يوه محجورمريي دخپل ځان په شان بل محجورمريی غصب کړبيادغاصب په قبضه کې دغه مغصوب مريی مړشو نو غاصب ضامن ګرځي يعنې پرهغه باندي دمغصوب مريي قيمت لازميږي ځکه دمحجورپه فعل کې منع نشته لهذا دی دخپل فعل په وجه ماخوذکيږي مګرڅرنګه چې غاصب خپله محجوردی ځکه دآزاديدوروسته قيمت ورباندي کيږي.

(۴)که چادبل چامدبّرمريی غصب کړاودغاصب په قبضه کې مدبّريوجنايت وکړبياغاصب دغه مدبّرمالک ته ورواپس کړدمالک سره مدبّردوباره يوجنايت وکړنومالک دمدبّردپوره قيمت ضامن ګرځي چې دواړوولیانودجنايت ته نيم نيم ورکول کيږي ځکه مولی دسابق تدبيرپه وجه خپل ځان پخپله مدبّردجنايت ولي ته له ورکولو څخه عاجزکړيعنې څرنګه چې مولی مريی مدبّرکړی دی ځکه اوس دغه مريی دجنايت ولي ته نه شي ورکولای،ليکن بياهم دی له هغه څخه فديه ورکول نه شي اختيارولای ځکه پرده باندي دمدبّرپوره قيمت واجيبږي ولی دوليانوحق په مريي ورکولوکې ووچې کله ده مريی مدبّروګرځاوه نودهغوئ حق يې باطل کړ،بيادغه قيمت ددوووليانوترمنځ نيم نيم ځکه تقسيميږي چې په موجب دضمان کې هغوئ دواړه برابردي .بيامالک له غاصب څخه نيم قيمت اخيستلای شي ځکه مالک ته نيم قيمت دهغه جنايت په وجه ورکول کيدی کوم چې دغاصب په قبضه کې صادرشوی وو،اوهغه نيم هم دلومړي جنايت وولي ته ورکول کيږي ځکه دهغه حق په پوره قيمت کې دی ولی چې مدبّرکله دهغه په حق کې جنايت وکړنودهغه هيڅ مزاحم نه وو،بيامزاحم (ددوهم جنايت دولي ) په وجه دهغه حق نيم کړی دی ليکن له غاصب څخه داخيستل شوي مدبّرکوم بدل چې اوس په لاس راغلی دی نودلومړي جنايت ولي دهغه داخيستلوحقدارګرځي چې دهغه حق پوره اداشي.اوکوم مقدارچې مولی دلومړي جنايت ولي ته دوباره ورکړی دی دهغه په باره کې به غاصب ته رجوع کوي چې دمولی سره محفوظ کيږي ځکه دانصف چې دلومړي جنايت ولي له مالک څخه دوباره اخيستی دی داهغه جنايت عوض دی کوم چې دغاصب په قبضه کې له مدبّرڅخه صادرشوی ووځکه مالک ددوباره اخيستلوحقدارګرځي .

(۵)قوله وبعکسه لای وبعکس ماذکره لايرجع المولی علی الغاصب بالقيمة،يعني که مريي له مالک سره جنايت وکړبيادی يوچاغصب کړاودغاصب سره هغه بل جنايت ترسره کړنوپرمالک باندي قيمت واجيبږي چې ددئ دواړوترمنځ برابرتقسيميږي اومالک به دنصف قيمت په باره کې پرغاصب باندي رجوع کوي ځکه پرمالک باندي نصف تاوان دداسي سبب په وجه لازم شوی دی چې هغه دغاصب په وړاندي پيداشوی دی ليکن مولی

دوباره غاصب ته رجوع نه شي كولاى ځكه مالك چې كوم څه دلومړي جنايت ولي ته دوباره وركړي دي داهغه جنايت په وجه سره دى كوم چې خپله دمالك سره پيداشوى دى لهذامولى غاصب ته درجوع حق نه لري.خلاف له سابق صورت نه چې هلته مولى دلومړي جنايت ولي ته كوم څه دوباره وركړي وه هغه دهغه جنايت په وجه وو چې دغاصب سره راپيداشوى وو.

(۶)اوقن دمدبرپه شان دى يعني كه دمدبرپرځاى مغصوب مريى وو بياهم همدا تفصيل دى كه چيرته غاصب دچامريى غصب كړمريي دغاصب په قبضه كې يوجنايت وركړبيا غاصب مريى خپل مالك واپس وركړمريي دمالك په وړاندي بياجنايت وكړنومالك به مريى ددواړوجنايتونوولبانوته وركوي هغه به يې پخپل منځ كې تقسيموي بيابه له غاصب څخه نيم قيمت اخلي دلومړي جنايت ولي ته به يې وركوي.بيابه دوباره مالك غاصب ته رجوع كوي نصف قيمت به له هغه څخه اخلي .ليكن دومره فرق يې شته چې دمريي په صورت كې مريى وركول كيږي او دمدبرپه صورت كې دهغه قيمت.ولى دتدبيرپه وجه مدبردجنايت ولي ته نه شي وركول كيداى.

(۷)مدبر جنى عند غاصبه فرده لغصبه فجنى على سيده قيمته لهما ورجع بقيمته على الغاصب ودفع نصفها الى الاول ورجع بذالك النصف على الغاصب (۸)غصب رجل صبيا حرا فمات في يده فجاءة او بحمى لم يضمن وان مات بصاعقة اونهش حية فديته على عاقلة الغاصب (۹)كصبي اودع عبدا فقتله وان اودع طعاما فاكله لم يضمن

**ترجمه** :يوه مدبرجنايت وكړدخپل غاصب سره هغه واپس كړاوبيايې غصب كړدغه مريى بيايې جنايت وكړنودهغه پرمالك باندي دهغه قيمت واجبيږي ددواړولپاره اواخلي به دهغه قيمت له غاصب څخه اووركوي به ددغه قيمت نصف واول ته اودابه هم له غاصب څخه اخلي .يوچاغصب كړآزادماشوم اوهغه مړشودهغه په قبضه كې يوناڅاپه يادتبې په وجه نونه ضامن كيږي اوكه هغه مړشو دبريښنا په لوېدو سره يادمارپه چيچلو سره نودهغه ديت دغاصب پرعاقله باندي كيږي.لكه هغه ماشوم چې ده ته ورسپارل شوى وي يومريى اوهغه يې قتل كړي اوكه خوراكي شى ورسپارل شوى وو اوهغه وخوړنونه ضامن كيږي .

**تشريح** :(۷)كه يوچامدبرغصب كړمدبردهغه په وړاندي جنايت وكړغاصب مدبرمالك ته واپس وركړدوباره يې غصب كړاومدبردوباره دغاصب په وړاندي يوجنايت وكړنوپرمالك باندي واجب دى چې دي دهغه پوره قيمت ددواړوجنايتونو ولبانوته نصف نصف وركړي ولى مريى مالك مدبرګرځولى دى اومريى چې مدبروګرځيدادادي مانع شوچې هغه دجنايت په بدله كې وركړاى شي لهذااوس دمدبرقيمت وركول كيږي.اوبيابه مالك له غاصب څخه پوره قيمت وصول كړي ځكه دواړه جنايتونه دغاصب په قبضه كې ترسره شوي دي نولهذاددواړوضمان پرغاصب باندي كيږي.اوله غاصب څخه اخيستل شوى پوره قيمت به نصف دلومړي جنايت وولي ته وركړي ځكه هغه دپوره قيمت مستحق ګرځيدلى وو ولى پرهغه باندي دجنايت په وخت كې دهغه هيڅ مزاحم نه وو بيادمزاحم (دوهم جنايت دولي ) په وجه دهغه حق نصف شوى دى.

ليكن له غاصب څخه داخيستل شوي مدبربدل چې اوس موجودشونودلومړي جنايت ولي دهغه داخيستلوحقدارګرځي چې دهغه پوره حق اداكړاى شي اودانصف چې ده دلومړي جنايت وولي ته وركړى

دی دا به یباله غاصب څخه وصول کړي ځکه استحقاق په هغه سبب راغلی دی کوم چې دغاصب په قبضه کې ترسره شوی وو او مالک غاصب ته درجوع حق لري او دانصف مالک ته سالم ورپاتیږي دلومړي جنایت وولي ته به یې نه ورکوي.

(۸) که یو چا داسې یو آزاد ماشوم غصب کړ چې خپل حال یې نه شوای بیانولای او بیا هغه دغاصب په قبضه کې یوناڅاپه مړشویا په تبه سره مړشو نوغاصب نه ضامن کیږي او که دبرېښنا په لوید وسره مړشو یامار وچیچه مړشو نو دغاصب پرعاقله باندې دیت واجبیږي ددواړو صورتونو ترمنځ فرق دادی چې غاصب دغصب په وجه ضامن نه دی بلکې داتلاف دسبب ګرځیدو په وجه ضامن ګرځي نو په دوهم صورت کې څرنګه چې غاصب داتلاف سبب جوړکړی دی ځکه برېښنا هرځای نه رالویږي او مار هرځای نه وي نو غاصب ماشوم دبرېښنالوید و او مارانو ځای ته په وړلو سره متعدي دی ځکه په دې صورت کې پرغاصب باندې ضمان راځي او په لومړي صورت کې غاصب داتلاف سبب نه دی ځکه ناڅاپه مړکیدل یاپه تبه سره مړکیدل هرځای وي نو لهذا په دغه صورت کې غاصب متعدي نه دی ځکه پرده باندې ضمان نشته.

(۹) قوله کصبي اودع عبدافقتله ای یضمن عاقلة الغاصب کما یضمن عاقلة الصبي، یعني دغاصب عاقله ضامن کیږي لکه چې یو ماشوم ته که چا یو مریی ودیعت کېښود او ماشوم هغه قتل کړي نو دماشوم پرعاقله باندې دیت واجبیږي او که دماشوم په وړاندې خوراکي شیان کېښېښودل شي او ماشوم هغه وخوري نو پرماشوم باندې ضمان نشته ددواړو صورتونو ترمنځ فرق دادی چې په دوهم صورت کې مالک معصوم مال له داسې ماشوم سره ودیعت ایښی دی چې هغه دودیعت ساتلو اهل نه دی نو مالک خپله دخپل مالک عصمت ختم کړچې کله داثابته شوه چې دهغه مال معصوم نه دی نو پرماشوم باندې ضمان نه راځي، او په لومړي صورت کې دمریي عصمت دمالک دحق په وجه سره نه بلکې خپله دمریي دحق په وجه سره دی ځکه دوینې وغیره په حق کې مریي ته دآزاددرجه حاصله ده نو په دې صورت کې دمریي دعصمت دنه ختمیدو په وجه پرماشوم باندې ضمان واجبیږي.

## كتاب القسامة

## داکتاب دقسامة په بیان کې دی

قســــامة په لغت کې مطلقاً دقسم په معنی دی او په اصطلاح دشرع کې دمخصوص عدد (پنځوسو) په سبب مخصوص (په محله کې دمړي پیداکیدل) او وجه مخصوصه (دپنځوسو کسانو پنځوسو قسمونو خوړلو ته) ویل کیږي، ددې خبرې تشریح داسې ده چې په یوه محله یامکان کې داسې یو مقتول پیداشي چې قاتل یې معلوم نه وي حال داچې پرهغه دخفه کیدو یاجراحت یو اثر موجود وي نو دهغه ځای له پنځوسو کسانو څخه قسم اخیستل کیږي په دې ډول چې هر یو به قسم اخلي چې والله! دامانه دی قتل کړی او نه ماته ددې قاتل معلوم دی، او شرط یې دادی چې پنځوس بالغ سړي به وي او که داشمیر پوره نه وو نوله موجوده کسانو څخه به مکرر قسم اخیستل کیږي ترڅو پنځوس پوره شي او له قسم وروسته ددیت حکم ورکړل کیږي چې وینې له ناحق بهیدو څخه محفوظې شي.

محلې والاؤته دقسم ورکولو اوله هغوئ څخه ددیت اخیستلو عقلي وجه داده چې دمحلې حفاظت دهغوئ ذمه واري ده نو چې په دوئ کې مقتول پیداشو معلومه شوه چې هغوئ خپله ذمه واري نه ده اداکړې لهذا له هغوئ څخه قسم اودیت اخیستل کیږي .

له ماقبل سره یې مناسبت دادی چې دقتل په ځینوصورتونوکې دقسامت ضرورت پېښیږي ځکه یې دادیاتوپه آخرکې دمستقل کتاب ترعنوان لاندې بیان کړی دی

(۱) قتيل وجد في محلة لم يدر قاتله حلف خمسون رجلا منهم يتخيرهم الولي بالله ما قتلناه وما علمنا له قاتلا فإن حلفوا فعلى أهل المحلة الدية (۲) ولا يحلف الولي (۳) وحبس الآبي حتى يحلف (۴) وإن لم يتم العدد كرر الحلف عليهم ليتم خمسون (۵) ولا قسامة على صبي ومجنون وامرأة وعبد (۶) ولا قسامة ولا دية في ميت لا أثر به أو يسيل دم من أنفه أو فمه أو دبره (۷) بخلاف عينه وأذنه (۸) قتيل على دابة معها سائق أو قائد أو راكب فديته على عاقلته

**ترجمه** :یوداسې مقتول پیداشوپه یوه محله کې چې دهغه قاتل معلوم نه وونوقسم اخیستل کیږي له پنځوسوکسانو څخه په هغوکې به یې منتخبوي دهغه مقتول ولي چې والله موږنه دی قتل کړی اونه موږدهغه په قاتل علم لرو بیاکه دوئ قسم واخیست نوپراهل محله باندې دیت کیږي،اوقسم نه ورکول کیږي وولي ته اوقیدکړای کیږي متکرترهغه پورې چې قسم واخلي اوکه عددپوره نه شونومکرریږي له موجوده کسانو څخه ترڅوچې پنځوس پوره شي،اوقسامة نشته پرماشوم باندې اولیوني اوښځه اومریي باندې،اونشته قسامة اونه دیت پرهغه مړي باندې چې پرهغه باندې هیڅ نښه نه وي یایې له پوزې وینې بهیدلې وي یاله خولې څخه له دبرې څخه ،خلاف له سترګو اوغوږونو څخه ،مقتول پیداشوپرحیوان باندې سپورچې له هغه سره ترمخ کشونکی شته یاترشاشړونکی شته یابل ورسره سپوردی نودهغه مړي دیت دهغه پرعاقله باندې کیږي .

**تشریح** :(۱)که په یوه محله کې مقتول پیداشواودامعلومه نه شوه چې چاداقتل کړی دی نودمقتول ولي به دمحلې له خلکو څخه پنځوس کسان دقسم اخیستلوپاره انتخابوي ځکه حق دیمین ولي لره حاصل دی لهذاانتخاب حق هم ولي لره حاصل دی اوظاهره ده چې دداسې خلکوانتخاب به کوي چې پرهغوئ باندې دقتل شبهه وي یابه دمحلې نیک خلک انتخابوي چې هغوئ ددروغوله قسم اخیستلولیرې اوسي په دې طریقه قاتل معلومیږي،بیاله دغوخلکو څخه هریوداسې قسم اخلي چې والله ! مادانه دی قتل کړی اونه ماته ددې قاتل معلوم دی ،بیاچې کله هغوئ قسم واخلي نوقاضي به هغوئ ته ددیت اداکولوحکم ورکوي چې دمقتول وینې له ناحق بهیدو څخه محفوظې شي .

(۲)که دمحلې په خلکوکې دمقتول ولي هم وي نوله هغه څخه به قسم نه اخیستل کیږي ځکه ولي مدعي دی اوپرمدعي باندې بیّنه دي قسم نشته لقوله ﷺ :البينة على المدعي واليمين على من انكر(پرمدعي باندې ګواهان دي اوڅوک چې منکروي پرهغه قسم دی ) .

(۳)بیاکه دمحلې په خلکوکې کوم چې ولي منتخب کړي وویوه له قسم اخیستلو څخه انکاروکړنوهغه به محبوس کړای کیږي ترڅوقسم واخلي ځکه په محله کې دقتل په وجه دمحلې والاؤته قسم ورکول دمقتول دورثهٔ حق دی لهذاکه یوڅوک له قسم څخه انکاروکړي نوقیدکړای کیږي به .

(۴)كه دمحلې دخلكو شمير پنځوسو ته نه ورسيدنو بيا دي له موجوده كسانو څخه مكرر قسم واخيستل شي تر څو پنځوس قسمونه پوره شي حتی كه چيرته يو نفر وونو له هغه څخه به پنځوس ځله قسم اخيستل كيږي ځكه داثابت بالسنة دی نو ترامكانه پوري يې تكميل واجب دی او چيرته چې نص وارد وي هلته دحكم په فائده باندي خبريدل شرط نه دی همدارنګه حضرت عمر ﷺ يو ځل دقسامت حكم وكړ چې كله يې دمحلې والاوو څخه قسم واخيست نو هغه نه ځلويښت قسمونه شول بيا ده ﷺ په دوئ كې له يوه نفر څخه مكرر قسم واخيست.

(۵)په قسامت كې ماشوم اوليونی نه داخليږي،همدارنګه پرښځه اومريي باندي هم قسامة نشته ځكه داكسان له اهل نصرت څخه نه دي حال داچې قسم پرهغو خلكو باندي كيږي چې اهل نصرت وي يعني قسامة پرهغو خلكو باندي دی كوم چې مدد كولای شي.

(۶)كه په يوه محله كې يوداسي مړی پيداشو چې دزخم يو نښان يادوهلو يادخفه كيدونه وونو بيا پرمحله والاوو باندي قسامة اوديت هيڅ شی نشته ځكه داسړی مقتول نه دی بلكې پخپل مرګ مړشوی دی ولی دهغه دمقتول كيدو هيڅ دليل نشته،نو كه دچاتر پوزه ياخوله يادُبره وينې بهيدلې وي نو دمحلې پرخلكو باندي قسامت اوديت هيڅ شی نشته ځكه له دغو ځايونو څخه وينه بې دچاد كاروائي په ناروغي وغيره سره وځي لهذاداهغه دمقتول كيدو دليل نه دی.

(۷)بخلاف عينه وأذنه اى بخلاف ما اذا سال الدم من عينه واذنه فان فيهما القسامة،يعني كه وينه دهغه له ستر ګو ياغوږو څخه وتلې وي نو دامقتول شمارل كيږي،ځكه عادةً داخبره معلومه شوې ده چې دمړي ترستر ګه ياغوږو وينه بهيدل هغه وخت راځي چې ديوژوندي له جانبه له هغه سره دفعل (وهلو ټكولو وغيره ) ارتكاب شوی وي.

(۸)كه يو مقتول پرآس يابل شي سپور موندل شي اوهغه حيوان يوچاترمخ كشاوه ياترشاورپسي ووډشړلو لپاره ياورسره سپور وونو په دغو دريوواړو صورتونو كې دهغه مقتول ديت ددغو كسانو پرعاقله باندي كيږي ځكه مقتول دهغه په قبضه كې دی داداسي دی لكه دهغه په كور كې چې پيداشي.

(۹)مَرَّت دَابَّةٌ عَلَيهَا قَتِيلٌ بَينَ قَريَتَينِ فَعَلَى اَقرَبِهِمَا (۱۰)وَاِن وُجِدَ فِي دَارِ اِنسَانٍ فَعَلَيهِ القَسَامَةُ وَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِه (۱۱)وَهِيَ عَلَى اَهلِ الخِطَّةِ دُونَ السُّكَّانِ وَالمُشتَرِينَ فَاِن لَم يَبقَ وَاحِدٌ مِنهُم فَعَلَى المُشتَرِينَ (۱۲)وَاِن وُجِدَ فِي دَارٍ مُشتَرَكَةٍ عَلَى التَّفَاوُتِ فَهِيَ عَلَى الرُّؤُسِ (۱۳)وَاِن بِيعَ وَلَم يَقبِض فَعَلَى عَاقِلَةِ البَائِعِ (۱۴)وَفِي الخِيَارِ عَلَى ذِي اليَدِ (۱۵)وَلَا يَعقِلُ عَاقِلَةٌ حَتَّى يَشهَدَ الشُّهُودُ اَنَّهَا لِذِي اليَدِ (۱۶)وَفِي الفُلكِ عَلَى مَن فِيهِ مِنَ الرُّكَّابِ وَالمَلَّاحِينَ (۱۷)وَفِي مَسجِدِ مَحَلَّةٍ عَلَى اَهلِهَا وَفِي الجَامِعِ وَالشَّارِعِ لَا قَسَامَةَ وَالدِّيَةُ عَلَى بَيتِ المَالِ (۱۸)وَيُهدَرُ لَو فِي بَرِّيَّةٍ اَو وَسَطِ الفُرَاتِ وَلَو مُحتَبَسًا بِالشَّاطِئِ فَعَلَى اَقرَبِ القُرَى.

**ترجمه**:يو حيوان تيرشو چې مړی پرې باروودووكليوترمنځ نوقسامة په دواړوكې چې كوم يو كلی نژدې وي پرهغه دی ،اوكه مقتول پيداشو ديوچاپه كوركې نو پرهغه باندي قسامة دی اوديت دهغه پرعاقله باندي كيږي، اوديت پراهل خطه باندي دی نه پراوسيدونكواوخريدارانو باندي اوكه چيرته له هغوئ څخه يوهم باقي نه وونو بيا پر خريدارانو باندي دی اوكه يې پيداكړه يوداسي مكان كې چې مشترك على التفاوت

وونو قسامة دسرونو پر شمیر باندي کیږي او که مکان خرڅ شوی وو او قبض شوی نه وونو دبائع پر عاقله باندي کیږي او په خیار کښ پر قابض باندي دی او دیت دي نه ورکوي عاقله تر هغه پوري چې ګواهي ورکړي ګواه چې دی قابض دی او که مقتول په کښتۍ کښ وونو پر هغو خلکو دی چې په کښتۍ کښ دي یعنې سواریان او ملاح کښتۍ وان او که دمحلې په مسجد کښ نو دمحلې پر خلکو باندي کیږي او په جامع مسجد کښ یا په عامه لاره کښ وونو بیا قسامة نشته او دیت پر بیت المال باندي کیږي او هدر کیږي که چیرته مقتول په یوه ځنګله کښ یا په وسط فرات کښ وو او که تړل شوی وو په کناره پسي نو پر نژدي کلي باندي کیږي.

**تشریح** :(۹)که یو آس یا بل حیوان چې مقتول پر تړلی وو ددوو کلیو ترمنځ پیدا شو او له هغه سره هیڅوک نه وونو چې کوم کلي ته ډیر نژدي وي قسامة او دیت پر هغه باندي کیږي لانه ﷺ اتی بقتیل وجدبین قریتین فامران یذرع فوجد احدهما اقرب بشبر فقضی علیهم بالقسامة وهکذا کتب عمر ﷺ حین کتب الیه فی القتیل بین قریتین (یعنې نبي کریم ﷺ ته یو داسې مقتول راوړل شو چې ددوو کلیو ترمنځ پیدا شوی وو نو هغه ﷺ ددوو کلیو ترمنځ دځمکې ناپولو حکم ورکړه ناپولو سره معلومه شوه چې یو کلی فقط یوه لویشت دهغه بل کلي په نسبت نژدي دی نو هغه ﷺ دقسامة حکم دهغه کلي پر خلکو باندي وکړ، او همدارنګه فیصله حضرت عمر ﷺ کړي وه چې کله له هغه ﷺ څخه پوښتنه شوې وه ) او که په نژدي والي کښ دواړه کلي سره برابر وونو بیا پر دواړو باندي کیږي.

(۱۰)که چیرته مقتول دیو چا په سرای کښ پیدا شونو قسامة دسرای پر مالک باندي کیږي ځکه سرای دهغه په قبضه کښ دی او دیت دهغه پر عاقله باندي کیږي ولې دهغه قوت او نصرت په عاقله سره دی.مګر شرط دادی چې دمقتول ولي به دسرای په مالک باندي دقتل دعوی کوي که یې په بل چا باندي دقتل دعوی وکړه نو بیا دسرای پر مالک باندي قسامة نشته.

(۱۱)قسامة پر اهل خطه باندي دی که څه هم له هغوئ څخه یو پاتی وي په مکان کښ پر او سیدونکو (کرایه دارانو او عاریة اخیستونکو ) او مشتریانو باندي نشته ځکه صاحب خطه دمددلپاره مختص دی کرایه دارنه دی ځکه دمالک سکونت لازم او دائمي دی او صاحب خطه اصیل دی او مشتري دخیل دی او ولایت دتدبیر پر اصیل دی دخیل دهغه مزاحم نه شي کیدای نو تقصیر له اهل خطه څخه دی دا دطرفینو رحمهما الله مسلک دی.دامام ابو یوسف رحمه الله په نزد پر ټولو باندي دی او که له اهل خطه ؤ څخه یو اځي یو په محله کښ پاته وونو قسامة او دیت پر هغه باندي کیږي، لماقلنا.لیکن که له اهل خطه ؤ څخه یو هم پاته نه وونو بیا مشترین ذمه دار کیږي قسامة او دیت پر مشترینو (اخیستونکو ) باندي کیږي ځکه تر دوئ چې مقدم وو هغوئ او س نشته نو ولایت خالص ددوئ پاتی شو ځکه نو ذمه داري هم پر دوئ راځي.

**فائده** :په مذکورصورت کښ دطرفینو رحمهما الله قول راجح دی لمافی الدّرالمختار:(وهی ) الدیة والقسامة (علی اهل الخطة)قال العلامة ابن عابدین رحمه الله :قوله دون السکان) کالمستاجرین والمستعیرین فالقسامة علی اربابها وان کانوا غیبا،تاترخانیه .............الخ(الدّرالمختار مع الشامیة:۵/۴۳۷)

**فائده** :له اهل خطه څخه مراد هغه خلک دي چې له وخته دځمکې مالکان وي له کوم وخت نه چې امام ښار فتح کړی وي او ځمکه یې دمجاهدینو ترمنځ تقسیم کړي وي هر یوه ته یې دهغه خپله حصه لیکلې ورکړي وي.

(۱۲)اوكه مقتول په يوداسي مكان كې پيدا شوچې هغه دڅوكسانوترمنځ مشترک وواودشريكانومقدارملكيت هم مختلف وومثلامذكورمكان نصف ديوه وواوثلث دبل ووسدس ددريم وونوحصوته اعتبارنه وركول كيږي بلكې درؤسودشميرمطابق پردريوواړوشريكانوباندي ديت برابرتقسيميږي ځكه دتدبيرپه ولايت كې ټول برابردي .

(۱۳)كه يوچامكان اخيستى وواوقبض كړى يې لانه ووچې په هغه كې يومقتول پيداشونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدديت دبائع پرعاقله باندي كيږي ولى دامام صاحب رحمه الله په نزدديت مداريرقبضه باندي دى اوقبضه تراوس دبائع قائمه ده نوديت هم دبائع پرعاقله باندي كيږي اودصاحبينورحمهماالله په نزدديت دمشتري پرعاقله باندي راځي ځكه دصاحبينورحمهماالله په نزدمداردضمان ملكيت دى اوملكيت مشتري لره حاصل دى لهذاديت دمشتري پرعاقله باندي كيږي .

(۱۴)قوله وفي الخيارعلى ذى اليداى وفى البيع بالخيارعلى عاقلة ذى اليد،يعنې كه دعاقدينو څخه ديوه لپاره دري ورځې خيارشرط وونودامام صاحب رحمه الله په نزدديت پرهغه چاواجبيږي دچاپه قبضه كې چې په دغه وخت كې مكان دى ،دصاحبينورحمهماالله په نزدمداريرملكيت دى اوهغه غيرمحقق دى لهذاآينده چې داسراى دچاملک ته ځي ديت دهغه پرعاقله باندي واجبيږي .

**فائده** :په دواړومسئلوكې دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار:(وان بيعت ولم تقبض) حتى وجدفيهاقتيل (فعلى عاقلة البائع وفى البيع خيارعلى عاقلة ذى اليد) خلافالهماوقال العلامة ابن عابدين رحمه الله :فالحاصل انه اعتبراليدوهمااعتبراالملک،وان وجدوالاتوقف على قرارالملک(الدرالمختارمع الشامية:۵/۳۴۷)

(۱۵)كه په يوه مكان كې مقتول پيداشونودقاعدې مطابق دمكان دخاوندپرعاقله باندي ديت كيږي كه عاقله انكاروكړچې دامكان دده دي سري مِلک نه دى بلكې هغه په عاريةً يااجارةً اخيستى دى نوترڅوچې گواه گواهي ورنكړي چې دامكان واقعي دده دي قبض كوونكي مِلک دى پرعاقله باندي ديت نه كيږي ځكه دقبض كوونكى مالک كيدل ضروري نه دى دااحتمال موجوددى چې دامكان دقبض كوونكي مِلک نه وي ځكه ترڅوچې دده مِلک په گواهانوسره ثابت نه شي پرعاقله باندي ديت نه كيږي .

(۱۶)قوله وفى الفلک اى ان وجدقتيل فى الفلک الخ،يعنې په كښتۍ كې يومقتول سرى پيداشونوقسامة دكښتۍ پرملاحينواوپرسواريانوباندي كيږي كه يې هغوئ مالكان وي اوكه يې مالكان نه وي ځكه كښتۍ دهغوئ په قبضه كې ده دادامام ابويوسف رحمه الله پرمسلک باندي ظاهردى ولى دهغه پرمسلک قسامة پرمالكانو اوسكانو دواړو باندي دى اودطرفينورحمهماالله په نزددكښتۍ مالک كيدل ځكه ضروري نه دى چې كښتۍ گرځي راگرځي لهذاپه هغې كې قبض معتبردى مِلک نه دى معتبرلكه په حيوانانوكې چې قبض معتبردى .

(۱۷)قوله وفى مسجدمحلةاى ان وجدقتيل فى مسجدمحلة،يعنې كه مقتول ديوې محلې په مسجدكې پيداشونودهغه مسجدپرخلكوباندي قسامة واجبيږي ځكه دهغه مسجددتدبيرولايت همدغوخلكولره حاصل دى،اوكه په جامع مسجدياعامه لاره باندي مقتول پيداشونوپه هغه كې قسامة نشته ځكه جامع مسجدياعامه لاره

خودتولو خلكولپاره دي په هغه كې دچاخصوصيت نشته اوددغه مقتول ديت پربيت المال باندي واجبيږي ځكه بيت المال دعامو مسلمانانو دمصائبو لپاره دی.

(۱۸)كه مقتول په يوه ځنګله كې پيداشوچې نژدې هيڅ آبادي نه وه نو دهغه مقتول هيڅ شی نشته ځكه ځنګل دهيچاپه قبضه كې نه دی اوچې كله دی په داسې ځای كې پيداشوچې هلته هيڅوک مددګار دده دمددلپاره نه شي رسيدلای نوهيڅوک قصوروالانه شي كيدای،كه مقتول په وسط فرات (ياپه يوه بله لويه واله كې چې دچاملک نه وه ) پيداشوچې په هغې كې اوبه بهيدلې نوهغه هم هيڅ تاوان نه لري،ځكه داډول دريابونه (سندونه) دهيچاپه قبضه اوملک كې نه دي، كه مقتول ديودرياب په كناره كې اينبودل شوی وونوبياچې دغه درياب ته كوم كلي ترټولونژدې وي قسامة اوديت پرهغه كلي باندي كيږي ځكه ددرياب داډول كناره دنژدې خلكوپه قبضه كې ده اوددې ځای دنصرت لپاره همداخلک مختص دي.

(۱۹)وَدعوى الوليّ على واحِدٍ من غيرِ أهلِ المَحَلَّةِ يُسقِطُ القَسامةَ عَنهم وَعَلى مُعيّنٍ مِنهم لا(۲۰)وَإن التَقى قومٌ بِالسّيوفِ فاجلَوا عَن قَتيلٍ فَعلى أهلِ المَحَلَّةِ إلّا أن يَدّعِيَ الوليّ على أولئكَ أو على مُعيّنٍ مِنهم(۲۱)وَإن قالَ المُستحلَفُ مِنهم قَتلَه زيدٌ حَلَفَ بِاللهِ ما قَتلتُ ولا عَرفتُ له قاتلاً غيرَ زيدٍ (۲۲)وبطلَ شَهادةُ بَعضِ أهلِ المَحَلَّةِ عَلى قَتلِ غيرِهم أو واحِدٍ مِنهم

**ترجمه**:اودعوه كول دولي پريوچاداهل محلې نه غيرنوساقطيږي قسامة له اهل محلې ځخه اوپريوه معلوم چاداهل محلې نه كيږي،اوكه يولوی قوم سره وجنګيدل په توروبياسره ولاړل مقتول يې پرينبودنو قسامة پراهل محلّه باندي كيږي مګرداكه ولي دعوه وكړه دجنګيدونكو خلكوځخه په يوه معلوم چاباندي اوكه قسم والاوويل له دوئ ځخه چې دامقتول زيدقتل كړی دی نوهغه ته قسم وركول كيږي چې والله مانه دی وژلی اونه ماته دهغه قاتل معلوم دی له زيدنه سوا،اوباطله ده داهل محلې ګواهي دغيرپرقتل باندي ياله دوئ ځخه ديوه معلوم چاپرقتل باندي.

**تشريح**:(۱۹)كه دمقتول ولي دغيرمحلې پرخلكودعوی وكړه نوداداعوی له اهل محلّه ځخه قسامة ساقطوي ځكه پراهل محله باندي قسم اوديت دمقتول دولي ددعوی په وجه لازميږي چې كله هغه پرغيرباندي دعوی وكړه نوله دوئ ځخه قسامة ساقطيږي،اوكه ولي دمحلې دخلكوځخه پريوه معلوم چاباندي دعوی وكړه نوبياله اهل محلې ځخه قسامة نه ساقطيږي ځكه دمقتول ولي پخپله دعوی كې داهل محلې ځخه تجاوزنه دی كړی بلكې په هغوئ كې يې تعين كړی دی نوداپرهغوئ دلزوم قسم سره منافي نه دی.ددواړوصورتونوترمنځ دفرق وجه داده چې پراهل محلّه باندي دقسامت واجب كيدل ددې خبرې دليل دی چې قاتل له دوئ ځخه دی اودولي پرغيرمحله والاؤباندي دعوی كول ددې خبرې بيان دی چې قاتل له هغوئ ځخه نه دی حال داچې اهل محلّه به هغه وخت دديت تاوان پرسرباروي چې كله قاتل له دوئ ځخه وي ځكه په دې صورت كې داخلک تقديراً قاتل دي ولی دوئ دقاتل مخه نه ده نيولې.

(۲۰)كه ديوه قوم خلک دعصبيت پربنيادپخپل منځ كې په توروسره وجنګيدل چې كله دوئ له هغه ميدان ځخه ولاړل هلته يومقتول پيداشونودهغه ديت دمحلې پرخلكوباندي كيږي ځكه مقتول ددوئ ترمنځ پيداشوی دی حال داچې ددې علاقې حفاظت پردوئ لازم وو،البته كه دمقتول ولي دعوی

پر جنګيدونکو خلکو باندي په هغو کې په يوه معلوم چاباندي وکړه نو بيا دمحلې پر خلکو باندي قسامة او ديت نه لازميږي.ولي دمدعي قول دخپل حق په باره کې حجت دی لهذا دګواه دوړاندي کولو بغير جنګ کوونکي او دمحلې خلک بري کيږي .

(۲۱)که مستحلف (چاته چې قسم ورکول کيږي) وويل چې دامقتول فلان سړي مثلا زيد قتل کړی دی نو دهغه داخبره معتبره نه ده ځکه ددي خبرې په ذريعه خصومت له خپل ځان څخه ليري کول غواړي لهذا هغه ته قسم ورکول کيږي قسم به داسي کوي چې والله مانه دی قتل کړی او نه زه دهغه قاتل سوا دزيد نه پيژنم .

(۲۲)په کومه علاقه کې چې مقتول پيدا شوی دی که دهغې علاقې دووکسانو ګواهي ورکړه چې فلان سړی (چې ددی کلي نه دی)ددي مقتول قاتل دی نو دهغوئ داګواهي نه قبليږي ځکه داتهمت موجود دی چې دوئ قسامة او ديت له خپل ځانه اړوي او دمتهم ګواهي نه قبليږي.همدارنګه که هغوئ ددي علاقې پر يو معلوم چاباندي ګواهي ورکړه چې ددي علاقې فلان سړي داقتل کړی دی نو هم ددوئ ګواهي نه قبليږي ځکه په دغه صورت کې هم داتهمت موجود دی چې دوئ له خپل ځان څخه قسامت او ديت دفع کول غواړي .

## كتاب المعاقل

### داکتاب دمعاقل په باره کې دی

معاقل .دمعقله جمع ده دديت په معنی .دلته په عبارة کې مضاف مقدر دی ای كتابُ اهلِ المعَاقِلِ.ځکه دديت بيان مخکي تير شوی دی دلته مقصد دمن تجب عليهم الدية،بيان دی .

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې په ماقبل کې دقتل خطاء موجب داسي بيان شوی دی چې پر عاقله باندي ديت واجبيږي مګر دابيان نه دی شوی چې عاقله چاته ويل کيږي څه احکام يې دي؟ نو مصنف رحمه الله دغه تفصيلات دکتاب المعاقل، ترعنوان لاندي بيان کړي دي .

(۱)هي جمع معقلة وهي الدية (۲) كل دية وجبت بنفس القتل على العاقلة (۳)وهي أهل الديوان ان كان القاتل منهم (۴)وتوخذ من عطاياهم في ثلث سنين فان خرجت العطايا في اكثر من ثلث او اقل اخذ منها (۵)ومن لم يكن ديوانيا فعاقلته قبيلته تقسم عليهم في ثلث سنين لايوخذ من كل في كل سنة الا درهم أو درهم وثلث فلم يزد على كل واحد من كل الدية في ثلث سنين على اربعة

**ترجمه** :دادمعقله جمع ده او داديت دی،هرهغه ديت چې واجب وي په نفس قتل سره هغه پر عاقله باندي کيږي.او هغه به دفتروالاوي که قاتل له دوئ څخه وو او اخيستل کيږي به په دريو کالوکي ددوئ له عطاياؤ څخه او که ووتې عطايا تر دريو کالو په زياته موده کې يا په کمه موده کې نو بيا اخيستل کيږي له دوئ څخه .او څوک چې ددفتروالانه وو نو دهغه عاقله دهغه قبيله ده پر هغوئ تقسيميږي په دريو کالوکي نه اخيستل کيږي له هريوه څخه په هر کال کې مګر يو درهم يا يو درهم او ثلث درهم نه زياتيږی پر هريوه باندي له کل ديت څخه په دريو کالو کې تر څلورو درهمونو .

**تشريح** :(۱) معاقل معقلة(بفتح الميم وضم القاف ) جمع ده په معنی دديت سره.او ديت ته معقله ځکه ويل کيږي چې دادعقل څخه ده او عقل په معنی دمنع کولو سره نو ديت هم وينې دبهولو څخه منع کوي،او انساني

عقل ته هم ځکه عقل وايي چې عقل انسان دقبائحو څخه راګرځوي اوعاقله دقاتل نصرت کوونکوته اوعقل (يعني ديت) اداکوونکوته ويل کيږي .

(۲)هرهغه ديت چې محض دقتل په وجه لازم وي لکه په شبه عمدا وقتل خطاء کې نو هغه پرعاقله باندي کيږي ځکه حضرت عمر ﷺ دصحابه کرامورضی الله عنهم په موجودګي کې دقتل خطاء دديت حکم پرعاقله باندي کړی وو ،داقيدچې محض دقتل په وجه لازم شوی وي،احترازي قيددی په دي سره احترازراغی دهغه صورت نه په کوم کې چې ديت محض دقتل په وجه سره نه بلکې دصلح په وجه لازم شوی وي ځکه ديت واجب بالصلح پرقاتل باندي لازميږي پرعاقله باندي نه لازميږي .

(۳)دقاتل عاقله دهغه اهل ديوان (ديوان هغه رجسترته ويل کيږي په کوم کې چې دوظيفه خورويافوځيانونومونه درج وي) کيږي په دي شرط چې قاتل له اهل ديوان څخه وي ځکه حضرت عمر ﷺ چې کله دفترونه (رجسترونه) مقررکړل نودهريوه ديت يې دهغه پرديوان والاومقررکې،همدارنګه حضرت عمر ﷺ دصحابه کرامورضی الله عنهم په مجمع کې داکارکړی وو له صحابه کراموړضی الله عنهم څخه يوه هم ردنه دی کړی نودادصحابه کراموړضی الله عنهم څخه اجماع ده پردي کارباندي.همداوجه ده چې علماؤفرمايلي دي چې که په دي زمانه کې يوداسي قوم وي چې دهغوئ ترمنځ مددګاري دکاروکسب په ذريعه وي نوهغه دکسب والادده عاقله کيږي .

**فائده** :دعاقله مدارپرتناصردی په دي زمانه کې دتناصرڅوصورتونه دي مثلادسياسي جماعتونو.اهل حرفت. صنعتکارانو. تاجرانو .مزدورانواونوروتنظيمونه،لهذاکه قاتل دکوم سياسي جماعت يايوتنظيم کارکن وي نودهغه عاقله داجماعت ياتنظيم کيږي،اوکه قاتل له اهل ديوان څخه نه وواودکوم تنظيم ياسياسي جماعت کارکن هم نه وونودهغه عاقله دهغه عصبات (قريبان) دي اوپرهغوئ باندي وجوب دديت په ترتيب دارث دی . (جديدمعاملات کی شرعی احکام :۳/ ۱۹۶

(۴)اوديت دعاقله له داسي مال څخه اخيستل کيږي چې دوئ ته دعطيه په توګه (هغه مال چې دډفترو الاووته په کال کې يوځل يادوه ځله ورکول کيږي اورزق هغه دی چې مياشتنی ورکول کيږي) ورکول کيږي اوپردوئ دحکم کيدووروسته ديت په دريوکالوکې له دوئ څخه اخيستل کيږي همداتقديرله پيغمبر ﷺ اوحضرت عمر ﷺ څخه مروي دی ،بياکه دغه عطاياعاقله ته دراتلونکيودريوکالونه په يوه کال کې ورکول شي نوکل ديت له هغوئ څخه اخيستل کيږي اوکه ددريوکالونوعطايامثلاپه شپږوکالوکې ورکول شي نوپه شپږوکالوکې به اخيستل کيږي ځکه په عطاياؤکې ديت دتخفيف لپاره واجب کړای شوی دی لهذاچې هرکله عطاياحاصليږي ديت هم هغه وخت اخيستل کيږي .

(۵)که قاتل له اهل ديوان څخه نه وونودهغه عاقله دهغه نسبي قبيله ده ځکه دده نصرت له هغوئ څخه دی اوپه عاقله کيدوکې نصرت معتبردی اودادیت پرقبيله باندي په دريوکالوکې تقسيميږي يعني هرکال فی نفريودرهم يايودرهم اوثلث درهم په دغه حساب سره په دريوکالوکې له هرچاڅخه ترڅلورودرهمونوزيات نه

اخيستل کيږي بلکې يادري درهمو وصوليږي اويا زيات ترزيات څلورکيږي. داهغه وخت چې کله عاقله کم وي که عاقله زيات وونوله دي څخه هم کميږي .

(٦) فان لم تتسع القبيلة لذلك ضم اليهم اقرب القبائل نسبا على ترتيب العصبات (٧) والقاتل كاحدهم (٨) وعاقلة المعتق قبيلة مولاه (٩) ويعقل عن مولى الموالاة مولاه وقبيلته (١٠) ولا تعقل عاقلة جناية العبد والعمد وما لزم صلحا او اعترافا الا ان يصدقوه (١١) وان جنى حر على عبد خطاء فهي على عاقلته

**ترجمه** :که په قبيله کې ددي توان نه وونوورضم دي کړای شي دنسب په اعتبارنژدي قبائل دعصباتوپه ترتيب سره. اوقاتل هم ددوئ ديوفرد په حيث شمارل کيږي اودآزادشوي عاقله دهغه دمولى قبيله ده اوديت به ورکوي دمولى الموالات له طرفه دهغه مولى اودمولى قبيله اوتاوان به نه ورکوي عاقله دمريي دجنايت اودجنايت عمدا ودهغه چې لازم شوى وي په صلح سره ياپه اعتراف سره مګرداکه عاقله دهغه تصديق وکړي اوکه جنايت وکړآزادپرمريي باندي خطاءً نوداتاوان دهغه پرعاقله باندي کيږي .

**تشريح** :(٦)که دقبيله والاکم وودهريوه څخه په کال کې ديوه درهم په اخيستلوسره په دريوکالوکې ديت نه پوره کيده يابه دعصباتوپه ترتيب سره پرنوروقبيلوتقسيميږي چې دهغې قبيلې سره نژدي نسبي تعلق لري دعصباتوله ترتيب څخه مراد داچې اول به دقاتل دقبيلې خلک له ورونوسره ګډيږي بياله وروروسره که په دوئ سره هم حساب پوره نه شونوبيادددوئ له آکاګانوسره که په هغوئ سره هم پوره نه شونوبيادآکاګانوپه زامنوسره .

(٧)په قتل خطاء کې قاتل هم دديت په ادائيګي کې په عاقله کې داخليږي دديت په ادائيګی کې دعاقله والاؤ څخه ديوه فردپه حيث شمارل کيږي ځکه قاتل حقيقةً فاعل دى نودقاتل خارجول دنوروموا خذه کول هيڅ معنى نه لري. په داسي حال کې چې امام شافعي رحمه الله فرمايي چې پرقاتل باندي له ديت څخه هيڅ واجب نه دي ځکه پرقاتل باندي کل ديت نشته نوبعض هم نه کيږي ولى جزء له کل څخه نه مخالف کيږي .احناف رحمهم الله جواب ورکوي چې په کل ديت واجبيدوسره قاتل پريشان اوبربادېږي چې په يوه جزء کې داقباحت نشته .

(٨)يعني دمعتق (آزادشوي مريي) عاقله دهغه دمولى قبيله ده ځکه دهغه نصرت په دوئ سره دى اومؤيدېې داحديث شريف دى :مولى القومِ مِنهُم (يعني ديوقوم آزادکرده مريى دهغه قوم سړى شمارل کيږي)

(٩)که چاله نوروسره عقدموالات کړى وونودهغه دجرم خطاء په صورت کې دهغه عاقله دهغه مولى اودمولى قوم ګڼل کيږي ځکه داهم دولاء العتاقة په ډول وَلاء ده چې په کې ديوبل مددکول کيږي (عقدموالات دي ته وايي چې يوڅوک له بل چاسره دامعاهده وکړي چې که ماکوم جنايت وکړنودهغه تاوان پرتاباندي دى اوکه زه مړشوم نوزمااوارث به ته يې) .

(١٠)ديوچاعاقله دهغه دمريي دجرم ديت نه اداکوي اودهغه قتل ديت هم پرعاقله نه دى کوم قتل چې په قصداً کړى وي بيادمقتول بعض ورثه هغه معاف کړى وي په کوم سره چې دنوروو ارثانو حق قصاص په مال

سره تبديليږي نوداما ل دقاتل عاقله نه برداشتوي اوداسي ديت هم پرعاقله نه دی کوم چې پرمجرم باندي دصلح کولوپه وجه لازم شوی وي،همدارنګه که مجرم جرم وکړيايې پرخپل ځان دجرم اعتراف وکړچې داجنايت ماکړی دی نوپرده باندي چې کوم ديت راځي هغه هم پرعاقله باندي نه بلکې پرمجرم باندي راځي ځکه حضرت ابن عباس رضی الله عنهمافرمايي چې دقتل عمدديت به عاقله نه اداکوي اونه دصلح اونه داقرارکولواونه دمملوک دجرم،البته که دجنايت کوونکي په اقرارکولوباندي عاقله هم دهغه تصديق وکړي نوبيابه عاقله داديت ورکوي ځکه تصديق دهغوئ له طرفه اقراردی اوالمرء يوخذباقراره .

(۱۱)که يوه آزادسړي دبل چاپرمريي باندي جنايت وکړخطاءً يې هغه قتل کړنودهغه ديت دجنايت کوونکي پرعاقله باندي دی ځکه دادځان عوض دی اودځان عوض دقتل خطاء په صورت کې پرعاقله دی ،البته که چاپرمريي باندي تردي کم درجه جنايت وکړنودهغه عاقله يې نه برداشتوي ځکه دادجنايت علی الاموال په درجه کې دی .

## كتاب الوصايا

### داكتاب دوصيتونوپه بيان کې دی

وصايادوصيةٍ جمع ده اووصية اسم په معنی دمصدردی ثم سُمي بِه المُوصی بِه،اوپه اصطلاح دشريعت کې وصيت هغه تمليک دی چې مابعدالموت طرف ته دتبرع په طريقه مضافيږي که تمليک عين وي اوکه تمليک دين يامنافع وي .

وصيت کوونکي ته موصِي وايي اوچاته چې وصيت کيږي هغه ته وصی اوموصی اليه .اودچاپاره چې وصيت کيږي هغه ته موصی له اوپه کوم شي چې وصيت کيږي هغه ته موصی به ويل کيږي.

له ماقبل سره يې مناسبت دادی چې عموماً انسان دمرګ په وخت وصيت کوي اومرګ دانسان آخري مرحله ده ځکه مصنف رحمه الله دژوندتول معاملات بيان کړل په آخرکې يې وصيت بيان کړی دی .

دوصيت مشروعيت په کتاب الله اوسنت رسول ﷺ سره ثابت دی ،اماالکتاب فقوله تعالی:(مِن بعدِ وَصيةٍ تُوصُون بِها أَو دين)

واماالسنة فماروی ان سعدبن ابی وقاص رضي الله عنه قال مرضت مرضااشرفت علی الموت فعادني رسول الله ﷺ فقلت يارسول الله ان مالي کثيروليس يرثني الاابنت لي واحدة أفاوصي بمالي کله؟قال لاقلت النصفه؟قال لاقلت فبثلثه قال نعم والثلث کثيرانک ياسعدان تدع ورثتک اغنياء خيرمن ان تدعهم عالة يتکففون الناس.

(۱)الوصية تمليک مضاف الی مابعدالموت(۲)وَهِيَ مستحبة وَلاتصِحُ بِمازادعلی الثلث وَلالقاتِله(۳)ووارثه اِن لَم تجِزِ الوَرثةُ(۴)وَيوصی المُسلِم للذمي وبالعکس(۵)وقبولها بعدموته وَيبطل رَدُهاوقَبولُهافي حياته(۶)وَندب التقص من الثلث(۷)وَملک بِقبوله(۸)الا اَن يموت الموصی له بعدموت الموصی قبل قبوله(۹)وَلاتصِحُ وصيةُ المَديون اِن کان دينه محيطاًوالصبی والمکاتب(۱۰)وتصحُ وَصيةُ للحمل وَبه اِن وَلدت لاقل من وَقتِ الوصيةِ وَلاتصِحُ الهبةُ له

**ترجمه** :وصيت يوداسي تمليک دی چې مابعدالموت طرف ته مضاف دی .اودامستحب دی اوصحيح نه دی چې ترثلث زائدوي اونه دخپل قاتل لپاره اونه دخپل وارث لپاره که اجازه ورنه کړي وارثان اووصيت کولای شي مسلمان دذمي لپاره اوعکس دهغه اودهغه قبليدل دموصي له مرګ وروسته کيږي اوباطل دی

دهغه ردول اوقبلول دهغه په ژوند کې او مستحب دی تر ثلث کم وصیت کول او مالک ګرځي موصی له دهغه په قبلولو سره. مګر داکه موصی له مړشو د موصي تر مرګ وروسته تر قبلیدو مخکې. اوصحیح نه دی وصیت دمقروض که چیرته دهغه دین محیط وي او د ماشوم او د مکاتب او صحیح دی وصیت د حمل لپاره او په حمل سره که پیدا شو د وصیت له وخته څخه په اقل موده کې او صحیح نه ده هبه د حمل لپاره.

**تشريح** :(۱) وصايا. د وصيةٍ جمع ده. وصيةٌ اسم مصدر دی په اصطلاح د شريعت کې وصية هغه تمليک دی چې مابعد الموت طرف ته د تبرع په طريقه مضاف وي که تمليک د عين وي او که تمليک د دين وي يا تمليک د منافع وي. څرنګه چې په وصيت کې تمليک د مالکيت د زوال زماني ته مضافيږي څکه نو قياس خو داوه چې دا بايد جائزنه وای مګر په کتاب او سنت سره دهغه جواز ثابت دی قال الله تعالى :( فإن كانوا أكثر من ذلك فهم شركاء في الثلث من بعد وصية يوصى بها أو دين) پس که تر هغه زيات وارثان وونو هغوئ په ثلث کې سره شريکان کيږي له وصيت وروسته ياله دين اداکيدو وروسته) وقال ﷺ :ان الله تصدق عليكم بثلث اموالكم في آخر اعماركم زيادة لكم في اعمالكم تضعونها حيث شئتم (الله تعالى صدقه کړې ده پر تاسو باندې ستاسې د مال په ثلث سره ستاسې د عمرونو په آخر کې ستاسې د اعمالو د زيات په غرض تاسې هغه مصرف کړئ چيرته چې موخوښه وي ).

(۲) وصيت واجب نه دی بلکې زيات تر زيات مستحب دی (په دې شرط چې د موصي پر ذمه باندې د الله تعالى کوم واجب حق پاته نه وي) څکه وصيت د هبې په شان تبرع ده او تبرعات واجب نه دي. د ټولې ترکه تر يوه ثلث په زيات سره وصيت کول هم جائزنه دی څکه تر يوه ثلث زيات د وارثانو حق دی مګر داکه وارثان اجازه ورکړي څکه د وارثانو د حق په وجه تر ثلث زيات وصيت ممنوع شوی وونو دوئ د خپل حق د ساقطولو اختيار لري. همدارنګه د قاتل لپاره وصيت کول جائزنه دی که عمدًا يې قتل کړی وي او که يې خطًا. لقوله ﷺ :لاوصية لقاتل (د قاتل لپاره وصيت نشته ) همدارنګه که قاتل موصي قتل کړي غواړي چې ژر تر ژره مال يوسي او حال داچې شريعت دا فيصله کړې ده چې دی به مال د موصي تر مرګ وروسته وړي لهذا دی د ميراث په شان له وصيت څخه هم محروم کړای شوی دی.

(۳) قوله ووارث. ای لاتصح الوصية لوارث. يعني وارث لره وصيت جائزنه دی لقوله ﷺ :ان الله اعطى كل ذي حق حقه فلاوصية لوارث (يعني الله تعالى هر حقدار ته حق ورکړی دی نو د وارث لپاره وصيت نشته ) البته که چه د وارث لپاره وصيت وکړي او د موصي له مرګه وروسته ټولو وارثانو (په دې شرط چې وارثان به ټول بالغان وي ) دهغه اجازه ورکړه نو بيانافذ کيږي څکه د ورثه ؤ د حق په وجه وارث لره وصيت ممنوع وونو دوئ د خپل حق د ساقطولو اختيار لري.

(۴) يعني مسلمان لره جائزه ده چې د ذمي لپاره وصيت وکړي او ذمي لره جائزه ده چې د مسلمان لپاره وصيت وکړي يعني د اوصيتونه صحيح او نافذيږي څکه ذمي د عقد ذمه په وجه په معاملاتو کې له مسلمانانو سره برابر شوی دی نو څرنګه چې په ژوند کې له جانبينو څخه تبرع کول جائزه ده همدارنګه د مرګ په حالت کې هم جائزه ده.

(۵)دوصیت قبلولو اعتبار دموصي له مرګه وروسته دی ځکه دهغه دثبوت وخت دموصي له مرګ وروسته ده که موصی له دموصي په ژوند کې وصیت قبول کړي یایې رد کړي نو دا باطل دی یعني اعتبار نه لري.

(۶)که څوک غواړي چې وصیت وکړي نو مستحب دادی چې دکل ترکه تریوه ثلث کم وصیت وکړي که وارثان غنیان وي اوکه فقیران وي ځکه ترثلث په کم وصیت کولو کې له خپلو قریبانو سره داسې صله رحمي ده چې هغه خپل څه مال ددوئ لپاره پرېښود، اوکه یې دبشپړثلث وصیت وکړنو څرنګه چې هغه خپل حق پوره وصول وکړ ځکه دده له طرفه هیڅ صله رحمي یا احسان پاته نه شو.

(۷)یعنې موصی له (دچالپاره چې وصیت شوی دی) دموصی به (هغه شی چې وصیت په شوی دی) هغه وخت مالک ګرځي چې کله دموصي له مرګ وروسته دی هغه قبول کړي ځکه وصیت دجدید ملک اثبات دی اوهیڅوک دبل چا ملک دخپل ځان لپاره نه شي ثابتولای مګرکه دی هغه قبول کړي ځکه دموصی له قبلول ضروري دی.

(۸)البته یوه مسئله داسې ده چې په هغې کې موصی به دموصی له دقبلید وبغیر دهغه په ملک کې راځي هغه داده چې موصي وصیت وکړي مړشي بیاموصی له هم دموصی به ترقبلید ومخکي مړشي نو په دغه صورت کې استحساناموصی به دموصی له دقبلید وبغیر دهغه په ملک کې داخلیږي،یعنې دموصی له دوارثانو په ملک کې داخلیږي.وجه داستحسان داده چې دموصي له جانبه عقدوصیت داسې پوره شوی دی چې اوس فسخ کیدای نه شي اوتوقف خالص دموصی له دحق په وجه پاته ووچې کله موصی له مړشونو داشی دهغه په ملکیت کې داخل شولکه په بیع کې دمشتري لپاره خیارشرط وي اومشتري تراجازه مخکې مړشي.

(۹)قوله والمدیون والصبی والمکاتب ای لاتصح وصیة الصبی ولاوصیة المکاتب، که یو چا وصیت وکړاو څومره قدرچې له ده سره مال شته هغومره دده پرذمه دخلکو قرضی دي نو دا وصیت دده نه جائزکیږي ځکه تروصیت قرض مقدم دی ځکه قرض اداکول فرض دی اووصیت تبرع ده ،البته که قرض غوښتونکو قرض معاف کړنو بیاهم دموصي وصیت نافذیږي ځکه اوس پرده باندې قرض نه دی پاتی،اوکه نابالغ ماشوم وصیت وکړنو دهغه داوصیت صحیح نه دی ځکه وصیت محض تبرع ده اوماشوم دتبرعاتو اهل نه دی لهذاماشوم نه دوصیت دتنجیزمالک ګرځي اونه یې دتعلیق ،همدارنګه دمکاتب وصیت هم صحیح نه دی که څه هم هغه دومره قدرمال پرېږدي مړشي چې دوصیت لپاره کافي وي ځکه دمکاتب مال تبرع نه شي قبلولای.

(۱۰)دحمل لپاره وصیت کول جائزدی مثلاداسې ووایې چې دفلانی ښځې په خیټه کې چې کوم ماشوم دی دهغه لپاره زرروپۍ وصیت کوم نوداجائزدی،همدارنګه په حمل سره دیوچالپاره وصیت کول هم جائزدی مثلاکوم شی چې زمادفلانی منځې په خیټه کې دی زه په هغه سره دزیدلپاره وصیت کوم نوداجائزدی، مګرشرط یې دادی چې دوصیت له وخته څخه به ترشپږومیاشتو په کمه موده کې پیداکیږي. وصیت دحمل لپاره دلیل دادی چې په وصیت کې موصي موصی له یو دول خپل خلیفه ګرځوي اوحمل په میراث کې خلیفه کیدای شي نو په وصیت کې هم خلیفه کیدای شي .دوصیت په حمل سره دجواز دلیل دادی چې حمل خوپیداکیږي ځکه خبره په داسې حمل کې ده چې دوصیت په وخت موجودیدل یې معلوم دی یعنې موږدا

قيدلګولى دى چې تروصيت به ترشپږمياشتې په كمه موده كې پيداكيږي حال داچې په وصيت كې دومره توسيع شته چې دمعدوم شي وصيت كول هم صحيح دى مثلا دغيرموجودوشيانووصيت كول جائزدى نوپه حمل كې چې موجوددى په طريقه اولى سره جائزكيږي. مګردحمل لپاره هبه كول صحيح نه ده ځكه په هبه كې دموهوب له قبض كول شرط دى اوپه حمل كې دقبض كولواهليت نشته.

(۱۱) وَإِنْ أَوْصَى بِأَمَةٍ إِلَّا حَمْلَهَا صَحَّتِ الْوَصِيَّةُ وَالِاسْتِثْنَاءُ (۱۲) وَلَهُ الرُّجُوعُ عَنِ الْوَصِيَّةِ قَوْلًا أَوْ فِعْلًا بِأَنْ بَاعَ أَوْ وَهَبَ أَوْ قَطَعَ الثَّوْبَ أَوْ ذَبَحَ الشَّاةَ (۱۳) وَالْجُحُودُ لَا يَكُونُ رُجُوعًا

**ترجمه**: اوكه يې وصيت وكړ په منځه سره بغيردهغې دحمل نوصحيح دى وصيت اواستثناء اوده لره جائزده رجوع له وصيت څخه قولا اوفعلا په دې ډول چې خرڅ كړي ياهبه كړي ياپرې كړې كپړه ياذبح كړي پسه اوانكاركول رجوع نه ګڼله كيږي.

**تشريح**: (۱۱) كه يوچادبل چالپاره په منځه سره وصيت وكړليكن دهغې حمل يې مستثنى كړمثلا ويې ويل زمايه فلانى منځه سره مادزيدلپاره وصيت كړى دى سوادهغې دحمل نه نوداوصيت اواستثناء دواړه صحيح دي ځكه خالص دحمل وصيت صحيح دى نودحمل استثناء هم صحيح كيږي ځكه پركوم شي چې دعقدورودصحيح وي هغه دعقد څخه خارجول هم صحيح كيږي.

(۱۲) يعنې موصي لره له خپل وصيت څخه رجوع كول جائزده ولې وصيت يوعقدتبرع دى چې تراوسه تام شوى نه دى نودهبه په شان دهغه څخه هم رجوع كول صحيح دى ،بيارجوع عن الوصية قولاهم صحيح ده يعنې په خوله درجوع تصريح وكړي مثلاداسې ووايي رجعت عما أوصيت به له ،اورجوع عن الوصية فعلاهم صحيح ده يعنې په خوله څه ونه وايي البته يوداسې فعل وكړي چې پررجوع كولوباندې دلالت كوي مثلاپه كوم شي سره چې ده وصيت كړى دى هغه پريوچاباندې خرڅ كړي يايې هبه كړي ياېې دكپړې وصيت كړى وي بياهغه پرې كړي ياېې دپسه وصيت كړى وي بياهغه ذبح كړي نوداله وصيت څخه رجوع شمارله كيږي درجوع دتصريح كولوپه صورت كې خوظاهره ده اوداسې فعل كول چې پررجوع باندې دال وي هم رجوع شمارله كيږي ځكه دلالت بيادتصريح كاركوي لهذادارجعت عما اوصيت له. قائم مقام كيږي.

(۱۳) له وصيت څخه انكاركول رجوع نه شمارله كيږي يعنې كه يوڅوك دخپل وصيت څخه انكاروكړي ووايي ماوصيت نه دى كړى نودامام محمد رحمه الله په نزدداله وصيت څخه رجوع كول نه دى ځكه انكاردرحقيقت په زمانه ماضي كې نفى ده اودانتفاء فى الماضي لپاره انتفاء فى الحال ضروري ده په داسې حال كې چې درجوع عن الشئ لپاره اثبات شئ ضروري دى نوچې كله موصي رجوع كوي نوجحودفى الماضي لغوكيږي .دامام ابويوسف رحمه الله په نزدله وصيت څخه انكاررجوع شمارله كيږي.

**فائده**: دامام محمد رحمه الله قول راجح دى لمافى الدرالمختار: (ولايجوزبجحودها) دررو كنزووقاية وفى المجمع به يفتى ومثله فى العينى ثم نقل عن العيون ان الفتوى على انه رجوع وفى السراجية وعليه الفتوى واقره المصنف ,قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله واقره المصنف) قال فى شرح الملتقى ولكن المتون على الاول ولذاقدمه المصنف على عادته اه ,اقول اخرفى الهداية دليله فكان مختاره قال فى النهاية

وجزم به في المواهب والاصلاح قال في قضاء الفوائت من البحر واذا اختلف التصحيح والافتاء فالعمل فما وافق المتون اولى (الدر المختار مع الشامية: ۵/۲٦٦)

## باب الوصية بثلث المال ونحوه

### داباب دثلث مال وغيره دوصيت په بيان كې دى

څرنګه چې دوارثانو داجازت بغير انتهائي هغه مقدار چې پر هغه باندې دكتاب الوصايا دمسائلو مدار دى هغه ثلث مال دى نو مصنف رحمه الله دكتاب الوصايا دمقدماتو دبيانولو وروسته هغه مسائل بيان كړي دي چې له دې باب سره تعلق لري.

(۱) اوصى لذا بثلث ماله ولآخر بثلث ماله ولم تجز الورثة فثلثه لهما (۲) وان اوصى لآخر بسدس ماله فالثلث بينهما اثلاثا (۳) وان اوصى لاحدهما بجميع ماله ولآخر بثلث ماله ولم تجز الورثة فثلثه بينهما نصفان (۴) ولا يضرب للموصى له باكثر من الثلث الا في المحابات والسعاية والدراهم المرسلة (۵) وبنصيب ابنه بطل وبمثل نصيب ابنه صح فان كان له ابنان فله الثلث (٦) وبسهم او جزء من ماله فالبيان الى الورثة

**ترجمه**: ديوچالپاره يې وصيت وكړ په ثلث دمال سره اودبل لپاره يې هم په ثلث مال سره وصيت وكړ او اجازه نه وركوله وارثانو نو دمال ثلث د دواړو لپاره كيږي او كه يې وصيت وكړ د هغه بل لپاره دخپل مال په سُدس نو ثلث د دوئ دواړو ترمنځ اثلاثا شريك دى او كه يې وصيت وكړ ديوه لپاره پخپل ټول مال سره او دبل لپاره دخپل مال په ثلث سره او وارثانو اجازه نه وركوله نو دمال ثلث د دوئ دواړو ترمنځ نصف نصف كيږي، او نه مقرريږي دموصى له لپاره تر ثلث زياته حصه مګر په محابات او سعايت او دراهم مرسله ؤكې، او په حصه دزوى وصيت كول باطل دى او دخپل زوى دحصه په مثل صحيح دى بيا كه دده دوه زامن وو نو هغوئ ته ثلث وركول كيږي او كه يې وصيت وكړ ديوه سهم يا دخپل مال ديوه جزء نو دبيان اختيار وارثانو لره دى.

**تشريح**: (۱) كه چا دخپل مال په ثلث سره وصيت وكړ مثلا ويې ويل زما دمال يو ثلث دزيد لپاره وصيت دى او دبكر لپاره يې هم په ثلث مال سره وصيت وكړ په دې ډول دده دوه ثلث وصيت شو مګر وارثانو تر يوه ثلث په زيات اجازه نه وركوله نو يو ثلث د دواړو موصى له ترمنځ مساوي تقسيميږي ولې په دوو ثلثانو كې دموصي حق نښته ځكه دواړه ثلثان نه شي وركول كيداى بلكې يو ثلث وركول كيږي دا چې يو ثلث د دواړو موصى له دحق څخه كم دى او په سبب كې دواړه موصى له برابر دي نو په استحقاق كې به هم دواړه برابريږي ځكه نو يو ثلث پر دواړو باندې برابر تقسيميږي.

(۲) كه موصي ديوه لپاره په يوه ثلث وصيت وكړ او دبل لپاره يې په سُدس او وارثانو تر يوه ثلث دزيات اجازه نه وركوله نو ديوه ثلث څخه به دوې حصې اول ته وركولې كيږي او يوه حصه به دابل ته ولې په يوه ثلث د دواړو حق نه پوره كيږي نو يو ثلث پر دوئ باندې د دوئ دحق مطابق تقسيميږي.

(۳) او كه موصي ديوچالپاره پخپل ټول مال سره وصيت وكړ او دبل لپاره يې په ثلث مال سره وصيت وكړ مګر وارثانو دهغه اجازه نه وركوله نو دصاحبينو رحمهما الله په نزد دتركه يو ثلث څلور حصې كيږي دوئ دواړو ته وركول كيږي يعني درې حصې هغه ته چې په ټول مال سره وصيت ورته شوى دى او يوه حصه هغه ته

چالره چې په ثلث سره وصيت شوى وو ،ځکه په دغه صورت کې موصي دد دوو شيانو اراده کړې ده **نمبر ۱**-دده غوښتل چې دټول مال مستحق يوو کړخوې مګرددده دااراده دوارثانو دحق په وجه نه شي ترسره کيداى **نمبر ۲**-بله يې دااراده وه چې دى يو موصى له ته پربل باندې ترجيح اوتفضيل ورکړي چې دغه هيڅ مانع نشته لهذا داترجيح اوتفضيل ثابتيږي ددې هغه صورت دى چې دوئ بيان کړى دى .

دامام ابو حنيفة رحمه الله مسلک دادى چې يو ثلث به دهغوئ ترمنځ نصف نصف کيږي ،دامام صاحب رحمه الله دليل دادى چې کله وارثانو اجازه نه ده ورکړي نو ترثلث زيات وصيت په غيرمشروع طريقه شوى دى لهذا داغيرمشروع مقدار اصلا باطل شو خالص دوصيت پاته شونو اول اودوهم دواړه برابرشول باقي اول لره که څه تفضيل حاصل وي هغه داستحقاق په ضمن کې ثابتيږي اوچې کله استحقاق باطل شونو تفضيل هم باطليږي لهذا ثلث دد واړو ترمنځ برابر تقسيميږي .

**فائده** :دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافي الشافية :الصحيح قول الامام کمافي تصحيح العلامة قاسم والدرالمنتقى عن المضمرات وغيره (ردالمحتار :۵/۲۷۴)

(۴)يعنې امام ابو حنيفة رحمه الله ترثلث دزيات وصيت کولو په صورت کې ترثلث زياتې حصې ته اعتبار نه ورکوي مثلا دزيد لپاره يې دټول مال وصيت وکړاودبکر لپاره په نصف سره اوټوله ترکه پنځلس روپۍ دي نو دزيد لپاره ترثلث لس روپۍ زيات چې يې کوم وصيت کړى دى هغه ته اعتبار نشته ګواکې دزيد لپاره يې دثلث وصيت کړى دى اودبکر لپاره چې يې ترثلث يو نيمه روپۍ زيات وصيت کړى دى هغه ته هم اعتبار نشته ګواکې دبکر لپاره يې هم په ثلث وصيت کړى دى لهذا اوس به دترکه ثلث دوې حصې کوي يوه حصه زيد ته اوبله حصه بکرته ورکول کيږي ،مګر دري صورتونه له دې قاعدې څخه مستثنى دي يعنې محابات ،سعايت او دراهم مرسله .امام ابو حنيفة رحمه الله په دې کې دقدر وصيت لحاظ کوي يعنې په دې دريو صورتونو کې هم وصيت په ثلث کې نافذيږي مګر دهريوه موصى له لپاره چې يې څومره وصيت کړى دى ثلث ترکه به په هغه تناسب سره تقسيميږي چې صورتونه يې په لاندې ډول دي .

دمحابات (يوشي په کم قيمت خرڅول مثلا ددووسوو روپو شي په پنځوس روپۍ خرڅولوته محابات ويل کيږي) صورت دادى چې مثلا دزيد دوه مريان دي په هغو کې ديوه قيمت مثلا يو ولس سوه روپۍ دي اودبل قيمت شپږسوه روپۍ دي اوس زيد په اول سره وصيت وکړ دخالد لپاره اوپه بل سره دبکر لپاره اوداسې يې وويل :دامريى به خالد خرڅوي په سل روپۍ اودابل به بکرخرڅوي په سل روپۍ بياکه زيدله دې دوو مريانو علاوه بل هيڅ شى نه وو پرې ايښى نو وصيت خالص په ثلث کې نافذيږي او هغه ثلث دواړو موصى له ته دهغوئ دحق په تناسب سره ورکول کيږي نو ګواکې زيد دخالد لپاره په زرروپۍ اودبکر لپاره دپنځوسوو وصيت کړى دى چې ثلث يې پنځه سوه روپۍ راځي نو دخالد لپاره دپنځوسوو دوه ثلثه او بکرته يو ثلث ورکول کيږي ځکه دوصيت تناسب په دوئ دوو کې همدادى او باقي قيمت دموصى وارثانو ته ورکول کيږي .به هر حال دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد که چيرته دا صورت مستثنى نه وي نو دخالد او بکر دواړو لپاره له

پنځوسو ځخه نيم نيم كيدي اوباقي قيمت دموصى وارثانوته وركول كيدي مګر دلته هغوئ خپل دااصول پرېښودل اودحق دتناسب دلحاظه يې ثلث تقسيم كړى دى .
دسعايت صورت دادى چې زيددخپلودوومريانودعتق وصيت كړى دى اوله زيدسره نورمال له دغودوومريانوعلاوه نشته اوله دوئ ځخه ديوه قيمت دوه زره اوډبل قيمت يوزردي نوداوصيت په ثلث كې نافذيږي اوپه دوه ثلثه كې پردوئ باندي سعايت (په مريي ګټل وارثانوته وركول ) واجبيږي چې داخرڅ كړي وارثانوته يې وركړي ليكن داثلث دهغوئ دواړودقيمت په تناسب سره تقسيمېږي اوددوئ دواړودقيمت مجموعه دري زره دي چې ثلث يې يوزردي نودكوم مريي چې قيمت دوه زره دي دهغه له قيمت ځخه شپږسوه شپږشپيته روپى ساقطيږي اوباقي به دى ګټي وارثانوته به يې وركوي اودكوم مريي چې قيمت زرروپى دي دهغه له قيمت ځخه دري سوه دري ديرش روپى ساقطيږي اودى به خپل بقيه قيمت ګټي وارثانوته به يې وركوي .
ددراهم مرسله ؤمطلب دادى چې دابه نه متعين كيږي چې ثلث دهغه اونصف دهغه وغيره بلكې دى به مطلقًاداسي وايې چې ددوه سوه روپى وصيت دخالدلپاره دى اوسل روپى وصيت دبكرلپاره دى اوله هغه سره يواځي همدادري سوه روپى دي نوداوصيت خالص په ثلث يعني سلوروپوكې نافذيږي اوتقسيم دمقداروصيت په تناسب سره كيږي لهذاله سلوروپوځخه اول ته شپږشپيته روپى اوبل ته دري ديرش روپى وركولي كيږي .
(۵)قوله وبنصيب ابنه بطل اى لو اوصى بنصيب ابنه بطل .يعني كه يوچادخپل زوى په حصه ميراث ديوچالپاره وصيت وكړنوداوصيت باطل دى ځكه داوصيت دبل چاپه مال كې دى لهذاداجائزنه دى اوكه موصي وويل زمادزوى دحصي په اندازه دفلان لپاره وصيت كوم نوبياداوصيت جائزكيږي ځكه مثل حصه دزوى غيردى له حصه دزوى لهذاداوصيت دبل په مال كې نه دى نوكه دموصي يوزوى وي نوموصى له ته نصف مال وركول كيږي كه زوى دهغه اجازه وركړه كه نه موصى له لره ثلث مال وركول كيږي اوكه دموصي دوه زامن وونوموصى له ته يوثلث مال وركول كيږي دقياس تقاضاخوداوه چې موصى له ته نصف مال وركول شي كه ورثه اجازه وكړي ځكه په دي صورت كې دهريوه زوى حصه نصف ده نومثل ابن هم نصف كيږي ليكن ځرنګه چې دموصي مقصوددادى چې موصى له دخپل يوه زوى په شان وبولي دامقصوديې نه دى چې هغه ته له زوى ځخه زيات وركول شي لهذاموصى له ددريم زوى په منزله كيږي نومال ددوئ ترمنځ اثلاثاتقسيمېږي .
(۶)قوله وبسهم اوجزء من ماله الخ اى لو اوصى بسهم اوجزء من ماله .يعني كه چادبل چالپاره دخپل مال ځخه ديوه سهم يايوه جزء وصيت وكړچې زمادمال يوسهم يايوجزء دفلان لپاره وصيت دى نودغه مقداربيانول دوارثانوپه اختيار دى هغوئ چې ځه غواړي وربه يې كړي ځكه مقداروصيت مجهول دى قليل اوكثيردواړولره شامل دى ليكن دمقدارمجهول كيدل دوصيت دصحت مانع نه دى اووارثان دموصي قائم مقام دي لهذادوئ دمقداربيانولو اختيارلري .

**فائده**:مصنف رحمه الله دلته سهم او جزء يو بللي دي او دا د بعضو مشائخو قول دی،په داسی حال کې چې له امام صاحب رحمه الله څخه مروي دی چې د موصي له وارثانو څخه چې د چا حصه کمه وي موصی له ته هغومره حصه ورکوله کیږي ،البته که دا حصه تر سدس کمه وه نو موصی له ته سدس پوره ورکول کیږي ځکه سهم په لغت کې شپږمه حصه ده او همدا له حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما څخه موقوفاً او مرفوعاً مروي دی.

(٧)فَإِنْ قَالَ سُدُسُ مَالِي لِفُلَانٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ ثُلُثُ مَالِي لَهُ ثُلُثُ مَالِهِ (٨)وَإِنْ قَالَ سُدُسُ مَالِي لِفُلَانٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ سُدُسُ مَالِي لَهُ السُّدُسُ (٩)وَإِنْ أَوْصَى بِثُلُثِ دَرَاهِمِهِ أَوْ غَنَمِهِ وَهَلَكَ ثُلُثَاهُ لَهُ مَابَقِيَ (١٠)وَلَوْ رَقِيقًا أَوْ ثِيَابًا أَوْ دُورًا لَهُ ثُلُثُ مَابَقِيَ (١١)وَبِأَلْفٍ وَلَهُ عَيْنٌ وَدَيْنٌ فَإِنْ خَرَجَ الأَلْفُ مِنْ ثُلُثِ الْعَيْنِ دُفِعَ إِلَيْهِ وَإِلَّا فَثُلُثُ الْعَيْنِ وَكُلَّمَا خَرَجَ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ لَهُ ثُلُثُهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الأَلْفَ (١٢)وَبِثُلُثِهِ لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو وَهُوَ مَيِّتٌ لِزَيْدٍ كُلُّهُ وَلَوْ قَالَ بَيْنَ زَيْدٍ وَعَمْرٍو وَعَمْرٌو مَيِّتٌ لِزَيْدٍ نِصْفُهُ (١٣)وَبِثُلُثِهِ لَهُ وَلَا مَالَ لَهُ لَهُ ثُلُثُ مَا يَمْلِكُهُ عِنْدَ مَوْتِهِ

**ترجمه**:او که يې وويل چې زما د مال سدس د فلان لپاره دی بيايې وويل دده لپاره زما د مال ثلث دی نو دهغه لپاره ثلث کيږي،او که يې وويل چې زما د مال سدس د فلان لپاره دی بيايې وويل زما د مال سدس دده لپاره دی نو دهغه لپاره سُدس کيږي او که يي وصيت وکړ د خپلو دراهمو د ثلث يا د خپلو پسونو د ثلث او هلاک شول دوه ثلثه نو دهغه لپاره مابقی کيږي او که مريی يا مکانونه يا کپړې وي نو د مابقی ثلث کيږي او که يې د زرو وصيت وکړ او مال څه نقد وو او څه دين وو که ووتي زر د نقد وله ثلث څخه نو هغه دي ده ته ورکړلي شي که نه د موجوده ثلث دي ورکړل شي او هرکله چې وصول شوي له دين څخه نو دهغه لپاره يې ثلث کيږي ترڅو چې پوره زر واخلي او که يې داسي وصيت وکړچې ثلث د مال د زيد او عمرو لپاره دی او حال دا چې عمرو مړ شوی دی نو د زيد لپاره ټول ثلث کيږي او که يې وويل چې د زيد او عمرو ترمنځ دی حال داچې عمرو مړ شوی دی نو د زيد لپاره نصف کيږي او که يې د چا لپاره د ثلث مال وصيت وکړ حال داچې له ده سره مال نشته نو دهغه لپاره ثلث دهغه مال کيږي چې د ده يې د مرګ په وخت کې مالک شي.

**تشريح**:(٧)که يو چا وويل چې زما د مال سدس د فلان لپاره وصيت دی بيايې دهغه سړي لپاره وويل چې زما د مال ثلث دهغه لپاره وصيت دی نو موصی له لره ثلث د مال کيږي ځکه په دي وجه چې ثلث سدس لره متضمن دی نو سدس په ثلث کې داخل دی نو د موصي دا قول تر ثلث زيات ته نه شامليږي.

(٨)او که يې اول وويل چې زما د مال سدس د فلان لپاره وصيت دی بيايې دهمدي سړي لپاره وويل چې زما د مال سدس فلان لره وصيت دی نو څرنګه چې د دوو سدسونو مجموعه ثلث کيږي نو بايد چې موصی له ته ثلث ورکول شي مګر هغه ته خالص سدس ورکول کيږي ځکه چې قاعده ده چې معرفه کله مکرره ذکر شي نو ثاني عين اوله مراديږي او دلته سدس مال ته مضاف دی او مال ياء د ضمير متکلم ته مضاف دی ځکه نو سدس هم معرفه دی لهذا ثاني عين اول دی نو موصی له ته فقط يو سدس ورکول کيږي.

(٩)که له چا سره څه درهمونه او څه پسونه وو او له هغه سره له پسونو او دراهمو علاوه نور هم دومره مال وو چې د پسونو يا دراهمو تر ثلث دوه چنده وو بيا ده وويل چې زما د دراهمو يو ثلث د فلان لپاره وصيت دی بيايې وويل چې زما د پسونو يو ثلث د فلان لپاره وصيت دی بيا داپيښه شوه چې له پسونو يا دراهمو څخه دوه ثلثه هلاک شول او يو ثلث باقي پاته شو او له دغه ثلث علاوه له موصي سره دومره مال موجود دی چې هغه د دي په مقابل

کې دوه ثلثان یاتر هغه زیات دی نوموصی له ته له دراهمو یا پسونو څخه چې کوم ثلث باقي دی هغه پوره ثلث ورکول کیږي ځکه په دراهمو او پسونو کې دموصی له او وارثانو دواړو حق دی یعني په یوه ثلث کې دموصی له حق دی او په دوو ثلثانو کې دوارثانو حق دی او دموصی له حق مقدم دی ځکه وصیت ترمیراث مقدم وي نو په دغه مال کې دموصی له حق اصالةً دی او دوارثانو حق تبعًادی.بیاقاعده داده چې کله کوم مال پر اصل او تبع باندي مشتمل وي او له هغه څخه څه هلاک شي نو هلاکت دتابع طرف ته راګرځول کیږي داصل طرف ته نه نو دلته هلاکت دهغو دوو ثلثانو طرف ته راګرځول کیږي چې دوارثانو حق وو او اصل ثلث باقي دی لهذا هغه وموصی له ته ورکول کیږي.

(۱۰)که چادمریانو یا کپړو یا مکانو په نسبت داوصیت کړی وو چې دهغو یو ثلث دي فلان ته ورکول شي او له دي وصیت وروسته دوه ثلثه مریان یادوه ثلثه کپړې یادوه ثلثه مکانونه ضائع شول یو ثلث باقي پاته شو او داثلث دهغه دنورو مالونو دثلث څخه ایستل کیدای شي یعني دموصي نورمالونه دومره دي چې تردغه ثلث دوه چنده زیات دي نوموصی له ته له دغو شیانو څخه فقط یو ثلث ورکول کیږي.لیکن دعلماؤ رایه داده چې که کپړې مختلف الجنس وي نو دمابقي کپړو ثلث ورکول کیږي او که یو جنس وي نو پوره مابقي کپړې ورکولې کیږي ځکه دمتحد الجنس کیدو په صورت کې کپړې ددرهمونو مثل شوې چې تفصیل یې په تیره مسئله کې بیان شوی دی.

(۱۱)قوله وبالف وله عين ودين اى ان اوصى بالف وله عين ودين.یعنې که یو چا وصیت وکړ چې زمادمال څخه دي فلان ته زرروپۍ ورکړلې شي بیاده څه مال نقدپرینبوداو څه مال هغه دی کوم چې پرخلکو باندي قرض دی نو که نقدمال دومره وو چې ثلث یې زرروپۍ کیږي مثلا دري زره یاتر هغه زیات نقدمال موجوددی نوموصی له ته زرروپۍ له هغه نقدمال څخه ورکړلې کیږي ځکه چې دیو قسم کمي بغیرهرحقدار ته خپل حق رسیدل ممکن دی نوموصی له ته دي هم خپل حق ورسول شي او که نقدمال دومره نه وو بلکې کم وو مثلاً پنځلس سوه روپۍ دي باقي مال پرخلکو باندي قرض دی نوموصی له ته دي له نقد څخه یو ثلث ورکولې شي باقي حصه هغه ته له قرض څخه ورکول کیږي چې صورت یې دادی چې څومره قرض وصولیږي دهغه یو ثلث دي موصی له ته ورکول کیږي ترڅو چې زرروپۍ پوره شي ځکه موصی له له وارثانو سره شریک دی او هغه له خالص نقدو څخه په ورکولو کې دوارثانو نقصان دی ولی عین پردین فضیلت لري ځکه له خالص نقدو څخه نه ورکول کیږي.

(۱۲)قوله وبثلثه لزيد وعمرو اى ان اوصى بثلثه لزيد وعمرو.یعنې که چادزید او عمرو لپاره دخپل مال په ثلث سره وصیت کړی وو په داسي حال کې چې عمرو هغه وخت مړشوی وو نو داثلث دمال ټول زید ته ورکول کیږي ځکه میت اهل وصیت نه دی نو دی دژوندي موصی له مزاحم نه شي کیدلای نو داداسي دی لکه یوڅوک چې دزید او دیوال لپاره وصیت وکړي نو ټول وصیت زیدلره کیږي،او که چاداسي وصیت وکړ چې زمادمال ثلث دي دزید او عمرو ترمنځ تقسیم شي حال داچې زید مړشوی دی نو عمرو لره دثلث مال نصف ورکول کیږي ځکه لفظ دبین داشتراک لپاره راخي نو ګواکې هغه داسي وصیت کړی دی چې دوئ دواړو هریوه ته دي دثلث مال نصف ورکول شي.

(۱۳)قوله وبثلثه له ولا مال له اى ان اوصى بثلثه له الخ .يعني كه چادبل لپاره دخپل مال په ثلث سره وصيت وكړحال داچې في الحال له موصي سره هيڅ نشته بيا هغه څه مال پيدا كړاو مړشونو دمرګ په وخت چې كوم څه دموصي ملكيت وي دهغه ديوه ثلث موصى له مستحق ګرځي ځكه وصيت يو داسي عقد دى چې له مرګ وروسته سره تعلق لري او دهغه حكم هم له مرګ وروسته وي ځكه دمال درلودل دمرګ په وخت كې شرط دى نه ترمرګ مخته.

(۱۴)وبثلثه لأمهات أولاده وهن ثلاث وللفقراء والمساكين لهن ثلثة من خمسة وسهم للفقراء وسهم للمساكين (۱۵)وبثلثه لزيد وللمساكين لزيد نصفه ولهم نصفه (۱۶)وبمائة لرجل وبمائة لآخر فقال لآخر اشركتك معهما له ثلث كل مائة (۱۷)وبأربع مائة له وبمائتين لآخر فقال لآخر اشركتك معهما له نصف مالكل منهما (۱۸)وان قال لورثته لفلان على دين فصدقوه فانه يصدق الى الثلث

**ترجمه** :وصيت يې وكړ دخپل مال په ثلث سره دامهات اولادلپاره اوهغه دري دي او دفقيرانو او مسكينانو لپاره نو امهات اولادلره دري حصې كيږي له پنځو څخه اويوه حصه دفقيرانو لپاره اويوه حصه دمسكينانو لپاره ،دمال په ثلث سره يې وصيت وكړ دزيد لپاره او دمسكينانو لپاره نو زيد لره دهغه نصف كيږي او مسكينانو لره نصف كيږي. دسلو وصيت يې وكړ ديوه سړي لپاره او دسلو يې دبل سړي لپاره بيايې دريم نفرته وويل چې ماته شريک كړى يې ددوئ سره نو هغه لره دهرسلو ثلث كيږي اوكه يې وصيت وكړ دڅلوروسوو ديوه لپاره او په دوه سوه دبل لپاره بيايې دريم نفرته وويل چې ماته له دوئ سره شريک كړى يې نو ده لره دهريوه دحصې نصف كيږي اوكه يې وويل خپلو وارثانو ته چې دفلان پرما باندې قرض دى او هغوئ دده تصديق وكړ دده تصديق ترثلث پورې كيداى شي.

**تشريح** :(۱۴)قوله وبثلثه لامهات اولاده اى لو اوصى بثلثه لامهات اولاده .يعني كه ديوه سړي درې اوم ولدوي هغه داسې وصيت وكړ چې زما دمال ثلث زما امهات اولاد او مسكينانو او فقيرانو ته وركړئ نو دشيخينو رحمهما الله په نزد دتركه ثلث پنځه حصې كيږي له هغو څخه درې حصې دامهات اولادلپاره اويوه حصه فقيرته اويوه حصه مسكين ته وركوله كيږي ځكه داقاعده ده چې كله الف لام پرجمع باندې داخل شي دجمعيت معنى ورختمه وي دجنسيت معنى پکې پيداكيږي اوجنس دكل داحتمال سره ادنى لره هم شامليږي نودلته څرنګه چې پرټولو فقيرانو او مسكينانو باندې ثلث تقسيمول متعذر دى نوله الفقراء او المساكين څخه يويو فرد مراديږي او مال پرپنځو حصو باندې تقسيميږي له هغو څخه درې امهات اولادته اويوه يوه فقراء او مسكينانو ته وركوله كيږي.

(۱۵)قوله وبثلثه لزيد وللمساكين اى لو اوصى بثلث ماله لزيد وللمساكين .يعني كه چادخپل مال په ثلث سره وصيت وكړ دزيد او مسكينانو لپاره نو دهغه ثلث نصف زيدته وركول كيږي اونصف مسكينانوته وركول كيږي لما قلنا.

(۱۶)قوله وبمائة لرجل وبمائة لاخر اى لو اوصى بمائة لرجل وبمائة لآخر .يعني كه يوچاديوه سړي لپاره په سلو درهمونو وصيت وكړ اودبل لپاره يې هم په سلو درهمونو سره وصيت وكړ بيايې يوه دريم نفرته وويل چې

ماته له دوئ سره شریک کړی یې نو دادریم نفرله لومړنیو دوو څخه له هریوه څخه دسلو درهمونو ثلث ورې یعني له اول څخه هم ۳۳ درهمه او دیوه درهم ثلث اوله دوهم څخه هم ۳۳ درهمه اودیوه درهم ثلث ورکول کیږي په دي طریقه دده حصه ۶۶ درهمه اودیوه درهم دوه ثلثان کیږي اوله لومړنیو دوو څخه له هریوه سره هم ۶۶ درهمه اودیوه درهم دوه ثلثان پاتیږي ځکه شرکت مساوات غواړي اومساوات ددوئ ترمنځ دمال داتحاد په وجه په مذکوره طریقه سره ممکن دی ځکه داوصیت په مذکوره طریقه نافیږي.

(۱۷) قوله وباربع مائة له ای لواوصی باربع مائة له الخ ،یعنې که یې دیوه لپاره دځلوروسوواودبل لپاره ددووسوووصیت وکړبیایې دریم نفرته وویل چې ته ماله دوئ سره شریک کړی یې نوځرنګه چې په دي صورت کې مال متفاوت دی لهذا په تیره طریقه سره مساوات په دغه صورت کې ممکن نه دی نو په دي صورت کې به دریم له لومړنیو هریوه سره مساوي ګڼل کیږي په دي ډول به دریم نفرته له اول څخه دوه سوه اوله دوهم څخه یوسل درهمه ورکول کیږي چې په لفظ دشرکت دامکان په اندازه عمل وکړای شي.

(۱۸) که چاخپلو وارثانو ته وویل چې دفلان سړي پرما باندي قرض دی بیا که هغه راغی اودقرض مطالبه یې وکړه نوچې دی کوم مقدار بیانوي تاسي به دده تصدیق وکړئ بیاد موصی له مرګ وروسته هغه سړی راغی اوخپل قرض مطالبه یې وکړه اودهغه مقدار یې هم وښودنو استحسانا تر یوه ثلثه پوري دهغه تصدیق کړل کیږي وجه دا استحسان داده چې دلته دموصي مقصد دادی چې قرض غوښتونکی پر وارثانو باندي مقدم کړي اودلته دهغه قصد نافذیدای شي په دي ډول چې داوصیت وګڼل شی ځکه کله داسي پیښه شي چې دچاپر یل چاباندي حق وي مګر دهغه مقدار هغه ته معلوم نه وي نواوس مقروض محتاج دی چې دادول وصیت وکړي چې په هغه سره دقرض غوښتونکي حق اداشي لیکن دمقدار دنامعلومتیا په وجه دی وایې چې تاسې دده تصدیق وکړئ نودا داسي وصیت شوچې په هغه کې دموصی به دمقدار بیانولو اختیارخپله موصی له ته ورکول شوی دی نووصیت صحیح دی مګرموصی له ته اختیارنه ورکول کیږي چې هغه ترثلث زیات اختیار کړي اوکه یې اختیار روي نو هغه اعتبار نه لري.

(۱۹) فإن أوصى بوصايا عزل الثلث لاصحاب الوصايا والثلثان للورثة وقيل لكل صدقوه فيما شئتم وما بقي من الثلث فللوصايا (۲۰) ولاجنبي ووارثه له نصف الوصية وبطل وصيته للوارث (۲۱) وبثياب متفاوتة لثلاثة فضاع ثوب ولم يدر أي والوارث يقول لكل هلك حقك بطلت (۲۲) إلا إن يسلموا ما بقي فلذى الجيد ثلثاه ولذى الرديء ثلثاه ولذى الوسط ثلث كل (۲۳) وببيت عين من دار مشتركة وقسم وقع في حظه فهو للموصى له والا مثل ذرعه (۲۴) والاقرار مثلها

**ترجمه**: که یې څو وصیتونه وکړل نو جلاکیږي ثلث دوصیت والاوو لپاره اودوه ثلثان دوارثانو لپاره او هریوه ته ویل کیږي چې تصدیق وکړئ په هغومره چې ستاسې خوښه وي اوڅه چې پاته شي له ثلث څخه هغه دوصیتونو لپاره کیږي اوکه یې وصیت وکړ داجنبي لپاره اودخپل وارث لپاره نو اجنبي ته نصف وصیت ورکول کیږي اودوارث لپاره وصیت باطل دی اوکه یې وصیت دمتفاوتو کپړو دریو کسانو لپاره بیایوه کپړه ضائع شوه اودانه وه معلومه چې کومه کپړه ضائع شوې ده او وارث وایې هریوه ته چې ستاحق ضائع شوی دی نو وصیت باطلیږي ،مګر داکه هغه ورکړي مابقي دعمده والاته دوه ثلثان اوردي والاته دهغو دوه ثلثان

اومتوسط والاته دهريوه ثلث .اوكه يې وصيت وكړ:معلومې كمرې په مشترک سراى كې اوتقسيم وشواوواقع شوه دهغه په حصه كې نوهغه موصى له لره كيږي كه نه ياهغومره ځمكه وركوله كيږي اواقرارهم ددي په مثل دى .

**تشريح** :(١٩)دادهغې مخكينى مسئلې يوبل صورت دى يعنې كه موصي دقرض غوښتونكي نېږه دمجهول وصيت كولوسره څه نوروصيتونه هم كړي وونوپه دغه صورت كې لومړى ټول مال درې حصې كيږي يادا اصحاب الوصايالپاره يوثلث جلاايښودل كيږي اودوارثانولپاره دوه ثلثان جلاايښودل كيږي ځكه داصحاب الوصاياثلث اودوارثانوثلثان معلوم دي اودقرض غوښتونكي حق مجهول دى اومجهول دمعلوم مزاحم نه شي كيداى بيادواړوفريقينوته ويل كيږي چې تاسي ددې قرض غوښتونكي تصديق وكړئ په څومره مقداركې چې ستاسي خوښه وي ځكه دادمستحق په حق كې قرض دى مګردتنفيذپه حق كې وصيت دى نوچې هرفريق دڅه مقداراقراروكړنوداخبره ښكاره شوه چې دتركه په دووحصوكې دين شائع دى نواصحاب الوصاياچې په څومره مقداراقراروكړي دهغه يوثلث قرض غوښتونكي ته وركول كيږي اووارثان چې په څومره مقداراقراروكړي دهغه دوه ثلثان به وركوي هرفريق به دځپل اقرارمطابق ماخوذ كيږي له هغه وروسته چې له ثلث څخه څه پاتيږي هغه دوصيت والاووته وركول كيږي هغوئ به يې پخپل منځ كې تقسيموي اوله دووثلثانوڅخه چې څه پاتيږي هغه به وارثان پخپل منځ كې سره تقسيموي .

(٢٠)قوله ولاجنبي ووارثه اى ان اوصى لاجنبي ووارثه .يعنې كه موصى دځپل وارث اويوه اجنبي (بيګانه) سرې لپاره وصيت وكړنودوارث لپاره وصيت باطليږي اواجنبي لره دپوره وصيت نصف وركول كيږي ځكه داجنبي لپاره دوصيت كولواجازه شته مګردوارث لپاره دوصيت كولواجازه نشته لهذاچيرته چې دوصيت اجازه شته هلته وصيت صحيح دى اوچيرته چې دوصيت اجازت نشته هلته وصيت باطليږي.

(٢١)قوله وبثياب متفاوتة لثلاثة اى لو اوصى بثياب متفاوتة لثلاثة .يعنې كه له چاسره درې كپړې وي يوه عمده دوهمه متوسطه اودريمه ادنى قسم وي بياده په يوه سره وصيت دزيدلپاره وكړاوپه بله سره دبكرلپاره اوپه دريمه سره دخالدلپاره بيااتفاقاله دي دريوواړوڅخه يوه ضائع شوه مګردامعلومه نه شوه چې كومه يوه ضائع شوې ده اووارث له دوئ دريوواړونه هريوه ته داوايې چې ستاحق ضائع شونوپه دغه صورت كې څرنګه چې مستحق مجهول دى نوقاضي په دوئ كې فيصله نه شي كولاى اودموصي مقصدهم نه حاصليږي ځكه جهالت مستحق دقاضي دقضاء اودموصي دغرض دتحصيل لپاره مانع دى نوداوصيت باطل دى .

(٢٢)اوكه په مذكورصورت كې وارثانوباقى دوې كپړې دوئ دريوواړو نه حواله كړې نوبيادا وصيت صحيح كيږي ځكه وصيت په اصل كې صيحيح وو البته دعارضي جهالت (چې مانع عن التسليم دى) په وجه سره باطل شوى ووچې كله وارثانوباقى كپړې حواله كړي نوبياوصيت بيرته صحيح كيږي ځكه منع زائل شو .اوس ددوئ ترمنځ دتقسيم داصورت دى چې دعمده كپړې والاته دعمده كپړې دوه ثلثان وركول كيږي اوادنى كپړې والاته دادنى كپړې دوه ثلثان وركول كيږي اودمتوسط كپړې والاته دواړوڅخه دهرې يوې يويوثلث وركول كيږي په دي دول هريوه ته دهغه دحق په رسيدوكې برابروالى راځي .

(۲۳)قوله وببيت عين من دار ای لواوصی ببيت عين من دار،يعنې كه يوسرای ددووكسانوسره شريک وواوتراوسه ددوئ ترمنځ تقسيم نه ووشوی چې په دوئ کې يوه ديوې معلومې كمرې وصيت وكړديوبل چالپاره نوداوصيت صحيح دی بياكه موصي مړشونوموصی به به وموصی له ته داسي وركړي چې اول به داسرای ددووشريكانوترمنځ تقسيم كړي بيابه وګوري چې هغه كمره دچاپه حصه کې راغلې ده كه هغه دموصي په حصه کې راغله نوموصی له ته هغه كمره وركوله كيږي ځكه كوم شی چې مشترک وي له هغه څخه كماحقه انتفاع نه شي حاصليدای نودموصي مقصدله سره دادی چې ترتقسيم وروسته به داكمره موصی له ته وركوله كيږي بياچې كله له تقسيم وروسته مكمله كمره دموصي په حصه کې راغله نودموصي وصيت بايدنافذكړای شي اوكه هغه دبل شريک په حصه کې راغله نوموصی له ته به دهغې كمرې په اندازه ځای له هغه طرفه وركوي كوم طرف چې دموصي په حصه کې راغلی دی ځكه چې پراصل موصی به باندي قدرت نشته نودهغه بدل دهغه قائم مقام كيږي نوموصی له ته بايددهغې كمرې بدل وركول شي.

(۲۴)په مذكوربالاصورت کې داقرارعين هغه حكم دی لكه دوصيت يعنې كه يوچادځپل مشترک سرای څخه ديوې كمرې په باره کې دچالپاره اقراروكړاوله اقراروروسته هغه مكان تقسيم شونوكه كمره دمقِرپه حصه کې راغله نومقرله ته به يې وركړي اوكه دهغه بل شريک په حصه کې راغله نومقرله ته به دهغې كمرې برابردمكان په هغې حصه کې ځمكه وركړي چې دمقِرپه حصه کې راغلې ده.

(۲۵)وَبِأَلْفٍ عَيْنٍ من مَالِ آخر فَأَجَازَ رَبُّ الْمَالِ بَعْدَ مَوْتِ الموصی وَدَفَعَهُ صَحَّ (۲۶)وَلَهُ الْمَنْعُ بَعْدَ الاجازة (۲۷)وَصَحَّ اقرار أَحَدِ الابْنَيْنِ بَعْدَ الْقِسْمَةِ بِوَصِيَّةِ أبيه فِي ثُلُثِ نَصِيبِهِ (۲۸)وَبِأَمَةٍ فَوَلَدَتْ بَعْدَ مَوْتِهِ وَخَرَجَا من ثُلُثِهِ فَهُمَا له (۲۹)وَإِلَّا أَخَذَ منها ثُمَّ منه (۳۰)وَلِابْنِهِ الْكَافِرِ أو الرَّقِيقِ في مَرَضِهِ فَاسلم الِابْنُ او أُعْتِقَ قبل مَوْتِ الْأَبِ ثُمَّ مَاتَ بَطَلَ كَالْهِبَةِ وَإِقْرَارِهِ (۳۱)وَالْمُقْعَدُ وَالْمَفْلُوجُ وَالْأَشَلُّ وَالْمَسْلُولُ إنْ تَطَاوَلَ ذلک ولم يَخَفْ منه الْمَوْتَ فَهِبَتُهُ من كل الْمَالِ وَإِلَّا فَمِنَ الثُّلُثِ

**ترجمه**: اوكه يې وصيت وكړپه زرروپيومعينوسره دبل له مال څخه اواجازه وكړه دمال مالک دموصي له مرګ وروسته اووريې كړي نوصحيح دی،اوله اجازي وروسته هم دمنع كولواختيارلري،اوصحيح دی اقرارله دووزامنوڅخه ديوه له تقسيم وروسته دځپل پلاردوصيت دځپلې حصې په ثلث کې اوكه يې وصيت وكړپه منځه سره بيادهغې بچې پيداشودموصي له مرګ وروسته اودوئ دواړه ووتل له ثلث مال څخه نوهغوئ دواړه موصی له ته وركول كيږي،كه نه بيالومړی له منځې څخه اخيستل كيږي بياله بچي څخه اوكه يې وصيت وكړدځپل زوی لپاره چې هغه كافروويامريی ووپخپل مرض الموت کې بياهغه يامسلمان شوياآزادشونووصيت باطليږي لكه دده هبه اواقرار اوكه دهغه مريض چې دپښوپه بيماري اخته وويافالج زده وويا شل وويادتې بي بيماروو،بيماري زياته شي اودهغي څخه دمرګ خطره نه وي نودهغوئ هبه دكل مال څخه معتبريږي كه نه بيادثلث مال څخه.

**تشريح**:(۲۵)قوله وبالف عين ای لواوصی بالف عين الخ،يعنې كه له چاسره دبل چاامانت دراهم پراته ووامين له هغوڅخه زردرهمه متعين ديوچالپاره وصيت وكړي نوځرنګه چې داوصيت دغيرپه مال کې دی لهذادابه

دمالک تراجازي موقوف وي كه هغه دموصى له مرګ وروسته اجازه وركړه اوزردرهمه يې وموصى له ته حواله كړل نودا وصيت صحيح دى ځكه دمالک دازردرهم وركول دهبه په درجه كې دي اودهبې دتكميل لپاره قبض شرط دى .

(۲۶)اومالک لره اختيارشته چې له اجازي وروسته دزرودرهمونوله وركولو څخه انكاروكړي ځكه دموصي دافعل دغيردمال څخه تبرع ده اوچې داغيرددي كاراجازه وركوي نودادهغه له طرفه هم تبرع كيږي اوپه تبرع كې متبرع لره داحق شته چې له تبرع كولو څخه منع وكړي .

(۲۷)يوسړى مړشوترشايې دوه زامن پاته شوهغوداړودپلارتركه تقسيم كړه چې مثلازردرهمه وه بياله هغوڼ څخه يود دااقراروكړچې پلاردفلان سړي لپاره دخپل مال په ثلث سره وصيت كړى وونواستحسانامقرخالص دهغه مال ثلث مقرله ته وركولاى شي كوم چې خپله دمقرپه قبضه كې دى ځكه مقرپه كل تركه كې دشيوع په ډول دثلث دموصي له لپاره اقراروكړاوكل تركه ددواړوپه قبضه كې ده نومقرپخپله حصه كې هم اودوروريه مقبوضه حصه كې هم دثلث اقراركوونكى شونوخپله دده په حق كې خواقرارمتعبريږي دورورپه حق كې نه معتبريږي ځكه پرورورباندې دى ولايت نه لري لهذاخالص دمقرپه مقبوضه حصه كې ثلث موصى له ته وركول كيږي .

(۲۸)قوله وبامة فولدت اى لو اوصى بامة فولدت الخ.يعني كه چادبل لپاره په يوه منځه سره وصيت وكړبيادهغې منځې دموصي له مرګ وروسته اودموصى له ترقبلولومخكې زوى پيداشونوكه منځه سره له بچې دمړه له ثلثه وځي يعني منځه اوبچى يې دواړه دمړه دتركه يوثلث وي نومنځه سره له بچې دموصى له كيږي ځكه بچى نما ءالأم دى نودموړتابع ګرځي په وصيت كې داخليږي .

(۲۹)قوله والااخذمنها اى وان لم يخرجامن الثلث اخذمنها.يعني كه منځه سره له بچې دمړه له ثلثه څخه نه وتل نو دصاحبينو رحمهما الله په نزدبه دى خپل ثلث په دواړوحاصل كړي څومره چې دده په حصه كې راغلل هغه به واخلي ځكه چې كله بچى په وصيت كې داخل شي نوداداسې دى ګواكې ايجاب پردواړوباندي واردشوى دى نويوپربل باندي نه شي مقدم كيداى ، دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدبه دى خپل ثلث له موړڅخه اخلي كه په موړسره دده ثلث پوره شوخوفبهاكه نه كه څه حصه پاته شوه نوهغه كمى به په بچي سره پوره كړاى شي ځكه په عقدكې موړ اصله دنوپه تنفيذدعقدكې هم موراصل اومقدم كيږي .

**قائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافي الدرالمختار:والايخرجاخذالثلث منهاثم منه لان التبع لايزاحم الاصل وقالاياخذمنهماعلى السواء(الدرالمختارعلى هامش ردالمحتار:۵/ ۴۸۰)وايضااخذصاحب الهداية دليله فكان مختاراله.

(۳۰)قوله ولابنه الكافر اى لو اوصى لابنه الكافر .يعني كه يوداسې مريض چې په مرض موت اخته وو دخپل كافرزوى لپاره ديوشي وصيت وكړيادغه مريض په مرض موت كې دخپل مريي زوى لپاره دوصيت وكړيادغه هلک دده ترمرګ مخته مسلمان شويا آزادشونوداوصيت باطل دى لكه يوڅوک چې خپل كافرزوى ته په مرض موت كې يوشى هبه كړي يادهغه لپاره په قرض اقراروكړي نوداټول باطل دى دوصيت دبطلان وجه خوظاهره ده چې هغه ته دعقدپه حالت كې اعتبارنشته بلكې دمرګ په وخت كې اعتباروركول كيږي اودمرګ په وخت كې

هغه دده وارث دی ځکه له میراث څخه مانع کفر وو اوس هغه مسلمان شو او دوارث لپاره وصیت صحیح نه دی او څرنګه چې هبه او اقرار هم په مرض موت کې دوارث لپاره صحیح نه دي لهذا دادواړه هم باطل دي.

(۳۱) دمرض موت په باره کې قاعده داده چې له کوم مرض څخه دهلاکت خطره غالبه وي هغه مرض موت دی او په کوم مرض کې چې دمرګ خطره غالبه نه وي هغه مرض موت نه دی، لکه یو څوک چې دپښو په بیماري اخته شي یعنې ولاړیدای نه شي یافلج وهلی وي یا یې دبدن یو اندام شل وي یادتبې بې په بیماري اخته وي او دابیماري تردیره وخته اوږده شي چې له هغې څخه دمرګ ویره نه وي نو دامرض موت نه شمارل کیږي بیا که دغه مریض په دغه حالت کې هبه وکړه نو هغه له ټول مال څخه ګڼله کیږي ځکه دا سړی روغ شمارل کیږي او دروغ هبه له کل مال څخه وي، او که دامذکوره بیماریانې په ابتدائی حالت کې وي او دمریض حالت قابل اطمینان نه وي بلکې له دغو بیماریانو څخه دمرګیدو خطره وي نو بیادابیماریانې مرض موت شمارلې کیږي نو په دغه وخت کې ددوئ دیوشي هبه کول دوصیت په شان له ثلث دمال څخه معتبریږي.

## باب العتق في المرض

دا باب په مرض الموت کې دآزادولو په بیان کې دی

په مرض الموت کې آزادول دوصیت له انواعو څخه یو نوعه ده او څرنګه چې په مرض موت کې دمریي آزادولو مخصوص احکام دي ځکه نو مصنف رحمه الله داله صریح وصیت څخه راجلا کړددي لپاره یې مستقل باب قائم کړی دی

(۱) تحریرہ في مرضه ومحاباته وهبته وصیة (۲) ولم یسع ان أجیز (۳) فإن حابا فحرر فهي أحق (۳) وبعکسه استویا (۵) وإن أوصی أن یعتق عنه بهذه المائة عبدا فهلک منها درهم لم تنفذ (٦) بخلاف الحج به (۷) ویعتق عنه فمات فجنی و دفع بطلت وإن فدی لا (۸) وبثلثه لزید وترک عبدا فادعی زید عتقه في صحته والوارث في مرضه فالقول للوارث ولا شيء لزید إلا إن یفضل من ثلثه شيء او یبرهن علی دعواه (۹) ولو ادعی رجل دینا والعبد عتقا وصدقهما الوارث سعی في قیمته وتدفع إلی الغریم

**ترجمه**: دمریض آزادول په مرض موت کې او په کم قیمت خرڅول او هبه کول دوصیت په حکم کې دی، او سعی دي نه کوي مریی که هغوئ اجازه وکړه او که یې محابات وکړ بیایې آزاد کړنو محابات زیات حقدار دی او ددي برعکس دواړه برابر دي او که یې داوصیت وکړچې زماله طرفه دي آزاد کړای شي مریی ددي سلورو پوپه عوض کې بیاله هغو څخه یو درهم هلاک شونو نه نافذکیږي، خلاف دحج دوصیت نه، او که یې وصیت وکړ دخپل مریي دآزادوالي بیا مړشو او مریي جنایت وکړ او هغه ورکړل شو نو وصیت باطلیږي او که فدیه ورکړل شوه بیا نه باطلیږي، او که یې دزید لپاره دثلث مال وصیت وکړ او یو مریی یې پریښود بیا زید دعوی وکړه دهغه دآزادید و په خپل صحت کې او وارث په مرض کې نو دوارث قول معتبریږي او زید لره هیڅ شی نه کیږي مګر داکه دهغه له ثلث څخه څه شی پاته شي، یادی ګواهان ودروي پر خپله دعوی باندي او که یو سړي دعوی وکړه دقرض او مریي دعوی وکړه دآزادید و اوددوئ دواړو تصدیق وارثانو وکړنو ودي ګټي خپل قیمت او قرض دي ورکړل شي قرض غوښتونکي ته.

**تشريح** :(۱)كه يو چاپخپل مرض موت كې خپل مريى آزادكړ،اوبيا يې يوشى خرڅ كړ،محابات يې وكړ(يعنې په كم قيمت يې خرڅ كړ،مثلا ددووسووروپوشى يې په پنځوس روپۍ خرڅ كړ)يايې يوشى هبه كړ،نوداټول دوصيت په حكم كې دى يعنې له ثلث دمال څخه معتبردي،داعقودپه حقيقت كې وصيت نه دي ځكه په وصيت كې تمليک مابعدالموت مضافيږي اوداعقودفى الحال منجزشوي دي مګرپه مرض موت كې دواقع كيدوپه وجه ددي حكم دوصيت په شان دى چې له ثلث دمال څخه معتبريږي اوله ثلث مال څخه دمعتبريدووجه يې داده چې له بقيه مال سره دوارثانوحق متعلق شوى دى نوترثلث زيات دى محجورعليه دى.

(۲)كه چاپه خپل مرض موت كې مريى آزادكړ،بياكه دده له مرګ وروسته دده وارثانودمريي دآزاديدواجازه وكړه نوبياپرمريى باندې دڅه ګټلواووارثانوته دحواله كولوحق نشته ځكه په مرض موت كې آزادول وصيت دى اوترثلث زيات وصيت دوارثانودحق په وجه ممنوع دى چې اوس دوارثانوداجازت په وجه ممنوع نه دى پاتې.

(۳)كه چاپه مرض موت كې بيع محابات وكړه (يعنې په كم قيمت يې يوشى خرڅ كړ) بياده يوخپل مريى آزادكړ،حال داچې دمريض ثلث دتركه ددي دواړوګنجائش نه لري نوپه دي صورت كې محابات اولى اومقدم دى ترعتق لهذامبيع مشتري ته حواله كړاى كيږي اومريى به خپل قيمت دوارثانولپاره ګټي.ځكه محابات داسې يووصيت دى چې دعقدمعاوضه په ضمن كې ثابت شوى دى نومحابات لفظاتبرع نه ده بلكې يواځې معنًاتبرع ده اوعتق لفظاومعنى دواړه قسم تبرع ده نوپه نظرولفظ ته محابات لره قوت حاصل دى ځكه نومحابات ترعتق مقدم دى.

(۴)قوله وبعكسه استوياأى ان حررفحابى استويا،اوكه ددي برعكس كاروشويعنې لومړى يې خپل مريى ازادكړبيايې له چاسره محابات وكړنودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپه دي صورت كې عتق اومحابات دواړه برابردي اوله ثلث مال څخه بقدرحصه دواړه نافذكيږي ځكه عقدمحابات لره ترجيح دقوت په وجه حاصله ده اوعتق ته ترجيح دسبقت په وجه حاصله ده لهذادواړه برابردي.دصاحبينورحمهما الله په نزديه دواړومسئلوكې عتق ترمحابات مقدم دى ځكه له عتق سره فسخ كله هم نه شي لاحقه كيدلاى اوله محابات سره دمشتري له جانبه فسخ لاحقه كيداى شي ځكه نوعتق لره قوت حاصل دى نوپه دواړوصورتونوكې عتق مقدم كيږي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجع دى لمافى الدرالمختار:(وبعكسه )بان حررفحابى (استويا)وقالاعتقه اولى فى المسئلتين,وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله :(قوله وقالاعتقه اولى فيهما) اى فى المسئلتين لانه لايلحقه الفسخ ولدان المحاباة اقوى لانها فى ضمن عقدالمعاوضة لكن ان وجدالعتق اولا وهولايحتمل الدفع تزاحم المحابات ابن كمال وقول الزيلعي والمصنف فى المنح وقالاهماسواء فى المسئلتين سبق قلم والصواب ماهنا كمانبه عليه الشلبى.(الدرالمختارمع الشامية:۵/۶۸۲)

(۵)كه چادخپلووارثانوپه وړاندې داوصيت وكړچې زماپه دغوسلودرهمويومريى واخلئ آزادېي كړئ پروارثانوباندې وصيت پوره كول لازم وومګراتفاقاله دغوسلودرهمونوڅخه يودرهم ضائع شونه نوي ۹۹پاتې شونودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدپه باقى نه نوي مريى اخيستل دده له طرفه آزاديدل نه شي

كيداى.اوصاحبينو رحمهما الله په نزداوس هم هغه حكم دى چې په باقي روپودي مريى واخلي آزاددي كړي.ځكه دآزاديدووصيت يوقسم قربت دى نوچې تركومه حده ممكن وي داوصيت نافذول واجب دى .دامام صاحب رحمه الله دليل دادى چې دموصي وصيت دسلودرهمونودمريي په اخيستلو اوآزاديدوسره پوره كيږي كه ترسلودكم قيمت مريى آزادكړي نودموصي وصيت نه پوره كيږي ځكه ترسلودكم قيمت مريى آخيستل اودده له طرفه آزاديدل نه صحيح كيږي .

**فائده** :دامام ابو حنيفة رحمه الله قول راجح دى لمافي الدر المختار:ووصيته بان يعتق عنه بهذه المائة عبدلاتنفذالوصية بمابقي ان هلك درهم لان القربة تتفاوت بتفاوت قيمة العبد بخلاف الحج وقالاهماسواء(الدر المختار على هامش ردالمحتار:۵/ ۶۹۲)

(۶)كه موصي داوصيت وكړچې زماله طرفه په دغوسلودرهمونوباندي حج وكړئ بياله هغوڅخه څه دراهم هلاك شول نوبالاتفاق په مابقي سره دموصي له طرفه حج كول واجب دى.بياكه دومره پاتى ووچې دموصي له ښارمثلاكوئټې څخه حج په كيداى شواى نوله كوئټې ښاره دي حج وكړي.اوكه دومره مقدارروپۍ پاتى وې چې له كوئټې څخه حج نه شوى كيداى البته دكراچي له ښاره كيداى شواى نوبيادي دكوئټې پرځاى له كراچي ښارڅخه حج وكړاى شي ځكه له حج څخه مقصودقربت دى چې دالله تعالى حق دى اوالله تعالى په هيڅ صورت كې نه بدليږي نوداداسي دى لكه ديوچاليپاره دسلودرهمونو وصيت وكړي اتفاقاله هغوڅخه څه ضائع شي نوموصى له ته باقي دراهم وركول كيږي ځكه په موصى له كې تبديل نه دى راغلى .

(۷)قوله ويعتق عبده فمات اى ان اوصى بعتق عبده فمات.يعني كه چاپخپل مرض موت كې وصيت وكړچې زمادامريى آزادكړئ بياموصي مړشواومريى يوجنايت وكړچې دهغه په وجه دامريى دجنايت ولي ته سپارل ضروري وونومذكوروصيت باطليږي ځكه دلته دوارثانودامريى دجنايت ولي ته سپارل سم كاردى ځكه دولي جنايت حق ترموصي مقدم دى نودموصى له ترحق په طريقه اولى مقدم كيږي ولى دموصى له ملكيت دموصي له طرفه حاصليږي.ليكن كه چيرته وارثانوددي مريي فديه اداكړه نوفديه دوارثانوپرمال باندي راځي اووارثانوپه فديه اداكولوكې تبرع كوونكي شمارل كيږي ځكه فديه وركول پردوئ باندي واجبه نه وه نودوئ پخپل اختيارسره وركړې ده لهذادموصي وصيت جائزدى .

(۸)قوله وبثلثه لزيد وترك عبدا اى لو اوصى بثلثه لزيد وترك عبدا الخ.يعني كه موصى ديوچاليپاره مثلازيدته دخپل مال دثلث وصيت وكړاودموصي يومريى هم شته اوس دموصي وارث اوزيددواړه ددي خبرې اقراركوي چې موصى دامريى آزادكړى دى البته په دي كې اختلاف دى چې كله يې آزادكړى دى زيدوايي چې موصي په حالت دصحت كې آزادكړى دى اووارث وايي چې په مرض موت كې يې آزادكړى دى دزيدمطلب دادى چې دامريى موصي په حال دصحت كې آزادكړى دى لهذاداله ټول مال څخه شمارل كيږي اودباقي ثلث مستحق زه يم.اودوارث مطلب دادى چې په حال دمرض كې يې ازادكړى دى لهذاداوصيت شمارل كيږي ځكه داله ثلث مال څخه آزاديږي اوعتق تروصيت مقدم دى نولومړى به له ثلث څخه مريى آزاديږي بياكه څه پاتى شول هغه به زيدته وركول كيږي نومصنف رحمه الله فرمايي چې په دي دعوى كې دوارث قول سره له يمين معتبريږي ځكه زيدمدعي دى اووارث منكردى اودګواهانودنشتوالي په صورت كې دمنكرقول سره له يمينه

معتبريږي.نوزيدته هيڅ نه ورکول کيږي.البته که دمريي ترآزاديدووروسته له ثلث څخه څه شی پاتی شونوهغه زيدته ورکول کيږي يازيدخپله دعوی په ګواهانوسره ثابته کړي نوبيادزيدقول معتبردی ځکه ثلث مال زيدته ورکول کيږي.

(۹)که چاپرمړي باندي دقرض دعوی وکړه اوددي مړه مريي دعوی وکړه چې زمامرحوم مولی زه دصحت په حالت کې آزادکړی يم اودمړي وارث ددواړوتصديق وکړچې تاسې دواړه رښتياواياست اومړه له دغه مريي سوانورمال نه ووېري اينبی نوامام ابوحنيفة رحمه الله فرمايي چې مريی ازاددی ليکن پرهغه دالازمه ده چې خپل قيمت وګټي قرض غوښتونکي ته يې ورکړي،اودصاحبينورحمهماالله په نزدمريی آزاددی اوپرهغه باندي دڅه مال ګټل واجب نه دي ځکه وارث دعتق اوقرض دواړوتصديق کړی دی نومطلب يې دادی چې دادواړه يوځای په حال دصحت کې واجب شوي دي اوقاعده داده چې په حال دصحت کې پرآزادشده باندي دمال ګټل واجب نه دي.دامام صاحب رحمه الله دليل دادی چې قرض ترعتق اقوی دی چې تقاضايې داده چې عتق باطل شي مګرعتق له وقوع وروسته نه باطليږي نوداصورت څني جوړيږي چې عتق به نافذومنوپرمريی باندي دي دقرض غوښتونکي دمال ګټل واجب کړای شي.

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دی لان قوله قول المتون وايضا اخر صاحب الهداية دليله وذا من علامة الترجيح عنده.

(۱۰)وبحقوق الله قدمت الفرائض وإن أخرها كالحج والزكاة والكفارات (۱۱)وإن تساوت في القوة بدئ بما بدأ به (۱۲)وبحجة الإسلام أحجوا عنه رجلا من بلده يحج عنه راكبا (۱۳)ومن خرج من بلده حاجا فمات في الطريق وأوصى بأن يحج عنه يحج عنه من بلده (۱۴)والحاج عن غيره مثله

**ترجمه** :اوکه يې وصيت وکړپه حقوق الله باندي نومقدم کيږي فرائض که څه هم ده مؤخرذکرکړي وي لکه حج .زکوة اوکفارات اوکه په قوت کې سره برابروونوبياشروع په هغه کيږي په کوم سره چې ده شروع کړې وي اودحج اسلام په وصيت کې دي حج وکړای شي دده له جانبه يوڅوک دده له ښاره څخه حج دي وکړي سپوريااله هغه ځايه چې خرچ کافي وي اوهغه سړی چې له ښاره ووت دحج په اراده سره اومړشوپه لاره کې اووصيت يې وکړچې حج دي وکړای شي زماله طرفه نوحج دي وکړای شي دهغه له ښاره څخه اودبل له طرفه حج کونکی دهغه په شان دی.

**تشريح** :(۱۰)قوله وبحقوق الله تعالى اى لواوصى بحقوق الله تعالى .يعنې څوک چې دحقوق الله څووصيتونه وکړي نوپه هغوکې که بعض فرائض اونورغيرفرائض وونوفرائض ترنوروروصيتونومقدم کيږي برابره ده چې موصي دوصيت په وخت کې کوم يومخکي بيان کړی وي ياوروسته مثلاحج.زکوة اوکفارات وغيره (داټول فرائض دي ځکه بايدترټولو مخکي اداکړای شي) ځکه فرائض ترغيرفرائضو اهم دي.

(۱۱)اوکه يې دمتساوی فی القوة شيانووصيت کړی وويعنې ټول يودول فرائض وويا واجبات وونوپه دوئ کې چې موصي کوم يومخکي بيان کړی وي هغه دي مخکي پوره کړای شي ځکه داپه قوة کې متساوي دي اوانسان اهم شی مخکي بيانوي نومخکي بيان شوی اولی وي.

(۱۲)قوله وبحجة الاسلام اى لو اوصى بحجة الاسلام، يعني كه چا (مثلازيد) په مرض موت كې دخپل طرف څخه دحج كولووصيت وكړنوپروارثانوباندي واجب دى چې دموصي له ښاره څخه څوك دحج لپاره وليږدوي (داوجوب هلته دى چې ثلث تركه دسفرخرچ لپاره كافي وي) ځكه پرزيدباندي دخپل ښارڅخه حج كول واجب وونوحج بدل به هم دزيدله ښارڅخه كوي اوحج بدل پياده نه بلكې سپوربه يې كوي ځكه خپله پرزيدباندي په پياده حج كول لازم نه وونوغيربه هم حج هغسې اداكوي څرنګه چې پرزيدباندي واجب وو. كه دموصي مال دومره نه ووچې دهغه دثلث څخه حج وكړاى شي نوپه دي صورت كې چې دكوم ځاى څخه كيداى شي له هغه ځايه دي وكړي چې ترحده دامكان پوري وصيت نافذشي.

(۱۳)يوڅوك چې دحج په اراده سره له ښاره ووځي بياپه لاره كې مړشي اودمرګ په وخت داوصيت وكړي چې زمادطرفه دي حج وكړاى شي نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددهغه دطرفه دهغه له ښاره به حج كول كيږي، اوصاحبين رحمهما الله فرمايې چې تركوم ځاى پوري هغه رسيدلى دى له هغه ځايه دي حج وكړي ،دصاحبينو رحمهما الله دليل دادى چې موصي دسفرپه اراده وتلى دى نوچې څومره سفريې كړى دى هغه قربت واقع شوى دى اودهغه په اندازه قطع مسافت فرض ساقط شوى دى لهذابل څوك به له همدغه ځاى څخه دحج لپاره ليږدول كيږي، دامام صاحب رحمه الله دليل دادى چې دده عمل دمرګ په وجه باطل شوى دى لهذااوس دده وصيت ازسرنودحج وصيت شواومخته داخبره تيره شوه چې كله دحج وصيت وشي نودموصي له ښاره حج كول واجبيږي، دامام صاحب قول راجح دى لمافى الدرالمنتقى :۴/ ۴۴۲)وقوله قياس ..........وجزم به فى التنوير وعامة المتون فكان القياس هنا هو المعتمد فافهمه وتنبه له ايضا.

(۱۴)اودغيرله طرفه دحج كوونكي هم همدا حكم دى يعنې كه څوك دبل چاله طرفه دحج كولولپاره روان وو په لاره كې مړشونواوس چې بل كوم څوك دحج كولولپاره ليږدول كيږى نودامام ابو حنيفة رحمه الله په نزدبه دوصيت كوونكي له ښاره څخه ليږدول كيږي اودصاحبينو رحمهما الله په نزدچيرته چې دمړي نائب مړشوى دى له هغه ځايه به ليږدول كيږي.

## باب الوصية للاقارب وغيرهم

داباب دقريبانواوغيرقريبانولپاره دوصيت كولوپه بيان كې دى

په دي باب كې دمخصوص قوم لپاره دوصيت ذكردى اوپه تيروبابونوكې على وجه العموم دوصيت داحكامو ذكروؤ اوخصوص هميشه په وجودكې ترعموم وروسته وي ځكه يې داباب وروسته كړى دى.

(۱)جيرانه ملاصقوه (۲)واصهاره كل ذي رحم محرم من امراته (۳)واختانه زوج كل ذي رحم محرم منه (۴)وأهله زوجته (۵)وآله أهل بيته وجده أهل بيت أبيه (۶)وإن اوصى لأقاربه اولذوي قرابته او لأرحامه او لأنسابه)فهي للأقرب فالأقرب من كل ذي رحم محرم منه (۷)ولا يدخل الوالدان والولد والوارث (۸)ويكون للاثنين فصاعدا (۹)فإن كان له عمان وخالان فهي لعميه (۱۰)ولو كان له عم وخالان كان له النصف ولهما النصف (۱۱)ولو له عم وعمة استويا (۱۲)ولو لولد فلان للذكر والأنثى على السواء (۱۳)ولورثة فلان للذكر مثل حظ الأنثيين

**ترجمه** :دموصي ګاونډيان هغه دي چې دده له كورسره متصل وي. اودده خسرګنى هغه خلك دي چې دده دښځې ذى رحم محرم وي. اودده زوم هغه څوك چې دده دمحرمو ښځوخاوندوي. اودده اهل دده ښځه

ده.اودده آل دده دخاندان والادي اودده جنس دده دپلاردخاندان والادي اوکه يې وصيت وکړ خپلو قريبانو لپاره ياقرابت والايا ذوي الارحام ياد خاندان والالپاره نو هغه داقرب فالاقرب لپاره کيږي دده له ذي رحم محرمو څخه اونه داخليږي موراوپلاراوزوي اووارث اوکيږي ددوويازياتو لپاره بياکه وودده دوه آکاګان اودوه ماماګان نووصيت دده دآکاګانو لپاره کيږي اوکه يې يوآکااودوه ماماګان وونو دآکالپاره نصف وصيت کيږي اوددواړو ماماګانو لپاره هم نصف کيږي.اوکه يوآکايوه عمه وه نو دواړه برابردي اوکه دفلان داولادلپاره وصيت وکړي نو: مذکراومؤنث لپاره برابرحصه کيږي اوکه يې دفلان دوارثانو لپاره وصيت وکړنو دنارينه لپاره ددوو ښځوبرابره حصه کيږي.

**تشريح**:(۱)که چاد خپلوګاونډيانو لپاره وصيت وکړچې زمادګاونډيانو لپاره زمادمال ثلث دی نو دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدګاونډيان هغه خلک دي دچاکورچې دده له کورسره متصل وي ځکه تسميه اوعرفاً همداخلک جيران دي ځکه جوارله قرب څخه عبارت دی اوقريب هغه متصل دی (چې کورېې متصل وي) ځکه غيرملاصق دملاصق په نسبت بعيددی.

(۲)که چادخپلې خسرګنۍ لپاره وصيت وکړچې زمادمال ثلث زمادخسرګنۍ لپاره وصيت دی نو داوصيت دهرداسي چالپاره کيږي چې دده دښځې ذی رحم محرم وي لکه پلار،ورور،آکا،ماماوغيره دامسئله دعربوپرعرف بناء ده ،زموږ په اصطلاح خسردښځې پلارته ويل کيږي نو دهغه لپاره وصيت له خسرسره خاصيږي.

(۳)که چادخپل اختان لپاره وصيت وکړ(دعربوپه اصطلاح ختن دذی رحم محرم ښځوخاوندانوته ويل کيږي لکه دلور،خور،ترورخاوند) بيادا وصيت دموصي دټولو ذی رحم محرم ښځوخاوندانولره شامل دی ،زموږپه اصطلاح ختن زوج البنت ته ويل کيږي ځکه زموږپه اصطلاح داډول وصيت خالص په زوج البنت پوري مختص دی.

(۴)موصي وصيت وکړچې زمادمال څخه دومره دفلان شخص مثلازيداهل ته ورکړئ نو:امام ابوحنيفة رحمه الله په نزدله اهل څخه مراددزيدښځه ده لهذاددي وصيت حقداره دزيدښځه ده اوصاحبينو رحمهما الله په نزدپه اهل کې هغه ټول خلک داخل دي دکوموننفقې چې زيد ذمه وار دی لکه ښځه،بچيان،مريان اوخادمان ځکه په عرف کې داټول خلک داخل دي،دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزداهل دلفظ حقيقي معني ښځه ده په نوروباندې اطلاق مجازاکيږي لکه چې الله تعالى دحضرت موسى عليه السلام په باره کې فرمايلي دي: (وسارباهله) يعني ده خپله کوروالابوتله ولاړ) داستدلال وجه داده چې په دي وخت کې له حضرت موسى عليه السلام سره له ښځې سوانورقريبان نه وو،لهذاله اهل څخه مرادښځه ده.

(۵)موصي وصيت وکړچې زماله مال څخه دومره دفلان شخص (مثلازيد) آل ته ورکړئ نوله دي څخه دزيدکوروالااوخاندان مراديږي ځکه له آل زيدڅخه هغه قبيله مراديږي دکوم طرف ته چې دزيدنسبت کيږي ،اوکه موصي دخپل جنس لپاره وصيت وکړنوله هغه څخه دده دپلاردخاندان خلک مراددي ځکه انسان دخپل پلاردخاندان هم جنس وي،لهذادده له جنس څخه دده دپلاردخاندان خلک مراديږي

(۶)که یو سړي د خپلو قریبانو ،خپلوانو یاذوی الارحام یاخپل خاندان لپاره وصیت وکړنو دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد داوصیت دهغه له ذی رحم محرم قریبانوڅخه اقرب فالاقرب ته کیږي ځکه وصیت اخت المیراث دی اوپه میراث کې اقرب فالاقرب معتبیریږي نوپه وصیت کې هم اقرب فالاقرب معتبریږي لهذا داقرب په موجودګي کې ابعدلره وصیت نه ورکول کیږي.صاحبین رحمهما الله فرمایي چې داوصیت په لفظ داقارب دموصي هغوټولو قرابتونولره کیږي چې په اسلام کې دهغه انتهائي جداعلی طرف ته منسوب وي یعنې دهغه په اجدادوکې اول هغه چې مسلمان شوی وي دهغه داولادلپاره کیږي بیاپه هغه کې قریب اوبعید مذکراومؤنث ټول برابردي.

**فائده** :دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لمافی الشامیة :وقول الامام هوالصحیح کمافی تصحیح القدوری والدرالمنتقی .(ردالمحتار:۵/۳۸۵)

(۷)لیکن دموصي موراوپلاراودهغه بچیان اودهغه وارث په مذکوره وصیت کې نه داخلیږي ځکه اقارب هغه دي چې دبل چاپه واسطه قریب وي اووالدین اواولادخوځپله قریبان دي په هغوکې واسطه نشته،همدارنګه دوارث لپاره وصیت نه کول کیږي .

(۸)مذکوره وصیت (داقاربو وغیره لپاره وصیت ) ددوویازیاتو کسانولپاره کیږي ځکه اقارب وغیره دجمع صیغې دي اودمیراث په باب کې دجمع صیغې ددوولپاره استعمالیږي نوپه باب دوصیت کې هم ادنی جمع دوه کیږي .

(۹)داپرماقبل باندي تفریع ده چې داقاربولپاره په وصیت کولوکې وصیت داقرب فالاقرب لپاره کیږي یعنې که چاداقاربولپاره وصیت کړی ووااوحال داچې دهغه دوه آکاګان (تره ګان ) اودوه ماماګان موجوددي اوله هغوئ سوانور هیڅوک نه لري نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدداوصیت دهغه دد وواکاګانوترمنځ نصف نصف کیږي اودواړه ماماګان یې محروم کیږي ځکه امام صاحب رحمه الله اقرب ته اعتبارورکوي کمافی الارث اواقرب آکادی .

(۱۰)اوکه دموصي خالص یوآکااودوه ماماګان پاتې وونوپه دې صورت کې نصف وصیت دآکالپاره کیږي اوباقي نصف دد واړوماماګانوترمنځ برابرکیږي ځکه په لفظ داقارب کې معنی دجمع معتبرول ضروري دی حال داچې آکایودی ځکه هغه ته نصف ورکول کیږي باقي دهغه چاکیږي چې ترآکاوروسته اقرب دی وي .

(۱۱)اوکه دموصي یوآکااویوه توروپاتې وه نوپه استحقاق دوصیت هغوئ دواړه برابردي ځکه په قرابت کې دواړه برابردي نوپه استحقاق کې هم برابریږي.اوځرنګه چې دلفظ جمع معنی په دواړوسره متحققه کیږي لهذاکه دموصي ماماګان هم وونوهغوئ ته هیڅ نه ورکول کیږي .

(۱۲)قوله ولولدفلان ای لواوصی لولدفلان الخ.یعنې که چادفلان (مثلازید ) داولادلپاره وصیت وکړمثلاویې ویل چې زمادمال ثلث دفلان داولادلپاره دی نوداوصیت دفلان (زید ) داولادترمنځ مشترک کیږي مذکراومؤنث په دې کې برابردي ځکه دلفظ ولداطلاق پرټولوباندي مساوي دی .

(۱۳) قوله ولورثة فلان فللذكر مثل حظ الانثيين اى لواوصى لورثة فلان للذكر مثل حظ الانثيين، يعنې كه چا د فلان د وارثانو لپاره وصيت وكړنو دا وصيت د فلا د وارثانو ترمنځ د (للذكر مثل حظ الأنثيين) نارينه لره د دوو ښځو برابر حصه ده) مطابق كيږي يعني تر ښځه د نارينه حصه دوه چنده كيږي ځكه په لفظ د ميراث سره ايجاب تفضيل لره مقتضي دى كمافى الميراث.

## باب الوصية بالخدمة والسكنى والثمرة

### داباب د خدمت، اوسيدلو او ميوې د وصيت په بيان كې دى

مصنف رحمه الله له اعيانو سره متعلق د وصيت له بيان څخه فارغ شونو د منافعو متعلق د وصيت بيان يې شروع كړ، د دي باب تاخير وجه داده چې منافع وجوداً تر اعيانو وروسته وي نو مصنف رحمه الله وضعًا هم مؤخر بيان وكړ چې وضع د وجود مطابق شي.

(۱) وَتَصِحُّ الْوَصِيَّةُ بِخِدْمَةِ عَبْدِهِ وَسُكْنَى دَارِهِ مُدَّةً مَعْلُومَةً وَأَبَدًا (۲) فَإِنْ خَرَجَ الْعَبْدُ مِنْ ثُلُثِهِ سُلِّمَ إِلَيْهِ لِيَخْدُمَهُ وَإِلَّا خدم الْوَرَثَةَ يَوْمَيْنِ وَالْمُوصَى لَهُ يَوْمًا (۳) وَبِمَوْتِهِ يَعُودُ إِلَى وَرَثَةِ الْمُوصِي (۴) وَلَوْ مَاتَ فِي حَيَاةِ الموصى بَطَلَتْ (۵) وَبِثَمَرَةِ بُسْتَانِهِ فَمَاتَ وَفِيهِ ثَمَرَةٌ له هذه الثمر وإن زاد له هذه الثَّمَرَةُ وَمَا يَسْتَقْبِلُ كَغَلَّةِ بُسْتَانِهِ (۶) وَبِصُوفِ غَنَمِهِ وَوَلَدِهَا وَلَبَنِهَا الْمَوْجُودِ عِنْدَ مَوْتِهِ قال أَبَدًا أَوْ لَا

**ترجمه**: او صحيح دى وصيت د خپل مريي د خدمت او د خپل كور د اوسيدو تر معلومې مودې پورې او د هميشه لپاره بياكه ووت مريى له ثلث د مال څخه نو وردي كړي هغه ته چې د هغه خدمت وكړي كه نه بيا دي د وارثانو خدمت وكړي دوې ورځې او د موصى له يوه ورځ او د موصى له په مرګ سره راګرځي د موصي د وارثانو طرف ته او كه هغه مړ شو د موصي په ژوندكې نو بيا وصيت باطليږي او كه يې وصيت وكړ د خپل باغ د ميوې بيا مړ شو او په هغه كې ميوه وه نو موصى له لره هغه ميوه كيږي او كه يې لفظ د ابداً اوور زيات كړ نو هغه لره د غه ميوه كيږي او آينده چې كومه ميوه پيداكيږي هغه هم د ده كيږي لكه د باغ د حاصلاتو وصيت او كه يې وصيت وكړ د خپل پسه د وړيو يا د هغه د بچي يا د هغه د شيدو نو موصى له لره هغه كيږي چې موجود وي د موصي د مرګ په وخت كې كه يې ابداً لفظ ويلى وي او كه نه.

**تشريح**: (۱) د خپل مريي د خدمت او د خپل سراى د سكونت تر معلومو كلونو پورې ديو چا لپاره وصيت كول جائز دى او د هميشه لپاره هم وصيت جائز دى ځكه څرنګه چې په منافع كې دا جائز دى چې د موصي په ژوند كې غير د هغه مالك كړي او په عوض او غير عوض دواړو طريقو سره جائز دى مثلاً په عوض د اجرت د منافع يو څوك مالك ګرځول يا مفت عاريةً يو چاته شي وركول نو همدا رنګه د موصي له طرفه د خپل مرګ وروسته هم څوك د منافع مالک ګرځو جائز كيږي.

(۲) بياكه مريى د موصي له ثلث مال څخه وتلاى شواى يعنې د موصي د كل مال يو ثلث د مريي د قيمت سره برابر وو يا زيات وو نو دا مريى به د موصى له د خدمت لپاره موصى له ته سپارل كيږي ځكه د موصي د مال په يو ثلث كې د موصى له داسي حق دى چې وارثان له ده سره مزاحم نه شي كيدلاى، او كه موصي لره له دي مريي

سوانورمال نه وونودامريې به دوې ورځې دموصي دوارثانوخدمت کوي اويوه ورځ به دموصی له خدمت کوي ځکه دموصی له حق په يوه ثلث کې دی اودوارثانوحق په دووثلثانوکې دی اوځرنګه چې دمريي تقسيمول ناممکن دی ځکه نوپه دي کې نوبت مقررېږي.

(۳)بياکه موصی له مړشونودامريی دموصي دوارثانوطرف ته عودکوي دموصی له وارثان حق دانتفاع نه لري ځکه موصي دموصی له دخدمت لپاره ورکړی وونودموصی له وارثانوته نوکه چيرته حق انتفاع دموصی له دوارثانوجانب منتقل شي نودموصی له وارث ازسرنودموصي دملک دهغه درضامندي بغيرمستحق کيږي حال داچې داکار جائزنه دی.

(۴)اوکه دموصي په ژوندکې موصی له مړشونووصيت باطليږي ځکه وصيت تمليک منسوب الی الموت دی اوفی الحال دموصي ملک په هغه کې قائم دی اوظاهره خبره ده چې تردې وروسته په موصی له کې دمالک کيدواهليت نشته.

(۵)قوله وبثمرة بستانه ای لواوصی بثمرة بستانه.يعنې که موصي دخپل باغ په ميوه ديوچالپاره وصيت وکړنودموصي دمرګ په وخت کې چې کومه ميوه ده موصی له خالص دهغې مستحق کيږي آينده چې کومه پيداکيږي دهغې مستحق نه ګرځي اوکه موصي دوصيت کولوپه وخت کې داسي وويل چې زماداباغ ميوه دهميشه لپاره دفلان لپاره وصيت دی نوپه دي وصيت کې هغه ميوه هم داخله ده چې دموصي دمرګ په وخت موجوده ده اوهغه هم داخله ده چې دموصي له ژوندوروسته پيداکيږي اوکه موصي دميوې پرځای دباغ دحاصلاتووصيت وکړنودوصيت موجوده اوآينده دواړولره شامليږي ددواړوصورتونوترمنځ فرق داذی چې لفظ دثمرة عرفاً هغی ميوې ته ويل کيږي چې موجوده وي لهذامعدوم (چې آينده پيداکيدونکې ده) لره نه شامليږي البته که په وصيت کې يوداسي لفظ ووچې پرهميشګي يې دلالت کاوه نوبياآينده پيداکيدونکي ميوې لره هم شامليږي.باقی لفظ دغله (يعنې حاصلات) دخپلی وضعي معنی په اعتبارسره موجوداومعدوم دواړولره شامله ده ځکه دداوړوصورتونوترمنځ فرق کول پکارذی.

(۶)قوله وبصوف غنمه ای لواوصی بصوف غنمه الخ.يعنې که موصي ديوچالپاره دخپلوپسونودړويو وصيت وکړيايې دپسونودشيدويادهغودبچيانووصيت وکړبياموصي مړشونوموصی له لره له دغوشيانو څخه چې کوم شي موجوددی هغه کيږي که هغه پخپل وصيت کې داسي لفظ چې پرهميشګي دلالت کوي ويلی وي اوکه يې نه وي ويلی ځکه وصيت خالص ترهغه موجودشي پوري تعلق نيسي چې دايجاب په وخت يعنې دموصي دمرګ په وخت موجودوي اوآينده چې کومې وړې وغيره پيداکيږي هغه بالفعل معدوم دي لهذاهغوته وصيت نه شامليږي.

## باب وَصِيَّةِ الذِّمِّي

داباب دذمي دوصيت په بيان کې دی

مصنف رحمه الله دمسلمانانودوصيت له بيان څخه فارغ شونويې دذميانودوصيتونوبيان شروع کړځکه په معاملاتوکې ذمي دمسلمانانوتابع دی اومسلمان متبوع دی اوتابع ترمتبوع مؤخروي.

(۱) ذِمِّيٌّ جَعَلَ دَارَهُ بِيعَةً أَوْ كَنِيسَةً فِي صِحَّتِهِ فَمَاتَ فَهِيَ مِيرَاثٌ (۲) وَإِنْ أَوْصَى بِذَلِكَ لِقَوْمٍ مُسَمَّيْنَ فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ (۳) وَبِدَارِهِ كَنِيسَةً لِقَوْمٍ غَيْرِ مُسَمَّيْنَ صَحَّتْ (۴) كَوَصِيَّةِ حَرْبِيٍّ مُسْتَأْمَنٍ بِكُلِّ مَالِهِ لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ

**ترجمه** :يوه ذمي خپل سراى بيعه، يا كنيسا وګرځاوه پخپل صحت كې بيا مړشونو دا سراى ميراث كيږي اوكه يې وصيت وكړه دغو شيانو سره دمتعين قوم لپاره نو هغه له ثلث څخه معتبريږي اوكه يې وصيت وكړ دخپل سراى دكنيسه جوړيدو ديو غير معين قوم لپاره نو دا صحيح دى لكه وصيت كول دمستامن كافر پخپل ټول مال سره ديو مسلمان يا ذمي لپاره.

**تشريح** :(۱) كه يوه ذمي دخپل صحت په زمانه كې خپل سراى دعيسايانو عبادت خانه يا ديهوديانو عبادت خانه وګرځاوه بيا دى مړشونو دده په وصيت عمل نه كيږي بلكې دا سراى دده وارثانو ته وركول كيږي ځكه چې كله ده دخپل صحت په وخت كې داويلي دي نو دا وصيت نه دى بلكې وقف دى او دذمي وقف دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد لازم نه دى او دصاحبينو رحمهما الله په نزد كه چيرته ګناه نه وه لازميږي كه نه بيا نه لازميږي او دلته وقف دى او ظاهره خبره ده چې ګناه ده ځكه بالاتفاق دا وصيت صحيح نه دى.

(۲) اوكه ذمي داوصيت وكړچې زما له دغه سراى څخه دي دفلان معين قوم لپاره ديهوديانو عبادت خانه جوړه كړاى شي نو څرنګه چې دواصيت دى لهذا دا صحيح دى او په ثلث دمال كې نافذ كيږي ځكه په وصيت كې څوك خپل خليفه او دموصى به مالك ګرځول كيږي او دذمي استخلاف هم جائز دى او تمليك يې هم جائز دى لهذا دا وصيت جائز دى.

(۳) قوله وبداره كنيسة لقوم غير مسمين اى لو اوصى بداره كنيسة الخ ،يعني كه ذمي مذكور وصيت دغير معين قوم لپاره كړى وونو دامام ابو حنيفة رحمه الله په نزد جائز دى او دصاحبينو رحمهما الله په نزد ناجائز دى .ځكه دا وصيت ګناه ده،كه څه هم ددوئ په اعتقاد قربت دى او دګناه وصيت باطل دى ځكه دهغه په نافذ كيدو كې ګناه برقرار ساتل دي چې داكار ناجائز دى،دامام صاحب رحمه الله دليل دادى چې دادهغوئ داعتقاد مطابق قربت دى او شريعت موږته داحكم راكړى دى چې موږبه دوئ او ددوئ اعتقاداتو ته تعرض نه كوو ځكه دهغه دا وصيت صحيح ګڼل كيږي،دامام صاحب رحمه الله قول راجح دى لمايعلم من صنيع صاحب الهداية حيث اخر دليله وهذا ترجيح الراجح عنده.

(۴) قوله كوصية حربي اى صحت هذه الوصية كماتصح وصية حربي.يعني مذكور وصيت صحيح دى لكه يو حربي كافر چې په داراسلام كې ديو مسلمان يا ذمي لپاره پخپل ټول مال سره وصيت وكړي نو دا جائز دى ځكه تر ثلث زيات وصيت ممتنع كيدل دوارثانو دحق په وجه سره دى په همدي وجه دوارثانو په اجازه سره هغه نافذ كيږي مګر څرنګه چې دحربي مستامن په دار حرب كې دموجودو وارثانو لپاره كوم داسي حق نشته چې دهغه رعايت وكړاى شي ځكه نو چې هغه دټول مال وصيت كړى دى دا صحيح دى.

## باب الوصي

دا باب دوصي په بيان كې دى

مصنف رحمه الله دموصى له له احكامو څخه فارغ شونو دوصي يعني موصى اليه احكام يې شروع كړل ځكه چې دموصى له احكام دخپل كثرت په وجه معرفت ته زيات محتاج دي ځكه يې دهغه احكام دموصى اليه تر احكامو مخكې ذكر كړل.

(۱) ولو أوصى إلى رجل فقبل عنده ورد عنده فيرتد وإلا لا (۲) وبيع التركة كقبوله (۳) وإن مات الموصي فقال لا أقبل ثم قبل صح إن لم يخرجه قاض منذ قال لا أقبل (۴) وإلى عبد وكافر وفاسق بدل بغيرهم (۵) وإلى عبده وورثته صغار صح وإلا لا (۶) ومن عجز عن القيام ضم إليه غيره (۷) وبطل فعل أحد الوصيين (۸) إلا في التجهيز وشراء الكفن وحاجة الصغار والاتهاب لهم ورد وديعة عين وقضاء دين والخصومة في حق الميت وتنفيذ وصية معينة وعتق عبد معين

**ترجمه**: يو څوك يې وصي وګرځاوه او هغه قبول كړ دده په وړاندې او رديې كړ دده په وړاندې نو رديږي كه نه بيانه رديږي. دوصي خرڅول دتركه دوصيت دقبليدو په شان دى او كه موصي مړشو او وصي وويل زه يې نه قبلوم بيا يې قبول كړ نو صحيح دى كه قاضي برطرف كړى نه وو له هغه وخت څخه چې ده ويلي وو لا اقبل. او كه يې مريي، يا كافر يا فاسق وصي وګرځاوه نو قاضي دي بدل كړي په نورو سره او كه يې وصي مقرر كړ خپل مريي او حال دا چې دهغه وارثان كم عمره وو نو صحيح دى كه نه بيانه دى صحيح او كوم څوك چې عاجزوي دوصيت دترسره كولو څخه نو قاضي دي له هغه سره يو بل څوك ملګرى كړي او باطل دى فعل له دوو. وصيانو څخه ديوه غير له تجهيز، تكفين، اوكفن او دنابالغوله حاجاتو دهغوئ لپاره، دخريدكولو. دهغوئ لپاره هبه قبلولو او معين امانت واپس كولو او قرض اداكولو او معين وصيت نافذولو او معين مريى آزادولو او مړي دحقوقو په باره كې دخصومت نه.

**تشريح**: (۱) كه موصي يو څوك وصى وګرځاوه او وصى دموصي په مخ كې دارد كړنو ارديې صحيح دى ځكه دا تبرع ده نو ده لره اختيار شته كه يې برقرار ساتي او كه يې ردوي همدا رنګه موصى پرده باندې دتصرف في الوصية لازم كولو ولايت نه لري او په دې صورت كې موصي لره دوكه هم نشته او كه وصى دموصي په مخ كې دا وصيت قبول كړ مګر وروسته يې دموصى پس شا دا وصيت رد كړنو ارديې نه صحيح كيږي ځكه مړه پرده باندې اعتماد وكړ مطمئن شو نو كه دارد صحيح وګڼل شي نو موصي په دوكه كې لويږي.

(۲) كه موصي يو څوك وصى وګرځاوه هغه دوصيت تر قبليدو مخكې دموصى له تركه څخه يو شى خرڅ كړ نو دادې دليل دى چې وصي وصى كيدل قبول كړى دى او دا بيع نافذيږي ځكه له وصى څخه صادره شوې ده نو له دې څخه ثابته شوه چې دوصايت دقبليدو لپاره تلفظ ضروري نه دى بلكې په فعل او عمل سره هم قبليدل صحيح دى.

(۳) كه دموصى دوصيت په وخت كې وصي وصى كيدل قبول نه كړ او دموصى تر مرګ وروسته يې هم لومړى خل وويل چې ما دا وصايت نه دى قبول كړى او بيا يې وويل چې ما وصايت قبول كړى دى نو دوصى او س وصايت قبلول صحيح دى په دې شرط چې دده له دې ويناڅخه چې ما وصايت نه دى قبول كړى قاضي دى له وصايت څخه خارج كړى نه وي ځكه كه دده وصى كيدل قبول نه شي نو په دې كې دمړه ضرر دى ځكه هغه پرده

باندي اعتماد کړی دی مړشوی دی نو ددي لپاره چې مړله ضرر څخه په امان شی دده دوصی کید واقرار صحیح ګڼل کیږي .

(۴)قوله والی عبد وکافر ای لواوصی الی عبد وکافر الخ،یعني که چادبل چامریی یاکافریافاسق خپل وصی مقررکړنو قاضي ته پکاردی چې دوئ له وصیت څخه خارج کړي نورخلک ددوئ قائم مقام وګرځوي وجه یې داده چې دادري واړه له عیب څخه خالي نه دي،ځکه چې دمریي ولایت خودمولی پرکرم اونظرباندي دی که هغه اجازه ورکړي نوباقی دی که نه ختم اووروسته تراجازه هم چې کله یې مولی وغواړي هغه محجورکولای شي اوپه کافرکې دنقصان باعث دادی چې دی کافردی چې دیني دښمني یې دي ته هڅوي چې دی دمسلمان لپاره شفقت پرېږدي اوپه فاسق کې کمی دادی چې په خیانت سره متهم دی لهذاپه دغووجوهوسره قاضي بایددوئ له وصایت څخه خارج کړي ددوئ پرځای نورخلک مقررکړي .

(۵)قوله والی عبده وورثته صغارصح ای لواوصی الی عبده الخ ،یعني که چاخپل مریی وصی مقررکړحال داچې دموصی وارثان نابالغ دي نوداوصیت صحیح دی ځکه دهغه خپل مریی عاقل بالغ دی اودتصرف په باره کې مستقل دی دبل چاپرده باندي ولایت هم نشته ځکه دموصی واړه اولادونه که څه هم ددي مریی مالکان دي لیکن هغوئ پرده باندي داسي ولایت نه لري چې دی له تصرف څخه رامنع کړي نودهیڅ مانع دنه موجودیت په وجه صحیح دی اوکه په وارثانوکې بالغ موجودوي نوبیاداوصیت نه صحیح کیږي ځکه بالغ وارثان ددي حق لري چې مریی منع کړي اودتصرف اجازه ورنکړي ولی بالغ وارث ددغه مریی مولی دی چې پرهغه باندي یې ولایت حاصل دی لهذامریی دوصایت دحق له پوره کیدوڅخه عاجزاوقاصرکیږي نووصایت هیڅ فائده نه کوي .

(۶)که یووصی دوصیت له ترسره کولوڅخه عاجزوي نوقاضی دي له ده سره دموصي اودهغه دوارثانودرعایت لپاره یوغیرعاجزڅوک ورسره ملګری کړي چې په ځینوامورو کې کفایت وکړي .

(۷)که چادووکسانوته یوځای یاجلاجلایوپه بل پسی وصیت وکړنودطرفینورحمهماالله په نزدله دوئ دواړوڅخه یوه ته دبل په نه موجودګي کې په دي وصیت کې تصرف کول ناجائزدی ځکه په وصیت کې دتصرف کولوولایت دموصی له طرفه په سپارلوسره حاصلیږي نودسپارلووصف معتبریږي اودلته موصی دواړه سره یوځای کړي ولایت یې ورته سپارلی دی نووصف داجتماع معتبریږي اوموصي هم ددواړوپه رایه راضي شوی دی نه دیوه په رایه سره لهذادیوه تصرف نه صحیح کیږي .

(۸)په مذکوره مسئله کې ویل شوي ووچې که وصی دوه کسان وونوله دواړوڅخه یوه ته دبل په نه موجودګی کې په وصیت کې دتصرف کولواختیارنشته لیکن له دي څخه څوشیان مستثنی دي :**نمبر- ۱**:په تجهیزمیت (هغه ټول کارونه چې مړی ترقبرپوري ورته مجبوروي)کې به یووصی دبل انتظارنه کوي.**نمبر-۲**:دمړي دکفن اخیستوضرورت وي نویووصی یې دبل بغیراخیستلای شي.ددي دواړوصورتونووجه داده چې هغه بل ته په انتظارکولوکې دمړي دخرابید وخطره شته .

**نمبر - ۳**:كه دموصى دوړوماشومانولپاره دخوراك اوجامووغيره داخيستوضرورت ووي نوهم يووصى دبل انتظارنه كوي ځكه هغه ته په انتظاركولوكې دماشومانودضائع كيدوانديښنه شته . **نمبر - ۴**:كه دموصى ماشومانوته چاهبهٔ يوشى وركړنودهغه دقبليدولپاره به هم يووصى دبل انتظارنه كوي . **نمبر - ۵**،كه له موصى سره دچامتعين امانت پروت ووهمدارنگه كه پرموصى باندي دچاڅه قرض وونودهغوپه واپس كولوكې به يووصى دبل انتظارنه كوي ځكه دغه اموړله باب ولايت سره تعلق نه لري بلكې له باب اعانت څخه دي همداوجه ده چې چاته دموصى له طرفه ولايت حاصل نه وي هغه هم داامورترسره كولاى شي مثلا صاحب وديعت چې خپل سامان په لاس ورشي ياقرض غوښتونكي ته دخپل حق جنس په لاس ورشي نوهغوئ يې خپله اخيستلاى شي .

**نمبر - ۶**: **نمبر - ۷**: دموصى ديوخاص وصيت په پوره كولواودهغه ديومعين مريي په آزادولوكې هم يووصى دبل انتظارنه كوي ځكه په دي كې ددواړورايه ته ضرورت نشته . **نمبر - ۸**:دمړي دحقوقوپه باره كې له يوچاسره خصومت كوي نوهم يووصى يې كولاى شي دبل انتظاردي نه كوي ځكه خصومت ددواړودجمع كيدوپه صورت كې هم يويې كوي ددي لپاره چې ددواړودخصومت څخه په مجلس قضاء كې شوروغوغارامنځ ته نه شي ځكه دبل موجوديدل ضروري نه دى .

(۹)ووصي الوصي وصي التركتين(۱۰)وتصح قسمته عن الورثة مع الموصى له ولوعكس لا(۱۱)فلوقاسم الورثة واخذ نصيب الموصى له فضاع رجع بثلث مابقى(۱۲)وان اوصي الميت بحجة فقاسم الورثة فهلك مافي يده او دفع الى من يحج عنه فضاع في يده يحج عنه بثلث ما بقي(۱۳)وصح قسمة القاضي واخذ حظ الموصى له ان غاب(۱۴)وبيع الوصي عبدا من التركة بغيبة الغرماء .

**ترجمه** :اودوصي وصي ،وصي دى ددواړوتركو،اوصحيح دى دوصى تقسيم كول دوارثانوله طرفه له موصى له سره اوكه ددي عكس ووبياصحيح نه دى،بياكه يې تقسيم وكړله وارثانوسره اودموصى له حصه يې واخيسته اوهغه ضائع شوه نوثلث دمابقى دي واخلي،كه مړي دحج وصيت وكړاووصى مال تقسيم كړوارثانوته بياضائع شوهغه څه چې دوصى په لاس كې وواويايې وركړهغه چاته چې حج كوونكى دى دده له طرفه بيا دهغه له لاسه ضائع شونودمړي له طرفه دي حج وكړاى شي په ثلث دمابقى سره اوصحيح دى دقاضي تقسيم كول او اخيستل دهغه دموصى له حصه دهغه لپاره كه چيرته هغه غائب وي اوصحيح دى خرڅول دوصي دتركه مريي دقرض غوښتونكوپه غياب كې .

**تشريح** :(۹)موصي مثلازيدوصى وگرځاوه اوزيدترخپل مرگ مخكي بكرخپل وصى وگرځاوه نوداحنافو رحمهم الله په نزدبكرپه دواړوتركوكې وصي گڼل كيږي دامام شافعي رحمه الله په نزدبكردزيدپه تركه كې وصي گرځي مگردموصى اول دتركه وصى نه بلل كيږي هغه وصى تاكل پروكيل تاكلوباندي قياس كړى دى يعنې لكه څرنگه چې دوكيل وكيل دموكل اول وكيل نه شي كيداى دموكل ثانى وكيل گرځي همدارنگه دوصي وصي هم دى.داحنافو رحمهم الله دليل دادى چې موصى زيدخپل قائم مقام وگرځاوه نوددلالة اذن دى چې زيدبكرخپل قائم مقام گرځولاى شي ځكه موصى پوهيږي چې ښايې دكومواموروليپاره چې ماذى وصى كړى دى دهغوترپوره كيدومخكي دى خپله مړشي نوبيابه دى دهغه وصيت څنگه نافذوي نوداسي ښكاري چې

موصي په دي خبره باندي راضي دی چې وصی خپل قائم مقام بل وصی مقرر کړي لهذا بکر په دواړو ترکو کې وصی شمارل کیږي.

(۱۰) که وصی د وارثانو په نه موجودګي کې دهغوی د طرفه نائب شو له موصی له سره یې تقسیم وکړنو دهغه داتقسیم کول صحیح دی اوکه ددي عکس ووبیانه دی صحیح یعنې که موصی له موجودنه وو او وارثانو موجودوونو له وارثانو سره داوصي دموصی له حصه نه شي تقسیمولای ځکه وصی او وارث دواړه دمړه قائم مقام دي او موصی له دمړه قائم مقام نه دی لهذا وصی لره دا جائزه ده چې دمړه دبل قائم مقام قائم مقام شي مګر هغه دا حق نه لري چې دموصی له قائم مقام شي.

(۱۱) بیاکه یې دموصی له په نه موجودګي له وارثانو سره مال تقسیم کړ دموصی له حصه یې خپله قبض کړه او هغه له ده څخه ضائع شوه نو موصی له به له باقي ترکه څخه ثلث مال اخلي ځکه وصی چې کوم تقسیم کړی دی داتقسیم نه دی صحیح شوی ځکه موصی له ته له باقي ترکه څخه ثلث مال ورکول کیږي. البته وصی دهغه نه ضامن کیږي ځکه وصی په دي کې امین دی او امین که متعدي نه وونو پر ده باندي ضمان نه راځي.

(۱۲) که موصی دحج وصیت کړی وو او وصی له وارثانو سره دامال تقسیم کړ د وصیت مطابق وصی د حج حصه قبض کړه بیا دغه حصه له وصی څخه ضائع شوه (هلاکه شوه) یا وصی هغه چاته ورکړه چې دموصی له طرفه حج ته ځي بیاله هغه څخه هلاکه شوه نو دامام ابو حنیفة رحمه الله په نزد په دواړو صورتونو کې له مابقي ترکه څخه حج کول لازمیږي ځکه تقسیم بذات خود مقصود نه وي بلکې له تقسیم وروسته له تقسیم څخه په حاصل شده حصو چې کوم کار کیږي هغه اصل مقصود وي او دلته اصل مقصود د حج ادائیګی ده نو ترڅو چې حج ادا شوی نه وي تر هغه وخته تقسیم ته اعتبار نه ورکول کیږي لهذا د مابقي ترکه له ثلث څخه به حج ادا کیږي.

(۱۳) که موصی له غائب وو او قاضي له وارثانو سره مال تقسیم کړ او دموصی له حصه یې پخپله قبض کړه له خان سره یې وساتله نو دا صحیح دی ځکه قاضي ددي لپاره مقرر شوی دی چې دمسلمانانو دامورو نګراني وکړي خاص بیا دمړو او غائبینو لپاره ځکه دا خلک خپله له تصرف کولو څخه قاصر دي لهذا دقاضي دا کار چې دغائب حصه یې جلا کړي او هغه یې قبض کړي صحیح دی.

(۱۴) قوله وبیع الوصی عبداً ای وصح بیع الوصی الخ. یعنې که موصی مقروض وي او دهغه وصی دقرض غوښتونکو په نه موجودګي کې له ترکه څخه یو مریی خرڅ کړنو دا بیع جائزه ده ځکه وصی دموصی قائم مقام وي نو موصي که چیرته په خپل ژوندکي دا مریی خرڅ کړی وای خو دا بیع جائزه وه که څه هم ده په مرض موت کې دابیع کړې وای نو دوصی بیع هم جائزه ده همدارنګه په دي وجه هم جائزه ده چې دقرض غوښتونکو حق له مالیت سره تعلق لري نه دمریی له صورت سره او دمریی په خرڅولو سره مالیت نه باطلیږي ځکه دمریی په بدله کې روپۍ موجودې دي ځکه دابیع جائزه ده.

(۱۵) وضمن الوصي إن باع عبداً أوصى ببيعه والتصدق بثمنه إن استحق العبد بعد هلاك ثمنه عنده ويرجع في تركة الميت (۱۶) وفي مال الطفل إن باع ماله واستحق المبيع وهلك الثمن في يده فهو على الورثة في حصتهم (۱۷) وصح احتياله بماله لو خيراً له (۱۸) وبيعه وشراؤه بما يتغابن (۱۹) وبيعه على الكبير غير العقار ولا يتجر في ماله (۲۰) ووصي الأب أحق بمال الطفل من الجد فإن لم يوص الأب فالجد كالأب

**ترجمه**: اوضامن گرځي وصی که یې خرڅ کړهغه مریی دکوم چې دخرڅلا واودثمنودخیراتولووصیت شوی وواوکه دبل چامستحق وګرځیدمریی وروسته له دي چې دهغه ثمن له وصي څخه هلاکې شوې اودی به یې اخلي دمړي له ترکه څخه اودماشوم په مال کې که یې دهغه مریی خرڅ کړاوهغه دبل چامستحق وګرځیداوثمن دده له لاسه هلاکې شوې اوماشوم به اخلي له وارثانو څخه دخپلې حصی په اندازه اوصحیح دی حواله کول دوصی دنابالغ مال لره که خیروودهغه لپاره اودهغه خرڅول اواخیستل په دومره نقصان سره څومره چې خلک هغومره دوکه کیږي اوصحیح دی دبالغ شیان خرڅول له ځمکې نه علاوه اوتجارت به نه کوي دموصی په مال کې اودپلاروصی زیات حقداردی دماشوم دمال ترنیکه اوکه پلاروصی نه درلودنو بیانیکه دپلار په شان دی.

**تشریح** :(۱۵)موصی وصیت کړی ووچې زمامریی دي خرڅ کړای شی دهغه قیمت دي پرمسکینانوباندي صدقه کړای شي وصی دوصیت مطابق مریی خرڅ کړاوثمن یې قبض کړې بیاثمن دوصی څخه هلاکې شوې اودمریی هم بل مستحق پیداشونودمشتري کومې پیسې چې وصی وصول کړي دي اوهغه هلاکې شوې دي په هغوسره وصی ضامن ګرځي چې دخپل طرف څخه به دهغه ضمان اداکوي ځکه عاقدوصی دی اودبیع دحقوقوذمه واري پرعاقدباندي راځي بیاچې وصی کوم ضمان مشتري ته اداکړی دی هغه به دمړه له ترکه څخه وصول کړي ځکه وصی دمړه لپاره عامل دی لهذادی حق لري چې اداکرده ضمان دمړه له ترکه څخه وصول کړي لکه وکیل چې خپل موکل ته درجوع حق لري.

(۱۶)که وصی میراث تقسیم کړاوپه وارثانوکې یونابالغ ماشوم دی چې دهغه په حصه کې یومریی راغی هغه چې وصی خرڅ کړاوثمن یې قبض کړې بیاثمن دوصی له لاسه هلاک شوې اومریی دبل چامستحق وګرځیدنووصی مشتري لره دثمنوضامن ګرځي بیاځرنګه چې وصی دماشوم لپاره کارکوونکی دی ځکه به نومذکوره ضمان دماشوم له مال څخه واپس واخلي بیابه ماشوم داثمن چې دده له حصی څخه وصی مشتري ورکړي دي له نوروو ارثانو څخه واخلي ځکه داخبره مخته تیره شوه چې له تقسیم وروسته که دکوم شي بل څوک مستحق پیداشونوتقسیم ماتیږي لهذادماشوم په حصه کې چې څومره نقصان راغلی دی هغه به له نوروو ارثانو څخه وصولوي.

(۱۷)که دمذکوریتیم مال پرچاباندي قرض وواومقروض په دي باره کې دبل چاحواله ورکړه یعني بل څوک یې وروبنودچې له هغه څخه خپل قرض وصول کړئ اومحتال علیه هم داحواله ومنله نوکه دیتیم په حق کې دحواله په قبلولوکې کومه فائده وه نودوصی دهغه لپاره قبلول صحیح دی ځکه دوصي ولایت بناء برشفقت دی نوکوم صورت چې دماشوم لپاره بهتروي هغه اختیارولای شي.

(۱۸)قوله وبیعه وشرائه بمایتغابن،ای صح بیع الوصی وشراؤه بمایتغابن.یعني که داوصی دیتیم په مال سره خریدوفروخت کوي نوپه دومره نقصان سره خریدوفروخت ورته جائزدی چې هغومره نقصان په داسی شیانوکې دتاجرانوترمنځ رواج وي اوکه غبن فاحش یعني زیات نقصان وونوبیادده خریدوفروخت ناجائزدی ځکه په غبن فاحش کې هیڅ شفقت نشته.

(۱۹)قوله وبيعه على الكبير اى صح بيعه على الكبير الخ .يعني كه دموصى يو بالغ زوى وو او هغه غائب وو نو وصى دهغه بالغ هلک له ځمکې نه علاوه دنورټول سامان دخرڅولو اختيارلري ځکه پرکوموشيانوچې دپلارولايت وو پرهغو دوصى هم ولايت شته او پلاردبالغ زوى له ځمکې نه علاوه پرنورسامان باندي ولايت لري لهذا وصى لره هم ولايت حاصل دى .البته وصى ديتيم په مال کې تجارت نه شي کولاى مطلب دا چې وصى ديتيم په مال کې دخپل ځان لپاره تجارت نه شي کولاى ځکه دى دمال دحفاظت لپاره مقرر کړى دى نه دتجارت لپاره او ديتيم لپاره تجارت کول يې صحيح دى کمامر.

(۲۰)که دموصى پلار يعني ديتيمانو نيکه هم موجود وو او وصى هم موجود وو نو زموږ په مذهب وصى ترنيکه ديتيم دمال زيات حقدار دى او دامام شافعى رحمه الله په نزد نيکه زيات حقدار دى ځکه شريعت نيکه دپلار قائم مقام ګرځولى دى آن چې هغه دپلار په نه موجوديت کې دپلار دميراث مستحق کيږي .زموږ دليل دا دى چې کله موصى خپل وصى مقرر کړنو دپلارولايت دوصى طرف منتقل شونو ګواکې دپلارولايت قائم دى لهذا وصى پرنيکه باندي داسې مقدم دى لکه خپله دپلار په موجودګې چې پلار پرنيکه باندي مقدم وي .او که پلار کوم وصى نه وو مقرر کړى نو نيکه دپلار په درجه کې کيږي ځکه ترنورو خلکو پيانيکه يتيم ته ترټولو زيات ورقريب دى او ترټولو زيات شفيق دى .

**فصل في الشهادة**

دافصل دوصيانو دشهادت په بيان کې دى

مصنف رحمه الله چې دوصيت له بيان څخه فارغ شونو دشهادت بيان يې شروع کړځکه چې وصيت اصل دى او په هغه کې شهادت يو عارض دى او عارض مؤخروي ځکه يې دشهادت احکام مؤخرذکرکړي دي .

(۱)شهد الوصيان ان الميت أوصى لزيد معهما لغت (۲)إلا ان يدعي زيد (۳)وكذا الابنان (۴)وكذا لو شهد لوارث صغير بمال (۵)أو لكبير بمال الميت (۶)ولو شهد رجلان لرجلين على ميت بدين ألف درهم وشهد الآخران للأولين بمثله تقبل وإن كانت شهادة كل فريق بوصية ألف لا

**ترجمه** :ګواهي ورکړه دووو صيانو چې مړه وصى ګرځولى دى زيدله دوئ سره نو ګواهي لغوه ده مګردا که زيد دعوى وکړه او همدارنګه ددووزامنو ګواهي او همدارنګه که دواړوګواهي ورکړه دنابالغ وارث لپاره يا دبالغ لپاره دمړه دمال او که ګواهي ورکړه دووکسانو دنورودووکسانو لپاره پرمړه باندي ديوزرروپو قرض او ګواهي ورکړه دوئ دلومړنيو دووشاهدانو لپاره ديوزرروپو نو ګواهي يې قبليږي او که وه ګواهي دهرفريق پريوزر دوصيت باندي نو بيا نه قبليږي .

**تشريح** :(۱)که دووو صيانو داګواهي ورکړه چې موصى يوبل دريم کس مثلازيدهم له موږسره وصى ګرځولى وونو داګواهي لغوه کيږي ځکه دادوه ګواهان پخپله ګواهي کې متهم دي او دمتهم ګواهي نه معتبريږي دتهمت وجه يې داده چې دادوه کسان دخپلې دي ګواهي په ذريعه دخپل ځان لپاره يوبل معين او مددګار ثابتوي ځکه ددوئ ګواهي نه ده معتبره .

(۲)البته كه زيد خپله هم دوصى كيدودعوه وكړه اوبيادغودوو گواهانو گواهي وركړه نوبيا بې شكه چې دزيد وصي كيدل ثابتيږي ځكه قاضى داحق لري چې هغه له دي دووو صيانو سره يوبل وصى ملگرى كړي په دي شرط چې هغه دريم په دي راضي وي كه څه هم څوک ددغه دريم په وصى كيدوباندي گواهي ورنه كړي نوچې كله قاضى خپله دوصى مقرركيدوحق لري نودلته ددغووصيانودگواهي قبليدوحق هم لري حصل داچې ددغه دريم تقررقاضى كړى دى البته ددغودووو صيانوپه گواهي سره قاضى ددريم وصى دتعين كيدوله مشقت څخه محفوظ شونودهغه وصى كيدل دقاضى په تقرر سره شوى دى نه دگواهانوپه گواهي سره

.

(۳)همدارنگه كه يوسړى مړشودوه زامن يې پاتى شوهغوئ دواړوگواهي وركړه چې زموږپلار فلان شخص مثلازيدخپل وصى مقرركړى وونودهغوئ داگواهي باطليږي ځكه هغه داړه هلكان په دي گواهي كې متهم دي اودمتهم گواهي نه معتبريږي دتهمت وجه يې داده چې دوئ گواهي وركوي ددي لپاره چې دتركه يومحافظ دوئ ته ورپيداشي .

(۴)موصى مړشواودهغه دوه وصيان دي اويونابالغ ماشوم دى نوځرنگه چې دماشوم په مال كې ددغودووو صيانودتصرف كولوحق شته كه دماشوم مال له تركه څخه وي ياله تركه علاوه وي اوس داوصيان ديومال په باره كې داگواهي وركوي چې فلان مال ددغه ماشوم دى نوددوئ داگواهي نه ده معتبره ځكه دوئ پخپله دغه گواهي كې متهم دي تهمت يې دادى چې دكوم مال په باره كې دوئ گواهي وركوي په هغه كې خپل تصرف ثابتوي .

(۵)قوله اولكبراى لوشهدالكبيرالخ .يعنې كه دغودووو صيانودموصى ديوبالغ وارث لپاره دمړه دمال گواهي وركړه نودامام ابوحنيفة رحمه الله په نزدجائزنه دى اودصاحبينورحمهما الله په نزدجائزدى ځكه چې كله وارث بالغ دى نودوصيانوپه تركه كې دتصرف كولوحق نشته لهذاپه دي گواهي كې تهمت نشته ځكه داگواهي معتبره اوجائزه ده .دامام ابوحنيفة رحمه الله دليل دادى چې بالغ كه چيرته غائب وونودهغه دمال دحفاظت اودمنقولى مال دخرڅولوولايت وصى لره حاصل دى لهذاتهمت په دغه صورت كې هم برقراردى ځكه دهغوئ داگواهي نه ده معتبره .

**فائده** :دامام ابوحنيفة رحمه الله قول راجح دى لماقال المفتي غلام قادر النعماني:القول الراجح هو قول ابى حنيفة رحمه الله قال العلامة وهبة الزحيلي قال ابوحنيفة رحمه الله بطل شهادة الوصيين لوارث صغير بمال مطلقا ولوارث كبير بمال الميت .........وهذاهو الراجح لدى الحنفية(القول الراجح: ۲/۳۸۷)

(۶)يوسړى مړشوبيادووكسانو مثلازيداوبكرگواهي وركړه چې دمرحوم پرذمه دخالداوشاهدزردرهمونه قرض دي همدارنگه خالداوشاهدگواهي وركړه چې پرمرحوم باندي دزيداوبكرزردرهمونه قرض دي نودادواړه گواهياني معتبرې دي اوكه هرفريق دبل په حق كې دقرض پرځاى دوصيت گواهي وركړي نودهرفريق گواهي باطله ده ځكه قاعده داده چې چيرته دداړوفريقواشتراک ثابت شي هلته ددواړوگواهي باطليږي اوچيرته چې شركت نه ثابتيږي هلته گواهي نه باطليږي اوس دقرض په صورت كې ځرنگه چې قرض واجب فى الذمه وي اوذمه داسي شى دى چې مختلف حقوق بغيراشتراک قبلوي نودلته ددواړوفريقوپه كوم

شي کې شرکت نه ثابتيږي لهذا دقرض په صورت کې ددواړوګواهي معتبره ده اودوصيت په صورت کې ددواړوفريقودحق تعلق له ترکه سره راځي له ذمه سره نه راځي ځکه ذمه خودمرګ په وجه ختمه شوه نوپه ترکه کې ددواړوفريقوشرکت ثابتيږي لهذادواړه ګواهيانې باطليږي.

## كتاب الخنثى

داكتاب دخنثى داحكامو په بيان کې دى .

خُنثى فُعلى وزن دى له تخنث څخه دى په معنى ملائمت اونرمي دى اودخنثى په اعضاؤکې هم ملائمت اونرمې وي،په اصطلاح کې خنثى هغه زوکړى دى چې فرج اوذکردواړه لري.
له ماقبل سره يې مناسبت دادى چې اصل دادى چې دانسان لپاره يوه آله وي اوغالب الوجودهم همدادى اودوه آله درلودل نادرالوجوددى اوغالب الوجودترنادرالوجوداحق بالتقديم وي.

(۱)هومن له فرج وذكر فإن بال من الذكر فغلام وإن بال من الفرج فأنثى (۲)فإن بال منهما فالحكم للأسبق (۳)فإن استويا فمشكل ولا عبرة بالكثرة (۴)إن بلغ وخرجت له لحية أو وصل إلى النساء فرجل وإن ظهر له ثدي أو لبن أو أمكن وطؤه فامرأة (۵)وإن لم تظهر له علامة أو تعارضت فمشكل (۶)فيقف بين صف الرجال والنساء (۷)وتبتاع له أمة تختنه فإن لم يكن له مال فمن بيت المال ثم تباع (۸)وله أقل النصيبين فلو مات أبوه وترك ابنا له سهمان وللخنثى سهم

**ترجمه** :خنثى هغه دى چې ذکراوفرج دواړه ولري بياکه يې له ذکرڅخه بولې کولي نوداندى اوکه بولې دفرج له خواکوي نوښځه ده .اوکه له دواړوخواووڅخه بولې کوي نوحکم هغه اسبق لره دى اوکه دواړه برابروي نوخنثى مشکل دى اوکثرت لره اعتبارنشته بياکه هغه بالغ شواوږيره يې راغله ياېې له ښځوسره کوروالى وکړنوداندى اوکه يې ښکاره شوتيان ياشيدې ياحيض ورته راغى ياېې حمل ونيوياوطى ورسره ممکنه وه نوداښځه ده .اوکه کومه علامه ښکاره نه شوه يامتعارض علامات ښکاره شول نودامشکل دى بيادرول کيږي دښځواونارينه وُدصف په منځ کې اوورته وادې اخيستل شي منځه چې ختنه وروکړي اوکه يې مال نه درلودنودبيت المال څخه دې ورواخيستل شي بيادې خرڅ کړاى شي اوده لره له دوحصوکمه حصه ده بياکه پلارمړشويوزوى يې پاته شونوزوى لره دوې حصې اوخنثى لره يوه حصه ده .

**تشريح** :(۱)که ديوماشوم ذکراوفرج دواړه وونوداخنثى دى بياکه يې له ذکرڅخه بولې کولې نوهلک شمارل کيږي اوکه يې دفرج دخواڅخه بولې کولې نوداښځه ګڼله کيږي،ځکه په کومه عضوه سره چې بولې کوي دادليل دى چې اصل عضوهمداده هغه بله عارضى ده اوپه منزله دعيب ده .
(۲)اوکه يې له دواړولاروڅخه بولې کولي نوچې له کومې عضوى نه مخکې بولې وځي هغه عضومعتبره ده اواصلى شمارله کيږي اودهغى حکم پرده باندې جارى کيږي ځکه سبقت دليل دى چې مجرى اصلى همدادى هغه بل عارضى دى ،همدارنګه له کومې عضوى نه چې مخکې بولې راوځي دهغه حکم کول کيږي بياچې کله له دوهمې عضوې نه بولې راتويږي دهغه په وجه اول حکم نه متغيرکيږي .
(۳)اوکه دواړه عضوې په سبقت کې برابرې وي نودصاحبينو رحمهما الله په نزدترکومه عضوه چې زياتې بولې تويږي هغه عضوه معتبره اواصلى شمارله کيږي اودهغى حکم پرې جاري کيږي ځکه په

ډیر واحکامو کې للاکثر حکم الکل وي،دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزد کثرت دبولو لره اعتبار نشته ځکه کثرت دبولو کله په یوه عضوه کې دپراخوالي اودبلې دتنګوالي په وجه سره وي لهذادادکومې عضوې داصلی کیدو یاعارضی کیدو علامه نه ده .

**فائده** :دامام ابوحنیفة رحمه الله قول راجح دی لمافی الدر المختار: وان بال منهما فالحکم للاسبق وان استویا فمشکل ولاتعتبر الکثرة قال العلامة ابن عابدین رحمه الله (قوله ولاتعتبر الکثرة) لانها لیست بدلیل علی القوة لان ذالک لاتساع المخرج ........وقداستقبح ابوحنیفة رحمه الله ذالک فقال وهل رایت قاضیایکیل البول بالاواقی.(الدر المختار مع الشامیة: ۵/۵۱۳)

(۴)مذکوره علامات تربلوغ مخکې علامات دي،چې کله خنثی بالغ شي نوبیایې علامات دادي چې که چیرته دهغه ږیره راشي یاله ښځوسره دوطی کولوقدرت ولري یادنارینه وپه شان هغه له ذکرڅخه احتلام کیږي یادهغه تیان دنارینه په شان برابروراخلي اوونه وتلي نوداخنثی بیانرشمارل کیږي ځکه په هغه کې دنرعلامات موندل شوې دي اوکه یې دښځوپه شان تیان راختلي اووتلي ښکاره شول یایې په تیانوکې شیدې پیداشوې یاحیض ورغی یایې حمل ونیویاله هغه سره دفرج له لارې وطی کول ممکن وونوپه دغوټولوصورتونو کې داخنثی ښځه شمارله کیږي ځکه داټولې دښځوعلاماتي دي .

(۵)اوکه له مذکوره علاماتوڅخه یوه علامه هم ښکاره نه شوه یامتعارض علامات ښکاره شول نوداخنثی مشکل دی چې خپل مخصوص احکام لري اجمل یې دادی چې په دیني اموروکې دخنثی مشکل په باره کې په احوط اواوثق باندی عمل کول کیږي اودکوم حکم په ثبوت کې چې شک وي دهغوی ثبوت حکم نه کول کیږي ددغه اجمال تفصیل مصنف رحمه الله په راتلونکو عباراتو کې بیان کړیدی .

(۶):جماعت په لمانځه کې به خنثی مشکل دنارینه وااوښځوپه صف کې درول کیږي ځکه کیدای شي ښځه وي نوکه دنارینه وپه صف کې ودریږي دکوموتارینه وسره چې محاذات ودریږي دهغوی لمونځ فاسدیږي اوکیدای شي چې نروي نوکه دښځوپه صف کې ودریږي نودهغوی لمونځ فاسدیږي لهذااحوط واوثق دادی چې دنارینه واوښځوپه صف کې ودریږي .

(۷)که خنثی مشکل حدد شهوت ته ورسیږي (اوده ختنه نه یې شوې )نوکه له ده سره مال ووپه هغه سره دي یوه منځه واخیستله شي چې دده ختنه وروکړي ځکه دامنځه به دده مملوکه شي اومملوکه مالک ته کتلای شي که چیرته خنثی مشکل نرووا اوکه مؤنث وه نونظرالجنس الی الجنس اخف دی .لهذاپه دي مملوکه منځه سره دي دده ختنه وکړله شي اوکه له ده سره مال نه ووبیادي امام دبیت المال په مال سره منځه واخلي (ځکه بیت المال دمسلمانانو دحوائجو لپاره دی) چې دده ختنه وروکړي اودامنځه به بقدر حاجت (یعني دده ترختنه کولوپوري) دده مملوکه وي اوله ختنه کولووروسته به امام دامنځه خرڅه کړي اودهغې ثمن به بیت المال ته واپس ورکړي ځکه نورضرورت نه دی پاتی .

(۸)اوپه میراث کې خنثی ته تردووحصوکم ورکول کیږي نوکه دخنثی مشکل پلارمړشي په وارثانوکې یوهلک اویوخنثی مشکل پاتی شي نودامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدمیراث ددوی دواړونرمنځ پردریوحصوباندي تقسیمیږي دهلک لپاره دوې حصې اودخنثی لپاره یوه حصه کیږي.ځکه دامام ابوحنیفة رحمه الله په نزدخنثی دمیراث په باب کې دښځې په حکم کې دی داځکه که خنثی هلک فرض کړای شي نوزیاته

حصه ورکوله کيږي اوکه انجلۍ فرض کړای شي نوکمه حصه ورکوله کيږي نوکمه حصه متيقنه ده اوپه زياته کې شک دی اوشک په وجه مال نه واجبيږي البته که دهغه له خنثی مشکل نه سواځه نورخلک هم وي يعنې که دخنثی دمؤنث فرض کيدوپه صورت کې دده حصه دمذکرفرض کيدوترصورت زياته وي نوبيادمذکرحصه ورکوله کيږي دمؤنث نه ورکوله کيږي مثلا يوه ښځه مړه شوه زوج ،ابوين اوولدخنثی يې پاتی شول نومسئله به له دولسو (۱۲) څخه ښودله کيږي دري به زوج ته څلورابوينوته اوپنځه خنثی ته ورکول کيږي په دې صورت کې که خنثی مؤنث فرض کړای شي نوخنثی ته شپږحصې ورکولې کيږي اومسئله عائله ګرځي عول يې ديارلسوته کيږي مګرځرنګه چې دمؤنث فرض کيدوپه صورت کې دده حصه ترمذکرفرض کيدونه زياته ده لهذاده ته دمذکرحصه ورکوله کيږي .

**فائده** :صاحبين رحمهماالله فرمايي چې خنثی ته دنصف مردميراث اونصف ښځه ميراث ورکول کيږي همداقول دامام شافعي رحمه الله اوعامربن شراحيل رحمه الله هم دی،بيادامام شعبي رحمه الله دقول دقياس مطابق په تخريج کې دصاحبينورحمهماالله اختلاف دی .دامام محمد رحمه الله په نزدپه مذکوره مسئله کې ترکه پردولسوحصوتقسيميږي دزوی لپاره اوه برخې اوخنثی لره پنځه حصې کيږي اوامام يوسف رحمه الله فرمايي چې ترکه اوه برخې کيږي څلوردزوی لپاره دري حصې دخنثی کيږي .

امام ابويوسف رحمه الله فرمايي چې کل ترکه څلورحصې فرضيږي خنثی ته دنصف ښځې ميراث ورکول کيږي اودنصف هلک ميراث ورکول کيږي چې مجموعه يې دري حصې جوړيږي ځکه دانجلۍ ميراث کل دی يعنې که څلورحصې وي نوټولې دانجلۍ کيږي چې نصف يې دوې حصې دي اودانجلۍ ميراث ټول دوې حصې دي چې نصف يې يوه حصه کيږي نوچې کله دوې حصې اويوه حصه سره يوځای شي مجموعه يې درې حصې کيږي نودخنثی کل ميراث درې حصې دي اودهلک کل ميراث څلورواړه حصې دي نوچې کله هلک اوخنثی دواړه سره جمع شي نومورپه هغه حساب سره کل ترکه تقسيموټولی اوه حصې کيږي لهذاهلک ته څلورحصې اوخنثی ته درې حصې ورکولی کيږي .

امام محمد رحمه الله فرمايي چې خنثی که چيرته هلک وي نوټول ددوئ دواړوترمنځ نصف نصف تقسيميږي اوکه خنثی انجلۍ وي نوټول مال درې حصې کيږي دوې حصې دهلک اويوه حصه دانجلۍ کيږي موږداسې يوعددته ضرورت لروچې په نصف اوحصه سره تقسيم وي اوکم داسې عددشپږدی نودخنثی دهلک فرضيدوپه صورت کې مال ددواړوترمنځ نيم نيم تقسيميږي يعنې دواړولره دري دري حصې ورکولی کيږي اودخنثی انجلۍ فرضيدوپه صورت کې مال درې حصې کيږي دوې حصې هلک ته يوه حصه انجلۍ ته ورکوله کيږي نوثابته شوه اوخنثی لره دوې حصې خويقينی دی اوشک خالص په يوه حصه زائده کې دی چې دهلک فرضيدوپه صورت کې ده ته ورکوله کيده هغه حصه دې پرمنځ نيمی شي نيمه دې هلک ته اونيمه دې خنثی ته ورکوله شي نوهلک ته درې کاملې حصې اويوه نيمه حصه ورکولی کيږي اوخنثی ته دوې کاملې حصې اويوه نيمه حصه ورکوله کيږي نوځرنګه چې په حصوکې کسرشته ځکه موږاصل مخرج يعنې

شپږاوددواړووارثانوسهام دوه چنده کړل چې هغه کسرله منځه ووځي نوله دولسوڅخه مسئله ښودله کیږي چې اوه حصې هلک ته او پنځه حصې خنثی ته ورکولې کیږي .

## مسائل شتى

## متفرقه مسائل دي

دمصنفينو رحمهم الله داعادت دی چې دکتاب په آخرکې دتيروبابونوسره متعلق څه داسې مسائل ذکرکوي چې له کوم خاص باب سره تړاونه لري ،تردي عنوان لاندي مصنف رحمه الله دکتاب له شروع څخه تردي ځايه دتيروشويو ډيروبابونونادرمسائل ذکرکړي دي .

(۱)إيماءُ الأخرسِ و كتابتُه كالبيان بخلاف معتقل اللسان في وصيته ونكاحٍ وطلاقٍ وبيعٍ وشراءٍ وقودٍ (۲) لا في حدٍ (۳) غنمٌ مذبوحةٌ وميتةٌ فإن كانت المذبوحةُ أكثرَ تحرّى وأكل وإلا لا (۴) لفُّ ثوبٍ نجسٍ رطبٍ في ثوبٍ طاهرٍ يابسٍ فظهر رطوبتُه على الثوب ولكن لا يسيل إذا عُصر لا يتنجس (۵) رأسُ شاةٍ متلطخٌ بدمٍ أُحرق وزال عنه الدمُ فاتُّخذ منه مرقةٌ جاز والحرقُ كالغسل (۶) سلطانٌ جعل الخراجَ لربِّ الأرض جاز وإن جعل العشرَ لا (۷) ولو دفع الأراضي المملوكةَ إلى قومٍ ليعطوا الخراجَ جاز

**ترجمه** :دګونګي اشاره کول اودهغه ليکل دبيان په شان دی خلاف دهغه چې ژبه يې بنده وي په نکاح ،طلاق،خريدوفروخت اوقصاص کې نه په حدکې،څه پسونه حلال شوي دي اوڅه مردارډي .ساکه مذحه پسونه زيات وونوتحری دي وکړي اوډي خوري که نه ېيادي نه خوري.وبيچله شوه ناپاکه تپ: ـ ـ :په وچه پاکه کپړه کې ېيابېکاره شوه دهغی لمدوالی پرپاکه کپړه باندي ليکن اوبه نه ترڅځيږي که ونښتيځله شي نونه مرداريږي،دپسه سربه وينوککړوسوځول شواووينه ترې زائله شوه بيادهغه څخه شورباجوړه شوه نوجائزه ده.اوسوځول دپريمنځلوپه شان دی پاچادځمکې والاپاره خراج مقررکړنوجائزدی اوکه يې عشرمقرربيانه دی جائز،اوکه يې ورکړه مملوکه ځمکه يوقوم ته چې هغوئ اداکړي خراج نوجائزدی .

**تشريح** :(۱)دګونګي اشاره اوخط ليکل پـ ـ ـ ـه سره دبيان کولوپه شان دی لهذادګونګي په اشاره سره وصيت کول ،نکاح کول،طلاق ورکول،خريدوفروحت کول اودقصاص اقرارکول داټول امورصحيح دي همدارنګه که ددي اموروپه باره کې خط وليکې نوهغه هم معتبردی داعقودنافذيږي ځکه دااحکام له حقوق العبادڅخه دي چې بنده حاجت اوضرورت ورته لري نودضرورت پربنياددګونګي اشاره معتبره ګڼل شوې ده ،مګردمعتقل اللسان انسان اشاره اوخط معتبرنه دي .معتقل اللسان هغه څوک دی چې په شروع کې ګونګی نه وواوس ديوه عارض په وجه دهغه ژبه بنده شوه ددواړوترمنځ دفرق وجه داده چې اصل دانسان نطق اوکلام دی اواشارات هغه وخت قابل اعتبارات کيږي چې کله اشارات معهوداومعلوم وي اوداسې اشارات دګونګي وي اودچاچې ژبه دعارض په وجه بنده شوې ده دهغه اشارات داسې نه دي ځکه دهغه اشارات اوس شروع شوي دي خلک دهغه له اشاراتوسره مانوس نه دي لهذادهغه داشاراتوپه سنجولوکې څه مشکلات وي ځکه دهغه اشارات معتبرنه دي .البته که دهغه ژبه دډيره وخته څخه بنده وي نوبياپه دغه وخت کې دی هم

دګونګي په حکم کيږي .دمصنف رحمه الله دقول :في وصية ونكاح وطلاق وبيع وشراء وقود .تعلق له كالبيان سره دى،يعنې په دي امورو کې دګونګي اشاره اوخط دڅېبې دبيان په شان دی .

(۲)که ګونګی په خط اوياشاره سره دکوم حدپه باره کې ګواهي ورکړي نودانه معتبريږي دمذکوره امورواوحدودوترمنځ فرق دادی چې په حدکې معمولي غوندي شبهه هم نه شي برداشت کيدای ځکه الحدود تندرء بالشبهات (يعنې حدوددشبهې په وجه له منځه ځي ) اوپه نوروامورو کې معمولی شبهاتی برداشت کيدای شي .

(۳)ډيرپسونه څينی حلال شوي اوڅينی مردارپريوه ځای پراته دي اودامعلوم نه دی چې کوم مرداردي اوکوم څينی يې حلال شوي دي (ځکه دټولوغاړي غوڅی شوې دي) که په کومه علامه سره دامعلومه شي چې دامذبوح دي اودامرداردي نوبياخوخبره واضح ده چې مذبوحه خوړل کيږي اومردارنه خوړل کيږي اوکه هيڅ علامه نه وه نوکه حلال شوي پسونه زيات وونوله غوراوفکروروسته له دغوڅخه دهغوپسونوخوړل جائزدی دکوموپه باره کې چې دده په فکرکې داواقع شوې ده چې دامذبوحه دي اودکوموپه باره کې چې دهغه داخيال دی چې دامرداردي دهغوخوراک ناجائزدی ځکه دمذبوحه پسونوکثرت اوغلبه هم اباحت فائده کوي همداوجه ده چې دمسلمانانوپه ښارونوکې حرام.غلاشوي.غصب شوي اومباح شيان خرڅيږي مګردمباح شيانوکثرت دی ځکه ويل کيږي چې دمسلمانانوپه بازارونوکې خريدوفروخت جائزدی.اوکه دواړه برابروويامردارزيات وونوبيادهغوخوړل ناجائزدی ځکه دلته داباحت دليل نشته .

(۴)که يوه لمده ناپاکه کپړه په بله وچه پاکه کپړه کې ونغښتل شي نودناپاکی کپړې لمدوالی په هغه پاکه کپړه کې ښکاره شي مګرهغه ناپاکه کپړه دومره لمده وي چې په نښتيځلو اوبه نه ترې څڅيږي نوپه داسي لمدوالي سره داپاکه کپړه نه ناپاکه کيږي ځکه چې کله له ناپاکه کپړې څخه اوبه نه څڅيږي نونجاست هم نه ورڅه جلاکيږي البته وچه کپړه دهغې دلمدوالي په وجه څه لمديږي چې دهغې په وجه دانه نجسه کيږي .

(۵)که يوچاپه وينوککړسروسوځاوه چې دسوځولوپه وجه يې وينه زائله شوه بياله هغه څخه شورباتياره کړای شوه نودهغې خوراک جائزدی ځکه په اورسوځل دپريمنځلوقائم مقام دی ولی اورپه سرکې ټول نجاست سوځوي لهذااوس په هغه کې کوم نجاست نه دی پاتی .

(۶)که پاچاديوچادخراجی ځمکې خراج معاف کړنودهغه دامعافی صحيح ده اوکه يې ديوچادعشری ځمکې عشرزميندارته ورمعاف کړنودامعافي يې نه ده صحيح وجه دفرق يې داده چې دځمکې خراج دپاچاحق وي نوکه يې پاچامعاف کړي دامعافی صحيح ده بخلاف عشرچې هغه دمسکينانواوفقيرانوحق دی چې پاچايې دمعافولواختيارنه لري دعشرپه مسئله کې دعدم جوازقول اجماعی دی البته په خراج کې اختلاف دی مذکورتفصيل دامام ابويوسف رحمه الله قول دی .

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله قول مفتی به دی لمافي الهنديه:(سلطان) جعل الخراج لرب الارض جازوان جعل العشرله كذافي الكنز وهذاعندابي يوسف رحمه الله وقال ابوحنيفة رحمه الله ومحمد رحمه الله لايجوزفيهماوعلى قول ابويوسف رحمه الله الفتوى.(الهنديه:۲/ ۲۰۲)وفي ردالمحتار:حيث قال ترك السلطان اونائبه الخراج لرب الارض اووهبه له ولوبشفاعة جازعندالثانى .........ولوترك العشرلايجوزاجماعا(ردالمحتار:د/۵۱۹)

(۷) كه يو قوم د خراجي ځمكې د خراج له اداكولو څخه عاجز شو پاچا دا ځمكه نورو خلكو ته په اجاره وركړه چې د ځمكې د اجرت نه د ځمكې خراج اداكړای شي نو دا صحيح دی ځكه د ځمكې په خراج كې د مجاهدينو حق دی نو په بيكاره پرېښودلو كې د هغوئ حق فوتيږي او كه له اجرت څخه د خراج اداكولو وروسته څه پاتې شو نو هغه د ځمكې سابقه مالكانو ته وركول كيږي .

(۸) ولو نوى قضاء رمضان ولم يعين اليوم صح ولو عن رمضانين كقضاء الصلاة صح وإن لم ينو أول الصلاة عليه أو آخر صلاة عليه (۹) ولو ابتلع ريق غيره كفر لو صديقه وإلا لا (۱۰) قال بعض الحاج عذر لي لترك الحج (۱۱) توزن من شدي فقالت المرأة شدم لم ينعقد النكاح (۱۲) ولو قال رجل لامرأة خويشتن را زن من گردانيدي فقالت گردانيدم فقال پذيرفتم ينعقد (۱۳) دختر خويش را به پسر من ارزاني داشتي فقال داشتم لا ينعقد منعها زوجها عن الدخول عليها وهو يسكن معها في بيتها نشوز (۱۴) ولو سكن في بيت الغصب فامتنعت لا (۱۵) قالت لا أسكن مع أمتك وأريد بيتا على حدة ليس لها ذلك

**ترجمه** :او كه يې نيت وكړ د قضاء رمضان او ورځ يې معلومه نه كړه نو صحيح دی كه څه هم د دوو روژو قضاء وي لكه د لمانځه قضاء چې صحيح ده كه څه هم نيت يې نه وي كړی د لومړي لمانځه يا د آخري لمانځه چې د ده پر ذمه .دي ديو چالاني يې تيرې كړي نو كفاره به وركوي كه دا څوک هغه ته محبوب وو كه نه يا نشته .د ځينو حاجيانو وژل كيدل عذر دی حج ته د نه تللو لپاره .ته زما ښځه شوې .هغې وويل هو! شوم .نو نكاح نه منعقده كيږي تا ځان زما ښځه گرځولې دی .هغې وويل هو! ځان مې ستا ښځه گرځولی دی او سړي وويل ما قبوله كړې يې نو نكاح منعقده كيږي .تا خپله لور زما زوی لائقه گڼلې ده،هغې وويل هو !لائقه مې گڼلې ده،نو نكاح نه منعقده كيږي .ښځې منع كړ خپل خاوند هغې ته له ورتلو څخه په داسې حال كې چې دی له دې سره يو ځای د دې په خونه كې اوسيږي نافرماني ده كه دی اوسيږي د غصب په كور كې يا ښځه منع شوه نو په دې صورت كې نافرمانه نه گڼله كيږي .ښځې وويل چې زه نه اوسيږم ستا له منځې سره يو ځای او د جلا كور مطالبه يې وكړه نو هغې لره دا حق نشته .

**تشريح** :(۸) كه د چا له ذمې څخه د رمضان مبارک څو روژې قضا شوې وي هغه قضائي روژه ونيوه مگر دا نيت يې ونه كړ چې فلانۍ خاصه ورځ روژه ده نو دده دا روژه قضائي روژه شمارله كيږي .او كه يې د يوې قضائي روژې په نيولو كې د دوو قضائي روژو نيولو نيت كړی وو نو دا نيت صحيح دی مگر روژه د يوې رمضان روژه شمارله كيږي .لكه د لمانځه قضاء مثلا د يو چا پر ذمه ډير لمونځونه وو هغه ديوه لمانځه قضاء راوړه نو دا جائز دی كه څه هم دا نيت يې نه وو كړی چې تر ټولو لومړی قضائي لمونځ دی يا آخري لمونځ دی مگر د دو روژو يا د وو لمونځو په باره كې دا قول د بعض حضراتو دی .اصح دا دی چې په لمانځه او روژه كې تعين ضروري دی او كه يې تعين نه شو كولای نو داسې نيت دې وكړي چې زما پر ذمه چې د ماسپښين لومړی لمونځ قضاء باقي دی د هغه قضاء كوم .

(۹) كه يوه روژتي ديو چالاني تيرې كړي نو چې د چالاني يې تيرې كړي دي كه چيرته هغه دده محبوب او معشوق وو نو پر تيرونكي باندې د روژې كفاره لازميږي ځكه د محبوب له لاړو څخه طبيعت كراهت نه محسوسوي لهذا د محبوب د لاړو حكم د دوډۍ خوړلو دی او كه هغه دده محبوب نه وو نو پر ده باندې كفاره نه

لازميږي ځکه دغير محبوب له لاسه ځخه طبيعت كراهت محسوسوي اوپه داسې شي سره كفاره نه لازميږي له كوم ځخه چې طبيعت كراهت محسوسوي، البته دهغې روژې قضاء پرلازمه ده .

(۱۰)كه مكې مكرمې ته تلونكي حاجيان په لاره كې ووژل شونوداپه دغه كال حج ته دنه تلوپه باره كې دخلكولپاره عذردی ځکه په لاره کې امن نشته چې حج ته دتلوله شرائطو ځخه يوشرط دی .

(۱۱)كه چاپردی ښځې ته وويل :توزن من شدی ،يعنې ته زمامينه شوې يې ،هغې په جواب كې ورته وويل :شدم ،شوې يم .په دي سره نكاح نه منعقده كيږي ځكه دسړي دغه الفاظ پرايجاب باندي دال نه دي،اوكه چاپيگانه ښځې ته وويل :خويشتن رازنی من گردانيد ،يعنې تاځپل ځان زما ښځه گرځولی دی ،هغې په جواب كې ورته وويل :گردانيدم،يعنې گرځولی مې دی،په دی باندې هغه سړي وويل :پذيرفتم.يعنې ماقبوله كړې يې،نوپه دي سره نكاح منعقده كيږي ځكه دهغه په كلام كې ايجاب اوقبول دواړه پيدادي .

(۱۲)كه يوچابل چاته وويل :دخترخودرابه پسرمن ارزانی داشتی،يعنې تاځپله لورزمادزوی لاتقه كړې ده،هغه په جواب كې ورته وويل :داشتم،كړې مې ده،نوپه دي سره نكاح نه منعقده كيږي ځكه دهغه داكلام پرايجاب اوقبول مشتمل نه دی ،ځكه ځپله لوردبل چادزوی په لاتقه كولوسره ددوئ ترمنځ عقدنكاح نه حاصليږی .

(۱۳)كه يوې ښځې ځپل خاوندځپل ځان ته دراتلوڅخه منع كړحال داچې داخاوندله پخوا څخه له دي سره ددي په مكان كې اوسيده نودامنع كول دښځې نافرمانی شمارله كيږي ځكه داځپل ځان بلاوجه له خاوندڅخه منع كوي لهذاپه دی وخت كې ددي ښځې نان ونفقه ددغه خاوندپرذمه نه واجبيږي ځكه دنافرمانې ښځې نان ونفقه دخاوندپرذمه نه كيږي .

(۱۴)كه خاونددچامكان غصب كړی وواودغه دغصب په مكان كې دی اوسيده اوداښځې ځان ته له ورتلوڅخه منع كړنوبيادابنځه نافرمانه نه گڼله كيږي ځكه ښځه حق په جانب ده ولې په داسې مكان كې اوسيدل حرام دی لهذاددي ښځې نان ونفقه دخاوندپرذمه هم هغسې لازمه ده .

(۱۵)كه يوه ښځه ځپل خاوندته ووايي چې زه ستاله منځې سره نه اوسيږم اوزه عليحده مكان غواړم نوښځه داحق نه لري ځكه خاوندخادم ته ضرورت لري ځكه دابنځه په دي خبره سره منځه نه شي جلاكولای .

(۱۶)قالت مراطلاق ده فقال داده گيراوكرده گيراوداده باداوكرده باد،ينوی ولوقال داده است اوكرده ايست يقع نوی ولاولوقال داده انكاروكرده انكارلايقع (۱۷) وان نوی وی مرانشايد تاقيامت أوهمه عمر )لايقع الابنية حيله زنان كن اقرار بالثلاث جيله خويش كن لا (۱۸ )كابين ترابخشيدم مراازجنگ بادار،ان طلقها سقط المهر والا لا (۱۹ )ولو قال المولى لعبده يامالكي وقال لامته انا عبدك لايعتق برمن سوگنداست كه اين كارنكنم فهذا اقرار باليمين بالله تعالى وان قال برمن سوگنداست بطلاق زنم ذالك فان قال قلت ذالك كذبالايصدق (۲۰ )ولوقال مراسوگندخانه است كه اين كارنكنم فهو اقرار باليمين بالطلاق قال للبائع بهابازده فقال البائع بازبدهم يكون فسخاللبيع (۲۱ )وان فعلت كذامادمت ببخارافخرج منها ورجع وفعل لايحنث باع اثاثا يدخل تحتهافي البيع

**ترجمه**: ښځې ووېل ماته طلاق راكړه او خاوند ورته ووېل دركړې مې وګڼه ياشوى يې وګڼه يادربه كړاى شي ياوبه كړاى شي نو نيت به معلوموي او كه يې ووېل دركړې مې دي ياكړې مې دي نو طلاق واقع كيږي كه يې نيت وي او كه يې نه وي. او كه يې ووېل دركړې يې وبوله ياكړې يې وبوله نو نه واقع كيږي كه څه هم نيت يې كړى وي. دازه ترقيامته ياتول عمر به كارنه لرم نو طلاق نه واقع كيږي مګر په نيت سره ته دښځو حيله وكه دااقراردى په دريو طلاقو سره ته خپله حيله وكړه نه دى اقرار. تاته مې دربخښلى دى مهرماله خپل جنجال څخه ليرې كړه. كه يې طلاق وركړ مهرساقطيږي كه نه يې نه ساقطيږي. خپل مرېى ته يې ووېل اى زمامالكه! يايې منځې ته ووېل زه ستامرېى يم. نه آزاديږي. پرماقسم دى چې زه داكارنه كوم. اقراردى دالله تعالى په قسم سره او كه يې ووېل زماقسم په طلاق سره نولازميږي پرده باندې دا. بياكه ده ووېل چې مادروغ ويلي دي نو دده تصديق نه كول كيږي. او كه يې ووېل زماقسم دى په كورسره چې داكار كوم نو دااقراردى دطلاق دقسم. بائع ته يې ووېل بيايې قيمت كړه بائع ووېل بيايې قيمت كوم نو داديع فسخ كيږي كه ماداكاروكړ ترڅو چې زه په بخارا كې يم بياله بخارا څخه ووت او واپس راغى هغه كاريې وكړ نو نه حانث كيږي كه يې خره خرڅه كړه نو دهغى بچى (كوترکى) په بيع كې نه داخليږي.

**تشريح**: (۱۶) كه ښځې خپل خاوندته ووېل: مراطلاق ده. يعنې ماته طلاق راكړه. هغه په جواب كې ورته ووېل: داده ګير. يعنې دركړې يې وګڼه. ياكرده ګير. يعنې كړې يې وبوله. يايې ووېل: داده باد. دركړل شوى يې فرض كه. يايې ووېل: كرده باد. فرض كه داكارشوى دى. كه په دې ټولو والفاظو سره هغه دطلاق وركولو نيت كړى وو نو طلاق واقع كيږي او كه يې نيت نه وو كړى نو هسې داكلمات په خوله ويلو سره طلاق نه لويږي. ځكه داالفاظ له كناياتو څخه دي لهذا په دې كې نيت معتبر دى. او كه خاوند په جواب كې ورته ووېل چې دركړې مې دي ياكرده است يعنې كړې مې دي نو فوراطلاق واقع كيږي كه يې نيت وي وكه نه وي ځكه دااخبارعن الطلاق دى په هرصورت طلاق په واقع كيږي او كه يې ووېل داده انګاز يعنې دركړې يې فرض كه يايې ووېل: كرده انګاز. يعنې كړې يې فرض كه نو په دې سره طلاق نه واقع كيږي كه څه هم دطلاق نيت يې كړى وي ځكه دااخبارعن الطلاق نه دي ولې معنى يې داده چې ته فرض كه چې طلاق واقع دى لهذا په دې سره طلاق نه واقع كيږي.

(۱۷) كه خاوند دخپلې ښځې په باره كې ووېل: مرانشايدتاقيامت او همه عمر. يعنې مالره ترقيامته ياپه ټول داپكارنه ده. په دې الفاظو سره بغيرنيت دطلاق طلاق نه واقع كيږي ځكه داالفاظ له كناياتو څخه دي چې بغيرد نيت نه طلاق نه واقع كيږي. او كه خاوند ښځې ته ووېل: حيله زنان كن. ته دښځو حيله وكړه. داخبره ددريو طلاقو نو اقراردى ځكه داعدة دشمار په معنى دى چې له دريو طلاقو نو څخه كنايه ده او كه يې ورته ووېل: حيله خويش كن. ته خپله حيله وكړه. نو دادريو طلاقو نو اقرارنه دى ځكه داپه عرف كې له طلاق څخه كنايه نه ده.

(۱۸)که يوې ښځې خاوندته وويل :کابين ترابخشيدم مراازجنگ بازدار،يعنې ماتاته مهردربخښلی دی نورماته له جګړوڅخه نجات راکړه،نوکه چيرته ددې په جواب کې خاونددي ته طلاق ورکړنوطلاق واقع کيږي اومهرساقطيږي که نه بيانه ساقطيږی ځکه ښځه ګواکې پرمهرباندي خلع کول غواړي يادمهرپه عوض طلاق غواړي چې کله طلاق ورنه کول شي نودهغی دمهرساقطيدوهم هيڅ وجه نشته .

(۱۹)که مولی خپل مريی ته داسي وويل :ای زمامالکه! ياپې خپلې منځې ته وويل :زه ستامريی يم نوپه دي خبره سره مريی اومنځه نه آزاديږي ځکه داالفاظ په اعتاق کې نه صراحةً اونه کنايةً استعماليږي،اوکه چاوويل برمن سوگنداست که اين کارنه کنم،يعنې پرمادی قسم وي چې زه به داکارنه کوم،نوداخبره په الله تعالی سره دقسم خوړلواقراردی بياکه ده داکاروکړنوحانث کيږي اوپرهغه باندي کفاره لازميږي اوکه چاوويل :برمن سوگنداست بطلاق،زماپه طلاق قسم دی که زه به داکارنه کوم،نوداقسم دهغه پرذمه کيږي ځکه داله يمين منعقده څخه اخباردی بياکه هغه وروسته داکاروکړنودهغه ښځه طلاقه کيږی اوکه وروسته ده وويل چې مادروغ ويلي وونودده ويناته هيڅ اعتبارنه ورکول کيږي ځکه په سابق کې ديمين منعقده په باره کې له اخبارورکولوڅخه رجوع ده لهذاده ده تصديق نه کول کيږي .

(۲۰)که چاوويل :مراسوگندخانه است که اين کارنه کنم،يعنې زمادي په کورقسم وي چې زه به داکارنه کوم نوداد طلاق دقسم اقراردی ځکه دقسم مداربرعرف باندي دی اوپه عرف کې کورله ښځې څخه کنايه ده ځکه په داډول الفاظوسره دطلاق قسم منعقدکيږي اوکه مشتري بائع ته وويل :بهابازده،يعنې قيمت يې بياوښايه،بائع په جواب کې وويل چې بيانوم يې نوددواړوپه دي خبروسره بيع فسخ شوه ځکه قيمت بياغوښتل اوواپس کول فسخ بيع ده .

(۲۱)اوکه چاوويل :زه چې ترڅوپه بخاراکې يم که مي فلان کاروکړنوزماښځه طلاقه ده،بيادی له بخاراڅخه ولاړی اودوباره راغی هغه کاريې وکړنودده پرښځه باندي طلاق نه واقع کيږي،که چاداسې يوه خره خرڅه کړه چې بچی (کوتړکی) هم ورسره وونوداکوتړکی په بيع کې نه داخليږی . دادوې مسائلې دکنزپه اکثرونسخوکې نه پيداکيږي .

(۲۲)الْعَقارُ الْمُتنازَعُ فيه لايَخرُجُ مِن يَدِ ذِي الْيَدِ ما لم يُبَرهِن المدعي(۲۳)عَقارٌ لاَ لِي وِلاَيَةُ الْقاضِي لاَ يَصِحُّ قَضاؤُهُ فِيه(۲۴)إِذا قَضَى الْقاضِي فِي حادثَةٍ بِبَيِّنةٍ ثُمَّ قال رَجَعْتُ عن قَضائِي أو بَدا لِي غيرُ ذلك أو وَقَفْتُ فِي تَلْبِيسِ الشُّهُودِ أو أَبْطَلْتُ حُكْمِي وَنَحْوَ ذلك لاَ يُعْتَبَرُ وَالْقَضاءُ ماضٍ إن كان بَعْدَ دَعْوَى صحيحة وَشَهادَةٍ مُسْتَقِيمةٍ(۲۵)خَبَّأَ قَوْماً ثُمَّ سَأَلَ رَجُلاً عن شَيْءٍ فَأَقَرَّ بِهِ وَهُمْ يَرَوْنَهُ وَيَسْمَعُونَ كَلاَمَهُ وَهُوَ لاَ يَرَاهُمْ جازَتْ شَهادَتُهُمْ(۲۶)وَإِن سَمِعُوا كَلاَمَهُ وَلَمْ يَرَوْهُ لاَ(۲۷)باعَ عَقاراً وَبَعْضُ أَقارِبِهِ حاضِرٌ يَعْلَمُ الْبَيْعَ ثُمَّ ادَّعَى لاَ تُسْمَعُ دَعْواهُ(۲۸)وَهَبَتْ مَهْرَها لِزَوْجِها فَماتَتْ فَطالَبَ وَرَثَتُها بِمَهْرِها وَقالُوا كانَتِ الْهِبَةُ فِي مَرَضِ مَوْتِها وَقالَ بَلْ فِي الصِّحَّةِ فَالْقَوْلُ لَهُ(۲۹)أَقَرَّ بِدَيْنٍ أو غَيْرِهِ ثُمَّ قالَ كُنْتُ كاذِباً فِيما أَقْرَرْتُ حَلَفَ الْمُقَرُّ لَهُ أَنَّ الْمُقِرَّ ما كانَ كاذِباً فِيما أَقَرَّ بِهِ وَلَسْتَ بِمُبْطِلٍ فِيما ادَّعَيْتُ عليه(۳۰)وَالإِقْرارُ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِلْمِلْكِ

**ترجمه** :متنازع ځمکه دقابض له قبضې څخه نه وځي ترڅوچې مدعی بيّنه قائم نه کړي،يوه ځمکه ده چې دقاضي په ولايت کې نه نوصحيح نه ده دهغه فيصله په هغې کې ،کله چې قاضی فيصله وکړي په يوه مقدمه

کې په ګواهانوسره بیاووایې چې مارجوع کړې ده له خپلې فیصلې څخه یاماته ښکاره شوه خپلې فیصلې خلاف یازه واقع شوی وم دګواهانوپه دام کې یاماخپله فیصله باطله کړه یاداسې نورڅه وویل نودې ته اعتبارنشته اوفیصله نافذه کیږي که صحیح وه دعوی اوله شهادة مستقیمه وروسته.څه خلک یې پټ کړل بیایې له یوه سړي څخه سوال وکړدیوشي په باره کې هغه اقراروکړدهغه شي اودګمړې خلکوولیدی اودده خبرې یې اوریدلې اودغه سړي دوی نه لیدل نوجائزه دده ګواهي اوکه هغوئ دده خبرې اوریدلې اودی یې نه لیدی نوبیانه ده جائزه.چې خرڅه کړي ځمکه اوخپنې قریبان یې حاضروو چې هغوئ په بیع باندې خبرووبیاده دعوی وکړه نه اوریدله کیږي .ښځې خپل مهرخپل خاوندته هبه کړبیامړه شوه مطالبه وکړه ددې وارثانوددې دمهرله خاوندڅخه اوویل دوئ چې هبه شوې وه دهغې په مرض موت کې اوخاوندوویل چې په حال دصحت کې شوې وه نودخاوندقول معتبریږي اقراریې وکړدقرض یابل شي بیایې وویل چې مادروغ ویلې دي په هغه کې چې مااقرارکړی دی نوله مقرله څخه قسم اخیستل کیږي چې دی دروغجن نه وویخپل اقرارکې اوزه پرباطل نه یم په هغه کې دکوم شي چې زه دعوی کوم په دی سره اقراردملک سبب نه دی .

**تشریح** :(۲۲)متنازع فیه ځمکه دقابض له لاسه نشي اخیستله کیدای ترڅوچې مدعی پردی باندی ګواهان پیش نه کړي چې داځمکه دمدعی علیه په قبضه کې ده ځکه دمدعی خالص دومره وینا چې متنازع فیه ځمکه دمدعی علیه په قبضه کې ده ددعوی دصحت لپاره کافی نه ده بلکې ددعوی دصحت لپاره دمدعی علیه قبضه په ګواهانوسره ثابتول ضروري ده .

(۲۳)کومه متنازع فیه ځمکه چې دکوم قاضي زیرحکومت نه وي دهغې په باره کې دهغه قاضي حکم صحیح نه دی ځکه قاضي پرداسې ځمکه باندي ولایت نه لري .مګرصحیح دادی چې دمتنازع فیه ځمکه دقاضي زیرحکومت کیدل ضروري نه دي لمافي التنویروشرحه عقارلافي ولاية القاضي يصح قضائه فيه كمنقول هوالصحيح.

(۲۴)که په یوه مقدمه کې قاضي دګواهانوپه ګواهي سره یوحکم صادرکړاوبیایې وویل چې زه له خپلې فیصلې څخه رجوع کوم یایې وویل چې ماته دخپلې فیصلې خلاف ثابت شویایې وویل چې زه دګواهانوپه چل کې راګیرشوم یایې وویل چې ماخپله فیصله باطله کړه یایې دې ته ورته بل څه وویل نودې ویناته هیڅ اعتبارنشته اوکوم حکم چې مخکې ورکول شوی دی هم هغه بحال پاتیږی په دي شرط چې دعوی حق وګواهانوسره وي ځکه دقاضي لومړنۍ رایه ته په قضاء سره ترجیح حاصله شوې ده لهذااوس په دي دوبله رایه اواجتهادسره سابقه رایه نه ماتیږی .

(۲۵)که چاڅه خلک په یوه کمره کې پټ کړل اوبیایې له یوه نفرڅخه چې مدعی علیه وودیوشي سوال وکړچې زمافلان شی له تاسره شته که نه هغه اقراروکړاوداپه کمره کې خلک هغه ویني اودهغه اقراروغیره اوري په داسې حال کې چې اقرارکونکی دوئ لره نه ویني نوپردغه اقرارباندي ددي خلکوګواهي صحیح کیږي ځکه دادانیکې شهادت لپاره علم شرط دی لقوله ﷺ :اذاعلمت مثل الشمس فاشهدوالافلع.اوداشرط پرځای شوی دی لهذادهغوئ ګواهي صحیح ده .

(۲۶)که چيرته دغو خلکو د مقر خبرې اوريدلې مگر هغه يې نه ليدی نو بيا دوئ گواهي دهغه داقرار په باره کې نه قبليږي ځکه آواز ديو چا له بل چا سره مشابه کيدای شي ممکن چې مقر کوم بل څوک وي نو خالص پر آواز اوريدو باندي گواهي ته اعتبار نه ورکول کيږي.

(۲۷)که چا يوه ځمکه خرڅه کړه او دهغه يو قريب هلته په دي وخت کې موجود وو چې دده په بيع ډيربه خبر وو اوس که دا قريب په دغه ځمکه دعوی وکړي چې دا زما ده يا يو څه يې زماده نو ددي سرې دا دعوی نه اوريدله کيږي ځکه دبيع په وخت کې دهغه موجودگی دهغه له جانبه ددي خبرې اقرار دی چې دا ځمکه دبائع ملک دی او زما پکې هيڅ حق نشته.

(۲۸)که يوې ښځې خپل مهر خپل خاوندته وروبخښه بيا ښځه مړه شوه له هغه وروسته دهغې وارثانو له خاوند دمهر مطالبه وکړه او دمهر بخښلو په باره کې يې وويل چې هغې په مرض موت کې مهر بخښلی وو، او خاوند وويل چې دصحت په حالت کې يې بخښلی وو نو بيا دي وارثان پر خپله دعوی باندی گواهان پيش کړي که نه بيا دخاوند قول ته اعتبار ورکول کيږي ولی وارث پر زوج باندي دمهر دعوی کوي او زوج منکر دی او قول دمنکر معتبر يږي.

(۲۹)که يوه سړي دبل په قرض وغيره سره اقرار وکړ بيا يې وويل چې ما دادروغو اقرار کړی دی نو مقرله ته دي داسی قسم ورکول شی چې والله دامقر پخپل اقرار کې دروغجن نه دی او نه زه پخپله دعوی کې دروغ وايم، دادامام ابو يوسف رحمه الله قول دی، طرفين رحمهما الله فرمايي چې له مقرله څخه قسم نه اخيستل کيږي ځکه اقرار شرعًا حجت دی دهغه په وجود کې دقسم ضرورت نشته لکه دگواهانو په وجود کې، امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې دقرض اخيستلو او ورکولو په وخت خلک داسی يو خط ليکي نو پر داسی موقع باندي خالص اقرار کافي نه دی.

(۳۰)اقرار کول دملک سبب نه شي کيدای مثلاً که زيد دبکر لپاره په څو روپو سره اقرار وکړ چې په واقعه کې دزيد پر ذمه نه وي او بکر پوهيږي چې دی پخپل اقرار کې دورغجن دی نو دا اقرار دبکر لپاره ددغو روپو دمالک کيدو سبب نه شي کيدای بلکې دهغه عهدله مخې چې دبکر او دالله تعالی ترمنځ دی بکر له ددي مال اخيستل صحيح نه دی که څه هم حاکم په دي دعوی سره ضرور هغه وراخلي مگر دا دنيوی حکم دی په آخرت کې دهغو حساب ورکول ضرورشته، البته که زيد پخپله خوښه رضا سره ورکړي نو دا ورکول از سرنو مالک گرځول دی په هغه دروغجن اقرار سره يې مالک نه گرځوي.

(۳۱)قال لآخر وكلتك ببيع هذا فسكت صار وكيلا وكلها بطلاقها لا يملك عزلها (۳۲)وكلتك بكذا على إني متى عزلتك فأنت وكيلي يقول في عزله عزلتك ثم عزلتك (۳۳)ولو قال كلما عزلتك فأنت وكيلي يقول رجعت عن الوكالة المعلقة وعزلت عن الوكالة المنجزة (۳۴)قبض بدل الصلح شرطا إن كان دينا بدين (۳۵)ادعى رجل على صبي دارا صالحه أبوه على مال الصبي فإن كان للمدعي بينة جاز إن كان بمثل القيمة أو أكثر مما يتغابن الناس فيه وإن لم يكن للمدعي بينة او كانت غير عادلة لا وإلا لا (۳۶)قال لا بينة لي فبرهن او لا شهادة لي فشهد تقبل (۳۷)للإمام الذي ولاه الخليفة أن يقطع أنسانا من الطريق الجادة إن لم يضر بالمارة (۳۸)ومن صادره السلطان ولم يعين بيع ماله فباع ماله صح

(۲۹) خوفها بالضرب حتى وهبته مهرها لم يصح ان قدر على الضرب (۳۰) وإن أكرهها على الخلع وقع الطلاق ولا يلزم المال (۳۱) ولو أحالت انسانا على الزوج بالمهر ثم وهبت المهر للزوج لا يصح

**ترجمه**: ويې ويل بل چاته چې ماوكيل كړى يې ته ددې شي په خرڅولو سره .هغه خاموش پاتې شونو وكيل شو ،خپله ښځه يې وكيله وګرځوله دهغې دطلاق نو نه مالک كيږي دهغه دمعزول كيدو .ماته وكيل كړى يې ددې كارپه دې شرط چې كله زه تامعزول كړم نوته زماوكيل يې ،وايې به دهغه دمعزول كيدولپاره چې ماته معزول كړى يې ماته معزول كړى يې .اوكه يې وويل چې كله زه تامعزول كړم نوته زماوكيل يې نو وايې به مارجوع كړې ده له معلق وكالت څخه اوته مې معزول كړى يې له موجوده وكالت څخه،بدل صلح قبض كول شرط دى كه صلح دين وه ددين عوض كه نه يانه ده،يو چادعوه وكړه پر ماشوم باندې دمكان ياصلح وكړه له هغه سره دهغه پلار دماشوم پرمال باندې نوكه له مدعي سره بيّنه وه نو جائزدى كه مثل قيمت وياد ومره زيات چې خلک دومره نقصان برداشتوي اوكه نه وو له هغه سره بيّنه ياغير عادل وو نو جائزنه دى ويې ويل چې له ماسره بيّنه نشته بيايې بيّنه قائم كړل يايې وويل چې له ماسره ګواه نشته بيايې ګواهان راوستل نو قبليږي .دهغه امام حق شته چې خليفه متصرف ګرځولى وي ددې چې وركړي څمكه يو انسان ته له عامي لارې نه كه ضررنه ووتيريدونكو لره .څوک چې پاچاجرمانه كړى وي اودايې نه تعين كړى چې خپل مال خرڅ كړه هغه خپل مال خرڅ كړنوصحيح دى .ويې ويروله خپله ښځه په وهلو سره آن تردې چې هبه كړهغې خپل مهردده ته نوصحيح نه دى كه هغه قدرت درلودپروهلو باندې اوكه يې ښځه خلع كولو ته مجبوره كړه نو واقع كيږى طلاق اومال نه ساقطيږى اوكه ښځې حواله كړيو څوک پرزوج باندې ياهغې هبه كړمهرزوج ته نوصحيح نه دى .

**تشريح**:(۳۱)يو سړي بل ته وويل چې ماته ددى شي دخرڅيدولپاره وكيل ګرځولى يې،هغه خاموش پاتې شونو وكيل ګرځي ځكه پرداسې موقع باندې دهغه خاموشي اودوكالت نه ردول دوكالت دقبليدودليل دى .اوكه چاخپله ښځه وكيله وګرځوله چې ته خپل ځان ته طلاق وركړه نوبيا داخاوند هغه ښځه له وكالت څخه نه شي معزول كولاى ځكه خاوند طلاق دښځې ترفعل معلق كړى دى نو په دې كې ديمين معنى راځى اوله يمين څخه رجوع صحيح نه ده .

(۳۲)يو سړي بل ته وويل ماد هغه كارلپاره ته وكيل ګرځولى يې په دې شرط چې كله زه تامعزول كړم نوته زماوكيل يې نوكه وروسته داموكل غوښتل چې هغه معزول كړي نو دوه ځله به داسې وايې چې ماته معزول كړى يې ماته معزول كړى يې ،نوهغه معزول كيږي،دوهم ځل داويل چې ماته معزول كړى يې ځكه ضروري دى چې هغه كوم وكالت پرمعزول كيدو باندې معلق كړى وو له هغه څخه هم معزول شي .

(۳۳)كه موكل ديو چادوكيل كيدو په وخت داسې ويلي وو چې كله زه تامعزول كړم نوته زماوكيل يې ،نو داسې وكيل كه موكل معزول كاوه نو داسې به وايې چې ماچې كوم وكالت مشروط اومعلق كړى وو له هغه څخه مارجوع وكړه اواوس چې كوم وكالت دى له هغه نه مې ته معزول كړى يې ځكه كه چيرته له رجوع كولو بغيرله وكالت منجزه څخه هغه معزول كړي نوبيا هغه وكيل ګرځي ولى كلمه دكلمات غير متناهى حدپورى تكرار افعال غواړي لهذا له رجوع بغير معزول كول مفيد نه ثابتيږي .

(۳۴)كه دچاپرذمه څه روپۍ قرض وي اودى دقرض په بدله كې پرقرض وركولوباندى صلح وكړي مثلاً ديوسړي پرذمه ديرش روپۍ وي هغه انكاروكړمدعي ګواهان پيش كړل له هغه وروسته شل روپۍ دوې مياشتې وروسته وركولوباندي صلح وشوه نودصلح پرهغه بدل باندي دلته په ناست مجلس كې قبض دهغې صلح دصحيح كيدولپاره شرط دى ځكه دعقدمداينت په وجه چې قرض غوښتونكى دكوم شي مستحق ګرځي دهغه پرغيرباندي صلح كول پرعقدمعاوضه باندى حمل كيږي نوداعقدصرف ګرځي ځكه ترافتراق مخكې دعوضينو قبضول ضروري دى اوكه دقرض صلح پرقرض واقع نه شوه نوپه هغه مجلس كې قبض هم نه شرطيږي .

(۳۵)كه چاپرنابالغ ماشوم باندي دمكان دعوى وكړه اودهغه ماشوم پلاردهغه له مال څخه څه وركړل له مدعى سره يې صلح وكړه نوكه چيرته مدعي دخپلى دعوى ثبوت په ګواهانوسره وركړاودماشوم پلارروپۍ هم دمكان دقيمت برابروركړې وي ياېې دومره زياتې وركړې وي چې هغومره زيادت خلك په قيمتونوكې كوي نوبيادا صلح صحيح ده ځكه په دي كې دماشوم فائده ده چې دهغه خپل مكان سالم ورته پاتي شى كه نه مدعي دى ګواهان پيش كړي هغه به مكان اخلى .اوكه له مدعي سره ګواهان نه وويا ګواهان وومګردګواهي قابل نه وومثلاً عادل نه وونوداصلح نه صحيح كيږي ځكه په دى صورت كې دماشوم مكان ته دمدعي له خوا څخه هيڅ خطره نشته پلارهم چې دماشوم مال په صلح كې وركوي تبرع كوي چې دهغه حق نه لري .

(۳۶)كه مدعى لومړى دابيان وكړچې له ماسره دخپل دى حق پردعوى باندي ګواهان نشته بيايې ګواهان پيش كړل نوداګواهان مقبول كيږي ځكه دهغه دقول اوعمل ترمنځ تطبيق داسې دى چې لومړى يې دهيرې په وجه انكاروكړبيايې په يادشول ګواهان يې پيش كړل لهذادهغه دګواهانودقبليدوهيڅ مانع نشته .ياګواهانوويل چې دفلان سړي په دى دعوى كې زموږګواهى نشته اوبيايې دهغه پردعوى باندي ګواهي وركړه نوداګواهي قبليږي ځكه په دى صورت كې هم په پورتنى مذكوره طريقه سره تطبيق ممكن دى .

(۳۷)كوم حاكم ته خپله پاچاعهده وركړې وي هغه ته دااختيارشته چې له عامې لارې څخه يوچاته يوقطعه ځمكه وركړي په دي شرط چې پردي عامه لاره باندي تيريدونكوته په هغه سره تكليف ونه رسيږى ځكه امام المسلمين ته دعاموخلكوپه حق كې دداسې تصرف حق حاصل دى چې په هغه كې دمسلمانانوفائده وي اوحاكم څرنګه چې دامام المسلمين نائب وي ځكه هغه ته هم دااختيارشته .

(۳۸)هغه څوك چې پاچاجرمانه كړى وي اودايې معلومه كړې نه وي چې دى دي خپل مال خرڅ كړي جرمانه دي اداكړي بلكې له هغه څخه دمقدارمعين مطالبه وي نودجرمانه په سبب هغه ته دخپل مال خرڅول صحيح دى ځكه داخرڅلاوپخپل اختياردى دپاچاله جانبه پرهغه باندي هيڅ زوراوجبرنه دى راغلى .اوكه پاچاداحكم كړى ووچې ته خپل مال خرڅ كړه جرمانه اداكړه په دي صورت كې دهغه خرڅول نه صحيح كيږي ځكه داپه زور خرڅول دى دده پخپله خوښه خرڅول نه دى .البته كه بياهم دى پخپله خوښې سره قيمت واخلى وبيع صحيح كيږي ځكه بيامانع له منځه ځي .

(۳۹)که چاځپله ښځه په وهلوټکولوسره وويروله چې داځپل مهروبخښي چې بياهغې دوهلوله ډاره مهروبخښه نوکه واقعاخاونددا وهله نوبيادديښځې بخښنه صحيح نه ده ځکه داپه خوښې بخښل نه بلکې دمجبورۍ له لارې بخښل دی .اوکه يې نه وهله هسې يې داروله اوبيابڅې مهروبخښه نودابخښې صحيح کيږي ځکه په دی صورت کې زورنه ثابتيږي چې دنه صحيح کيدوسبب وو .

(۴۰)که خاوندښځه دخلع اخيستلوته مجبوره کړه ښځې خلع وکړه اوبدل خلع يې هغه مهروګڼه کوم چې دخاوندپرذمه واجب دی نوپه دي خلع سره طلاق واقع کيږی .ځکه دمکره طلاق واقع کيږی اوبدل خلع يعني هغه مال چې دخاوندپرذمه دی نه ساقطيږی بلکې هغه به دی ښځې ته حواله کوي ځکه دمهردسقوط لپاره رضامندی شرط ده چې دلته نشته .

(۴۱)ديوې ښځې پرذمه څه قرض ووهغه قرض دی ښځې دځپل مهرپه عوض کې دځپل خاوندپرذمه وروا ړاوه يعنې قرض غوښتونکی ته يې وويل چې زماله خاوندڅخه دځپل قرض په بدل کې زمامهرواخله .بيايې مهرخاوندته وروبخښه نودهغې دابخښنه نه صحيح کيږی ځکه له هغه سره دبل چايعنې قرض غوښتونکي حق متعلق شوی دی اوس ښځې ته دهغه اختيارنه دی پاتې .

(۴۲)اتخذ بئرا في ملكه أو بالوعة فنز منها حائط جاره فطلب تحويله لا يجبر عليه وإن سقط الحائط منه لم يضمن (۴۳)ولو عمر دار زوجته بماله بإذنها فالعمارة لها والنفقة دين عليها ولنفسه بلا إذنها فله ولها بلا إذنها فالعمارة لها وهو متطوع (۴۴)ولو أخذ غريمه فنزعه انسان من يده لم يضمن (۴۵)في يده مال انسان فقال له سلطان ادفع إلي هذا المال وإلا اقطع يدك او أضربك خمسين فدفع لم يضمن (۴۶)وضع منجلا في الصحراء ليصيد به حمار وحش وسمى عليه فجاء في اليوم الثاني ووجد الحمار مجروحا ميتا لم يؤكل (۴۷)كره من الشاة الحياء والخصية والغدة والمثانة والمرارة والدم المسفوح والذكر ونخاع الصلب

**ترجمه** :پخپل ملک کې يې څاه (کوهی) جوړکړيايې دمرداري دايستلونالی جوړه کړه بيادهغه لمدوالی دګاونډي ديوال ته ورسيداوهغه مطالبه وکړه چې دانالی ياڅاه کوم بل طرف ته واړوي نوجبربه نه پرې کوي بياکه ديوال ړنګ شونونه ضامن کيږي.آبادي يې جوړه کړه دښځې په مکان کې پخپل مال سره دهغې په اجازه سره نوآبادي دښځې کيږي اومصرف يې دهغې پرذمه کيږی اوکه يې دځان لپاره آبادي وکړه دهغې داجازت بغيرنوبياآبادي دخاوندکيږی اوکه يې آبادي دښځې لپاره کړي وه دهغې داجازت بغيرنوآبادی دښځې کيږی اودی متبرع دی اوکه يې خپل مقروض ونيوه اوبيايوچاورځنې خلاص کړنوهغه نه ضامن کيږی ديوچاپه لاس کې دبل مال دی بياپاچاهغه ته وويل چې دامال ماته راکړه که نه ستالاس غوڅوم يادي پنځوس درې وهم اوهغه ورکړنونه ضامن کيږی .په ځنګل کې يې دام ودراوه چې په هغه سره ښکارکړي وحشي خراوبسم الله يې وويله پرهغه باندې بياپه دويمه ورځ راغی اوحماروحشي يې پيدا کړچې مړشوی وونونه به يې خوري .په پسه کې مکروه دي :شرمګاه....مرغړي.مثانه.تريخی.جاري وينه.آله تناسل.دملادلوی هډوکي مغزه .

**تشریح** :(۴۲)که چاپخپل ملک کې یوه څاه وکینده یایې دمرداري دایستلولپاره نالې جوړه کړه،اودده دګاونډی دیوال ته لمدوالی ورسید اوګاونډی له هغه څخه غوښتنه وکړه چې ته داڅاه یانالې کوم بل طرف ته واړوه ماته نقصان رسوي نوڅاه اونالې مالک پرګرځولوباندي نه مجبورکیږی ځکه دایې خالص پخپل ملک کې تصرف کړی دی چې دده حق دی،البته له ګاونډی څخه ددفع ضررلپاره که هغه په نرمي سره دڅاه اونالې ګرځولومطالبه وکړه نوبه دي کې هیڅ حرج نشته،بیاکه ددي لمدوالي څخه دګاونډی دیوال رنګ شونوهم دڅاه یانالې مالک نه ضامن کیږی ځکه داسبب دجوړیداپه درجه کې دی چې بلاتعدی موجب ضمان نه دی اوڅاه وغیره کیندل تعدی نه ده لهذاپرمالک باندي ضمان هم نه راځي .

(۴۳)که خاونددخپلې ښځې په مکان کې دښځې په اجازه سره پخپلوپیسوآبادي وکړه نوداعمارت دهغې ښځې کیږی ځکه ملک دښځې دی اودښځې خاوندته حکم کول هم صحیح دی نوګواکې ښځې خپله آبادي کړي ده لهذاآبادي دښځې پرملک باندي پاتیږی اوڅه مصرف چې پرهغې باندي کیږي هغه به دښځې پرذمه وي ځکه خاونددآبادي په جوړولوکې متبرع نه دی لهذادی به دمصرف په باره کې ښځې ته رجوع کوي اوکه هغه بلااجازت دخپلې ښځې لپاره دښځې په مکان کې آبادي وکړه نوبیاآبادي دخاوندکیږی ځکه په کوموآلاتوسره چې آبادي شوي ده هغه دده په ملک کې دی :ده له رضامندي بغیرنه شی کیدای البته څرنګه چې ده دښځې ځمکه په آبادي نیولې ده لهذادښځې دمطالبې په وخت دفارغ کیدوامرکړل کیږی .اوکه خاونددښځې په سرای کې دهغې لپاره دهغې داجازت بغیرآبادي کړې وه نوآبادي دښځې کیږی اوکوم مصرف چې پرراغلی دی هغه دخاوندله طرفه تبرع ده لهذادهغه ورکول ضروري نه دی ځکه داخوقرض نه دی .

(۴۴)که چاخپل قرضداراونیوه اویوبل څوک راغی دده له لاسه یې قرضدارخلاص کړهغه وتښتیدی غائب شونوپرینبودونکی نه ضامن کیږی ځکه داپرینبودل خالص سبب دی اودپرینبودلواوتلف کیدوترمنځ دفاعل مختارفعل (یعني تښتیدل اوغائب کیدل) داخل شوی دی لهذادتلف کیدونسبت فاعل مختارته کیږي دپرینبودلوطرف ته نه کیږي .

(۴۵)له یوچاسره دبل چامال ووله چاسره چې ووهغه ته پاچاوویل چې دامال ماته راکړه که نه یېادي دغلاپه جرم نیسم اولاس درنه غوڅوم یادي پنځوس درې وهم .هغه له ډاره دامال پاچاته ورکړنواوس به هغه ددي مال تاوان نه ورکوي ځکه له هغه څخه دغه مال په زوراخیستل شوی دی لهذاضمان پرمکرِه باندي شته نه پرمکرَه باندي .

(۴۶)یوه ښکاري په ځنګل کې بسم الله الله اکبرووایه دحماروحشی دښکارکولوپه نیت یې لږمه ودروله په دابله ورغ چې راغی نوحماروحشی زخمي شوی مردارشوی پروت دی نودهغه خوراک نه دی حلال ځکه دحماروحشی دحلالیدوشرط ذبح کول یازخمي کول دی چې هغه کاردلته نه دی شوی ځکه نودهغه خوراک هم نه حلالیږی .

(۴۷) له پسونو اونورو حلالو حيواناتو څخه دغه اته شيان خوړل مكروتحريمي دي: د بولو ځاى، خصتين. مرغړې، مثانه، تريخى (په ځيګر كې د صفرا يوه تيلى غوندې ده چې د چربي په هضم كې كار كوي) جاري وينه، د تناسل آله او حرام مغزه (حرام مغزه د شيدو په شان سپين شيان دي چې د ملا په تيريعني شنجي كې له ملا څخه تر غاړې پورې وي) د كراهيت وجه يې دا ده چې طبيعت له دغو شيانو څخه كراهت محسوسوي، البته د وينو حرمت په نصوصو سره ثابت دى لهذا د وينې خوراک حرام دى د نورو شيانو دا مكروه تحريمي دى.

(۴۸) لِلْقَاضِي أَنْ يُقْرِضَ مَالَ الْغَائِبِ وَالطِّفْلِ وَاللُّقَطَةِ (۴۹) صَبِيٌّ حَشَفَتُهُ ظَاهِرَةٌ بِحَيْثُ لَوْ رَآهُ انْسَانٌ ظَنَّهُ مَخْتُونًا وَلَا تُقْطَعُ جِلْدَةُ ذَكَرِهِ إِلَّا بِتَشْدِيدٍ تُرِكَ كَشَيْخٍ أَسْلَمَ وَقَالَ أَهْلُ النَّظَرِ لَا يُطِيقُ الْخِتَانَ (۵۰) وَوَقْتُهُ سَبْعٌ سِنِينَ (۵۱) وَالْمُسَابَقَةُ بِالْفَرَسِ وَالْإِبِلِ وَالْأَرْجُلِ وَالرَّمْيِ جَائِزَةٌ وَحَرُمَ شَرْطُ الْجُعْلِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ لَا مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ (۵۲) وَلَا يُصَلِّي عَلَى غَيْرِ الانبياء وَالْمَلَائِكَةِ إِلَّا بِطَرِيقِ التَّبَعِ (۵۳) والاعطاء باسم النَّيْرُوزِ وَالْمِهْرَجَانِ لَا يَجُوزُ (۵۴) وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْقَلَانِسِ وَيُسَنُّ لُبْسُ السَّوَادِ وَارْسَالُ ذَنَبِ الْعِمَامَةِ بَيْنَ الْكَتِفَيْنِ إِلَى وَسَطِ الظَّهْرِ (۵۵) لِلشَّابِّ الْعَالِمِ أَنْ يَتَقَدَّمَ عَلَى الشَّيْخِ الْجَاهِلِ (۵۶) وَلِحَافِظِ الْقُرْآنِ أَنْ يَخْتِمَ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ يَوْمًا

**ترجمه**: قاضي لره جائزدى چې په قرض وركړي د غائب او ماشوم مال او لقطه، يو ماشوم دى چې سر د ذكر يې دومره پراخ دى چې يو انسان ورته وګوري نو دا ګمان پرې كوي چې دا مختون دى، او نه غوڅيږى دغه د ذكر پوست مګر په تكليف سره نو پرې دې ږدي لكه بوډا چې اسلام راوړي او د نظر خاوندان وايي چې د ختنه كولو طاقت نه لري، او د ختنه مستحب وخت اوم كال دى او مسابقه كول په آسانو، اوښانو، پياده او په نښه ويشتلو سره جائزه ده، او حرام دى مال شرطول له جانبينو څخه نه له يوه جانبه څخه او درود دې نه وايي پرغير له انبياؤ او ملائكه ؤ مګر په تبع سره او چاته څه وركول د نوروز او مهرجان په نامه سره جائزنه دى، او خولۍ په سر كول باک نه لري او مستحب دى توره جامه آغوستل او پرېښودل د شملې د پګړۍ د دووا وږو ترمنځ تر ملا پورې او ځوان عالم لره جائزدى چې تر بوډا امي مخته شي او حافظ قرآن لره مناسب دى چې ختم د قرآن كريم په څلويښتو ورځو كې وكړي.

**تشريح**: (۴۸) قاضي ته جائزدى چې د غائب چا، نابالغ ماشوم او لقطه مال چاته چې وغواړي په قرض وركړي ځكه د قاضي په قرض وركولو سره د دې مالونو حفاظت نه فوتيږي ځكه چې قاضي وروسته دغه مالونه بغير د نقصان وصول كولاى شي او له قاضي علاوه نورو خلكو ته دا اختيار نشته ځكه هغوئ ته وروسته وصول كول مشكل دى.

(۴۹) كه د يو ماشوم د ذكر سر دومره پراخ وو چې يو څوک ورته وګوري نو د ختنه شوي ګمان پرې كوي او اوس د هغه د ذكر پوست غوڅول مشكل معلوميږي نو د ختنه بغير دې پريږدي ځكه پوست خو د دې لپاره غوڅوي چې سر د ذكر ښكاره شي او چې كله سرخپله ښكاره وي نو د پوست غوڅولو ضرورت نشته، لكه يو بوډا چې مسلمان شي او تجربه كار ډاكټروايي چې دا د ختنه كولو طاقت نه لري او په ختنه كولو سره په تكليفيږى نو هغه ته هم ختنه نه وركيږي ځكه د هغه عذر ښكاره دى.

(۵۰) دختنه کولو لپاره مناسب وخت اوم کال دی، دځینو حضراتو رایه داده چې تر بلوغ مخته ختنه نه کیږی ځکه ختنه د طهارت لپاره وي او تر بلوغ مخته دده پر ذمه طهارت نه دی لازم لهذا تر بلوغ مخکې بلاضرورت تکلیف ورکول دی ،لیکن اشبه بالفقه دادی چې که چیرته ماشوم قوي وو دختنه کیدو تکلیف یې برداشت کولای شوای نو ختنه دي ورو کړي که نه بیا دي نه ورکوي .

(۵۱) د آسانو ځغلول، داو بنانو مسابقه کول او پیاده سره ځغاسته چې وګوري څوک مخته دی او غشي ویشتل زده کول جائز دی ځکه مجاهدین دغو ریاضتونو ته ضرورت لري، اوله دواړو جانبینو څخه مال شرطول حرام دی مثلاً زید او بکر آسان سره وځغلوي او دا شرط کړي چې که د زید آس مخته شو نو بکر به سل روپۍ ورکوي او که دبکر آس مخته شو نو زید به سل روپۍ ورکوي دا کار حرام دی ځکه دا قمار دی چې حرمت یې په نص سره ثابت دی او له یوه جانبه مال شرطول استحساناً حرام نه دی مثلاً داسې شرط ولګوي چې که د زید آس مخته شو نو بکر به سل روپۍ ورکوي او که دبکر آس مخته شو نو هیڅ شی نشته ځرنګه چې دا صورت دقمار نه دی لهذا دا صحیح دی .

(۵۲) له پیغمبرانو او فرشتو علاوه دنورو خلکو پر نامه درود و سلام ویل مناسب نه دی ځکه درود لیږدول ډیرلوی تعظیم دی چې دداسې خلکو لپاره مناسب نه دی چې له هغوئ څخه خطاکاري او ګناهونه صادریږی، البته دپیغمبرانو او فرشتو په تبعیت کې جائز دی مثلاً چې څوک داسې ووایي اللهم صلِّ علی مُحَمَّدٍ وَعلی فلان، نو دا جائز دی ځکه دا د نبي کریم ﷺ تعظیم دی ،دصحابه کرامو رضوان الله عنهم له نامه سره رضی الله عنه ویل له تابعینو او له هغوئ وروسته دامت دنیکو خلکو له نومونو سره رحمه الله ویل مستحب دی او راجح مذهب دادی چې ددې عکس هم صحیح دی یعنې دصحابی له نامه سره رحمه الله ویل او دتابعي او وروسته بزرګانو سره رضی الله عنه ویل هم صحیح دی .

(۵۳) دکافرانو ... پرنامه مثلاً نوروز او مهرجان باندې خیرات کول عطیه ورکول جائز نه دی ځکه په دې کې دکافرانو سره تشبه ده چې ممانعت یې راغلی دی ،قال ﷺ من تشبه بقوم فهو منهم .

(۵۴) دخولۍ په پر سر کیدو کې هیڅ حرج نشته له ګوشه داره خولۍ څخه مراد عامه خولۍ ده که دونوي او که سوتي مګر دا چې دوریښمو یا سپینو او سرو زرونه وي ،توره جامه آغوستل مستحب دی ځکه نبي کریم ﷺ مکې مکرمې ته دننوتلو په وخت توره پګړۍ وهلې وه، او دپګړۍ شمله دوو اوږو تر منځ دملا تر نیمایې پورې رسیدل مستحب دی ځکه نبي کریم ﷺ داسې پرې ایښې وه .

**فائده** :دحدیث دالفاظو مطابق خولۍ باید ګول (یعنې مدوره وي) او په ځینو روایاتو کې له نبی کریم ﷺ سره درې ډوله خولۍ ثابتې دي یو قسم هغه خولۍ وه چې له سرسره منښتې وه. دوهم قسم هغه خولۍ چې له سر څخه څه بالا وه. دریم قسم خولۍ له مذکوره دواړو قسمونو څخه نسبتاً څه زیاته له سر څخه پورته او خلاصه وي چې غوږونه هم په پټیږی (کتاب الوسیلة للموصلی :۶/ ۱۱۶) لهذا دا هر قسم خولۍ په سر کول صحیح ده او زموږ په زمانه کې چې کومې خولۍ رواج دي په هغو تهولو سره سنت اداکیږی .البته دلباس مطابق خولۍ باید چې ښه عمده خولۍ وي ......دقراقلي خولۍ چې څومره قسمونه زموږ په وخت کې رواج دي

دهغوتېولو استعمال جائزدی اوپه هغوتېولوسره دخولۍ سنت اداکيږي الخ (جديد معاملات کی شرع احکام ۳/ ۶۶):

**فائده** :پګړۍ تړل درسول الله ﷺ اوصحابه کرامورضی الله عنهم اجمعين څخه ثابته ده .څکه پګړۍ تړل مسنون دی،البته داسنت زائده دی چې دمستحب درجه لري،اوداد لباس سنت دی ،لهذاکه يوڅوک دسنت داتباع په نيت پګړۍ وتړي نوبلاشبه موجب ثواب ګرځي اوکه يې څوک ونه تړي نوهيڅ ګناه هم نشته .څکه له رسول الله ﷺ څخه پرپګړۍ تړلوباندې مواظبت نه دی ثابت ،لکه صاحب دزادالمعادچې فرمايې چې رسول الله ﷺ کله دپګړۍ بغيرخالص خولۍ استعمال کړې ده اوکله يې بغيرخولۍ خالص پګړۍ استعمال کړې ده اوکله يې خول يعنې جنګي خولۍ استعمال کړې :ه يعنې په کومه موقع چې يې کومه يوه مناسبه بللې :ه هغه يې استعمال کړې ده .

**فائده** :دپګړۍ تړلوصحيح طريقه داده چې پرسريې ګول راتاوه کړي ويې تړي اوپوره سرپه هغې سره پټ کړي يوائې دسرشاوخواپګړۍ تړل اوپه منځ کې سرلوڅ پرېښودل مکروه دی.البته پرخولۍ باندې دپګړۍ تړلوپه صورت کې دسرمنځ په پګړۍ پټول ضروري نه دی اونه په دی کې هيڅ کراهت شته.مګردېيان جوازلپاره نبي کريم ﷺ بغيرخولۍ هم پګړۍ استعمال کړې ده .ليکن عام معمول ترپګړۍ لاندې خولۍ اېښودل وو په پګړۍ تړلوکې دمخ خواته پرتندې باندې محراب جوړول په هيڅ کوم معتبرکتاب کې نه دې راغلي البته علماء اوصلحاء پرتندې باندې محراب جوړوي.لهذامحراب جوړل دپګړۍ تړلوسنت نه دی خوکه جوړشي نوهيڅ باک نه لري .

**فائده** :له صحيح رواياتوڅخه دپګړۍ دجامې په هکله کوم خاص مقدارمتعين کېدل نه دی ثابت شوی څکه هرڅوک دخپل حيثيت مطابق چې څومره مناسب ګڼې پګړۍ تړلای شي البته چې ډېره زيات اوږده نه وي اونه ډېره کمه وي بلکې درميانه وي وفی اللباس والزينة فی الشريعة الاسلامية :المطلب الثانی :قدر العمامة لقد کانت عمامة رسول الله ﷺ وسطالاکبيرةولاصغيرةوانه لم يثبت فی طولها وعرضهاشئ،فينبغی التوسط فيهااقتداءبالنبی ﷺ .

**فائده** :دپګړۍ شمله بايدکم ترکمه دڅلوروګوتوبرابره اوزيات ترزياته يولاس وي اوشمله دومره اوږدول چې دناستې په وخت کې ترملاتيره وي صحيح نه ده (فتاوی عالمګيريه :۵/ ۳۳)له رسول الله ﷺ څخه دشملې مختلفې طريقې ثابتې دي اوحضراتوفقهاؤکرامو ﷺ ليکلي دي چې دپګړۍ شمله دشاخواته ددواړواوږوترمنځ پرېښودل افضل اومستحب دی اوراسته طرف ته پرېښودل هم جائزدی البته چپ طرف ته په پرېښودلواونه پرېښودلوکې دعلماؤاختلاف دی څينوجائزبللې دی اوځينوناجائزاوبدعت ګڼلې دی ........بياهم که چيرته څوک دخپل عادت ياسهولت په وجه دسنت ګڼلوبغيرشمله چپ طرف ته پرېږدي نوبه هرحال ناجائزکارنه دی.درسول الله ﷺ دپګړۍ په باره کې دوې شملې اويوه شمله دواړې له احاديثوڅخه ثابتيږي لهذادپګړۍ يوه شمله پرېښودل هم صحيح ده اودوې شملې پرېښودل هم صحيح ده .

**فائده** :لمونځ کول په پګړۍ اوبغيرپګړۍ کې آيا په ثواب کې فرق راځي که نه ؟ ددې سوال ترجواب مخکې په دې خان پوه کړئ چې په کومه علاقه کې له پګړۍ بغيرلباس نامکمل ګڼل کيږي اوبغيرپګړۍ له کوره وتل

او دلويانو په مجلس کې ګډون کول معيوب ګڼل کيږي هلته بغيرپګړي لمونځ کول مکروه دی او ډاپه دي وجه نه چې په سنت سره عمل نه دی شوی بلکې په دی وجه چې ددي علاقی په اعتبارسره بغيرپګړي لباس نامکمل دی اوپه نامکمل لباس کې لمونځ کول مکروه دی ،وتکره صلاته فی ثياب البذلة يلبسهافی بيته. (ردّالمحتار: ۱/ ۶۴۰)،امدادالفتاوی: ۱/۲۵۶)

او څرنګه چې پګړي تړل سنت زائده دی چې د مستحب درجه لري لهذاکه داتباع سنت په نيت پګړي وتړله شی نوموجب ثواب دی ليکن پردي بنيادداسی شي ويل کيدای چې له پګړي سره لمونځ کول زيات ثواب لري ترهغه چې بغيرپګړي اداشي اوداحاديثوپه ذخيره کې دتلاش کولوباوجودداسي کوم حديث نه دی موندل شوی چې په هغه سره داثابته شي چې له پګړي سره لمونځ دهغه لمانځه په نسبت زيات ثواب لري چې بغيرپګړي اداشي،البته داسي موضوعی له ځانه جوړشوي احاديث پيداکيږي چې په هغوکې دپګړي دلمونځ فضيلت بيان شوی دی خوهغه احاديث په اتفاق دمحدّثينوپه دي وجه چې موضوعی دي قابل رداوغيرمعتبردي ودي کتل شي :(الموضوعات الکبری لملاعلی القاری :ص ۲۳۲،الفوائدالمجموعة فی الاحاديث الموضوعة :ص۱۸۷،وتذکرةالموضوعات:ص۱۵۵،المصنوع فی معرفة الموضوع:ص۸۷،جديدمعاملات کی شرعی احکام:۳/۶۶تا۷۵).

(۵۵)تربوډابي علمه سړي دځوان عالم مخته تلل جائزدی ځکه چې ځوان عالم تربوډابي علمه افضل دی قال الله تعالی:قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ) وقال تعالی:(أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ )،داصح قول مطابق له اولی الامرڅخه علماء مراددي.

(۵۶)حافظ قرآن له پکاردی چې يوقرآن کريم په څلويښت ورځې کې ختم کړي چې په لوستلوکې ګړبړنه وي ځکه مقصودفهم دقرآن کريم اوعبرت حاصلول دی نه محض تلاوت کول.

## كِتَابُ الْفَرَائِضِ

داکتاب دفرائضوپه بيان کې دی

مصنف رحمه الله دوصيت له مسائلوڅخه فارغ شونوڅرنګه چې وصيت اخت الميراث دی په دي وجه يې له وصيت څخه وروسته دميراث مسائلي ذکرکړي دي .ياداچې وصيت دمرض الموت په وخت کې دتصرف کولونوم دی اوفرائض له موت څخه دوروسته تصرف نوم دی.

فرائض دفريضة جمع ده ،فريضة له فرض څخه مشتق دی کوم چې دقطع کولواوتقدير(اندازه کولو)په معنی دی ويل کيږي فرض القاضی النفقة ای قدرها.بيادلفظ فرض جمع يعنی فرائض دعلم ميراث نوم وګرځيداودعلم فرائض اصطلاحي تعريف په دي ډول سره شوی دی ،هوعلم باصول من فقه وحساب يعرف به حق کل من الترکة ،يعنی علم فرائض دفقه اوحساب دڅه اصولوعلم دی دکوم په ذريعه سره چې دوراثانوحقوق معلوميږي .علم فرائض افضل ترين علم دی قال الله تعالی (فريضة من الله)(يعنی داحکم دالله له طرف څخه مقررکړل شوی دی )،وقال النبی ﷺ تعلموا الفرائض وعلموها الناس (يعنی فرائض زده کړئ اوخلکوته يې ورزده کړئ )وقال ﷺ تعلّموا الفرائض وعلّموها فانها نصف العلم (يعنی فرائض زده کړئ اوخلکوته يې ورزده کړئ دانصف علم دی ).

**فان قيل** : مامعنی قوله ،فانها نصف العلم؟

**قيل** : لأن للانسان حالتين حالة حياة وحالة موت والفرائض من احكام الموت فيكون لفظ النصف ههنا عبارة من قسم عن قسمين.

(۱) يبدأ من تركة الميت بتجهيزه ثم ديونه ثم وصيته ثم يقسم بين ورثته، (۲) وهم ذو فرض أي ذو سهم مقدر فللأب السدس مع الولد او ولد الابن (۳) والجد كالأب إن لم يتخلل في نسبته إلى الميت أم (۴) إلا في ردها إلى ثلث ما بقي، وحجب أم الأب فيحجب الإخوة (۵) وللأم الثلث ومع الولد او ولد الابن او الاثنين من الإخوة والأخوات لا فإن كان له إخوة فلأمه السدس ومع الأب وأحد الزوجين ثلث الباقي بعد فرض احدهما

**ترجمه** :شروع به كيږي دميت له تركي څخه دده په تجهيزاوتكفين بيادده قرض بيادده وصيت بيابه تقسيمېږي دهغه دوارثانوپه منځ كې ،هغوئ اصحاب فرض يعني دمقرروحصوو الادي نوپلارلره سدس دى له زوى يالمسى سره اونيكه دپلارپه شان دى كه نه راغله دهغه په نسبت كې مورمگرپه راګرځولو كې دهغه دحصي دباقي مانده دثلث طرف ته اواناله په محرومولو كې نومحروموي هغه ورونواوخويندولره ،اومورلره ثلث دى اوله اولاداواولادالابن سره اګركه هرڅومره كښته وي اوله دووررونواوخويندوسره نه دهغوئ له اولادسره سدس دى اوله پلارسره ياله خاونديااله ښځې سره ثلث باقي دى وروسته له مقررولودهغه دحصي.

**تشريح** :(۱)دميت له تركي (دميت هغه پرېښې مال له كوم سره چې دكوم بل چاحق متعلق نه وي )څخه به ترټولوړاندي دهغه دكفن اودفن انتظام كيږي ولې چې انسان محترم دى كه ژوندى وي اوكه مړشي نولكه څرنګه چې هغه په ژوندكي دخپل مال ترټولوړاندي خپله حقداروو همدا شان له مرګ څخه وروسته به هم هغه لوڅ نه پرېښودل كيږي .بياچې څه پاتي شي له هغه څخه كه دده پرذمه قرض وي نوهغه به ادا ٠ كيږي يعني قرض له وصيت څخه مقدم دى ولې چې دقرض اداء كول واجب دي اووصيت تبرع ده اوواجب دتقديم ډيرحقداردى .بياكه څه تركه پاتي شوه نوپه هغې كې به دده وصيت پوره كيږي (كه هغه دچالپاره څه وصيت كړى وي )قال الله تعالى (فان اكثر من ذالک فهم شركاء في الثلث من بعد وصية يوصي بها او دين)(نوكه له دي څخه زيات وارثان وي نوهغوئ په دريمه كې شريكان دى له وصيت څخه وروسته ياله دين اداء كولوڅخه وروسته )،په دي شرط چې وصيت له ثلث تركه څخه زيات نه وي .بياچې څه پاتي شي هغه به دميت په وارثانوتقسيموي لقوله ﷺ لحقوا الفرائض بأهلها فما ابقت فلأولى عصبة ذكر (ذوى الفرضوته دهغوئ حصي وركړئ بياچې كوم مال پاتي شي هغه به هغه نارينه قريب ته وركول كيږي كوم چې له مړي سره ډيرنږدي قرابت لري ).

(۲)دميت وارثان په دري قسمه وي اول ذوى الفروض ،دوهم عصبات ،دريم ذوى الارحام .ذوى الفروض هغه دمقرروحصووالاوارثان دي دكوموحصي چې په قران مجيدياحديث رسول ﷺ كې متعيني شوي وي .اوداسي وارثان چې دهغوئ حصي متعيني شوي دي دولس كسه دي له هغوئ څخه ترټولومخكي دميت پلاردى ،نوپلارته دولداوولدولدپه موجودوالي كې سدس وركول كيږي لقوله تعالى (ولابويه لكل واحد منهما السدس مما ترک ان كان له ولد)داخودولددصورت حكم دى اوولدالولدڅرنګه چې شرعاولدشمارل كيږي په دي وجه دولدالولدهم همدا حكم دى .

**ف**:پلارلره دوه حالتونونورهم شته يوداچې له پلارسره كه دميت لورياالمسى ياكروسى وغيره مونث اولادوي نودپلارحصه سدس مع العصبه ده يعني له تركي څخه به شپږمه حصه وركول كيږي بياباقي تركه

پروا ر ثانو له تقسیمولو وروسته که څه پاتي شي هغه به هم پلار ته ورکول کیږي. او دوهم حالت یې دا چې که دمیت نارینه یا ښځینه هیڅ اولاد نه وي نو بیا به ټول مال پلار ته ورکول کیږي ولی چې پلار عصبه هم دی.

(۳) له ذوی الفروضو څخه دوهم دمیت نیکه (دپلار له طرفه) دی نو که دمیت پلار ژوندی نه وي نو دمیت نیکه دمیت دپلار په حکم کې دی یعنی پورته ذکر شوي دري حالتونو دنیکه دي په دي شرط چې دنیکه او میت په منځ کې دمیت دمور واسطه نه وي لکه دپلار پلار یا دنیکه پلار الخ او که دنیکه او میت په منځ کې دام واسطه وي نو هغه جد فاسد دی لکه اب ام الاب (دپلار دمور پلار)، جد فاسد له ذوی الفروضو څخه نه دی بلکه هغه له ذوی الارحامو څخه دی.

(۴) نیکه دپلار په حکم کې دی مګر په دوو مسئلو کې دپلار په حکم کې نه دی له دي دوو مسئلو څخه یوه داده چې کله میت مور، پلار او ښځه یا خاوند پریږدي نو دپلار دموجودوالی په وجه سره خاوند یا ښځې ته له حصي ورکولو څخه وروسته چې څه پاتي شي مورته دهغه پاتي شوی ثلث ورکول کیږي لیکن په همدي صورت کې که دپلار پرځای نیکه وي نو په دي صورت کې مورته دکل مال ثلث ورکول کیږي داسي دنه ده چې خاوند یا ښځې ته له حصي ورکولو وروسته چې څه پاتي شي مورته به دهغه ثلث ورکول کیږي. دوهمه مسئله داده چې دمیت دپلار په موجودوالی کې دمیت اناله میراث څخه محرومیږي او دنیکه په موجودوالی کې دمیت دپلار مور یعنی دمیت اناله خپلې حصي څخه نه محرومیږي. له دي دوو مسئلو څخه ماسوا دنیکه او پلار ټول احکام یو شان دي لکه چې دمیت ورونه او خویندي دنیکه په موجودوالی کې محروم وي لکه څرنګه چې دپلار په موجودګي کې ورونه او خویندي محروم وي ولی چې نیکه دپلار قائم مقام دی. دمصنف رحمه الله دقول فیحجب الاخوة همدا مطلب دی چې دنیکه په موجودوالی کې دمیت ورونه او خویندي له میراث څخه محرومیږي.

(۵) له ذوی الفروضو څخه دریم دمیت مورده دمور لپاره دري حالتونه دي یو دا چې که دمیت اولاد او اولاد الاولاد نه وي او دوه یا له دوو څخه زیات ورونه او خویندي هم نه وي نو مورته دترکي ثلث ورکول کیږي لقوله تعالی (فان لم یکن له ولد وورثه ابواه فلامه الثلث). دوهم حالت دادی چې که دمیت اولاد وي اګر که څومره هم کښته وي یا دوه یا له دوو څخه زیات ورونه او خویندي وي نو بیا دمیت مورته سدس ورکول کیږي لقوله تعالی (ولابویه لکل واحد منهما السدس مما ترک ان کان له ولد)، وقال الله تعالی (فان کان له اخوة فلامه السدس). او که دخویندو او ورونو او اولاد وي نو په دي صورت کې دا حکم نه دی دمصنف رحمه الله دقول لاولادهم همدا مطلب دی چې دخویندو او ورونو او اولاد په موجودوالی په صورت کې دا حکم نه دی. دریم حالت دادی چې دپلار او احد الزوجین په موجودوالی کې د احد الزوجین له حصي ورکولو څخه وروسته دباقی مانده ترکي ثلث مورته ورکول کیږي ولی چې له حضرت عمر رضی الله عنه دښځې او والدینو په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه رضی الله عنه ښځې لپاره ربع مور لره دمابقي ثلث او پلار لره مابقي مقرر کړ.

(۷) وللجدات وإن كثرن السدس إن لم يتخلل جد فاسد في نسبتها إلى الميت وذات جهتين كذات جهة واحدة (۸) والبعدى تحجب بالقربى والكل بالأم (۹) وللزوج النصف ومع الولد أو ولد الابن وإن سفل الربع (۱۰) وللزوجة نصفه الربع ومع الولد أو ولد الابن وإن سفل الثمن (۱۱) وللبنت النصف وللأكثر الثلثان وعصبها الابن وله مثلا حظها (۱۲) وولد الابن كولده عند عدمه ويحجب بالابن ومع البنت لأقرب الذكور الباقي (۱۳)

وللإناث السدس تكملة للثلثين (وحجبن بينتين) إلا أن يكون معهن أو أسفل منهن ذكر فيعصب من كانت بحذائه، ومن كانت فوقه ممن لم تكن ذات سهم، وتسقط من دونه

**ترجمه** :اوجداتولره اګركه زياتي وي سدس (يعني شپږمه )دى كه نه شي راجدفاسدهغوپه نسبت كې دميت طرف ته او ددوجهتونو والاديوه جهت والاپه شان ده اوليري والامحجوبه وي په نږدي والاباندي اوتولي محروميږي په مورسره .اوخاوندلره نصف دى اوله اولاداواولادالابن سره اګركه څومره هم كښته وي ربع ده .اوښځي لره ربع ده اوله اولاداواولادالابن سره اګركه څومره هم كښته وي ثمن دى .اولورنصف دى اوزياتولره دوه ثلثه دي .اوعصبه ګرځوي هغوئ لره زوى.اوزوى لره ددوولورانوبرابره حصه ده .اولمسى دزوى په شان دى دهغه په نه موجودوالى كې .اومحروميږي په زوى سره اوله لورسره قريب مذكرلره باقي ده .اولمسيولره سدس دى چې پوره كوي دوه ثلثه .اومحروميږي په دوولورانوسره مګرداچې وي له هغوئ سره ياله هغوئ څخه كښته كوم مذكرنوهغه عصبه ګرځوي هغولره چې له دوئ سره برابروي اوهغولره چې له دوئ څخه لوړوي له هغوڅخه كوم چې صاحب سهم نه دي اوساقطيږي له دي څخه علاوه.

**تشريح** :(۶)له ذوى الفروضو څخه شپږم دميت جده صحيحه ده جداتولره دري حالتونه دي يوداچې جدي لره سدس دى اګركه متعددي وي ولى چې له حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دى چې نبى كريم ﷺ جدي لره ثلث مقرركړ.مګرشرط دادى چې جده صحيحه وي .جده صحيحه هغه ده چې دهغې اودميت په منځ كې دجدفاسدواسطه نه وي لكه اناديلارله طرفه .اواناد مورله طرفه .اودانامورديلارله طرفه اودانامورد مورله طرفه .داټولي جدات صحيحه دي ولى چې ددوئ اودميت په منځ كې جدفاسديعني نيكه دمورله طرفه نشته هودنيكه موريادهغه انا(دواړه دمورله طرفه )جدات فاسده دي ولى چې ددوئ اودميت په منځ كې دجدفاسدواسطه شته.

(۷)اوكه ديوي جدي له ميت سره څوقرابتونه وي اودبلې صرف يوقرابت وي دادواړه په ميراث كې سره برابري دي .ددووقرابتوصورت داسي كيداى شي چې مثلاديوښځي يولمسى دزوى له طرفه اويولمسى دلورله طرفه دى اوددوئ دواړوپه منځ كې نكاح وشوه يادهغوئ اولادوشونودهغوئ داولاددانيكه په دووقرابتوسره جده ده يعنى دمورله طرفه اناده اودپلارله طرفه هم اناده.

(۸)دجدي دوهم حالت دادى چې دليري قرابت والاجده دنږدي قرابت والى جدي په موجودوالى سره محروميږي .اودريم حالت دادى چې دمورپه موجودوالى كې ټولي جدي كه قريبي وي اوكه ليري وي محروميږي ولى چې په حصصوكې دمقدم اومؤخراعتباركيږي كومه چې وړاندي وي هغه ته حصه وركول كيږي .كه هغه نه وه نووروسته والاته وركول كيږي.

(۹)له ذوى الفروضوڅخه پنځم خاونددى خاوندلره دوه حالتونه دي يوداچې كه دميت اولادنه وي نوخاوندلره دښځي له تركي څخه نصف دى .اودوهم حالت دادى چې دميت اولادوي يادميت دزوى اولادوي اګركه څومره هم كښته وي نو خاوندته دتركي ربع وركول كيږي )لقوله تعالى [ولكم نصف ما ترك أزواجكم إن لم يكن لهن

ولد فإن كان لهن ولد فلكم الربع مما تركن (څه چې ښځه پرېښود ل دهغه نيمايي ستاسي لپاره دي كه دښځې اولادنه وي او كه اولادوي نوستاسي لپاره ربع ده).
(۱۰)له ذوى الفروضو څخه شپږم دميت ښځه ده ،ښځې لره دوه حالتونه دي يو دا چې ښځې ته دخاوندله تركي څخه ربع دد كه ميت اولاديااولاداولادنه وي ،اودهم حالت دادى چې داولادپه موجودوالى كې يادزوى داولادپه موجودوالى كې اگركه هرڅومره هم كښته وي ښځې ته دتركي اتمه حصه وركول كيږي كه ښځه يوه وي او كه ډيري وي لقوله تعالى (ولهن الربع مما تركتم إن لم يكن لكم ولد فإن كان لكم ولد فلهن الثمن مما تركتم)(او ښځې لره دتركي ربع ده كه ستاسي اولادنه وي او كه ستاسي اولادوي نو هغوئ لره دتركي اتمه حصه ده).
(۱۱)له ذوى الفروضو څخه اوم دميت لورده .دميت لورلره دري حالتونه دي يو دا چې كه يووي نو هغې لره دتركي نصف دى .دوهم حالت دادى چې كه دوه ياله دووڅخه زياتي وي نودتركي دوه ثلثه دي .دريم حالت دادى چې كه وارثان زوى اولوردواړه وي نوزوى لورعصبه گرځوي يعنى په دي وخت كې دادواړه عصبه گرځي اي دعصبه والى په صورت كې دزوى حصه دد وولورانوبرابره وي لقوله تعالى (يوصيكم الله في أولادكم للذكر مثل حظ الأنثيين فإن كن نساء فوق اثنتين فلهن ثلثا ما ترك وإن كانت واحدة فلها النصف)(الله تعالى تاسي ته حكم دركوي ستاسي دو اولادپه باره كې دزوى حصه ددوولورانوبرابرده .كه ښځې له دووڅخه زياتي وي نوهغوئ لره دتركي دوه ثلثه دي اوكه يوه وي نو هغې لره نصف ده).
(۱۲)مصنف رحمه الله په مابين كې دلمسى مختصرحالت بيان كړى دى اگركه لمسى له ذوى الفروضو څخه نه دى لكه چې فرمايي چې دميت دځوندى زوى دنه موجودوالى په صورت كې لمسى دزوى په مرتبه كې دى يعنى كوم حق چې دزوى وي هغه دلمسى وي ولى چې په دي وخت كې لمسى دزوى قائم مقام دى .اودزوى په موجودوالى كې لمسى محروميږي ولى چې په عصباتوكې داقرب دموجودوالى په صورت كې ابعدمحروميږي.اوكه له بنت سره والد الابن وي ياولدالابن وي يادهغومجموعه وي نوله بنت سره له دوئ څخه چې كوم اقرب مذكروي له تركي څخه بنت ته دنصف حصي له وركولوڅخه وروسته چې څه باقي پاتي شي هغه به دهغه وي ولى چې ولدالابن عصبه دى اوله ذوى الفروضو څخه وروسته چې څه پاتي شي هغه اقرب عصبه ته وركول كيږي .
(۱۳)له ذوى الفروضو څخه اتم دميت لمسى ده اولمسى كه يوه وي يا ډيري وي دميت ديوي لوردموجودوالى په صورت كې يې حصه سدس ده ترڅوچې دوه ثلثه پوره شي ولى چې يوي لورته دتركي نصف وركول كيږي اولمسى ته له سدس وركولووروسته ددواړوحصه ثلثان كيږي ولى چې لمسى دلوړپه مرتبه كې ده په دي وجه دوثلثان كوم چې دثلثانوحق دى په دوئ كې به پوره كيږي .مگرپه دوئ كې دمرتبي دفرق په وجه سره لورته نصف وركول كيږي اولمسى ته سدس وركول كيږي .اوكه لوراني دوه ياله دووڅخه زياتي وي نوپه دي صورت كې لمسياني محروميږي ولى چې لمسيانوته سدس دثلثانودتكميل لپاره وركول كيدوكوم چې اوس په خپله په لورانوسره پوره شو لهذا ابنات الابن محروميږي .هوكه له دوئ سره كوم هلك وي يعنى ددوئ وروروي ياله هغه څخه په كښته درجه كې وي يعني ددوئ وراره وي نو هغه خپلي خويندي

اولوړي عصبه ګرځوي په دي شرط چې لوړي ذوى الفروض نه وي ،دمصنف رحمه الله دقول ممن لم تكن ذات سهم هم همدا مطلب دى چې لوړي ذوى الفروض نه وي كه نه نو هغه به خپله حصه وړي او عصبه نه ګرځي.
اوكومي چې له دوئ څخه دكښته درجي لمسياني وي هغه محرموي مثلا ديوه ميت دري يادوه لوراني اويوه لمسى اوكړوسى اويوه كړوسى اويوه دلمسى لمسى يعنى دمړي سړوتى وي نوپه دي صورت كې دوولورانوته دوه دريمې وركول كيږي اوكومه يوه دريمه حصه چې پاتي شي هغه به دكړوسى په سبب دلمسى ،كړوسى اوكړوسى په منځ كې تقسيميږي هوكړوسى ته به له نجونوڅخه دوچنده وركول كيږي اودميت سړوتى كومه چې له كړوسى څخه په كښته درجه كې دى هغه محرومه پاتي كيږي لقوله تعالى (يوصيكم الله فى اولادكم للذكر مثل حظ الانثيين )(الله تعالى تاسي ته حكم دركوي ستاسي داولادپه باره كې ،دزوى حصه ددوولورانوبرابره ده ).

> (۱۴)وَالأَخوَاتُ لِأَبٍ وَأُمٍّ كَبَنَاتِ الصُّلبِ عِندَ عَدَمِهِنَّ (۱۵)وَلِأَبٍ كَبَنَاتِ الابنِ مَعَ الصُّلبِيَّاتِ وَعَصَّبَهُنَّ إِخوَتُهُنَّ وَالبِنتُ وَبِنتُ الابنِ (۱۶) وَلِلوَاحِدِ مِن وَلَدِ الأُمِّ السُّدُسُ, وَلِلأَكثَرِ الثُّلُثُ ذُكُورُهُم وَإِنَاثُهُم سَوَاءٌ )(۱۷)وَحَجَبنَ بِالابنِ وَابنِهِ وَإِن سَفَلَ, وَبِالأَبِ وَالجَدِّ وَالبِنتُ تَحجُبُ وَلَدَ الأُمِّ فَقَطْ(۱۸)وَعَصَبَةٌ أَي مَن أَخَذَ الكُلَّ إِنِ انفَرَدَ, وَالبَاقِي مَعَ ذِي سَهمٍ)(۱۹)وَالأَحَقُّ الابنُ ثُمَّ ابنُهُ ,وَإِن سَفَلَ ثُمَّ الأَبُ ثُمَّ أَبُ الأَبِ وَإِن عَلَا(۲۰)ثُمَّ الأَخُ لِأَبٍ وَأُمٍّ ثُمَّ الأَخُ لِأَبٍ ثُمَّ ابنُ الأَخِ لِأَبٍ وَأُمٍّ ثُمَّ ابنُ الأَخِ لِأَبٍ ثُمَّ الأَعمَامُ ثُمَّ أَعمَامُ الأَبِ ثُمَّ أَعمَامُ الجَدِّ عَلَى التَّرتِيبِ (۲۱)ثُمَّ المُعتِقُ ثُمَّ عَصَبَتُهُ عَلَى التَّرتِيبِ)

**ترجمه** :اوحقيقي خويندي دلورانوپه شان دي دهغوئ په نه موجودوالى كې اوعلاتي خويندي دلمسيوپه شان دي له لورانوسره اوعصبه كوي دوئ لره ددوئ وروراولوراولمسى اويواخيافى وروراوخورلره سدس دى اوزياتولره سدس دى ددوئ مذكراومونث برابردي اومحروميږي په زوى اولمسى سره اګركه كښته وي اوپه پلاراونيكه سره ،اولورمحروموي صرف اخيافى اولاداوعصبه ده يعنى كوم چې ټول مال وړي كله چې هغه يواځي وي .اوباقى مانده له صاحب سهم سره .اوزيات حقدارزوى دى بيالمسى اګركه كښته وي بياپلاربيانيكه اګركه لوړوي بياحقيقي وروربياعلاتي وروربيادحقيقي وروروزوى بيادعلاتي وروروزوى بيااكاګان بيادپلارااكاګان بيادنيكه اكاګان په ترتيب سره اوبياازادونكى بيادهغه عصبات په ترتيب سره .
**تشريح** :(۱۴)له ذوى الفروضو څخه نهم دميت حقيقي خويندي دي اوحقيقي خويندي دلورانواولمسيودنه موجودوالى په صورت كې دلورانوپه حكم كي دي نوكه يوه خوروي نونصف تركه به وركول كيږي ولى چې لوركه يوه وي نوهغې ته نصف ملاويږي اوخوردلورقائم مقام ده ،اوكه دوه ياله دووڅخه زياتي خويندي وي نوهغوئ ته دوه ثلثه وركول كيږي ولى چې دوياله دووڅخه زياتولورانوته دوه ثلثه ملاويدل اوخويندي له خپلووروڼوسره عصبه ګرځي لقوله تعالى (يستفتونك قل الله يفتيكم فى الكلالة ان امرو هلك ليس له ولد وله اخت فلها نصف ما ترك وهو يرثها ان لم يكن لها ولد فان كانتا اثنتين فلهما الثلثان )(له تا ﷺ څخه فتوى غواړي ،ورته ووايه چې الله تعالى تاسي ته دكلاله په باره كې فتوى دركوي چې كه انسان مړشي اودهغه اولادنه وي اودهغه خوروي نوهغې لره دتركي

نيمايي ده اوورور دخوروارث دی که دخوراولادنه وي .اوکه خويندي دوه وي نوهغوئ لره دوه دريمې دي له ترکې څخه ).

(۱۵)له ذوی الفروضو څخه لسم علاتي خويندي دي (هغه خويندوته ويل کيږي چې صرف په پلار شريکې وي )علاتي خويندي له حقيقي خويندوسره داسي دي لکه څرنګه چې لمسياني له لورانوسره وي اودلمسيونسبت له لورانوسره په مخکنی متن کې ذکرشوی دی .خويندي که علاتي وي که حقيقي وي دهغوئ ورورهغوئ عصبه ګرځوي يعنی وروروخوپه خپله عصبه وي دهغه په وجه سره خويندي هم عصبه ګرځي لقوله تعالی (يوصيکم الله في اولادکم للذکر مثل حظ الانثيين )(الله تعالی تاسي ته حکم درکوي ستاسي داولادپه باره کې .دزوی حصه دلورانودحصوبرابره ده ).همداشان دميت لوراولمسی هم خويندي عصبه ګرځي يعنی داتولي يوځای عصبه ګرځي له ذوی الفروضو څخه پاتي شوي ترکه ټوله دوئ وړي لقوله ﷺ اجعلوا الأخوات مع البنات عصبة (اخوات له بناتوسره عصبه کړئ ).

(۱۶)له ذوی الفروضو څخه يولسم اودولسم اخيافي خويندي اوورونه دي (کوم چې صرف په مور شريک وي هغه ته اخيافي خوراوورورويل کيږي )اخيافي خويندااوورونولره که يووي نوسدس دی اوکه زيات وي نوثلث دی په دوئ کې دنارينه اوښځې دواړوحصي سره برابري دي يعنی داد حقيقي اوعلاتي خويندوپه شان نه دي چې نارينه ته دښځې دوچنده حصه ورکول کيدله لقوله تعالی (يستفتونک قل الله يفتيکم في الکلالة ان امرؤ هلک ليس له ولد وله اخت فلها نصف ماترک وهو يرثها ان لم يکن لها ولد فان کانتا اثنتين فلهما الثلثان )(له تا ﷺ څخه فتوی غواړي .ورته ووايه چې الله تعالی تاسي ته دکلاله په باره کې فتوی درکوي چې که انسان مړشي اودهغه اولادنه وي اودهغه خوروي نوهغې لره دترکې نيمايي ده اوورور دخوروارث دی که دخوراولادنه وي .اوکه خويندي دوه وي نوهغوئ لره دوه دريمې دي له ترکې څخه ).

(۱۷)اوخويندي اوورنو څرنګه چې هم وي .علاتي وي که اخيافي وي دميت دزوی اولمسی اوکړوسی وغيره نارينه اولاداودپلاراونيکه په .موجودوالی کې ټول محروميږي ولی چې په آيت شريف کې خويندااوورنوته ميراث په کلاله پسي مشروط کړی دی اوکلاله هغه ده دکوم چې پلاراوزوی نه وي لهذاديلاراوزوی په موجودوالی کې خويندي اوورونوله ميراث څخه محروميږي .اودميت سکنی لوراولمی صرف اخيافي خويندي اوورونه محروموي وجه هغه ده چې داخيافي خويندواوورونوميراث په کلاله پسي مشروط دی اوکلاله هغه ده دکوم چې پلاراواولادنه وي اوبنت خوولددی .پاتي شوحقيقي اوعلاتي خويندي اوورونه نوهغه په لوراولمسی سره نه محروميږي ولی چې مشروط بالکلاله مقدري حصي يعنی نصف .ثلث .سدس اوثلثان دي له کوم ذوی الفرض سره عصبه والی په کلاله پوري مشروط نه دی لهذاحقيقي اوعلاتي دعصبه والي په وجه سره وارث کيدای شي.

(۱۸)قوله وعصبة ای الورثة ذوفرض وعصبة .له دي ځايه دوارثانودوهم قسم بيان دی .دوارثانودوهم قسم عصبات دي .عصبه هغه وارث دی چې که يواځې وي يعنی ذوی الفروض نه وي نوټول مال هغه ته ورکول کيږي اوکه له ذوی الفروض سره وي نونوله ذوی الفروضو څخه پاتي شوی مال هغه ته ورکول کيږي

**فائدة**: عصبه پر دوه قسمه دي يو عصبه نسبي ،دوهم سببي .عصبه نسبي هغه ته ويل كيږي كوم چې د نسب په ذريعه سره وي او عصبه سببي مولى عتاقه يعنى دميت ازادكونكي ته ويل كيږي په ميراث كې عصبه نسبي مقدم وي.

(۱۹) دعصباتو ترتيب دادى چې ترټولو په لومړۍ درجه كې عصبه دميت زوى دى بيا لمسى دى بيا كړوسى دى همداشان وړاندې اګركه څومره هم تركښته وي لقوله تعالى (ولابويه لكل واحد منهما السدس مما ترك ان كان له ولد) وجه استدلال داده چې بارى تعالى پلار دولد په موجودوالى كې ذوى الفرض ګرځولى دى او زوى له ئې كومه حصه نه ده مقرره كړي لهذا متعينه شوه چې له پلار څخه چې څه پاتې شي هغه به زوى ته وركول كيږي نو دادليل دى چې زوى له پلار څخه په عصوبت كې مقدم دى ولې چې په يوځاى كې پلار هم عصبه دى مګر دلته دزوى په موجودوالى كې يې هغه عصبه نه ده ګرځولى نو دادزوى دمقدم والى دليل دى .او كه ددې سلسلې (فروع ميت) كوم وارث نه وي نو بيا دميت پلار وارث دى ،كه پلار نه وي نو نيكه وارث دى كه دانه وي نو غورنيكه وارث دى اګركه څومره هم دلوړې درجې وي ولې چې الله تعالى دخويندو او وروڼو ميراث په كلاله پورې مشروط كړى دى او كلاله هغه ده دكوم چې پلار او زوى نه وي نو معلومه شوه چې دپلار په موجودوالى كې ورونو ته ميراث نه وركول كيږي لهذا پلار ،نيكه له ورونو او اعمامو څخه په عصوبت كې مقدم دى.

(۲۰) او كه ددې سلسلې (يعنى اصول ميت) هم كوم يو موجود نه وي نو بيا دميت سكنى ورور وارث دى او كه دهغه سكنى ورور هم نه وي نو بيا علاتي ورور (يعنى صرف په پلار شريک ورور) وارث دى ولې چې دحقيقي ورونو قرابت له ميت سره دعلاتي ورونو په نسبت ډيردى .او كه داهم نه وي نو بيا دحقيقي ورور زوى وارث دى او كه هغه هم نه وي نو بيا دعلاتي ورورزوى وارث دى ،ورور كه حقيقي وي او كه علاتي وي له اكاګانو څخه مقدم دى ولې چې ورور داكاګانو په نسبت ميت ته ډير قريب دى په دې وجه چې ورور جزء الاب دى او چچا جزء الجد دى .او كه په دې سلسله (جزء الاب) كې هم كوم وارث نه وي نو بيا دميت اعمام وارث دى ولې چې دا دپلار له اكاګانو څخه ميت ته ډير قريب دي .او كه داهم نه وي نو بيا دپلار اكاګان دي او كه داهم نه وي نو بيا دميت دنيكه اكاګان او په همدې مذكوره ترتيب سره يعنى په دې ټولو كې سكنې په علاتيانو باندې مقدم دي دسكنيو دموجودوالي په صورت كې علاتي اكاګانو ته حق نه وركول كيږي ولې چې دحقيقيانو قرابت له ميت سره دعلاتيانو په نسبت ډيردى.

(۲۱) له پورته ذكرشويو ټولو نسبي عصباتو څخه وروسته دميت دازادونكي درجه ده كوم ته چې مولى العتاقه او عصبه سببي ويل كيږي ولې چې نبى كريم ﷺ يو معتق ته وفرمايل چې ستا دازادكړل شوي كه كوم وارث نه وي نو ته دهغه عصبه يې .او كه په خپله معتق نه وي نو دهغه عصباتو ته په همدې پورته ذكرشوى ترتيب سره ميراث وركول كيږي لماقلنا.

(۲۲) وللابن فرضين النصف والثلثان بعصبه عصبة باخواتهن (۲۳) ومن يدلي بغيره حجب به (۲۴) والمحجوب يحجب كالاخوين او الاخ يحجبان الام من الثلث الى السدس مع الاب لا يحجب ... ولا ... مباشرة واختلاف الدين او الدار (۲۶) والكافر يرث بالسبب والنسب

كالمسلم (ولو حجب أحدهما بالحاجب (۲۸) لا بنكاح محرم ويرث ولد الزنا واللعان بجهة الأم فقط ووقف للحمل حظ ابن (۲۹) ويرث إن خرج أكثره فمات لا أقله (۳۰) ولا توارث بين الغرقى والحرقى إلا إذا علم ترتيب الموتى

**ترجمه** :اوهغه ښځې دكومه چې حصه نصف اوثلثان دي هغه عصبه ګرځي په خپلو ورونو سره نه له هغوئ ځخه په ماسوا سره اوكوم چې منسوب وي دغيرپه ذريعه سره هغه محروميږي دهغه په موجودوالي سره ماسواله اخيافي اولاد ځخه ،اوكوم چې محجوب وي هغه محجوبولی شي لكه دوه ورونه اودوه خويندي ګرځوي دمورحصه دسدس طرف ته له پلارسره نه هغه كوم چې محروم وي دغلام والی يامباشرة قاتل والی يااختلاف دين يااختلاف دارپه وجه سره ،اوكافروارث وي دنسب اوسبب په وجه سره دمسلمان په شان ،اوكه محجوب وي يوقرابت نووارث دی حاجب په قرابت سره نه له محرم سره له نكاح كولو ،اووارث دی ولدزنااوولدلعان صرف دمورله جهت ځخه اوموقوف به پاتي كيږي حمل لره ديوزوی حصه اووارث دی كه اكثرراووتی بيامړشونه داقل په صورت كې اووراثت نه جاري كيږي په ډوبيدونكويا سوځيدونكو كې مګرداچې معلوم وي دمړه كيدونكو ترتيب.

**تشريح** :(۲۲) دكومو ښځوحصه چې نصف يادوه ثلثه دي لكه لوراني اولمسياني اوحقيقي اوعلاتي خويندي نوهغوئ له ورونوسره عصبه ګرځي اوبل له هيچاسره عصبه نه دي ،دمصنف رحمه الله داوينادلورانواوخويندوپه حق كې خوظاهرده ولې چې دلورانواوخويندوعصوبت پرورونومقصوردی ليكن دبنات الابن عصوبت په ورونوپورې مقصورنه دی بلكه هغوئ له خپلوابناء اعمام سره هم عصبه ګرځي نودهغوئ په حق كې ددې تشريح داسې كيداى شي چې هغوئ له خپلوورونوسره عصبه ګرځي اوكوم چې دورورپه حكم كې دې له هغوئ سره هم عصبه ګرځي ابناء اعمام دورونوپه حكم كې دي.

(۲۳) اودكوم كس چې له ميت سره قرابت دكوم بل چاپه واسطه سره وي نودهغې واسطې دموجودوالي په وخت كې هغه كس محروم پاتي كيږي مثلادنيكه قرابت له ميت سره دپلارپه ذريعه سره دی اودلمسی قرابت له ميت سره دزوی په ذريعه سره دی نودپلارپه موجودوالي كې نيكه اودزوی په موجودوالي كې لمسی محروم پاتي كيږي .ماسواله اخيافي ورونواوخويندوځخه چې دهغوئ قرابت دمورپه ذريعه سره دی ليكن هغوئ له دې قاعدې ځخه خارج دي لهذاهغوئ دمورپه موجودوالي كې نه محروميږي ولې چې اخيافي خويندې اوورونه دمورحصه نه وړي ولې چې موردولادت په وجه سره وارثه ده او اخيافي خويندي اوورونه داخوة په وجه سره وارث دي نودجهت ارث دمختلف والي په وجه سره دمورپه وجه دهغوئ محروم والی نه متصوركيږي.

(۲۴) كوم وارث چې دكوم قريب په وجه سره له تركې ځخه محروميږي هغونورمحجوبولی شي مثلاديوه ميت دوه ورونه يادوې خويندي اوموراوپلارخلوروارثان پاتې شول نوپه دې صورت كې دادوه ورونه يادوې خويندي دمورحصه له ثلث ځخه دسدس طرف ته محجوبوي يعنی دميت دپلاردموجودوالي په وجه سره اګركه دادوه ورونه يادوې خويندي محروميږي ليكن بياهم ددوئ په وجه سره مورته شپږمه حصه وركول كيږي كه دوئ نه وای نومورته به ثلث وركول كيدو.هوكوم كس چې دغلام والي په وجه سره

يا دمورث په خپل لاس دقتل كولوپه وجه سره ياله مورث سره ددين دمختلف والي په وه سره له تركه څخه محروم شي نوهغه كوم بل څوک نه شي محرومولای ولی چې په دي خلګوكې دميراث اهليت نشته لهذا دادمعدوم په درجه كې دي په دي وجه داكوم بل وارث له ميراث څخه نه شي محرومولای.

(۲۵)لكه څرنګه چې مسلمان په خپل منځ كې ديوبل وارث وي همداشان كافران په خپل منځ كې دنسب اوسبب دواړوپه وجه سره يودبل وارثان دي ولی چې كافرمختاراومكلف دی لهذاكوم اسباب چې دملک لپاره موضوع دي په هغواسبابو سره دوئ هم دمسلمانانوپه شان مالكان ګرځي.

**فائده** :له نسب څخه مراددادی چې مثلاپه خپل منځ كې پلارزوی ياوروراوخوروي اوله سبب څخه مراددادی چې مثلاپه خپل منځ كې خاونداوښځه وي يايودبل ازادكړای شوی وي يوكس په دووسببونوسره هم وارث كيدای شي مثلايوكس له كومي مينځې سره نكاح كړي وه بيايې هغه واخيستله اوآزاده يې كړه نوداكس ددي مينځې دخاوندوالي په وجه سره هم وارث دی اوآزادولوپه وجه سره هم وارث دی.

(۲۶)كه په كوم كافرداسي دوه قرابتونه سره جمع شي چې كه دا په دووكسانوكې وای نويوبه محجوب اوبل به حاجب وای نوپه داسي صورت كې فقط دحاجبوالي په اعتبارسره ده ته ميراث وركول كيږي مثلايوآتش پرست له خپلي مورسره نكاح كړي وه له هغې څخه دده زوی پيداشونوداهلک ددي ښځې زوی هم دی اولمسی هم دی اوس كوم وخت چې دابنځه مړه شي نودهلک ته به ددي ښځې دزوی والي په وجه سره ميراث وركول كيږي دلمسي والي په وجه سره به ميراث نه وركول كيږي ولی چې لمسی دزوی دموجودوالي په وجه سره محروم اومحجوب وي په مذكوره صورت كې زوی په خپله ددي لمسی پلاردی.

(۲۷)قوله لابنكاح محرم ای لايرث الكافربنكاح محرم ،يعنی له خپل محرم سره دنكاح كولوپه وجه سره كوم كافرته ميراث نه وركول كيږي مثلاكوم كافرله خپلي لورياله خپلي مورسره نكاح وكړي وروسته هغه مړه شي نودي كافرته دخاوندوالي په وجه سره ددي ښځې ميراث نه وركول كيږي ولی چې له اسلام قبلولوڅخه وروسته دوئ پردي نكاح نه پريښودل كيږي لهذاددوئ دانكاح دنكاح فاسدي حكم لري په دي وجه.

(۲۸)ولدزنااوهغه ماشوم چې دهغه په سبب دخاونداوښځې ترمنځ لعان شوی وي دخپلي موروارث كيږي. دپلاردتركه وارث نه شي كيدای ځكه له پلارڅخه خودهغه رشته له پخوانه پرې شوې ده له مورسره دهغه رشته قائمه ده ځكه دموروارث كيدای شي ،دامام ابويوسف رحمه الله په نزددحمل لپاره ديوه زوی دحصې په اندازه تركه راګرځول كيږي يعني كه دمړه ښځه حامله وه اوورثانوغوښتل چې تركه تقسيم كړي نودحمل لپاره به له تركه څخه ديوه زوی حصه عليحده كړي باقي مال به تقسيم كړي ،دامام ابوحنيفة رحمه الله په نزددڅلورو هلكانو ياانجونوڅخه چې دڅاحصه زياته وي هغه دي پريښودله شي ځكه له يوې خيټې څخه دڅلوروماشومانوپيداكيدل متصوردي.

**فائده** :دامام ابويوسف رحمه الله قول راجح دی ،حضرت مولانامفتي رشيداحمدصاحب رحمه الله فرمايې :دتركه په تقسيم كې بهتردادی چې دحمل دپيدايش انتظاروكړای شي چې دهغه وارث كيدل ياغيروارث

کيدل نراوښځه ښکاره شي. خو که انتظار نه کوي او ترپيدايښ مخته ترکه تقسيمول غواړي نو د حمل لپاره دي د ذکورة او انوثت جلا جلا مسئلې راوباسي (په کوم صورت کې چې د حمل حصه زياته وي هغه دي د حمل لپاره امانت پريږدي ) . (احسن الفتاوى :۹/ ۳۰۰) وقال شارح التنوير:(ووقف للحمل حظ ابن واحد) اوبنت واحدة ايهما كان اكثروعليه الفتوى لانه الغالب (الدر المختار على هامش رد المحتار:۵/۵۶۵).

(۲۹) بيا که د ماشوم حصه زياته شوه بيا مړشو نو وارث گرځي او که بې حصه لږشوه بيا مړشو نو بيا وارث نه گرځي ځکه د وارث کيدو لپاره د مورله خيټې نه ژوندی پيدا کيدل شرط دی او اکثر د کل قائم مقام کيږي لهذا که اکثر ژوندی پيدا شو بيا مړشو نو وارث گرځي که نه بيا وارث نه گرځي.

(۳۰) که خوتنه قريبان په اوبو کې ډوب شو يا وسوځل مړه شو نو له هغوئ ځخه يو د بل وارث نه شي کيدای داسې گڼل کيږي چې گواکې ټول پريوه ځای مړه شوي دي. البته که د مړه شويو کسانو ترتيب معلوم شي چې فلان مخته مړشوی دی او فلان وروسته نو په دې وخت کې له هغوئ ځخه وروسته مړشوی د مخکيني وارث گرځي.

(۳۱) وَذُو رَحِمٍ وهو قريبٌ ليسَ بِذِي سَهْمٍ وَلا عَصَبَةٍ وَلا يَرِثُ مع ذِي سَهْمٍ وَعَصَبَةٍ سوى أحد الزوجين لعدم الرَّدِّ عليهما (۳۲) وَترتيبهم كترتيب العَصَبات (۳۳) والترجيح بقرب الدرجة ثم يكون الأصل وارثا (۳۴) وعند اختلاف جهة القرابة للأب ضعف قرابة الأم (۳۵) وإن اتفق الأصول فالقسمة على الأبدان (۳۶) وإلا فالعدد منهم والوصف من بطن اختلف (۳۷) ومخارجها اثنان للنصف وأربعة وثمانية وثلاثة وستة لسميها (۳۸) واثنا عشر وأربعة وعشرون بالاختلاط (۳۹) وتعول بزيادة (۴۰) فستة تعول إلى عشرة وترا وشفعا واثنا عشر إلى سبعة عشر وترا وأربعة وعشرون إلى سبعة وعشرين

**ترجمه** :او ذورحم دی ،هغه دادی چې قريب وي او صاحب سهم نه وي او عصبه نه وي او وارث نه گرځي له صاحب سهم سره او له عصبه سره هيڅوک سوا احد د زوجينو د عدم رد پرڅوئ دوو باندې .او د دوئ ترتيب د عصباتو د ترتيب په شان دی او ترجيح د قرب د درجې په اعتبار سره دی بيا اصل وارث گرځي او چې کله د قرابت جهت مختلف شي د پلار د قرابت والا وولره دوه چنده دی د مور د قرابت ځخه .او که اصول متفق وو بيا تقسيم پر ابدانو باندې کيږي که نه بيا په عددانو سره کيږي او وصف د هغې خيټې ځخه په کومه کې چې اختلاف راغلی وي،او د فروضو مخارج دادي : د دوو عدد د نصف لپاره او څلور او اته او درې او شپږ د خپلو همنامو لپاره .او د دوولسو او څلورويشتو عدد دی د اختلاط په صورت کې او عول راځي د زيادت په صورت کې پس شپږ عول کوي تر لسو پورې طاق او جفت او دوولس تر اوولسو پورې د طاق په طريقه او څلورويشت تر اووه ويشتو پورې.

**تشريح** :(۳۱ ) قوله وذورحم ،بالرفع عطف على قوله وعصبة يعني الورثة ذوفرض وعصبة وذورحم،يعني دريم قسم وراثان ذوارحام دي .او ذورحم هغه رشته دار ته وايي چې نه ذی فرض وي او نه عصبه وي يعني نه په شريعت کې د هغه حصه متعينه وي او نه له عصباتو ځخه وي .او ذورحم د ذوی الفروض او عصباتو په وجود کې وارث نه شي کيدلای،ځکه له ذوی الفروض ځخه پاتې شوې ترکه ردول يا عصباتو ته ورکول اولی دی تردې چې ذوی

الارحام ته ورکړل شي.ځکه ذوی الفروض اوعصبات ترذوی الارحام مړه ته په نسبت زيات قريبان دي .سوادیوه دزوجینوچې دهغوسره چې ذوی الفروض موجودهم وي بیاهم ذی رحم ته حصه رسيږي.چې وجه يې داده چې په میراث کې چې ددوئ دحصو ورکولو وروسته کوم څه پاتی شي هغه پردوئ باندي نه رديږي.

**فائده** :يعنې پاتی شوی مال خاوندا وښځې ته دوباره نه ورکول کيږي خلاف دنوروذوی الفروضوچې که دهغوئ دحصوځخه څه مال پاتی شي نوهغه بیرته دهغوئ دورکړل شویوحصوپربرابرورکول کيږي.نوچې دزوجینودحصو ورکولووروسته کوم څه پاتی شی اودشرعي قانون له مخې دامال هغوئ ته دوباره نه ورکول کيږي اوله دوئ سواکوم ذوی الفرض یاعصبه نه وي نوپه دغه وخت کې ددغه مال وارث له ذی رحم سوابل هيڅوک نشته په دي وجه ذی رحم دهغوئ باوجودوارث ګرځي.

(۳۲)دذوی الارحام ترتيب دعصباتودترتيب په شان دی يعنې اول دمړه دفروع مثلادهغه دزامنواولمسيانو اولادوارث ګرځي که څه هم هرڅومره کښته وي بياکه فروع نه وونودمړه اصول مثلاجدفاسداوجدات فاسده که څه هم هرڅومره لوړې وي اوکه داهم نه وونوبيادمړه دموراوپلارفروع يعنې اخيافي ياعلاتی وروڼواوخويندو اولاد ،بيابياداجدادواوجداتوفروع على هذاالقياس

(۳۳)په ذوی الارحاموکې ددرجې دقرب په اعتبارپخپل منځ کې ترجيح وي مثلادمړه دلوربچی دده دلوردبچي تربچي اودمړه دزوی دلورترلورمقدم دی ځکه په دوئ کې ارث دعصوبت په طريقه دی لهذااقرب ترأبعدمقدم کيږي،اوکه يې په درجه کې فرق نه ووبياداصل په وارث کيدوسره ترجيح ورکوله کيږي يعنې که په ذوی الارحاموکې تول سره برابرووبيادوارث اولادته ترجيح ورکوله کيږي دغيروارث پراولادباندي که هغه دعصبه اولادوي یاذوی الفروض اولادوي مثلادزوی له خوادلمسي لور.دلورله خوادلمسي ترلورمقدمه ده ،اوهمدارنګه دزوی له خوالمسی (هلک) دلورله خواترلمسي مقدم کيږي ځکه په دي دووقسمونوکې دادواړه مړه ته دقرب په لحاظ که څه هم په درجه کې سره برابردي ليکن په لومړي صورت کې دزوی له خوادلمسي دلوراصل يعنې (دزوی زوی) اوپه دوهم صورت کې دلمسي دزوی اصل يعنې (همدغه دزوی زوی ) وارث دی نوپه استحقاق ارث کې دمقدم کيدوپه وجه دهغوئ اولادته ترجيح ورکوله کيږي.

(۳۴)که دذوی الارحام جهت دقرابت له مړه ځخه مختلف وويعنې يوه مړه ته دپلارله طرفه قرابت درلوداوبل مړه ته دمورله طرفه قرابت درلودنوهغه چې دپلارله طرفه قرابت لري هغه ته دوه چنده ورکول کيږي ترهغه چې دمورله طرفه قرابت لري مثلاسری مړشودپلارنيکه (دمورله طرفه ) اودمورنيکه (دپلارله طرفه ) يې پاتی شواول ته دوه ثلثان اودوهم ته يوثلث ورکول کيږي .ځکه حضرت عمر ﷺ په اخيافی کاکااوخاله کې .کاکاته ثلثان اوخاله ته دثلث ورکولوحکم فرمايلی دی.

(۳۵)اوکه دذوی الارحامواصول په نارينه توب اوښځينه توب کې سره برابروونوبياترکه دهغوئ پرسرونوباندي تقسيميږي مثلادمړه ديوې خورياداووخويندواولاددی بياکه چيرته هغوئ هلکان

وونو هريوه ته برابره حصه وركوله كيږي اوكه ټول انجونه وي بياهم برابرې حصې وركولې كيږي اوكه هلكان اوانجوني وي نو څرنګه چې دهغوئ اصول يعني مينديې دمړه په خوروالي كې برابرې دي نوپه دغه صورت كې تركه دهغوئ پرسرونوباندي للذكرمثل حظ الانثيين مطابق تقسيميږي يعنې هلك ته دوه حصې وركولې كيږي اوانجلۍ ته يوه حصه.

(۳۶)اوكه چيرته دهغوئ اصول په ذكورة اوانوثت كې مختلف وي نوبياتركه دهغوئ پرشميرباندي تقسيميږي اوپه كوم بطن اودرجه كې چې دااختلاف راغلى وي په هغه كې دوصف يعنې نارينه توب اوښځينه توب فرق لحاظيږي مثلا دمړه دلورله خوايوه لمسۍ ده دهغې لوراويوبې دلورله خوالمسى دى هغه لورژوندۍ دي نوپه دغه صورت كې لومړي ته يوثلث اودوهم ته دوه ثلثه وركول كيږي.څكه لۀ كوم ځاى نه چې دهغوئ بطن يعنې درجه مختلفه شوې ده هلته يوه طرف ته هلك اوبل طرف ته انجلۍ ده نودلمسي (هلك ) لورته دلمسي په اعتباردوه ثلثه وركول كيږي اودلمسۍ لورته دلمسۍ په اعتباريوثلث

(۳۷ )مصنف رحمه الله لـه دغـه ځايـه دسـهامو دمخارجوبيان كـړى دى دتركـه دتقسـيم پـه وخـت كـې دي تـه ضـرورت پيـدا كيږي پـه قـرآن كـريم كـې چـې كـومې حصـې مـذكوري دي هغـه دوه قسـمه دي دري يو قسـم يعنـي نصـف،ربع،ثمن،اودرې بـل قسـم يعنـې ثلث،ثلثـان،سدس،دهرقسـم سـهام پخپـل منځ كـې نسـبت دتضـعيف اوتنصيف سـره لـري لكـه نصـف ضـعف دربـع دى اوربـع ضـعف دثمـن اوثمـن نصـف دربـع دى اوربـع نصـف دنصـف دى اونصـف ضـعف الضـعف دثمـن دى اوثمـن نصـف النصـف دنصـف دى،همداسي نسبت پـه ثلث،ثلثـان اوسـدس كـې هـم دى،لـه كـوم عدد څخـه چـې كـسـر يعنې حصـه وايسـتل شـي هغـه عدد دهغـه مخـرج كيږي اوكـوم چـې دجـزء لپـاره مخـرج وي هغـه دكـل لپـاره هـم مخـرج كيـږي نودنصـف لپـاره مخـرج ددوو(۲ )عـدد دى اودخلورولپـاره دخلـورو(۴ )عـدد دى اوداتولپـاره داتـو(۸ )عـدد دى اودثلثـان ثلـث لپـاره ددريـو(۳ )عـدد دى اودسـدس لپـاره دشـپږ(۶ )عـدد دى يعنـې هرعـدد دخپل همنـام لپـاره مخـرج دى.نـوچې كلـه پـه مسـائلوكې لـه دغوفروضـوڅخه يويوراشـي نـومخرج دهغـه همنـام ګرځـي مثلابنـځه مـړه شـوه خاونـد اوزوى يـې پـاتې شـونوخاوندته دزوى پـه وجـه ربـع وركولـه كيـږي پـه دغـه صـورت كـې لـه مـذكوره فروضـوڅخه يـواځې ربـع دى لهذامسـئله لـه څلوروڅخـه جـوړيږي اوهمـدا څلوردي مسـئلې مخـرج ګڼـل كيـږي اوكـه پـه كـوم صـورت كـې يـواځې ثمـن راغلـى وونواتـه دهغـې مسـئلې مخـرج ګرځي.اوچـې كلـه لـه دغوفروضـوڅخه دوه دوه يـادرې درې راشـي اوټـول يوقسـم وي نودهغـوئ مخـرج هغـه دى چـې پـه دوئ كـې دكـم عـدد مخرج وي مثلابنـځه مـړه شـوه خاونـد يوه لوراويوآكـايي پـاتې شـول نوخاوندتـه دانجلـۍ پـه وجـه ربـع وركولـه كيـږي اوانجلـۍ تـه دتنهاپـاى كيدوپـه وجـه نصـف وركـول كيـږي نودلتـه پـه مسـئله كـې ربـع اونصـف سـره جمـع شـوي دي چـې دواړه لـومړي قسـم فـروض دي اوپـه دواړوكـې كـم عـدد څلوردى نوهغـه څلورمخرج ګرځـي،همدارنګـه كـه

په کوم صورت کې يواځې ددوهم قسم فروض جمع وونو په هغو کې چې کوم يو لوړ عدد دوي هغه مخرج گرځي مثلا ثلث او سدس جمع شونو سدس مخرج گرځي. اوکه داسې يو صورت ووچې دلومړي قسم يواځې نصف ددوهم قسم له يوه يا دوو يا دريو سره جمع شونو بيا مسئله له شپږو څخه جوړيږي او مخرج د شپږو عدد گرځي.

(۳۸) اوکه دلومړي قسم څخه ربع او ددوهم قسم د ثلثان يا ثلث يا سدس يا دريو سره جمع شونو مخرج ددولسو عدد جوړيږي مثلا يو سړی مړشو بنځه، مور او يو آکا يې پاتې شول نو ښځې حصه ربع ده او دمور حصه ثلث دی نو څرنگه چې په دي صورت کې ربع او ثلث سره راغلي دي لهذا ددي مسئلي مخرج دولس راځي. اوکه له لومړي قسم څخه ثمن او له دوهم قسم څخه يو يا دري وارړه ورسره جمع شول نو بيا مخرج دڅلورويشتو عدد جوړيږي مثلا يو سړی مړشو ښځه، دوې لونې او يو آکا يې پاتې شول نو د ښځې حصه ثمن دی او ددوو انجونو حصه ثلثان دی نو مسئله به دڅلورويشتو څخه جوړيږي، او له دي څخه دا هم معلومه شوه چې که چيرته يو وارث د نصف مستحق وي او بل دحصې وغيره نو په دي صورت کې به مخرج شپږ کيږي په دي حساب داختلاط مخرج دري کيږي.

**فائده**: مذکوري مسائلي هغه وخت دي چې کله په هغوئ کې يو يا زيات ذوي الفروض موجود وي او که په مسئله کې يواځې عصبات وونو بيا مسئله دهغوئ د سرونو د حساب څخه بنودله کيږي يعني څومره سرونه چې وي هغو مره مسئله جوړيږي، که عصبات يواځې نارينه وونو بيا دهر يوه يو سرشمارل کيږي او که له هغوئ سره ښځينه هم وي نو بيا دمؤنث په مقابله کې مذکر په دوو شمارل کيږي او په قاعده دللذکر مثل حظ الانثيين، تقسيم کيږي.

(۳۹) او ددي مخارجو دحصو په زياتوب سره دامخارج عول کيږي، دفرائضو په بعضو مسائلو کې داسې صورتونه راځي چې دمخرج عدد کم وي او دوارثانو سهام زيات وي نو هلته بيا مخرج څه اندازه زياتيږي چې ټولو وارثانو ته دهغوئ حصې پوره وروړسيږي او دي زياتوب ته په علم ميراث کې عول ويل کيږي او دازياتوب په دي دريو مخرجونو کې کيږي چې دداوړو دحصو په يوځاي والي سره پيدا کيږي يعني شپږ، دوولس او څلورويشت. دباقي ذوي الفروضو سهام چې له کوم مخرج څخه ايستل کيږي هغه ټول اووه دي يعني: ۲، ۳، ۴، ۸، ۶، ۱۲، ۲۴، په دغو اوو کې يواځې په دريو آخري کې عول کيږي.

(۴۰) دشپږو عدد ترلسوپوري عول کيږي په طاق اوجفت دواړو طريقو سره يعنې دشپږو عول اوواونهوته کيداى شي او اته اولس هم مثلا دمړه وارثان خاوند او دوې حقيقي خويندې دي، اصل مسئله له شپږو څخه جوړيږي چې درې حصې دزوج او څلورخويندوته ورکول کيږي درې او څلورمجموعه اووه دي. چې ترمسئله زيات دي نوددغې مسئلې عول اووته ورکول کيږي چې دهغو څخه ددواړو فريقو سهام پوره راوځي او ددولسو عول تراوه لسوپوري کيږي مګرطاق وي جفت نه وي يعنې ددوولسو عول

دیارلس.پنځلس اواوه لس كيداى شي څوارلس اوشپاړلس نه وي.مثلاسړى مړشوزوجه .موراودوې حقيقي خويندې يې پاتى شو .اصل مسئله له دوولسوڅخه اېښودله كيږي چې دهغوڅخه درې حصى زوجه نه دوې مورته اواته خويندوته وركولى كيږي چې مجموعه يې ديارلس كيږي.ترمسئله زياتى دي لهذاعول ديارلسوته وركول كيږي چې دهغوڅخه دټولوسهام پوره راوځي .دځلوروېشتوعول يواځې تراوه ويشتوپورې راځي يعنې نه پنځه ويشت اوشپږويشت وي اونه تراوه ويشتولوړيږي مثلاسړى مړشوزوجه .دوې لونړه .موراوپلاريې پاتى شو.اصل مسئله له څلورويشتوڅخه جوړيږي چې په هغوكې درى حصى زوجه ته شپاړلس لونوته اوڅلورمورته څلورپلارته وركولى كيږي چې مجموعه يې اوه ويشت راځي چې تراصل مسئله زيات دي لهذاددې مسئلى عول اوه ويشتوته كيږي.

(۳۱)فإن انكسر حظ فريق ضرب وفق العدد في الفريضة إن وافق وإلا فالعدد في الفريضة فالمبلغ مخرجه (۳۲)وإن تعدد الكسر وتماثل ضرب واحد وإن تداخل فالأكثر (۳۳)فإن توافق فالوفق (۳۴)وإلا فالعدد في العدد ثم وثم ثم جميع المبلغ في الفريضة وعولها (۳۵)وما فرض يرد على ذوي الفروض بقدر فروضهم إلا على الزوجين فإن كان من يرد عليه جنسا واحدا فالمسألة من رؤسهم كبنتين أو أختين (۳۶)وإلا فمن سهامهم فمن اثنين لو سدسان وثلاثة لو ثلث وسدس وأربعة لو نصف وسدس وخمسة لو ثلثان وسدس (۳۷)أو نصف وسدسان (۳۸)أو نصف وثلث (۳۹)ولو مع الأول من لا يرد عليه اعط فرضه من أقل مخارجه ثم اقسم الباقي على من يرد عليه كزوج وثلاث بنات (۵۰)وإن لم يستقم فإن وافق رؤسهم فاضرب وفق رؤسهم في مخرج فرض من لا يرد عليه كزوج وست بنات وإلا فاضرب كل عدد رؤسهم في مخرج فرض من لا يرد عليه كزوج وخمس بنات (۵۱)ولو مع الثاني من لا يرد عليه اقسم ما بقي من مخرج فرض من لا يرد عليه على مسألة من يرد عليه كزوجة وأربع جدات وست أخوات لأم

**ترجمه** :اوكه ماته شى حصه ديوفريق نوضربيږى وفق درؤسوپه اصل مسئله كې كه توافق ووكه نه كل عددرؤس په اصل مسئله كې بياهغه حاصل ضرب مخرج ګرځي اوكه ډيرخايه كسروواوتماثل ورنوبياضربيږى يو اوكه تداخل ووبياهغه ډيرعدداوكه توافق ووبياوفق دعدد؛كه نه بياعددرؤس په بل عددكې ضربيږي بياحاصل ضرب په اصل مسئله اوعول كې ضربيږي اوڅه چې پاتى شى هغه پرذوي الفروضوباندى رارديږي دهغوئ دسهاموبطابق سوادزوجينوبياكه دغه من يردعليه جنس واحدوونوبيامسئله دهغوئ درؤسودعددڅخه اېښودله كيږى لكه دوې لونې يادوې خويندي كه نه بيادهغوئ دسهاموموافق اوله دووڅخه ښودله كيږي كه دوه سدسان وواوله دريوڅخه كه ثلث اوسدس وواوله څلوروڅخه كه نصف اوسدس وواوله پنځوڅخه كه ثلثان اوسدس ياسدس يانصف او؛وه سدسه ووياڼصف اوثلث وواوكه ووله اول سره هغه چې پرهغه باندې ردنه كيدى نووردې كړي دهغه فرض داقل دمخارجوڅخه بيادې باقى پرمن يردعليه باندې تقسيم كړي لكه خاونداودرې لونې اوكه بياپوره تقسيم نه كيدى نوبياكه ددوئ په رؤسوكې توافق ووبيادې ضرب كړي وفق درؤسودمن لايردعليه په مخرج كې لكه خاونداوشپږلونې كه نه بيادې ضرب كړي كل رؤس دمن لايردعليه دفرض په مخرج كې لكه خاونداوپنځه لونې اوكه ووله دوهم سره من لايردعليه نوتقسيم دې كړي هغه چې پاتى شي دمن لايردعليه دفرض دمخرج څخه دمن يردعليه پرمسئله باندې لكه ښځه اوڅلورجدات اوشپږاخيافى خويندې.

**تشريح** :(۴۱)كله داسې يوصورت مخته راځي چې سهام پروړثه ؤباندي برابرنه تقسيمېږي ځكې په سهاموا وعددورثه ؤكې كسرواقع كيږي ددغه كسرليري كولوته دميراث په اصطلاح كې تصحيح وايې.بيا كه دوارثانو ديو فريق حصه پرهغوئ باندي پوره نه تقسيميدله بيا به ورته وګورو چې كه چيرته دحصه والاؤاو عددترمنځ دتوافق نسبت وونو دوارثانو دعددوفق به راواخلو په اصل مسئله كې (يعني هغه چې دټولو حصومخرج ګرځيدلی وو )به يې ضرب كړومثلاوارثان ابوين اولس لونې دي مسئله له شپږوڅخه جوړيږي ابوينوته سدسان بلاكسرورکول كيږي اولسولونوته له ابوينوڅخه باقی مانده څلورحصی ورکولې كيږي اوڅلورپرلسوباندي بلاكسرنه تقسيميږي اودڅلوروا ولسوترمنځ دتوافق نسبت دی ددووپرعددباندي دواړه تقسيميدای شي نودعددرؤس يعني لسووفق پنځه به راواخلي په اصل مسئله يعني شپږوكې به ضرب كړای شي حاصل ضرب ديرش كيږي اوس به مسئله له ديرشوڅخه نبودله كيږي چې بلاكسرپروارثانوباندي تقسيميږي چې پنځه پنځه سهام ابوينوته ورکولې شي اوله لسولونوڅخه هرې يوې ته دوې دوې سهام وركولې كيږي اوكه دحصواودهغوداخيستونكو ترمنځ دتوافق نسبت نه وو(بلكې تباين وولكه دڅلورواودريوترمنځ يادپنځواوشپږوترمنځ ) نوبياپه دې صورت كې ټول عددرؤس په اصل مسئله كې ضربيږي اوڅه چې حاصل ضرب راووځی له هغه څخه بياټولې حصې تقسيميږي همدارنګه په دې حساب سره ټولو ته خپله خپله حصه پوره وررسيږي.

(۴۲)اوكه كسرڅوځايه راغلی وويعني دوارثانوڅوفريق وواودهرفريق سهام په هغوئ پوره نه رسيدی بلكې په ټولوكې كسرراته نوكه دټولوفريقوپه عددرؤس كې دتماثل نسبت وو(يعني په شماركې ټول سره برابروو )نوله دوئ څخه به دهرفريق عدددا صل مسئله په عددكې ضرب كړی شي مثلاپه وارثانوكې درې لونې دي اودرې اعمام(تره ګان دي ) مسئله له دريوڅخه جوړيږي لونوته دوه اواعماموته يوه حصه وركوله كيږي اوپه دواړوفريقوكې كسردی اودواړه فريق په عددكې سره برابردي لهذا ديوه فريق عددبه راواخلي په اصل مسئله كې به يې ضرب كړي حاصل ضرب نه جوړيږي اوله نهوسهاموڅخه شپږلوڼاتوته اودرې اعماموته وركول كيږي په دې ډول كسرختم كيږي اوكه دټولوفريقوپه عددرؤسوكې دتداخل نسبت وويعني داسې وو چې له هغوئ نه ځيني زيات اوځيني كم وواوزيات عددپركم باندی بلاكسررسيده نوچې دكوم فريق كسان زيات وي دهغوئ عددرؤس داصل مسئلې په عددكې ضربيږی مثلاپه وارثانوكې څلورزوجاتې دي درې جداتې دي اودوولس اعمام دي.مسئله له دوولسوڅخه نبودله كيږي زوجاتوته ربع يعني درې سهام وركول كيږي چې پردوئ باندي برابرنه تقسيميږي اودعددرؤس اوسهام ترمنځ تباين دی نوموږعددرؤس راواخيست چې څلوردی اوجداتوته سدس يعني دوه سهام وركول كيږي چې پرهغوئ باندي برابرنه تقسيميږي اودعددرؤس اوسهام ترمنځ نسبت تباين دی موږعددرؤس راواخيست چې درې دي.اودولسواعماموته باقی مانده يعني اوه سهام وركول كيږي چې پرهغوئ باندي برابرنه تقسيميږي نوموږدهغوئ عددرؤس راواخيست بياموددريوواړوفريقودعددرؤس ترمنځ نسبت ملاحظه كړنودفريق اول اوثاني عددرؤس (چې څلوراودرې دي ) دفريق ثالث له عددرؤس سره دتداخل نسبت لري نوموږدفريق

ثالث عددرؤس په اصل مسئله کې ضرب کړحاصل ضرب يوسل څلورڅلوېښت جوړشوچې پرټولو وارثانوباندې بلاکسر تقسيميږي.

(۴۳) قوله وان توافق فالوفق اى ان توافق بعض اعدادرؤس بعضا فالحكم ان يضرب وفق احدالاعدادفى جميع العددالموافق. يعني که دوارثانو دفريقو په عدد کې دتوافق نسبت وو(يعني هغه يوداسې عدد وچې په يوه دريم عدد سره دواړه فناکيداى شي لکه اته اوشل چې دڅلور وعدد يې فناکولاى شي) نوپه دغه صورت کې ديوه عدد وفق په بل پوره عدد کې ضربيږي بيا دحاصل ضرب اودريم عدد ترمنځ نسبت کتل کيږي که دتوافق نسبت وونو حاصل ضرب ددريم عدد په وفق کې ضربيږي اوکه دتباين نسبت وونو په کل عدد کې ضربيږي بيا دحاصل ضرب اوڅلورم اوپنځم عدد ترمنځ نسبت کتل کيږي بيا دټولو اعدادو حاصل ضرب په اصل مسئله کې ضربيږي مثلاً په وارثانو کې څلورزوجاتې، اتلس لوڼې پنځلس جداتې اوشپږ اعمام دي، مسئله له څلورويشتوڅخه جوړدله کيږي. زوجاتوته دکل ترکه ثمن يعني درې سهام ورکول کيږي دسهامو اوعدد زوجات ترمنځ تباين دى نوموږدهغوئ عددرؤس، څلورمحفوظ کړل اواتلسولوڼوته ثلثان يعني شپاړلس سهام ورکول کيږي دسهامو يعني شپاړلسو اودهغوئ دعددرؤس يعني اتلسو ترمنځ توافق بالنصف دى نوموږنصف عددرؤس يعني نه محفوظ کړل، اوپنځلسوجداتوته سدس يعني څلورسهام ورکول کيږي دسهامو يعني څلوروا وعددرؤس يعني پنځلسو ترمنځ تباين دى نوموږپنځلس کل عددرؤس محفوظ کړل. اوشپږاعمام څرنګه چې عصبه دي اوله ترکه څخه يوسهم پاتې شوى دى لهذا هغوئ ته يوسهم ورکول کيږي ددوئ دسهم يعني يوه اودهغودعددرؤس يعني شپږوترمنځ تباين دى نوموږدهغوئ کل عددرؤس يعني شپږمحفوظ کړل. اوس دټولوفريقومحفوظ اعدادرؤس ۴، ۹، ۱۵، ۶، دي اوموږدهغوئ ترمنځ نسبت تلاش کړدڅلوروا وشپږوترمنځ توافق بالنصف دى څکه دڅلورونصف يعني دوه موپه شپږوکې ضرب کړل حاصل ضرب دوولس دي اوبيادوولسواونهوترمنځ توافق بالثلث دى نوددوولسوثلث يعني څلورموپه نهوکې ضرب کړل نوحاصل ضرب شپږديرش دي بيادشپږديرشواوپنځلسوترمنځ توافق بالثلث دى دشپږديرشوثلث يعني دوولس موپه پنځلسوکې ضرب کړل نوحاصل ضرب يوسل اتياشول بيامودغه مجموعه په اصل مسئله يعني څلورويشتوضرب کړه چې څلورزره درې سوه شل (۴۳۲۰)حاصل شوبيايوسل اتيا(۱۸۰)دهريوه په حصه کې له ضربولوڅخه دڅلوروزوجاتو مجموعه پنځه سوه څلوېښت (۵۴۰)اوهريوه ته يوسل پنځه ديرش (۱۳۵)اواتلسولوڼوته مجموعه دوه زره اته سوه اتيا(۲۸۸۰)اوهري يوې ته يوسل شپيته (۱۶۰)اوپنځلسوجداتوته مجموعه اوه سوه شل (۷۲۰)اوشپږواعماموته مجموعه يوسل اتيا(۱۸۰)اوهريوه ته ديرش وررسيږي.

**فائده**: آسانه طريقه يې داده چې دټولو وارثانو درؤسوذواضعاف اقل راوايستل شي کوم عددچې حاصل ذواضعاف راووت هغه عددپه مسئله کې ضرب کړاى شي له حاصل ضرب څخه صحيح تقسيم کيږي په مذکورصورت کې حاصل ذواضعاف اقل دوولس دي. دوولس چې په مسئله کې ضرب کړاى شي حاصل ضرب يوسل شپږڅلوېښت دي چې دهغه څخه صحيح تقسيم کيږي. همدارنګه حاصل ذواضعاف اقل

دټولو وارثانو په سهامو کې ضرب کړي حاصل ضرب ددي وارثانو سهام کيږي بيادهرفريق سهام دهغه فريق پرعددرؤس باندي تقسيم کړاى شي حاصل تقسيم دهغه فريق فى نفرسهم کيږي.

(۴۴)قوله والافالعددفى العدداى وان لم يوافق بعض الاعدادبعضايضرب احدالاعداوفى جميع الثانى الخ .يعني که دټولوفريقوعد دپخپل منځ کې سره متباين وونوديوه فريق عدددبل فريق په عددکې اوبياحاصل ضرب ددريم فريق په عددکې اوبياپه آخرکې حاصل ضرب دهغې مسئلې په عددکې ضرب کړاى کيږى اوکه مسئله عوليه وه په عول کې ضربيږى مثلايوسړى مړشودوې ښځې شپږجدات ،لس لوڼي .اوه آکاگان يې پاتې شول .نواصل مسئله له څلورويشتو(۲۴)ښودله کيږي چې ثمن يې (درې) دي دووښځوته ورکول کيږي اودهغوئ دعددرؤس يعني دوواوسهامويعنې دريوترمنځ تباين دى څکه کل عددرؤس يعني دوه محفوظ شو .اودڅلورويشتويوسدس (يعنې څلور) شپږوجداتوته ورکړل کيږي دهغوئ دعددرؤس اوسهامويعني څلوروترمنځ توافق بالنصف دى څکه نصف عددرؤس يعني درې محفوظ وساتل شو .اودڅلورويشتودوه ثلثه (يعني شپاړلس) لسولوڼوته ورکول کيږي دهغوئ دعددرؤس يعني لساوسهامويعني شپاړلسوترمنځ توافق دى څکه نصف عددرؤس (يعنې پنځه )محفوظ شو.اوله څلورويشتوڅخه باقى مانده پنځه سهام اعماموته ورکول کيږي څکه اعمام عصبه دي اوداعامودعددرؤس يعني اووادهغوئ دسهامويعني پنځوترمنځ تباين نسبت دى څکه مودهغوئ عددرؤس محفوظ کړ ،اول ټول ۲ ، ۳ ، ۵ ، ۷، متباثنه اعدادشوبيامودوه په دريوکې ضرب کړل شپږتړې جوړشوبيامو حاصل ضرب شپږپه پنځوکې ضرب کړل ديرش څيني جوړشوبيامو ديرش په اووکې ضرب کړل نودوه سوه لس شو .بيامودغه مجموعه په اصل مسئله څلورويشتوکې ضرب کړل نوټول ۵۰۴۰پنځه زره څلويښت شوله دي څخه ټولوته برابرې حصې ورکولې کيږي په دې ډول چې حاصل ضرب دوه سوه لس دهرفريق په حصه کې ضرب کړي نوددووزوجاتومجموعه شپږسوه ديرش اوهرې يوې ته درې سوه پنځلس رسيږي اودشپږوجداتومجموعه اته سوه څلويښت اوهرې يوې ته يوسل څلويښت رسيږي.دلسولوڼومجموعه درې زره درې سوه شپيته (۳۳۶۰)کيږي هرې يوې ته درې سوه شپږديرش رسيږي اوداوواعمامومجموعه دوه سوه لس اوهريوه ته ديرش رسيږي.

**فائده** :په دي صورت کې هم دوارثانودرؤسويعني شپږ،دوه ،لس ،اوه ذواضعاف اقل ايستلوڅخه حاصل ذواضعاف اقل دوه سوه لس جوړيږي چې په اصل مسئله يعني څلورويشتوکې دضربولوڅخه حاصل ضرب ۵۰۴۰راوځي چې ټولوته څيني برابرسهام رسيږي.

(۴۵)اوذوى الفروضوته چې حصص ورکړل شي کوم مال چې پاتې شى هغه ذوى الفروضوته دهغوئ دحصوموافق ورکول کيږي سوادزوجينو(چې دوئ که څه هم له ذوى الفروض څخه دي) مگرهغوئ ته له پاتې شوي مال څخه هيڅ نه ورکول کيږي اوددغه پاتې شوي مال دوباره ورکولوته دميراث په اصطلاح کې رد ويل کيږي.چې طريقه يې داده چې پرکوموارثانوچې ردکيداى شي که هغوئ ديوه جنس وونودهغوئ حصى دهغوئ دشمارموافق کيږي مثلاديوه مړي وارثان يواځې دوې لوڼې يادوې خويندي دي نوددوئ

مسئله له دريوڅخه جوړيږي له دريوڅخه دوې حصې هغوئ ته ورکولې کيږي يوه حصه پاتيږي اوس دايوه حصه پرهغوئ باندې درديدوصورت داسې جوړيږي چې دهغوئ حصې دهغوئ دعددموافق ګرځي يعنې اصل مسئله له دووڅخه جوړيږي په دې ډول پرهغوئ باندې صحيح تقسيم کيداى شي.

(۴۶)قوله والافمن سهامهم اى وان لم يكن من يرذعليه من الورثة جنساواحدافيجعل المسئلة من سهامهم،يعنې پرکوموورثانوچې ردکيداى شي هغوئ څوجنسه وونوبيامسئله دهغوئ دحصوله شمارڅخه ښودله کيږي يعنې لوړى به داصل مسئلې څخه چې څومره حصې هغوئ ته رسيدلې وي هغه به جمع کړاى شي اوکوم چې حاصل جمع وي هغه به داصل مسئلې عددوګڼل شي مثلاکه دوه کسان دشپږمې حصې والاسره جمع شول لکه دمړه جده اواخيافى خورنوپه دې صورت کې به مسئله له شپږوڅخه جوړيږي له شپږوڅخه به هريوه ته يوه يوه حصه ورکوله کيږي نودواړوته به دوه سهام وررسيږي نواصل مسئله به له دووڅخه ړدي په دې ډول پرهغوئ باندې ترکه.په صحيح ډول تقسيميږي اوکه دثلث اوسدس والاسره جمع شولکه موراودوې اخيافې خويندې نوپه دې صورت کې به مسئله له شپږوڅخه ښودله کيږي اودوارثانوکل سهام درې دي نواصل مسئله به له دريوڅخه جوړيږي چې له هغوڅخه به يوسهام مورته اودوه سهام اخيافى خويندوته ورکول کيږي.

(۴۷)اوکه دسدس اونصف والاسره جمع شومثلايوه لوراويولمسى نواصل مسئله له شپږوڅخه جوړيږي اودورثهٔ مجموعه سهام څلوردي درې سهام دلوردي اويوسهم دلمسى دى نومورِمسئله له څلوروڅخه ړدوچې له هغوڅخه درې حصې لورته ورکولې کيږي اويوه حصه لمسى ته.

(۴۸)اوکه دثلثان اوسدس والاسره جمع شومثلادمړه دوې لونې اوموروه ،يادنصف اودووسدسانووالاسره جمع شومثلايوه حقيقى خوراويوه اخيافى خوروه يادنصف اويوه ثلث والاسره جمع شونوپه دغودريوواړوصورتونوکې اصل مسئله له شپږوڅخه ښودله کيږى اوورثهٔ ته چې سهام رسيږي په درې واړه صورتونوکې پنځه دي لهذامورِمسئله له پنځوڅخه ړدو.

(۴۹)اوکه له اول سره من لايرذعليه وويعنې که وارثان يوجنس وواوله دوئ سره يوداسې وارث هم ووچې پرهغه باندې ردنه شواى کيداى(مثلاله هغه سره دمړه خاوندووياېې ښځه وه )نوپه دې صورت کې دخاونديابښځې حصه ترټولوکمه حصه مخرج السهم څخه جوړيږي اوورکول کيږي اوباقى پرهغويوه جنس وارثانوباندې تقسيميږي مثلايوه ښځه مړه شوه اوپه وارثانوکې يې يوخاونداودرې لونې پاتې شوې نودخاوندحصه ده لهذادهغه حصه ترټولوله کم مخرج يعنې څلوروڅخه يوه حصه خاوندته ورکوله کيږي باقى درې حصې درې لونوته ورکولې کيږى داهغه صورت دى چې دمن لايرذعليه له حصې ورکولوڅخه وروسته باقى مانده پروارثانوباندې برابرې تقسيميږي.

(۵۰) او كه د من لا يرد عليه له حصو وركولو څخه وروسته باقي مانده پر وارثانو باندي برابره تقسيميده نو د تصحيح قاعده دي جاري كړای شي يعني وده ي ګوري چې د عدد رؤس او سهامو ترمنځ توافق شته كه نه؟ كه توافق وونو وفق رؤس دي په اصل مسئله كې ضرب كړای شي مثلاً ښځه مړه شوه خاوند او شپږلوڼې يې پاتي شوې نو د خاوند فرض له اقل مخارج (يعني څلورو) څخه يوه حصه دي وركړي درې حصې پاتي شوې چې پر لوڼو باندي برابرې نه تقسيمېږي او د شپږو او دريو ترمنځ توافق دی څكه د هغوئ د عدد رؤس شپږو وفق يعني دوه په اصل مسئله يعني په څلورو كې ضربيږي حاصل ضرب اته راوځي چې د هغو څخه دوې حصې خاوند ته وركولې كيږي او شپږ حصې شپږولوڼو ته وركولې كيږي. او كه د عدد رؤس او سهامو ترمنځ توافق نه وو تباين وونو كل رؤس د من لا يرد عليه د فرض په مخرج كې ضربيږي مثلاً ښځه مړه شوه خاوند او پنځه لوڼې يې پاتي شوي نو خاوند ته له اقل مخارج (يعني څلورو) څخه يوه حصه وركوله كيږي باقي درې حصې پاتيږي چې هغه پر پنځو انجونو باندي برابرې نه تقسيمېږي او د پنځو او دريو ترمنځ د تباين نسبت دی څكه كل عدد رؤس يعني پنځه په اصل مسئله يعني څلورو كې ضربيږي حاصل ضرب شل كيږي نو خاوند ته پنځه او انجونو ته مجموعه پنځلس او في نفر درې درې سهام وررسيږي.

(۵۱) او كه د ثاني سره من لا يرد عليه وو يعني كه د خاوند يا ښځې سره مختلف الجنس هغه وارث وو چې پر هغه باندي رد كيدای شوای نو من لا يرد عليه ته له حصې وركولو وروسته دي باقي مانده مال د من يرد عليه پر مسئله باندي تقسيم كړي كه د هغوئ پر سهامو برابر تقسيم كيدی مثلاً سړی مړ شو ښځه، څلور جدات او شپږ اخيافي خويندې يې پاتي شوې نو د من لا يرد عليه اقل مخرج څلور دي زوجې ته د هغه ربع يعني يوه حصه وركول كيږي وروسته درې حصې پاتيږي چې د من يرد عليه پر سهامو باندي برابر تقسيميږي څكه د اخيافي خويندو حق ثلث او د جداتو حق سدس دی نو اخواتو لره دوې حصې او جداتو لره يوه حصه كيږي. بيا څرنګه چې د من يرد عليه او د هغوئ په سهامو كې كسر دی لهذا د تصحيح ضرورت دی بيا مو د اخواتو او جداتو دواړو د عدد رؤس او عدد سهام نسبت وكوت نو د څلورو جداتو او د هغوئ د سهامو ترمنځ د تباين نسبت دی او د شپږو اخواتو او دو سهامو ترمنځ توافق بالنصف نسبت دی نو مونږ د هغوئ د عدد رؤس وفق يعني درې راواخيستل او هغه مو د جداتو په عدد رؤس يعني څلورو كې ضرب كړل او حاصل ضرب يعني دوولس مو په اصل مسئله يعني څلورو كې ضرب كړل نو ټول حاصل ضرب اته څلويښت شو چې له هغو څخه مسئله صحيح كيږي بيا له اته څلويښت سهامو څخه زوجې ته دوولس او څلورو جداتو ته مجموعه دوولس او في نفر درې درې او شپږو اخيافي خويندو ته مجموعه څلورويشت او في نفر څلور سهام رسيږي

(۵۲)وإن لم يستقم فاضرب سهام من يرد عليه في مخرج فرض من لا يرد عليه كأربع زوجات وتسع بنات وست جدات (۵۳)ثم اضرب سهام من لا يرد عليه في مسألة من يرد عليه وسهام من يرد عليه فيما بقي من مخرج فرض من لا يرد عليه (۵۴)وإذا انكسر فصحح كما مر (۵۵)وإن مات البعض قبل القسمة فصحح مسألة الميت الأول واعط سهام كل وارث ثم صحح مسألة الميت الثاني وانظر بين ما في يده من التصحيح الأول وبين التصحيح الثاني ثلاثة أحوال فإن استقام ما في يده من التصحيح الأول فلا ضرب وصحتا من تصحيح مسألة الميت الأول (۵۶)وإن لم تستقم فإن كان بينهما موافقة فاضرب وفق التصحيح الثاني في كل التصحيح الأول

**ترجمه** :اوکه پوره تقسیم نه کیدی نوضرب دي کړي دمن یردعلیه سهام دمن لایردعلیه دفرض په مخرج کي لکه څلورزوجات اونه لوڼې اوشپږجدات بیادي ضرب کړي دمن لایردعلیه سهام دمن یردعلیه په مسئله کي اودمن یردعلیه سهام په هغه کي چې باقی پاتی شي دمن لایردعلیه له مخرج څخه اوکه کسرواقع شوبیادي تصحیح وکړي لکه چې مخکې تیرشو.اوکه مړه شول ځیني ترتقسیم مخکي نوتصحیح دي وکړي داول مړي دمسئلې اووردي کړي دهروارث حصه بیادي تصحیح وکړي ددوهم مړي دمسئلې بیادي لحاظ کړي داول تصحیح مافی الیداودتصحیح ثانی درې احوال بیاکه برابره وه دتصحیح اول مافی الیدله تصحیح ثانی سره نودضرب ضرورت نشته بلکې دواړې مسئلې صحیح کیږي داول مړي له تصحیح څخه اوکه برابرنه وونوبیاکه چیرته ددوئ ترمنځ موافقت وونوضرب دي کړي دتصحیح ثانی وفق په کل تصحیح اول کي.

**تشریح** :(۵۲)یعني که چیرته له مخرج څخه دخاوندیانځې له حصی ورکولووروسته باقی مانده دهغومختلفووارثانو پرحصوباندي برابرنه شوای تقسیمیدای پرکوموباندي چې ردکیدای شي دهغوئ ټول سهام دي دخاوندیانځې دفرض په مخرج کې ضرب کړي حاصل ضرب دټولووارثانولپاره مخرج ګرځي مثلاسړی مرشوڅلورزوجات اونه لوڼې اوشپږجدات پاتي دي نواصل مسئله له څلورویشتوڅخه بنودله کیږي دامسئله ردیه ده موږدمن لایردعلیه اقل مخارج یعني اتوطرفته ردکړه بیاموږدهغوڅخه ومن لایردعلیه ته دهغوئ حصه یعني ثمن ورکړله هغه وروسته اوه حصې پاتی شوې چې دمن یردعلیه پرمسئله (چې پنځه دي ) برابرنه شوای تقسیمیدای لهذادمن یردعلیه جمیع مسئله یعني پنځه مودمن لایردعلیه دفرض په مخرج یعني اتوکې ضرب کړل حاصل ضرب څلویښت کیږي چې دهغوڅخه ددواړوفریقومسئله صحیح کیږي.

(۵۳)تردي وروسته که چیرته غواړئ چې له دي مبلغ څخه دهرفریق حصه جوړه کړئ نودهغوورثه وسهام پرکوموباندي چې ردنه شي کیدای دمن یردعلیه داصل مسئلې په عددکې ضرب کړئ حاصل ضرب مبلغ مذکوردمن لایردعلیه حصه کیږي ،بیادي دمن یردعلیه سهام په هغه عددکې ضرب کړای شي کوم چې دنه ردیدونکووارثانودمخرج څخه باقی پاتی دي حاصل ضرب دهغه فریق حصه کیږي مثلاپه مذکوره مسئله کي دزوجاتویوه حصه ده یوچې په پنځوکې ضرب شي حاصل ضرب پنځه دي لهذاله څلویښتوڅخه دزوجاتوحصه پنځه دي اودبناتوحصه څلوردي څلوردمن لایردعلیه دمخرج څخه په باقی مانده یعني اووکې ضربیږي حاصل ضرب اته ویشت کیږي لهذاله څلویښتوڅخه دبناتوحصه اته ویشت ده .

دجداتويوه حصه ده يوچې په اووكې ضرب شي حاصل ضرب اوه كيږي لهذاله څلويښتوڅخه دجداتو حصه اوه دي.

(۵۴)اوكه چيرته په دغه تقسيم كې په ټولويابعضوفريقوكې كسرراشي (يعنې دحصوعدد دوارثانو پرعددباندي پوره نه تقسيميږي ) نودتصحيح دقواعدوموافق دي دهغه تصحيح وكړاى شي،په مذكور صورت كې پردريوفريقوباندي كسرراځي يعنې څلورزوجات اودهغوئ پنځه سهام په دي كې كسر راځي.اودعددرؤس اوسهام ترمنځ دتباين نسبت دى اونه بنات اودهغوئ اته ويشت سهام په دي كې كسردى اودلته هم دعددرؤس اوسهام ترمنځ دتباين نسبت دى شپږجدات اودهغوئ په سهاموكې هم كسردى اودهغوئ دعددرؤس اوسهام ترمنځ دتباين نسبت دى .بياموږداعدادرؤس ترمنځ نسبت وكاته نودرؤس جدات اورؤس زوجات ترمنځ توافق بالنصف دى نوموږدڅلورونصف يعنې دوه په شپږكې ضرب كړل حاصل دولس شوددوولسواونهوبناتودعددرؤسوترمنځ نسبت توافق بالثلث دى نوموږدنهوثلث يعنې درې په دولسوكې ضرب كړل حاصل ضرب شپږديرش شوبياموشپږديرش په مسئله يعنې څلويښتوكې ضرب كړل حاصل ضرب يوزرڅلورسوه څلويښت (۱۴۴۰)شوچې دهغوڅخه دټولوفريقوپركسانوباندي مسئله صحيح تقسيميږي.

(۵۵)كله بياداسې هم كيږي چې يوڅوك مړشي دهغه وارثان دده جائيدادنه تقسيموي بلكې په مشتركه ډول يې سره خوري بياپه دغووارثانوكې يوبل څوک مړشي همدارنگه بيادريم مړشي بياڅلورم غرض داچې ډيرى وارثان ترتقسيم مخكې مړه شي اوخپلې خپلې حصې خپلووارثانوته پرېږدي په آخركې ددې مشتركه جائيداددتقسيم ضرورت پيداكيږي نومصنف رحمه الله له دې ځاى څخه ددې تقسيم طريقه بيانوي چې كه دتركه ترتقسيم مخكې يووارث مړشي نوپه دې وخت كې پرووارثانوباندې دتركه دتقسيم صورت دادى چې لومړى به دميت اول داصل مسئلې دقواعدومذكوره ؤمطابق تصحيح وكړاى شي اودهروارث چې څومره حصه جوړيږي هغه وركړله شى يعنې تعين كړاى شي.له هغه وروسته ددوهم مړي اصل مسئله دهغه پروارثانوباندي په مذكوره قواعدو سره تصحيح كړاى شي بيادي ورته وگوري چې دغه دوهم مړي ته چې دمخكينى تصحيح څخه كومه حصه رسيدلې ده دهغى دعدد(يعنې مافي اليد ) اودوهمى تصحيح دعددترمنځ له دريونسبتونو(يعنې توافق.تباين اوتساوى) څخه ديوه نسبت ضرورت شته بياچې دغه مړي ته له لومړى تصحيح كوم سهام رسيدلي دى هغه پردوهم تصحيح باندي پوره تقسيمداى شواى اوكسرنه راته نوبيادضرب ضرورت نشته داول ميت دتصحيح دعددڅخه دادواړې مسئلې صحيح كيږي مثلاً سړى مړشولور.موراوعلاتى خوريې پاتې شول .بيايې خوردتركه دتقسيم څخه مخكې مړه شوه په وارثانوكې يې خاونداومورپاتې شول نوداول مړه مسئله له شپږوڅخه جوړيږي درې حصې لورته يوه حصه مورته اودوې حصې خورته رسيږي.اوددوهم مړه مسئله له دووڅخه جوړيږي يوسهم زوج ته اويومورته وركول كيږي .همدارنگه له لومړى مسئلې څخه چې كومه حصه ميت ثانى ته وررسيدلې ده يعنې دوه

سهام نوهغه پر:وهمه مسئله باندي صحيح تقسيميږي لهذاله هغودووسهاموڅخه يوسهم زوج ته اويومورته ورکول کيږي دبل کوم عمل ضرورت نشته.

(۵۲)اوکه هغه مافي اليدصحيح نه تقسيميده نوبيابه ورته وګوروچې ددي دوويعنې ميت ثاني دحصی(مافی الید) اودوهمې تصحيح ترمنځ کوم نسبت دی که دتوافق نسبت وونودوهمې تصحيح وفق دلومړۍ تصحيح په کل عددکې ضربيږي بياچې کوم انتهائی عددراوځي هم هغه دداړو مسئلو صحيح مخرج ګرځي مثلايوسړی مړشوپه وارثانوکې يې يوه زوجه يوه علاتی خوراوپنځه آکاګان پاتي شول اصل مسئله له څلوروڅخه جوړيږي يوزوجی ته ورکول کيږي اويوه حصه خورته اوآکاګانوته يوه حصه ورکوله کيږي ،اوس دآکاګانوحصه پرهغوئ باندي صحيح نه تقسيميږي لهذادهغوئ عدد رؤس په اصل مسئله کې ضربيږي حاصل ضرب شل جوړيږي چې دهغوڅخه دزوجې حصه پنځه کيږي خورته لس ورکول کيږي اواعماموته پنځه رسيږي ،بياچې خورمړه شي په وارثانوکې يې زوج،مور،لوراويوآکاپاتی شي،اصل مسئله له دولسوڅخه جوړيږي چې زوج ته دري ،مورته دوه،لورته شپږ اوآکاته يوه حصه ورکوله کيږي بياچې دي خورته له اولې مسئلې څخه لس سهام رسيدلي دي دهغواومسئله ثانی ترمنځ توافق بالنصف دی لهذادتصحيح ثانی وفق يعنې شپږپه کل تصحيح اول کې ضربيږي حاصل ضرب يوسل شل (۱۲۰)جوړيږي همدايوسل شل ددواړومسئلومخرج دی.

(۵۷)وَإن كان بينهما مُبَايَنَة فَاضرِب كُلَّ التَّصحِيحِ الثَّانِي في التَّصحِيحِ الأَوَّلِ فالمبلغ مَخرَجُ المَسأَلَتَينِ وَاضرِب سِهَامَ وَرَثَةِ المَيِّتِ الأَوَّلِ في التَّصحيح الثاني أو في وَفقِه وَسِهَامَ وَرَثَةِ المَيِّتِ الثَّانِي في نَصِيبِ المَيِّتِ الثَّانِي أو في وفقه (۵۸)وَيُعرَفُ حَظُّ كل فَرِيقٍ من التَّصحِيحِ بِضَربِ ما لِكُلٍّ من أَصلِ المَسأَلَةِ فِيمَا ضَرَبتَه في أَصلِ المَسأَلَةِ (۵۹)وَحَظُّ كل فَردٍ بِنِسبَةِ سِهَامِ كل فَرِيقٍ من أَصلِ المَسأَلَةِ إلَى عَدَدِ رؤوسهم مُفرَدًا ثُمَّ يُعطَى بِمِثلِ تِلكَ النِّسبَةِ من المَضرُوبِ لِكُلِّ فَردٍ (۶۰)وَإِن أَرَدتَ قِسمَةَ التَّرِكَةِ بين الوَرَثَةِ وَالغُرَمَاءِ فَاضرِب سِهَامَ كل فَرِيقٍ وَارِثٍ من التَّصحِيحِ في كل التَّرِكَةِ ثُمَّ اقسِم المَبلَغَ على التَّصحِيحِ (۶۱)وَمَن صَالَحَ من الوَرَثَةِ على شَيءٍ فَاجعَلهُ كَأَن لم يَكُن وَاقسِم ما بَقِيَ على سِهَامِ من بَقِيَ.
والحمدلله الذی بنعمته تتم الصالحات والصلوة والسلام علی رسوله محمدخير خلقه وآله اجمعين الطيبين الطاهرين.

**ترجمه** :اوکه تباين وودهغوئ ترمنځ نوضرب دي کړي کل تصحيح ثانی په کل تصحيح اول کې بيابه حاصل ضرب ددواړومسئلومخرج وي،اوضرب دي کړي دميت اول دورثهٔ سهام په تصحيح ثانی کې يادهغه په وفق کې اودميت ثانی دورثهٔ سهام به دميت ثانی په نصيب کې يادهغه په وفق کې ضرب کړي.اومعلوميږي دهرفريق حصه له تصحيح څخه دهغه په ضربولوسره کومه حصه چې هريوه لره ده له اصل مسئلې څخه په هغه کې په کوم کې چې ضرب کړی تاهغه په اصل مسئله کې اودهرشخص دحصې په نسبت قائمولو داصل مسئلې څخه دهرفريق دحصې دهغوئ دعددرؤسوسره تنهابياورکول کيږي دهغه نسبت په اندازه دمضروب څخه هرفردته اوکه ته غواړې چې ترکه تقسيم کړې پرورثهٔ باندي يا پرقرض خواهانوباندي نوضرب دی کړي دهروارث سهام له تصحيح څخه په جميع ترکه کې بيادي تقسيم کړي مبلغ

پر تصحيح باندي او كه چا صلح وكړه له وارثانو څخه نو هغه دي معدوم فرض كړای شي مابقي دي تقسيم كړی دباقي ورثه وُپر سهامو باندي.

**تشريح** :(۵۷)او كه دميت ثاني دمافي اليد او تصحيح ثاني ترمنځ دتباين نسبت وونو په دي وخت كې ددوهمي تصحيح كل عدد به لومړی تصحيح ضرب كړي ددي ضرب څخه چي كوم انتهائي عدد راوځي هغه ددواړو مسئلو مخرج كيږي يعني دهغه عدد څخه ددواړو مړو دوارثانو حصې پوره پوره راوځي او كه ددواړو مړو دوارثانو څخه دهريوه حصه معلومول غواړئ نو داول مړي دوارثانو سهام دي ددوهمي تصحيح په عدد كې (كه دميت ثاني دمافي اليد او دهغه دتصحيح ترمنځ دتباين نسبت وو ) يا دهغه په وفق كې (كه دمافي اليد او تصحيح ترمنځ دتوافق نسبت وو ) ضرب كړی او ددوهم مړي دوارثانو سهام دي ددوهم مړي په حصه كې يا دهغه په وفق كې ضرب كړای شي مثلا يو سړی مړشو يه ورثه وُكې يې يوه زوجه .يوه علاتي خور او دوه اعمام (آكاګان ) ياتي شول نو اصل مسئله له څلورو څخه جوړيږي يو زوجې ته نصف خورته او اعماموته يو سهم وركول كيږي چې پر اعمامو باندي برابرنه تقسيميده نو داعمامو عدد دوه په اصل مسئله كې ضرب كړی حاصل ضرب دولس كيږي چې دهغو څخه دري سهام زوجې ته شپږ سهام خورته او دوه سهام اعمامونه وركولي كيږي.بيا چې زوجه مړه شي او وارثان يې پنځه ورونه دي مسئله دپنځو څخه جوړيږي او له تصحيح اول څخه دهغې مافي اليد دري سهام دي چې پر مسئله باندي برابرنه تقسيميږي او ددواړو ترمنځ تباين دی نو كل تصحيح ثاني به په كل تصحيح ثاني كې ضرب كړای سي حاصل ضرب شپېته دي او همدا شپېته ددواړو مسئلو مخرج دی نو دميت اول څخه خورته شپږ سهام وركول كيږي چې په تصحيح ثاني يعني پنځو كې ضربيږي حاصل ضرب ديرش كيږي او اعماموته له ميت اول څخه دري سهام وركول كيږي چې په تصحيح ثاني كې ضربيږي حاصل پنځلس كيږي او ورونوته له ميت ثاني څخه پنځه سهام وركول كيږي چې دميت ثاني په مافي اليد(يعني دريو ) كې ضربيږی حاصل ضرب پنځلس كيږي.

(۵۸)او له تصحيح څخه دهرفريق حصه په دي طريقه معلوميږي چې هرفريق ته چې كوم عدداصل مسئلي رسيدلي دی هغه په هغه عدد كې ضربيږي كوم چې په اصل مسئله كې ضرب شوی و ..بيا چې ددغه ضرب څخه كوم حاصل شو هغه دهغه فريق حصه كيږي مثلا مړي دوې زوجات .څلور جدات لس لوڼي او اوه اعمام پريښودل.اصل مسئله دڅلورويشتو څخه جوړيږی چې دهغو څخه زوجاتوته دري.جدانو ته څلور .لوڼوته شپاړلس او اعماموته يوه حصه وركوله كيږي له تصحيح وروسته مسئله له پنځه زره څلويښتو څخه جوړيږي او په مذكورصورت كې دتصحيح لپاره څلورويشت په دوه سوه لس كې ضرب كړی شوي دي.اوس موږغواړو مثلاچې دزوجاتو حصه معلومه كړونو له څلورويشتو څخه دزوجاتو حصه دري دي هغه به په دوه سوه لسو كې ضرب كړو حاصل ضرب شپږسوه ديرش كيږي نو دزوجاتو حصه شپږسوه ديرش دي او دهرې زوجې حصه دري سوه پنځلس دي.

(۵۹)او که د هر فريق د هر فرد حصه معلوم مول غواړئ نو دهغه طريقه داده چې اول دي ته وکتل شي چې هر فريق ته چې د اصل مسئلې د عدد څخه سهام رسيدلي وي هغه دهغه فريق د رؤس له عدد څخه جلا جلا کوم نسبت لري چې کله دا نسبت معلوم شي نو بيا دي د مضروب څخه دهغه نسبت موافق دهغه فريق هر فرد ته حصه ورکوله شي مثلاً په مذکوره مسئله کې د زوجاتو د رؤسوا و سهامو ترمنځ د تباين نسبت دی او د عدد رؤس يعني دوو او عدد سهام يعني دريو کې د دوه نيمو نسبت دی يعني ديوه او دوه نيمو ترمنځ چې کوم نسبت دی هغه نسبت د دوو او دريو ترمنځ دی نو هغه دوه نيم چې د عدد په مضروب يعني دوه سوه لسو کې ضرب کړای شي نو حاصل ضرب درې سوه پنځلس کيږي او همدا دهرې زوجې حصه جوړيږي.

(۶۰)او که د وارثانو او يا قرضخواهانو ترمنځ ترکه تقسيمول غواړئ نو دهغه صورت دا دی چې اول هر وارث يا هر قرض خواه ته چې کوم سهام له تصحيح څخه رسيدلي دي هغه دي د ترکه په انتهائی عدد کې ضرب کړای شي بيا د ضرب څخه کوم عدد حاصل شي هغه دي پر تصحيح باندي تقسيم کړای شي مثلاً يوه ښځه مړه شوه په وارثانو کې يې زوج، مور او دوې حقيقي خويندي پاتی شوې نو اصل مسئله له شپږو څخه جوړيږي عوليه ده چې عول يې اته دي چې زوج ته درې حصې مور ته يوه حصه او دواړو خويندو ته دوه دوه حصې ورکولې کيږي نو موږ به فرض کړو چې کل ترکه پنځه ويشت ديناردي او س نو ته غواړې چې د زوج حصه ورکړې نو له تصحيح څخه زوج ته ورکړای شوې حصه يعني درې په پنځه ويشت کې ضرب کړه حاصل ضرب پنځه او يا کيږي او س دغه مبلغ پر تصحيح يعني اتو باندی تقسيم کړه چې دهغه څخه د زوج حصه نه ديناره او ديوه دينار درې ثمنه کيږي د نورو وارثانو حصې هم په دې ډول معلوميږي او پر قرض خواهانو باندی د تقسيم طريقه داده چې که چيرته د ميت له ترکه څخه د قرض خواهانو قرض نه شوای اداکيدلای نو قرض خواهان په منزله د ورثه ؤ او د هغوئ دين په منزله د سهامو او د هغوئ مجموع ديون په منزله د مسئلې ګڼله کيږي بيا د مجموع ديون او ترکه ترمنځ نسبت کتل کيږي که نسبت تباين وو نو د قرض خواه قرض په ترکه کې ضربيږي حاصل ضرب پر مجموع الديون باندي تقسيميږی او که نسبت د توافق وو نو د ترکه په وفق کې ضربيږي حاصل ضرب د ترکه پر وفق باندي تقسيميږي او که ترکه داخل وه په مجموع الديون کې نو د هر قرض خواه دين د مجموع الديون پر وفق باندي تقسيميږي باقی عمل تقسيم د ترکه په ډول ترسره کيږي.

(۶۱)مصنف رَحِمَهُ اللهُ د قسمت د بيان څخه فارغ شو نو د تخارج بيان يې شروع کړ. که کوم وارث د خپلې په عوض څه روپۍ، يا دوکان يا مکان وغيره واخلي صلح کول وغواړي او وارثان په دې باندي راضی شی نو دي ته تخارج وايي او دا جائز دی، او س د تقسيم ترکه په وخت کې دا داسي وګڼئ چې ګواکې دا وارث دی نه. بلکې داسی وو ايه چې هغه خپله حصه پخوا وصول کړې ده او بقيه ترکه د نورو وارثانو پر سهامو باندي تقسيم کړه مثلاً ښځه مړه شوه وارثان يې زوج، مور او آکا دی او زوج پر يوه مقدار باندي صلح وکړه نو باقی ترکه د مور او آکا د سهامو مطابق اثلاثاً تقسيميږي يوه حصه عم ته او دوې حصې مور ته ورکولې کيږي. ځکه اصل مسئله له شپږو څخه جوړيږي چې په هغو کې د زوج درې سهام هغه د بدل په صورت کې وصول کړې دي او مور ته د شپږو ثلث يعني دوې حصې ورکولې کيږي او باقی يو سهم عم ته ورکول کيږي.

**فائده**: نن سبا عام طور خویندو ته میراث نه ورکول کیږي بعض خلک هسې په رسمي ډول خویندو ته د میراث ورکولو دعوه کوي چې دهغو په جواب کې خویندې د زړه څخه بلکې محض په رسمي ډول انکار کوي. ظاهره خبره ده چې په دې ډول ترکه د ورونو لپاره حلاله نه ده. آسان صورت د تخارج دی په دې شرط چې حویندې په واقعي ډول په دې باندې راضي وي محض رسمي حیله نه وي. والله اعلم وعلمه اتم واکمل.

**(دژباړې پیل په کال ۱۴۳۴هق / رمضان المبارک اوپای په کال ۱۴۳۵هق/ ذی الحجة)**